
تاج

# تاج البخاری

پښتو شرح صحیح البخاری

جلد ۲ پاره ۶ تا ۱۰

شارح: مولانا ظهور الباری اعظمی فاضل دارالعلوم دیوبند

پښتو ترجمه: مولانا محمد امین درانی

نظر ثانی: حافظ قاری فضل کریم

اهتمام: دکتور محمد دین البشاوری

تاج کتب خانه رجسٹرڈ

قصه خوانی پشاور
فون: 214454

C-24

# تاج البخاري پاره ۶ دمضامینو فهرست

تمت

# شپږمه پاره

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

## باب ۱: مَا قِيۡلَ فِيۡ اَوۡلَادِ الۡمُشۡرِكِيۡنَ.

## باب ۱: دَ مشركانو دَ نابالغه اولاد بيان.

۱. نابالغه ماشومان بچي د شريعت په نظر كښ معصوم (پاك او غير مكلف دي (ورباندې احكام فرض نه دي) د دې وجې نه پدې خبره اجماع ده چه د مسلمانانو نابالغه خلاص دي (د هغوي د پاره د دوزخ نه نجات دې) ليكن چه ډير اولاد د خپل مور پلار په ډيرو معاملاتو كښ د هغوي تابع گنړلے شي. د دې وجې نه إمام ابو حنيفه رحمة الله عليه د كافرو دَ بَچو (نابالغه اولاد) په حقله تَوَقُّف كړے دے د توقف مطلب دا دے چه بعضے بچي به ئے خلاص وي او د بعضو بچو به ئے نجات نه وي. كومو ته به نجات وي د عذاب نه به په امن وي او كوم به نه وي. پدے الله تعالیٰ ښه پوهيږي. دا د الله تعالیٰ تكويني فيصلے دي. د عمل په اعتبار سره د كافرو نابالغه اولاد غير مكلّف دي. په هغوي څه اعمال فرض نه دي. د هغوي په تقدير كښ څه وو؟ د هغې په بنياد به ئے فيصلے كيږي.

۱: حَدَّثَنَا حَبَّانُ بۡنُ مُوۡسٰى قَالَ اَخۡبَرَنَا عَبۡدُ اللّٰهِ قَالَ اَخۡبَرَنَا شُعۡبَةُ عَنۡ اَبِىۡ بِشۡرٍ عَنۡ سَعِيۡدِ بۡنِ جُبَيۡرٍ عَنِ ابۡنِ عَبَّاسٍ قَالَ سُئِلَ رَسُوۡلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ عَنۡ اَوۡلَادِ الۡمُشۡرِكِيۡنَ فَقَالَ اللّٰهُ اِذۡ خَلَقَهُمۡ اَعۡلَمُ بِمَا كَانُوۡا عَامِلِيۡنَ.

۱: حسان بن موسیٰ. عبدالله شعبه. ابو بشر. سعيد بن جبير. ابن عباسؓ نه روايت كوي، رسول الله صلي الله عليه وسلم نه دَ مشركانو دَ اولاد متعلق تپوس اوشولو، نو حضور صلي الله عليه وسلم او فرمائيل، هر كله چه الله تعالیٰ هغوي پيدا كړل، نو هغه ښۀ پوهيږي په هغه خبره، چه هغوي كونكي وو.

۲: حَدَّثَنَا اَبُو الۡيَمَانِ قَالَ اَخۡبَرَنَا شُعَيۡبٌ عَنِ الزُّهۡرِيِّ قَالَ اَخۡبَرَنِىۡ عَطَاءُ بۡنُ يَزِيۡدَ اللَّيۡثِىُّ اَنَّهٗ سَمِعَ اَبَا هُرَيۡرَةَ يَقُوۡلُ سُئِلَ النَّبِىُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ عَنۡ ذَرَارِىِّ الۡمُشۡرِكِيۡنَ فَقَالَ اللّٰهُ اَعۡلَمُ بِمَا كَانُوۡا عَامِلِيۡنَ.

۲: ابو اليمان. شعيب. زهري عطاء بن يزيد الليثي. حضرت ابو هريره رضي الله عنه نه روايت كوي، نبي صلے الله عليه وسلم نه دَ مشركانو دَ اولاد متعلق تپوس اوشو، نو حضور صلي الله عليه وسلم او فرمائيل، الله تعالیٰ زيات پوهيږي په هغه كارونو چه هغوي كونكي وو.

٣: حَدَّثَنَا آدَمُ قَالَ حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِيْ ذِئْبٍ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ أَبِيْ سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كُلُّ مَوْلُوْدٍ يُوْلَدُ عَلَى الْفِطْرَةِ فَأَبَوَاهُ يُهَوِّدَانِهِ أَوْ يُنَصِّرَانِهِ أَوْ يُمَجِّسَانِهِ كَمَثَلِ الْبَهِيْمَةِ هَلْ تَرٰى فِيْهَا جَدْعَاءَ.

٣: آدم. ابن ابي ذئب. زهري. ابو سلمه بن عبدالرحمن. حضرت ابو هريره رضي الله عنه نه روايت كوي، نبي صلي الله عليه وسلم او فرمائيل، هر بچے په فطرت (دينِ اسلام) پيدا كيږي بيا دَ هغهٔ مور پلار هغه يهودي، نصراني يا مجوسي جوړوي، دَ ځناور په شان (چه سالم پيدا كيږي) آيا تاسو وينئ، چه هغے كښ څهٔ داسے هم پيدا كيږي، چه دَ هغه پوزه غوږونه پريكړے وي.

باب ٢:

باب ٢: (دے باب كښ عنوان نشته)

٤: حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ إِسْمٰعِيْلَ قَالَ حَدَّثَنَا جَرِيْرٌ هُوَ ابْنُ حَازِمٍ قَالَ حَدَّثَنَا أَبُوْ رَجَاءٍ عَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدُبٍ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا صَلّٰى صَلٰوةً أَقْبَلَ عَلَيْنَا بِوَجْهِهٖ فَقَالَ مَنْ رَأَى مِنْكُمُ اللَّيْلَةَ رُؤْيَا قَالَ فَإِنْ رَأَى أَحَدٌ قَصَّهَا فَيَقُوْلُ مَا شَاءَ اللّٰهُ فَسَأَلَنَا يَوْمًا فَقَالَ هَلْ رَأَى مِنْكُمْ أَحَدٌ رُؤْيَا قُلْنَا لَا قَالَ لٰكِنِّيْ رَأَيْتُ اللَّيْلَةَ رَجُلَيْنِ أَتَيَانِيْ فَأَخَذَا بِيَدِيْ فَأَخْرَجَانِيْ إِلَى أَرْضٍ مُقَدَّسَةٍ فَإِذَا رَجُلٌ جَالِسٌ وَّ رَجُلٌ قَائِمٌ بِيَدِهٖ قَالَ بَعْضُ أَصْحَابِنَا عَنْ مُوْسٰى كَلُّوْبٌ مِّنْ حَدِيْدٍ يُّدْخِلُهٗ فِيْ شِدْقِهٖ حَتّٰى يَبْلُغَ قَفَاهُ ثُمَّ يَفْعَلُ بِشِدْقِهِ الْآخَرِ مِثْلَ ذٰلِكَ وَ يَلْتَئِمُ شِدْقُهٗ هٰذَا فَيَعُوْدُ فَيَصْنَعُ مِثْلَهٗ فَقُلْتُ

٤: موسي بن اسمٰعيل. جرير بن حازم. ابو رجاء. سمره بن جندبؓ نه روايت كوي، نبيؐ چه به كله مونځ كولو، نو مونږ پله به متوجه كيدلو، او فرمائيل به ئے، چه تاسو كښ چا خوب ليدلے دے. كه چا به خوب ليدلے وو نو هغه به بيان كړلو. حضورؐ به دَ هغے تعبير او فرمائيلو، كوم چه به الله ته منظور وو. يوه ورځ حضورؐ مونږ نه تپوس اوكهٔ، چه تاسو كښ چا څهٔ خوب ليدلے دے. مونږ جواب ورکړلو. نه حضورؐ او فرمائيل. ليكن ما ليدلے دے، چه دوه سړي ماله راغلل، ځما لاس ئے اونيولو، او زهٔ ئے ارض مقدّس طرف ته بوتلم. هلته مِ اوليدل، چه يو سړے ناست دے، او بل ولاړ دے، او دَ هغهٔ په لاس كښ (ځمونږ بعضو ملګرو اووے چه دَ اُوسپنے كُنډه ده، چه هغه دَ هغے ناست سړي وخكي ته اچوي تردے چه هغه دَ هغهٔ ځټ ته اورسي. بيا دغه شان بل وخكي ته ئے اچوي او ورپسے وخكے جوړ شوے وي، نو هغے طرف ته بيا راشي، او دغه شان كوي. ما تپوس اوكهٔ، دا څهٔ دي، نو هغوي اووے، وړاندے ځه، نو مونږ په

مَا هٰذَا قَالَ انْطَلِقْ فَانْطَلَقْنَا حَتّٰى اَتَيْنَا عَلٰى رَجُلٍ مُضْطَجِعٍ عَلٰى قَفَاهُ وَ رَجُلٌ قَآئِمٌ عَلٰى رَأْسِهٖ بِفِهْرٍ اَوْ صَخْرَةٍ فَيَشْدَخُ بِهَا رَأْسَهٗ فَاِذَا ضَرَبَهٗ تَدَهْدَهُ الْحَجَرُ فَانْطَلَقَ اِلَيْهِ لِيَأْخُذَهٗ فَلَا يَرْجِعُ اِلٰى هٰذَا حَتّٰى يَلْتَئِمَ رَأْسَهٗ وَ عَادَ رَأْسُهٗ كَمَا هُوَ فَعَادَ اِلَيْهِ فَضَرَبَهٗ قُلْتُ مَنْ هٰذَا قَالَ انْطَلِقْ فَانْطَلَقْنَا اِلٰى نَقْبٍ مِثْلَ التَّنُّوْرِ اَعْلَاهُ ضَيِّقٌ وَّ اَسْفَلُهٗ وَاسِعٌ تَتَوَقَّدُ تَحْتَهٗ نَارًا فَاِذَا اقْتَرَبَ ارْتَفَعُوْا حَتّٰى كَادُوْا يَخْرُجُوْنَ فَاِذَا خَمَدَتْ رَجَعُوْا فِيْهَا وَ فِيْهَا رِجَالٌ وَّ نِسَآءٌ عُرَاةٌ فَقُلْتُ مَا هٰذَا قَالَ انْطَلِقْ فَانْطَلَقْنَا حَتّٰى اَتَيْنَا عَلٰى نَهْرٍ مِّنْ دَمٍ فِيْهِ رَجُلٌ قَآئِمٌ وَّ عَلٰى وَسَطِ النَّهْرِ قَالَ يَزِيْدُ بْنُ هَارُوْنَ وَ وَهْبُ بْنُ جَرِيْرٍ عَنْ جَرِيْرِ بْنِ حَازِمٍ وَّ عَلٰى شَطِّ النَّهْرِ رَجُلٌ بَيْنَ يَدَيْهِ حِجَارَةٌ فَاَقْبَلَ الرَّجُلُ الَّذِيْ فِي النَّهْرِ فَاِذَا اَرَادَ اَنْ يَّخْرُجَ رَمَاهُ الرَّجُلُ بِحَجَرٍ فِيْ فِيْهِ فَرَدَّهٗ حَيْثُ كَانَ فَجَعَلَ كُلَّمَا جَآءَ لِيَخْرُجَ رَمٰى فِيْ فِيْهِ بِحَجَرٍ فَيَرْجِعُ كَمَا كَانَ فَقُلْتُ مَا هٰذَا قَالَا

وړاندې روان شولو، تر دې چه یو سړي ته اورسیدو، چه سملم پروت وو، او یو بل سړے ولاړ وو، چه په یو غټ کانړي به ئې ذَ هغهٔ سر ماتولو، کوم وخت چه به ئې هغه وهلو، نو کانړے به ترې اوخویدلو. هغے کانړي ذَ پاره به چه هغه سړے ورغے، نو ذَ واپس کیدو پورې به ذَ هغے سړي سر ورغلے وو، او داسے به شوے وو، څنګه چه مخکښې وو، هغه به بیا واپس شولو او هغه به ئې په سروښلو. ما تپوس اوکه، دا څوک دے، هغے دواړو اووے. مخکښې ځه، مونږ په مخکښې روان شولو، نو ذَ تنور په شان یوے کندے ته اورسیدو، چه ذَ هغے ذَ پاسه حصه تنګه وه، او لاندے حصه ئې پلنه وَه. ذَ هغے لاندے اور بلیدهٔ. چه ذَ اُور تاؤ به پورته راغے نو کوم خلق چه هغے کښې دننه وو هغوي به پورته راختوته نزدے شو. او کوم وخت چه به اور سوړ شو، نو بیا به هغے ته دوباره واپس شول. او هغے کښې سړي او بربنډے ښځے وے. ما اووے، دا څهٔ دي. هغوي اووے. مخکښې ځه، مونږ په مخکښې لاړو، تر دے چه مونږ ذَ وینے یو نهر ته راورسیدو هغے کښې یو سړے ولاړ وو. او ذَ نهر په مینځ کښې یا څنګه چه زید بن هارون او وهب بن جریر ذَ جریر بن حازم نه روایت کړے دے، ذَ نهر په غاړه یو سړے وو، چه ذَ هغه مخکښې کانړي پراتهٔ وو. کوم وخت چه به هغه سړے چه نهر کښې وو. مخکښې راتهٔ او ذَ بهر راتلو اراده به ئې کوله، نو ذَ غاړے سړي به هغه په مخ په کانړي ويشتلو، او هغه به ئې واپس کولو، ذَ کوم ځائے نه چه به راغلے وو، او کله چه به هغه نزدے راغے، چه راوځي، نو دهٔ به هغه په خوله په کانړي ويشتلو، نو

انْطَلِقْ فَانْطَلَقْنَا حَتّٰى اَتَيْنَا
اِلٰى رَوْضَةٍ خَضْرَآءَ فِيْهَا شَجَرَةٌ
عَظِيْمَةٌ وَّفِيْ اَصْلِهَا شَيْخٌ وَّ صِبْيَانٌ
وَّ اِذَا رَجُلٌ قَرِيْبٌ مِّنَ الشَّجَرَةِ
بَيْنَ يَدَيْهِ نَارٌ يُّوْقِدُهَا فَصَعِدَا بِيْ
فِي الشَّجَرَةِ فَاَدْخَلَانِيْ دَارًا لَّمْ
اَرَقَطُّ اَحْسَنَ وَ اَفْضَلَ مِنْهَا فِيْهَا
رِجَالٌ شُيُوْخٌ وَّ شَبَابٌ وَّ نِسَآءٌ
وَّ صِبْيَانٌ ثُمَّ اَخْرَجَانِيْ مِنْهَا
فَصَعِدَا بِيْ اِلَى الشَّجَرَةِ فَاَدْخَلَانِيْ
دَارًا هِيَ اَحْسَنُ وَ اَفْضَلُ فِيْهَا
شُيُوْخٌ وَّ شَبَابٌ قُلْتُ
طَوَّفْتُمَانِي اللَّيْلَةَ فَاَخْبِرَانِيْ
عَمَّا رَاَيْتُ قَالَ نَعَمْ اَمَّا الَّذِيْ
رَاَيْتَهُ يُشَقُّ شِدْقُهُ فَكَذَّابٌ
يُحَدِّثُ بِالْكَذِبَةِ فَتُحْمَلُ عَنْهُ
حَتّٰى تَبْلُغَ الْاٰفَاقَ فَيُصْنَعُ
بِهِ اِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ وَالَّذِيْ
رَاَيْتَهُ يُشْدَخُ رَاْسُهُ فَرَجُلٌ
عَلَّمَهُ اللّٰهُ الْقُرْاٰنَ فَنَامَ عَنْهُ
بِاللَّيْلِ وَلَمْ يَعْمَلْ فِيْهِ بِالنَّهَارِ
يُفْعَلُ بِهٖ اِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ
وَالَّذِيْ رَاَيْتَهُ فِي الثَّقْبِ
فَهُمُ الزُّنَاةُ وَالَّذِيْ رَاَيْتَهُ
فِي النَّهْرِ اٰكِلُوا الرِّبٰوا وَالشَّيْخُ
الَّذِيْ فِيْ اَصْلِ الشَّجَرَةِ اِبْرَاهِيْمُ

هغه به هلته واپس شو، کوم خائے چه به وو. ما تپوس اوکۀ، دا څۀ دي، نو هغوي راته اووے. په مخکښ ځه. مونږ په مخکښ لاړلو، تر دے چه مونږ یو سرسبز او شاداب باغیچے ته نزدے اورسیدو، هغے کښ غټے اونے وے او دَ هغے په جرړ کښ یَو بوډا او یَو څو بچي وو. او یَو سړي هغے اونے ته نزدے خپلے مخے ته اُور بلولو هغے دوارو زۀ اُونے ته اُوخیژولم، او داسے کور کښ ئے داخل کړم، چه دَ هغے نه بهتر او ښۀ کور ما نۀ وو لیدلے. او هغے کښ بوډا ګان. ځلمي، ښځے او بچي وو. بیائے زۀ دَ هغے نه راوښکلم. او په یوه اُونه ئے او خیژولم او یو کور کښ ئے داخل کړم. چه بهتر اوښۀ وو، هلته مِ بوډاګان او ځلمي اولیدل. ما ورته اووے. تاسو دوارو زۀ ټوله شپه او ګرځولم، نو دَ دے متعلق ماته اوښائے، چه دا ما څۀ اولیدل. هغے دوارو اووے. ډیره ښۀ ده، هغه سړے چه تا اولید، چه دَ هغۀ وخکے څیرلے شو، هغه دروغژن سړے وو، چه دروغ خبرے به ئے بیانولے، او دَ هغۀ نه چه به ئے واوریدے نو خلقو به نوروته بیانولے، تردے چه هغه دروغ خبره به ټوله دُنیا کښ خوره شوله. هغۀ سره به دَ قیامته پورے دغه سلوک کیږي، او دَ چا سَر چه ډِے ماتیدونکے اولید، هغه سړے وو، چه هغۀ ته اللّٰه دَ قرآن عِلم عطا کړے وو، لیکن دَ هغے نه غافل وو، دَ شپے به اُودۀ وو، او دَ ورځے به ئے په هغے عمل نۀ کولو. دَ قیامته پورے به هغۀ سره دغسے کیږي. تنور کښ چه ډِے کوم خلق اولیدل هغه زناکار خلق وو. او کوم چه ډِے نهر کښ اولید، هغه سُود خور وو، او هغه مشر چه تا دَ اُونے جرړ سره اولید،

وَالصِّبْيَانُ حَوْلَهُ فَأَوْلَادُ النَّاسِ وَالَّذِيْ يُوْقِدُ النَّارَ مَالِكٌ خَازِنُ النَّارِ وَالدَّارُ الْأُوْلٰى الَّتِيْ دَخَلْتَ دَارُ عَامَّةِ الْمُؤْمِنِيْنَ وَ اَمَّا هٰذِهِ الدَّارُ فَدَارُ الشُّهَدَاءِ وَ اَنَا جِبْرَئِيْلُ وَ هٰذَا مِيْكَائِيْلُ فَارْفَعْ رَأْسَكَ فَرَفَعْتُ رَأْسِيْ فَاِذَا فَوْقِيْ مِثْلُ السَّحَابِ قَالَا ذٰلِكَ مَنْزِلُكَ فَقُلْتُ دَعَانِيْ اَدْخُلْ مَنْزِلِيْ قَالَ اِنَّهُ بَقِيَ لَكَ عُمُرٌ لَمْ تَسْتَكْمِلْهُ فَلَوِ اسْتَكْمَلْتَ اَتَيْتَ مَنْزِلَكَ.

هغه ابراهیم علیه السَّلام وو. او بچي دَ هغهٔ نه ګیر چاپیره دَ خلقو دي. او هغه سړے چه اُور ئې بلولو، دَ دوزخ مالک داروغه وو. او وړمبے کور چه هغے کښې تهٔ داخل شولے، دَ عامو مسلمانانو کور وو، او دا کور دَ شهیدانو دے. او زهٔ جبرائیلؑ او دا میکائیلؑ دے. خپل سر اُوچت کړه، ما سر اوچت کړهٔ، نو دَ ځان دَ پاسه مِ دَ وریځ په شان یو څیز اولید، هغے دواړو اووے، دا ستا کور دے. ما اووے، ما پریږدئې چه زهٔ خپل ځائے کښې داخل شم. نو هغے دواړو اووے. ستا عمر باقي دے چه پوره شوے لانهٔ دے، هر کله چه تهٔ دا عمر پوره کړے، نو خپل منزل ته به راشے.

۱. یعني کوم کور ئې چه ماته ښودلو هغه ډیر پورته وو صفا نه ښکاریده څکه د وریځے پشان معلومیدو.

### بَابُ ۳: مَوْتِ يَوْمِ الْاِثْنَيْنِ.

### باب ۳: دَ ګل (پیر) په ورځ دَ مرګ کیدو بیان.

۵: حَدَّثَنَا مُعَلَّى بْنُ اَسَدٍ قَالَ حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ عَنْ هِشَامٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ دَخَلْتُ عَلٰى اَبِيْ بَكْرٍ فَقَالَ فِيْ كَمْ كَفَنْتُمُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَتْ فِيْ ثَلٰثَةِ اَثْوَابٍ بِيْضٍ سَحُوْلِيَّةٍ لَيْسَ فِيْهَا قَمِيْصٌ وَّلَا عِمَامَةٌ وَ قَالَ لَهَا فِيْ اَيِّ يَوْمٍ تُوُفِّيَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَتْ يَوْمُ الْاِثْنَيْنِ قَالَ فَاَيُّ يَوْمٍ هٰذَا قَالَتْ يَوْمُ الْاِثْنَيْنِ قَالَ اَرْجُوْا فِيْمَا بَيْنِيْ وَ بَيْنَ اللَّيْلِ فَنَظَرَ

۵: وهیب. هشام بن عروه. عروه. بي بي عائشے رضي اللّٰه عنه نه روایت کوي. چه زهٔ ابوبکر رضي اللّٰه عنه له ورغلم، نو هغهٔ تپوس اوکهٔ، چه تا نبي صلي اللّٰه علیه وسلم څو کپړو کښې کفن کړے وو. جواب کښې ئې اووے، درے سپینو سحولي کپړو کښې، چه هغے کښې نهٔ قمیص وو، نه پټکے. او بي بي عائشے نه ئې تپوس اوکهٔ، په کومه ورځ رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلم وفات شوے وو، هغے اووے، دَ ګل په ورځ. بیائې تپوس اوکهٔ، نن دَ څهٔ ورځ ده، ما ورته اووے، نن دَ ګل ورځ ده. ابوبکر رضي اللّٰه عنه اووے، اُمید دے، دَ دے وخت نه دَ شپے دَ وخت پورے به (زهٔ لاړشم) بیائې هغے کپړے ته

إِلَى ثَوْبٍ عَلَيْهِ كَانَ يُمَرَّضُ فِيهِ رَدْعٌ مِنْ زَعْفَرَانٍ فَقَالَ اغْسِلُوا ثَوْبِيْ هٰذَا وَ زِيْدُوا عَلَيْهِ ثَوْبَيْنِ فَكَفِّنُوْنِيْ مِنْهُمَا قُلْتُ إِنَّ هٰذَا خَلَقٌ قَالَ إِنَّ الْحَيَّ أَحَقُّ بِالْجَدِيْدَةِ مِنَ الْمَيِّتِ إِنَّمَا هُوَ لِلْمُهْمَلَةِ فَلَمْ يُتَوَفَّ حَتَّى أَمْسَى مِنَ اللَّيْلَةِ الثُّلَاثَاءِ وَ دُفِنَ قَبْلَ أَنْ يُصْبِحَ.

نظر او كړ، چه ذ مرض حالت كښې ئې اغوستے وَه. په هغې ذ زعفران يو داغ وو. وې فرمائيل، څما دا كپړه او وينځئې، دې سره دوه كپړې زياتے كړئې، او څما كفن ئې كړئې. ما ورته اووې، دا خو زَړه كپړه ده، وې فرمائيل، ژوندې ذ نوې كپړو ذ مړي نه زيات مستحق دې، ځكه چې كفن خو نَو (پيپ) ذ پاره دې. بيا په هغه ورځ وفات نۀ شو، تردې چه ذ نهې (منګل) شپه راغله، او ذ سحر كيدو نه مخكښې دفن كړې شو.

۱. يو بل روايت كښې دي. چه دا د هغه وخت واقعه ده چه حضرت ابوبكر رضي الله عنه د وفات كيدو مرض كښې ناجوړه پروت وُ حضرت عائشے رضي الله عنها چه كله د خپل پلار دا سخت تكليف اوليدو. نو بې اختياره ئې ذ ژبې نه د افسوس او د غم ښكاره كولو الفاظ اووتل. نو ابوبكر رضي الله عنه د تسلئ وركولو د پاره ورته او فرمايل "داسې مه وايه بلكه دا آيت شريف اولوله وَ جَاءَتْ سَكْرَةُ الْمَوْتِ بِالْحَقِّ. او د دې نه روستو ئې دا پوښتنې اوكړې كوم چه دې حديث شريف كښې دي، الله ډير لوئې دې د دې حضراتو د قرآن مجيد او د رسول الله صلے الله عليه وسلم سره څومره محبت او تعلّق وو رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ وَ رَضُوا عَنْهُ.

## بَابُ ۴: مَوْتِ الْفَجَاءَةِ بَغْتَةً.

## باب ۴: ذ ناساپي مرګ بيان.

۲: حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ أَبِيْ مَرْيَمَ قَالَ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ قَالَ أَخْبَرَنِيْ هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ عَنْ أَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ أَنَّ رَجُلًا قَالَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ أُمِّيْ افْتُلِتَتْ نَفْسُهَا وَ أَظُنُّهَا لَوْ تَكَلَّمَتْ تَصَدَّقَتْ فَهَلْ لَهَا أَجْرٌ إِنْ تَصَدَّقْتُ عَنْهَا قَالَ نَعَمْ.

۲: سعيد بن ابي مريم. محمد بن جعفر. هشام بن عروه. عروه. بي بي عائشے رضي الله عنه نه روايت كوي، يو سړي نبي صلي الله عليه وسلم ته عرض اوكړ، چه څما مور ناساپه وفات شوله. او څما ګمان دې. كه هغې خبرې كړې وې، نو خيرات به ئې كړې وو. كه زۀ ذ هغې طرف نه صدقه وركړم، نو آيا هغې ته به اَجر وركړې شي، حضور صلي الله عليه وسلم او فرمائيل، او.

## باب ۵: مَا جَاءَ فِيْ قَبْرِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ أَبِيْ بَكْرٍ وَ

## باب ۵: ذ نبي صلي الله عليه وسلم، ابوبكر صديق رضي الله عنه، او عمر فاروق رضي الله عنه ذ

عُمَرَ وَ قَوْلُ اللّٰهِ عَزَّ وَ جَلَّ فَاَقْبَرَهُ اَقْبَرْتَ الرَّجُلَ اِذَا جَعَلْتَ لَهُ قَبْرًا وَّ قَبَرْتُهُ دَفَنْتُهُ كِفَاتًا يَّكُوْنُوْنَ فِيْهَا اَحْيَاءً وَ يُدْفَنُوْنَ فِيْهَا اَمْوَاتًا.

قبرونو بيان' اقبره' اقبرت الرجل اقبره معني دي: ما دَ هغهٔ دَ پاره قبر جوړ كړلو' دَ قَبَرْتُهٗ معني دي: ما هغه په قبر كښې دفن كهٔ. دكفاتًا معني دا دي' چه په دے به ژوند تيرول وي او دَ مرګ نه پس دِے كښې دفن كيدل دي.

۷: حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ قَالَ حَدَّثَنِيْ سُلَيْمَانُ عَنْ هِشَامٍ ح قَالَ وَحَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ حَرْبٍ قَالَ حَدَّثَنَا اَبُوْ مَرْوَانَ يَحْيَى ابْنُ اَبِيْ زَكَرِيَّا عَنْ هِشَامٍ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ اِنْ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ لَيَتَعَذَّرُ فِيْ مَرَضِهٖ اَيْنَ اَنَا الْيَوْمَ اَيْنَ اَنَا غَدًا اِسْتِبْطَاءً لِيَوْمِ عَائِشَةَ فَلَمَّا كَانَ يَوْمِيْ قَبَضَهُ اللّٰهُ بَيْنَ سَحْرِيْ وَ نَحْرِيْ وَ دُفِنَ فِيْ بَيْتِيْ.

۷: اسماعيل. سليمان. هشام. ح (دويم سند) محمد بن حرب. ابو مروان يحيٰي بن زكرياء. هشام. عروه. بي بي عائشے رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي' رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم به دَ خپل مرګ مرض كښې دَ اجازت په طور فرمائيل' چه نن به زهٔ كوم ځائے كښې يم' صباله به كوم ځائے يم. دَ بي بي عائشے رضي اللّٰه عنه دَ نمبر ورځ به ډيره لرے ګنړله. كله چه ځما دَ وار ورځ راغله نو اللّٰه تعالىٰ حضور صلي اللّٰه عليه وسلم وفات كړلو' داسے حال كښې چه حضور صلي اللّٰه عليه وسلم ځما دَ اړخ او سينے په مينځ كښې وو. او ځما په كور كښې دفن شولو.

۱. د ناجوړتيا په زمانه كښې رسول الله صلے الله عليه وسلم ځمونږ د ټولو ميندو پاكو بيبيانو په خپل خپل وار كښې د مرض شپے ورځے تيره ولے. او د هغوي د وار' د حقونو ډير خيال ساتلو. كله چه دغه ناجوړتيا د مرض (وفات) وصال شوه نو د رسول الله صلے الله عليه وسلم دا خواهش وو چه د حضرت عائشے بي بي رضي الله عنها وار زر راشي. ځكه چه رسول الله صلے الله عليه وسلم ته به د دغے په كور كښې ډير آرام وو ليكن بل خوا د خپلو بيبيانو دَ وار ئے هم ډير خيال ساتلو' ځكه به ئے پښتنه كوله. چه نن د چار وار دے او صباله د چا وار دے رسول الله صلے الله عليه وسلم د حضرت عائشے بي بي رضي الله عنها د وار انتظار كولو.

۸: حَدَّثَنَا مُوْسٰى بْنُ اِسْمٰعِيْلَ قَالَ حَدَّثَنَا اَبُوْ عَوَانَةَ عَنْ هِلَالٍ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ مَرَضِهِ الَّذِيْ

۸: موسٰي بن اسمٰعيل. ابو عوانه. هلال. عروه. بي بي عائشے رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي' رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم خپل مرض كښې' چه دَ هغے نه حضور صلي اللّٰه عليه وسلم پا نه سيدلو' او فرمائيل' اللّٰه تعالىٰ دے په يهود او نصارىٰ لعنت اُكړي' چه هغوي دَ

لَمْ يَقُمْ مِنْهُ لَعَنَ اللّٰهُ الْيَهُوْدَ وَالنَّصٰرٰى اتَّخَذُوْا قُبُوْرَ اَنْبِيَآءِ هِمْ مَسْجِدًا لَوْلَا ذٰلِكَ اُبْرِزَ قَبْرُهُ غَيْرَ اَنَّهُ خَشِيَ اَوْ خُشِيَ اَنْ يُّتَّخَذَ مَسْجِدًا وَ عَنْ هِلَالٍ قَالَ كَنَّانِيْ عُرْوَةُ ابْنُ الزُّبَيْرِ وَلَمْ يُوْلَدْ لِيْ.

ځېلو نبيانو دَ قبرونو نه جماعت جوړ کړلو. که دا خبره نۀ وے، نو دَ حضور صلي الله عليه وسلم قبر به ښکاره کړے شوے وو، خو دا چه حضور صلي الله عليه وسلم سره ويره شوه، يا خلق اُو يريدل چه چرته جمات ترے جوړ نۀ کړے شي. او هلال بيان اوکۀ، چه عروه څما کُنيت کينبودۀ، حالانکه څما څۀ اولاد نۀ وو.

۹ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ قَالَ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ قَالَ اَخْبَرَنَا اَبُوْ بَكْرِ بْنِ عَيَّاشٍ عَنْ سُفْيَانَ التَّمَّارِ اَنَّهُ حَدَّثَهُ اَنَّهُ رَاٰى قَبْرَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُسَنَّمًا.

۹ : محمد. عبدالله. ابوبکر بن عياش. سفيان تمار، روايت کوي، چه هغۀ دَ نبي صلي الله عليه وسلم قبر ليدلے دے، چه دَ اُوښ دَ قُب په شان دے.

۱۰ : حَدَّثَنَا فَرْوَةُ قَالَ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ مُسْهِرٍ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ اَبِيْهِ لَمَّا سَقَطَ عَلَيْهِمُ الْحَائِطُ فِيْ زَمَانِ وَلِيْدِ بْنِ الْعَبْدِ الْمَلِكِ اَخَذُوْا فِيْ بِنَآئِهِ فَبَدَتْ لَهُمْ قَدَمٌ فَفَزِعُوْا وَظَنُّوْا اَنَّهُ قَدَمُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَمَا وَجَدُوْا اَحَدًا يَّعْلَمُ ذٰلِكَ حَتّٰى قَالَ لَهُمْ عُرْوَةُ لَا وَاللّٰهِ مَاهِيَ قَدَمُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَاهِيَ اِلَّا قَدَمُ عُمَرَ وَ عَنْ هِشَامٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَآئِشَةَ اَنَّهَا اَوْصَتْ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ الزُّبَيْرِ لَا تَدْفِنِّيْ مَعَهُمْ وَادْفِنِّيْ مَعَ صَوَاحِبِيْ بِالْبَقِيْعِ لَا اُزَكّٰى بِهِ اَبَدًا.

۱۰ : فروه. علي بن مسهر. هشام بن عروه. دَ خپل پلار نه روايت کوي، چه کوم وخت دَ وليد بن عبدالملک په زمانه کښ ديوال او غرځيد، نو خلق دَ هغے په جوړولو کښ مشغول شو، نو يوه پښه ښکاره شوه. خلق دَ هغے نه او يريدل. او، وے گڼړله، چه دَ نبي صلے الله عليه وسلم قدم مُبارک دے. څوک داسے سړے بيا منده نۀ شو، چه دائے پيژندلے. تر دے چه هغے خلقو کښ عروه اووے، په خدائے چه دا دَ نبي صلي الله عليه وسلم قدم مبارک نه دے بلکه دا د عمر رضي الله عنه پښه ده. او هشام په واسطه دَ خپل پلار. دَ بي بي عائشے رضي الله عنه نه روايت کوي، چه هغے عبدالله بن زبير ته وصيت اوکۀ، چه ما دے خلقو سره مۀ دفن کوه. بلکه څما بنو (سوکنون) سره بقيع کښ م دفن کړه، زۀ حضور صلي الله عليه وسلم سره دَ دفن کيدو په سبب پاکيدے نشم.

۱. خمونږ د مور بي بي دا مطلب وو که چرے زۀ پخپله بنه نه يم نو د دے لويو حضراتو سره دفن کولو نه ما ته څه فائده نه رسي. په حقيقت کښې خمونږ د مور بي بي حضرت عائشے رضي الله عنها اول دا خواهش وو چه د نبي کريم صلے الله عليه وسلم سره نزدے دفن شي. ځکه چه کوم کور کښې رسول الله صلے الله عليه وسلم دفن دے هغه د دے کور وو ليکن چه کله هغه ځائے حضرت عمر رضي الله عنه او غوښتلو نو حضرت عائشے بي بي رضي الله عنها او فرمايل "چه دا ځائے ما د ځان د پاره خوښ کړے وو ليکن حضرت عمر رضي الله عنه د دے ځائے زيات حقدار دے" د نبي کريم صلي الله عليه وسلم نورے بيبيانے ازواج مطهرات په جنة البقيع کښې په يو قطار کښې دفن دي نو حضرت عائشه رضي الله عنها هم هغوي سره يو ځائے خوا کښې دفن شوه: د حضرت عمر رضي الله عنه په حقله ئے چه او فرمايل "هغه زيات حقدار دے" د عاجزئ او تواضع نظاره ده.

۱۱: حَـدَّثَـنَـا قُتَيْبَةُ قَالَ حَدَّثَنَا جَرِيُرُ بُنُ الْحَمِيُدِ قَالَ حَدَّثَنَا حُصَيُنُ بُنُ عَبُدِ الرَّحُمٰنِ عَنُ عَمُرِو بُنِ مَيُمُوُنِ نِالْاَوُدِيِّ قَالَ رَاَيُتُ عُمَرَ بُنَ الْخَطَّابِ قَالَ يَا عَبُدَ اللّٰهِ بُنَ عُمَرَ اذْهَبُ عَلٰى اُمِّ الْمُؤُمِنِيُنَ عَائِشَةَ فَقُلُ يَقُرَاُ عُمَرُ بُنُ الْخَطَّابِ عَلَيُكِ السَّلَامُ ثُمَّ سَلُهَا اَنُ اُدُفَنَ مَعَ صَاحِبَيَّ قَالَتُ كُنُتُ اُرِيُدُهٗ لِنَفُسِيُ فَلَاُوُثِرَنَّهُ الْيَوُمَ عَلٰى نَفُسِيُ فَلَمَّا اَقُبَلَ قَالَ لَهٗ مَا لَدَيُكَ قَالَ اَذِنَتُ لَكَ يَا اَمِيُرَ الْمُؤُمِنِيُنَ قَالَ مَا كَانَ شَيُءٌ اَهَمَّ اِلَيَّ مِنُ ذٰلِكَ الْمَضُجَعِ فَاِذَا قُبِضُتُ فَاحُمِلُوُنِيُ ثُمَّ سَلِّمُوُا ثُمَّ قُلُ يَسُتَاُذِنُ عُمَرُ بُنُ الْخَطَّابِ فَاِنُ

۱۱: قتيبه. جرير بن عبدالحميد. حصين بن عبدالرحمٰن. عمرو بن ميمون اودي روايت کوي' ما عمر بن خطاب رضي الله عنه اوليد' وئيل ئے' اے عبدالله' ته اُم المؤمنين بي بي عائشے رضي الله عنه له لاړ شه' چه عمر بن خطاب رضي الله عنه په تا سلام وائي بيا ذ هغے نه اجازت او غواړه' چه زۀ خپلو دوو ملګرو سره دفن کړے شم. بي بي عائشے رضي الله عنه او فرمائيل' دا ځائے خو ما خپل ځان ذ پاره خوښ کړے وو. ليکن نن زۀ عمر رضي الله عنه له په خپل ځان ترجيح ورکوم. کوم وخت چه عبدالله بن عمر رضي الله عنه واپس شولو. نو عمر رضي الله عنه ورته او فرمائيل' څۀ خبر دے راوړلو' هغۀ ورته اووے. اے امير المؤمنين' بي بي عائشے رضي الله عنه تاسو له اجازت درکړلو. نو وے فرمائيل' نن ځما په نزد ذ دفن کيدو ذ دے ځائے نه زيات هيڅ څيز اهم نۀ وو. کله چه زۀ مړ شم' نو ما يوسئے' بيا ورته سلام اووائے' او عرض او کړئے' چه عمر بن خطاب رضي الله عنه اجازت غواړي' که هغه اجازت درکړي نو دفن مِ کړئے' کني ما ذ مسلمانانو په

اَذِنَتْ لِيْ فَادْفِنُوْا اِلَيَّ وَ اِلَّا فَرُدُّوْنِيْ اِلٰى مَقَابِرِ الْمُسْلِمِيْنَ اِنِّيْ لَا اَعْلَمُ اَحَدًا اَحَقَّ بِهٰذَا الْاَمْرِ مِنْ هٰؤُلَآءِ النَّفَرِ الَّذِيْ تُوُفِّيَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ عَنْهُمْ رَاضٍ فَمَنِ اسْتَخْلَفُوْا بَعْدِيْ فَهُوَ الْخَلِيْفَةُ فَاسْمَعُوْا لَهٗ وَ اَطِيْعُوْا فَسَمّٰى عُثْمَانَ وَ عَلِيًّا وَّ طَلْحَةَ وَالزُّبَيْرَ وَ عَبْدَ الرَّحْمٰنِ ابْنِ عَوْفٍ وَّ سَعْدَ بْنِ اَبِيْ وَقَّاصٍ وَّ وَلَجَ عَلَيْهِ شَابٌّ مِّنَ الْاَنْصَارِ فَقَالَ اَبْشِرْ يَا اَمِيْرَ الْمُؤْمِنِيْنَ بِبُشْرَى اللّٰهِ عَزَّ وَ جَلَّ كَانَ لَكَ مِنَ الْقِدَمِ فِي الْاِسْلَامِ مَا قَدْ عَلِمْتَ ثُمَّ اسْتُخْلِفْتَ فَعَدَلْتَ ثُمَّ الشَّهَادَةَ بَعْدَ هٰذَا كُلِّهٖ فَقَالَ لَيْتَنِيْ يَا بْنَ اَخِيْ وَ ذٰلِكَ كَفَافٌ لَا عَلَيَّ وَلَا لِيْ اُوْصِي الْخَلِيْفَةَ مِنْ بَعْدِيْ بِالْمُهَاجِرِيْنَ الْاَوَّلِيْنَ خَيْرًا اَنْ يَّعْرِفَ لَهُمْ حَقَّهُمْ وَ اَنْ يَّحْفَظَ لَهُمْ حُرْمَتَهُمْ وَ اُوْصِيْهِ بِالْاَنْصَارِ خَيْرًا الَّذِيْنَ تَبَوَّءُ الدَّارَ وَالْاِيْمَانَ اَنْ يُّقْبَلَ مِنْ مُّحْسِنِهِمْ وَ يُعْفٰى عَنْ مُّسِيْئِهِمْ وَ اُوْصِيْهِ بِذِمَّةِ اللّٰهِ وَ ذِمَّةِ رَسُوْلِهٖ اَنْ يُّوْفٰى لَهُمْ بِعَهْدِهِمْ وَ اَنْ يُّقَاتَلَ مِنْ وَّرَآئِهِمْ وَ اَنْ لَّا يُكَلَّفُوْا فَوْقَ

قبرستان کښې دفن کړئ. زهٔ دَ دې امر (خلافت) مستحق دَ دې خلقو نه زیات هیڅوک نهٔ وینم، چه رسول الله صلی الله علیه وسلم وفات شو، داسې حال کښې، چه حضور صلي الله علیه وسلم دَ دې خلقو نه راضي وو، خما نه پس چه دا خلق څوک خلیفه جوړوي، هغه خلیفه دې، دَ هغه خبره آورئ. او دَ هغهٔ اطاعت کوئ او دَ عثمان رضي الله عنه. علي رضي الله عنه. طلحه رضي الله عنه. زبیر رضي الله عنه. عبدالرحمٰن بن عوف رضي الله عنه او سعد بن ابي وقاص رضي الله عنه نومونه ئې واخستل. یو انصاري ځلمې راغې، او عرض ئې اوکهٔ. اې امیر المؤمنین، تاسو دَ الله پاک په خوشخبري خوشحاله شئ. اسلام کښې چه ستاسو کومه مرتبه ده، په هغې تاسو پوهیږئ. بیا تاسو خلیفه جوړ کړې شوې. او تاسو دَ عدل نه کار واخست بیا دَ دې ټولو نه پس تاسو شهادت بیامند. عمر رضي الله عنه ورته او فرمائیل. اې خما وراره، کاش چه ماسره معامله برابر وې، چه دَ هغې په سبب نهٔ په ما عذاب وې. او نهٔ ثواب وې. زهٔ دَ ځان نه پس جوړېدونکي خلیفه ته اولینو مهاجرینو سره دَ ښهٔ سلوک وصیت کوم، چه دَ هغوي حق اوپیژني او دَ هغوي دَ عزت حفاظت اوکړي. او زهٔ انصارو سره دَ ښیګړې کولو وصیت کوم، چه هغوي دارالایمان او دارالهجرت کښې ځائې ورکړلو. چه دَ هغوي دَ احسان کونکو احسان قبول کړي او دَ هغوي دَ بدو خلقو بدي معاف کړي او زهٔ هغهٔ ته وصیت کوم، دَ الله او دَ هغهٔ دَ رسول دَ ذمې، چه دَ هغوي (ذمیانو) عهد پوره کړي، دَ هغوي دشمنانو سره او جنګیږي، او دَ

طَاقَتِهِمْ. هغوي ذَ طاقت نه زيات په هغوي بو ج وانه چوي.

## بـاب ٦: مَا يُنْهٰى مِنْ سَبِّ الْاَمْوَاتِ

## بـاب ٦: مـړو تـه ذَ بـد' رذ ويـلـو ذَ ممانعت بيان.

۱۲ ۱: حَدَّثَنَا اٰدَمُ قَالَ حَدَّثَنَا الْاَعْمَشُ عَنْ مُجَاهِدٍ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَسُبُّوا الْاَمْوَاتَ فَاِنَّهُمْ قَدْ اَفْضَوْا اِلٰى مَا قَدَّمُوْا تَابَعَهٗ عَلِيُّ بْنُ الْجَعْدِ وَ مُحَمَّدُ ابْنُ عَرْعَرَةَ وَابْنُ اَبِيْ عَدِيٍّ عَنْ شُعْبَةَ وَ رَوَاهُ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عَبْدِ الْقُدُّوْسِ عَنِ الْاَعْمَشِ وَ مُحَمَّدُ بْنُ اَنَسٍ عَنِ الْاَعْمَشِ.

۱۲ ۱: آدم. اعـمـش. مـجـاهـد. بـي بـي عـائشـے رضـي اللّٰـه عـنـه نـه روايت کوي' نبي صلے اللّٰـه علـيـه وسـلـم او فرمائيل مړو تـه بد رد مه وائے' ځکـه چـه هغوي هغـه څيز سـره يو ځـائے شوي دي چـه هـغـوي مـخـکـښ ليږلے دے. علي بن جـعـد. مـحـمـد بن عـرعـره او ابـن ابـي عـدي ذ شـعـبـه نـه ذ دے متـابع حديـث روايـت کـړے دے. او دا عبدالـلّٰـه بـن عبدالقدوس ذ اعـمـش نـه او مـحـمـد بـن انـس ذ اعـمـش نـه روايـت کـړے دے.

## بَاب ٧: ذِكْرِ شِرَارِ الْمَوْتٰى.

## باب ٧: ذ مړو بدي بيانول.

۱. امام بخاري رحمة الله عليه دا ښودل غواړي چه د عامو مړو خلقو بدي ويل ښه خبره نده. ليکن چه کوم خلق د الله تعالي او د هغه رسول صلي الله عليه وسلم ازلي دښمنان دي يا د هغوي په حقله په قرآن مجيد يا احاديثو مبارکو کښ بدي بيان شويده. هغوي ته د هغوي د مرګ نه پس بدے وينا کښ څه ګناه نشته.

۱۳ ۱: حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصٍ قَالَ ...... حَدَّثَنَا اَبِيْ عَنِ الْاَعْمَشِ قَالَ حَدَّثَنِيْ عَمْرُو بْنُ مُرَّةَ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ اَبُوْ لَهَبٍ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَبًّا لَكَ سَائِرَ الْيَوْمِ فَنَزَلَتْ تَبَّتْ يَدَا اَبِيْ لَهَبٍ وَّ تَبَّ.

۱۳ ۱: عـمـرو بـن حـفـص. حـفـص. اعـمـش. عـمـرو بـن مـره. سعيد بـن جبير. ابن عبـاس رضـي اللّٰـه عـنـه نـه روايت کوي' چـه ابـو لهـب نـبـي صـلـے اللّٰـه عـلـيـه وسـلـم تـه اووے' تـولـه ورځ دے ستـا خـرابـي وي' نـو پـه هـغـه وخت: تَبَّتْ يَدَا اَبِيْ لَهَبٍ آيـت (آخـر سورة پورے) نازل شولو.

# كِتَابُ الزَّكٰوة

# (دَ زكٰوة بيان)

**باب ۸: وُجُوْبِ الزَّكٰوةِ وَ قَوْلِ اللّٰهِ عَزَّ وَ جَلَّ وَ اَقِيْمُوا الصَّلٰوةَ وَ اٰتُوا الزَّكٰوةَ** وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ حَدَّثَنِيْ اَبُوْ سُفْيٰنُ فَذَكَرَ حَدِيْثَ النَّبِيِّ صَلَّے اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَأْمُرُنَا بِالصَّلٰوةِ وَالزَّكٰوةِ وَالصِّلَةِ وَالْعِفَافِ.

**باب ۸: دَ زكٰوة واجب كيدو بيان.** او دَ اللّٰه تعالىٰ قول، چه مونځ كوئے او زكٰوة وركوئے. او دَ ابن عباسؓ بيان دے، ماته ابو سفيان بيان اوكړ او دَ نبي صلي اللّٰه عليه وسلم قِصّه ئے بيان كړله، نو وے وئيل، چه مونږ ته دَ مونځ، زكٰوة، صله رحمئ او پاک دامني حكم راكوي.

۱۴: حَدَّثَنَا اَبُوْ عَاصِمٍ الضَّحَاكُ بْنُ مُخَلَّدٍ عَنْ زَكَرِيَّآءَ بْنِ اِسْحٰقَ عَنْ يَّحْيٰى بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ صَيْفِيٍّ عَنْ اَبِيْ مَعْبَدٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّے اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعَثَ مُعَاذًا اِلَى الْيَمَنِ فَقَالَ اُدْعُهُمْ اِلٰى شَهَادَةِ اَنْ لَّآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَ اَنِّيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ فَاِنْ هُمْ اَطَاعُوْا لِذٰلِكَ فَاَعْلِمْهُمْ اَنَّ اللّٰهَ قَدِ افْتَرَضَ عَلَيْهِمْ خَمْسَ صَلَوٰتٍ فِيْ كُلِّ يَوْمٍ وَّ لَيْلَةٍ فَاِنْ هُمْ اَطَاعُوْا لِذٰلِكَ فَاَعْلِمْهُمْ اَنَّ اللّٰهَ افْتَرَضَ عَلَيْهِمْ صَدَقَةً فِيْٓ اَمْوَالِهِمْ تُؤْخَذُ مِنْ اَغْنِيَآئِهِمْ وَ تُرَدُّ عَلٰى فُقَرَآئِهِمْ.

۱۴: ابو عاصم ضحاک بن مخلد. زكريا بن اسحاق. يحيٰي بن عبداللّٰه بن صيفي. ابو سعيد. ابن عباس رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي. نبي صلے اللّٰه عليه وسلم چه معاذؓ يمن ته ليږلو، نو ورته ئے او فرمائيل، ته هغوي ته دَ دے شهادت كولو دعوت وركه، چه دَ اللّٰه نه سِوا هيځوک معبود نشته، او دا چه زهٔ دَ اللّٰه رسول يم، كه هغوي دا او مني، نو هغوي ته دا اوبنايه، چه اللّٰه تعالىٰ په هغوي ورځ او شپه كښ پنځه مونځونه فرض كړي دي، كه هغوي اطاعت اوكړي، نو هغوئ ته دا اوبنايه، چه اللّٰه تعالىٰ په هغوي دَ هغوي مالونو كښ زكٰوة فرض كړے دے، چه دَ هغوي دَ مالدارو نه به اخستے شي او دَ هغوئ محتاجو ته به وركولے شي.

۱۵: حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ قَالَ اَخْبَرَنَا شُعْبَةُ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عُثْمَانَ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَوْهَبٍ عَنْ

۱۵: حفص بن عمرو. شعبه. محمد بن عثمان بن عبداللّٰه بن موهب. موسيٰ بن طلحه. حضرت ابو ايوب انصاريؓ نه روايت

مُوسٰي بْنِ طَلْحَةَ عَنْ اَبِيْ اَيُّوْبَ اَنَّ رَجُلًا قَالَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَخْبِرْنِيْ بِعَمَلٍ يُدْخِلُنِيْ الْجَنَّةَ قَالَ مَالَهُ وَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَرَبٌ مَالَهُ تَعْبُدُ اللّٰهَ وَلَا تُشْرِكُ بِهٖ شَيْئًا وَ تُقِيْمُ الصَّلٰوةَ وَ تُؤْتِي الزَّكٰوةَ وَ تَصِلُ الرَّحِمَ وَ قَالَ بَهْزٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عُثْمَانَ وَ اَبُوْهُ عُثْمَانُ عَبْدِ اللّٰهِ اَنَّهُمَا سَمِعَا مُوْسَى بْنُ طَلْحَةَ عَنْ اَبِيْ اَيُّوْبَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِهٰذَا قَالَ اَبُوْ عَبْدِ اللّٰهِ اَخْشٰى اَنْ يَّكُوْنَ مُحَمَّدٌ غَيْرَ مَحْفُوْظٍ اِنَّمَا هُوَ عَمْرٌو.

کوي' يو سړي نبي صلي اللّٰه عليه وسلم ته عرض اوکه' ماته يو داسې عمل اوښائې' چه ما جنت کښې داخل کړي. حضور صلي اللّٰه عنه وسلم ورته او فرمائيل' دهٔ ته څهٔ شوي دي' دهٔ ته څهٔ شوي دي' او نبي صلې اللّٰه عليه وسلم او فرمائيل صاحب ضرورت دې. دَ اللّٰه تعالٰي عبادت کوه هغه سره څوک شريک مهٔ جوړوه. مونځ کوه' زکٰوة ورکوه. او صله رحمي کوه. او بهز وائي' ماته شعبه اووې' چه ماته محمد بن عثمان او دَ هغه پلار عثمان بن عبدالله اووې' چه هغه موسٰي به طلحه نه' هغهٔ دَ ابو ايوب نه او هغه دَ نبي صلې اللّٰه عليه وسلم نه دا حديث روايت کهٔ. ابو عبداللّٰه اووې' ماسره خوف دې چه محمد غير محفوظ دي' بلکه هغه عمرو' دي.

۱۶ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحِيْمِ قَالَ حَدَّثَنَا عَفَّانُ بْنُ مُسْلِمٍ قَالَ حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ عَنْ يَّحْيٰى بْنِ سَعِيْدِ بْنِ حَيَّانَ عَنْ اَبِيْ زُرْعَةَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ اَعْرَابِيًّا اَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ دُلَّنِيْ عَلٰى عَمَلٍ اِذَا عَمِلْتُهُ دَخَلْتُ الْجَنَّةَ قَالَ تَعْبُدُ اللّٰهَ وَلَا تُشْرِكُ بِهٖ شَيْئًا وَ تُقِيْمُ الصَّلٰوةَ الْمَكْتُوْبَةَ وَ تُؤَدِّي الزَّكٰوةَ الْمَفْرُوْضَةَ وَ تَصُوْمُ رَمَضَانَ قَالَ وَالَّذِيْ نَفْسِيْ بِيَدِهٖ لَا اَزِيْدُ عَلٰى هٰذَا فَلَمَّا وَلّٰى قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ

۱۶ : محمد بن عبدالرحيم. عفان بن مسلم. وهب. يحيٰي بن سعيد بن حبان. ابو زرعه. حضرت ابو هريره رضي اللّٰه عنه نه روايت کوي' يو اعرابي دَ نبي صلې اللّٰه عليه وسلم خدمت کښې حاضر شو' او عرض ئې اوکهٔ ماته يو داسې عمل اوښائې' چه هغه اوکړم او جنت کښې داخل شم. حضور صلې اللّٰه عليه وسلم ورته او فرمائيل' تهٔ دَ الله عبادت کوه' او څوک ورسره مهٔ شريکوه. فرض مونځ کوه. او فرض زکٰوة ورکوه' او دَ رمضان روژې نيسه' نو هغې بانديسي اووې' په هغې ذات م دې قسم وي چه دَ هغهٔ په قبضه کښې څما ساه ده' زهٔ به دَ دې نه زياتي

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ سَرَّهُ اَنْ يَّنْظُرَ اِلٰى رَجُلٍ مِّنْ اَهْلِ الْجَنَّةِ فَلْيَنْظُرْ اِلٰى هٰذَا.

١٧ : حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ عَنْ يَّحْيٰى عَنْ اَبِيْ حَيَّانَ قَالَ: حَدَّثَنِيْ اَبُوْ زُرْعَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِهٰذَا.

١٨ : حَدَّثَنَا حَجَّاجُ بْنُ مِنْهَالٍ قَالَ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ قَالَ حَدَّثَنَا اَبُوْ جَمْرَةَ قَالَ سَمِعْتُ ابْنَ عَبَّاسٍ يَقُوْلُ قَدِمَ وَفْدُ عَبْدِ الْقَيْسِ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالُوْا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّ هٰذَا الْحَيَّ مِنْ رَبِيْعَةَ قَدْ حَالَتْ بَيْنَنَا وَبَيْنَكَ كُفَّارُ مُضَرَ وَلَسْنَا نَخْلُصُ اِلَيْكَ فِي الشَّهْرِ الْحَرَامِ فَمُرْنَا بِشَيْءٍ نَاْخُذُهُ عَنْكَ وَنَدْعُوْا اِلَيْهِ مَنْ وَّرَآءَ نَا قَالَ اٰمُرُكُمْ بِاَرْبَعٍ وَاَنْهَاكُمْ عَنْ اَرْبَعٍ اَلْاِيْمَانِ بِاللّٰهِ وَشَهَادَةِ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَعَقَدَ بِيَدِهٖ هٰكَذَا وَاِقَامِ الصَّلٰوةِ وَاِيْتَآءِ الزَّكٰوةِ وَاَنْ تُؤَدُّوْا خُمُسَ مَا غَنِمْتُمْ وَاَنْهَاكُمْ عَنِ الدُّبَّآءِ وَالْحَنْتَمِ وَالنَّقِيْرِ وَالْمُزَفَّتِ وَقَالَ سُلَيْمَانُ وَاَبُو النُّعْمَانِ عَنْ حَمَّادٍ اَلْاِيْمَانِ بِاللّٰهِ شَهَادَةَ اَنْ لَّا

او نه کرم. کوم وخت چه هغه لاړ نو نبي صلی الله علیه وسلم او فرمائیل، که چا ته څوک جنتي کښل ښه معلومیږي نو دغه سړي ته دې او ګوري.

١٧ : مسدد. یحیی. ابو حیان ابو زرعه د نبي صلی الله علیه وسلم نه دغه حدیث روایت کوي.

١٨ : حجاج بن منهال. حماد بن زید. ابو جمره بیان کوي، ما د ابن عباس رضي الله عنه نه واوریدل چه د قبیله عبدالقیس وفد نبي صلی الله علیه وسلم له راغے، او عرض ئے اوکه، یا رسول الله، دا د قبیلة ربیع یو شاخ دے، او څمونږ او ستاسو مینځ کښې د مضر کفار حائل دي او مونږ تاسو پوله صرف د حرمت میاشتو کښې د راتلو موقع بیامومو، نو تاسو مونږ ته د یوې داسے خبرے حکم راکړئے، چه مونږ په هغے عمل اوکړو، او خپلو وروستو پاتے خلقو ته د هغے دعوت ورکړو. حضور صلی الله علیه وسلم ورته او فرمائیل، زه تاسو ته د څلورو خبرو حکم درکوم. او د څلورو خبرو نه مو منع کوم (١) په الله د ایمان راوړلو او ګواهي کول چه د الله نه سوا بل معبود نشته، او خپل لاس سره ئے دغسے اشاره اوکړله. (٢) مونځ کول. (٣) زکوة ورکول. (٤) او دا چه د مال غنیمت پنځمه حصه به ادا کوئے. او زه تاسو د دُباء، حنتم. نقیر او مزفت (دا څلور واړه د شرابو لوښي دي) د استعمال نه منع کوم. او سلیمان او ابو النعمان د حماد نه روایت اوکه، چه په الله باندے ایمان راوړل، د دې خبرے ګواهي کول دي چه د الله نه سوا بل

اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ. معبود نشته.

۱. خمس په مال غنيمت كښې د اسلامي حكومت برخه ده د دې تفصيل به كتاب الجهاد كښې راخي.

۲. عرب خلق د جاهليت په زمانه كښې په شرابو ډير مينن وو نو چه كله شراب حرام شو. نو د شرابو د خيال د هغوي د دماغو نه او باسلو د پاره، د شرابو د لوښو د استعمال نه هم خلق منعه كړے شو. چه كومو كښې به شراب ښبنلے شو يا جوړولے شو. د دغے لوښو په شرابو كښې به نشه زر راتلله. چه كومو خلورو لوښونه منعه شوے وه هغه د ځلورو قسمو د شراب لوښي وو او چه كله خلق د شرابو ښبنلو نه منعه شو او مقصد پوره شو نو بيا نبي كريم صلي الله عليه وسلم د دغے لوښو د استعمال اجازت وركړو. دغه منعه د يو وخت د فائدے د پاره وه.

۱۹ : حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ الْحَكَمُ بْنُ نَافِعٍ قَالَ اَخْبَرَنَا شُعَيْبُ بْنُ اَبِيْ حَمْزَةَ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُتْبَةَ بْنِ مَسْعُوْدٍ اَنَّ اَبَا هُرَيْرَةَ قَالَ لَمَّا تُوُفِّيَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ كَانَ اَبُوْ بَكْرٍ وَ كَفَرَ مَنْ كَفَرَ مِنَ الْعَرَبِ فَقَالَ عُمَرُ كَيْفَ تُقَاتِلُ النَّاسَ وَقَدْ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اُمِرْتُ اَنْ اُقَاتِلَ النَّاسَ حَتّٰى يَقُوْلُوْا لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ فَمَنْ قَالَهَا فَقَدْ عَصَمَ مِنِّيْ مَالَهُ وَ نَفْسَهُ اِلَّا بِحَقِّهٖ وَ حِسَابُهُ عَلَى اللّٰهِ فَقَالَ وَاللّٰهِ لَاُقَاتِلَنَّ مَنْ فَرَّقَ بَيْنَ الصَّلٰوةِ وَالزَّكٰوةِ فَاِنَّ الزَّكٰوةَ حَقُّ الْمَالِ وَاللّٰهِ لَوْ مَنَعُوْنِيْ عَنَاقًا كَانُوْا يُؤَدُّوْنَهَا اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَقَاتَلْتُهُمْ عَلٰى مَنْعِهَا قَالَ عُمَرُ فَوَاللّٰهِ مَا هُوَ اِلَّا

۱۹ : ابو اليمان. حكم بن نافع. شعيب بن ابي حمزه. زهري. عبيد الله بن عبدالله بن عتبه بن مسعود. حضرت ابو هريره رضي الله عنه نه روايت كوي، كوم وخت چه رسول الله صلے الله عليه وسلم وفات شولو، او ابوبكر رضي الله عنه خليفه شو. او د عربو بعضے قبيلے كافرے شوے، نو عمر رضي الله عنه ورته اووے تاسو به خلقو سره څنګه جنګيږئے حالانكه رسول الله صلے الله عليه وسلم فرمائيلے دي. ما ته حكم شوے دے، چه خلقو سره جهاد او كړم، تر دے چه هغوي لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰه او وائي. چا چه لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰه اووے، هغه ځما نه خپل مال او ځان بچ كړلو. خو د ځۀ حق په عوض، او د هغے حساب د الله په ذمه دے، ابوبكر رضي الله عنه او فرمائيل، والله زۀ به هغے سرې سره جهاد كوم، چه هغه د مونځ او زكوٰة مينځ كښې جدائي راوسته. زكوٰة خو د مال حق دے، په خدائے چه كه هغوي يوه رسۍ هم رد كړه، چه هغوي د رسول الله صلے الله عليه وسلم په زمانه كښې وركوله، نو د هغے په نه وركولو به زۀ هغوي سره جنګ كوم. عمر رضي الله عنه او فرمائيل، په

اَنْ قَدْ شَرَحَ اللّٰهُ صَدْرَ اَبِيْ بَكْرٍ فَعَرَفْتُ اَنَّهُ الْحَقُّ. خدائے چه الله دَ ابوبكر رضي الله عنه سينه پرانستے وَه' نو زهٔ پوهه شوم' چه دغه حقه ده.

۱. كـلـمه چـه د رسول الله صلے الله عليه وسلم وصال (وفات) اوشو نو دَ عربو هغه قبيلے چه د مدينے منورے نـه لـرے وے هـغـوي كـبـنِ گډ وډي راغله' د رسول الله صلے الله عليه وسلم د مبارك ژوندون په زمـانـه كـبنِ ټـولـو عَرَبو اسلام قبول كړے وو ليكن ټول قومونه ځان له ځان له وو د مركزي حكومت سره عـادت نـه وؤ څه پكبنِ بدسلوكه وو ليكن د رسول الله صلے الله عليه وسلم سرداري او حكومت ئے منلو. هـغـے عرب قبيلو دا ويل' چه مونږ د رسول الله صلے الله عليه وسلم حكم منلے وو. ليكن ستاسو حكم ولے اومنو؟ تاسو د مدينے منورے خلقو ځان له خپل امير خوبښ كړے دے نو مونږ به هم د هرے قبيلے خپل امير خـوبښ كړو. زكات به نه وركوؤ كه چرے زكات وركوو نو خپل امير له به وركوؤ. ليكن اولني خليفه راشد حضـرت ابـوبـكر صـديق رضي الله عنه او فرمايل: "د دے خلقو دا خبره اسلام ته د نقصان رسولو خبره ده. زكـات داسـے فرض دے څرنګ چه مونځ فرض دے دا ستاسو څنګه اسلام دے چه مونځ به كوئي او زكات به نه وركوئي. هر مسلمان به زكات وركوي. تاسو كلمهٔ شهادت ويلے ده د زكات نهٔ انكار د الله تعالىٰ او د هغه د رسول صلي الله عليه وسلم د حكم نه بغاوت دے او مونږ به هغه ټولو خلقو سره جنګ كوؤ. څوك چه بغاوت كوي".

د حـضـرت عـمر رضي الله عنه په هغه وخت كښِ رائے دا وه. چه دے بغاوت باندے مونږ دغے خلقو سـره جـنګ نشـو كـولـے' ځكه چه دغه خلق كلمه شهادت وائي د توحيد او رسالت اقرار كوي. مونږ هغه خلقو سره جنګ كولے شو. څوك چه الله تعالىٰ او د هغه رسول صلي الله عليه وسلم نه مني او د توحيد او رسـالـت نـه انكار كوي. د هغه د وينا دا مقصد ؤو چه زكات نه دركول جدا خبره ده. او كلمهٔ شهادت ويل جُـدا خبـره ده. كه څوك د كلمه شهادت ويلو نه پس زكات نه وركوي نو هغوي سره جنګ كول پكار نه دي".

حـضـرت صديق اكبر رضي الله عنه د حضرت عمر رضي الله عنه رائے سره اتفاق نه كوؤ. ځكه چه د كـلـمهٔ شهادت پښان' زكات حج او د دين ټول ضروري احكام فرض دي. دغے خلقو د زكات نه هم انكار كوو او دَ اسلامي مركزي حكومت منلو نه ئے هم انكار كړے وؤ. هغوي ويل

مِنَّا اَمِيْرٌ وَ مِنْكُمْ اَمِيْرٌ خمونږ به خپل امير وي او ستاسو به خپل امير وي

دا د اسـلامـي حـكـومـت د منلو نه انكار وو. كوم اسلامي حكومت چه رسول الله صلي الله عليه وسلم قائم كـړے وو. هـغـے خـلـقـو د جـاهـليـت د زمـانـے پښان د هر قبيلے ځان له جُدا جُدا امير او جُدا' جُدا حـكـومـت جـوړه وو او ويل ئے زكات د مدينے امير له مه وركوئي د هغه حكومت مه مَنَئ. د دے وجے نه د هـغـے خلقو دا طرزِ عمل د اسلامي مركزي حكومت د ختمولو كوشش وو. نو ځكه حضرت ابوبكر صديق رضـي الـلّـه عنه د هغے خلقو خلاف اعلانِ جنګ اوكړو. هغے خلقو د اسلامي خلافت نه انكار كړے وو او اسـلامـي مـركـزي حكومت ئے نه منلو كوم چه رسول الله صلي الله عليه وسلم قائم كړے وو او پدے وخت

هغه اسلامي حكومت ابتدائي حالاتو كښې وو او د هغې اسلامي حكومت قائم ساتل او مضبوطَوُل ضروري وو د حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه دا اعلان، د هغه د اعلىٰ قابليت، صلاحيت او سياسي مهارت ښكاره كوي چه څه اسلام غوښتل د هغې نه اكثر عربو انكار كړے وو د اسلام قائم ساتلو د پاره حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه د جنګ اعلان اوكړو. او هغه ټول عرب ئے په سمه لار روان كړل بغاوت ئے هميشه د پاره ختم كړو. په هغه وخت كښې لويه خطره دا وه. چه كومو خلقو، مدينے منورے ته د زكات ليګلو نه انكار كړے وو هغوي به راتلونكے زمانه كښې د اسلام احكام د خپل خواهش تابع كول. او وار په وار به ئے د يو، يو حكم نه انكار كوو. امام نَوَوِي رحمة الله عليه د خطابي په حواله ليكلے دي "چه د رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم د وصال (د وفات) په وخت اكثر عرب قبائل مُرتَد شوي وو" دا ډيره بے بنياده خبره ده. غالباً خطابي د زكات انكار كونكو ته مرتدو خلقو كښې شمار كړے وي. علامه ابن حزم رحمة اللّٰه عليه په ډيرے سختئ سره د دے ترديد كړے دے. دا صحيح ده چه د رسول الله صلي الله عليه وسلم د وصال (وفات) نه روستو څه خلق نوے نوے مسلمانان شوے وو. د ايمان او د يقين په معامله كښې كمزوري وو هغوي مُرتد شوي وو د مُسَيلِمه كذَّاب وغيره سره د هغوي په ټولي كښې شريك شوي وو ليكن دغه خلق ډير كم وو زيات شمير د هغې خلقو وو كومو چه د مدينے منورے مركزي حكومت ته د زكات ليګلو خلاف وو. بيا هم دغے قبائلو كښې ډير مخلص مسلمانان وو هغوي د انكار كونكو د عمل ډير سخت مخالفت كړے وو. زرتر زره باغيان قابو شو او سَلامي شُو. او چه كوم خلق مُرتَد شوے وو هغوي ختم شو د ابوبكر صديق رضي الله عنه په حكيمانه تدبير دَ اسلامي حكومت خلاف سازشونه ختم شو.

باب ۹ : اَلْبَيْعَةِ عَلٰى اِيْتَاءِ الزَّكٰوةِ فَاِنْ تَابُوْا وَ اَقَامُوا الصَّلٰوةَ وَ اٰتَوُا الزَّكٰوةَ فَاِخْوَانُكُمْ فِي الدِّيْنِ.

باب ۹ : په زكٰوة وركولو دَ بيعت كولو بيان. الله تعالىٰ فرمائيلي دي كه هغوي توبه كړي او مونځ كوي او زكٰوة وركوي، نو هغوي ستاسو ديني ورونړه دي.

۲۰ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ نُمَيْرٍ قَالَ حَدَّثَنَا اَبِيْ قَالَ حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ عَنْ قَيْسٍ قَالَ قَالَ جُرَيْرُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ بَايَعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلٰى اِقَامِ الصَّلٰوةِ وَ اِيْتَاءِ الزَّكٰوةِ وَالنُّصْحِ لِكُلِّ مُسْلِمٍ.

۲۰ : محمد بن عبدالله بن نمير. عبدالله بن نمير. اسماعيل. قيس. روايت كوي، جرير بن عبدالله رضي الله عنه اووے ما دَ رسول الله صلي الله عليه وسلم نه په مونځ كولو، زكٰوة وركولو او دَ هر مسلمان په خير خواهي باندے بيعت اوكړلو.

باب ۱۰ : اِثْمِ مَانِعِ الزَّكٰوةِ وَ

باب ۱۰ : دَ زكٰوة دَ نهٔ وركونكي دَ ګناه بيان، او

قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى وَالَّذِيْنَ يَكْنِزُوْنَ الذَّهَبَ وَالْفِضَّةَ وَلَا يُنْفِقُوْنَهَا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ اِلٰى قَوْلِهٖ تَعَالٰى فَذُوْقُوْا مَا كُنْتُمْ تَكْنِزُوْنَ.

دَ اللّٰه تعالى قول، څوک چه سره او سپين ښخوي، او هغه دَ اللّٰه په لار کښ نه خرڅ کوي. مَا كُنْتُمْ تَكْنِزُوْنَ: پورې، يعني اوس دَ هغې څيز مزه اوڅکئ چه تاسو به خزانه کوله.

۱۲۱: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ الْحَكَمُ بْنُ نَافِعٍ قَالَ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ قَالَ حَدَّثَنَا اَبُو الزِّنَادِ اَنَّ عَبْدَ الرَّحْمٰنِ بْنَ هُرْمُزَ الْاَعْرَجَ حَدَّثَهٗ اَنَّهٗ سَمِعَ اَبَا هُرَيْرَةَ يَقُوْلُ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَأْتِي الْاِبِلُ عَلٰى صَاحِبِهَا عَلٰى خَيْرِ مَا كَانَتْ اِذَا هُوَ لَمْ يُعْطِ فِيْهَا حَقَّهَا تَطَأُهٗ بِاَظْلَافِهَا وَ تَأْتِي الْغَنَمُ عَلٰى صَاحِبِهَا عَلٰى خَيْرِ مَا كَانَتْ اِذَا لَمْ يُعْطِ فِيْهَا حَقَّهَا تَطَؤُهٗ بِاَظْلَافِهَا وَ تَنْطَحُهٗ بِقُرُوْنِهَا قَالَ وَ مِنْ حَقِّهَا اَنْ تُحْلَبَ عَلَى الْمَاءِ قَالَ وَلَا يَأْتِيْ اَحَدُكُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ بِشَاةٍ يَحْمِلُهَا عَلٰى رَقَبَتِهٖ لَهَا يُعَارٌ فَيَقُوْلُ يَا مُحَمَّدُ فَاَقُوْلُ لَا اَمْلِكُ لَكَ شَيْئًا قَدْ بَلَّغْتُ وَلَا يَأْتِيْ بِبَعِيْرٍ يَحْمِلُهٗ عَلٰى رَقَبَتِهٖ لَهٗ رُغَاءٌ فَيَقُوْلُ يَا مُحَمَّدُ فَاَقُوْلُ لَا اَمْلِكُ لَكَ شَيْئًا قَدْ بَلَّغْتُ.

۱۲۱: ابو اليمان حكم بن نافع. شعيب ابو الزناد. عبدالرحمن بن هرمز اعرج. ابو هريره رضي الله عنه نه روايت کوي، نبي صلى الله عليه وسلم او فرمائيل چه اوښ به خپل مالک ته دَ مخکښ نه زيات غټ او تازه شي، چه هغې کښ ئې دَ هغې حق نهٔ وي ورکړې، او خپلو پښو سره به خپل مالک مړي. او چيلئ به خپل مالک ته زياتې غټې شوې راشي، چه دَ هغې چيلو نه ئې دَ هغې حق نهٔ وي ادا کړې او هغه به په خپلو سُمونو دَ پښو لاندې چيخنړې (ميده) کوي او په ښکرونو به ئې وهي او وې فرمائيل، دَ دې حق دا دې، چه اوبو ته اورسي، نو پئې دې اُولشي. او تاسو کښ دې هيڅوک دَ قيامت په ورځ په داسې حال کښ رانشي، چه چيلئ دَ هغهٔ په کردن سوره وي او چغې وهي، او هغه فرياد اوکړي چه اې محمد صلى الله عليه وسلم مدد راسره اوکړه. او زهٔ ورته اُو وايم، چه اوس خما اختيار کښ هيڅ نشته. ما خو دَ اللّٰه حکم تا ته در رسولې وو، او څوک دې اوښ سره داسې حال کښ رانشي، چه هغه اوښ دَ هغهٔ په څټ سُور وي او هغه چغې وهي بيا هغه آواز اوکړي چه اې محمد صلى الله عليه وسلم مدد اوکړه، او زهٔ ورته اووايم. خما اختيار کښ اوس هيڅ نشته. ما خو دَ اللّٰه حکم در رسولې وو.

۱. رسول الله صلي الله عليه وسلم خپل امت ته خبردارې ورکوؤ چه د مال د غلا کولو، يا د اوښانو

کښېو چيلو وغيره د غلا به څه سزا وي. د هغوئ مقصد دا وو "چه داسې کښېکلو زهٔ هم بچ کولے نشم، څملے د طرفنه به هغه ته صفا جواب وي. د دې وجې نه خلقو ته دا پکار دي. چه د آخرت د سزاګانو نه خان خبرته کړي. چه د قيامت په ورځ به داسې معاملاتو کښې ما پېښے رانشي. حديث شريف کښې د دې وضاحت نشته چه دا سزا به د څه خبرے وي. چه د اوښ د چيلۍ غل ته به د قيامت په ورځ دغسې سزا ورکولے شي دا ممکنه ده. چه څوک زکات نه ورکوي د هغوي داسې سزا وي. يائے په دې سلسله کښې څه خيانت کړے وي. د دينه معلومېږي چه د قيامت په ورځ به د دنيا ګناه ته جسم (بدن) او شکل و صورت ور کولے شي. او ټول ټول خلق به دا نظاره ويني.

۲۲ : حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنَا هَاشِمُ بْنُ الْقَاسِمِ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ ابْنِ دِيْنَارٍ عَنْ اَبِيْ صَالِحِ نِالسَّمَّانِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ اٰتَاهُ اللّٰهُ مَالًا فَلَمْ يُؤَدِّ زَكٰوتَهٗ مُثِّلَ لَهٗ مَالُهٗ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ شُجَاعًا اَقْرَعَ لَهٗ زَبِيْبَتَانِ يُطَوَّقُهٗ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ ثُمَّ يَاْخُذُ بِلِهْزِ مَتَيْهِ يَعْنِيْ بِشِدْقَيْهِ ثُمَّ يَقُوْلُ اَنَا مَالُكَ اَنَا كَنْزُكَ ثُمَّ تَلَا وَلَا يَحْسَبَنَّ الَّذِيْنَ يَبْخَلُوْنَ بِمَا اٰتٰهُمُ اللّٰهُ مِنْ فَضْلِهٖ هُوَ خَيْرًا لَّهُمْ بَلْ هُوَ شَرٌّ لَّهُمْ سَيُطَوَّقُوْنَ مَا بَخِلُوْا بِهٖ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ.

۲۲ : علي بن عبدالله. هاشم بن قاسم عبدالرحمن بن عبدالله بن دينار. ابو صالح سمان حضرت ابو هريره رضي الله عنه نه روايت کوي، رسول الله صلے الله عليه وسلم او فرمائيل چا ته چه الله تعالي مال ورکړ، او هغهٔ د هغې زکوة ادا نهٔ کړ، نو د هغهٔ مال به د يو ښامار په شکل کښې هغهٔ ته راوستے شي، چه د هغهٔ په سر به دوه خاپونه وي، د قيامت په ورځ به د هغهٔ طوق کړے شي ښامار به د هغه دواړه وخکي چيچي او ورته به وائي زهٔ ستا هغه مال يم، زهٔ ستا هغه خزانه يم. بيائے د قرآن دا آيت او لوست: او هغه خلق چه الله تعالي ورته په خپل فضل مال عطا کړ، او هغوي په هغې کښې شومتيا کوي، نو هغه دې هغوي خپل حق کښې بهتر نهٔ ګنړي بلکه دا شر دے. د قيامت په ورځ ورته په څټ کښې ددې طوق واچولے شي.

۲. دنيا کښې دا قيصے مشهورے دي. چه د خزانې د پاسه ښامار وي. د دې نه څوک انکار نشي کولے. د خزانې د مار، ښامار څه خاص مناسبت دے چه دنيا کښې ليدلے شي او په قيامت کښې د مال جمع کونکو مال ښامار جوړ شي.

## بَابُ ۱۱ : مَا اُدِّيَ زَكٰوةَ فَلَيْسَ بِكَنْزٍ لِقَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ

## باب ۱۱ : د کوم مال چه زکوة ورکولے شي، هغه خزانه نهٔ ده. ځکه چه نبي صلي الله عليه

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيْسَ فِيْمَا دُوْنَ خَمْسِ اَوَاقٍ صَدَقَةٌ.

وسلم او فرمائيل' د پنځه اوقيه نه کم باندے زکوٰة نشته.

ف: اوقيه: جمع اوراق Sixty drams A pharmaceutical ounce اوقيه شپيته گرامه. يو اونس

١. د اسلام په شروع کښې کله چه زکات فرض شوے نه وو د مالدار خلقو نه به د ضرورت مطابق معلوم مقدار اخستلے شو. کله چه زکات فرض شو. نو د زکات د تفصيلي احکامو مطابق به زکات وصولولے شو. د هغې مقرر حصے نه که چا زيات ورکولو نو دا د هغوي خوښه وه. په قرآن مجيد او احاديثو مبارکو کښې د (کَنز) د خزانې جمع کولو باندے د سزا ذکر راغلے دے امام بخاري رحمة الله عليه دا ښودل غواړي. چه د خزانې نه د شريعت په نظر کښې يوه خاصه طريقه مراد ده چه د کوم مال نه' زکات نه ورکيږي. د کوم مال دولت نه چه زکات ورکيږي هغه که کروړونو يا اربونو ته اورسيږي نو هغې ته خزانه ويلے نشو. رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمايلي دي. د پنځو اوقيو نه کم مال کښې زکات نشته' پنځه اوقيه هم مال دے (پنځه اوقيه د سرو زرو اوه نيمو تولوته ته ويلے شي) که چا سره پنځه اوقيه سره زر وي يا د هغې نه زيات' او هغه ئې زکات ورکوي. نو هغه خپله غاړه خلاصه کړه. د هغه مال ته کَنز يا خزانه نشي ويلے حضرت معاويه رضي الله عنه به فرمايل "چه کنز (خزانه) هغه مال دے چه د هغې نه زکات نه ورکيږي.

٢٣: حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ شَبِيْبِ بْنِ سَعِيْدٍ قَالَ حَدَّثَنَا اَبِيْ عَنْ يُوْنُسَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ خَالِدِ بْنِ اَسْلَمَ قَالَ خَرَجْنَا مَعَ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ فَقَالَ اَعْرَابِيٌّ اَخْبِرْنِيْ عَنْ قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى وَالَّذِيْنَ يَكْنِزُوْنَ الذَّهَبَ وَالْفِضَّةَ قَالَ ابْنُ عُمَرَ مَنْ كَنَزَهَا فَلَمْ يُؤَدِّ زَكٰوتَهُ فَوَيْلٌ لَّهُ اِنَّمَا كَانَ هٰذَا قَبْلَ اَنْ تُنْزَلَ الزَّكٰوةُ فَلَمَّا اُنْزِلَتْ جَعَلَهَا اللّٰهُ طُهْرًا لِّلْاَمْوَالِ.

٢٣: احمد بن شبيب بن سعيد. شبيب بن سعيد. يونس. ابن شهاب. خالد بن اسلم نه روايت کوي' چه مونږ عبدالله بن عمر رضي الله عنه سره اووتلو. نو يو بانديسي اووے' چه ماته دَ الله تعالٰي د قول: وَالَّذِيْنَ يَكْنِزُوْنَ الذَّهَبَ وَالْفِضَّةَ تفسير اوښائے. ابن عمر رضي الله عنه ورته او فرمائيل' چا چه دا جمعه کۀ او دَ دے زکٰوة ئې ورنۀ کۀ' نو هغه له خرابي ده' او دا دَ زکٰوة د حکم نازليدو نه دَ مخکښې حکم دے. کوم وخت چه دَ زکٰوة آيت نازل شولو' نو الله تعالٰي زکٰوة دَ مالونو دَ پاکي ذريعه جوړه کړله. (يعني دَ زکٰوة ورکولو نه پس که مال جمع شي' نو څۀ حرج ئې نشته خو کار خير کښې خرچ کول زيات بهتر دي. اينبودو دَ پاره څه زر او څۀ کانړے' بيا هواړه برابر دي).

٢٤: حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ بْنُ يَزِيْدَ

٢٤: اسحٰق بن يزيد. شعيب بن

قَالَ اَخْبَرَنَا شُعَيْبُ ابْنُ اِسْحٰقَ قَالَ اَنَا الْاَوْزَاعِيُّ قَالَ اَخْبَرَنِيْ يَحْيَى بْنُ اَبِيْ كَثِيْرٍ اَنَّ عَمْرَو بْنَ يَحْيَى بْنِ عُمَارَةَ اَخْبَرَهُ عَنْ اَبِيْهِ عَنِ بْنِ عُمَارَةَ بْنِ اَبِي الْحَسَنِ اَنَّهُ سَمِعَ اَبَا سَعِيْدٍ يَقُوْلُ قَالَ: النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيْسَ فِيْمَا دُوْنَ خَمْسِ اَوَاقٍ صَدَقَةٌ وَلَا فِيْمَا دُوْنَ خَمْسِ ذَوْدٍ صَدَقَةٌ وَ لَيْسَ فِيْمَا دُوْنَ خَمْسَةِ اَوْسُقٍ صَدَقَةٌ.

اسحاق. اوزاعي. يحيٰي بن ابي ابي كثير. عمرو بن يحيٰي بن عماره. دَ خپل پلار يحيٰي بن عماره بن ابي الحسن نه روايت كوي' هغه دَ ابو سعيد (خدري رضي اللّٰه عنه) نه واوريدل نبي صلي اللّٰه عليه وسلم او فرمائيل' پنځه اوقيه (چاندي) نه كم كښ زكٰوة نشته' او نهٔ دَ پنځه اوښانو نه كم كښ زكٰوة شته. او نهٔ دَ پنځه وسق نه كمه غله يا قجورو كښ زكٰوة شته. (وسق: دَ اوښ بار. دَ اوّه صاع مقدار. يو صاع دَ دوه سوو څلويشت تولو' وي).

۲۵ : حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ هَاشِمٍ سَمِعَ هُشَيْمًا قَالَ اَخْبَرَنَا حُصَيْنٌ عَنْ زَيْدِ بْنِ وَهْبٍ قَالَ مَرَرْتُ بِالرَّبَذَةِ فَاِذَا اَنَا بِاَبِيْ ذَرٍّ فَقُلْتُ لَهُ مَا اَنْزَلَكَ مَنْزِلَكَ هٰذَا قَالَ كُنْتُ بِالشَّامِ فَاخْتَلَفْتُ اَنَا وَ مُعَاوِيَةُ فِي الَّذِيْنَ يَكْنِزُوْنَ الذَّهَبَ وَالْفِضَّةَ وَلَا يُنْفِقُوْنَهَا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ قَالَ مُعَاوِيَةُ نَزَلَتْ فِيْ اَهْلِ الْكِتَابِ فَقُلْتُ نَزَلَتْ فِيْنَا وَ فِيْهِمْ فَكَانَ بَيْنِيْ وَ بَيْنَهُ فِيْ ذٰلِكَ فَكَتَبَ اِلٰى عُثْمَانَ يَشْكُوْنِيْ فَكَتَبَ اِلَيَّ عُثْمَانُ اَنِ اقْدَمِ الْمَدِيْنَةَ فَقَدِمْتُهَا فَكَثُرَ عَلَيَّ النَّاسُ حَتّٰى كَاَنَّهُمْ لَمْ يَرَوْنِيْ قَبْلَ ذٰلِكَ فَذَكَرْتُ ذٰلِكَ لِعُثْمَانَ فَقَالَ لِيْ اِنْ شِئْتَ تَنَحَّيْتَ فَكُنْتَ قَرِيْبًا فَذَاكَ الَّذِيْ اَنْزَلَنِيْ هٰذَا الْمَنْزِلَ

۲۵ : علي بن ابي هاشم. هشيم. حصين. زيد بن وهب روايت كوي. زه ربذه نه تير شوم نو ابوذر رضي اللّٰه عنه سره يو ځائے شوم' او هغه نه مِ تپوس اوكهٔ' چه تهٔ دے مقام كښ څهٔ ځيز مقيم كړلے. هغهٔ اووے' زهٔ شام كښ ووم' نو څما او معاويه مينځ كښ آيت: يكنزونَ الذهب والفضة الخ په تفسير كښ اِختلاف پيدا شولو معاويه رضي اللّٰه عنه اووے' دا آيت دَ اهل كتابو باره كښ نازل شوے دے او ما اووے' مونږ او اهل كتاب دواړو دَ پاره نازل شوے دے. دے سلسله كښ څما هغه سره ښه بحث اوشو. هغه عثمانؓ ته څما دَ شكايت خط اوليكهٔ' عثمانؓ ماته اوليكل مدينے ته راشه' چه زهٔ ياغلم' نو دَ خلقو ما سرهٔ دومره ګڼړه ګوڼړه هوهٔ' ګويا دَ دے نه مخكښ هغے خلقو هيڅ زهٔ ليدلے نه ووم. ما دا عثمانؓ ته اووے' نو هغه او فرمائيل' كه ستا خواهش وي' نو دا سے خائے كښ ګوشه نشين شه چه مدينے ته نږدے وي' نو دا څيز وو' چه دَ هغے په سبب زهٔ دے ځائے كښ مقيم يم.

وَلَوْ اُمِّرُوْا عَلَىٰ حَبَشِيًّا لَسَمِعْتُ وَ اَطَعْتُ. او كه په ما څوک حبشي امير مقرر كړي، نو زۀ به د هغه خبره آورم او اطاعت به ئې كوم.

۱. مونږ وړاندې هم دا ليكلي وو. چه حضرت معاويه رضي الله عنه به فرمايل "خزانه هغه مال دې چه د هغې زكات نه وركيږي. د دې بدي په قرآن مجيد كښې بيان شويده. كه د مال زكات وركولې شي نو هغه كه په اربونو كښې وي نو هغه د كنز (د خزانې) په حكم كښې نه رازي. د زكات وركولو نه پس كه څوک هر څومره مال جمع كوي، په هغې اسلام پابندي نه لګوي. حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما او حضرت معاويه رضي الله عنه دواړه په دې متفق دي چه د زكات ادا كولو نه پس كه هر څومره مال په روا طريقه ګټلې شي او جمع شي هيڅ ګناه پكښې نشته. د ټولو صحابهٔ كرامو رضي الله عنهم هم دا رائې ده. د رسول اكرم صلي الله عليه وسلم په مبارك زمانه كښې ډير صحابهٔ كرام مالدار وو ډير دولت ئې لرلو. حضرت عثمان ابن عفان رضي الله عنه او حضرت عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه، دحيه كلبي رضي الله عنه او داسې نور صحابهٔ كرام هم ډير مالدار وو ليكن د حضرت ابوذر غفاري رضي الله عنه رائې دې خبره كښې څه حده پورې جُدا وه. هغه ډير د دنيا عيش و عشرت او مال جمع كول نه خوښول. نن صبا ډير جاهل خلق، حضرت ابوذر غفاري رضي الله عنه ته د سوشلسټ نظرياتو باني وائي. ډير نامعقوله او د حقيقت خلاف خبره ده اصل خبره داده. چه ابوذر غفاري رضي الله عنه فقيري مسكيني خوښوله. ډيره موده رسول الله صلي الله عليه وسلم سره اوسيدلې وو او په رسول الله صلي الله عليه وسلم باندې ډير مين او عاشق وو د رسول الله صلي الله عليه وسلم هم ډير خوښ وو د ابوذر غفاري رضي الله عنه نه دا روايت دې "چه هغه ته رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمايلي وو "چه كله د مدينې منورې آبادئي (عمارتونه بنګلې) د سلع غر برابر دنګې لوړې شي نو شام ته لاړ شه" او كله چه د مدينې منورې كورونه د سلع غر برابر دنګ شو نو زۀ شام ته لاړم". دا د رسول الله صلي الله عليه وسلم پيشن ګوئي وه. چه شام به فتحه شي او هلته به اسلامي حكومت قائم وي. بيا دا هم چه ډير عمر به ابوذر رضي الله عنه ژوندې وي چه مدينه منوره كښې به دومره مال زيات شي چه خلق به ډيرې اوچتې ماڼئي او بنګلې به جوړه وي. دا د حضرت عثمان رضي الله عنه د خلافت واقعه ده چه مدينه منوره كښې د مال دولت څه كمې نه وو او د رسول الله صلي الله عليه وسلم په مبارك زمانه كښې چه كوم حالات وو د دغې حالات د هغې نه ډير مختلف وو كوم خلق چه د اجتماعي او معاشرتي ژوند د نزاكتونو نه خبر وو هغوي دا د حالاتو تقاضا او ګنړله. دا ښكاره حقيقت دې چه د رسول الله صلي الله عليه وسلم د مبارکې زمانې د خلقو د زړونو پشان د خلقو زړونه جوړول دا د چا د وَس خبره نه ده ليكن ابوذر رضي الله عنه داسې صحابي وو چه غريبي او فقيري ئې خوښوله. هغه چه به دا حالات ليدل هغه به ډير خفه كيدلو. او خپل خفګان به ئې په ډاګه ښكاره كوؤ. حضرت عثمان رضي الله عنه د حضرت ابوذر رضي الله عنه نه پوښتنه او كړه. آيا ته د حضرت ابوبكر او حضرت عمر رضي الله عنهما نه غوره يې؟ ابوذر رضي الله عنه او فرمايل خبره داسې نده خو ما د رسول الله صلي الله عليه وسلم نه اوريدلې دي. "چه تاسو كښې ماته هغه زيات نزدې او محبوب دې چه په هغه وعده ټينګ پاتې شي كومه وعده ئې چه ماسره كړې ده" ما رسول الله صلي الله عليه وسلم سره يوه وعده

كړے ده او په هغے ولاړ يم.

حضرت ابوذر غفاري رضي الله عنه يو د لوئے مرتبے صحابي وو د هغه د خيالاتو نه ډيرو خلقو اثر قبلولے شو. او د اسلامي حکومت انتظامي معاملاتو ته د نقصان رسيدو خطره وه. د دے وجے نه حضرت عثمان رضي الله عنه ورته د شام د تللو د پاره حکم ورکړو. رسول الله صلي الله عليه وسلم ابوذر رضي الله عنه ته هم دا فرمايلي وو. هغه زرتر زره شام ته لاړو. شام کښې حضرت معاويه رضي الله عنه ګورنر وو. ابوذر غفاري رضي الله عنه په شام کښې د خپل خيالاتو مطابق خلقو ته او فرمايل مال دولت مه جمع کوئي د يوے ورځے د ضرورت خرڅ پريږدئ او پاتے مال د الله تعالي په لار کښې خرڅ کوئي. نو معاويه رضي الله عنه د هغه د شکايت عثمان رضي الله عنه ته اوکړو. نو بيا ابوذر رضي الله عنه د حضرت عثمان رضي الله عنه په مشورے سره "رَبَذَه" ته لاړو چه د هغے ذکر په دے حديث شريف کښې دے هلته ابوذر رضي الله عنه وفات شو (ربذه په هغه سړک کلے دے چه کوم سړک رياض ته ځي د شام په مخالف سمت کښې دے) رواياتو کښې دي چه کله د ابوذر رضي الله عنه د وفات وخت نزدے شو. نو د هغه بي بي چه ورسره وه په ژړا شوه. چه په مسافرئ او غريبئ کښې ابوذر رضي الله عنه وفات کيږي. د کفن د پاره هم څه څيز نشته ابوذر رضي الله عنه ته يوه پيشين ګوئي ياد راغله او ښځے ته ئے او فرمايل. چه دغه ډيرئي باندے ځما د وفات نه روستو کينه، يوه قافله به راشي او ځما د کفن دفن انتظام به کوي. ناسايه عبدالله بن مسعود رضي الله عنه د يو قافلے سره هلته را اورسيدو. چه خبر شو نو اوئے ژړل او خپل پټکے ئے د هغه د کفن د پاره ورکړو. جنازه ئے ورله اوکړله او هلته ئے دفن کړو.

يَمُوْتُ وَحْدَهٗ وَ يُبْعَثُ وَحْدَهٗ — يواځے به مړ کيږي او يواځے به قيامت کښې پاسي.

رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ وَ رَضُوْا عَنْه.

۲۶ : حَدَّثَنَا عَيَّاشٌ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْاَعْلٰى قَالَ حَدَّثَنَا الْجُوَيْرِيُّ عَنْ اَبِى الْعَلَاءِ عَنْ اَحْنَفِ بْنِ الْقَيْسِ قَالَ جَلَسْتُ ح وَ اِسْحٰقُ بْنُ مَنْصُوْرٍ حَدَّثَنِيْ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الصَّمَدِ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبِيْ قَالَ حَدَّثَنَا الْجَرِيْرِيُّ قَالَ حَدَّثَنَا اَبُو الْعَلَاءِ بْنِ الشِّخِّيْرِ اَنَّ الْاَحْنَفَ بْنَ قَيْسٍ حَدَّثَهُمْ قَالَ جَلَسْتُ اِلٰى مَلَاءٍ مِنْ قُرَيْشٍ فَجَآءَ رَجُلٌ خَشِنُ الشَّعْرِ وَالثِّيَابِ وَالْهَيْئَةِ حَتّٰى قَامَ عَلَيْهِمْ

۲۶ : عياش. عبدالاعلي. جريري. ابو العلاء. احنف بن قيس. ح (دوئم سند) اسحاق بن منصور. عبدالصمد. عبدالوارث. جريري. ابو العلاء بن شخر. احنف بن قيس بيان اوکۀ چه زۀ د قريش په يو جماعت کښې ناست ووم، نو يو سړے راغے، چه د هغه ويښتۀ او کپړے سختے غتے وے. او د شکل نه ئے پريشاني ظاهريدله تر دے چه د هغے خلقو خوا کښې اودريد، او سلام ئے اوکۀ. او وے وئيل. مال جمع کونکو خلقو له خوشبري ورکړے، چه يو کاڼړے به د جهنم په اور کښې ګرم کړے شي، بيا به هغه د هغوي په سينه کيښودے شي. چه د هغوي

فَسَلَّمَ ثُمَّ قَالَ بَشِّرِ الْكَانِزِيْنَ بِرَضْفٍ يُحْمٰى عَلَيْهِ فِيْ نَارِ جَهَنَّمَ ثُمَّ يُوْضَعُ عَلٰى حَلَمَةِ ثَدْيِ اَحَدِهِمْ حَتّٰى يَخْرُجَ مِنْ نُغْضِ كَتِفِهٖ وَ يُوْضَعُ عَلٰى نُغْضِ كَتِفِهٖ حَتّٰى يَخْرُجَ مِنْ حَلَمَةِ ثَدْيِهٖ يَتَزَلْزَلُ ثُمَّ وَلّٰى فَجَلَسَ اِلٰى سَارِيَةٍ وَ تَبِعْتُهٗ وَ جَلَسْتُ اِلَيْهِ وَ اَنَا لَا اَدْرِيْ مَنْ هُوَ فَقُلْتُ لَهٗ لَا اَرَى الْقَوْمَ اِلَّا قَدْ كَرِهُوا الَّذِيْ قُلْتَ قَالَ اِنَّهُمْ لَا يَعْقِلُوْنَ شَيْئًا قَالَ لِيْ خَلِيْلِيْ قَالَ قُلْتُ وَ مَنْ خَلِيْلُكَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَا اَبَا ذَرٍّ تُبْصِرُ اُحُدًا قَالَ فَنَظَرْتُ اِلَى الشَّمْسِ مَا بَقِيَ مِنَ النَّهَارِ وَ اَنَا اَرٰى اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُرْسِلُنِيْ فِيْ حَاجَةٍ لَهٗ قُلْتُ نَعَمْ قَالَ مَا اُحِبُّ اَنَّ لِيْ مِثْلَ اُحُدٍ ذَهَبًا اُنْفِقُهٗ كُلَّهٗ اِلَّا ثَلٰثَةَ دَنَانِيْرَ وَ اِنَّ هٰؤُلَاۤءِ لَا يَعْقِلُوْنَ شَيْئًا اِنَّمَا يَجْمَعُوْنَ الدُّنْيَا وَلَا وَاللّٰهِ لَا اَسْاَلُهُمْ دُنْيَا وَلَا اَسْتَفْتِيْهِمْ عَنْ دِيْنٍ حَتّٰى اَلْقَى اللّٰهَ.

ذَ اُوږې ذَ هډوکي نه به (یو خوا بل خوا) اوځي) او هغه کانړې به ميږلې شي بيا هغه سړے تاؤ شو' او يوې ستنې سره کيناست زهٔ هم هغهٔ پسې ورغلم' او هغه سره کيناستم. او مانهٔ پيژندلو' چه هغه څوک دے. ما هغهٔ ته اووې' زهٔ خلق وينم' چه دِے خبرے سره ناراضه شو' کوم چه تا او کړه. هغهٔ اووے' دوي په هيڅ نهٔ پوهيږي' حالانکه دا خما دوست وئيلے دي. ما ترے تپوس او کهٔ' ستا دوست څوک دے. وے وئيل' نبي صلي اللّٰه عليه وسلم. حضور صلي اللّٰه عليه وسلم او فرمائيل. اے ابوذر رضي الله عنه آيا تهٔ اُحد غر وينے ما نمر ته اُوکتل' چه دَ ورځے څهٔ حصه باقي پاتے ده. او خما گمان راغے' چه شايد رسول الله صلي الله عليه وسلم ما د څهٔ ضرورت ذَ پاره ليږي ما اووے. "او" حضور صلي الله عليه وسلم او فرمائيل' خما خوښه نهٔ ده' چه ما سره دے دَ اُحد غر برابر سرهٔ (زر) وي. او د درے اشرفو نه سِوا دے زهٔ ټول خرچ (خيرات) نهٔ کړم. او دا خلق به هيڅ نهٔ پوهيږي. دوئ دُنيا جمع کوي' او په خدائے چه زهٔ به ذ دوي نه (ذ دُنيا) هيڅ څيز اونهٔ غوارم او نه به ذ دين متعلق څهٔ خبره ذ دوي نه اُو تپوسم' تر دے چه الله سره يو ځائے شم.

۱. دے حديث شريف نه دا صفا معلوميږي چه رسول الله صلي الله عليه وسلم ابوذر رضي الله عنه ته څه خبره کړے وه. او په څه وجه هغه په هغې خبره عمل کوو. د رسول الله صلي الله عليه وسلم په مبارکه زمانه کښ په مدينه منوره کښ د مال دولت ډيري لګيدلے وو. د هر طرفنه به عربو خپل مالونه مدينے ته ليږل. ليکن رسول الله صلي الله عليه وسلم به هغه مالونه زر تر زره خلقو کښ ويشل. دا د الله تعالیٰ نه د ويريدو آخري درجه وه. ليکن ابوذر رضي الله عنه پدے معامله کښ ډيره سختي کوله. د دے وجے نه اکابر صحابه (د لوئے درجے) رضي الله عنهم به د ابوذر رضي الله عنه د دے سختئ نه شکايت کولو. ځکه چه د

رسول اکرم صلي الله عليه وسلم د فرمان دا مطلب نه وو کوم چه ابوذر رضي الله عنه ترې مطلب اخستلو. اسلام د فرضو، واجباتو او د مستحبو درجې د امّت د آسانئ د پاره مقرر کړيدي. زکات د مال په يو خاص معلوم مقدار فرض کېږي. څومره چه زکات فرض وي د هغې د ادا کولو نه پس فرض ختم شي. بيا د مستحباتو درجې دي. شريعت په خپله قانون جوړ کړيدې. په هغې باندې په اخلاص سره عمل کول د نجات او خلاصي د پاره کافي دې.

**باب ۱۲: اِنْفَاقِ الْمَالِ فِيْ حَقِّهٖ.**

**باب ۱۲: دَ مال دَ هغې په حق کښې دَ خرچ کولو بيان.**

۱. اسلام دا غواړي چه مال دې په مناسبو موقعو او لګولې شي که چا سره د زکات د نصاب برابر مال وي نو اول د مال لګېدو موقعه زکات ورکول دي. دا فرض عمل دې. بيا په خپل بال بچه په مور پلار، خپلو خپلوانو باندې مال لګول، بيا که وس وي. نو د عامو خلقو د فائدې د پاره مال لګول دي. بعضې حالاتو کښې دا ضروري وي. او د انسان د وَس طاقت برابر صرف مستحب او روا وي. د خپل بال بچ او د مور پلار خيال ضروري دې.

۲۷: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنّٰى قَالَ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ اِسْمٰعِيْلَ قَالَ حَدَّثَنِيْ قَيْسٌ عَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ لَا حَسَدَ اِلَّا فِي اثْنَيْنِ رَجُلٌ اٰتَاهُ اللّٰهُ مَالًا فَسَلَّطَهٗ فِيْ هَلَكَتِهٖ فِي الْحَقِّ وَ رَجُلٌ اٰتَاهُ اللّٰهُ حِكْمَةً فَهُوَ يَقْضِيْ بِهَا وَ يُعَلِّمُهَا.

۲۷: محمد بن مثنٰي. يحيٰي. اسمٰعيل. قيس. ابن مسعود رضي الله عنه نه روايت کوي، ما دَ نبي صلي الله عليه وسلم نه واوريدل، حسد صرف په دوو څيزونو کښې جائز دې. يو هغه سړې چه الله تعالٰي هغه له مال ورکړې وي، او هغه له ئې دَ حق په لار کښې دَ خرچ کولو قدرت ورکړې وي، او دوئم هغه سړې چه هغهٔ له الله تعالٰي حکمت (علم) ورکړې وي، او هغه دَ هغې په ذريعه فيصله کوي، او دَ هغې تعليم ورکوي.

**باب ۱۳: الرِّيَآءِ فِي الصَّدَقَةِ** لِقَوْلِهٖ تَعَالٰى يٰاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تُبْطِلُوْا صَدَقٰتِكُمْ بِالْمَنِّ وَالْاَذٰى كَالَّذِيْ يُنْفِقُ مَالَهٗ رِئَآءَ النَّاسِ وَلَا يُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ اِلٰى قَوْلِهٖ وَاللّٰهُ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الْكٰفِرِيْنَ قَالَ

**باب ۱۳:** صدقه کښې دَ ريا کولو بيان. دَ الله تعالٰي دَ هغې ارشاد په بنا، چه اې ايمان والو، خپلې صدقې احسان څيزونو او تکليف ورکولو سره مهٔ باطلې کوئ، دَ هغې چا په شان چه خپل مال نوروته دَ ښودنې دَ پاره خرچ کوئ او الله او دَ قيامت په ورځ ايمان نهٔ راوړي آخر آيت: والله لا يهدي القوم الكافرين (الله کافر قوم ته هدايت نهٔ کوي) پورې. ابن عباس رضي الله

ابْنُ عَبَّاسٍ صَلْدًا لَيْسَ عَلَيْهِ شَيْءٌ وَقَالَ عِكْرِمَةُ وَابِلٌ مَطَرٌ شَدِيدٌ وَالطَّلُّ النَّدٰى.

عنه اوو‘ صلدا معني دي‘ داسې څيز چه په هغې څيز نه وي. او د عکرمه بيان دے‘ چه وابل نه مراد سخت باران دے. او طل نه مراد شبنم پرخه دے.

## بَابُ ۱۴ : لَا يَقْبَلُ اللّٰهُ صَدَقَةً مِنْ غُلُولٍ وَلَا يَقْبَلُ اِلَّا مِنْ كَسْبٍ طَيِّبٍ لِقَوْلِهِ تَعَالٰى قَوْلٌ مَّعْرُوْفٌ وَّ مَغْفِرَةٌ خَيْرٌ مِّنْ صَدَقَةٍ يَّتْبَعُهَآ اَذًى وَاللّٰهُ غَنِيٌّ حَلِيْمٌ.

## باب ۱۴ : د غلا د مال نه صدقه نه قبليږي او صرف د پاکې ګټې (کمائي) خيرات قبليږي‘ ځکه چه الله تعالي فرمائيلي دي چه ښۀ خبره او معاف کول د هغې خيرات نه بهتر دي‘ چه هغې پسې څوک آزار کړے شي او الله تعالي غني او بردباره دے.

۱. يعني سوالګري ته په مناسب الفاظو کښې د ښو اخلاقو مظاهرے سره انکار کول‘ څه نه ورکول‘ د هغې خيرات نه غوره دے چه د هغې خيرات ورکولو په نتيجه کښې ورباندے احسان او زبادلے شي. يا هغه سوالګري سره د ضرر رسولو څه طريقه اوکړے شي. ځکه چه پدے صورت کښې نيکي برباده شوه او ګناه لازمه شوه. که چرے سوال کونکي ته هيڅ ورنکړے شي او په ښو الفاظو سره بهانه (معذرت) اوکړے شي نو بيا هم ثواب ورکيږي. ځکه چه دا ښو اخلاقو نه کار واخستے شو. اسلام هيچا سره د ضرر رسونکے معاملے اجازت په هيڅ حال کښې اجازت نه ورکوي. بلکې اسلام‘ مسلمانانو نه دا مطالبه کوي. چه زياتے نه زياتے په ښو اخلاقو سره خلقو سره ښه سلوک کوي. کله چه چا سره احسان او ښيګړه اوکړے او بيا ورباندے هغه احسان اوزبادے. اګرچه ستا خبره د حقيقت خلاف نده. خو بيا هم چه چا سره دے ښيګړه کړيده. هغه ته ضرور تکليف رسي او د داسې احسان د الله تعالي په نظر کښې هيڅ قيمت نشته چه د هغې نتيجه ضرر وي. الله تعالي تا ته او ستا احسان ته محتاج ندے که چا سره تۀ احسان کوے نو دا د الله تعالي د توفيق په نتيجه کښې کوے کوم الله تعالي چه تا ته طاقت درکړے دے هغه دا طاقت واپس اخستلے شي.

## بَابُ ۱۵ : اَلصَّدَقَةُ مِنْ كَسْبٍ طَيِّبٍ لِقَوْلِهِ تَعَالٰى يَمْحَقُ اللّٰهُ الرِّبٰوا وَيُرْبِي الصَّدَقَاتِ وَاللّٰهُ لَا يُحِبُّ كُلَّ كَفَّارٍ اَثِيْمٍ‘ اِنَّ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ وَ اَقَامُوا الصَّلٰوةَ وَاٰتَوُا الزَّكٰوةَ لَهُمْ اَجْرُهُمْ عِنْدَ رَبِّهِمْ وَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُوْنَ

## باب ۱۵ : د پاکې ګټې (کمائي) نه د خيرات کولو بيان. ځکه الله تعالي فرمائيلي دي‘ الله سود کموي او صدقے زياتوي او الله تعالي ناشکر ګناه ګار نۀ خوښوي. تحقيق سره کومو خلقو چه ايمان راوړلو‘ او نيک کارونه ئے اوکړل‘ مونځ ئے اوکه‘ زکوة ئے ورکړه نو هغوي د پاره د هغې اجر د هغوي رب سره دے. په هغوي به نه څه خوف وي او نه به هغوي غمجن وي.

۲. الله تعالي خپل بندګانو د سود نه منعه کړيدي او د صدقے خير خيراتو ئے حکم کړيدے او سره که

كـوم يـو بـنـده خيـرات كـوي صـدقـه وركـوي نـو هغه د الله تعالىٰ په حكم عمل كوي. نو په هغې به ثواب وركيـږي. او په مال كښې بركت به ئې وي ليكن كه كوم بنده چه د الله تعالىٰ د حكم خلاف د سود كاروبار كوي نو د هغې سود گناه به هم وي او سودي مال به بې بركته وي.

۲۸: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُنِيرٍ سَمِعَ اَبَا النَّضْرِ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمٰنِ هُوَابْنُ عَبْدُ اللّٰهِ بْنِ دِيْنَارٍ عَنْ اَبِيْ صَالِحٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ تَصَدَّقَ بِعَدْلِ تَمْرَةٍ مِّنْ كَسْبٍ طَيِّبٍ وَّ لَا يَقْبَلُ اللّٰهُ اِلَّا الطَّيِّبَ فَاِنَّ اللّٰهَ يَتَقَبَّلُهَا بِيَمِيْنِهٖ ثُمَّ يُرَبِّيْهَا لِصَاحِبِهٖ كَمَا يُرَبِّيْ اَحَدُكُمْ فُلُوَّهٗ حَتّٰى تَكُوْنَ مِثْلَ الْجَبَلِ تَابَعَهٗ سُلَيْمَانُ عَنِ ابْنِ دِيْنَارٍ وَ قَالَ وَرْقَاءُ عَنِ ابْنِ دِيْنَارٍ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ يَسَارٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَرَوَاهُ ابْنُ مُسْلِمُ اَبِيْ مَرْيَمَ وَ زَيْدُ بْنُ اَسْلَمَ وَ سُهَيْلٌ عَنْ اَبِيْ صَالِحٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۲۸: عبدالله بن مُنير. ابو النضر. عبدالرحمٰن بن عبدالله بن دينار. عبدالله بن دينار. ابو صالح. حضرت ابوهريره رضي الله عنه نه روايت كوي، رسول الله صلي الله عليه وسلم او فرمائيل، چا چه دَ پاكې كمائي نه دَ يوې قجورې برابره صدقه كړه، نو الله تعالىٰ هغه خپل ښي لاس سره اخلي او الله صرف پاكه كمائي قبلوي. بيا هغه دَ خيرات كونكي دَ پاره پالي څنګه چه تاسو كښې څوک خپل سخې (بچھڑاكو) پالي، تر دې چه هغه خيرات دَ غر برابر شي. سليمان بن دينار. سعيد بن يسار. ابو هريره رضي الله عنه دَ نبي صلى الله عليه وسلم نه روايت كړې دې. او دا مسلم بن ابي مريم. زيد بن اسلم. او سهيل په سند دَ ابو صالح ابو هريره رضي الله عنه دَ نبي صلي الله عليه وسلم نه روايت كړې دې.

۱. د الله تعالىٰ سره دا صدقه ډيره قيمتي ده. او د دې نه د الله تعالىٰ رضا حاصليږي.

## بَابُ ۱۶: اَلصَّدَقَةِ قَبْلَ الرَّدِّ.

## باب ۱۶: دَ هغې زمانې نه مخكښې دَ صدقې وركولو بيان، چه څوک خيرات آخستونكې به پاتې نشي.

۲. زين بن مُنير رحمة الله عليه فرمايلي دي دې سرليک سره امام بخاري رحمة الله عليه دا ښودل غواړي. چه صدقه يا زكات چه كله فرض شي نو هغه سمدستي ادا كول پكار دي. او د هغې په ادا كولو كښې (ټال متول) نن صبا باندې وخت تيره ول ښه خبره نده. زكات چه څرنګ فرض شي او سمدستي ادا كړې شي نو هغه بركت هم الله په باقي مال كښې پيدا كوي چه د كوم ئې وعده كړيده. او الله پاک نور هم

برکت نازلوي. د دے سرلیک لاندے تېرلو احادیثو کښې رسول الله صلي الله علیه وسلم د صدقے د خیرات او د زکات د سمدستي ورکولو هدایت کړیدے او داسے ئے خبرداری ورکړیدے. چه داسے زمانه راتلونکے ده چه زمکه به خپل دولت را بهر کړي. او صدقه اخستونکي به پاتے نشي او که وي نو ډیر کم به وي. هغوي ته به خیرات خپل کور کښې وررسیږي. نو خپله زمانه غنیمت او ګنړني او صدقه او زکات ایستلو کښې تاخیر مه کوئي مه ئے روستو کوني.

۲۹: حَدَّثَنَا اٰدَمُ قَالَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ حَدَّثَنَا مَعْبَدُ بْنُ خَالِدٍ قَالَ سَمِعْتُ حَارِثَةَ بْنَ وَهْبٍ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ تَصَدَّقُوْا فَاِنَّهُ يَأْتِيْ عَلَيْكُمْ زَمَانٌ يَمْشِي الرَّجُلُ بِصَدَقَتِهِ فَلَا يَجِدُ مَنْ يَقْبَلُهَا يَقُوْلُ: الرَّجُلُ لَوْ جِئْتَ بِهَا بِالْاَمْسِ لَقَبِلْتُهَا فَاَمَّا الْيَوْمَ فَلَا حَاجَةَ لِيْ فِيْهَا.

۲۹: آدم. شعبه. معبد بن خالد. حارثه بن وهب وائي: ما د نبي صلي اللّٰه علیه وسلم نه واوریدل: چه خیرات کوئے. ځکه چه یوه زمانه به په تاسو داسے راشي، چه یو سړے به خپل خیرات ګرځوي، او د هغے آخستونکے به هیڅوک نهٔ وي. او هغه سړے به هغهٔ ته وائي، که تا پرون خیرات راوړے وے، نو ما به قبول کړے وے. نن خو ما ته د دے ضرورت نشته.

۳۰: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ قَالَ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ قَالَ حَدَّثَنَا اَبُو الزِّنَادِ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَقُوْمُ السَّاعَةُ حَتّٰى يَكْثُرَ فِيْكُمُ الْمَالُ فَيَفِيْضُ حَتّٰى يُهِمَّ رَبَّ الْمَالِ مَنْ يَّقْبَلُ صَدَقَتَهُ وَ حَتّٰى يَعْرِضَهُ فَيَقُوْلُ الَّذِيْ يَعْرِضُهُ عَلَيْهِ لَا اَرَبَ لِيْ.

۳۰: ابو الیمان. شعیب. ابو الزناد. عبدالرحمٰن. ابو هریره رضي اللّٰه عنه نه روایت کوي، نبي صلي اللّٰه علیه وسلم او فرمایل، قیامت به نهٔ راځي، هغے پورے چه تاسو کښې د دولت زیاتي راشي. او بهیږي به، تر دے چه مال واله سړه به فکر شي، چه چا د هغه صدقه قبوله کړے وے، او تر دے چه هغه ئے چا ته پیش کړي، نو چا ته چه ترے پیش کړے شي. نو هغه به ورته وائي، چه ما ته خو د دے حاجت نشته.

۳۱: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ قَالَ حَدَّثَنَا اَبُوْ عَاصِمٍ النَّبِيْلُ قَالَ اَخْبَرَنَا سَعْدَانُ بْنُ بِشْرٍ

۳۱: عبداللّٰه بن محمد. ابو عاصم. نبیل. سعدان بن بشر. ابو مجاهد. د عدي بن حاتم متعلق وائي، ما د هغے نه واوریدل، چه زهٔ نبي صلے اللّٰه علیه وسلم سره

قَالَ حَدَّثَنَا اَبُوْ مُجَاهِدٍ قَالَ حَدَّثَنَا مُحِلُّ بْنُ خَلِيْفَةَ الطَّآئِيُّ قَالَ سَمِعْتُ عَدِيَّ ابْنَ حَاتِمٍ يَّقُوْلُ كُنْتُ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَجَاءَهُ رَجُلَانِ اَحَدُهُمَا يَشْكُو الْعَيْلَةَ وَالْاٰخَرُ يَشْكُوْا قَطْعَ السَّبِيْلِ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَمَّا قَطْعُ السَّبِيْلِ فَاِنَّهُ لَا يَاْتِيْ عَلَيْكَ اِلَّا قَلِيْلٌ حَتّٰى تَخْرُجَ الْعِيْرُ اِلٰى مَكَّةَ بِغَيْرِ خَفِيْرٍ وَّ اَمَّا الْعَيْلَةُ فَاِنَّ السَّاعَةَ لَا تَقُوْمُ حَتّٰى يَطُوْفَ اَحَدُكُمْ بِصَدَقَتِهٖ فَلَا يَجِدُ مَنْ يَّقْبَلُهَا مِنْهُ ثُمَّ لَيَقِفَنَّ اَحَدُكُمْ بَيْنَ يَدَيِ اللّٰهِ لَيْسَ بَيْنَهٗ وَ بَيْنَهٗ حِجَابٌ وَّلَا تَرْجُمَانٌ يُّتَرْجِمُ لَهٗ ثُمَّ لَيَقُوْلَنَّ لَهٗ اَلَمْ اُوْتِكَ مَالًا فَيَقُوْلَنَّ بَلٰى ثُمَّ لَيَقُوْلَنَّ اَلَمْ اُرْسِلْ اِلَيْكَ رَسُوْلًا فَيَقُوْلَنَّ بَلٰى فَيَنْظُرُ عَنْ يَّمِيْنِهٖ فَلَا يَرٰى اِلَّا النَّارَ ثُمَّ يَنْظُرُ عَنْ شِمَالِهٖ فَلَا يَرٰى اِلَّا النَّارَ فَلْيَتَّقِيَنَّ اَحَدُكُمُ النَّارَ وَلَوْ بِشِقِّ تَمْرَةٍ فَاِنْ لَّمْ يَجِدْ فَبِكَلِمَةٍ طَيِّبَةٍ.

۳۲: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَآءِ قَالَ حَدَّثَنَا اَبُوْ اُسَامَةَ عَنْ بُرَيْدٍ عَنْ اَبِيْ بُرْدَةَ عَنْ اَبِيْ مُوْسٰى عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَيَاْتِيَنَّ عَلَى النَّاسِ

ووم، نو حضور صلي الله عليه وسلم ته دوه سړي راغلل. يو د فقر و فاقه شکايت کولو او دويم د شوکې او د لارې د غير محفوظ کيدو. رسول الله صلي الله عليه وسلم او فرمائيل. څو پورې چه د شوکې (رهزنۍ) تعلق دې لږې ورځې پس به په تاسو داسې زمانه راشي، چه قافله به مکې طرف ته بغير د پاسبان او محافظ نه روانيږي. پاتې شو فقر او فاقه، نو قيامت به هغه وخته پورې نه راځي، چه تاسو کښې به يو سړې صدقه اخوا، ديخوا ګرځوي، او هغۀ ته به څوک صدقه قبلونکې په لاس نه ورځي. بيا به تاسو کښې يو سړې د الله مخکښې داسې اودريږي، چه دَ هغۀ او الله مينځ کښې به هيڅ حجاب نۀ وي، او نۀ به څوک ترجمان وي، چه ترجمه اوکړي. بيا به الله تعالي هغۀ ته او فرمائي، آيا ما تا ته مال نۀ وو درکړې، هغه به اووائي. او. بيا به الله پاک او فرمائي، ما تاسو ته رسول نۀ وو درليږلې، هغه سړې به اووائي، ضرور. بيا به خپل ښي طرف ته او ګوري، نو صرف اور به ورته په نظر راشي، او ګس طرف ته به اوګوري، نو هلته به هم ورته صرف اُور په نظر راشي، په دې وجه تاسو کښې دِ هر سړې د اُور نه خان بچ کړي، اګر که د يوې قجورې په ذريعه وي. که يوه قجوره هم ورسره نۀ وي، نو ښې (نيکې) خبرې دې کوي.

۳۲: محمد بن علاء. ابو اسامه. ابو برده. ابو موسي. د نبي صلي الله عليه وسلم نه روايت کوي. حضور صلي الله عليه وسلم او فرمائيل. پۀ خلقو به يوه داسې زمانه راشي. چه يو سړې به د صدقې (سونا) سره زر

زَمَانٌ يَطُوفُ الرَّجُلُ فِيْهِ بِالصَّدَقَةِ مِنَ الذَّهَبِ ثُمَّ لَا يَجِدُ اَحَدًا يَأْخُذُهَا مِنْهُ وَ يَرَى الرَّجُلُ الْوَاحِدُ يَتْبَعُهٗ اَرْبَعُوْنَ امْرَاَةً يَلُذْنَ بِهٖ مِنْ قِلَّةِ الرِّجَالِ وَ كَثْرَةِ النِّسَآءِ.

گرځي، خو داسې هیڅوک سړے به بیا نه مومي، چه هغه صدقه قبوله کړي. او هغوي کښې به یو داسې سړے په نظر راشي چه، هغه پسې به دَ سړو دَ کمي او دَ ښځو دَ زیاتے په سبب څلویښت ښځے وي.

## باب ۱۷ : اِتَّقُوا النَّارَ وَلَوْ بِشِقِّ تَمْرَةٍ وَالْقَلِيْلِ مِنَ الصَّدَقَةِ وَ مَثَلُ الَّذِيْنَ يُنْفِقُوْنَ اَمْوَالَهُمُ ابْتِغَاءَ مَرْضَاتِ اللّٰهِ وَ تَثْبِيْتًا مِّنْ اَنْفُسِهِمْ كَمَثَلِ جَنَّةٍ بِرَبْوَةٍ اِلٰى قَوْلِهٖ مِنْ كُلِّ الثَّمَرَاتِ.

## باب ۱۷ : اګر که دَ قجورے ټکړه وي

یعنې لږے صدقے ورکولو سره ځان دَ اُور نه بچ کړے. او دَ هغے خلقو مثال چه خپل مال دَ اللّٰه دَ رضا دَ پاره او خپل نفس ټیک ساتلو سره خرچ کوي، دَ هغے باغ په شان دے چه په اوچت ځائے وي: مِنْ كُلِّ الثَّمَرَاتِ پورے.

۱. مطلب ئے دا دے چه انسان به دوزخ ته د ګناه په وجه ځي. زکات، صدقه او خیرات سره ګناه رژیږي. د دے وجے نه پکار دي چه هر بنده دے د خپل وس برابر صدقه او خیرات کوي. په دے سلسله کښ د خیرات کړے شوي څیز د کمي او د زیاتي خیال پکار نه دے کوم څیز اګرچه ډیر معمولي او لګ وي خو بیا هم د اللّٰه تعالٰي په لار کښ د هغے اجر و ثواب ورکیږي. د صدقے او د خیرات معنٰي د ورکولو اخستلو نه هم وړاندے ده. خوړه خبره خیرات دے او دے خیرات سره هم ګناه دژیږي د دے مطلب دا هم کیدے شي چه د چا د معمولي حق هم خیال ساتل ضروري دي که چا باندے د خسنړي برابر د چا حق وي هغه ورکول، خلاصُول پکار دي. ځکه که حقونه معمولي وي لږ وي یا ډیر په هغے باندے د جزا سزا حکم ترتیبیږي.

۳۳: حَدَّثَنَا اَبُوْ قُدَامَةَ عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنِ سَعِيْدٍ قَالَ حَدَّثَنَا اَبُو النُّعْمَانِ هُوَ الْحَكَمُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ الْبَصْرِيُّ قَالَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ سُلَيْمَانَ عَنْ اَبِيْ وَآئِلٍ عَنْ اَبِيْ مَسْعُوْدٍ قَالَ لَمَّا نَزَلَتْ اٰيَةُ الصَّدَقَةِ كُنَّا نُحَامِلُ فَجَآءَ رَجُلٌ فَتَصَدَّقَ بِشَيْءٍ كَثِيْرٍ فَقَالُوْا مُرَاءٍ ...... وَ جَآءَ رَجُلٌ

۳۳: ابو قدامه عبید اللّٰه بن سعید. ابو نعمان حکم بن عبداللّٰه بصري. شعبه. سلیمان. ابو وائل. ابو مسعود رضي اللّٰه عنه نه راویت کوي. کوم وخت چه دَ صدقے آیت نازل شو. مونږ خلقو به مزدوري کوله، نو یو سړے راغے. هغه ډیر مال صدقه کړ، خلقو اووے دا سړے ریاکار دے، بل سړے راغے هغه یو صاع صدقه کړه، خلقو اووے اللّٰه تعالٰي دَ یو

فَتَصَدَّقَ بِصَاعٍ فَقَالُوْ اِنَّ اللّٰهَ لَغَنِيٌّ عَنْ صَاعِ هٰذَا فَنَزَلَتْ اَلَّذِيْنَ يَلْمِزُوْنَ الْمُطَّوِّعِيْنَ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ فِي الصَّدَقَاتِ وَالَّذِيْنَ لَا يَجِدُوْنَ اِلَّا جُهْدَ هُمْ الْاٰيَةَ.

صاع نه مستغني دے' نو آيت اَلَّذِيْنَ يَلْمِزُوْنَ: آخر پورے نازل شو (يعني كوم خلق چه دے مسلمانانو باندے په صدقه وركولو كښې زياتے كوي او هغے خلقو باندے چه مشقت سره مال حاصلوي' عيب لږوي).

۳۴: حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ يَحْيٰى قَالَ حَدَّثَنَا اَبِيْ قَالَ حَدَّثَنَا الْاَعْمَشُ عَنْ شَقِيْقٍ عَنْ اَبِيْ مَسْعُوْدِ نِ الْاَنْصَارِيِّ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا اَمَرَنَا بِالصَّدَقَةِ انْطَلَقَ اَحَدُنَا اِلَى السُّوْقِ فَيُحَامِلُ فَيُصِيْبُ الْمُدَّ وَ اِنَّ لِبَعْضِهِمُ الْيَوْمَ لَمِائَةَ اَلْفٍ.

۳۴: سعيد بن يحيٰي. يحيٰي. اعمش. شقيق. ابو مسعود انصاري رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم به مونږ ته دَ صدقے حكم راكولو. نو مونږ كښے به بعضے سړے بازار ته تللو او مزدورئ سره به ئے يو مُد حاصلولو او نن هغوي كښې بعضو سره يو لا كهـ درهم دي.

**ف:** مُدّ: يو پيمانه چه عراق كښې دوه رطل دي.

۱. كله چه د اسلام په شروع كښې د خيرات او صدقے حكم راغے نو خلق ډير محتاج او غريبانان وو ليكن د اللّٰه تعالٰي او د هغه د رسول د حكم منلو دا حال وو چه بازار ته به بنديان تلل' مزدوري به ئے كوله او په مزدورئ كښې چه به كټه ورغله هغه به ئے خيرات كوله. د دے روايت مطلب دا دے چه هغے غريبانانو سره نن لكونه زركونه روپۍ دي عيشونه كوي دا د اللّٰه تعالٰي فضل دے. چه دنيا كښې هم د خيرات بدله وركيږي. او په آخرت ئے اجر ډير زيات او معلوم دے.

۳۵: حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ قَالَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ اَبِيْ اِسْحٰقَ قَالَ سَمِعْتُ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ مَعْقِلٍ قَالَ سَمِعْتُ عَدِيَّ بْنَ حَاتِمٍ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ اتَّقُوا النَّارَ وَلَوْ بِشِقِّ تَمْرَةٍ.

۳۵: سليمان بن حرب. شعبه. ابو اسحاق. عبداللّٰه بن معقل. عدي بن حاتم رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي' ما دَ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم نه واوريدل' كه دَ قجورے يوه ټكره وي' هغه صدقه كړئ او خان دَ اُور نه بچ كړئ.

۳۶: حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ مُحَمَّدٍ قَالَ

۳۶: بشر بن محمد. عبداللّٰه. معمر. زهري.

أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ قَالَ أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ حَدَّثَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ أَبِيْ بَكْرِ بْنِ حَزْمٍ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ دَخَلَتِ امْرَأَةٌ مَّعَهَا ابْنَتَانِ لَهَا تَسْأَلُ فَلَمْ تَجِدْ عِنْدِيْ شَيْئًا غَيْرَ تَمْرَةٍ فَأَعْطَيْتُهَا إِيَّاهَا فَقَسَمَتْهَا بَيْنَ ابْنَتَيْهَا وَلَمْ تَأْكُلْ مِنْهَا ثُمَّ قَامَتْ فَخَرَجَتْ وَ دَخَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَخْبَرْتُهُ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنِ ابْتُلِيَ مِنْ هٰذِهِ الْبَنَاتِ بِشَيْءٍ كُنَّ لَهُ سِتْرًا مِّنَ النَّارِ.

عبداللّٰه بن ابي بكر بن حزم. عروه بي بي عائشے رض اللّٰه عنه نه روايت كوي، چه يوه ښځه خپلو دوو لونړ سره سوال كولو ذ پاره راغله، هغے ما سره سوا ذ يو قجورے نور هيڅ بيا نه مندل. ما هغه قجوره هغے ورکړه، نو هغے ښځے هغه قجوره دواړو لونړو بانديې تقسيم كړه. او خپله ئے هيڅ او نه خوړله. بيا او دريده او روانه شوه كوم وخت چه نبي صلے اللّٰه عليه وسلم مونږ له راغے، نو ما حضور صلي اللّٰه عليه وسلم ته دغه بيان او كړلو. حضور صلي اللّٰه عليه وسلم او فرمائيل چه څوک ذ دے جينكو په سبب به آزمائش كښې واچولے شي، نو دا جينكئ به ورله د اور نه حجاب (پرده) شي.

## بَابٌ ١٨ : فَضْلِ صَدَقَةِ الشَّحِيْحِ الصَّحِيْحِ لِقَوْلِهِ تَعَالٰى وَ أَنْفِقُوْا مِمَّا رَزَقْنٰكُمْ مِّنْ قَبْلِ أَنْ يَّأْتِيَ أَحَدَكُمُ الْمَوْتُ إِلٰى اٰخِرِهَا وَ قَوْلِهِ تَعَالٰى يٰأَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا أَنْفِقُوْا مِمَّا رَزَقْنٰكُمْ مِّنْ قَبْلِ أَنْ يَّأْتِيَ يَوْمٌ لَّا بَيْعٌ فِيْهِ وَلَا خُلَّةٌ وَّلَا شَفَاعَةٌ اَلْاٰيَةَ.

**باب ١٨ : ذ بخيل ذ تندرستئ په حالت كښې ذ صدقے وركولو ذ فضيلت بيان.** ځكه چه اللّٰه تعالٰي فرمائيلے دي، او خرچ كوئ ذ هغے نه، چه مونږ تاسو له دركړے دي، قبل د دے نه چه تاسو كښې چاله مرگ راشي، آخر آيت پورے. او ذ اللّٰه تعالي قول، چه اے ايمان والو، تاسو خرچ كوئ د هغے څيز نه، چه مونږ تاسوله دركړے دے قبل د دے نه چه هغه ورځ راشي، چه هغے كښې نه خو خريد و فروخت وي او نه دوستي او نه شفاعت، آخر آيت پورے.

١٣٧ : حَدَّثَنَا مُوْسٰى بْنُ إِسْمٰعِيْلَ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ قَالَ حَدَّثَنَا عُمَارَةُ بْنُ الْقَعْقَاعِ قَالَ حَدَّثَنَا أَبُوْ زُرْعَةَ قَالَ حَدَّثَنَا أَبُوْ هُرَيْرَةَ قَالَ جَآءَ

١٣٧ : موسي بن اسمٰعيل. عبدالواحد. عماره بن قعقاع. ابو زرعه. ابو هريرهؓ نه روايت كوي، يو سړے نبي صلے اللّٰه عليه وسلم له راغے او عرض ئے او كه، يا رسول اللّٰه، كومه صدقه د اجر د لحاظ نه ډيره زياته ده. حضور صلي اللّٰه عليه وسلم ورته او فرمائيل، كه نه

رَجُلٌ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَيُّ الصَّدَقَةِ اَعْظَمُ اَجْرًا قَالَ اَنْ تَصَدَّقَ وَ اَنْتَ صَحِيْحٌ شَحِيْحٌ تَخْشَى الْفَقْرَ وَ تَأْمُلُ الْغِنٰى وَلَا تُمْهِلُ حَتّٰى اِذَا بَلَغَتِ الْحُلْقُوْمَ قُلْتَ لِفُلَانٍ كَذَا وَ لِفُلَانٍ كَذَا وَ قَدْ كَانَ لِفُلَانٍ.

صدقه ور کړې داسې حال کښې چه ته تندرست ئې. بخيل ئې، او فقر نه ويريږې، او د مالدارئ اُميد کوې، او دومره ايساريږه مه، چه ساه د حلق ته راشي، او بيا ته اُووائې، چه دومره مال فلاني سړي ډ پاره دې، او دومره مال دې فلاني سړي ته ورکړې شي، حالانکه اوس خو هغه مال خپله ډ فلاني شوې دې. (يعني هيڅ کار خير نه کوې، خو چه ساه دې مرئي له راشي، نو بيا وصيتونه شروع کړې)

۱. که چرې د عقل په حساب اوکتلې شي نو د مرګ په وخت، د وصيت هيڅ اعتبار پکار نه دې خکه چه کله د مرګ وخت نزدې راغې نو د قانون په حقله اوس مال د هغه د ملکيت نه وتلې دې او د وارثانو ملکيت دې ليکن د شريعت دا احسان دې چه دريمه برخه مال کښې ئې د وصيت اجازت کړيدې. په حديث شريف کښې هم ديته اشاره ده. چه د مرګ د راتلو نه مخکښې صدقه او خيرات کول پکار دي. دا د عقل خبره نده. چه مرګ راشي نو وصيت دې شروع کړي. دا خو د شريعت احسان دې چه دريمه برخه مال کښې ئې د وصيت اجازت کړې دې اوس په دغه وخت مال د وارثانو دې.

## بَاب ۱۹:

باب ۱۹: (دې باب کښې عنوان نشته)

۳۸: حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ اِسْمٰعِيْلَ قَالَ حَدَّثَنَا اَبُوْ عَوَانَةَ عَنْ فِرَاسٍ عَنِ الشَّعْبِيِّ عَنْ مَسْرُوْقٍ عَنْ عَائِشَةَ اَنَّ بَعْضَ اَزْوَاجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قُلْنَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَيُّنَا اَسْرَعُ بِكَ لُحُوْقًا قَالَ اَطْوَلُكُنَّ يَدًا فَاَخَذُوْا قَصَبَةً يَذْرَعُوْنَهَا فَكَانَتْ سَوْدَةُ اَطْوَلَهُنَّ يَدًا فَعَلِمْنَا بَعْدُ اِنَّمَا كَانَتْ طُوْلَ يَدِهَا الصَّدَقَةُ وَ كَانَتْ اَسْرَعَنَا لُحُوْقًا بِهٖ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ

۳۸: موسي بن اسمٰعيل. ابو عوانه. فراس. شعبه. مسروق. بي بي عائشې رضي الله عنه نه روايت کوي. د نبي صلى الله عليه وسلم بعضې بيبيانو حضور صلي الله عليه وسلم ته عرض اوکړلو، چه مونږ کښې به څوک تاسو سره زر يو ځائې کيږي. حضور صلي الله عليه وسلم او فرمائيل، د چا لاس چه زيات اوږد وي، نو هغې بيبيانو لرګې راواخست او خپل لاسونه ناپ کول ئې شروع کړل. د بي بي سودهٔ لاس زيات اوږد وو. ورستو مونږ ته معلومه شوه، چه د لاس د اوږدوالي نه مراد صدقه ده، نو بي بي زينب رضي الله عنه د ټولو نه مخکښې حضور صلي الله عليه وسلم سره يو ځائې شوله. او هغې به صدقه ورکول ډير خوښول. (د لاس د

كَانَتْ تُحِبُّ الصَّدَقَةَ.

اوږدوالي نه مقصد سخاوت دے)

۱. په ښکاره ډول د حضرت سوده رضي الله عنها لاس اوږده وو په سخاوت کښې هم د ټولو بيبيانو نه زياته سخي وه. د ټولو نه وړاندے حضرت سوده بي بي رضي الله عنها وفات شوه. بعضے علماؤ ليکلے دي. چه حضرت زينب رضي الله عنها اول وفات شوے وه هغه هم ډيره سخي وه. ليکن بعضے د نورو بيبيانو نومونه ليکلے دي. ليکن په نورو رواياتو کښې د دے وضاحت شته' چه رسول اکرم صلي الله عليه وسلم پسے په ټولو بيبيانو کښې اول سوده بي بي رضي الله عنها وفات شوے وه او هغه د ټولو نه زياته سخي وه.

بَاب ۲۰: صَدَقَةِ الْعَلَانِيَةِ وَ قَوْلِهِ الَّذِيْنَ يُنْفِقُوْنَ اَمْوَالَهُمْ بِاللَّيْلِ وَالنَّهَارِ سِرًّا وَّ عَلَانِيَةً فَلَهُمْ اَجْرُهُمْ عِنْدَ رَبِّهِمْ وَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُوْنَ.

باب ۲۰: په ښکاره ډَ صدقے ورکولو بيان او دَ اللّٰه تعالٰي قول' چه کوم خلق خپل مال شپه او ورځ په ښکاره او په پټه خرچ کوي' نو هغوئي ته به دَ هغوي اجر خپل رب سره حاصليږي. نه به په هغوي څۀ خوف وي او نۀ به هغوي غمجن وي.

بَاب ۲۱: صَدَقَةِ السِّرِّ وَ قَالَ اَبُوْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ رَجُلٌ تَصَدَّقَ بِصَدَقَةٍ فَاَخْفَاهَا حَتّٰى لَا تَعْلَمَ شِمَالُهُ مَا تُنْفِقُ يَمِيْنُهُ وَ قَوْلُهُ اِنْ تُبْدُوا الصَّدَقٰتِ فَنِعِمَّا هِيَ وَ اِنْ تُخْفُوْهَا وَ تُؤْتُوْهَا الْفُقَرَآءَ فَهُوَ خَيْرٌ لَّكُمْ وَ يُكَفِّرُ عَنْكُمْ سَيِّاٰتِكُمْ وَاللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ خَبِيْرٌ.

باب ۲۱: په پټه دَ صدقے ورکولو بيان. ابو هريره رضي اللّٰه عنه دَ نبي صلي الله عليه وسلم نه روايت کړے دے' که يو سړے داسے په پټه خيرات ورکړي چه کس لاس ته ئے هم پته نۀ لږي چه دَ هغه ښي لاس څۀ خرچ کوي. او دَ اللّٰه تعالٰي قول' که تاسو په ښکاره خيرات کوئ' نو ښه دے او که په پټه ئے کوئ او فقيرانو له ئے ورکړئ نو دا ډير ښۀ دے. او اللّٰه تعالٰي به ستاسو نه ستاسو ګناهونه لرے کړي او تاسو چه څه کوئ اللّٰه تعالٰي دَ هغے نه خبر دے.

۲. علماؤ دا يوه قاعده بيان کړيده. چه زکات يا واجبے صدقے ښکاره د خلقو مخکښې په ډاګه ورکول غوره دي. ليکن نفلي صدقے يا د خپل زړه په خوشالئ چه کومے صدقے ورکوي. هغه په پټه ورکول غوره دي. بعضے حالاتو کښې چه د زکات ورکولو وخت وي نو پټ هم زکات ورکيدے شي. او بعضے اوقاتو کښې نفلي خيرات هم په ښکاره ډول ورکيدے شي. ځان ښودل او رياکاري بده خبره ده.

بَاب ۲۲: اِذَا تَصَدَّقَ عَلٰى غَنِيٍّ وَّهُوَ لَا يَعْلَمُ.

باب ۲۲: هر کله چه يو مالدار ته صدقه ورکړي او هغه نۀ پيژني.

۹۳۹: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ قَالَ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ قَالَ حَدَّثَنَا اَبُو الزِّنَادِ عَنِ الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ قَالَ رَجُلٌ لَاَتَصَدَّقَنَّ بِصَدَقَةٍ فَخَرَجَ بِصَدَقَتِهٖ فَوَضَعَهَا فِيْ يَدِ سَارِقٍ فَاَصْبَحُوْا يَتَحَدَّثُوْنَ تُصُدِّقَ عَلٰى سَارِقٍ فَقَالَ اَللّٰهُمَّ لَكَ الْحَمْدُ لَاَتَصَدَّقَنَّ بِصَدَقَةٍ فَخَرَجَ بِصَدَقَتِهٖ فَوَضَعَهَا فِيْ يَدِ زَانِيَةٍ فَاَصْبَحُوْا يَتَحَدَّثُوْنَ تُصُدِّقَ اللَّيْلَةَ عَلٰى زَانِيَةٍ فَقَالَ اللّٰهُمَّ لَكَ الْحَمْدُ عَلٰى زَانِيَةٍ لَاَتَصَدَّقَنَّ بِصَدَقَةٍ فَخَرَجَ بِصَدَقَتِهٖ فَوَضَعَهَا فِيْ يَدِ غَنِيٍّ فَاَصْبَحُوْا ...... يَتَحَدَّثُوْنَ تُصُدِّقَ عَلٰى غَنِيٍّ فَقَالَ اَللّٰهُمَّ لَكَ الْحَمْدُ عَلٰى سَارِقٍ وَ عَلٰى زَانِيَةٍ وَّ عَلٰى غَنِيٍّ فَاُتِيَ فَقِيْلَ لَهٗ اَمَّا صَدَقَتُكَ عَلٰى سَارِقٍ فَلَعَلَّهٗ اَنْ تَسْتَعِفَّ عَنْ سَرِقَتِهٖ وَ اَمَّا الزَّانِيَةُ فَلَعَلَّهَا اَنْ تَسْتَعِفَّ عَنْ زِنَاهَا وَ اَمَّا الْغَنِيُّ فَلَعَلَّهٗ يَعْتَبِرُ فَيُنْفِقُ مِمَّا اَعْطَاهُ اللّٰهُ عَزَّ وَجَلَّ.

۹۳۹: ابو اليمان. شعيب. ابو الزناد. اعرج. ابو هريره رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم او فرمائيل، يو سړي اوويے، زۀ صدقه وركوم، نو هغه ذ صدقے مال سره اووتلو او هغه ئے ذ يو غل په لاس كښ كيښوده. خلقو دِ ے باره كښ سحر خبرے شروع كړے، چه غل ته صدقه وركړے شوه، نو هغۀ اُووے اے خُما اللّٰه، تا لره تعريف دے، زۀ به صدقه وركوم، نو هغه ذ صدقے مال سره او وتلو، او يوے زنا كارے ښځے له ئے صدقه وركړله، نو خلقو دے باره كښ سَحر خبرے شروع كړے چه صدقه ئے يوے زناكارے ښځے له وركړله. نو هغه اووے، اے خُما اللّٰه، يوے زنا كارے ښځے له صدقه وركولو باندے ستا تعريف دے. زه به صدقه وركوم، نو بيا هغه ذ صدقے مال سره اووتلو، او يَو مالدار سړي له ئے وركړله، نو خلقو په دِے حقله خبرے شروع كړے، چه يَو مالدار سړي ته صدقه وركړے شوه، نو هغۀ اووے، اے خُما اللّٰه، غل، زنا كارے او مالدار له صدقه وركولو باندے ستا تعريف دے، نو هغه صدقه قبوله شوه، او هغۀ ته او وئيلے شو، غل ته چه تا صدقه وركړه، نو هغه څكه قبوله شوه، چه شايد هغه ذ غلا، نه واوړي، او زنا كاره ښځه شايد ذ زنا نه بچ شي، او مالدار شايد عبرت واخلي، او څۀ چه هغه له اللّٰه وركړے دي، ذ هغے نه خرچ اوكړي.

۱. نورو روايتو كښ دي چه دے سړي د شپے صدقه وركړے ده. څكه چه دۀ دا منخته كړے وه چه د شپے به صدقه وركوم چه څوك خبر نشي. نو په تياره كښ ئے صدقه غل له وركړه چه صبا شو. ټولو خلقو كښ دا مشهوره شوه چه د شپے چا غل له صدقه وركړيده. هغه بيا صدقه د شپے وركوله نو زناكارے ښځے له ئے وركړه. څكه چه شپه وه سخته تياره وه نو دۀ ته معلومه نشوه. دا غلطي په دے وجه كيدله چه دے بنده منخته كړے وه. چه د شپے به خيرات وركوم.

۲. نورو روایاتو کښې دي. چه د الله تعالی د دربار نه د خیرات قبلیدو زیرے راغلے وو. خکه چه د ورکونکي په نيت کښې اخلاص وو الله تعالی ئے آزمیښت هم کولو. د هغه نه بیا بیا غلطي کیده. او هغه ته به معلومیده. ورکونکي خپل پوره کوشش کوژ چه حقدار ته خیرات اورسي امام بخاري رحمة الله عليه دا ښودل غواړي. که په بے خبرئي کښې صدقه مال دار ته ورکړے شي او په نيت کښې ئے اخلاص وي نو هغه صدقه الله تعالي سره قبوله وي. د احنافو په نزد هم دا مسئله ده. خو ډیر سوچ او فکر پکار دے چه حقدار ته اورسي. دا ټول بیان د فرض صدقے لکه زكات يا د واجب صدقے لکه منخته (نذر وغيره) ده د هغے په حقله وو. که چرے نفلي صدقه وي او په بے خبرئي کښې غیر حقدار ته ورکړے شي نو په هغے کښې هیڅ سوال نه پیدا کیږي هغه قبوله، قبوله ده.

## بـاب ۲۳: اِذَا تَـصَـدَّقَ عَـلٰـى اِبْنِهٖ وَهُوَ لَا يَشْعُرُ.

## باب ۲۳: خپل خوي ته ذ خیرات ورکولو بیان، داسے حال کښې چه هغه خبر نهٔ وي.

۱۳۴۰: حَـدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوْسُفَ قَـالَ حَـدَّثَـنَـا اِسْـرَآئِيْـلُ قَالَ حَدَّثَـنَا اَبُـو الْجُوَيْرِيَةِ اَنَّ مَعْنَ بْـنَ يَـزِيْـدَ حَـدَّثَـهٗ قَالَ بَايَعْتُ رَسُوْلَ اللّٰـهِ صَـلَّـى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَا وَ اَبِـىْ وَجَدِّىْ وَ خَطَبَ عَلَيَّ فَاَنْكَحَنِىْ وَ خَـاصَـمْـتُ اِلَيْـهِ وَ كَـانَ اَبِىْ يَزِيْدُ اَخْـرَجَ دَنَـانِيْـرَ يَـتَـصَـدَّقُ بِهَا فَوَضَعَهَا عِـنْـدَ رَجُـلٍ فِـى الْـمَـسْـجِـدِ فَجِئْـتُ فَـاَخَـذْتُهَا فَـاَتَيْتُـهٗ بِهَا فَقَالَ وَاللّٰهِ مَا اَرَدْتُ اِيَّـاكَ فَـخَـاصَـمْـتُـهٗ اِلَى رَسُوْلِ اللّٰـهِ صَـلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ لَكَ مَـا نَوَيْتَ يَا يَزِيْدُ وَلَكَ مَا اَخَذْتَ يَا مَعْنُ.

۱۳۴۰: مـحـمـد بن یوسف. اسرائیل. ابو الجويريه. معـن بـن یـزیـد نه روایت کوي، چه ما، خما پلار او خما نیکـهٔ ذ رسـول الله صلے الله علیه وسلم نه بیعت او کهٔ. حضور صلي الله علیه وسلم خما کویدن او کړه او نکاح ئے او تـړلـه. او زهٔ یوے جګړے سره حضور صلي الله علـیـه وسـلم ته حاضر شوم. خما پلار یزید یو څو دیناره صـدقے ذ پـاره او بـنـکـلے وو، نو هغه ئے جمات کښې یو سړي سره کیښودل. زهٔ راغلم نو هغه م واخستل. بیا زهٔ هغے سـره پـلار لـه راغلم نو خما پلار اووے، په خدائے چه، خما تا ته ذ ورکولو اراده نهٔ وه، زهٔ دے مقدمے سره رسـول الـلـه صـلـے الـلـه عـلـيـه وسلم ته حاضر شوم، نو حضور صلي الله علیه وسلم او فرمائیل اے یزید تا ته به هغـه رسـي چه تائے نیت کړے دے اے معن هغه ستا دے چه تا واخست.

۱. پـه ظـاهـره د دے حـديـث شـريـف نـه دا مطلب اخستے کیږي. که په بے خبرئ کښې خوني د پلار صـدقـه واخـلـي نو صدقه ادا شوه. لکه مالدار ته چه ورکړے شي. غالبًا د امام بخاري رحمة الله عليه په نزد هم دا مسئله ده. که صدقه واجب وي يا فرض (زكات) يا نفلي وي که د پلار صدقه په بے خبرئ کښې خوي تـه ورکـړے شـي نو صدقه ادا شوه. لیکن حدیث شریف کښې دیته اشاره نشته چه په هر صورت کښې صدقه

ادا شوه. د مذهب حنفي دا مسئله ده. چه فرض صدقه زكات يا واجب صدقه لكه منخته يا كفاره. كه د پلار د طرفنه په بے خبرئي كښې خوي ته وركړے شي او هغهٔ صدقه هغه او لګوي نو صدقه ادا نه شوه او كه لګيدلے نه وي نو پلار به ئے ترے واپس واخلي او حقدار له به ئے وركړي. او كه چرے صدقه نفلي وه نو بيا ادا شوه. فقهاؤ د مالدار او پلار خوي كښې فرق كړيدے وجه ئے دا ده چه مالدار او غريب كښې په بعضے حالاتو كښې فرق ګران وي. ليكن د پلار خوي فرق او تعلق ظاهر او ښكاره دے او هر پلار خوئے او خونے خپل پلار پيژني. نفلي صدقه كښې فراخي ده.

## بـاب ۲۴: الصَّدَقَةِ بِالْيَمِيْنِ.

## باب ۲۴: ښي لاس سره ذ صدقے وركولو بيان.

۱۴: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ قَالَ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنَا حَبِيْبُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ حَفْصِ بْنِ عَاصِمٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ سَبْعَةٌ يُّظِلُّهُمُ اللّٰهُ فِيْ ظِلِّهٖ يَوْمَ لَا ظِلَّ اِلَّا ظِلُّهٗ اِمَامٌ عَادِلٌ وَّ شَابٌّ نَّشَاَفِيْ عِبَادَةِ اللّٰهِ وَ رَجُلٌ مُعَلَّقٌ قَلْبُهٗ فِي الْمَسَاجِدِ وَ رَجُلَانِ تَحَابَّا فِي اللّٰهِ اجْتَمَعَا عَلَيْهِ وَ تَفَرَّقَا عَلَيْهِ وَ رَجُلٌ دَعَتْهُ امْرَاَءةٌ ذَاتَ مَنْصَبٍ وَّ جَمَالٍ فَقَالَ اِنِّيْ اَخَافُ اللّٰهَ وَ رَجُلٌ تَصَدَّقَ بِصَدَقَةٍ فَاَخْفَاهَا حَتّٰى لَا تَعْلَمُ شِمَالُهٗ مَا تُنْفِقُ يَمِيْنُهٗ وَ رَجُلٌ ذَكَرَ اللّٰهَ فَفَاضَتْ عَيْنَاهُ.

۱۴: مسدد. يحيٰي. عبيد اللّٰه. حبيب بن عبدالرحمٰن. حفص بن عاصم. ابو هريره رضي الله عنه ذ نبي صلے الله عليه وسلم نه روايت كوي حضور صلي الله عليه وسلم او فرمائيل اُووه سړي داسے دي چه الله تعالٰي به ئے ذ خپل سوري لاندے ساتي چه ذ هغے نه سِوا بل هيڅ سورے به نهٔ وي. (۱) عادل امام (۲) ځلمے چه ذ هغهٔ پرورش ذ اللّٰه عبادت كښې شوے وي (۳) هغه سړے چه د هغهٔ زړهٔ جمات سره لګيدلے وي (۴) هغه دوه سړي چه اللّٰه ذ پاره يو بل سره محبت ساتي او په هغے سره يوځائے كيږي او جدا كيږي (۵) هغه سړے چه منصب واله او ښكلے ښځه ئے (بدكاري ذ پاره) اوبلي او هغه سړے اووائي چه زهٔ ذ الله نه ويريږم (۶) هغه سړے چه هغهٔ صدقه وركړه او داسے پټه ئے وركړه چه كس لاس ته ئے هم پته اُو نه لږيده چه ښي لاس ئے څه وركړل (۷) او هغه سړے چه هغه تنهائي كښې الله ياد كړلو او د هغهٔ ذ ستركو نه اوښكے روانے شوے.

۲۴: حَدَّثَنَا عَلِيُّ ابْنُ الْجَعْدِ قَالَ اَخْبَرَنَا شُعْبَةُ قَالَ اَخْبَرَنِيْ مَعْبَدُ بْنُ خَالِدٍ قَالَ سَمِعْتُ حَارِثَةَ بْنَ وَهَبٍ

۲۴: علي بن جعد. شعبه. معبد بن خالد. حارثه بن وهب خزاعي نه روايت كوي هغه وائي ما ذ نبي صلے اللّٰه عليه وسلم نه

الْخُزَاعِيَّ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ تَصَدَّقُوْا فَسَيَأْتِيْ عَلَيْكُمْ زَمَانٌ يَمْشِي الرَّجُلُ بِصَدَقَتِهٖ فَيَقُوْلُ الرَّجُلُ لَوْ جِئْتَ بِهَا بِالْأَمْسِ اَقْبَلْتُهَا مِنْكَ فَاَمَّا الْيَوْمَ فَلَا حَاجَةَ لِيْ فِيْهَا.

واوریدل' چه خیرات کوئے. عنقریب تاسو باندے داسے زمانه راتلونکے ده' چه یو سړے به ذ خیرات مال سره اوځي' نو چاله چه خیرات ورکوي' هغه به ورته وائي' که تا پرون دا راوړے وے' نو ما به آخستے وے نن خو ما ته ذ دے ضرورت نشته.

## بَابٌ ۲۵ : مَنْ اَمَرَ خَادِمَهٗ بِالصَّدَقَةِ وَلَمْ يُنَاوِلْ بِنَفْسِهٖ وَ قَالَ اَبُوْ مُوْسٰى عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ اَحَدُ الْمُتَصَدِّقِيْنَ.

## باب ۲۵ : ذ هغے سړي بیان چه خپل خادم ته ئے ذ صدقے ورکولو حکم اُوکۀ او خپله ئے ورنۀ کړله او ابو موسیٰ ذ نبي صلي الله علیه وسلم نه روایت کړے دے' چه هغۀ به هم صدقه ورکونکو کښ شمیرلے شي.

۱. خادم' نوکر او چاسره چه د مالک مال د امانت په طور پروت دے که هغه د مالک په اجازت سره چا ته خیراتي ورکړي. نو په خیرات (صدقه) کښ به هغوي ته هم ثواب ورکیږي. په دے حکم کښ ښځه هم رازي. ځکه چه هغه هم د خاوند د مال امانتداره وي. خیرات ورکولو کښ چه ځومره څوک برخه والي نیت او اخلاص ئے ځومره وي هغه هومره ثواب به ورکیږي.

۴۳: حَدَّثَنَا عُثْمَانُ ابْنُ اَبِيْ شَيْبَةَ قَالَ حَدَّثَنَا جَرِيْرٌ عَنْ مَّنْصُوْرٍ عَنْ شَقِيْقٍ عَنْ مَّسْرُوْقٍ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا اَنْفَقَتِ الْمَرْاَةُ مِنْ طَعَامِ بَيْتِهَا غَيْرَ مُفْسِدَةٍ كَانَ لَهَا اَجْرُهَا بِمَا اَنْفَقَتْ وَ لِزَوْجِهَا اَجْرُهٗ بِمَا كَسَبَ وَ لِلْخَازِنِ مِثْلُ ذٰلِكَ لَا يَنْقُصُ بَعْضُهُمْ اَجْرَ بَعْضٍ شَيْئًا.

۴۳: عثمان بن ابي شیبه. جریر. منصور. شقیق. مسروق. بي بي عائشے رضي اللّٰه عنه نه روایت کوي. ذ هغے بیان دے' نبي صلي اللّٰه علیه وسلم او فرمائیل. هر کله چه ښځه ذ خپل کور نه طعام خیرات کړي' په شرط ذ دے چه ذ فساد نیت ئے نۀ وي' نو هغے ښځے ته به آجر ورکیږي په دے سبب چه هغے خیرات اوکۀ. او خازن (خزانچي) ذ پاره هم دومره آجر دے' هغوي کښ به بعضے ذ بعضو اَجر کم نۀ کړے شي.

۲. یعني چه ځومره ثواب اللّٰه تعالیٰ سره مقرر دے هغه ثواب به ورته ضرور ورکیږي. داسے نده چه کنے څوک د صدقه ورکونکي مدت اوکړي نو د هغے صدقه کونکي د ثواب نه به مدت کونکي ته ورکیږي. د صدقه کونکي ثواب کښ به کمے نه رازي. او هر بنده ته به د هغه د نیت او د اخلاص او د عمل ثواب ورکولے شي. پاتے شو دا سوال چه ښځه د خاوند په مال کښ' او خزانچي د مالک، په مال کښ څه اختیار یا تصرّف کولے شي د دے بحث به وړاندے رازي.

**بـــاب ۲۶: لَا صَـــدَقَةَ اِلَّا عَـنْ ظَهْــرِ غِـنًــى وَّ مَـنْ تَـصَدَّقَ وَهُـوَ مُحْتَـاجٌ اَوْ اَهْـلُـهٗ مُحْتَـاجٌ اَوْ عَـلَيْـــهِ دَيْــنٌ فَـالـدَّيْـنُ اَحَـقُّ اَنْ يُـقْـضٰــى مِــنَ الصَّـدَقَةِ وَالْعِتْـقِ وَالْهِبَةِ وَهُــوَ رَدٌّ عَـلَيْـهِ لَيْــسَ لَـهٗ اَنْ يُتْـلِفَ اَمْــوَالَ الـنَّـاسِ وَ قَـالَ النَّبِـيُّ صَـلَّـى اللّٰـهُ عَلَيْـهِ وَسَلَّمَ مَــنْ اَخَـذَ اَمْــوَالَ الـنَّــاسِ يُــرِيْـدُ اِتْلَافَهَـــا اَتْـــلَـفَـــهُ اللّٰـــهُ اِلَّا اَنْ يَّـكُـوْنَ مَـعْــرُوْفًـا بِـالصَّبْـرِ فَيُؤْثِـرُ عَـلٰــى نَـفْـسِــهٖ وَلَـوْ كَــانَ بِـــهٖ خَـصَــاصَةٌ كَـفِـعْـلِ اَبِـيْ بَـكْـرٍ حِيْــنَ تَـصَـدَّقَ بِـمَـالِـهٖ وَ كَـذٰلِكَ اٰثَــرَ الْاَنْـصَـارُ الْمُهَـاجِـرِيْنَ وَ نَهَـى النَّبِـيُّ صَـلَّـى اللّٰـهُ عَلَيْـهِ وَسَلَّمَ عَنْ اِضَاعَةِ الْمَالِ فَلَيْسَ لَهٗ اَنْ يُّضِيْعَ اَمْـوَالَ الـنَّـاسِ بِـعِـلَّةِ الصَّدَقَةِ وَ قَالَ كَعْبُ بْنُ مَالِكٍ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّ مِنْ تَـوْبَتِــيْ اَنْ اَنْـخَـلِعَ مِنْ مَّـالِيْ صَـدَقَةً اِلَى اللّٰـهِ وَ اِلٰى رَسُوْلِهٖ قَالَ اَمْسِكْ عَلَيْكَ بَعْضَ مَالِكَ فَهُوَ خَيْرٌ لَّكَ قُـلْـتُ فَـاِنِّـيْ اُمْسِكُ سَهْـمِـى الَّـذِىْ بِخَيْبَرَ.**

**باب ۲۶: صـدقـه داسـې صورت كښ جائز ده'** چه ذَ هغـه مـالـداري قائمه وي' او چا چه خيرات او كه' داسـې حـال كښ' چه هغه خپله محتاج وي يا ذ هغه كور والا مـحتاج وي' يا په هغۀ قرض وي نو ذَ قرض ادا كول ذَ صـدقې نه' آزادئ نه' او هبه نه زيات حق لري او هغه به هغـه تـه او كرځولې شي' هغۀ ته دا حق نشته' چه ذَ خلقو مـالونه برباد كړي. او نبي صلے اللّٰه عليه وسلم فرمائيلې دي' چا چه ذَ خلقو مالونه واخستل او ذَ هغۀ اراده ذَ هغې ذَ بربادولو وي' نو اللّٰه تعالٰي به هغه برباد كړي' ليكن كه هغـه پـه صبـر كـښ مشهـور وي او په خپل ذات نوروله تـرجيـح وركـولې شي' اګر كه خپله هغۀ ته حاجت وي' لكـه چه حضرت ابوبكر رضي اللّٰه عنه اوكړل' چه كوم وخـت خپـل مال ئې صدقه كۀ (نو ټول مال ئې وركړلو) او دغـه شـان انـصـارو' مهـاجـريـنـو له (په ځان) ترجيح وركـړلـه. او نبي صلي اللّٰه عليه وسلم ذَ مال ضائع كولو نـه مـنـع فرمائيلې ده. په دې وجه هغۀ ته حق نشته' چه ذَ نورو مال ذَ صدقې په بنا تباه كړي. او ذَ كعب بن مالك بيـان دې' مـا اووې' يـا رسـول الـلّٰـه' زۀ ذَ خپلې توبې ذَ مـقبـوليـت په سبب غواړم' چه خپل ټول مال په اللّٰه او ذَ هغۀ په رسول صلي اللّٰه عليه وسلم قربان كړم' او ذَ هغې نـه لاس پـه سر شم. حضور صلي اللّٰه عليه وسلم ورته او فـرمـائيل كه تۀ خپل څۀ مال پاتې كړې' نو دا زياته بهتره ده مـا اووې' څـمـا هغه حصه چه خيبر كښ ده' هغه پاتې كوم.

۱. د شـريـعـت مقصد دا دې چه ټوله پنګه ټول مال صدقه كښ وركول پكار نَدي بلكې دومره حده پـورې صـدقـه وركـولي شـي. چـه دومـره مـال ورسـره پـاتـې شي چه هغه پرې كاروبار كولې شي او خپل

ضرورت د خپل حيثيت مطابق پوره كولے شي. د دے دوه مطلبه كيدے شي. اول دا چه د قرضدار بنده چا ته مال (هبه) بښانه وركول. غلام آزاده ول او صدقه وركول دا د الله تعالي په دربار كښ نه قبليږي ځكه چه د بل چا حق لكه قرض. ادا كول ضروري او واجب دي چه د نورو بنيادمو حقونه په چا پورے وي. د هغے بنده صدقے خيراتونه الله تعالي نه قبلوي.

دويم مطلب ئے دا دے چه د قرضدار بنده داسے كارونه صحيح نَدي كه كوم قرضدار بنده چا ته څه اوبښي يا خيرات اوكړي يا مرئے آزاد كړي. نو اسلامي عدالت دے د هغه تصرّف رد كړي. او دغه مال دے قرضدارو ته د هغوي د حق برابر وركړي. او د هغه صدقه ځكه نه قبليږي چه هغه د بل چا حق بربادوي (حق تلفي) كوي د مذهب حنفي په حقله پدے مسئله كښ د فقهے كتابونو كښ كتل پكار دي.

۲. مطلب ئے دا دے چه كله بنده قرضدار وي. نو سخاوت چه د هر قسمه وي پكښ خير نشته. اول قرض ادا كول دي هغے نه پس صدقه' خيرات يا سخاوت كول دي د بعضے صورتونو د صدقے حكم د دے احكامو نه جُدا دي ابوبكر صديق رضي الله عنه يو ځل خپل ټول مال د رسول الله صلي الله عليه وسلم په خدمت كښ پيش كړو. ځكه چهٔ يوے غزا د پاره د ډير مال ضرورت وو د دے دا نتيجه ده كه يو بنده كښ كامل پوره صبر او اخلاص وي او د هغه دا عادت وي چه خپل حاجت روستو كوي د بل چا حاجت پوره كوي. نو كه هغه خپل ټول مال صدقه كښ وركړي نو د هغے بنده صدقه قبليږي ليكن د عامو حالاتو حكم مخكښ ذكر شويدے.

۳. كله چه د هجرت حكم اوشو او د مكے مسلمانانو مدينے منورے ته هجرت اوكړو نو د مدينے انصارو د هغوي سره ډيره لويه قرباني وركړه. په ډيرو موقعو انصارو رضي الله عنهم به خان اوږے ساتلو او مهاجرينو د رسول الله صلي الله عليه وسلم ميلمنو ته ئے به خوراك وركوۆ پخپله به اوږي وو هغوي به ئے ماړه ساتل. قرآن مجيد د انصارو رضي الله عنهم د دے كار تعريف كړے دے.

۴۴: حَدَّثَنَا عَبْدَانُ قَالَ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ عَنْ يُوْنُسَ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ اَخْبَرَنِيْ سَعِيْدُ بْنُ الْمُسَيَّبِ اَنَّهٗ سَمِعَ اَبَا هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّي اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَيْرُ الصَّدَقَةِ مَا كَانَ عَنْ ظَهْرِ غِنًي وَ اَبْدَأْ بِمَنْ تَعُوْلُ.

۴۴: عبدان. عبدالله. يونس. زهري. سعيد بن مسيب. حضرت ابوهريره رضي الله عنه ذ نبي صلے الله عليه وسلم نه روايت كوي' حضور صلي الله عليه وسلم او فرمائيل' صدقه هغه بهتره ده' چه د هغے ذ وركولو نه ورستو سړے مالدار پاتے شي' او ذ هغے خلقو نه ئے شروع كوه' چه ستا نگراني كښ وي.

۴۵: حَدَّثَنَا مُوْسَي بْنُ اِسْمٰعِيْلَ قَالَ حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ قَالَ حَدَّثَنَا هِشَامٌ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ حَكِيْمِ

۴۵: موسي بن اسمعيل. وهيب. هشام. عروه. حكيم بن حزام' د نبي صلے الله عليه وسلم نه روايت كوي' حضور صلي الله عليه وسلم او فرمائيل' ذ پاسه

بْنِ حِزَامٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الْيَدُ الْعُلْيَا خَيْرٌ مِّنَ الْيَدِ السُّفْلٰى وَابْدَأْ بِمَنْ تَعُوْلُ وَ خَيْرُ الصَّدَقَةِ مَا كَانَ عَنْ ظَهْرِ غِنًى وَّ مَنْ يَّسْتَعْفِفْ يُعِفَّهُ اللّٰهُ وَ مَنْ يَّسْتَغْنِ يُغْنِهِ اللّٰهُ وَ عَنْ وُّهَيْبٍ قَالَ حَدَّثَنَا هِشَامٌ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِهٰذَا.

لاس د لاندے لاس نه ډير ښۀ دے. او صدقه ذ هغې خلقو نه شروع کړه، چه ستا نګراني کښ وي، او بهتره صدقه هغه ده، چه هغه ورکړي او سړے مالدار پاتے شي. او څوک چه ذ سوال کولو نه بچ کيدل غواړي، نو اللّٰه هغه بچ کوي، او کوم سړے چه بے پروائي غواړي، نو اللّٰه هغه بے پروا کړي. او وهب په سند ذ هشام. عروه ابو هريره رضي اللّٰه عنه. ذ نبي صلي اللّٰه عليه وسلم نه دا روايت کړے دے.

۱۴۲۶: حَدَّثَنَا اَبُو النُّعْمَانِ قَالَ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ اَيُّوْبَ عَنْ نَّافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ح وَ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْلَمَةَ عَنْ مَّالِكٍ عَنْ نَّافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ وَهُوَ عَلَى الْمِنْبَرِ وَ ذَكَرَ الصَّدَقَةَ وَالتَّعَفُّفَ وَالْمَسْئَلَةَ الْيَدُ الْعُلْيَا خَيْرٌ مِّنَ الْيَدِ السُّفْلٰى فَالْيَدُ الْعُلْيَا هِيَ الْمُنْفِقَةُ وَالسُّفْلٰى هِيَ السَّائِلَةُ.

۱۴۲۶: ابو النعمان. حماد بن زيد. ايوب. نافع. ابن عمر رضي اللّٰه عنه نه روايت کوي. ابن عمر رضي اللّٰه عنه وائي، ما ذ نبي صلي اللّٰه عليه وسلم نه واوريدل (دويم سند) عبداللّٰه بن مسلمه مالک. نافع. عبداللّٰه ابن عمر رضي اللّٰه عنه نه روايت دے، نبي صلي اللّٰه عليه وسلم او فرمائيل، داسے حال کښ چه حضور صلي اللّٰه عليه وسلم په منبر وو، او ذ صدقے او سوال نه ذ بچ کيدو او د سوال کولو په حقله ئے او فرمائيل. د پاسه لاس د لاندے لاس نه زيات ښۀ دے. د پاسه لاس والا خرچ کونکے او د لاندے لاس والا غوښتونکے (سوالګرے) دے.

۱. د حديث شريف د دے حصے مطلب دا دے چه صدقه ورکولو کښ خير دے. په صدقه اخستلو کښ نشته. د صدقے ورکونکي لاس پورته وي د اخستونکي لاس ښکته وي. حديث شريف کښ دا (تعبير) د بيانولو طريقه خوښه کړے ده. د دے دا مطلب هم کيدے شي. که بنده ډير محتاج شي نو بيا دے هم سوالنه کوي. بل چا ته دے لاس نه اوږدوي. د صبر نه دے کار اخلي. "يَدِعُلْيَا" او چت لاس هغه دے چه د خپل حاجت ضرورت د پاره هم سوالنه کوي چا نه څه نه غواړي. او "يَدِسُفْلٰى" لاندے لاس هغه دے چه په سوال ګذران کوي. خير خيرات غوښتل ئے کاروبار وي. دا دواړه معنے اخستے شي.

## بَابُ ۲۷: اَلْمَنَّانِ بِمَا اَعْطٰى لِقَوْلِهٖ عَزَّ وَ جَلَّ اَلَّذِيْنَ يُنْفِقُوْنَ

## باب ۲۷: ذ هغے څيز د احسان څيژولو بيان، چه هغه ئے ورکۀ، ځکه چه اللّٰه تعالٰي فرمائيلي دي، کوم

اَمْـوَالَهُـمْ فِـيْ سَبِيْـلِ اللّٰـهِ ثُـمَّ لَا يُتْبِعُـوْنَ مَـآ اَنْـفَقُوْا مَنًّـا وَّلَا اَذًى الْاٰيَةَ.

خـلـق چـه خپـل مال دَ اللّٰه په لار کښ خرچ کوي، بيا پ خپـل خـرچ کـړے شـوے څيـز احسان نـهٔ خيژوي او نـ تکليف ورکوي. آخر آيت پورے.

٣. د دے سـرليک پـه حـقـلـه، امـام بـخـاري رحمة الله عليه ته حديث په لاس ورغلے ندے غالباً دے سرليک کښ هغے حديث شريف ته اشاره وي. کوم چه مسلم شريف کښ د ابوذر رضي الله عنه نه روايت دے "چه د قيامت په ورځ احسان زباتونکي سره به اللّٰه تعالىٰ خبرے نه کوي. چه هغه کله چا ته څه ورکوي نـو وربـانـدے احسـان خـيـژوي زبـاتـوي". دا حديث شريف مرفوع حديث دے مسلم شريف هم د صحيح حـديـث کـتـاب دے دا هـم کـيـدے شـي. چـه امـام بُـخـاري رحمة الله عليه ته د هغه د شرايطو مطابق حديث شريف په لاس ورغلے نه وي قرطبي رحمة الله عليه ليکلي دي. چه د احسان زباتلو سبب، بخيلي شومتيا او تکبّر وي. شوم بنده خپل لږ احسان هم ډير لوئے ګنړي. خان غټ ګنړي. د خپلے لوئي ډنډورے غږوي.

## بـاب ٢٨: مَـنْ اَحَـبَّ تَـعْجِيْلَ الصَّدَقَةِ مِنْ يَّوْمِهَا.

باب ٢٨ : دَ هـغـے سړي بيان چه صدقه ورکولو کښ تادي خوښوي.

٤٧: حَـدَّثَـنَـا اَبُوْ عَـاصِمٍ عَنْ عَمْرِو بْنِ سَعِيْدٍ عَنِ ابْنِ اَبِيْ مُلَيْكَةَ اَنَّ عُقْبَةَ بْـنَ الْحَـارِثِ حَدَّثَـهُ قَـالَ صَلَّى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلْعَصْـرَ فَاَسْرَعَ ثُمَّ دَخَلَ الْبَيْتَ فَلَمْ يَـلْبَثْ اَنْ خَـرَجَ فَـقُـلْتُ اَوْ قِيْلَ لَـهُ فَـقَـالَ كُـنْـتُ خَلَّفْتُ فِي الْبَيْتِ تِبْرًا مِّـنَ الصَّـدَقَةِ فَـكَـرِهْـتُ اَنْ اُبَيِّتَـهُ فَقَسَمْتُهُ.

٤٧: ابـو عـاصـم. عمرو بن سعيد ابن ابي مليکه. عقبه بن حارث بيان کوي، چه نبي صلے اللّٰه عليه وسلم دَ مـازيـګـر مونځ ورکړهٔ بيا زر روان شولو. کور کښ داخل شـولـو. او لږ ساعت پس بهرته راووتلو، نو ما يا بل چا دَ حضور صلي اللّٰه عليه وسلم نه تپوس او کړهٔ. حضور صلي الـلّٰـه عليه وسلم او فرمائيل، ما کور کښ دَ صدقے دَ مال نـه دَ سـرو زرو يوه ټکړه پريښے ده. ما دا خوښه نهٔ کړه، چه دَ هغے په موجودګي کښ شپه تيره کړم. په دے وجه ما هغه تقسيم کړله.

## بـاب ٢٩: التَّـحْـرِيْـضِ عَلَـى الصَّدَقَةِ وَالشَّفَاعَةِ فِيْهَا.

باب ٢٩ : دَ صدقے دَ رغبت ورکولو او دَ هغے دَ سفارش کولو بيان.

٤٨: حَـدَّثَـنَـا مُسْـلِـمٌ قَـالَ حَـدَّثَـنَـا الشُّعْبَةُ قَـالَ حَدَّثَنَا عَـدِيٌّ عَـنْ سَعِيْـدِ بْـنِ جُبَيْـرٍ عَـنِ ابْـنِ عَبَّـاسٍ قَـالَ خَـرَجَ النَّبِـيُّ

٤٨: مسـلـم. شعبـه. عـدي. سعيد بن جبير. ابن عبـاس رضـي اللّٰه عنه نه روايت دے، دَ هغهٔ بيان دے، نبي صـلـے الـلّٰـه عـلـيه وسلم دَ اختر پـه ورځ اُووتلو او دوه رکـعـاته داسے مونځ ئے اوکړلو، چه نهٔ دَ هغے نه مخکښ

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ عِيْدٍ فَصَلّٰى رَكْعَتَيْنِ لَمْ يُصَلِّ قَبْلُ وَلَا بَعْدُ ثُمَّ مَالَ عَلَى النِّسَآءِ وَ بِلَالٌ مَّعَهُ فَوَعَظَهُنَّ وَ اَمَرَهُنَّ اَنْ يَّتَصَدَّقْنَ فَجَعَلَتِ الْمَرْاَةُ تُلْقِى الْقُلْبَ وَالْخُرْصَ.

او نهٔ ذ هغې نه ورستو ئې دغسې مونځ او کړلو. بيا حضور صلي الله عليه وسلم ښځو طرف ته متوجه شو. او بلال رضي الله عنه حضور صلي الله عليه وسلم سره وو. حضور صلي الله عليه وسلم ښځو ته نصيحت او کهٔ' او هغوي ته ئې حکم او کهٔ' چه خيرات او کړي' او ښځو خپل خپل بنګړي او والئ را غُرځول شروع کړل.

۴۹: حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ اِسْمٰعِيْلَ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ قَالَ حَدَّثَنَا اَبُوْ بُرْدَةَ بْنُ اَبِىْ مُوْسٰى عَنْ اَبِيْهِ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا جَآءَهُ السَّائِلُ اَوْ طُلِعَتْ اِلَيْهِ حَاجَةٌ قَالَ اشْفَعُوْا تُوْجَرُوْا وَ يَقْضِى اللّٰهُ عَلٰى لِسَانِ نَبِيِّهٖ مَا شَآءَ.

۴۹: موسٰي بن اسمٰعيل. عبدالواحد. ابو برده بن عبدالله بن ابي برده. ابي برده بن ابي موسٰي (اشعري رضي الله عنه) نه روايت کوي' رسول الله صلي الله عليه وسلم له چه به يو سوالګرے راغے يا حضور ته به څهٔ حاجت پيش کولے شو' نو حضور صلي الله عليه وسلم به مونږ ته فرمائيل' سفارش کوئې' تاسو به هم اجر بيا مومئ' او الله تعالٰي دَ خپل نبي صلي الله عليه وسلم په ژبه څهٔ چه غواړي حکم ورکوي.

۱. مطلب ئې دا دے چه کله به چا څه حاجت' ضرورت د رسول الله صلي الله عليه وسلم په خدمت کښې پيش کوو نو هغهٔ به خپل صحابهٔ کرامو رضي الله عنهم ته فرمايل "چه تاسو هم څه سفارش کوئ. او څه وايئي چه تاسو ته په سفارش ثواب درکړے شي اګرچه دا ضروري نده. چه ستاسو په سفارش به فيصله کيږي څه چه د الله تعالٰي خوښه وي هغه فيصله به زهٔ کوم. او تاسو ته به ستاسو د سفارش ثواب درکړے شي. دے کښې د صدقے ترغيب دے چه څومره مناسب وي او شريعت ئې اجمت ورکوي. نو صدقه ورکوئي. او خپل ټول مال صدقه کښې مه ورکوئي بلکے د خپل خان او بال بچ د چاره څه پريخودل پکار دي. بعضے صحابهٔ کرامو لکه ابوبکر رضي الله عنه په يوه خاص موقعه خپل ټول مال ورکړے وو د هغے حکم د خاص حالاتو دے. د شريعت د عامو اصولو نه جُدا حکم لري.

۵۰: حَدَّثَنَا صَدَقَةُ ابْنُ الْفَضْلِ قَالَ اَخْبَرَنَا عَبْدَةُ عَنْ هِشَامٍ عَنْ فَاطِمَةَ عَنْ اَسْمَآءَ قَالَتْ قَالَ لِىَ النَّبِىُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تُوْكِىْ فَيُوْكٰى عَلَيْكِ.

۵۰: صدقه بن فضل. عبده. هشام. فاطمه (بنت منذر) اسماء نه روايت کوي' هغے اووے' ما ته نبي صلي الله عليه وسلم او فرمائيل' خيرات مه بندوه' کني تا نه به هم بند کړے شي.

۱۵ : حَدَّثَنَا عُثْمَانُ ابْنُ اَبِيْ شَيْبَةَ عَنْ عَبْدَةَ وَ قَالَ لَا تُحْصِيْ فَيُحْصِي اللّٰهُ عَلَيْكَ.

۱۵ : عثمان بن ابي شيبه. عبده نه روايت کوي تاسو شميرل مهٔ کوئے کني الله به هم تاسو له په شمېر درکوي.

بَابُ ۳۰: الصَّدَقَةِ فِيْمَا اسْتَطَاعَ.

باب ۳۰: څو پورے چه کيدے شي دَ خيران کولو بيان.

۵۲ : حَدَّثَنَا اَبُوْ عَاصِمٍ عَنِ بْنِ جُرَيْجٍ ح وَ حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحِيْمِ عَنْ حُجَاجِ بْنِ مُحَمَّدٍ عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ ابْنُ اَبِيْ مُلَيْكَةَ عَنْ عَبَّادِ ابْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ الزُّبَيْرِ اَخْبَرَهُ عَنْ اَسْمَآءَ بِنْتِ اَبِيْ بَكْرٍ اَنَّهَا جَآءَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ لَا تُوْعِيْ فَيُوْعِيَ اللّٰهُ عَلَيْكِ اِرْضَخِيْ مَا اسْتَطَعْتِ.

۵۲ : ابو عاصم. ابن جريج. محمد بن عبدالرحيم. حجاج بن محمد. ابن جريج. ابن ابي مليکه. عباد بن عبدالله بن زبير. اسماء بنت ابوبکر رضي الله عنها روايت کوي. دَ هغې بيان دے، چه هغه نبي صلي الله عليه وسلم له راغله، نو حضور صلي الله عليه وسلم او فرمائيل چه (روپئ پيسه) تهيلئ بند مهٔ ساته، کني الله به ئے هم بندے کړي، او څو پورے چه کيدے شي، خيرات کوه.

بَابُ ۳۱: اَلصَّدَقَةُ تُكَفِّرُ الْخَطِيْئَةَ.

باب ۳۱: صدقه دَ ګناهونو کفاره ده.

۵۳ : حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ قَالَ حَدَّثَنَا جَرِيْرٌ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ اَبِيْ وَآئِلٍ عَنْ حُذَيْفَةَ قَالَ قَالَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ اَيُّكُمْ يَحْفَظُ حَدِيْثَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْفِتْنَةِ قَالَ كُنْتُ اَحْفَظُهُ كَمَا قَالَ قَالَ اِنَّكَ عَلَيْهِ

۵۳ : قُتَيبه. جرير. اعمش. ابو وائل. حذيفه بيان کوي. عمر بن خطاب او فرمائيل تاسو کښې چا ته دَ رسول الله صلي الله عليه وسلم نه دَ فتنے متعلق حديث ياد دے. ما اووے، ما ته ياد دے، څنګه چه حضور صلي الله عليه وسلم فرمائيلے دي. عمر بن خطاب رضي الله عنه اووے، ته به دے زيات زړوَر ئے، نو او وايه، حضور صلي الله عليه وسلم څهٔ فرمائيلے دي، ما اُووے، حضور صلي الله عليه وسلم فرمائيلے دي. انسان دَ پاره خپلے ښځے، بچي او کورنۍ کښې يوه فتنه ده. مونځ، صدقه او

لَجَرِيٌّ فَكَيْفَ قَالَ قُلْتُ فِتْنَةُ الرَّجُلِ فِيْ اَهْلِهٖ وَ وَلَدِهٖ وَ جَارِهٖ تُكَفِّرُهَا الصَّلٰوةُ وَالصَّدَقَةُ وَالْمَعْرُوْفُ قَالَ سُلَيْمَانُ قَدْ كَانَ يَقُوْلُ الصَّلٰوةُ وَالصَّدَقَةُ وَالْاَمْرُ بِالْمَعْرُوْفِ وَالنَّهْيُ عَنِ الْمُنْكَرِ قَالَ لَيْسَ هٰذِهٖ اُرِيْدُ وَلٰكِنِّيْ اُرِيْدُ الَّتِيْ تَمُوْجُ كَمَوْجِ الْبَحْرِ قَالَ قُلْتُ لَيْسَ عَلَيْكَ مِنْهَا يَا اَمِيْرَ الْمُؤْمِنِيْنَ بَأْسٌ بَيْنَهَا وَ بَيْنَكَ بَابٌ مُّغْلَقٌ قَالَ فَيُكْسَرُ الْبَابُ اَمْ يُفْتَحُ قَالَ قُلْتُ لَا بَلْ يُكْسَرُ قَالَ فَاِنَّهٗ اِذَا كُسِرَ فَلَمْ يُغْلَقْ اَبَدًا قَالَ قُلْتُ اَجَلْ فَهِبْنَا اَنْ نَّسْاَلَهٗ مَنِ الْبَابُ فَقُلْنَا لِمَسْرُوْقٍ سَلْهُ قَالَ فَسَاَلَهٗ فَقَالَ عُمَرُ قَالَ فَقُلْنَا فَعَلِمَ عُمَرُ مَنْ تَعْنِيْ قَالَ نَعَمْ كَمَا اَنَّ دُوْنَ غَدٍ لَيْلَةً وَ ذٰلِكَ اَنِّيْ حَدَّثْتُهٗ حَدِيْثًا لَيْسَ بِالْاَغَالِيْطِ.

بنـهٔ خبـره هـغه ذ پاره كفاره ده. او سليمان اووے كله به ئے داسے ونيلے، چه مونځ، صدقه او ذ ښو خبرو حكم وركول او ذ بـدو خبـرو نـه منع كول (ذ دے كفاره ده). عـمـر رضـي الـلّـه عنه او فرمائيل. څما مقصد دا نهٔ دے، څـمـا مـقـصـد خو هغه فتنه ده، چه ذ سمندر ذ موجونو په شـان بـه مـوج وهـي. حـذيفـه وائي، مـا اووے، اے امير الـمـؤمـنـيـنَ، تـاسو ته ذ دے نه هيڅ خطره نشته، ځكه چه ستاسـو او ذ دے فتنـے مـينـځ كـښ يوه بنده دروازه ده. عـمـر رضـي اللّٰه عنه تپوس او كړ، آيا هغه بنده دروازه به مـاتـه كړے شي يا پرانستے شي. ما جواب وركړ، نه بلكه ماته به كړے شي، هغهٔ اووے، كله چه هغه ماته كړے شي، نـو بيـا بـه هيڅ كله بنده نشي. ما جواب وركړ. او (هيڅ كله به بنده نشي) ذ ابو وائل بيان دے، مونږ ذ دے خبرے نـه اويريدو، چه ذ حذيفه نه تپوس او كړو، چه دروازے نه مـراد څـوك دے، نو مونږ مسروق ته اووے، ذ حذيفه نه تپـوس او كـړه، هغهٔ ذ حذيفه نه تپوس او كړ، نو هغهٔ اووے، هغه عمر رضي اللّٰه عنه (دے) مونږ اووے، آيا عمر رضي الـلّـه عـنه ته معلومه ده، چه څوك ترے مراد اخلي. هغهٔ اووے، او، (دا يقين سره پيژني) څنگه چه ذ هر راتلونكے ورځ نـه پـس ذ شپے ذ راتـلـو يقين وي، او دا ځكه چه كوم حـديـث مـا بيـان كـړے دے. دے كـښ غلطي نشته.

## بَابُ ۳۲: مَنْ تَصَدَّقَ فِي الشِّرْكِ ثُمَّ اَسْلَمَ.

## باب ۳۲: ذ هغے سړي بيان، چه هغهٔ ذ شرك حالت كښ صدقه وركړه. بيا مسلمان شو.

۵۴: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ قَالَ حَدَّثَنَا هِشَامٌ قَالَ اَخْبَرَنَا

۵۴: عبـداللّٰـه بـن مـحـمـد. هشـام. مـعـمـر. زهـري. عـروه بـن حكيـم بـن حزام بيـان

مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عُرْوَةَ بْنِ حَكِيمِ بْنِ حِزَامٍ قَالَ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَرَاَيْتَ شَيْئًا كُنْتُ اَتَحَنَّثُ بِهَا فِي الْجَاهِلِيَّةِ مِنْ صَدَقَةٍ اَوْ عِتَاقَةٍ وَصِلَةِ رَحِمٍ فَهَلْ فِيهَا مِنْ اَجْرٍ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَسْلَمْتَ عَلٰى مَا سَلَفَ مِنْ خَيْرٍ.

کوي، ما عرض اوکهٔ، یا رسول الله، دَ هغې څیزونو متعلق هم ماته اوښایې، چه ما دَ جاهلیت زمانه کښې کول. مثلاً صدقه. غلام آزادول، صله رحمي، نو آیا په دې به هم ماته آجر راکولې شي. په دې خبره نبي صلی الله علیه وسلم او فرمائیل، دَ خپلو دغه نیکو په وجه خو تهٔ مسلمان شولې.

۱. دا حدیث شریف " كِتَابُ الْإِيْمَان " کښې تیر شویدې د کافرانو د عبادت هیڅ اعتبار نشته. هغه د عذاب سبب جوړیدې شي. په هغې باندې د ثواب طمعه کول عبث کار دې لیکن د کُفَارو د ښو اخلاقو د خپلولې پاللو، د رورولئ د ښه سلوک اعتبار شته. په دې هم نجات یا خلاصې نشته لیکن عذاب به پرې سپک شي. دې حدیث شریف کښې هم د داسې کارونو بیان دې د رسول الله صلي الله علیه وسلم د جواب مطلب دا دې چه تاسو په تېرلو خپلو ښه عادتونو ښه خویونو سره اسلام کښې داخل شوې یئې او تاسو چه کوم نیک کارونه کړیدي. د هغې ثواب به درکولې شي.

بَابٌ ۳۳: اَجْرِ الْخَادِمِ اِذَا تَصَدَّقَ بِاَمْرِ صَاحِبِهٖ غَيْرَ مُفْسِدٍ.

باب ۳۳: دَ خادم دَ اجر بیان، هر کله چه هغه دَ خپل مالک په حکم خیرات اوکړي، په شرط د دې چه دَ کور دَ ورانولو نیت ئې نهٔ وي.

۵۵: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ قَالَ حَدَّثَنَا جَرِيْرٌ عَنْ اَبِيْ وَائِلٍ عَنْ مَسْرُوْقٍ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا تَصَدَّقَتِ الْمَرْاَةُ مِنْ طَعَامِ زَوْجِهَا غَيْرَ مُفْسِدَةٍ كَانَ لَهَا اَجْرُهَا وَ لِزَوْجِهَا بِمَا كَسَبَ وَ لِلْخَازِنِ مِثْلُ ذٰلِكَ.

۵۵: قتیبه بن سعید. جریر. اعمش. ابو وائل. مسروق. بي بي عائشې رضي الله عنه نه روایت کوي، نبي صلې الله علیه وسلم او فرمائیل هر کله چه ښځه دَ خپل خاوند دَ خوراک نه خیرات اوکړي، په شرط دَ دې چه دَ کور دَ خرابولو نیت ئې نهٔ وي نو هغې ته به د دې صدقې په سبب او دَ هغې خاوند ته دَ هغهٔ د کمائي په سبب اجر حاصلیږي او خزانچي ته به هم دغه هومره آجر حاصلیږي.

۱. د حدیث شریف دا مطلب نهٔ دې. چه ټولو ته به برابر، برابر ثواب ورکیږي. لیکن د ټولو ثواب به یو قسم وي لکه د یو بنده مال تا سره دې هغه تا ته د مال د کومې برخې د خیرات کولو حکم درکړي. او تهٔ د هغه وینا برابر د هغه مال خیرات کړې، د مال د مالک حیثیت بنیادي دې د خیرات په سلسله کښې

خزانچي شريک دے که هغه خزانچي خپل فرض په اخلاص پوره کړي. نو هغه ته به د اخلاص ثواب ورکيږي. او صدقه ورکونکے به ګڼړلے شي په دے کښې هغه ټول خلق راتللے شي چا چه په خپل' خپل حيثيت سره صدقه ورکولو کښې برخه اخستلے وي هر بنده ته به د هغه د اخلاص ثواب ورکيږي. او برخه اخستونکے هر يو بنده به صدقه ورکونکے ګڼړلے شي. چه هغه د هر حيثيت وي. دلته د دے خبرے هم خيال ساتل پکار دي چه ښځه د خاوند مال او د هغه د کور هر څيز بغير اجازته خرڅولے شي. ليکن خزانچي يا امانت ګر بغير اجازته مال خرڅولے نشي.

۵۶: حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَآءِ قَالَ حَدَّثَنَا اَبُوْ اُسَامَةَ عَنْ بُرَيْدِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ عَنْ اَبِيْ بُرْدَةَ عَنْ اَبِيْ مُوْسٰى عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الْخَازِنُ الْمُسْلِمُ الْاَمِيْنُ الَّذِيْ يُنْفِذُ وَ رُبَّمَا قَالَ يُعْطِيْ مَآ اُمِرَ بِهٖ كَامِلًا مُوَفَّرًا بِهٖ نَفْسُهٗ طَيِّبًا بِهٖ نَفْسُهٗ فَيَدْفَعُهٗ اِلَى الَّذِيْ اُمِرَ لَهٗ بِهٖ اَحَدُ الْمُتَصَدِّقِيْنَ.

۵۶: محمد بن علاء. ابو اسامه. بريد بن عبدالله. ابو برده. ابو موسیٰ. نبي صلی الله عليه وسلم نه روايت کوي. حضور صلي الله عليه وسلم او فرمائيل مسلمان خزانچي چه آمانتدار وي' او ذَ خپل مالک حکم نافذ کړي' او بعضے ځل دائے هم او فرمائيل چه څومره هغهٔ ته حکم ورکړے شي' هغه پوره کړي' او ذَ هغهٔ نه ذَ هغهٔ زړهٔ خوشحاله شي' او ذَ څهٔ ذَ پاره چه هغهٔ ته حکم ورکړے شوے وي' هغه ورکړي' نو هغه هم ذَ صدقه کونکو خلقو نه يو دے.

بَابُ ۳۴: اَجْرِ الْمَرْاَةِ اِذَا تَصَدَّقَتْ اَوْ اَطْعَمَتْ مِنْ بَيْتِ زَوْجِهَا غَيْرَ مُفْسِدَةٍ.

باب ۳۴: ذَ هغے ښځے ذَ آجر بيان. چه هغے ذَ خپل خاوند ذَ کورنه په چا ډوډي او خوروله' يا صدقه ئے ورکړله' په شرط ذَ دے چه ذَ کور ذَ تباهي نيت ئے نه وي.

۵۷: حَدَّثَنَا اٰدَمُ قَالَ اَخْبَرَنَا شُعْبَةُ قَالَ حَدَّثَنَا مَنْصُوْرٌ وَّالْاَعْمَشُ عَنْ اَبِيْ وَآئِلٍ عَنْ مَّسْرُوْقٍ عَنْ عَآئِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَعْنِيْ اِذَا تَصَدَّقَتِ الْمَرْاَةُ مِنْ بَيْتِ زَوْجِهَا ح وَ حَدَّثَنِيْ عمرو بْنِ حَفْصٍ قَالَ حَدَّثَنَا اَبِيْ قَالَ حَدَّثَنَا الْاَعْمَشُ عَنْ شَقِيْقٍ عَنْ مَّسْرُوْقٍ عَنْ عَآئِشَةَ قَالَتْ قَالَ

۵۷: آدم. شعبه. منصور او اعمش ابو وائل. مسروق. بي بي عائشه رضي الله عنه ذَ نبي صلی الله عليه وسلم نه روايت کوي' هر کله چه يوه ښځه ذَ خپل خاوند ذَ کور نه خرچ او کړي. ح (دويم سند) عمرو بن حفص. حفص بن غياث. اعمش. شقيق. مسروق. بي بي عائشے رضي الله عنه نه روايت کوي' نبي صلي الله عليه وسلم او فرمائيل' هر کله چه يوه ښځه ذَ خپل خاوند ذَ کور نه خرچ او کړي' په شرط ذَ دے چه ذَ کور ذَ تباه کولو نيت ئے نه وي' نو هغے ښځے ته به ذَ هغے

النَّبِیَّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ اِذَا اَطْعَمَتِ الْمَرْاَةُ مِنْ بَیْتِ زَوْجِهَا غَیْرَ مُفْسِدَةٍ لَهَا اَجْرُهَا وَلَهُ مِثْلُهُ وَ لِلْخَازِنِ مِثْلُ ذٰلِكَ لَهُ بِمَا اكْتَسَبَ وَلَهَا بِمَا اَنْفَقَتْ.

آجـر حـاصلیږي او هغـې سـړي تـه بـه هم هغومره آجـر ورکیـږي. او خـزانـچي تـه بـه هـم هغـومره آجـر ورکیـږي. خاوند ذ پاره په دې سبب چه هغه ګټه (کـمـائي) اوکړله، او ښځې ذ پاره په دې سبب چه هغې خرچ اُوکۀ.

۵۸: حَدَّثَنَا یَحْیَی بْنُ یَحْیٰی قَالَ حَدَّثَنَا جَرِیْرٌ عَنْ مَّنْصُوْرٍ عَنْ شَقِیْقٍ عَنْ مَّسْرُوْقٍ عَنْ عَآئِشَةَ عَنِ النَّبِیِّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِذَا اَنْفَقَتِ الْمَرْاَةُ مِنْ طَعَامِ بَیْتِهَا غَیْرَ مُفْسِدَةٍ فَلَهَا اَجْرُهَا وَ لِلزَّوْجِ بِمَا اكْتَسَبَ وَ لِلْخَازِنِ مِثْلُ ذٰلِكَ.

۵۸: یـحیٰي بن یحیٰي. جریر شقیق. مسروق. بي بـي عـائشـه رضـي اللّٰه عنه. نبي صلے اللّٰه علیه وسلم نه روایـت کـوي، هـر کله چه ښځه ذ خپل خاوند ذ طعام نه خیـرات کړي په شرط ذ دې چه ذ کور ذ تباه کولو نیت ئـې نـۀ وي، نـو هغـې ښـځې ته به ذ هغې ثواب رسي. او خـاونـد ته په دې وجه چه هغۀ ګټه اوکړه، او خزانچي ته به هم دومره آجر ورکیږي.

## بـاب ۳۵: قَوْلِ اللّٰهِ عَزَّ وَ جَلَّ فَاَمَّا مَنْ اَعْطٰی وَاتَّقٰی وَ صَدَّقَ بِالْحُسْنٰی فَسَنُیَسِّرُهٗ لِلْیُسْرٰی وَ اَمَّا مَنْ بَخِلَ وَاسْتَغْنٰی الْاٰیَةَ اَللّٰهُمَّ اَعْطِ مُنْفِقَ مَالٍ خَلَفًا.

## باب ۳۵: ذ اللّٰـه تعالٰي قول، چـه چا ورکړه

اوکـړل، ذ اللّٰـه نـه او یـریـدۀ، او ذ ښـو خبرو تصدیق ئې اوکـړلـو، نـو مـونـږ بـه هغه ذ آساني ذ ځائے ذ پاره آسان کړو، او چا چه بُخل اوکۀ، او بے پروائي ئې اوکړله، آخر آیـت پـورې، او ذ فـریښتو ویـنا چـه اے اللّٰـه مال خرچ کونکو له ذ هغې بدل ورکړې.

۵۹: حَدَّثَنَا اِسْمٰعِیْلُ قَالَ حَدَّثَنِیْ اَخِیْ عَنْ سُلَیْمَانَ عَنْ مُّعَاوِیَةَ ابْنِ اَبِیْ مُزَرِّدٍ عَنْ اَبِی الْحُبَابِ عَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ اَنَّ النَّبِیَّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَا مِنْ یَوْمٍ یُّصْبِحُ الْعِبَادُ فِیْهِ اِلَّا مَلَکَانِ یَنْزِلَانِ فَیَقُوْلُ اَحَدُهُمَا اَللّٰهُمَّ اَعْطِ مُنْفِقًا خَلَفًا وَ یَقُوْلُ الْاٰخِرُ اَللّٰهُمَّ اَعْطِ

۵۹: اسـمـعیـل، بـرادر اسـمـعیـل (ابـوبـکر بـن ابـي اویـس) سلیمـان. معـاویـه بن ابـي مـزرد. ابـو هـریـره رضـي اللّٰـه عـنـه نـه روایـت کـوي، نبـي صـلـي اللّٰـه علیـه وسلـم او فـرمـائیـل، پـه بـنـدیـانـو هیـڅ صبـا نـۀ راځي، خـو هغـې کـښې دوه فـریښتـې نازلیږي. هغې کـښې یـوه وائـي، چـه اے اللّٰـه، خـرچ کـونکي لـه ذ هغې بدلـه ورکړې، او دویـمـه فـریښتـه وائـي. اے اللّٰـه، بخل کونکې تباه

مُمْسِكًا تَلَفًا. كړے.

## بـاب ۳۶: مَثَلُ الْمُتَصَدِّقِ وَالْبَخِيلِ. باب ۳۶: ذ صدقه ورکونکي او بخيل مثال.

۱. چه د کوم بنده دا عادت وي چه هغه خير خيرات کوي. د هغه زړه لويے وي د بخيل مثال داسے دے لکه يو بنده د اوسپنے زغره واغوندي او هغه ئے سينے پورے کلکه اونخلي او هغه پکښ خپل لاسونه او نور بدن نشي پټولے نو هغه زغره ئے څه پکار نه رازي. او حفاظت ئے نه کيږي. د سخي مثال داسے دے چه د هغه زغره فراخه وي. لاسونه او ټول بدن پکښ د سر نه پښو پورے پټ او محفوظ وي. او د دنيا او د آخرت د دښمنانو نه په امن وي. عيبونه ئے پټ وي. د بدن عيبونه او اخلاقي عيبونه ئے ټول پټ وي. څکه چه هغه کله خير خيرات کوي زړه ئے لويے وي. په اخلاص په ښه نيت صدقه ورکوي. نو د سخاوت او صدقے ډيره لويه فائده ده. چه د هغه ډير عيبونو باندے پرده اچولے شي.

پاتے شو بخيل، هغه خير خيرات نه کوي. څرنګ چه زغره اغوندي نو د هغے ټولے کړئ يو بل پورے راغونډے شي. سينه پورے ئے اونخلي لاسونه او ټول بدن ئے ښکاره وي. زغره ئے د دښمن نه حفاظت نشي کولے که په بدن کښ ئے څه عيب وي هغه ښکاره وي پټيدے نشي. هغه رسوا کيږي. که بخيل خير خيرات کول او غواړي. نو زغره ئے سينے پورے نښتے وي. نيت کښ اخلاص نه وي. نو لاسونه ئے نه ازاديږي هره يوه کړئ ئے سينه پورے کلکے نښتے وي. د دے مثالونو نه معلوميږي چه سخاوت لويه نيکي ده او شومتيا لويه بدي ده.

۲۰ : حَدَّثَنَا مُوسٰى قَالَ حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ قَالَ حَدَّثَنَا ابْنُ طَاوُسٍ عَنْ اَبِيهِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَثَلُ الْبَخِيلِ وَالْمُتَصَدِّقِ كَمَثَلِ رَجُلَيْنِ عَلَيْهِمَا جُبَّتَانِ مِنْ حَدِيْدٍ ح وَ حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ قَالَ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ قَالَ اَخْبَرَنَا اَبُو الزِّنَادِ اَنَّ عَبْدَ الرَّحْمٰنِ حَدَّثَهُ اَنَّهُ سَمِعَ اَبَا هُرَيْرَةَ اَنَّهُ سَمِعَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ مَثَلُ الْبَخِيلِ وَالْمُنْفِقِ كَمَثَلِ رَجُلَيْنِ عَلَيْهِمَا جُبَّتَانِ مِنْ حَدِيْدٍ مِنْ

۲۰ : موسٰي. وهيب. عبدالله ابن طاوس. طاوس. حضرت ابو هريره رضي الله عنه نه روايت کوي نبي صلے الله عليه وسلم او فرمائيل، ذ بخيل او صدقه ورکونکي مثال ذ هغے دوو سړو پشان دے، چه د اوسپنے دوه کرتے ئے اغوستے وي. ح (دويم سند) ابو اليمان شعيب. ابو الزناد. عبدالرحمٰن. حضرت ابو هريره رضي الله عنه روايت کوي، هغه د رسول الله صلے الله عليه وسلم نه واوريدل، ذ بخيل او خرچ کونکي مثال ذ هغے دوو سړو په شان دے، چه ذ اوسپنے دوه قميصونه ئے ذ سينو نه اوږو يا ګريوي پورے اغوستے وي. کوم سړے چه خرچ کونکے دے، ذ هغه خرچ کولو سره هغه قميص خوريږي

فَلَبَّيۡهِمَا اِلٰى تَرَاقِيۡهِمَا فَاَمَّا الۡمُنۡفِقُ فَلَا يُنۡفِقُ اِلَّا سَبَغَتۡ اَوۡ وَفَرَتۡ عَلٰى جِلۡدِهٖ حَتّٰى تُخۡفِيَ بَنَانَهٗ وَ تَعۡفُوَا اَثَرَهٗ وَ اَمَّا الۡبَخِيۡلُ فَلَا يُرِيۡدُ اَنۡ يُّنۡفِقَ شَيۡئًا اِلَّا لَزِقَتۡ كُلُّ حَلۡقَةٍ مَكَانَهَا فَهُوَ يُوَسِّعُهَا فَلَا تَتَّسِعُ تَابَعَهُ الۡحَسَنُ بۡنُ مُسۡلِمٍ عَنۡ طَاوٗسٍ فِي الۡجُبَّتَيۡنِ وَ قَالَ حَنۡظَلَةُ عَنۡ طَاوٗسٍ جُبَّتَانِ وَ قَالَ اللَّيۡثُ حَدَّثَنِيۡ جَعۡفَرٌ عَنِ ابۡنِ هُرۡمُزَ قَالَ سَمِعۡتُ اَبَا هُرَيۡرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ جُبَّتَانِ.

يا' ذ هغه به ټول جسم خور شي' تر دې چه ذ هغه ګوتې هم پټې شي' او ذ هغه ذ قدم نښې ورکې شي او بخيل چه کله اراده کوي' چه څۀ خرچ کړي' نو ذ هغه قميص (يا زغرې) هره حلقه په خپل ځائې اونخلي. هغه ئې کشاده کوي' خو هغه نۀ کُشاده کيږي. حسن بن مسلم ذ طاوس نه جُبتين (دوه قميصونه) الفاظ ذ دې متابع حديث روايت کړې دې. او حنظله ذ طاوس نه جُبّتان (دوه زغرې) بيان کړي دي. او ذ ليث بيان دې چه ما ته جعفر په سند ذ هرمز. حضرت ابو هريره رضي اللّٰه عنه ذ نبي صلي اللّٰه عليه وسلم نه ذ جُبّتَان لفظ روايت کړې دې.

## بَاب ۳۷: صَدَقَةِ الۡكَسۡبِ وَالتِّجَارَةِ لِقَوۡلِ اللّٰهِ تَعَالٰى يٰۤاَيُّهَا الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡۤا اَنۡفِقُوۡا مِنۡ طَيِّبٰتِ مَا كَسَبۡتُمۡ وَ مِمَّاۤ اَخۡرَجۡنَا لَكُمۡ مِّنَ الۡاَرۡضِ اِلٰى قَوۡلِهٖ غَنِيٌّ حَمِيۡدٌ.

## باب ۳۷: ذ ګټې (کمائي) او ذ تجارت ذ صدقې بيان.

خکه چه اللّٰه تعالي فرمائيلي دي اې ذ ايمان خاوندانو' ذ پاکيزه څيزونو نه خرڅ کوئې' چه تاسو ګټلي وي' او ذ هغې څيزونو نه چه مونږ ستاسو ذ پاره' ذ زمکې نه پيدا کړې دي. آخر آيت غني حميد پورې.

## بَاب ۳۸: عَلٰى كُلِّ مُسۡلِمٍ صَدَقَةٌ فَمَنۡ لَّمۡ يَجِدۡ فَلۡيَعۡمَلۡ بِالۡمَعۡرُوۡفِ

## باب ۳۸: په هر مسلمان صدقه واجب ده' او چا سره چه مال نۀ ري' هغه دې په ښو خبرو عمل کوي (يعني نيکه خبره هم صدقه ده)

۶۱: حَدَّثَنَا مُسۡلِمُ بۡنُ اِبۡرَاهِيۡمَ قَالَ حَدَّثَنَا شُعۡبَةُ قَالَ حَدَّثَنَا سَعِيۡدُ بۡنُ اَبِيۡ بُرۡدَةَ عَنۡ اَبِيۡهِ عَنۡ جَدِّهٖ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ قَالَ عَلٰى كُلِّ مُسۡلِمٍ صَدَقَةٌ فَقَالُوۡا يَا نَبِيَّ اللّٰهِ فَمَنۡ

۶۱: مسلم بن ابراهيم. شعبه. سعيد بن ابي برده' هغه ذ خپل پلار نه او هغه ذ هغه ذ نيکه نه او هغۀ ذ نبي صلي اللّٰه عليه وسلم نه روايت کوي' حضور صلي اللّٰه عليه وسلم او فرمائيل' هر مسلمان باندې صدقه واجب ده خلقو عرض اوکۀ' يا رسول اللّٰه' چا سره چه مال نۀ وي' حضور صلي اللّٰه عليه وسلم او فرمائيل. خپل لاس سره دې کار کوي' خپله دې هم نفع اوچتوي

لَمْ يَجِدْ فَقَالَ يَعْمَلُ بِيَدِهٖ فَيَنْفَعُ نَفْسَهٗ وَ يَتَصَدَّقُ قَالُوْا فَإِنْ لَّمْ يَجِدْ قَالَ يُعِيْنُ ذَا الْحَاجَةِ الْمَلْهُوْفِ قَالُوْا فَإِنْ لَّمْ يَجِدْ قَالَ فَلْيَعْمَلْ بِالْمَعْرُوْفِ وَلْيُمْسِكْ عَنِ الشَّرِّ فَإِنَّهَا لَهٗ صَدَقَةٌ.

او خيرات دې كوي خلقو اووې ' كه دا هم هغه نشي كولې ' نو حضورﷺ او فرمائيل. ذ حاجتمند مظلوم امداد دې كوي. خلقو اووې كه ذ دې ئې هم طاقت نه وي ' نو حضور صلي الله عليه وسلم او فرمائيل ' په ښو خبرو دې عمل كوي ' او ذ بدو نه دې بچ اوسي. هغهٔ ذ پاره دا صدقه ده.

۱. انسان له خپل ژوند داسې تيرول پكار دي. چه ښومره كيدې شي د هغه نه نورو خلقو ته فائده اورسي. د خان د پاره چه كوم ښه كار كوي. د هغې فائده هغه ته هم اورسيږي او نور مخلوق ته ترې هم په واسطه يا بغير د واسطې نفعه ' فائده اورسي. مطلب ئې داشو. چه ښه كار كول ' نيكي كول دا د انسانيت خدمت دې او كه كوم بنده داسې وي. چه خلقو ته خير ښيګړه نشي رسولې نو كم از كم د بدو كارونو ' بدو چارو نه دې خان لرې اوساتي نو دا هم د هغه د پاره صدقه ده.

.دې حديث شريف كښې د اسلام اهمه قاعده (اصول) بيان شويده چه اسلام دا غواړي چه د انسان ژوند دې د بقا د خوشالئ ' د نيكي او د پاكوالي نظاره وي. اسلام د خلقو سره د جنګ جګړې او د شرّ فساد نه خلق منعه كوي. اسلام د كفر ټولې د شر فساد تيرې نه خوښوي. اسلام دا غواړي چه يو مسلمان دې د بل مسلمان د خپل وَس طاقت برابر مدت كوي. او كه د چا مدت نشي كولې نو پخپله دې سم اوسيږي. د بدو خبرو د بدو كارونو نه دې خان ساتي نو دا ئې هم صدقه ده.

## بَابُ ۳۹: قَدْرُكَمْ يُعْطٰى مِنَ الزَّكٰوةِ وَالصَّدَقَةِ وَ مَنْ أَعْطٰى شَاةً.

باب ۳۹: زكوٰة او صدقه كښې ښومره وركول پكار دي او ذ هغې سړي بيان چه هغهٔ يوه چيلئ صدقه كښې وركړه.

۶۲: حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُوْنُسَ قَالَ حَدَّثَنَا أَبُوْ شِهَابٍ عَنْ خَالِدِ نِ الْحَذَّاءِ عَنْ حَفْصَةَ بِنْتِ سِيْرِيْنَ عَنْ أُمِّ عَطِيَّةَ أَنَّهَا قَالَتْ بُعِثَ إِلٰى نُسَيْبَةَ الْأَنْصَارِيَّةِ بِشَاةٍ وَّ أَرْسَلَتْ إِلٰى عَائِشَةَ مِنْهَا فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عِنْدَكُمْ شَيْئًا فَقَالَتْ لَا إِلَّا مَا أَرْسَلَتْ بِهٖ نُسَيْبَةُ مِنْ

۶۲: احمد بن يونس. ابو شهاب. حفصه بنت سيرين. اُم عطيه نه روايت كوي. ذ هغې بيان دې چه نسيبه انصاريه ته يوه چيلئ اوليږلې شوه. ذ هغې نه څهٔ غوښه بي بي عائشې له اوليږلې شوه. نبي صلي اللّٰه عليه وسلم ورته او فرمائيل تاسره څهٔ شته ' هغې اووې ' هيڅ نشته ' سوا ذ هغې غوښې نه چه نسيبه ذ هغه چيلئ نه راليږلې ده. حضور صلي اللّٰه عليه

ذٰلِكَ الشَّاةِ فَقَالَ هَاتِ فَقَدْ بَلَغَتْ مَحِلَّهَا.

وسلم او فرمائيل، راوړه، ځکه چه خيرات خپل ځائے ته اورسيدلو.

۱. نُسيبه رضي الله عنها ته چه كومه چيلئ په صدقه كښ وركړے شوه. نو د هغے غوښه ئے حضرت عائشے رضي الله عنها ته ليږلے وه. او رسول الله صلي الله عليه وسلم هغه غوښه خوړلے وه. رسول الله صلي الله عليه وسلم به صدقه نه قبلوله نه خوړله. ليكن صدقه چه كله محتاج، غريب له وركړے شي هغه د هغے غريب ملكيت شي. ددے وجے نه د حضرت نُسيبه رضي الله عنها ليګلے شوے غوښه صدقه پاتے نشوه اصل حيثيت د صدقے ئے بدل شو نو حضرت عائشے رضي الله عنها او رسول الله صلي الله عليه وسلم ته د هغے غوښے خوړل روا شو. د دے حديث شريف نه دا معلومه شوه. چه د ملكيت بدليدلو سره د څيز اصل حيثيت بدليږي. كه څوک چا غريب او حاجتمند ته صدقه وركړي. نو هغه صدقه چه كله د اصل مالک د ملكيت نه اووتله د غريب ملكيت شو. نو اوس د هغے حيثيت د صدقے پاتے نشو بلكے د عام څيزونو پشان، كه هغه غريب او غواړي نو خرڅولے شي. او كه چرے داسے ميلمه وي چه هغه له صدقه اخستل/ خوړل ناروا وي هغه له ئے هغه غريب وركولے شي او ور باندے خوړلے هم شي. ځكه چه د صدقے مطلب دا وو چه د هغه غريب حاجت پوره شي. نو څرنګ ئے چه غريب مناسب او ګڼړي هغه ئے استعمالولے شي.

## باب ۴۰: زكٰوةِ الْوَرِقِ.

## باب ۴۰: دَ چاندي (سپينو زرو) دَ زكٰوة بيان.

۶۳: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ قَالَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ عَمْرِو بْنِ يَحْيَى الْمَازِنِيِّ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ سَمِعْتُ اَبَا سَعِيْدِ نِ الْخُدْرِيَّ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيْسَ فِيْمَا دُوْنَ خَمْسِ ذَوْدٍ صَدَقَةٌ مِّنَ الْاِبِلِ وَ لَيْسَ فِيْمَا دُوْنَ خَمْسِ اَوَاقٍ صَدَقَةٌ وَّلَيْسَ فِيْمَا دُوْنَ خَمْسَةِ اَوْسُقٍ صَدَقَةٌ.

۶۳: عبدالله بن يوسف. مالک عمرو بن يحيي مازني. يحيي مازني. حضرت ابو سعيد خدري رضي الله عنه نه روايت كوي، رسول الله صلي الله عليه وسلم او فرمائيل. پنځه اوبنانو نه كم كښ زكٰوة نشته او پنځه اوقيه سپين زرو نه كم كښ زكٰوة نشته. او پنځه وسق (غله يا قجورو) نه كم كښ زكٰوة نشته.

۲. يو اوقيه د اوه مثقالو برابر وي. او مثقال يو نيم درهم وي. د احنافو په نزد د سپينو زرو نصاب څلويښت تولے دے د دينه كم سپينو زرو كښ زكات نشته څلويښت تولے نصاب د ډيرو شرعي دلائلو په وجه مقرر شوے دے.

۳. وسق شپيته صاعه دے صاع يوه پيمانه ده چه هغے كښ كچه درے نيم سيره غله رازي. (سير = اتيا تولے) پنځه وسقو كښ زكات فرض كيدل يا نه فرض كيدل د دے تفصيل وړاندے رازي.

۶۴ : حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنّٰى قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ قَالَ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيْدٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عَمْرُوْ وَ سَمِعَ اَبَاهُ عَنْ اَبِيْ سَعِيْدٍ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِهٰذَا.

۶۴ : محمد بن مثنٰي. عبدالوهاب يحيٰي بن سعيد. عمرو ذ خپل پلار نه هغه ذ حضرت ابو سعيد خدري رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي' چه ما ذ نبي صلى اللّٰه عليه وسلم نه دا حديث آوريدلے دے.

## باب ۴۱: اَلْعَرْضِ فِي الزَّكٰوةِ

وَ قَالَ طَاوٗسٌ قَالَ مَعَاذٌ لِاَهْلِ الْيَمَنِ ائْتُوْنِيْ بِعَرْضٍ ثِيَابٍ خَمِيْصٍ اَوْ لَبِيْسٍ فِي الصَّدَقَةِ مَكَانَ الشَّعِيْرِ وَالذُّرَّةِ اَهْوَنُ عَلَيْكُمْ وَ خَيْرٌ لِاَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْمَدِيْنَةِ وَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَمَّا خَالِدٌ فَقَدِ احْتَبَسَ اَدْرُعَهُ وَ اَعْتَدَهُ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَصَدَّقْنَ وَلَوْ مِنْ حُلِيِّكُنَّ فَلَمْ يَسْتَثْنِ صَدَقَةَ الْعَرْضِ مِنْ غَيْرِهَا فَجَعَلَتِ الْمَرْاَةُ تُلْقِيْ خُرْصَهَا وَ سِخَابَهَا وَ لَمْ يَخُصَّ الذَّهَبَ وَالْفِضَّةَ مِنَ الْعُرُوْضِ.

## باب ۴۱: زكٰوة كښې ذ اسباب اخستو بيان

او ذ طاؤس بيان دے. معاذ' يمن والو ته اووے چه ما ته ذ وربشو او مكئي په ځائے سامان يعني څادر يا لباس راؤړئ. دا به ستاسو ذ پاره آسانه وي. او مدينه كښې به ذ نبي صلى اللّٰه عليه وسلم ذ صحابه ؤ ذ پاره هم بهتره وي. او نبي صلى اللّٰه عليه وسلم او فرمائيل' چه خالد خو خپلے زغرے او وسلے ذ خدائے په لار كښې بندے كړي دي. او نبي صلي اللّٰه عليه وسلم او فرمائيل' صدقه وركړئ' اګر كه ستاسو كالي (زيور) ولے نه وي. حضور صلي اللّٰه عليه وسلم ذ سامان ذ صدقے استثناء او نه فرمائيله. نو ښځو خپلے خپلے والئ او خپل خپل هارونه را غُرخول' او سامان كښې ئے ذ سرو' سپينو' تخصيص نه دے فرمائيلے.

۱. دے باب كښې امام بخاري رحمة اللّٰه عليه دا ښودل غواړي. چه زكات په يو مال كښې واجب شوے وي د هغے مال نه د زكات وركولو په ځائے د فرض شوي زكات قيمت وركړي يا بل څيز وركړي. نو په دے كښے څه ګناه نشته. زكات ادا شو. د احنافو هم دا مسلک دے په دے سلسله كښې امام بخاري رحمة اللّٰه عليه آثار (د صحابه ؤ تابعينو اقوال) نقل كړيدي. د بعضو د زكات سره تعلق هم نشته ليكن دے به دلائلو كښې فراخي مني. پدے وجه ئے د زكات ډيرے مسئلے په داسے برابر مسائلو قياس كړيدي چه د هغے د زكات سره څۀ تعلق نشته.

۶۵: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبِيْ قَالَ حَدَّثَنِيْ ثُمَامَةُ اَنَّ اَنَسًا حَدَّثَهُ اَنَّ اَبَا بَكْرٍ كَتَبَ لَهُ الَّتِيْ اَمَرَ اللّٰهُ وَ رَسُوْلُهُ وَ مَنْ بَلَغَتْ صَدَقَتُه بِنْتَ مَخَاضٍ وَّ لَيْسَتْ عِنْدَهٗ وَ عِنْدَهٗ بِنْتُ لَبُوْنٍ فَاِنَّهَا تُقْبَلُ مِنْهُ وَ يُعْطِيْهِ الْمُصَدِّقُ عِشْرِيْنَ دِرْهَمًا اَوْ شَاتَيْنِ فَاِنْ لَّمْ يَكُنْ عِنْدَهٗ بِنْتُ مَخَاضٍ عَلٰى وَجْهِهَا وَ عِنْدَهٗ ابْنُ لَبُوْنٍ فَاِنَّهٗ يُقْبَلُ مِنْهُ وَ لَيْسَ مَعَهٗ شَيْءٌ.

۶۵: محمد بن عبدالله. عبدالله (بن مثنى) ثمامه نه د حضرت انس بيان دے، حضرت ابوبكر رضي الله عنه هغهٔ ته يو خط اوليكه، د څهٔ چه الله او د هغهٔ رسول امر كړے دے (هغے كښې دا هم وو) په كوم سړي چه بنت مخاض (د يو كال اوښه) واجب وي، نو هغه به د هغهٔ نه آخستے شي او زكوة وصولونكے به هغهٔ ته شل درهمه يا دوه چيلئے وركوي. او كه هغهٔ سره د دے قيمت بنت مخاض نهٔ وي، بلكه ابن لبون وي، نو هغه به د هغهٔ نه آخستے شي، او د هغے بدله كښې به هيڅ نشي وركيدے.

۱. د الله تعالي او د هغه د رسول الله صلي الله عليه وسلم د حكم مطابق د حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه دا فرمان دے چه زكات كښې بِنْتُ مَخَاض وركول واجب شوے وي (بِنْتِ مخاض = دير كال د اوښ بچے) او هغه سره بِنْتُ لَبون (دوه كلنه اوښه) وي نو دابه ترے قبلولے شي او زكات اخستونكے افسر به ورله شل دِرهمه يا دوه چيلئ وركړي. او چا باندے چه زكات واجب شوے دے او هغه سره يو كله اوښه نه وي او هغه سره دوه كلن اوښ وي نو هغه به ترے قبلولے شي او هيڅ څيز به وركولے نشي.

۶۶: حَدَّثَنَا مُؤَمَّلٌ قَالَ حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ عَنْ اَيُّوْبَ عَنْ عَطَاءِ ابْنِ اَبِيْ رَبَاحٍ قَالَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ اَشْهَدُ عَلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَصَلّٰى قَبْلَ الْخُطْبَةِ فَرَاٰى اَنَّهٗ لَمْ يُسْمِعِ النِّسَآءَ فَاَتَاهُنَّ وَ مَعَهُ بِلَالٌ نَاشِرَ ثَوْبِهٖ فَوَعَظَهُنَّ اَنْ يَّتَصَدَّقْنَ فَجَعَلَتِ الْمَرْاَةُ تُلْقِيْ وَ اَشَارَ اَيُّوْبُ اِلٰى اُذُنِهٖ وَ اِلٰى حَلْقِهٖ.

۶۶: مؤمل. اسمٰعيل. ايوب. عطاء بن ابي رباح نه روايت كوي. د ابن عباس بيان دے زهٔ د رَسُولُ الله صلے الله عليه وسلم متعلق گواهي وركوم چه حضور صلي الله عليه سلم ته خيال شو، چه زنانهٔ ته آواز نهٔ رسي، نو حضور صلي الله عليه وسلم هغے زنانهٔ ته راغے، او حكم ئے وركهٔ، چه صدقه وركړي، نو زنانهٔ دا خيزونه راغرخول شروع كړل ايوب خپلو غوږونو او حلق طرف ته اشاره اوكړله، (يعني والئ او هارونه وغيره).

## بَاب ۴۲: لَا يُجْمَعُ بَيْنَ مُتَفَرِّقٍ وَّلَا يُفَرَّقُ بَيْنَ مُجْتَمِعٍ وَّ

## باب ۴۲: كډوډ مال دے نهٔ يو ځائے كوي او نهٔ يو ځائے مال دے كډوډ كوي.

يُذْكَرُ عَنْ سَالِمٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِثْلَهُ.

او په سند د سالم. ابن عمر رضي اللّٰه عنه د نبي صلي اللّٰه عليه وسلم نه د دې په مثل نقل دې.

۱. د جمهور علماؤ په نزد د څارور په يو ځائې ساتلو او جُدا جُدا ځايونو كښې ساتلو سره، د ملكيت د خيال نه بغير، په زكات اخستلو باندې اثر پريوزي. د حديث شريف د دې حصّې نه هغوي دا مطلب اخستې دې "كه چرې څاروي جُدا جُدا ځايونو يا د څريدو جُدا جُدا ځايونو كښې وي. نو هغه څاروي به د زكات اخستلو يا د زكات وركولو په وخت يو ځايې كولې نشي او كه څاروي په يو ځائې كښې وي نو هغه به جُدا جُدا ځايونو او جدا جدا د څريدو ميدانونو كښې به تقسيمولې نشي. ليكن د امام ابو حنيفه رحمة الله عليه په نزد د ځائې، او د څريدو د پټي په جداوالي او په څو ځايه كولو څه فرق نه رازي بلكې د هغه په نزد يواځې د وطن، د حكومت په جداوالي او د زكات په كنړو څيزونو باندې په زكات اثر پريوزي د دې تفصيل د فقهې په كتابونو كښې دې.

۶۷: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ الْاَنْصَارِيُّ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبِيْ قَالَ حَدَّثَنِيْ ثُمَامَةُ اَنَّ اَنَسًا حَدَّثَهُ اَنَّ اَبَا بَكْرٍ كَتَبَ لَهُ الَّتِيْ فَرَضَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَا يُجْمَعُ بَيْنَ مُتَفَرِّقٍ وَّلَا يُفَرِّقُ بَيْنَ مُجْتَمِعٍ خَشْيَةَ الصَّدَقَةِ.

۶۷: محمد بن عبداللّٰه انصاري. عبداللّٰه انصاري. ثمامه نه روايت كوي. حضرت انس، ثمامه ته بيان او كۀ، چه حضرت ابوبكر رضي الله عنه هغۀ ته هغه څيز اوليكۀ، چه رسول الله صلى الله عليه وسلم مقرر كړې وو. منجمله دَ هغې نه يو دا وو، چه دَ زكوٰة دَ ويرې نه دې نه كلهوَډ مال يو ځائې كوي، او نه يو ځائې مال دې كلهوَډ كوي (جدا كوي).

## بَابُ ۴۳: مَا كَانَ مِنَ الْخَلِيْطَيْنِ فَاِنَّهُمَا يَتَرَاجَعَانِ بَيْنَهُمَا بِالسَّوِيَّةِ وَ قَالَ طَاوُسٌ وَّ عَطَاءٌ اِذَا عَلِمَ الْخَلِيْطَانِ اَمْوَالَهُمَا فَلَا يُجْمَعُ مَا لَهُمَا قَالَ سُفْيَانُ لَا تَجِبُ حَتّٰى يَتِمَّ لِهٰذَا اَرْبَعُوْنَ شَاةً وَّ لِهٰذَا اَرْبَعُوْنَ شَاةً.

## باب ۴۳: كه يَو مال كښې دوه كسان شريك

وي، نو دواړه دې (زكٰوة وركولو سره) هغې كښې برابر او كنړي طاؤس او عطاء اُووې، هر كله چه دواړه خپل مال اوښائي، نو دَ هغې دواړو مال دې يو ځائې كولې نشي. سفيان اووې. زكٰوةَ نۀ واجب كيږي. څو پورې چه دواړو شريكانو سره څلويښت څلويښت چيلئې پوره نشي.

۲. يعني دوه كسان چه تجارت يا څه كاروبار كښې شريك وي. نو چه كله د زكات اخستونكې افسر راشي نو هغه به د دې انتظار نه كوي. چه دا شريك خپل تقسيم (اويشي) كړي. او بيا جُدا، جُدا زكات واخلي. بلكې په ټول مال چه كوم زكات واجب وي. هغه به ترې واخلي بيا دا د شريكانو كار دې

چه هغوي حساب او کړي. او د واجب زکات حصے تقسیم کړي.

د غونډ يو خائے مال جدا کولو. او خوررور جُدا جُدا مال يو خائے کولو په باب کښې چه کوم اختلاف دے هغه دلته هم شته دے د بخاري په روايت کښې د طاؤس او عطاء رحمة الله عليهما قول د امام ابو حنيفه رحمة الله عليه د مسلک دليل دے او د سفيان رحمة الله عليه د قول مطلب د دواړو د بيان سره مطابق دے طحاوي رحمة الله عليه د سفيان رحمة الله عليه مسلک د امام ابو حنيفه رحمة الله عليه د مسلک موافق ليکلے دے. د دے وجے نه د دے عبارت مطلب د امام ابو حنيفه رحمة الله عليه د مسلک مطابق بيانيږي.

٦٨: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبِيْ قَالَ حَدَّثَنِيْ ثُمَامَةُ اَنَّ اَنَسًا حَدَّثَهُ اَنَّ اَبَا بَكْرٍ كَتَبَ لَهُ الَّتِيْ فَرَضَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَا كَانَ مِنْ خَلِيْطَيْنِ فَاِنَّهُمَا يَتَرَاجَعَانِ بَيْنَهُمَا بِالسَّوِيَّةِ.

٦٨: محمد بن عبدالله. عبدالله. ثمامه ته حضرت انس بيان اوکړ' چه هغۀ ته حضرت ابوبکر رضي الله عنه هغه څيز ليکلے واستولو' کوم چه رسول الله صلے الله عليه وسلم فرض کړے وو. هغے کښې دا هم وو چه کوم مال ذ دوو شريکانو وي هغه دواړه دے ذ زکٰوة ذ ادائيگي نه پس خپلو کښې برابر برابر او ګنړي.

باب ٤٤: زَكٰوةِ الْاِبِلِ ذَكَرَهُ اَبُوْ بَكْرٍ وَّ اَبُوْ ذَرٍّ اَبُوْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

باب ٤٤: ذ اوبښ ذ زکٰوة بيان. دا ابوبکر رضي الله عنه ابو ذر رضي الله عنه او ابو هريره رضي الله عنه ذ نبي صلي الله عليه وسلم نه روايت کړے دے.

٦٩: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنِي الْوَلِيْدُ بْنُ مُسْلِمٍ قَالَ حَدَّثَنَا الْاَوْزَاعِيُّ قَالَ حَدَّثَنِي بْنُ شِهَابٌ عَنْ عَطَآءِ بْنِ يَزِيْدَ عَنْ اَبِيْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ اَنَّ اَعْرَابِيًّا سَاَلَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْهِجْرَةِ فَقَالَ وَيُحَكَ اِنَّ شَاْنَهَا شَدِيْدٌ فَهَلْ لَّكَ مِنْ اِبِلٍ تُؤَدِّيْ صَدَقَتَهَا قَالَ نَعَمْ قَالَ فَاعْمَلْ مِنْ وَّرَآءِ الْبِحَارِ فَاِنَّ اللّٰهَ لَنْ يَّتِرَكَ مِنْ عَمَلِكَ شَيْئًا.

٦٩: علي بن عبدالله. وليد بن مسلم. اوزاعي. ابن شهاب. عطاء بن يزيد. حضرت ابو سعيد خدري رضي الله عنه نه روايت کوي' چه يو اعرابي ذ رسول الله صلے الله عليه وسلم نه ذ هجرت متعلق تپوس اُوکړ نو حضور صلي الله عليه وسلم او فرمائيل' تاله دے بده وي' د هجرت معامله مشکله ده' آيا تا سره اُوبنان شته' چه ته ذ هغے زکٰوة ادا کړے. هغۀ اووے. او. حضور صلي الله عليه وسلم ورته او فرمائيل. ذ سمندرونو په هغے غاړه عمل کوه' الله تعالي به ستا د عمل نه هيڅ هم کم نه کړي.

## بـــاب ۴۵: مَـــنْ بَـلَـغَـتْ عِنْدَهٗ صَدَقَةُ بِنْتِ مَخَاضٍ وَّ لَيْسَتْ عِنْدَهٗ.

۷۰: حَـدَّثَـنَـا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ الْاَنْصَارِيُّ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبِيْ قَالَ حَـدَّثَـنِيْ ثُمَامَةُ اَنَّ اَنَسًا حَدَّثَهٗ اَنَّ اَبَا بَـكْـرٍ كَتَبَ لَـهٗ فَرِيْضَةَ الصَّدَقَةِ الَّتِيْ اَمَرَ اللّٰـهُ رَسُـوْلَـهٗ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَـلَّـمَ مَـنْ بَـلَغَتْ عِنْدَهٗ مِنَ الْاِبِلِ صَـدَقَـةُ الْجَذَعَةِ وَ لَيْسَتْ عِنْدَهٗ جَذَعَةٌ وَّ عِـنْـدَهٗ حِقَّةٌ فَاِنَّهَا تُقْبَلُ مِنْهُ الْحِقَّةُ وَ يَجْعَلُ مَعَهَا شَاتَيْنِ اِنِ اسْتَيْسَرَ قَالَهٗ اَوْ عِشْرِيْـنَ دِرْهَـمًـا وَ مَـنْ بَلَغَتْ عِنْدَهٗ صَـدَقَـةُ الْحِقَّةِ وَ لَيْسَتْ عِنْدَهُ الْحِقَّةُ وَ عِـنْـدَهُ الْجَـذَعَـةُ فَـاِنَّـهَـا تُـقْبَلُ مِنْـهُ الْجَـذَعَـةُ وَ يُـعْـطِيْهِ الْمُصَدِّقُ عِشْرِيْنَ دِرْهَـمًـا او شَـاتَيْنِ وَ مَنْ بَلَغَتْ عِنْدَهٗ صَـدَقَـةُ الْحِقَّةِ وَ لَيْسَتْ عِنْدَهٗ اِلَّا بِنْتُ لَبُـوْنٍ فَـاِنَّـهَـا تُـقْبَلُ مِنْهُ بِنْتُ لَبُوْنٍ وَّ يُـعْـطِيْ شَـاتَيْـنِ اَوْ عِشْرِيْنَ دِرْهَمًا وَّ مَـنْ بَـلَـغَـتْ صَـدَقَـتُـهٗ بِنْتَ لَبُوْنٍ وَّ عِـنْـدَهٗ حِـقَّـةٌ فَـاِنَّـهَـا تُـقْبَلُ مِنْهُ الْحِقَّةُ وَ يُـعْـطِيْـهِ الْـمُـصَدِّقُ عِشْرِيْنَ دِرْهَمًا اَوْ شَـاتَيْـنِ وَ مَـنْ بَـلَـغَـتْ صَدَقَتُـهٗ بِـنْـتَ لَبُـوْنٍ وَ لَيْسَـتْ عِـنْـدَهٗ وَ عِـنْـدَهٗ بِـنْـتُ مَـخَـاضٍ فَـاِنَّـهَـا تُقْبَلُ

## باب ۴۵: ذ هغـه سـړي بيـان چـه پـه هغهٔ بنت مـخـاض (دَ يو كال اوښه) واجب وي او هغه، هغهٔ سره نهٔ وي.

۷۰: مـحـمـد بـن عبـداللّٰـه انـصـاري. عبداللّٰه انـصـاري. ثـمامه ته حضرت انس بيان او كهٔ چه حضرت ابـوبـكـر رضـي الـلّٰـه عـنـه هغهٔ ته هغه فرض زكٰوة ليكلے واسـتـولـو، چه هغے كښ اللّٰه تعالٰي خپل رسول صلي اللّٰه عليـه وسـلـم تـه حـكـم وركړے وو چه په كوم سړي په زكٰـــوة كـښ جذعه (دَ پنځو كالو اوښه) واجب وي، او هـغـهٔ سـره جذعه نهٔ وي بلكه حِقّه (دَ څلورو كالو اوښه) وي، نـو دَ هـغـهٔ نـه بـه حقه آخستلے شي، او دَ هغه نه دوه چيـلـئ كه هغهٔ سره موجود وي، كني شل درهمه به ترے آخسـتـے شـي او پـه كـوم سـړي چـه زكٰوة كښ حِقّه (دَ څـلـورو كـالـو اوښه) واجب وي. ليكن هغهٔ سره حِقّه نهٔ وي. بـلكه جذعه (دَ پنځو كالو اوښه) وي، نو دَ هغهٔ نه به جـذبـه آخستلے شي، او زكٰوة اخستونكے به هغهٔ ته شل درهـمـه يـا دوه چيلئ وركوي. او په چا چه زكٰوة كښ حِقّـه واجـب وي ليـكـن هغهٔ سره حِقّه نهٔ وي. بلكه بنت لـبـون وي، نـو دَ هغهٔ نه به بنت لبون آخستلے شي. او دوه چيـلـے يا شل درهمه به وركوي. او په چا چه زكٰوة كښ بـنـت لبون واجب وي، او هغهٔ سره حِقّه وي، نو هغهٔ نه به حِقّه آخستـلـے شي. او زكٰوة وصولونكے به هغهٔ ته شل درهـمـه يا دوه چيلئ وركوي، او په كوم سړي چه زكٰوة كـښ بـنـت لـبـون واجـب وي. او هغهٔ سره بنت لبون (دَ دوو كـالـو اوښـه) نـهٔ وي، بـلـكه بنت مخاض (دَ يو كال اوښـه) وي، نـو دَ هـغـهٔ بـه بنت مخاض (دَ يو كال اوښه)

مِنْهُ بِنْتُ مَخَاضٍ وَّ يُعْطِيْ مَعَهَا عِشْرِيْنَ دِرْهَمًا او شَاتَيْنِ. آخستے شي او دے سره به زکوٰة ورکونکے شل درهمه یا دوه چیلئے ورکوي.

۱. جذعه د څلورو کالو اوښه چه پنځم کال ئے روان وي حِقّه د درے کالو اوښه چه څلورم کال ئے روان وي.

۲. بنتِ لَبُون. د دوو کالو اوښه چه دریم کال ئے روان وي. بنتِ مَخاض، د یو کال اوښه چه دویم کال ئے شروع وي. دا تفصیلات د زکات دي. ټول تفصیل خو د فقهے په کتابونو کښ دے امام بخاري رحمة الله علیه دا ښودل غواړي. چه د اوښانو په زکات کښ چه د مختلف عمر اوښے ورکول واجبیږي. که چرے چاسره د هغے عمر اوښه نه وي. چه کوم زکات کښ ورکول فرض دي. نو هغه د کم یا د زیات عمر اوښه ورکولے شي. د کمي په صورت کښ به زکات اخستونکي ته روپئ یا څه څیز ورکوي او د زیاتي په صورت کښ، زکات اخستونکے روپئ یا څه څیز ورکوي. د فقهے په کتابونو کښ دي. چه پنځویشت اوښانو کښ بنتِ مخاض (د یو کال اوښه) شپږ دیرشو کښ بنتِ لَبُون (د دوو کالو اوښه) په شپږ څلویختو اوښانو کښ حِقّه (د درے کالو اوښه) او په شپیتو اوښانو کښ جَذْعه (د څلورو کالو اوښه) ورکول دي. راتلونکي حدیث شریف کښ د دے تفصیل را روان دے.

## بَاب ۴۶: زَكٰوةِ الْغَنَمِ.

## باب ۴۶: دَ چیلو دَ زکوٰة بیان.

۱۷: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ الْمُثَنّٰى الْاَنْصَارِيُّ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبِيْ قَالَ حَدَّثَنِيْ ثُمَامَةُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَنَسٍ اَنَّ اَنَسًا حَدَّثَهُ اَنَّ اَبَا بَكْرٍ كَتَبَ لَهُ هٰذَا الْكِتَابَ لَمَّا وَجَّهَهُ اِلَى الْبَحْرَيْنِ.

۱۷: محمد بن عبدالله بن مثني انصاري. عبدالله بن مثني. ثمامه بن عبدالله بن انس ته حضرت انس رضي الله عنه بیان اوکه، چه حضرت ابوبکر رضي الله عنه کوم وخت هغه یمن طرف ته لیږلو، نو څهٔ چه ئے لیکلے ورکړل، دَ هغے مضمون دا وو:

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

بسم الله الرحمٰن الرَّحيم

هٰذِهٖ فَرِيْضَةُ الصَّدَقَةِ الَّتِيْ فَرَضَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى الْمُسْلِمِيْنَ وَالَّتِيْ اَمَرَ اللّٰهُ بِهٖ رَسُوْلَهٗ فَمَنْ سُئِلَهَا مِنَ الْمُسْلِمِيْنَ عَلٰى وَجْهِهَا فَلْيُعْطِهَا وَ مَنْ سُئِلَ فَوْقَهَا فَلَا يُعْطِ فِيْ اَرْبَعٍ وَ عِشْرِيْنَ مِنَ الْاِبِلِ فَمَا دُوْنَهَا مِنَ الْغَنَمِ مِنْ كُلِّ

دا فرض صدقه (زکٰوة) دے، چه رسول الله صلے الله علیه وسلم په مسلمانانو فرض کړے دے، او دَ هغے الله تعالي خپل رسول ته حکم ورکړے دے. دَ کوم مسلمان نه چه دَ دے مطابق طلب کړے شي، هغه دے ورکړي. او دَ چا نه چه دَ دے نه زیات او غوښتلے شي، هغه دے نهٔ ورکوي. څلویشت اوښانو او دَ دے نه کم په هر پنځه اوښانو دے یوه چیلئے ورکوي او کله چه دَ پنځویشتو نه

خَمْسٍ شَاةٌ فَاِذَا بَلَغَتْ خَمْسًا وَّ عِشْرِيْنَ اِلٰى خَمْسٍ وَ ثَلٰثِيْنَ فَفِيْهَا بِنْتُ مَخَاضٍ اُنْثٰى فَاِذَا بَلَغَتْ سِتَّةً وَّ ثَلٰثِيْنَ اِلٰى خَمْسٍ وَّ اَرْبَعِيْنَ فَفِيْهَا بِنْتُ لَبُوْنٍ اُنْثٰى فَاِذَا بَلَغَتْ سِتًّا وَّ اَرْبَعِيْنَ اِلٰى سِتِّيْنَ فَفِيْهَا حِقَّةٌ طَرُوْقَةُ الْجَمَلِ فَاِذَا بَلَغَتْ وَاحِدَةً وَّ سِتِّيْنَ اِلٰى خَمْسِيْنَ وَ سَبْعِيْنَ فَفِيْهَا جَذَعَةٌ فَاِذَا بَلَغَتْ يَعْنِي سِتَّةً وَّ سَبْعِيْنَ اِلٰى تِسْعِيْنَ فَفِيْهَا بِنْتَا لَبُوْنٍ فَاِذَا بَلَغَتْ اِحْدٰى وَ تِسْعِيْنَ اِلٰى عِشْرِيْنَ وَ مِائَةٍ فَفِيْهَا حِقَّتَانِ طَرُوْقَتَا الْجَمَلِ فَاِذَا زَادَتْ عَلٰى عِشْرِيْنَ وَ مِائَةٍ فَفِيْ كُلِّ اَرْبَعِيْنَ بِنْتَ لَبُوْنٍ وَّ فِيْ كُلِّ خَمْسِيْنَ حِقَّةٌ وَّ مَنْ لَّمْ يَكُنْ مَّعَهٗ اِلَّا اَرْبَعٌ مِنَ الْاِبِلِ فَلَيْسَ فِيْهَا صَدَقَةٌ اِلَّا اَنْ يَّشَآءَ رَبُّهَا فَاِذَا بَلَغَتْ خَمْسًا مِنَ الْاِبِلِ فَفِيْهَا شَاةٌ وَّ فِيْ صَدَقَةِ الْغَنَمِ فِيْ سَآئِمَتِهَا اِذَا كَانَتْ اَرْبَعِيْنَ اِلٰى عِشْرِيْنَ وَ مِائَةٍ شَاةٌ فَاِذَا زَادَتْ عَلٰى عِشْرِيْنَ وَ مِائَةٍ اِلٰى مِائَتَيْنِ شَاتَانِ فَاِذَا زَادَتْ عَلٰى ثَلٰثِ مِائَةٍ فَفِيْ كُلِّ مِائَةٍ شَاةٌ فَاِذَا كَانَتْ سَآئِمَةُ الرَّجُلِ نَاقِصَةً مِّنْ اَرْبَعِيْنَ شَاةً وَّاحِدَةً فَلَيْسَ فِيْهَا صَدَقَةٌ اِلَّا اَنْ يَّشَآءَ رَبُّهَا وَ فِي الرِّقَةِ رُبُعُ الْعُشْرِ فَاِنْ لَّمْ تَكُنْ اِلَّا

پنځه دیرشو ته اورسي، نو هغې نه دې یوه ماده بنت مخاض (دَ یو کال اوښه) ورکړي. او شپږ دیرش نه پنځه څلویښت پورې دې یوه ماده بنت لبون (دَ دوو کالو اوښه) ورکړي. او هر کله چه شپږ څلویښت وي، نو شپیتو پورې یوه حِقّه (دَ څلورو کالو اوښه) چه دَ جفتي (تیریدو) قابله وي، ور دې کړي. دَ یو شپیته نه اویا پورې یو جذعه (دَ پنځو کالو اوښه) ورکړي او دَ شپږ اویا نه نوې پورې دوه بنت لبون. دَ اکیانوې نه شپږ شلو پورې دوه حِقّه دَ جفتي قابلې دې ورکړي او هر کله چه دَ شپږ شلو نه زیات وي، نو هر څلویښت کښې یو بنت لبون او هر پنځوس کښې دې یوه حِقّه ورکړي. او چا سره چه صرف څلور اوښان وي، نو په هغې زکٰوة نشته، خو دا که دَ هغې مالک ورکول غواړي، نو آخستې شي ترې. او هر کله چه پنځه اوښان وي، نو یوه چیلنې پرې واجب ده. او دَ څریدونکو چیلو په زکٰوة کښې څلویښتو نه شپږ شلو پورې کښې یوه چیلنې واجب ده. او که دَ شپږ شلو نه زیاتې وي، نو دوو سوو پورې کښې دوه چیلنې. دَ دوو سوو نه درې سوو پورې کښې درې چیلنې. او هر کله چه دَ دریو سوو نه زیاتې شي. نو په هر سل به یوه چیلنې ورکوي. او که دَ یو سړي څریدونکې چیلنې څلویښتو کښې یوه هم کمه وي، نو په هغې زکٰوة واجب نهٔ دې، خو دا که مالک ئې ورکول غواړي. او چاندي کښې څلویښتمه حصه زکٰوة فرض دې، که یو سړي سره یو

تِسْعِيْنَ وَ مِائَةً وَّ لَيْسَ فِيْهَا شَيْءٌ اِلَّا اَنْ يَّشَآءَ رَبُّهَا. سل نوي درهم وي، نو په هغهٔ هيڅ زكوة نشته، خو دا كه مالک ئے وركول غواړي.

۱. دے خانے پورے د ټولو امامانو رحمة الله عليهم اتفاق دے چه د اوښانو شمير شپږ شلو نه اورسيږي نو حقه واجبيږي. ليكن كه شپږ شلونه شمير د اوښانو زيات شي. نو بيا د احنافو په نزد د زكات به داسے طريقه وي چه بيا به دسره د اوښانو شمير شروع كيږي. څرنگ چه په اول خل د اوښانو په كمې زياتي باندے مختلف قسم اوښان واجبيدل. هم هغه شان به د اولے قاعدے مطابق واجبيږي. په دويم خل به شماره په يو نيم سلو اودريږي. په دے شماره كښ په هر پنځو اوښانو باندے يو چيلۍ زكات كښ وركول واجبيږي. تر پنځويشت اوښانو پورے، تر يو سل پنځه څلويښتو پورے ليكن چه په يو سل پنځه څلويښت پوره شي. نو بيا به دوه حقے او يو بنت مخاض واجب شي. او چه كله شمار يو نيم سل شي. نو درے حقے به وركوي. او بيا به په دريم خل د اولني شمير مطابق زكات د شروع نه واجبيږي. علامه انور شاه كشميري رحمة الله عليه فيض الباري كښ د احنافو د مسلک د پاره دلائل او احاديث ذكر كړيدي (فيض الباري جلد ۳ صفحات ۲ تا ۳۹)

۲. دا ياد ساتل پكار دي. چه د چيلو گډو پشان د اوښانو غواگانو.وغيره كښ هم دا حكم دے چه د كال په اكثره حصه كښ په څريدو خان مَرَه وي نو زكات به پكښ واجبيږي. كني هغه څاروي چه په كور كښ او تړلے شي او تياره گياه وركولے شي په هغے زكات نه واجبيږي.

بـاب ۴۷: لَا يُؤْخَذُ فِي الصَّدَقَةِ هَرِمَةٌ وَّلَا ذَاتُ عَوَارٍ وَّلَا تَيْسُ اِلَّا مَا شَآءَ الْمُصَدِّقُ. بـاب ۴۷: زكوة كښ دے نهٔ زَړَه، نه عيب داره چيلئے يا نر اخلي، خو كه زكوة وصولونكے اخستل غواړي.

۳. مطلب ئے دا دے چه زكات كښ به خراب او عيب ژن څاروے نشي اخستلے. خكه دا اصولي طور غلطه خبره ده. چه څاروي دے هر قسم وي او زكات كښ دے خراب څاروے وركيږي. كه وصول كونكے افسر په څاروي كښ داسے صفت اويني چه عيب پرے د نظره غورزيږي. نو بيائے اخستے شي. داسے د نَر څاروي قيمت كم وي. د اوښ نه اوښه زياته وي پلے وجه نَر نه اخلي.

۱۳۷۴: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدُ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبِيْ قَالَ حَدَّثَنَا ثُمَامَةُ اَنَّ اَنَسًا حَدَّثَهُ اَنَّ اَبَا بَكْرٍ كَتَبَ لَهُ الَّتِيْ اَمَرَ اللّٰهُ رَسُوْلَهُ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَا يُخْرَجُ فِي الصَّدَقَةِ هَرِمَةٌ وَّلَا ذَاتُ عَوَارٍ وَّلَا تَيْسٌ اِلَّا مَا شَآءَ الْمُصَدِّقُ.

۱۳۷۴: محمد بن عبدالله. عبدالله (بن مثنى) ثمامه ته حضرت انس بيان اوكهٔ، چه هغه ته حضرت ابوبكر رضي الله عنه (دَ زكوٰة حكم) ليكلے وركړلو. چه الله خپل رسول صلي الله عليه وسلم ته حكم وركړے وو • هغے كښ دا وو) چه زكوٰة كښ دے زړه (بڈھی) او عيب داره چيلئے يا نَر نشي وركولے، خو دا چه زكوٰة وصولونكے ئے آخستل او غواړي.

باب ۴۸: أَخْذِ الْعَنَاقِ فِي الصَّدَقَةِ.

باب ۴۸: زکٰوة کښې دَ چیلئے دَ بچي اخستو بیان.

۱. امام بخاري رحمة الله علیه دا ښودل غواړي چه زکات اخستونکے افسر، د خپلے رائے او خوښے مطابق ډیر زوړ یا عیب ژن څاروے هم اخستے شي چه د هغه د رائے او تجربے مطابق د هغے په اخستلو کښې د بیت المال نقصان (تاوان) نه وي. نو چیلوکے یا چیلوکۍ په زکات کښې هم اخستلے شي. خکه چه په هغے کښې د لوئیدو او د زیاتے فائدے صلاحیت شته. د دے باب په سرلیک کښې ورکړے شوي حدیث شریف کښې امام بخاري رحمة الله علیه دا اشاره معلوموي. چه حضرت ابوبکر رضي الله عنه فرمایلي وو که چرے ماته خلق د چیلۍ د بچي (چیلوکي) ورکولو نه انکار کوي کوم ئے چه رسول الله صلي الله علیه وسلم ته به زکات کښې ورکوؤ. نو زهٔ به ورسره جنګ کوم" نو د دے نه دا مسئله اخستے شي. چه چیلوکۍ زکات کښې اخستلے شي چه کله د اخستونکي او ورکونکي دواړو رضا وي. د دواړو رضا ضروري ده.

۷۴۳: حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ قَالَ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ ح وَ قَالَ اللَّيْثُ حَدَّثَنِي عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ خَالِدٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُتْبَةَ ابْنِ مَسْعُوْدٍ أَنَّ أَبَا هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ أَبُو بَكْرٍ وَاللّٰهِ لَوْ مَنَعُوْنِي عَنَاقًا كَانُوْا يُؤَدُّوْنَهَا إِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَقَاتَلْتُهُمْ عَلٰى مَنْعِهَا قَالَ عُمَرُ فَمَا هُوَ إِلَّا أَنْ رَّأَيْتُ أَنَّ اللّٰهَ شَرَحَ صَدْرَ أَبِيْ بَكْرٍ بِالْقِتَالِ فَعَرَفْتُ أَنَّهُ الْحَقُّ.

۷۴۳: ابو الیمان. شعیب. زهري. ح. لیث. عبدالرحمٰن بن خالد. ابن شهاب. عبید الله بن عبدالله بن عتبه بن مسعود. حضرت ابو هریره رضي الله عنه روایت کوي، حضرت ابوبکر رضي الله عنه او فرمائیل په والله که هغوي دَ چیلئے یو بچے هم ورنهٔ که، چه هغوي به رسول الله صلے الله علیه وسلم ته ورکولو، نو په دے نه ورکولو به زهٔ هغوي سره جهاد او کړم. عمر رضي الله عنه اووے، خما په خیال کښې دَ جنګ دَ ارادے وجه دَ دے نه سِوا بله خبره نهٔ وه، چه الله دَ ابوبکر رضي الله عنه سینه دَ جنګ دَ پاره پرانستے وه، نو زهٔ پوه شوم، چه حقه خبره هم دغه ده.

باب ۴۹: لَا تُؤْخَذُ كَرَائِمُ أَمْوَالِ النَّاسِ فِي الصَّدَقَةِ.

باب ۴۹: زکٰوة کښې دے دَ خلقو غوره مال نشي آخستے.

۱. مطلب ئے دا دے چه زکات کښې دے نه غوره څیز اخلي نه خراب، بلکے مینځومانه څیز دے اخلي چه نه په ورکونکي بوج وي. نه بیت المال ته تاوان وي.

۷۴۴: حَدَّثَنَا أُمَيَّةُ بْنُ بِسْطَامٍ قَالَ حَدَّثَنَا يَزِيْدُ بْنُ زُرَيْعٍ قَالَ حَدَّثَنَا

۷۴۴: امیه بن بسطام. یزید بن زریع روح بن قاسم. اسمٰعیل بن اُمیه. یحیٰي بن

رَوْحُ بْنُ الْقَاسِمِ عَنْ إِسْمٰعِيْلَ بْنِ أُمَيَّةَ عَنْ يَحْيَى بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ صَيْفِيٍّ عَنْ أَبِيْ سَعِيْدٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمَّا بَعَثَ مُعَاذًا عَلَى الْيَمَنِ قَالَ إِنَّكَ تَقْدُمُ عَلٰى قَوْمٍ أَهْلِ كِتَابٍ فَلْتَكُنْ أَوَّلَ مَا تَدْعُوْهُمْ إِلَيْهِ عِبَادَةُ اللّٰهِ فَإِذَا عَرَفُوا اللّٰهَ فَأَخْبِرْهُمْ أَنَّ اللّٰهَ قَدْ فَرَضَ عَلَيْهِمْ خَمْسَ صَلَوَاتٍ فِيْ يَوْمِهِمْ وَلَيْلَتِهِمْ فَإِذَا فَعَلُوْا فَأَخْبِرْهُمْ أَنَّ اللّٰهَ تَعَالٰى قَدْ فَرَضَ عَلَيْهِمْ زَكٰوةً تُؤْخَذُ مِنْ أَمْوَالِهِمْ وَ تُرَدُّ عَلٰى فُقَرَآئِهِمْ فَإِذَا أَطَاعُوْا بِهَا فَخُذْ مِنْهُمْ وَ تَوَقَّ كَرَائِمَ أَمْوَالِ النَّاسِ.

عبدالله بن صيفي. ابو معبد. حضرت ابن عباس نه روايت کوي. رسول الله صلي الله عليه وسلم چه معاذ ذ يمن حاکم مقرر کړ، نو حضور صلي الله عليه وسلم ورته او فرمائيل چه ته اهل کتابو له ځے، نو د هر څۀ نه مخکښې هغوي ذ خدائے عبادت له راوبله. چه هغوي الله تعالي او پيژني، نو ورته اوښايه، چه الله په هغوي پنځه مونځونه شپه او ورځ کښې فرض کړے دي. هر کله چه هغوي دا اوکړي، نو هغوي ته اوښايه، چه الله تعالي په هغوي زکٰوة فرض کړے دے چه ذ هغوي ذ مالدارو نه به آخستے شي او ذ هغوي فقيرانو له به ورکولے شي. چه دا او مني، نو هغوي نه زکٰوة وصول کړه. خو ذ هغوي ذ ښۀ مال آخستو نه بچ اوسه.

## بَاب ٥٠: لَيْسَ فِيْمَا دُوْنَ خَمْسِ ذَوْدٍ صَدَقَةٌ.

## باب ٥٠: پنځو اوښانو نه کم کښې زکٰوة نشته.

٧٥: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ يُوْسُفَ قَالَ أَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ أَبِيْ صَعْصَعَةَ الْمَازِنِيِّ عَنْ أَبِيْهِ عَنْ أَبِيْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَيْسَ فِيْمَا دُوْنَ خَمْسَةِ أَوْسُقٍ مِنَ التَّمْرِ صَدَقَةٌ وَ لَيْسَ فِيْمَا دُوْنَ خَمْسِ أَوَاقٍ مِنَ الْوَرِقِ صَدَقَةٌ وَ لَيْسَ فِيْمَا دُوْنَ

٧٥: عبدالله بن يوسف. مالک. محمد بن عبدالرحمن بن ابي صعصعة مازني ذ خپل پلار نه، هغۀ ذ ابو سعيد خدري رضي الله عنه نه روايت کوي، رسول الله صلي الله عليه وسلم او فرمائيل. پنځه وسق نه کم قجورو کښې زکٰوة نشته. او پنځه اوقيه چاندي نه کم کښې زکٰوة نشته. او پنځه اوښانو نه کم

خَمْسِ ذَوْدٍ مِّنَ الْإِبِلِ صَدَقَةٌ.

كښې زكوٰة نشته.

بَـاب ۱ ۵ : زَكْـوةِ الْبَقَرَةِ فَقَالَ اَبُوْ حُمَيْدٍ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّے اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَاَعْرِفَنَّ مَا جَآءَ اللّٰهُ رَجُلٌ بِبَقَرَةٍ لَهَا خُوَارٌ وَ يُقَالُ جُؤَارٌ يَجْأَرُوْنَ يَـرْفَعُوْنَ اَصْـوَاتَهُمْ كَمَـا تَجْاءَرُ الْبَقَرَةُ.

باب ۱ ۵ : دَ غوا دَ زكوٰة بيان. ابو سعيد وائي' نبي صلے اللّٰه عليه وسلم او فرمائيل. البته زهٔ به هغه خوک پيژنم' چه اللّٰه ته به غوا سره راشي' او هغه به خبرے كوي. او بعضے دَ خوار په ځائے جوار ونيلے دے. يجارون: معني دي: هغوي به خپل آوازونه اوچت كړے وي' څنګه چه غوا آواز اوچتوي.

۶ ۷ : حَـدَّثَـنَـا عُـمَـرُو بْـنُ حَـفْـصِ بْـنِ غِيَـاثٍ قَـالَ حَـدَّثَـنَـا اَبِـيْ قَـالَ حَـدَّثَـنَـا الْاَعْمَـشُ عَنِ الْـمَعْرُوْرِ بْـنِ سُـوَيْـدٍ عَـنْ اَبِـيْ ذَرٍّ قَـالَ انْتَهَيْـتُ اِلَيْـهِ يَعْـنِـي النَّبِـيَّ صَلَّـے اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ وَالَّذِيْ نَـفْسِيْ بِيَدِهٖ اَوْ وَالَّذِيْ لَا اِلٰهَ غَيْرُهٗ اَوْ كَمَا حَلَفَ مَا مِنْ رَجُلٍ تَكُوْنُ لَهٗ اِبِلٌ اَوْ بَـقَرٌ اَوْ غَنَمٌ لَّا يُؤَدِّيْ حَقَّهَا اِلَّا اُتِيَ بِهَا يَـوْمَ الْقِيٰـمَةِ اَعْظَمَ مَا تَكُوْنُ وَ اَسْـمَـنَـهٗ تَـطَـؤُهٗ بِـاَخْـفَـافِهَا وَ تَنْطَحُهٗ بِـقُرُوْنِهَا كُـلَّـمَا جَازَتْ عَلَيْهِ اُخْرٰهَا رُدَّتْ عَـلَيْـهِ اُوْلٰـهَا حَتّٰى يُقْضٰى بَيْنَ النَّـاسِ رَوَاهُ بُـكَيْـرٌ عَـنْ اَبِيْ صَالِحٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۶ ۷ : عمرو بن حفص بن غياث. حفص بن غياث. اعمش. معرور بن سويد. ابو ذر رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي' چه زهٔ نبي صلے اللّٰه عليه وسلم له ورغلم' نو حضور صلي اللّٰه عليه وسلم او فرمائيل. په هغے ذات مِ دے قَسم وي' چه دَ هغهٔ په قبضه كښې ځما ساه ده' يا دائے او فرمائيل' په هغه ذات مِ دے قَسم وي' چه دَ هغهٔ نه سِوا بل معبود نشته' يا دغه شان څهٔ قَسم ئے او خوړلو چه نشته داسے سړے چه دَ هغهٔ دے اوښ' غوا' يا چيلئے وي' او دَ هغے حق دے ادا نه كړي' خو دا چه دَ قيامت په ورځ به دغه څناور داسے حال كښې راوستے شي' چه دَ مخكښې نه به زيات لوئے او غټ وي او خپلو سُمونو سره به هغه ميده كوي او په ښكرونو به ئے وهي. چه آخري څناور په هغه تير شي. نو بيا به وړمبنے څناور هغهٔ ته راواپس شي' تر دے چه دَ خلقو مينځ كښې به فيصله اوشي بكير' دا په سند دَ ابو صالح. ابو هريره رضي اللّٰه عنه دَ نبي صلي اللّٰه عليه وسلم نه روايت كړے دے.

۱. د مسلم شريف په روايت كښې د دے حديث شريف داسے الفاظ راغلي دي. "چه هغه د هغے خارو زكات نه وركوي" كيدے شي چه د امام بخاري رحمة اللّٰه عليه په نظر كښې دغه روايت وي. كني د خارو ډير حقونه دي. او حق نه ادا كول ګناه ده. امام بخاري ته د غوا مينو د زكات په حقله حديث شريف نه دے په لاس راغلے.

## بــــاب ۵۲: الـــزَّكٰـوة عَلَى الْاَقَارِبِ وَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَهُ اَجْرَانِ الْقَرَابَةُ وَالصَّدَقَةُ.

## باب ۵۲: خپلوانو ته دَ زكٰوة وركولو بيان. او

نبي صلي اللّٰه عليه وسلم او فرمائيل ٔ هغهٔ دَ پاره درې اجرونه دي٬ يَو دَ خپلولئ او دويم دَ صدقے (ثواب به ورته رسي).

۲. د فقهے په كتابونو كښ دا تفصيل شته دے چه مور پلار نيا نيكه خامن لونړه نوسي نوسئ (اصول و فروع) ته زكات نشي وركولے د هغوي د دے حديث شريف نه جُدا حكم دے.

۷۷: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ قَالَ حَدَّثَنَا مَالِكٌ عَنْ اِسْحٰقَ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ ابن اَبِيْ طَلْحَةَ اَنَّهُ سَمِعَ اَنَسَ بْنَ مَالِكٍ يَّقُوْلُ كَانَ اَبُوْ طَلْحَةَ اَكْثَرُ الْاَنْصَارِ بِالْمَدِيْنَةِ مَالًا مِّنْ نَّخْلٍ وَّ كَانَ اَحَبُّ اَمْوَالِهِ اِلَيْهِ بَيْرُحَآءَ وَ كَانَتْ مُسْتَقْبِلَةَ الْمَسْجِدِ وَ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدْخُلُهَا وَ يَشْرَبُ مِنْ مَّآءٍ فِيْهَا طَيِّبٍ قَالَ اَنَسٌ فَلَمَّا اُنْزِلَتْ هٰذِهِ الْاٰيَةُ لَنْ تَنَالُوا الْبِرَّ حَتّٰى تُنْفِقُوْا مِمَّا تُحِبُّوْنَ قَامَ اَبُوْ طَلْحَةَ اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّ اللّٰهَ تَبَارَكَ وَ تَعَالٰى يَقُوْلُ لَنْ تَنَالُوا الْبِرَّ حَتّٰى تُنْفِقُوْا مِمَّا تُحِبُّوْنَ وَ اِنَّ اَحَبَّ اَمْوَالِيْ اِلَيَّ بَيْرُحَاءُ وَ اِنَّهَا صَدَقَةٌ لِلّٰهِ اَرْجُوْا بِرَّهَا وَ ذُخْرَهَا عِنْدَ اللّٰهِ فَضَعْهَا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ حَيْثُ اَرَاكَ اللّٰهُ قَالَ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

۷۷: عبداللّٰه بن يوسف. مالک. اسحٰق بن عبداللّٰه بن ابي طلحه روايت كوي. هغهٔ دَ حضرت انس نه واوريدل٬ چه ابو طلحه انصارِ مدينه كښ دَ ټولو نه زيات مالدار وو دَ هغهٔ دَ قجورو باغونه وو. دَ هغه ټولو مالونو كښ بيرحاء (باغ) دَ هغهٔ ډير خوښ وو. دَ هغے رُخ مسجد نبوي طرف ته وو. نبي صلے اللّٰه عليه وسلم به هلته تلو او دَ هغے پاكيزه اوبه به ئے څكلے. انس وائي٬ كوم وخت چه دا آيت نازل شو: تاسو نيكي نهٔ شئے حاصلولے٬ څو پورے چه خپل زړهٔ پورے څيز دَ اللّٰه په لار كښ خرڅ نهٔ كړے٬ نو ابو طلحه٬ رسول صلے اللّٰه عليه وسلم له ورغے. او عرض ئے او كهٔ٬ يا رسول اللّٰه اللّٰه تبارک و تعالي فرمائيلے دي٬ چه تاسو نيكي نهٔ شئے حاصلولے٬ څو پورے چه خپل زړهٔ پورے څيز دَ اللّٰه په لار كښ خرڅ نهٔ كړئے. او خما ټول مالونو كښ بيرحاء (باغ) ما ته دَ ټولو څيزونو نه زيات عزيز دے. او هغه دَ اللّٰه په لار كښ صدقه كوم. زهٔ دَ دے دَ ثواب او ذخيره كولو اميد لرم. نو تاسو صلي اللّٰه عليه وسلم دا واخلئے او كوم خائے چه مناسب وي. صرف ئے كړے. رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم ورته او فرمائيل. دا خو فائده مند مال دے. دا خو دَ آمدني مال دے. او څهٔ چه تا

بَخٍ ذٰلِكَ مَالٌ رَّابِحٌ ذٰلِكَ مَالٌ رَّابِحٌ وَّقَدْ سَمِعْتُ مَا قُلْتَ وَ اِنِّيْ اَرٰى اَنْ تَجْعَلَهَا فِي الْاَقْرَبِيْنَ فَقَالَ اَبُوْ طَلْحَةَ اَفْعَلُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ فَقَسَمَهَا اَبُوْ طَلْحَةَ فِيْ اَقَارِبِهٖ وَ بَنِيْ عَمِّهٖ تَابَعَهٗ رَوْحٌ وَّ قَالَ يَحْيَى بْنُ يَحْيٰى وَ اِسْمٰعِيْلُ عَنْ مَّالِكٍ رَّآئِحٌ بِالْيَاءِ.

۸۷: حَدَّثَنَا ابْنُ اَبِيْ مَرْيَمَ قَالَ اَخْبَرَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ زَيْدُ بْنُ اَسْلَمَ عَنْ عِيَاضِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ عَنْ اَبِيْ سَعِيْدِ نِ الْخُدْرِيِّ قَالَ خَرَجَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ اَضْحٰى اَوْ فِطْرٍ اِلَى الْمُصَلّٰى ثُمَّ انْصَرَفَ فَوَعَظَ النَّاسَ وَ اَمَرَهُمْ بِالصَّدَقَةِ فَقَالَ يٰۤاَيُّهَا النَّاسُ تَصَدَّقُوْا فَمَرَّ عَلَى النِّسَآءِ فَقَالَ يٰمَعْشَرَ النِّسَآءِ تَصَدَّقْنَ فَاِنِّيْ اُرِيْتُكُنَّ اَكْثَرَ اَهْلِ النَّارِ فَقُلْنَ وَ بِمَ ذٰلِكَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ تُكْثِرْنَ اللَّعْنَ وَ تَكْفُرْنَ الْعَشِيْرَ مَا رَاَيْتُ نَاقِصَاتِ عَقْلٍ وَّ دِيْنٍ اَذْهَبَ لِلُبِّ الرَّجُلِ الْحَازِمِ مِنْ اِحْدٰكُنَّ يَا مَعْشَرَ النِّسَآءِ ثُمَّ انْصَرَفَ فَلَمَّا صَارَ اِلٰى مَنْزِلِهٖ جَآءَتْ زَيْنَبُ

اوونيل ما واوريدل، زۀ مناسب ګنړم، چه ته دا خپلو خپلوانو کښې تقسيم کړې. ابو طلحه عرض اوکۀ يا رسول الله، هم داسې به کوم، نو ابو طلحه هغه خپلو رشته دارانو او دَ تره خامنو کښې تقسيم کړلو. روح دَ دې متابع حديث روايت کړې دې. او يحيي بن يحيي او اسمٰعيل دَ مالک نه دَ رابح په ځائې دَ رائح لفظ بيان کړې دې.

۸۷: ابن ابي مريم. محمد بن جعفر. زيد بن اسلم. عياض بن عبدالله. ابو سعيد خدري رضي الله عنه روايت کوي، چه رسول الله صلي الله عليه وسلم دَ وړوکي يا لوئې اختر په ورځ عيدګاه طرف ته تشريف يوړلو، نو خلقو ته ئې نصيحت اوکۀ، او هغوي ته ئې دَ صدقې حکم ورکړلو. حضور صلي الله عليه وسلم او فرمائيل. اے خلقو، صدقه کوئې، بيا زنانه ؤ طرف ته ورغې، او، وې فرمائيل. اے دَ زنانه ؤ ډلې، تاسو خيرات کوئې، ځکه چه ما ته دوزخ کښې اکثر ښځې اوښودلې شوې. ښځو عرض اوکه. داسې ولې، يا رسول الله، حضور صلي الله عليه وسلم ورته او فرمائيل، تاسو لعن طعن زيات کوئې، دَ خاوندانو نافرماني کوئې. اے زنانه ؤ، ما ستاسو نه دين او عقل کښې زيات ناقص هيڅوک او نه ليدل، چه دَ لويو لويو هښيارانو عقل کم کړي. بيا حضور صلي الله عليه وسلم کور ته واپس شولو، چه کورته اورسيدلو، نو دَ ابن مسعود رضي الله عنه ښځه زينب راغله. او دننه دَ راتلو اجازت ئې او غوښتلو، حضور صلي الله عليه وسلم ته اوونيلې شو، يا رسول الله، دا زينب ده، حضور صلي الله عليه وسلم او فرمائيل،

امْرَأَةُ بْنِ مَسْعُوْدٍ تَسْتَأْذِنُ عَلَيْهِ فَقِيْلَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ هٰذِهٖ زَيْنَبُ فَقَالَ اَىُّ الزَّيَانِبِ فَقِيْلَ امْرَأَةُ بْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ نَعَمِ ائْذَنُوْا لَهَا فَأَذِنَ لَهَا قَالَتْ يَا نَبِيَّ اللّٰهِ اِنَّكَ اَمَرْتَ الْيَوْمَ بِالصَّدَقَةِ وَ كَانَ لِيْ حُلِيٌّ فَأَرَدْتُّ اَنْ اَتَصَدَّقَ بِهٖ فَزَعَمَ بْنُ مَسْعُوْدٍ اَنَّهُ وَ وَلَدَهُ اَحَقُّ مَنْ تَصَدَّقْتُ بِهٖ عَلَيْهِمْ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَدَقَ بْنُ مَسْعُوْدٍ زَوْجُكِ وَ وَلَدُكِ اَحَقُّ مَنْ تَصَدَّقْتِ بِهٖ عَلَيْهِمْ.

كومه زينب' ورته اوونيلے شو' دَ ابن مسعود رضي الله عنه ښځه. حضور صلي الله عليه وسلم او فرمائيل' ښهٔ ده' اجازت ورکه. هغے ته اجازت ورکړے شو' نو هغه راغله او عرض ئے اوکهٔ. يا نبي الله' نن تاسو صلي الله عليه وسلم دَ صدقے حکم اوکړلو' ما سره يو کالے وو' ما اراده اوکړه' چه هغه خيرات کړم. ابن مسعود ګمان کوي اوکړه چه هغه او دَ هغهٔ خوي دَ دے خيرات زيات مستحق دي دَ هغے خلقو نه' چه هغوي له زهٔ خيرات ورکول غواړم. رسول الله صلے الله عليه وسلم ورته او فرمائيل' ابن مسعود ريښتيا وئيلے دي' ستا خاوند او ستا خوئے دَ هغے خلقو نه زيات مستحق دي' چه هغوي له تهٔ خيرات ورکول غواړے.

۱. په دے حديث شريف کښ د دے وضاحت نشته چه د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه ښځے چه کوم صدقه ورکوله هغه نفلي صدقه وه يا زکات' د احنافو په مسلک کښ ښځه خاوند ته زکات نشي ورکولے. او نه داسے بنده له ورکولے شي چه دے د هغه د کفالت ذمه وار وي. د دے وجے نه مونږ دا وايو چه حديث شريف کښ د نفلي خيرات ذکر دے. د زکات ذکر ندے په ښکاره ډول حديث شريف نه هم دا معلوميږي.

## باب ۵۳: لَيْسَ عَلَى الْمُسْلِمِ فِيْ فَرَسِهٖ صَدَقَةٌ.

## باب ۵۳: مسلمان باندے دَ هغهٔ اَس کښ زکوٰة فرض نهٔ دے.

۲. اسونه که د سورلئ دي يا د سامان بارکولو د پاره وي. يا د جهاد د پاره وي. نو د ټولو امامانو پدے اتفاق دے چه ددغه اسونو په وجه په مالک باندے زکات نه فرض کيږي. ليکن که دا اسونه د سوداګرئ (تجارت) د پاره وي. نو د ټولو امامانو پدے اتفاق دے چه کله قيمت ئے د نصاب برابر وي نو بيا ورباندے زکات شته. دريم صورت دا دے چه يو بنده اسونه د دے د پاره ساتي چه نسل ئے زيات شي. او هغے کښ اسونه' اسپے دواړه موجود وي. نو د احنافو' په مسلک ورباندے زکات واجبيږي. داسے که مريان (غلامان) وينځے د تجارت د پاره وي. نو پدے د ټولو امامانو اتفاق دے چه زکات پرے واجبيږي په دے حديث شريف کښ حکم بغير د څه شرط او بغير د څه قيد نه بيان شويدے. چه په اَس او مرئي کښ زکات نشته. ليکن د امت د ټولو امامانو پدے اتفاق دے چه داسے عام حکم نافذ نه دے په اَس او مرئي دواړو کښ داسے صورتونه د ټولو امامانو په نزد شته چه زکات پکښ واجبيږي. د دے وجے نه احناف وائي چه د مرئي

نه هغه مُرئے (غلام) مراد دے چه کوم د خدمت د پاره وي نو په هغے کښې زکات نشته. داسے د اسونو نه هغه اسونه مراد دي. چه د خپل ذاتي ضرورتونو د پاره وي. یا د سامان اوړلو د پاره وي. حضرت عمر رضي الله عنه پخپله د اسونو زکات اخستلو. د نبي کریم صلي الله علیه وسلم په مبارکه زمانه کښې د اسونو کمے وؤ. د هغے زمانے واقعات یاد کړئي. د بدر د غذا په وخت مسلمانانو سره درے اسونه وؤ په اسونو باندے زکات د نورو څاروو په شان نَدے په هر یو اس یو "دینار" (یوه اشرفئ) یا د هغے د قیمت برابر د یو څیز اخستلو حکم دے د نورو څاروو زکات کښې شریعت تفصیل ورکړے دے چه د دومره عمر څاروے زکات کښې ورکړئ. داسے د اس په مالک باندے دا نشته چه هغه دے زکات بیت المال کښې جمع کړي. بلکے حقدار له دے ورکړي. په نورو څاروو کښې دا حکم دے چه د زکات اخستلو افسر به رازي. او هغه به زکات اخلي د مالک نے دا حق نشته چه زکات پخپله حقدار ته ورکړي. اس ډیر د پکاریدو څاروے دے خکه شریعت نے د پاللو حکم کړے دے.

۷۹: حَدَّثَنَا اٰدَمُ قَالَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ دِيْنَارٍ قَالَ سَمِعْتُ سُلَيْمَانَ بْنَ يَسَارٍ عَنْ عِرَاكِ بْنِ مَالِكٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيْسَ عَلَى الْمُسْلِمِ فِيْ فَرَسِهٖ وَ غُلَامِهٖ صَدَقَةٌ.

۷۹: آدم. شعبه. عبدالله بن دینار. سلیمان بن یسار. عراک بن مالک. حضرت ابو هریره رضي الله عنه نه روایت کوي، نبي صلي الله علیه وسلم او فرمائیل، مسلمان باندے د هغهٔ په اَس کښې او د هغهٔ په غلام کښې زکوٰة فرض نهٔ دے.

## باب ۵۴: لَيْسَ عَلَى الْمُسْلِمِ فِيْ عَبْدِهٖ صَدَقَةٌ.

## باب ۵۴: مسلمان باندے د هغهٔ د غلام زکوٰة فرض نهٔ دے.

۸۰: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ قَالَ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيْدٍ عَنْ خُثَيْمِ ابْنِ عِرَاكِ ابْنِ مَالِكٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ح وَ حَدَّثَنَا سُلَيْمٰنُ بْنُ حَرْبٍ قَالَ وَ حَدَّثَنَا وُهَيْبُ بْنُ خَالِدٍ قَالَ حَدَّثَنَا خُثَيْمُ بْنُ عِرَاكِ بْنِ مَالِكٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَيْسَ

۸۰: مسدد. یحیي بن سعید. خثیم بن عراک بن مالک. عراک بن مالک. حضرت ابو هریره رضي الله عنه د نبي صلي الله علیه وسلم نه روایت کوي. ح. سلیمان بن حرب. وهیب بن خالد. خثیم بن عراک بن مالک. عراک بن مالک. حضرت ابو هریره رضي الله عنه نه روایت کوي، چه نبي صلے الله علیه وسلم فرمائیلے دي، مسلمان

عَلَى الْمُسْلِمِ صَدَقَةٌ فِيْ عَبْدِهٖ وَلَا فِيْ فَرَسِهٖ.

باب ۵۵: اَلصَّدَقَةِ عَلَى الْيَتٰمٰى.

۱۸۱: حَدَّثَنَا مُعَاذُ بْنُ فَضَالَةَ قَالَ حَدَّثَنَا هِشَامٌ عَنْ يَّحْيٰى عَنْ هِلَالِ بْنِ اَبِيْ مَيْمُوْنَةَ قَالَ حَدَّثَنَا عَطَآءُ بْنُ يَسَارٍ اَنَّهٗ سَمِعَ اَبَا سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ يُحَدِّثُ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَلَسَ ذَاتَ يَوْمٍ عَلَى الْمِنْبَرِ وَ جَلَسْنَا حَوْلَهٗ فَقَالَ مِمَّا اَخَافُ عَلَيْكُمْ مِنْ بَعْدِيْ مَا يُفْتَحُ عَلَيْكُمْ مِنْ زَهْرَةِ الدُّنْيَا وَ زِيْنَتِهَا فَقَالَ رَجُلٌ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَوْ يَأْتِي الْخَيْرُ بِالشَّرِّ فَسَكَتَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقِيْلَ لَهٗ مَا شَأْنُكَ تُكَلِّمُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَا يُكَلِّمُكَ فَرَاَيْنَا اَنَّهٗ يُنْزَلُ عَلَيْهِ قَالَ فَمَسَحَ عَنْهُ الرُّحَضَآءَ وَ قَالَ اَيْنَ السَّآئِلُ فَكَاَنَّهٗ حَمِدَهٗ فَقَالَ اِنَّهٗ لَا يَأْتِي الْخَيْرُ بِالشَّرِّ وَ اِنَّ مِمَّا يُنْبِتُ الرَّبِيْعُ يَقْتُلُ اَوْ يُلِمُّ اِلَّا اٰكِلَةَ الْخَضِرِ اَكَلَتْ حَتّٰى اِذَا امْتَدَّتْ خَاصِرَتَاهَا اسْتَقْبَلَتْ عَيْنَ الشَّمْسِ فَثَلَطَتْ وَ بَالَتْ وَ رَتَعَتْ وَ اِنَّ هٰذَا الْمَالَ خَضِرَةٌ حُلْوَةٌ فَنِعْمَ صَاحِبُ الْمُسْلِمِ مَا اُعْطِيَ مِنْهُ

باندې د هغهٔ غلام کښې او د هغهٔ اَس کښې زکوٰة فرض نهٔ دې.

باب ۵۵: یتیمانو باندې د صدقه کولو بیان.

۱۸۱: معاذ بن فضاله. هشام. یحیٰی. هلال بن ابي میمونه. عطاء بن یسار، د ابو سعید خدري نه واوریدل چه نبي صلي الله علیه وسلم یوه ورځ په منبر کیناستلو، او مونږ هم د حضور صلي الله علیه وسلم نه چاپیره کیناستو. حضور صلي الله علیه وسلم او فرمائیل، چه زهٔ د ځان نه پس ستاسو خلقو متعلق د دُنیا د زیب و زینت نه ویریږم، چه د هغې دروازې به په تاسو پرانستې شي، یو سړي عرض اوکړ، یا رسول الله، آیا بنهٔ ځیز به بدځیز راوړي. نبي صلي الله علیه وسلم خاموش شولو، نو هغې سړي ته اوونیلې شو، څهٔ خبره ده، چه تهٔ نبي صلي الله علیه وسلم سره خبرې کوې، او حضور صلي الله علیه وسلم تاسره خبرې نه کوي. مونږ خیال اوکړ، چه په حضور صلي الله علیه وسلم وحي نازلیږي. حضور صلي الله علیه وسلم د مخ مبارک نه خوَله (پسینه) اوچه کړه. او وې فرمائیل، تپوس کونکې کوم ځائې دې. ګویا د هغهٔ تعریف ئې اوکړ، او وې فرمائیل. بنهٔ ځیز بدي نهٔ پیدا کوي. خو موسم ربیع کښې داسې وابنهٔ هم راټوکیږي چه وژل کوي یا تکلیف کښې آخته کول کوي، خو هغه ځناور چه شنه وابنهٔ کښې څري. تر دې چه دواړه تشې ئې ډک شي نو هغه نمر طرف ته مخ کړي او خاشنړه او متیازې کوي او څري. دغه شان دا مال سرسبز او خوږ دې. څهٔ بهتر دې د مسلمان مال،

الْمِسْكِيْنَ وَالْيَتِيْمَ وَابْنَ السَّبِيْلِ اَوْ كَمَا قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اِنَّهُ مَنْ يَّاْخُذُهُ بِغَيْرِ حَقِّهٖ كَالَّذِيْ يَاْكُلُ وَلَا يَشْبَعُ وَ يَكُوْنُ شَهِيْدًا عَلَيْهِ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ.

چه هغې نه مسکين، يتيم او مسافر ته ورکوي، يا څنګه چه نبي صلی الله عليه وسلم او فرمائيل. او څوک چه دا په ناحقه آخلي، نو هغه د هغې سړي په شان دے چه خوري خو ذ هغۀ خيټه نۀ ډکيږي. او د قيامت په ورځ به ذ هغۀ خلاف ګواه وي.

۱. د دے مثال بيانولو مقصد دا دے چه بنه د بنو په ځائے په مناسب ځايونو کښ استعمال شي. يا بنه کار په غلطو چارو کښ استعمال نشي. نو د هغے نه بدي/ خرابے نه پيدا کيږي. که په مناسب ځايونو کښ استعمال نه وي. نو بدي او خرابي ترے پيدا کيږي.

۲. د راوي يحيي دا شک دے چه د نبي کريم صلي الله عليه وسلم دا مبارک الفاظ دي يا د دے برابر بل څه نے ويلے وو.

## بَابُ ۵۶: اَلزَّكٰوةِ عَلَى الزَّوْجِ وَالْاَيْتَامِ فِي الْحِجْرِ قَالَهٗ اَبُوْ سَعِيْدٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

## باب ۵۶: خاوند او زير تربيت بچو ته ذ زکٰوة ورکولو بيان. دا ابو سعيد ذ نبي صلے الله عليه وسلم نه روايت کړے دے.

۸۲: حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصِ بْنِ غِيَاثٍ قَالَ حَدَّثَنَا اَبِيْ قَالَ حَدَّثَنَا الْاَعْمَشُ عَنْ شَقِيْقٍ عَنْ عَمْرِو بْنِ الْحَارِثِ عَنْ زَيْنَبَ امْرَاَةِ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ فَذَكَرْتُهٗ لِاِبْرَاهِيْمَ فَحَدَّثَنِيْ اِبْرَاهِيْمُ عَنْ اَبِيْ عُبَيْدَةَ عَنْ عَمْرِو بْنِ الْحَارِثِ عَنْ زَيْنَبَ امْرَاَةِ عَبْدِ اللّٰهِ بِمِثْلِهٖ سَوَآءً قَالَتْ كُنْتُ فِي الْمَسْجِدِ فَرَاَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ تَصَدَّقْنَ وَلَوْ مِنْ حُلِيِّكُنَّ وَ كَانَتْ زَيْنَبُ تُنْفِقُ عَلٰى عَبْدِ اللّٰهِ وَ اَيْتَامٍ فِيْ حَجْرِهَا فَقَالَتْ لِعَبْدِ اللّٰهِ سَلْ

۸۲: عمرو بن حفص بن غياث. حفص بن غياث. اعمش. شقيق. عمرو بن حارث. زينب (ذ عبدالله بن مسعود ښځه) نه روايت کوي. اعمش اووے، ما دا ابراهيم ته بيان کۀ، نو ابراهيم ماته په واسطه ذ ابو عبيده. عمرو بن حارث. زينب (زوجه ذ عبدالله بن مسعود) نه بالکل دغسے روايت اوکۀ. زينب بيان اوکۀ. زۀ جمات کښ ووم، نو ما نبي صلے الله عليه وسلم اوليدلو. حضور صلي الله عليه وسلم او فرمائيل، خيرات کوئ، اګر که ستاسو کالے وي، او زينب به په عبدالله او په يو څو يتيمانو چه ذ هغے پرورش کښ وو، خرچ کولو. هغے عبدالله ته به اووے، ذ رسول الله صلي الله عليه وسلم نه تپوس اوکۀ، چه زۀ صدقه په تا او په هغے يتيم بچو چه خما پرورش کښ دي، خرچ کړم، نو آيا دا به درست

رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَيُجْزِئُ عَنِّيْ أَنْ أُنْفِقَ عَلَيْكَ وَ عَلٰى أَيْتَامٍ فِيْ حَجْرِيْ مِنَ الصَّدَقَةِ فَقَالَ سَلْ أَنْتِ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَانْطَلَقْتُ إِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَوَجَدْتُ امْرَأَةً مِّنَ الْأَنْصَارِ عَلَى الْبَابِ حَاجَتُهَا مِثْلُ حَاجَتِيْ فَمَرَّ عَلَيْنَا بِلَالٌ فَقُلْنَا سَلِ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُجْزِئُ عَنِّيْ أَنْ أَتَصَدَّقَ عَلٰى زَوْجِيْ وَ أَيْتَامٍ فِيْ حَجْرِيْ وَ قُلْنَا لَا تُخْبِرْ بِنَا فَدَخَلَ فَسَأَلَهُ فَقَالَ مَنْ هُمَا قَالَ زَيْنَبُ فَقَالَ أَيُّ الزَّيَانِبِ قَالَ امْرَأَةُ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ نَعَمْ لَهَا أَجْرَانِ أَجْرُ الْقَرَابَةِ وَ أَجْرُ الصَّدَقَةِ.

وي. هغهٔ ورته اووے تهٔ خپله ذ رسول الله صلے الله علیه وسلم نه تپوس اوکه، نو زهٔ رسول الله صلي الله علیه وسلم له راغلم. ما یوه انصاري ښځه په دروازه بیامنده، هغے ته هم دغه ضرورت وو، کوم چه ما ته وو، خمونږ مخکښې بلال رضي الله عنه تیر شولو. مونږ هغهٔ ته اووے. نبي صلي الله علیه وسلم نه تپوس اوکه، که زهٔ په خپل خاوند او ذ هغهٔ د یتیم بچو چه خما پرورش کښې دي، خرچ کرم، نو آیا دا به کافي وي. او مونږ ورته اووے چه خمونږ نوم مهٔ آخله. بلال رضي الله عنه دننه ورغے، ذ حضور صلي الله علیه وسلم نه ئے تپوس اوکهٔ، نو حضور صلي الله علیه وسلم ورته او فرمائیل. کومه زینب، بلال رضي الله عنه ورته اووے ذ عبدالله ښځه، حضور صلي الله علیه وسلم او فرمائیل، هغے د پاره دوه آجرونه دي. یو ذ رشته دارئ او بل ذ صدقے.

۱. عبدالله بن مسعود رضي الله عنه د ډیرے غریبئ ژوند تیره وو لیکن د هغه د ښځے مالي حالت ډیر ښه وو پدے وجه د کور خرخونه او خیر خیرات به هغے په ډاډه زړه کول.

۸۳: حَدَّثَنَا عُثْمَانُ ابْنُ أَبِيْ شَيْبَةَ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدَةُ عَنْ هِشَامٍ عَنْ أَبِيْهِ عَنْ زَيْنَبَ بِنْتِ أُمِّ سَلَمَةَ قَالَتْ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ أَلِيَ أَجْرٌ أَنْ أُنْفِقَ عَلٰى بَنِيْ أَبِيْ سَلَمَةَ إِنَّمَا هُمْ بَنِيَّ فَقَالَ أَنْفِقِيْ عَلَيْهِمْ فَلَكِ أَجْرُ مَا أَنْفَقْتِ عَلَيْهِمْ.

۸۳: عثمان بن ابي شیبه. عبده. هشام ذ خپل پلار نه، هغه ذ زینب بنت اُم سلمه رضي الله عنه نه روایت کوي. زینب اووے. ما عرض او که، یا رسول الله، آیا ما ته به ثواب حاصلیږي. که ذ ابو سلمه په اولاد خرچ اوکرم، هغه خما هم اولاد دے، حضور صلي الله علیه وسلم او فرمائیل، تهٔ په هغوي خرچ کوه. تا ته به د دے ثواب رسي چه تهٔ په هغوي خرچ کوے.

## باب ۵۷: قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى وَ

## باب ۵۷: ذ الله تعالیٰ قول، او کردن خلاصولو

فِي الرِّقَابِ وَالْغَارِمِيْنَ وَ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَ يُذْكَرُ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ يُعْتِقُ مِنْ زَكٰوةِ مَالِهٖ وَ يُعْطِي فِي الْحَجِّ وَ قَالَ الْحَسَنُ اِنِ اشْتَرٰى اَبَاهُ مِنْ زَكٰوةٍ جَازَ وَ يُعْطِيْ فِي الْمُجَاهِدِيْنَ وَالَّذِيْ لَمْ يَحُجَّ ثُمَّ تَلَا اِنَّمَا الصَّدَقٰتُ لِلْفُقَرَآءِ الْاٰيَةَ فِيْ اَيِّهَا اَعْطَيْتَ اَجْزَتْ وَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّ خَالِدًا احْتَبَسَ اَدْرَاعَهٗ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَ يُذْكَرُ عَنْ اَبِيْ لَاسٍ حَمَلَنَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلٰى اِبِلِ الصَّدَقَةِ لِلْحَجِّ.

٨٤: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ قَالَ اَنَا شُعَيْبٌ قَالَ ثَنَا اَبُو الزِّنَادِ عَنِ الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ اَمَرَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِصَدَقَةٍ فَقِيْلَ مَنَعَ ابْنُ جَمِيْلٍ وَّ خَالِدُ بْنُ الْوَلِيْدِ وَ عَبَّاسُ بْنُ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا يَنْقِمُ بْنُ جَمِيْلٍ اِلَّا اَنَّهٗ كَانَ فَقِيْرًا فَاَغْنَاهُ اللّٰهُ وَ رَسُوْلُهٗ وَ اَمَّا خَالِدٌ فَاِنَّكُمْ تَظْلِمُوْنَ خَالِدًا قَدِ احْتَبَسَ اَدْرَاعَهٗ وَ اَعْتُدَهٗ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَ اَمَّا الْعَبَّاسُ بْنُ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ فَعَمُّ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَهِيَ عَلَيْهِ الصَّدَقَةُ وَ مِثْلُهَا مَعَهَا تَابَعَهُ ابْنُ

او قرضدارو او دَ الله لار کښې دے خرچ او کړے شي. او ابن عباس رضي الله عنه نه منقول دي' هغوي دَ زکٰوة دَ مال نه غلامان آزاد کړل او حج کښې ئے خرچ کړے. او حسن بصري اووے' که زکٰوة سره خپل پلار واخلي' نو جائز دي. او مجاهدينو او هغے سړي ته هم ورکيدے شي' چه هغۀ حج نۀ وي کړے' بيائے آيت اِنَّمَا الصَّدَقٰتُ لِلْفُقَرَاءِ' آخره پورے تلاوت کۀ' دوي کښې چه چاله ورکړے شي' نو کافي دي' او نبي صلے الله عليه وسلم او فرمائيل' چه خالد خپلے زغرے دَ خدائے په لار کښې وقف کړے دي او ابو لاس نه منقول دي' چه مونږه نبي صلے الله عليه وسلم دَ زکٰوة په اوښ سوارۀ کړو. حج له ئے اوليږلو.

٨٤: ابو اليمان. شعيب. ابو الزناد. اعرج. ابو هريره رضي الله عنه نه روايت دے' رسول الله صلے الله عليه وسلم دَ صدقے حکم او کۀ' نو حضور صلي الله عليه وسلم ته اووئيلے شو' چه ابن جميل. خالد بن وليد. او عباس بن عبدالمطلب زکٰوة نۀ ورکوي. نبي صلے الله عليه وسلم او فرمائيل. ابن جميل انکار نه کوي' خو هغه فقير وو' نو الله او دَ هغۀ رسول صلي الله عليه وسلم مالدار کړلو (هغه ناشکري کوي) ليکن خالد چه تاسو دَ هغۀ نه دَ زکٰوة مطالبه کوئے. خکه چه هغه زغرے او دَ جنګ سامان دَ الله په لار کښې وقف کړے دے' او عباس بن عبدالمطلب دَ رسول الله صلے الله عليه وسلم تره دے' دَ هغۀ زکٰوة په هغۀ صدقه ده' او دغه هومره نور هم. ابن ابي الزناد دَ خپل پلار نه دَ

اَبِی الزِّنَادِ عَنْ اَبِیْهِ وَ قَالَ ابْنُ اِسْحَاقَ عَنْ اَبِی الزِّنَادِ هِیَ عَلَیْهِ وَ مِثْلُهَا مَعَهَا وَ قَالَ ابْنُ جُرَیْجٍ حُدِّثْتُ عَنِ الْاَعْرَجِ مِثْلَهٗ.

دے متابع حدیث روایت کړے دے، چه هي علیها و مثلها و معها (هغه به عباس صدقه او دغه هومره نور هم) ابن جریج اووے، چه ما ته په واسطه د اعرج دغه شان حدیث بیان کړے شو.

۱. په دے حدیث شریف کښې د درے صحابهٔ کرامو بیان دے د "ابن جمیل" په باره کښې ویلے شي. چه اول منافق وو بیائے توبه اوباسله او د مخلص مسلمانانو جماعت کښې شمیر شو. ابن جمیل اول ډیر زیات غریب وو. کله چه نبي اکرم صلي الله علیه وسلم مدینے منورے ته تشریف راوړو. نو رسول الله صلي الله علیه وسلم د هغه د پاره دعا او کړه. د هغے دعا په برکت هغه ډیر لوئے مالدار شو. او داسے یو وخت راغے چه هغه د خپلو څاروو د پاره مدینه منوره کښې اوسیدل پریخودل او په صحرا کښې ډیره شو. مسجد نبوي کښې مونځونه او د جمعے مونځ ته حاضریدل هر څه ترے پاتے شو. کله چه د زکات اخستلو د پاره رسول الله صلي الله علیه وسلم هغه ته سړے ور اولیږه هغه د زکات ورکولو نه انکار او کړو. چه په هغے ترے رسول الله صلي الله علیه وسلم ناراضه شو. او بیائے ترے چرے زکات وانه خستلو د خلفاؤ راشدینو هم هغه سره هم داسے سلوک او کړو. او زکات ئے ترے وانه خستلو رسول الله صلي الله علیه وسلم د ابن جمیل په انکار باندے خپل خفګان ښکاره کړو.

رسول الله صلي الله علیه وسلم د حضرت خالد بن ولید رضي الله عنه او د حضرت عباس رضي الله عنه د زکات ورکولو نه انکار په سلسله کښې د هغوي معقول عذر بیان کړو. چه خالد بن الولید رضي الله عنه خپل ساز و سامان زغرے وسله د الله تعالٰی په لاره کښې ورکړي دي. دا د هغه زکات شو.

د حضرت عباس رضي الله عنه په باره کښې رسول الله صلي الله علیه وسلم او فرمایل. چه هغه د بیت المال نه قرض اخستلے دے. او خپله ګذاره ئے چلولے ده. چه کله د زکات مال راشي نو هغه به د هغه قرض کښې جمعه کولے شي. داسے به د هغه زکات ادا شي. رسول الله صلي الله علیه وسلم به د دوو کالو زکات د حضرت عباس رضي الله عنه نه اخستلو په دے حدیث شریف کښې هم ته اشاره ده.

## بَاب ۵۸: اَلْاِسْتِعْفَافِ عَنِ الْمَسْئَلَةِ.

## بـــاب ۵۸: ســوال نـــه د بـچ کيـدو بيان.

۸۵: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ یُوْسُفَ قَالَ اَخْبَرَنَا مَالِکٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عَطَآءِ بْنِ یَزِیْدَ اللَّیْثِیِّ عَنْ اَبِیْ سَعِیْدِ الْخُدْرِیِّ اَنَّ اُنَاسًا مِّنَ الْاَنْصَارِ سَاَلُوْا رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ

۸۵: عبدالله بن یوسف. مالک. ابن شهاب. عطاء بن یزید لیثي. ابو سعید خدري رضي الله عنه روایت کوي، د انصارو یو جماعت د رسول الله صلي الله علیه وسلم نه څه او غوښتل حضور صلي الله علیه وسلم هغوي له ورکړل، تر دے چه څه حضور صلي الله علیه وسلم سره وو، هغه ختم شو. نو حضور صلي الله

فَاَعْطَاهُمْ ثُمَّ سَاَلُوْهُ فَاَعْطَاهُمْ حَتّٰى نَفِدَ مَا عِنْدَهُ فَقَالَ مَا يَكُوْنُ عِنْدِيْ مِنْ خَيْرٍ فَلَنْ اَدَّخِرَهُ عَنْكُمْ وَ مَنْ يَسْتَعْفِفْ يُعِفَّهُ اللّٰهُ وَ مَنْ يَسْتَغْنِ يُغْنِهِ اللّٰهُ وَ مَنْ يَتَصَبَّرْ يُصَبِّرْهُ اللّٰهُ وَمَا اُعْطِيَ اَحَدٌ عَطَآءً خَيْرًا وَّ اَوْسَعَ مِّنَ الصَّبْرِ.

عليه وسلم او فرمائيل' ماسره چه څۀ هم مال وي' زۀ نے تاسو نه' نه منع کوم. او کوم سړے چه ذ سوال نه بچ کيدل غواړي' نو اللّٰه تعالىٰ به هغه بچ کړي. او کوم سړے چه بے پرواهي او غواړي' نو اللّٰه تعالىٰ به هغه بے پرواه کړي. او کوم سړے چه صبر او کړي' نو اللّٰه تعالىٰ به هغۀ ته صبر ورکړي او هيچا ته ذ صبر نه بهتر او کُشاده نعمت نۀ دے حاصل شوے.

۸۶: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ قَالَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ اَبِي الزِّنَادِ عَنِ الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ وَالَّذِيْ نَفْسِيْ بِيَدِهٖ لَاَنْ يَّاْخُذَ اَحَدُكُمْ حَبْلَهٗ فَيَحْتَطِبَ عَلٰى ظَهْرِهٖ خَيْرٌ لَّهٗ مِنْ اَنْ يَّاْتِيَ رَجُلًا فَيَسْاَلَهٗ اَعْطَاهُ اَوْ مَنَعَهٗ.

۸۶: عبداللّٰه بن يوسف مالک' ابو الزّناد اعرج' ابو هريره نه روايت کوي رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم او فرمائيل' پۀ هغے ذات مِ دِ قسم وي ذ چا پۀ قبضه کښ چه خما ساه ده' تاسو کښ ذ يو سړي رسئ اخستل او په خپله شا باندے لرگي اوچتول ذ دے نه بهتر دي' چه هغه يو سړي له لاړ شي' څه ترے او غواړي' او هغه ورله ورکړي يا ورنه کړي.

۸۷: حَدَّثَنَا مُوْسٰى قَالَ حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ قَالَ حَدَّثَنَا هِشَامٌ عَنْ اَبِيْهِ عَنِ الزُّبَيْرِ بْنِ الْعَوَّامِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَاَنْ يَّاْخُذَ اَحَدُكُمْ حَبْلَهٗ فَيَاْتِيَ بِحُزْمَةِ حَطَبٍ عَلٰى ظَهْرِهٖ فَيَبِيْعَهَا فَيَكُفَّ اللّٰهُ بِهَا وَجْهَهٗ خَيْرٌ لَّهٗ مِنْ اَنْ يَّسْاَلَ النَّاسَ اَعْطَوْهُ اَوْ مَنَعُوْهُ.

۸۷: موسي. وهيب. هشام. عروه. حضرت زبير بن عوام. نبي صلے اللّٰه عليه وسلم نه روايت کوي' تاسو کښ دے څوک رسئ واخلي او ذ لرگو پنډ دے په شا اوچت کړي' نو دا ذ هغۀ ذ پاره ذ دے نه بهتره ده چه ذ خلقو نه اوغواړي او هغوي ورله ورکړي يا ورنه کړي.

۸۸: حَدَّثَنَا عَبْدَانُ قَالَ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ قَالَ اَخْبَرَنَا يُوْنُسُ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عُرْوَةَ ابْنِ الزُّبَيْرِ وَ سَعِيْدِ

۸۸: عبدان. عبداللّٰه. يونس. زهري. عروه بن زبير و سعيد بن مسيب روايت کوي' حکيم بن حزام وائي' ما ذ رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلم نه څۀ او

بْنِ الْمُسَيَّبِ اَنَّ حَكِيْمَ بْنَ حِزَامٍ قَالَ سَاَلْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَعْطَانِيْ ثُمَّ سَاَلْتُهُ فَاَعْطَانِيْ ثُمَّ سَاَلْتُهُ فَاَعْطَانِيْ ثُمَّ قَالَ يَا حَكِيْمُ اِنَّ هٰذَا الْمَالَ خَضِرَةٌ حُلْوَةٌ فَمَنْ اَخَذَهُ بِسَخَاوَةِ نَفْسٍ بُوْرِكَ لَهُ فِيْهِ وَمَنْ اَخَذَهُ بِاِشْرَافِ نَفْسٍ لَمْ يُبَارَكْ لَهُ فِيْهِ وَ كَانَ كَالَّذِيْ يَاْكُلُ وَلَا يَشْبَعُ اَلْيَدُ الْعُلْيَا خَيْرٌ مِّنَ الْيَدِ السُّفْلٰى قَالَ حَكِيْمٌ فَقُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ وَالَّذِيْ بَعَثَكَ بِالْحَقِّ لَا اَرْزَاُ اَحَدًا بَعْدَكَ شَيْئًا حَتّٰى اُفَارِقَ الدُّنْيَا فَكَانَ اَبُوْ بَكْرٍ يَدْعُوْا حَكِيْمًا اِلَى الْعَطَآءِ فَيَاْبٰى اَنْ يَّقْبَلَهُ مِنْهُ ثُمَّ اِنَّ عُمَرَ دَعَاهُ لِيُعْطِيَهُ فَاَبٰى اَنْ يَّقْبَلَ مِنْهُ شَيْئًا فَقَالَ عُمَرُ اِنِّيْ اُشْهِدُكُمْ يَا مَعْشَرَ الْمُسْلِمِيْنَ عَلٰى حَكِيْمٍ اَنِّيْ اَعْرِضُ عَلَيْهِ حَقَّهُ مِنْ هٰذَا الْفَيْءِ فَيَاْبٰى اَنْ يَّاْخُذَهُ فَلَمْ يَرْزَاْ حَكِيْمٌ اَحَدًا مِّنَ النَّاسِ بَعْدَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتّٰى تُوُفِّيَ.

غوښتل، نو حضور صلي الله عليه وسلم راکړل. بيا ما او غوښتل، نو حضور صلي الله عليه وسلم بيا راکړل. بيا ما اوغوښتل، نو حضور صلي الله عليه وسلم بيا راکړل، بيانئے او فرمائيل، اے حکيم دا مال سرسبز شاداب او خوږ دے. څوک چه ئے ذ نفس سخاوت سره واخلي، نو دے کښې برکت اچولے شي. او څوک چه ئے لالچ سره واخلي، نو هغے کښې برکت نشي اچولے. او هغه ذ هغے سړي په شان دے، چه خوري، خو آسوده کيږي نه. ذ پاسه لاس ذ لاندے لاس نه بهتر دے. حکيم اووے. ما عرض اوکړ، يا رسول الله، قسم دے په هغه ذات چه تاسوئے په حقه پيغمبر راليږلے ئے. زۀ به ستاسو نه پس ذ چا نه قبول نه کړم تر دے چه زۀ ذ دُنيا نه لاړ شم. حضرت ابوبکر رضي الله عنه به هغه وظيفه ورکولو ذ پاره غوښتلو، خو هغه به ذ قبلولو نه انکار کولو. بيا عمر رضي الله عنه هغه وظيفه ورکولو ذ پاره راغوښتلو، خو ذ قبلولو نه ئے انکار اوکړ. عمر رضي الله عنه او فرمائيل، اے ذ مسلمانانو ډلے، زۀ تاسو په حکيم ګواه کوم، چه زۀ ذ دے مال نه ذ حکيم حق هغۀ ته پيش کوم، خو هغه ذ آخستلو نه انکار کوي، نو حکيم ذ رسول الله صلي الله عليه وسلم نه پس ذ هيچا نه څۀ قبول نۀ کړل، تر دے چه وفات شولو. (يعني قول او فعل ئے يو شان وو).

۱. دا د صحابه کرامو رضي الله عنهم اجمعين د رسول الله صلي الله عليه وسلم سره د وعدے د پوره کولو يو معمولي مثال دے چه هغوي کومه وعده کړے وه هغه ئے هميشه د پاره سرته او رسوله چه خپل حق به ئے هم د چانه، نه اخستلو نو الله تعالیٰ دے د حضرت حکيم رضي الله عنه او د ټولو صحابه کرامو رضي الله عنهم نه رضا شي.

## بَاب ۵۹: مَنْ اَعْطَاهُ شَيْئًا مِّنْ غَيْرِ مَسْئَلَةٍ وَّلَا اِشْرَافِ نَفْسٍ وَّ

## باب ۵۹: ذ هغے سړي بيان چه الله تعالیٰ هغۀ ته بے سواله او بے طمعے ورکړي (نو اخستل جائز دي) او

فِيۡ اَمۡوَالِهِمۡ حَقٌّ لِلسَّآئِلِ وَالۡمَحۡرُوۡمِ. ذَ هغوي پـه مالونو كښ ذ غوښتونكي او خاموش پاتے كيدونكي حق دے. (چيزے كه بے سوال رسد دادهٔ خداست)

۱. مطلب ئے دا دے چه كه چرے څوک په خوشالئ چا حاجتمند له څه ور كړل. نو هغے حاجتمند ته په اخستلو كښ څه گناه نشته حديث شريف كښ هم داسے بيان دے چه وركونكے ئے په خوشالئ وركړي. او اخستونكي ته پكښ ذلّت محسوس نشي.

۸۹: حَدَّثَنَا يَحۡيَى ابۡنُ بُكَيۡرٍ قَالَ حَدَّثَنَا اللَّيۡثُ عَنۡ يُوۡنُسَ عَنِ الزُّهۡرِيِّ عَنۡ سَالِمٍ اَنَّ عَبۡدَ اللّٰهِ بۡنَ عُمَرَ قَالَ سَمِعۡتُ عُمَرَ يَقُوۡلُ كَانَ رَسُوۡلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ يُعۡطِيۡنِيۡ الۡعَطَآءَ فَاَقُوۡلُ اَعۡطِهٖ مَنۡ هُوَ اَفۡقَرُ اِلَيۡهِ مِنِّيۡ فَقَالَ خُذۡهُ اِذَا جَآءَ كَ مِنۡ هٰذَا الۡمَالِ شَيۡءٌ وَّ اَنۡتَ غَيۡرُ مُشۡرِفٍ وَّلَا سَآئِلٍ فَخُذۡهُ وَ مَالَا فَلَا تُتۡبِعۡهُ نَفۡسَكَ.

۸۹: يحيي بن بكير. ليث. يونس. زهري. سالم. عبدالله بن عمر رضي الله عنه وائي. ما عمر رضي الله عنه نه واوريدل، چه ما ته به رسول الله صلے الله عليه وسلم څه راكول، نو ما به ورته وئيلے، هغے سړي ته ئے وركړے، چه خما نه زيات محتاج وي. حضور صلي الله عليه وسلم به فرمائيل، هر كله چه ذ دے مال نه تا ته څهٔ حاصل شي، داسے حال كښ، چه ستا زړهٔ دے سره نهٔ وي لړيدلے او تهٔ نهٔ غوښتونكے ئے، نو واخله او كه درته حاصل نه شي، نو هغے پسے مهٔ كيږه.

بَاب ۶۰: مَنۡ سَاَلَ النَّاسَ تَكَثُّرًا.

باب ۶۰: ذ هغے سړي بيان چه ذ مال زياتولو ذ پاره د خلقو نه سوال كوي.

۹۰: حَدَّثَنَا يَحۡيَى ابۡنُ بُكَيۡرٍ قَالَ حَدَّثَنَا اللَّيۡثُ عَنۡ عُبَيۡدَ اللّٰهِ بۡنِ اَبِيۡ جَعۡفَرٍ قَالَ سَمِعۡتُ حَمۡزَةَ بۡنَ عَبۡدِ اللّٰهِ بۡنِ عُمَرَ قَالَ سَمِعۡتُ عَبۡدَ اللّٰهِ بۡنَ عُمَرَ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ مَا يَزَالُ الرَّجُلُ يَسۡاَلُ النَّاسَ حَتّٰى يَاۡتِيَ يَوۡمَ الۡقِيٰمَةِ لَيۡسَ فِيۡ وَجۡهِهٖ مُزۡعَةُ لَحۡمٍ وَّ قَالَ اِنَّ الشَّمۡسَ تَدۡنُوۡا يَوۡمَ الۡقِيٰمَةِ حَتّٰى يَبۡلُغَ الۡعَرَقُ

۹۰: يحيي بن بكير. ليث. عبدالله. بن ابي جعفر. حمزه بن عبدالله بن عمر رضي الله عنه. عبدالله بن عمر رضي الله عنه بيان اوكړ، نبي صلي الله عليه وسلم او فرمائيل هميشه يو سړے ذ خلقو نه غوښتل كوي، تر دے چه ذ قيامت پـه ورځ به هغه داسے حال كښ راوستے شي، چه ذ هغه په مخ به ذ غوښے ټكړه نه وي. او، وے فرمائيل، چه نمر به ذ قيامت په ورځ قريب شي. تر دے چه نيم غوږ پورے به خوله (پسينه) راشي. بس هغوي به دغے حال كښ حضرت آدم عليه السلام

نِصْفَ الْاُذُنِ فَبَيْنَمَا هُمْ كَذٰلِكَ اسْتَغَاثُوْا بِاٰدَمَ ثُمَّ بِمُوْسٰى ثُمَّ بِمُحَمَّدٍ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ زَادَ عَبْدُ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنِي اللَّيْثُ قَالَ حَدَّثَنِي ابْنُ اَبِي جَعْفَرٍ فَيَشْفَعُ لِيَقْضِيَ بَيْنَ الْخَلْقِ فَيَمْشِيْ حَتّٰى يَاْخُذَ بِحَلْقَةِ الْبَابِ فَيَوْمَئِذٍ يَّبْعَثُهُ اللّٰهُ مَقَامًا مَّحْمُوْدًا يَّحْمَدُهٗ اَهْلُ الْجَمْعِ كُلُّهُمْ وَ قَالَ مَعَلّٰى حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ عَنِ النُّعْمَانِ بْنِ رَاشِدٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مُسْلِمٍ اَخِي الزُّهْرِيِّ عَنْ حَمْزَةَ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ اَنَّهٗ سَمِعَ ابْنَ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْمَسْئَلَةِ.

ته فریاد یوسي، بیا به حضرت موسیٰ علیه السلام ته، بیا به محمد صلي الله علیه وسلم له لاړ شي. او عبدالله دومره زیات بیان اوکړ، چه ما ته لیث په واسطه د ابن ابي جعفر بیان اوکړ، چه حضور صلي الله علیه وسلم به سفارش کوي، چه د مخلوق مینځ کښې فیصله اوشي. حضور صلي الله علیه وسلم به روان شي، د جنت د دروازے حلقه به اونیسي. په دغه ورځ به الله تعالیٰ حضور صلي الله علیه وسلم په مقام محمود (د سفارش په مقام) اودروي، چه د هغے به ټول خلق تعریف کوي. او معلّی وئیلے دي، چه مونږ ته وهیب په واسطه د نعمان بن راشد. عبدالله بن مسلم (د زهري وروړ) حمزه بن عبدالله نه بیان اوکړ، چه هغه د ابن عمر نه او ابن عمر رضي الله عنه د نبي صلے الله علیه وسلم نه د سوال کولو متعلق روایت اوکړ.

۱. په دے کښې د غوښتونکي (سوال کونکي) ذلّت ته اشاره ده.

۲. د دے مطلب دا دے چه د رسول اکرم صلي الله علیه وسلم مرتبه ډېره اوچته ده هغه به د قیامت په ورځ الله تعالیٰ ته نور هم ډېر نزدے شي. دا د عزت لوئے او لوړ مقام، مقام محمود او شفاعت عظمیٰ دے چه رسول الله صلي الله علیه وسلم ته ورکړے شي د دے تفصیل به وړاندے رازي.

باب ۶۱: قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى لَا يَسْئَلُوْنَ النَّاسَ اِلْحَافًا وَ كَمِ الْغِنٰى وَ قَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَا يَجِدُ غِنًى يُّغْنِيْهِ لِلْفُقَرَآءِ الَّذِيْنَ اُحْصِرُوْا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ لَا يَسْتَطِيْعُوْنَ ضَرْبًا فِي الْاَرْضِ يَحْسَبُهُمُ الْجَاهِلُ اَغْنِيَآءَ مِنَ التَّعَفُّفِ اِلٰى قَوْلِهٖ فَاِنَّ اللّٰهَ بِهٖ

باب ۶۱: د الله تعالیٰ قول، چه خلقو پورے اِنښلي نه، چه ترے څه او غواړي، او د دے بیان، چه څومره مال سره سړے مالدار کیږي، او د نبي صلے الله علیه وسلم فرمائيل، چه دومره مال دے حاصل نه کړي، چه هغه بے پرواه کړي، او د الله تعالیٰ قول، او د هغے فقراؤ د پاره چه د خدائے په لار کښې ګیر شوے دي، او زمکه کښې ګرځیدلے نشي، د سوال نه کولو په سبب نادان خلق هغوي غنیان ګڼړي. آخر آیت: فَاِنَّ اللّٰهَ بِهٖ

عَلِيْمٌ. عليمٌ پورے.

۱. يعني قرآن مجيد كښې راغلي دي چه فقيرانو له صدقه وركړئ. نو فقير چا ته وائي. او د هغه په مقابله كښې به غني چا ته ويلے شي. چه هغه ته زكات وركول روانه وي د دے وضاحت په حديث شريف كښې بيان شويدے چه "چا سره دومره روپئ پيسے نه وي چه د هغه د ژوند ټول ضروريات پوره كولے شي. هغه فقير دے" "او كه مال دولت د ضرورت برابر وي نو هغه غني دے" او هغه له صدقه يا زكات وركول پكار نه دي صدقه وركونكو د پاره دا ضروري ده چه د غوښتونكو' سوالگرو نه زيات د هغے حاجتمندو خيال اوساتي. كوم چه سوال نه كوي خلقو ته لاس نه اوږده وي. هغوي د صدقے يا د زكات زيات حقدار دي. ليكن د خپل عزت خيال ساتي". سوال كونكو د پاره دا ضروري ده چه د سوال نه ځان بچ كړي. او بيا بيا نه غواړي. خلقو پورے نه نخلي. صدقه او خيرات هغه په آسانه هضميږي كوم چه په خوشالئ وركړے شي. اسلام د ژوند د ټولو ضرورتونو' حاجتونو خيال ساتي' او د هر قسم خلقو خيال ساتي. سوالگر جوړيدل اسلام نه خوښوي. اسلام دے ته زيات ترغيب وركړيدے چه هر بنده دے د خپل محنت گټه په خپل كار راولي. او په چا دے نه بوج كيږي. ليكن بل طرفته په احاديثو مباركو كښې دا حكم شته دے چه سوالگري ته څه نه څه وركول پكار دي. چه سوال كونكي ځان سپك كړو. نو نورو بنديانو ته ځان ذليل كول مناسب نه دي. هغے سوالگري سره د اسلامي عزت او شرافت سلوك پكار دي. غريبانانو ته دا تاكيد شويدے چه سوال دے نه كوي. او اميرانو' دولت مندو ته دا حكم دے چه څوک سوال اوكړي هغه محرومه كوئ مه. او چه كوم غريب او حاجت مند د خپل عزت خيال ساتي. او سوال نه كوي. هغوي پسے د هغوي كور ته تلل پكار دي. او هلته ورته د عزت سره خيرات وركول پكار دي.

۱۹۱: حَدَّثَنَا حَجَّاجُ بْنُ مِنْهَالٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ اَخْبَرَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ زِيَادٍ قَالَ سَمِعْتُ اَبَا هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَيْسَ الْمِسْكِيْنُ الَّذِيْ تَرُدُّهُ الْاُكْلَةُ وَالْاُكْلَتَانِ وَلٰكِنِ الْمِسْكِيْنُ الَّذِيْ لَيْسَ لَهٗ غِنًى وَّ يَسْتَحْيِيْ وَلَا يَسْاَلُ النَّاسَ اِلْحَافًا.

۱۹۱: حجاج بن منهال. شعبه. محمد بن زياد. حضرت ابو هريره رضي الله عنه نبي صلے الله عليه وسلم نه روايت كوي' چه حضور صلي الله عليه وسلم او فرمائيل' مسكين هغه نهٔ دے' چه هغه يوه نوړے يا دوه نوړے پسے اخوا ديخوا گرځي. بلكه مسكين هغه دے' چه هغه ته مالداري حاصله نه وي' او هغه شرم محسوسوي' او خلقو پورے اِنخلي نه' چه څهٔ ترے او غواړي.

۱۹۲: حَدَّثَنَا يَعْقُوْبُ بْنُ اِبْرَاهِيْمَ قَالَ حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ بْنُ عُلَيَّةَ قَالَ حَدَّثَنَا خَالِدُ نِ الْحَذَّاءُ عَنِ ابْنِ اَشْوَعَ عَنِ الشَّعْبِيِّ قَالَ حَدَّثَنِيْ

۱۹۲: يعقوب بن ابراهيم. اسمٰعيل بن عُليه. خالد حذاء. ابن اشوع. شعبي. دَ مغيره بن شعبه كاتب (وراد) بيان اوكهٔ چه حضرت معاويه رضي الله عنه' مغيره بن شعبه ته اوليكل'

كَاتِبُ الْمُغِيْرَةِ بْنِ شُعْبَةَ قَالَ كَتَبَ مُعَاوِيَةُ إِلَى الْمُغِيْرَةِ بْنِ شُعْبَةَ أَنِ اكْتُبْ إِلَيَّ بِشَيْءٍ سَمِعْتَهُ مِنَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ إِنَّ اللّٰهَ كَرِهَ لَكُمْ ثَلَاثًا قِيْلَ وَ قَالَ وَ اَضَاعَةَ الْمَالِ وَ كَثْرَةَ السُّؤَالِ.

ما د رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلم نه آوريدلے دي: چه اللّٰه تعالىٰ ستاسو د پاره درے خيزونه ناخوښه کړے دي.

(۱) بے فائدے خبرے.

(۲) د مال ضائع کول.

(۳) ډير سوال کول.

۹۳ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَزَيْرٍ الزُّهْرِيُّ قَالَ حَدَّثَنَا يَعْقُوْبُ ابْنُ إِبْرَاهِيْمَ عَنْ أَبِيْهِ عَنْ صَالِحٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ أَخْبَرَنِيْ عَامِرُ بْنُ شُعْبَةَ عَنْ أَبِيْهِ قَالَ أَعْطَى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَهْطًا وَّ أَنَا جَالِسٌ فِيْهِمْ قَالَ فَتَرَكَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجُلًا فِيْهِمْ لَمْ يُعْطِهِ وَهُوَ أَعْجَبُهُمْ إِلَيَّ فَقُمْتُ إِلَى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ فَسَارَرْتُهُ فَقُلْتُ مَالَكَ عَنْ فُلَانٍ وَاللّٰهِ إِنِّيْ لَأَرَاهُ مُؤْمِنًا قَالَ أَوْ مُسْلِمًا قَالَ فَسَكَتُّ قَلِيْلًا ثُمَّ غَلَبَنِيْ مَا أَعْلَمُ فِيْهِ فَقُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ مَالَكَ عَنْ فُلَانٍ وَاللّٰهِ إِنِّيْ لَأَرَاهُ مُؤْمِنًا قَالَ أَوْ مُسْلِمًا قَالَ فَسَكَتُّ قَلِيْلًا ثُمَّ غَلَبَنِيْ مَا أَعْلَمُ فِيْهِ فَقُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ مَالَكَ عَنْ فُلَانٍ وَاللّٰهِ إِنِّيْ لَأَرَاهُ مُؤْمِنًا قَالَ أَوْ مُسْلِمًا ثَلَاثَ مَرَّاتٍ قَالَ إِنِّيْ لَأُعْطِي الرَّجُلَ وَغَيْرُهُ أَحَبُّ إِلَيَّ مِنْهُ

۹۳ : محمد بن عزيز زهري. يعقوب بن ابراهيم. ابراهيم. صالح. ابن شهاب. عامر بن شعبه د خپل پلار نه روايت کوي، چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم يو جماعت (ډلے) ته مال ورکړ او زۀ ناست ووم، نو رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلم يو سړے پريښودلو، او هغۀ ته ئے هيڅ ورنه کړل، حالانکه هغه سړے خما ډير خوښ وو، بيا زۀ رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلم له ورغلم. او روشان م عرض اوکۀ، څۀ خبره ده چه تاسو صلي اللّٰه عليه وسلم فلانے سړے پريښودلو. واللّٰه، زۀ هغه مؤمن ګنړم. حضور صلي اللّٰه عليه وسلم او فرمائيل: يا مسلمان. زۀ لږ ساعت خاموش پاتے شوم. بيا په ما هغه خيز (احتياج) غالب شو، چه ما ته د هغۀ متعلق معلومه وه، نو ما عرض اوکۀ، يا رسول اللّٰه، څۀ خبره ده: چه تاسو فلانے پريښودلو. حالانکه زۀ هغه مومن ګنړم. حضور صلي اللّٰه عليه وسلم او فرمائيل: يا مسلمان (ئے ګنړے) درے خله دغسے اوشو، بيا حضور صلي اللّٰه عليه وسلم او فرمائيل، زۀ يو سړي ته ورکوم، حالانکه بل سړے ما ته د هغۀ نه زيات محبوب وي. صرف د دے خوف نه ئے ورکوم، چه دوزخ کښ پرمخے پريونه خي او يعقوب د

خَشْيَةَ اَنْ يُكَبَّ فِي النَّارِ عَلٰى وَجْهِهٖ وَ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ صَالِحٍ عَنْ اِسْمٰعِيْلَ بْنِ مُحَمَّدٍ اَنَّهٗ قَالَ سَمِعْتُ اَبِيْ يُحَدِّثُ بِهٰذَا فَقَالَ لِيْ فِيْ حَدِيْثِهٖ فَضَرَبَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِيَدِهٖ فَجَمَعَ بَيْنَ عُنُقِيْ وَ كَتِفِيْ ثُمَّ قَالَ اَقْبِلْ اَيْ سَعْدُ اِنِّيْ لَاُعْطِي الرَّجُلَ قَالَ اَبُوْ عَبْدِ اللّٰهِ فَكُبْكِبُوْا قُلِبُوْا مُكِبًّا اَكَبَّ الرَّجُلُ اِذَا كَانَ فِعْلُهٗ غَيْرَ وَاقِعٍ عَلٰى اَحَدٍ فَاِذَا وَقَعَ الْفِعْلُ قُلْتَ كَبَّهُ اللّٰهُ بِوَجْهِهٖ وَ كَبَبْتُهٗ اَنَا قَالَ اَبُوْ عَبْدِ اللّٰهِ صَالِحُ بْنُ كَيْسَانَ هُوَ اَكْبَرُ مِنَ الزُّهْرِيِّ وَهُوَ قَدْ اَدْرَكَ ابْنَ عُمَرَ.

خپل پلار نه په واسطه ذ صالح اسمٰعيل بن محمد. محمد (بن سعد) دا حديث روايت کوي' او خپل حديث کښې ئې (دومره زيات) ونيلي دي' چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم خپل لاس د سعد ذ اوږې او ګردن په مينځ کښې کينبودلو' او' وې فرمائيل اې سعد' دلته راشه: اِنِّيْ لَاُعْطِيْ (زۀ يو سړي ته عطا کوم' آخر پورې) ابو عبداللّٰه (بخاري) بيان کوي' ذ كُبْكِبُوا معنٰي دي' آړولې کړې شو. مُكِبًّا اَكَبَّ الرَّجُلُ نه ماخوذ دې (لازم استعماليږي' هر کله چه ذ هغې فعل په چا نۀ واقع کيږي او که هغه فعل په چا واقع وي (يعني متعدي وي) نو داسې ونيلې شي: كَبَّهُ اللّٰهُ وَ كَبَبْتُهٗ اَنَا' ابو عبداللّٰه (بخاري) او فرمائيل چه صالح بن کيسان ذ زهري نه مشر دې' او هغۀ ابن عمر رضي اللّٰه عنه سره ملاقات کړې دې.

۱. چه ذ کومو خلقو زړونه واړه وي. که هغوي له څه ورکړې نو په اسلام قائم وي. او کني زر تر زره د اسلام نه انکار کوي. دا حديث شريف مخکښې تير شويدې.

۲. د امام بخاري رحمة اللّٰه عليه دا عادت دې چه کله حديث شريف کښې عربي ناآشنا لفظ استعمال شوي وي نو د هغې حديث پوره کيدو نه روستو د هغې لفظ په آسانه عامه عربيۀ ژبه کښې معنٰي بيانوي. او که د هغې لفظ پشان په قرآن مجيد کښې الفاظ وي يا يو لفظ وي نو د هغې هم تشريح کوي دې حديث شريف کښې ذ يُكَبُّ لفظ راغلې وو قرآن مجيد کښې كُبْكِبُوْا راغلې وۀ د هغې معني ئې دلته بيان کړه بيانې د عربو محاورې هم ذکر کړې.

۹۳ : حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنْ اَبِي الزِّنَادِ عَنِ الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَيْسَ الْمِسْكِيْنُ الَّذِيْ يَطُوْفُ عَلَى النَّاسِ تَرُدُّهُ اللُّقْمَةُ وَاللُّقْمَتَانِ

۹۳ : اسمٰعيل بن عبداللّٰه. مالک. ابو الزناد. اعرج. ابو هريره رضي اللّٰه عنه نه روايت کوي' رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم او فرمائيل. مسکين هغه نۀ دې' چه خلقو پسې ګرځي او ذ يو ې قجورې دوو په اُميد اخوا' ديخوا چکرې وهي' بلکه مسکين هغه دې'

وَالتَّمْرَةُ وَالتَّمْرَتَانِ وَلٰكِنِ الْمِسْكِيْنُ الَّذِيْ لَا يَجِدُ غِنًى يُغْنِيْهِ وَلَا يُفْطَنُ بِهٖ فَيُتَصَدَّقُ عَلَيْهِ وَلَا يَقُوْمُ فَيَسْأَلُ النَّاسَ.

چه هغه ته دومره دولت حاصل نشي چه هغه بې پروا كړي، او د هغه حال هم چا ته معلوم نه وي، چه هغه له خيرات وركړي، او نه هغه سوالونو پسې ګرځي.

۹۵: حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصِ بْنِ غِيَاثٍ قَالَ حَدَّثَنَا أَبِيْ قَالَ حَدَّثَنَا الْأَعْمَشُ قَالَ حَدَّثَنَا أَبُوْ صَالِحٍ عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَأَنْ يَّأْخُذَ أَحَدُكُمْ حَبْلَهُ ثُمَّ يَغْدُوْا أَحْسِبُهُ قَالَ إِلَى الْجَبَلِ فَيَحْتَطِبَ فَيَبِيْعَ فَيَأْكُلَ وَ يَتَصَدَّقَ خَيْرٌ لَهُ مِنْ أَنْ يَّسْأَلَ النَّاسَ.

۹۵: عمرو حفص بن غياث. حفص بن غياث. اعمش. ابو صالح. حضرت ابو هريره رضي الله عنه د نبي صلي الله عليه وسلم نه روايت كړي، حضور صلي الله عليه وسلم او فرمائيل چه تاسو كښې څوک سړے رسۍ واخلي (خما خيال دے چه حضور صلي الله عليه وسلم او فرمائيل) غر طرف ته لاړ شي، لرګي اوچت كړي، هغه خرڅ كړي، او خوري او صدقه او كړي، دے نه بهتر دے، چه چه ګرځي د خلقو نه سوالونه كوي.

## باب ۶۲: خَرْصِ التَّمْرِ.

## باب ۶۲: د قجورو ذ اندازه كولو بيان.

۱ د دے طريقه دا ده. چه كله په باغونو كښې ميوے اولګي. نو د امير المؤمنين د طرفنه به يو صالح ديانتدار افسر باغونو ته لاړ شي. او د هر باغ مالک خان سره ملګرے كړي. او د باغ د ميوو اندازه الګوي (واخلي) چه په دغے باغ كښې به ميوه څومره وي او زكات به پرے څومره فرض كيږي. (دے افسر ته د اسلام په اصطلاح كښې خارص وائي) بيا به دغه افسر خپل دفتر ته لاړشي او د باغ د مالک چه خرڅ خوښه وي. د خپل باغ نه به فائده واخلي او چه كله ميوه پوره پښه شي نو مالک به بيت المال ته زكات او رسوي. دا طريقه اسلام ځكه خوښه كړيده. چه د باغ مالک، خيانت او نكړي او مالک ته به أسانه وي چه بغير د څه پابندۍ هغه د خپل باغ نه فائده واخلي. په دے طريقه كښې د باغ د مالک او د بيت المال دواړو فائده ده. بعضو حضراتو طرفته ددے نسبت كړے دے چه د دوی په نزد دا طريقه درست نه ده. د حنفي فقې كتابونو كښې دا قسمه څه عبارت هم شته ليكن علامه انور شاه كشميري رحمة الله عليه ليكلي دي چه دا نسبت صحيح نه دے. ددے اعتبار د احنافو په نزد هم شته. البته زمونږ په نزد دا "حجت ملزمه" نه دے يعني كه چرے په اندازے لګولو كښې د اسلامي حكومت د سړي او د باغ مالک اختلاف راشي نو په دے صورت كښې د حكومت د سړي خبره منل ضروري نه وي، ولې چه صرف اندازه او تخمينه امر فاصل نشي ګرځولے. د احنافو په نزد دے كښې فائده دومره ده. چه د باغونو مالكانو ته به دا معلومه شي. چه په باغ كښې د بيت المال څومره حق دے. په حديث شريف كښې دا حكم هم شته. چه د اندازے لګولو په وخت مالكانو ته څه پريښودل هم پكار دي. رسول الله صلي الله عليه وسلم (خارصينو) اندازه لګونكو ته فرمايلي وو چه په زكات د ميوو كښې د باغ مالک ته دريمه برخه پريږدی كه

دريمه برخه نشي وركولے نو څلورمه برخه پريخودل پكار دي. خكه چه د باغ معامله داسے وي چه هلته سوالگري د مالكانو خپلوان، ګاونډيان (همسايه ګان) او نور حاجتمند هم رازي. او د باغونو مالكان حاجتمندو ته په خپله هم څه وركوي. نو په دے وجه په زكات د ميوژ كښ دريمه يا څلورمه برخه پريخودل دي. دا هم ښكاره خبره ده. چه د ميوژ لګيدو په وخت چه كومه اندازه لګولے شوے وه. هغه دے پوره صحيح وي. هغے كښ د غلطئ امكان هم شته، موسمي حالاتو كښ هم پكښ فرق رازي غالباً شريعت خكه د دريمے يا څلورمے برخے د زكات د پريخودلو حكم كړے دے چه د باغونو مالكانو ته نقصان اونشي. د امام شافعي رحمة الله په نزد د خارص فيصله حُجت ده.

۹۶ : حَدَّثَنَا سَهْلُ بْنُ بَكَّارٍ قَالَ حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ عَنْ عَمْرِو بْنِ يَحْيٰى عَنْ عَبَّاسٍ نِالسَّاعِدِيِّ عَنْ اَبِيْ حُمَيْدٍ نِالسَّاعِدِيِّ قَالَ غَزَوْنَا مع النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غَزْوَةَ تَبُوْكَ فَلَمَّا جَآءَ وَادِي الْقُرٰى اِذَا امْرَاَةٌ فِيْ حَدِيْقَةٍ لَّهَا فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِاَصْحَابِهٖ اُخْرُصُوْا وَ خَرَصَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَوْسُقٍ فَقَالَ لَهَا اَحْصِيْ مَا يَخْرُجُ مِنْهَا فَلَمَّا اَتَيْنَا تَبُوْكَ قَالَ اَمَا اِنَّهُ سَتَهُبُّ اللَّيْلَةَ رِيْحٌ شَدِيْدَةٌ وَّلَا يَقُوْمَنَّ اَحَدٌ وَّ مَنْ كَانَ مَعَهُ بَعِيْرٌ فَلْيَعْقِلْهُ فَعَقَلْنٰهَا وَ هَبَّتْ رِيْحٌ شَدِيْدَةٌ فَقَامَ رَجُلٌ فَاَلْقَتْهُ بِجَبَلَيْ طَيِّءٍ وَّ اَهْدٰى مَلِكُ اَيْلَةَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَغْلَةً بَيْضَآءَ وَ كَسَاهُ بُرْدًا وَّ كَتَبَ لَهُ بِبَحْرِهِمْ فَلَمَّا اَتٰى بِوَادِي الْقُرٰى قَالَ لِلْمَرْاَةِ كَمْ جَآءَتْ حَدِيْقَتُكِ قَالَتْ

۹۶ : سهل بن بكار. وهيب. عمرو بن يحيٰي. عباس ساعدي. ابو حميد ساعدي نه روايت كوي، چه مونږ جنګ تبوک كښ نبي صلے الله عليه وسلم سره وو. كوم وخت چه حضور صلي الله عليه وسلم وادي القرٰي ته اورسيد، نو يوه ښځه خپل باغ كښ په نظر راغلله. نبي صلے الله عليه وسلم خپل صحابهؤ ته او فرمائيل. ذ دے ذ قجورو اندازه او لږوئے. او رسول الله صلے الله عليه وسلم ذ لس وسق قجورو اندازه او لږوله. بيائے هغے ښځے ته او فرمائيل، چه دے كښ څومره قجورے اوشي، نو هغه ياد ساته. كوم وخت چه مونږ تبوک ته اورسيدو، نو حضور صلي الله عليه وسلم او فرمائيل. نن شپه به زوروره سيلئ چليږي په دے وجه هيڅوک دے ولاړ نه پاتے كيږي، او چا سره چه اوښ وي، نو هغه دے اوتړي. مونږ او تړل، نو ذ شپے سخته سيلئ راغله، يو سړے ولاړ وو، چه هغه ذ طے په غرونو اُو غُرځولے شو. او ذ ايله بادشاه نبي صلے الله عليه وسلم ته يوه سپينه قچره تحفه كښ اوليږله. او يو څادر ئے را اوليږلو، او حضور صلي الله عليه وسلم هغه ذ هغے ملک په حكومت برقرار اوساتلو. بيا كوم وخت چه حضور صلي الله عليه وسلم وادي القرٰي ته اورسيد، نو

عَشَرَةَ اَوْسُقٍ خَرْصَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنِّيْ مُتَعَجِّلٌ اِلَى الْمَدِيْنَةِ فَمَنْ اَرَادَ مِنْكُمْ اَنْ يَتَعَجَّلَ مَعِيَ فَلْيَتَعَجَّلْ فَلَمَّا قَالَ بْنُ بَكَّارٍ كَلِمَةً مَّعْنَاهُ اَشْرَفَ عَلَى الْمَدِيْنَةِ قَالَ هٰذِهٖ طَابَةُ فَلَمَّا رَاٰى اُحُدًا قَالَ هٰذَا جَبَلٌ يُّحِبُّنَا وَ نُحِبُّهُ اَلَا اُخْبِرُكُمْ بِخَيْرِ دُوْرِ الْاَنْصَارِ قَالُوْا بَلٰى دُوْرُ بَنِي النَّجَّارِ ثُمَّ دُوْرُ بَنِيْ عَبْدِ الْاَشْهَلِ ثُمَّ دُوْرُ بَنِيْ سَاعِدَةَ اَوْ دُوْرُ بَنِي الْحَارِثِ بْنِ الْخَزْرَجِ وَ فِيْ كُلِّ دُوْرِ الْاَنْصَارِ يَعْنِيْ خَيْرٌ قَالَ اَبُوْ عَبْدِ اللّٰهِ كُلُّ بُسْتَانٍ عَلَيْهِ حَائِطٌ وَّهُوَ حَدِيْقَةٌ وَّ مَا لَمْ يَكُنْ عَلَيْهِ حَائِطٌ لَا يُقَالُ حَدِيْقَةٌ وَ قَالَ سُلَيْمَانُ بْنُ بِلَالٍ حَدَّثَنِيْ عَمْرٌو ثُمَّ دَارُ بَنِي الْحَارِثِ بْنِ الْخَزْرَجِ ثُمَّ بَنِيْ سَاعِدَةَ وَ قَالَ سُلَيْمَانُ عَنْ سَعْدِ بْنِ سَعِيْدٍ عَنْ عُمَارَةَ بْنِ غَزِيَّةَ عَنْ عَبَّاسٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اُحُدٌ جَبَلٌ يُّحِبُّنَا وَ نُحِبُّهُ.

د هغې ښځې نه ئې تپوس اوکړ، ستا باغ کښې خومره قجورې اوشوې. هغې ښځې اووې. لس وسق، چه رسول الله صلے الله عليه وسلم ئې اندازه لګولې وه. نبي صلے الله عليه وسلم او فرمائيل، زۀ مدينې ته زر تلونکې يم، څوک چه ما سره زر تلل غواړي، نو لاړ دې شي. هر کلمه چه ابن بکاء يو سړي ته اوونيل، چه د هغې دا معنې وه، چه مدينه ښکاره شوه، نو وې فرمائيل، دا طابه ده، چه أحد ئې اوليد، نو وې فرمائيل، دا غر مونږ سره محبت ساتي، او مونږ دۀ سره محبت ساتو، آيا زۀ تاسو ته دَ انصارو کورونو کښې بهتره کورنۍ، او نه ښائم. خلقو اووې، او اوښائې حضور صلي الله عليه وسلم ورته او فرمائيل، دَ بني نجار کورنۍ. بيا دَ بني اشهل کورنۍ. بيا دَ بني ساعده کورنۍ، يا دَ بني حارث بن خزرج کورنۍ. او د انصارو په هر کور کښې ښيګړه ده. ابو عبدالله (بخاري) اووې. هر باغ چه ديوال ترې چاپيره وي، حديقه ده، د کوم باغ چارديواري چه نۀ وي، هغه حديقه نه ده. سليمان بن بلال اووې، ما ته عمرو بيان اوکه، چه بيا دَ بني حارث بن خزرج کورنۍ. بيا دَ بني ساعده کورنۍ، او سليمان په واسطه دَ سعد بن سعيد. عماره بن عزيه. عباس (بن سهل) سهل. نبي صلے الله عليه وسلم نه روايت اوکه، حضور صلي الله عليه وسلم او فرمائيل. أحد غر دې، چه مونږ ئې خوښ يو، او خمونږ هغه خوښ دې.

۱. نبي کريم صلي الله عليه وسلم چه کله تبوک ته اورسيدو. نو د ايله (د ښهر نوم دې چه نن صبا ورته ايلات ويلې شي مشهوره بندر ګاه ده) حاکم يُوحَنا بن رُوبه د رسول الله صلي الله عليه وسلم خدمت کښې حاضر شو. صلحه ئې اوکړه. جزيه ورکول ئې منظور کړل. او رسول الله صلي الله عليه وسلم ته ئې سپينه قچره تحفه کښې ورکړه. په هغه زمانه د خر او د قچر سورلي عيب نشو ګڼړلې.

**باب ۶۳ : اَلْعُشْرِ فِيْمَا يُسْقٰى مِنْ مَّآءِ السَّمَآءِ وَالْمَآءِ الْجَارِيْ وَلَمْ يَرَ عُمَرُ بْنُ عَبْدِ الْعَزِيْزِ فِي الْعَسَلِ شَيْئًا.**

۷۹ : حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ اَبِيْ مَرْيَمَ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ وَهْبٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ يُوْنُسُ بْنُ يَزِيْدَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ سَالِمِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ عَنْ اَبِيْهِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ فِيْمَا سَقَتِ السَّمَآءُ وَالْعُيُوْنُ اَوْ كَانَ عَشَرِيًّا الْعُشْرُ وَمَا سُقِيَ بِالنَّضْحِ نِصْفُ الْعُشْرِ قَالَ اَبُوْ عَبْدِ اللّٰهِ هٰذَا تَفْسِيْرُ الْاَوَّلِ لِاَنَّهٗ لَمْ يُوَقِّتْ فِي الْاَوَّلِ يَعْنِيْ حَدِيْثَ ابْنَ عُمَرَ فِيْمَا سَقَتِ السَّمَآءُ الْعُشْرُ وَ بَيَّنَ فِيْ هٰذَا وَ وَقَّتَ وَالزِّيَادَةُ مَقْبُوْلَةٌ وَالْمُفَسَّرُ يَقْضِيْ عَلَى الْمُبْهَمِ اِذَا رَاوَهُ اَهْلُ الثَّبْتِ كَمَا رَوَى الْفَضْلُ بْنُ عَبَّاسٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمْ يُصَلِّ فِي الْكَعْبَةِ وَ قَالَ بِلَالٌ قَدْ صَلّٰى فَاُخِذَ بِقَوْلِ بِلَالٍ وَ تُرِكَ قَوْلُ الْفَضْلِ.

**باب ۶۳ :** آسماني اوبو او جاري اوبو نه په اوبه كيدونكې زمكه لسمه حصه واجب ده. او عمر بن عبدالعزيز شاتو (شهد و) كښې زكوٰة واجب نهٔ دې گنړلې.

۷۹ : سعيد بن ابي مريم. عبدالله بن وهب. يونس بن زيد. ابن شهاب. سالم بن عبدالله. عبدالله بن عمر رضي الله عنه نبي صلے الله عليه وسلم نه روايت كوي. حضور صلي الله عليه وسلم او فرمائيل. هغې زمكه كښې عُشر دې چه هغه په آسماني يا ډ چينې په اوبو، اوبه كيږي، يا په خپله اوبه كيږي. او كومه زمكه چه په كوهي (كنويں) اوبه كيږي هغې كښې شلمه حصه واجب ده. ابو عبدالله (بخاری) وائي چه دا ډ وړمبي حديث تفسير دې، ځكه چه وړمبي حديث يعني ډ ابن عمر رضي الله عنه حديث كښې ډ دې تعين نهٔ دې شوې، هغه حديث دا دې: فيما سقت السماء العشر، او دې كښې ئې بيان اوكهٔ، او تعين ئې اوكهٔ. او دا زياتې مقبول دې، او د حديث مفسر مبهم فيصله كوي، په شرط ډ دې چه حافظې واله ئې روايت كړي لكه فضل بن عباس بيان اوكهٔ، چه نبي صلے الله عليه وسلم كعبه كښې مونځ اونه كه، او بلال رضي الله عنه بيان اوكه، چه حضور صلي الله عليه وسلم مونځ اوكړلو، نو ډ بلال رضي الله عنه په قول ئې عمل اوكړې شو، او ډ فضل قول پريښودې شو.

١. مطلب ئې دا دې چه د حديث شريف د يو مسئلې ګنړ روايتونه وي. بعضې مختصر وي او بعضو كښې تفصيل وي. نو د مسئلې د پاره به د واضح او تفصيلي روايت نه فائده اخستل وي. او ثابتونكې روايت ته به (منفي) د نفي په روايت ترجيح وركولې شي. د فضل بن عبّاس رضي الله عنهما په روايت كښې دي. چه رسول الله صلي الله عليه وسلم په خانه كعبه كښې دننه مونځ نه وو كړې او د بلال رضي الله عنه په حديث كښې دي چه رسول الله صلي الله عليه وسلم په خانه كعبه كښې دننه مونځ كړې وو. په هغې كښې

زيات واقفيت او پوهه ده. په دې وجه د حضرت بلال رضي الله عنه روايت ته د فضل رضي الله عنه په روايت ترجيح وركړې شوه ليكن د عبدالله بن عمر رضي الله عنهما روايت كښې يو مطلق حكم بيان شويدې په هغې كښې يوه اندازه بيان شويده. دې حديث شريف پسې راتلونكي روايت د ابو سعيد الخدري رضي الله عنه دې په هغې كښې د نصاب پوره بيان دې او د وخت مقررتيا په كښې هم شته. د دې وجې نه فيصله به د ابوسعيد الخدري رضي الله عنه په روايت كښې كيږي. دا يو اجتهادي مسئله ده خمونږ په نزد د دې اصول دا دي. چه عام روايت د خاص روايت مخالف شي. او خاص روايت د شارع (رسول الله صلى الله عليه وسلم + الله تعالىٰ) روستنې وي نو د عام روايت به هغه حصه منسوخه كړي. د كوم بيان چه د هغې عام حكم خلاف، دې خاص حكم كښې موجود وي. او د عام حكم هغه حصه چه د دې خاص خلاف نه دي. هغه حكم به پخپل ځائے محكم پاتې شي. كه د عام او خاص حكم د تاريخ علم نه وي. چه كوم مخكښې دې كوم روستو. او دواړه د يو بل مخالف وي. نو په هغه وخت كښې يو حكم ته ترجيح وركولو د پاره څه صورت پيدا كولې شي. په داسې وخت كښې بنيادي قاعده دا ده. چه هر يو حقدار ته د هغه حق وركړې شي عام ته د عام حق، او خاص ته د خاص حق.

مونږ د امام بخاري رحمة الله عليه ذكر شوې قاعده په هيڅ حال كښې نشو منلې، خمونږ په رائې كښې د عبدالله بن عمر رضي الله عنهما او د ابو سعيد الخدري رضي الله عنه په روايتونو كښې اختلاف او تعارض نشته د ابو سعيد الخدري رضي الله عنه په روايت كښې يو جُدا حكم بيان شويدې او د عبدالله بن عمر رضي الله عنهما په روايت كښې جُدا حكم دې بهرحال، د دواړو رواياتو په حكم كښې د يو بل سره تعارض يا مخالفت نشته. د عبدالله بن عمر رضي الله عنهما په حديث كښې چه كوم حكم بيان شويدې هغه په خپل اصل صورت باندې باقي پاتې دې چه د عُشر په مزكه كښې د احنافو په نزد لسمه حصه وركول به شاتو كښې واجب ده. زيلعي د احنافو د مسلک مطابق يو مرسل حديث نقل كړيدې د ابو سعيد الخدري رضي الله عنه د روايت هغه حصه چه امام بخاري رحمة الله عليه ئې د عبدالله بن عمر رضي الله عنهما د روايت تفسير مني پدې كښې اصل مسئله د زكات د نصاب بيان شويده. د امام شافعي د امام مالک او د امام احمد بن حنبل رحمة الله عليهم پشان د امام بُخاري مسلک دا دې چه دغلې او د ميوو د زكات نصاب پنځه وسقه دې د دې ټولو امامانو دليل د ابو سعيد الخدري رضي الله عنه د روايت دې چه په هغې كښې په وضاحت او صراحت سره پنځه وسقه د زكات نصاب دې.

ليكن د امام ابو حنيفه رحمة الله عليه په نزد د مزكې پيداوار كه كم وي كه زيات د نصاب د شرط نه بغير لسمه حصه ده. كه پنځه وسقه وي او كه نه وي. ابن عربي رحمة الله عليه اګرچه په مالكي مذهب دې هغه دا منلې ده چه په بنكاره ډول قرآن مجيد د امام ابو حنيفه رحمة الله عليه د مسلک تائيد كوي. خليفه عمر بن عبدالعزيز رحمة الله عليه هم پدې عمل كوو. په سلف صالحينو كښې حضرت مجاهد علقمه نخعي او امام محمد بن شهاب الزهري رحمة الله عليه هم دا مسلک وو. د امام ابو حنيفه رحمة الله عليه د مسلک د تائيد په حقله يو واضح صحيح حديث شريف موجود دې.

مَا اَخْرَجَتْهُ الْاَرْضُ فَفِيْهِ الْعُشْرُ　　د مزكے د هر قسم پيداوار كښ لسمه حصه (عُشر) زكوة دے اوس د ابو سعيد الخُدري رضي الله عنه د روايت كړي حديث وضاحت داسے دے چه په دے كښ د مزكے د پيداوار زكات بيان شوے دے د "هدايه" مصنف دا ليكلي دي چه پدے حديث شريف كښ د تجارت د زكات بيان هم شته خكه چه عربو خلقو به دغلے وغيره تجارت په وَسَق سره كولو. په هغه زمانه كښ د وسق قيمت څلويښت درهمه وو. د پنځو وَسقو قيمت د دوه سوه دِرهَمه (پاكستاني شپږ زره روپئ) شو. او په دوه سوه دِرهَمه زكات فرض كيږي. نو پدے حديث كښ دَ مزكے د پيداوار بيان نه دے بلكے د تجارتي مال د زكات بيان دے علامه شاه انور شاه كشميري رحمة الله عليه پدے مسئله كښ ډير اوږد او جامع تحقيق كړيدي علماء حضرات دِ په فيض الباري دريم جلد صفحات ۴۵ تر ۴۸ پورے مطالعه كړي. شاه صاحب په ډير قوي دلائلو، چه د هغے نه انكار نشي كيدے، دا ثابته كړيده چه د دے حديث شريف تعلق "باب عَرَبيه" سره دے د هغے لنډ مطلب دا دے عُشر او زكات د بيت المال حق دے ليكن د عربو د خاص ماحول دا طريقه وه چه د مزكے د پيداوار د پنځو وَسقونه دَ كم پيداوار زكات به بيت المال ته وركولے نشو. بلكے مالک به پخپله په غريبانانو تقسيمولو. اصل دا دے چه زكات يا عشر به بيت المال كښ جَمع كيدلو. او د پنځو وسقونه د كم زكات په مالک تقسيمول وُ خكه ئے د بيت المال د پاره د زكات د نيشتوالي حكم اوشو. دا حكم داسے دے "لكه" په سبزيانو كښ زكات نشته" مطلب ئے دا دے چه بيت المال به ئے د زكات اخستلو مطالبه نه كوي. بلكے د سبزيانو زكات به د سبزيانو په شكل كښ مالک خپله تقسيموي. خكه چه سبزي ډير زر خرابيږي.

**بَابُ ۶۴ : لَيْسَ فِيْمَا دُوْنَ خَمْسَةِ اَوْسُقٍ صَدَقَةٌ.**

باب ۶۴ : پنځه وسق قجورو نه كم كښ زكوٰة نشته د مولانا اشرف علي تهانوي د تحقيق مطابق يو وَسَق شپيته (۶۰) صاعه دے او يو صاع د رسول الله صلي الله عليه وسلم د زمانے دوه سوه درے اوبا تولے دے (۲۷۳)

**۹۸ : حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ قَالَ حَدَّثَنَا يَحْيٰى قَالَ حَدَّثَنَا مَالِكٌ قَالَ حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ ابْنِ اَبِيْ صَعْصَعَةَ عَنْ اَبِيْ سَعِيْدِ نِالْخُدْرِيِّ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَيْسَ فِيْمَا اَقَلُّ مِنْ خَمْسَةِ اَوْسُقٍ صَدَقَةٌ وَّلَا فِيْ اَقَلَّ مِنْ خَمْسٍ مِّنَ الْاِبِلِ الذَّوْدِ صَدَقَةٌ وَّلَا فِيْ اَقَلَّ مِنْ خَمْسِ اَوَاقٍ مِّنَ الْوَرِقِ**

۹۸ : مسدد. يحيي. مالک. محمد بن عبدالله بن عبدالرحمن بن ابي صعصعه. حضرت ابو سعيد خدريؓ نه روايت كوي، نبي صلے الله عليه وسلم او فرمائيل، دَ پنځه وسق نه كم كښ زكوة نشته، او نه پنځه اوبنانو نه كم كښ زكوة شته، او نه پنځه اوقيه سپينو زرو نه كم كښ زكوة

صَدَقَةٌ.

شته.

باب ٦٥ : اَخْذِ صَدَقَةِ التَّمْرِ عِنْدَ صِرَامِ النَّخْلِ وَ هَلْ يُتْرَكُ الصَّبِيُّ فَيَمَسُّ تَمْرَا الصَّدَقَةِ.

باب ٦٥ : ذ میوے شوکولو په وخت د زکوٰة اخستلو بیان، او آیا جائز دي، چه بچے پریښودلے شي چه ذ صدقے د قجورو نه اخلي.

۹۹ : حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ الْحَسَنِ الْاَسَدِيُّ قَالَ حَدَّثَنَا اَبِيُّ قَالَ حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ طَهْمَانَ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ زِيَادٍ عَنْ اَبِيُّ هُرَيْرَةَ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّے اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُؤْتَى بِالتَّمْرِ عِنْدَ صِرَامِ النَّخْلِ فَيَجِيْءُ هٰذَا بِتَمْرِهٖ وَ هٰذَا مِنْ تَمْرِهٖ حَتّٰى يَصِيْرُ عِنْدَهٗ كَوْمًا مِّنْ تَمْرٍ فَجَعَلَ الْحَسَنُ وَالْحُسَيْنَ يَلْعَبَانِ بِذٰلِكَ التَّمْرِ فَاَخَذَ اَحَدُهُمَا تَمْرَةً فَجَعَلَهٗ فِيْ فِيْهِ فَنَظَرَ اِلَيْهِ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّے اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَخْرَجَهَا مِنْ فِيْهَا فَقَالَ اَمَا عَلِمْتَ اَنَّ اٰلَ مُحَمَّدٍ لَّا يَاْكُلُوْنَ الصَّدَقَةَ.

۹۹ : عمر بن محمد بن حسن اسدي. محمد بن حسن اسدي. ابراهيم بن طهمان. محمد بن زياد. حضرت ابو هريره رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي. رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلم ته به ذ قجورو په وخت قجورے راوړلے شوے. كله به يو سړي خپلے قجورے راوړلے كله به بل سړي راوړے، تر دے چه ذ قجورو ډهير به او لړيدلو. حسن رضي اللّٰه عنه او حسين رضي اللّٰه عنه دغے قجورو سره لوبے شروع كړے. هغوي كښې يو كس يوه قجوره واخسته او خپله خوله كښې ئے واچوله. رسول اللّٰه صلى اللّٰه عليه وسلم چه اوليدل، نو قجوره ئے ذ هغهٔ ذ خولے نه راوښكله. او ورته ئے او فرمائيل، تا ته معلومه نهٔ ده، چه آل محمد صلى اللّٰه عليه وسلم صدقه نهٔ خوري. (يعني سيدانو له صدقه اخستل او خوړل نشته).

باب ٦٦ : مَنْ بَاعَ ثِمَارَهٗ اَوْ نَخْلَهٗ اَوْ اَرْضَهٗ اَوْ زَرْعَهٗ وَقَدْ وَجَبَ فِيْهِ الْعُشْرُ اَوِ الصَّدَقَةُ فَاَدَّى الزَّكٰوةَ مِنْ غَيْرِهٖ اَوْ بَاعَ ثِمَارَهٗ وَ لَمْ تَجِبْ فِيْهِ الصَّدَقَةُ وَ قَوْلُ النَّبِيِّ صَلَّے اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَبِيْعُوا الثَّمَرَةَ حَتّٰى يَبْدُوَ صَلَاحُهَا فَلَمْ يَحْظُرِ الْبَيْعَ بَعْدَ الصَّلَاحِ عَلٰے اَحَدٍ وَلَمْ يَخُصَّ مَنْ

باب ٦٦ : چا چه ميوه، قجوره، زمكه يا فصل خرڅ كهٔ، او هغے كښې عُشر يا زكوٰة واجب وو، نو اُوس ذ نور مال نه دے زكوٰة وركړي يا ميوه دے خرڅه كړي، چه هغے كښې صدقه واجب نهٔ وه. او ذ نبي صلى اللّٰه عليه وسلم فرمائيل، چه ميوه هغه وخته پورے مهٔ خرڅوئے څو پورے چه د هغے نفع مند كيدل ظاهر نشي، ذ نفع مند كيدو نه پس حضور صلي اللّٰه عليه وسلم منع نهٔ ده فرمائيلے او نهٔ ئے ذ چا تخصيص فرمائيلے دے،

وَجَبَتْ عَلَيْهِ الزَّكٰوةُ مِمَّنْ لَمْ تَجِبْ. زكوٰة پرې واجب شوې وي يا نه وي واجب شوې.

۱. مطلب ئې دا دې چه رسول الله صلي الله عليه وسلم د هغې څيزونو د خرڅولو نه منعه کړې ده. چه د کومو نه فائده اخستلې نشي. مثلا د کچه ميوو نه چه په اونو بُوټو کښې وي د هغې د خرڅولو اجازت ئې ورکړې ندې. په مذهب حنفي کښې د دې حکم نه دا صورت (مُستثني) جُدا کړې دې چه پدې شرط سره ميوه خرڅه شي. چه بغير د څه انتظار نه د اونو بُوټو نه به اوشکولې شي. نو کچه ميوه داسې خرڅيدې شي. که بنديان ئې خوړلې نشي. نو څاروي ئې خوړلې شي. او که کچه ميوه په فوري ډول شوکول شرط نه وي نو بيا د کچه ميوې خرڅول ناروا دي.

۱۰۰ : حَدَّثَنَا حَجَّاجٌ قَالَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ دِيْنَارٍ قَالَ سَمِعْتُ ابْنَ عُمَرَ يَقُوْلُ نَهَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ بَيْعِ الثَّمَرِ حَتّٰى يَبْدُوَ صَلَاحُهَا وَ كَانَ اِذَا سُئِلَ عَنْ صَلَاحِهَا قَالَ حَتّٰى تَذْهَبَ عَاهَتُهُ.

۱۰۰ : حجاج. شعبه. عبدالله بن دينار. ابن عمر رضي الله عنه نه روايت کوي، چه نبي صلى الله عليه وسلم دَ (کچه) ميوې خرڅولو نه منع فرمائيلې ده، تر دې چه دَ هغې فائده مند کيدل ظاهر شي. او کله چه به ترې تپوس اوشو، چه دَ فائده مند کيدو نه څۀ مراد دې، نو وئيل به ئې چه دَ آفت نه په آمان شي.

۱۰۱ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ قَالَ حَدَّثَنِيْ خَالِدُ بْنُ يَزِيْدَ عَنْ عَطَاءِ بْنِ اَبِيْ رَبَاحٍ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ نَهَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ بَيْعِ الثِّمَارِ حَتّٰى يَبْدُوَ صَلَاحُهَا.

۱۰۱ : عبدالله بن يوسف. ليث. خالد بن يزيد. عطاء بن ابي رباح. جابر بن عبدالله نه روايت کوي، هغۀ اووې، نبي صلى الله عليه وسلم دَ ميوو خرڅولو نه منع فرمائيلې ده، څو پورې چه پوخوالې ئې ظاهر نشي.

۱۰۲ : حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ عَنْ مَالِكٍ عَنْ حُمَيْدٍ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى عَنْ بَيْعِ الثِّمَارِ حَتّٰى تُزْهِيَ قَالَ حَتّٰى تَحْمَارَّ.

۱۰۲ : قُتيبه. مالک. حميد. انس بن مالک رضي الله عنه نه روايت کوي، رسول الله صلى الله عليه وسلم دَ (کچه) ميوو خرڅولو نه منع فرمائيلې ده، تر دې چه هغه رنګينې شي، يعني سُرخي پرې راشي.

باب ۷۶ : هَلْ يَشْتَرِيْ صَدَقَتَهُ وَلَا بَأْسَ اَنْ يَّشْتَرِيْ صَدَقَةَ غَيْرِهٖ لِاَنَّ

باب ۷۶ : آيا دَ خپلې صدقې مال په بيع آخستې شي. او دَ غيرو صدقه اخستلو کښې هيڅ حرج نشته،

النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّمَا نَهٰى الْمُتَصَدِّقَ خَاصَّةً عَنِ الشِّرٰى وَلَمْ يَنْهَ غَيْرَهُ.

خکه چه نبي صلی الله علیه وسلم صدقه ور کونکي د آخستو نه منع فرمائیلے دے. او نور ئے منع نه دي فرمائیلي.

۱. خکه چه پدے صورت کښې صدقه اخستونکے به صدقه ور کونکي سره څه نه څه رعایت (لحاظ) به کوي. او د خپل اصلي قیمت نه به ئے په کم پرځے خرخ کړي د دے وجے په دے حدیث شریف کښې ترے منعه شویده نو مناسب او مستحب دا دي چه خپل صدقه شوے څیز په بیعه واپس وانخلي.

۱۰۳: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ قَالَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ سَالِمٍ اَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عُمَرَ كَانَ يُحَدِّثُ اَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ تَصَدَّقَ بِفَرَسٍ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ فَوَجَدَهُ يُبَاعُ فَاَرَادَ اَنْ يَّشْتَرِيَهُ ثُمَّ اَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاسْتَاْمَرَهُ فَقَالَ لَا تَعُدْ فِيْ صَدَقَتِكَ فَبِذٰلِكَ كَانَ ابْنُ عُمَرَ لَا يَتْرُكُ اَنْ يَّبْتَاعَ شَيْئًا تَصَدَّقَ بِهِ اِلَّا جَعَلَهُ صَدَقَةً.

۱۰۳: یحیي بن بکیر. لیث. عقیل. ابن شهاب. سالم. عبدالله بن عمر بیان کوي، چه عمر بن خطاب رضي الله عنه یو اس د الله په لار کښې خیرات کړ، بیائے اولیدل، چه هغه خرڅیږي. نو د هغے اخستل ئے او غوښتل. بیا نبي صلي الله علیه وسلم له راغے، او د حضور صلي الله علیه وسلم نه ئے اجازت او غوښتلو، نو حضور صلي الله علیه وسلم ورته او فرمائیل، خپل خیرات دوباره واپس مهٔ اخله. په دے وجه چه کله به حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنه خیرات کړے څیز آخستلو، نو هغه به ئے صدقه کولو.

۱۰۴: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ قَالَ اَخْبَرَنَا مَالِكُ ابْنُ اَنَسٍ عَنْ زَيْدِ ابْنِ اَسْلَمَ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ سَمِعْتُ عُمَرَ يَقُوْلُ حَمَلْتُ عَلٰى فَرَسٍ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ فَاَضَاعَهُ الَّذِيْ كَانَ عِنْدَهُ فَاَرَدْتُّ اَنْ اَشْتَرِيَهُ وَ ظَنَنْتُ اَنَّهُ يَبِيْعُهُ بِرُخْصٍ فَسَاَلْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ لَا تَشْتَرِيَهُ وَلَا تَعُدْ

۱۰۴: عبدالله بن یوسف. مالک بن انس. زید بن اسلم. اسلم روایت کوي، ما د حضرت عمر رضي الله عنه نه واوریدل فرمائي چه ما د الله په لار کښې یو اس ور کړلو. کوم سړي سره چه هغه اس وو، هغه، هغه خراب کړلو. ما د هغے آخستل اُو غوښتل. او ما خیال اوکړ، چه آرزان به ئے را باندے خرڅ کړي. ما د رسول الله صلے الله علیه وسلم نه تپوس اوکړ، نو حضور صلي الله علیه وسلم راته او فرمائیل، دا مهٔ آخله. او خپله صدقه واپس مهٔ آخله، اګر که هغه درله په یو درهم

فِيُ صَدَقَتِكَ وَ اِنْ اَعْطَاكَهُ بِدِرُهَمٍ فَاِنَّ الْعَآئِدَ فِيُ صَدَقَتِهٖ كَالْعَائِدِ فِيُ قَيْئِهٖ.

درکوي، ځکه چه صدقه ورکړي او بيائے واپس اخلي، نو هغه د هغے سړي په شان دے، چه خپل قے (واپس) او خوري.

## بـاب ۶۸ : مَا يُذْكَرُ فِي الصَّدَقَةِ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اٰلِهٖ.

## باب ۶۸ : نبي صلے اللّٰه عليه وسلم او د هغوي ذ آل ذ پاره چه ذ صدقے متعلق کوم روايتونه نقل دي.

۱۰۵ : حَدَّثَنَا اٰدَمُ قَالَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بُنُ زِيَادٍ قَالَ سَمِعْتُ اَبَا هُرَيْرَةَ قَالَ اَخَذَ الْحَسَنُ بُنُ عَلِيٍّ تَمْرَةً مِنْ تَمْرِ الصَّدَقَةِ فَجَعَلَهَا فِيُ فِيُهِ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كِخٍ كِخٍ لِيَطْرَحَهَا ثُمَّ قَالَ اَمَا شَعَرْتَ اَنَّا لَا نَاْكُلُ الصَّدَقَةَ.

۱۰۵ : آدم. شعبه. محمد بن زياد روايت کوي، ما ذ حضرت ابو هريره رضي اللّٰه عنه نه واوريدل چه حسن بن علي رضي اللّٰه عنه ذ صدقے ذ قجورو نه يو قجوره واخسته او خوله کښې ئے واچوله، نو نبي صلے اللّٰه عليه وسلم او فرمائيل. تهو، تهو، چه هغه او غورځوي. بيائے او فرمائيل، آيا تا ته نۀ ده معلومه، چه مونږ صدقه نۀ خورو.

۱. د نبي کريم صلي اللّٰه عليه وسلم په آل کښې، عباس، حمزه، حارث، جعفر، او حضرت علي رضي اللّٰه عنهم ټول شامل دي. د دوي اولاد هم پکښې شامل دي دوي ته نفلي خير خيرات ورکولے شي. فرض (زکات) واجب (نذرونه، منختے کفارے) صدقے نشي ورکولے نه دوي خپل فرض واجب صدقے خپلو کښې يو بل ته ورکولے نشي.

## باب ۶۹ : اَلصَّدَقَةِ عَلٰى مَوَالِيَ اَزْوَاجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

## بـاب ۶۹ : د نبي صلے اللّٰه عليه وسلم ذ بيبيانو غلامانو ته ذ صدقے ورکولو بيان.

۱۰۶ : حَدَّثَنَا سَعِيُدُ بُنُ عُفَيْرٍ قَالَ حَدَّثَنَا ابُنُ وَهْبٍ عَنْ يُوْنُسَ عَنِ ابُنِ شِهَابٍ قَالَ حَدَّثَنِيُ عُبَيْدُ اللّٰهِ بُنُ عَبْدِ اللّٰهِ عَنِ ابُنِ عَبَّاسٍ قَالَ وَجَدَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ

۱۰۶ : سعيد بن عفير. ابن وهب. يونس. ابن شهاب. عبيد اللّٰه بن عبداللّٰه. ابن عباس رضي اللّٰه عنه نه روايت کوي، نبي صلے اللّٰه عليه وسلم يوه مړه چيلئے بيامنده، چه د بي بي ميمونے رضي اللّٰه عنه وينزے ته خيرات کښې

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَاةً مَّيْتَةً اُعْطِيَتْهَا مَوْلَاةٌ لِّمَيْمُوْنَةَ مِنَ الصَّدَقَةِ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَلَّا اِنْتَفَعْتُمْ بِجِلْدِهَا قَالُوْا اِنَّهَا مَيْتَةٌ قَالَ اِنَّمَا حَرُمَ اَكْلُهَا.

ور کړے شوے وه. نبي صلے اللّٰه عليه وسلم او فرمائيل: ذ دے ذ څرمن نه تاسو خلقو فائده ولے وانه خسته. خلقو عرض او کړ، هغه خو مُرداره وه، حضور ورته او فرمائيل: حرام خو ذ مُردارے خوړل دي. (د څرمنے استعمال ئے بنهٔ دے).

۱. اسلام کښ د مړ خاروي د څرمنے نه فائده اخستلے شي چه کله رنګ ور کړے شي.

۱۰۷: حَدَّثَنَا اٰدَمُ قَالَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ حَدَّثَنَا الْحَكَمُ عَنْ اِبْرَاهِيْمَ عَنِ الْاَسْوَدِ عَنْ عَآئِشَةَ اَنَّهَا اَرَادَتْ اَنْ يَّشْتَرِيَ بَرِيْرَةَ لِلْعِتْقِ وَ اَرَادَ مَوَالِيْهَا اَنْ يَّشْتَرِطُوْا وَلَاءَ هَا فَذَكَرَتْ عَآئِشَةُ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ لَهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِشْتَرِيْهَا فَاِنَّمَا الْوَلَآءُ لِمَنْ اَعْتَقَ قَالَتْ وَ اُتِيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِلَحْمٍ فَقُلْتُ هٰذَا مَا تُصُدِّقَ بِهٖ عَلٰى بَرِيْرَةَ فَقَالَ هُوَ لَهَا صَدَقَةٌ وَلَنَا هَدِيَّةٌ.

۱۰۷: آدم. شعبه. حکم. ابراهيم. اسود. بي بي عائشے رضي اللّٰه عنه نه روايت کوي، چه هغے بريره د آزادولو دَ پاره آخستل او غوښتل. او ذ هغے مالک دا شرط او تړلو. چه ذ هغے وِلاء به ذ هغے خلقو وي. بي بي عائشے رضي اللّٰه عنه دا خبره نبي صلے اللّٰه عليه وسلم ته او کړه، نو نبي صلے اللّٰه عليه وسلم هغے ته او فرمائيل: ولاء خو ذ هغے چا وي، چه آزاده ئے کړي. بي بي عائشے رضي اللّٰه عنه اووے. نبي صلے اللّٰه عليه وسلم له غوښه راوړے شوه، نو ما اووے، دا خو هغه ده، چه بريره ته صدقه کښ ور کړے شوے ده. حضور صلي اللّٰه عليه وسلم او فرمائيل هغے د پاره صدقه ده. او مونږ ذ پاره هديه ده.

ف: ولاء: د آزاد غلام يا وينځے ميراث ته وئيلے شي.

## بَابٌ ۷۰: اِذَا تَحَوَّلَتِ الصَّدَقَةُ.

## باب ۷۰: هر کله چه صدقه محتاج ته حواله کړے شي.

۱۰۸: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنَا يَزِيْدُ بْنُ زُرَيْعٍ قَالَ حَدَّثَنَا خَالِدٌ عَنْ حَفْصَةَ بِنْتِ سِيْرِيْنَ عَنْ اُمِّ عَطِيَّةَ الْاَنْصَارِيَّةِ قَالَتْ دَخَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلٰى

۱۰۸: علي بن عبداللّٰه. يزيد بن زريع. خالد. حفصه بنت سيرين. بي بي أم عطيه انصاريه نه روايت کوي: نبي صلے اللّٰه عليه وسلم بي بي عائشے له ورغے او ورته ئے او فرمائيل: تا سره د خوراک څهٔ شته. بي بي عائشے رضي اللّٰه عنه ورته اووے: هيڅ نشته، سوا ذ هغے

عَـآئِشَةَ فَـقَـالَ هَـلْ عِنْدَكُمْ شَـيْءٌ فَـقَـالَتْ لَا اِلَّا شَـيْءٌ بَـعَثَـتْ بِـهٖ اِلَيْنَا نُـسَـيْـبَةُ مِنَ الشَّاةِ الَّتِيْ بَعَثْتَ لَهَا مِنَ الصَّدَقَةِ فَقَالَ اِنَّهَا قَدْ بَلَغَتْ مَحِلَّهَا.

غوښې نه چه نسيبه رضى الله عنه د خپلې چيلئ نه مونږ ته رالېږلې دہ. چه هغې ته صدقه کښې ورکړې شوې وه. نو حضور صلي الله عليه وسلم ورته او فرمائيل هغه خو خپل مقام ته اورسيده.

۱۰۹ : حَـدَّثَـنَـا يَـحْيَـى بْـنُ مُـوْسٰى قَالَ حَدَّثَنَا وَكِيْعٌ قَالَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَـنْ قَتَادَةَ عَنْ اَنَسٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّـى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اُتِيَ بِلَحْمٍ تُصُدِّقَ بِهٖ عَلٰى بَرِيْرَةَ فَقَالَ هُوَ عَلَيْهَا صَدَقَةٌ وَّهُـوَ لَنَا هَدِيَّةٌ وَ قَالَ اَبُوْ دَاوُدَ اَنْبَـاَنَـا شُعْبَةُ عَنْ قَتَادَةَ سَمِعَ اَنَسًا عَنِ النَّبِيِّ صَلَّـى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۱۰۹ : يحيي بن موسى. وكيع. شعبه. قتاده. حضرت انس نه روايت کوي. رسول الله صلى الله عليه وسلم ته غوښه راوړې شوه. چه بريره ته صدقه کښې ورکړې شوې وه. حضور صلي الله عليه وسلم او فرمائيل. هغه د هغې د پاره صدقه ده. او مونږ د پاره هديه ده. او ابو ذر اووې. مونږ ته شعبه په واسطه د قتاده انس خبر راکړ. چه هغه د نبي صلى الله عليه وسلم نه واوريدل.

١. مخکښې دا مسئله په وضاحت سره بيان شويده چه د زکات يا د خيرات ورکولو مقصد دا دې چه حاجتمند د هغې پوره مالک جوړ شي. او هغه ئې داسې پوره مالک وي څرنګ چه زکات ورکونکې يا خيرات کونکې ئې پوره مالک وو. زکات اخستونکې. خيرات اخستونکې څه چه د هغه خوښه وي هغه ورسره کولې شي خرڅولې ئې شي خيرات کولې شي چا له ئې تحفه/ هديه کښې ورکولې شي په دې کښې هيڅ ګناه او کراهت نشته.

باب ۱۷: اَخْذِ الصَّدَقَةِ مِنَ الْاَغْنِيَـآءِ وَ تُـرَدَّ فِـى الْـفُـقَرَآءِ حَيْثُ كَانُوْا.

باب ۱۷: مالدارو نه د صدقې اخستو او فقيرانو له د ورکولو بيان. هر ځائې چه وي.

۱۱۰ : حَـدَّثَـنَـا مُحَمَّدُ بْـنُ مُـقَـاتِلٍ قَـالَ اَخْبَـرَنَـا عَبْدُ اللّٰهِ قَالَ اَخْبَـرَنَـا زَكَـرِيَّـآءُ ابْنُ اِسْحٰقَ عَنْ يَـحْيَـى بْـنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ صَيْفِيٍّ عَنْ اَبِـيْ مَعْبَدٍ مَّوْلَى بْنِ عَبَّاسٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَـالَ قَـالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَـلَيْـهِ وَسَـلَّـمَ لِمُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ

۱۱۰ : محمد بن مقاتل. عبدالله ذکريا بن اسحاق. يحيي بن عبدالله بن صيفي. ابو معبد (د ابن عباس غلام) ابن عباس رضي الله عنه نه روايت کوي. د هغه بيان دې. رسول الله صلي الله عليه وسلم معاذ بن جبل ته. کوم وخت چه هغه ئې يمن ته ليږلو. او فرمائيل. ته داسې قوم له ځې چه اهل کتاب دي. کوم وخت چه

حِينَ بَعَثَهُ إِلَى الْيَمَنِ إِنَّكَ سَتَأْتِي قَوْمَ أَهْلِ الْكِتَابِ فَإِذَا جِئْتَهُمْ فَادْعُهُمْ إِلَى أَنْ يَشْهَدُوا أَنْ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ وَ أَنَّ مُحَمَّدًا رَّسُولُ اللّٰهِ فَإِنْ هُمْ أَطَاعُوا لَكَ بِذٰلِكَ فَأَخْبِرْهُمْ أَنَّ اللّٰهَ قَدِ افْتَرَضَ عَلَيْهِمْ خَمْسَ صَلَوَاتٍ فِي كُلِّ يَوْمٍ وَ لَيْلَةٍ فَإِنْ هُمْ أَطَاعُوا لَكَ بِذٰلِكَ فَأَخْبِرْهُمْ أَنَّ اللّٰهَ قَدِ افْتَرَضَ عَلَيْهِمْ صَدَقَةً تُؤْخَذُ مِنْ أَغْنِيَاءِ هِمْ وَ تُرَدُّ عَلَى فُقَرَآئِهِمْ فَإِنْ هُمْ أَطَاعُوا لَكَ بِذٰلِكَ فَإِيَّاكَ وَ كَرَائِمَ أَمْوَالِهِمْ وَاتَّقِ دَعْوَةَ الْمَظْلُومِ فَإِنَّهُ لَيْسَ بَيْنَهُ وَ بَيْنَ اللّٰهِ حِجَابٌ.

هغوی ته اورسې نو هغوی له دعوت ورکه چه دې خبرې شهادت اوکړی چه د الله نه سوا بل معبود نشته او دا چه محمد (صلی الله علیه وسلم) د الله رسول دې که هغوی دا اومنی نو هغوی ته دا اوښایه چه الله په هغوی شپه او ورځ کښې پنځه مونځونه فرض کړی دی که هغوی دا هم او منی نو هغوی ته اوښایه چه الله په هغوی زکوة فرض کړې دې چه د هغوی د مالدارو نه به اخستې شي او د هغوی په فقیرانو به تقسیمولې شي که هغوی دا هم منظور کړی نو د هغوی د ښه مال اخستو نه خان ساته او د مظلومانو د بدذعا نه بچ اوسه خکه چه د مظلوم د بدذعا او د الله مینځ کښې هیڅ حجاب (پرده) نه وي.

## بَـابٌ ۷۴۲: صَلٰوةِ الْإِمَامِ وَ دُعَآئِهِ بِصَاحِبِ الصَّدَقَةِ وَ قَوْلِهِ تَعَالٰى خُذْ مِنْ أَمْوَالِهِمْ صَدَقَةً تُطَهِّرُهُمْ وَ تُزَكِّيهِمْ بِهَا وَصَلِّ عَلَيْهِمْ الْآيَةَ.

## باب ۷۴۲: د امام د صدقه ورکونکي د پاره د خیر او برکت د ذعا کولو بیان او د الله تعالي قول چه د هغوي د مالونو نه زکوة واخله او هغه پاک پاکیزه کړه او هغوي د پاره ذعائې خیر کوه.

۱۱۱: حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ قَالَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَمْرِو بْنِ مُرَّةَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ أَبِي أَوْفَى قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أَتَاهُ قَوْمٌ بِصَدَقَتِهِمْ قَالَ اللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰى اٰلِ فُلَانٍ فَأَتَاهُ أَبِي بِصَدَقَتِهِ فَقَالَ اللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰى اٰلِ أَبِي أَوْفَى.

۱۱۱: حفص بن عمر. شعبه. عمرو بن مره. عبدالله بن ابي اوفي نه روايت کوي. د هغه بيان دې چه نبي صلی الله علیه وسلم له به یو جماعت صدقه راوړله نو حضور صلي الله علیه وسلم به فرمانيل. اې الله د فلاني په آل باندې خپل رحمت نازل کړې. خما پلار صدقه راوړه نو حضور صلي الله علیه وسلم او فرمانيل. اې الله. د ابي اوفي په آل باندې رحمت نازل کړې.

## بَـابٌ ۷۴۳: مَا يُسْتَخْرَجُ مِنَ الْبَحْرِ وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ

## باب ۷۴۳: د هغې مال بيان چه د سمندر نه راوبنکلې شي. ابن عباس رضي الله عنه او فرمانيل.

لَيْسَ الْعَنْبَرُ بِرِكَازٍ هُوَ شَيْءٌ دَسَرَهُ الْبَحْرُ وَ قَالَ الْحَسَنُ فِي الْعَنْبَرِ وَ اللُّؤْلُؤِ الْخُمُسُ وَ اِنَّمَا جَعَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الرِّكَازِ الْخُمُسَ لَيْسَ فِي الَّذِيْ يُصَابُ فِي الْمَآءِ وَ قَالَ اللَّيْثُ حَدَّثَنِيْ جَعْفَرُ بْنُ رَبِيْعَةَ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ هُرْمُزَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّ رَجُلًا مِّنْ بَنِيْ اِسْرَآءِيْلَ سَاَلَ بَعْضَ بَنِيْ اِسْرَآءِيْلَ اَنْ يُّسْلِفَهُ اَلْفَ دِيْنَارٍ فَدَفَعَهَا اِلَيْهِ فَخَرَجَ فِي الْبَحْرِ فَلَمْ يَجِدْ مَرْكَبًا فَاَخَذَ خَشْبَةً فَنَقَرَهَا فَاَدْخَلَ فِيْهَا اَلْفَ دِيْنَارٍ فَرَمٰى بِهَا فِي الْبَحْرِ فَخَرَجَ الرَّجُلُ الَّذِيْ كَانَ اَسْلَفَهُ فَاِذَا بِالْخَشْبَةِ فَاَخَذَ لِاَهْلِهٖ حَطَبًا فَذَكَرَ الْحَدِيْثَ فَلَمَّا نَشَرَهَا وَجَدَ الْمَالَ.

عنبر رکاز نه دګے. (رکاز: هغه مال چه الله پے زمکه کښې پیدا کړي. زمکه کښې ښخه یا پټه خزانه) دا خو داسے څیز دے چه سمندر ئے غورځوي. حسن اووے چه عنبر او ملغلرو کښې پنځمه حصه ده. او نبی صلے اللّٰه علیه وسلم رکاز کښې پنځمه حصه مقرر کړے ده. او رکاز هغه نه دے چه اوبو کښې بیامندے شي. او لیث بیان اوکه چه ماته جعفر بن ربیعه په واسطه د عبدالرحمن بن هرمز. ابو هریره رضي اللّٰه عنه. د نبي صلے اللّٰه علیه وسلم نه روایت اوکه چه بني اسرائیلو کښې یو سړي د بل نه زر دیناره قرض او غوښتل نو هغه ورکړل. بیا هغه سمندر طرف ته لاړ خو څه کشتئ ئے بیا نه منده هغه یو لرګے واخست هغه ئے او څیرلو هغے کښې ئے زر دیناره بند کړل او سمندر کښې ئے او غورځولو او هغه سړے چه ده له قرض ورکړے وو. اتفاق سره را ووتلو د هغه نظر په هغے لرګي پریوتلو نو هغه لرګے ئے خشاک د پاره کور ته راوړلو. بیائے پوره حدیث بیان که چه هغه لرګے ئے او څیرلو نو خپل مال ئے په کښې بیا مندلو.

**ف**: دینار = اشرفي. د سرو زرو یوه سکه. (۲) درهم. د درے نیم ماشو وزن. د سپینو زرو یوه سکه چه د دینار سلمه حصه وي. روپئے.

۱. امام بخاري رحمة اللّٰه علیه دا واقعه دلته خکه ذکر کړیده. چه دے کښې د دریاب ذکر دے. خمونږ د احنافو په نزد د دریاب نه چه څه را اوباسلے شي. په هغے کښې پنځمه حصه بیت المال له ورکول نشته خمونږ په نزد د ارکاز نه دے "په زمکه خخ (دفن) کړے شوي څیز" یا کان (معدنیات) چه په زمکه کښې د اللّٰه تعالیٰ په حکم پیدا کیږي هغے ته "رکاز" وائي.

## باب ۷۴: فِي الرِّكَازِ الْخُمُسُ

وَ قَالَ مَالِكٌ وَّ ابْنُ اِدْرِيْسَ الرِّكَازُ دِفْنُ الْجَاهِلِيَّةِ فِيْ قَلِيْلِهٖ

## باب ۷۴: رکاز کښې پنځمه حصه ده.

مالک او ابن ادریس اووے چه رکاز د جاهلیت ښخه خزانه ده کمه وي که زیاته. دے کښې پنځمه حصه ده. او معدن

وَ كَثِيْرِهِ الْخُمُسُ وَ لَيْسَ الْمَعْدِنُ بِرِكَازٍ وَ قَدْ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْمَعْدِنِ جُبَارٌ وَ فِي الرِّكَازِ الْخُمُسُ وَ اَخَذَ عُمَرُ بْنُ عَبْدِ الْعَزِيْزِ مِنَ الْمَعَادِنِ مِنْ كُلِّ مِائَتَيْنِ خَمْسَةً وَ قَالَ الْحَسَنُ مَا كَانَ مِنْ رِكَازٍ فِيْ اَرْضِ الْحَرْبِ فَفِيْهِ الْخُمُسُ وَمَا كَانَ مِنْ اَرْضِ السِّلْمِ فَفِيْهِ الزَّكٰوةُ وَ اِنْ وَجَدْتُ لُقَطَةً فِيْ اَرْضِ الْعَدُوِّ فَعَرِّفْهَا فَاِنْ كَانَتْ مِنَ الْعَدُوِّ فَفِيْهَا الْخُمُسُ وَ قَالَ بَعْضُ النَّاسِ الْمَعْدِنُ رِكَازٌ مِثْلُ دَفْنِ الْجَاهِلِيَّةِ لِاَنَّهُ يُقَالُ اَرْكَزَ الْمَعْدِنُ اِذَا اُخْرِجَ مِنْهُ شَيْءٌ قِيْلَ لَهُ فَقَدْ يُقَالُ لِمَنْ وُهِبَ لَهُ الشَّيْءُ اَوْ رَبِحَ رِبْحًا كَثِيْرًا اَوْ كَثُرَ ثَمَرُهُ اَرْكَزْتَ ثُمَّ نَاقَضَ وَ قَالَ لَا بَأْسَ اَنْ يَكْتُمَهُ وَلَا يُؤَدِّيَ الْخُمُسَ.

(د رنګ. کان) رکاز نه دے. او نبي صلے اللّٰه علیه وسلم د معدن متعلق او فرمانیل: دے کښې چه او غرخیږي او مړ شي نو د تاوان مستحق نه دے. او رکاز کښې پنخمه حصه ده. او عمر بن عبدالعزیز معدن کښې هر دوه سوو درهمو کښې پنځمه درهمه (څلویښتمه حصه) اخستله. او حسن اووے: هغه رکاز چه دارالحرب کښې وي هغې کښې پنخمه حصه ده. او که دارالاسلام کښې وي نو هغې کښې زکوٰة واجب دے. او که د دشمن ملک کښې څه څیز غرخیدلے بیامومي نو د هغې دے اعلان اوکړي. که د دشمن مال وي نو هغې کښې پنځمه حصه واجب ده. او بعضے خلقو ونیلے دي. چه معدن د جاهلیت د دفینه (ښخه خزانه) په شان رکاز دے، ځکه چه ارکز المعدن ویلے شي. هر کله چه د دے نه څه څیز اوځي. نو د هغوي جواب دا دے. که یو بسړي ته یو څیز ورکړے شي یا هغه ته ډیره زیاته نفع حاصله شي یا میوه ئے زیاته اوشي نو هغه وخت ونیلے شي "اَرْکَزْتَ" بیا هغوي خپله د دے خلاف اوکړل. او وے ونیل: چه د معدن پټولو کښې څه حرج نشته. او پنخمه حصه ادا نه کړي.

ف: دارالحرب: هغه ملک چه په کښې د کافرو حکومت وي او مسلمانان د خپل مذهبي فرائضو نه منع کولے شي. (۲) دارالاسلام: هغه ملک چه په کښې اسلامي حکومت وي.

۱. معدنیات (کانونه) یا زمکه کښې چه کومے خزانے ښخیے شوے وي چه کله بهر را اوېستلے شي دا د احنافو په نزد رکاز دے چه کله دغه دفن شوے خزانے د جاهلیت د زمانے وي یا د کافرو وي. نو پدے کښې پنځمه حصه بیت المال کښې جمعه کولے شي. د مسلمانانو خزانه چه زمکه کښې وي. او کله بهر را اوباسلے شي نو د هغے د مالک تلاش به کولے شي او هغه ته به حواله کولے شي. ځومره چه تلاش او تحقیق ممکن وي. کني بیا به بیت المال کښې د امانت په طور کیخودے شي.

۲. مطلب ئے دا دے که چرے یو مزدور په کان کښې په مزدورئ په کار اولګولے شو. او د کان د څه

حادثې په وجه هغه مزدور مړ شو. نو د هغې کان مالک باندې تاوان نشته (دیت به نه ورکوي) امام بخاري رحمة الله عليه د احنافو د مسلک خلاف دا بیانول غواړي. چه رسول الله صلي الله عليه وسلم د "کان" (معدنيات) او د رکاز جدا جدا حکم بیان کړیدې د دینه معلومیږي چه دا دواړه جدا جدا څیزونه دي. نو پنځمه حصه یواځې رکاز کښې ورکول واجب دي او په "کان" کښې پنځمه حصه ورکول واجب ندي امام بخاري رحمة الله عليه صرف (یواځې) د جاهلیت د کفر د زمانې خښې (خخ) شوې خزانې ته رکاز وائي. هغې کښې پنځمه حصه او په "کان" صرف د زکات په دول څلویښتمه حصه به ورکولې شي.

احناف حضرات دا وائي. چه حدیث شریف کښې دوه مختلف حکمونه بیان شویدي. د زمکې نه خزانه را ایستلو کښې د چاد مړ کیدو سوال نه پیدا کیږي. اصلي خبره دا ده. چه "کان" کښې مزدوران کار کوي او کله کله په حادثه کښې مزدور کان کښې مړ شي. نو آیا مالک به د تاوان (د دیت) ورکولو ذمه وار وي؟ دا قدرتي پوښتنه (سوال) وه رسول الله صلي الله عليه وسلم د دې جواب ورکړو.

دویمه مسئله داوه. چه پنځمه حصه کومو څیزونو نه ورکول واجب دي؟ د دې جواب ورکړې شو "رکاز" کښې. اوس دا معلومه ول دي چه "رکاز" څه ته وائي. عرب خلق خپله ژبه عربی کښې "رکاز" څه ته وائي. د عربو په نزد "رکاز" "کان" او خښه (خخه) کړې شوې خزانې دواړو ته وائي. نو مونږ احناف هم وایو چه رکاز دواړو ته ویلې وشي او په دواړو کښې پنځمه حصه د بیت المال حق دې. د دې مسئلې بنیادي دلیل دا دې چه مال غنیمت کښې پنځمه حصه د بیت المال ده. او د جاهلیت د زمانې خخه شوې خزانه هم یو قسم مال غنیمت دې پدې مال کښې هم د بیت المال پنځمه حصه واجب شوه احناف پدې مسئله کښې دا هم زیاتوي چه د معدنیات (د کانونو) هم دا حکم دې. د اسلام نه وړاندې حکومتونه د کافرو وو. اوس چه مسلمانان د کافرو په علاقو زمکو حکومتونو باندې قبضه او کړي. نو د هغوی خښې خزانې د هغوي کانونه" د مال غنیمت په حکم کښې رازي. او د اسلامی حکومتونو قائمیدو نه روستو په سوونو زرګونو کالونو نه پس هم که د جاهلیت د کافرانه دور په زمکه کښې خخې خزانې بیا موندې شي. نو په هغې کښې څرنګ د هغې پنځمه حصه بیت المال ته ورکیږي. داسې د کانونو پنځمه حصه هم د بیت المال حق دې لیکن د امام شافعي رحمة الله عليه پشان امام بخاري رحمة الله عليه هم په کانونو کښې پنځمه جصه د بیت المال حق نه مني. یواځې خخو شوو خزانو کښې پنځمه حصه د بیت المال حق مني.

۳. دا اول ځائې دې چه امام بخاري رحمة الله عليه پدې کتاب کښې "د بعض الناس" لفظ استعمال کړې دې. د بعض الناس (بعضې خلقو) نه مراد کله امام بخاري أبان بن عیسي رحمة الله عليه وي کله امام شافعي رحمة الله عليه کله امام محمد بن الحسن الشيباني رحمة الله عليه او کله امام اعظم ابو حنیفه رضي الله عنه وي. بعضې خلق دا خیال کوي. چه د بعض الناس لفظ سره امام بخاري رحمة الله عليه د دغې لویو لویو عالمانو چه د هغوي درجه مرتبه په روایت حدیث کښې د بخاري نه ډیره اوچته ده. د هغوي سپکوالې کوي. دا بې بنیاده خبره ده. بلکې بعضې ځایونو د بعض الناس سره چه د کوم امام مسلک نقل کوي هغه پخپله هم خوښوي. او په اکثرو ځایونو کښې د هغې همې بیسه مخالفت کوي. پدې ځائې کښې د بعض الناس نه مراد امام المسلمین امام اعظم ابو حنیفه رحمة الله عليه دې ځکه چه دا لفظ امام بخاري رحمة الله عليه د امام اعظم رضي الله عنه د مسلک ذکر کولو نه پس نقل کړې دې. امام بخاری رحمة

الله عليه دا بنودل غواړي. چه د كومو خلقو دا مسلک دے چه هغوي معدنيات (كانونو) ته ركاز واني. د هغوي حيال دليل د عربو محاوره ده. چه عرب خلق "كان" ته په حپله ژبه عربي كښې ركاز واني. (احاديث به عربي ژبه كښې دي پيدے وجه د عربو د محاورو به حيال ساتلي شي خكه يے امام ابو حنيفه رحمة الله عليه حيال ساتلے دے) كه د مسئلے بنياد د عربو په محاوره شي. نو بيا چه كومه كومه موقعه كښې عرب خو خير ته "ركاز" واني نو د هغے ټولو پنخمه حصه به بيت المال ته ورکيږي خكه چه حديث شريف كښې حكم دے "چه د ركاز پنخمه حصه به بيت المال ته وركيږي" امام عيني د دے دا جواب امام بخاري له وركړے دے چه د عربو محاوره يواخے خمونږ دليل نه دے بلكے نور روايات هم شته. او بل عرب خلق ركز المعدن نه واني كوم چه امام بخاري ذكر كړيدے بلكے عرب خلق اركز الرّجلُ المعدن واني چه د هغے معني دا ده "چه د سرو زرو خبسته د هغے سړي په ملكيت كښې راغله" (عيني جلد څلورم صفحه ٣٥٣)

د امام بخاري رحمة الله عليه دويم اعتراض دا دے "چه كوم خلق معدنياتو (كانونو) كښې پنځمه حصه د بيت المال حق مني. "كه چرے "كان" پټ خانے كښې وي هغه څوک پټ کړي او بيت المال ته پنځمه حصه ورنكړي او پخان يے اولګوي نو دغه خلق دا صورت هم روا مني" ليكن څرنګ چه امام بخاري رحمة الله عليه واني داسے احناف نه واني. احناف داسے واني چه كله كوم بنده "كان" پهحيال كور وغيره كښې بيامومي. او بيت المال له پنځمه حصه وركول غواړي د هغے حصے هغه بنده پخپله د فقر مسكينئ په وجه حقدار وي. او د هغے بنده دا يقين وي. كه چرے هغه دا پنځمه حصه بيت المال ته وركړي هغه ته پكښې حصه نه وركيږي. نو هغه په داسے صورت كښې پنځمه حصه په خان لګولے شي

د احنافو د فقهي په كتابونو كښې دا مسئله واضحه ده. "چه هغه مالونه چه بيت المال ته وركولے شي او د هغے مصرف (د لګيدو خانے) معلوم وي. كه چا ته دا معلومه وي. چه دغه بنده پخپله د هغے مصرف دے او دغه مالونه كه بيت المال ته وركړے شي. نو دغے حقدار ته پكښې حصه نه وركيږي. نو هغه دغه مالونه پخان لګولے شي.

١١٢: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ يُوْسُفَ قَالَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ سَعِيْدِ ابْنِ الْمُسَيَّبِ وَ عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّے اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الْعَجْمَآءُ جُبَارٌ وَالْبِئْرُ جُبَارٌ وَّالْمَعْدَنُ جُبَارٌ وَّ فِي الرِّكَازِ الْخُمُسُ.

١١٢: عبدالله بن يوسف. مالک. ابن شهاب. سعيد بن مسيب او ابو سلمه بن عبدالرحمن. حضرت ابو هريره رضي الله عنه نه روايت كوي: هغه اووے رسول الله صلے الله عليه وسلم فرمايلے دي. د چوپايه چيچنړے كول معاف دي. كه كوهي (كوئيں) كښې او غرخيږي او مړ شي نو هغه هم معاف دے (يعني د تاوان مستحق نه دي) او كان كښې مړه كيدل معاف دي. او ركاز كښې پنځمه حصه ده.

باب ٧٥: قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى وَالْعٰمِلِيْنَ عَلَيْهَا وَ مُحَاسَبَةِ

باب ٧٥: د الله تعالي قول و العملين عليها او د صدقه وصول كونكي نه د امام د محاسبے كولو

الْمُصَدِّقِيْنَ مَعَ الْاِمَامِ.

بيان.

۱۱۳ : حَدَّثَنَا يُوْسُفُ بْنُ مُوْسٰى قَالَ حَدَّثَنَا اَبُوْ اُسَامَةَ قَالَ حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ اَبِيْ حُمَيْدٍ السَّاعِدِيِّ قَالَ اسْتَعْمَلَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجُلًا مِّنَ الْاَسْدِ عَلٰى صَدَقَاتِ بَنِيْ سُلَيْمٍ يُدْعٰى ابْنَ اللُّتْبِيَّةِ فَلَمَّا جَاۤءَ حَاسَبَهُ.

۱۱۳ : يوسف بن موسي. ابو اسامه. هشام بن عروه. عروه. ابو حميد ساعدي نه روايت كوي د هغه بيان دے چه رسول اللّه صلي اللّه عليه وسلم د قبيلهٔ اسد يو سړے چه هغه ته به ئے ابن اللتبية ويلے د بني سليم په زكوة مقرر كړلو كوم وخت چه هغه واپس راغے نو حضور صلي اللّه عليه وسلم د هغه نه حساب واخست.

## بَابُ ۶۷: اِسْتِعْمَالِ اِبِلِ الصَّدَقَةِ وَ اَلْبَانِهَا لِاَبْنَاۤءِ السَّبِيْلِ.

## باب ۶۷: د صدقے اوښه او د هغے د پيو نه د مسافرو د كار آخستو بيان.

۱۱۴ : حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ قَالَ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ شُعْبَةَ قَالَ حَدَّثَنَا قَتَادَةُ عَنْ اَنَسٍ اَنَّ اُنَاسًا مِّنْ عُرَيْنَةَ اجْتَوَوُا الْمَدِيْنَةَ فَرَخَّصَ لَهُمْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنْ يَّاْتُوْا اِبِلَ الصَّدَقَةِ فَيَشْرَبُوْا مِنْ اَلْبَانِهَا وَ اَبْوَالِهَا فَقَتَلُوا الرَّاعِيَ وَاسْتَاقُوا الذَّوْدَ فَاَرْسَلَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاُتِيَ بِهِمْ فَقَطَعَ اَيْدِيَهُمْ وَ اَرْجُلَهُمْ وَ سَمَرَ اَعْيُنَهُمْ وَ تَرَكَهُمْ بِالْحَرَّةِ يَعَضُّوْنَ الْحِجَارَةَ تَابَعَهُ اَبُوْ قِلَابَةَ وَ ثَابِتٌ وَ حُمَيْدٌ عَنْ اَنَسٍ.

۱۱۴ : مسدد. يحيي. شعبه. قتاده. انس رضي اللّه عنه نه روايت كوي چه د عرينه څه خلق مدينے ته راغلل د دے ځائے آب و هوا په هغے خلقو راست رانغله نو رسول اللّه صلي اللّه عليه وسلم هغے خلقو له اجازت ورکړ چه د صدقے اوښو له لاړ شي او د هغے پئے او متيازے څکي. نو هغے خلقو ساروان او وژلو او اوښان ئے او تښتول. رسول اللّه صلي اللّه عليه وسلم هغوي پسے سړي واستول نو هغه خلق راونيولے شو حضور صلي اللّه عليه وسلم د هغوي لاس پښے پريكړل او د هغوي سترګو كښې ئے ګرم سلايان او وهل. او په كاڼو يجه زمكه ئے او غورځول. هغے خلقو به كاڼي چيچل. ابو قلابه او ثابت او حميد هم د انس رضي اللّه عنه نه د دے متابع حديث روايت كړ.

۱. دا د اسلام د ابتدائي (د اولے) زمانے واقعه ده. بيا رسول اللّه صلي اللّه عليه وسلم داسے سزا هيڅ مجرم له ور كړے نده اګر چه هغه به هر څومره زيات مجرم وو.

بـاب ۷۷: وَسْمِ الْإِمَامِ إِبِلَ الصَّدَقَةِ بِيَدِهِ.

باب ۷۷: د صدقے په اوښانو د امام خپل لاس سره د نښے لګولو بیان.

۱۱۵ : حَدَّثَنَـا إِبْرَاهِيْمُ بْنُ الْمُنْذِرِ قَالَ حَدَّثَنَا الْوَلِيْدُ قَالَ حَدَّثَنَا أَبُوْ عَمْرٍو الْأَوْزَاعِيُّ قَالَ حَدَّثَنِيْ إِسْحٰقُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ أَبِيْ طَلْحَةَ قَالَ حَدَّثَنِيْ أَنَسُ بْنُ مَالِكٍ قَالَ غَدَوْتُ إِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِعَبْدِ اللّٰهِ بْنِ أَبِيْ طَلْحَةَ لِيُحَنِّكَهُ فَوَافَيْتُهُ فِيْ يَدِهِ الْمِيْسَمُ يَسِمُ إِبِلَ الصَّدَقَةِ.

۱۱۵ : ابراهیم بن منذر: ولید. ابو عمرو اوزاعي. اسحاق بن عبدالله بن ابي طلحه. انس بن مالک رضي الله عنه نه روایت کوي' د هغه بیان دے چه ما رسول الله صلی الله علیه وسلم ته عبدالله بن طلحه بوتلو' چه قجوره او جوي' او د هغه خوله کښې ئې واچوي' نو ما حضور صلي الله علیه وسلم داسے حال کښې بیاموند' چه د حضور صلي الله علیه وسلم لاس کښې د داغلو آله وه' چه هغے سره حضور صلي الله علیه وسلم د زکوٰة اوښانو له داغ ورکولو.

بـاب ۷۸: فَرْضِ صَدَقَةِ الْفِطْرِ وَرَأَى أَبُو الْعَالِيَةِ وَعَطَاءٌ وَّابْنُ سِيْرِيْنَ صَدَقَةَ الْفِطْرِ فَرِيْضَةً.

باب ۷۸: د صدقه فطر د فرض کیدو بیان. ابو العالیه. عطاء او ابن سیرین صدقه فطر فرض ګنړلے دہ.

۱. د امام شافعي رحمة الله علیه پشان امام بخاري رحمة الله علیه سر سایه (صدقة فطر) فرض ګنړی. د امام ابو حنیفه رحمة الله علیه په نزد واجب ده. د امام شافعي رحمة الله علیه په نزد د سرسایے د فرض کیدو د پاره نصاب شرط ندے لیکن د امام ابو حنیفه رحمة الله علیه نصاب شرط دے (چه د زکات د نصاب برابر یا زیات' ورسره مال موجود وه). د زکات او د سرسایے په نصاب کښې لږ فرق دا دے. چه زکات په هغه مال کښې وي. چه هغه د زیاتیدو قابل وی. د سرسایے دا شرط نشته. دا فرق د امامانو رحمة الله علیهم د اجتهاد په وجه دے په ظاهره دا حدیث شریف د امام شافعي رحمة الله علیه د مسلک تائید کړی. لیکن امام ابو حنیفه رحمة الله علیه فرماني. چه په احادیثو کښې سرسایے ته زکات فطر ویلے شویدي. پدے وجه به دلته د زکات د شرطونو خیال ساتلے شي.

۱۱۶ : حَدَّثَنَـا يَحْيَى بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ السَّكَنِ قَالَ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَهْضَمٍ قَالَ حَدَّثَنَا إِسْمٰعِيْلُ هُوَ ابْنُ جَعْفَرٍ عَنْ عُمَرَ بْنِ نَافِعٍ عَنْ أَبِيْهِ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ فَرَضَ رَسُوْلُ

۱۱۶ : یحیی بن محمد بن سکن. محمد بن جهضم. اسمعیل بن جعفر. عمر بن نافع. نافع. ابن عمر رضي الله عنه نه روایت کوي: چه رسول الله صلي الله علیه وسلم صدقه فطر یو

اللّٰه صلى اللّٰه عليه وسلم زكوٰة الفطر صاعا من تمر أو صاعا من شعير على العبد والحر والذكر والأنثى والصغير والكبير من المسلمين وأمر بها أن يؤدى قبل خروج الناس إلى الصلوٰة.

صاع قجورې يا يو صاع وربشې چه غلام او آزاد، سړي او ښځې، وړوکي او لوئې (غرض دا چه) هر مسلمان باندې فرض کړې ده. او حکم ئې کړې دې چه مانځه ته وتلو نه مخکښې دا ادا کړي.

ف: صاع: د دوه سوه خلور ديرش تولې يو وزن يا پيمانه ده.

**باب ۷۹: صدقة الفطر على العبد وغيره من المسلمين.**

**باب ۷۹: ذ صدقه فطر په آزاد او غلام ټولو مسلمانانو باندې ذ واجب کيدو بيان.**

۱۱۷: حدثنا عبد اللّٰه بن يوسف قال أخبرنا مالك عن نافع عن ابن عمر أن رسول اللّٰه صلى اللّٰه عليه وسلم فرض زكوٰة الفطر صاعا من تمر أو صاعا من شعير على كل حر أو عبد ذكر أو أنثى من المسلمين.

۱۱۷: عبداللّٰه بن يوسف. مالک. نافع. حضرت ابن عمر رضي اللّٰه عنه نه روايت کوي. ذ هغهٔ بيان دې چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم يو صاع قجورې يا يو صاع وربشې، هر آزاد يا غلام هر سړي او ښځې او وړوکي يا لوئې باندې صدقه فطر فرض کړې ده.

**باب ۸۰: صدقة الفطر صاع من شعير.**

**باب ۸۰: صدقه فطر کښې دې وربشې يو صاع ورکړي.**

۱. دا مخکښې تير شويدي. چه يو صاع د اتيا تولو سير باندې د درې نيم سيرو برابر ده.

۱۱۸: حدثنا قبيصة بن عقبة قال حدثنا سفيان عن زيد بن أسلم عن عياض بن عبد اللّٰه عن أبي سعيد ن الخدري قال كنا نطعم الصدقة صاعا من شعير.

۱۱۸: قبيصه بن عقبه. سفيان. زيد بن اسلم. عياض بن عبداللّٰه. ابو سعيد خدري رضي اللّٰه عنه نه روايت کوي، ذ هغهٔ بيان دې، چه مونږ به صدقه کښې يو صاع وربشې ذ خوراک ذ پاره ورکولې.

**باب ۸۱: صدقة الفطر صاع من طعام.**

**باب ۸۱: صدقه فطر کښې دې يو صاع خوراک (طعام) ورکړي.**

۱. د ابو سعید الخدري رضي الله عنه پخپله دا بیان دے چه په دغه زمانه کښې د خوراک د پاره اوربشے او سکے پنیر او کجورے وے په حدیث شریف د خوراک ذکر دے او ابو سعید الخدري د خوراک د مختلفو څیزونو بیان کریدے چه د خوراک نه مراد اوربشے او سکے پنیر او کجورے وي.

۱۱۹ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوسُفَ قَالَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ زَيْدِ بْنِ اَسْلَمَ عَنْ عِيَاضِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ سَعْدِ بْنِ اَبِيْ سَرْحٍ نِالْعَامِرِيِّ اَنَّهُ سَمِعَ اَبَا سَعِيْدٍ نِالْخُدْرِيَّ يَقُوْلُ كُنَّا نُخْرِجُ زَكٰوةَ الْفِطْرِ صَاعًا مِّنْ طَعَامٍ اَوْ صَاعًا مِّنْ تَمْرٍ اَوْ صَاعًا مِّنْ اَقِطٍ اَوْ صَاعًا مِّنْ زَبِيْبٍ.

۱۱۹ : عبدالله بن یوسف. مالک. زید بن اسلم. عیاض بن عبدالله بن سعد بن ابي سرح عامري. ابو سعید خدري رضي الله عنه نه روایت کوي. ما د ابو سعید خدري نه واوریدل. چه مونږ به صدقه فطر یو صاع طعام یا یو صاع وربشے یا یو صاع قجورے یا یو صاع پنیر. یا یو صاع اوچ انګور (اوسکے) ورکول.

## باب ۸۲: صَدَقَةُ الْفِطْرِ صَاعٌ مِّنْ تَمْرٍ.

باب ۸۲: صدقه فطر کښې دے یو صاع قجورے ورکړي.

۱۲۰ : حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ يُوْنُسَ قَالَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ نَّافِعٍ اَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عُمَرَ قَالَ اَمَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِزَكٰوةِ الْفِطْرِ وَ صَاعًا مِّنْ تَمْرٍ اَوْ صَاعًا مِّنْ شَعِيْرٍ قَالَ عَبْدُ اللّٰهِ فَجَعَلَ النَّاسُ قَرَّرَهُ مُدَّيْنِ مِّنْ مِنْطَةٍ.

۱۲۰ : احمد بن یونس. لیث نافع. عبدالله بن عمر رضي الله عنه نه روایت کوي. چه نبي صلے الله علیه وسلم یو صاع قجورے یا یو صاع وربشے صدقه فطر کښې د ورکولو حکم ورکړه. عبدالله اووے. چه خلقو دوه مده غنم د دے په ځائے مقرر کړل.

ف: مُدّ: یو پیمانه چه عراق کښې دوه رطل ده.

## باب ۸۳: صَاعٌ مِّنْ زَبِيْبٍ.

باب ۸۳: منقے یو صاع ورکولو بیان.

۱۲۱ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُنِيْرٍ سَمِعَ يَزِيْدَ بْنَ اَبِيْ حَكِيْمٍ الْعَدَنِيَّ قَالَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ زَيْدِ بْنِ اَسْلَمَ قَالَ حَدَّثَنِيْ عِيَاضُ بْنُ

۱۲۱ : عبدالله بن منیر. یزید بن ابي حکیم عدني. سفیان. زید بن اسلم. عیاض بن عبدالله بن سعد بن ابي سرح. ابو سعید خدري رضي الله عنه نه روایت کوي.

عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ سَعْدِ بْنِ اَبِيْ سَرْحٍ عَنْ اَبِيْ سَعِيْدِ نِ الْخُدْرِيِّ قَالَ كُنَّا نُعْطِيْهَا فِيْ زَمَانِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَاعًا مِّنْ طَعَامٍ اَوْ صَاعًا مِّنْ تَمْرٍ اَوْ صَاعًا مِّنْ شَعِيْرٍ اَوْ صَاعًا مِّنْ زَبِيْبٍ فَلَمَّا جَآءَ مُعَاوِيَةُ وَ جَآءَتِ السَّمْرَآءُ قَالَ اُرٰى مِّنْ هٰذَا يَعْدِلُ مُدَّيْنِ.

هغه وائي مونږ خلقو به د نبي صلی الله علیه وسلم په زمانه کښې صدقه فطر یو صاع خوراک یا یو صاع قجورې یا یو صاع اوربشې یا یو صاع منقي ورکولې. چه د امیر معاویه رضي الله عنه زمانه راغله او غنم راولېږدل نو هغه اووې خما په خیال کښې د دې یو مُد د نورو څیزونو د دوو مُد برابر دے.

## بَاب ۸۴: الصَّدَقَةِ قَبْلَ الْعِيْدِ.

## باب ۸۴: د آختر د مونځ نه مخکښې د صدقه فطر ورکولو بیان.

۱۲۲: حَدَّثَنَا اٰدَمُ قَالَ حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ مَيْسَرَةَ قَالَ حَدَّثَنِيْ مُوْسَى بْنُ عُقْبَةَ عَنْ نَّافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَمَرَ بِزَكٰوةِ الْفِطْرِ قَبْلَ خُرُوْجِ النَّاسِ اِلَى الصَّلٰوةِ.

۱۲۲: آدم. حفص بن میسره. موسی بن عقبه. نافع. ابن عمر رضي الله عنه نه روایت کوي د هغه بیان دے چه نبي صلی الله علیه وسلم د مانځه د پاره د خلقو د وتلو نه مخکښې د صدقه فطر ورکولو حکم او کړلو.

۱۲۳: حَدَّثَنَا مُعَاذُ بْنُ فَضَالَةَ قَالَ حَدَّثَنَا اَبُوْ عُمَرَ حَفْصُ بْنُ مَيْسَرَةَ عَنْ زَيْدِ بْنِ اَسْلَمَ عَنْ عِيَاضِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ سَعْدٍ عَنْ اَبِيْ سَعِيْدِ نِ الْخُدْرِيِّ قَالَ كُنَّا نُخْرِجُ فِيْ عَهْدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ الْفِطْرِ صَاعًا مِّنْ طَعَامٍ قَالَ اَبُوْ سَعِيْدٍ وَّ كَانَ طَعَامُنَا الشَّعِيْرَ وَالزَّبِيْبَ وَالْاَقِطَ وَالتَّمْرَ.

۱۲۳: معاذ بن فضاله. ابو عمر. حفص بن میسره. زید بن اُسلم. عیاض بن عبدالله بن سعد. ابو سعید خدري رضي الله عنه نه روایت کوي، دَ هغه بیان دے، مونږ خلقو به د نبي صلي الله علیه وسلم زمانه کښې دَ وړوکي آختر په ورځ یو صاع خوراک صدقه کښې اوبنکله. او ابو سعید بیان او کړه، چه هغه زمانه کښې خمونږ. خوراک وربشې، منقي، پنیر او قجورې وې.

## بَاب ۸۵: صَدَقَةِ الْفِطْرِ عَلَى

## باب ۸۵: آزاد او غلام باندې دَ صدقه فطر دَ

الْحُرِّ وَالْمَمْلُوْكِ وَ قَالَ الزُّهْرِيُّ فِي الْمَمْلُوْكِيْنَ لِلتِّجَارَةِ وَ يُزَكِّيْ فِي التِّجَارَةِ وَ يُزَكِّي فِي الْفِطْرِ.

واجب كيدو بيان.او زهري اووے. د تجارت د غلامانو نه دے زكوة وركړے شي. او د هغوي د طرف نه دے صدقه فطر هم وركړے شي.

۱۲۴ : حَدَّثَنَا اَبُو النُّعْمَانِ قَالَ حَدَّثَنَا حَمَّادُ ابْنُ زَيْدٍ قَالَ حَدَّثَنَا اَيُّوْبُ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ فَرَضَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَدَقَةَ الْفِطْرِ اَوْ قَالَ رَمَضَانَ عَلَى الذَّكَرِ وَالْاُنْثٰى وَالْحُرِّ وَالْمَمْلُوْكِ صَاعًا مِّنْ تَمْرٍ اَوْ صَاعًا مِّنْ شَعِيْرٍ فَعَدَلَ النَّاسُ بِهٖ نِصْفَ صَاعٍ مِّنْ بُرٍّ فَكَانَ ابْنُ عُمَرَ يُعْطِي التَّمْرَ فَاَعْوَزَ اَهْلُ الْمَدِيْنَةِ مِنَ التَّمْرِ فَاَعْطٰى شَعِيْرًا وَ كَانَ ابْنُ عُمَرَ يُعْطِي عَنِ الصَّغِيْرِ وَالْكَبِيْرِ حَتّٰى اِنْ كَانَ لَيُعْطِي عَنْ بَنِيَّ وَ كَانَ ابْنُ عُمَرَ يُعْطِيْهَا الَّذِيْنَ يَقْبَلُوْنَهَا وَ كَانُوْا يُعْطُوْنَ قَبْلَ الْفِطْرِ بِيَوْمٍ اَوْ يَوْمَيْنِ قَالَ اَبُوْ عَبْدِ اللّٰهِ بَنِيَّ يَعْنِيْ بَنِيْ نَافِعٍ قَالَ كَانُوْا يُعْطُوْنَ لِيُجْمَعَ لَا لِلْفُقَرَآءِ.

۱۲۴ : ابو النعمان. حماد بن زيد. ايوب. نافع، ابن عمر رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي د هغه بيان دے چه نبي صلے اللّٰه عليه وسلم صدقه فطر يا صدقه رمضان سري، ښځے، آزاد، غلام هر يو باندے يو صاع قجورے يا يو صاع وربشے فرض كړے ده، نو خلقو نيم صاع غنم د هغے برابر او ګنړل. حضرت ابن عمر رضي اللّٰه عنه به قجورے وركولے، خو يو ځلے د مدينے په خلقو د قجورو قحط راغے، نو وربشے ئے وركړے. او حضرت ابن عمر رضي اللّٰه عنه به د وړوكي او لوئے د طرفه وركولے تر دے چه خما د خامنو د طرف نه به ئے هم وركولے. او ابن عمر رضي اللّٰه عنه به هغے خلقو له وركولے، چه قبلولے به ئے. او د وړوكي آختر په ورځ به ئے يو يا دوه ورځے مخكښ وركولے. ابو عبداللّٰه (امام بخاري رحمة اللّٰه عليه) اووے. د بنيَّ نه مراد بني نافع دي، او وے فرمائيل، چه هغے خلقو به جمع كولو د پاره وركولے نه چه فقيرانو له به ئے وركولے.

۱. قجورے به د اوربشو او د پنير وغيره نه غوره ګنړلے شوے صحابه كرامو رضي اللّٰه عنهم به غوره خيز د اللّٰه تعالي د رحمت او د رضا حاصلولو د پاره په صدقه كښ وركوو. اسلام هم دا غواړي چه د اللّٰه تعالي په لار كښ د ټولو نه غوره او اعلي خيز وركول دي. خراب او بے كاره خيز وركولو نه څه كمال نه حاصليږي.

۲. د حديث شريف راوي امام نافع رضي اللّٰه عنه د حضرت عبداللّٰه بن عمر رضي اللّٰه عنهما مربئے وو بيانے آزاد كړو. هغه د ابن عمر رضي اللّٰه عنهما خصوصي شاګرد او د علم و فضيلت په لويو تابعينو او د دين امامانو كښ شمار وو. عبداللّٰه بن عمر رضي اللّٰه عنهما د امام نافع رضي اللّٰه عنه د خامنو سر سايه د ثواب په خاطر وركوله.

۱ . د أمير المؤمنين رضي الله عنه د طرفنه به مقرر كړے شوے افسر د سرسايې/ صدقې د وصولولو د اختر نه يو دوه ورځې وړاندې راتللو او خلقو به هغه له سرسايه/ خيرات ورکولو بيا به ئې د امير المؤمنين رضي الله عنه د طرفنه د اختر د مانځه نه وړاندې په غريبانانو او فقيرانو تقسيموله. د نبي كريم صلي الله عليه وسلم په مبارکه زمانه کښې به هم سرسايه صدقه زکات به هغوئ سره جمع کيدل بيا به هغوئ تقسيمول.

**باب ۸۶: صَدَقَةِ الْفِطْرِ عَلَى الصَّغِيرِ وَالْكَبِيرِ قَالَ اَبُوْ عَمْرٍو وَرَاٰى عُمَرُ وَ عَلِيٌّ وَّابْنُ عُمَرَ وَ جَابِرٌ وَّ عَآئِشَةُ وَ طَاوٗسٌ وَ عَطَآءٌ وَّابْنُ سِيْرِيْنَ اَنْ يُّزَكّٰى مَالُ الْيَتِيْمِ وَ قَالَ الزُّهْرِيّ يُزَكّٰى مَالُ الْمَجْنُوْنِ.**

**باب ۸۶:** هر وړوکي لوئي باندې د صدقه فطر د واجب کيدو بيان. ابو عمرو اووې. عمر رضي الله عنه. علي رضي الله عنه. ابن عمر رضي الله عنه، جابر رضي الله عنه. بي بي عائشې رضي الله عنها طاؤس. عطاء او د ابن سيرين خيال دے چه د يتيم د مال نه دې زکوة ورکړے شي. او زهري اووے چه د ليوني د مال نه دې زکوة ورکړے شي.

۲ . دا د امام شافعي رحمة الله عليه مسلک دے خو نږ د احنافو په نزد د يتيم په مال زکات نه فرض کيږي ځکه چه هغه يتيم نابالغه وي. او شرعي احکامو باندې نابالغ مکلف نه دے نه پرے مونځ شته نه روژه نه حج نو زکات پرے څرنګ فرض کيږي. او چه کله بالغ شي نو بيا ورته يتيم نشي ويلے بيا ورباندې زکات او نور ارکان فرض کيږي.

**۱۲۵ : حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ قَالَ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنِيْ نَافِعٌ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ فَرَضَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَدَقَةَ الْفِطْرِ صَاعًا مِّنْ شَعِيْرٍ اَوْ صَاعًا مِّنْ تَمْرٍ عَلَى الصَّغِيْرِ وَ الْكَبِيْرِ وَالْحُرِّ وَالْمَمْلُوْكِ.**

**۱۲۵ :** مسدد. يحيي. عبيد الله. نافع. ابن عمر رضي الله عنه نه روايت كوي. د هغه بيان دے، چه رسول الله صلي الله عليه وسلم يو صاع وربشې يا يو صاع قجورې، وړو، لويو، آزاد او غلام باندې صدقه فطر فرض کړے ده.

## كِتَابُ الْمَنَاسِكِ

## (دَ حج بيان)

**باب ۸۷: وُجُوْبِ الْحَجِّ وَ فَضْلِهِ وَ قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى وَ لِلّٰهِ عَلَى**

**باب ۸۷:** د حج د واجب کيدو او د هغې د فضيلت بيان. او د الله تعالي قول، او الله د پاره په خلقو

النَّاسِ حِجُّ الْبَيْتِ مَنِ اسْتَطَاعَ اِلَيْهِ سَبِيْلًا وَ مَنْ كَفَرَ فَاِنَّ اللّٰهَ غَنِيٌّ عَنِ الْعٰلَمِيْنَ.

د خانه کعبے حج کول فرض دي، د چا چه هلته د تلو طاقت وي، او چا چه انکار وکړ، نو اللّٰه تعالي د ټولے دنیا نه بے نیازه دے.

۱. حج کله فرض شو؟ پدے کښې د علماؤ اختلاف دے بعضے فرمائي پنځم هجري کال کښې، بعضے شپږم کال او بعضے نهم هجري کال واني. حج په هغه چا فرض دے چه د چا طاقت وي. د طاقت نه بواځ د سفر سامان، سفر خرڅونه مراد ندي. بلکې د بدن روغوالے او د لارے وغیره د خرڅونو سره د کور خرڅه هم مراد ده.

۱۲۶: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ قَالَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ يَسَارٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبَّاسٍ قَالَ كَانَ الْفَضْلُ رَدِيْفَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَجَاءَتِ امْرَاَةٌ مِّنْ خَثْعَمَ فَجَعَلَ الْفَضْلُ يَنْظُرُ اِلَيْهَا وَ تَنْظُرُ اِلَيْهِ وَ جَعَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَصْرِفُ وَجْهَ الْفَضْلِ اِلَى الشِّقِّ الْاٰخَرِ فَقَالَتْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّ فَرِيْضَةَ اللّٰهِ عَلٰى عِبَادِهٖ فِي الْحَجِّ اَدْرَكَتْ اَبِيْ شَيْخًا كَبِيْرًا لَا يَثْبُتُ عَلَى الرَّاحِلَةِ فَاَحُجُّ عَنْهُ قَالَ نَعَمْ وَ ذٰلِكَ فِيْ حَجَّةِ الْوَدَاعِ.

۱۲۶: عبداللّٰه بن یوسف. مالک. ابن شهاب. سلیمان بن یسار. عبداللّٰه بن عباس رضي اللّٰه عنه نه روایت کوي، د هغهٔ بیان دے، چه فضل رسول اللّٰه صلے اللّٰه علیه وسلم پسے روستو سور وو. د قبیله خثعم یوه ښځه راغله، نو فضل هغے ښځے ته کتل شروع کړل، او هغے ښځے فضل ته کتل، او نبي صلے اللّٰه علیه وسلم د فضل مخ بل طرف ته کرځولو. هغے ښځے عرض اوکړو یا رسول اللّٰه: خدائے په بندیانو حج فرض کړے دے. لیکن خما پلار ډیر بوډا شوے دے هغه په سورلئ ټینګیدے نشي، نو آیا زهٔ د هغهٔ د طرف نه حج اوکړم، حضور صلي اللّٰه علیه وسلم ورته او فرمائیل، او، او دا د حجة الوداع واقعه ده.

۲. په حج کښې د احرام په حالت کښې د ښځے د پاره مخ او د لاس تلي (ہتھیلیاں) پټول ضروري ندي. د مونځ دوران کښې او د مانځه نه بهر د ښځے د پاره د پردے بو شان حکم دے. که چرے د فتنے ویره نه وي نو د پردي سري مخکښې، مخ او تلي ښکاره کولے شي. په روستو زمانه کښې د خلقو حالات بدل شو. فتنه او فساد زیات شو نو علماء کرامو د مخ د پټولو او د پوره پردے فتوي جاري کړه. نبي کریم صلي اللّٰه علیه وسلم د فضل بن عباس رضي اللّٰه عنهما مخ د احتیاط په طور بل خوا اړه ولے وو. ځکه چه هغه ښځے باندے مخ پټول فرض نه وو.

باب ۸۸: قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى يَأْتُوْكَ رِجَالًا وَّ عَلٰى كُلِّ ضَامِرٍ يَّأْتِيْنَ مِنْ كُلِّ فَجٍّ عَمِيْقٍ لِيَشْهَدُوْا مَنَافِعَ لَهُمْ فِجَاجًا اَلطُّرُقُ الْوَاسِعَةُ.

باب ۸۸: د الله تعالى قول چه خلق به تاله پياده او په اوښانو په ډير لرے لرے لارونه راځي د پاره د دے چه خپلے فائدے حاصلے کړي. فجاجا نه مراد فراخے لارے دي.

۱۴۷: حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ عِيْسٰى قَالَ حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ عَنْ يُوْنُسَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ اَنَّ سَالِمَ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ اَخْبَرَهُ اَنَّ ابْنَ عُمَرَ قَالَ رَاَيْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَرْكَبُ رَاحِلَتَهُ بِذِى الْحُلَيْفَةِ ثُمَّ يُهِلُّ حِيْنَ تَسْتَوِىْ قَآئِمَةً.

۱۴۷: احمد بن عيسى. ابن وهب يونس. ابن شهاب. سالم بن عبدالله بن عمر عبدالله بن عمر رضي الله عنه نه روايت کوي ابن عمر رضي الله عنه بيان اوکړ مے رسول الله صلے الله عليه وسلم ذي الحليفه کښې اوليدلو چه په خپله سورلی سور شولو. بيا چه به هغه نيغه اودريدله نو لبيک به ئے وئيلو.

۱۴۸: حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ مُوْسٰى قَالَ اَخْبَرَنَا الْوَلِيْدُ قَالَ حَدَّثَنَا الْاَوْزَاعِىُّ سَمِعَ عَطَآءً يُحَدِّثُ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ الْاَنْصَارِىِّ اَنَّ اِهْلَالَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ ذِى الْحُلَيْفَةِ حِيْنَ اسْتَوَتْ بِهٖ رَاحِلَتُهُ رَوَاهُ اَنَسٌ وَّابْنُ عَبَّاسٍ يَعْنِىْ حَدِيْثَ اِبْرَاهِيْمَ بْنِ مُوْسٰى.

۱۴۸: ابراهيم بن موسى. وليد. اوزاعي. عطاء. جابر بن عبدالله انصاري نه روايت کوي. هغه بيان اوکړ چه رسول الله صلے الله عليه وسلم به ذي الحليفه کښې لبيک هغه وخت وئيلو کوم وخت چه به د حضور صلي الله عليه وسلم اوښ نيغه اودريده. انس رضي الله عنه او ابن عباس رضي الله عنه هم دا حديث يعني د ابراهيم بن موسي حديث روايت کړے دے.

بـاب ۸۹: اَلْحَجِّ عَلَى الرَّحْلِ وَ قَالَ اَبَانُ حَدَّثَنَا مَالِكُ بْنُ دِيْنَارٍ عَنِ الْقَاسِمِ بْنِ مُحَمَّدٍ عَنْ عَآئِشَةَ اَنَّ النَّبِىَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعَثَ مَعَهَا

باب ۸۹: په پالان (کجاوه. کته) سور د حج کولو بيان. او ابان اووے ماته ابن دينار په واسطه د قاسم بن محمد عاشے رضي الله عنه روايت اوکړ چه نبي صلے الله عليه وسلم بي بي عائشے رضي الله عنه سره د هغه ورور عبدالرحمن وليږلو نو په هغے ئے د

اَخَاهَا عَبْدَ الرَّحْمٰنِ فَاَعْمَرَهَا مِنَ التَّنْعِيْمِ وَ حَمَلَهَا عَلٰى قَتَبٍ وَ قَالَ عُمَرُ شُدُّوا الرِّحَالَ فِي الْحَجِّ فَاِنَّهٗ اَحَدُ الْجِهَادَيْنِ وَ قَالَ مُحَمَّدُ بْنُ اَبِيْ بَكْرٍ حَدَّثَنَا يَزِيْدُ ابْنُ زُرَيْعٍ قَالَ حَدَّثَنَا عُرْوَةُ بْنُ ثَابِتٍ عَنْ ثُمَامَةَ بْنِ اَنَسٍ عَلٰى رَحْلٍ وَلَمْ يَكُنْ شَحِيْحًا وَحَدَّثَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَجَّ عَلٰى رَحْلٍ وَّ كَانَتْ زَامِلَتَهٗ.

مقام تنعيم نه عمره اوکړله، او هغه ئے په کجاوه سوره کړله. حضرت عمر رضي الله عنه او فرمائيل: چه حج کښې کجاوه او تړئے، ځکه چه دا هم يو جهاد دے. او محمد بن ابي بکر بيان اوکړ، چه ما ته يزيد بن زريع په واسطه د عروه بن ثابت، ثمامه بن عبدالله بن ثابت ثمامه بن عبدالله بن انس روايت اوکړ، چه حضرت انس رضي الله عنه په يوه کجاوه حج اوکړ حالانکه هغه بخيل نۀ وو، او بيان ئے اوکړ چه نبي صلي الله عليه وسلم په کجاوه حج اوکړ، او په هغې د حضور صلي الله عليه وسلم اسباب هم وو.

۱. زامله هغې اوښې ته وائي چه په هغې د خوراک او نور ضروري سامان اوړلے شي په عام ډول داد سورلۍ د اوښې نه جدا وي. ليکن رسول الله صلي الله عليه وسلم چه په کومه اوښه سور وۀ. په هغې ئے خپل ضروري سامان هم کېخودلے وو د دواړو اوښو پخائے د يوے اوښې نه ئے کار اخستلے وو.

**۱۲۹: حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَلِيٍّ قَالَ اَبُوْ عَاصِمٍ قَالَ حَدَّثَنَا اَيْمَنُ ابْنُ نَابِلٍ قَالَ حَدَّثَنَا الْقَاسِمُ بْنُ مُحَمَّدٍ عَنْ عَائِشَةَ اَنَّهَا قَالَتْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اعْتَمَرْتُمْ وَلَمْ اَعْتَمِرْ قَالَ يَا عَبْدَ الرَّحْمٰنِ اذْهَبْ بِاُخْتِكَ فَاَعْمِرْهَا مِنَ التَّنْعِيْمِ فَاَحْقَبَهَا عَلٰى نَاقَةٍ فَاعْتَمَرَتْ.**

۱۲۹: عمرو بن علي. ابو عاصم. ايمن بن نابل. قاسم بن محمد. بي بي عائشے رضي الله عنه نه روايت کوي. بي بي عائشے رضي الله عنه عرض اوکړ يا رسول الله، تاسو عمره اوکړه، او ما اونۀ کړه، حضور صلي الله عليه وسلم او فرمائيل. اے عبدالرحمٰن، خپله خور بوځه، او د مقام تنعيم نه پرے عمره اوکړه، نو هغه اوښې باندے ورستو کېنوله، او هغے عمره اوکړله.

۲. مطلب ئے دا دے چه رسول الله صلي الله عليه وسلم عبدالرحمن رضي الله عنه ته او فرمايل چه ته خپله عائشه بي بي رضي الله عنهما تنعيم ته بوزه هغه د حرم شريف د حدونو نه بهر دے نو د هلته نه به دا احرام اوتړي. او رابشي عمره به ادا کړي. د احنافو دا مذهب دے چه مکه کښې مقيم (اوسيدونکے) خلق به د حج د پاره د حرم حدودو کښې دننه احرام تړي د حج نيت به کوي. او د عمرے د پاره به د حرم د حدودو نه بهر اوځي او احرام به تړي عبدالرحمن رضي الله عنه ته چه رسول الله صلي الله عليه وسلم کوم هدايت کړے وۀ دا د احنافو د مذهب تائيد کوي.

## بَابٌ ۹۰: فَضْلِ حَجٍّ الْمَبْرُوْرِ.

## باب ۹۰: د حج مقبول د فضیلت بیان.

۱ ـ قبول شوے حج هغه دے چه د هغے په دوران کښې کومه ګناه یا د حج د آدابو خلاف څه کار حج کونکے نه، وي کړے په خلقو کښې دا یوه خبره مشهوره ده. "چه د جُمعے په ورځ عرفه راشي نو دغه حجّ حجّ اکبر وي" د دے په شریعت کښې څه بنیاد نشته. د "حجّ اکبر" لفظ قرآن کښې راغلے دے (هر حجّ، حجّ اکبر دے. او عمره حجّ اصغر دے) خو په بله معنٰی کښې د حج کولو په ذریعه، په خلقو ظلمونه او پردي حقوق نه معاف کیږي. او نور ګناهونه معاف کیږي. پدے کښې هم د علماؤ اختلاف دے. چه صرف واړه ګناهونه معاف کیږي یا لوئے ګناهونه هم معاف کیږي. خو د اکثرو عالمانو دا رائے ده. چه واړه لوئے ګناهونه قبول شوي حج سره معاف کیږي. (فیض الباري جلد دریم صفحه ۶۳)

۱۳۰: حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ سَعْدٍ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ سُئِلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَيُّ الْاَعْمَالِ اَفْضَلُ قَالَ اِيْمَانٌ بِاللّٰهِ وَ رَسُوْلِهٖ قِيْلَ ثُمَّ مَاذَا قَالَ جِهَادٌ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ قِيْلَ ثُمَّ مَاذَا قَالَ حَجٌّ مَّبْرُوْرٌ.

۱۳۰: عبدالعزیز بن عبدالله. ابراهیم بن سعد. زهري. سعید بن مسیب. حضرت ابو هریره رضي الله عنه نه روایت کوي، ذ هغهٔ بیان دے. ذ نبي صلے الله علیه وسلم نه تپوس اوشو، چه کوم عمل افضل دے. حضور صلي الله علیه وسلم او فرمائیل، الله او ذ هغهٔ په رسول صلي الله علیه وسلم ایمان راوړل. بیا ترے تپوس اوشو، دے نه پس کوم عمل، حضور صلي الله علیه وسلم ورته او فرمائیل، ذ الله په لار کښې جهاد کول، بیا ترے تپوس اوشو، دے نه پس کوم عمل، حضور صلي الله علیه وسلم ورته او فرمائیل، مقبول حج.

۱۳۱: حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ الْمُبَارَكِ قَالَ حَدَّثَنَا خَالِدٌ قَالَ اَخْبَرَنَا حَبِيْبُ بْنُ اَبِيْ عَمْرَةَ عَنْ عَائِشَةَ بِنْتِ طَلْحَةَ عَنْ عَائِشَةَ اُمِّ الْمُؤْمِنِيْنَ اَنَّهَا قَالَتْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ نَرَى الْجِهَادَ اَفْضَلَ الْعَمَلِ اَفَلَا نُجَاهِدُ قَالَ اَفْضَلُ الْجِهَادِ حَجٌّ مَّبْرُوْرٌ.

۱۳۱: عبدالرحمٰن بن مبارک، خالد، حبیب بن ابي عمره. عائشه بنت طلحه. اُم المومنین بي بي عائشه رضي الله عنه روایت کوي، هغے اووے، یا رسول الله، مونږ جهاد ذ ټولو نه بهتر عمل ګنړو، نو آیا مونږ دے جهاد اونهٔ کړو، حضور صلي الله علیه وسلم ورته او فرمائیل، تاسو ذ پاره ذ ټولو نه افضل جهاد حج مقبول دے.

۱۳۲: حَدَّثَنَا اٰدَمُ قَالَ حَدَّثَنَا

۱۳۲: آدم. شعبه. سیار ابو الحکم. ابو حازم.

شُعْبَةُ قَالَ حَدَّثَنَا سَيَّارٌ اَبُو الْحَكَمِ قَالَ سَمِعْتُ اَبَا حَازِمٍ قَالَ سَمِعْتُ اَبَا هُرَيْرَةَ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ مَنْ حَجَّ لِلّٰهِ فَلَمْ يَرْفُثْ وَلَمْ يَفْسُقْ رَجَعَ كَيَوْمٍ وَلَدَتْهُ اُمُّهُ.

حضرت ابو هريره رضي الله عنه نه روايت كوي: هغه وائي ما د نبي صلى الله عليه وسلم نه واوريدل: چا چه الله د پاره حج اوكړه، نه ئې فضول خبره اوكړه او نه ئې ګناه اوكړه، نو هغه د هغې ورځې په شان (د ګناه نه پاک او صاف) شي په كومه ورځ چه هغه خپلې مور زاوړے وو.

## بَابُ ۹۱ : فَرْضِ مَوَاقِيْتِ الْحَجِّ وَالْعُمْرَةِ.

## باب ۹۱ : د حج د عمرے د ميقاتونو بيان.

(ميقات: وخت. د حج د احرام تړلو پنځه مقامات (۱) ذوالحليفه (۲) ذات عرق (۳) جحفه (۴) قرن (۵) يلملم نه وائي)

۱۳۳ : حَدَّثَنَا مَالِكُ بْنُ اِسْمٰعِيْلَ قَالَ حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ قَالَ حَدَّثَنِيْ زَيْدُ بْنُ جُبَيْرٍ اَنَّهُ اَتَى عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عُمَرَ فِيْ مَنْزِلِهِ وَلَهُ فُسْطَاطٌ وَّ سُرَادِقٌ فَسَاَلْتُهُ مِنْ اَيْنَ يَجُوْزُ اَنْ اَعْتَمِرَ قَالَ فَرَضَهَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِاَهْلِ نَجْدٍ قَرْنٍ وَّ لِاَهْلِ الْمَدِيْنَةِ ذَا الْحُلَيْفَةِ وَ لِاَهْلِ الشَّامِ الْجُحْفَةَ.

۱۳۳ : مالک بن اسمعيل، زبير، زيد بن جبير بيان اوكه، چه هغه عبدالله بن عمر رضي الله عنه ته د هغه قيام ګاه ته راغې، نو د هغه خيمې لږيدلې وې او قناتونه ئې ولاړ وو. ما ترې تپوس اوكه، چه ما د پاره د كوم ځائې نه د عمرے احرام تړل جائز دي، نو جواب ئې راكه، چه رسول الله صلى الله عليه وسلم د اهل نجد د پاره قرن، اهل مدينه د پاره ذوالحليفه او اهل شام د پاره جحفه مقرر كړے ده.

۱. د مكې معظمې په خوا وشا كښې چه كوم ښهرونه او ملكونه وو، نبي كريم صلى الله عليه وسلم هغې ټولو واخستو او د احرام د پاره ئې ميقات خاص ځائے مقرر كړو. چه د فلاني ځائے خلق دې د فلاني ځائے نه احرام تړي. كوم علاقې او ملكونه چه لرې دي، هغوي هم د هغې ځايونو او لارو نه حرم شريف كښې داخليږي. څوک چه د دغې ميقاتونو (مقرر ځايونو) نه تيريږي كوم چه د احرام تړلو د پاره حديث شريف كښې مقرر شويدي. نو د احرام تړلو نه بغير به نه تيريږي.

## باب ۹۲ : قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى وَ تَزَوَّدُوْا فَاِنَّ خَيْرَ الزَّادِ التَّقْوٰى.

## باب ۹۲ : د الله تعالى قول چه تاسو د لارے توښه ځان سره واخلئ، او ښه او بهترينه توښه پرهيزګاري ده.

۲. علامه سيوطي ليكلے دي. چه آيت شريف كښې د تقوي مطلب د سوال (غوښتلو) نه ځان بچ كول

او پـرهيزګاري اختيار ده وي دي علامه انور شاه کشميري رحمة الله عليه ليکلي دي. چه خما په نزد د تقوي مطلب خپله مشهوره معني ده او مطلب ئے دا دے چه د سفر توښه بهر حال ضروري ده ليکن دے سره سره بـو لـوسے سفـر د بنده مخکښې دے د هغې د توښې زيات فکر پکار دے او د هغې سفر توښه تقوي ده. نورو رواياتو نه د آيت شريف د دے معني تائيد هم کيږي.

**۱۳۴ : حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بِشْرٍ قَالَ حَدَّثَنَا شَبَابَةُ عَنْ وَرْقَاءَ عَنْ عَمْرِو بْنِ دِينَارٍ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ كَانَ اَهْلُ الْيَمَنِ يَحُجُّوْنَ وَلَا يَتَزَوَّدُوْنَ وَ يَقُوْلُوْنَ نَحْنُ الْمُتَوَكِّلُوْنَ فَاِذَا قَدِمُوْا مَكَّةَ سَأَلُوا النَّاسَ فَاَنْزَلَ اللّٰهُ عَزَّ وَ جَلَّ وَ تَزَوَّدُوْا فَاِنَّ خَيْرَ الزَّادِ التَّقْوٰى رَوَاهُ ابْنُ عُيَيْنَةَ عَنْ عِكْرِمَةَ مُرْسَلًا.**

۱۳۴ : يحيي بن بشر. شبابه. ورقاء. عمرو بن دينار. عکرمه. ابن عباس رضي الله عنه نه روايت کوي. چه اهل يمن به حج کولو. خو د لارے توښه به ئے خان سره نه اوړله. او وئيل به ئے. چه مونږ خو په خدائے توکل کـونـکـي يـو. هغوي چه به مکے ته راغلل نو خير به ئے غوښتلو. نو الله پاک نو الله تعالي دا آيت نازل کړلو. چه د لارے خرڅ خان سره واخلئے. نو خئے. بهترينه توښه پرهيزګاري ده ابن عيينه په واسطه د عمرو. عکرمه دا مرسلا روايت کړے دے.

## بَاب ۹۳ : مُهَلِّ اَهْلِ مَكَّةَ لِلْحَجِّ وَالْعُمْرَةِ.

## باب ۹۳ : حج او عمرے د پاره د اهل مکه د احرام د تړلو د خائے بيان.

**۱۳۵ : حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ اِسْمٰعِيْلَ قَالَ حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ قَالَ حَدَّثَنَا ابْنُ طَاوُسٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ اِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَّتَ لِاَهْلِ الْمَدِيْنَةِ ذَا الْحُلَيْفَةِ وَ لِاَهْلِ الشَّامِ الْجُحْفَةَ وَ لِاَهْلِ نَجْدٍ قَرْنَ الْمَنَازِلِ وَ لِاَهْلِ الْيَمَنِ يَلَمْلَمَ هُنَّ لَهُنَّ وَ لِمَنْ اَتٰى مِنْ غَيْرِهِنَّ مِمَّنْ اَرَادَ الْحَجَّ وَالْعُمْرَةَ وَ مَنْ كَانَ دُوْنَ ذٰلِكَ فَمِنْ حَيْثُ اَنْشَاَ حَتّٰى اَهْلُ مَكَّةَ مِنْ مَكَّةَ.**

۱۳۵ : موسي بن اسمعيل. وهب. ابن طاؤس. د خپل پلار نه هغه د ابن عباس رضي الله عنه نه روايت کوي. هغه وائي چه نبي صلے الله عليه وسلم د اهل مدينه د پاره ذوالحليفه. اهل شام د پاره جحفه. اهل نجد د پاره قرن منازل او اهل يمن د پاره يلملم مقرر کړے دے. دا د هغوي د پاره ميقات دي او د هغوي د پاره هم چه د نورو مقاماتو نه د حج او عمرے په اراده راځي. او څوک چه دے ميقاتونو کښې دننه اوسيدونکي دي. هغه دے د هغه خائے نه احرام اوتړي. د کوم خائے نه چه روانيږي تر دے چه اهل مکه دے د مکے نه احرام اوتړي.

١. ورانـدے د دے وضاحت تير شويدي. چه د امام بخاري رحمة الله عليه په نزد د حج او د عمرے

په ميقات كښې فرق نشته ليكن د احنافو په نزد په بعضے صورتونو كښې فرق شته د مكے خلق به د حج د پاره د خپل كور نه (په مكه كښې دننه) احرام تړي او د مكے خلق به د عمرے احرام د تنعيم نه تړي. (د حرم د حدونو نه بهر بهر) د دے حديث شريف په وجه امام شافعي رحمة الله عليه وائي. چه احرام تړل يواځے هغه چاله ضروري دے څوک چه د حج يا د عمرے اراده كوي. كه چرے څوک د سوداګرئ يا د څه بل څه كار په نيت باندے حرم شريف كښې داخليږي. د هغه د پاره احرام تړل ضروري ندي ليكن د امام ابو حنيفه رحمة الله عليه په نزد دا مسئله ده. كه هر څه د چا مقصد وي. د حرم شريف په حدونو كښې بغير د احرام نه داخليدے نشي. د امام ابو حنيفه رحمة الله عليه په نزد' احرام تړل د حرم شريف د مباركے زمكے د تعظيم او د عزت د پاره ضروري دے په دے كښې د حج يا د عمرے تخصيص نشته. د دے زيات تفصيل د فقهے په كتابونو كښې كتل پكار دي.

## بَــاب ۹۴: مِيــقَـــاتِ اَهْـلِ الْمَدِيْنَةِ وَلَا يُهِلُّوْا قَبْلَ ذِى الْحُلَيْفَةِ.

باب ۹۴ : ذَ اهل مدينه ذَ ميقات بيان. او دا خلق دے ذوالحليفه ته رسيدو نه مخكښې احرام نهٔ تړي.

۱. د امام بخاري رحمة الله عليه مقصد دا دے چه ميقات ته د رسيدلونه روستو د په ميقات كښې احرام اوتړي. ځكه چه د مدينے منورے ميقات د ټولو نه نزدے دے او بيا هم رسول الله صلي الله عليه وسلم ميقات ته تشريف يوړلو. او د رسيدلو سره ئے ميقات كښې احرام اوتړه. علامه انور شاه كشميري رحمة الله عليه ليكلے دي. چه احنافو ته د مدينے منورے د حده پورے امام بخاري رحمة الله عليه سره مسلک يو كول پكار دي اول د دے وجے نه چه د مدينے ميقات ډير نزدے دے دويم دا چه پدے كښې د رسول الله صلي الله عليه وسلم پيروي ده د هغه په طريقه تلل دي. ليكن د مدينے منورے نه علاوه كه چرے څوک د بل ميقات نه وړاندے (مخكښې) احرام اوتړي نو پدے كښې په عزيمت عمل دے د حج شوق ترے هم ظاهريږي. او د سنتو خلاف هم ندے.

۱۳۶ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ قَالَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ نَّافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّے اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يُهِلُّ اَهْلُ الْمَدِيْنَةِ مِنْ ذِى الْحُلَيْفَةِ وَ اَهْلُ الشَّامِ مِنَ الْجُحْفَةِ وَ اَهْلُ نَجْدٍ مِّنْ قَرْنٍ قَالَ عَبْدُ اللّٰهِ وَ بَلَغَنِىْ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ وَ يُهِلُّ اَهْلُ الْيَمَنِ مِنْ يَّلَمْلَمَ.

۱۳۶ : عبدالله بن يوسف. مالک نافع. عبدالله بن عمر رضي الله عنه نه روايت كوي' ذَ هغهٔ بيان دے' چه رسول الله صلي الله عليه وسلم او فرمائيل اهلِ مدينه دے ذي الحليفه نه اهلِ شام دے جحفه نه او اهل نجد دِے قرن نه احرام تړي. حضرت عبدالله وائي' ما ته معلومه شوے ده' رسول الله صلے الله عليه وسلم او فرمائيل' چه اهلِ يمن دے يلملم نه احرام تړي.

## بَــاب ۹۵ : مُهَــلِّ اَهْـلِ

باب ۹۵ : ذَ شام ذَ خلقو د احرام تړلو ذَ ځائے

الشَّامِ.

١٣٧ : حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ قَالَ حَدَّثَنَا حَمَّادٌ عَنْ عَمْرِو بْنِ دِيْنَارٍ عَنْ طَاوُسٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ وَقَّتَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِاَهْلِ الْمَدِيْنَةِ ذَا الْحُلَيْفَةِ وَ لِاَهْلِ الشَّامِ الْجُحْفَةَ وَ لِاَهْلِ نَجْدٍ قَرْنَ الْمَنَازِلِ وَ لِاَهْلِ الْيَمَنِ يَلَمْلَمَ فَهُنَّ لَهُنَّ وَ لِمَنْ اَتَى عَلَيْهِنَّ مِنْ غَيْرِ اَهْلِهِنَّ لِمَنْ كَانَ يُرِيْدُ الْحَجَّ وَالْعُمْرَةَ فَمَنْ كَانَ دُوْنَهُنَّ فَمُهَلُّهُ مِنْ اَهْلِهٖ وَ كَذٰلِكَ حَتّٰى اَهْلُ مَكَّةَ يُهِلُّوْنَ مِنْهَا.

بيان.

١٣٧ : مسدد. عمرو بن دينار. طاوس. ابن عباس رضي اللّٰه عنه روايت كوي: چه رسول اللّٰه صلى اللّٰه عليه وسلم اهلِ شام د پاره جحفه، اهل نجد ذ پاره قرن منازل او اهلِ يمن ذ پاره يلملم د احرام تړلو ځائے مقرر کړے دے، ذا ځايونه ذ هغوي ذ پاره ميقات دي، او ذ هغے خلقو ذ پاره هم: چه دے نه علاوه ذ نورو ځايونو نه ذ حج او عمرے په اراده راځي، او څوک چه دے ميقاتو کښې دننه اوسيدونکي دي: ذ هغوي ذ احرام تړلو ځائے ذ کور نه شروع کيږي، تر دے چه اهلِ مکه دے ذ مکے نه احرام تړي.

باب ٩٦ : مُهَلِّ اَهْلِ نَجْدٍ.

باب ٩٦ : ذ نجد ذ خلقو ذ احرام تړلو ذ ځائے بيان.

١٣٨ : حَدَّثَنَا عَلِيٌّ قَالَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ حَفِظْنَاهُ مِنَ الزُّهْرِيِّ عَنْ سَالِمٍ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ وَقَّتَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ح قَالَ وَ حَدَّثَنِيْ اَحْمَدُ قَالَ حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ يُوْنُسُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ سَالِمِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ مُهَلُّ اَهْلِ الْمَدِيْنَةِ ذُو الْحُلَيْفَةِ وَ مُهَلُّ اَهْلِ الشَّامِ مَهْيَعَةُ وَ هِيَ الْجُحْفَةُ وَ اَهْلِ نَجْدٍ قَرْنٌ قَالَ ابْنُ عُمَرَ زَعَمُوْا اَنَّ

١٣٨ : علي (بن مديني) سفيان. زهري. سالم بن عمر رضي اللّٰه عنه. ح (دوئم سند) احمد. ابن وهب. يونس. ابن شهاب. سالم بن عبداللّٰه. عبداللّٰه بن عمر رضي اللّٰه عنه نه روايت کوي، هغه وائي، ما ذ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم نه واوريدل: چه ذ مدينے ذ خلقو د احرام تړلو ځائے ذوالحليفه دے او د اهل شام ذ احرام تړلو ځائے محيعه يعني جحفه دے. او ذ نجد ذ خلقو ذ احرام تړلو ځائے قرن دے. ابن عمر رضي اللّٰه عنه اووے: خلق وائي نبي صلي اللّٰه عليه وسلم دا هم

النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ وَلَمْ اَسْمَعْهُ وَ مُهَلُّ اَهْلِ الْيَمَنِ يَلَمْلَمُ.

فرمائیلي دي چه د یمن د خلقو د احرام تړلو ځائے یلملم دے. (خو) ما دا نه دی اوریدلے.

## بَاب ۹۷: مُهَلِّ مَنْ كَانَ دُوْنَ الْمَوَاقِيْتِ.

## باب ۹۷: د میقاتو د خوا و شا اوسیدونکو د احرام تړلو د ځائے بیان.

۱۳۹: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ قَالَ حَدَّثَنَا حَمَّادٌ عَنْ عَمْرٍو عَنْ طَاؤُسٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَّتَ لِاَهْلِ الْمَدِيْنَةِ ذَا الْحُلَيْفَةِ وَ لِاَهْلِ الشَّامِ الْجُحْفَةَ وَ لِاَهْلِ الْيَمَنَ يَلَمْلَمَ وَ لِاَهْلِ نَجْدٍ قَرْنًا فَهُنَّ لَهُنَّ وَ لِمَنْ اَتَى عَلَيْهِنَّ مِنْ غَيْرِ اَهْلِهِنَّ مِمَّنْ كَانَ يُرِيْدُ الْحَجَّ وَالْعُمْرَةَ فَمَنْ كَانَ دُوْنَهُنَّ فَمِنْ اَهْلِهِ حَتّٰى اِنَّ اَهْلَ مَكَّةَ يُهِلُّوْنَ مِنْهَا.

۱۳۹: قتیبه. حماد. عمرو. طاؤس. ابن عباس نه روایت دے چه نبي صلي الله علیه وسلم د مدینے د خلقو د پاره ذوالحلیفه د شام د خلقو د پاره جحفه د یمن د خلقو د پاره یلملم او د نجد د خلقو د پاره قرن مقرر کړ. چه دا د دوي میقات دي او د هغوي د پاره هم چه د دے نه علاوه د نورو مقاماتو نه د حج او عمرے په اراده راځي. او څوک چه د دے میقاتو نه اخوا دیخوا اوسیدونکي دي هغوي دے د خپل کور نه احرام تړي تر دے چه د مکے خلق دے د مکے نه احرام تړي.

## بَاب ۹۸: مُهَلِّ اَهْلِ الْيَمَنِ.

## باب ۹۸: د یمن د خلقو د احرام تړلو د ځائے بیان.

۱۴۰: حَدَّثَنَا مُعَلَّى بْنُ اَسَدٍ قَالَ حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ طَاؤُسٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَّتَ لِاَهْلِ الْمَدِيْنَةِ ذَا الْحُلَيْفَةِ وَ لِاَهْلِ نَجْدٍ قَرْنَ الْمَنَازِلِ وَ لِاَهْلِ الْيَمَنِ يَلَمْلَمَ هُنَّ لِاَهْلِهِنَّ وَ لِكُلِّ اٰتٍ اَتٰى عَلَيْهِنَّ مِنْ غَيْرِهِمْ مِمَّنْ اَرَادَ الْحَجَّ وَالْعُمْرَةَ فَمَنْ كَانَ دُوْنَ ذٰلِكَ

۱۴۰: معلی بن اسد. وهیب. عبدالله بن طاؤس. ابن عباس رضي الله عنه نه روایت کوي چه نبي صلے الله علیه وسلم مدنیانو (د مدینے د خلقو) د پاره ذوالحلیفه د شامیانو د پاره جحفه. نجدیانو د پاره قرن منازل او یمنیانو د پاره یلملم مقرر کړے دے دا د دے ځائے د اوسیدونکو د پاره میقات دي او د هغوي د پاره هم چه د نورو ځایونو نه د حج او عمرے په اراده راځي. او څوک چه دے میقاتو کښې دننه اوسیدونکي دي هغوي چه د کوم ځائے نه اوځي احرام

مِمَّنْ حَيْثُ اَنْشَأَ حَتّٰى اَهْلُ مَكَّةَ مِنْ مَكَّةَ.

دے تري تر دے چه مكيان (د مكے خلق) دے د مكے نه احرام تړي.

۱. د امام بخاري رحمة الله عليه دا عادت دے چه كله د يو حديث سره د ده سره مختلف روايتونه وي. نو د يوي نوي سر ليک سره د نوے نوے فائدو سره د هغے بيا بيا روايت كوي. د پاكستان هندوستان خلق چه حج يا عمرے له حي نو د هغوي په لاره كښې ميقات هم يلملم دے د هغے په برابرۍ كښې په لاره تيريږي.

## باب ۹۹: ذَاتُ عِرْقٍ لِاَهْلِ الْعِرَاقِ.

## باب ۹۹: عراقيانو د پاره ميقات ذات عرق دے

۱۴۱: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ مُسْلِمٍ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ نُمَيْرٍ قَالَ حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ عَنْ نَافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ قَالَ لَمَّا فُتِحَ هٰذَانِ الْمِصْرَانِ اَتَوْا عُمَرَ فَقَالُوْا يَا اَمِيْرَ الْمُؤْمِنِيْنَ اِنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَدَّ لِاَهْلِ نَجْدٍ قَرْنًا وَهُوَ جَوْرٌ عَلٰى طَرِيْقِنَا وَ اِنَّا اِنْ اَرَدْنَا قَرْنًا شَقَّ عَلَيْنَا قَالَ فَانْظُرُوْا حَذْوَهَا مِنْ طَرِيْقِكُمْ فَحَدَّلَهُمْ ذَاتَ عِرْقٍ.

۱۴۱: علي بن مسلم. عبدالله بن نمير. عبيد الله. نافع. عبدالله بن عمر رضي الله عنه نه روايت كوي. كوم وخت چه دا دواړه ملكونه فتح شو نو خلق حضرت عمر رضي الله عنه له راغلل او وے وئيل اے امير المؤمنين رسول الله صلي الله عليه وسلم د نجديانو د پاره قرن مقرر كړے دے او هغه خمونږ د لارے نه بيرته دے كه مونږ د قرن اراده او كړو نو خمونږ د پاره به تكليف ده وي. حضرت عمر رضي الله عنه ورته او فرمائيل خپلے لارے كښې د هغے مخے ته څه خائے او كورئ او هغوي د پاره نے ذات عرق مقرر كړلو.

۱. د حضرت عمر رضي الله عنه د دے فيصلے نه معلوميږي. چه كوم ځايونه رسول الله صلي الله عليه وسلم د احرام تړلو د پاره مقرر كړے وو خاص د هغے ځايونو نه تيريدل ضروري ندي. بلكے په نورو لارو هم تيريدے شي. او چه كوم ځائے چه رسول الله صلي الله عليه وسلم مقرر كړے وو او د هغے برابر مخامخ ځائے ته اورسي د هغے ځائے نه احرام تړل ضروري دي.

## باب ۱۰۰: الصَّلٰوةُ بِذِي الْحُلَيْفَةِ.

## باب ۱۰۰: ذي الحليفه كښې د مونځ كولو بيان.

۱۴۲: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ قَالَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ نَافِعٍ عَنْ

۱۴۲: عبدالله بن يوسف. مالک. نافع. عبدالله بن عمر رضي الله عنه نه روايت كوي.

عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَاخَ بِالْبَطْحَاءِ بِذِى الْحُلَيْفَةِ فَصَلّٰى بِهَا وَ كَانَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عُمَرَ يَفْعَلُ ذٰلِكَ.

هغه وائي: رسول الله صلي الله عليه وسلم ذ ذي الحليفه کانړيجنے زمکه کښ خپله اوښه کينوله او هلته ئے مونځ اوکړ. عبدالله بن عمر رضي الله عنه به دغسے کول.

## باب ۱۰۱: خُرُوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلٰى طَرِيْقِ الشَّجَرَةِ.

## باب ۱۰۱: ذ نبي صلے الله عليه وسلم ذ اونے په لاره ذ تلو بيان.

۱. د شجرے د لارے' اصلي نوم ذُو الحُليفه وو (شجره اونے ته وائي دلته يوه ډيره لويه اونه وه پدے وجه د اونے په لاره مشهوره وه) اوس دے ځائے ته خلق "بيرِ عَلِّي" وائي' بير د اوبو کوهي ته وائي. علي څوک سړے وو چه دا کوهے ئے جوړ کړے وو د دے علي نه مراد حضرت علي ابن ابي طالب رضي الله عنه ندے په حديث شريف کښ د "مُعَرَّس" لفظ هم راغلے دے (مُعَرَّس هغے ځائے ته وائي چه قافلے د شپے په سفر کښ هلته آخري وخت کښ آرام کوي) ذوالحليفه' مُعَرَّس' او وادي عَقيق يو بل سره نزدے ځايونه دي. ذوالحليفه کښ هم جُمات دے چه د مدينے نه مکے ته ځي نو ستا ښي طرفته راځي او چه د مکے نه مدينے ته وادي عقيق سره تيريږے نو دلته هم جُمات شته.

۱۴۳: حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ الْمُنْذِرِ قَالَ حَدَّثَنَا اَنَسُ بْنُ عِيَاضٍ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ عَنْ نَافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَخْرُجُ مِنْ طَرِيْقِ الشَّجَرَةِ وَ يَدْخُلُ مِنْ طَرِيْقِ الْمُعَرَّسِ وَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ اِذَا خَرَجَ اِلٰى يُصَلِّىْ فِىْ مَسْجِدِ الشَّجَرَةِ وَ اِذَا رَجَعَ صَلّٰى بِذِى الْحُلَيْفَةِ بِبَطْنِ الْوَادِىْ وَ بَاتَ حَتّٰى يُصْبِحَ.

۱۴۳: ابراهيم بن منذر. انس بن عياض. عبيد الله. نافع. عبدالله بن عمر رضي الله عنه نه روايت دے چه رسول الله صلي الله عليه وسلم به ذ شجره په لار وتلو. او ذ معرس په لار به داخليدلو' او رسول الله صلے الله عليه وسلم چه به مکے ته تلو' نو مسجد شجره کښ به ئے مونځ کولو' او چه به واپس کيدلو' نو ذي الحليفه کښ به ئے مونځ کولو' چه ذ وادي په مينځ کښ دے' او هلته به ئے شپه تيروله' تر دے چه صبا به شولو.

باب ۱۰۲ : قَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلْعَقِيْقُ وَادٍ مُّبَارَكٌ.

۱۴۴ : حَدَّثَنَا اَلْحُمَيْدِيُّ قَالَ حَدَّثَنَا اَلْوَلِيْدُ وَ بِشْرُ بْنُ بَكْرِ التِّنِيْسِيُّ قَالَ حَدَّثَنَا الْاَوْزَاعِيُّ قَالَ حَدَّثَنَا يَحْيٰى حَدَّثَنِيْ عِكْرَمَةُ اَنَّهُ سَمِعَ ابْنَ عَبَّاسٍ يَقُوْلُ اَنَّهُ سَمِعَ عُمَرَ يَقُوْلُ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِوَادِ الْعَقِيْقِ يَقُوْلُ اَتَانِي اللَّيْلَةَ اٰتٍ مِّنْ رَّبِّيْ فَقَالَ صَلِّ فِيْ هٰذَا الْوَادِي الْمُبَارَكِ وَ قُلْ عُمْرَةٌ فِي حَجَّةٍ.

۱۴۵ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ اَبِيْ بَكْرٍ قَالَ حَدَّثَنَا فُضَيْلُ بْنُ سُلَيْمَانَ قَالَ حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ عُقْبَةَ قَالَ حَدَّثَنَا سَالِمُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ عَنْ اَبِيْهِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهُ وَهُوَ فِيْ مُعَرَّسٍ بِذِي الْحُلَيْفَةِ بِبَطْنِ الْوَادِيْ قِيْلَ لَهُ اِنَّكَ بِبَطْحَاءَ مُبَارَكَةٍ وَقَدْ اَنَاخَ بِنَا سَالِمٌ يَتَوَخَّى الْمُنَاخَ الَّذِيْ كَانَ عَبْدُ اللّٰهِ يُنِيْخُ يَتَحَرّٰى مُعَرَّسَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ اَسْفَلُ مِنَ الْمَسْجِدِ الَّذِيْ بِبَطْنِ الْوَادِي بَيْنَهُمْ وَ بَيْنَ الطَّرِيْقِ وَسْطٌ مِّنْ ذٰلِكَ.

باب ۱۰۳ : غَسْلِ الْخَلُوْقِ

باب ۱۰۲ : ذ نبي صلی الله علیه وسلم فرمائيل چه عقيق يوه مبارکه وادي ده.

۱۴۴ : حميدي. وليد و بشر بن بكر تنيسي. اوزاعي. يحيي. عكرمه. ابن عباس رضي الله عنه نه روايت كوي، هغه ذ حضرت عمر رضي الله عنه نه واوريدل، هغه وائي ما ذ رسول الله صلي الله عليه وسلم نه وادي عقيق كښې واوريدل، چه ما ته ذ خپل رب ذ طرف نه يو راتلونكے راغے، او وے ونيل چه دے مباركه وادي كښې مونځ اوكه، او اووايه چه ما عمره حج كښې شريكه كړه.

۱۴۵ : محمد بن ابي بكر. فضل بن سليمان. موسي بن عقبه. سالم بن عبدالله ذ خپل پلار نه، هغه ذ نبي صلي الله عليه وسلم روايت كوي، چه حضور صلي الله عليه وسلم معرس ذي الحليفه وسط وادي كښې وو، نو حضور صلي الله عليه وسلم خوب اوليدلو، او ورته اوونيلے شو، چه تاسو صلي الله عليه وسلم مبارکے کانړيجنے زمكه كښې يئے. او مونږ سره سالم هم تلاش نه پس اوښ په هغه ځائے كينولو، كوم ځائے چه عبدالله بن عمر رضي الله عنه ذ رسول الله صلي الله عليه وسلم ذ كوزيدو په ځائے خپل اوښان كينولي وو، او هغه ذ هغے جمات نه لاندے دے، چه ذ وادي وسط كښې دے، او ذ كوزيدونكو او ذ لارے مينځ كښې دے.

باب ۱۰۳ : كپړے سره ذ خلوق (خوشبو)

ثَلٰثَ مَرَّاتٍ مِّنَ الثِّيَابِ.

١٤٢ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ قَالَ حَدَّثَنَا اَبُوْ عَاصِمٍ النَّبِيْلُ قَالَ اَخْبَرَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عَطَآءٌ اَنَّ صَفْوَانَ بْنَ يَعْلٰى اَخْبَرَهٗ اَنَّ يَعْلٰى قَالَ لِعُمَرَ اَرِنِي النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِيْنَ يُوْحٰى اِلَيْهِ قَالَ فَبَيْنَمَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْجِعِرَّانَةِ وَمَعَهٗ نَفَرٌ مِّنْ اَصْحَابِهٖ جَآءَهٗ رَجُلٌ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ كَيْفَ تَرٰى فِيْ رَجُلٍ اَحْرَمَ بِعُمْرَةٍ وَّهُوَ مُتَضَمِّخٌ بِطِيْبٍ فَسَكَتَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَاعَةً فَجَآءَهُ الْوَحْيُ فَاَشَارَ عُمَرُ اِلٰى يَعْلٰى فَجَآءَ يَعْلٰى وَعَلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثَوْبٌ قَدْ اُظِلَّ بِهٖ فَاَدْخَلَ رَاْسَهٗ فَاِذَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُحْمَرُّ الْوَجْهِ وَهُوَ يَغِطُّ ثُمَّ سُرِّيَ عَنْهُ فَقَالَ اَيْنَ الَّذِيْ سَاَلَ عَنِ الْعُمْرَةِ فَاُتِيَ بِرَجُلٍ فَقَالَ اغْسِلِ الطِّيْبَ الَّذِيْ بِكَ ثَلٰثَ مَرَّاتٍ وَّانْزِعْ عَنْكَ الْجُبَّةَ وَاصْنَعْ فِيْ عُمْرَتِكَ كَمَا

درے خله د وينځلو بيان.

١٤٢ : محمد. ابو عاصم نبيل. ابن جريج. عطاء. صفوان بن يعلے د عطاء نه بيان او کړ: چه يعلے حضرت عمر رضي الله عنه ته اووے: ما ته نبي صلے الله عليه وسلم داسے حالت کښې اوښايه: چه حضور صلي الله عليه وسلم باندے وحي راځي. حضرت عمر رضي الله عنه او فرمايل: دغے دوران کښې نبي صلے الله عليه وسلم جعرانه کښې وو: او حضور صلي الله عليه وسلم سره خپل صحابه هم وو: نو يو سړے حضور صلي الله عليه وسلم له راغے او عرض ئے اوکړ: يا رسول الله: د هغے سړي متعلق تاسو څه وائے: چه هغه احرام اوتړلو: او د هغه د کپړو نه خوشبوي ځي: نبي صلي الله عليه وسلم لږ وخت د پاره خاموش شولو: په حضور صلي الله عليه وسلم وحي شروع شوله. نو عمر رضي الله عنه: يعلي ته اشاره اوکړه: يعلے راغے داسے حال کښې چه رسول الله صلے الله عليه وسلم باندے يوه کپړه وه: چه هغے پرے سورے کړے وو. يعلي خپل سر کپړه کښې وردننه کړ: نو وے ليدل: چه د رسول الله صلي الله عليه وسلم مخ سور دے. او خرانے خيژي (خراٹے لے رہے ہیں) بيا دا کيفيت لرے شو: نو حضور صلي الله عليه وسلم او فرمائيل: هغه سړے چرته دے چه د عمرے متعلق ئے تپوس کړے وو: هغه سړے راوستے شو: نو حضور صلي الله عليه وسلم ورته او فرمائيل: دا خوشبوي درے خله اووينځه: چه تاسره ده او خپله جبه او کاږه: او خپلے عمرے کښې هم هغه کوه چه ته ئے حج کښې کوے. د ابن جريج بيان دے ما د عطاء نه تپوس او کړ: چه حضور

تَصْنَعُ فِيْ حَجِّكَ فَقُلْتُ لِعَطَآءٍ أَرَادَ الْإِنْقَآءَ حِيْنَ أَمَرَهُ أَنْ يَغْسِلَ ثَلٰثَ مَرَّاتٍ فَقَالَ نَعَمْ.

صلي الله عليه وسلم درے خله د وينزلو حکم او کړ نو دے نه د حضور صلي الله عليه وسلم مراد صفائي وه. هغه جواب کښې اووے چه او.

بَابُ ۱۰۴ : الطِّيْبِ عِنْدَ الْإِحْرَامِ وَمَا يَلْبَسُ إِذَا أَرَادَ أَنْ يُحْرِمَ وَ يَتَرَجَّلَ وَ يَدَّهِنَ وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ يَشَمُّ الْمُحْرِمُ الرَّيْحَانَ وَ يَنْظُرُ فِي الْمِرْاٰةِ وَ يَتَدَاوٰى بِمَا يَأْكُلُ الزَّيْتَ وَالسَّمْنَ وَ قَالَ عَطَآءٌ يَتَخَتَّمُ وَ يَلْبَسُ الْهِمْيَانَ وَ طَافَ ابْنُ عُمَرَ وَهُوَ مُحْرِمٌ وَقَدْ حَزَمَ عَلٰى بَطْنِهٖ بِثَوْبٍ وَّلَمْ تَرَ عَآئِشَةُ بِالتُّبَّانِ بَأْسًا قَالَ اَبُوْ عَبْدِ اللّٰهِ تَعْنِيْ لِلَّذِيْنَ يَرْحَلُوْنَ هَوْدَجَهَا.

باب ۱۰۴ : د احرام په وخت د خوشبو لږولو بيان او هر کله چه د احرام تړلو اراده او کړي نو څه دے واغندي او گومنز د او کړي او تيل د او لږوي او ابن عباس رضي الله عنه او فرمائيل. محرم خوشبوي بويولے شي او آئينه کښې کتلے شي او د خوراک څيزونه روغن زيتون او غوړي دارو کښې استعمالولے شي. او عطاء اووے جائز دي چه گوته واچوي او هميانئے او تړي او ابن عمر رضي الله عنه د احرام حالت کښې طواف او کړ په دا شان چه په خپله خيټه ئے کپړه تړلے وه. عائشے رضي الله عنه جانگي (نيکر) اغوستو کښې څه حرج نه دے گڼړلے. ابو عبدالله (بخاري) اووے. د عائشے رضي الله عنه نه د دے مراد هغه دے چه هغه کسان محرمان جانگي اچولے شي کوم چه د هغے د اوښ کجاوه په لاره بوزي.

۱ د محرم د پاره پرتوګ اغوستل د ټولو په نزد مکروهه دي. مطلب ئے دا دے چه د حضرت عائشه بي بي رضي الله عنهما په نزد جانگي اغوستلو کښې د محرم د پاره څه گناه نشته. ليکن د اُمت عام عالمان پرتوګ او جانگي کښې فرق نه کوي. دواړه مکروهه گڼړي خکه چه دواړه گنډلے شوي وي د احرام په حالت کښې د گنډلے شوے څيز اغوستل مکروهه دي.

۱۴۷ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوْسُفَ قَالَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ مَنْصُوْرٍ عَنْ سَعِيْدِ ابْنِ جُبَيْرٍ قَالَ كَانَ ابْنُ عُمَرَ يَدَّهِنُ بِالزَّيْتِ فَذَكَرْتُهُ لِإِبْرَاهِيْمَ فَقَالَ مَا تَصْنَعُ بِقَوْلِهٖ

۱۴۷ : محمد بن يوسف. سفيان. منصور. سعيد بن جبير روايت کوي چه ابن عمر رضي الله عنه به د زيتون تيل لږول. ما ابراهيم نخعي ته بيان او کړ نو هغه اووے ته د هغه خبره څه کوے ما ته اسود د بي بي

حَدَّثَنِي الْاَسْوَدُ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَاَنِّيْ اَنْظُرُ اِلَى وَ بِيْصِ الطِّيْبِ فِيْ مَفَارِقِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ مُحْرِمٌ.

عائشے رضي اللّٰه عنه متعلق بيان او كړ هغې اوويل چه زهٔ گويا د رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم د سر په كربنو كښې دَ احرام په حالت كښې د خوشبو چمك وينم.

۱۴۸ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ قَالَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ الْقَاسِمِ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَتْ كُنْتُ اُطَيِّبُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِاِحْرَامِهٖ حِيْنَ يُحْرِمُ وَ لِحِلِّهٖ قَبْلَ اَنْ يَّطُوْفَ بِالْبَيْتِ.

۱۴۸ : عبداللّٰه بن يوسف. مالك. عبدالرحمن بن قاسم دَ خپل پلار نه، هغه دَ بي بي عائشے رضي اللّٰه عنه دَ نبي صلے اللّٰه عليه وسلم دَ تبر نه روايت كوي. هغه فرمائي، چه رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلم به احرام ترلو، نو دَ احرام ترلو په وخت او دَ احرام پرانستلو په وخت به ئے دَ خانه كعبے دَ طواف نه مخكښې خوشبوي لږوله.

## بـاب ۱۰۵ : مَنْ اَهَلَّ مُلَبِّدًا.

## باب ۱۰۵ : تلبيه كولو سره دَ احرام ترلو بيان

خپل د سر ويښته سليخدار څيز سره داسے يو ځائے كول چه د احرام ويښته نه گډوډ كيږي.

---

۱. تَلْبِيْد ديته واني چه د كيكر يا د پلوسے چيړ په اوبو كښې حل كړي. چه سليخدار سريش ترې جوړ شي هغه منكرے سره د سر په ويښتو اولگوي. هغے سره چه منګز شړے ويښته او چ شي بيا د سر ويښته پخپل ځائے كلك وي هوا سره نه گډوډ كيږي. نبي كريم صلي اللّٰه عليه وسلم به سليخدار چم كښې خوشبوني واچوله. بيا به د حج دوران كښې د سر ويښته په خپل ځائے منګز شوے پراته وو او خوشبو به هم وو د حج آخر كښې نبي كريم صلي اللّٰه عليه وسلم به حلق اوكړو (د سر ويښته به ئے او خرئيل).

۱۴۹ : حَدَّثَنَا اَصْبَغُ قَالَ اَخْبَرَنَا ابْنُ وَهْبٍ عَنْ يُوْنُسَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ سَالِمٍ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُهِلُّ مُلَبِّدًا.

۱۴۹ : اصبغ. ابن وهب. يونس. ابن شهاب. سالم دَ خپل پلار نه روايت كوي. د هغهٔ بيان دے، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم نه واوريدل. چه هغه احرام په داسے وخت تړه چه د سر ويښته ئے يو ځائے وو.

## باب ۱۰۶ : اَلْاِهْلَالِ عِنْدَ ذِي الْحُلَيْفَةِ.

## باب ۱۰۶ : ذي الحليفه سره نزدے دَ لبيك وئيلو بيان.

۱۵۰ : حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ

۱۵۰ : علي بن عبدالله

اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنَا سُفْيٰنُ قَالَ حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ عُقْبَةَ قَالَ سَمِعْتُ سَالِمَ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ سَمِعْتُ بْنَ عُمَرَ ح وَ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُسْلَمَةَ عَنْ مَالِكٍ عَنْ مُوْسٰى بْنِ عَقْبَةَ عَنْ سَالِمِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ اَنَّهُ سَمِعَ اَبَاهُ يَقُوْلُ مَا اَهَلَّ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِلَّا مِنْ عِنْدِ الْمَسْجِدِ يَعْنِيْ مَسْجِدِ ذِي الْحُلَيْفَةِ.

سفیان. موسی بن عقبه. سالم بن عبدالله. حضرت ابن عمر رضي الله عنه. ح. (دونم سند) عبدالله بن مسلمه. مالک. موسی بن عقبه. سالم بن عبدالله ذ خپل پلار نه واوریدل، چه رسول الله صلي الله علیه وسلم مسجد ذي الحلیفه سره لبیک اووے.

## باب ۱۰۷ : مَا يَلْبَسُ الْمُحْرِمُ مِنَ الثِّيَابِ.

## باب ۱۰۷ : محرم دے څنګه کپړے واغندي.

۱۵۱ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ قَالَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ نَّافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ اَنَّ رَجُلًا قَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ مَا يَلْبَسُ الْمُحْرِمُ مِنَ الثِّيَابِ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَلْبَسُ الْقَمِيْصَ وَلَا الْعَمَائِمَ وَلَا السَّرَاوِيْلَاتِ وَلَا الْبَرَانِسَ وَلَا الْخِفَافَ اِلَّا اَحَدٌ لَا يَجِدُ نَعْلَيْنِ فَلْيَلْبِسْ خُفَّيْنِ وَلْيَقْطَعْهُمَا اَسْفَلَ مِنَ الْكَعْبَيْنِ وَلَا تَلْبَسُوْا مِنَ الثِّيَابِ شَيْئًا مَّسَّهُ زَعْفَرَانٌ اَوْ وَرْسٌ قَالَ اَبُوْ عَبْدِ اللّٰهِ يَغْسِلُ الْمُحْرِمُ رَأْسَهُ وَلَا يَتَرَجَّلُ وَلَا يَحُكُّ جَسَدَهُ وَ يُلْقِي الْقَمَّلَ مِنْ رَّأْسِهِ وَ جَسَدِهِ فِي الْاَرْضِ.

۱۵۱ : عبدالله بن یوسف. مالک. نافع. عبدالله بن عمر رضي الله عنه نه روایت کوي، د هغه بیان دے. یو سړي عرض او کړ، یا رسول الله، محرم دے څنګه کپړے واغندي. رسول الله صلے الله علیه وسلم ورته او فرمائیل قمیص. پټکي. پرتوګ او ټوپۍ او موزے دے نه اچوي، خو هغه سړے چه هغه پنړے بیا نهٔ مومي، نو هغه دے موزے واچوي، او دواړه موزے دے ذ ګټو نه لاندے پریکړي. او نهٔ دے څهٔ داسے کپړه اغندي چه هغے کښې زعفران یا ورس لړیدلے وي. او عبدالله (بخاري) اووے، چه محرم خپل سر وینزلے شي، خو نهٔ دے ګومنز کوي او نهٔ دے خپل بدن ګروي. او سپږے دے ذ خپل سر او بدن راوکاږي او په زمکه دے اُوغورځوي.

## بـــاب ۱۰۸ : الــــرُّكُــوْبِ وَالْاِرْتِدَافِ فِي الْحَجِّ.

۱۵۲ : حَـدَّثَـنَـا عَبْـدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ قَالَ حَـدَّثَنَا وَهْبُ بْنُ جَرِيْرٍ قَالَ حَـدَّثَنِيْ اَبِيْ عَنْ يُوْنُسَ الْاَيْلِيِّ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ اَنَّ اُسَامَةَ كَانَ رِدْفَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ عَرَفَةَ اِلَى الْمُزْدَلِفَةِ ثُمَّ اَرْدَفَ الْفَضْلَ مِنَ الْمُزْدَلِفَةِ اِلٰى مِنًى قَالَ فَكِلَاهُمَا قَالَا لَمْ يَزَلِ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُلَبِّيْ حَتّٰى رَمٰى جَمْرَةَ الْعَقَبَةِ.

## باب ۱۰۸ : حج کښې د سوريدو او د چا شاته د کينولو بيان.

۱۵۲ : عبدالله بن محمد. وهب بن جرير. يونس. ايلي زهري. عبيد الله بن عبدالله. ابن عباس رضي الله عنه نه روايت کوي. د هغه بيان دے چه اسامه د عرفے نه مزدلفے پورے د نبي صلے الله عليه وسلم ورستو وو. او فضل د مزدلفے نه منى پورے حضور صلي الله عليه وسلم ځان پسے شاته کينولو. د دواړو بيان دے چه نبي صلے الله عليه وسلم برابر لبيک ويلو تر دے چه جمره د عقبه باندے ئے کتکي اوويشتل.

## بـــاب ۱۰۹ : مَـــا يَلْبَسُ الْمُحْرِمُ مِنَ الثِّيَابِ وَالْاَرْدِيَةِ وَالْاُزُرِ وَ لَبِسَتْ عَـــآئِشَةُ الثِّيَابَ الْمُعَصْفَرَةَ وَ هِيَ مُحْرِمَةٌ وَ قَالَتْ لَا تَلَثَّمْ وَلَا تَبَرْقَعْ وَلَا تَلْبَسْ ثَوْبًا بِوَرْسٍ وَّلَا زَعْفَرَانٍ وَ قَالَ جَابِرٌ لَّا اَرَى الْمُعَصْفَرَ طِيْبًا وَلَمْ تَرَ عَآئِشَةُ بَاْسًا بِالْحُلِيِّ وَالثَّوْبِ الْاَسْوَدِ وَالْمُوَرَّدِ وَالْخُفِّ لِلْمَرْاَةِ وَ قَالَ اِبْرَاهِيْمُ لَا بَاْسَ اَنْ يُبَدِّلَ ثِيَابَهٗ.

## باب ۱۰۹ : محرم به کپړې څادر او ته بند کښې څه اغندي. بي بي عائشے رضي الله عنه کسم کښې رنګ کړے کپړے د احرام حالت کښې واغستلے. او بي بي عائشے رضي الله عنه او فرمايل چه ښځے دے د احرام حالت کښې نقاب نه اچوي. چه ورس سره رنګ شوے وي. او نه زعفرانو سره رنګ شوے وي. او جابر اووے چه زه کسم کښې رنګ شوے کپړے خوشبو نه ګڼړم. او بي بي عائشے رضي الله عنه کالو (زيور) تورو او ګلابي کپړو او ښځو د پاره موزو اچولو کښې څه حرج نه دے ګڼړلے. او ابراهيم اووے دے کښې هيڅ حرج نشته. که يو محرم کپړه بدله کړي.

۱. عائشے رضي الله عنهما په احرام کښې داسے جامے اغوستے چه هغه په "عصفر" رنګ شوے وې "عصفر" داسے خيز دے چه جامے ورباندے نارنجي رنګ کښې رنګ شي او خوشبويه هم وي. د احنافو ۲

ـر د: د محرم د پاره د دے اجازت نشته ځکه چه خوشبوئي لګول احرام کښې مکروهه دي دا د حضرت عائشه رضي الله عنها خپل ذاتي عمل دے.

٢. کله چرے داسے کيدے شي چه نقاب د مخ نه لرے وي مخ بوږے نه لګي نو د ښځے د پاره د احرام په حالت کښې نقاب (اغوستلو) لګولو کښې څه ګناه نشته.

**١٥٣ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ** بْنُ أَبِي بَكْرٍ الْمُقَدَّمِيُّ قَالَ حَدَّثَنَا فُضَيْلُ بْنُ سُلَيْمَانَ قَالَ حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ عُقْبَةَ قَالَ أَخْبَرَنِي كُرَيْبٌ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ عَبَّاسٍ قَالَ انْطَلَقَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنَ الْمَدِينَةِ بَعْدَ مَا تَرَجَّلَ وَادَّهَنَ وَلَبِسَ إِزَارَهُ وَرِدَاءَهُ هُوَ وَأَصْحَابُهُ فَلَمْ يَنْهَ عَنْ شَيْءٍ مِنَ الْأَرْدِيَةِ وَالْأُزُرِ إِلَّا أَنْ تُلْبَسَ الْمُزَعْفَرَةَ الَّتِي تَرْدَعُ عَلَى الْجِلْدِ فَأَصْبَحَ بِذِي الْحُلَيْفَةِ رَكِبَ رَاحِلَتَهُ حَتَّى اسْتَوَى عَلَى الْبَيْدَاءِ أَهَلَّ هُوَ وَأَصْحَابُهُ وَقَلَّدَ بُدْنَهُ وَذٰلِكَ لِخَمْسٍ بَقِيْنَ مِنْ ذِي الْقَعْدَةِ فَقَدِمَ مَكَّةَ لِأَرْبَعِ لَيَالٍ خَلَوْنَ مِنْ ذِي الْحِجَّةِ فَطَافَ بِالْبَيْتِ وَسَعَى بَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ وَلَمْ يَحِلَّ مِنْ أَجْلِ بُدْنِهِ لِأَنَّهُ قَلَّدَهَا ثُمَّ نَزَلَ بِأَعْلَى مَكَّةَ عِنْدَ الْحَجُونِ وَهُوَ مُهِلٌّ بِالْحَجِّ وَلَمْ يَقْرَبِ الْكَعْبَةَ بَعْدَ طَوَافِهِ بِهَا حَتَّى رَجَعَ مِنْ عَرَفَةَ وَ

**١٥٣ :** محمد بن ابي بكر مقدمي. فضيل بن سليمان. موسي بن عقبه. كريبه. عبدالله بن عباس رضي الله عنه نه روايت كوي: چه نبي صلي الله عليه وسلم او د حضور صلي الله عليه وسلم صحابه مدينے نه كومنز كولو، او تيل لرولو، ته بند او څادر اچولو نه پس روان شولو. حضور د څادر او ته بند اچولو نه بالكل منع او نه فرمائيله. خو زعفرانو كښې رنګ شوے كپړه چه د هغے نه په بدن زعفران پريوځي. بيا سحر كښې ذي الحليفه كښې په خپلے سورلي سور شولو، تر دے چه مقام بيداء ته راورسيدلو. نو حضور صلي الله عليه وسلم او د حضور صلي الله عليه وسلم صحابه ؤ رضي الله عنه لبيك اووے. او د خپلو څناورو په غاړو كښې ئے پټے واچولے. دا په هغه ورځ اوشو، چه اوس لا د ذي قعدے پنځه ورځے باقي وے، مكے ته راغلل، نو د ذي قعدے څلور ورځے تيرے شوے وے. د خانه كعبے طواف ئے اوكړ. او د صفا او مروه په مينځ كښې ئے طواف اوكړ. او د قرباني د څناور په وجه ئے احرام پرانه نستلو، ځكه چه د هغے كردن كښې ئے پټے اچولے وه. بيا حجون سره د مكے بالائي حصه كښې كوز شولو، داسے حال كښې، چه د حج احرام ئے تړلے وو، او طواف كولو نه پس حضور صلي الله عليه وسلم كعبے ته نزدے ورنه رغے، تر دے چه عرفه نه واپس شولو، او خپلو ملګرو ته ئے حكم وركړلو، چه د خانه كعبے طواف اوكړي، او د صفا

اَمَرَ اَصْحَابَهُ اَنْ يَطُوْفُوْا بِالْبَيْتِ وَ بَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ ثُمَّ يُقَصِّرُوْا مِنْ رُئُوْسِهِمْ ثُمَّ يُحِلُّوْا وَ ذٰلِكَ لِمَنْ لَمْ يَكُنْ مَعَهُ بَدَنَةٌ قَلَّدَهَا وَ مَنْ كَانَتْ مَعَهُ امْرَاَتُهُ فَهِيَ لَهُ حَلَالٌ وَالطِّيْبُ وَالثِّيَابُ.

او مروه مینځ کښ طواف اوکړي، بیائے ذ خپل سرویسته قینچي کړلو. بیائے احرام پرانستلو او داسے کول ذ هغے چا ذ پاره دي، چه هغه سره د قرباني خناور تـه ئے پټے نه وي اچولے، او کوم سړي سره چه خپله ښځه وي، هغه ذ هغهٔ ذ پاره حلاله ده، او خوشبو لږول او کپړے اغستل ورله درست دي.

## بَابٌ ۱۱۰ : مَنْ بَاتَ بِذِي الْحُلَيْفَةِ حَتّٰى اَصْبَحَ قَالَهُ ابْنُ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

## باب ۱۱۰ : ذ هغے سړي بیان چه صبا پورے ذي الحليفه کښ اِیسار شي. دا ابن عمر رضي الله عنه ذ نبي صلے الله عليه وسلم نه روايت کړے دے.

۱۵۴ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ قَالَ حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ يُوْسُفَ قَالَ اَخْبَرَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ قَالَ حَدَّثَنِي ابْنُ الْمُنْكَدِرِ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ صَلَّى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْمَدِيْنَةِ اَرْبَعًا وَ بِذِي الْحُلَيْفَةِ رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ بَاتَ حَتّٰى اَصْبَحَ بِذِي الْحُلَيْفَةِ فَلَمَّا رَكِبَ رَاحِلَتَهُ وَاسْتَوَتْ بِهٖ اَهَلَّ.

۱۵۴ : عبدالله بن محمد. هشام بن يوسف. ابن جريج. ابن منكدر. انس بن مالک نه روايت کوي، چه نبي صلے الله عليه وسلم مدينه کښ څلور رکعانه او ذي الحليفه کښ دوه رکعاته مونځ اوکهٔ. بيائے شپه تيره کړه، تر دے چه ذوالحليفه کښ صبا شو. بيا چه حضور صلي الله عليه وسلم خپلے سورلئ باندے سور شو، او هغه نيغه اودريده، نو حضور صلي الله عليه وسلم لبيک اووے.

۱۵۵ : حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ قَالَ حَدَّثَنَا اَيُّوْبُ عَنْ اَبِي قِلَابَةَ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَّى الظُّهْرَ بِالْمَدِيْنَةِ اَرْبَعًا وَ صَلَّى الْعَصْرَ بِذِي الْحُلَيْفَةِ رَكْعَتَيْنِ قَالَ وَ اَحْسِبُهَا بَاتَ بِهَا حَتّٰى اَصْبَحَ.

۱۵۵ : قتيبه. عبدالوهاب. ايوب. ابي قلابه. انس بن مالک رضي الله عنه نه روايت کوي، چه نبي صلے الله عليه وسلم مدينه کښ ذ ماسپخين مونځ څلور رکعاته او ذي الحليفه کښ ذ مازيګر مونځ دوه رکعاته اوکهٔ، او ذ ابو قلابه بيان دے، وائي خما خيال دے، چه حضور صلي الله عليه وسلم ذ شپے ذ صبا پورے ذوالحليفه کښ پاتے وو.

## بَابٌ ۱۱۱ : رَفْعِ الصَّوْتِ

## باب ۱۱۱ : اُوچت آواز سره د لبيک ونيلو

بِالْإِهْلَالِ.

۱۵۶: حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ ابْنُ حَرْبٍ قَالَ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ اَبِيْ اَيُّوْبَ عَنْ اَبِيْ قِلَابَةَ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ صَلَّى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْمَدِيْنَةِ الظُّهْرَ اَرْبَعًا وَالْعَصْرَ بِذِي الْحُلَيْفَةِ رَكْعَتَيْنِ وَ سَمِعْتُهُمْ يَصْرُخُوْنَ بِهِمَا جَمِيْعًا.

بيان.

۱۵۶: سليمان بن حرب. حماد بن زيد. ابو ايوب. ابو قلابه. انس بن مالک رضي الله عنه نه روايت کوي، چه نبي صلی الله عليه وسلم مدينه کښې د ماسپخين څلور رکعاته او ذوالحليفه کښې د مازيګر دوه رکعاته اوکړل، او ما د خلقو نه دوارو مونځونو کښې اوچت آواز سره لبيک واوريدل.

## باب ۱۱۲: التَّلْبِيَه.

## باب ۱۱۲: د لبيک وئيلو بيان.

۱۵۷: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ قَالَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ نَافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ اَنَّ تَلْبِيَةَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَبَّيْكَ لَا شَرِيْكَ لَكَ لَبَّيْكَ اِنَّ الْحَمْدَ وَالنِّعْمَةَ لَكَ وَالْمُلْكَ لَكَ لَا شَرِيْكَ لَكَ.

۱۵۷: عبدالله بن يوسف. مالک. نافع. عبدالله بن عمر رضي الله عنه نه روايت کوي، د هغه بيان دے، چه رسول الله صلي الله عليه وسلم به تلبيه داسے کوله: لبيك اللهم لبيك لا شريك لك لبيك، انّ الحمد والنعمة لك والملك لك، لا شريك لك.

۱۵۸: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوْسُفَ قَالَ حَدَّثَنَا سُفْيٰنُ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ عُمَارَةَ عَنْ اَبِيْ عَطِيَّةَ عَنْ عَآئِشَةَ قَالَتْ اِنِّيْ لَاَعْلَمُ كَيْفَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُلَبِّيْ لَبَّيْكَ اَللّٰهُمَّ لَبَّيْكَ لَبَّيْكَ لَا شَرِيْكَ لَكَ لَبَّيْكَ اِنَّ الْحَمْدَ وَالنِّعْمَةَ لَكَ تَابَعَهُ اَبُوْ مَعَاوِيَةَ عَنِ الْاَعْمَشِ وَ قَالَ شُعْبَةُ اَخْبَرَنَا سُلَيْمَانُ قَالَ سَمِعْتُ خَيْثَمَةَ عَنْ اَبِيْ عَطِيَّةَ قَالَ سَمِعْتُ عَآئِشَةَ.

۱۵۸: محمد بن يوسف. سفيان. اعمش. عماره. ابو عطيه. بي بي عائشے رضي الله عنه نه روايت کوي، هغے اووے، ما ته زياته معلومه ده، چه رسول الله صلے الله عليه وسلم به څنګه لبيک وئيلو حضور صلي الله عليه وسلم به فرمائيل: لبيک اللهم لبيک، لبيک لا شريک لک لبيک، ان الحمد والنعمة لک. ابو معاويه د اعمش نه د دے متابع حديث روايت کړے دے. او شعبه اووے، چه ما ته سليمان په واسطه د خيثمه ابو عطيه نه روايت اوکړ، چه ما د بي بي عائشے رضي الله عنه نه واوريدل.

باب ۱۱۳ : التَّحْمِيدِ وَالتَّسْبِيحِ وَالتَّكْبِيرِ قَبْلَ الْإِهْلَالِ عِنْدَ الرُّكُوبِ عَلَى الدَّابَّةِ.

باب ۱۱۳ : لبیک ویلو نه مخکښې او د سورلۍ په حاروي باندې د سوریدو په وخت تحمید تسبیح او د تکبیر ویلو بیان.

۱۵۹ : حَدَّثَنَا مُوسَى ابْنُ إِسْمَاعِيلَ قَالَ حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ قَالَ حَدَّثَنَا أَيُّوبُ عَنْ أَبِي قِلَابَةَ عَنْ أَنَسٍ قَالَ صَلَّى النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَنَحْنُ مَعَهُ بِالْمَدِينَةِ الظُّهْرَ أَرْبَعًا وَالْعَصْرَ بِذِي الْحُلَيْفَةِ رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ رَكِبَ حَتَّى اسْتَوَتْ بِهِ عَلَى الْبَيْدَاءِ فَحَمِدَ اللَّهَ وَسَبَّحَ وَكَبَّرَ ثُمَّ أَهَلَّ بِحَجٍّ وَعُمْرَةٍ وَأَهَلَّ النَّاسُ بِهِمَا فَلَمَّا قَدِمْنَا أَمَرَ النَّاسَ فَحَلُّوا حَتَّى إِذَا كَانَ يَوْمُ التَّرْوِيَةِ أَهَلُّوا بِالْحَجِّ قَالَ وَنَحَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَدَنَاتٍ بِيَدِهِ قِيَامًا وَذَبَحَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْمَدِينَةِ كَبْشَيْنِ أَمْلَحَيْنِ قَالَ أَبُو عَبْدِ اللَّهِ قَالَ بَعْضُهُمْ هَذَا عَنْ أَيُّوبَ عَنْ رَجُلٍ عَنْ أَنَسٍ.

۱۵۹ : موسی بن اسمعیل. وهیب. ایوب. ابو قلابه. حضرت انس رضي الله عنه نه روایت کوي چه نبي صلي الله علیه وسلم او هغوي صلی الله علیه وسلم سره خلقو هم مدینه کښې د ماسپخین څلور رکعاته او د مازیګر ذوالحلیفه کښې دوه رکعاته او کړل بیا هلته تیره شپه پاتې وو. تر دې چه صبا شولو. بیا سور شولو. تر دې چه سورلی بیداء ته اورسیده. نو حضور صلي الله علیه وسلم د الله حمد بیان کړ. او تسبیح ئې اووې او تکبیر ئې اوکړ. بیائې د حج او عمرې لبیک اووې. او خلقو هم د حج او عمرې لبیک اووې. کوم وخت چه مونږ مکې ته اورسیدو. نو حضور صلي الله علیه وسلم خلقو ته حکم ورکړ چه احرام پرانزي. تر دې چه د ترویه ورځ راغله. نو خلقو د حج احرام او تړلو. او نبي صلی الله علیه وسلم څو اوښان اودرول او په خپل لاس ئې ذبح کړل. او رسول الله صلي الله علیه وسلم مدینه کښې دوه ښکریز ګډان ذبح کړل. او ابو عبدالله (بخاري) اووې چه بعضو دا د ایوب نه. هغه د یو سړي نه. او هغې سړي د انس نه روایت کړې دې.

باب ۱۱۴ : مَنْ أَهَلَّ حِينَ اسْتَوَتْ بِهِ رَاحِلَتُهُ.

باب ۱۱۴ : د هغې سړي بیان چه هغه وخت لبیک اووائي څه وخت چه د هغه سورلي نیغه اودریږي.

۱۶۰ : حَدَّثَنَا أَبُو عَاصِمٍ قَالَ أَخْبَرَنَا عَنْ جُرَيْجٍ قَالَ أَخْبَرَنِي صَالِحُ بْنُ كَيْسَانَ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ

۱۶۰ : ابو عاصم. ابن جریج. صالح بن کیسان. نافع. ابن عمر رضي الله عنه نه روایت دې. د هغه بیان دې. نبي صلي الله

قَالَ اَهَلَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِيْنَ اسْتَوَتْ بِهٖ رَاحِلَتُهُ قَآئِمَةً.

علیه وسلم هغه وخت لبیک اووے' کوم وخت چه د حضور صلي الله علیه وسلم سورلئ نیغه او دریدله.

**باب ۱۱۵: اَلْاِهْلَالُ مُسْتَقْبِلَ الْقِبْلَةَ** وَ قَالَ اَبُوْ مَعْمَرٍ حَدَّثَنَا اَيُّوْبُ عَنْ نَافِعٍ قَالَ كَانَ ابْنُ عُمَرَ اِذَا صَلَّى الْغَدَاةَ بِذِى الْحُلَيْفَةِ اَمَرَ بِرَاحِلَتِهٖ فَرُحِلَتْ ثُمَّ رَكِبَ فَاِذَا اسْتَوَتْ بِهٖ اسْتَقْبَلَ الْقِبْلَةَ قَآئِمًا ثُمَّ يُلَبِّيْ حَتّٰى يَبْلُغَ الْحَرَمَ ثُمَّ يُمْسِكُ حَتّٰى اِذَا جَآءَ ذَا طُوًى بَاتَ بِهٖ حَتّٰى يُصْبِحَ فَاِذَا صَلَّى الْغَدَاةَ اغْتَسَلَ وَ زَعَمَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَعَلَ ذٰلِكَ تَابَعَهُ اِسْمٰعِيْلُ عَنْ اَيُّوْبَ فِى الْغُسْلِ.

**باب ۱۱۵: مخ په قبله کیدل او د احرام تړلو بیان.** او ابو معمر اووے' مونږ ته عبدالوارث په واسطه د ایوب' نافع نه روایت او کړه' چه ابن عمر رضي الله عنه به د سحر مونځ ذي الحلیفه کښ او که' نو د خپلے سورلئ د تیارولو حکم به ئے او که' چه سورلئ به تیاره شوه نو په هغے به سور شولو. کوم وخت چه به هغه نیغه او دریده' نو قبلے طرف ته به ئے په ولاړه ولاړه مخ کړلو. بیا به ئے لبیک وئیلے' تر دے چه حرم کښ به داخل شولو' نو لبیک وئیل بـه ئے پریښودل' چه مقام د طوي ته بـه اورسید' نو هلته بـه ئے شپه تیروله' تر دے چه صبا به شولو' د سحر مونځ بـه ئے او کړلو' نو غسل بـه ئے او کړلو' او وئیل به ئے' رسول الله صلي الله علیه وسلم هم دغسے کړے دي. اسمعیل د ایوب نه د غسل متعلق د دے متابع حدیث روایت کړے دے.

**۱۶۱: حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ ابْنُ دَاوُدَ اَبُو الرَّبِيْعِ.** قَالَ حَدَّثَنَا فُلَيْحٌ عَنْ نَافِعٍ قَالَ كَانَ ابْنُ عُمَرَ اِذَا اَرَادَ الْخُرُوْجَ اِلٰى مَكَّةَ ادَّهَنَ بِدُهْنٍ لَيْسَ لَهٗ رَآئِحَةٌ طَيِّبَةٌ ثُمَّ يَأْتِيْ مَسْجِدَ ذِى الْحُلَيْفَةِ فَيُصَلِّيْ ثُمَّ يَرْكَبُ فَاِذَا اسْتَوَتْ بِهٖ رَاحِلَتُهٗ قَآئِمَةً اَحْرَمَ ثُمَّ قَالَ هٰكَذَا رَاَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَفْعَلُ.

**۱۶۱: سلیمان بن داود. ابو الربیع.** فلیح. نافع نه روایت کوي' چه حضرت ابن عمر رضي الله عنه به مکے ته د تلو اراده او کړله' نو داسے تیل بـه ئے لږول چه هغے کښ بـه خوشبوي نـه وه. بیا بـه د ذي الحلیفه جمات تـه راتلو' او مونځ بـه ئے کولو' بیا بـه سور شولو. چه اوښه به نیغه کیناستله نو احرام به ئے تړلو. بیا بـه ئے وئیل' چه ما نبي صلي الله علیه وسلم په دغسے کولو لیدلے دے.

**باب ۱۱٦: التَّلْبِيَهِ اِذَا انْحَدَرَ فِي الْوَادِي.**

۱٦۲: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنّى قَالَ حَدَّثَنَا ابْنُ عَدِيٍّ عَنِ ابْنِ عَوْنٍ عَنْ مُجَاهِدٍ قَالَ كُنَّا عِنْدَ ابْنِ عَبَّاسٍؓ فَذَكَرُوا الدَّجَّالَ اَنَّهُ قَالَ مَكْتُوبٌ بَيْنَ عَيْنَيْهِ كَافِرٌ قَالَ فَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ لَمْ اَسْمَعْهُ وَلٰكِنَّهُ قَالَ اَمَّا مُوْسٰى كَاَنِّيْ اَنْظُرُ اِلَيْهِ اِذَا انْحَدَرَ فِي الْوَادِيْ يُلَبِّيْ.

**باب ۱۱٦: وادي کښې د کوزيدو په وخت د لبيک ونيلو بيان.**

۱٦۲: محمد بن مثني. ابن عدي. ابن عون. مجاهد نه روايت کوي. مجاهد اووے' مونږ ابن عباس رضي الله عنه سره ناست وو' چه خلقو د دجال ذکر او چيړلو' چه حضور صلي الله عليه وسلم فرمائيلے دي. د دجال د دواړو سترګو مينځ کښې به کافر ليکلے وي. ابن عباس رضي الله عنه اووے' ما نه دي آوريدلے. ليکن ما د حضور صلي الله عليه وسلم نه دا آوريدلے دي چه زه ګويا حضرت موسي عليه السلام وينم کوم وخت چه هغه وادي ته را کوزيږي نو لبيک وائي.

۱. د دے روايت بعضے تفصيل به "کتابُ اللّبَاس" کښې راځي. غالباً حضرت موسي عليه السلام په خپل ژوند کښې حج کړے نه وو هغه د وفات کيدو نه روستو عالمِ مثال کښې حج او کړو. عيسي عليه السلام هم حج نه وو کړے قيامت ته نزدے چه حضرت عيسي عليه السلام بيا دنيا ته راشي نو بيا به حج کوي. د وفات کيدو نه روستو نيک خلق په عالم مثال کښې نيک کارونه کوي. دا په ډيرو احاديثو سره ثابته ده. حديث شريف کښې دي چه رسول الله صلي الله عليه وسلم' حضرت موسي عليه السلام په قبر کښې په مونځ کولو ليدلے وو. داسے ډير احاديث شته دا د اُمت اتفاقي اجماعي مسئله ده.

**باب ۱۱۷: كَيْفَ تُهِلُّ الْحَائِضُ وَالنُّفَسَاءُ اَهَلَّ تَكَلَّمَ بِهٖ وَاسْتَهْلَلْنَا وَ اَهْلَلْنَا الْهِلَالَ كُلُّهُ مِنَ الظُّهُوْرِ وَاسْتَهَلَّ الْمَطَرُ خَرَجَ مِنَ السَّحَابِ وَمَا اُهِلَّ لِغَيْرِ اللّٰهِ بِهٖ وَهُوَ مِنَ اسْتِهْلَالِ الصَّبِيِّ.**

**باب ۱۱۷: حيض او نفاس والے ښځه به څرنګ احرام تړي.** اَهَلَّ تَكَلَّمَ بِهٖ (يعني خبرے ئے او کړے) په معني کښې ونيلے شي. او' وَاسْتَهْلَلْنَا وَ اَهْلَلْنَا الْهِلَالَ: دا ټول د ظهور په معني کښې ونيلے شي' اسْتَهَلَّ الْمَطَر ' معني دي' د وريځے نه اووتلو' او' مَا اُهِلَّ لِغَيْرِ اللّٰهِ بِهٖ' کښې اُهِلَّ' استهلال الصبي نه ماخوذ دے.

۱٦۳: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْلَمَةَ قَالَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ عَنْ عَائِشَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

۱٦۳: عبدالله بن مسلمه. مالک. ابن شهاب. عروه بن زبير. بي بي عائشے رضي الله عنه ته د نبي صلے الله عليه وسلم نه روايت کوي' چه حجة الوداع کښې مونږ خلق نبي صلے الله عليه وسلم سره اووتلو.

وَسَلَّمَ خَرَجْنَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ وَسَلَّمَ فِيْ حَجَّةِ الْوَدَاعِ فَاَهْلَلْنَا بِعُمْرَةٍ ثُمَّ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ كَانَ مَعَهُ هَدْيٌ فَلْيُهْلِلْ بِالْحَجِّ مَعَ الْعُمْرَةِ ثُمَّ لَا يَحِلُّ حَتّٰى يَحِلَّ مِنْهُمَا جَمِيْعًا فَقَدِمْتُ مَكَّةَ وَ اَنَا حَائِضٌ وَلَمْ اَطُفْ بِالْبَيْتِ وَلَا بَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ فَشَكَوْتُ ذٰلِكَ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ انْقَضِيْ رَأْسَكِ وَامْتَشِطِيْ وَ اَهِلِّيْ بِالْحَجِّ وَدَعِي الْعُمْرَةَ فَفَعَلْتُ فَلَمَّا قَضَيْنَا الْحَجَّ اَرْسَلَنِي النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَعَ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ اَبِيْ بَكْرٍ اِلَى التَّنْعِيْمِ فَاعْتَمَرْتُ فَقَالَ هٰذِهٖ مَكَانَ عُمْرَتِكِ قَالَتْ فَطَافَ الَّذِيْنَ كَانُوْا اَهَلُّوْا بِالْعُمْرَةِ بِالْبَيْتِ وَ بَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ ثُمَّ حَلُّوْا ثُمَّ طَافُوْا طَوَافًا اٰخَرَ بَعْدَ اَنْ رَّجَعُوْا مِّنْ مِّنًى وَّ اَمَّا الَّذِيْنَ جَمَعُوا الْحَجَّ وَالْعُمْرَةَ فَاِنَّمَا طَافُوْا طَوَافًا وَّاحِدًا.

مونږ د عمرې احرام او تړلو. بیا نبي صلی الله علیه وسلم او فرمائیل: چاسره چه د قرباني څناور وي، هغه دې د حج او عمرې دواړو نیت او تړي. بیا دې احرام نه پرانزي، څو پورې چه دې دواړو نه فارغ نشي، زهٔ مکې ته اورسیدم داسې حال کښې، چه زهٔ حائضه ووم، ما د خانه کعبې طواف اونه کړو او نهٔ م د صفا مروه مینځ کښې طواف اوکړو. ما نبي صلي الله علیه وسلم ته د دې شکایت اوکړو، نو حضور صلي الله علیه وسلم او فرمائیل، خپل سر پرانزه، او ګومنز اوکړه، او دَ حج احرام اوتړه، او عمره پرېږده ما دغسې اوکړل. کوم وخت چه مونږ دَ حج نه فارغ شولو، نو نبي صلي الله علیه وسلم زهٔ عبدالرحمٰن بن ابي بکر رضي الله عنه سره مقام تنعیم طرف ته اولیږلم. ما عمره اوکړله. حضور صلي الله علیه وسلم او فرمائیل، چه دا ستا دَ عمرې بدله کښې دې. بي بي عائشې رضي الله عنه اووې، چه کومو خلقو دَ عمرې احرام تړلې وو. دَ خانه کعبې او د صفا، مروه مینځ کښې ئې طواف اوکړو، بیائې احرام پرانستلو. بیا د منٰي نه واپسي نه پس یو بل طواف ئې اوکړو، او کومو خلقو چه د حج او عمرې دواړو احرام تړلې وو، نو هغې خلقو صرف یو طواف اوکړو.

۱. د احنافو په نز د هم دا مسئله ده. قیصه داسې وه چه حضرت عائشې بي بي رضي الله عنهما د عمرې احرام تړلې وو کله ئې چه حیض راغې نو رسول الله صلي الله علیه وسلم ورته حکم اوکړو چه عمره پرېږده. د حدیث شریف په اولنئ حصه کښې دي.

**فَاَهْلَلْنَا بِعُمْرَةٍ** نو مونږ د عمرې احرام او تړلو

شوافع وائي. چه څمونږ مور بي بي د قِران (د حج او عمرې دواړو) احرام تړلې وو. لیکن سوال دا دې که هغې د قران احرام تړلې وې. نو بیائې احرام وو نو څرنګ ورته رسول الله صلي الله علیه وسلم د سرمنګزولو، د عمرې د احرام د پرېښودلو حکم ورکړې وؤ. حدیث شریف په دې مسئله کښې واضح دې شوافعو چه د دې کوم تاویلونه کړې دي. هغه کافي ندي.

باب ۱۱۸: مَنْ اَهَلَّ فِيْ زَمَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَاِهْلَالِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَهُ ابْنُ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

باب ۱۱۸: د هغه سړي بيان چه هغه د نبي صلى الله عليه وسلم په زمانه کښ د نبي صلى الله عليه وسلم په شان احرام او تړلو. ابن عمر رضي الله عنه دا د نبي صلى الله عليه وسلم نه روايت کړې دې.

۱۶۴: حَدَّثَنَا الْمَكِّيُّ ابْنُ اِبْرَاهِيْمَ عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ قَالَ عَطَاءٌ قَالَ جَابِرٌ اَمَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلِيًّا اَنْ يُقِيْمَ عَلٰى اِحْرَامِهِ وَ ذَكَرَ قَوْلَ سُرَاقَةَ وَ زَادَ مُحَمَّدُ ابْنُ بَكْرٍ عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ قَالَ لَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمَآ اَهْلَلْتَ يَا عَلِيُّ قَالَ بِمَا اَهَلَّ بِهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ فَاهْدِ وَامْكُثْ حَرَامًا كَمَا اَنْتَ.

۱۶۴: مکي بن ابراهيم. ابن جريج. عطاء. جابر رضي الله عنه بيان کوي: نبي صلي الله عليه وسلم حضرت علي رضي الله عنه ته حکم ورکړ: چه هغه په خپل احرام قائم پاتې شي او د سراقه قول ئې بيان کړ او محمد بن بکر په واسطه د جريج دومره نور زيات بيان او کړ: چه نبي صلي الله عليه وسلم د هغه نه تپوس او کړ: اې علي رضي الله عنه: تا د څه څيز احرام تړلې دې. حضرت علي رضي الله عنه جواب ورکړ: د کوم څيز احرام چه نبي صلي الله عليه وسلم تړلې دې. حضور صلي الله عليه وسلم ورته او فرمائيل: نو قرباني وکړه او احرام کښې اوسه: څنګه چه دا وخت ئې.

ا. د سراقه د واقعې بيان د هغه سوال او د رسول الله صلي الله عليه وسلم جواب مخکښې بيا راځي.

۱۶۵: حَدَّثَنَا الْحَسَنُ ابْنُ عَلِيِّ نِ الْخَلَّالُ الْهُذَلِيُّ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الصَّمَدِ قَالَ حَدَّثَنَا سُلَيْمُ بْنُ حَيَّانَ قَالَ سَمِعْتُ مَرْوَانَ الْاَصْفَرَ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ قَدِمَ عَلِيٌّ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ لَوْلَا اَنَّ مَعِيَ الْهَدْيَ لَاَحْلَلْتُ.

۱۶۵: حسن بن علي خلال هذلي عبدالصمد. سليم بن حيان. مروان اصفر. انس بن مالک رضي الله عنه نه روايت کړی: حضرت علي رضي الله عنه: نبي صلي الله عليه وسلم ته د يمن نه راغې: نو حضور صلي الله عليه وسلم تپوس او کړ: تا د څه څيز احرام تړلې دې: هغه جواب ورکړ د څه چه نبي صلي الله عليه وسلم تړلې دې. حضور صلي الله عليه وسلم ورته او فرمائيل: که ما سره د قرباني څناور نه وې: نو ما به احرام پرانستې وې.

۱۶۶۱: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوسُفَ قَالَ حَدَّثَنَا سُفْيَنُ عَنْ قَيْسِ بْنِ مُسْلِمٍ عَنْ طَارِقِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ أَبِي مُوسَى قَالَ بَعَثَنِي النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى قَوْمِي بِالْيَمَنِ فَجِئْتُ وَهُوَ بِالْبَطْحَاءِ فَقَالَ بِمَا أَهْلَلْتَ فَقُلْتُ أَهْلَلْتُ كَإِهْلَالِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ هَلْ مَعَكَ مِنْ هَدْيٍ قُلْتُ لَا فَأَمَرَنِي أَنْ أَطُوفَ بِالْبَيْتِ فَطُفْتُ بِالْبَيْتِ وَ بِالصَّفَا وَالْمَرْوَةِ ثُمَّ أَمَرَنِي فَأَحْلَلْتُ فَأَتَيْتُ امْرَأَةً مِنْ قَوْمِي فَمَشَطَتْنِي أَوْ غَسَلَتْ رَأْسِي فَقَدِمَ عُمَرُ فَقَالَ إِنْ نَأْخُذْ بِكِتَابِ اللّٰهِ فَإِنَّهُ يَأْمُرُنَا بِالتَّمَامِ قَالَ اللّٰهُ تَعَالَى وَ أَتِمُّوا الْحَجَّ وَالْعُمْرَةَ لِلّٰهِ وَ إِنْ نَأْخُذْ بِسُنَّةِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَإِنَّهُ لَمْ يَحِلَّ حَتَّى نَحَرَ الْهَدْيَ.

۱۶۶۱: محمد بن یوسف. سفیان. قیس بن مسلم. طارق بن شهاب. ابو موسی نه روایت کوي: هغه بیان او کړ: چه نبي صلی الله علیه وسلم خما قوم ته ز ه یمن ته اولیږلم. زه داسې حال کښې راغلم: چه حضور صلي الله علیه وسلم بطحا کښې وو. نو حضور صلي الله علیه وسلم او فرمایل: تا د څهٔ څیز احرام تړلے دے. ما ورته اووے. د نبي صلی الله علیه وسلم په شان احرام م تړلے دے. حضور صلي الله علیه وسلم تپوس او کړ: آیا تا سره د هدي (د قربانۍ خناور) شته. ما جواب او کړ: نه. حضور صلي الله علیه وسلم ما ته حکم راکړ: چه زه د خانه کعبې طواف او کړم: نو ما د خانه کعبې او صفا: مروه طواف او کړ. بیانې ماته د احرام د پرانستلو حکم او کړلو. ما احرام پرانستلو. زه د خپل قوم یوې ښځې له راغلم: هغې خما سر ګومنز کړلو: یا خما سر: ئې او وینځلو: بیا د عمر رضي الله عنه د خلافت وخت راغې: نو هغوي اووے: که مونږ د الله کتاب نیسو: نو هغه مونږ ته د حج او عمرې د پوره کولو حکم راکوي: او که مونږ د نبي صلی الله علیه وسلم سنت نیسو: نو حضور صلي الله علیه وسلم احرام پرانه نستلو: تر دې چه قرباني ئې او کړله.

۱. علامه ابن حجر رحمة الله علیه د مختلفو روایاتو په رڼړا کښې دا لیکلي دي چه دغه ښځه د ابو موسی رضي الله عنه بابي (د رور ښځه) وه.

۲. امام بخاري رحمة الله علیه د باب نتولو احادیثو سره دا واضحه کوي. که یو بنده داسې احرام اوتړي "چه زه داسې احرام تړم څرنګ چه د فلاني دے" نو دے سره به هغه محرم شي یا نه؟

د احنافو مسلک دا دے چه محرم به شي لیکن د حج د کارونو شروع کولو نه وړاندې به دا فیصله کوي. چه حج او عمره کښې به کوم عبادت سرته رسوي. حضرت ابو موسی او حضرت علي رضی الله عنهما دواړو د نبي کریم صلي الله علیه وسلم د احرام پشان احرام تړلے وو لیکن ابو موسی رضی الله عنه

ته دا حکم اوشو. چه عمره دے او کړي. او احرام دے ختم کړي بيا دے څه ورځے پس د حج احرام او تړي. بل طرفته حضرت علي رضي الله عنه ته نے دا حکم نه وو کړے حضرت علي رضي الله عنه خپل احرام باقي اوساتلو او د حج نه روستو د هغه احرام ختم شو ځکه چه هغه خان سره د قرباني ځاروے راوستے وو چه د هغے په وجه' د هغه د عمرے احرام د عمرے او د حج په مينځ کښې نه ختميدو. دواړو مشرانو د نبي کريم صلي الله عليه وسلم د احرام پشان احرام تړلے وو نبي کريم صلي الله عليه وسلم د حج قران (د حج او عمرے په يو ځائے) د ادا کولو احرام تړلے وو ليکن د دواړو صحابه ؤ په احرام کښې فرق راغے د ابو موسي رضي الله عنه حج' حجِ تمتّع شو او د حضرت علي رضي الله عنه حجَ قران شو. د دينه معلومه شوه. چه اصل احرام پدے طريقه کيږي. خو بيائے د حج د کارونو شروع کولو نه وړاندے فيصله کول دي. چه حج کوي يا عمره.

باب ۱۱۹: قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى اَلْحَجُّ اَشْهُرٌ مَّعْلُوْمٰتٌ فَمَنْ فَرَضَ فِيْهِنَّ الْحَجَّ فَلَا رَفَثَ وَلَا فُسُوْقَ وَلَا جِدَالَ فِى الْحَجِّ يَسْئَلُوْنَكَ عَنِ الْاَهِلَّةِ قُلْ هِىَ مَوَاقِيْتُ لِلنَّاسِ وَالْحَجِّ وَ قَالَ ابْنُ عُمَرَ اَشْهُرُ الْحَجِّ شَوَّالٌ وَّ ذُو الْقَعْدَةِ وَ عَشْرٌ مِّنْ ذِى الْحَجَّةِ وَ قَالَ عُثْمَانُ مِنَ السَّنَةِ اَنْ لَّا يُحْرِمَ مِنْ خُرَاسَانَ اَوْ كِرْمَانَ.

باب ۱۱۹: دَ اللّٰه تعالي قول چه دَ حج څو مياشتے مقرر دي. چا چه دے مياشتو کښې د حج اراده او کړه' نو نهٔ دے جماع کوي او نهٔ دے د ګناه کار کوي او نهٔ دے جګړه کوي. خلق تا نه دَ سپوږمۍ متعلق تپوس کوي' ورته اووايه دا خلقو دَ پاره او حج دَ پاره دَ وخت معلومولو يوه ذريعه ده. او ابن عمر رضي الله عنه او فرمائيل' چه دَ حج مياشتے شوال' ذي قعده او د ذي الحجه لس ورځے دي. او ابن عباس فرمائيلے دي' سنت دا دي' چه دَ حج مياشت کښې دَ حج احرام او تړي او عثمان رضي اللّٰه عنه ويلے دي د سنت نهٔ دي چه د خراسان يا کرمان نه به احرام نه تړي.

۱. د لرے ځائے نه احرام تړلو کښې دا خطره ده چه د حج د آدابو خلاف ورزي به اوشي او کوم کارونه چه حج کښې منعه دي او په هغے کفاره ده. هغه جنايات او نشي.

۱٦۷: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ قَالَ حَدَّثَنَا اَبُوْ بَكْرٍ الْحَنَفِيُّ قَالَ حَدَّثَنَا اَفْلَحُ بْنُ حُمَيْدٍ قَالَ سَمِعْتُ الْقَاسِمَ ابْنَ مُحَمَّدٍ عَنْ عَآئِشَةَ قَالَتْ خَرَجْنَا مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى

۱٦۷: محمد بن بشار. ابو بکر حنفي. افلح بن جهيد. قاسم بن محمد. بي بي عائشے رضي الله عنه نه روايت کوي' چه مونږ نبي صلي الله عليه وسلم سره دَ حج مياشتو کښې' دَ حج شپو کښې' د حج زمانه کښې اووتلو' مونږ سرف کښې قيام اوکړ. بي بي عائشه رضي اللّٰه عنه فرمائي' حضور صلي الله عليه وسلم خپلو

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ اَشْهُرِ الْحَجِّ وَلَيَالِي الْحَجِّ وَحُرُمِ الْحَجِّ فَنَزَلْنَا بِسَرِفٍ قَالَتْ فَخَرَجَ اِلَى اَصْحَابِهٖ فَقَالَ مَنْ لَّمْ يَكُنْ مِنْكُمْ مَعَهٗ هَدْيٌ فَاَحَبَّ اَنْ يَّجْعَلَهَا عُمْرَةً فَلْيَفْعَلْ وَمَنْ كَانَ مَعَهُ الْهَدْيُ فَلَا قَالَتْ فَالْاٰخِذُ بِهَا وَالتَّارِكُ لَهَا مِنْ اَصْحَابِهٖ قَالَتْ فَاَمَّا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَرِجَالٌ مِّنْ اَصْحَابِهٖ فَكَانُوْا اَهْلَ قُوَّةٍ فَكَانَ مَعَهُمُ الْهَدْيُ فَلَمْ يَقْدِرُوْا عَلَى الْعُمْرَةِ قَالَتْ فَدَخَلَ عَلَيَّ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَاَنَا اَبْكِيْ فَقَالَ مَا يُبْكِيْكِ يَا هَنْتَاهُ قُلْتُ سَمِعْتُ قَوْلَكَ لِاَصْحَابِكَ فَمُنِعْتُ الْعُمْرَةَ قَالَ وَمَا شَاْنُكِ قُلْتُ لَا اُصَلِّيْ قَالَ فَلَا يَضُرُّكِ اِنَّمَا اَنْتِ امْرَاَةٌ مِّنْ بَنَاتِ اٰدَمَ كَتَبَ اللّٰهُ عَلَيْكِ مَا كَتَبَ عَلَيْهِنَّ فَكُوْنِيْ فِيْ حَجَّتِكِ فَعَسَى اللّٰهُ اَنْ يَّرْزُقَكِيْهَا قَالَتْ فَخَرَجْنَا فِيْ حَجَّتِهٖ حَتّٰى قَدِمْنَا مِنًى فَطَهُرْتُ ثُمَّ خَرَجْتُ مِنْ مِّنًى فَاَفَضْتُ بِالْبَيْتِ قَالَتْ ثُمَّ خَرَجْتُ مَعَهٗ

صحابه رضي الله عنه ؤ سره راغے' او' وې فرمائيل' تاسو کښې چه چا سره د قربانۍ څناور نه وي' او هغه دا عمره جوړول غواړي' نو عمره دې جوړه کړي' او چا سره چه د قربانۍ څناور وي' هغه دې داسې نۀ کوي. بي بي عائشې رضي الله عنه اووې' بعضې صحابه رضي الله عنه ؤ په دې عمل اوکۀ' او بعضو پريښوده. ليکن رسول الله صلي الله عليه وسلم او د حضور صلي الله عليه وسلم صحابه رضي الله عنه قوت واله وو' او هغوي سره د قربانۍ څناور وو. نو هغوي قرباني نۀ شوه کولې. بي بي عائشې رضي الله عنه اووې' رسول الله صلي الله عليه وسلم ما پله تشريف راوړلو' داسې حال کښې' چه ما ژړل' حضور صلي الله عليه وسلم او فرمائيل' اې بهوله (ساده) ښځې' تۀ ولې ژاړې. ما عرض اوکۀ' تاسو چه خپلو ملګرو ته څۀ او فرمائيل' ما هغه واوريدل. اوس خو زۀ عمره نشم کولې. حضور صلي الله عليه وسلم او فرمائيل' ولې څۀ خبره ده' ما جواب ورکه' چه زۀ نشم کولې (يعني حائضه يم) حضور صلي الله عليه وسلم او فرمائيل' ستا د پاره هيڅ حرج نشته' تۀ د آدم د لونړو نه يوه لور' يې' څه چه د ټولو ښځو په مقدر کښې ليکلې دي' هغه ستا مقدر کښې هم دي. تۀ خپل حج کښې اوسه. ډيره ممکنه ده' چه الله ستا عمره نصيب کړي. بي بي عائشې رضي الله عنه اووې' مونږ حج د پاره راووتلو' تر دې چه منۍ ته راورسيدو. هلته پاکه شوم' بيا زۀ د منۍ نه اووتلم د خانه کعبې طواف م اوکۀ' بيا زۀ حضور صلي الله عليه وسلم سره آخري کوچ کښې اووتلم' تر دې چه حضور صلي الله عليه وسلم محصب کښې کوز شولو' او

فِــي الــنَّــفْــرِ الْاٰخِــرِ حَتّٰــي نَــزَلَ الْمُحَصَّبَ وَ نَزَلْنَا مَعَهُ فَدَعَا عَبْدَ الرَّحْمٰنِ بْنِ اَبِي بَكْرٍ فَقَالَ اُخْرُجْ بِاُخْتِكَ مِنَ الْحَرَمِ فَلْتُهِلَّ بِعُمْرَةٍ ثُمَّ افْرُغَا ثُمَّ ائْتِيَاهَا هُنَا فَاِنِّيُ اَنْظُرُ كُمَا حَتّٰى تَاْتِيَانِيُ قَالَتْ فَخَرَجْنَا حَتّٰى اِذَا فَرَغْتُ وَ فَرَغَ مِنَ الطَّوَافِ ثُمَّ جِئْتُهُ بِسَحَرٍ فَقَالَ هَلْ فَرَغْتُمْ قُلْتُ نَعَمْ فَاٰذَنَ بِالرَّحِيْلِ فِيُ اَصْحَابِهِ فَارْتَحَلَ النَّاسُ فَمَرَّ مُتَوَجِّهًا اِلَى الْمَدِيْنَةِ قَالَ اَبُوْ عَبْدِ اللّٰهِ يَضِيْرُ مِنْ ضَارَ يَضِيْرُ ضَيْرًا اَوْ يُقَالُ ضَارَ يَضُوْرُ ضَوْرًا وَّ ضَرَّ يَضُرُّ ضَرًّا.

موږ هم حضور صلي اللّه عليه وسلم سره كوز شولو نو حضور صلي اللّه عليه وسلم عبدالرحمن بن ابي بكر رضي اللّه عنه راوغښتلو او ورے فرمائيل چه خپله خور د حرم نه بوخه چه د عمرے احرام وتړي بيا چه دواړه د عمرے نه فارغ شئ نو دلته راشئ زه به ستاسو انتظار كښې يم څو پورے چه تاسو دواړه رانشئ. بي بي عائشے رضي اللّه عنه اووے موږ او وتلو حتي چه زه او هغه د طواف نه فارغ شو. بيا زه حضور صلي اللّه عليه وسلم پله سحر وخت كښې راورسيدم. حضور صلي اللّه عليه وسلم تپوس اوكه آيا تاسو فارغ شوئي. ما ورته اووے چه او حضور صلي اللّه عليه وسلم خپلو ملګرو كښې د روانګئ اعلان اوكړلو نو خلق روان شولو او مدينے طرف ته ئے مخه اوكړله. ابو عبداللّه (بخاري) اووے يضير ضار يضير ضيرا نه ماخوذ دے. او ضار يضور ضورا او ضر يضر ضرا هم وئيلے شي.

۱. اول نبي كريم صلي اللّه عليه وسلم اجازت كړے وو چه څرنګ د چا خوښه وي هغه شان دے اوكړي. او چه كله مكے مكرمے ته اورسيدو او د خلقو د مسلسل احرامئے اوليدو نو حكم ئے اوكړو. چه خپل احرام د عمرے كړئ د عمرے نه پس احرام لرے كړئ. بيا په اتم د ذي الحجے د حج احرام اوتړئ. بعضے رواياتو كښې دي چه پدے حكم هيچا عمل اونكړو. پدے روايت كښې دي. چه بعضو پرے عمل اونكړو. ليكن اكثر صحابه و پكښې سوچ كوؤ. پدے رسول اللّه صلي اللّه عليه وسلم دير غصه شو. چه صحابه كرام د اللّه تعالي په اجازت عمل كولو كښې ولے سوچ كوي. داسے واقعاتو كښې په ډيرو موقعو د نبي كريم صلي اللّه عليه وسلم غصه كيدل ثابت دي. په سفر كښې د صحابه كرامو په روژه نيولو ئے خفګان ښكاره كړے وو او فرمايلے وو چه سفر كښې روژه نيول نيكي نده. خمونږ ميندو بيبيانو (امهات المؤمنين) رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُنَّ په مسجد نبوي كښې د اعتكاف د پاره خيمے لګولے وے چه كله ئے خيمے اوليدلے خفګان ئے ښكاره كړے وو. او اوئے فرمايل "ښه نيكئ د پاره راغلي دي. دا مثال هم د دے قسم دے.

## بَاب ۱۲۰ : التَّمَتُّعِ وَالْقِرَانِ وَالْاِفْرَادِ بِالْحَجِّ وَ فَسْخِ الْحَجِّ لِمَنْ لَّمْ

**باب ۱۲۰** : تمتع اقران او د افراد حج بيان او د هغے سړي حج فسخ كول چه هغه سره د قرباني

يَكُنْ مَعَهُ هَدْيٌ.

١٦٨١ : حَدَّثَنَا عُثْمَانُ قَالَ حَدَّثَنَا جَرِيرٌ عَنْ مَنْصُورٍ عَنْ إِبْرَاهِيمَ عَنِ الْأَسْوَدِ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ خَرَجْنَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَا نُرَى إِلَّا أَنَّهُ الْحَجُّ فَلَمَّا قَدِمْنَا تَطَوَّفْنَا بِالْبَيْتِ فَأَمَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ لَمْ يَكُنْ سَاقَ الْهَدْيَ أَنْ يَحِلَّ فَحَلَّ مَنْ لَمْ يَكُنْ سَاقَ الْهَدْيَ وَنِسَاؤُهُ لَمْ يَسُقْنَ فَأَحْلَلْنَ قَالَتْ عَائِشَةُ فَحِضْتُ فَلَمْ أَطُفْ بِالْبَيْتِ فَلَمَّا كَانَتْ لَيْلَةُ الْحَصْبَةِ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ يَرْجِعُ النَّاسُ بِعُمْرَةٍ وَحَجَّةٍ وَأَرْجِعُ أَنَا بِحَجَّةٍ قَالَ وَمَا طُفْتِ لَيَالِيَ قَدِمْنَا مَكَّةَ قُلْتُ لَا قَالَ فَاذْهَبِي مَعَ أَخِيكِ إِلَى التَّنْعِيمِ فَأَهِلِّي بِعُمْرَةٍ ثُمَّ مَوْعِدُكِ كَذَا وَكَذَا وَقَالَتْ صَفِيَّةُ مَا أُرَانِي إِلَّا حَابِسَتَكُمْ فَقَالَ عُقْرَى حَلْقَى أَوَ مَا طُفْتِ يَوْمَ النَّحْرِ قَالَتْ قُلْتُ بَلَى قَالَ لَا بَأْسَ انْفِرِي قَالَتْ عَائِشَةُ فَلَقِيَنِي النَّبِيُّ

خناور نه وي.

١٦٨١ : عثمان. جریر. منصور. ابراهیم. اسود. بي بي عائشه رضي الله عنه روايت كوي چه مونږ خلق رسول الله صلی الله علیه وسلم سره اووتلو خمونږ اراده صرف د حج كولو وه. كوم وخت چه مونږ مكې ته اورسيدو نو د خانه كعبې طواف مو او كړ نبي صلی الله عليه وسلم حكم اوكړ چا سره چه د قرباني خناور نه وي هغه دې خپل احرام پرانزي نو كومو خلقو چه د قرباني خناور نه وو راوستې. هغوي احرام پرانستلو. د حضور صلي الله عليه وسلم بيبيانو هم د قرباني خناور نه وو راوستلې نو هغوي هم احرام پرانستلو بي بي عائشې رضي الله عنه اووې چه زه حائضه شوم نو ما د خانه كعبې طواف اونه كړلو. چه د حصبه شپه راغله نو ما عرض اوكړ يا رسول الله خلق به حج او عمره اوكړي واپس به شي او زه به صرف حج كولو نه پس واپس شمه. حضور صلي الله عليه وسلم تپوس اوكړ مونږ چه مكې ته راغلي وو نو آيا تا طواف نه وو كړې. ما اووې نه حضور صلي الله عليه وسلم او فرمائيل. خپل وروړ سره مقام تنعيم ته لاړه شه او د عمرې احرام او تړه. بيا فلاني فلاني ځائې ته راشئې. او بي بي صفيې رضي الله عنه عرض اوكړ خما خيال دې چه زه به ستاسو د ايسارولو سبب او ګرځم. حضور صلي الله عليه وسلم ورته او فرمائيل عقري حلقي (شنډې سرخريلې) آيا تا يوم نحر كښې طواف نه دې كړې. ما اووې او حضور او فرمائيل. بيا هيڅ حرج نشته ته كوه بي بي عائشې رضي الله عنه اووې ما سره نبي صلی الله عليه

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ مُصْعِدٌ مِنْ مَكَّةَ وَ أَنَا مُنْهَبِطَةٌ عَلَيْهَا أَوْ أَنَا مُصْعِدَةٌ وَهُوَ مُنْهَبِطٌ مِنْهَا.

وسلم داسے حال کښې یو خائے شولو، چه حضور صلي الله عليه وسلم ذ مکے نه پورته ختلو، او زهٔ هلته کوزیدم. یا وے وئیل، زهٔ ختلم، او حضور صلي الله عليه وسلم را کوزیدلو.

١. رسول الله صلي الله عليه وسلم ته د وړاندے نه دا عِلم وو. چه عائشه رضي الله عنها حائضه شویده او د نبي کریم صلي الله عليه وسلم په حکم ئے عمره پریښودلے وه. دے روایت کښې صرف د راوي د بیان فرق دے واقعه هم هغه ده چه نورو تیر شوو روایاتو کښې ذکر شویده.

٢. د صفیه بي بي رضي الله عنها واقعه به د کتاب الحجّ آخر کښې په تفصیل سره راشي.

٣. رسول الله صلي الله عليه وسلم دا مبارک الفاظ د حضرت عائشے بي بي رضي الله عنها په حقله د مینے انداز کښې فرمایلي وو.

١٦٩: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ قَالَ أَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ أَبِي الْأَسْوَدِ مُحَمَّدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ نَوْفَلٍ عَنْ عُرْوَةَ ابْنِ الزُّبَيْرِ عَنْ عَائِشَةَ أَنَّهَا قَالَتْ خَرَجْنَا مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَامَ حَجَّةِ الْوَدَاعِ فَمِنَّا مَنْ أَهَلَّ بِعُمْرَةٍ وَ مِنَّا مَنْ أَهَلَّ بِحَجٍّ وَّ عُمْرَةٍ وَّ مِنَّا مَنْ أَهَلَّ بِالْحَجِّ وَ أَهَلَّ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْحَجِّ فَأَمَّا مَنْ أَهَلَّ بِالْحَجِّ أَوْ جَمَعَ الْحَجَّ وَالْعُمْرَةَ لَمْ يَحِلُّوْا حَتّٰى كَانَ يَوْمُ النَّحْرِ.

١٦٩: عبدالله بن یوسف. مالک. ابو الاسود. محمد بن عبدالرحمن بن نوفل. عروه بن زبیر. بي بي عائشے رضي الله عنه نه روایت کوي، ذ هغے بیان دے، مونږ خلق رسول الله صلے الله عليه وسلم سره ذ حجة الوداع په کال اووتلو. مونږ کښې بعضو ذ عمرے احرام او تړلو، او بعضو ذ حج او عمرے دواړو احرام تړلے وو. او بعضو صرف ذ حج احرام او تړلو، او رسول الله صلے الله عليه وسلم ذ حج احرام او تړلو، نو چا چه ذ حج احرام او تړلو، یا چا چه د حج او عمرے دواړو احرام او تړلو، هغوي ذ احرام نه بهر نهٔ شولو تر دے چه ذ قرباني ورځ راغله.

٤. د سلسله کښې بنیادي خبره دا ده. چه احرام کښې صرف نیت (د زړه ارادے) له اعتبار دے د زړهٔ اراده په الفاظو کښې ادا کول ضروري نهٔ ده. رسول الله صلي الله عليه وسلم د حجّ قِران نیت کړے وو قارن (د حج او عمرے په یو خائے نیت کونکے په یو احرام) وو. د دے وجے نه د احنافو په نزد حجّ قِران، د حجّ تمتع او حجّ اِفراد نه غوره دے د نبي کریم صلي الله عليه وسلم د حجّ قِران د تړلو نه لوئے دلیل دا دے چه هغوي سره "هَدي" د قرباني څاروے وو او د بخاري په متواترو احادیثو کښې دي چه رسول الله صلي الله عليه وسلم حکم کړے وو چه چا سره د قرباني څاروے دے د هغه د عمرے ادا کولو نه پس احرام نه

ختميږي مُحرم دې حلال نه دې د صحيحو احاديثونه ثابته ده چه نبي كريم صلي الله عليه وسلم د عمرې ادا كولو نه پس احرام كښې وؤ احرام ئې ختم كړې نه وو. راويان چه د نبي كريم صلي الله عليه وسلم مختلف حالات بيانوي نو دهغوئ نظر به عموماً محض د تلبيې په الفاظو باندې وو. تلبيه كښې به رسول الله صلي الله عليه وسلم كله دَ حج الفاظ ويل، كله د عمرې او كله د حج او عمرې دواړو كوم صحابي چه څرنګ تلبيه واوريده په هغه طرز ئې د هغوئ د حج په حقله روايت اوكړو.

۱۷۰: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ قَالَ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ قَالَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنِ الْحَكَمِ عَنْ عَلِيِّ بْنِ حُسَيْنٍ عَنْ مَرْوَانَ بْنِ الْحَكَمِ قَالَ شَهِدْتُّ عُثْمَانَ وَ عَلِيًّا وَّ عُثْمَانُ يَنْهٰى عَنِ الْمُتْعَةِ وَ اَنْ يُّجْمَعَ بَيْنَهُمَا فَلَمَّا رَاٰى عَلِيٌّ اَهَلَّ بِهِمَا لَبَّيْكَ بِعُمْرَةٍ وَّ حَجَّةٍ قَالَ مَا كُنْتُ لِاَدَعَ سُنَّةَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِقَوْلِ اَحَدٍ.

۱۷۰: محمد بن بشار. غندر. شعبه. حكم. علي بن حسين. مروان بن حكم نه روايت كوي، دَ هغهٔ بيان دې، چه زهٔ دَ حضرت عثمان رضي الله عنه او حضرت علي رضي الله عنه خلافت كښې موجود ووم. حضرت عثمان رضي الله عنه به تمتع او قِران نه منع كوله. هر كله چه حضرت علي رضي الله عنه اوليدل، نو دَ حج او عمرې دواړو احرام ئې اُتړلو او لبيك بِعُمْرَةٍ وَ بِحَجَّةٍ ئې اووې، اووې فرمائيل، چه دَ يو سړي په خوله زهٔ دَ نبي صلي الله عليه وسلم سنت نشم پريښودې.

۱. د حضرت عثمان رضي الله عنه پښان د حضرت عمر رضي الله عنه مخالفت هم په رواياتو كښې شته دې دې مشرانو پدې وجه دا مخالفت نه وو كړې چه دغه طريقې د حج (حجّ تمتع او حجّ قِران) ناروا دي. بلكې د حضرت عثمان او حضرت عمر رضي الله عنهما په نزد د حج افضله (غوره) طريقه دا وه. چه خان له (جُدا) يواځې حج اوكړې شي بغير د عمرې نه چه د چا طاقت وي. هغه دې حج له خان سفر اوكړي. او بيا دې داسې د عمرې ادا كولو د پاره جُدا سفر اوكړي. حضرت عمر رضي الله عنه دا آيت شريف اولوستو.

وَ اَتِمُّوا الْحَجَّ وَالْعُمْرَةَ لِلّٰهِ — او د الله د پاره حج او عمره پوره ادا كړني

هغه د آيت شريف دا مطلب بيانوو. چه دوه جُدا جُدا سفرونه به كوي.

ليكن چه د چا د دوو بسفرونو طاقت نه وي او هغه په يو سفر حج او عمره كولې شيْ نو هغه ولې د يو عبادت نه منعه كړې شي د حضرت عمر او د حضرت عثمان رضي الله عنهما دا خوښه، چه د الله تعالى د حرم شريف دې دوه خله زيارت اوشي د دې سره څه اختلاف كيدې شي. ليكن شرعي قانون د عامو حالاتو د پاره وي د احنافو په نزد په عام حالاتو كښې غوره طريقه د حج، حجّ قِران دې حضرت علي رضي الله عنه فرمائي. رسول الله صلي الله عليه وسلم حجّ قِران (حج او عمره يو ځائې) كړې وو زهٔ د حضرت عثمان رضي الله عنه په خبره د رسول الله صلي الله عليه وسلم طريقه څنګه پريږدم.

۱۷۱: حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ

۱۷۱: موسي بن اسمٰعيل. وهيب. ابن طاوس دَ

اسْمٰعِيْلُ قَالَ حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ قَالَ حَدَّثَنَا ابْنُ طَاوُسٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ كَانُوْا يَرَوْنَ اَنَّ الْعُمْرَةَ فِيْ اَشْهُرِ الْحَجِّ اَفْجَرُ الْفُجُوْرِ فِي الْاَرْضِ وَ يَجْعَلُوْنَ الْمُحَرَّمَ صَفَرَ وَ يَقُوْلُوْنَ اِذَا بَرَاَ الدَّبَرْ وَ عَفَا الْاَثَرْ وَانْسَلَخَ صَفَرْ حَلَّتِ الْعُمْرَةُ لِمَنِ اعْتَمَرْ قَدِمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَصْحَابُهُ صَبِيْحَةَ رَابِعَةٍ مُهِلِّيْنَ بِالْحَجِّ فَاَمَرَهُمْ اَنْ يَجْعَلُوْهَا عُمْرَةً فَتَعَاظَمَ ذٰلِكَ عِنْدَهُمْ فَقَالُوْا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَيُّ الْحِلِّ قَالَ حِلٌّ كُلُّهُ.

خپل پلار نه، هغه د حضرت عباس رضي الله عنه نه روایت کوي، د عربو خیال وو، چه د حج په میاشتو کښې عمره کول د دُنیا بد ترینه گناه ده. او محرّم به ئې صفر جوړوله او وئیل به ئې، د اوښ د شا زخم چه ښه شي، او نښې ئې ورکې شي، او صفر تیره شي، نو عمره حلاله ده. د هغې سړي د پاره چه عمره کول غواړي. نبي صلي الله علیه وسلم او د هغوي صحابه رضي الله عنه و د څلورم په سحر د حج احرام تړلے مکے ته تشریف راوړلو. حضور صلي الله علیه وسلم خلقو ته حکم ورکهٔ چه دا عمره جوړه کړي. خلقو ته دا خبره گرانه شوه نو خلقو تپوس اوکهٔ، یا رسول الله، کوم څیز به حلال وي، حضور صلي الله علیه وسلم او فرمائیل، ټول څیزونه به حلال وي.

١٧٢: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنّٰى قَالَ حَدَّثَنَا غُنْدُرٌ قَالَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ قَيْسِ بْنِ مُسْلِمٍ عَنْ طَارِقِ بْنِ شِهَابٍ عَنْ اَبِيْ مُوْسٰى قَالَ قَدِمْتُ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَمَرَهُ بِالْحِلِّ.

١٧٢: محمد بن مثني. غندر. شعبه. قیس بن مسلم. طارق بن شهاب. حضرت ابو موسي نه روایت کوي، د هغه بیان دے چه زهٔ نبي صلے الله علیه وسلم له راغلم، نو حضور صلي الله علیه وسلم د احرام د پرانستلو حکم اوکړلو.

١٧٣: حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ ح وَ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ يُوْسُفَ قَالَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ عَنْ حَفْصَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهَا قَالَتْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ مَا شَاْنُ النَّاسِ حَلُّوْا بِعُمْرَةٍ وَلَمْ تَحْلِلْ اَنْتَ مِنْ عُمْرَتِكَ

١٧٣: اسمٰعیل. مالک. ح. عبدالله بن یوسف. مالک. نافع ابن عمر رضي الله عنه. د بي بي حفصه رضي الله عنه د نبي صلے الله علیه وسلم د ټبر نه روایت کوي، بي بي حفصے رضي الله عنه ورته اووے، یا رسول الله، څهٔ خبره ده، چه خلقو د عمرے احرام پرانستلو، او تاسو پرانه نستلو حضور صلي الله علیه وسلم ورته او فرمائیل، ما د خپل سر تلبید کړے دے، او د هدي په غاړه

قَالَ اِنِّیْ لَبَّدْتُ رَاْسِیْ وَ قَلَّدْتُ هَدْیِیْ فَلَا اُحِلُّ حَتّٰی اَنْحَرَ.

کېنې م پېتنې اچولې دهٔ نو خکه زهٔ احرام نشم پرانستې څو پورې چه قرباني اونه کړم.

۱۷۴: حَدَّثَنَا اٰدَمُ قَالَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ حَدَّثَنَا اَبُوْ حَمْزَةَ نَصْرُ بْنُ عِمْرَانَ الضُّبَعِیُّ قَالَ تَمَتَّعْتُ فَنَهَانِیْ نَاسٌ فَسَاَلْتُ ابْنَ عَبَّاسٍ فَاَمَرَنِیْ فَرَاَیْتُ فِی الْمَنَامِ كَاَنَّ رَجُلًا یَقُوْلُ لِیْ حَجٌّ مَبْرُوْرٌ وَّ عُمْرَةٌ مُتَقَبَّلَةٌ فَاَخْبَرْتُ ابْنَ عَبَّاسٍ فَقَالَ سُنَّةَ النَّبِیِّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ قَالَ لِیْ اَقِمْ عِنْدِیْ وَاجْعَلَ لَكَ سَهْمًا مِنْ مَّالِیْ قَالَ لِیْ شُعْبَةُ فَقُلْتُ لِمَ فَقَالَ لِلرُّؤْیَا الَّتِیْ رَاَیْتَ.

۱۷۴: آدم. شعبه. ابو جمره. نضر بن عمران ضبعي نه روایت دې چه ما تمتع او کړه نو زهٔ ځنې خلقو منع کړم. ما د ابن عباس رضي الله عنه نه تپوس او کهٔ نو هغهٔ ما ته د تمتع حکم راکړلو. ما خوب کښې اولیدل یو سړې ما ته وائي چه حج مقبول دې او عمره مقبول ده. ما ابن عباس رضي الله عنه ته دغسې اووې نو هغهٔ او فرمائیل دا د نبي صلی الله علیه وسلم سنت دې او وې فرمائیل خما سره ایسار شه زهٔ د خپل مال نه ستا د پاره یوه حصه مقرروم شعبه وائي ما د ابو جمره نه تپوس او کهٔ ولې نو هغهٔ جواب راکهٔ د دې خوب په بنا چه ما لیدلې وو.

۱۷۵: حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَیْمٍ حَدَّثَنَا اَبُوْ شِهَابٍ قَالَ قَدِمْتُ مُتَمَتِّعًا مَكَّةَ بِعُمْرَةٍ فَدَخَلْنَا قَبْلَ التَّرْوِیَةِ بِثَلَاثَةِ اَیَّامٍ فَقَالَ اُنَاسٌ مِّنْ اَهْلِ مَكَّةَ تَصِیْرُ الْاٰنَ حَجَّتُكَ مَكِّیَّةً فَدَخَلْتُ عَلٰی عَطَاءٍ اَسْتَفْتِیْهِ فَقَالَ حَدَّثَنِیْ جَابِرُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ اَنَّهُ حَجَّ مَعَ النَّبِیِّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ یَوْمَ سَاقَ الْبُدْنَ مَعَهُ وَقَدْ اَهَلُّوْا بِالْحَجِّ مُفْرَدًا فَقَالَ لَهُمْ اَحِلُّوْا مِنْ اِحْرَامِكُمْ بِطَوَافِ الْبَیْتِ وَ بَیْنَ

۱۷۵: ابو نعیم. ابو شهاب اووې چه زهٔ مکې ته د احرام تړلې راغلم نو د یوم ترویه نه درې ورځې مخکښې راورسیدم. د مکې څو خلقو اووې چه اوس به ستا حج مکي شي. زهٔ عطاء له راغلم. چه د مسئلې پښتنه ترې او کړم نو هغهٔ اووې ما ته جابر بن عبدالله وئیلې دي چه هغهٔ نبي صلی الله علیه وسلم سره د حج او کهٔ په کومه ورځ چه نې د قرباني څناور حضور صلی الله علیه وسلم سره راوستلي وو. هغې خلقو د حج مفرد احرام تړلې وو. حضور صلي الله علیه وسلم هغې خلقو ته او فرمائیل د خپل احرام نه د خانه کعبې د طواف کولو نه او د صفا مروه د طواف کولو نه پس بهر شئې او خپل ویښتهٔ قینچي کړئې. بیا دغه شان بغیر احرام نه پاتې شئې تر دې چه یوم ترویه (اتم تاریخ) د ذي الحجه

الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ وَقَصِّرُوْا ثُمَّ اَقِيْمُوْا حَلاَلاً حَتّٰى اِذَا كَانَ يَوْمُ التَّرْوِيَةِ فَاَهِلُّوْا بِالْحَجِّ وَاجْعَلُوا الَّتِيْ قَدِمْتُمْ بِهَا مُتْعَةً فَقَالُوْا كَيْفَ نَجْعَلُهَا مُتْعَةً وَقَدْ سَمَّيْنَا الْحَجَّ فَقَالَ افْعَلُوْا مَا اَمَرْتُكُمْ فَلَوْلاَ اِنِّيْ سُقْتُ الْهَدْيَ لَفَعَلْتُ مِثْلَ الَّذِيْ اَمَرْتُكُمْ وَلٰكِنْ لاَّ يَحِلُّ مِنِّيْ حَرَامٌ حَتّٰى يَبْلُغَ الْهَدْيُ مَحِلَّهُ فَفَعَلُوْا قَالَ اَبُوْ عَبْدِ اللّٰهِ اَبُوْ شِهَابٍ لَيْسَ لَهُ مُسْنَدٌ اِلاَّ هٰذَا.

راشي، نو د حج احرام او تړئ. او څهٔ چه مو مخکښې کړے دي. هغه تمتع جوړه کړئ. خلقو عرض او کړ مونږ دا څنګه تمتع جوړه کړو، حالانکه مونږ د حج نيت کړے وو (د حج نوم مو آخستے وو) حضور صلي الله عليه وسلم ورته او فرمائيل، که ما د قرباني څناور نه وے راوستے، نو ما به هغسے کول، څنګه چه م تاسو ته حکم در کړے دے. ليکن ما د پاره څهٔ حرام څيز حلال کيدے نشي، څو پورے چه د قرباني څناور خپل ځائے ته اونه رسي، نو خلقو هغسے او کړل. ابو عبدالله (بخاري) اووے، چه ابو شهاب نه صرف دا مرفوع حديث روايت دے.

۱۷۶: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ قَالَ حَدَّثَنَا حَجَّاجُ بْنُ مُحَمَّدٍ نِ الْاَعْوَرِ عَنْ شُعْبَةَ عَنْ عَمْرِو بْنِ مُرَّةَ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ قَالَ اخْتَلَفَ عَلِيٌّ وَّ عُثْمَانُ وَهُمَا بِعُسْفَانَ فِي الْمُتْعَةِ فَقَالَ عَلِيٌّ مَا تُرِيْدُ اِلٰى اَنْ تَنْهٰى عَنْ اَمْرٍ فَعَلَهُ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ عُثْمَانُ دَعْنِيْ عَنْكَ قَالَ فَلَمَّا رَاٰى ذٰلِكَ عَلِيٌّ اَهَلَّ بِهِمَا جَمِيْعًا.

۱۷۶: قتيبه بن سعيد. محمد اعور. شعبه. عمرو بن مره. سعيد بن مسيب نه روايت دے، چه د حضرت علي رضي الله عنه او حضرت عثمان رضي الله عنه په مينځ کښې د متعه متعلق اختلاف پيدا شو، چه هغوي دواړه عسفان کښې وو، حضرت علي او فرمائيل، ستا څهٔ مقصد دے، چه دے کار نه منع کوے، کوم چه رسول الله صلي الله عليه وسلم کړے دے. حضرت عثمان رضي الله عنه ورته اووے، ما پريږده. هر کله چه حضرت علي رضي الله عنه دا اوليدل، نو هغهٔ حج او عمره د دواړو احرام ئے يو ځائے او تړلو.

## باب ۱۲۱: مَنْ لَبّٰى بِالْحَجِّ وَسَمَّاهُ.

## باب ۱۲۱: د هغے سړي بيان چه د حج لبيک اووائي، او د حج نوم واخلي.

۱۷۷: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ قَالَ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ اَيُّوْبَ قَالَ سَمِعْتُ مُجَاهِدًا يَقُوْلُ حَدَّثَنَا جَابِرُ

۱۷۷: مسدد، حماد بن زيد. ايوب. مجاهد. جابر بن عبدالله نه روايت کوي د هغهٔ بيان دے چه مونږ رسول الله صلي الله عليه

بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ قَدِمْنَا مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ نَحْنُ نَقُوْلُ لَبَّيْكَ بِالْحَجِّ فَاَمَرَنَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَجَعَلْنَاهَا عُمْرَةً.

وسلم سره راغلو' او مونږ خلقو وئيلے: لبيک بالحج' حضور صلي اللّٰه عليه وسلم مونږ خلقو ته حکم راکړلو (چه عمره جوړه کړئے) نو مونږ خلقو هغه عمره جوړ کړله.

**باب ۱۲۲ : التَّمَتُّعِ عَلٰى عَهْدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.**

**باب ۱۲۲ :** دَ نبي صلے اللّٰه عليه وسلم زمانه کښ دَ تمتع کولو بيان.

**۱۷۸ :** حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ اِسْمٰعِيْلَ قَالَ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ عَنْ قَتَادَةَ قَالَ حَدَّثَنِيْ مُطَرِّفٌ عَنْ عِمْرَانَ ابْنِ حُصَيْنٍ قَالَ تَمَتَّعْنَا عَلٰى عَهْدِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ نَزَلَ الْقُرْاٰنُ قَالَ رَجُلٌ بِرَاْيِهٖ مَا شَآءَ.

**۱۷۸ :** موسي بن اسمٰعيل. همام. قتاده. مطرف. عمران بن حصين رضي اللّٰه عنه نه روايت کوي' دَ هغهٔ بيان دے' چه مونږ دَ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم په زمانه کښ تمتع اوکړله' او دَ قرآن آيت نازل شولو' خو يو سړي دَ خپل رائے نه چه څهٔ خوښه وَه هغه ئے اووے.

**باب ۱۲۳ : قَوْلِ اللّٰهِ عَزَّ وَ جَلَّ ذٰلِكَ لِمَنْ لَّمْ يَكُنْ اَهْلُهٗ حَاضِرِى الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ وَ قَالَ اَبُوْ كَامِلٍ فُضَيْلُ بْنُ حُسَيْنِ الْبَصْرِيُّ.**

**باب ۱۲۳ :** دَ اللّٰه تعالٰي قول چه دا دَ هغے چا دَ پاره دے' چه خانه کعبے سره نهٔ اوسي' او ابو کامل فضيل بن حسين بصري اووے.

**۱۷۹ :** حَدَّثَنَا اَبُوْ مَعْشَرَ الْبَرَّآءُ قَالَ حَدَّثَنَا عُثْمَانُ ابْنُ غِيَاثٍ عَنْ عِكْرَمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ اَنَّهٗ سُئِلَ عَنْ مُتْعَةِ الْحَجِّ فَقَالَ اَهَلَّ الْمُهَاجِرُوْنَ وَالْاَنْصَارُ وَ اَزْوَاجُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ حَجَّةِ الْوَدَاعِ وَ اَهْلَلْنَا فَلَمَّا قَدِمْنَا مَكَّةَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

**۱۷۹ :** ابو معشر براء. عثمان بن غياث. عکرمه. ابن عباس رضي اللّٰه عنه نه روايت کوي' چه ابن عباس رضي اللّٰه عنه نه دَ متعه متعلق تپوس اوشو' نو هغه اووے' حجة الوداع کښې مهاجرينو' انصارو او بيبيانو رضي اللّٰه عنهن دَ نبي صلے اللّٰه عليه وسلم احرام او تړلو' او مونږ هم احرام او تړلو' رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلم او فرمائيل' خپل احرام دَ حج او عمرے احرام جوړ کړئے' خو کوم سړي چه هدي ته پټے اچولے وي. مونږ دَ خانه کعبے او دَ صفا' مروه مينځ کښ طواف اوکهٔ' او مونږ

وَسَلَّمَ اجْعَلُوْا اِهْلَالَكُمْ بِالْحَجِّ عُمْرَةً اِلَّا مَنْ قَلَّدَ الْهَدْيَ طُفْنَا بِالْبَيْتِ وَ بَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ وَ اَتَيْنَا النِّسَآءَ وَ لَبِسْنَا الثِّيَابَ وَ قَالَ مَنْ قَلَّدَ الْهَدْيَ فَاِنَّهٗ لَا يَحِلُّ حَتّٰى يَبْلُغَ الْهَدْيُ مَحِلَّهٗ ثُمَّ اَمَرَنَا عَشِيَّةَ التَّرْوِيَةِ اَنْ نُّهِلَّ بِالْحَجِّ فَاِذَا فَرَغْنَا مِنَ الْمَنَاسِكِ جِئْنَا فَطُفْنَا بِالْبَيْتِ وَ بِالصَّفَا وَالْمَرْوَةِ فَقَدْتَمَّ حَجُّنَا وَ عَلَيْنَا الْهَدْيُ كَمَا قَالَ اللّٰهُ عَزَّ وَ جَلَّ فَمَا اسْتَيْسَرَ مِنَ الْهَدْيِ فَمَنْ لَّمْ يَجِدْ فَصِيَامُ ثَلٰثَةِ اَيَّامٍ فِي الْحَجِّ وَ سَبْعَةٍ اِذَا رَجَعْتُمْ اِلٰى اَمْصَارِكُمْ الشَّاةُ تُجْزِئُ فَجَمَعُوْا نُسُكَيْنِ فِيْ عَامٍ بَيْنَ الْحَجِّ وَالْعُمْرَةِ فَاِنَّ اللّٰهَ اَنْزَلَهٗ فِيْ كِتَابِهٖ وَ سُنَّةِ نَبِيِّهٖ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَبَاحَهٗ لِلنَّاسِ غَيْرَ اَهْلِ مَكَّةَ قَالَ اللّٰهُ تَعَالٰى ذٰلِكَ لِمَنْ لَّمْ يَكُنْ اَهْلُهٗ حَاضِرِي الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ وَ اَشْهُرُ الْحَجِّ الَّتِيْ ذَكَرَ اللّٰهُ تَعَالٰى فِيْ كِتَابِهٖ شَوَّالٌ وَ ذُوالْقَعْدَةِ وَ ذُو الْحَجَّةِ فَمَنْ تَمَتَّعَ فِيْ هٰذِهِ الْاَشْهُرِ فَعَلَيْهِ دَمٌ اَوْ صَوْمٌ وَالرَّفَثُ الْجِمَاعُ وَالْفُسُوْقُ الْمَعَاصِيْ وَالْجِدَالُ الْمِرَآءُ.

خپلو ببیبانو له راغلو، صحبت مو ورسره اوکهٔ، او کپړے مو واغوستے. حضور صلي الله عليه وسلم او فرمائيل، چا چه هدي (دَ قربانۍ څناور) ته پټنۍ اچولے ده، نو دَ هغهٔ دَ پاره احرام پرانستل جائز نهٔ دي، څو پورے چه هدي خپل ځائے ته او نهٔ رسي. بيا دَ ترويه په شپهٔ ئے مونږ ته حکم اوکهٔ چه مونږ دَ حج احرام اوتړو. بيا چه دَ تمامو ارکانو نه فارغ شو، نو مونږ دَ خانه کعبے او صفا، مروه طواف اوکهٔ، او څمونږ حج پوره شو. او په مونږ قرباني واجب شوه، لکه چه الله تعالٰي فرمائيلے دي، چا ته چه دَ قربانۍ څناور حاصل نشي، نو درے ورځے نيول دَ هغهٔ په ذمه حج کښې واجب دي، او (نورے) اوه ورځے کله چه تاسو خپلو ښارونو ته واپس شے. او قرباني کښې يوه چيلۍ هم کافي ده، خلقو يَو کال کښې دوه عبادتونه يعني حج او عمره جمع کړل، او الله تعالٰي خپل کتاب کښې دا نازل کړے دي، او نبي صلے الله عليه وسلم دا خپل سنت جوړ کړے دي، او دَ مکيانو (مکے دَ خلقو) نه سِوا دَ نورو ځايونو دَ خلقو دَ پاره ئے جائز کړخولے دي. الله تعالٰي فرمائيلي دي، دا دَ هغے چا دَ پاره چه مسجد حرام (خانه کعبے) سره اوسيدونکے نهٔ وي، او دَ حج مياشتے هغه دي، چه الله تعالٰي خپل کتاب کښې بيان کړي دي: شوال. ذي قعده. ذي الحجه. چا چه دے مياشتو کښې عمره اوکړه، په هغهٔ قرباني واجب ده يا روژه. او "رفث" نه مراد جماع ده، او فسوق نه مراد گناه او جدال نه مراد خلقو سره جګړه کول دي.

۱. د احنافو هم دا مسلک دے چه د مکے مکرّمے خلق به نه حجِّ قِران کوي نه تَمَتُّع د عبدالله بن عباس رضي الله عنهما په بيان کښې د دے تائيد موجود دے دا د قرآن مجيد حکم دے.

باب ۱۲۴: اِغْتِسَالِ عِنْدَ دُخُوْلِ مَكَّةَ.

باب ۱۲۴: مکې کښې دَ داخلیدو په وخت دَ غسل کولو بیان.

۱. حافظ ابن حجر رحمة الله عليه د ابن المنذر رحمة الله عليه دا قول نقل کړے دے چه مکه کښې د داخليدو په وخت لامبل (غُسل کول) د ټولو عالمانو په نزد په اتفاق سره مستحب دي. ليکن که څوک او نه لامبي نو وربانديے څه فديه/ کفاره نشته. بعضے عالمانو ليکلي دي چه غسل نشي کولے تيمم دے او کړي.

۱۸۰: حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ ابْنُ إِبْرَاهِيمَ ثَنَا ابْنُ عُلَيَّةَ أَخْبَرَنَا أَيُّوبُ عَنْ نَافِعٍ قَالَ كَانَ ابْنُ عُمَرَ إِذَا دَخَلَ أَدْنَى الْحَرَمِ أَمْسَكَ عَنِ التَّلْبِيَةِ ثُمَّ يَبِيتُ بِذِي طُوًى ثُمَّ يُصَلِّي بِهِ الصُّبْحَ وَ يَغْتَسِلُ وَ يُحَدِّثُ أَنَّ نَبِيَّ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَفْعَلُ ذٰلِكَ.

۱۸۰: يعقوب بن ابراهيم. ابن عليه. ايوب. نافع نه روايت کوي، هغه اووے، چه ابن عمر رضي الله عنه به کوم وخت حرم ته نزدے رسيدلو، نو تلبيه به ئے موقوف کوله. بيا به ذي طوي کښې ټوله شپه پاتے وو، هلته به ئے دَ سحر مونځ کولو، او غسل به ئے کولو، او بيان به ئے کولو، چه نبي صلي الله عليه وسلم به هم دغسے کول.

باب ۱۲۵: دُخُوْلِ مَكَّةَ نَهَارًا وَّ لَيْلًا.

باب ۱۲۵: مکه کښې دَ ورځے يا دَ شپے دَ داخليدو بيان.

۲. د سر ليک لاندے چه امام بخاري رحمة الله عليه کوم حديث شريف نقل کړيدے په هغے کښې دا ذکر دے چه رسول الله صلي الله عليه وسلم مکه مکرّمه کښې د ورځے داخل شوے وو امام بخاري رحمة الله عليه په سرليک د "شپے" لفظ زيات کړو. چه د شپے مکے مکرّمے ته داخليدل روا دي. مستحب دا دي چه د ورځے بنده مکے مکرمے ته لاړ شي.

۱۸۱: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ عُبَيْدِ اللهِ حَدَّثَنِيْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ بَاتَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِذِيْ طُوًى حَتّٰى أَصْبَحَ ثُمَّ دَخَلَ مَكَّةَ وَ كَانَ ابْنُ عُمَرَ يَفْعَلُهُ.

۱۸۱: مسدد. يحيٰي. عبيد الله. نافع. ابن عمر رضي الله عنه نه روايت کوي، دَ هغه بيان دے چه نبي صلي الله عليه وسلم طوي کښې شپه تيره کره. چه سحر شو، نو مکه کښې داخل شو، او ابن عمر رضي الله عنه به هم دغسے کول.

باب ۱۲۶: مِنْ أَيْنَ يَدْخُلُ

باب ۱۲۶: مکه کښې به دَ کوم طرف نه

مَكَّةَ.

داخليږي.

۱۸۲ : حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ ابْنُ الْمُنْذِرِ حَدَّثَنِيْ مَعْنٌ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدْخُلُ مَكَّةَ مِنَ الثَّنِيَّةِ الْعُلْيَا وَ يَخْرُجُ مِنَ الثَّنِيَّةِ السُّفْلٰى.

۱۸۲ : ابراهيم بن منذر. معن. مالک. نافع. ابن عمر رضي اللّٰه عنه نه روايت کوي، ذ هغه بيان دے چه نبي صلے اللّٰه عليه وسلم به مکه کښې ذ ثنية العليا نه داخليدلو، او ذ ثنية السفلٰي نه به وتلو.

## باب ۱۲۷ : مِنْ أَيْنَ يَخْرُجُ مِنْ مَكَّةَ.

## باب ۱۲۷ : مکے نه به په کوم طرف اوځي.

۱۸۳ : حَدَّثَنَا مُسَدَّدُ بْنُ مُسَرْهَدٍ نِالْبَصْرِيُّ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَخَلَ مَكَّةَ مِنْ كَدَاءٍ مِنَ الثَّنِيَّةِ الْعُلْيَا الَّتِيْ بِالْبَطْحَاءِ وَ خَرَجَ مِنَ الثَّنِيَّةِ السُّفْلٰى.

۱۸۳ : مسدد بن سرحد بصري. يحيٰي. عبيد اللّٰه. نافع. ابن عمر رضي اللّٰه عنه نه روايت کوي، ذ هغه بيان دے چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم ذ ثنية العليا ذ مقام کداء نه چه بطحا کښې دے، داخل شوے وو، او ذ ثنية السفلٰي ذ طرف نه بهر وتلے وو.

۱۸۴ : حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِيُّ وَ مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنّٰى قَالَا حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ أَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمَّا جَاءَ إِلٰى مَكَّةَ دَخَلَهَا مِنْ أَعْلَاهَا وَ خَرَجَ مِنْ أَسْفَلِهَا.

۱۸۴ : حميدي و محمد بن مثنٰي. سفيان به عينيه. هشام بن عروه ذ خپل پلار نه، هغهٔ ذ بي بي عائشے رضي اللّٰه عنه نه روايت کوي، چه نبي صلعم به مکے ته راتلو، نو هلته به ذ هغے ذ اوچت طرف نه داخليدو، او ذ هغے ذ لاندے حصے ذ طرف نه به وتلو.

۱۸۵ : حَدَّثَنَا مَحْمُوْدٌ حَدَّثَنَا أَبُوْ أُسَامَةَ قَالَ حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ عَنْ أَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَخَلَ عَامَ الْفَتْحِ

۱۸۵ : محمود. ابو اسامه. هشام بن عروه ذ خپل پلار نه او هغهٔ ذ بي بي عائشے نه روايت کوي، چه نبي صلے اللّٰه عليه وسلم ذ مکے ذ فتح په کال ذ کداء طرف نه داخل شولو، او ذ

مِـنْ کَـدَآءَ وَ خَـرَجَ مِـنْ کُـدَیٰ مِـنْ اَعْلٰی مَکَّةَ. کـدي طـرف نـه چـه دَ مکـے اوچـت طـرف دے اووتلو.

۱. کَـدَاء د مکـے د بنهر اوچته کړپه ده (د بنهر اوچته حصه ده) نبي کريم صلي الله عليه وسلّم د دے طرف نـه د مکّے مکرّمے بنهر ته داخل شوے وو او کُدَي د بنهر خکته کړپه ده د بنهر لاندينئے طرف دے راوي ديتـه اوچتـه حـصـه د خپـل خـان نه بيان کړيده. کني هغه د بنهر خکته لاندينۍ حصه ده. د بخاري په نورو رواياتو کښے ددے تصريح ده چه کُدَي لاندينۍ کړپه ده. د مکے مکرمے نه رسول الله صلي الله عليه وسلم بهر وتلے وو. رسول الله صلي الله عليه وسلم د بيت الله شريف د ادب پوره خيال ساتلے وو. د کَدَاء نـه د داخـلـيـدو پـه وخـت بيت الله مخامخ وي. او د کُدَي نه د وتلو په وخت، بيت الله ته نه شاکيږي. دا د بيـت الـلّـه شـريف ادب چه په ورتلو کښ به مخامخ ورځے. او په تلو کښ به ورته نه شاکوني. د دنيا د لويو خلقو هم دا طريقه وي.

۱۸۶: حَـدَّثَـنَـا اَحْـمَـدُ قَـالَ حَـدَّثَـنَـا ابْنُ وَهْبٍ قَالَ اَخْبَرَنَا عَمْرٌو عَنْ هِشَامِ بْـنِ عُـرْوَةَ عَنْ اَبِيْـهِ عَنْ عَـائِشَةَ اَنَّ الـنَّبِـیَّ صَـلَّی اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَـلَّـمَ دَخَـلَ عَـامَ الْفَتْحِ مِنْ كَدَآءَ مِـنْ اَعْـلٰـی مَـكَّةَ قَالَ هِشَامٌ وَ كَانَ عُـرْوَةُ يَـدْخُـلُ عَـلٰـی كِلْتَيْهِمَا مِنْ كَدَآءٍ وَ كُدًی وَ اَكْثَرَ مَا يَدْخُلُ مِنْ كُدًی وَ كَانَتْ اَقْرَبَهُمَا اِلٰی مَنْزِلِهٖ.

۱۸۶: احـمـد. ابـن وهـب. عـمـرو، هشـام بـن عـروه دَ خپـل پـلار نـه او هغـهٔ دَ بـي بـي عـائشے رضـي الـلّـه عـنـه نـه روايـت کـوي. هغه وائـي، چه نبـي صـلے الـلّـه عـلـيـه وسـلـم دَ مکے دَ فتح پـه کـال دَ کـداء طرف نـه چـه دَ مکے اوچت طرف دے، داخل شـو. دَ هشـام بيـان دے، چـه عـروه بـه دَ کـداء او کـدے دواړو جـانبـونـو نـه داخـلـيـدو. ليکن اکثر بـه دَ کـدي جـانـب نـه داخليدو، او دا دَ هغهٔ کور تـه نزدے وو.

۱۸۷: حَـدَّثَـنَـا عَبْـدُ اللّٰهِ بْنُ عَبْـدُ الْـوَهَّـابِ قَالَ حَدَّثَنَا حَاتِمٌ عَنْ هِشَامٍ عَـنْ عُرْوَةَ قَـالَ دَخَـلَ النَّبِیُّ صَلَّے اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَامَ الْفَتْحِ مِنْ كَدَآءٍ مِـنْ اَعْـلٰـی مَكَّةَ وَ كَـانَ عُرْوَةُ اَكْـثَـرُ مَـا يَـدْخُـلُ مِنْ كُدًی وَ كَانَ اَقْرَبَهُمَا اِلٰی مَنْزِلِهٖ.

۱۸۷: عـبـدالـلّـه بـن عـبـدالـوهـاب. حـاتـم. هشـام. عـروه رضـي الـلّـه عـنـه نـه روايـت کـوي، چـه نبـي صـلي الـلّـه عـلـيـه وسـلـم دَ مـکـے دَ فتـح پـه کـال اوچـت طـرف يـعـنـي کـداء طـرف نـه داخـل شـولـو، او عـروه بـه اکثر کـدے طـرف نـه داخليـدو، چـه دا دَ هغـهٔ کـور تـه نزدے وو.

۱۸۸: حَـدَّثَـنَـا مُوْسٰی قَـالَ

۱۸۸: مـوسـي. وهيـب. هشـام دَ خپـل

حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ قَالَ حَدَّثَنَا هِشَامٌ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ دَخَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَامَ الْفَتْحِ مِنْ كَدَآءٍ وَّ كَانَ عُرْوَةُ يَدْخُلُ مِنْهُمَا كِلْتَيْهِمَا وَ كَانَ اَكْثَرَ مَا يَدْخُلُ مِنْ كُدًى اَقْرَبِهِمَا اِلٰى مَنْزِلِهٖ قَالَ اَبُوْ عَبْدِ اللّٰهِ كَدَاءٌ وَّ كُدًى مَوْضِعَانِ.

پلار نه روايت كوي، چه نبي صلي اللّٰه عليه وسلم دَ مكے دَ فتح په كال كداء جانب نه داخل شولو، او عروه رضي اللّٰه عنه به دواړو طرفونو نه داخليدو. ليكن اكثر به كدي جانب نه داخليدو، چه دَ هغهٔ كور ته نزدے وو. ابو عبداللّٰه (بخاري) اووے، چه كداء او كدي دواړه دَ ځايونو نومونه دي.

## باب ۱۲۸: فَضْلِ مَكَّةَ وَ بُنْيَانِهَا وَ قَوْلِهٖ تَعَالٰى وَ اِذْ جَعَلْنَا الْبَيْتَ مَثَابَةً لِّلنَّاسِ وَ اَمْنًا وَاتَّخِذُوْا مِنْ مَّقَامِ اِبْرَاهِيْمَ مُصَلًّى وَ عَهِدْنَآ اِلٰى اِبْرَاهِيْمَ وَ اِسْمٰعِيْلَ اَنْ طَهِّرَا بَيْتِيَ لِلطَّآئِفِيْنَ وَالْعٰكِفِيْنَ وَالرُّكَّعِ السُّجُوْدِ وَ اِذْ قَالَ اِبْرَاهِيْمُ رَبِّ اجْعَلْ هٰذَا بَلَدًا اٰمِنًا وَّارْزُقْ اَهْلَهٗ مِنَ الثَّمَرٰتِ مَنْ اٰمَنَ مِنْهُمْ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ قَالَ وَ مَنْ كَفَرَ فَاُمَتِّعُهٗ قَلِيْلًا ثُمَّ اَضْطَرُّهٗٓ اِلٰى عَذَابِ النَّارِ وَ بِئْسَ الْمَصِيْرُ وَ اِذْ يَرْفَعُ اِبْرٰهِيْمُ الْقَوَاعِدَ مِنَ الْبَيْتِ وَ اِسْمٰعِيْلُ رَبَّنَا تَقَبَّلْ مِنَّا اِنَّكَ اَنْتَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ. رَبَّنَا وَاجْعَلْنَا مُسْلِمَيْنِ لَكَ وَ مِنْ ذُرِّيَّتِنَآ اُمَّةً مُّسْلِمَةً لَّكَ وَ

## باب ۱۲۸: دَ مكے فضيلت او دَ هغے دَ عمارتونو بيان، او دَ اللّٰه تعالٰي قول، چه هر كله مونږ خانه كعبه خلقو دَ پاره دَ راتلو او امن ځائے جوړ كړلو، او مقام ابراهيم دَ مانځه ځائے جوړ كړئے. او مونږ دَ ابراهيم عليه السلام او اسمٰعيل نه عهد واخستو، چه ځما كور، دَ طواف كونكو دَ پاره او اعتكاف كونكو دَ پاره او ركوع او سجدو كونكو دَ پاره پاك كړئے. او كوم وخت چه ابراهيم عليه السلام عرض اوكړ، اے ځما ربه، دا ښهر دَ امن ښهر جوړ كړے، او دَ دے ځائے اوسيدونكو كښ چه كوم خلق په اللّٰه او دَ قيامت په ورځ ايمان راوړي، هغوي ته دَ ميوو، رزق وركړے، اللّٰه تعالٰي او فرمائيل، كه چا انكار اوكړ، نو زهٔ به ځو ورځے مهلت وركړم. بيا به ئے دَ دوزخ عذاب طرف ته راكاږم، او دا ډير خراب ځائے دے او كوم وخت چه ابراهيم عليه السلام او اسمٰعيل عليه السلام دَ كعبے بُنيادونه اُچتول، او وئيل ئے، اے خمونږ ربه، خمونږ دَ طرف نه ئے قبول كړے، بيشكه ته آوريدونكے، پوهيدونكے ئے. اے خمونږ پروردګاره، مونږ دواړه خپل فرمانبردار كړے او خمونږ اولاد كښ يو اُمت پيدا كړے، چه ستا تابعدار وي، او مونږ ته دَ حج

اَرِنَا مَنَاسِكَنَا وَ تُبْ عَلَيْنَا اِنَّكَ اَنْتَ التَّوَّابُ الرَّحِيْمُ.

**١٨٩ :** حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ قَالَ حَدَّثَنَا اَبُوْ عَاصِمٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ ابْنُ جُرَيْجٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عَمْرُو بْنُ دِيْنَارٍ قَالَ سَمِعْتُ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ لَمَّا بُنِيَتِ الْكَعْبَةُ ذَهَبَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ عَبَّاسٌ يَنْقُلَانِ الْحِجَارَةَ فَقَالَ الْعَبَّاسُ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اجْعَلْ اِزَارَكَ عَلٰى رَقَبَتِكَ فَخَرَّ اِلَى الْاَرْضِ فَطَمَحَتْ عَيْنَاهُ اِلَى السَّمَآءِ فَقَالَ اَرِنِيْ اِزَارِيْ فَشَدَّهُ عَلَيْهِ.

**١٩٠ :** حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُسْلَمَةَ عَنْ مَالِكٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ سَالِمِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ اَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ ابْنَ مُحَمَّدِ بْنِ اَبِيْ بَكْرٍ اَخْبَرَ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عُمَرَ عَنْ عَائِشَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَهَا اَلَمْ تَرَيْ اَنَّ قَوْمَكِ حِيْنَ بَنَوُا الْكَعْبَةَ اقْتَصَرُوْا عَنْ قَوَاعِدِ اِبْرَاهِيْمَ فَقُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَلَا تَرُدُّهَا عَلٰى قَوَاعِدِ اِبْرَاهِيْمَ قَالَ لَوْ لَا حِدْثَانُ قَوْمِكِ بِالْكُفْرِ لَفَعَلْتُ فَقَالَ عَبْدُ اللّٰهِ لَئِنْ

طريقے اوښائے، او مونږ ته توجه او فرمائے، بيشکه ته توبه قبلونکے مهربان ئے.

**١٨٩ :** عبدالله بن محمد. ابو عاصم. ابن جريج. عمرو بن دينار. جابر بن عبدالله نه روايت کوي. دَ هغهٔ بيان دے، کوم وخت چه دَ کعبے تعمير شروع شولو، نو نبي صلے الله عليه وسلم او حضرت عباس رضي الله عنه دواړو به کاڼړي راوړل. حضرت عباس رضي الله عنه نبي صلي الله عليه وسلم ته اووے، چه خپل تهٔ بند په خپلو اُوږو واچوه (کوم وخت چه حضور صلي الله عليه وسلم داسے اوکړل) نو په زمکه بيهوشه راپريوتو، او سترگے ئے آسمان طرف ته اولږيدے. بيا حضور صلے الله عليه وسلم او فرمائيل ما ته خپل ازار بند راکړئے، نو حضور صلي الله عليه وسلم هغه اوتړلو.

**١٩٠ :** عبدالله بن مسلمه. مالک. ابن شهاب. سالم بن عبدالله. عبدالله بن محمد بن ابي بکر رضي الله عنه. عبدالله بن عمر رضي الله عنه دَ نبي صلي الله عليه وسلم دَ ښځے بي بي عائشے رضي الله عنه نه روايت کوي، رسول الله صلي الله عليه وسلم بي بي عائشے رضي الله عنه ته او فرمائيل، آيا تا او نهٔ ليدل، چه ستا قوم کوم وخت دَ خانه کعبے عمارت جوړولو، نو دَ ابراهيم عليه السلام د بنياد نه ئے هغه وړو کے کړهٔ. ما عرض او کړهٔ، يا رسول الله، بيا تاسو صلي الله عليه وسلم ئے دَ قواعدِ ابراهيمي مطابق ولے نهٔ جوړوئے حضور صلي الله عليه وسلم او فرمائيل که ستا دَ قوم دَ کفر زمانه اوس حال کښې نهٔ وے تيره شوے، نو ما به دغسے کړے وے. عبدالله بن عمر رضي الله عنه اووے، چه بي بي عائشے

كَانَتْ عَآئِشَةُ سَمِعَتْ هٰذَا مِنْ رَّسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا أُرٰى رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَرَكَ اِسْتِلَامَ الرُّكْنَيْنِ الَّذِيْنَ يَلِيَانِ الْحَجَرَ اِلَّا اَنَّ الْبَيْتَ لَمْ يُتَمَّمْ عَلٰى قَوَاعِدِ اِبْرَاهِيْمَ.

رضي اللّٰه عنه دا دَ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم نه يقينًا آوريدلے دي ځما خيال كښ هم دغه وجه ده، چه رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلم دَ حجر اسود نزدے دَ دواړو ركنونو نوښكلول ترك كړل، ځكه چه خانه كعبه دَ ابراهيم عليه السَّلام په بنيادونو پوره نهٔ وه جوړه شوے.

١٩١: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ قَالَ حَدَّثَنَا اَبُو الْاَحْوَصِ حَدَّثَنَا الْاَشْعَثُ عَنِ الْاَسْوَدِ بْنِ يَزِيْدَ عَنْ عَآئِشَةَ قَالَتْ سَاَلْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْجِدَارِ مِنَ الْبَيْتِ هُوَ قَالَ نَعَمْ قُلْتُ فَمَا لَهُمْ لَمْ يُدْخِلُوْهُ فِي الْبَيْتِ قَالَ اِنَّ قَوْمَكِ قَصَرَتْ بِهِمُ النَّفَقَةُ قُلْتُ فَمَا شَاْنُ بَابِهِ مُرْتَفِعًا قَالَ فَعَلَ ذٰلِكِ قَوْمُكِ لِيُدْخِلُوْا مَنْ شَآءُوْا وَ يَمْنَعُوْا مَنْ شَآءُوْا وَلَوْلَا اَنَّ قَوْمَكِ حَدِيْثٌ عَهْدُهُمْ بِالْجَاهِلِيَّةِ فَاَخَافُ اَنْ تُنْكِرَ قُلُوْبُهُمْ اَنْ اُدْخِلَ الْجُدُرَ فِي الْبَيْتِ وَ اَنْ اُلْصِقَ بَابَهُ بِالْاَرْضِ.

١٩١: مسدد. ابو الاحوص. اشعث. اسود بن يزيد. بي بي عائشے رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي، ما دَ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم نه دَ ديوال متعلق واوريدل، چه آيا هغه خانه كعبه كښ داخل دے. حضور صلي اللّٰه عليه وسلم او فرمائيل، او، ما اووے، هغے خلقو دا ولے خانه كعبه كښ داخل نهٔ كهٔ، حضور صلي اللّٰه عليه وسلم او فرمائيل ستا قوم سره خرچ كم شو. ما تپوس اوكهٔ، دَ دروازے څهٔ حال دے، چه دائے اوچته ايښے ده. حضور صلي اللّٰه عليه وسلم او فرمائيل، ستا قوم كړے دي، چه څوك غواړي، داخل ئے كړي، چه څوك غواړي منع ئے كړي. كه ستا دَ قوم زمانه جاهليت ته نزدے نهٔ وے، او ما سره دَ دے خوف نهٔ وے، چه دَ هغوي زړونو ته به ناګواره وي، نو ما به ديوالونه خانه كعبه كښ داخل كړي وو او دَ هغے دروازه به مې زمكے سره يو ځائے كړے وَه (يعني ښكته كړے به مې وه).

١٩٢: حَدَّثَنَا عُبَيْدُ بْنُ اِسْمٰعِيْلَ قَالَ حَدَّثَنَا اَبُوْ اُسَامَةَ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَآئِشَةَ قَالَتْ قَالَ لِيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَوْ لَا حَدَاثَةُ قَوْمِكِ بِالْكُفْرِ لَنَقَضْتُ الْبَيْتَ

١٩٢: عبيد بن اسمٰعيل. ابو اسامه هشام دَ خپل پلار نه او هغه دَ بي بي عائشے رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي، نبي صلے اللّٰه عليه وسلم او فرمائيل كه ستا دَ قوم زمانه كفر ته نزدے نهٔ وے، نو ما به خانه كعبه ورانه كړے وے او ما به هغه په ابراهيمي بنياد جوړه

ثُمَّ لَبَنَيْتُهُ عَلٰى اَسَاسِ اِبْرَاهِيْمَ فَاِنَّ قُرَيْشًا اسْتَقْصَرَتْ بِنَآءَهُ وَ جَعَلْتُ لَهٗ خَلْفًا وَّ قَالَ اَبُوْ مُعَاوِيَةَ حَدَّثَنَا هِشَامٌ خَلْفًا يعني بَابًا.

کړے وے، ځکه چه قریشو دَ هغے عمارت وړو کے کړ، او هغے دَ پاره به م خلف جوړ کړے وو. او ابو معاویه بیان او کړ، ما ته هشام اووے، چه دَ خلف نه مراد دروازه ده.

**۱۹۳ :** حَدَّثَنَا بَيَانُ بْنُ عَمْرٍو قَالَ حَدَّثَنَا يَزِيْدُ حَدَّثَنَا جَرِيْرُ بْنُ حَازِمٍ قَالَ حَدَّثَنَا يَزِيْدُ بْنُ رُوْمَانَ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَآئِشَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَهَا يَا عَآئِشَةُ لَوْلَا اَنَّ قَوْمَكِ حَدِيْثُ عَهْدٍ بِجَاهِلِيَّةٍ لَاَمَرْتُ بِالْبَيْتِ فَهُدِمَ فَاَدْخَلْتُ فِيْهِ مَا اُخْرِجَ مِنْهُ وَاَلْزَقْتُهُ بِالْاَرْضِ وَ جَعَلْتُ لَهٗ بَابَيْنِ بَابًا شَرْقِيًّا وَّ بَابًا غَرْبِيًّا فَبَلَغْتُ بِهٖ اَسَاسَ اِبْرَاهِيْمَ فَذٰلِكَ الَّذِيْ حَمَلَ ابْنَ الزُّبَيْرِ عَلٰى هَدْمِهٖ قَالَ يَزِيْدُ وَ شَهِدْتُّ ابْنَ الزُّبَيْرِ حِيْنَ هَدَمَهٗ وَ بَنَاهُ وَ اَدْخَلَ فِيْهِ مِنَ الْحِجْرِ وَ قَدْ رَاَيْتُ اَسَاسَ اِبْرَاهِيْمَ حِجَارَةً كَاَسْنِمَةِ الْاِبِلِ قَالَ جَرِيْرٌ فَقُلْتُ لَهٗ اَيْنَ مَوْضِعُهٗ قَالَ اُرِيْكَهُ الْاٰنَ فَدَخَلْتُ مَعَهُ الْحِجْرَ فَاَشَارَ اِلٰى مَكَانٍ فَقَالَ هٰهُنَا قَالَ جَرِيْرٌ فَحَزَرْتُ مِنَ الْحِجْرِ سِتَّةَ اَذْرُعٍ وَّ نَحْوَهَا.

**۱۹۳ :** بیان بن عمرو. یزید. جریر بن حازم. یزید بن رومان. عروه. بي بي عائشے رضي الله عنه نه روایت کوي، چه نبي صلے الله علیه وسلم، بي بي عائشے رضي الله عنه ته او فرمائیل. اے عائشے رضي الله عنها، که ستا قوم ته دَ جاهلیت زمانه نزدے نهٔ وے، نو ما به دَ خانه کعبے دَ ورانولو حکم ور کړے وو. او دَ دے نه چه کومه حصه اوښکلے شوے ده، هغه به م په کښ شامله کړے وے، او هغه به م زمکے سره یو ځائے کړے وے، او هغے کښ به م دوه دروازے ساتلے وے. یوه به مشرق طرف ته او بله مغرب طرف ته پرانستے وه، او دَ ابراهیمي بنیاد مطابق کړے به م وه، دا هغه حدیث دے، چه ابن زبیر، ئے دَ کعبے ورانولو ته تیار کړلو. یزید اووے، چه زهٔ ابن زبیر سره موجود ووم، کوم وخت چه هغه دا او غرخوله. او حَطِیم ئے دے کښ داخل کړ. او ما دَ ابراهیمي بُنیاد کانړي اولیدل، چه دَ اوښانو دَ قُبونو په شان وو. جریر اووے، ما دَ یزید نه تپوس او کړ، دَ دے ځائے کوم یو دے، نو هغهٔ اووے، زهٔ ئے درته اوس ښایم. زهٔ هغهٔ سره حَطِیم ته ورغلم، نو هغه هغے ځائے طرف ته اشاره او کړله، وے ښودلو، چه دا دے دلته دے. دَ جریر بیان دے، ما آندازه اولړوله. چه شپږ گزه یا دَ دے قریب قریب وو.

**باب ۱۲۹ :** فَضْلِ الْحَرَمِ وَ

**باب ۱۲۹ :** دَ حرم دَ فضیلت بیان. او دَ الله

قَوْلِهِ اِنَّمَا اُمِرْتُ اَنْ اَعْبُدَ رَبَّ هٰذِهِ الْبَلْدَةِ الَّذِيْ حَرَّمَهَا وَلَهٗ كُلُّ شَيْءٍ وَّ اُمِرْتُ اَنْ اَكُوْنَ مِنَ الْمُسْلِمِيْنَ وَ قَوْلِهٖ اَوَلَمْ نُمَكِّنْ لَّهُمْ حَرَمًا اٰمِنًا يُّجْبٰى اِلَيْهِ ثَمَرَاتُ كُلِّ شَيْءٍ رِّزْقًا مِّنْ لَّدُنَّا وَلٰكِنَّ اَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ.

تعالیٰ قول' ما ته حکم شوے دے' چه د دے ښهر د رب عبادت او کړم چه هغۀ دا حرم کړے دے' او هغۀ د پاره ټول څيزونه دي' او ما ته حکم راکړے شوے دے' چه زۀ مسلمان شم' او د الله تعالیٰ قول' آيا مونږ دوي له حرم کښې ځائے نه دے ورکړے' چه پُر امن دے' او هغے ته د هر قسم ميوے خما د جانب نه ر اځي. ليکن دوي کښې اکثر نۀ پوهيږي.

۱۹۴ : حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ جَعْفَرٍ قَالَ حَدَّثَنَا جَرِيْرُ بْنُ عَبْدِ الْحَمِيْدِ عَنْ مَّنْصُوْرٍ عَنْ مُّجَاهِدٍ عَنْ طَاوُسٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ فَتْحِ مَكَّةَ اِنَّ هٰذَا الْبَلَدَ حَرَّمَهُ اللّٰهُ لَا يُعْضَدُ شَوْكُهٗ وَلَا يُنَفَّرُ صَيْدُهٗ وَلَا يَلْتَقِطُ لُقَطَتَهٗ اِلَّا مَنْ عَرَّفَهَا.

۱۹۴ : علي بن عبدالله بن جعفر. جرير بن عبدالحميد. منصور. مجاهد. طاؤس. ابن عباس رضي الله عنه نه روايت کوي. د هغۀ بيان دے' رسول الله صلي الله عليه وسلم د مکے د فتح په ورځ او فرمائيل' دا ښهر الله تعالیٰ حرم جوړ کړے دے. د دے ازغي دے نشي پريکولے. د دے ښکار دے نشي زغلولے. او نۀ دے څۀ د دے پريوتے څيز اوچتولے شي. خو هغه سړے چه د دے اعلان اوکړي.

## باب ۱۳۰ : تَوْرِيْثُ دُوْرِ مَكَّةَ وَ بَيْعِهَا وَ شِرَآئِهَا وَ اَنَّ النَّاسَ فِي الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ سَوَآءٌ خَاصَّةً لِقَوْلِهٖ اِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَ يَصُدُّوْنَ عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَالْمَسْجِدِ الْحَرَامِ الَّذِيْ جَعَلْنَاهُ لِلنَّاسِ سَوَآءَ نِالْعَاكِفُ فِيْهِ وَالْبَادِ وَ مَنْ يُّرِدْ فِيْهِ بِاِلْحَادٍ بِظُلْمٍ نُّذِقْهُ مِنْ عَذَابٍ اَلِيْمٍ قَالَ اَبُوْ عَبْدِ اللّٰهِ الْبَادِيْ الطَّارِئُ مَعْكُوْفًا مَّحْبُوْسًا.

## باب ۱۳۰ : د مکے په کورونو کښې د ميراث

جاري کيدو او د هغے د اخستو او خرڅولو بيان. او دا چه خلق خاص مسجد حرام کښې برابر دي' د الله تعالیٰ د قول په بنا' چه کومو خلقو کفر اوکۀ' او د الله د لارے نه او د هغے' خانه کعبے نه منع کول کوي چه هغه مونږ د خلقو د پاره يو برابر جوړه کړے ده' د هغے ځائے اوسيدونکي وي يا د بهر اوسيدونکي وي او چا چه دے کښې بے دينئ سره ظلم اوکۀ' مونږ به پرے دردناک عذاب اوڅکوو. او ابو عبدالله (بخاري) اووے' چه بادي نه مراد دے د بهر نه راتلونکے' او د محبوس معني دي' منع کړے شوے (بند کړے شوے).

۱. د احنافو او د شوافعو پدے سلسله كښې اختلاف دے چه د مكے مز كه وقف ده. يا ملكيت. د شوافعو د مكے زمكه ملكيت دے وقف نده. ليكن احناف وائي چه د مكے زمكه كورونه هر څه وقف دي. او د حضرت ابراهيم عليه السلام د زمانے نه وقف ده. د دے څوك مالك نشته. د احنافو او د شوافعو د اختلاف بنياد دا خبره ده. چه رسول الله صلي الله عليه وسلم د صلحے په ذريعه قبضه كړے وه. يائے په جګړه فتحه كړے وه. كه د جګړے (جنګ) نه پس فتحه ثابته شي نو دا ثابته شوه چه د مكے زمكے وقف دي. او د جنګ نه روستو فتحه شوے ملك د اسلامي قانون مطابق په غازيانو تقسيمولے شي او مكه مكرمه فتحه شوه ليكن د مكے مكرمے يو انچ زمكه چا ته ورنكړے شوه.

احناف دا وائي چه رسول الله صلي الله عليه وسلم په زرګونو د صحابه ؤ فوج سره د مكے مكرمے د فتحه كولو د پاره تشريف يوړلو او دا معمولي خبره نه وه. بعضے خايونو د مكے مكرمے كښې وينے تويے شوے خلق پكښې وژلے شوے وو بيا ديته د صلحے فتحه څنګه ويلے شي. كمزورے قوم د زوره ور قوم وړاندے وسله خامخا غورزوي. نو مكه مكرمه په جنګ فتحه شوے ده. زمكے ئے وقف دي.

امام شافعي رحمة الله عليه د فتح مكے شروع له اعتبار نه وركوي چه د مسلمانانو فوځونه راغلے وو او په زور مكه فتحه شوه هغه وائي د جنګ نه روستو كه صلحه اوشي نو صلحه ده جنګ له اعتبار نشته او مكه په صلحه فتحه شوه نو د ملكيت زمكه ده. وقف نده. امام بخاري رحمة الله عليه پدے مسئله كښې د امام شافعي رحمة الله عليه ملګرے دے.

۱۹۵: حَدَّثَنَا أَصْبَغُ قَالَ أَخْبَرَنِي ابْنُ وَهْبٍ عَنْ يُونُسَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عَلِيِّ بْنِ حُسَيْنٍ عَنْ عَمْرِو ابْنِ عُثْمَانَ عَنْ أُسَامَةَ ابْنِ زَيْدٍ أَنَّهُ قَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ أَيْنَ تَنْزِلُ فِي دَارِكَ بِمَكَّةَ فَقَالَ وَهَلْ تَرَكَ عَقِيلٌ مِنْ رِبَاعٍ أَوْ دُورٍ وَ كَانَ عَقِيلٌ وَرِثَ أَبَا طَالِبٍ هُوَ وَ طَالِبٌ وَلَمْ يَرِثْهُ جَعْفَرٌ وَلَا عَلِيٌّ شَيْئًا لِأَنَّهُمَا كَانَا مُسْلِمَيْنِ وَ كَانَ عَقِيلٌ وَ طَالِبٌ كَافِرَيْنِ فَكَانَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ يَقُولُ لَا يَرِثُ الْمُؤْمِنُ الْكَافِرَ قَالَ ابْنُ شِهَابٍ وَ كَانُوا يَتَأَوَّلُونَ قَوْلَ اللَّهِ عَزَّ وَ جَلَّ إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا وَ هَاجَرُوا وَ

۱۹۵: اصبغ. ابن وهب. يونس. ابن شهاب. علي بن حسين. عمرو بن عثمان. اسامه بن زيد نه روايت كوي. اسامه بن زيد بيان اوكه' يا رسول الله' تاسو به مكه كښې خپل كور كښې كوم ځائے كوزيږئے. حضور صلي الله عليه وسلم او فرمائيل. عقيل جائيداد يا كور چرته پريښے دے. او عقيل او طالب دَ ابو طالب وارثان شوے دي. او حضرت جعفر رضي الله عنه او حضرت علي رضي الله عنه دَ هيڅ څيز وارثان نهٔ شولو' ځكه چه دا دواړه مسلمانان شو. او عقيل او طالب كافر وو. حضرت عمر بن خطاب رضي الله عنه به ځكه وئيلے' چه مؤمن به دَ كافر وارث نهٔ وي. ابن شهاب اووے. خلقو به دَ الله تعالي دَ دے قول تاويل كولو "بے شكه كومو خلقو چه ايمان راوړلو' او هجرت ئے اوكهٔ' او خپلو مالونو او خپلو ځانونو سره ئے دَ الله تعالي لار كښې

جَاهَدُوْا بِاَمْوَالِهِمْ وَ اَنْفُسِهِمْ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَالَّذِيْنَ اٰوَوْا وَّ نَصَرُوْا اُولٰٓئِكَ بَعْضُهُمْ اَوْلِيَآءُ بَعْضٍ اَلْاٰيَةَ.

جهاد اوکړ، او کومو خلقو چه پناه ورکړه او مدد ئے اوکړ، دوي کښې بعضے د بعضو دوستان دي. آخر آيت پورے.

۱. دا روايت هم د شوافعو يو دليل دے چه عقيل رضي الله عنه نه کورونه د ابو طالب نه په وراثت کښې ورکړے شوے وو هغه، هغه ټول کورونه خرڅ کړل. که د مکې زمکه ملکيت نه وے نو هغه به څنګه خرڅول. بيا نبي کريم صلي الله عليه وسلم پدے حقله څه او نه ويل. ليکن يوه خبره بله هم ده د خپل پلار ابوطالب په کورونو کښې د حضرت جعفر او د حضرت علي رضي الله عنهما هم حق وو او عقيل رضي الله عنه هغه ټول خرڅ کړل. حضرت عقيل رضي الله عنه د لوئے حصے پکښې مالک هم نه وو بياهم رسول الله صلي الله عليه وسلم څه او نه ويل. د دينه معلوميږي چه رسول الله صلي الله عليه وسلم د مروّت په وجه څه په دغه موقعه او نه ويل. چه خبره تيره وه. د احنافو د مسلک په حق کښې هم بعضے احاديث شته.

## بَابُ ۱۳۱ : نُزُوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَكَّةَ.

## باب ۱۳۱ : د نبي صلے الله عليه وسلم مکه کښې د کوزيدو بيان.

۱۹۶ : حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ قَالَ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبُوْ سَلَمَةَ اَنَّ اَبَا هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِيْنَ اَرَادَ قُدُوْمَ مَكَّةَ مَنْزِلُنَا غَدًا اِنْ شَآءَ اللّٰهُ تَعَالٰى بِخَيْفِ بَنِيْ كِنَانَةَ حَيْثُ تَقَاسَمُوْا عَلَى الْكُفْرِ.

۱۹۶ : ابو اليمان. شعيب. زهري. ابو سلمه. حضرت ابو هريره رضي الله عنه نه روايت کوي، هغه وائي، رسول الله صلي الله عليه وسلم چه مکې ته د راتلو اراده اوکړله، نو وے فرمائيل، صباله به انشاء الله خيف بني کنانه کښې خمونږ قيام وي، کوم خائے چه قريشو په کفر د ټينګ پاتے کيدو قسم خوړلے وو.

۱۹۷ : حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِيُّ قَالَ حَدَّثَنَا الْوَلِيْدُ قَالَ حَدَّثَنَا الْاَوْزَاعِيُّ قَالَ حَدَّثَنِي الزُّهْرِيُّ عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنَ الْغَدِ يَوْمَ النَّحْرِ وَهُوَ بِمِنًى نَحْنُ نَازِلُوْنَ غَدًا بِخَيْفِ بَنِيْ كِنَانَةَ حَيْثُ تَقَاسَمُوْا عَلَى الْكُفْرِ يَعْنِيْ بِذٰلِكَ الْمُحَصَّبَ وَ

۱۹۷ : حميدي. وليد. اوزاعي. زهري. ابو سلمه. حضرت ابو هريره رضي الله عنه نه روايت کوي، هغه وائي، نبي صلي الله عليه وسلم د يوم نحر په دونمه ورځ چه حضور صلي الله عليه وسلم منې کښې وو، او فرمائيل، صباله به مونږ (انشاء الله خيف بني کنانه يعني محصب کښې کوزيږو کوم خائے چه خلقو په کفر د ټينګ پاتے کيدو قسم خوړلے وو. دا

ذٰلِكَ اَنَّ قُرَيْشًا وَ كِنَانَةَ تَحَالَفَتْ عَلٰى بَنِىْ هَاشِمٍ وَ بَنِىْ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ اَوْ بَنِى الْمُطَّلِبِ اَنْ لَّا يُنَاكِحُوْهُمْ وَلَا يُبَايِعُوْهُمْ حَتّٰى يُسْلِمُوْا اِلَيْهِمُ النَّبِىَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ قَالَ سَلَامَةُ عَنْ عُقَيْلٍ وَّ يَحْيَى بْنُ الضَّحَّاكِ عَنِ الْاَوْزَاعِيِّ اَخْبَرَنِى ابْنُ شِهَابٍ وَّ قَالَا بَنِى هَاشِمٍ وَ بَنِى الْمُطَّلِبِ اَشْبَهُ.

واقعه داسې ده' چه قريش او كنانه ذ بني هاشم او بني عبدالمطلب يا بني المطلب خلاف قسم خوړلې وو چه هغوي سره به وادهٔ كويدن او خريد و فروخت نهٔ كوو' څو پورې چه نبي صلي الله عليه وسلم هغوي مونږ ته حواله نهٔ كړي. او سلامه ذ عقيل نه' يحيٰي بن ضحاك نه' اوزاعي نه داشان روايت كړې دې' چه ما ته ابن شهاب اووې' او دواړو ذ بني هاشم او بني مطلب لفظ بيان كړلو. ابو عبدالله (بخاري) وائي بني مطلب زيات مناسب معلوميږي.

باب ۱۳۲ : قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى وَ اِذْ قَالَ اِبْرَاهِيْمُ رَبِّ اجْعَلْ هٰذَا الْبَلَدَ اٰمِنًا وَّاجْنُبْنِىْ وَ بَنِىَّ اَنْ نَّعْبُدَ الْاَصْنَامَ رَبِّ اِنَّهُنَّ اَضْلَلْنَ كَثِيْرًا مِّنَ النَّاسِ اِلٰى قَوْلِهٖ لَعَلَّهُمْ يَشْكُرُوْنَ.

باب ۱۳۲ : ذ الله تعالٰي قول چه ابراهيم عليه السلام دُعا اوكړه' اې خما پروردګاره' دا ښار ذ امن ښار كړې. او ما او خما اولاد ذ دې نه اوساتې' چه ذ بُتانو عبادت اوكړي. اې خما ربه' دې بُتانو ډير خلق ګمراه كړي دي. آخر آيت لعلهم يشكرون پورې.

باب ۱۳۳ : قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى جَعَلَ اللّٰهُ الْكَعْبَةَ الْبَيْتَ الْحَرَامَ قِيَامًا لِّلنَّاسِ وَالشَّهْرَ الْحَرَامَ اِلٰى قَوْلِهٖ وَ اَنَّ اللّٰهَ بِكُلِّ شَىْءٍ عَلِيْمٌ.

بـاب ۱۳۳ : ذ الله تعالٰي قول چه الله بيت حرام (كعبه) ذ خلقو ذ ګزارې ذريعه جوړه كړه' او مياشت ذ حرام اِنَّ اللّٰهَ بِكُلِّ شَىْءٍ عَلِيْمٌ پورې.

۱۹۸ : حَدَّثَنَا عَلِىُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ حَدَّثَنَا زِيَادُ بْنُ سَعْدٍ عَنِ الزُّهْرِىِّ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ عَنْ اَبِىْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِىِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يُخَرِّبُ الْكَعْبَةَ ذُو السُّوَيْقَتَيْنِ مِنَ الْحَبَشَةِ.

۱۹۸ : علي بن عبدالله. سفيان. زياد بن سعد. زهري. سعيد بن مسيب. حضرت ابو هريره رضي الله عنه نه روايت كوي' هغه وائي' نبي صلي الله عليه وسلم او فرمائيل' چه كعبه به دوو وړو پنډو واله يو حبشي تباه كړي.

۱۹۹ : حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ

۱۹۹ : يحيٰي بن بكير. ليث. عقيل.

قَالَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عَقِيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ ح وَ حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ مُقَاتِلٍ قَالَ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ قَالَ اَخْبَرَنَا مُحَمَّدُ ابْنُ اَبِيْ حَفْصَةَ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانُوْا يَصُوْمُوْنَ عَاشُوْرَآءَ قَبْلَ اَنْ يُفْرَضَ رَمَضَانُ وَ كَانَ يَوْمًا تُسْتَرُ فِيْهِ الْكَعْبَةُ فَلَمَّا فَرَضَ اللّٰهُ رَمَضَانَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ شَآءَ اَنْ يَصُوْمَهُ فَلْيَصُمْهُ وَ مَنْ شَآءَ اَنْ يَتْرُكَهُ فَلْيَتْرُكْهُ.

ابـن شهـاب. عـروه. عـائشـه رضي الـلّـه عنـه. ح. مـحـمـد بـن مقـاتـل. عبـدالـلّـه. محـمـد بن ابي حـفـصـه. زهـري. عـروه. بـي بـي عـائشـے رضي الـلّٰـه عـنـه نـه روايـت كـوي. دَ هغـے بيـان دے، دَ رمـضـان دَ روژے فـرض كيـدو نـه مخكـښ بـه خـلـقـو دَ عـاشـورے روژه نيـولـه. او پـه هـغـه ورځ بـه پـه كعبـے غـلاف خيـژولے شو. كـوم وخـت چـه الـلّـه تـعـالـٰي روژے فـرض كـړے، نـو رسـول الـلّـه صـلـي الـلّـه عـلـيـه وسلم او فـرمـائيـل، خـوك چـه دَ عـاشورے روژه نيول غواړي، نـو اودے نيسـي، او دَ چا زړۀ چـه نۀ غواړي، نو هغه دے نۀ نيسي.

۲۰۰: حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ حَفْصٍ قَالَ حَدَّثَنَا اَبِيْ قَالَ حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ عَنِ الْحَجَّاجِ بْنِ حَجَّاجٍ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِيْ عُتْبَةَ عَنْ اَبِيْ سَعِيْدِ نِ الْخُدْرِيِّ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَيُحَجَّنَّ الْبَيْتُ وَ لَيُعْتَمَرَنَّ بَعْدَ خُرُوْجِ يَاجُوْجَ وَ مَاجُوْجَ تَابَعَهُ اَبَانُ وَ عِمْرَانُ عَنْ قَتَادَةَ وَ قَالَ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ عَنْ شُعْبَةَ لَا تَقُوْمُ السَّاعَةُ حَتّٰى لَا يُحَجَّ الْبَيْتُ وَالْاَوَّلُ اَكْثَرُ قَالَ اَبُوْ عَبْدِ اللّٰهِ سَمِعَ قَتَادَةُ عَبْدَ اللّٰهِ وَ عَبْدُ اللّٰهِ اَبَا سَعِيْدًا.

۲۰۰: احـمـد بن حـفـص. حـفـص. ابـراهيم حـجـاج بن حجاج. قتاده. عبدالله بن ابي عتبه. حضرت ابـو سـعـيـد خـدري رضـي الـلّـه عنه دَ نبي صلے الله عليه وسـلـم نـه روايـت كـوي، نبـي صـلـے الله عليه وسلم او فـرمـائيـل، چـه دَ خـانـه كـعبے حج او عمره به دَ ياجوج ماجوج دَ راوتلو نه پس هم كيږي ابان او عمران دَ قتاده نـه دَ دے متابع حديث روايت كۀ، او عبدالرحمٰن دَ شعبه نـه روايـت كـه، چـه قيـامـت بـه نۀ راځي، څو پورے چه دَ خـانـه كـعبے حـج موقوف نۀ شي. ليكن وړومبے روايت زيـاتـو خـلـقـو كړے دے. او عبدالله (بخاري) اووے، چه قتـاده دَ عبـدالله نه آوريدلے دي، او عبدالله دَ سعيد پلار دے.

## بَاب ۱۳۴: كِسْوَةِ الْكَعْبَةِ.

## باب ۱۳۴: په كعبه دَ غلاف اچولو بيان.

۲۰۱: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنِ

۱۴۹۱: عـبـدالـلّـه بـن عـبـدالـوهـاب.

عَبۡدُ الۡوَهَّابِ قَالَ حَدَّثَنَا خَالِدُ بۡنُ الۡحَارِثِ قَالَ حَدَّثَنَا سُفۡيَانُ قَالَ حَدَّثَنَا وَاصِلُ الۡاَحۡدَبُ عَنۡ اَبِیۡ وَآئِلٍ قَالَ جِئۡتُ اِلٰی شَيۡبَةَ ح وَ حَدَّثَنَا سُفۡيَانُ عَنۡ وَاصِلٍ عَنۡ اَبِیۡ وَآئِلٍ قَالَ جَلَسۡتُ مَعَ شَيۡبَةَ عَلَی الۡكُرۡسِيِّ فِي الۡكَعۡبَةِ فَقَالَ قَدۡ جَلَسَ هٰذَا الۡمَجۡلِسَ عُمَرُ فَقَالَ لَقَدۡ هَمَمۡتُ اَنۡ لَّا اَدَعَ فِيۡهَا صَفۡرَآءَ وَلَا بَيۡضَآءَ اِلَّا قَسَمۡتُهٗ قُلۡتُ اِنَّ صَاحِبَيۡكَ لَمۡ يَفۡعَلَا قَالَ هُمَا الۡمَرۡاٰنِ اَقۡتَدِیۡ بِهِمَا.

خالد بن حارث. سفيان. واصل. احدب. ابو وائل نه روايت كوي، ابو وائل وائي، چه زهٔ شيبه سره په كرسئ كعبه كښې كيناستم، نو شيبه اووے، په دې خانے حضرت عمر رضي اللّٰه عنه ناسته كړے ده، هغهٔ اووے، ما اراده اوكړه، چه ځهٔ زيړ يا سپين څيز پرے نهٔ ږدم، خو دا چه دا تقسيم كړم. ما اووے چه ستا دواړو ملګرو خو داسے نهٔ دي كړي، هغهٔ اووے، چه زهٔ خو دَ هغې دواړو سرو اقتدا كوم.

بَاب ۱۳۵ : هَدۡمِ الۡكَعۡبَةِ وَ قَالَتۡ عَائِشَةُ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ يَغۡزُوۡا جَيۡشٌ نِ الۡكَعۡبَةَ فَيُخۡسَفُ بِهِمۡ.

باب ۱۳۵ : دَ كعبے دَ ړنګولو بيان. بي بي عائشے رضي اللّٰه عنه اووے، نبي صلے اللّٰه عليه وسلم او فرمائيل، چه يو لښكر به كعبے باندے حمله كوي او هغه به زمكه كښې اُومنډلے شي.

۱. دويم روايت كښې دي چه كله لښكر "بَيۡدَاء" ته نزدے اورسي نو زمكه كښې به دغه لښكر خښ شي (او ټول به تباه شي) راتلونكي حديث شريف كښې دي. چه يو تك تور حبشي چه نرئي نرئي پنډئي به ئے وي هغه به خانه كعبه ورانه كړي. يوه، يوه كټه، كاڼړي به د ديوالونو نه اوباسي او ديوالونه به وران كړي. د دے دواړو رواياتو نه دا معلوميږي چه په اول خل په كعبه شريفه باندے حمله كونكے لښكر به پخپله تباه شي او په دويم خل به يو لښكر په كعبه شريفه قبضه اوكړي. او خانه كعبه به ورانه كړي. اوله واقعه به اول كيږي. په دويمه واقعه كښې د خانه كعبے د ورانيدو نه روستو به قيامت راشي او دنيا به ورانه شي. اللّٰه تعالیٰ دِ دے فتنو نه ما او ټول مسلمانان په امان اوساتي. آمين

۲۰۲ : حَدَّثَنَا عَمۡرُو بۡنُ عَلِيٍّ قَالَ حَدَّثَنَا يَحۡيَی بۡنُ سَعِيۡدٍ قَالَ حَدَّثَنَا عُبَيۡدُ اللّٰهِ بۡنُ الۡاَخۡنَسِ قَالَ حَدَّثَنِيۡ ابۡنُ اَبِیۡ مُلَيۡكَةَ عَنِ ابۡنِ عَبَّاسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَيۡهِ

۲۰۲ : عمرو بن علي. يحيی بن سعيد. عبيد اللّٰه بن اخنس. ابن ابي مليكه. ابن عباس رضي اللّٰه عنه دَ نبي صلي اللّٰه عليه وسلم نه روايت كوي، حضور صلي اللّٰه عليه وسلم او فرمائيل، ګويا زهٔ هغه تور وړو پنډو

وَسَلَّمَ قَالَ كَأَنِّيْ بِهٖ اَسْوَدَ اَفْحَجَ يَقْلَعُهَا حَجَرًا حَجَرًا.

والا سرے وینم، چه د کعبے یو یو کانړے به راوکاږي.

۲۰۳: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ قَالَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ يُوْنُسَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ اَنَّ اَبَا هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُخَرِّبُ الْكَعْبَةَ ذُو السُّوَيْقَتَيْنِ مِنَ الْحَبَشَةِ.

۲۰۳: یحیی بن بکیر. لیث. یونس. ابن شهاب. سعید بن مسیب. حضرت ابو هریره رضي اللّٰه عنه نه روایت کوي، ده هغه بیان دے، رسول اللّٰه صلے اللّٰه علیه وسلم او فرمائیل، چه کعبه به دوو وړو پنډو والا یو حبشي سړے ورانه کړي.

## باب ۱۳۶: مَا ذُكِرَ فِي الْحَجَرِ الْاَسْوَدِ.

## باب ۱۳۶: ده هغے روایتونو بیان چه ده حجر اسود په حقله نقل دي.

۲۰۴: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيْرٍ قَالَ اَخْبَرَنَا سُفْيَانُ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ اِبْرَاهِيْمَ عَنْ عَابِسِ بْنِ رَبِيْعَةَ عَنْ عُمَرَ اَنَّهُ جَآءَ اِلَى الْحَجَرِ الْاَسْوَدِ فَقَبَّلَهُ فَقَالَ اِنِّيْ لَاَعْلَمُ اَنَّكَ حَجَرٌ لَا تَضُرُّ وَلَا تَنْفَعُ وَلَوْلَا اَنِّيْ رَاَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُقَبِّلُكَ مَا قَبَّلْتُكَ.

۲۰۴: محمد بن کثیر. سفیان. اعمش. ابراهیم. عابس بن ربیعه. حضرت عمر رضي اللّٰه عنه نه روایت کوي هغه حجر اسود له راغے او بنکل ئے کړۀ. بیائے او فرمائیل زۀ پوهیږم، چه تۀ یو کانړے ئے، نۀ تۀ نقصان رسولے شے، او نۀ نفع رسول ستا په اختیار کښې دي که ما نبي صلي اللّٰه علیه وسلم نۀ وے لیدلے، چه تۀ ئے بنکلولے، نو تۀ به ما هیچرے نۀ وے بنکل کړے.

## باب ۱۳۷: اِغْلَاقِ الْبَيْتِ وَ يُصَلِّيْ فِيْۤ اَيِّ نَوَاحِي الْبَيْتِ شَآءَ.

## باب ۱۳۷: ده خانه کعبے ده دروازے بندولو بیان. او خانه کعبه کښې چه کوم اړخ ته غواړي، مونځ کولے شي.

۲۰۵: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ قَالَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ سَالِمٍ عَنْ اَبِيْهِ اَنَّهُ قَالَ دَخَلَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْبَيْتَ هُوَ وَ اُسَامَةُ بْنُ زَيْدٍ وَّ

۲۰۵: قتیبه بن سعید. لیث. ابن شهاب. سالم. عبداللّٰه بن عمر رضي اللّٰه عنه نه روایت کوي، هغه اووے، رسول اللّٰه صلے اللّٰه علیه وسلم، اسامه بن زید رضي اللّٰه عنه، بلال رضي اللّٰه عنه، عثمان بن طلحه رضي اللّٰه عنه خانه کعبه کښې داخل شو، نو هغوي ده خانه

بِلَالٌ وَّ عُثْمَانُ بْنُ طَلْحَةَ فَاَغْلَقُوْا عَلَيْهِمُ الْبَابَ فَلَمَّا فَتَحُوْا اَوَّلَ مَنْ وَّلَجَ فَلَقِيْتُ بِلَالًا فَسَأَلْتُهُ هَلْ صَلّٰى فِيْهِ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ نَعَمْ بَيْنَ الْعَمُوْدَيْنِ الْيَمَانِيَيْنِ.

كعبې دروازه بنده كړه. څه وخت چه دروازه ئې پرانسته، دَ ټولو نه مخكښې زهٔ ورننوتم، نو بلال رضي الله عنه سره م ملاقات اوشو، ما دَ هغهٔ نه تپوس او كهٔ، آيا رسول الله صلي الله عليه وسلم دلته مونځ كړے دے، هغوي اووے، او، دَ دواړو يمني ستنو مينځ كښې ئې مونځ كړے دے.

۱. امام بخاري رحمة الله عليه دا ښودل غواړي. چه رسول الله صلي الله عليه وسلم د يمني ستنو مينځ كښې مونځ ادا كړے وو ليكن دا اتفاقي خبره وه. كعبه شريفه كښې دننه، چه كوم خائے يا كوم طرفته مونځ كول غواړي مونځ كولے شي.

## بَابٌ ۱۳۸: اَلصَّلٰوةِ فِي الْكَعْبَةِ.

باب ۱۳۸: كعبه كښې دَ مونځ كولو بيان (الله دے خمونږ هم نصيب كړي).

۲۰۶: حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدٍ قَالَ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ قَالَ اَخْبَرَنَا مُوْسَى بْنُ عُقْبَةَ عَنْ نَّافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ اَنَّهُ كَانَ اِذَا دَخَلَ الْكَعْبَةَ مَشٰى قِبَلَ الْوَجْهِ حِيْنَ يَدْخُلُ وَ يَجْعَلُ الْبَابَ قِبَلَ الظَّهْرِ يَمْشِيْ حَتّٰى يَكُوْنَ بَيْنَهُ وَ بَيْنَ الْجِدَارِ الَّذِيْ قِبَلَ وَجْهِهٖ قَرِيْبًا مِّنْ ثَلٰثَةِ اَذْرُعٍ فَيُصَلِّيْ يَتَوَخَّى الْمَكَانَ الَّذِيْ اَخْبَرَهُ بِلَالٌ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلّٰى فِيْهِ وَ لَيْسَ عَلٰى اَحَدٍ بَأْسٌ اَنْ يُّصَلِّيَ فِيْ اَيِّ نَوَاحِي الْبَيْتِ شَآءَ.

۲۰۶: احمد بن محمد. عبدالله. موسي بن عقبه. نافع. ابن عمر رضي الله عنه نه روايت كوي، چه ابن عمر رضي الله عنه كعبه كښې داخل شو، نو په مخه به تلو او دروازے طرف ته به دَ هغه شا وَه، او هغه به تلو، تر دے چه دَ هغهٔ او دَ هغهٔ مخے ته دَ ديوال مينځ كښې به درے ګزه فاصله پاتے شوه. بيا به ئې مونځ كولو، او دَ هغے خائے قصد به ئې كولو، چه دَ هغے متعلق بلال رضي الله عنه بيان كړے وو، چه نبي صلے الله عليه وسلم دلته مونځ كړے وو، او بل چا ته هيڅ څهٔ حرج نشته، چه خانه كعبه كښې كوم طرف ته غواړي، مونځ او كړي.

## بَابٌ ۱۳۹: مَنْ لَّمْ يَدْخُلِ الْكَعْبَةَ وَ كَانَ ابْنُ عُمَرَ يَحُجُّ كَثِيْرًا وَّلَا يَدْخُلُ.

باب ۱۳۹: دَ هغے سړي بيان چه كعبه كښې داخل نشي. او ابن عمر رضي الله عنه به اكثر حج كولو. ليكن خانه كعبه كښې به نهٔ داخليدو.

۱. بيت الله شريف ته دننه ورننوتل ضروري نَدي. رسول الله صلي الله عليه وسلم د حجّة الوداع په موقعه خانه كعبے ته دَننه نه وو ورغلے. د صلح حديبيه نه پس چه كله د عمرے د قضا د پاره مكے مكرمے ته تشريف يوړلو. نو بيا هم بيت الله ته داخل شوے نه وو د "جِعِرّانے" د عمرے په موقعه هم رسول الله صلي الله عليه وسلم بيت الله شريف ته دننه نه وو ورغلے. دا دواړه موقعے داسے وے چه بيت الله شريف كښې بُتان پراته وو چه مكه مكرمه، كله فتحه شوه او د بتانو نه ئے خانه كعبه پاكه كړه. نو خانه كعبے ته دننه شو. د حجّة الوداع، په موقع خانه كعبه كښې بُتان نه وو. ليكن بيا هم رسول الله صلي الله عليه وسلم خانه كعبه كښې داخل نشو. نو د دے وجے دا مسئله شوه كه بغير د څه ركاوټ نه كعبے ته داخليدے شي او د هغے تقدس او پاكوالي خيال ساتلے شي نو كعبے ته ورننوتل مستحب دي او كني بيا ضرورت نشته.

۲۰۷: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ قَالَ حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا اِسْمٰعِيْلُ بْنُ اَبِيْ خَالِدٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِيْ اَوْفٰى قَالَ اعْتَمَرَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَطَافَ بِالْبَيْتِ وَصَلّٰى خَلْفَ الْمَقَامِ رَكْعَتَيْنِ وَمَعَهُ مَنْ يَّسْتُرُهُ مِنَ النَّاسِ فَقَالَ لَهُ رَجُلٌ دَخَلَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْكَعْبَةَ قَالَ لَا.

۲۰۷: مسدد. خالد بن عبدالله. اسمٰعيل بن ابي خالد. عبدالله بن ابي اوفٰي نه روايت كوي، چه رسول الله صلي الله عليه وسلم عمره اوكړه، نو دَ خانه كعبے طواف ئے اوكۀ، او دَ مقام ابراهيم شاته ئے دوه ركعاته مونځ اوكۀ، او حضور صلي الله عليه وسلم سره يَو سړے هم وو، چه حضور صلي الله عليه وسلم ئے دَ خلقو نه پناه كړے وو. يو سړي دَ عبدالله بن اوفٰي نه تپوس اوكۀ، آيا رسول الله صلے الله عليه وسلم كعبه كښې داخل شوے وو، هغۀ جواب وركۀ، نه.

## بَابٌ ۱۴۰: مَنْ كَبَّرَ فِيْ نَوَاحِي الْكَعْبَةِ.

## باب ۱۴۰: دَ هغے سړي بيان چه دَ كعبے اطرافو كښې تكبير اووائي.

۲۰۸: حَدَّثَنَا اَبُوْ مَعْمَرٍ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ قَالَ حَدَّثَنَا اَيُّوْبُ قَالَ حَدَّثَنَا عِكْرِمَةُ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ اِنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمَّا قَدِمَ اَبٰى اَنْ يَّدْخُلَ الْبَيْتَ وَفِيْهِ الْاٰلِهَةُ فَاَمَرَ بِهَا فَاُخْرِجَتْ فَاَخْرَجُوْا صُوْرَةَ اِبْرَاهِيْمَ وَاِسْمٰعِيْلَ عَلَيْهِمَا السَّلَامُ فِيْ اَيْدِيْهِمَا الْاَزْلَامُ

۲۰۸: ابو معمر. عبدالوارث. ايوب. عكرمه. ابن عباس رضي الله عنه نه روايت كوي، كوم وخت چه نبي صلے الله عليه وسلم خانه كعبے ته راغے، نو دننه ورتلو نه ئے انكار اوكۀ، او هغے كښې بُتان پراتۀ وو دَ هغے دَ اوبنكلو حضور صلي الله عليه وسلم حكم اوكړلو، نو هغه اوبنكلے شو. خلقو دَ ابراهيم عليه السلام او اسمٰعيل عليه السلام بُتان هم اوبنكل چه دَ دوي دواړو لاسونو كښې ازلام (د جوارئ غشي) وو.

فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَاتَلَهُمُ اللّٰهُ اَمَا وَاللّٰهِ قَدْ عَلِمُوْا اَنَّهُمَا لَمْ يَسْتَقْسِمَا بِهَا قَطُّ فَدَخَلَ الْبَيْتَ فَكَبَّرَ فِيْ نَوَاحِيْهِ وَلَمْ يُصَلِّ فِيْهِ.

رسول الله صلي الله عليه وسلم او فرمائيل. الله دے دا مشركان برباد كړي. په خدائے چه دا خلق پيژني' چه دے دواړو هيڅ كله د جوارئ غشي نهٔ دي ويشتلے. بيا خانه كعبه كښې داخل شولو' او دَ هغې په اطرافو (كُټونو) كښې ئے تكبير اووے. او مونځ ئے او نهٔ كړهٔ.

ف: پانسے: دَ جواري دَ دانو ويشتلو كښې داؤ راوتل.

۱. ډيرو مشركانه رسمونو سره' سره دغشي په ذريعه د فال ايستلو طريقه عمرو بن لحي شروع كړے وه. قريشو ته د دے علم وو چه عمرو' د ابراهيم عليه السلام نه ډير روستو پيدا شوے وو د قريشو دا ظلم وو. چه هغوي د ابراهيم او اسمٰعيل عليهما السلام بُتان (مجسمے) جوړ كړے وو او هغوي له ئے په لاسونو كښې غشي وركړے وو چه هغوي فالونه اوباسي د قريشو د دے دروغ جوړولو (په ابراهيم او اسمٰعيل عليهما السلام باندے) د قريشو په حقله خيرے (بددعائي) اوكړے.

## بَاب ۱۴۱ : كَيْفَ كَانَ بَدْءُ الرَّمْلِ.

باب ۱۴۱ : دَ رمل ابتدا څنگه اوشوه.

۲۰۹ : حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ قَالَ حَدَّثَنَا حَمَّادٌ هُوَ ابْنُ زَيْدٍ عَنْ اَيُّوْبَ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَدِمَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَصْحَابُهُ فَقَالَ الْمُشْرِكُوْنَ اَنَّهُ يَقْدَمُ عَلَيْكُمْ وَفْدٌ وَّهَنَهُمْ حُمّٰى يَثْرِبَ فَاَمَرَهُمُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنْ يَّرْمُلُوْا الْاَشْوَاطَ الثَّلَاثَةَ وَ اَنْ يَّمْشُوْا مَا بَيْنَ الرُّكْنَيْنِ وَلَمْ يَمْنَعْهُ اَنْ يَّاْمُرَهُمْ اَنْ يَّرْمُلُوا الْاَشْوَاطَ كُلَّهَا اِلَّا الْاِبْقَآءَ عَلَيْهِمْ.

۲۰۹ : سليمان بن حرب. حماد بن زيد. ايوب. سعيد بن جبير. ابن عباس رضي الله عنه نه روايت كوي' رسول الله صلي الله عليه وسلم او دَ حضور صلي الله عليه وسلم صحابه رضي الله عنه مكے ته راغلل' نو مشركينو ونيلے' تاسو خلقو ته يَو داسے قوم راځي' چه دَ يثرب تبے هغوي كمزوري كړي دي' نو رسول الله صلي الله عليه وسلم صحابه رضي الله عنه ؤ ته حكم اوكهٔ' چه درے چكرو كښې ايغ نيغ ځئ' او دَ دواړو ركنونو مينځ كښې معمولي چال سره ځئ. او ټولو چكرونو كښې دَ رمل حكم وركولو سره حضور صلي الله عليه وسلم هيڅ څيز منع نهٔ كړلو' ما سِوا دَ دے نه چه سهولت دَ حضور صلي الله عليه وسلم پيش نظر وو.

ف: رمل: په تا دئ تلل. په منډه تلل.

## بَاب ۱۴۲ : اِسْتِلَامِ الْحَجَرِ

باب ۱۴۲ : هر كله چه مكے ته راشي' نو

الْاَسْوَدِ حِيْنَ يَقْدَمُ مَكَّةَ اَوَّلَ مَا يَطُوْفُ وَ يَرْمَلُ ثَلٰثًا.

ورمبي طواف کښې ذ حجر اسود، ذ ښکلولو بیان. او درے خله دے رمل او کړي.

۱۵۱۰: حَدَّثَنَا اَصْبَغُ قَالَ اَخْبَرَنِيْ ابْنُ وَهْبٍ عَنْ يُوْنُسَ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ سَالِمٍ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ رَاَيْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِيْنَ يَقْدَمُ مَكَّةَ اِذَا اسْتَلَمَ الرُّكْنَ الْاَسْوَدَ اَوَّلَ مَا يَطُوْفُ يَخُبُّ ثَلٰثَةَ اَطْوَافٍ مِنَ السَّبْعِ.

۱۵۱۰: اصبغ. ابن وهب. یونس. زهري. سالم ذ خپل پلار نه روایت کوي. ذ هغه بیان دے رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلم چه به مکے ته راغے، نو ړومبي طواف کښې به ئے حجر اسود ښکل کړلو. او اوو چکرو کښې به ئے درے چکرو کښې رمل کولو.

باب ۱۴۳: الرَّمْلِ فِي الْحَجِّ وَالْعُمْرَةِ.

باب ۱۴۳: حج او عمره کښې ذ رمل کولو بیان.

۱۵۱۱: حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ قَالَ حَدَّثَنَا شُرَيْحُ بْنُ النُّعْمَانِ قَالَ حَدَّثَنَا فُلَيْحٌ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ سَعَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثَلٰثَةَ اَشْوَاطٍ وَّ مَشٰى اَرْبَعَةً فِي الْحَجِّ وَالْعُمْرَةِ تَابَعَهُ اللَّيْثُ قَالَ حَدَّثَنِيْ كَثِيْرُ بْنُ فَرْقَدٍ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۱۵۱۱: محمد. شریح بن نعمان. نافع. حضرت ابن عمر رضي اللّٰه عنه نه روایت کوي، ذ هغهٔ بیان دے، چه نبي صلي اللّٰه علیه وسلم به درے چکرو کښې په منډه تلو، او څلورو چکرو کښې به حج او عمره کښې معمولي چال سره تلو. لیث ذ دے متابع حدیث روایت کړ، چه ما ته کثیر بن فرقد په واسطه ذ نافع. ابن عمر رضي اللّٰه عنه ذ نبي صلے اللّٰه علیه وسلم نه روایت او کړ.

۱۵۱۲: حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ اَبِيْ مَرْيَمَ قَالَ اَخْبَرَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ زَيْدُ بْنُ اَسْلَمَ عَنْ اَبِيْهِ اَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ قَالَ لِلرُّكْنِ اَمَا وَاللّٰهِ اِنِّيْ لَاَعْلَمُ اِنَّكَ حَجَرٌ لَا تَضُرُّ وَلَا تَنْفَعُ وَلَوْلَا اَنِّيْ رَاَيْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

۱۵۱۲: سعید بن ابي مریم. محمد بن جعفر. زید بن اسلم ذ خپل پلار نه روایت کوي، چه حضرت عمر بن خطاب رضي اللّٰه عنه حجر اسود مخاطب کړ، او ورته ئے او فرمائیل، په خدائے چه زهٔ پوهیږم چه تهٔ یو کاڼړے ئے. نهٔ چا ته نقصان رسولے شے، او نهٔ نفع رسول ستا په اختیار کښې دي، که رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلم ما تهٔ په ښکلولو نهٔ وے لیدلے، نو ما به نهٔ وے ښکل

وَسَلَّمَ اسْتَلَمَكَ مَا اسْتَلَمْتُكَ فَاسْتَلَمَهُ ثُمَّ قَالَ وَمَا لَنَا وَ لِلرَّمَلِ اِنَّمَا كُنَّا رَاَيْنَا بِهِ الْمُشْرِكِيْنَ وَقَدْ اَهْلَكَهُمُ اللّٰهُ ثُمَّ قَالَ شَيْءٌ صَنَعَهُ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَا نُحِبُّ اَنْ نَّتْرُكَهُ.

کړے. بیائے هغه ښکل کڅ' او' وے فرمائيل' ذَ رمل مونږ ته څۀ ضرورت وو. مونږ ذَ دے په ذريعه په ذريعه مشرکانو ته اوښودل' او هغوي الله تعالٰي هلاک کړل. بیائے او فرمائيل. دا يَو داسے کار دے چه رسول الله صلي الله عليه وسلم کړے دے' نو مونږ دا پريښودل نه خوښوو.

۱. د عبدالله بن عَباس رضي الله عنهما نه روايت دے "چه رمل د (پهلوانئ رفتار سره درے ړومبني طوافونه کول) يو وختي د فائدے عمل وو دا سنت عمل ندے" ليکن د امت عام عالمان دا سنت ګڼړي. د جمهور صحابه ؤ د وينا او د عمل نه دا معلوميږي چه دا سنت عمل دے. د احنافو دا مسلک دے چه د کوم طواف نه روستو د صفا مروه مينځ کښ سَعي کول وي. د هغے په طواف کښ به رَمَل وي په نورو طوافونو کښ به نه وي.

۲۱۳: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ عَنْ نَّافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ مَا تَرَكْتُ اسْتِلَامَ هٰذَيْنِ الرُّكْنَيْنِ فِي شِدَّةٍ وَّلَا رَخَآءٍ مُنْذُ رَاَيْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَسْتَلِمُهُمَا قُلْتُ لِنَافِعٍ اَكَانَ ابْنُ عُمَرَ يَمْشِيْ بَيْنَ الرُّكْنَيْنِ قَالَ اِنَّمَا كَانَ يَمْشِيْ لِيَكُوْنَ اَيْسَرَ لِاسْتِلَامِهٖ.

۲۱۳: مسدد. يحيٰي. عبيد الله. نافع. عبدالله بن عمر رضي الله عنه نه روايت کوي' چه سختئ او آساني هيڅ حال کښ هم ما ذَ دے دواړو رکنونو ښکلول نۀ دي پريښے' ذَ کوم وخت نه چه ما رسول الله صلے الله عليه وَسلم په ښکلولو ليدلے دے. ما ذَ نافع نه تپوس او کړ' آيا ابن عمر رضي الله عنه به ذَ دواړو رکنونو په مينځ کښ په معمولي چال تلو' هغۀ جواب راکړ' هغه معمولي چال سره صرف په دې وجه تلو' چه آسانئ سره ئے ښکل کړے شي.

## بَاب ۱۴۴: اِسْتِلَامِ الرُّكْنِ بِالْمِحْجَنِ.

## بـاب ۱۴۴: همسا په حجر اسود ذَ لګولو.

۲۱۴: حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ وَّ يَحْيٰى بْنُ سُلَيْمَانَ قَالَ ثَنَا ابْنُ وَهْبٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ يُوْنُسُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ طَافَ النَّبِيُّ

۲۱۴: احمد بن صالح. يحيٰي بن سليمان. ابن وهب. يونس. ابن شهاب. عبيد الله بن عبدالله. حضرت ابن عباس رضي الله عنه نه روايت کوي' چه نبي صلي الله عليه وسلم حجة الوداع کښ په خپله اوښه سور

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي حَجَّةِ الْوَدَاعِ عَلٰى بَعِيْرِهٖ يَسْتَلِمُ الرُّكْنَ بِمِحْجَنٍ تَابَعَهُ الدَّرَاوَرْدِيُّ عَنِ ابْنِ اَخِي الزُّهْرِيِّ عَنْ عَمِّهٖ.

وو، او طواف ئے اوکړلو، او ذَ همسا په ذریعه ئے حجر اسود بنکل کړلو، ذَ راوردي ذَ خپل ورارهٔ (ﷺ) زهري نه، هغهٔ ذَ خپل ترهٔ نه ذَ دې متابع حدیث روایت کړے دے.

باب ۱۴۵: مَنْ لَمْ يَسْتَلِمْ اِلَّا الرُّكْنَيْنِ الْيَمَانِيَيْنِ وَ قَالَ مُحَمَّدُ بْنُ بَكْرٍ اَخْبَرَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ اَخْبَرَنِي عَمْرُو بْنُ دِيْنَارٍ عَنْ اَبِي الشَّعْثَاءِ اَنَّهٗ قَالَ وَ مَنْ يَّتَّقِي شَيْئًا مِّنَ الْبَيْتِ وَ كَانَ مُعَاوِيَةُ يَسْتَلِمُ الْاَرْكَانَ فَقَالَ لَهُ ابْنُ عَبَّاسٍ اِنَّهٗ لَا نَسْتَلِمُ هٰذَيْنِ الرُّكْنَيْنِ فَقَالَ لَهٗ لَيْسَ شَيْءٌ مِّنَ الْبَيْتِ بِمَهْجُوْرٍ وَ كَانَ ابْنُ الزُّبَيْرِ يَسْتَلِمُهُنَّ كُلَّهُنَّ.

باب ۱۴۵: ذَ هغې سړي بیان چه صرف دواړه رکن یماني بنکل کړي. او محمد بن بکر په واسطه ذَ ابن جریج. عمرو بن دینار. ابو الشعثاء نه روایت اوکړهٔ هغهٔ اووے. څوک دے چه ذَ خانه کعبې ذَ څهٔ څیز نه پرهیز اوکړي. او معاویه رضي اللّٰه عنه به رکنونه بنکلول، نو هغهٔ ته ابن عباس رضي اللّٰه عنه او فرمائیل، چه مونږ دا دواړه نهٔ بنکلوو. معاویه رضي اللّٰه عنه ورته اووے، ذَ خانه کعبې هیڅ څیز ذَ پریښودو نهٔ دے. او ابن زبیر رضي اللّٰه عنه به دا ټول مسحه کول او بنکلول.

۲۱۵: حَدَّثَنَا اَبُو الْوَلِيْدِ ثَنَا لَيْثٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ سَالِمِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ لَمْ اَرَا النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَسْتَلِمُ مِنَ الْبَيْتِ اِلَّا الرُّكْنَيْنِ الْيَمَانِيَيْنِ.

۲۱۵: ابو الولید. لیث. ابن شهاب. سالم بن عبداللّٰه ذَ خپل پلار نه روایت کوي، چه ما نبي صلے اللّٰه علیه وسلم ذَ دواړو رکن یماني نه سِوا په بل څهٔ بنکلولو لاس لګولو نهٔ دے لیدلے.

باب ۱۴۶: تَقْبِيْلِ الْحَجَرِ.

باب ۱۴۶: ذَ حجر اسود ذَ بنکلولو بیان.

۲۱۶: حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ سِنَانٍ حَدَّثَنَا يَزِيْدُ بْنُ هَارُوْنَ اَخْبَرَنَا وَرْقَاءُ اَخْبَرَنَا زَيْدُ بْنُ اَسْلَمَ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ رَاَيْتُ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ قَبَّلَ الْحَجَرَ وَ قَالَ لَوْلَا اَنِّيْ رَاَيْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَبَّلَكَ مَا

۲۱۶: احمد بن سنان. یزید بن هارون. ورقاء. زید بن اسلم ذَ خپل پلار نه روایت کوي، چه ما حضرت عمر رضي اللّٰه عنه اولید، چه حجر اسود، ئے بنکل کړهٔ، او وے فرمائیل، که ما نبي صلے اللّٰه علیه وسلم نهٔ وے لیدلے، چه ته ئے بنکلولے، نو ما به تهٔ نهٔ وے

قَبَّلْتُكَ.

بښكل كړے.

۷ ۱ ۲ : حَدَّثَنَا مُسَدَّدُ حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنِ الزُّبَيْرِ بْنِ عَرَبِيٍّ قَالَ سَأَلَ رَجُلٌ ابْنَ عُمَرَ عَنِ اسْتِلَامِ الْحَجَرِ فَقَالَ رَأَيْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَسْتَلِمُهُ وَ يُقَبِّلُهُ وَ قَالَ اَرَاَيْتَ اِنْ زُوْحِمْتُ اَرَاَيْتَ اِنْ غُلِبْتُ قَالَ اجْعَلْ اَرَاَيْتَ بِالْيَمَنِ رَاَيْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَسْتَلِمُهُ وَ يُقَبِّلُهُ وَ قَالَ مُحَمَّدُ بْنُ يُوْسُفَ الْفَرَبْرِيِّ وَجَدْتُ فِيْ كِتَابِ اَبِيْ جَعْفَرَ قَالَ اَبُوْ عَبْدِ اللّٰهِ الزُّبَيْرِ بْنُ عَدِيِّ كُوْفِيٌّ وَالزُّبَيْرِ بْنَ عَرَبِيِّ بَصْرِيٌّ.

۷ ۱ ۲ : مسدد. حماد بن زيد. زبير بن عربي نه روايت كوي' يو سړي ذ حضرت عمر بن خطاب رضي اللّٰه عنه نه ذ حجر اسود ذ ښكلولو په حقله تپوس اوكړ' نو وے وئيل' ما رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلم ذ دے په لاس لګولو او ښكلولو ليدلے دے. هغه سړي اووے' كه خلق ډير زيات وي (زياته باره بيره وي) كه زۀ مجبور شم. حضرت عمر رضي اللّٰه عنه جواب وركړ. اغه دغه (يمن كښ) پريږده. ما خو رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم په حجر اسود ښكلولو ليدلے دے[۱]. محمد بن يوسف فربري او وئيل' ما په كتاب ذ ابو جعفر كښ اوليدل' چه ابو عبداللّٰه او وئيل' زهير بن عدي كوفي دے' او زهير بن عربي بصري دے.

۱. داسے معلوميږي چه دا پښتنه كونكے د يمن اوسيدونكے وو عبداللّٰه بن عمر رضي اللّح عنهما باندے دا خبره بده اولګيده. چه د رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم د حديث شريف د اوريدو نه روستو' هغے كښ احتمالات لټول' ګنجائشونه كتل' مناسب خبره نده. د رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم د صحابهٔ كرامو ذ هغه سُنتو سره څومره محبت وو عبداللّٰه بن عمر رضي اللّٰه عنهما د سوال كونكي د سوال د طرز نه دا معلومه كړي چه دا سوال كونكے د حديث شريف په مقابله كښ د خپلے رائے نه كار اخلي.

وړاندے داسے حديث شريف تير شويدے چه د ګنړے ګونړے په وخت' همسا حجر اسود پورے لګولے شي دلړے نه په همسايا په لاسونو حجر اسود ته اشاره كولے شي. رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم پخپله همسا حجر اسود پورے د لاس پخائے لګولے وه.

## بَابٌ ۱۴۷ : مَنْ اَشَارَ اِلَى الرُّكْنِ اِذَا اَتٰى عَلَيْهِ.

## باب ۱۴۷ : حجر اسود ته راتلو سره ذ اشارے كولو بيان.

۸ ۱ ۲ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنّٰى قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ قَالَ حَدَّثَنَا خَالِدٌ عَنْ عِكْرَمَةَ عَنِ ابْنِ

۸ ۱ ۲ : محمد بن مثنى. عبدالوهاب خالد. عكرمه. ابن عباس رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي' چه نبي صلے اللّٰه عليه وسلم په اوښ سور' ذ

عَبَّاسٍ قَالَ طَافَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْبَيْتِ عَلٰى بَعِيْرٍ كُلَّمَا اَتَى عَلَى الرُّكْنِ اَشَارَ اِلَيْهِ بِشَيْءٍ.

خانه کعبې طواف ئې اوکړ. کله چه هم حجر اسود ته مخې ته راغې، نو څه څيز سره به ئې اشاره کوله.[۱]

۱. د دېنه وړاندې داسې حديث شريف تفصيل سره تير شويدې چه رسول الله صلي الله عليه وسلم سره همسا وه. هغه به ئې د لرې نه حجرِ اسود پورې لګوله.

## بَاب ۱۴۸: اَلتَّكْبِيْرِ عِنْدَ الرُّكْنِ.

## باب ۱۴۸: حجر اسود سره نزدې د تکبير کولو بيان.

۲۱۹: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ قَالَ حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنَا خَالِدُ نِ الْحَذَّآءُ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ طَافَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْبَيْتِ عَلٰى بَعِيْرٍ كُلَّمَا اَتَى الرُّكْنَ اَشَارَ اِلَيْهِ بِشَيْءٍ عِنْدَهٗ وَ كَبَّرَ تَابَعَهُ اِبْرَاهِيْمُ بْنُ طَهْمَانَ عَنْ خَالِدِ نِ الْحَذَّآءِ.

۲۱۹: مسدد. خالد بن عبدالله. خالد حذاء. عکرمه. ابن عباس رضي الله عنه نه روايت کوي، چه نبي صلى الله عليه وسلم په اوبښ سور د خانه کعبې طواف ئې اوکړ، کله چه به حجر اسود ته راتلو، نو څه څيز سره به ئې اشاره کوله، او تکبير به ئې وئيلو، ابراهيم بن طهمان خالد حذاء نه د دې متابع حديث روايت کړ.

## بَاب ۱۴۹: مَنْ طَافَ بِالْبَيْتِ اِذَا قَدِمَ مَكَّةَ قَبْلَ اَنْ يَّرْجِعَ اِلٰى بَيْتِهٖ ثُمَّ صَلّٰى رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ خَرَجَ اِلَى الصَّفَا.

## باب ۱۴۹: د هغې سړي بيان چه مکې ته راشي، او کور ته د واپس کيدو نه مخکښې د خانه کعبې طواف اوکړي. بيا دوه رکعاته مونځ اوکړي. بيا صفا طرف ته اوځي.

۲۲۰: حَدَّثَنَا اَصْبَغُ عَنِ ابْنِ وَهْبٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عَمْرٌو عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ قَالَ ذَكَرْتُ لِعُرْوَةَ قَالَ فَاَخْبَرَتْنِيْ عَآئِشَةُ اَنَّ اَوَّلَ شَيْءٍ بَدَاَ بِهٖ حِيْنَ قَدِمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهٗ تَوَضَّاَ ثُمَّ طَافَ ثُمَّ لَمْ تَكُنْ عُمْرَةً ثُمَّ حَجَّ اَبُوْ بَكْرٍ وَّ عُمَرُ

۲۲۰: اصبغ. ابن وهب. عمرو. محمد بن عبدالرحمٰن. عروه. بي بي عائشې رضي الله عنه نه روايت کوي، هغې اووې، کوم وخت چه نبي صلي الله عليه وسلم مکې ته راغې، نو د هر څۀ نه مخکښې ئې اودس اوکړ، بيائې طواف اوکړ. بيا عمره او نه شوه بيا ابوبکر رضي الله عنه، عمر رضي الله عنه هم دغسې حج اوکړ. بيا ما ابن زبير رضي الله عنه سره حج اوکړ. نو

مِثْلَهُ ثُمَّ حَجَجْتُ مَعَ اَبِي الزُّبَيْرِ فَاَوَّلَ شَيْءٍ بَدَاَ بِالطَّوَافِ ثُمَّ رَاَيْتُ الْمُهَاجِرِيْنَ وَالْاَنْصَارَ يَفْعَلُوْنَهُ وَقَدْ اَخْبَرَتْنِيْ اُمِّيْ اَنَّهَا اَهَلَّتْ هِيَ وَ اُخْتُهَا وَ الزُّبَيْرُ وَ فُلَانٌ وَّ فُلَانٌ بِعُمْرَةٍ فَلَمَّا مَسَحُوا الرُّكْنَ حَلُّوْا.

هغه ذَ تولو نه مخکښ طواف اوکړ. بيا ما مهاجرين او انصار په دغسې کولو اوليدل. او ما ته خما مور اووې' چه هغې او ذَ هغې خور او زبير او فلاني فلاني ذَ عمرې احرام او تړلو' نو هغوي ئې په دغسې کولو اوليدل' چه په حجر اسود به ئې لاس او لګولو نو ذَ احرام نه به بهر شولو¹.

۱. د سوال تفصيل په نورو رواياتو کښ شته دې په اصل کښ راوي د عبدالله بن عباس رضي الله عنهما په مسلک اعتراض کوي. چه د ده مسلک د د جمهور اُمَت د مسلک خلاف دې د عبدالله ابن عباس رضي الله عنهما مسلک دا وو "چه کوم بنده د حج د پاره احرام او تړي. مکه ته راشي خرنګ چه بيت الله اوويني احرام به ئې مات شي که خوک د حج د پاره احرام اوتړي د هغه د پاره دا ضروري ده چه بيت الله شريف به نه ويني اول به عرفات ته خي. او په آخر کښ به مکې شريفې ته رازي بيا به طواف او سعي کوي".

۱۲۲۱: حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ الْمُنْذِرِ قَالَ حَدَّثَنَا اَبُوْ ضَمْرَةَ اَنَسُ بْنُ عِيَاضٍ قَالَ مُوْسَى بْنُ عُقْبَةَ عَنْ نَّافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ اِذَا طَافَ فِي الْحَجِّ وَالْعُمْرَةِ اَوَّلَ مَا يَقْدَمُ سَعٰى ثَلٰثَةَ اَطْوَافٍ وَّ مَشٰى اَرْبَعَةً ثُمَّ سَجَدَ سَجْدَتَيْنِ ثُمَّ يَطُوْفُ بَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ.

۱۲۲۱: ابراهيم بن منذر. ابو ضمره. انس بن عياض. موسٰي بن عقبه. نافع. عبدالله بن عمر رضي الله عنه نه روايت کوي' رسول الله صلی الله عليه وسلم به په حج او عمره کښ طواف کولو' نو ورمبې درې چکرو کښ به ئې سعي کوله' او څلورو چکرو کښ به معمولي چال سره تلو. بيا به ئې دوه رکعاته مونځ کولو' بيا به ئې ذَ صفا او مروه مينځ کښ طواف کولو.

۲. د دې حصې د حديث شريف د عبدالله بن عباس رضي الله عنهما د مسلک سره څه تعلق نشته. پدې حديث کښ دي چه حجر اسود باندې لاس لګولو سره احرام ختم شي بنده حلال شي. حال دا دې چه په حجرِ اسود باندې د لاس لګولو نه روستو د صفا مروه مينځ کښ سعي (منډې وهل) کول دي هغې نه روستو احرام لرې کولې شي او بنده حلال شي. راوي د حج تفصيل نه بيانوي. خپل حلال والې بيانوي شايد چه راوي حجر اسود باندې لاس لګولو سره د خپل اوزګارتيا بيان کوي. چه د هغه احرام ختم شو.

۱۲۲۲: حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ الْمُنْذِرِ قَالَ حَدَّثَنَا اَنَسُ بْنُ عَيَاضٍ

۱۲۲۲: ابراهيم بن منذر. انس بن عياض. عبيد الله. نافع. عبدالله بن عمر رضي الله عنه نه

عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ عَنْ نَافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ اِذَا طَافَ بِالْبَيْتِ الطَّوَافَ الْاَوَّلَ يَخُبُّ ثَلَاثَةَ اَطْوَافٍ وَّ يَمْشِيْ اَرْبَعَةً وَّ اَنَّهُ كَانَ يَسْعٰى بَطْنَ الْمَسِيْلِ اِذَا طَافَ بَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ.

روایت کوي، هغهٔ بیان اوکړ، چه نبي صلی اللّٰه علیه وسلم به دَ خانه کعبې طواف کولو، نو ورمبي درې چکرو کښې به په منډه تلو، او څلورو چکرو کښې به معمولي چال سره تلو. او دَ صفا او مروه مینځ کښې چه به ئې طواف کولو، نو دَ نالې وسط کښې به ئې سعي کوله.

## باب ۱۵۰: طَوَافِ النِّسَآءِ مَعَ الرِّجَالِ

## بـاب ۱۵۰: دَ سړو، ښځو سره دَ طواف کولو بیان

وَ قَالَ لِيْ عَمْرُو بْنُ عَلِيٍّ اَبُوْ عَاصِمٍ قَالَ بْنُ جُرَيْجٍ اَخْبَرَنِيْ عَطَآءٌ اِذَا مَنَعَ ابْنُ هِشَامٍ نِّالنِّسَآءَ الطَّوَافَ مَعَ الرِّجَالِ قَالَ كَيْفَ تَمْنَعُهُنَّ وَقَدْ طَافَ نِسَآءُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَعَ الرِّجَالِ قُلْتُ بَعْدَ الْحِجَابِ اَوْ قَبْلُ قَالَ اِيْ لَعَمْرِيْ لَقَدْ اَدْرَكْتُهُ بَعْدَ الْحِجَابِ قُلْتُ كَيْفَ يُخَالِطْهُنَّ كَانَتْ عَآئِشَةُ تَطُوْفُ حَجْرَةً مِّنَ الرِّجَالِ لَا تُخَالِطُهُمْ فَقَالَتِ امْرَاَةٌ نِّانْطَلِقِيْ عَنْكِ وَ اَبَتْ يَخْرُجْنَ مُتَنَكِّرَاتٍ بِاللَّيْلِ فَيَطُفْنَ مَعَ الرِّجَالِ وَلٰكِنَّهُنَّ كُنَّ اِذَا دَخَلْنَ الْبَيْتَ قُمْنَ حِيْنَ يَدْخُلْنَ وَ اُخْرِجَ الرِّجَالُ وَ كُنْتُ اٰتِيْ عَآئِشَةَ اَنَا وَ عُبَيْدُ بْنُ عُمَيْرٍ وَّ هِيَ مُجَاوِرَةٌ فِيْ جَوْفِ ثَبِيْرٍ قُلْتُ وَمَا حِجَابُهَا قَالَ هِيَ فِيْ قُبَّةٍ تُرْكِيَّةٍ لَهَا غِشَآءٌ وَّمَا بَيْنَنَا وَ بَيْنَهَا غَيْرُ ذٰلِكَ وَ رَاَيْتُ عَلَيْهَا دِرْعًا مُّوَرَّدًا.

او ما ته عمرو بن علي په واسطه دَ ابو عاصم. ابن جریج. عطاء بیان اوکړ، چه کوم وخت ابن هشام ښځې، سړو سره دَ طواف کولو نه منع کړې، نو عطاء بن ابي رباح اووې، ته ولې هغوي منع کوې، هر کله چه دَ نبي صلي اللّٰه علیه وسلم بیبیانو سړو سره طواف کړې دې. ما تپوس اوکړ. دَ پردې دَ آیت نازلیدو نه ورستو یا دَ هغې نه مخکښې. هغهٔ اووې، په خپل عمر م دې قسم وي. ما دَ پردې دَ آیت نازلیدو نه ورستو هغوي لیدلې دي. ما تپوس اوکړ. سړو به هغئې سره څنګه ګډون کولو. هغهٔ اووې، هغوي به هغې ښځو سره نهٔ یو ځائې کیدل. بي بي عائشې رضي اللّٰه عنه به دَ نارینهٔ نه جدا طواف کولو. یوې ښځې اووې. اُم المؤمنین راځه، چه حجر اسود ښکل کړو، هغې ورته اووې. ته لاړه شه، او انکار ئې اوکړلو. او بیبیانې دَ نبي صلی اللّٰه علیه وسلم به دَ شپې په دا شان وتلې.

۱. مطلب ئې دا دے چه د سړو او د ښځو د طواف د پاره څه خاص وخت مقرر ندے. چه فلانې وخت به سړي طواف كوي. او فلانې وخت به ښځې طواف كوي. دومره په هغه وخت انتظام وو. چه د ښځو د طواف ځائے د سړو د طواف د ځائے نه جُدا وو، سړي به د طواف كولو په وخت د بيت الله سره نزدے وو او ښځو به د سړو د ځائے نه لرې لرې طواف كولو. داسے د ښځو دائره به د سړو د دائرے نه لويه وه.

۲۲۳: حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ ثَنَا مَالِكٌ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ ابْنِ نَوْفَلٍ عَنْ عُرْوَةَ ابْنِ الزُّبَيْرِ عَنْ زَيْنَبَ بِنْتِ اَبِيْ سَلَمَةَ عَنْ اُمِّ سَلَمَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَتْ شَكَوْتُ اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنِّيْ اَشْتَكِيْ فَقَالَ طُوْفِيْ مِنْ وَّرَاءِ النَّاسِ وَ اَنْتِ رَاكِبَةٌ فَطُفْتُ مِنْ وَّرَآءِ النَّاسِ وَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِيْنَئِذٍ يُصَلِّيْ اِلٰى جَنْبِ الْبَيْتِ وَهُوَ يَقْرَاُ وَالطُّوْرِ وَ كِتَابٍ مَّسْطُوْرٍ.

۲۲۳: اسمٰعيل. مالک. محمد بن عبدالرحمٰن. بن نوفل. عروه بن زبير. زينب بنت ابي سلمه. اُم سلمه رضي الله عنه تېر دَ نبي صلے الله عليه وسلم ته دَ خپلے بيماري شكايت اوكه، نو حضور صلي الله عليه وسلم او فرمائيل، دَ خلقو نه ورستو سوره شه، طواف اوكه. نو ما دَ خلقو نه ورستو طواف اوكه، او رسول الله صلے الله عليه وسلم دغه وخت دَ خانه كعبے په اړخ كښې مونځ كولو، او سورت والطور وَ كتاب مسطور ئې لوستلو.

## بَابُ ۱۵۱: اَلْكَلَامِ فِي الطَّوَافِ.

## باب ۱۵۱: طواف كښې دَ خبرو اترو كولو بيان.

۲۲۴: حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ مُوْسٰى حَدَّثَنَا هِشَامٌ اَنَّ ابْنَ جُرَيْجٍ اَخْبَرَهُمْ قَالَ اَخْبَرَنِيْ سُلَيْمَانُ الْاَحْوَلُ اَنَّ طَاؤُسًا اَخْبَرَهُ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَرَّ وَهُوَ يَطُوْفُ بِالْكَعْبَةِ بِاِنْسَانٍ رَبَطَ يَدَهٗ اِلٰى اِنْسَانٍ بِسَيْرٍ اَوْ بِخَيْطٍ اَوْ بِشَيْءٍ غَيْرِ ذٰلِكَ فَقَطَعَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِيَدِهٖ

۲۲۴: ابراهيم بن موسٰي. هشام. ابن جريج. سليمان الاحوال. طاوس. حضرت ابن عباس رضي الله عنه نه روايت كوي، هغه وائي. نبي صلے الله عليه وسلم داسے حال كښې چه دَ كعبے طواف ئے كولو. دَ يو سړي خوا كښې تير شو، چه هغه خپل لاس دَ بل سړي لاس سره دَ تسمے يا رسئ يا دَ دے قسم څه څيز په ذريعه تړلے وو، نبي صلے الله عليه وسلم خپل لاس سره هغه پريكړلو. بيائے او فرمائيل، دَ هغهٔ لاس اونيسه

ثُمَّ قَالَ خُذْ بِيَدِهٖ.

او ورسره څه.

بـاب ۱۵۲ : إِذَا رَأَى سَيْرًا أَوْ شَيْئًا يُكْرَهُ فِي الطَّوَافِ قَطَعَهُ.

باب ۱۵۲ : چه طواف کښې تسمه يا څه مکروه څيز اووينې، نو هغه دې پريکړي.

۲۲۵ : حَدَّثَنَا أَبُوْ عَاصِمٍ عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ عَنْ سُلَيْمَانَ الْأَحْوَلِ عَنْ طَاؤُسٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَأَى رَجُلًا يَطُوْفُ بِالْكَعْبَةِ بِزِمَامٍ أَوْ غَيْرِهٖ فَقَطَعَهُ.

۲۲۵ : ابو عاصم. ابن جريج. سليمان احول. ابن عباس رضي اللّٰه عنه نه روايت کوي، نبي صلى اللّٰه عليه وسلم يو سړے دَ خانه کعبې په طواف کولو اوليدلو، چه واګې (زمام) يا بل څه څيز سره تړلے شوے وو، نو حضور صلي اللّٰه عليه وسلم هغه پريکړلو.

باب ۱۵۳ : لَا يَطُوْفُ بِالْبَيْتِ عُرْيَانٌ وَلَا يَحُجُّ مُشْرِكٌ.

باب ۱۵۳ : هيڅوک دې په بربنډه طواف نهٔ کوي او نهٔ دې مشرک حج کوي.

۲۲۶ : حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ قَالَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ قَالَ ثَنَا يُوْنُسُ قَالَ ابْنُ شِهَابٍ حَدَّثَنِيْ حُمَيْدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ أَنَّ أَبَا هُرَيْرَةَ أَخْبَرَهٗ أَنَّ أَبَا بَكْرِ نِ الصِّدِّيْقَ بَعَثَهٗ فِي الْحَجَّةِ الَّتِيْ أَمَّرَهٗ عَلَيْهَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَبْلَ حَجَّةِ الْوَدَاعِ يَوْمَ النَّحْرِ فِيْ رَهْطٍ يُؤَذِّنُ فِي النَّاسِ أَنْ لَا يَحُجَّ بَعْدَ الْعَامِ مُشْرِكٌ وَلَا يَطُوْفُ بِالْبَيْتِ عُرْيَانٌ.

۲۲۶ : يحيى بن بكير. ليث. يونس. ابن شهاب. حميد بن عبدالرحمٰن. حضرت ابو هريره رضي اللّٰه عنه روايت کوي، هغهٔ اووے، چه حضرت ابوبکر رضي اللّٰه عنه کوم حج کښې چه هغه دَ حجة الوداع نه مخکښې رسول اللّٰه صلى اللّٰه عليه وسلم امير حج مقرر کړے وو، نو دَ قربانۍ په ورځ ئې خښے خلقو سره دے اعلان کولو دَ پاره ليږلے وو چه دے کال نه پس دے نهٔ څوک مشرک حج کوي او نهٔ دے څوک په بربنډه طواف کوي.

بـــاب ۱۵۴ : إِذَا وَقَفَ فِي الطَّوَافِ وَقَالَ عَطَاءٌ فِيْمَنْ يَطُوْفُ فَتُقَامُ الصَّلٰوةُ أَوْ يُدْفَعُ عَنْ مَكَانِهٖ إِذَا سَلَّمَ يَرْجِعُ إِلَى حَيْثُ قُطِعَ عَلَيْهِ فَيَبْنِيْ وَ

بـــاب ۱۵۴ : دَ طـــواف دوران کـــښې دَ ايساريدلو بيان. عطاء دَ هغې سړي متعلق اووے، چه طواف کوي او دَ مونځ تکبير اوشي يا دَ خپل ځائے نه لرے کړے شي چه سلام او کرځوي، نو هغې ځائے ته دے واپس شي، دَ کوم ځائے نه چه طواف قطع شوے وو،

يُذْكَرُ نَحْوُهُ عَنِ ابْنِ عُمَرَ وَ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ اَبِيْ بَكْرٍ.

او په هغې دې بنا او کړي او ابن عمر رضي الله عنه او عبدالرحمٰن بن ابي بکر رضي الله عنه نه دغه شان نقل دي.

باب ۱۵۵: طَافَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ صَلّٰى لِسُبُوْعِهٖ رَكْعَتَيْنِ وَ قَالَ نَافِعٌ كَانَ ابْنُ عُمَرَ يُصَلِّيْ وَ قَالَ اِسْمٰعِيْلُ ابْنُ اُمَيَّةَ قُلْتُ لِلزُّهْرِيِّ اَنَّ عَطَآءً يَّقُوْلُ تُجْزِئُهُ الْمَكْتُوْبَةُ مِنْ رَّكْعَتَيِ الطَّوَافِ فَقَالَ السُّنَّةُ اَفْضَلُ لَمْ يَطُفِ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سُبُوْعًا قَطُّ اِلَّا صَلّٰى رَكْعَتَيْنِ.

باب ۱۵۵: نبي صلے اللّه عليه وسلم طواف اوکۀ او ‌دَ اوو چکرونو نه پس ئې دوه رکعاته اوکړل. او نافع وائي، چه ابن عمر رضي اللّٰه عنه به هر اوو چکرونو نه پس دوه رکعاته مونځ کولو. او اسمٰعيل بن اُميه اووے. ما زهري ته اووے، عطاء وئيلې چه دَ فرض مونځ په ځائې دَ طواف دوه رکعاته کافي دي. زهري اووے په سنت عمل کول افضل دي. نبي صلے اللّٰه عليه وسلم چه کله هم اووه چکرونه پوره کړي دي، نو دوه رکعاته مونځ ئې کړے دے.

۲۲۷: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ قَالَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَمْرٍو قَالَ سَأَلْنَا ابْنَ عُمَرَ اَيَقَعُ الرَّجُلُ عَلٰى اِمْرَاَتِهٖ فِي الْعُمْرَةِ قَبْلَ اَنْ يَّطُوْفَ بَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ قَالَ قَدِمَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَطَافَ بِالْبَيْتِ سَبْعًا ثُمَّ صَلّٰى خَلْفَ الْمَقَامِ رَكْعَتَيْنِ وَ طَافَ بَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ وَ قَالَ قَدْ كَانَ لَكُمْ فِيْ رَسُوْلِ اللّٰهِ اُسْوَةٌ حَسَنَةٌ قَالَ وَ سَاَلْتُ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ فَقَالَ لَا يَقْرَبُ امْرَاَتَهُ حَتّٰى يَطُوْفَ بَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةَ.

۲۲۷: قتيبه. سفيان. عمرو نه روايت کوي. دَ هغه بيان دے، ما دَ ابن عمر رضي اللّٰه عنه نه تپوس اوکۀ، آيا سړے خپلے بي بي سره دَ صفا مروه مينځ کښې دَ طواف نه مخکښې عمره کښې جماع کولے شي. هغۀ جواب راکۀ، چه رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلم مکے ته تشريف راوړلو، نو اوه ځله ئې دَ خانه کعبې طواف اوکۀ. بيا دَ مقام ابراهيم شاته ئې دوه رکعاته مونځ اوکۀ، او دَ صفا، مروه مينځ کښې. ستاسو دَ پاره د رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم طريقه کښې بهتره نمونه ده. عمرو بيان اوکۀ، ما دَ جابر بن عبداللّٰه نه تپوس اوکۀ، هيڅوک دے خپلے بي بي له نۀ ورځي، څو پورے چه دَ صفا مروه مينځ کښې طواف اونۀ کړي.

باب ۱۵۶: مَنْ لَّمْ يَقْرَبِ الْكَعْبَةَ وَلَمْ يَطُفْ حَتّٰى يَخْرُجَ اِلٰى

باب ۱۵۶: دَ هغې سړي بيان چه کعبې له ورنۀ رغے، او نه ئې طواف اوکۀ، تر دے چه عرفات ته لاړ شي

عَرَفَةَ وَ يَرْجِعَ بَعْدَ الطَّوَافِ الْاَوَّلِ.

او دَ طواف اول نه واپس شي.

۲۲۸ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ اَبِيْ بَكْرٍ قَالَ حَدَّثَنَا فُضَيْلٌ قَالَ حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ عُقْبَةَ قَالَ اَخْبَرَنِيْ كُرَيْبٌ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَدِمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَكَّةَ فَطَافَ سَبْعًا وَّ سَعٰى بَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ وَلَمْ يَقْرَبِ الْكَعْبَةَ بَعْدَ طَوَافِهٖ بِهَا حَتّٰى رَجَعَ مِنْ عَرَفَةَ.

۲۲۸ : محمد بن ابي بكر. فضيل. موسٰي بن عقبه. كريب. عبداللّٰه بن عباس رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي، چه نبي صلے اللّٰه عليه وسلم مكے ته تشريف راوړلو، نو او خلمه ئے طواف اوكړه. او دَ صفا، مروه مينځ كښں ئے طواف اوكړه. او طواف نه پس كعبے له ورهم نه رغے، تر دے چه دَ مقام عرفات نه واپس شولو.

باب ۱۵۷ : مَنْ صَلّٰى رَكْعَتَيِ الطَّوَافِ خَارِجًا مِّنَ الْمَسْجِدِ وَ صَلّٰى عُمَرُ خَارِجًا مِّنَ الْحَرَمِ.

باب ۱۵۷ : دَ هغے سړي بيان چه دَ جمات نه بهر ئے دوه ركعاته اوكړل، او عمر رضي اللّٰه عنه دَ حرم نه بهر مونځ اوكړلو.

۲۲۹ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ قَالَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ زَيْنَبَ عَنْ اُمِّ سَلَمَةَ قَالَتْ شَكَوْتُ اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ح قَالَ وَ حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ حَرْبٍ قَالَ حَدَّثَنَا اَبُوْ مَرْوَانَ يَحْيٰى بْنُ اَبِيْ زَكَرِيَّا الْغَسَّانِيّ عَنْ هِشَامٍ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ اُمِّ سَلَمَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ وَهُوَ بِمَكَّةَ وَ اَرَادَ الْخُرُوْجَ وَلَمْ تَكُنْ اُمُّ سَلَمَةَ طَافَتْ بِالْبَيْتِ وَ اَرَادَتِ الْخُرُوْجَ فَقَالَ لَهَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلّٰى

۲۲۹ : عبداللّٰه بن يوسف. مالك. محمد بن عبدالرحمٰن. عروه. زينب. ام سلمه رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي، هغے اووے، ما رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلم ته دَ خپلے بيمارئ شكايت اوكړه. ح. محمد بن حرب. ابو مروان يحيٰي بن ابي زكريا غساني. هشام. عروه. اُم سلمه رضي اللّٰه عنه تېر دَ نبي صلے اللّٰه عليه وسلم نه روايت كوي، چه رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلم مكه كښں وو، او دَ روانيدو اراده ئے كوله. او اُم سلمه رضي اللّٰه عنه دَ خانه كعبے طواف نه وو كړے، او هغے هم روانګي غوښتله، نو حضور صلي اللّٰه عليه وسلم هغے ته او فرمائيل، كوم وخت چه دَ سحر دَ مونځ

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا اُقِيْمَتِ الصَّلٰوةُ لِلصُّبْحِ فَطُوْفِيْ عَلٰى بَعِيْرِكِ وَالنَّاسُ يُصَلُّوْنَ فَفَعَلْتُ ذٰلِكَ وَلَمْ تُصَلِّ حَتّٰى خَرَجَتْ.

تکبیر اوشي، نو تهٔ په خپل اوښ سوره شه، طواف اوکه، کوم وخت چه خلق مونځ کوي، نو هغې دغسې اوکړل، او مونځ ئې اونه کهٔ، تر دې چه بهر راووتله.

باب ۱۵۸ : مَنْ صَلّٰى رَكْعَتَيِ الطَّوَافِ خَلْفَ الْمَقَامِ.

باب ۱۵۸ : دَ هغې سړي بيان چه دَ مقام ابراهيم شاته ئې دوه رکعاته اوکړل.

۱۲۳۰ : حَدَّثَنَا اٰدَمُ قَالَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ دِيْنَارٍ قَالَ سَمِعْتُ ابْنَ عُمَرَ يَقُوْلُ قَدِمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَطَافَ بِالْبَيْتِ سَبْعًا وَّ صَلّٰى خَلْفَ الْمَقَامِ رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ خَرَجَ اِلَى الصَّفَا وَقَدْ قَالَ اللّٰهُ عَزَّ وَ جَلَّ لَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِيْ رَسُوْلِ اللّٰهِ اُسْوَةٌ حَسَنَةٌ.

۱۲۳۰ : آدم. شعبه. عمرو بن دینار. ابن عمر رضي اللّٰه عنه نه روایت کوي، چه نبي صلعم مکې ته تشریف راوړلو، نو اوه خله ئې دَ خانه کعبې طواف اوکهٔ. او دَ مقام ابراهیم شاته ئې دوه رکعاته مونځ اوکهٔ، بیا صفا، مروه طرف ته روان شولو، او اللّٰه تعالٰي فرمائیلې دي، چه ستاسو دَ پاره په رسول اللّٰه صلی اللّٰه علیه وسلم کښې ښهٔ نمونه ده.

باب ۱۵۹ : الطَّوَافِ بَعْدَ الصُّبْحِ وَالْعَصْرِ وَ كَانَ ابْنُ عُمَرَ يُصَلِّيْ رَكْعَتَيِ الطَّوَافِ مَالَمْ تَطْلُعُ الشَّمْسُ وَ طَافَ عُمَرُ بَعْدَ صَلٰوةِ الصُّبْحِ فَرَكِبَ حَتّٰى صَلّٰى رَكْعَتَيْنِ بِذِيْ طُوًى.

باب ۱۵۹ : دَ سحر او مازیګر نه پس دَ طواف کولو بیان. او ابن عمر رضي اللّٰه عنه به دَ طواف دوه رکعاته مونځ کولو، څو پورې چه به نمر راختلې نه وو. او عمر رضي اللّٰه عنه دَ سحر دَ مونځ نه ورستو طواف اوکهٔ. بیا سور شولو تر دې چه ذي طوي کښې ئې دوه رکعاته اوکړل.

۱۲۳۱ : حَدَّثَنَا الْحَسَنُ ابْنُ عُمَرَ الْبَصْرِيُّ قَالَ حَدَّثَنَا يَزِيْدُ بْنُ زُرَيْعٍ عَنْ حَبِيْبٍ عَنْ عَطَاءٍ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ اَنَّ نَاسًا طَافُوْا بِالْبَيْتِ بَعْدَ صَلٰوةِ الصُّبْحِ ثُمَّ قَعَدُوْا اِلَى الْمُذَكِّرِ حَتّٰى اِذَا طَلَعَتِ الشَّمْسُ قَامُوْا

۱۲۳۱ : حسن بن عمر بصري. یزید بن زریع. حبیب. عطاء. عروه. بي بي عائشې نه روایت کوي، چه خلقو دَ سحر دَ مونځ نه پس دَ خانه کعبې طواف اوکهٔ. بیا یو واعظ سره کیناستل، تر دې چه نمر راوختلو، نو خلق مانځه دَ پاره اودریدل. بي بي عائشه رضي اللّٰه عنه فرمائي،

يُصَلُّوْنَ فَقَالَتْ عَائِشَةُ قَعَدُوْا حَتّٰى اِذَا كَانَتِ السَّاعَةُ الَّتِيْ يُكْرَهُ فِيْهَا الصَّلٰوةُ قَامُوْا يُصَلُّوْنَ.

خلق ناست وو' تر دے چه هغه وخت راغے' چه هغے کښې مونځ مکروه دے' نو هغے نه پس خلق په مونځ شروع شو.

۲۳۲: حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ الْمُنْذِرِ قَالَ حَدَّثَنَا اَبُوْ ضَمْرَةَ قَالَ حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ عُقْبَةَ عَنْ نَّافِعٍ اَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَنْهٰى عَنِ الصَّلٰوةِ عِنْدَ طُلُوْعِ الشَّمْسِ وَ عِنْدَ غُرُوْبِهَا.

۲۳۲: ابراهیم بن منذر. ابو ضمره. موسي بن عقبه. نافع. عبداللّٰه نه روایت دے. عبداللّٰه نه روایت دے. عبداللّٰه بن عمر رضي اللّٰه عنه اووے' ما ذ حضور صلے الله علیه وسلم نه ذ نمر ختو او پریوتو په وخت ذ مونځ کولو نه منع آوریدلے ده.

۲۳۳: حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ مُحَمَّدٍ قَالَ حَدَّثَنَا عُبَيْدَةُ بْنُ حُمَيْدٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ رَفِيْعٍ قَالَ رَاَيْتُ عَبْدَ اللّٰهِ ابْنَ الزُّبَيْرِ يَطُوْفُ بَعْدَ الْفَجْرِ وَ يُصَلِّيْ رَكْعَتَيْنِ قَالَ عَبْدُ الْعَزِيْزِ وَ رَاَيْتُ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ الزُّبَيْرِ يُصَلِّيْ رَكْعَتَيْنِ بَعْدَ الْعَصْرِ وَ يُخْبِرُ اَنَّ عَائِشَةَ حَدَّثَتْهُ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمْ يَدْخُلْ بَيْتَهَا اِلَّا صَلَّاهُمَا.

۲۳۳: حسن بن محمد. عبیده بن حمید. عبدالعزیز بن رفیع روایت کوي' هغهٔ اووے' ما ابن زبیر ذ سحر نه پس په طواف کولو لیدلے دے. او په دوه رکعاته مونځ کولو م لیدلے دے[1]. او عبدالعزیز بیان او کهٔ' چه ما عبداللّٰه بن زبیر رضي اللّٰه عنه ذ مازیگر نه پس په دوه رکعاته مونځ لیدلے دے' هغه وائي چه بي بي عائشے رضي اللّٰه عنه هغهٔ ته اووے چه نبي صلے اللّٰه علیه وسلم به کله هم خانه کعبه کښې داخلیدلو' نو دوه رکعاته مونځ به ئے کولو.

۱. د احنافو په نزد د صبا د مونځ نه روستو نفل مونځ ادا کول مکروهه دي چه کله نمر را اوخیژي او مکروهه وخت ختم شي نو بیا نفل مونځ کول روا دي د طواف د دوو رکعاتو نفلو په حقله د صحابهٔ کرامو په طرز عمل کښې اختلاف دے بعضے صحابهٔ کرام د احنافو د مسلک موافق دي. او بعضے ندي. داسے د احنافو په نزد د مازیگر د مونځ نه روستو نفل وغیره مونځونه ادا کول مکروهه دي.

## باب ۱۶۰: اَلْمَرِيْضِ يَطُوْفُ رَاكِبًا.

## باب ۱۶۰: ذ مریض سورلي کښې ذ طواف کولو بیان.

۲۳۴: حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ

۲۳۴: اسحاق واسطي. خالد. خالد

الْوَاسِطِيُّ قَالَ حَدَّثَنَا خَالِدُ ن الْحَذَّاءِ عَنْ عِكْرَمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ طَافَ بِالْبَيْتِ وَهُوَ عَلٰى بَعِيْرٍ كُلَّمَا اَتٰى عَلَى الرُّكْنِ اَشَارَ اِلَيْهِ بِشَيْءٍ فِيْ يَدِهٖ وَ كَبَّرَ.

حذاء. عكرمه. ابن عباس رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي چه نبي صلى اللّٰه عليه وسلم د خانه كعبے طواف په اوبن سور او كه كله چه به د حجر اسود مخے ته راتلو نو خپل لاس سره به ئے يو څيز سره اشاره كوله. او تكبير به ئے وئيلو.

۲۳۵: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْلَمَةَ قَالَ حَدَّثَنَا مَالِكٌ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ نَوْفَلٍ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ زَيْنَبَ بِنْتِ اُمِّ سَلَمَةَ قَالَتْ شَكَوْتُ اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنِّيْ اَشْتَكِىْ فَقَالَ طُوْفِيْ مِنْ وَّرَآءِ النَّاسِ وَ اَنْتِ رَاكِبَةٌ فَطُفْتُ وَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّيْ اِلٰى جَنْبِ الْبَيْتِ وَهُوَ يَقْرَاُ وَالطُّوْرِ وَ كِتَابٍ مَّسْطُوْرٍ.

۲۳۵: عبداللّٰه بن مسلمه. مالك. محمد بن عبدالرحمٰن بن نوفل. عروه. زينب بنت ام سلمه. بي بي اُم سلمه رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي، د هغے بيان دے، ما رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم ته د خپلے بيمارئ شكايت اوكه، نو حضور صلي اللّٰه عليه وسلم او فرمائيل، د خلقو نه ورستو سوره شه، طواف اوكه، ما طواف اوكه، او رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلّم د خانه كعبے په آړخ كښ مونخ كولو. حضور صلي اللّٰه عليه وسلم هغے كښ سورة والطور و كتاب مسطور لوستلو.

باب ۱۶۱: سِقَايَةِ الْحَاجِّ.

باب ۱۶۱: په حاجيانو ډ اوبو څكلو بيان.

۲۳۶: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ اَبِى الْاَسْوَدِ قَالَ حَدَّثَنَا اَبُوْ ضَمْرَةَ قَالَ حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ عَنْ نَّافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ اسْتَاْذَنَ الْعَبَّاسُ بْنُ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنْ يَّبِيْتَ بِمَكَّةَ لَيَالِيَ مِنٰى مِنْ اَجْلِ سِقَايَتِهٖ فَاَذِنَ لَهٗ.

۲۳۶: عبداللّٰه بن محمد بن ابي الاسود. ابو ضمره. عبيد اللّٰه. نافع. ابن عمر رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي، هغه وائي، عباس رضي اللّٰه عنه بن مطلب ۀ رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلم نه اجازت او غوښتلو، چه ډ مني شپو كښ مكه كښ حاجيانو باندے اوبو څكلو ډ پاره شپه تيره كړي. نو حضور صلي اللّٰه عليه وسلم ورله اجازت وركړلو.

۲۳۷: حَدَّثَنَا اِسْحَاقُ

۲۳۷: اسحٰق بن شاهين. خالد. خالد حذاء.

بْنُ شَاهِيْنَ قَالَ حَدَّثَنَا خَالِدٌ عَنْ خَالِدٍ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَآءَ اِلَى السِّقَايَةِ فَاسْتَسْقٰى فَقَالَ الْعَبَّاسُ يَا فَضْلُ اذْهَبْ اِلٰى اُمِّكَ فَأْتِ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِشَرَابٍ مِّنْ عِنْدِهَا فَقَالَ اسْقِنِيْ قَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّهُمْ يَجْعَلُوْنَ اَيْدِيَهُمْ فِيْهِ قَالَ اسْقِنِيْ فَشَرِبَ مِنْهُ ثُمَّ اَتٰى زَمْزَمَ وَهُمْ يَسْقُوْنَ فِيْهَا فَقَالَ اعْمَلُوْا فَاِنَّكُمْ عَلٰى عَمَلٍ صَالِحٍ ثُمَّ قَالَ لَوْلَا اَنْ تُغْلَبُوْا لَنَزَلْتُ حَتّٰى اَضَعَ الْحَبْلَ عَلٰى هٰذِهٖ يَعْنِيْ عَاتِقَهٗ وَ اَشَارَ اِلٰى عَاتِقِهٖ.

عکرمه. ابن عباس رضي الله عنه نه روايت کوي، چه رسول الله صلے الله عليه وسلم سقايه طرف ته راغلو او اوبه ئے او غوښتلے، نو حضرت عباس رضي الله عنه اووے، اے فضل، تهٔ خپلے مور له لاړ شه، او رسول الله صلے الله عليه وسلم ذ پاره اوبه راوړه. حضور صلي الله عليه وسلم او فرمائيل، ما باندے اوبه اوڅکوئے. عباس رضي الله عنه اووے، يا رسول الله، خلق ډے کښې خپل لاس وهي. حضور صلي الله عليه وسلم او فرمائيل، ما باندے اوبه اوڅکوئے، حضور صلي الله عليه وسلم ذ هغے نه اوبه اوڅکلے. بيا حضور صلي الله عليه وسلم آب زمزم له راغے، خلقو اوبه راوېستلے. او څکولے ئے. حضور صلي الله عليه وسلم او فرمائيل، تاسو کار کوئے. ښهٔ کار کوئے، بيائے او فرمائيل، که ما ته معلوم نهٔ وے چه تاسو ته به تکليف وي، نو زهٔ به کوز شوے ووم، او رسئ به م په دے، يعني په خپله اوږه اچولے وے او خپلے اوږے ته ئے اشاره اوکړله.

## باب ۱۶۲ : مَا جَآءَ فِيْ زَمْزَمَ

وَ قَالَ عَبْدَانُ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ قَالَ اَخْبَرَنَا يُوْنُسُ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ اَنَسُ بْنُ مَالِكٍ كَانَ اَبُوْ ذَرٍّ يُحَدِّثُ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ فُرِجَ سَقْفِيْ وَ اَنَا بِمَكَّةَ فَنَزَلَ جِبْرِيْلُ فَفَرَجَ صَدْرِيْ ثُمَّ غَسَلَهٗ بِمَآءِ زَمْزَمَ ثُمَّ جَآءَ بِطَسْتٍ مِّنْ ذَهَبٍ مُّمْتَلِيءٍ حِكْمَةً وَّ اِيْمَانًا فَاَفْرَغَهَا فِيْ صَدْرِيْ ثُمَّ اَطْبَقَهٗ ثُمَّ

**باب ۱۶۲ :** ذ هغے روايتونو بيان چه ذ زمزم په حقله نقل دي. او عبدان په واسطه ذ عبدالله. يونس. زهري. انس بن مالک روايت اوکهٔ، ابو ذر بيان کوي، رسول الله صلے الله عليه وسلم او فرمائيل، څما چهت پرانستے شو، داسے حال کښې چه زهٔ مکه کښې ووم، نو جبرائيل عليه السلام کوز راغے او څما سينه ئے او څيرله. بيائے هغه ذ زمزم په اوبو اووينزله. بيا ذ سرو زرو يو لوښي سره راغے، چه ذ حکمت نه ډک وو، نو هغه ئے څما په سينه کښې راتوئے کړلو. بيائے هغه ورَوسته، او څما لاس ئے او نيولو، ذ دُنيا

اَخَذَ بِيَدِيْ فَعَرَجَ بِيْ اِلَى السَّمَآءِ الدُّنْيَا فَقَالَ جِبْرِيْلُ لِخَازِنِ السَّمَآءِ افْتَحْ قَالَ مَنْ هٰذَا قَالَ جِبْرِيْلُ.

آسمان ته ئے او خيژولم، نو جبرائيل عليه السلام دَ دنيا دَ آسمان دروانچي (دربان) ته اووے، چه پرانزه. تپوس ئے او كۀ، څوک، وئيلے، جبرائيل.

۲۳۸: حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ سَلَامٍ قَالَ اَخْبَرَنَا الْفَزَارِيُّ عَنِ الشُّعْبِيِّ اَنَّ ابْنَ عَبَّاسٍ حَدَّثَهُ قَالَ سَقَيْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ زَمْزَمَ فَشَرِبَ وَهُوَ قَائِمٌ قَالَ عَاصِمٌ فَحَلَفَ عِكْرِمَةُ مَا كَانَ يَوْمَئِذٍ اِلَّا عَلٰى بَعِيْرٍ.

۲۳۸: محمد بن سلام. فزاري. شعبي. ابن عباس رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي، ما په رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم دَ زمزم اوبو او څكولے، نو حضور صلي اللّٰه عليه وسلم په ولاړه اوڅكلے[۱]. عاصم اووے، عكرمه قسم سره بيان او كۀ، چه په دغه ورځ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم په اوبښ سور وو.

۱. دَ زمزم اوبه په ولاړے څښل مستحب دي.

## بَاب ۱۶۳: طَوَافِ الْقَارِنِ.

## باب ۱۶۳: دَ قران كونكي دَ طواف بيان.

۲۳۹: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ قَالَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ خَرَجْنَا مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ حَجَّةِ الْوَدَاعِ فَاَهْلَلْنَا بِعُمْرَةٍ ثُمَّ قَالَ مَنْ كَانَ مَعَهُ هَدْيٌ فَلْيُهِلَّ بِالْحَجِّ وَالْعُمْرَةِ ثُمَّ لَا يَحِلُّ حَتّٰى يَحِلَّ مِنْهُمَا فَقَدِمْتُ مَكَّةَ وَاَنَا حَائِضٌ فَلَمَّا قَضَيْنَا حَجَّنَا اَرْسَلَنِيْ مَعَ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ اِلَى التَّنْعِيْمِ فَاعْتَمَرْتُ فَقَالَ هٰذِهٖ مَكَانُ عُمْرَتِكِ فَطَافَ الَّذِيْنَ اَحَلُّوْا بِالْعُمْرَةِ ثُمَّ حَلُّوْا ثُمَّ طَافُوْا طَوَافًا اٰخَرَ بَعْدَ اَنْ رَجَعُوْا

۲۳۹: عبداللّٰه بن يوسف. مالک. ابن شهاب. عروه. عائشه رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي، دَ هغے بيان دے، مونږ نبي صلي اللّٰه عليه وسلم سره حجة الوداع كښ اووتلو، نو مونږ دَ عمرے احرام او تړلو. بيا حضور صلي اللّٰه عليه وسلم او فرمائيل، چا سره چه دَ قربانئے څناور (هدي) وي، هغه دِے دَ حج او عمرے احرام په يوځائے اوتړي او هغه وخته پورے دِے دَ احرام نه بهر كيږي نه، څو پورے چه دَ دواړو نه فارغ نشي. زۀ مكے ته اورسيدم، داسے حال كښ، چه زۀ حائضه ووم كوم وخت چه مونږ خپل حج پوره كۀ، نو حضور زۀ عبدالرحمٰن سره مقام تنعيم ته اوليږلم او ما عمره اوكړله. حضور صلي اللّٰه عليه وسلم او فرمائيل، دا ستا دَ عمرے په عوض كښ ده، او كومو خلقو چه دَ عمرے احرام تړلے وو، هغے خلقو طواف اوكۀ. بيائے احرام

مِنْ مِنًى وَ اَمَّا الَّذِيْنَ جَمَعُوْا بَيْنَ الْحَجِّ وَالْعُمْرَةِ فَاِنَّمَا طَافُوْا طَوَافًا وَّاحِدًا.

پـرانستلـو. بيا دَ مني نه دَ واپس كيدو نه پس يو ئے بل اوكړ، او كـومـو خلقو چه دَ حج او عمرے دواړو احرام تړلے وو، هغے خلقو صرف يو طواف اوكړ.

۰ ۲۴۰ : حَدَّثَنِيْ يَعْقُوْبُ ابْنُ اِبْرَاهِيْمَ قَالَ حَدَّثَنَا ابْنُ عُلَيَّةَ عَنْ اَيُّوْبَ عَنْ نَّافِعٍ اَنَّ ابْنَ عُمَرَ دَخَلَ ابْنُهُ عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ عَبْدِ اللّٰهِ وَ ظَهْرُهٗ فِي الدَّارِ فَقَالَ اِنِّيْ لَا اٰمَنُ اَنْ يَّكُوْنَ الْعَامَ بَيْنَ النَّاسِ قِتَالٌ فَيَصُدُّوْكَ عَنِ الْبَيْتِ فَلَوْ اَقَمْتَ فَقَالَ قَدْ خَرَجَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَحَالَ كُفَّارُ قُرَيْشٍ بَيْنَهٗ وَ بَيْنَ الْبَيْتِ فَاِنْ يُّحَلْ بَيْنِيْ وَ بَيْنَهٗ اَفْعَلُ كَمَا فَعَلَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِيْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اُسْوَةٌ حَسَنَةٌ ثُمَّ قَالَ اُشْهِدُكُمْ اَنِّيْ قَدْ اَوْجَبْتُ مَعَ عُمْرَتِيْ حَجًّا قَالَ ثُمَّ قَدِمَ فَطَافَ لَهُمَا طَوَافًا وَّاحِدًا.

۰ ۲۴۰ : يـعـقـوب بـن ابـراهيـم. ابـن عليـه. ايـوب. نـافـع نـه روايـت كـوي. ابـن عمر خپل خوئ عـبـداللّٰه بـن عـبـداللّٰه لـه راغـے، او دَ هغهٔ سورلئ د هغهٔ كـور كـښې وه، او وے فـرمـائيـل، مـا سره ويره ده چه دے كـال بـه دَ خـلـقـو مـينـځ كـښې جنـگ وي، او تاسو بـه د خـبـانـه كـعبے نـه منـع كـړي. پـه دے وجـه ستـاسـو ايسـاريـدل مـنـاسـب دي. هـغـهٔ او فرمائيل، چه رسـول الـلّٰـه صـلـي الـلّٰـه عـلـيـه وسـلـم اووتـلو، نو دَ حـضـور صـلـي الـلّٰـه عـلـيـه وسلم او خانه كعبے په مينځ كـښې قـريـش حـائـل شـو، كـه دا خلق ما منع كړي، نو زهٔ بـه هـغـه اوكـړم، چـه حـضـور صـلـي الـلّٰه عليه وسلم كـړے وو، ځـكـه چـه رسـول الـلّٰـه صلي اللّٰه عليه وسلم كـښې ستـاسـو دَ پـاره ښـهٔ نـمـونـه ده. بيائے اووے زهٔ تا گـواه جـوړوم، چـه خپلے عمرے سره حج واجب كوم. بيـا مـكـے تـه اورسيـدلـو، او دواړو دَ پـاره ئے يو طواف اوكړ[۱].

[۱]. پـه دے مسئـلـه كـښې د امامانو حضراتو اختلاف دے چه قارن حاجي كوم چه د حج او د عمرے بو خائے احرام تړي. او د حـج عـمـرے دواړو نـه په يو حلال كيږي (احرام ئے ختميږي) نو هغه به د حج او عمرے دواړو د پاره يو طواف كوي يا د حج جُدا او د عمرے جُدا طوافونه به كوي.

امام شـافـعـي رحـمـة اللّٰه عليه ليكلے دي. چه د قارن حاجي او د مُفرد حاجي (چه يواخے د حج د پاره احرام تـړي پـه هـغـے كـښې عملي حيثيت كښې څه فرق نشته. صرف د نيت فرق دے نو څرنگ چه حاجي مفـرد (يـواځـے حـج كـونكـے) صرف د حج د پاره يو طواف كوي. دغـسے قارن (چه حج او عمره دواړه يو خائے كوي) به يو طواف كوي. او دغه يو طواف به د حج او عمرے دواړو نه ادا كيږي.

ليكن امام ابو حنيفه رحمة اللّٰه عليه وائي "چه قارن كله د حج او د عمرے دواړو نيت كړيدے نو د هر

يو د پاره به جُدا' جُدا طواف كوي. كه يو سړے يواځے د حج يا يواځے د عمرے احرام اوتړي. نو د اسلامي قاعدے مطابق د حج خان له ضروري دے او د عمرے خان له طواف ضروري دے نو چه كله كوم بنده د حج او د عمرے دواړو په يو ځائے نيت اوكړي يو احرام اوتړي نو د دواړو ضروري اعمال د قاعدے مطابق ولے نه كوي؟

د نبي كريم صلي الله عليه وسلم نه چه پدے سلسله كښ كوم روايتونه دي. څه د امام شافعي رحمة الله عليه د مسلک په ظاهري ډول تائيد كوي. دغسے دا روايت هم دے. "چه نبي كريم صلي الله عليه وسلم قارن وو او د دواړو د پاره نے يو طواف كړے وو هر څوک پدے پوهيږي چه د هغوی په طريقه عمل پكار دے.

ليكن احناف وائي دا روايت واضح نه دے بل روايت د رسول الله صلي الله عليه وسلم نه داسے دے او په هغے د ټولو اتفاق دے. چه رسول الله صلي الله عليه وسلم درے طوافونه كړے وو نو سوال دا دے چه د امام بخاري رحمة الله عليه د دے روايت نه د دوو نورو طوافونو بيان چرته لاړو. د دے نه دا واضحه صاف خبره معلوميږي. چه راوي دا خبره بنودل غواړي چه د حج او عمرے دواړو نه د حلال كيدو د پاره نے دا يو طواف كړے وو او دا د رسول الله صلي الله عليه وسلم آخري طواف وؤ. ځكه چه قدرتي طور د انسان په ذهن كښ دا سوال پيدا كيږي. چه كله دوه احرامه وو. نو د دواړو نه په يو ځائے د حلال كيدو د پاره دوه طوافه پكار دي. او راوي د خپل ذهني پريشانئ لرے كولو د پاره دا وائي چه يو طواف نے كړے وو كه چرے د امام بخاري دا روايت يو ځل بيا په غور او لوستے شي. نو داسے به ورته په كښ معلومه شي. چه د احنافو د مسلک احاديث د دے حديث شريف په مقابله كښ ډير صاف او واضحه دي. چه رسول الله صلي الله عليه وسلم د حج او د عمرے د پاره جُدا' جُدا افعال كړي وُو.

۱۴۲۱ : حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ قَالَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ نَّافِعٍ اَنَّ ابْنَ عُمَرَ اَرَادَ الْحَجَّ عَامَ نَزَلَ الْحَجَّاجُ بِابْنِ الزُّبَيْرِ فَقِيْلَ لَهُ اِنَّ النَّاسَ كَائِنٌ بَيْنَهُمْ قِتَالٌ وَّ اِنَّا نَخَافُ اَنْ يَّصُدُّوْكَ فَقَالَ لَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِيْ رَسُوْلِ اللّٰهِ اُسْوَةٌ حَسَنَةٌ اِذًا اَصْنَعُ كَمَا صَنَعَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنِّيْ اُشْهِدُكُمْ اَنِّيْ قَدْ اَوْجَبْتُ عُمْرَةً ثُمَّ خَرَجَ حَتّٰى اِذَا كَانَ بِظَاهِرِ الْبَيْدَآءِ قَالَ مَا شَاْنُ الْحَجِّ وَالْعُمْرَةِ اِلَّا

۱۴۲۱ : قتيبه بن سعيد. ليث. نافع. نه روايت كوي. ابن عمر رضي الله عنه دَ حج اراده اوكړله. په كوم كال چه حجاج' ابن زبير رضي الله عنه سره دَ جنګ په اراده راغلے وو' نو هغهٔ ته اووئيلے شو' چه دِے كال كښ دَ خلقو مينځ كښ دَ جنګ خطره ده' او مونږ خلقو سره ويره ده' چه چرته تا كعبے ته دَ تلو نه منع نهٔ كړي' هغهٔ او فرمائيل' ستاسو دَ پاره دَ الله په رسول صلي الله عليه وسلم كښ بهتره نمونه ده. دغه وخت به زهٔ هغه اوكړم' چه رسول الله صلي الله عليه وسلم كړي وو. زهٔ تا ګواه جوړوم' چه ما په ځان عمره واجب كړله. بيا اووتلو' تر دے چه مقام بيداء ته راورسيدلو' بيائے او

وَاحِدًا أُشْهِدُكُمْ إِنِّيْ قَدْ أَوْجَبْتُ حَجًّا مَعَ عُمْرَتِيْ وَ أَهْدٰى هَدْيًا اشْتَرَاهُ بِقُدَيْدٍ وَّ لَمْ يَزِدْ عَلٰى ذٰلِكَ فَلَمْ يَنْحَرْ وَلَمْ يَحِلَّ مِنْ شَيْءٍ حَرُمَ مِنْهُ وَلَمْ يَحْلِقْ وَلَمْ يُقَصِّرْ حَتّٰى كَانَ يَوْمَ النَّحْرِ فَنَحَرَ وَ حَلَقَ وَرَاٰى اَنْ قَدْ قَضٰى طَوَافَ الْحَجِّ وَالْعُمْرَةِ بِطَوَافِهِ الْاَوَّلِ وَ قَالَ ابْنُ عُمَرَ كَذٰلِكَ فَعَلَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

فرمائيل دَ حج او عمرے يَو حالت دے. زهٔ تاسو گوا كوم چه ما خپلے عمرے سره حج واجب كړے دے، او هغه دَ قديد نه دَ قرباني څناور هم اخستے وو، او دَ دے نه زيات ئے هيڅ كار اُو نهٔ كهٔ، نه ئے قرباني اوكړه، او نهٔ ئے هغه كارونه اوكړل چه احرام كښې حرام دي او نهٔ ئے ويښته او خريل او نهٔ ئے قينچي كړل، تر دے چه دَ قرباني ورځ راغله، نو قرباني ئے اوكړه، او سر ئے اوخريلو. او خيال ئے اوكهٔ، چه دَ حج او عمرے وړمبنے طواف كافي دے. او ابن عمر رضي الله عنه اووے، چه دغسے رسول الله صلے الله عليه وسلم هم كړے دے.

## باب ١٦٤: الطَّوَافِ عَلٰى وُضُوْءٍ.

## باب ١٦٤: اودس كښې دَ طواف كولو بيان.

٢٤٢: حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ عِيْسٰى قَالَ حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عَمْرُو بْنُ الْحَارِثِ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ نَوْفَلٍ الْقُرَشِيِّ اَنَّهُ سَاَلَ عُرْوَةَ ابْنَ الزُّبَيْرِ فَقَالَ قَدْ حَجَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَخْبَرَتْنِيْ عَائِشَةُ اَنَّ اَوَّلَ شَيْءٍ بَدَاَ بِهِ حِيْنَ قَدِمَ اَنَّهُ تَوَضَّاَ ثُمَّ طَافَ بِالْبَيْتِ ثُمَّ لَمْ تَكُنْ عُمْرَةً ثُمَّ حَجَّ اَبُوْ بَكْرٍ فَكَانَ اَوَّلَ شَيْءٍ بَدَاَ بِهِ الطَّوَافُ بِالْبَيْتِ ثُمَّ لَمْ تَكُنْ عُمْرَةً ثُمَّ عُمَرُ مِثْلُ ذٰلِكَ ثُمَّ حَجَّ عُثْمَانُ

٢٤٢: احمد بن عيسي. ابن وهب. عمرو بن حارث. محمد بن عبدالرحمٰن بن نوفل قرشي نه روايت كوي، هغهٔ دَ عروه بن زبير رضي الله عنه نه تپوس اوكهٔ. او وے وئيل، چه نبي صلے الله عليه وسلم حج اوكهٔ، او ما ته بي بي عائشے رضي الله عنه اووے، دَ ټولو نه وړمبنے كار چه حضور صلي الله عليه وسلم راتلو سره اوكړلو، هغه دا چه حضور صلي الله عليه وسلم اودس اوكړلو. بيائے دَ خانه كعبے طواف اوكهٔ. بيا دَ حضور صلي الله عليه وسلم عمره اونهٔ شوه. بيا ابوبكر رضي الله عنه حج اوكهٔ، نو دَ ټولو نه وړمبے چه كوم كار ئے اوكهٔ، هغه دا چه دَ خانه كعبے طواف ئے اوكهٔ بيا حضرت عمر رضي الله عنه او حضرت عثمان رضي الله عنه موهم به دغسے حج كولو اوليدل. دَ ټولو نه مخكښې ئے دَ خانه كعبے طواف اوكهٔ. بيا عمره اونهٔ

فَرَاَيْتُهُ اَوَّلَ شَيْءٍ بَدَاَ بِهِ الطَّوَافَ بِالْبَيْتِ ثُمَّ لَمْ تَكُنْ عُمْرَةً ثُمَّ مُعَاوِيَةُ وَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عُمَرَ ثُمَّ حَجَجْتُ مَعَ اَبِي الزُّبَيْرِ بْنِ الْعَوَّامِ فَكَانَ شَيْءٍ بَدَاَ بِهِ الطَّوَافَ بِالْبَيْتِ ثُمَّ رَاَيْتُ الْمُهَاجِرِيْنَ وَالْاَنْصَارَ يَفْعَلُوْنَ ذٰلِكَ ثُمَّ لَمْ تَكُنْ عُمْرَةً ثُمَّ اٰخِرُ مَنْ رَّاَيْتُ فَعَلَ ذٰلِكَ ابْنُ عُمَرَ لَمْ يَنْقُضْهَا عُمْرَةً وَ هٰذَا ابْنُ عُمَرَ عِنْدَهُمْ فَلَا يَسْئَلُوْنَهُ وَلَا اَحَدٌ مِمَّنْ مَضٰى مَا كَانُوْا يَبْدَءُوْنَ بِشَيْءٍ حَتّٰى يَضَعُوْنَ اَقْدَامَهُمْ مِنَ الطَّوَافِ بِالْبَيْتِ ثُمَّ لَا يَحِلُّوْنَ وَ قَدْ رَاَيْتُ اُمِّيْ وَ خَالَتِيْ حِيْنَ تَقْدَمَانِ لَا تَبْدَاٰنِ بِشَيْءٍ اَوَّلَ مِنَ الْبَيْتِ تَطُوْفَانِ بِهٖ ثُمَّ اِنَّهُمَا لَا تَحِلَّانِ وَقَدْ اَخْبَرَتْنِيْ اُمِّيْ اَنَّهَا اَهَلَّتْ هِيَ وَ اُخْتُهَا وَالزُّبَيْرُ وَ فُلَانٌ وَّ فُلَانٌ بِعُمْرَةٍ فَلَمَّا مَسَحُوا الرُّكْنَ حَلُّوْا.

شوه. بیا معاویه رضي الله عنه عبدالله بن عمر رضي الله عنه او ابوالزبیر بن عوام سره ما حج او کړ. او ټولو نه مخکښې م طواف او کړ، لیکن عمره اونه شوه. بیا ما مهاجرین او انصار په دغسې کولو اولیدل. هغوي کښې ذ چا هم عمره اونه شوه. بیا ذ ټولو نه آخر کښې ما حضرت ابن عمر رضي الله عنه اولید، چه دائې مات نه کړ، چه عمره ترې جوړه کړي. حضرت ابن عمر رضي الله عنه هغې خلقو سره موجود دې، لیکن دا خلق ذ هغهٔ نه تپوس نه کوي، او نهٔ تیرو خلقو کښې ذ چا تپوس کوي. هغه خلقو به مکه کښې داخلیدو سره طواف کولو. بیا به ذ احرام نه بهر کیدل، او ما خپله مور او ترور لیدلې دي، چه کله به مکې ته راتلې، نو ذ کعبې ذ طواف نه مخکښې به ئې هیڅ نه کول، بیا چه طواف به ئې کولو، نو ذ احرام نه به نهٔ بهر کیدل، او خما مور ما ته اووې چه هغې او ذ هغې خور او حضرت زبیر رضي الله عنه او فلانې فلانې سرو ذ عمرې احرام اوتړلو، کوم وخت چه حجر اسود ئې ښکل کړو، نو ذ احرام نه بهر شول.

**بــــاب ۱۶۵ : وُجُــوْبِ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ وَ جُعِلَ مِنْ شَعَآئِرِ اللّٰهِ.**

**باب ۱۶۵ :** ذ صفا او مروه مینځ کښې ذ سعي واجب کیدل، او دا ذ اللّٰه تعالیٰ نښې نښانې جوړې کړې شوې دي.

۲۴۳ : حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ قَالَ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ عُرْوَةُ سَاَلْتُ عَائِشَةَ فَقُلْتُ لَهَا اَرَاَيْتِ قَوْلَ اللّٰهِ تَعَالٰى اِنَّ الصَّفَا وَالْمَرْوَةَ مِنْ شَعَائِرِ اللّٰهِ فَمَنْ حَجَّ الْبَيْتَ اَوِ اعْتَمَرَ

۲۴۳ : ابو الیمان. شعیب. زهره. عروه رضي اللّٰه عنه نه روایت کوي. عروه وائي، ما ذ بي بي عائشې رضي اللّٰه عنه نه تپوس او کړ، چه ذ اللّٰه تعالیٰ قول، اِنَّ الصَّفَا وَالْمَرْوَةَ مِنْ شَعَائِرِ اللّٰهِ الخ تفسیر بیان کړئې، ځکه چه په خدائې، ذ دې

فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِ اَنْ يَّطَّوَّفَ بِهِمَا
فَوَاللّٰهِ مَا عَلٰى اَحَدٍ جُنَاحٌ اَنْ لَّا
يَطُوْفَ بِالصَّفَا وَالْمَرْوَةِ قَالَتْ بِئْسَمَا
قُلْتَ يَا ابْنَ اُخْتِيْ اِنَّ هٰذِهٖ لَوْ كَانَتْ
كَمَا اَوَّلْتَهَا كَانَتْ لَا جُنَاحَ عَلَيْهِ اَنْ لَّا
يَّطَّوَّفَ بِهِمَا وَلٰكِنَّهَا اُنْزِلَتْ فِي
الْاَنْصَارِ كَانُوْا قَبْلَ اَنْ يُّسْلِمُوْا
يُهِلُّوْنَ لِمَنَاةَ الطَّاغِيَةِ الَّتِيْ كَانُوْا
يَعْبُدُوْنَهَا عِنْدَ الْمُشَلَّلِ فَكَانَ مَنْ اَهَلَّ
يَتَحَرَّجُ اَنْ يَّطُوْفَ بِالصَّفَا وَالْمَرْوَةِ
فَلَمَّا اَسْلَمُوْا سَاَلُوْا رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى
اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ ذٰلِكَ قَالُوْا يَا
رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّا كُنَّا نَتَحَرَّجُ اَنْ نَّطُوْفَ
بِالصَّفَا وَالْمَرْوَةِ فَاَنْزَلَ اللّٰهُ اِنَّ الصَّفَا
وَالْمَرْوَةَ مِنْ شَعَآئِرِ اللّٰهِ الْاٰيَةَ قَالَتْ
عَآئِشَةُ وَقَدْ سَنَّ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى
اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الطَّوَافَ بَيْنَهُمَا
فَلَيْسَ لِاَحَدٍ اَنْ يَّتْرُكَ الطَّوَافَ
بَيْنَهُمَا ثُمَّ اَخْبَرْتُ اَبَا بَكْرِ بْنَ
عَبْدِالرَّحْمٰنِ فَقَالَ اِنَّ هٰذَا لَعِلْمٌ مَّا
كُنْتُ سَمِعْتُهٗ وَلَقَدْ سَمِعْتُ رِجَالًا مِّنْ
اَهْلِ الْعِلْمِ يَذْكُرُوْنَ اَنَّ النَّاسَ اِلَّا
مَنْ ذَكَرَتْ عَآئِشَةُ مِمَّنْ كَانَ يُهِلُّ
لِمَنَاةَ كَانُوْا يَطُوْفُوْنَ كُلُّهُمْ بِالصَّفَا
وَالْمَرْوَةِ فَلَمَّا ذَكَرَ اللّٰهُ الطَّوَافَ
بِالْبَيْتِ وَلَمْ يَذْكُرِ الصَّفَا وَالْمَرْوَةَ فِي

آیت مطلب خو دا معلومیږي، چه د صفا او مروه
طواف نه کونکي باندې هیڅ ګناه نشته. بي بي
عائشې رضي الله عنه او فرمائيل، اے خما وراره، تا
ډیره بده خبره اوکړه، که دا خبره وے، کومه چه تا
بیان کړه، نو دې صورت کښې به داسې وئيلې شو.
لَا جُنَاحَ عَلَيْهِ اَنْ لَّا يَطَّوَّفَ بِهِمَا، لیکن دا آیت د
انصارو متعلق نازل شوے دے. هغې حلقو به د
اسلام راوړلو نه مخکښې د منات بُت په نوم احرام
تړلو، چه د هغې به هغوي عبادت کولو، هغه مثلل
سره وو. کوم سړي چه به احرام تړلو، هغه به د صفا
او مروه طواف بد ګنړلو. کوم وخت چه هغه
خلق مسلمانان شو، نو د رسول الله صلي الله عليه
وسلم نه ئې د دې متعلق تپوس اوکړ، او عرض ئې
اوکړ، یا رسول الله، مونږ به د صفا او مروه طواف
بد ګنړلو، نو الله تعالی دا آیت نازل کړلو، اِنَّ
الصَّفَا وَالْمَرْوَةَ مِنْ شَعَائِرِ اللّٰهِ الخ. بي بي عائشې
رضي الله عنه او فرمائيل. رسول الله صلي الله
عليه وسلم د دوي مینځ کښې طواف سنت
ګرځولے دے. په دې چا ته اختيار نشته، چه د
دې طواف پریږدي بیا ما ابوبکر بن عبدالرحمٰن ته
بیان اوکړ، نو هغه اووے، دا د علم خبره ده، چه ما
تروسه پورې نه وه آوریدلے، او ما اهل عِلم کښې د
خو کسانو نه د دې نه سِوا بیان واوریدلو، بي بي
عائشې رضي الله عنه بیان اوکړلو چه کومو خلقو به
د منات د پاره احرام تړلو، هغې خلقو به د صفا او
مروه طواف کولو. کوم وخت چه الله تعالی د

الْقُرْآنِ قَالُوْا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ كُنَّا نَطُوْفُ بِالصَّفَا وَالْمَرْوَةِ وَ اِنَّ اللّٰهَ تَعَالٰى اَنْزَلَ الطَّوَافَ بِالْبَيْتِ فَلَمْ يَذْكُرِ الصَّفَا فَهَلْ عَلَيْنَا مِنْ حَرَجٍ اَنْ نَّطُوْفَ بِالصَّفَا وَالْمَرْوَةِ فَاَنْزَلَ اللّٰهُ تَعَالٰى اِنَّ الصَّفَا وَالْمَرْوَةَ مِنْ شَعَآئِرِ اللّٰهِ الْاٰيَةَ قَالَ اَبُوْ بَكْرٍ فَاسْمَعُ هٰذِهِ الْاٰيَةَ نَزَلَتْ فِي الْفَرِيْقَيْنِ كِلَيْهِمَا فِي الَّذِيْنَ كَانُوْا يَتَحَرَّجُوْنَ اَنْ يَّطُوْفُوْا فِي الْجَاهِلِيَّةِ بِالصَّفَا وَالْمَرْوَةِ وَالَّذِيْنَ يَطُوْفُوْنَ ثُمَّ تَحَرَّجُوْا اَنْ يَّطُوْفُوْا بِهِمَا فِي الْاِسْلَامِ مِنْ اَجْلِ اِنَّ اللّٰهَ اَمَرَ بِالطَّوَافِ بِالْبَيْتِ وَلَمْ يَذْكُرِ الصَّفَا حَتّٰى ذَكَرَ ذٰلِكَ بَعْدَ مَا ذَكَرَ الطَّوَافَ بِالْبَيْتِ.

خانه کعبے دَ طواف ذکر او فرمائیلو' او قرآن کښې د صفا او مروه ذکر اونه شو' نو خلقو عرض اوکړ' یا رسول الله صلي الله علیه وسلم مونږ خو به د صفا او مروه طواف کولو' او الله تعالي د خانه کعبے د طواف حکم فرمائیلے دے. لیکن د صفا ذکر ئے اونه کړلو. نو آیا مونږ دَ پاره دَ صفا او مروه طواف کښې څۀ حرج شته' په دے خبره الله تعالي دا آیت نازل کړلو: اِنَّ الصَّفَا وَالْمَرْوَةَ مِنْ شَعَائِرِ اللّٰه الخ او ابوبکر رضي الله عنه اووے زۀ آورم' چه دا آیت دَ هغے دوو فریقو متعلق نازل شوے دے' چه جاهلیت کښې ئے دَ صفا او مروه طواف گناه گنڑله' او دَ هغے خلقو باره کښې چه طواف به ئے کولو. بیا اسلام کښې هم دَ دے دواړو طواف گناه او گنړلے شوه. ځکه چه الله تعالي دَ خانه کعبے دَ طواف ذکر اوکړو' او دَ صفا بیان ئے اونۀ کۀ چه دَ خانه کعبے دَ طواف نه پس ئے دَ دے دَ طواف هم ذکرط او کړلو.

۱. د دے آیت شریف د شان نزول په حقله چه کوم اختلاف باندے بحث شویدے نو حافظ ابن حجر رحمة الله علیه د ډیر اوږد تفصیل نه پس لیکلے دي. چه غالبًا د جاهلیت په زمانه کښې د انصارو دوه فرقے وے چه د هغے ذکر دے احادیثو کښې تفصیل سره بیان شویدے او کله چه آیت شریف نازل شو. او پدے کښې حکم صرف د بیت الله د طواف وو نو دواړو فرقو ته دا خیال وړاندے شو چه د صفا او مروه مینځ کښې سعي کول پکار دي او کنه؟ ځکه چه دا د هغوي په نزد د جاهلیت د زمانے عمل وو نو د صفا او مروه په مینځ د سعي کولو (طواف کولو) حکم په دویم آیت شریف کښې نازل شو. چه "صفا مروه د الله تعالي شعائر دي". نو دَ انصارو هغه پریشاني لرے شوه. نو د احنافو په نزد د صفا مروه سعي واجب ده. او د ډیرو امامانو په نزد فرض ده. عروه رضي الله عنه د آیت شریف نه دا مطلب د ظاهري الفاظو په بنیاد واخست چه د صفا مروه مینځ کښې سَعي واجبه نده. لیکن د حضرت عائشے بي بي رضي الله عنها د جواب مطلب دا دے چه د آیت شریف د شان نزول نه بغیر د آیت شریف د حقیقي معنيٰ او حقیقي مطلب پته نه لګي. او د شان نزول نه دا خبره واضحه ده چه د صفا مروه مینځ کښې سعي کول ضروري دي.

## بَابُ ۱۶۶: مَا جَآءَ فِي السَّعِي بَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ وَ قَالَ ابْنُ

## باب ۱۶۶: دَ صفا او مروه مینځ کښې د سعي کولو بیان.

او ابن عمر رضي الله عنه وائي چه

عُمَرَ السَّعْيُ مِنْ دَارِ بَنِيْ عَبَّادٍ اِلٰى زُقَاقِ بَنِيْٓ اَبِيْ حُسَيْنٍ.

سعي د دار بني عباد نه د بني ابي حسين د كوڅې پورے ده.

٢٤٤: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عُبَيْدٍ قَالَ حَدَّثَنَا عِيْسَى ابْنُ يُوْنُسَ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ عَنْ نَّافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا طَافَ الطَّوَافَ الْاَوَّلَ خَبَّ ثَلَاثًا وَّ مَشٰى اَرْبَعًا وَّ كَانَ يَسْعٰى بَطْنَ الْمَسِيْلِ اِذَا طَافَ بَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ فَقُلْتُ لِنَافِعٍ اَكَانَ عَبْدُ اللّٰهِ يَمْشِيْ اِذَا بَلَغَ الرُّكْنَ الْيَمَانِيَّ قَالَ لَا اِلَّا اَنْ يُّزَاحَمَ عَلَى الرُّكْنِ فَاِنَّهٗ كَانَ لَا يَدَعُهٗ حَتّٰى يَسْتَلِمَهٗ.

٢٤٤: محمد بن عبيد. عيسٰي بن يونس. عبيد الله بن عمر. نافع. ابن عمر رضي الله عنه نه روايت كوي، د هغۀ بيان دے چه رسول الله صلے الله عليه وسلم به كله طواف كولو، نو وړمبنو درے طوافونو كښې به ئے منډه وهله (رمل كولو) او څلورو كښې به معمولي چال سره تلو، او د صفا او مروه طواف چه به ئے اوكۀ، نو بطن مسيل كښې به ئے سعي كوله. ما د نافع نه تپوس اوكۀ، چه عبدالله به كوم وخت ركن يماني ته اورسيدلو، نو آيا مشي به ئے كوله. وئيلے نه، خو هغه وخت چه ركن يماني سره به هجوم وو، څو پورے چه به ئے بتكل كړے نۀ وو، هغه وخته پورے به ئے نۀ پريښودلو.

ف: مشي: پښو سره رو، رو، تلل. چهل قدمي. ګرځيدل.

٢٤٥: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَمْرِو بْنِ دِيْنَارٍ قَالَ سَاَلْنَا ابْنَ عُمَرَ عَنْ رَّجُلٍ طَافَ بِالْبَيْتِ فِيْ عُمْرَةٍ وَّ لَمْ يَطُفْ بَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ اَيَاْتِيْ امْرَاَتَهٗ فَقَالَ قَدِمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَطَافَ بِالْبَيْتِ سَبْعًا وَّ صَلّٰى خَلْفَ الْمَقَامِ رَكْعَتَيْنِ وَ طَافَ بَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ سَبْعًا وَّ قَدْ كَانَ لَكُمْ فِيْ رَسُوْلِ اللّٰهِ اُسْوَةٌ حَسَنَةٌ وَّ سَاَلْنَا جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ فَقَالَ لَا يَقْرَبَنَّهَا حَتّٰى يَطُوْفَ بَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ.

٢٤٥: علي بن عبدالله. سفيان. عمرو بن دينار نه روايت كوي. مونږ د ابن عمر رضي الله عنه نه د هغے سړي متعلق تپوس اوكۀ، چه هغۀ عمره كښې د خانه كعبے طواف اوكۀ. او د صفا او مروه طواف ئے او نۀ كۀ، چه آيا داسے سړے خپلے بي بي سره صحبت كولے شي. هغۀ جواب راكۀ، چه نبي صلے الله عليه وسلم مكے ته تشريف راوړلو، نو اوه خله ئے د خانه كعبے طواف اوكۀ، او ستاسو د پاره د الله په رسول صلي الله عليه وسلم كښې بهترينه نمونه ده. او مونږ خلقو د جابر بن عبدالله نه تپوس اوكۀ، نو وے وئيل، څو پورے چه د صفا او مروه طواف او نۀ كړي، خپلے بي بي له دے نۀ ورځي.

۱۴۴۶ : حَدَّثَنَا الْمَكِّيُّ بْنُ إِبْرَاهِيمَ عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ قَالَ أَخْبَرَنِيْ عَمْرُو بْنُ دِيْنَارٍ قَالَ سَمِعْتُ ابْنَ عُمَرَ قَالَ قَدِمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَكَّةَ فَطَافَ بِالْبَيْتِ ثُمَّ صَلّٰى رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ سَعٰى بَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ ثُمَّ تَلَا لَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِيْ رَسُوْلِ اللّٰهِ أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ.

۱۴۴۶ : مكي بن ابراهيم. ابن جريج. عمرو بن دينار. ابن عمر رضي الله عنه نه روايت كوي ابن عمر رضي الله عنه او فرمائيل: نبي صلي الله عليه وسلم مكے ته تشريف راوړلو، نو ذ خانه كعبے طواف ئے اوكۀ. بيائے دوه ركعاته مونځ اوكۀ. بيائے ذَ صفا او مروه مينځ كښ سعي اوكړله. بيائے دا آيت تلاوت كه چه تاسو ذ پاره ذَ اللّٰه په رسول صلي الله عليه وسلم كښ بهترينه نمونه ده.

۱۴۴۷ : حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدٍ قَالَ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ قَالَ أَخْبَرَنَا عَاصِمٌ قَالَ قُلْتُ لِأَنَسِ بْنِ مَالِكٍ أَكُنْتُمْ تَكْرَهُوْنَ السَّعْيَ بَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ فَقَالَ نَعَمْ لِأَنَّهَا كَانَتْ مِنْ شَعَائِرِ الْجَاهِلِيَّةِ حَتّٰى أَنْزَلَ اللّٰهُ تَعَالٰى إِنَّ الصَّفَا وَالْمَرْوَةَ مِنْ شَعَائِرِ اللّٰهِ فَمَنْ حَجَّ الْبَيْتَ أَوِ اعْتَمَرَ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِ أَنْ يَّطَّوَّفَ بِهِمَا.

۱۴۴۷ : احمد بن محمد. عبداللّٰه. عاصم بيان كوي، ما ذ حضرت انس رضي اللّٰه عنه نه تپوس اوكۀ، آيا تاسو ذ صفا او مروه مينځ كښ سعي بده ګنړئے. هغۀ اووے، او، ځكه چه دا ذ جاهليت ذ نښو نښانو نه ده، تر دے چه اللّٰه تعالٰي دا آيت نازل كړلو، چه صفا او مروه ذَ اللّٰه تعالٰي ذ نښو نښانو نه دي، چا چه ذ خانه كعبے حج اوكۀ يا عمره ئے اوكړله. نو په هغۀ ذ دے دواړو په طواف كښ هيڅ حرج نشته.

۱۴۴۸ : حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنَا سُفْيٰنُ عَنْ عَمْرِو بْنِ دِيْنَارٍ عَنْ عَطَاءٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ إِنَّمَا سَعٰى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْبَيْتِ وَ بَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ لِيُرِيَ الْمُشْرِكِيْنَ قُوَّتَهٗ زَادَ الْحُمَيْدِيُّ قَالَ حَدَّثَنَا سُفْيٰنُ قَالَ حَدَّثَنَا عَمْرٌو قَالَ سَمِعْتُ عَطَاءً عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ مِثْلَهٗ.

۱۴۴۸ : علي بن عبداللّٰه. سفيان. عمرو بن دينار. عطاء. ابن عباس رضي الله عنه نه روايت كوي: چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم ذ خانه كعبے طواف اوكۀ او ذ صفا او مروه مينځ كښ ئے ځكه منډه اووهله، چه مشركانو ته خپل قوت اوښائي. او حميدي دومره زياته كړه، چه مونږ ته سفيان په واسطه ذَ عمرو. عطاء. حضرت ابن عباس رضي اللّٰه عنه ذ دے په مثل روايت كړے دے.

باب ۱٦۷ : تَقْضِي الْحَائِضُ مَنَاسِكَ كُلَّهَا اِلَّا الطَّوَافَ بِالْبَيْتِ وَ اِذَا سَعٰى عَلٰى غَيْرِ وُضُوْءٍ بَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ.

باب ۱٦۷ : حائضه دې د خانه کعبې د طواف نه سوا ټول ارکان په ځائې راوړي، او څهٔ وخت چه د صفا او مروه په مینځ کښې بې اودسه سعي کوي.

۹۴۹ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ قَالَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ الْقَاسِمِ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ اَنَّهَا قَالَتْ قَدِمْتُ مَكَّةَ وَ اَنَا حَائِضٌ وَّلَمْ اَطُفْ بِالْبَيْتِ وَلَا بَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ قَالَتْ شَكَوْتُ ذٰلِكَ اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ افْعَلِيْ كَمَا يَفْعَلُ الْحَاجُّ غَيْرَ اَنْ لَّا تَطُوْفِيْ بِالْبَيْتِ حَتّٰى تَطْهُرِيْ.

۹۴۹ : عبداللّٰه بن یوسف. مالک عبدالرحمٰن بن قاسم د خپل پلار نه او هغه د بي بي عائشې رضي اللّٰه عنه نه روایت کوي، د هغې بیان دې، زهٔ داسې حال کښې مکې ته راغلم، چه زهٔ حائضه ووم، او ما د خانه کعبې طواف نهٔ وو کړې، او د صفا او مروه طواف م کړې وو. ما رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلم ته د دې شکایت اوکهٔ. نو حضور صلي اللّٰه علیه وسلم او فرمائیل، تهٔ داسې اوکړه، څنګه چه ټول حاجیان کوي، خو دا چه څو پورې پاکه نهٔ شې، د خانه کعبې طواف مهٔ کوه.

۹۵۰ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنّٰى قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ ح وَ قَالَ لِيْ خَلِيْفَةُ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ قَالَ حَدَّثَنَا حَبِيْبُ نِ الْمُعَلِّمُ عَنْ عَطَاءٍ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ اَهَلَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هُوَ وَ اَصْحَابُهُ بِالْحَجِّ وَ لَيْسَ مَعَ اَحَدٍ مِّنْهُمْ هَدْيٌ غَيْرَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ طَلْحَةَ وَ قَدِمَ عَلِيٌّ مِّنَ الْيَمَنِ وَ مَعَهُ هَدْيٌ فَقَالَ اَهْلَلْتُ بِمَا اَهَلَّ بِهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

۹۵۰ : محمد بن مثنٰي. عبدالوهاب. ح. خلیفه. عبدالوهاب. حبیب. معلم. عطاء. جابر بن عبداللّٰه نه روایت کوي، چه نبي صلی اللّٰه علیه وسلم او د حضور صلي اللّٰه علیه وسلم صحابه رضي اللّٰه عنه ؤ د حج احرام اوتړلو، او هغوي کښې سوا د نبي صلی اللّٰه علیه وسلم او طلحه نه هیچا سره د قربانئې څناور نهٔ وو. او حضرت علي رضي اللّٰه عنه د یمن نه راغې، هغهٔ سره د قرباني څناور وو. نو هغهٔ اووې، ما د هغې څیز احرام تړلې دې، د کوم چه نبي صلی اللّٰه علیه وسلم احرام تړلې دې. او نبي صلی اللّٰه علیه وسلم صحابه رضي اللّٰه عنه ؤ ته حکم ورکهٔ، چه هغوئ عمره جوړه کړي او طواف اوکړي، بیا ویښتهٔ قینچي کړي، او د احرام نه بهر شي، خو هغه سړې چه هغهٔ سره د قرباني څناور وي،

فَأَمَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَصْحَابَهُ اَنْ يَّجْعَلُوْهَا عُمْرَةً وَ يَطُوْفُوْا ثُمَّ يُقَصِّرُوْا وَ يَحِلُّوْا اِلَّا مَنْ كَانَ مَعَهُ الْهَدْيُ فَقَالُوْا نَنْطَلِقُ اِلٰى مِنًى وَّ ذَكَرُ اَحَدِنَا يَقْطُرُ مَنِيًّا فَبَلَغَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ لَوِ اسْتَقْبَلْتُ مِنْ اَمْرِيْ مَا اسْتَدْبَرْتُ مَا اَهْدَيْتُ وَلَوْلَا اَنَّ مَعِيَ الْهَدْيَ لَاَحْلَلْتُ وَ حَاضَتْ عَائِشَةُ فَنَسَكَتِ الْمَنَاسِكَ كُلَّهَا غَيْرَ اَنَّهَا لَمْ تَطُفْ بِالْبَيْتِ فَلَمَّا طَهُرَتْ طَافَتْ بِالْبَيْتِ قَالَتْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ تَنْطَلِقُوْنَ بِحَجَّةٍ وَّ عُمْرَةٍ وَّ اَنْطَلِقُ بِحَجٍّ فَاَمَرَ عَبْدَ الرَّحْمٰنِ بْنِ اَبِيْ بَكْرٍ اَنْ يَّخْرُجَ مَعَهَا اِلَى التَّنْعِيْمِ فَاعْتَمَرَتْ بَعْدَ الْحَجِّ.

خلقو اووے' آيا مني طرف ته مونږ خلق داسے حال کښې لاړ شو' چه مونږ کښې ډ چا نه مني څاڅي[ا]. حضور صلي الله عليه وسلم او فرمائيل' که ما ته ډ مخکښې نه دا خبره معلومه وے' کومه چه اوس معلومه شوه' نو ما به د قرباني ځناور نۀ وو راوستلے. او که ما سره ډ قرباني ځناور نه وے' نو زۀ به ډ احرام نه بهر شوے دے. او بي بي عائشے رضي الله عنه ته حيض راغے نو هغے ډ خانه کعبے ډ طواف نه سوا نور ټول ډ حج ارکان ادا کړل. کوم وخت چه هغه پاکه شوه' نو ډ خانه کعبے طواف ئے او کۀ' هغے عرض او کۀ' يا رسول الله صلے الله عليه وسلم تاسو خو حج او عمرے کولو نه پس واپس کيږئے. او زۀ صرف حج کولو نه پس واپس کيږم' نو حضور صلي الله عليه وسلم عبدالرحمٰن بن ابي بکر رضي الله عنه بي بي عائشے رضي الله عنه سره مقام تنعيم طرف ته ډ تلو حکم ورکۀ' نو هغے ډ حج نه پس عمره او کړه.

ا . صحابۀ کرامو ته دا خبره عجيبه معلومه شوه. چه د دوو احرامونو مينځ کښې بنده حلال شي. او د حج د اعمالو د پاره د مني د تلو نه وړاندے خپلو ښځو سره څملاستل رواشي. د دے وجے نه هغوي خپل مشکل رسول الله صلي الله عليه وسلم ته وړاندے کړو. بعضے عالمانو دا هم ليکلے دي. چه صحابۀ کرامو ته د مشکل والي وجه د جاهليت د زمانے د خلقو خيال وو چه د حج په ورځو کښې عمره کول ګناه ده.

۱۲۵۱: حَدَّثَنَا مُؤَمَّلُ بْنُ هِشَامٍ قَالَ حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ عَنْ اَيُّوْبَ عَنْ حَفْصَةَ قَالَتْ كُنَّا نَمْنَعُ عَوَاتِقَنَا اَنْ يَّخْرُجْنَ فَقَدِمَتِ امْرَاَةٌ فَنَزَلَتْ قَصْرَ بَنِيْ خَلَفٍ فَحَدَّثَتْ اَنَّ اُخْتَهَا كَانَتْ تَحْتَ رَجُلٍ مِّنْ اَصْحَابِ رَسُوْلِ

۱۲۵۱: مومل بن هشام. اسمٰعيل. ايوب. حفصه رضي الله عنه نه روايت کوي. بي بي حفصے رضي الله عنه اووے. مونږ به خپلے پيغلے جينکۍ ډ بهر تلو نه منع کولے. يوه ښځه راغله. او قصر بن خلف کښې کوزه شوه. هغے بيان او کۀ' چه ډ هغے خور ډ رسول الله صلي الله عليه وسلم ډ يو صحابي ښځه وه' او ډ هغے خاوند رسول الله صلے الله عليه وسلم سره دولس غزاګانے

اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ غَزَا مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثِنْتَيْ عَشْرَةَ غَزْوَةً وَ كَانَتْ أُخْتِيْ فِيْ سِتِّ غَزَوَاتٍ قَالَتْ كُنَّا نُدَاوِي الْكَلْمٰى وَ نَقُوْمُ عَلَى الْمَرْضٰى فَسَأَلَتْ أُخْتِيْ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَتْ هَلْ عَلٰى إِحْدَانَا بَأْسٌ إِنْ لَّمْ يَكُنْ لَّهَا جِلْبَابٌ أَنْ لَّا تَخْرُجَ قَالَ لِتُلْبِسَهَا صَاحِبَتُهَا مِنْ جِلْبَابِهَا وَ لْتَشْهَدِ الْخَيْرَ وَ دَعْوَةَ الْمُؤْمِنِيْنَ فَلَمَّا قَدِمَتْ أُمُّ عَطِيَّةَ سَأَلْتُهَا أَوْ قَالَتْ سَأَلْنَهَا قَالَتْ وَ كَانَتْ لَا تَذْكُرُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَبَدًا إِلَّا قَالَتْ بِأَبِيْ فَقُلْتُ أَسَمِعْتِ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ كَذَا وَ كَذَا قَالَتْ نَعَمْ بِأَبِيْ فَقَالَتْ لِتَخْرُجِ الْعَوَاتِقُ وَ ذَوَاتُ الْخُدُوْرِ أَوِ الْعَوَاتِقُ ذَوَاتُ الْخُدُوْرِ وَالْحُيَّضُ وَلْيَشْهَدْنَ الْخَيْرَ وَ دَعْوَةَ الْمُسْلِمِيْنَ وَ تَعْتَزِلُ الْحُيَّضُ الْمُصَلّٰى فَقُلْتُ الْحَائِضُ فَقَالَتْ أَوَلَيْسَ تَشْهَدُ عَرَفَةَ وَ تَشْهَدُ كَذَا وَ تَشْهَدُ كَذَا.

کړے دي' او خما خور ورسره شپږو غزاګانو کښې تلې وه. دَ هغې بیان دے چه مونږ به دَ زخمیانو مرهم پټئ او دَ بیمارانو خبر ګیري کوله' نو خما خور دَ رسول الله صلي الله علیه وسلم نه تپوس او کړ' آیا مونږ کښې چا دَ پاره څۀ حرج شته' چه هغه بهر اونۀ ځي' هر کله چه هغې سره څادر نۀ وي حضور صلي الله علیه وسلم ورته او فرمائیل' دَ هغې ملګرے دے هغه څادر کښې ځان سره پټه کړي' او نیک کار کښې او دَ مسلمانانو په دُعا کښې دے شریکے شي. کوم وخت چه اُم عطیه راغله' نو ما دَ هغې نه تپوس اوکړ (یا دائے اووے چه مونږ دَ هغې نه تپوس اوکړ)' او هغې چه به کله دَ نبي صلي الله علیه وسلم نوم اخستلو' نو بِاَبِي' به ئے وئیلے. ما ترے تپوس اوکړ' آیا تا رسول الله صلي الله علیه وسلم داسے او په داسے داسے وئیلو لیدلے دے. هغې اووے او' خما مور پلار دے په حضور صلي الله علیه وسلم قربان وي. او بیان ئے اوکړ چه پیغلے جینکئ او پردے واله دے اوځي' یا دائے او فرمائیل چه پیغلے جینکئ او پردے واله او حائضه ښځے دے اوځي او نیک کار کښې او دَ مسلمانانو دُعا کښې دے شریکے شي. لیکن حیض واله ښځے دے دَ مانځه دَ ځائے نه جدا اوسي. ما تپوس اوکړ' آیا حیض واله هم هغې کښې شریکے شي' نو هغې اووے' آیا دوي عرفه کښې او فلاني فلاني ځائے کښې نۀ حاضریږي.

## باب ۱۶۸ : بَابُ الْإِهْلَالِ مِنَ الْبَطْحَاءِ وَ غَيْرِهَا لِلْمَكِّيِّ وَلِلْحَاجِّ إِذَا خَرَجَ إِلَى مِنًى وَ

## باب ۱۶۸ : اهل مکه دَ پاره دَ بطحا او نورو مقاماتو نه دَ احرام ترلو بیان او حج کونکو دَ پاره کوم وخت چه هغوي دَ مني نه اوځي. او عطاء نه دَ هغې

سُئِلَ عَطَاءٌ عَنِ الْمُجَاوِرِ اَيُلَبِّيْ الْحَجَّ فَقَالَ كَانَ ابْنُ عُمَرَ يُلَبِّيْ يَوْمَ التَّرْوِيَةِ إِذَا صَلَّى الظُّهْرَ وَاسْتَوٰى عَلٰى رَاحِلَتِهٖ وَ قَالَ عَبْدُ الْمَلِكِ عَنْ عَطَاءٍ عَنْ جَابِرٍ قَالَ قَدِمْنَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَهْلَلْنَا حَتّٰى يَوْمَ التَّرْوِيَةِ وَ جَعَلْنَا مَكَّةَ بِظَهْرٍ لَبَّيْنَا بِالْحَجِّ وَ قَالَ اَبُو الزُّبَيْرِ عَنْ جَابِرٍ اَهْلَلْنَا مِنَ الْبَطْحَاءِ وَ قَالَ عُبَيْدُ بْنُ جُرَيْجٍ لِابْنِ عُمَرَ رَاَيْتُكَ اِذَا كُنْتَ بِمَكَّةَ اَهَلَّ النَّاسُ اِذَا رَاَوُا الْهِلَالَ وَلَمْ تُهِلَّ اَنْتَ يَوْمَ التَّرْوِيَةِ فَقَالَ لَمْ اَرَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُهِلُّ حَتّٰى تَنْبَعِثَ بِهٖ رَاحِلَتُهٗ.

سړي متعلق تپوس اوشولو چه مکه کښې اوسيږي، آيا هغه دې حج دَ پاره لبيک اوواني. هغهٔ ورته اووے. ابن عمر رضي الله عنه به دَ ترويه په ورخ لبيک وئيلو. دَ ماسپخين مونځ چه به ئې اوکړلو، او په خپله سورلي به سور شولو او نيغ شولو. او عبدالملک په واسطه دَ عطاء. جابر. روايت اوکړ، چه مونږ خلق نبي صلي الله عليه وسلم سره مکې ته راغلو، نو مونږ احرام اوتړلو، تر دې چه دَ ترويه ورخ راغله. او مونږ مکه خپل ورستو کړه، نو مونږ حج دَ پاره لبيک اووے، او ابو الزبير دَ جابر رضي الله عنه نه روايت اوکړ، چه مونږ خلقو دَ بطحاء نه احرام اوتړلو. او عبيد بن جريج، ابن عمر رضي الله عنه ته اووے، زهٔ تاسو وينم، چه کله تاسو مکه کښې ئې، نو خلق مياشت ليدو سره احرام او تړي او تاسو دَ ترويه ورخ پورې احرام نهٔ تړې هغهٔ جواب ورکړ، ما نبي صلي الله عليه وسلم په احرام تړلو نهٔ دې ليدلے څو پورې چه حضور صلي الله عليه وسلم به په اُوښه سور نهٔ شولو[۱].

ف: ترويه: دَ ذي الحجه اتم تاريخ.

۱. د حج د پاره د احرام تړلو آخري ورخ دَ ترويې (اتم د ذي الحجې) ورخ ده. د دې نه روستو والې روا نهدې. دَ عبدالله بن عمر رضي الله عنها د مسئلې معلومول د رسول الله صلي الله عليه وسلم د طرزِ عمل نه وو چه د سفر د شروع کيدو احرام تړل غوره دي او مکه مکرمه کښې د اوسيدونکي د پاره د ترويې ورخ (اتمه ورخ دَ لوئې اختر د مياشتې) د سفر ورخ ده. د دې وجې عبدالله بن عمر رضي الله عنهما په مکه مکرمه د اوسيدو په زمانه کښې د ترويې په ورخ احرام تړل غوره ګنړل.

## باب ۱۶۹: أَيْنَ يُصَلِّي الظُّهْرَ فِيْ يَوْمِ التَّرْوِيَةِ.

## باب ۱۶۹: دَ ترويه په ورخ به دَ ماسپخين مونځ په کوم مقام کوي.

۲۵۲: حَدَّثَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ قَالَ حَدَّثَنَا اِسْحَاقُ الْاَزْرَقُ

۲۵۲: عبدالله بن محمد. اسحاق ارزق. سفيان. عبدالعزيز بن رفيع نه روايت کوي،

قَالَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَبْدِ الْعَزِيْزِ بْنِ رُفَيْعٍ قَالَ سَأَلْتُ اَنَسَ بْنَ مَالِكٍ قُلْتُ اَخْبِرْنِيْ بِشَيْءٍ عَقَلْتَهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَيْنَ صَلَّى الظُّهْرَ وَالْعَصْرَ يَوْمَ التَّرْوِيَةِ قَالَ بِمِنًى قُلْتُ فَاَيْنَ صَلَّى الْعَصْرَ يَوْمَ النَّفْرِ قَالَ بِالْاَبْطَحِ ثُمَّ قَالَ افْعَلْ كَمَا يَفْعَلُ اُمَرَآؤُكَ.

د هغه بيان دے، ما د انس بن مالک رضي اللّٰه عنه نه تپوس او کړه، ما ته او ښايه که تا ته د نبي صلي اللّٰه عليه وسلم نه يادوي چه تاسو د ترويه په ورځ د ماسپخين مونځ کوم ځائے او کړه. هغهٔ ورته اووے، منى کښ. ما اووے. د مازيګر مونځ يوم نفر (يعني دولسم تاريخ) مو کوم ځائے او کړلو. هغهٔ اووے ابطح کښ. بيائے اووے ته داسے کوه، څنګه چه ستا حکّام کوي.

۲۵۳ : حَدَّثَنَا عَلِيٌّ سَمِعَ اَبَا بَكْرِ ابْنِ عَيَّاشٍ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ قَالَ لَقِيْتُ اَنَسًا ح وَ حَدَّثَنِيْ اِسْمٰعِيْلُ بْنُ اَبَانَ قَالَ حَدَّثَنَا اَبُوْ بَكْرٍ عَنْ عَبْدِ الْعَزِيْزِ قَالَ خَرَجْتُ اِلٰى مِنًى يَوْمَ التَّرْوِيَةِ فَلَقِيْتُ اَنَسًا ذَاهِبًا عَلٰى حِمَارٍ فَقُلْتُ اَيْنَ صَلَّى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هٰذَا الْيَوْمَ الظُّهْرَ قَالَ انْظُرْ حَيْثُ يُصَلِّيْ اُمَرَآؤُكَ فَصَلِّ.

۲۵۳ : علي ابوبکر بن عياش. عبدالعزيز بيان او کهٔ، زهٔ حضرت انس رضي اللّٰه عنه سره يو ځائے شوم. ح. اسمٰعيل بن ابان. ابوبکر. عبدالعزيز نه روايت کوي. د عبدالعزيز بيان دے، چه زهٔ منى طرف ته د ترويه په ورځ اووتلم. نو زهٔ حضرت انس رضي اللّٰه عنه سره يو ځائے شوم، داسے حال کښ، چه هغه په يَو خر سور وو[۱]. ما ترے تپوس او کهٔ، چه نبي صلّي اللّٰه عليه وسلم نن ورځ د ماسپخين مونځ کوم ځائے کړے وو. هغهٔ او فرمائيل، ګوره څنګه چه ستا امراء مونځ کوي، تهٔ هم هغسے کوه.

۱. د خر سورلي په عربو کښ عيب نشو ګنړلے.

# الحمد للّٰه والشكر للّٰه

## د صحيح بخاري شريف شپږمه پاره ختمه شوه



بسم اللہ الرحمٰن الرحیم
کفایت دینی کتب خانہ
حنفی
شافعی
کفایت اللہ ابن صدیق
واٹس ایپ گروپ ٹیلی گرام چینل
اس گروپ میں کتابیں اہل السنة والجماعت، حنفی، شافعی، مالکی، حنبلی، دیوبند ، علماء حق کے عقائد کے مطابق ہوں گی مختلف زبانوں میں اسلامی کتابیں پشتو عربی اردو فارسی جیسے تفسیریں، فتاویٰ درسی کتب خارجی کتب و غیرہ۔
کفایت اللہ ابن صدیق
easypaisa
+923052488551
+923247442395
مالکی
حنبلی
تاج
تاج البخاری
پښتو شرح صحیح البخاری
پاره
۷
شارح: مولانا ظهورالباری اعظمی فاضل دارالعلوم دیوبند
پښتو ترجمه: مولانا محمد امین درانی
نظرثانی: حافظ قاری فضل کریم
اهتمام: دکتور محمد دین البشاوری
تاج کتب خانه رجسٹرڈ
قصه خوانی پشاور
فون: 214454
C-22

# تاج البخاري پاره ۷ د مضامينو فهرست

# اوومه پاره

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ ط

## باب ۱۷۰ : اَلصَّلٰوةِ بِمِنًی.

۲۵۴ : حَدَّثَنَا إِبۡرَاهِيۡمُ ابۡنُ الۡمُنۡذِرِ حَدَّثَنَا ابۡنُ وَهۡبٍ اَخۡبَرَنِيۡ يُوۡنُسُ عَنِ ابۡنِ شِهَابٍ قَالَ اَخۡبَرَنِيۡ عُبَيۡدُ اللّٰهِ ابۡنُ عَبۡدِ اللّٰهِ بۡنِ عُمَرَ عَنۡ اَبِيۡهِ قَالَ صَلّٰی رَسُوۡلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ بِمِنًی رَكۡعَتَيۡنِ وَ اَبُوۡ بَكۡرٍ وَّ عُمَرُ وَ عُثۡمٰنُ صَدۡرًا مِّنۡ خِلَافَتِهٖ.

۲۵۵ : حَدَّثَنَا اٰدَمُ حَدَّثَنَا شُعۡبَةُ عَنۡ اَبِيۡ اِسۡحٰقَ الۡهَمۡدَانِيِّ عَنۡ حَارِثَةَ بۡنِ وَهۡبٍ الۡخُزَاعِيِّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنۡهُ قَالَ صَلّٰی بِنَا النَّبِيُّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ وَ نَحۡنُ اَكۡثَرُ مَا كُنَّا قَطُّ وَ اٰمَنَهٗ بِمِنًی رَكۡعَتَيۡنِ.

۲۵۶ : حَدَّثَنَا قَبِيۡصَةُ بۡنُ عُقۡبَةَ حَدَّثَنَا سُفۡيَانُ عَنِ الۡاَعۡمَشِ عَنۡ اِبۡرَاهِيۡمَ عَنۡ عَبۡدِ الرَّحۡمٰنِ بۡنِ يَزِيۡدَ عَنۡ عَبۡدِ اللّٰهِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنۡهُ قَالَ صَلَّيۡتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ رَكۡعَتَيۡنِ وَ مَعَ اَبِيۡ بَكۡرٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنۡهُ رَكۡعَتَيۡنِ وَ مَعَ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنۡهُ رَكۡعَتَيۡنِ ثُمَّ تَفَرَّقَتۡ بِكُمُ الطُّرُقُ فَيَالَيۡتَ حَظِّيۡ مِنۡ اَرۡبَعٍ

## باب ۱۷۰ : مني کښې دَ مونځ کولو بیان.

۲۵۴ : ابراهیم بن منذر. ابن وهب یونس. ابن شهاب. عبید اللّٰه بن عبداللّٰه بن عمر رضي اللّٰه عنه دَ خپل پلار نه روایت کوي چه نبي صلعم، ابوبکر رضي اللّٰه عنه، عمر رضي اللّٰه عنه، او عثمان رضي اللّٰه عنه دَ خپل خلافت ابتدا کښې منٰي کښې دوه رکعاته مونځ اوکه.

۲۵۵ : آدم. شعبه. اسحٰق همداني حارثه بن وهب خزاني روایت کوي، چه نبي صلعم مونږ ته منٰي کښې دوه رکعاته مونځ راکه، هغه وخت خمونږ تعداد دَ مخکښې نه ډیر زیات وو او مونږ مخکښې نه زیات بے ویرے وو.

۲۵۶ : قبیصه بن عقبه. سفیان. اعمش. ابراهیم. عبدالرحمٰن بن زید. عبداللّٰه رضي اللّٰه عنه نه روایت کوي، دَ هغه بیان دے، چه ما نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم سره دوه رکعاته اوکړل، ابوبکر رضي اللّٰه عنه سره م دوه رکعاته اوکړل. او عمر رضي اللّٰه عنه سره م دوه رکعاته اوکړل. بیا ستاسو طریقے کډوے وډے شوے. افسوس چه خلور، رکعاتونو کښې دوه قبول شوي رکعاتو نه خما په حصه

رَكْعَتَانِ مُتَقَبَّلَتَانِ. كښې راشي¹.

۱. منۍ کښې چه کله حاجي اوسيږي نو د څلورو فرضو رکعتونو په ځائے به دوه رکعته مونځ کوي. ځکه چه د سفر مونځ دوه رکعته وي. دے ټولو احاديثو مبارکو نه دا معلوميږي چه د رسول الله صلي الله عليه وسلم د ابوبکر عثمان رضي الله عنهم د ټولو دا طريقه وه. بيا حضرت عثمان رضي الله عنه د خلافت په آخري دور کښې به څلور رکعتونه ادا کول. په اصل کښې د احنافو په نزد په سفر کښې د څلورو رکعتونو پځائے دوه رکعته ادا کول واجب دي. ځکه چه رسول الله صلي الله عليه وسلم په منۍ کښې به دوه رکعته ادا کول. بيا داسے منۍ کښې حضرت ابوبکر رضي الله عنه خپل دور خلافت کښې، عمر رضي الله عنه خپل دور خلافت کښې بيا حضرت عثمان رضي الله عنه د خلافت په اولني دور کښې د څلورو رکعتونو پځائے دوه رکعته ادا کول که چرے دا ضروري نه وه چه د څلورو پځائے دوه رکعته کول دي نو بيا به پدے به پابندۍ سره عمل نه کيدلو، باقي پاتے شوه د حضرت عثمان رضي الله عنه د خلافت د آخري دور معامله، نو په صحيح رواياتو کښې دي چه هغه به څلور رکعاته په منۍ کښې پوره څلور رکعاته کول. ليکن دا ثابته ده چه هغه، د دے خپل عمل تاويل کړے وو "چه مکه مکرمه خما پخوانے اصلي وطن دے دلته خما کورونه جائيداد شته او منۍ، مکے ته نزدے ده نو زهٔ مسافر نه يم". نو د دے تاويل نه زيات تاکيد د قصر د مونځ ثابتيږي. دے باب کښې آخري حديث شريف د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه دے چه هغه به منۍ کښې قصر (دوه رکعته) ضروري ګڼړل. ليکن حضرت عثمان رضي الله عنه خليفه وو او د مونځ امام به هم وۀ حضرت عثمان رضي الله عنه به څلور رکعته کول، نو عبدالله بن مسعود رضي الله عنه به هغه پسے مقتدي وو او مقتدي به د امام اتباع کوي. پدے وجه به هغه هم څلور رکعته کول، که په اجتهاد کښې اختلاف وي نو بيا هم په هغه پسے اقتداء کول صحيح دي. ابن تيميه رحمة الله عليه پدے د ټول امت اجماع ليکلے ده. چه د شافعي مذهب خاوند د حنفي امام په اقتداء کښې مونځ صحيح دے ځکه چه دين يو، نبي يو، قبله يوه ده نو بيا څه وجه ده چه اقتداء به يو بل پسے صحيح نه وي.

## بَاب ۱۷۱: صَوْمِ يَوْمِ عَرَفَةَ.

۲۵۷: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنِ الزُّهْرِيِّ حَدَّثَنَا سَالِمٌ قَالَ سَمِعْتُ عُمَيْرًا مَوْلَى أُمِّ الْفَضْلِ عَنْ أُمِّ الْفَضْلِ شَكَّ النَّاسُ يَوْمَ عَرَفَةَ فِي صَوْمِ يَوْمِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَبَعَثْتُ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِشَرَابٍ فَشَرِبَهُ.

باب ۱۷۱: دَ عرفے په ورځ دَ روژے نيولو بيان.

۲۵۷: علي بن عبدالله. سفيان. زهري. سالم. عمير (دَ، اُم فضل آزاد کړده غلام) اُم فضل نه روايت کوي، دَ، اُم فضل بيان دے، دَ، عرفے په ورځ دَ نبي صلعم دَ، روژے متعلق دَ خلقو شک شو، نو ما نبي صلعم ته دَ څکلو يو څيز اوليږلو، چه هغه حضور صلي الله عليه وسلّم اوڅکلو.

باب ١٧٢ : اَلتَّلْبِيَةِ وَالتَّكْبِيْرِ اِذَا غَدَا مِنْ مِنًى اِلٰى عَرَفَةَ.

باب ١٧٢ : د منی نه عرفه ته د' تللو په وخت د لبیک وئیلو او تکبیر کولو بیان.

١٥٨٢ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ مُحَمَّدِ ابْنِ اَبِىْ بَكْرِ نِالثَّقَفِىِّ اَنَّهُ سَاَلَ اَنَسَ بْنَ مَالِكٍ وَ هُمَا غَادِيَانِ مِنْ مِّنًى اِلٰى عَرَفَةَ كَيْفَ كُنْتُمْ تَصْنَعُوْنَ فِىْ هٰذَا الْيَوْمِ مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ كَانَ يُهِلُّ مِنَّا الْمُهِلُّ فَلَا يُنْكِرُ عَلَيْهِ وَ يُكَبِّرُ مِنَّا الْمُكَبِّرُ فَلَا يُنْكَرُ عَلَيْهِ.

١٥٨٢ : عبداللّٰه بن یوسف. مالک. محمد بن ابي بکر ثقفي روایت کوي' هغه د' انس بن مالک رضي اللّٰه عنه نه' هر کله چه دواړه عرفے ته تلل' تپوس اوکه' چه په نن ورځ به تاسو خلقو' رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم سره څهٔ کول' هغه اووے مونږ کښې به لبیک ویونکي لبیک وئیلے' هغه به چا بد نهٔ ګنړلو. او مونږ کښې به تکبیر ویونکي تکبیر وئیلے' نو هغه ته به هم چا بد نه وئیلے.

باب ١٧٣ : اَلتَّهْجِيْرِ بِالرَّوَاحِ يَوْمَ عَرَفَةَ.

باب ١٧٣ : دَ عرفے په ورځ دَ' غرمے دَ' روانیدو بیان.

١٥٩٢: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ سَالِمٍ قَالَ كَتَبَ عَبْدُ الْمَلِكِ اِلَى الْحَجَّاجِ اَنْ لَّا يُخَالِفَ ابْنَ عُمَرَ فِى الْحَجِّ فَجَآءَ ابْنُ عُمَرَ وَ اَنَا مَعَهُ يَوْمَ عَرَفَةَ حِيْنَ زَالَتِ الشَّمْسُ فَصَاحَ عِنْدَ سُرَادِقِ الْحَجَّاجِ فَخَرَجَ وَ عَلَيْهِ مِلْحَفَةٌ مُّعَصْفَرَةٌ فَقَالَ مَالَكَ يَا اَبَا عَبْدِ الرَّحْمٰنِ؟ فَقَالَ الرَّوَاحَ اِنْ كُنْتَ تُرِيْدُ السُّنَّةَ قَالَ هٰذِهِ السَّاعَةَ قَالَ نَعَمْ قَالَ فَانْظُرْنِىْ حَتّٰى اُفِيْضَ عَلٰى رَاْسِىْ ثُمَّ اَخْرُجَ فَنَزَلَ حَتّٰى

١٥٩٢ : عبداللّٰه بن یوسف. مالک. ابن شهاب. سالم نه روایت دے' عبدالملک' حجاج ته اولیکل' چه حج کښې دے د' ابن عمر رضي اللّٰه عنه مخالفت نه کوي. ابن عمر رضي اللّٰه عنه د' عرفے په ورځ هغه ورځ راغے' چه نمر په زوال شوے وو. او زهٔ هم هغه سره ووم. دَ حجاج خیمے سره اوچت آواز سره نعرے کړے. حجاج داسے حال کښې بهر راووتلو' چه کسم کښې رنګ شوے څادر' ئے په سر' وو. هغه تپوس اوکه. اے ابو عبدالرحمانه د زوال وخت دے که په سنت عمل کوے دا وخت دے روانیدل دي. او' هغه ورته اووے' لږه موقعه راکړه' چه زهٔ اولامبم: بیا روان شم. ابن عمر رضي اللّٰه عنه دَ سورلئ نه کوز شو' تر دے چه حجاج راغے' او روان شولو' داسے حال کښې' چه هغه څما او

خَرَجَ الْحَجَّاجُ فَسَارَ بَيْنِيْ وَ بَيْنَ اَبِيْ فَقُلْتُ اِنْ كُنْتَ تُرِيْدُ السُّنَّةَ فَاَقْصِرِ الْخُطْبَةَ وَ عَجِّلِ الْوُقُوْفَ فَجَعَلَ يَنْظُرُ اِلَى عَبْدِ اللّٰهِ فَلَمَّا رَاٰى ذٰلِكَ عَبْدُ اللّٰهِ قَالَ صَدَقَ.

خـمـا دَ پـلار پـه مینـځ کښې وو. ما اووے، که ته دَ سنت پیـروي کـول غـواړے، نـو خطبه مختصر کړه. او وقوف کښې تـادي کـوه. حـجـاج، عبدالله طرف ته او کتل. هر کـله چه عبـدالـلّٰـه دا مـعـامله اولیده، نو هغه خما متعلق اووے، چه رشتیا وائے.

## بـاب ۱۷۴ : الْـوُقُـوْفِ عَـلَى الدَّآبَةِ بِعَرَفَةَ.

## باب ۱۷۴ : عـرفـه کـښې په سورلۍ دَ، وقوف[۱] کولو بیان.

● ۲۲۰ : حَـدَّثَـنَـا عَبْـدُ اللّٰهِ بْنَ مُسْلَمَةَ عَنْ مَالِكٍ عَنْ اَبِيْ النَّضْرِ عَنْ عُـمَيْـرٍ مَـوْلٰى عَبْـدِ اللّٰـهِ بْنِ عَبَّـاسٍ عَـنْ اُمِّ الْـفَـضْلِ بِـنْـتِ الْحَـارِثِ اَنَّ نَـاسًا اِخْتَـلَـفُـوْا عِـنْـدَهَا يَوْمَ عَرَفَةَ فِـيْ صَـوْمِ الـنَّـبِـيِّ صَـلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ بَعْضُهُمْ هُوَ صَائِمٌ وَّ قَالَ بَـعْـضُهُمْ لَيْسَ بِصَآئِمٍ فَاَرْسَلْتُ اِلَيْهِ بِـقَـدَحِ لَبَـنٍ وَّ هُـوَ وَاقِفٌ عَلٰى بَعِيْرِهٖ فَشَرِبَهٗ.

● ۲۲۰ : عـبـدالـلّٰـه بن مسـلمه. مالک. ابو النضر. عـمـیـر (دَ عـبـدالـلّٰـه بـن عبـاس رضي الله عنه آزاد کرده غـلام) اُم فـضـل بنت حارث نه روایت کوي، خُنې خلقو چـه اُم فضل سره ناست وو، دَ، عرفې په ورځ دَ نبي صلّي الـلّٰـه عـلیه وسلّم دَ، روژے په حقله اختلاف او که. بعضو اووے، د حـضور صلّي الله علیه وسلّم روژه ده، او بعضو اووے، چه کوژه نے ده، نو ما حضور صلّي الله علیه وسلّم تـه د پیـو یـوه پیـالے اولیږله، داسے حال کښې چه حضور صـلّـي الله علیه وسلّم په اوښه سور، وو، نو حضور صلّي الله علیه وسلّم هغه اوځکل.

۱. عـرفـات کـښې پـه سورلۍ وقوف کول (په ولاړه عبادت کول) ډیر غوره عمل دے اګر چه په زمکه باندے پخپلو خپو (پښو) او دریدل روا دي.

## بـاب ۱۷۵ : الْـجَـمْـعِ بَيْـنَ الصَّلٰـوتَيْـنِ بِـعَـرَفَةَ وَ كَانَ ابْنُ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا اِذَا فَاتَتْهُ الصَّلٰوةُ مَعَ الْاِمَـامِ جَـمَـعَ بَيْـنَهُـمَـا وَ قَـالَ اللَّيْثُ حَـدَّثَـنِـيْ عُـقَيْلٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ اَخْبَـرَنِيْ سَالِمٌ اَنَّ الْحَجَّاجَ بْنَ يُوْسُفَ عَـامَ نَـزَلَ بِـابْـنِ الـزُّبَيْـرِ رَضِيَ اللّٰـهُ

## باب ۱۷۵ : عـرفـه کـښې دَ، دوو مونځونو جمع کولو بیان. او ابن عمر رضي الله عنه نه به چه امام سره مـونـځ فـوت شـو، نـو دواړه مـونـځـونـه (دَ، مـاسپخین او مـازیـګـر) بـه ئے یو ځائے کـول. او د لیث بیان دے، مانه عقیل په واسطه دَ، ابن شهاب، سالم بیان او که، چه حجاج بـن یـوسف پـه کـوم کـال ابـن زبیر رضي الله عنه سره جـنـګ کـولـو د پاره راغے، نو عبدالله بن عمر رضي الله

عَنْهُمَا سَأَلَ عَبْدِ اللّٰهِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ كَيْفَ نَصْنَعُ فِي الْمَوْقِفِ يَوْمَ عَرَفَةَ فَقَالَ سَالِمٌ اِنْ كُنْتَ تُرِيْدُ السُّنَّةَ فَهَجِّرْ بِالصَّلٰوةِ يَوْمَ عَرَفَةَ فَقَالَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عُمَرَ صَدَقَ اِنَّهُمْ كَانُوْا يَجْمَعُوْنَ بَيْنَ الظُّهْرِ وَالْعَصْرِ فِي السُّنَّةِ فَقُلْتُ لِسَالِمٍ اَفَعَلَ ذٰلِكَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ سَالِمٌ وَهَلْ تَتَّبِعُوْنَ فِيْ ذٰلِكَ اِلَّا سُنَّتَهُ.

عنه نه ئې تپوس اوکه، چه دَ عرفې په ورځ وقوف کښې څه کوو؟ سالم ورته اوويے، که ته دَ سنت پيروي کول غواړې، نو دَ عرفې په ورځ دَ نمر زوال کيدو سره مونځ اوکه. عبدالله بن عمر رضي الله عنه او فرمانيل، رښتيا ئې اوويے. صحابه وُ به دَ ماسپخين او مازيګر مونځ د سنت موافق يو ځائے کولو. دَ زهري بيان دے. ما دَ، سالم نه تپوس اوکه، آيا رسول الله صلي الله عليه وسلم دغسے کړے وو. سالم جواب ورکه، چه تاسو، خو، دَ حضور صلي الله عليه وسلم دَ سنت پيروي له کوے.

۱. عرفات کښې د ماسپخين او د مازيګر مونځونه د ماسپخين په وخت ادا کول په قصر (دوه، دوه رکعاته) سره د حج د اعمالو يوه حصه ده. د دے د سفر سره څه تعلق نشته ځکه چه پدے کښې د مکے مکرّمے خلق او نور خلق برابر دي. د احاديثو په ذخيره کښې داسے يو لفظ هم نشته چه رسول الله صلي الله عليه وسلم او خلفاؤ راشدينو کښې هيچا هم د مونځ په دے طريقه کښې څه فرق کړے وي نو مانځه کښې په عرفات کښې قصر د سفر په وجه ندے. بلکے د حج په وجه دے. حضرت عمر رضي الله عنه، مکه مکرمه کښې د مونځ امامتي اوکړه. نو اعلان ئې اوکړو "چه مونږ مسافر يو، د مکے اوسيدونکے خلق دے خپل مونځ پوره کړي". که عرفات کښې دوه مونځونه په يو ځائے په قصر ادا کول د سفر په وجه وے نو حضرت عمر رضي الله عنه به ضرور اعلان کړے وو چه د مکے خلق دے خپل مونځونه پوره ادا کړي ځکه چه د مکے مکرّمے خلق عرفات کښې مسافر ندي. داسے د رسول الله صلي الله عليه وسلم او د خلفائے راشدينو طريقه وه.

عرفات کښې چه څرنګ دوه مونځونه په يو وخت يو ځائے کيږي. دغسے دوه مونځونه د ماښام او ماسختن په يو ځائے په يو اذان او اقامت سره په مزدلفه کښې ادا کيږي. عرفات کښې دا حکم دے چه د امام په اقتداء کښې د ماسپخين او د مازيګر مونځونه د ماسپخين په وخت کښې ادا کيږي. او چه کله امام نه وي نو بيا خپل خپل وخت به مونځونه ادا کيږي. ليکن مُزدلفه کښې د دواړو مونځونو د پاره د امام يا د قائم مقام امام ضرورت نشته پدے مسئله کښې اختلاف هم شته. امام بخاري رحمة الله عليه، د عبدالله بن عمر رضي الله عنهما د احنافو د مسلک خلاف نقل کړيده. ليکن احنافو سره د خپل مسلک دلائل احاديث، او د صحابۀ کرامو اقوال و آثار موجود دي.

## بَاب ۱۷۶ : قَصْرِ الْخُطْبَةِ بِعَرَفَةَ.

باب ۱۷۶ : عرفه کښې خطبه دَ مختصر لوستو بيان.

۱۶۱۲ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُسْلَمَةَ قَالَ حَدَّثَنَا مَالِكٌ عَنِ ابْنِ

۱۶۱۲ : عبدالله بن مسلمه. مالک. ابن شهاب. سالم بن عبدالله نه روايت کوي. عبدالملک بن مروان،

شِهَاب عَنْ سَالِمِ بْنِ عَبْدِ اللهِ اَنَّ عَبْدَ الْمَلِكِ بْنَ مَرْوَانَ كَتَبَ اِلَى الْحَجَّاجِ اَنْ يَّاتَمَّ بِعَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ فِي الْحَجِّ فَلَمَّا كَانَ يَوْمُ عَرَفَةَ جَاءَ ابْنُ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا وَ اَنَا مَعَهُ حِيْنَ زَاغَتِ الشَّمْسُ اَوْ زَالَتْ فَصَاحَ عِنْدَ فُسْطَاطِهِ اَيْنَ هٰذَا فَخَرَجَ اِلَيْهِ فَقَالَ ابْنُ عُمَرَ الرَّوَاحَ فَقَالَ الْاٰنَ قَالَ نَعَمْ قَالَ اَنْظِرْنِيْ اُفِيْضُ عَلَيَّ مَاءً فَنَزَلَ ابْنُ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا حَتّٰى خَرَجَ فَسَارَ بَيْنِيْ وَ بَيْنَ اَبِيْ فَقُلْتُ اِنْ كُنْتَ تُرِيْدُ اَنْ تُصِيْبَ السُّنَّةَ الْيَوْمَ فَاقْصُرِ الْخُطْبَةَ وَ عَجِّلِ الْوُقُوْفَ فَقَالَ ابْنُ عُمَرَ صَدَقَ.

حجاج ته اوليكل، چه حج كښې دَ عبدالله بن عمر رضي الله عنه اقتدا كوه. دَ عرفې ورځ چه راغله، نو حضرت ابن عمر رضي الله عنه هغه وخت راغې، چه نمر په زوال شوې وو. او زه هم هغه سره ووم. حضرت ابن عمر رضي الله عنه دَ حجاج خيمې له راغې، او په اوچت آواز ئې، اووې. حجاج كوم خائې دې، حجاج بهر راووتلو، نو ابن عمر رضي الله عنه او فرمائيل، روانيدل دي. هغه اووې، اوس؟ هغه ورته او فرمائيل، او، حجاج اووې، ماله دومره موقع راكړه چه په سر اوبه واچوم، نو حضرت ابن عمر رضي الله عنه دَ سورلي نه راكوز شولو، تر دې چه حجاج بهرته راووتلو، او ځما او ځما دَ پلار مينځ كښې روان شولو. ما اووې، كه ته نن دَ سنت پيروي كول غواړې، نو خطبه مختصر كړه، او وقوف كښې تادي او كړه، ابن عمر رضي الله عنه اووې، ده رښتيا اويل.

## بَاب ۱۷۷ : اَلتَّعْجِيْلِ اِلَى الْمَوْقِفِ.

## باب ۱۷۷ : عرفات كښې دَ ايساريدو دَ پاره دَ تادي كولو بيان.

## بَاب ۱۷۸ : اَلْوُقُوْفِ بِعَرَفَةَ.

## باب ۱۷۸ : عرفه كښې دَ، ايساريدو بيان.

۲۶۲ : حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللهِ قَالَ حَدَّثَنَا سُفْيٰنُ قَالَ حَدَّثَنَا عَمْرٌو وَ قَالَ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جُبَيْرِ بْنِ مُطْعِمٍ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ كُنْتُ اَطْلُبُ بَعِيْرًا لِّيْ ح وَ حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ قَالَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَمْرٍو وَ سَمِعَ مُحَمَّدَ بْنَ جُبَيْرٍ عَنْ اَبِيْهِ جُبَيْرِ بْنِ مُطْعِمٍ قَالَ اَضْلَلْتُ بَعِيْرًا لِّيْ فَذَهَبْتُ

۲۶۲ : علي بن عبدالله. سفيان. عمرو. محمد بن جبير مطعم دَ خپل پلار نه روايت كوي، هغه وائي، زه دَ خپل اوښ تلاش كښې ووم. ح (دوئم سند) مسدد. سفيان. عمرو. محمد بن جبير دَ خپل پلار جبير بن مطعم نه روايت كوي، دَ هغه بيان دې، ځما يو اوښ ورک شوې وو، زه دَ، عرفې په ورځ دَ هغه لټون پسې اووتم، نو ما رسول

اَطْلُبُهُ يَوْمَ عَرَفَةَ فَرَاَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَاقِفًا بِعَرَفَةَ فَقُلْتُ هٰذَا وَاللّٰهِ مِنَ الْحُمُسِ فَمَا شَأْنُهُ هٰهُنَا.

اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم عرفات كښې ولاړ اوليدلو. ما اووې. دے (نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم) خو په خدائے چه، د قريشو نه دے. بيا دلته ئے څه كار دے؟[۱].

۱. جاهليت كښې به مشركانو په خپلو طريقو حج كولو، د قريشو نه بغير، ټول خلق به عرفات كښې د دعا د پاره اودريدل او قريش به د عرفات ېخائے د عرفې په ورځ په مزدلفه كښې اودريدل هغوي به ويل "مونږ د اللّٰه تعالي اهل و عيال يو د وُقوف، د پاره د حرم نه بهر نشو وتلے" رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم د قريشو نه، وو او اسلام، غلط او د بے عقلئ وهمونه، د بنياد نه، ختموي. پدے وجه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم ټول مسلمانان كه قريش وو او كه قريش نه وؤ ټول عرفات كښېٰ اودريدل. رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم د جاهليت د زمانے دے حج كښې مزدلفه كښې پاتے نشو، او عرفاتته وقوف له لاړو عرفات د حرم نه بهر دے. پدے وجه جُبير حيران شو، چه يو قريشي، او پدے ورځے عرفات كُښِ؟

۲٦۳: حَدَّثَنَا فَرْوَةُ بْنُ اَبِي الْمَغْرَاءِ قَالَ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ مُسْهِرٍ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ قَالَ عُرْوَةُ كَانَ النَّاسُ يَطُوْفُوْنَ فِي الْجَاهِلِيَّةِ عُرَاةً اِلَّا الْحُمُسَ وَالْحُمُسُ قُرَيْشٌ وَّمَا وَلَدَتْ وَ كَانَتِ الْحُمُسُ يَحْتَسِبُوْنَ عَلَى النَّاسِ يُعْطِي الرَّجُلُ الرَّجُلَ الثِّيَابَ يَطُوْفُ فِيْهَا وَ تُعْطِي الْمَرْاَةُ الْمَرْاَةَ الثِّيَابَ تَطُوْفُ فِيْهَا فَمَنْ لَّمْ يُعْطِهِ الْحُمُسُ طَافَ بِالْبَيْتِ عُرْيَانًا وَّ كَانَ يُفِيْضُ جَمَاعَةُ النَّاسِ مِنْ عَرَفَاتٍ وَّ يُفِيْضُ الْحُمُسُ مِنْ جَمْعٍ قَالَ وَ اَخْبَرَنِيْ اَبِيْ عَنْ عَآئِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا اَنَّ هٰذِهِ الْاٰيَةَ نَزَلَتْ فِي الْحُمُسِ ثُمَّ اَفِيْضُوْا مِنْ حَيْثُ اَفَاضَ النَّاسُ قَالَ كَانُوْا يُفِيْضُوْنَ مِنْ جَمْعٍ فَدُفِعُوْا

۲٦۳: فروه بن ابي مغزاء. علي بن مسهر. هشام بن عروه. عروه نه روايت كوي، دَ هغه بيان دے، دَ حمس (قريشو) نه سِوا، ټولو خلقو به دَ جاهليت زمانه كښې په بربنډه طواف كولو، چه دَ هغے نه مراد قريش او دَ هغوي اولاد دے، او، حمس (قريشو) به دَ نيكئ په خيال خلقو له كپړے وركولے. سړي به سړي له كپړے وركولے، او هغے كښې به ئے طواف كولو، او ښځے به ښځے له كپړے وركولے، او هغے كښې به ئے طواف كولو، چا ته چه به قريشو كپړے ورنه كړے، هغه به په بربنډه طواف كولو. دَ عامو خلقو جماعت به دَ عرفات نه واپس كيدو، خو حمس به دَ مزدلفے نه واپس كيدلو، د هشام بيان دے، ما ته څما پلار بيان او كه، هغه دَ عائشے رضي اللّٰه عنه نه روايت او كه، چه دا، آيت دَ حمس (قريشو) متعلق نازل شولو: ثم افيضوا من حيث افاض النّاس، دغه خلق به دَ مزدلفے نه واپس كيدل، په دے وجه هغوي هم عرفات ته

اِلٰى عَرَفَاتٍ.

اوليږلے شو.

**باب ۱۷۹ : اَلسَّيْرِ اِذَا دَفَعَ مِنْ عَرَفَةَ.**

**باب ۱۷۹ :** عرفے نه د، واپسي په وخت د تلو د كيفيت بيان.

۲۶۴ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ يُوسُفَ قَالَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ اَبِيهِ اَنَّهٗ قَالَ سُئِلَ اُسَامَةُ وَ اَنَا جَالِسٌ كَيْفَ كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَسِيرُ فِيْ حَجَّةِ الْوَدَاعِ حِيْنَ دَفَعَ قَالَ كَانَ يَسِيرُ الْعَنَقَ فَاِذَا وَجَدَ فَجْوَةً نَصَّ قَالَ هِشَامٌ وَّالنَّصُّ فَوْقَ الْعَنَقِ فَجْوَةٌ مُّتَّسَعٌ وَالْجَمْعُ فَجَوَاتٌ وَ فِجَآءٌ وَ كَذٰلِكَ رَكْوَةٌ وَّ رِكَآءٌ مَّنَاصٌ لَّيْسَ حِيْنَ فِرَارٍ.

۲۶۴ : عبدالله بن يوسف. مالك. هشام بن عروه د خپل پلار نه روايت كوي، ذ هغه بيان دے، چه زه اسامه رضي الله عنه سره ناست ووم، ذ هغه نه تپوس اوشو، چه رسول الله صلي الله عليه وسلّم د، عرفے نه د، واپسي په وخت حجة الوداع كښې څنگه تلو. هغه جواب كښې اووے، تيز رفتاري سره، او، چه ميدان به وسيع وو، نو، نور به ئے هم رفتار تيز كړلو. هشام اووے. نص كښې د، عنق نه د، زياتے تيز رفتاري معني دي. د، فجوه معني دي: هرت بيرت ځائے. ذ، دے جمع فجوات او فجاء راځي. دغه شان ركوه او ركاء دے. د، مناص معني دي: چه ذ تيښتے وخت پاتے نه شو.

**باب ۱۸۰ : النُّزُوْلِ بَيْنَ عَرَفَةَ وَ جَمْعٍ.**

**باب ۱۸۰ :** د، عرفے او مزدلفے مينځ كښې د كوزيدو بيان[۱].

۲۶۵ : حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ قَالَ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ عَنْ مُوسَى بْنِ عُقْبَةَ عَنْ كُرَيْبٍ مَوْلَى ابْنِ عَبَّاسٍ عَنْ اُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَيْثُ اَفَاضَ مِنْ عَرَفَةَ مَالَ اِلَى الشِّعْبِ فَقَضٰى حَاجَتَهٗ فَتَوَضَّاَ فَقُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَتُصَلِّيْ فَقَالَ الصَّلٰوةُ اَمَامَكَ.

۲۶۵ : مسدد. حماد بن زيد. يحيي بن سعيد. موسي بن عقبه. كريب (د، ابن عباس رضي الله عنه آزاد كرده غلام) اسامه بن زيد رضي الله عنه نه روايت كوي، چه نبي صلي الله عليه وسلّم د، عرفے نه واپس شو، نو غابښي طرف ته متوجه شو. او ذ خپل ضرورت نه فارغ شو. بيائے اودس اوكه، نو ما عرض اوكه، يا رسول الله، آيا تاسو به مونځ كوئے. حضور صلي الله عليه وسلّم او فرمائيل، لا مونځ ستا وړاندے دے.

۱. د عرفات نه، مزدلفے طرفته د تللو په وخت د قضائے حاجت د پاره اودريدو، ايساريدلو كښې څه

گناه نشته د حج د عباداتو سره د دے تعلق نشته. دا د انسان طبعي ضرورتونه دي.

۲۶۶: حَدَّثَنَا مُوسَى ابْنُ اِسْمٰعِيْلَ قَالَ حَدَّثَنَا جُوَيْرِيَةُ عَنْ نَافِعٍ قَالَ كَانَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا يَجْمَعُ بَيْنَ الْمَغْرِبِ وَالْعِشَاءِ بِجَمْعٍ غَيْرَ اَنَّهُ يَمُرُّ بِالشِّعْبِ الَّذِيْ اَخَذَهُ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَيَدْخُلُ فَيَنْتَفِضُ وَ يَتَوَضَّأُ وَلَا يُصَلِّيْ حَتّٰى يُصَلِّيَ بِجَمْعٍ.

۲۶۶: موسی بن اسمٰعیل. جویریه. نافع. د عبدالله بن عمر رضي الله عنه متعلق روایت کوي، هغه به مزدلفه کښ د ماښام او ماسختن مونځ یو ځائے کولو، خو دا چه هغے غاښي طرف ته به کوز شولو، کوم طرف ته چه به رسول الله صلي الله علیه وسلم متوجه کیدلو. هلته به ذ ضرورت نه فارغ شو، او اودس به ئے کولو. خو مونځ به ئے نه کولو، تر دے چه مزدلفے کښ به ئے مونځ کولو.

۲۶۷: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ قَالَ حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ بْنُ جَعْفَرٍ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ اَبِيْ حَرْمَلَةَ عَنْ كُرَيْبٍ مَوْلَى ابْنِ عَبَّاسٍ عَنْ اُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا اَنَّهُ قَالَ رَدِفْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ عَرَفَاتٍ فَلَمَّا بَلَغَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الشِّعْبَ الْاَيْسَرَ الَّذِيْ دُوْنَ الْمُزْدَلِفَةِ اَنَاخَ فَبَالَ ثُمَّ جَاءَ فَصَبَبْتُ عَلَيْهِ الْوَضُوْءَ تَوَضَّأَ وُضُوْءً خَفِيْفًا فَقُلْتُ الصَّلٰوةَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ الصَّلٰوةُ اَمَامَكَ فَرَكِبَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتّٰى اَتَى الْمُزْدَلِفَةَ فَصَلّٰى ثُمَّ رَدِفَ الْفَضْلُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غَدَاةَ جَمْعٍ قَالَ كُرَيْبٌ

۲۶۷: قتیبه. اسمٰعیل بن جعفر. محمد بن ابي حرمله. کریب (د ابن عباسؓ آزاد کړده غلام) اسامه بن زیدؓ نه روایت کوي، ذ هغه بیان دے زه د عرفات نه رسول الله صلي الله علیه وسلم سره په سورلۍ کیناستم، کوم وخت چه رسول الله صلي الله علیه وسلم کس غاښي ته اورسیدلو، چه د مزدلفے نه لاندے دے، نو حضور صلي الله علیه وسلم سورلۍ کینوله. او استنجا ئے اوکړله. بیا راغلو، نو ما حضور صلي الله علیه وسلم ته اودس ذ پاره اوبه واچولے. حضور صلي الله علیه وسلم خفیف شان اودس اوکه. ما عرض اوکه، آیا مونځ به کوئے، یا رسول الله، حضور صلي الله علیه وسلم او فرمائیل، مونځ به وړاندے کوم. بیا رسول الله صلي الله علیه وسلم سور شولو، تر دے چه مزدلفے ته راغلو. حضور صلي الله علیه وسلم مونځ اوکړلو. بیا ذ مزدلفے په سحر رسول الله صلي الله علیه

فَاَخْبَرَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا عَنِ الْفَضْلِ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمْ يَزَلْ يُلَبِّيْ حَتّٰى بَلَغَ الْجَمْرَةَ.

وسلم سره فضلؓ سور شولو. دَ كريب بيان دے مانه د عبدالله بن عباسؓ په واسطه فضلؓ اووے، چه رسول الله صلي الله عليه وسلم به برابر لبيک وئيلے، تردے چه جمره عقبه ته اورسيدلو.

## بَاب ۱۸۱ : اَمْرِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالسَّكِيْنَةِ عِنْدَ الْاِفَاضَةِ وَ اِشَارَتِهٖ اِلَيْهِمْ بِالسَّوْطِ.

## باب ۱۸۱ : عرفے نه د واپسي په وخت د نبي صلے الله عليه وسلم اطمينان سره د تلو حكم وركول او خلقو طرف ته كوړے سره د اشارے كولو بيان.

۲۶۸ : حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ اَبِيْ مَرْيَمَ قَالَ حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ ابْنُ سُوَيْدٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ عَمْرُوبْنُ اَبِيْ عَمْرٍ مَوْلَى الْمُطَّلِبِ قَالَ اَخْبَرَنِيْ سَعِيْدُ بْنُ جُبَيْرٍ مَوْلٰى وَالِبَةَ الْكُوْفِيُّ قَالَ حَدَّثَنِيْ ابْنُ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا اَنَّهٗ دَفَعَ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ اٰلِهٖ وَسَلَّمَ يَوْمَ عَرَفَةَ فَسَمِعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَرَآءَهٗ زَجْرًا شَدِيْدًا وَّ ضَرْبًا لِّلْاِبِلِ فَاَشَارَ بِسَوْطِهٖ اِلَيْهِمْ وَ قَالَ اَيُّهَا النَّاسُ عَلَيْكُمْ بِالسَّكِيْنَةِ فَاِنَّ الْبِرَّ لَيْسَ بِالْاِيْضَاعِ اَوْضَعُوْا اَسْرَعُوْا خِلَالَكُمْ مِنَ التَّخَلُّلِ بَيْنَكُمْ وَ فَجَّرْنَا خِلٰلَهُمَا بَيْنَهُمَا.

۲۶۸ : سعيد بن ابي مريم. ابراهيم بن سويد. عمر بن ابي عمرو (د والبته كوفي غلام) ابن عباسؓ نه روايت كوي، دَ هغه بيان دے، چه هغه د عرفے په ورځ، دَ نبي صلي الله عليه وسلم سره واپس شولو. نبي صلي الله عليه وسلم خپل ورستو د ډير شور، او د اوښانو د وهلو آواز واوريدلو، نو حضور صلے الله عليه وسلم هغوي طرف ته خپلے كوړے سره اشاره اوكړله، اووے فرمائيل، اے خلقو، تاسو اطمينان اختيار كړئے، ځكه چه د اوښانو زغلول ځكه نيكي نه ده، اوضعوا، معني ده، اسرعوا، يعني تيز، ئے اوزغلول. خلالكم تخلل بينكم نه ماخوذ دے (يعني ستاسو مينځ كښ) فجرنا خللهما: مونږ دَدے دواړو مينځ كښ جاري كه.

## بَاب ۱۸۲ : اَلْجَمْعِ بَيْنَ الصَّلٰوتَيْنِ بِالْمُزْدَلِفَةِ.

## باب ۱۸۲ : مزدلفه كښ دَ دوو مونځونو د جمع (يوځائے) كولو بيان.

۲۶۹ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ قَالَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ مُّوْسَى بْنِ عُقْبَةَ عَنْ كُرَيْبٍ عَنْ اُسَامَةَ بْنِ

۲۶۹ : عبدالله بن يوسف. مالک. موسي بن عقبه. كريب. اُسامه بن زيدؓ نه روايت كوي، چه رسول الله صلي الله عليه وسلم د عرفے نه واپس شولو، نو

زَيْدٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا اَنَّهُ سَمِعَهُ يَقُوْلُ دَفَعَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ عَرَفَةَ فَنَزَلَ الشِّعْبَ فَبَالَ ثُمَّ تَوَضَّأَ وَلَمْ يُسْبِغِ الْوُضُوْٓءَ فَقُلْتُ لَهُ الصَّلٰوةَ فَقَالَ الصَّلٰوةُ اَمَامَكَ فَجَآءَ الْمُزْدَلِفَةَ فَتَوَضَّاءَ فَاَسْبَغَ ثُمَّ اُقِيْمَتِ الصَّلٰوةُ فَصَلَّى الْمَغْرِبَ ثُمَّ اَنَاخَ كُلُّ اِنْسَانٍ بَعِيْرَهٗ فِيْ مَنْزِلِهٖ ثُمَّ اُقِيْمَتِ الصَّلٰوةُ فَصَلّٰى وَلَمْ يُصَلِّ بَيْنَهُمَا.

غاښي کښې کوز شولو، او استنجائې اوکړله. بیائې اودس اوکړلو. لیکن خفیف اودس ئې اوکړلو، ما حضور صلي اللّٰه علیه وسلم ته عرض اوکړلو، مونځ، نو حضور صلي اللّٰه علیه وسلم او فرمائیل، زه به مونځ مخکښې کوم، کوم وخت چه حضور صلي اللّٰه علیه وسلم مزدلفې ته اورسیدلو. نو، اودس ئې اوکړلو، او پوره طور سره ئې اودس اوکړلو. بیا د مونځ تکبیر اوشولو، نو حضور صلي اللّٰه علیه وسلم مونځ اوکړلو. خو، ددې دواړو مونځونو مینځ کښې ئې بل مونځ اونه کړلو.

## بَاب ۱۸۳ : مَنْ جَمَعَ بَيْنَهُمَا وَلَمْ يَتَطَوَّعْ.

## باب ۱۸۳ : دَ هغې سړي بیان چه دا، دواړه مونځونه جمع (یوځائې) کړي، او نفل اونه کړي.

۲۷۰ : حَدَّثَنَا اٰدَمُ قَالَ حَدَّثَنَا ابْنُ اَبِيْ ذِئْبٍ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ سَالِمِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ جَمَعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَ الْمَغْرِبِ وَالْعِشَآءِ بِجَمْعٍ كُلَّ وَاحِدَةٍ مِّنْهُمَا بِاِقَامَةٍ وَّلَمْ يُسَبِّحْ بَيْنَهُمَا وَلَا عَلٰى اِثْرِ كُلِّ وَاحِدَةٍ مِنْهُمَا.

۲۷۰ : آدم. ابن ابي ذئب. زهري. سالم بن عبداللّٰه. ابن عمرؓ نه روایت کوي، چه نبي صلي اللّٰه علیه وسلم مزدلفه کښې دَ ماښام او ماسختن مونځ یوځائې اوکړلو. هغې کښې ئې هر مونځ جُدا تکبیر سره اوکړلو، او د هغې دواړو مینځ کښې اونهٔ دَ هغې نه پس ئې څه نفل مونځ اوکه.

۲۷۱ : حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ مَخْلَدٍ قَالَ حَدَّثَنَا سُلَيْمٰنُ بْنُ بِلَالٍ قَالَ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ اَبِيْ سَعِيْدٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عَدِيُّ بْنُ ثَابِتٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يَزِيْدَ الْخَطْمِيُّ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبُوْ اَيُّوْبَ الْاَنْصَارِيُّ اَنَّ

۲۷۱ : خالد بن مخلد. سلیمان بن بلال یحیٰی بن ابي سعید. عدي بن ثابت. عبداللّٰه بن یزید خطمي. ابو ایوب انصاري نه روایت کوي دَ هغه بیان دې، چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلم دَ حجة الوداع په

رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَمَعَ فِيْ حَجَّةِ الْوَدَاعِ الْمَغْرِبَ وَالْعِشَاءَ بِالْمُزْدَلِفَةِ.

موقع په مزدلفه کښې د ماښام او ماسختن مونځ یوځائے اوکړلو.

## باب ۱۸۴ : مَنْ اَذَّنَ وَ اَقَامَ لِكُلِّ وَاحِدَةٍ مِّنْهُمَا.

## باب ۱۸۴ : ‌ دَ هغے سړي بیان چه دے دواړو مونځونو کښې د' هر یو دَ پاره اذان او اقامت اوکړي.

۲۷۲ : حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ خَالِدٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ زُهَيْرٌ قَالَ حَدَّثَنَا اَبُوْ اِسْحٰقَ قَالَ سَمِعْتُ عَبْدَ الرَّحْمٰنِ بْنَ يَزِيْدَ يَقُوْلُ حَجَّ عَبْدُ اللّٰهِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ فَاَتَيْنَا الْمُزْدَلِفَةَ حِيْنَ الْاَذَانِ بِالْعَتَمَةِ اَوْ قَرِيْبًا مِّنْ ذَالِكَ فَاَمَرَ رَجُلًا فَاَذَّنَ وَ اَقَامَ ثُمَّ صَلَّى الْمَغْرِبَ وَ صَلّٰى بَعْدَهَا رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ دَعَا بِعَشَائِهٖ فَتَعَشّٰى ثُمَّ اَمَرَ اُرٰى رَجُلًا فَاَذَّنَ وَ اَقَامَ قَالَ عَمْرٌو وَلَا اَعْلَمُ الشَّكَّ اِلَّا مِنْ زُهَيْرٍ ثُمَّ صَلَّى الْعِشَاءَ رَكْعَتَيْنِ فَلَمَّا طَلَعَ الْفَجْرُ قَالَ اِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ لَا يُصَلِّيْ هٰذِهِ السَّاعَةَ اِلَّا هٰذِهِ الصَّلٰوةَ فِيْ هٰذَا الْمَكَانِ مِنْ هٰذَا الْيَوْمِ قَالَ عَبْدُ اللّٰهِ هُمَا صَلٰوتَانِ تَحَوَّلَانِ عَنْ وَّقْتِهِمَا صَلٰوةُ الْمَغْرِبِ بَعْدَ مَا يَاْتِي النَّاسُ الْمُزْدَلِفَةَ وَالْفَجْرُ حِيْنَ يَبْزُغُ الْفَجْرُ قَالَ رَاَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَفْعَلُهٗ.

۲۷۲ : عمرو بن خالد. زهیر. ابو اسحٰق. عبدالرحمٰن بن یزید بن روایت کوي' چه عبدالله (بن مسعودؓ) حج اوکه' نو موږ خلق دَ ماسختن د' اذان په وخت یا' دَ دے قریب مزدلفے ته اورسیدلو' هغه یو سړي ته حکم اوکه' نو هغه اذان اوکه' او تکبیر ئے اوکه. بیائے دَ ماښام مونځ اوکه. او هغے نه پس ئے دوه رکعاته اوکړل. بیائے دَ شپے ډوډئ راوغوښتله' او' وے خوړله. بیا ځما دے' چه د' اذان او اقامت کولو حکم ئے اوکه' نو اذان او اقامت اوشولو' او عمرو بیان اوکه. چه ماته شک صرف دَ زهیر نه معلوم شوے دے. بیا دَ ماسختن ئے دوه رکعاته اوکړلو. کوم وخت چه سحر راوختلو. نو وے وئیل' چه نبي صلي الله علیه وسلم دے ځائے کښے دَ نن ورځ نه سِوا' دے وخت هیڅ مونځ نه کولو. عبدالله او فرمائیل' چه دا' دواړه مونځونه دَ خپل وخت نه گرځولے شوے دي. دَ ماښام مونځ به ئے مزدلفے ته رسیدو سره او دَ سحر مونځ به ئے دَ سحر ختلو سره کولو. ما نبي صلي الله علیه وسلم په دغسے کولو لیدلے[1] دے.

[1] . د دینه مخکښې معلومه شویده. چه عرفات کښې د ماسپخین او د مازیګر مونځونه' په مزدلفه

کښې د ماښام ماسختن مونځونه په يو ځائے ادا کيږي په دے مسئله کښې د احنافو او د شوافعو اختلاف دے امام شافعي رحمة الله عليه وائي د عرفات او د مزدلفے دوو، دوو مونځونو د پاره دوه، دوه اذانونه، دوه دوه اقامتونه ضروري دي. دوه، دوه مونځونه په يو، يو وخت کيږي. ليکن پدے کښې په اذان او اقامت څه فرق نه پريوزي.

د امام ابو حنيفه رحمة الله عليه د مسلک مطابق، په عرفات کښې د ماسپخين د مازيګر مونځونونه د پاره يو اذان دوه اقامته دي ليکن مزدلفه کښې د ماښام ماسختن مونځونو د پاره يو اذان يو اقامت دے، پدے مسئله کښې د احنافو بنيادي دليل د حَجَّة الوَداع په موقعه باندے د رسول الله صلي الله عليه وسلم عمل دے د حجة الوداع په موقعه باندے ډيره لويه اجتماع وه. د امامتئ ګټر مونځونه شوے وو. ځکه په رواياتو کښې اختلاف راغے چه کوم حديث د چا په نزد زيات قوي وو په هغه ئے عمل اوکړو.

دا اختلاف سنت او غوره طريقه کښې دے نور د دواړو امامانو طريقه روا ده.

## بَاب ۱۸۵: مَنْ قَدَّمَ ضَعَفَةَ اَهْلِهِ بِلَيْلٍ فَيَقِفُوْنَ بِالْمُزْدَلِفَةِ وَ يَدْعُوْنَ وَ يُقَدِّمُ اِذَا غَابَ الْقَمَرُ.

## باب ۱۸۵: دَ هغے سړي بيان چه دَ خپل کور کمزوري دَ شپے اوليږي، چه مزدلفه کښې ايسار شي، او دُعا کوي، او کوم وخت چه سپوږمئ ډوبه شي، نوو لے ليږي.

۲۷۳: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ قَالَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ يُوْنُسَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ سَالِمٌ وَّ كَانَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا يُقَدِّمُ ضَعَفَةَ اَهْلِهٖ فَيَقِفُوْنَ عِنْدَ الْمَشْعَرِ الْحَرَامِ بِالْمُزْدَلِفَةِ بِلَيْلٍ فَيَذْكُرُوْنَ اللّٰهَ مَا بَدَالَهُمْ ثُمَّ يَرْجِعُوْنَ قَبْلَ اَنْ يَّقِفَ الْاِمَامُ وَ قَبْلَ اَنْ يَّدْفَعَ فَمِنْهُمْ مَّنْ يَّقْدَمُ مِنًى لِصَلٰوةِ الْفَجْرِ وَ مِنْهُمْ مَّنْ يَّقْدَمُ بَعْدَ ذَالِكَ فَاِذَا قَدِمُوْا رَمَوُا الْجَمْرَةَ وَ كَانَ ابْنُ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا يَقُوْلُ اَرْخَصَ فِيْ اُولٰٓئِكَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۲۷۳: يحيٰي بن بکير. ليث. يونس. ابن شهاب. سالم بيان اوکه، چه عبدالله بن عمرؓ به دَ خپل خاندان کمزوري خلق ليږل، نو هغوي به مشعر حرام سره مزدلفه کښې د شپے پاتے کيدل، او ذکر الٰهي به ئے کولو، څومره چه به ئے زړهٔ غوښتلو. بيا به د، امام د، ايساريدو او واپس کيدونه مخکښې هغه خلق واپس کيدل. بعضے خو، به د سحر د مونځ په وخت منٰي ته رسيدل، او بعضے به دَ هغے نه پس راتلل، دغه خلق چه به منٰي ته راورسيدل، نو په جمره عقبه به ئے رَمي کوله. او ابن عمرؓ به فرمائيل، چه رسول الله صلي الله عليه وسلم دے خلقو د پاره اجازت ورکړے دے[1].

ف: رمي: کتکي ويشتل. شيطانان په کنکرو يا کاڼړو ويشتل.

۲. مزدلفه كښې شپه تيرول واجب دي. ليكن كه څوک د عذر په وجه ټوله شپه تيره نه كړي د شپې په څه حصه كښې منى ته لاړ شي نو معاف كيږي نو د دې په وجه څه كفّاره يا قرباني نه واجبيږي. امام بخاري رحمة الله عليه دې موقعه باندې يوه بله مسئله ذكر كوي. كه چرې كوم بنده په مزدلفه كښې د خپل وخت (د صبا مونځ پسې) نه وړاندې د شپې وقوف (اودريږي د دعا د پاره) او كړي د هغه د پاره څه حكم دې؟ مرفوع احاديثو (چه پكښې د رسول الله صلي الله عليه وسلم حكم يا عمل بيان وي) كښې داسې حكم نشته. د عبدالله بن عمر رضي الله عنهما عمل چه پدې حديث شريف كښې دا د هغه خپل اجتهاد دې. باقي پاتې شوه دا مسئله' چه د شپې څوک منى ته اورسي (د لوئې اختر پشپه) نو د شپې به جمرې په كانړو اولي. د امام شافعي رحمة الله عليه مسلک دا دې چه د نيمې شپې نه پس ويشتلې شي. ليكن د احنافو په نزد د صبا د ختونه وړاندې نشي ويشتې. څكه چه ابن عباس رضي الله عنهما ته رسول الله صلي الله عليه وسلم حكم وركړې وو. چه د شپې جمرې مه اولئې پدې سلسله كښې نور آثار (د صحابهٔ كرامو اقوال) شته دې چه هغه د احنافو د مسلک تاييد كوي.

۲۷۴: حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ قَالَ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ أَيُّوبَ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قَالَ بَعَثَنِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ جَمْعٍ بِلَيْلٍ.

۲۷۴: سليمان بن حرب. حماد بن زيد. ايوب. عكرمه. ابن عباس رضي الله عنه نه روايت كوي. د' ابن عباس رضي الله عنه بيان دې' چه زه رسول الله صلي الله عليه وسلم دَ مزدلفې نه دَ شپې اوليږلم.

۲۷۵: حَدَّثَنَا عَلِيٌّ قَالَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ أَخْبَرَنِي عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ أَبِي يَزِيدَ سَمِعَ ابْنَ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا يَقُولُ أَنَا مِمَّنْ قَدَّمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيْلَةَ الْمُزْدَلِفَةِ فِي ضَعَفَةِ أَهْلِهِ.

۲۷۵: علي. سفيان. عبيدالله بن ابي يزيد دَ حضرت ابن عباس رضي الله عنه نه واوريدل' زه دَ هغې خلقو نه ووم' چه هغوي نبي صلي الله عليه وسلم د مزدلفې په شپه كښې دَ خپل كور والو دَ كمزورو خلقو سره مخكښې اوليږلم.

۲۷۶: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ عَنْ يَحْيَى عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ قَالَ حَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ مَوْلَى أَسْمَاءَ عَنْ أَسْمَاءَ أَنَّهَا نَزَلَتْ لَيْلَةَ جَمْعٍ عِنْدَ الْمُزْدَلِفَةِ فَقَامَتْ تُصَلِّي فَصَلَّتْ سَاعَةً ثُمَّ

۲۷۶: مسدد. يحيى. ابن جريج. عبدالله (د اسماء غلام) اسماء نه روايت كوي' چه هغه دَ مزدلفې په شپه كښې هلته كوزه شوه' اودريده او مونځ ئې شروع كه' نو يو څه پورې ئې مونځ اوكه. بيائې اووې' اې خويه' آيا سپوږمۍ ډوبه شوه. ما اووې نه' بيائې يو څه

قَالَتْ يَا بُنَيَّ هَلْ غَابَ الْقَمَرُ قُلْتُ لَا فَصَلَّتْ سَاعَةً ثُمَّ قَالَتْ يَا بُنَيَّ هَلْ غَابَ الْقَمَرُ قُلْتُ نَعَمْ قَالَتْ فَارْتَحِلُوْا فَارْتَحَلْنَا وَمَضَيْنَا حَتّٰى رَمَتِ الْجَمْرَةَ ثُمَّ رَجَعَتْ فَصَلَّتِ الصُّبْحَ فِيْ مَنْزِلِهَا فَقُلْتُ لَهَا يَا هَنْتَاهُ مَا أُرَانَا إِلَّا قَدْ غَلَّسْنَا قَالَتْ يَا بُنَيَّ إِنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَذِنَ لِلظُّعُنِ.

پورے مونځ اوکه. بیائے اووے، آیا سپوږمۍ ډوبه شوه، ما ورته اووے، او، نو هغے اووے، کوچ کوئے، مونږ خلقو کوچ اوکړلو، او روان وو، تر دے چه هغے کانړي اوویشتل. بیا واپس شوله. او ذ سحر مونځ ئے ذ خپل ایساریدو ځائے کښې اوکړلو. ذ عبدالله بیان دے، ما اووے، خما خیال دے، چه مونږ تیاره کښې مونځ اوکه. نو هغے اووے. اے خویه، رسول الله صلي الله عليه وسلم ښځو ته ذ دے اجازت ورکړے دے.

۲۷۷: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيْرٍ قَالَ أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمٰنِ هُوَ ابْنُ الْقٰسِمِ عَنْ عَآئِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتِ اسْتَأْذَنَتْ سَوْدَةُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيْلَةَ جَمْعٍ وَّ كَانَتْ ثَقِيْلَةً ثَبِطَةً فَأَذِنَ لَهَا.

۲۷۷: محمد بن كثير. سفيان. عبدالرحمٰن بن قاسم. قاسم بن محمد. بي بي عائشےؓ نه روایت کوي، بي بي سودهؓ د، مزدلفے په شپه د، روانګي ذ نبي صلي الله عليه وسلم نه اجازت اوغوښتلو، هغه د، دروند بدن میرمن وه، نو حضور صلي الله عليه وسلم اجازت ورکړلو.

۲۷۸: حَدَّثَنَا أَبُوْ نُعَيْمٍ قَالَ حَدَّثَنَا أَفْلَحُ بْنُ حُمَيْدٍ عَنِ الْقٰسِمِ بْنِ مُحَمَّدٍ عَنْ عَآئِشَةَ أَنَّهَا قَالَتْ نَزَلْنَا الْمُزْدَلِفَةَ فَاسْتَأْذَنَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَوْدَةُ أَنْ تَدْفَعَ قَبْلَ حَطْمَةِ النَّاسِ وَ كَانَتِ امْرَأَةً بَطِيْئَةً فَأَذِنَ لَهَا فَدَفَعَتْ قَبْلَ حَطْمَةِ النَّاسِ وَ أَقَمْنَا حَتّٰى أَصْبَحْنَا نَحْنُ ثُمَّ دَفَعْنَا بِدَفْعِهِ فَلَأَنْ أَكُوْنَ اسْتَأْذَنْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَمَا اسْتَأْذَنَتْ سَوْدَةُ أَحَبُّ إِلَيَّ مِنْ مَفْرُوْحٍ بِهٖ.

۲۷۸: ابونعيم. افلح بن حميد. قاسم بن محمد. بي بي عائشےؓ نه روایت کوي، هغے اووے، مونږ خلق مزدلفه کښې کوز شولو، نو بي بي سودهؓ ذ نبي صلي الله عليه وسلم نه د خلقو د، روانګئ نه مخکښې ذ تلو اجازت اوغوښتلو، او هغه سُست رفتاره بي بي وه، نو حضور صلي الله عليه وسلم اجازت ورکړلو. هغه ذ خلقو ګڼړے ګونړے نه مخکښې روانه شوه. او مونږ خلق ایسار وو، تردے چه صبا شولو، بیا مونږ خلق حضور صلي الله عليه وسلم سره واپس شو، که ما هم ذ حضورؐ نه اجازت غوښتلے وے، ځنګه چه بي بي سودهؓ غوښتلے وو، نو ما ذ پاره به د، ډیرے خوشحالي خبره وے.

## باب۱۸۶ : مَنْ يُصَلِّي الْفَجْرَ بِجَمْعٍ.

۲۷۹ : حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصِ بْنِ غِيَاثٍ قَالَ حَدَّثَنَا أَبِي قَالَ حَدَّثَنَا الْأَعْمَشُ قَالَ حَدَّثَنِي عُمَارَةُ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ عَبْدِ اللهِ قَالَ مَا رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَّى صَلٰوةً بِغَيْرِ مِيْقَاتِهَا إِلَّا صَلٰوتَيْنِ جَمَعَ بَيْنَ الْمَغْرِبِ وَالْعِشَاءِ وَ صَلَّى الْفَجْرَ قَبْلَ مِيْقَاتِهَا.

۲۸۰ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ رَجَاءٍ قَالَ حَدَّثَنَا إِسْرَآءِيْلُ عَنْ أَبِيْ إِسْحَاقَ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ يَزِيْدَ قَالَ خَرَجْنَا مَعَ عَبْدِ اللهِ إِلٰى مَكَّةَ ثُمَّ قَدِمْنَا جَمْعًا فَصَلَّى الصَّلٰوتَيْنِ كُلَّ صَلٰوةٍ وَّحْدَهَا بِأَذَانٍ وَّ إِقَامَةٍ وَّالْعِشَآءُ بَيْنَهُمَا ثُمَّ صَلَّى الْفَجْرَ حِيْنَ طَلَعَ الْفَجْرُ قَائِلٌ يَّقُوْلُ طَلَعَ الْفَجْرُ وَ قَائِلٌ يَقُوْلُ لَمْ يَطْلُعِ الْفَجْرُ ثُمَّ قَالَ إِنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّ هَاتَيْنِ الصَّلٰوتَيْنِ حُوِّلَتَا عَنْ وَّقْتِهِمَا فِيْ هٰذَا الْمَكَانِ الْمَغْرِبَ وَالْعِشَآءَ فَلَا يَقْدَمُ النَّاسُ جَمْعًا حَتّٰى يُعْتِمُوْا وَ صَلٰوةَ الْفَجْرِ هٰذِهِ السَّاعَةَ ثُمَّ وَقَفَ حَتّٰى أَسْفَرَ ثُمَّ قَالَ لَوْ أَنَّ أَمِيْرَ الْمُؤْمِنِيْنَ أَفَاضَ الْآنَ أَصَابَ

## باب۱۸۶ : دَ هغې سړي بيان چه مزدلفه کښې د سحر مونځ اوکړي.

۲۷۹ : عمرو بن حفص بن غياث، حفص بن غياث. اعمش. عماره. عبدالرحمٰن. عبدالله (بن مسعود) نه روايت کوي، هغه اووې، ما رسول الله صلي الله عليه وسلم هيڅ مونځ بې وخته کولو باندې نه دې ليدلې، بغير د، دوو مونځونو نه چه دَ ماښام او ماسختن مونځ ئې يوځائې اوکړلو. او د سحر مونځ ئې دَ هغې د وخت نه مخکښې اوکړلو.

۲۸۰ : عبدالله بن رجاء. اسرائيل ابو اسحاق. عبدالرحمٰن بن يزيد نه روايت کوي، دَ هغه بيان دې، چه مونږ خلق عبدالله (بن مسعود) سره مکې طرف ته روان شو. بيا مونږ مزدلفې ته راغلو، نو هغوي دوه مونځونه اوکړل، هر يو مونځ ئې جدا جدا آذان او اقامت سره اوکړلو. او ددې دواړو مونځونو مينځ کښې ئې طعام اوخوړلو. بيائې دَ سحر مونځ اوکړلو. دَ سحر ختلو په وخت کښې، هغې حال کښې، چه چا به وې، صبا شوې دې، او چا به وئيلې، نه دې صبا شې. بيائې اووې، رسول الله صلي الله عليه وسلم او فرمائيل، په دې ځائې دَ ماښام او ماسختن دوه مونځونه دَ خپل وخت نه اخوا کړې شوي دي، په دې وجه خلق دې مزدلفې ته نه راځي، خو پورې چه تياره نشي. او دَ سحر د مونځ دا، وخت دې. بيا ايسار وو، ترڅو چه ښه رنړا شوله (صباؤن رونړ شولو). بيائې اووې، که امير المؤمنين دې وخت کښې واپس شو، نو هغه دَ سنت مطابق اوکړل. بيا

السُّنَّةَ فَمَا اَدْرِیُ اَقَوْلُهٗ کَانَ اَسْرَعَ اَمْ دَفْعُ عُثْمَانَ رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ فَلَمْ یَزَلْ یُلَبِّیُ حَتّٰی رَمٰی جَمْرَةَ الْعَقَبَةِ یَوْمَ النَّحْرِ.

زه نه پوهیږم، چه د هغه دا، وینا وړمبنے اوشوه، یا د حضرت عثمانؓ واپسي وړمبنے اوشوه، هغه برابر لبیک وئیلے، تردے چه یوم نحر کښې ئے رَمي جمره اوکړله.

باب۱۸۷ : مَتٰی یَدْفَعُ مِنْ جَمْعٍ.

باب۱۸۷ : دَ مزدلفے نه به کله واپس کیږي.

۲۸۱ : حَدَّثَنَا حَجَّاجُ بْنُ مِنْهَالٍ قَالَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ اَبِیُ اِسْحٰقَ سَمِعْتُ عَمْرَو بْنَ مَیْمُوْنٍ یَقُوْلُ شَهِدْتُ عُمَرَ رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ صَلّٰی بِجَمْعٍ الصُّبْحَ ثُمَّ وَقَفَ فَقَالَ اِنَّ الْمُشْرِکِیْنَ کَانُوْا لَا یُفِیْضُوْنَ حَتّٰی تَطْلُعَ الشَّمْسُ وَ یَقُوْلُوْنَ اَشْرِقْ ثَبِیْرُ وَ اِنَّ النَّبِیَّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ خَالَفَهُمْ ثُمَّ اَفَاضَ قَبْلَ اَنْ تَطْلُعَ الشَّمْسُ.

۲۸۱ : حجاج بن منهال. شعبه. ابو اسحق. عمرو بن میمون بیان کوي، چه زه حضرت عمرؓ سره موجود ووم هغه مزدلفه کښې دَ سحر مونځ اوکړلو. بیا ایسار وو. او، وے فرمائیل، مشرکین به دَ نمر ختلو پورے نه واپس کیدل، او وئیل به ئے. اے ثبیر، او پړقیږه، او نبي صلی اللّٰه علیه وسلم دَ دے مشرکینو مخالفت اوکه. بیا دَ نمر ختلو نه مخکښې واپس شولو.

باب۱۸۸ : اَلتَّلْبِیَةِ وَ التَّکْبِیْرِ غَدَاةَ النَّحْرِ حِیْنَ یَرْمِی الْجَمْرَةَ وَالْاِرْتِدَافِ فِی السَّیْرِ.

باب۱۸۸ : دَ یوم نحر په صبا، دَ رَمي جمره په وخت دَ تلبیه او تکبیر بیان او په لاره تلو کښې ورستو خوک ځان پسے دَ سوررولو بیان.

۲۸۲ : حَدَّثَنَا اَبُوْ عَاصِمٍ الضَّحَّاكُ بْنُ مَخْلَدٍ قَالَ اَخْبَرَنَا ابْنُ جُرَیْجٍ عَنْ عَطَآءٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُمَا اَنَّ النَّبِیَّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ اَرْدَفَ الْفَضْلَ فَاَخْبَرَ الْفَضْلُ اَنَّهٗ لَمْ یَزَلْ یُلَبِّیْ حَتّٰی رَمَی الْجَمْرَةَ.

۲۸۲ : ابو عاصم ضحاک بن مخلد. ابن جریج. ابن عباسؓ نه روایت کوي، چه نبي صلي اللّٰه علیه وسلم، فضل (بن عباسؓ) ځان پسے ورستو سور کړے وو، نو فضلؓ بیان اوکه، چه حضور صلي اللّٰه علیه وسلم برابر لبیک وئیلو، تردے چه رَمي جمره ئے اوکړله.

۲۸۳: حَدَّثَنَا زُهَيْرُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا وَهْبُ بْنُ جَرِيْرٍ قَالَ حَدَّثَنَا اَبِيْ عَنْ يُوْنُسَ الْاَيْلِيِّ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍؓ اَنَّ اُسَامَةَ بْنَ زَيْدٍ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا كَانَ رِدْفَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ عَرَفَةَ اِلَى الْمُزْدَلِفَةِ ثُمَّ اَرْدَفَ الْفَضْلَ مِنَ الْمُزْدَلِفَةِ اِلٰى مِنًى قَالَ فَكِلَاهُمَا قَالَ لَمْ يَزَلِ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُلَبِّيْ حَتّٰى رَمٰى جَمْرَةَ الْعَقَبَةِ.

۲۸۳: زهير بن حرب. وهب بن جرير يونس ايلي. زهري. عبيدالله بن عبدالله. حضرت ابن عباسؓ نه روايت كوي، چه اُسامه بن زيد د، عرفې نه مزدلفې پورې نبي صلی الله عليه وسلم پسې سور وو. بيا مزدلفې نه منٰي پورې حضور صلی الله عليه وسلم، فضل بن عباسؓ ځان پسې سور كړلو. د، دواړو بيان دې، چه نبي صلی الله عليه وسلم د، جمره عقبه رَمي كولو پورې لبيک وئيلو.

باب ۱۸۹: فَمَنْ تَمَتَّعَ بِالْعُمْرَةِ اِلَى الْحَجِّ فَمَا اسْتَيْسَرَ مِنَ الْهَدْيِ فَمَنْ لَّمْ يَجِدْ فَصِيَامُ ثَلٰثَةِ اَيَّامٍ فِي الْحَجِّ وَ سَبْعَةٍ اِذَا رَجَعْتُمْ تِلْكَ عَشَرَةٌ كَامِلَةٌ ذٰلِكَ لِمَنْ لَّمْ يَكُنْ اَهْلُهٗ حَاضِرِي الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ.

باب ۱۸۹: دَ الله تعالٰي قول، چه څوک عمرې سره حج يو ځائې كړي او تمتع اوكړي، نو هغه ته چه څه قرباني په لاس ورشي، هغه دې اوكړي، او چا ته چه حاصله نشي، نو دَ حج ورځو كښې دې درې ورځې اونيسي، او نورې اوه ورځې هغه وخت چه تاسو واپس شئې، دا پوره لس ورځې شوې، دا هغې چا دَ پاره دي، چه مسجد حرام سره نه اوسيږي.

۲۸۴: حَدَّثَنِيْ اِسْحٰقُ بْنُ مَنْصُوْرٍ اَخْبَرَنَا النَّضْرُ بْنُ شُمَيْلٍ قَالَ اَخْبَرَنَا شُعْبَةُ قَالَ اَخْبَرَنَا اَبُوْ جَمْرَةَ قَالَ سَاَلْتُ ابْنَ عَبَّاسٍ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا عَنِ الْمُتْعَةِ فَاَمَرَنِيْ بِهَا وَ سَاَلْتُهٗ عَنِ الْهَدْيِ فَقَالَ فِيْهَا جَزُوْرٌ اَوْ بَقَرَةٌ اَوْ شَاةٌ اَوْ شِرْكٌ فِيْ دَمٍ قَالَ وَ كَاَنَّ نَاسًا كَرِهُوْهَا فَنِمْتُ فَرَاَيْتُ فِيْ

۲۸۴: اسحٰق بن منصور. نضر. شعبه. ابوجمره بيان كوي، چه ما د، ابن عباسؓ نه دَ متعه (حج تمتع) متعلق تپوس اوكه، نو هغه ما ته دَ دې د كولو حكم اوكه، او ما د هغه نه د، هدي متعلق تپوس اوكه، نو وې وئيل. دې كښې يو اوبن يا غوا، يا چيلئ ده. يا قربانئ كښې شريكيدل دي. او خلقو دا مكروه گنړلې دي،

الْمَنَامِ كَأَنَّ اِنْسَانًا يُنَادِيْ حَجٌّ مَبْرُوْرٌ وَّ مُتْعَةٌ مُتَقَبَّلَةٌ فَأَتَيْتُ ابْنَ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا فَحَدَّثْتُهُ فَقَالَ اللّٰهُ اَكْبَرُ سُنَّةُ اَبِي الْقَاسِمِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ فَقَالَ اٰدَمُ وَ وَهْبُ بْنُ جَرِيْرٍ وَ غُنْدُرٌ عَنْ شُعْبَةَ عُمْرَةٌ مُتَقَبَّلَةٌ وَ حَجٌّ مَبْرُوْرٌ.

نو ما خوب کښې اوليدل' چه يو سړے اعلان کوي' حج قبول دے. متعه قبوله ده. زه حضرت ابن عباسؓ له راغلم' ما هغه ته دا بيان اوکه' نو هغه اووے' اللّٰه اکبر' دا خو' د ابو القاسم صلى اللّٰه عليه وسلم سُنّت دي آدم او وهب بن جرير او غندر د شعبه نه نقل اوکه' عمره قبوله ده او حج قبول دے.

باب ١٩٠ : رُكُوبِ الْبُدْنِ

باب ١٩٠ : دَ قربانۍ په ښناور' د' سورلۍ بيان'

لِقَوْلِهٖ وَالْبُدْنَ جَعَلْنٰهَا لَكُمْ مِّنْ شَعَآئِرِ اللّٰهِ لَكُمْ فِيْهَا خَيْرٌ فَاذْكُرُوا اسْمَ اللّٰهِ عَلَيْهَا صَوَآفَّ فَاِذَا وَجَبَتْ جُنُوْبُهَا فَكُلُوْا مِنْهَا وَ اَطْعِمُوا الْقَانِعَ وَالْمُعْتَرَّ كَذٰلِكَ سَخَّرْنٰهَا لَكُمْ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ ۝ لَنْ يَّنَالَ اللّٰهَ لُحُوْمُهَا وَلَا دِمَآؤُهَا وَلٰكِنْ يَّنَالُهُ التَّقْوٰى مِنْكُمْ كَذٰلِكَ سَخَّرَهَا لَكُمْ لِتُكَبِّرُوا اللّٰهَ عَلٰى مَا هَدٰىكُمْ وَ بَشِّرِ الْمُحْسِنِيْنَ ۝ قَالَ مُجَاهِدٌ سُمِّيَتِ الْبُدْنُ لِبُدْنِهَا وَالْقَانِعُ السَّآئِلُ وَالْمُعْتَرُّ الَّذِيْ يَعْتَرُّ بِالْبُدْنِ مِنْ غَنِيٍّ اَوْ فَقِيْرٍ وَّ شَعَآئِرُ اللّٰهِ اسْتِعْظَامُ الْبُدْنِ وَاسْتِحْسَانُهَا وَالْعَتِيْقُ عِتْقُهٗ مِنَ الْجَبَابِرَةِ وَ يُقَالُ وَ جَبَتْ سَقَطَتْ اِلَى

ښکه چه اللّٰه تعالٰي فرمائيلي دي' د قرباني ښناور مونږ تاسو د پاره د' اللّٰه نښنه مقرر کړے ده' دے کښې ستاسو دَ پاره ښيګړه ده' نو صف بسته شئے' او په هغے د اللّٰه نوم اخلئے. څه وخت چه هغه په خپل اړخ اوغرځيږي' نو د هغے نه خورئے' او صبر کونکو او محتاجانو باندے خوروئے. دغه شان مونږ دا ستاسو دَ پاره مسخّر کړے دي' شايد چه تاسو شکر ګزار شئے' نه دَ هغے غوښه او نه د هغے وينه اللّٰه ته رسي' بلکه ستاسو پرهيزګاري خدائے ته رسي. دغه شان دا' ئے ستاسو د پاره مسخّر کړے دي' د پاره ددے چه تاسو د' اللّٰه لوئي بيان کړئے' په هغه څيز' چه تاسو ته ئے اوښودلو. او احسان کونکو ته خوشخبري ورکړه. د مجاهد بيان دے چه بُدنه ورته دَ هغے د' غټيدو په سبب وئيلے شوے دي او قانع نه مراد سائل دے. او معتر هغه سړے دے' چه د قربانۍ ښناور سره خوا کښې تاويږي راتاويږي' خواه مالدار وي يا فقير. او شعائر د قربانۍ ښناور غټول او' ښه کول دي. او خانه کعبے ته عتيق ښکه وائي' چه هغه د ظالمانو بادشاهانو نه آزاده ده' او' وجبت معني دي سقطت الي الارض' يعني

الْاَرْضِ وَ مِنْهُ وَجَبَتِ الشَّمْسُ.

په زمکه غرخېدلے. او ددے نه وجبت الشمس ماخوذ دے.

۲۸۵ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ اَبِي الزِّنَادِ عَنِ الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَاٰى رَجُلًا يَّسُوْقُ بَدَنَةً فَقَالَ ارْكَبْهَا فَقَالَ اِنَّهَا بَدَنَةٌ فَقَالَ ارْكَبْهَا قَالَ اِنَّهَا بَدَنَةٌ قَالَ ارْكَبْهَا وَيْلَكَ فِي الثَّانِيَةِ اَوْ فِي الثَّالِثَةِ.

۲۸۵ : عبداللّٰه بن يوسف. مالك ابوالزناد. اعرج. ابوهريرهؓ نه روايت كوي، رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلّم يو سړے اوليد، چه د قرباني ښخاور، ئے شړلو، نو حضور صلي اللّٰه عليه وسلم ورته او فرمائيل، په دے سور شه، هغه اووے، دا، د، قرباني ښخاور دے. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ورته او فرمائيل، ته سور شه، او په دوئم يا درئم وار، ئے ورته او فرمائيل، ستا دے خرابي وي[۱].

۱. د جاهليت په زمانه كښ چه به كوم ښاروي د مذهبي منختے (نذر وغيره) وو. په هغے به سوريدل بد ګنړلے شو. غالبًا هغه صحابي د دے خيال په بنياد د قربانئ په ښاروي نه سوريدلو. نبي كريم صلي اللّٰه عليه وسلم چه كله هغه ته په هغه ښاروي د سوريدلو حكم ورکړو هغه بيا هم اويل، "دا د قربانئ ښاروے دے" ليكن اسلام كښ د دے عقيدے څه بنياد يا حقيقت نه وو. نو رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم ورته بيا بيا د سوريدو حكم اوكړو. چه غلط خيال ئے د دماغ نه لرے شي. دا كيدے شي چه هغه صحابي ستړے وو او بيا هم نه سوريدلو. حالانكه ضرورت ئے وو نو رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم ورته بيا بيا حكم اوكړو.

۲۸۶ : حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ اِبْرَاهِيْمَ قَالَ حَدَّثَنَا هِشَامٌ وَّ شُعْبَةُ قَالَا حَدَّثَنَا قَتَادَةُ عَنْ اَنَسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَاٰى رَجُلًا يَّسُوْقُ بَدَنَةً فَقَالَ ارْكَبْهَا قَالَ اِنَّهَا بَدَنَةٌ قَالَ ارْكَبْهَا قَالَ اِنَّهَا بَدَنَةٌ قَالَ ارْكَبْهَا ثَلَاثًا.

۲۸۶ : مسلم بن ابراهيم. هشام و شعبه. قتاده. انسؓ نه روايت كوي، نبي صلے اللّٰه عليه وسلم يو سړے اوليدو، چه د قرباني ښاروے ئے بوتلو. حضور صلے اللّٰه عليه وسلم ورته او فرمائيل، په دے سور شه، هغه اووے، دا، د قرباني ښاروے دے. حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم ورته او فرمائيل، په دے سور شه، درے خله ئے ورته او فرمائيل.

## بَاب ۱۹۱ : مَنْ سَاقَ الْبُدْنَ مَعَهٗ.

## باب ۱۹۱ : د هغے سړي بيان چه خان سره د قرباني ښخاور بوځي.

۲۸۷ : حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ قَالَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ

۲۸۷ : يحيي بن بكير. عقيل. ابن شهاب. سالم بن عبداللّٰه. عبداللّٰه بن عمرؓ نه روايت كوي، رسول اللّٰه

شِهَابٍ عَنْ سَالِمِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ اَنَّ ابْنَ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ تَمَتَّعَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ حَجَّةِ الْوَدَاعِ بِالْعُمْرَةِ اِلَى الْحَجِّ وَ اَهْدٰى فَسَاقَ مَعَهُ الْهَدْىَ مِنْ ذِالْحُلَيْفَةِ وَ بَدَاَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَهَلَّ بِالْعُمْرَةِ ثُمَّ اَهَلَّ بِالْحَجِّ وَ تَمَتَّعَ النَّاسُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْعُمْرَةِ اِلَى الْحَجِّ فَكَانَ مِنَ النَّاسِ مَنْ اَهْدٰى فَسَاقَ الْهَدْىَ وَ مِنْهُمْ مَّنْ لَّمْ يُهْدِ فَلَمَّا قَدِمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَكَّةَ قَالَ لِلنَّاسِ مَنْ كَانَ مِنْكُمْ اَهْدٰى فَاِنَّهُ لَا يَحِلُّ لِشَيْءٍ حَرُمَ مِنْهُ حَتّٰى يَقْضِيَ حَجَّهُ وَمَنْ لَّمْ يَكُنْ مِنْكُمْ اَهْدٰى فَلْيَطُفْ بِالْبَيْتِ وَ بِالصَّفَا وَالْمَرْوَةِ وَالْيُقَصِّرْ وَالْيَحْلِلْ ثُمَّ لِيُهِلَّ بِالْحَجِّ فَمَنْ لَّمْ يَجِدْ هَدْيًا فَلْيَصُمْ ثَلٰثَةَ اَيَّامٍ فِي الْحَجِّ وَ سَبْعَةٍ اِذَا رَجَعَ اِلٰى اَهْلِهٖ فَطَافَ حِيْنَ قَدِمَ مَكَّةَ وَاسْتَلَمَ الرُّكْنَ اَوَّلَ شَيْءٍ ثُمَّ خَبَّ ثَلٰثَةَ اَطْوَافٍ وَّ مَشٰى اَرْبَعًا فَرَكَعَ حِيْنَ قَضٰى طَوَافَهُ بِالْبَيْتِ عِنْدَ الْمَقَامِ رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ سَلَّمَ فَانْصَرَفَ فَاَتَى الصَّفَا فَطَافَ بِالصَّفَا وَالْمَرْوَةِ سَبْعَةَ

صلي الله عليه وسلم حجة الوداع كښې عمرے سره حج يوځائے كه، تمتع ئے اوكړله او ذي الحليفه نه ئے د قرباني ځناور بوتلو. او رسول الله صلے الله عليه وسلم اوّل د، عمرے لبّيک اووے. بيائے حج د پاره لبّيک اووے، نو خلقو هم رسول الله صلے الله عليه وسلّم سره حج عمرے سره يوځائے كه، او تمتع ئے اوكړله. بعضے خلقو خوهدي (دَ قرباني ځناور) راوستے وو. او بعضے دَ قرباني ځناور سره نه وو راوستي. كوم وخت چه نبي صلے الله عليه وسلّم مكے ته اورسيدلو، نو خلقوته ئے او فرمائيل. تاسو كښې چه كوم سړي دَ قرباني ځناور ځان سره راوستے وي، هغه دَ پاره هيڅ حرام شيز حلال نه دے، څو پورے چه حج پوره نه كړي. او كوم سړي سره چه دَ قرباني ځناور نه وي، هغه دے د خانه كعبے او صفا مروه طواف اوكړي. او ويښته دے پريكړي او د احرام نه دے بهر شي. بيا دے دَ حج احرام اوتړي. چا سره چه دَ قرباني ځناورنه وي، هغه دے حج كښې درے روژے اونيسي، او نورے اووه روژے دے هغه وخت اونيسي، كوم وخت چه كورته واپس شي، نو نبي صلے الله عليه وسلّم طواف اوكه، كوم وخت چه مكے ته راغلو، نو دَ ټولو نه وړمبنے ركن ئے ښكل كړلو. بيا درے چكرو كښې په منډه لاړلو. او څلور چكرو كښې په معمولي چال لاړلو. چه د خانه كعبے طواف ئے اوكه، نو مقام ابراهيم سره ئے دوه ركعاته مونځ اوكه. بيا سلام گرځولو نه پس فارغ شولو، او صفا ته اورسيدلو، نو اوه ځله ئے د صفا مروه طواف اوكړلو. بيا څو پورے چه حج ئے پوره كړے نه وو، هغه وخته پورے ئے هغه امور حلال نه

اَلطَّوَافِ ثُمَّ لَمْ يَحْلِلْ مِنْ شَيْءٍ حَرُمَ مِنْهُ حَتّٰى قَضٰى حَجَّهُ وَ نَحَرَ هَدْيَهُ يَوْمَ النَّحْرِ وَ اَفَاضَ وَ طَافَ بِالْبَيْتِ ثُمَّ حَلَّ مِنْ كُلِّ شَيْءٍ حَرُمَ مِنْهُ وَ فَعَلَ مِثْلَ مَا فَعَلَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ اَهْدٰى وَ سَاقَ الْهَدْيَ مِنَ النَّاسِ وَ عَنْ عُرْوَةَ اَنَّ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا اَخْبَرَتْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ تَمَتُّعِهٖ بِالْعُمْرَةِ اِلَى الْحَجِّ فَتَمَتَّعَ النَّاسُ مَعَهُ بِمِثْلِ الَّذِيْ اَخْبَرَنِيْ سَالِمٌ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا عَنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

كنړل. كوم چه د' احرام په حالت كښې حرام دي. او يوم نحر كښې ئې قرباني او كړله. او واپسي كښې ئې د خانه كعبې طواف او كـه. بيـا هغـه ټول څيزونـه ئې حلال او گـنـړل' چـه دغـه وخته پورې حرام وو (يعني احرام ئې بهر شـو) او كـومـو خـلـقـو چه د قرباني څناور راوستي وو' هغې خـلـقـوهـم دغسې او كړل' څنگـه چـه رسول اللّٰـه صلے اللّٰـه عـلـيـه وسـلّـم كـړې وو. او عـروه د بـي بـي عـائشـې نـه او هغې د نبـي صلے اللّٰه عليه وسلّم نـه حـج' عـمـرې سـره د يـو ځـائې كولو يعني د حـضـور صـلـے اللّٰـه عـلـيـه وسـلّـم دَ تـمـتـع كـولـو متـعـلـق ئې دغسې روايت او كـه' څنگـه چـه سالم په واسـطـه د ابـن عـمـرؓ د نبـي صـلـے اللّٰه عليـه وسلّم نـه روايت كړې دې[۱].

۱. لـكـه وړانـدې چـه دا پـه وضـاحـت سره بيان شويدې چه رسول الله صلي الله عليه وسلم قارِن وو ليـكـن راوي د رسـول اللّٰـه صـلي اللّٰـه عليه وسلم "لَبَّيكَ" اوريدلو نه' كله وائي مُفرد (يواځې د حج نيت كـړې) وو كـلـه وائـي تَـمَتُّـع (د عـمـرې نيت ئې كړې وو بيا به د حج مكه كښې احرام تړي) ئې كړې وه. صـحـيح دا ده چه د رسول الله صلي الله عليه وسلم حج' حجّ قِران وو "لَبَّيـک" ويلو كښې آزادي ده قارِن' د مُفـرِد' پښـان لبَّيک ويـلې شي د عمرې د پاره هم لبَّيک ويلې شي. قِران او تمتع د پاره صرف نيت شرط دې.

## بـاب ۱۹۲ : مَـنِ اشْتَـرَى الْهَدْيَ مِنَ الطَّرِيْقِ.

## باب ۱۹۲ : د هغې سړي بيـان چـه د قرباني څناور لار كښې واخلي.

۲۸۸ : حَدَّثَنَا اَبُو النُّعْمَانِ قَالَ حَدَّثَنَا حَمَّادٌ عَنْ اَيُّوْبَ عَنْ نَافِعٍ قَالَ قَالَ عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ لِاَبِيْهِ اَقِمْ فَاِنِّيْ لَا اٰمَنُهَا اَنْ سَتُصَدَّ عَنِ الْبَيْتِ قَالَ اِذَنْ اَفْعَلُ كَمَا فَعَلَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

۲۸۸ : ابـوالـنعمان. حماد. ايوب. نافع. عبدالله بـن عبـدالـلّـه بـن عـمرؓ نـه روايت كوي' هغـه خپل پلار عبـدالـلّـه بـن عمرؓ ته او وې' سخكال حج له مه ځه' ځكه چه ما سره ويره ده' چه تاسو به د خانه كعبې نه منع كړې شـئې. هغه جواب وركه. دغې صورت كښې به هغه كوم' څـه چه رسول الله صلي الله عليه وسلّم كړې وو. او الله

وَسَلَّمَ وَقَدْ قَالَ اللّٰهُ لَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِيْ رَسُوْلِ اللّٰهِ اُسْوَةٌ حَسَنَةٌ فَاَنَا اُشْهِدُكُمْ اَنِّيْ قَدْ اَوْ جَبْتُ عَلٰى نَفْسِي الْعُمْرَةَ فَاَهَلَّ بِالْعُمْرَةِ قَالَ ثُمَّ خَرَجَ حَتّٰى اِذَا كَانَ بِالْبَيْدَآءِ اَهَلَّ بِالْحَجِّ وَالْعُمْرَةِ وَ قَالَ مَا شَانُ الْحَجِّ وَالْعُمْرَةِ اِلَّا وَاحِدٌ ثُمَّ اشْتَرٰى الْهَدْىَ مِنْ قُدَيْدٍ ثُمَّ قَدِمَ فَطَافَ لَهُمَا طَوَافًا وَّاحِدًا فَلَمْ يَحِلَّ حَتّٰى حَلَّ مِنْهُمَا جَمِيْعًا.

تعالٰي فرمائيلي دي، ستاسو د پاره د الله په رسول كښې بهتره نمونه ده. زه تاسو ګواه كوم، چه خپل خان باندے ما عمره واجب كړله، نو د عمرے احرام ئے اوتړلو. بيا اووتلو، تردے چه مقام بيداء ته اورسيدلو، نو د حج او عمرے احرام ئے اوتړلو. او وے وئيل. د حج او عمرے خو يو حالت دے. قديد كښې ئے د قرباني څناور واخست. بيا مكے ته اورسيدلو، نو حج او عمرے دواړو د پاره ئے يو طواف اوكه. بيائے احرام پرانه نستلو. څو پورے چه دواړو نه فارغ نه شولو.

باب ۱۹۳ : مَنْ اَشْعَرَ وَ قَلَّدَ بِذِى الْحُلَيْفَةِ ثُمَّ اَحْرَمَ وَ قَالَ نَافِعٌ كَانَ ابْنُ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا اِذَا اَهْدٰى مِنَ الْمَدِيْنَةِ قَلَّدَهٗ وَ اَشْعَرَهٗ بِذِى الْحُلَيْفَةِ يَطْعُنُ فِيْ شِقِّ سَنَامِهٖ الْاَيْمَنِ بِالشَّفْرَةِ وَ وَجْهُهَا قِبَلَ الْقِبْلَةِ بَارِكَةً.

باب ۱۹۳ : د هغے سړي بيان چه هغه ذي الحليفه كښې اشعار، او، تقليد اوكه، بيائے احرام او تړلو.

د، نافع بيان دے، چه ابن عمرؓ به د مدينے نه د قرباني څناور راوستلو، نو ذي الحليفه كښې به ئے د هغے تقليد او اشعار كولو. يعني د هغې ښے قُب به ئے په چاړه او وهلو، داسے حال كښې، چه هغه څناور به مخ په قبله ملاست وو.

۲. اِشعار ديته وائي چه د اوښ په قُب باندے د پاسه په غشي يا بل تيره څيز باندے د زخم نښه جوړه كړي په داسے طريقه باندے چه اوښ ته څه خاص تكليف نه وي. تقليد ديته وائي چه د قربانۍ د څاروي په غاړه كښې "هار" (اميل) واچولے شي چه دا د حج په موقعه به قربان كيږي.

په عربو كښې د جاهليت په زمانه كښې ډاكے، غلا، او لوټ مار (چُور كول) عام وو ليكن د هغوي په زړه كښې د بيت الله شريف تعظيم او عزت موجود وو چه هغوي ته به معلومه شوه چه دا څاروي د بيت الله شريف د پاره دي او د قربانۍ دي. هغوي ته به نه نزدے كيدل، د دے وجے نه به د قربانۍ څاروي ته په غاړه كښې "هار" (اميل) اچولے شو. يا به غشي سره د قُب د پاسه معمولي زخمي كولے شو. نو بيا به ورته غلو، شوكمارو څه نه ويل.

رسول الله صلي الله عليه وسلم سره د حجّة الوَداع په موقعه د قربانۍ سل څاروي او په يو اوښ د قُب د پاره د زخم نښه كړے وه په باقي څاروو د زخم نښے نه وے د دے وجے نه امام ابو حنيفه "اِشعار" نه خوښوي څكه چه رسول الله صلي الله عليه وسلم په ټولو څاروو د زخم نښے (اشعار) نه وو كړے. د

شرعي اِشعار روا صورت دا دے. چه د زخم نښه داسے وي. چه څاروي ته پرے څه خاص تکلیف نه وي. او که د دے عام اجازت اوشي نو بیا به ډیره زیاته بے احتیاطي کیږي. بل دا اِشعار څه فرض واجب هم نه دے. رسول الله صلي الله علیه وسلم صرف په یو اوښ نښه د زخم (اِشعار) لګولے وه د دے مصلحت د خاطره، چه خلق نوے نوے اسلام کښې داخل شوے وو هسے نه دے څاروو سره بے احتیاطي اوشي. او د اِشعار په وجه دے اوښانو ته څوک نه ورنږدے کیږي.

۲۸۹: حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدٍ قَالَ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ قَالَ اَخْبَرَنَا مُحَمَّدٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ عَنِ الْمِسْوَرِ بْنِ مَخْرَمَةَ وَ مَرْوَانَ قَالَا خَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنَ الْمَدِيْنَةِ فِيْ بِضْعَ عَشْرَةَ مِائَةً مِّنْ اَصْحَابِهٖ حَتّٰى اِذَا كَانُوْا بِذِى الْحُلَيْفَةِ قَلَّدَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْهَدْىَ وَ اَشْعَرَ وَ اَحْرَمَ بِالْعُمْرَةِ.

۲۸۹: احمد بن محمد. عبدالله. معمر. زهري. عروه بن زبیر. مسور بن مخرمه او مروان دواړونه روایت کوي. د دوي دواړو بیان دے، چه نبي صلے الله علیه وسلم د مدینے نه یو، زر، نه زیات صحابهؓ ؤ سره اووتلو، تر دے چه کوم وخت ذوالحلیفه ته اورسیدلو، نو نبي صلے الله علیه وسلم د 'هدي' تقلید اوکه، او اشعار، ئے اوکه، او، د، عمرے احرام ئے اوتړلو.

۲۹۰: حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ قَالَ حَدَّثَنَا اَفْلَحُ عَنِ الْقَاسِمِ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ فَتَلْتُ قَلَائِدَ بُدْنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِيَدَيَّ ثُمَّ قَلَّدَهَا وَ اَشْعَرَهَا وَ اَهْدَاهَا فَمَا حَرُمَ عَلَيْهِ شَيْءٌ كَانَ اُحِلَّ لَهٗ.

۲۹۰: ابونعیم. افلح. قاسم. بي بي عائشےؓ نه روایت کوي. د هغے بیان دے چه ما نبي صلے الله علیه وسلم سره د قرباني د څناورو پټے خپل لاس سره تیارے کړے. بیا حضور صلے الله علیه وسلم د هغے تقلید اوکه. او اشعار، ئے اوکه او مکے طرف ته ئے روان کړل. حضور صلے الله علیه وسلم هیڅ حلال څیز حرام او نه ګنړلو.

## بَاب ۱۹۴: فَتْلِ الْقَلَائِدِ لِلْبُدْنِ وَالْبَقَرِ.

## باب ۱۹۴: د قرباني څناورو او غواګانو د پاره د، هار جوړولو بیان.

۲۹۱: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ قَالَ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ قَالَ اَخْبَرَنِيْ نَافِعٌ عَنِ ابْنِ عُمَرَ عَنْ

۲۹۱: مسدد. یحیٰي. عبیدالله. نافع. ابن عمر. بي بي حفصےؓ نه روایت کوي، هغه وائي، ما عرض اوکه، یا رسول الله، د خلقو څه حال دے، چه هغوي د، احرام نه

حَفْصَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ قَالَتْ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ مَا شَانُ النَّاسِ حَلُّوْا وَلَمْ تَحْلِلْ اَنْتَ قَالَ اِنِّيْ لَبَّدْتُ رَأْسِيْ وَ قَلَّدْتُ هَدْيِيْ فَلَا اَحِلُّ حَتّٰى اَحِلَّ مِنَ الْحَجِّ.

بهر شولو' او تاسو د' احرام نه بهر شوے نه یې. حضور صلے اللّٰه علیه وسلم او فرمائیل' ما د خپل سر' ویښته جم کړے دي' او د خپلے هدي تقلید' م کړے دے. په دے وجه خو پورے چه زه د حج نه فارغ نشم' احرام نشم پرانستے.

۲۹۲: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ قَالَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ قَالَ حَدَّثَنَا ابْنُ شِهَابٍ عَنْ عُرْوَةَ وَ عَنْ عُمْرَةَ بِنْتِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ اَنَّ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُهْدِيْ مِنَ الْمَدِيْنَةِ فَاَفْتِلُ قَلَائِدَ هَدْيِهٖ ثُمَّ لَا يَجْتَنِبُ شَيْئًا مِمَّا يَجْتَنِبُهُ الْمُحْرِمُ.

۲۹۲: عبداللّٰه بن یوسف. لیث. ابن شهاب. عروه. عمره بنت عبدالرحمٰن. بي بي عائشے نه روایت کوي' هغے او فرمائیل' رسول اللّٰه صلے اللّٰه علیه وسلّم به د مدینے نه د قرباني خناور لیږل' ما به د حضور صلے اللّٰه علیه وسلّم دَ قرباني د خناورو هار بنړولو. بیا حضور صلے اللّٰه علیه وسلّم دَ هغے خیزونو نه پرهیز نه کولو' چه دَ هغے نه محرم پرهیز کوي.

باب ۱۹۵: اِشْعَارِ الْبُدْنِ وَ قَالَ عُرْوَةُ عَنِ الْمِسْوَرِ قَلَّدَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْهَدْيَ وَ اَشْعَرَهٗ وَ اَحْرَمَ بِالْعُمْرَةِ.

باب ۱۹۵: د قرباني د خناورو د اشعار کولو بیان. او عروه د مسور نه روایت کوي' چه نبي صلے اللّٰه علیه وسلم د' هدي تقلید اوکه' او دَ هغے اشعار' ئے اوکه' او دَ عمرے احرام ئے اوتړلو.

۲۹۳: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْلَمَةَ قَالَ حَدَّثَنَا اَفْلَحُ بْنُ حُمَيْدٍ عَنِ الْقٰسِمِ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ فَتَلْتُ قَلَائِدَ هَدْيِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ اَشْعَرَهَا وَ قَلَّدَهَا اَوْ قَلَّدْتُهَا ثُمَّ بَعَثَ بِهَا اِلَى الْبَيْتِ وَ اَقَامَ بِالْمَدِيْنَةِ فَمَا حَرُمَ عَلَيْهِ شَيْءٌ كَانَ لَهٗ حِلٌّ.

۲۹۳: عبداللّٰه بن مسلمه. افلح بن حمید بي بي عائشے رضی الله عنها نه روایت کوي. د هغے بیان دے' چه ما د نبي صلے اللّٰه علیه وسلّم د قرباني د خناورو مزي اوبنړول. بیا حضور صلے اللّٰه علیه وسلّم د هغے اشعار' اوکه' او د هغے تقلید' ئے اوکه' یا ما د هغے تقلید اوکه. بیا حضور صلے اللّٰه علیه وسلّم هغه خانه کعبے طرف ته اولیږلو. او حضورؐ مدینه کښ ایسار وو' حضور صلے اللّٰه علیه وسلّم هیڅ حلال څیز حرام او نه ګنړلو.

باب ۱۹۶: مَنْ قَلَّدَ الْقَلَائِدَ

باب ۱۹۶: د هغے چا' بیان چه هارونه خپل

بِيَدِهِ.

۲۹۴: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ قَالَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِيْ بَكْرِ عَمْرِو بْنِ حَزْمٍ عَنْ عَمْرَةَ بِنْتِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ اَنَّهَا اَخْبَرَتْهُ اَنَّ زِيَادَ بْنَ اَبِيْ سُفْيٰنَ كَتَبَ اِلٰى عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا اَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عَبَّاسٍ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ مَنْ اَهْدٰى هَدْيًا حَرُمَ عَلَيْهِ مَا يَحْرُمُ عَلَى الْحَاجِّ حَتّٰى يُنْحَرَ هَدْيُهُ قَالَتْ عَمْرَةُ فَقَالَتْ عَائِشَةُ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا لَيْسَ كَمَا قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ اَنَا فَتَلْتُ قَلَائِدَ هَدْيِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِيَدَيَّ ثُمَّ قَلَّدَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِيَدَيْهِ ثُمَّ بَعَثَ بِهَا مَعَ اَبِيْ فَلَمْ يَحْرُمْ عَلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَيْءٌ اَحَلَّهُ اللّٰهُ حَتّٰى نُحِرَ الْهَدْيُ.

لاس سره او بنړوي (جوړ کړي)

۲۹۴: عبدالله بن یوسف. مالک. عبدالله بن ابي بکر بن عمرو بن حزم. عمره بنت عبدالرحمٰن نه روایت کوي' زیاد بن ابي سفیان' بي بي عائشې ته اولیکل' عبدالله بن عباس وئیلي دي' چا چه د قرباني ځناور اولیږلو' نو ذ هغې د' ذبح کولو پورې په هغه' هغه څیز حرام دې' کوم چه په حاجیانو حرام دې. ذ عمره بیان دې. بي بي عائشې جواب ورکه' چه ابن عباس څه اووې' هغه صحیح نه دي. ما خپله د نبي صلي الله علیه وسلم د' هدي' هار خپلو لاسونو سره بنړولې دي. بیا رسول الله صلي الله علیه وسلم د هغې تقلید خپلو دواړو لاسونو سره کړې دې. بیائې هغه څما پلار ته رالیږلې دې'نو په نبي صلي الله علیه وسلم د خدائې حلال کړې هیڅ څیز حرام نه شولو' تر دې چه ذ ځناورو قرباني اوکړې شوه[1].

۱. دا د هجرت د نهم کال واقعه ده په کوم کال چه ابوبکر صدیق رضي الله عنه' د رسول الله صلي الله علیه وسلم د نائب امیر حج په حیثیت حج او کړو هغ پسې بل کال' د رسول الله صلي الله علیه وسلم حَجَّةُ الوَداع اوشو. چه مشهوره واقعه ده.

## بَاب ۱۹۷: تَقْلِيْدِ الْغَنَمِ.

## باب ۱۹۷: د چیلو په غاړه کښې د هار اچولو بیان.

۲۹۵: حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ قَالَ حَدَّثَنَا الْاَعْمَشُ عَنْ اِبْرَاهِيْمَ عَنِ الْاَسْوَدِ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ اَهْدَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

۲۹۵: ابونعیم. اعمش. ابراهیم. اسود. بي بي عائشې نه روایت کوي. د هغې بیان دې چه نبي صلي الله علیه وسلم یو ځلې چیلئې قربانئ د پاره

وَسَلَّمَ مَرَّةً غَنَمًا.

اوليږلې.

۲۹۶: حَدَّثَنَا أَبُو النُّعْمَانِ قَالَ أَخْبَرَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ قَالَ حَدَّثَنَا الْأَعْمَشُ عَنْ إِبْرَاهِيمَ عَنِ الْأَسْوَدِ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ كُنْتُ أَفْتِلُ الْقَلَائِدَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَيُقَلِّدُ الْغَنَمَ وَ يُقِيمُ فِي أَهْلِهِ حَلَالًا.

۲۹۶: ابوالنعمان. عبدالواحد. اعمش. ابراهيم. اسود. بي بي عائشې نه روايت كوي. د هغې بيان دې، ما به د نبي صلى الله عليه وسلم د پاره هار (غاړه كښي) بنړولو. نو حضور صلى الله عليه وسلم به ذ چيلو په غاړه كښ اچولو. او خپل كور والو سره به حضور صلى الله عليه وسلم د، احرام نه بهر اوسيدلو.

۲۹۷: حَدَّثَنَا أَبُو النُّعْمَانِ قَالَ حَدَّثَنَا حَمَّادٌ قَالَ حَدَّثَنَا مَنْصُورُ بْنُ الْمُعْتَمِرِ ح وَ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ قَالَ أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ عَنْ مَنْصُورٍ عَنْ إِبْرَاهِيمَ عَنِ الْأَسْوَدِ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كُنْتُ أَفْتِلُ قَلَائِدَ الْغَنَمِ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَيَبْعَثُ بِهَا ثُمَّ يَمْكُثُ حَلَالًا.

۲۹۷: ابوالنعمان. حماد. منصور بن معتمر. ح (دونم سند) محمّد بن كثير. سفيان. منصور. ابراهيم. اسود. بي بي عائشې نه روايت كوي. د هغې بيان دې، ما به نبي صلى اللّٰه عليه وسلّم د پاره د چيلو هار بنړولو. بيا به حضور صلى اللّٰه عليه وسلّم هغه ليږلې او خپله به په كور كښ بغير احرام نه وو.

۲۹۸: حَدَّثَنَا أَبُو نُعَيْمٍ قَالَ حَدَّثَنَا زَكَرِيَّاءُ عَنْ عَامِرٍ عَنْ مَسْرُوقٍ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ فَتَلْتُ لِهَدْيِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَعْنِي الْقَلَائِدَ قَبْلَ أَنْ يُحْرِمَ.

۲۹۸: ابونعيم. زكريا. عامر. مسروق و عائشهؓ وائي ما به د نبي عليه الصلاة والسلام د قربانۍ د څاروو هارونه بنړول د نبي عليه السلام د احرام نه وړاندې.

## باب ۱۹۸: اَلْقَلَائِدِ مِنَ الْعِهْنِ.

## باب ۱۹۸: د مالوچو د هار جوړولو بيان.

۲۹۹: حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَلِيٍّ قَالَ حَدَّثَنَا مُعَاذُ بْنُ مُعَاذٍ قَالَ حَدَّثَنَا ابْنُ عَوْنٍ عَنِ الْقَاسِمِ عَنْ أُمِّ الْمُؤْمِنِينَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ

۲۹۹: عمرو بن علي. معاذ بن معاذ بن عون. قاسم. ام المؤمنين بي بي عائشې نه روايت كوي، د هغې بيان دې، ما د قربانۍ د څناورو د پاره

فَتَلْتُ قَلَائِدَهَا مِنْ عِهْنٍ كَانَ عِنْدِيْ.

پټے د هغے مالوچو، نه اُوغړلے، چه ما سره وو.

## باب ۱۹۹ : تَقْلِيْدِ النَّعْلِ.

## باب ۱۹۹ : د پنړو د، هار جوړولو بيان.

۳۰۰: حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ قَالَ اَخْبَرَنَا عَبْدُ الْاَعْلٰى بْنُ عَبْدِ الْاَعْلٰى عَنْ مَعْمَرٍ عَنْ يَحْيَى بْنِ اَبِيْ كَثِيْرٍ عَنْ عِكْرَمَةَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ اَنَّ نَبِيَّ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَاٰى رَجُلًا يَسُوْقُ بَدَنَةً قَالَ ارْكَبْهَا قَالَ اِنَّهَا بَدَنَةٌ قَالَ ارْكَبْهَا قَالَ فَلَقَدْ رَاَيْتُهُ رَاكِبَهَا يُسَايِرُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالنَّعْلُ فِيْ عُنُقِهَا تَابَعَهُ مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ.

۳۰۰: محمد. عبدالاعلیٰ. معمر. يحيٰي بن ابي كثير. عكرمه. ابو هريرهؓ نه روايت كوي نبي صلے الله عليه وسلّم يو سړے اوليد، چه دَ قرباني خناورئے شړلو، حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم ورته او فرمائيل، په دے سور شه، هغه اووے، دا، د قرباني خناور، دے، حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم ورته بيا او فرمائيل، په دے سور شه. هغه بيا اووے، دا، د قرباني خناور دے. د حضرت ابوهريرهؓ بيان دے ما هغه سړے اوليد، چه په هغے سور وو. نبي صلے الله عليه وسلّم ورسره ورسره تلو. او پنړه د هغے خناور په گردن كښ وه. محمّد بن بشار ددے متابع حديث بيان كړے دے.

۳۰۱: حَدَّثَنَا عُثْمٰنُ بْنُ عُمَرَ اَخْبَرَنَا عَلِيُّ بْنُ الْمُبَارَكِ عَنْ يَحْيٰى عَنْ عِكْرَمَةَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۳۰۱: عثمان بن عمر. علي بن مُبارک يحيٰي. عكرمه. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت كوي او هغه دَ نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم نه روايت كوي.

## باب ۲۰۰ : اَلْجِلَالِ لِلْبُدْنِ وَ

كَانَ ابْنُ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا لَا يَشُقُّ مِنَ الْجِلَالِ اِلَّا مَوْضِعَ السَّنَامِ وَ اِذَا نَحَرَهَا نَزَعَ جِلَالَهَا مَخَافَةَ اَنْ يُفْسِدَهَا الدَّمُ ثُمَّ يَتَصَدَّقُ بِهَا.

## باب ۲۰۰ : د قرباني خناور ته دَ پاسه كپړه د، اچولو بيان.

او ابن عمرؓ به د پاسه كپړه صرف د قُب (كوهان) د ځائے نه شلوله. او او كوم وخت چه به ئے ذبح كوله، نو دَ پاسه كپړه به ئے د، دے ويرے نه لرے كوله، چه د، وينے په وجه خرابه نشي. بيا به ئے هغه خيرات كوله.

۳۰۲: حَدَّثَنَا قَبِيْصَةُ قَالَ

۳۰۲: قبيصه. سفيان. ابن ابي نجيح.

حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنِ ابْنِ نَجِيْحٍ عَنْ مُجَاهِدٍ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ اَبِيْ لَيْلٰى عَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ اَمَرَنِيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّے اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنْ اَتَصَدَّقَ بِجِلَالِ الْبُدْنِ الَّتِيْ نَحَرْتُ وَ بِجُلُوْدِهَا.

مجاهد. عبدالرحمن بن ابي ليلي. حضرت علي رضي الله عنه نه روايت کوي، فرمائي، ماته رسول الله صلے الله عليه وسلم حکم راکړو، چه د قرباني خناور چه ما ذبح کړے وو، د هغے ډ پاسه کپړه او څرمن خيرات کړم.

**باب ۲۰۱: مَنِ اشْتَرٰى هَدْيَهٗ مِنَ الطَّرِيْقِ وَ قَلَّدَهَا.**

**باب ۲۰۱: د هغے سړي بيان چه د قرباني** خناور لار کښ واخلي اور هار ورته واچوي.

۳۰۳: حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ الْمُنْذِرِ قَالَ حَدَّثَنَا اَبُوْ ضَمْرَةَ حَدَّثَنَا مُوْسٰى بْنُ عُقْبَةَ عَنْ نَّافِعٍ قَالَ اَرَادَ ابْنُ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا الْحَجَّ عَامَ حَجَّةِ الْحَرُوْرِيَّةِ فِيْ عَهْدِ ابْنِ الزُّبَيْرِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا فَقِيْلَ لَهٗ اِنَّ النَّاسَ كَائِنٌ بَيْنَهُمْ قِتَالٌ وَّ نَخَافُ اَنْ يَّصُدُّوْكَ فَقَالَ لَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِيْ رَسُوْلِ اللّٰهِ اُسْوَةٌ حَسَنَةٌ اِذًا اَصْنَعَ كَمَا صَنَعَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اُشْهِدُكُمْ اِنِّيْ اَوْجَبْتُ عُمْرَةً حَتّٰى كَانَ بِظَاهِرِ الْبَيْدَآءِ قَالَ مَا شَانُ الْحَجِّ وَالْعُمْرَةِ اِلَّا وَاحِدٌ اُشْهِدُكُمْ اَنِّيْ جَمَعْتُ حَجَّةً مَّعَ عُمْرَةٍ وَّ اَهْدٰى هَدْيًا مُقَلَّدًا اشْتَرَاهُ حَتّٰى قَدِمَ فَطَافَ بِالْبَيْتِ وَ بِالصَّفَا وَلَمْ يَزِدْ عَلٰى ذٰلِكَ وَلَمْ يَحْلِلْ مِنْ شَيْءٍ حَرُمَ مِنْهُ حَتّٰى يَوْمَ النَّحْرِ فَحَلَقَ وَ

۳۰۳: ابراهيم بن منذر. ابوضمره. موسیٰ بن عقبه. نافع نه روايت کوي، چه ابن عمرؓ ذ حج اراده اوکړه، د حروريه ؏ د حج په کال، ابن زبير په عهد خلافت کښ نو هغه ته چا اووے، چه دے کال کښ جنګ کيدونکے دے، او مونږ سره ويره ده، چه تا منع نه کړي، نو هغه جواب ورکه، چه ستاسو د پاره د، الله په رسول کښ بهترينه نمونه ده. داسے صورت کښ به زه هغه کوم، څنګه چه حضور صلے الله عليه وسلم کړے وو. زه تاسو ګواه کوم، چه ما عمره په ځان واجب کړے ده، تردے چه د، بيداء کشاده ځائے ته اورسيدلو، نو وے وئيل. ذ حج او عمرے خو يو حالت دے. زه تاسو ګواه کوم، چه ما عمره په خپل ځان واجب کړے ده، او هار اچولے خانور، ئے هم ځان سره کړلو، چه اخستلے ئے وو، تردے چه مکے ته اورسيدلو. د خانه کعبے او صفا، مروه طواف ئے اوکه، او په هغے ئے څه زياتے اونه که. او د، احرام حالت کښ چه کوم اُمور حرام دي، هغه ئے حلال او ګڼړل، تردے چه يوم نحر راغے، نو سر، ئے اوخريلو او قرباني ئے اوکړله، او خيال ئے اوکه، چه د هغه ورمبنے

نَحَرَ وَرَاٰى اَنْ قَدْ قَضٰى طَوَافَهُ الْحَجَّ وَالْعُمْرَةَ لِطَوَافِهِ الْاَوَّلِ ثُمَّ قَالَ كَذٰلِكَ صَنَعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

طواف دَ حج او عمرے دَ طواف دَ پاره كافي وو. بيائے او فرمائيل، چه نبي صلے الله عليه وسلّم دغسے كړے وو.

۱. "حروريه" باغيانو (خوارجو) ته وائي دلته د حروريه حج، هغے حج ته وائي كوم كال چه د اسلامي امت، باغي حجاج ابن يوسف د عبدالله بن الزبير رضي الله عنهما خلاف بغاوت كړے وو د هغه د شهيد كولو د پاره حجاج فوځ راوستلے وو هغه د حرم شريف او د اسلام بے عزتي كړے ده. كعبه شريفه ئے په توپه (مَنجَنيق) ويشتلے وه او عبدالله بن الزبير رضي الله عنهما ئے شهيد كړے وو او په مكه مكرمه ئے قبضه كړے وه حجاج خارجي نه وو ليكن د خارجيانو پشان د اسلام دعوه ئے كوله چه دے مسلمان دے اسلام ته ئے نقصان رسوو او د مسلمانانو د خليفهٔ حق عبدالله بن الزبير رضي الله عنهما خلاف جنګ ئے كړے وو او هغه ئے شهيد كړے وو پدے وجه د هغے كال حج ته "حَجَّة الحَرُورِيَّه" د خوارجو باغيانو حج ويلے شي. په دے نوم سره حجاج ته بد ويلو او د هغه عمل ته د باغيانو د عمل پشان اشاره كول مقصد دے.

## باب ۲۰۲: ذَبْحِ الرَّجُلِ الْبَقَرَ عَنْ نِسَآئِهٖ مِنْ غَيْرِ اَمْرِهِنَّ.

## باب ۲۰۲: د خپلو بيبيانو د طرفه د هغوي د، اجازت نه بغير د، غوا، ذبح كولو بيان.

۳۰۴: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ قَالَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيْدٍ عَنْ عَمْرَةَ بِنْتِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ قَالَتْ سَمِعْتُ عَآئِشَةَ تَقُوْلُ خَرَجْنَا مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِخَمْسٍ بَقِيْنَ مِنْ ذِي الْقَعْدَةِ لَا نُرٰى اِلَّا الْحَجَّ فَلَمَّا دَنَوْنَا مِنْ مَكَّةَ اَمَرَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ لَمْ يَكُنْ مَعَهُ هَدْيٌ اِذَا طَافَ وَسَعٰى بَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ اَنْ يَحِلَّ قَالَتْ فَدُخِلَ عَلَيْنَا يَوْمَ النَّحْرِ بِلَحْمِ بَقَرٍ فَقُلْتُ مَا هٰذَا قَالَ نَحَرَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ اَزْوَاجِهٖ قَالَ يَحْيٰى

۳۰۴: عبدالله بن يُوسف. مالک. يحيٰي بن سعيد. عمره بنت عبدالرحمٰن. دَ بي بي عائشے قول نقل كوي، هغے اووے، چه مونږ رسول الله صلي الله عليه وسلم سره د، ذي قعدے په مياشت كښ اووتلو، هر كله چه دَ دے مياشت پنځه ورځے باقي پاتے شوے. مونږ صرف دَ حج په خيال وتلي وو. كوم وخت چه مونږ مكے ته نزدے اورسيدو، نو رسول الله صلي الله عليه وسلم او فرمائيل، چا سره چه دَ قرباني ځناور نه وي، هر كله چه هغه طواف اوكړي او د صفا مروه مينځ كښ سعي اوكړي نو د، احرام نه دے بهر شي. د بي بي عائشے بيان دے، مونږ ته د قرباني په ورځ غوښه راوړے شوه، نو ما تپوس اوكه، دا څه دي، هغه بيان اوكه. چه رسول الله صلي الله عليه وسلم دَ خپلو بيبيانو د طرف نه قرباني كړے ده. د يحيٰي بيان دے، چه ما دا حديث قاسم

فَذَكَرْتُهُ لِلْقَاسِمِ فَقَالَ اَتَتْكَ بِالْحَدِيْثِ عَلٰى وَجْهِهِ.

ته بيان كه، نو هغه اووے، چه عمره تاته ټيک ټيک حديث بيان كړے دے.

باب ۲۰۳: اَلنَّحْرِ فِيْ مَنْحَرِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمِنًى.

باب ۲۰۳: منى كښې د نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم د قربانۍ په ځائے د قربانۍ كولو بيان.

۳۰۵: حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ بْنُ اِبْرَاهِيْمَ سَمِعَ خَالِدَ بْنَ الْحَارِثِ حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ عُمَرَ عَنْ نَافِعٍ اَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ كَانَ يَنْحَرُ فِي الْمَنْحَرِ قَالَ عُبَيْدُ اللّٰهِ مَنْحَرِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۳۰۵: اسحاق بن ابراهيم. خالد بن حارث. عبيد اللّٰه بن عمر. نافع نه روايت كوي، چه عبداللّٰه بن عمر به د قربانۍ په ځائے قرباني كوله. عبيداللّٰه بيان او كه، چه رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلم د، ذبح كولو په ځائے ذبح كوله.

۳۰۶: حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ الْمُنْذِرِ قَالَ حَدَّثَنَا اَنَسُ بْنُ عِيَاضٍ قَالَ حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ عُقْبَةَ عَنْ نَّافِعٍ اَنَّ ابْنَ عُمَرَ كَانَ يَبْعَثُ بِهَدْيِهٖ مِنْ جَمْعٍ مِّنْ اٰخِرِ اللَّيْلِ حَتّٰى يُدْخَلَ بِهٖ مَنْحَرَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَعَ حُجَّاجٍ فِيْهِمُ الْحُرُّ وَالْمَمْلُوْكُ.

۳۰۶: ابراهيم بن منذر. انس بن عياض. موسٰي بن عقبه. نافع نه روايت كوي چه ابن عمرؓ به د خپلے قربانۍ ځناور، د، مزدلفے نه آخر شپه كښې ليږلو، تردے چه حاجيانو سره به چه هغوي كښې به آزاد او غلام وو، دَ قربانۍ ځناور، دَ نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم د قربانۍ ځائے ته اورسيدلو.

باب ۲۰۴: مَنْ نَحَرَ بِيَدِهٖ.

باب ۲۰۴: دَ هغے سړي بيان چه خپل لاس سره قرباني اوكړي.

۳۰۷: حَدَّثَنَا سَهْلُ بْنُ بَكَّارٍ قَالَ حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ عَنْ اَيُّوْبَ عَنْ اَبِيْ قِلَابَةَ عَنْ اَنَسٍ وَّ ذَكَرَ الْحَدِيْثَ قَالَ وَ نَحَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِيَدِهٖ سَبْعَ بُدْنٍ قِيَامًا وَّ ضَحّٰى بِالْمَدِيْنَةِ كَبْشَيْنِ اَمْلَحَيْنِ اَقْرَنَيْنِ

۳۰۷: سهل بن بكار. وهيب. ايوب. ابوقلابه. انسؓ نه روايت كوي، او حديث ئے مختصر طور سره بيان كه، وے وئيل، چه نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم خپل لاس سره اووه اوښان اودرول او ذبح ئے كړل. او مديه كښې ئے دوه، برگ (ابلق) ښكر واله گډان ذبح

مُخۡتَصِرًا.

کړل.

## بَاب ۲۰۵: نَحۡرِ الۡإِبِلِ مُقَيَّدَةً.

باب ۲۰۵: د اوښ تړلو او قرباني کولو بيان.

۳۰۸: حَدَّثَنَا عَبۡدُ اللّٰهِ بۡنُ مَسۡلَمَةَ قَالَ حَدَّثَنَا يَزِيۡدُ ابۡنُ زُرَيۡعٍ عَنۡ يُوۡنُسَ عَنۡ زِيَادِ بۡنِ جُبَيۡرٍ قَالَ رَاَيۡتُ ابۡنَ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنۡهُمَا اَتٰى عَلٰى رَجُلٍ قَدۡ اَنَاخَ بَدَنَتَهٗ يَنۡحَرُهَا قَالَ ابۡعَثۡهَا قِيَامًا مُّقَيَّدَةً سُنَّةَ مُحَمَّدٍ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ وَ قَالَ شُعۡبَةُ عَنۡ يُوۡنُسَ اَخۡبَرَنِيۡ زِيَادٌ.

۳۰۸: عبدالله بن مسلمه. يزيد بن زريع. يونس. زياد بن جبير روايت کوي، ما ابن عمرؓ اوليد، هغه يو سړي له راغے، چه هغه خپل اوښ قرباني دَ پاره کينولے وو. هغه ورته اووے، دا اودروه او، پښے ورله اوتړه دا، د محمد صلے الله عليه وسلّم سُنت دي. او شعبه د يونس نه بيان اوکه، چه ماته زياد داسے بيان کړے دے.

۳۰۹: حَدَّثَنَا سَهۡلُ ابۡنُ بَكَّارٍ حَدَّثَنَا وُهَيۡبٌ عَنۡ اَيُّوۡبَ عَنۡ اَبِيۡ قِلَابَةَ عَنۡ اَنَسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنۡهُ قَالَ صَلَّى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ الظُّهۡرَ بِالۡمَدِيۡنَةِ اَرۡبَعًا وَّالۡعَصۡرَ بِذِي الۡحُلَيۡفَةِ رَكۡعَتَيۡنِ فَبَاتَ بِهَا فَلَمَّا اَصۡبَحَ رَكِبَ رَاحِلَتَهٗ فَجَعَلَ يُهَلِّلُ وَ يُسَبِّحُ فَلَمَّا عَلَا عَلَى الۡبَيۡدَآءِ لَبّٰى بِهِمَا جَمِيۡعًا فَلَمَّا دَخَلَ مَكَّةَ اَمَرَهُمۡ اَنۡ يَّحِلُّوۡا وَ نَحَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ بِيَدِهٖ سَبۡعَ بُدۡنٍ قِيَامًا وَّ ضَحّٰى بِالۡمَدِيۡنَةِ كَبۡشَيۡنِ اَمۡلَحَيۡنِ اَقۡرَنَيۡنِ.

۳۰۹: سهل بن بکار. وهيب. ايوب. ابوقلابه. انس نه روايت کوي، چه نبي صلے الله عليه وسلم مدينه کښ د ماسپخين څلور رکعاته اوکړل. او ذوالحليفه کښ ئے د مازيګر دوه رکعاته اوکړل. هلته تولَه شپه وو. تردے چه صبا شولو، نو په خپله سورلئ سور شولو. او تهليل او تسبيح ئے کولو. کوم وخت چه بيداء ته اورسيدلو، نو دواړو د پاره ئے لبّيک اووے. کوم وخت چه مکه کښ داخل شولو، نو خلقو ته ئے د احرام پرانستلو حکم ورکړلو، او نبي صلي الله عليه وسلّم خپل لاس سره اووه اوښان اودرول او ذبح ئے کړل. او مدينه کښ دوه برګ ښکر لرونکي ګډان ئے ذبح کړل.

۳۱۰: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ قَالَ حَدَّثَنَا اِسۡمٰعِيۡلُ عَنۡ اَيُّوۡبَ عَنۡ اَبِيۡ قِلَابَةَ عَنۡ اَنَسِ بۡنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللّٰهُ

۳۱۰: مسدد. اسمٰعيل. ايوب. ابوقلابه. انس بن مالک نه روايت کوي، چه نبي صلے الله عليه وسلّم مدينه کښ د ماسپخين څلور رکعاته اوکړل او د مازيګر

عَنْهُ قَالَ صَلَّى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الظُّهْرَ بِالْمَدِيْنَةِ اَرْبَعًا وَّ الْعَصْرَ بِذِي الْحُلَيْفَةِ رَكْعَتَيْنِ وَ عَنْ اَيُّوبَ عَنْ رَّجُلٍ عَنْ اَنَسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ثُمَّ بَاتَ حَتّٰى اَصْبَحَ فَصَلَّى الصُّبْحَ ثُمَّ رَكِبَ رَاحِلَتَهُ حَتّٰى اِذَا اسْتَوَتْ بِهِ الْبَيْدَآءَ اَهَلَّ بِعُمْرَةٍ وَّ حَجَّةٍ.

مونځ ئے ذوالحليفه کښې دوه رکعاته اوکه. او ايوب د يو سړي په واسطه د حضرت انسؓ نه روايت اوکه، چه بيا حضور صلے الله عليه وسلّم هلته شپه تيره کړله، تردے چه صبا شولو، نو ذ سحر مونځ ئے اوکړلو، بيا په خپله سورلئ سور شولو، تردے چه حضور صلے الله عليه وسلّم ذ بيداء مقام ته اورسيدلو، نو حضور صلے الله عليه وسلم ذ عمرے او حج لبّيک اووے.

باب٢٠٦: لَا يُعْطِي الْجَزَّارَ مِنَ الْهَدْيِ شَيْئًا.

باب ٢٠٦: قصاب ته دے قرباني کښې هيڅ نشي ورکيدے.

١٣١١: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيْرٍ اَخْبَرَنَا سُفْيَانُ قَالَ حَدَّثَنِيْ ابْنُ اَبِيْ نَجِيْحٍ عَنْ مُجَاهِدٍ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ اَبِيْ لَيْلٰى عَنْ عَلِيٍّ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ بَعَثَنِي النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُمْتُ عَلَى الْبُدْنِ فَاَمَرَنِيْ فَقَسَمْتُ لُحُوْمَهَا ثُمَّ اَمَرَنِيْ فَقَسَمْتُ جِلَالَهَا وَ جُلُوْدَهَا قَالَ سُفْيَانُ وَ حَدَّثَنِيْ عَبْدُ الْكَرِيْمِ عَنْ مُجَاهِدٍ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ اَبِيْ لَيْلٰى عَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ اَمَرَنِي النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنْ اَقُوْمَ عَلَى الْبُدْنِ وَلَا اُعْطِيَ عَلَيْهَا شَيْئًا فِيْ جِزَارَتِهَا.

١٣١١: محمد بن كثير. سفيان. ابن ابي نجيح. مجاهد. عبدالرحمٰن بن ابي ليلٰي. حضرت عليؓ نه روايت کوي، د هغه بيان دے، چه نبي صلي الله عليه وسلّم اوليږلم، نو زه د قرباني اوښانو له ورغلم. بيا حضور صلي الله عليه وسلّم ماته حکم راکړلو، نو ما د هغے غوښه تقسيم کړله. بيائے ماته حکم راکړلو، نو ما د هغے څرمنے او د پاسه کپړے تقسيم کړلے. د سفيان بيان دے، چه ماته عبدالکريم په واسطه د مجاهد. عبدالرحمٰن. حضرت عليؓ نه روايت کړے دے، د هغه بيان دے، ماته نبي صلي الله عليه وسلّم حکم راکړلو، چه د قرباني ځناور سره اودريږم، او د هغے نه هيڅ هم قصاب ته د، اُجرت په طور ورنه کړم.

باب٢٠٧: يُتَصَدَّقُ بِجُلُوْدِ الْهَدْيِ.

باب٢٠٧: ذ قرباني د څرمنو د خيرات کولو بيان.

١٣١٢: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا

١٣١٢: مسدد. يحيٰي. ابن جريج. حسن

يَحْيٰى عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ قَالَ اَخْبَرَنِى الْحَسَنُ بْنُ مُسْلِمٍ وَّ عَبْدُ الْكَرِيْمِ الْجَزَرِىُّ اَنَّ مُجَاهِدًا اَخْبَرَهُمَا اَنَّ عَبْدَ الرَّحْمٰنِ بْنِ اَبِىْ لَيْلٰى اَخْبَرَهٗ اَنَّ عَلِيًّا رَضِىَ اللّٰهُ عَنْهُ اَخْبَرَهٗ اَنَّ النَّبِىَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَمَرَهٗ اَنْ يَّقُوْمَ عَلٰى بُدْنِهٖ وَ اَنْ يَّقْسِمَ بُدْنَهٗ كُلَّهَا لُحُوْمَهَا وَ جُلُوْدَهَا وَ جِلَالَهَا وَلَا يُعْطِىَ فِىْ جِزَارَتِهَا شَيْئًا.

بن مسلم و عبدالکریم جزري. مجاهد. عبدالرحمٰن بن ابي لیلٰي. حضرت عليؓ نه روایت کوي، نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم هغه ته حکم ورکړلو، چه د قرباني ځناور سره اودریږي او د هغې ځناور ټول څیزونه، یعنې د هغې غوښه، دَ هغې څرمنې او د هغې د پاسه کپړې تقسیم کړي، او د قصاب په اُجرت کښ دَ هغې نه هیڅ ورنهٔ کړي.

## باب ۲۰۸: يُتَصَدَّقُ بِجِلَالِ الْبُدْنِ.

## باب ۲۰۸: د قرباني د ځناورو د پاسه د کپړو د خیرات کولو بیان.

۳۱۳: حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا سَيْفُ ابْنُ اَبِىْ سُلَيْمَانَ قَالَ سَمِعْتُ مُجَاهِدًا يَقُوْلُ حَدَّثَنِى ابْنُ اَبِىْ لَيْلٰى اَنَّ عَلِيًّا رَّضِىَ اللّٰهُ عَنْهُ حَدَّثَهٗ قَالَ اَهْدَى النَّبِىُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِائَةَ بُدْنَةٍ فَاَمَرَنِىْ بِلُحُوْمِهَا فَقَسَمْتُهَا ثُمَّ اَمَرَنِىْ بِجِلَالِهَا فَقَسَمْتُهَا ثُمَّ بِجُلُوْدِهَا فَقَسَمْتُهَا.

۳۱۳: ابونعیم. سیف بن ابي سلیمان. مجاهد. ابن ابي لیلٰي. حضرت عليؓ نه روایت کوي، نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم سل اوښان قربان کړل ماته ئې د هغې د غوښې د تقسیمولو حکم راکړلو. نو ما تقسیم کړله. بیائې د هغې د پاسه د کپړو د تقسیمولو حکم راکړلو، نو ما تقسیم کړلې. بیائې د هغې د څرمنو د تقسیمولو حکم راکړلو، نو ما دهغې څرمنې تقسیم کړلې.

## باب ۲۰۹: وَ اِذْ بَوَّاْنَا لِاِبْرَاهِيْمَ مَكَانَ الْبَيْتِ اَنْ لَّا تُشْرِكْ بِىْ شَيْئًا وَّ طَهِّرْ بَيْتِىَ لِلطَّآئِفِيْنَ وَالْقَآئِمِيْنَ وَالرُّكَّعِ السُّجُوْدِ وَ اَذِّنْ فِى النَّاسِ بِالْحَجِّ يَاْتُوْكَ رِجَالًا وَّ عَلٰى كُلِّ ضَامِرٍ يَّاْتِيْنَ مِنْ كُلِّ فَجٍّ عَمِيْقٍ لِيَشْهَدُوْا مَنَافِعَ لَهُمْ وَ يَذْكُرُوا اسْمَ

## باب ۲۰۹: دَ اللّٰه تعالٰي قول، چه کوم وخت مونږ ابراهیم علیه السلام ته دَ خانه کعبې ځائې اوښودلو، او دا چه ما سره څوک شریک مه جوړوه، او زما کور طواف کونکو، اودریدونکو او رکوع او سجدې کونکو د پاره پاک ساته، او خلقو کښ د حج اعلان اوکه، چه هغوئ تاته پیاده او په هر تپ تیپ اوښ د لرې لرې لارونه راځي، چه خپلې فائدې حاصلې کړي، او مقرره

اللّٰهِ فِیۡۤ اَیَّامٍ مَّعۡلُوۡمٰتٍ عَلٰی مَا رَزَقَهُمۡ مِّنۡۢ بَهِیۡمَةِ الۡاَنۡعَامِ فَكُلُوۡا مِنۡهَا وَ اَطۡعِمُوا الۡبَآئِسَ الۡفَقِیۡرَ ثُمَّ لۡیَقۡضُوۡا تَفَثَهُمۡ وَلۡیُوۡفُوۡا نُذُوۡرَهُمۡ وَلۡیَطَّوَّفُوۡا بِالۡبَیۡتِ الۡعَتِیۡقِ ○ ذٰلِكَ وَمَنۡ یُّعَظِّمۡ حُرُمٰتِ اللّٰهِ فَهُوَ خَیۡرٌ لَّهٗ عِنۡدَ رَبِّهٖ.

ورځو کښې د اللّٰه نوم په هغې څيزونو واخلي چه کوم څناورو هغوي له اللّٰه ورکړے وي. بيا د هغې څناورو نه خورئ او فقيرانو محتاجو باندے خوروئ. بيا خپل ميل کچيل (خيرے) لرے کړئ او خپلے نذرانے پوره کړئ او د خانه کعبې طواف اوکړئ دا په دے سبب چه څوک د اللّٰه دَ حرمتو عزت کوي هغه د هغهٔ د رب په نزد بهتر دے.

باب ١٠ ٢ ١ : مَا يَأْكُلُ مِنَ الْبُدْنِ وَمَا يُتَصَدَّقُ وَ قَالَ عُبَيْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنِيْ نَافِعٌ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا لَا يُؤْكَلُ مِنْ جَزَآءِ الصَّيْدِ وَالنَّذْرِ وَ يُؤْكَلُ سِوٰى ذٰلِكَ وَ قَالَ عَطَآءٌ يَّاْكُلُ وَ يُطْعِمُ مِنَ الْمُتْعَةِ.

باب ١٠ ٢ ١ : دَ دے امر بيان چه دَ قرباني دَ څناورو نه څه خوړل او څه خيرات کول پکار دي. او عبيداللّٰه بيان اوکه چه ماته نافع په واسطه د ابن عمرؓ بيان اوکه چه د ښکار د بدلے نه او نذر نه خوړل نه دي پکار او دَ دے نه علاوه دے خوري. او عطاء اووے چه د تمتع د قرباني نه دے خپله خوري او نورو باندے خوروَي.

١. د احنافو مسلک کښې د نفلي قربانئ او د تمتّع او د قِران د قرباني غوښه پخپله هم خوړلے شي او نورو ته هم ورکولے شي ځکه چه دا قرباني د شکر ادا کولو په طور ده. ليکن کومه قرباني چه د کفارے يا د جزا په وجه دي د هغې غوښه نشي خوړے. په حدودِ حرم کښې د ښکار په وجه چه کومه قربانئ واجبه شي هغه د شکر کولو نَده هغه د سزا او د کفارے په وجه ده د هغې غوښه نشي خوړلے. د عبداللّٰه بن عمر رضي اللّٰه عنهما دا اقوال چه پدے حديث شريف کښې ذکر دي دا د احنافو د مسلک دي.

١٦٢٤: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ حَدَّثَنَا عَطَآءٌ سَمِعَ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا يَقُوْلُ كُنَّا لَا نَاْكُلُ مِنْ لُحُوْمِ بُدْنِنَا فَوْقَ ثَلٰثِ مِنًى فَرَخَّصَ لَنَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ كُلُوْا وَ تَزَوَّدُوْا فَاَكَلْنَا وَ تَزَوَّدْنَا قُلْتُ لِعَطَآءٍ قَالَ حَتّٰى جِئْنَا الْمَدِيْنَةَ قَالَ لَا.

١٦٢٤: مسدد. يحيٰي. ابن جريج. عطاء. جابر بن عبداللّٰه نه روايت کوي هغه بيان کوي چه مونږ خلقو به د منٰي د ورځو نه زيات دَ خپلو قربانو غوښه نه خوړله. بيا نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم مونږ خلقوله اجازت راکړلو او وے فرمائيل چه خورئ او توښه جوړه کړئ نو مونږ خلقو او خوړله او توښه مو جوړه کړله. ما د عطاء نه تپوس اوکه چه آيا هغه دا هم بيان اوکه تردے چه مونږ خلق مدينے ته اورسيدو نو هغه جواب اوکه نه.

۱۵۳: حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ مَخْلَدٍ حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ قَالَ حَدَّثَنِيْ يَحْيٰى قَالَ حَدَّثَتْنِيْ عُمْرَةُ قَالَتْ سَمِعْتُ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا تَقُوْلُ خَرَجْنَا مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِخَمْسٍ بَقِيْنَ مِنْ ذِي الْقَعْدَةِ وَلَا نُرٰى اِلَّا الْحَجَّ حَتّٰى اِذَا دَنَوْنَا مِنْ مَكَّةَ اَمَرَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ لَّمْ يَكُنْ مَعَهٗ هَدْيٌ اِذَا طَافَ بِالْبَيْتِ ثُمَّ يَحِلُّ عَائِشَةُ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا فَدُخِلَ عَلَيْنَا يَوْمَ النَّحْرِ بِلَحْمِ بَقَرٍ فَقُلْتُ مَا هٰذَا فَقِيْلَ ذَبَحَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ اَزْوَاجِهٖ قَالَ يَحْيٰى فَذَكَرْتُ هٰذَا الْحَدِيْثَ لِلْقَاسِمِ فَقَالَ اَتَتْكَ بِالْحَدِيْثِ عَلٰى وَجْهِهٖ.

۱۵۳: خالد بن مخلد. سلیمان. یحيٰي عمره بیان کوي، ما د بي بي عائشےؓ نه واوریدل، چه مونږ خلق رسول اللّٰه صلے اللّٰه علیه وسلّم سره روان شولو، چه د، ذي قعدے د میاشتے پنځه ورځے لا باقي وے. او خمونږ خلقو صرف د حج اراده وه، تردے چه مونږ مکے ته نزدے شو، نو رسول اللّٰه صلے اللّٰه علیه وسلم مونږ ته حکم راکه، چه چا سره د قرباني خناور نه وي، کوم وخت چه ذ خانه کعبے طواف اوکړي، نو د، احرام نه دے بهر شي. د بي بي عائشےؓ بیان دے، مونږ ته د قرباني په ورځ د، غوا غوښه راوړے شوه. ما تپوس اوکه، دا څه دي. خلقو اووے، چه نبي صلے اللّٰه علیه وسلّم د خپلو بیبیانو د طرفنه ذبح کړے ده، یحيٰي اووے. ما دا حدیث قاسم ته بیان که، نو هغه اووے، چه عمره دا حدیث تا ته ټیک بیان کړے دے.

باب ۱۲۱: اَلذَّبْحُ قَبْلَ الْحَلْقِ.

باب ۱۲۱: د سر خریلو نه مخکښ د، ذبح کولو بیان.

۱۶۳: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ حَوْشَبٍ حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ اَخْبَرَنَا مَنْصُوْرٌ عَنْ عَطَاءٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ سُئِلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَمَّنْ حَلَقَ قَبْلَ اَنْ يَّذْبَحَ وَ نَحْوِهٖ فَقَالَ لَا حَرَجَ لَا حَرَجَ.

۱۶۳: محمّد بن عبداللّٰه بن حوشب هشیم. منصور. عطاء. ابن عباسؓ نه روایت کوي. نبي صلے اللّٰه علیه وسلّم نه د هغے سړي متعلق تپوس اوکړے شو، چه هغه د، ذبح نه مخکښ سر، اوخریلو، یا ددے قسم څه څیز، ئے مخکښ ورستو که، نو حضور صلے اللّٰه علیه وسلّم او فرمائیل، هیڅ حرج نشته. هیڅ حرج نشته[۱].

۱. د لوئے اختر په ورځ چه د قرباني ورځ ده پدے ورځ حاجیانو ته څلور کارونه کول دي. (۱) رمي،

شيطان ويشل په ووړو ووړو كانړو' (۲) قرباني كول (۳) سر خرئيل (حلق كول) (۴) طواف زيارت كول. د قارن د پاره چه عمره او حج په يو خائے كوي هغه ته دا كارونه ۱. نه ۴ پورے په ترتيب كول دي. ليكن په مُفرِد (يواخے حج كونكي) قرباني نشته پدے خلورو كارونو كښ د طواف حيثيت صرف د عبادت دے كه چرے د طواف نه وړاندے دا كارونه اوشي نو څه گناه نشته ليكن د مُفرد (يواخے حج كونكي) ته په شيطان ويشتلو او سر خريلو كښ ترتيب ضروري دے دا په دے وجه چه په هغه قرباني واجب نده. او د قارن او متمتّع د پاره قرباني واجب ده. سوال كونكي صحابي د ترتيب د خطا كيدو په حقله چه كوم سوالونه كړے وو هغه شپږ كارونه وو. تفصيلي احاديثو كښ د هغے بيان شته دے رسول الله صلي الله عليه وسلم د ټولو په حقله فرمايلي وو. چه څه گناه نشته. د امام ابو حنيفه رحمة الله عليه په نزد' د ترتيب خطا كيدو كښ هم دا مسئله ده.

احناف د دے حديث شريف په حقله وائي. چه حج د نورو عباداتو نه په خاص احكامو كښ مختلف دے بعض وختونو كښ' شريعت حاجي ته د ممنوع كار اجازت وركوي ليكن وربانددے تاوان او كفاره ږدي. د دے وجے نه د "لَا حَرَجَ" معني دا ده گناه نشته ليكن د جزا' د تاوان د كفاره نيشتوالے مقصود ندے ليكن كه چرے د دينه د تاوان او د جزا نيشتوالے مقصد وي نو دا څكه چه دا حج د اُمت د پاره د رسول الله صلي اللّٰه عليه وسلم په ملګرتيا كښ اولنے وو نو شريعت د حج د احكامو نه بے خبري عُذر او ګنړه او تاوان او جزاء ئے په دغه كال ختم كړو بعض حالاتو كښ بے خبري عذر ګنړلے شي.

۱۷۳۱: حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ يُوْنُسَ اَخْبَرَنَا اَبُوْ بَكْرٍ عَنْ عَبْدِ الْعَزِيْزِ ابْنِ رُفَيْعٍ عَنْ عَطَآءٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ رَجُلٌ لِلنَّبِيِّ صَلَّے اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زُرْتُ قَبْلَ اَنْ اَرْمِيَ قَالَ لَا حَرَجَ قَالَ حَلَقْتُ قَبْلَ اَنْ اَذْبَحَ قَالَ لَا حَرَجَ قَالَ ذَبَحْتُ قَبْلَ اَنْ اَرْمِيَ قَالَ لَا حَرَجَ قَالَ ذَبَحْتُ قَبْلَ اَنْ اَرْمِيَ قَالَ لَا حَرَجَ وَ قَالَ عَبْدُ الرَّحِيْمِ الرَّزِيُّ عَنِ ابْنِ خُثَيْمٍ اَخْبَرَنِيْ عَطَآءٌ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا عَنِ النَّبِيِّ صَلَّے اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ قَالَ الْقَاسِمُ بْنُ يَحْيٰى حَدَّثَنِيْ ابْنُ خُثَيْمٍ عَنْ عَطَآءٍ

۱۷۳۱: احمد بن يونس. ابوبكر. عبدالعزيز بن رفيع. عطاء. ابن عباسؓ نه روايت كوي' يو سړي نبي صلے اللّٰه عليه وسلم ته عرض اوكه' ما د' رمي نه مخكښ زيارت كړے دے. حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم ورته او فرمائيل' هيڅ حرج نشته بيا هغه عرض اوكه' ما د' ذبح نه مخكښ سر' خريلے دے. حضور صلے اللّٰه عليه وسلم ورته او فرمائيل. هيڅ حرج نشته. بيا هغه عرض اوكه ما د' رمي نه مخكښ ذبح كړے ده' حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ورته او فرمائيل' هيڅ حرج نشته. او عبدالرحيم رازي دا حديث په واسطه. د' ابن خثيم عطاء. ابن عباس. نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم نه روايت كړے دے. او قاسم بن يحيٰي په واسطه د' ابن خثيم. ابن عباسؓ د نبي

عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ قَالَ عَفَّانُ أُرَاهُ عَنْ وُهَيْبٍ حَدَّثَنَا ابْنُ خُثَيْمٍ عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ قَالَ حَمَّادٌ عَنْ قَيْسِ بْنِ سَعْدٍ وَّ عَبَّادِ بْنِ مَنْصُورٍ عَنْ عَطَآءٍ عَنْ جَابِرٍ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

صلی الله علیه وسلّم نه روایت کړې دې. او قاسم بن یحیی په واسطه د' ابن خثیم. ابن عباسؓ د نبي صلی الله علیه وسلّم نه روایت کړې دې. او عفان اووې' زه پوهیږم' چه وهیب په واسطه د' ابن خثیم' سعید بن جبیر. ابن عباسؓ. نبي صلی الله علیه وسلّم نه روایت کړې دې. او حماد' د قیس بن سعد او عباد بن منصور نه په واسطه د عطاء. جابر. نبي صلی الله علیه وسلّم نه روایت کړې دې.

۱۳۱۸: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنّٰى حَدَّثَنَا عَبْدُ الْاَعْلٰى حَدَّثَنَا خَالِدٌ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ سُئِلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ اٰلِهٖ وَسَلَّمَ فَقَالَ رَمَيْتُ بَعْدَ مَا اَمْسَيْتُ فَقَالَ لَا حَرَجَ قَالَ حَلَقْتُ قَبْلَ اَنْ اَنْحَرَ قَالَ لَا حَرَجَ.

۱۳۱۸: محمد بن مثنٰي. عبدالاعلٰي. خالد عکرمه. حضرت ابن عباسؓ نه روایت کوي. نبي صلی الله علیه وسلّم نه چا تپوس اوکه' د' مابنام کیدو نه پس ما رَمي اوکړله' نو حضور صلی الله علیه وسلّم ورته او فرمائیل. هیڅ حرج نشته' هغه عرض اوکه' ما د قرباني کولو نه مخکښ سر اوخریلو. حضور صلي الله علیه وسلّم ورته اوفرمائیل. هیڅ حرج نشته.

۱۳۱۹: حَدَّثَنَا عَبْدَانُ قَالَ اَخْبَرَنِيْ اَبِيْ عَنْ شُعْبَةَ عَنْ قَيْسِ بْنِ مُسْلِمٍ عَنْ طَارِقِ بْنِ شِهَابٍ عَنْ اَبِيْ مُوْسٰى رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ قَدِمْتُ عَلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ بِالْبَطْحَآءِ فَقَالَ اَحَجَجْتَ قُلْتُ نَعَمْ قَالَ بِمَا اَهْلَلْتَ قُلْتُ لَبَّيْكَ بِاِهْلَالٍ كَاِهْلَالِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اَحْسَنْتَ اِنْطَلِقْ فَطُفْتُ بِالْبَيْتِ وَ بِالصَّفَا وَالْمَرْوَةِ ثُمَّ

۱۳۱۹: عبدان. د' عبدان پلار (عثمان) شعبه. قیس بن مسلم. طارق بن شهاب. ابو موسٰي نه روایت کوي' زه رسول الله صلی الله علیه وسلّم له راغلم. نو حضور صلی الله علیه وسلّم او فرمائیل' آیا تا حج اوکه. ما اووې. او. حضور صلی الله علیه وسلّم تپوس اوکه' تا د څه څیز احرام تړلې وو. ما عرض اوکه. د' نبي صلی الله علیه وسلّم د' احرام په شان احرام م تړلې وو' حضور صلی الله علیه وسلم او فرمائیل تا ښه اوکړل. اوس څه' نو ما' د خانه کعبې او صفا مروه

اَتَيْتُ امْرَاَةً مِّنْ نِّسَآءِ بَنِيْ قَيْسٍ فَفَلَتْ رَأْسِيْ ثُمَّ اَهْلَلْتُ بِالْحَجِّ وَ كُنْتُ اُفْتِيْ بِهِ النَّاسَ حَتّٰى خِلَافَةِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ فَذَكَرْتُهُ فَقَالَ اِنْ نَّاْخُذْ بِكِتَابِ اللّٰهِ فَاِنَّهُ يَاْمُرُنَا بِالتَّمَامِ وَ اِنْ نَّاْخُذْ بِسُنَّةِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاِنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمْ يَحِلَّ حَتّٰى بَلَغَ الْهَدْىُ مَحِلَّهُ.

طواف اوكه. بيا زه د بني قيس يوې ښځې له راغلم، هغې خما د سر نه سپږې اوشكلې. بيا ما د حج احرام او تړلو ما به د حضرت عمرؓ د خلافت پورې خلقوته دغه فتوئ وركوله. ما هغه ته دا بيان اوكه، نو هغه اووې، كه په كتاب اللّٰه عمل كوو، نو هغه مونږ ته د، پوره كولو حكم راكوي، او كه په سُنت د، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم علم كوو. نو رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلّم د، احرام نه هغه وخته پورې بهر نه شولو، څو پورې چه قرباني خپل ځائے ته اونه رسيده.

## بَابٌ ۲۱۲: مَنْ لَبَّدَ رَاْسَهُ عِنْدَ الْاِحْرَامِ وَ حَلَقَ.

## باب ۲۱۲: د هغې سړي بيان چه د، احرام په وخت د خپل سر، ويښته يوځائے كړي. او احرام نه د، وتلو په وخت د، حلق كولو بيان.

۱۳۲۰: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ نَّافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ عَنْ حَفْصَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ اَنَّهَا قَالَتْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ مَا شَاْنُ النَّاسِ حَلُّوْا بِعُمْرَةٍ وَلَمْ تَحْلِلْ اَنْتَ مِنْ عُمْرَتِكَ قَالَ اِنِّيْ لَبَّدْتُ رَاْسِيْ وَ قَلَّدْتُ هَدْيِيْ فَلَا اَحِلُّ حَتّٰى اَنْحَرَ.

۱۳۲۰: عبداللّٰه بن يوسف. مالک. نافع. ابن عمر. بي بي حفصےؓ نه روايت كوي، بي بي حفصې عرض اوكه، يا رسول اللّٰه، څه خبره ده، چه خلقو د، عمرې نه پس احرام پرانستلو، او تاسو د، احرام نه بهر نه شولئې. حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، ما د خپل سر، ويښته يوځائے كړي دي. او د قرباني د ځناور غاړه كښې مِ هار، اچولے دے، څو پورې چه قرباني اونه كړم، د احرام نه نشم بهر كيدے.

## باب ۲۱۳: اَلْحَلْقِ وَالتَّقْصِيْرِ عِنْدَ الْاِحْلَالِ.

## باب ۲۱۳: د احرام پرانستلو په وخت د، سر خريلو يا، د، ويښتو قينچي كولو بيان.

۱۳۲۱: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبُ بْنُ اَبِيْ حَمْزَةَ قَالَ نَافِعٌ كَانَ ابْنُ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا يَقُوْلُ حَلَقَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

۱۳۲۱: ابو اليمان. شعيب بن ابي حمزه. نافع. ابن عمرؓ وائيل چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم خپل حج كښې سر، خريلے

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ حَجَّتِهِ.

دي.

۳۲۲: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ أَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ نَافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اَللّٰهُمَّ ارْحَمِ الْمُحَلِّقِيْنَ قَالُوْا وَالْمُقَصِّرِيْنَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ اللّٰهُمَّ ارْحَمِ الْمُحَلِّقِيْنَ قَالُوْا وَالْمُقَصِّرِيْنَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ وَالْمُقَصِّرِيْنَ وَ قَالَ اللَّيْثُ حَدَّثَنِيْ نَافِعٌ رَحِمَ اللّٰهُ الْمُحَلِّقِيْنَ مَرَّةً أَوْ مَرَّتَيْنِ قَالَ وَ قَالَ عُبَيْدُ اللّٰهِ حَدَّثَنِيْ نَافِعٌ وَّ قَالَ فِي الرَّابِعَةِ وَالْمُقَصِّرِيْنَ.

۳۲۲: عبدالله بن یوسف. مالک. نافع. عبدالله بن عمرؓ نه روایت کوي، رسول الله صلے الله علیه وسلّم او فرمائیل، اے خما الله، په سر، خریونکو رحم او کړے. خلقو عرض او که، او ویښته قینچي کونکو باندے، یا رسول الله، حضور صلے الله علیه وسلّم او فرمائیل، اے الله، په سر خریونکو رحم او کړے. خلقو عرض او که، او ویښته قینچي کونکو باندے، یا رسول الله، حضور صلے الله علیه وسلّم او فرمائیل او په ویښتو قینچي کونکو باندے (رحم او کړے) او دلیث بیان دے، چه ماته نافع رحم الله المحلقین (سر خریونکو باندے رحم او کړے) یو ځل یا، دوه ځله بیان کړل. او عبیدالله اووے، ماته نافع بیان او که، چه حضور صلے الله علیه وسلّم په څلورم ځل والمقصرین (ویښته قینچي کونکو باندے) او فرمائیل.

۳۲۳: حَدَّثَنَا عَيَّاشُ بْنُ الْوَلِيْدِ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ فُضَيْلٍ حَدَّثَنَا عُمَارَةُ بْنُ الْقَعْقَاعِ عَنْ أَبِيْ زُرْعَةَ عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ اٰلِهٖ وَسَلَّمَ اَللّٰهُمَّ اغْفِرْ لِلْمُحَلِّقِيْنَ قَالُوْا وَ لِلْمُقَصِّرِيْنَ قَالَ اَللّٰهُمَّ اغْفِرْ لِلْمُحَلِّقِيْنَ قَالُوْا وَ لِلْمُقَصِّرِيْنَ قَالَهَا ثَلٰثًا قَالَ وَ لِلْمُقَصِّرِيْنَ.

۳۲۳: عیاش بن ولید. محمد بن فضیل. عماره بن قعقاع. ابوزرعه. ابوهریرهؓ نه روایت کوي، رسول الله صلے الله علیه وسلّم او فرمائیل، اے الله، سر، خریونکي اوبښے. خلقو عرض او که، او ویښته قینچي کونکي، یا رسول الله، حضور صلے الله علیه وسلّم اوفرمائیل اے الله، سر، خریونکي اوبښے. خلقو عرض او که، او ویښته قینچي کونکي، یا رسول الله، دا، ئے درے ځله اووے، او په څلورم ځل حضور صلے الله علیه وسلم او فرمائیل، او ویښته قینچي کونکي (اوبښے).

۳۲۴: حَدَّثَنَا أَبُوْ عَاصِمٍ عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ عَنِ الْحَسَنِ بْنِ مُسْلِمٍ

۳۲۴: عبدالله بن محمد بن اسماء. جویریه بن اسماء. نافع. عبداللهؓ نه روایت کوي، چه نبي

عَنْ طَاؤسٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنْ مُعَاوِيَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ قَالَ قَصَّرْتُ عَنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمِشْقَصٍ.

صلی اللّٰه علیه وسلّم او ذ حضور صلی اللّٰه علیه وسلّم د صحابهؓ یو جماعت سر اوخریلو، او هغوي کښ بعضو ویښته قینچي کړل۱.

۱. د حج د اعمالو نه د اوزګاریدو نه پس حاجي ته خپل سر خرَیل (حلق کول۹ یا په قینچي وغیره خپل د سر ویښته کمُول (قصر کول۹ دواړه روا دي. او دواړو کښ هر یو چه اوکړو. نو پکښ ګناه نشته. د سر د ویښتو خَریل غوره دي. پدے وجه رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلم سر خرونکو ته زیاته دعا کړیده ځکه چه د شریعت په حکم زیات عمل کړے. او چا چه د سر ویښته په قینچي وغیره کم کړیدي هغوي ته ئے یو ځل دعا کړیده.

۳۲۵: حَدَّثَنَا اَبُوْ عَاصِمٍ عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ عَنِ الْحَسَنِ بْنِ مُسْلِمٍ عَنْ طَاؤسٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنْ مُعَاوِيَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ قَالَ قَصَّرْتُ عَنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمِشْقَصٍ.

۳۲۵: ابوعاصم. ابن جریج. حسن بن مسلم. طاؤس. ابن عباسؓ. حضرت معاویهؓ نه روایت کوي، د هغه بیان دے، چه ما د، رسول اللّٰه صلی اللّٰه علیه وسلّم ویښته قینچي۲ سره پریکړل.

۲. دا د حَجَّةُ الوَداع واقعه نه ده په حجّة الوَداع کښ رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلم سر خریلے وو دے حدیث شریف کښ معاویه رضي اللّٰه عنه پخپل لاس سره په قینچي د رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلم د سر د ویښتو د پریکولو ذکر کړیدے د حدیث شریف شرحه لیکونکو ته په دے کښ ډیر مشکلات راغلي دي چه دا د کله واقعه ده. معلومیږي دا چه دا د هجرت نه مخکښ واقعه ده کله چه حج فرض شوے نه وو نو هم به رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلم حج کړلو، دا د سِیَریه کتابونو کښ شته دے.

## باب ۲۱۴: تَقْصِيْرِ الْمُتَمَتِّعِ بَعْدَ الْعُمْرَةِ.

## باب ۲۱۴: د تمتع کونکي د، عمرے نه پس د، ویښته قینچي کولو بیان.

۳۲۶: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ اَبِيْ بَكْرٍ حَدَّثَنَا فُضَيْلُ بْنُ سُلَيْمَانَ حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ عُقْبَةَ اَخْبَرَنِيْ كُرَيْبٌ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ لَمَّا قَدِمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَكَّةَ اَمَرَ اَصْحَابَهٗ اَنْ

۳۲۶: محمّد بن ابي بکر، فضیل بن سُلیمان موسی بن عقبه. کریب. حضرت ابن عباسؓ نه روایت کوي، هغه وائي، کوم وخت چه نبي صلی اللّٰه علیه وسلّم مکے ته اورسیدلو، نو حضور صلی اللّٰه علیه وسلّم خپلو صحابهؓ ته حکم ورکړلو، چه د خانه کعبے او صفا مروه طواف اوکړي.

يَطُوْفُوْا بِالْبَيْتِ وَ بِالصَّفَا وَالْمَرْوَةِ ثُمَّ يَحِلُّوْا وَ يَحْلِقُوا وَ يُقَصِّرُوا.

بيا د' احرام نه بهر شي او' سر' اوخرئي يا وېښته قينچي کړي.

باب ۲۱۵: الزِّيَارَةِ يَوْمَ النَّحْرِ وَ قَالَ اَبُو الزُّبَيْرِ عَنْ عَائِشَةَ وَابْنُ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ اَخَّرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الزِّيَارَةَ اِلَى الَّيْلِ وَ يُذْكَرُ عَنْ اَبِيْ حَسَّانَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَزُوْرُ الْبَيْتَ اَيَّامَ مِنًى وَ قَالَ لَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا سُفْيٰنُ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا اَنَّهُ طَافَ طَوَافًا وَّاحِدًا ثُمَّ يَقِيْلُ ثُمَّ يَاتِيْ مِنًى يَعْنِيْ يَوْمَ النَّحْرِ وَ رَفَعَهُ عَبْدُ الرَّزَّاقِ اَخْبَرَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ.

باب ۲۱۵: د قربانۍ په ورځ د' زيارت کولو بيان. او ابوالزبير د' بي بي عائشې او حضرت ابن عباس نه نقل کړې دې' چه نبي صلى الله عليه وسلم طوافِ زيارت د شپې پورې موخر کړلو[1]. او په سند' د' ابو حسان. حضرت ابن عباس نه منقول دي' چه نبي صلى الله عليه وسلم به دَ خانه کعبې زيارت د منٰي په زمانه[2] کښې کولو. او مونږ ته ابو نعيم اووې' چه ماته سفيان په واسطه د عبيدالله. نافع' ابن عمر روايت اوکه' چه هغه يو طواف اوکه. بيا سملاست. بيا منٰي ته د قرباني په ورځ راغې' او عبدالرزاق دا مرفوع بيان که. او' وې وُئيل' چه مونږ ته عُبيد الله بيان اوکه.

۱. د لوئې اختر په ورځ (د قربانۍ په ورځ (يوم النحر) د رسول الله صلي الله عليه وسلم د طواف په سلسله کښې د راويانو اختلاف دې بعضې رواياتو کښې دي د ورځې ئې طواف کړې وو او بعضې رواياتو کښې د شپې د طواف ذکر دې علامه انور شاه کشميري رحمة الله عليه ليکلې دي. چه زياته ښکاره دا خبره ده چه رسول الله صلي الله عليه وسلم د ماسپخين نه پس طواف کړې وو چه بعضې راويانو په خپل تصرف سره د ماسپخين پخانې د شپې ذکر کړه. عربي ژبه کښې بعضې الفاظ داسې دې چه د هغې معنې د ماسپخين نه شپې پورې دي لکه عَشِيّ' مَسَاء وغيره.

۲. د لوئې اختر د ورځ (يَومُ النَّحر) نه روستو چه رسول الله صلي الله عليه وسلم کوم طوافونه د مِنٰي په ورځو کښې کول دا نفلي طوافونه وو. د طواف قُدوم (چه په اول ځل رسيدو سره د خانه کعبې طواف) او د طواف اِفاضه (طوافِ زيارت + فرض طواف) په مينځ کښې د طواف د ثابتولو نه .ام بخاري رحمة الله عليه انکار کوي ليکن بيهقي رحمة الله عليه په دلائلو ثابت کړې دې.

۳۲۷: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ جَعْفَرِ بْنِ رَبِيْعَةَ عَنِ الْاَعْرَجِ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبُوْ سَلَمَةَ

۳۲۷: يحيٰي بن بکير. ليث. جعفر بن ربيعه. اعرج. ابوسلمه بن عبدالرحمٰن. بي بي عائشې نه روايت کوي' د هغې بيان دې' چه مونږ نبي صلى الله عليه وسلم

بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ اَنَّ عَآئِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ حَجَجْنَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَفَضْنَا يَوْمَ النَّحْرِ فَحَاضَتْ صَفِيَّةُ فَاَرَادَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْهَا مَا يُرِيْدُ الرَّجُلُ مِنْ اَهْلِهِ فَقُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّهَا حَائِضٌ قَالَ حَابِسَتُنَا هِيَ قَالُوْا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَفَاضَتْ يَوْمَ النَّحْرِ قَالَ اخْرُجُوْا وَ يُذْكَرُ عَنِ الْقَاسِمِ وَ عُرْوَةَ وَالْاَسْوَدِ عَنْ عَآئِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا اَفَاضَتْ صَفِيَّةُ يَوْمَ النَّحْرِ.

سره حج اوکه، نو د قرباني په ورځ مو طوافِ زيارت اوکه. بي بي صفيےؓ ته حيض راغے، نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم هغے سره، ذ هغے کار، اراده اوکړله، چه خاوند، خپلے ښځے سره غواړي (يعني د صحبت اراده ئے اوکړله) نو ما عرض اوکه، يا رسول اللّٰه، هغه خو، حائضه شوے ده. نو مونږ هغے ايسار کړے يو. خلقو اووے، چه هغے ذ قرباني په ورځ طواف زيارت کړے دے، نو وے فرمائيل (اوس د، ايساريدو څۀ ضرورت دے) ځئے، او قاسم. عروه او، اسود ذ بي بي عائشےؓ نه نقل کوي، چه بي بي صفيےؓ د قرباني په ورځ طوافِ زيارت کړے وو.

باب ۲۱٦ ا : اِذا رمٰى بَعْدَ مَا اَمْسٰى اَوْ حَلَقَ قَبْلَ اَنْ يَّذْبَحَ نَاسِيًا اَوْ جَاهِلًا.

باب ۲۱٦ ا : مابنام نه پس که څوک رمي اوکړي يا په هيره يا، ناواقفيت کښې ذ ذبح کولو نه مخکښې سر، اوخرئي.

۳۲۸: حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ اِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ حَدَّثَنَا ابْنُ طَاؤسٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قِيْلَ لَهُ فِي الذَّبْحِ وَالْحَلْقِ وَالرَّمِيِّ وَالتَّقْدِيْمِ وَالتَّاخِيْرِ فَقَالَ لَا حَرَجَ.

۳۲۸: موسٰي بن اسمٰعيل. وهيب. ابن طاؤس د خپل پلار نه، هغه د حضرت ابن عباسؓ نه روايت کوي ذ هغه بيان دے، چه نبي صلي اللّٰه عليه وسلم نه د، ذبح، سر، خريلو او، رمي د مقدّم او موخر کولو متعلق تپوس اوشو، نو حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، هيڅ حرج نشته.

۳۲۹: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا يَزِيْدُ بْنُ زُرَيْعٍ حَدَّثَنَا خَالِدٌ عَنْ عِكْرَمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ

۳۲۹: علي بن عبداللّٰه. يزيد بن زريع. خالد. عکرمه. حضرت ابن عباسؓ نه روايت کوي، چه نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم نه به مني کښې د نحر (قرباني) په ورځ تپوس اوشو، نو حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم به فرمائيل، هيڅ حرج نشته. حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم نه

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُسْئَلُ يَوْمَ النَّحْرِ بِمِنًى فَيَقُوْلُ لَا حَرَجَ فَسَآلَهُ رَجُلٌ فَقَالَ حَلَقْتُ قَبْلَ اَنْ اَذْبَحَ قَالَ اذْبَحْ وَلَا حَرَجَ وَ قَالَ رَمَيْتُ بَعْدَ مَآ اَمْسَيْتُ فَقَالَ لَا حَرَجَ.

يو سړي تپوس او كه، چه ما د، ذبح نه مخكښ سر، او خريلو، نو حضور صلے الله عليه وسلّم ورته او فرمائيل ذبح كوه، څه حرج نشته. او هغه اووے، چه ما د مابنام كيدو نه پس رَمي او كړه، نو حضور صلے الله عليه وسلّم ورته او فرمائيل، هيڅ حرج نشته.

## بَابٌ ۲۱۷ : اَلْفُتْيَا عَلَى الدَّابَّةِ عِنْدَ الْجَمْرَةِ.

باب ۲۱۷ : جمره سره نزدے سوريدل او خلقوته دَ مسئلے ښودلو بيان.

۰ ۳۳: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنِ ابْنِ شَهَابٍؒ عَنْ عِيْسَى بْنِ طَلْحَةَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَفَ فِي حَجَّةِ الْوِدَاعِ فَجَعَلُوا يَسْاَلُوْنَهُ فَقَالَ رَجُلٌ لَمْ اَشْعُرْ فَحَلَقْتُ قَبْلَ اَنْ اَذْبَحَ قَالَ اذْبَحْ وَ لَا حَرَجَ فَجَآءَ اٰخَرُ فَقَالَ لَمْ اَشْعُرْ فَنَحَرْتُ قَبْلَ اَنْ اَرْمِيَ قَالَ ارْمِ وَلَا حَرَجَ فَمَا سُئِلَ يَوْمَئِذٍ عَنْ شَيْءٍ قُدِّمَ وَلَا اُخِّرَ اِلَّا قَالَ افْعَلْ وَلَا حَرَجَ.

۰ ۳۳: عبداللّٰه بن يُوسف. مالک. ابن شهاب. عيسٰي بن طلحه. عبداللّٰه بن عمرؓ نه روايت كوي، چه رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلّم حجة الوداع كښ اودريدلو، نو خلقو ترے مسئلے تپوس شروع كړل. يو سړي عرض او كه، ماته معلومه نهٔ وه، په دے وجه، ذبح كولو نه مخكښ مِ سر، اوخريلو حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم ورته او فرمائيل: ذبح او كړه، هيڅ حرج نشته. دويم سړے راغے، هغه عرض او كه، ماته پته نهٔ وه. نو دَ رمي كولو نه مخكښ مِ قرباني او كړه. حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل. رَمي او كړه، هيڅ حرج نشته په هغه ورځ دَ كوم څيز متعلق چه ترے تپوس اوشولو. چه مقدّم شوے يا موخّر شوے دے، نو حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل. اوس او كړه، هيڅ حرج نشته(۱).

۱. د دے عبارت ښكاره او صفا معلوميږي چه د حج د مسائلو نه بے خبرئ په وجه چه عامو خلقو ته كرانه پيښه شوے وه د حج (جنايات) هغه كارونه چه دَ هغے په كولو په حاجي كفّاره رازي، هغه ټول په هغه ورځ دَ رَحمَةٌ لِلّعَالَمِين د رحمت په وجه معاف شو. اګرچه په عامو حالاتو كښ د شريعت د مسائلو نه دبے خبرئ او ناپوهئ اعتبار نه كيږي. ليكن بعضے حالاتو كښ ورته اعتبار وركيږي.

۳۳۱: حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ يَحْيَى بْنِ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا اَبِيْ حَدَّثَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ حَدَّثَنِي الزُّهْرِيُّ عَنْ عِيْسَى

۳۳۱: سعيد بن يحيٰي بن سعيد. ابن جريج. زهري. عيسٰي بن طلحه. عبداللّٰه بن عمرو بن عاص روايت كوي، چه هغه نبي صلے اللّٰه عليه

بْنِ طَلْحَةَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ حَدَّثَهُ اَنَّهُ شَهِدَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَخْطُبُ يَوْمَ النَّحْرِ فَقَامَ اِلَيْهِ رَجُلٌ فَقَالَ كُنْتُ اَحْسِبُ اَنَّ كَذَا قَبْلَ كَذَا ثُمَّ قَامَ اٰخَرُ فَقَالَ كُنْتُ اَحْسِبُ اَنَّ كَذَا قَبْلَ كَذَا حَلَقْتُ قَبْلَ اَنْ اَنْحَرَ نَحَرْتُ قَبْلَ اَنْ اَرْمِيَ وَ اَشْبَاهَ ذٰلِكَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ افْعَلْ وَلَا حَرَجَ لَهُنَّ كُلِّهِنَّ فَمَا سُئِلَ يَوْمَئِذٍ عَنْ شَيْءٍ اِلَّا قَالَ افْعَلْ وَلَا حَرَجَ.

وسلّم سره موجود وو، كوم وخت چه حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم ذ قرباني په ورځ خطبه وركوله. يو سړے ذ حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم مخے ته اودريدلو، او وے وئيل، ځما دا خيال وو، چه فلاني كار، ذ فلاني كار، نه مخكښ كول پكار وو. ما ذ قرباني نه مخكښ سر، اوخريلو. او د، رَمي نه مخكښ م قرباني اوكړله. او دغه شان خبرے ئے اوكړلے، نو نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم ورته او فرمائيل. اوس اوكړه، دے تولو كښ هيڅ حرج نشته، نو په هغه ورځ ذ څه څيز متعلق چه حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم نه تپوس اوشو، نو وے فرمائيل، اوس اوكړه، هيڅ حرج نشته.

۳۳۲: حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ قَالَ اَخْبَرَنَا يَعْقُوْبُ بْنُ اِبْرَاهِيْمَ حَدَّثَنَا اَبِيْ عَنْ صَالِحٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ حَدَّثَنِيْ عِيْسَى بْنُ طَلْحَةَ بْنِ عُبَيْدِ اللّٰهِ اَنَّهُ سَمِعَ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ وَقَفَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلٰى نَاقَتِهِ فَذَكَرَ الْحَدِيْثَ تَابَعَهُ مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ.

۳۳۲: اسحٰق. يعقوب بن ابراهيم. ابراهيم بن سعد. صالح. ابن شهاب. عيسٰي بن طلحه بن عُبيد اللّٰه بيان كوي، هغه ذ عبداللّٰه بن عمرو بن عاص نه واوريدل، چه نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم په خپله اوښه اودريدلو، بيائے دغه حديث بيان كه. او معمر د، زهري نه ذ دے متابع حديث روايت كړے.

## بَابٌ ۲۱۸: اَلْخُطْبَةِ اَيَّامَ مِنًى.

## باب ۲۱۸: ذ منې ورځو كښ ذ خطبے وركولو بيان.

۳۳۳: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنِيْ يَحْيَى بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا فُضَيْلُ بْنُ غَزْوَانَ حَدَّثَنَا عِكْرَمَةُ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ

۳۳۳: علي بن عبداللّٰه. يحيٰي بن سعيد فضيل بن غزوان. عكرمه. ابن عباسؓ نه روايت كوي، چه رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلّم يوم نحر كښ خطبه وركړله. حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل اے خلقو، دا

رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَطَبَ النَّاسَ يَوْمَ النَّحْرِ فَقَالَ يٰاَيُّهَا النَّاسُ اَيُّ يَوْمٍ هٰذَا قَالُوْا يَوْمٌ حَرَامٌ قَالَ فَاَيُّ بَلَدٍ هٰذَا قَالُوْا بَلَدٌ حَرَامٌ قَالَ فَاَيُّ شَهْرٍ هٰذَا قَالُوْا شَهْرٌ حَرَامٌ قَالَ فَاِنَّ دِمَاءَكُمْ وَ اَمْوَالَكُمْ وَ اَعْرَاضَكُمْ عَلَيْكُمْ حَرَامٌ كَحُرْمَةِ يَوْمِكُمْ هٰذَا فِيْ بَلَدِكُمْ هٰذَا فِيْ شَهْرِكُمْ هٰذَا فَاَعَادَهَا مِرَارًا ثُمَّ رَفَعَ رَاْسَهٗ فَقَالَ اَللّٰهُمَّ هَلْ بَلَّغْتُ اَللّٰهُمَّ هَلْ بَلَّغْتُ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا فَوَالَّذِيْ نَفْسِيْ بِيَدِهٖ اِنَّهَا لَوَصِيَّتُهٗ اِلٰى اُمَّتِهٖ فَلْيُبَلِّغِ الشَّاهِدُ الْغَائِبَ لَا تَرْجِعُوْا بَعْدِيْ كُفَّارًا يَضْرِبُ بَعْضُكُمْ رِقَابَ بَعْضٍ.

کومه ورځ ده، خلقو جواب ورکه، دا یومِ حرام ده. حضور صلی اللّٰه علیه وسلّم او فرمائیل، دا کوم ښار دے، خلقو جواب ورکه، دا، شهر حرام دے. حضور صلی اللّٰه علیه وسلّم تپوس او که، دا کومه میاشت ده، خلقو جواب ورکه، دا، دَ، حرمت میاشت ده. حضور صلی اللّٰه علیه وسلّم او فرمائیل، ستاسو وینه، ستاسو مال او ستاسو عزت په تاسو حرام دے، څنګه چه دَ نن دا، ورځ، ستاسو دے ښار کښې او ستاسو دے میاشت کښې حرام ده. حضور صلی اللّٰه علیه وسلّم دا کلمات څو ځله او فرمائیل. بیائے خپل سر آسمان طرف ته اوچت که، او، وے فرمائیل، اے خُدا اللّٰه، آیا ما اورسولو. اے خُدا اللّٰه، آیا ما اورسولو. ابن عباسؓ او فرمائیل، قسم دے، په هغے ذات، چه دَ هغه قبضه کښې زما ساه ده، حضور صلی اللّٰه علیه وسلّم خپل اُمت ته دغه وصیت فرمائیلے وو، چه کوم خلق حاضر دي، هغوي دے هغے خلقوته اورسئ چه هغوي دلته موجود نهٔ دي، زما نه پس چه کافر نهٔ شئے، چه دَ، یو بل ګردن وهل شروع کړئے.

۳۳۴: حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عَمْرٌو قَالَ سَمِعْتُ جَابِرَ بْنَ زَيْدٍ قَالَ سَمِعْتُ ابْنَ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَخْطُبُ بِعَرَفَاتٍ تَابَعَهُ ابْنُ عُيَيْنَةَ عَنْ عَمْرٍو.

۳۳۴: حفص بن عمر. شعبه. عمرو. جابر بن زید. حضرت ابن عباسؓ نه روایت کوي، هغه بیان او که، چه ما عرفات کښې دَ نبي صلی اللّٰه علیه وسلم نه خطبه واوریده. ابن عیینه دَ، عمرو، نه دَ دے متابع حدیث روایت کړے دے.

۳۳۵: حَدَّثَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا اَبُوْ عَامِرٍ حَدَّثَنَا

۳۳۵: عبداللّٰه بن محمد. ابوعامر. قره. محمد بن سیرین. عبدالرحمٰن بن ابي بکره او یو بل سړي چه دَ

قُرَّةُ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ سِيْرِيْنَ قَالَ أَخْبَرَنِي عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ أَبِيْ بَكْرَةَ عَنْ أَبِيْ بَكْرَةَ وَ رَجُلُ أَفْضَلُ فِيْ نَفْسِيْ مِنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ حُمَيْدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ أَبِيْ بَكْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ خَطَبَنَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ النَّحْرِ قَالَ أَتَدْرُوْنَ أَيَّ يَوْمٍ هٰذَا قُلْنَا اللّٰهُ وَ رَسُوْلُهُ أَعْلَمُ فَسَكَتَ حَتّٰى ظَنَنَّا أَنَّهُ سَيُسَمِّيْهِ بِغَيْرِ اسْمِهٖ قَالَ أَلَيْسَ يَوْمَ النَّحْرِ قُلْنَا بَلٰى قَالَ أَيُّ شَهْرٍ هٰذَا قُلْنَا اللّٰهُ وَ رَسُوْلُهُ أَعْلَمُ فَسَكَتَ حَتّٰى ظَنَنَّا أَنَّهُ سَيُسَمِّيْهِ بِغَيْرِ اسْمِهٖ فَقَالَ أَلَيْسَ ذَا الْحَجَّةِ قُلْنَا بَلٰى قَالَ أَيُّ بَلَدٍ هٰذَا قُلْنَا اللّٰهُ وَ رَسُوْلُهُ أَعْلَمُ فَسَكَتَ حَتّٰى ظَنَنَّا أَنَّهُ سَيُسَمِّيْهِ بِغَيْرِ اسْمِهٖ قَالَ أَلَيْسَتْ بِالْبَلْدَةِ الْحَرَامِ قُلْنَا بَلٰى قَالَ فَإِنَّ دِمَاءَ كُمْ وَ أَمْوَالَكُمْ عَلَيْكُمْ حَرَامٌ كَحُرْمَةِ يَوْمِكُمْ هٰذَا فِيْ شَهْرِكُمْ هٰذَا فِيْ بَلَدِكُمْ هٰذَا إِلٰى يَوْمِ تَلْقَوْنَ رَبَّكُمْ أَلَا هَلْ بَلَّغْتُ قَالُوْا نَعَمْ قَالَ

عبدالرحمٰن نه افضل وو، يعني حميد بن عبدالرحمٰن هم دَ ابوبکره نه روايت اوکه، چه دَ قربانۍ په ورځ نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم خمونږ مخکښ خطبه اولوسته. وے فرمائيل، تاسو پوهيږئے چه دا کومه ورځ ده. مونږ عرض اوکه، اللّٰه او دَهغه رسول بنه پوهيږي. حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم لږ ساعت خاموش شولو، تردے چه خمونږ گمان راغے، چه حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم دَ دے ورځے څه بل نوم بيانوي. حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل آيا دا، يوم نحر نه ده. مونږ جواب ورکه، ولے نه ده، حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، دا کومه مياشت ده، مونږ عرض اوکه، اللّٰه او دَ هغهٔ رسول ته زياته معلومه ده. حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم لږ ساعت خاموش وو، تردے چه خمونږ خيال راغے، چه شايد حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم دَ دے مياشتے څه بل نوم بيانوي. حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل آيا دا، ذي الحجه نه ده. مونږ عرض اوکه، ولے نه ده. حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، دا کوم ښهر دے. مونږ عرض اوکه، اللّٰه او دَ هغه رسول ته زياته معلومه ده، بيا حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم خاموش شولو، تردے چه مونږ خيال اوکه، چه شايد څه بل نوم دَ دے ښهر کيږدي وے فرمائيل، آيا دا، دَ حرام ښهر نه دے. مونږ عرض اوکه. ولے نهٔ دے. حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، ستاسو وينه او ستاسو مال په تاسو حرام دے، څنګه چه نن ورځ، ستاسو دے مياشت کښ او په دے ښهر کښ حرام ده، ترهغے چه تاسو خپل رب سره يوځائے شئے، خلقو، آيا ما اورسولو. خلقو اووے، او،

وَانْطَلِقُ بِالْحَجِّ فَاَمَرَ عَبْدَ الرَّحْمٰنِ بْنَ اَبِيْ بَكْرٍ اَنْ يَّخْرُجَ مَعَهَا اِلَى التَّنْعِيْمِ فَاعْتَمَرَتْ بَعْدَ الْحَجِّ فِيْ ذِي الْحَجَّةِ وَ اَنَّ سُرَاقَةَ بْنَ مَالِكِ بْنِ جُعْشُمٍ لَقِيَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ بِالْعَقَبَةِ وَهُوَ يَرْمِيْهَا فَقَالَ اَلَكُمْ هٰذِهٖ خَاصَّةً يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ لَا بَلْ لِلْاَبَدِ.

صلے اللّٰه علیه وسلّم' عبدالرحمٰن بن ابي بکر ته حکم ورکهٔ' چه هغه مقام تنعیم طرف ته بوځي' او هغے ذي الحجه کښې دَ حج نه پس عُمره اوکړله. او سراقه بن مالک بن جعشم نبي صلے اللّٰه علیه وسلّم سره یو ځائے شولو' کوم وخت چه عقبه کښې ئے رَمي کوله' نو هغهٔ عرض اوکړ' یا رسول اللّٰه' آیا دا صرف تاسو دَ پاره ده' حضور صلے اللّٰه علیه وسلّم او فرمائیل' نه' بلکه همیشه دَ پاره ده.

## بَابُ ۲۴۲ : الْعُمْرَةِ لَيْلَةَ الْحَصْبَةِ وَ غَيْرِهَا.

## باب ۲۴۲ : دَ محصب په شپه یا' دَ دے نه علاوه څه بل وخت کښې دَ' عمرے کولو بیان[1].

۱. د احنافو په نزد' عمره د کال په ټولو ورځو کښې ادا کول روا دي. صرف د ذي الحجّے (د لوے اختر د میاشتے) د حج په پنځو ورځو کښې ادا کول پکار نَدي. دا پنځه ورځے د عرفے د ورځے نه د لوئے اختر څلورمے ورځ پورے دي. د دے نه علاوه هره ورځ عمره کیږي. خمونږ مور بي بي حضرت عائشه رضي اللّٰه عنها د مُحصّب په شپه ادا کړه چه د حج کولو نه پس رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلم مُحَصَّب کښې شپه تیرَوُله.

که چا عمره شروع کړه بیائے پریخودله' او حج نه کوي نو هغه پدے پنځو ورځو کښې قضا شوے عمره ادا کولے شي. څرنګ چه د مُحصّب په شپه عمره ادا کړه هغه شپه دے پنځو ورځو شپو کښې آخري شپه وه.

۱۷۳۱: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَلَامٍ اَخْبَرَنَا اَبُوْ مُعَاوِيَةَ حَدَّثَنَا هِشَامٌ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ خَرَجْنَا مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُوَافِيْنَ لِهِلَالِ ذِي الْحَجَّةِ فَقَالَ لَنَا مَنْ اَحَبَّ مِنْكُمْ اَنْ يُّهِلَّ بِالْحَجِّ فَلْيُهِلَّ وَمَنْ اَحَبَّ اَنْ يُّهِلَّ بِعُمْرَةٍ فَلْيُهِلَّ بِعُمْرَةٍ فَلَوْلَا اَنِّيْ

۱۷۳۱: محمّد بن سلام. ابو معاویه هشام. عروه. بي بي عائشے رض نه روایت کوي. هغے اووے' مونږ رسول اللّٰه صلے اللّٰه علیه وسلّم سره هغه وخت اووتلو' چه دَ' ذي الحجه میاشت راختلے وه. حضور صلے اللّٰه علیه وسلّم مونږ ته او فرمائیل' کوم سړے چه دَ حج احرام تړل غواړي' نو' اودے تړي. او څوک چه دَ' عُمرے احرام تړل غواړي' نو دَ' عُمرے احرام دے اوتړي. که ما دَ قرباني ځناور نه وے راوستلے' نو دَ' عُمرے احرام به م تړلے وو. دَ بي بي عائشے رض بیان دے' چه مونږ کښې بعضو

اَهْدَيْتُ لَاَهْلَلْتُ بِعُمْرَةٍ قَالَتْ فَمِنَّا مَنْ اَهَلَّ بِعُمْرَةٍ فَاَظَلَّنِيْ يَوْمُ عَرَفَةَ وَ اَنَا حَائِضٌ فَشَكُوْتُ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ ارْفُضِيْ عُمْرَتَكِ وَانْقُضِيْ رَاْسَكِ وَامْتَشِطِيْ وَ اَهِلِّيْ بِالْحَجِّ فَلَمَّا كَانَ لَيْلَةُ الْحَصْبَةِ اَرْسَلَ مَعِيَ عَبْدَ الرَّحْمٰنِ اِلَى التَّنْعِيْمِ فَاَهْلَلْتُ بِعُمْرَةٍ مَّكَانَ عُمْرَتِيْ.

دَ عُمرے احرام اوتړلو، او بعضو دَ حج احرام اوتړلو. او زهٔ دَ عُمرے احرام تړونکو کښې ووم. بيا دَ عرفے ورځ راغله. او زهٔ دَ حيض حالت کښې ووم، نو ما نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم ته شکايت اوکه. حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، خپله عُمره پريږده خپل سر پرانزه. او گومنز اوکړه، او دَ حج احرام اوتړه. چه دَ محصب شپه راغله، نو ما سره ئے عبدالرحمٰن تنعيم طرف ته اوليږلو. ما دَ دے خپلے عُمرے په بدله کښې دَ عُمرے احرام اوتړلو.

## باب ۲۴۳ : عُمْرَةِ التَّنْعِيْمِ.

باب ۲۴۳ : تنعيم نه دَ عُمرے کولو بيان.

۳۷۲: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَمْرٍو سَمِعَ عَمْرَو بْنَ اَوْسٍ اَنَّ عَبْدَ الرَّحْمٰنِ بْنَ اَبِيْ بَكْرٍ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا اَخْبَرَهٗ اَنْ يُّرْدِفَ عَائِشَةَ وَ يُعْمِرَهَا مِنَ التَّنْعِيْمِ قَالَ سُفْيٰنُ مَرَّةً سَمِعْتُ عَمْرًوا وَّ كَمْ سَمِعْتُهٗ مِنْ عَمْرٍو.

۳۷۲: علي بن عبداللّٰه. سُفيان. عمرو بن دينار. عمر بن اوس. عبدالرحمٰن بن ابي بکر نه روايت کوي، نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم هغهٔ ته حکم ورکړے وو، چه بي بي عائشه رض خان پسے کينوه. او په هغے دَ تنعيم نه عُمره اوکړه. سُفيان کله داسے اووے، چه، سَمِعْتُ عمروًا او کله، سَمِعْتُ من عمرو ئے اووے.

## باب ۲۴۴ : الاِعْتِمَارِ بَعْدَ الْحَجِّ بِغَيْرِ هَدْيٍ.

باب ۲۴۴ : دَ حج نه پس بغير هدي[۱] (دَ قرباني څناور) نه دَ عمرے کولو بيان.

۱. "هَدي" هغے څاروي ته وائي کوم چه حاجي خان سره د کورنه د قرباني د پاره مکے معظمے ته بوزي. که په لاره کښې يا مکه معظمه کښې واخلي نو هغه "هَدي" نه ده. بلکے د قرباني څاروے يا بَدَنه ده. حضرت عائشے بي بي رضي الله عنها خان سره د مدينے منورے نه کوم د قرباني څاروے بوتلے نه وو رسول الله صلي الله عليه وسلم خان سره د مدينے منورے نه، بوتلي وو.

په حديث شريف کښې د حضرت عائشے بي بي رضي الله عنها د "هَدي" د بوتللو نيشت، والے بيان دے. قرباني په هغے واجب وه. ځکه چه د هغے حج، حجِ تَمَتُّع وو رسول الله صلي الله عليه وسلم د خپلو

بیانو د طرفنه د غوا قرباني کړے وه. په هغے کښ د عائشے بي بي رضي الله عنها قرباني شامله وه.

۳۷۳: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنّٰى حَدَّثَنَا يَحْيٰى حَدَّثَنَا هِشَامٌ قَالَ اَخْبَرَنِىْ اَبِىْ قَالَ اَخْبَرَتْنِىْ عَآئِشَةُ رَضِىَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ خَرَجْنَا مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُوَافِقِيْنَ لِهَلَالِ ذِى الْحَجَّةِ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ اَحَبَّ اَنْ يُّهِلَّ بِعُمْرَةٍ فَلْيُهِلَّ وَمَنْ اَحَبَّ اَنْ يُّهِلَّ بِحَجَّةٍ فَلْيُهِلَّ وَلَوْلَا اَنِّىْ اَهْدَيْتُ لَاَهْلَلْتُ بِعُمْرَةٍ فَمِنْهُمْ مَّنْ اَهَلَّ بِعُمْرَةٍ وَّ مِنْهُمْ مَّنْ اَهَلَّ بِحَجَّةٍ وَّ كُنْتُ مِمَّنْ اَهَلَّ بِعُمْرَةٍ فَحِضْتُ قَبْلَ اَنْ اَدْخُلَ مَكَّةَ فَاَدْرَكَنِىْ يَوْمُ عَرَفَةَ وَ اَنَا حَآئِضٌ فَشَكَوْتُ اِلَى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ دَعِىْ عُمْرَتَكِ وَانْقُضِىْ رَأْسَكِ وَامْتَشِطِىْ وَ اَهِلِّىْ بِالْحَجِّ فَفَعَلْتُ فَلَمَّا كَانَ لَيْلَةُ الْحَصْبَةِ اَرْسَلَ مَعِىَ عَبْدَ الرَّحْمٰنِ اِلَى التَّنْعِيْمِ فَاَرْدَفَهَا فَاَهَلَّتْ بِعُمْرَةٍ مَّكَانَ عُمْرَتِهَا فَقَضَى اللّٰهُ حَجَّهَا وَ عُمْرَتَهَا وَلَمْ يَكُنْ فِىْ شَىْءٍ مِّنْ ذٰلِكَ هَدْىٌ وَّلَا صَدَقَةٌ وَّلَا صَوْمٌ.

۳۷۳: محمد بن مثني. يحيي. هشام. عروه. بي بي عائشے نه روايت كوي چه مونږ خلق د ذي الحجه مياشت ليدو سره نبي صلے الله عليه وسلّم سره اووتلو، نو رسول الله صلے الله عليه وسلّم او فرمائيل كوم سړے چه د عُمرے احرام تړل خوښوي، هغه دے د عُمرے احرام اوتړي او څوک چه د حج احرام تړل غواړي، هغه دِ د حج احرام اوتړي، كهٔ ما د قربانے څناور څان سره نهٔ وے راوستے، نو د عُمرے احرام به مې تړلے وو. هغوي كښ بعضے خلقو د عُمرے احرام تړلے وو، او بعضو د حج احرام تړلے وو (د بي بي عائشے بيان دے) چه زهٔ مكے ته د داخليدو نه مخكښ حائضه شوم. او د حيض حالت كښ د عرفے ورځ راغله، ما رسول الله صلے الله عليه وسلّم ته د دے شكايت اوكهٔ، نو حضور صلے الله عليه وسلّم او فرمائيل، خپله عُمره پريږده، او خپل سر، پرانزه، ګومنز ئے كړه. او د حج احرام اوتړه، نو ما دغسے اوكړل. چه د محصب شپه راغله، نو ما سره ئے عبدالرحمٰن تنعيم طرف ته اوليږلو. عبدالرحمٰن هغه څان پسے كينوله، او هغے د خپلے عُمرے په بدله كښ د بلے عُمرے احرام اوتړلو. الله تعالىٰ د هغے حج او عُمره پوره كړه. او هغے كښ نه د قرباني څناور وكول وو، او نه خيرات كول او نه روژے ساتل وو.

## باب ۲۴۵: اَجْرِ الْعُمْرَةِ عَلٰى قَدْرِ النَّصَبِ.

## باب ۲۴۵: په قدر د، مشقت د عُمرے د ثواب بيان.

۱۷۴۴: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ حَدَّثَنَا ابْنُ عَوْنٍ عَنِ الْقٰسِمِ بْنِ مُحَمَّدٍ وَّ عَنِ ابْنِ عَوْنٍ عَنْ إِبْرَاهِيمَ عَنِ الْأَسْوَدِ قَالَ قَالَتْ عَائِشَةُ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا يَا رَسُولَ اللّٰهِ يَصْدُرُ النَّاسُ بِنُسُكَيْنِ وَ أَصْدُرُ بِنُسُكٍ فَقِيلَ لَهَا انْتَظِرِي فَإِذَا طَهُرْتِ فَاخْرُجِي إِلَى التَّنْعِيمِ فَأَهِلِّي ثُمَّ ائْتِنَا بِمَكَانِ كَذَا وَلٰكِنَّهَا عَلٰى قَدْرِ نَفَقَتِكِ أَوْ نَصَبِكِ.

۱۷۴۴: مسدد. يزيد بن زريع. ابن عون. قاسم بن محمّد و عبدالله بن عون. ابراهيم، اسود بيان کوي، چه بي بي عائشےؓ عرض اوکه، يا رسول الله خلق دَ، دوه نسک (حج او عُمرے) ثواب حاصلولو سره واپس کيږي او زهٔ صرف دَ، يو نسک (حج) ثواب حاصلولو سره واپس کيږم، نو هغے ته اووئيلے شو، انتظار کوه، کله چه تهٔ دَ حيض نه پاکه شے، نو تنعيم طرفته لاړه شه. او (دَ عُمرے) احرام اوتړه. او ما سره فلاني ځائے کښ يو ځائے شه، ليکن دَ دے ثواب به ستا د خرچ يا ستا، دَ تکليف اندازے سره حاصليږي[۱].

۱. مطلب نے دا دے چه د حضرت عائشے بي بي رضي الله عنها عمره، د ټولو صحابهٔ کرامو د عمرے نه غوره وه ځکه چه هغے د انتظار تکليف برداشت کړے وو د قدرتي مجبورئ په سبب زيات تکليف سره مخامخ شوے وه.

باب ۲۴۶: الْمُعْتَمِرِ إِذَا طَافَ طَوَافَ الْعُمْرَةِ ثُمَّ خَرَجَ هَلْ يُجْزِئُهُ مِنْ طَوَافِ الْوَدَاعِ.

باب ۲۴۶: عُمره کونکے چه طواف اوکړي، بيا روان شي، نو آيا دَ، طوافِ وداع دَ طرف نه به دا کافي وي.

۱۷۴۵: حَدَّثَنَا أَبُو نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا أَفْلَحُ بْنُ حُمَيْدٍ عَنِ الْقَاسِمِ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ خَرَجْنَا مُهِلِّينَ بِالْحَجِّ فِي أَشْهُرِ الْحَجِّ وَ حُرُمِ الْحَجِّ فَنَزَلْنَا سَرِفَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِأَصْحَابِهِ مَنْ لَّمْ يَكُنْ مَعَهُ هَدْيٌ فَأَحَبَّ أَنْ يَجْعَلَهَا عُمْرَةً فَلْيَفْعَلْ وَمَنْ كَانَ مَعَهُ هَدْيٌ فَلَا وَ كَانَ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى

۱۷۴۵: ابو نعيم. افلح بن حميد. قاسم بي بي عائشےؓ نه روايت کوي، هغے اووے، چه مونږ دَ حج احرام اوتړلو، دَ حج په مياشتو کښ دَ حج آدابو سره اووتلو. مونږ مقام سرف کښ کوز شولو. نبي صلے الله عليه وسلّم خپلو صحابهؓ ته او فرمائيل، چا سره چه هدي (دَ قرباني ځناور) نه وي، او هغه دا، عُمره جوړول غواړي، نو عُمره دے جوړه کړي. او چا سره چه دَ قرباني ځناور، وي، هغه دے داسے نه کوي. او نبي صلے الله عليه وسلّم او يو څو صاحب استطاعت صحابهؓ سره دَ قرباني ځناور وو، هغوي دا عُمره جوړه نه کړے

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ رِجَالٍ مِّنْ اَصْحَابِهٖ ذَوِیْ قُوَّةٍ بِالْهَدْیِ فَلَمْ تَكُنْ لَهُمْ عُمْرَةٌ فَدَخَلَ عَلَیَّ النَّبِیُّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَنَا اَبْكِیْ فَقَالَ مَا يُبْكِيْكِ قُلْتُ سَمِعْتُكَ تَقُوْلُ لِاَصْحَابِكَ مَا قُلْتَ فَمُنِعْتُ الْعُمْرَةَ قَالَ وَمَا شَأْنُكِ قُلْتُ لَا اُصَلِّیْ قَالَ فَلَا يَضُرُّكِ اَنْتِ مِنْ بَنَاتِ اٰدَمَ كُتِبَ عَلَيْكِ مَا كُتِبَ عَلَيْهِنَّ فَكُوْنِیْ فِیْ حَجَّتِكِ عَسَی اللّٰهُ اَنْ يَّرْزُقَكِهَا قَالَتْ فَكُنْتُ حَتّٰی نَفَرْنَا مِنْ مِّنًی فَنَزَلْنَا الْمُحَصَّبَ فَدَعَا عَبْدَ الرَّحْمٰنِ فَقَالَ اخْرُجْ بِاُخْتِكَ الْحَرَمَ فَلْتُهِلَّ بِعُمْرَةٍ ثُمَّ اَفْرُغَا مِنْ طَوَافِكُمَا اَنْتَظِرُ كُمَا هٰهُنَا فَاَتَيْنَا فِیْ جَوْفِ اللَّيْلِ فَقَالَ فَرَغْتُمَا قُلْتُ نَعَمْ فَنَادٰی بِالرَّحِيْلِ فِیْ اَصْحَابِهٖ فَارْتَحَلَ النَّاسُ وَمَنْ طَافَ بِالْبَيْتِ قَبْلَ صَلٰوةِ الصُّبْحِ ثُمَّ خَرَجَ مُوَجِّهًا اِلَی الْمَدِيْنَةِ.

شوه نبي صلے الله علیه وسلّم ما پله تشریف راوړلو' ما ژړل' حضور صلے الله علیه وسلّم او فرمائیل: تا څه څیز ژړوي. ما عرض اوکۀ' چه تاسو (صلے الله علیه وسلّم) خپلو اصحابو ؓ ته څۀ او فرمائیل' هغه ما' واوریدل' نو دَ عمرے نه منع کړے شوم. حضور صلے الله علیه وسلّم تپوس اوکه' څۀ خبره ده' ما ورته اووے' زۀ مونځ نۀ شم کولے. حضور صلے الله علیه وسلّم او فرمائیل. ستا دَ پاره هیڅ حرج نشته. تۀ دَ آدم علیه السّلام دَ لونړو نه ئے' تا دَ پاره هغه څیز لیکلے شوے دے کوم چه هغوي دَ پاره لیکلے شوے دے. تۀ خپل حج کښې اوسه. شاید چه اللّه تعالی ستا عُمره هم نصیب کړي. دَ بي بي عائشےؓ بیان دے' زۀ په دے حال کښې ووم' تر دے چه مونږ دَ منٰي نه روان شولو' نو مونږ محصب کښې کوز شولو. حضور صلے الله علیه وسلّم' عبدالرحمٰن راوغبنتلو' او ورته ئے او فرمائیل' خپله خور حرم نه بهر بوځه. هغه دے دَ عُمرے احرام اوتړي. بیا تاسو دواړه چه دَ طواف نه فارغ شئے' زۀ به دلته ستاسو انتظار کوم مونږ درمیانه شپه کښې واپس شو. حضور صلے الله علیه وسلّم. تاسو دواړه اوزګار' شوئے. ما اووے' او' حضور صلے الله علیه وسلّم صحابه ؓ ته دَ کوچ اعلان اوکۀ' نو خلق روان شو' او هغه خلق هم' چه هغوي دَ سحر دَ مانځه نه مخکښې دَ خانه کعبے طواف (وداع) کړے وو. بیا مدینے طرف ته روان شولو.

۳۷۶: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ اَبِيْهِ اَنَّهٗ قَالَ قُلْتُ لِعَائِشَةَ

۳۷۶: عبداللّه بن یُوسف. مالک. هشام بن عروه' عروه نه روایت کوي' دَ هغۀ بیان دے چه ما دَ بي بي عائشےؓ نه دَ خپل کم عمرۍ په زمانه کښې تپوس

رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَنَا يَوْمَئِذٍ حَدِيْثُ السِّنِّ اَرَاَيْتِ قَوْلَ اللّٰهِ تَبَارَكَ وَ تَعَالٰى اِنَّ الصَّفَا وَالْمَرْوَةَ مِنْ شَعَآئِرِ اللّٰهِ فَمَنْ حَجَّ الْبَيْتَ اَوِ اعْتَمَرَ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِ اَنْ يَّطَّوَّفَ بِهِمَا فَلَا اُرٰى عَلٰى اَحَدٍ شَيْئًا اَنْ لَّا يَطَّوَّفَ بِهِمَا فَقَالَتْ عَائِشَةُ كَلَّا لَوْ كَانَتْ كَمَا تَقُوْلُ كَانَتْ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِ اَنْ لَّا يَطَّوَّفَ بِهِمَا اِنَّمَا اُنْزِلَتْ هٰذِهِ الْاٰيَةُ فِي الْاَنْصَارِ كَانُوْا يُهِلُّوْنَ لِمَنَاةَ وَ كَانَتْ مَنَاةُ حَذْوَ قُدَيْدٍ وَّ كَانُوْا يَتَحَرَّجُوْنَ اَنْ يَّطُوْفُوْا بَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ فَلَمَّا جَآءَ الْاِسْلَامُ سَاَلُوْا رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ ذٰلِكَ فَاَنْزَلَ اللّٰهُ تَعَالٰى اِنَّ الصَّفَا وَالْمَرْوَةَ مِنْ شَعَائِرِ اللّٰهِ فَمَنْ حَجَّ الْبَيْتَ اَوِ اعْتَمَرَ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِ اَنْ يَّطَّوَّفَ بِهِمَا زَادَ سُفْيٰنُ وَ اَبُوْ مُعَاوِيَةَ عَنْ هِشَامٍ مَا اَتَمَّ اللّٰهُ حَجَّ امْرِئٍ وَلَا عُمْرَتَهُ لَمْ يُطِفْ بَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ.

او کړ، چه د اللّٰه تبارک و تعالٰي قول' ان الصفا والمروة من شعائر اللّٰه فمن حج البيت او اعتمر فلا جناح عليه ان يطوف بهما'' تفسير راته اوښائې. زۀ پوهيږم، چه په هغه سړي هيڅ ګناه نشته، چه هغه د دے دواړو طواف اونۀ کړه. بي بي عائشې ورته او فرمائيل، هيڅ کله نه، کۀ خبره دغه وے، چه تۀ ئې وائې، نو دے صورت کښې به آيت داسے وے، فلا جناح عليه انْ لّا يطوف بهما'' (په هغه ګناه نشته، کۀ د دے دواړو طواف اونۀ کړي) دا' آيت خو، د' انصارو متعلق نازل شولو، چه مناة د پاره به ئې احرام تړلو. او مناة (بُت) د قديد مخے ته وو. هغے خلقو به د صفا او مروه مينځ کښې طواف بد ګڼړلو. کوم وخت چه د' اسلام زمانه راغله' خلقو د' رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلّم نه د دے متعلق تپوس اوکۀ' نو اللّٰه تعالٰي دا' آيت نازل کړلو، چه صفا او مروه دواړه د' خدائے نښے نښانې دي' چا چه د خانه کعبے طواف اوکۀ يا عُمره ئې اوکړه' نو د دے دواړو په طواف کولو کښې هيڅ ګناه نشته. سفيان او ابو معاويه د' هشام نه دومره زيات بيان اوکۀ' چه اللّٰه تعالٰي د هغۀ حج او عُمره پوره نۀ کړه' چا چه د صفا او مروه مينځ کښې طواف اونۀ کۀ.

## بَابُ ۷۴۷ : مَتٰى يَحِلُّ الْمُعْتَمِرُ

وَ قَالَ عَطَاءٌ عَنْ جَابِرٍ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ اَمَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَصْحَابَهُ اَنْ يَّجْعَلُوْهَا عُمْرَةً وَّ يَطُوْفُوْا ثُمَّ يُقَصِّرُوْا وَ يَحِلُّوْا.

**باب ۷۴۷ : عُمره کونکے کله د' احرام نه بهر کيږي.** او عطاء' د' جابر نه نقل کړے دے' چه نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم خپلو اصحابو ته حکم اوکه' چه دا عُمره جوړه کړي او طواف اوکړي. بيا ويښتۀ قينچي کړي او د' احرام نه بهر شي.

۳۷۷: حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ ابْنُ اِبْرَاهِيْمَ عَنْ جَرِيْرٍ عَنْ اِسْمَاعِيْلَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِيْ اَوْفٰى قَالَ اعْتَمَرَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَاعْتَمَرْنَا مَعَهُ فَلَمَّا دَخَلَ مَكَّةَ طَافَ وَطُفْنَا مَعَهُ وَ اَتَى الصَّفَا وَالْمَرْوَةَ وَ اَتَيْنَاهَا مَعَهُ وَ كُنَّا نَسْتُرُهُ مِنْ اَهْلِ مَكَّةَ اَنْ يَرْمِيَهُ اَحَدٌ فَقَالَ لَهُ صَاحِبٌ لِّيْ اَكَانَ دَخَلَ الْكَعْبَةَ قَالَ لَا قَالَ فَحَدِّثْنَا مَا قَالَ لِخَدِيْجَةَ قَالَ بَشِّرُوْا خَدِيْجَةَ بِبَيْتٍ مِّنَ الْجَنَّةِ مِنْ قَصَبٍ لَّا صَخَبَ فِيْهِ وَلَا نَصَبَ.

۳۷۷: اسحٰق بن ابراهيم. جرير. اسمعيل. عبداللّٰه بن ابي اوفي روايت كوي، چه رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلّم عمره اوكړه، او مونږ حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم سره عُمره اوكړله. كوم وخت چه مكے ته اورسيدل، نو حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم طواف اوكړلو. مونږ هم حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم سره طواف اوكړ، او صفا مروه ته اورسيدلو، مونږ هم حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم دَ اهل مكه دَ طرف نه پناه كښې اخستے وو، ځكه چه چرته په غشي ئے اُونه اُولي. ځما يو ملګري دَ ابن ابي اوفي نه تپوس اوكړ، چه آيا حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم په كعبه كښې داخل شوے وو، هغهٔ اووے نه. هغهٔ بيا اووے، مونږ ته بيان اوكه، چه حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم دَ خديجےؓ متعلق فرمائيلے وو، هغهٔ اووے. حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم دا فرمائيلے وو، چه خديجےؓ ته جنّت كښې دَ يو كور خوشخبري واوروئے، چه دَ ملغلرو به وي. هغے كښې به شور و شر او ځهٔ تكليف نه وي.

۳۷۸: حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِيُّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَمْرِو بْنِ دِيْنَارٍ قَالَ سَاَلْنَا ابْنَ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا عَنْ رَّجُلٍ طَافَ بِالْبَيْتِ فِيْ عُمْرَةٍ وَّلَمْ يَطُفْ بَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةَ يَاْتِيْ امْرَاَتَهُ فَقَالَ قَدِمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَطَافَ بِالْبَيْتِ سَبْعًا وَ صَلّٰى خَلْفَ الْمَقَامِ رَكْعَتَيْنِ وَ طَافَ بَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ سَبْعًا وَ قَدْ كَانَ لَكُمْ

۳۷۸: حميدي. سفيان. عمرو بن دينار نه روايت كوي. دَ هغهٔ بيان دے، مونږ خلقو دَ ابن عمرؓ نه دَ هغے سړي متعلق تپوس اوكه، چه هغهٔ عُمره كښې دَ خانه كعبے طواف اوكهٔ. ليكن دَ صفا مروه طواف ئے اونه كه، آيا هغه خپلے ښځے سره صحبت كولے شي. هغه اووے. حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم مكے ته اورسيدلو، نو اووه خله ئے دَ خانه كعبے طواف اوكهٔ. او دَ مقام ابراهيم شاته ئے دوه ركعاته مونځ اوكه. او دَ صفا مروه مينځ كښې ئے اوه خله طواف اوكهٔ. او ستاسو دَ پاره دَ اللّٰه رسول كښې

فِیْ رَسُوْلِ اللّٰہِ اُسْوَۃٌ حَسَنَۃٌ قَالَ وَ سَاَلْنَا جَابِرَ ابْنَ عَبْدِاللّٰہِ رَضِیَ اللّٰہُ عَنْھُمَا فَقَالَ لَا یَقْرَبَنَّھَا حَتّٰی یَطُوْفَ بَیْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَۃِ.

بهتره نمونه ده. او مونږ ذ حضرت جابر بن عبدالله نه تپوس اوکه نو هغهٔ اووے چه خپلے بي بي سره صحبت نه شي کولے، څو پورے چه د صفا او مروه مینځ کښ طواف اونه کړي.

۳۷۹: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدُرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَۃُ عَنْ قَیْسِ ابْنِ مُسْلِمٍ عَنْ طَارِقِ ابْنِ شِھَابٍ عَنْ اَبِیْ مُوْسَی الْاَشْعَرِیِّ رَضِیَ اللّٰہُ عَنْہُ قَالَ قَدِمْتُ عَلَی النَّبِیِّ صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْہِ وَسَلَّمَ بِالْبَطْحَآءِ وَھُوَ مُنِیْخٌ فَقَالَ اَحَجَجْتَ قُلْتُ نَعَمْ قَالَ بِمَا اَھْلَلْتَ قُلْتُ لَبَّیْکَ بِاِھْلَالٍ کَاِھْلَالِ النَّبِیِّ صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْہِ وَسَلَّمَ قَالَ اَحْسَنْتَ طُفْ بِالْبَیْتِ وَ بِالصَّفَا وَالْمَرْوَۃِ ثُمَّ اَحِلَّ فَطُفْتُ بِالْبَیْتِ وَ بِالصَّفَا وَالْمَرْوَۃِ ثُمَّ اَتَیْتُ امْرَاَۃً مِّنْ قَیْسٍ فَفَلَتْ رَاْسِیْ ثُمَّ اَھْلَلْتُ بِالْحَجِّ فَکُنْتُ اُفْتِیْ بِہٖ حَتّٰی کَانَ فِیْ خِلَافَۃِ عُمَرَ فَقَالَ اِنْ اَخَذْنَا بِکِتَابِ اللّٰہِ فَاِنَّہٗ یَاْمُرُنَا بِالتَّمَامِ وَ اِنْ اَخَذْنَا بِقَوْلِ النَّبِیِّ صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْہِ وَسَلَّمَ فَاِنَّہٗ لَمْ یَحِلَّ حَتّٰی یَبْلُغَ الْھَدْیُ مَحِلَّہٗ.

۳۷۹: محمد بن بشار. غندر. شعبه. قيس بن مسلم. طارق بن شهاب. ابو موسي اشعري نه روايت کوي، د هغهٔ بيان دے، چه زهٔ نبي صلے الله عليه وسلم ته بطحاء ته اورسيدم، او حضور صلے الله عليه وسلم هلته پراؤ اچولے وو. حضور صلے الله عليه وسلم او فرمائيل، آيا تا حج اوکهٔ ما اووے، او حضور صلے الله عليه وسلم او فرمائيل، تا ذ څهٔ څيز احرام تړلے وو. ما جواب ورکهٔ چه ما لبيک باهلال کاهلال النبي صلے الله عليه وسلم ونيلے وو. حضور صلے الله عليه وسلم او فرمائيل، ښهٔ دے اوکړل. اوس ذ خانه کعبے او صفا مروه طواف اوکړه بيا ذ، احرام نه بهر شه، نو ما ذ خانه کعبے او صفا مروه طواف اوکهٔ. بيا زهٔ ذ، قيس يوے ښځے له راغلم. هغے خما ذ سر نه سپږے اوښکلے. بيا ما ذ حج احرام اوتړلو، نو ما به دغه فتوي ورکوله، تر دے چه ذ حضرت عمرؓ د خلافت زمانه راغله، نو هغوي او فرمائيل، کهٔ مونږ په کتاب الله عمل کوو. نو هغه مونږ ته ذ پوره کولو حکم کوي، او کهٔ مونږ د نبي صلے الله عليه وسلم په قول عمل کوو، نو حضور صلے الله عليه وسلم احرام هغه وخته پورے نه پرانستلو، څو پورے چه ذ قرباني خناور خپل ځائے ته اونهٔ رسيدلو.

۳۸۰: حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ عِیْسٰی حَدَّثَنَا ابْنُ وَھْبٍ اَخْبَرَنَا عَمْرٌو

۳۸۰: احمد بن عيسي. ابن وهب. عمرو. ابوالاسود. عبدالله (ذ، اسماء بنت ابي بکر غُلام) نه

عَنْ اَبِی الْاَسْوَدِ اَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ مَوْلٰی اَسْمَآءَ بِنْتِ اَبِیْ بَکْرٍ حَدَّثَهٗ اَنَّهٗ کَانَ یَسْمَعُ اَسْمَآءَ تَقُوْلُ کُلَّمَا مَرَّتْ بِالْحَجُوْنِ صَلَّی اللّٰهُ عَلٰی مُحَمَّدٍ لَقَدْ نَزَلْنَا مَعَهٗ هٰهُنَا وَ نَحْنُ یَوْمَئِذٍ خِفَافٌ قَلِیْلٌ ظَهْرُنَا قَلِیْلَةٌ اَزْوَادُنَا فَاعْتَمَرْتُ اَنَا وَ اُخْتِیْ عَائِشَةُ وَالزُّبَیْرُ وَفُلَانٌ وَ فُلَانٌ فَلَمَّا مَسَحْنَا الْبَیْتَ اَحْلَلْنَا ثُمَّ اَهْلَلْنَا مِنَ الْعَشِیِّ بِالْحَجِّ.

روایت کوي: هغه به د اسماء نه آوریدل. کله چه به حجون سره تیریدله، چه اللّٰه دې په محمّد صلی اللّٰه علیه وسلّم باندې خپل رحمت نازل کړي: مونږ حضور صلی اللّٰه علیه وسلّم سره په دې ځائې کوز شولو او هغې زمانه کښې به مونږ خلق سپک (ﷺ) وو. خمونږ سورلئې به کمې وې. سامان کم وو. ما او خما خور عائشهؓ او زبیر او فلاني فلاني سړي عمره او کړله: کوم وخت چه مونږ خانه کعبه مس کړه: نو مونږ خلقو احرام پرانستلو. بیا مونږ ماښام وخت کښې د حج احرام او تړلو.

## باب ۲۴۸: مَا یَقُوْلُ اِذَا رَجَعَ مِنَ الْحَجِّ اَوِ الْعُمْرَةِ اَوِ الْغَزْوِ.

## باب ۲۴۸: هر کله چه د حج یا عمرې یا جهاد نه واپس شي، نو څۀ به وائي.

۱۳۸۱: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ یُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ نَافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُمَا اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ کَانَ اِذَا قَفَلَ مِنْ غَزْوٍ اَوْ حَجٍّ اَوْ عُمْرَةٍ یُکَبِّرُ عَلٰی کُلِّ شَرَفٍ مِنَ الْاَرْضِ ثَلٰثَ تَکْبِیْرَاتٍ ثُمَّ یَقُوْلُ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهٗ لَا شَرِیْكَ لَهٗ لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلٰی کُلِّ شَیْءٍ قَدِیْرٌ آئِبُوْنَ تَآئِبُوْنَ عَابِدُوْنَ سَاجِدُوْنَ لِرَبِّنَا حَامِدُوْنَ صَدَقَ اللّٰهُ وَحْدَهٗ وَ نَصَرَ عَبْدَهٗ وَهَزَمَ الْاَحْزَابَ وَحْدَهٗ.

۱۳۸۱: عبداللّٰه بن یوسف. مالک. نافع. عبداللّٰه بن عمرؓ نه روایت کوي، چه رسول اللّٰه صلی اللّٰه علیه وسلّم به کله د جهاد، یا حج یا عمرې نه واپس کیدلو، نو هره اوچته زمکه باندې به ئې درې خله تکبیر وئیلو. بیا به ئې فرمائیل: لا اله الا اللّٰه وحدهٗ لا شریک له له الملک وله الحمد وهو علٰی کل شئ قدیر. ائبون. تائبون عابدون ساجدون لربّنا حامدون صدق اللّٰه وحده و نصر عبده و هزم الاحزاب وحده (دَ اللّٰه نه سوا بل معبود نشته. دَ هغۀ هیڅوک شریک نشته ملک دَ هغۀ دې، او هغۀ دَ پاره حمد دې او هغه په هر څیز قادر دې، مونږ رجوع کونکي، توبه کونکي، عبادت کونکي. سجده کونکي، دَ خپل رب تعریف کونکي یو، اللّٰه خپله وعده ریښتنې کړه. دَ خپل بنده مدد ئې او کړ، او دَ کافرو لښکر، له ئې یوازې شکست ورکۀ)

باب ۲۴۹: اسْتِقْبَالِ الْحَاجِّ الْقَادِمِيْنَ وَالثَّلاثَةِ عَلَى الدَّابَّةِ.

۳۸۲: حَدَّثَنَا مُعَلَّى ابْنُ اَسَدٍ حَدَّثَنَا يَزِيْدُ بْنُ زُرَيْعٍ حَدَّثَنَا خَالِدٌ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ لَمَّا قَدِمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَكَّةَ اسْتَقْبَلَتْهُ اُغَيْلِمَةُ بَنِيْ عَبْدِالْمُطَّلِبِ فَحَمَلَ وَاحِدًا بَيْنَ يَدَيْهِ وَ اٰخَرَ خَلْفَهُ.

باب ۲۴۹: د راتلونکو حاجيانو د استقبال (په حيره راغلے) بيان، او د درے سرو په خناور سوريدل.

۳۸۲: معلى بن اسد. يزيد بن زريع. خالد. عکرمه. ابن عباسؓ نه روايت کوي، رسول الله صلے الله عليه وسلّم چه مکے ته اورسيدلو نو د بني عبدالمطلب ځو هلکانو د حضور صلے الله عليه وسلّم استقبال اوکه. حضور صلے الله عليه وسلّم يو هلک خپلے مخے ته او بل خپل شاته کينولو (سور کړلو).

بَابُ ۲۵۰: الْقُدُوْمِ بِالْغَدَاةِ.

۳۸۳: حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ الْحَجَّاجِ حَدَّثَنَا اَنَسُ بْنُ عِيَاضٍ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ اِذَا خَرَجَ اِلَى مَكَّةَ يُصَلِّيْ فِيْ مَسْجِدِ الشَّجَرَةِ وَ اِذَا رَجَعَ صَلَّى بِذِي الْحُلَيْفَةِ بِبَطْنِ الْوَادِيْ وَ بَاتَ حَتّٰى يُصْبِحَ.

باب ۲۵۰: سحر کښې کور ته د واپس کيدو بيان.

۳۸۳: احمد بن حجاج. انس بن عياض عبيدالله. نافع. ابن عمرؓ نه روايت کوي چه رسول الله صلے الله عليه وسلّم به مکے طرف ته وتلو نو مسجد شجره کښې به ئے مونځ کولو. او کله چه به واپس کيدلو نو د وادي په مينځ کښې ذي الحليفه کښې به ئے مونځ کولو، او شپه به ئے تيروله، تر دے چه صبا به شولو.

باب ۲۵۱: الدُّخُوْلِ بِالْعَشِيِّ.

۳۸۴: حَدَّثَنَا مُوْسَى ابْنُ اِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ عَنْ اِسْحٰقَ ابْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِيْ طَلْحَةَ عَنْ اَنَسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَطْرُقُ

باب ۲۵۱: ماښام کښې کور، ته د راتلو بيان.

۳۸۴: موسى بن اسمعيل. همام. اسحق بن عبدالله بن ابي طلحه. حضرت انسؓ نه روايت کوي، د هغه بيان دے چه نبي صلے الله عليه وسلّم به خپل کور کښې د شپے کوزيدلو نو

اَهْلَهُ لَيْلًا كَانَ لَا يَدْخُلُ اِلَّا غُدْوَةً اَوْ عَشِيَّةً.

ذ سحر یا ماښام په وخت به داخليدلو.

باب ۲۵۲: لَا يَطْرُقُ اَهْلَهُ اِذَا بَلَغَ الْمَدِيْنَةَ.

باب ۲۵۲: چه ښار ته راورسي، نو کور کښ دې ذ شپې نه کوزيږي.

۳۸۵: حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ اِبْرَاهِيْمَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ مُحَارِبٍ عَنْ جَابِرٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ نَهَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنْ يَّطْرُقَ اَهْلَهُ.

۳۸۵: مسلم بن ابراهیم. شعبه. محارب. حضرت جابر نه روایت دې چه نبي صلی الله علیه وسلّم د دې خبرې نه منع او فرمائیله، چه څوک سړې دې د شپې خپل کور ته لاړ شي.

باب ۲۵۳: مَنْ اَسْرَعَ نَاقَتَهُ اِذَا بَلَغَ الْمَدِيْنَةَ.

باب ۲۵۳: مدينې ته ذ نزدې کيدو سره ذ سورلۍ ذ تيزولو بيان.

۳۸۶: حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ اَبِيْ مَرْيَمَ اَخْبَرَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ حُمَيْدٌ اَنَّهُ سَمِعَ اَنَسًا رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ يَقُوْلُ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا قَدِمَ مِنْ سَفَرٍ فَاَبْصَرَ دَرَجَاتِ الْمَدِيْنَةِ اَوْضَعَ نَاقَتَهُ وَ اِنْ كَانَتْ دَآبَّةً حَرَّكَهَا قَالَ اَبُوْ عَبْدِ اللّٰهِ زَادَ الْحَارِثُ بْنُ عُمَيْرٍ عَنْ حُمَيْدٍ حَرَّكَهَا مِنْ حُبِّهَا.

۳۸۶: سعید بن ابي مریم. محمد بن جعفر حمید بیان کوي، هغه ذ، انس نه واوريدل، چه رسول الله صلی الله علیه وسلّم به ذ سفر نه واپس کیدلو، او ذ مدينې اوچت خايونه به ئې ليدل، نو خپله اوښه به ئې تيزه چلوله. او كه څۀ بله سورلي به وه، نو هغې له به ئې حركت وركولو. ابو عبدالله (بخاري) واني. حارث بن عمير، ذ حميد نه دې زياتي سره روايت او كه، چه حرّكها من حُبّها، يعني ذ مدينې ذ محبت ذ سبب نه به ئې حركت وركولو[1].

[1] حافظ ابن حجر رحمة الله عليه ليكلي دي. چه دې حديث شريف نه دا ثابتيږي. چه د وطن نه د سفر كولو په دوران كښ د خپل وطن سره مينه او شوق ساتل روا دي. وطن سره مينه كول دا فطري حقيقت دې او دا مينه اسلام ستايلې ده.

۳۸۷: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ عَنْ حُمَيْدٍ عَنْ اَنَسٍ قَالَ جُدُرَاتِ تَابَعَهُ الْحٰرِثُ بْنُ

۳۸۷: قتيبه. اسمعيل. حميد انسؓ نه روايت كوي، چه هغې كښ ئې ذ، جُدارت (ديوالونو) ذ لفظ روايت او كۀ. حارث بن عُمير ذ دې متابع حديث روايت

عُمیر. که.

باب۲۵۴: قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰی وَأْتُوا الْبُیُوْتَ مِنْ اَبْوَابِهَا.

باب۲۵۴: د الله تعالی قول چه کورونو ته د هغې په دروازو راځئ[۱].

۱ د جاهلیت په زمانه کښې به د قریشو نه بغیر ټولو عربو به چه کله احرام اوتړلو. نو کورته به نې د دروازو نه رانه‌تل بد ګنړل. د هغوي په خیال کښې د دروازې سورې داسې کنړلې شو لکه چا چه په احرام کښې سر په څیز پټ کړې وي. هغوي به خان د دې نه بچ ساتلو د کور د چنې طرفنه دیوال کښې به نې سورې کولو. لاره به نې جوړوله. قرآن مجید د هغوي د دې غلط خیال تردید اوکړلو او ورته نې حکم اوکړو. چه خپل کورته په دروازو راځئ. خان د کړاؤ نه بچ کړئ.

۳۸۸: حَدَّثَنَا اَبُو الْوَلِیْدِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ اَبِیْ اِسْحٰقَ قَالَ سَمِعْتُ الْبَرَآءَ رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ یَقُوْلُ نَزَلَتْ هٰذِهِ الْاٰیَةُ فِیْنَا كَانَتِ الْاَنْصَارُ اِذَا حَجُّوْا فَجَآءُوْا لَمْ یَدْخُلُوْا مِنْ قِبَلِ اَبْوَابِ بُیُوْتِهِمْ وَلٰكِنْ مِّنْ ظُهُوْرِهَا فَجَآءَ رَجُلٌ مِّنَ الْاَنْصَارِ فَدَخَلَ مِنْ قِبَلِ بَابِهٖ فَكَاَنَّهٗ عُیِّرَ بِذٰلِكَ فَنَزَلَتْ وَ لَیْسَ الْبِرُّ بِاَنْ تَاْتُوا الْبُیُوْتَ مِنْ ظُهُوْرِهَا وَلٰكِنَّ الْبِرَّ مَنِ اتَّقٰی وَاْتُوا الْبُیُوْتَ مِنْ اَبْوَابِهَا.

۳۸۸: ابوالولید. شعبه. ابواسحق. حضرت براء نه روایت کوي چه دا آیت خمونږ متعلق نازل شوې دې انصارو به چه حج اوکه واپس کیدل به نو د خپلو کورونو په دروازو به نه داخلیدل بلکه د کورونو د شا د طرف نه به داخلیدل. یو انصاري سړې راغې. او د خپل کور په دروازه داخل شو په دې خبره هغه ته پیغور ورکړې شو نو دا آیت نازل شولو د نیکئ خبره دا نۀ ده چه تاسو خپلو کورونو ته د شا د طرف نه راځئ بلکه نیکي دا ده چه د ګناه نه خان بچ کړئ او تاسو کورونه ته په دروازو راځئ.

باب۲۵۵: اَلسَّفَرُ قِطْعَةٌ مِّنَ الْعَذَابِ.

باب۲۵۵: سفر د عذاب یوه ټکړه ده.

۳۸۹: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْلَمَةَ حَدَّثَنَا مَالِكٌ عَنْ سُمَیٍّ عَنْ اَبِیْ صَالِحٍ عَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِیِّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اَلسَّفَرُ قِطْعَةٌ مِّنَ الْعَذَابِ یَمْنَعُ اَحَدَكُمْ طَعَامَهٗ وَ شَرَابَهٗ وَ نَوْمَهٗ

۳۸۹: عبدالله بن مسلمه. مالک. سمي. ابوصالح. حضرت ابوهریره هغه د نبي صلی الله علیه وسلم نه روایت کوي حضور صلی الله علیه وسلم او فرمائیل سفر د عذاب یوه ټکړه ده چه تاسو کښې څوک د خوراک څکاک او خوب نه منع کوي کله چه ضرورت پوره شي نو بیا خپل کور ته زر واپس

فَاِذَا قَضٰی نَهْمَتَهٗ فَلْيُعَجِّلْ اِلٰی اَهْلِهٖ.

کیدل پکار دي.

**باب ۲۵۶ : اَلْمُسَافِرِ اِذَا جَدَّبِهِ السَّيْرُ وَ تَعَجَّلَ اِلٰی اَهْلِهٖ.**

**باب ۲۵۶ : د مسافر بیان هر کله چه هغه ته د تلو تادي او کورته ڎ رسیدو زر ضرورت وي.**

۳۹۰ : حَدَّثَنَا سَعِيْدُ ابْنُ اَبِيْ مَرْيَمَ اَخْبَرَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ زَيْدُ بْنُ اَسْلَمَ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ كُنْتُ مَعَ عَبْدِ اللّٰهِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا بِطَرِيْقِ مَكَّةَ فَبَلَغَهٗ عَنْ صَفِيَّةَ بِنْتِ اَبِيْ عُبَيْدٍ شِدَّةُ وَجْعٍ فَاَسْرَعَ السَّيْرَ حَتّٰی كَانَ بَعْدَ غُرُوْبِ الشَّفَقِ نَزَلَ فَصَلَّی الْمَغْرِبَ وَالْعَتَمَةَ جَمَعَ بَيْنَهُمَا ثُمَّ قَالَ اِنِّيْ رَاَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا جَدَّبِهِ السَّيْرُ اَخَّرَ الْمَغْرِبَ وَ جَمَعَ بَيْنَهُمَا.

۳۹۰ : سعید بن ابي مریم. محمد بن جعفر. زید بن اسلم د خپل پلار نه روایت کوي، هغه اووے چه زهٔ د مکے لار کښې عبدالله بن عمرؓ سره ووم، نو هغه ته د صفیه بنت ابي عبید د سختے بیمارئ خبر اورسید، هغهٔ خپل چال تیز کهٔ، تردے چه د شفق (سرخي) د ډوبیدو نه پس ڎ سورلئ نه کوز شولو. او د ماښام او ماسختن مونځ ئے یوځائے او کړلو. بیائے بیان او کهٔ، چه ما نبي صلے الله علیه وسلم اولیدلو چه د تلو به ورته تادي وه، نو ماښام به ئے روستو کولو، او دواړه مونځونه (ماښام او ماسختن) به ئے یوځائے کول.

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِؕ

بسم الله الرحمٰن الرحیمؕ

**باب ۲۵۷ : اَلْمُحْصَرِ وَ جَزَآءِ الصَّيْدِ** وَ قَوْلُهٗ تَعَالٰی فَاِنْ اُحْصِرْتُمْ فَمَا اسْتَيْسَرَ مِنَ الْهَدْيِ وَلَا تَحْلِقُوْا رُءُوْسَكُمْ حَتّٰی يَبْلُغَ الْهَدْيُ مَحِلَّهٗ قَالَ عَطَآءٌ اَلْاِحْصَارُ مِنْ كُلِّ شَيْءٍ يَحْبِسُهٗ.

**باب ۲۵۷ : د محصر[۲] او ڎ ښکار ڎ بدلے بیان،** او د الله تعالٰی قول، کهٔ تاسو ایسار (بند) کړے شئے، نو کومه قرباني چه وي، او خپل سر، مهٔ خرئیے، تردے چه ڎ قربانئ خناور خپل ځائے ته اورسي. عطاء اووے، چه احصار هر هغے سره کیږي، چه هغه ایسار کړي.

۲. د مُحصر لفظ د احصار مصدر نه اسم مفعول دے احصار په عربئ ژبه کښې د مرض یا د دښمن په وجه بندیز ته وائي. د حج احصار د احنافو په اصطلاح کښې هم دیته وائي چه بنده د دښمن په وجه یا د ناجوړتیا په وجه حج ته نشي تللے. د اُمّت اسلافو ترے هم دا معني اخستله. د عطاء رحمة الله علیه په نزد امام بخاري هم دا معني بیان کړیده.

امام شافعي رحمة الله علیه د احصار مطلب صرف د دښمن په وجه بندیز ته وائي. ځکه چه د آیت شریف شان نزول دا دے. چه دا د دښمنانو د بندیز (متعلق) په حقله نازل شوے وو. خو بهر حال لفظ عام

دي. داسې څه خاص وجه نشته. چه دا لفظ د دښمن بندیز پورې خاص شي. بعضې مرض (ناجوړتیا) م کونکې دښمن ثابتیږي.

## بــــاب۲۵۸: إذا أُحْـصِــرَ الْمُعْتَمِرُ.

## باب۲۵۸: هر کله چه عُمره کونکې منع کړې شي.

۱۳۹۱: حَـدَّثَـنَـا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ نَّافِعٍ اَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا حِيْنَ خَرَجَ اِلٰى مَكَّةَ مُعْتَمِرًا فِي الْفِتْنَةِ قَالَ اِنْ صُدِدْتُّ عَنِ الْبَيْتِ صَنَعْتُ كَمَا صَنَعْنَا مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَهَلَّ بِعُمْرَةٍ مِّنْ اَجْلِ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ اَهَلَّ بِعُمْرَةٍ عَامَ الْحُدَيْبِيَّةِ.

۱۳۹۱: عبدالله بن یوسف. مالک. نافع نه روایت دې، عبدالله بن عمرؓ چه د فتنې په وخت عُمره کولو له مکې طرف ته راغې، نو هغه اووې، که زهٔ د خانه کعبې نه بند کړې شوم، نو زهٔ به هغه کوم، چه مونږ رسول الله صلی الله علیه وسلّم سره کړې وو، نو هغهٔ دَ عمرې احرام اوتړلو. ځکه چه رسول الله علیه وسلّم د حدیبیه په کال دَ عُمرې احرام تړلے وو.

۱۳۹۲: حَـدَّثَـنَـا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ اَسْمَاءَ حَدَّثَنَا جُوَيْرِيَةُ عَنْ نَافِعٍ اَنَّ عُبَيْدَ اللّٰهِ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ وَ سَالِمَ بْنَ عَبْدِاللّٰهِ اَخْبَرَاهُ اَنَّهُمَا كَلَّمَا عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا لَيَالِيَ نَزَلَ الْجَيْشُ بِابْنِ الزُّبَيْرِ فَقَالَ لَا تَضُرُّكَ اَنْ لَّا تَحُجَّ الْعَامَ وَ اِنَّا نَخَافُ اَنْ يُّحَالَ بَيْنَكَ وَ بَيْنَ الْبَيْتِ فَقَالَ خَرَجْنَا مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَحَالَ كُفَّارُ قُرَيْشٍ دُوْنَ الْبَيْتِ فَنَحَرَ النَّبِيُّ صَلَّى

۱۳۹۲: عبدالله بن محمّد بن اسماء. جویریه. نافع. عبیدالله بن عبدالله او سالم بن عبدالله نه روایت کوي، چه دې دواړو، کومه زمانه کښې چه په ابن زبیر لشکر کشي شوې وه، عبدالله بن عمرؓ سره خبرې اترې اوکړې، او ورته ئې اووې، چه سږکال حج نهٔ کولو کښې ستاسو دَ پاره څهٔ نقصان نشته. او مونږ دَ پاره خطره ده، چه ستاسو او دَ خانه کعبې مینځ کښې به بندیز راشي. هغهٔ اووې، مونږ رسول الله صلی الله علیه وسلّم سره اووتلو، نو کفار قریش خانه کعبه کښې دَ داخلیدو نه خنډ شولو. نبي صلی الله علیه وسلّم دَ خپلې قربانۍ څناور ذبح کړلو. او خپل سر ئې اوخریلو. عبدالله اووې، زهٔ تاسو ګواه کوم، چه ما په خپل ځان عمره

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَدْيَهُ وَ حَلَقَ رَأْسَهُ وَ أُشْهِدُكُمْ اَنِّيْ قَدْ اَوْجَبْتُ الْعُمْرَةَ اِنْ شَآءَ اللّٰهُ اَنْطَلِقُ فَاِنْ خُلِّيَ بَيْنِيْ وَ بَيْنَ الْبَيْتِ طُفْتُ وَ اِنْ حِيْلَ بَيْنِيْ وَ بَيْنَهٗ فَعَلْتُ كَمَا فَعَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَنَا مَعَهٗ فَاَهَلَّ بِالْعُمْرَةِ مِنْ ذِي الْحُلَيْفَةِ ثُمَّ سَارَ سَاعَةً ثُمَّ قَالَ اِنَّمَا شَانُهُمَا وَاحِدٌ اُشْهِدُكُمْ اَنِّيْ قَدْ اَوْجَبْتُ حَجَّةً مَّعَ عُمْرَتِيْ فَلَمْ يَحِلَّ مِنْهُمَا حَتّٰى يَطُوْفَ طَوَافًا وَّاحِدًا يَّوْمَ يَدْخُلُ مَكَّةَ.

واجب کړے دہ، که اللّٰه ته منظوره وي، نو زۀ به خم. که لار کښې خما او د خانه کعبے مینځ کښې خنډ نه وي، نو زۀ بـه دَ خـانه کعبے طواف اوکړم. او کۀ زۀ خلقو هلته دَ داخلیدو نه منع کړم نو زۀ به هغه کوم، څۀ چه رسول اللّٰه صلے اللّٰه علیه وسلّم کړے وو. او زۀ حضور صلے اللّٰه علیه وسلّم سره ووم، نو دَ ذي الحلیفه نه ئے دَ عمرے احرام اوتړلو. بیالږ ساعت لاړلو. بیائے اووے، دَ دواړو یو حال دے، زۀ تاسو ګواه کوم، چه ما عُمرے سره حج واجب کړلو. بیا دا، دواړه دَ احرام نه بهر نۀ شو، تردے چه دَ قربانۍ ورځ راغله، او دَ قربانۍ څناور، ئے اولیږلو، او وئیل ئے، دَ احرام نه بهر کیدل نشته، څوک پورے چه مکه کښې داخل شي او یو طواف (زیارت) اونۀ کړي.

۳۹۳: حَدَّثَنِيْ مُوْسَى ابْنُ اِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا جُوَيْرِيَةُ عَنْ نَّافِعٍ اَنَّ بَعْضَ بَنِيْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ لَهٗ لَوْ اَقَمْتَ بِهٰذَا.

۳۹۳: موسٰي بن اسمٰعیل. جویریه. نافع نه روایت کوي، چه دَ عبداللّٰه بن عمرؓ بعضے خامنو هغهٔ ته اووے، کاش سخکال تاسو پاتے شوے وئے. او دغه شان روایت ئے اوکۀ.

۳۹۴: حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ قَالَ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ صَالِحٍ حَدَّثَنَا مُعَاوِيَةُ بْنُ سَلَامٍ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ اَبِيْ كَثِيْرٍ عَنْ عِكْرِمَةَ قَالَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَدْ اُحْصِرَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَحَلَقَ رَأْسَهٗ وَ جَامَعَ نِسَآءَهٗ وَ نَحَرَ هَدْيَهٗ حَتّٰى اعْتَمَرَ عَامًا قَابِلًا.

۳۹۴: محمد. یحیٰي بن صالح. معاویه بن سلام. یحیٰي بن کثیر. عکرمه روایت کوي حضرت ابن عباسؓ اووے، رسول اللّٰه صلے اللّٰه علیه وسلّم مکے ته تلو نه منع کړے شو، نو حضور صلے اللّٰه علیه وسلّم خپل سر اوخریلو، خپلو بیبیانو سره ئے صحبت اوکۀ. او دَ هدي ئے قرباني اوکړه، تردے چه بل کال ئے عُمره اوکړه.

## باب ۲۵۹: اَلْاِحْصَارِ فِي الْحَجِّ.

## باب ۲۵۹: حج کښې دَ منع کیدو بیان.

۳۹۵: حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدٍ

۳۹۵: احمد بن محمد. عبداللّٰه.

أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ أَخْبَرَنَا يُوْنُسُ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ أَخْبَرَنِيْ سَالِمٌ قَالَ كَانَ ابْنُ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا يَقُوْلُ أَلَيْسَ حَسْبُكُمْ سُنَّةُ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنْ حُبِسَ أَحَدُكُمْ عَنِ الْحَجِّ طَافَ بِالْبَيْتِ وَ بِالصَّفَا وَالْمَرْوَةِ ثُمَّ حَلَّ مِنْ كُلِّ شَيْءٍ حَتّٰى يَحُجَّ عَامًا قَابِلًا فَيُهْدِيْ أَوْ يَصُوْمُ إِنْ لَمْ يَجِدْ هَدْيًا وَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ حَدَّثَنِيْ سَالِمٌ عَنِ ابْنِ عُمَرَ نَحْوَهُ.

يونس. زهري. سالم نه روايت كوي چه حضرت ابن عمرؓ به وئيل: آيا تاسو د پاره د رسول الله صلے الله عليه وسلم سنت كافي نه دي. كه تاسو كښې څوک سرے د حج نه منع كړے شي نو د خانه كعبے او صفا مروه طواف دے او كړي. بيا دے د هر څيز د حرمت نه بهر شي تر دے چه بل (په دويم) كال حج او كړي او د قربانۍ څناور اوليږي. او كه د قربانۍ څناور بيا نه مومي، نو روژے دے اونيسي، او عبدالله (ابن مبارک) نه په روايت د معمر. زهري. سالم. ابن عمرؓ دغه شان منقول دي.

## باب ۲٦٠ : النَّحْرِ قَبْلَ الْحَلْقِ فِي الْحَصْرِ.

## باب ۲٦٠ : د منع كيدو په صورت كښې د سر خريلو نه مخكښې د قربانۍ كولو بيان.

۳۹٦: حَدَّثَنَا مَحْمُوْدٌ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عُرْوَةَ عَنِ الْمِسْوَرِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحَرَ قَبْلَ أَنْ يَّحْلِقَ وَ أَمَرَ أَصْحَابَهُ بِذٰلِكَ.

۳۹٦: محمود. عبدالرزاق. معمر. زهري. عروه. مسورؓ نه روايت دے، چه نبي صلے الله عليه وسلم د سر خريلو نه مخكښې قرباني او كړله. او خپلو صحابوؓ ته ئے هم د دے حكم ور كړلو.

۳۹۷: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحِيْمِ أَخْبَرَنَا أَبُوْ بَدْرٍ شُجَاعُ بْنُ الْوَلِيْدِ عَنْ عَمْرِو بْنِ مُحَمَّدٍ الْعُمَرِيِّ قَالَ وَ حَدَّثَ نَافِعٌ أَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ وَ سَالِمًا كَلَّمَا عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ خَرَجْنَا مَعَ النَّبِيِّ

۳۹۷: محمد بن عبدالرحيم. ابو بدر شجاع بن وليد. عمرو بن محمد عمري. نافع نه روايت كوي، چه عبدالله او سالم، عبدالله بن عمرؓ سره خبرے او كړے، هغه اووے، چه مونږ نبي صلے الله عليه وسلم سره عمرے كولو د پاره اووتلو، نو د قريش كفارو خانه

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُعْتَمِرِيْنَ فَحَالَ كُفَّارُ قُرَيْشٍ دُوْنَ الْبَيْتِ فَنَحَرَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بُدْنَهُ وَ حَلَقَ رَأْسَهُ.

كعبه كښې د، داخليدو نه منع كړلو، نو رسول الله صلى الله عليه وسلم د خپلې قرباني خناور ذبح كه او خپل سر، ئې اوخريلو.

## باب ۱۲۶۱: مَنْ قَالَ لَيْسَ عَلَى الْمُحْصَرِ بَدَلٌ

وَ قَالَ رَوْحٌ عَنْ شِبْلٍ عَنِ ابْنِ اَبِيْ نَجِيْحٍ عَنْ مُّجَاهِدٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا اِنَّمَا الْبَدَلُ عَلٰى مَنْ نَقَضَ حَجَّهُ بِالتَّلَذُّذِ فَاَمَّا مَنْ حَبَسَهُ عُذْرٌ اَوْ غَيْرُ ذٰلِكَ فَاِنَّهُ يَحِلُّ وَلَا يَرْجِعُ وَ اِنْ كَانَ مَعَهُ هَدْىٌ وَهُوَ مُحْصَرٌ نَحَرَهُ اِنْ كَانَ لَا يَسْتَطِيْعُ اَنْ يَّبْعَثَ وَ اِنِ اسْتَطَاعَ اَنْ يَّبْعَثَ بِهِ لَمْ يَحِلَّ حَتّٰى يَبْلُغَ الْهَدْىُ مَحِلَّهُ وَ قَالَ مَالِكٌ وَّ غَيْرُهُ يَنْحَرُ هَدْيَهُ وَ يَحْلِقُ فِيْ اَيِّ مَوْضِعٍ كَانَ وَلَا قَضَآءَ عَلَيْهِ لِاَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَصْحَابَهُ بِالْحُدَيْبِيَةِ نَحَرُوْا وَ حَلَقُوْا وَ حَلُّوْا مِنْ كُلِّ شَيْءٍ قَبْلَ الطَّوَافِ وَ قَبْلَ اَنْ يَّصِلَ الْهَدْىُ اِلَى الْبَيْتِ ثُمَّ لَمْ يُذْكَرْ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَمَرَ اَحَدًا اَنْ يَّقْضُوْا شَيْئًا وَلَا يَعُوْدُوْا لَهُ وَالْحُدَيْبِيَةُ خَارِجٌ مِّنَ الْحَرَمِ.

## باب ۱۲۶۱: د هغې چا دليل، چه د دې قائل دي

چه په محصر بدله واجب[۱] نه ده. او روح په واسطه د، شبل، ابن ابي جيح. مجاهد. ابن عباسؓ روايت كړې دې، بدله د هغې سړي په ذمه واجب ده، چه د هغهٔ حج د صحبت په وجه مات شي، ليكن چا ته چه څهٔ عذر وغيره مانع وي، نو هغه به د، احرام نه بهر شي. او قضا به نهٔ كوي. او كهٔ هغهٔ سره د قرباني خناور (هدي) وي، او هغه منع كړې شي، نو هغه دې قرباني كړي. كه د هغې د ليږلو قدرت ئې نه وي او كهٔ د هغې په ليږلو قادر وي، خو خو پورې چه قرباني خپل ځائې ته اونهٔ رسي، د احرام نه دې نه بهر كيږي، او د، امام مالک وغيره قول دې، چه د خپلې قربانئ خناور دې ذبح كړي، او سر دې اوخرئي، كوم ځائې چه وي، او په هغهٔ قضا نشته، ځكه چه نبي صلى الله عليه وسلّم او د حضور صلى الله عليه وسلّم صحابهؓ حديبيه كښې قرباني اوكړه، او سر، ئې اوخريلو، او د طواف او د قربانئ د خناور خانه كعبې ته د، رسيدو نه مخكښې د، احرام نه بهر شولو. بيا دا منقول نهٔ دي، چه نبي صلى الله عليه وسلّم چا ته د قضا كولو يا دوباره كولو حكم وركړې وي. او حديبيه د حرم نه بهر[۲] ده.

۱. دا د امام مالک رحمة الله عليه مسلک د امام ابو حنيفه رحمة الله عليه د مسلک خلاف خبره ده. د امام اعظم رحمة الله عليه په نزد په مُحصر (په هغه بنده چه د حج يا عمرې نه منعه شوي وي) باندې

قضا واجب ده چه کله (قادر شي) وس ئې اوشي نو فوري قضا به د حج او د عمرې کوي. پدې د ټولو امامانو صاحبانو اتفاق دې که څوک د حج نه منعه شي. نو په هغه د حج قضا واجب ده' د امامانو حضراتو په مينځ کښې اختلاف صرف د عمرې په حقله دې دې حديث شريف کښې د عبدالله بن عباس رضي الله عنهما د بيان نه دا معلوميږي چه د هغه په نزد دوه صورته دي قضا هم شته که بې وسئ او د قدرتي عذر په وجه څوک د عمرې نه منعه شو نو قضا نشته او که داسې عذر وي چه د وس او قابو لاندې وي نو وربانديې د عمرې قضا واجب ده.

۲. امام طحاوي رحمة الله عليه د سيرت د ماهر عالم محمد اسحاق رحمة الله عليه روايت نقل کړيدې چه ډ حُدَيبيې څه حصه په حرم شريف کښې دَننه ده. د صحيح بخاري د يو اوږد حديث شريف نه هم دا معلوميږي. چه د حُديبيې څه حصه حرم شريف کښې دننه ده. د دې وجې نه دا وينا صحيح نده. چه ټوله حُديبيه د حرم شريف نه بَهر ده. د احنافو په نزد دا مسئله ده چه حاجي د حرم شريف په حدودو کښې هر ځائې قرباني کولې شي (د مِنیٰ نه بغير هم کولې شي) که څوک د حج نه منعه کړې شي (مُحصَروي) نو هغه به حرم شريف ته خپله قرباني ليږي. او کله چه د هغه د قرباني ځاروې حرم شريف ته اورسي او حلال شي نو بيا هغه حاجي احرام لرې کولې شي. حلال به شي.

**۳۹۸: حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ قَالَ حَدَّثَنِىْ مَالِكٌ عَنْ نَافِعٍ اَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عُمَرَ رَضِىَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ حِيْنَ خَرَجَ اِلٰى مَكَّةَ مُعْتَمِرًا فِى الْفِتْنَةِ اِنْ صُدِدْتُّ عَنِ الْبَيْتِ صَنَعْنَا كَمَا صَنَعْنَا مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَهَلَّ بِعُمْرَةٍ مِّنْ اَجْلِ اَنَّ النَّبِىَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ اَهَلَّ بِعُمْرَةٍ عَامَ الْحُدَيْبِيَةِ ثُمَّ اِنَّ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عُمَرَ نَظَرَ فِىْ اَمْرِهٖ فَقَالَ مَا اَمْرُهُمَا اِلَّا وَاحِدٌ فَالْتَفَتَ اِلٰى اَصْحَابِهٖ فَقَالَ مَا اَمْرُهُمَا اِلَّا وَاحِدٌ اُشْهِدُكُمْ اَنِّىْ قَدْ اَوْجَبْتُ الْحَجَّ مَعَ الْعُمْرَةِ ثُمَّ طَافَ لَهُمَا طَوَافًا وَّاحِدًا وَّرَاٰى اَنَّ ذٰلِكَ مُجْزِيًا عَنْهُ وَ اَهْدٰى.**

۳۹۸: اسمٰعيل. مالک. نافع. دَ عبدالله بن عمرؓ متعلق بيان کوي. چه کوم وخت هغه دَ فتنې زمانه کښې عمرې دَ پاره مکې ته روان شو' نو وې وئيل' کهٔ مونږ خانه کعبې ته دَ تلو نه منع کړې شو' نو مونږ به هغه کوو' څنګه چه مونږ دَ' رسول الله صلے الله عليه وسلّم ملګرتيا کښې کړې وو' نو هغه دَ' عُمرې احرام اوتړلو' څکه چه نبي صلے الله عليه وسلّم دَ حديبيې په کال دَ' عمرې احرام تړلې وو. بيا عبدالله ابن عمرؓ دې معامله کښې غور اوکهٔ' نو وې وئيل' ددې دواړو (حج او عُمرې) خو يو حال دې نو خپلو ملګرو ته متوجّه شو. او وې وئيل دَ دې دواړو حالت خو بس يو دې. زهٔ تاسو ګواه کوم' چه ما حج عُمرې سره واجب کړې دې. بيائې دواړو دَ پاره يو طواف اوکه. او خيال ئې اوکهٔ' چه دا کافي دې. او دَ قربانې ځناور ئې هم ځان سره بوتلو.

باب ۲۶۲: قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى فَمَنْ كَانَ مِنْكُمْ مَّرِيْضًا اَوْ بِهٖ اَذًى مِّنْ رَّأْسِهٖ فَفِدْيَةٌ مِّنْ صِيَامٍ اَوْ صَدَقَةٍ اَوْ نُسُكٍ وَهُوَ مُخَيَّرٌ فَاَمَّا الصَّوْمُ فَثَلٰثَةُ اَيَّامٍ.

باب ۲۶۲: د اللّٰه تعالٰي قول چه تاسو كښې څوك مريض وي يا سر كښې نے تكليف وي، نو د روژو فديه ده يا صدقه يا قرباني ده، او هغه ته اختيار دے. ليكن روژے دے درے اونيسي.

۱. دا فديه د ناجوړتيا يا د سر د تكليف په وجه نه واجبيږي. څرنګ چه د حديث شريف نه معلوميږي دا فديه د سر خريلو په وجه يا د سپګو د وژلو په وجه ده چه دا د سر خريلو په وجه مړے شوے. دا مخكښ د سر ويښتو كښې ژوندئے وے.

۳۹۹: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ حُمَيْدِ بْنِ قَيْسٍ عَنْ مُّجَاهِدٍ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ اَبِيْ لَيْلٰى عَنْ كَعْبِ بْنِ عُجْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ عَنْ رَّسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهُ قَالَ لَعَلَّكَ اٰذَاكَ هَوَامُّكَ قَالَ نَعَمْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ احْلِقْ رَأْسَكَ وَصُمْ ثَلٰثَةَ اَيَّامٍ اَوْ اَطْعِمْ سِتَّةَ مَسَاكِيْنَ اَوِ انْسُكْ بِشَاةٍ.

۳۹۹: عبداللّٰه بن يوسف. مالك. حميد بن قيس. مجاهد. عبدالرحمٰن بن ابي ليلٰي كعب بن عجره. رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلّم نه روايت كوي، حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، شايد تا ته سپږو تكليف دركړے وي، هغوئ اووے، او، يا رسول اللّٰه، نو رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل. سر، او خريه، او درے ورځے روژے اونيسه، يا شپږ مسكينانو بانديے ډوډئ اوخوروه، يا يوه چيلئ قربانئ كړه.

باب ۲۶۳: قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى اَوْ صَدَقَةٍ وَّ هِيَ اِطْعَامُ سِتَّةِ مَسَاكِيْنَ.

باب ۲۶۳: د اللّٰه تعالٰي دا قول چه اَوْ صدقةٍ دا شپږو مسكينانو باند ډوډئ خوړول دي.

۴۰۰: حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا سَيْفٌ قَالَ حَدَّثَنِيْ مُجَاهِدٌ قَالَ سَمِعْتُ عَبْدَ الرَّحْمٰنِ ابْنَ اَبِيْ لَيْلٰى اَنَّ كَعْبَ بْنَ عُجْرَةَ حَدَّثَهُ قَالَ وَقَفَ

۴۰۰: ابونعيم. سيف. مجاهد. عبدالرحمٰن بن ابي ليلٰي نه كعب بن عجره بيان اوكړ، چه ما سره حديبيه كښې رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلّم ايسار شولو. او خما د سر نه سپږے دوريدلے، نو حضور صلے اللّٰه عليه

عَلٰی رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ بِالْحُدَیْبِیَّةِ وَ رَأْسِیْ یَتَهَافَتُ قَمْلًا فَقَالَ یُؤْذِیْكَ هَوَآمُّكَ قُلْتُ نَعَمْ قَالَ فَاحْلِقْ رَأْسَكَ اَوْ قَالَ احْلِقْ قَالَ فِیَّ نَزَلَتْ هٰذِهِ الْاٰیَةُ فَمَنْ کَانَ مِنْکُمْ مَّرِیْضًا اَوْ بِهٖ اَذًی مِّنْ رَّأْسِهٖ اِلٰی اٰخِرِهَا فَقَالَ النَّبِیُّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ صُمْ ثَلٰثَةَ اَیَّامٍ اَوْ تَصَدَّقْ بِفَرَقٍ بَیْنَ سِتَّةٍ اَوِ انْسُكْ بِمَا تَیَسَّرَ.

وسلَم او فرمائیل' تاته سپږے تکلیف در کوي. ما اووے: او' حضور صلے اللّٰه علیه وسلّم او فرمائیل' خپل سر اوخریه (فاحلق راسک نے اووے یا صرف احلق ئے اووے) ذ کعب بن عجره بیان دے' چه دا آیت: فمن کان منکم مریضا اوبه اذي من راسه: آخر پورے خما متعلق نازل شوے دے. نبي صلے اللّٰه علیه وسلّم او فرمائیل' درے روځے اوساته' یا یو فرق درے مسکینانو کښ تقسیم کړي یا څۀ چه وي هغه قرباني کړه.

## بـاب ۲٦۴ : اَلْاِطْعَامُ فِی الْفِدْیَةِ نِصْفُ صَاعٍ.

## باب ۲٦۴ : فدیه کښ ذ' نیم صاع طعام خوړولو بیان.

۱۰۴ : حَدَّثَنَا اَبُو الْوَلِیْدِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ ابْنِ الْاَصْبَهَانِیِّ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَعْقِلٍ قَالَ جَلَسْتُ اِلٰی کَعْبِ بْنِ عُجْرَةَ رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ فَسَأَلْتُهُ عَنِ الْفِدْیَةِ فَقَالَ نَزَلَتْ فِیَّ خَاصَّةً وَهِیَ لَکُمْ عَامَّةً حُمِلْتُ اِلٰی رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ وَالْقَمْلُ یَتَنَاثَرُ عَلٰی وَجْهِیْ فَقَالَ مَا کُنْتُ اُرٰی الْوَجَعَ بَلَغَ بِكَ مَا اَرٰی اَوْ مَا کُنْتُ اُرٰی الْجَهْدَ بَلَغَ بِكَ مَا اَرٰی تَجِدُ شَاةً فَقُلْتُ لَا فَقَالَ فَصُمْ ثَلٰثَةَ اَیَّامٍ اَوْ اَطْعِمْ سِتَّةَ مَسَاکِیْنَ لِکُلِّ مِسْکِیْنٍ نِصْفُ صَاعٍ.

۱۰۴ : ابوالولید. شعبه. عبدالرحمٰن بن اصبهاني. عبداللّٰه بن معقل بیان کوي' چه زۀ کعب بن عجرهؓ سره ناست ووم' هغۀ نه ما ذ فدیے متعلق تپوس اوکۀ' نو وے وئیل' چه دا آیت خاص خما متعلق نازل شوے دے' لیکن ذ دے حکم ستاسو ټولو ذ پاره عام دے. زۀ رسول اللّٰه صلے اللّٰه علیه وسلّم ته اوچت کړے راوړے شوم او سپږے خما په مخ راغورځیدلے. حضور صلے اللّٰه علیه وسلّم او فرمائیل. خما دا خیال نۀ وو' چه ستا بیماري به دے حد ته رسیدلے وي' آیا یوه چیلۍ دے په درک کښ شته. ما اووے' نه' حضور صلے اللّٰه علیه وسلّم او فرمائیل. درے روځے اونیسه یا شپږ مسکینانو باندے طعام اوخوروه. هر مسکین ته نیم صاع ورکړه.

## باب ۲٦۵ : اَلنُّسُكُ شَاةٌ.

## باب ۲٦۵ : نسک نه مراد' ذ چیلئے قرباني ده.

۴۰۲: حَدَّثَنَا اِسْحَاقُ حَدَّثَنَا رَوْحٌ حَدَّثَنَا شِبْلٌ عَنِ ابْنِ اَبِیْ نَجِیْحٍ عَنْ مُجَاهِدٍ قَالَ حَدَّثَنِیْ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنِ اَبِیْ لَیْلٰی عَنْ کَعْبِ بْنِ عُجْرَةَ رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ رَاٰهُ وَ اَنَّهُ یَسْقُطُ عَلٰی وَجْهِهٖ فَقَالَ اَیُؤْذِیْكَ هَوَآمُّكَ قَالَ نَعَمْ فَاَمَرَهُ اَنْ یَّحْلِقَ وَهُوَ بِالْحُدَیْبِیَّةِ وَلَمْ یَتَبَیَّنْ لَهُمْ اَنَّهُمْ یَحِلُّوْنَ بِهَا وَهُمْ عَلٰی طَمَعٍ اَنْ یَّدْخُلُوْا مَكَّةَ فَاَنْزَلَ اللّٰهُ الْفِدْیَةَ فَاَمَرَهُ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ اَنْ یُّطْعِمَ فَرَقًا بَیْنَ سِتَّةٍ اَوْ یُهْدِیَ شَاةً اَوْ یَصُوْمَ ثَلٰثَةَ اَیَّامٍ وَ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ یُوْسُفَ حَدَّثَنَا وَرْقَآءُ عَنِ ابْنِ اَبِیْ نَجِیْحٍ عَنْ مُجَاهِدٍ اَخْبَرَنَا عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ اَبِیْ لَیْلٰی عَنْ کَعْبِ بْنِ عُجْرَةَ رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ رَاٰهُ وَ قَمْلُهُ یَسْقُطُ عَلٰی وَجْهِهٖ مِثْلَهُ.

۴۰۲: اسحاق. روح. شبل. ابن نجيح. مجاهد. عبدالرحمن بن ابي ليلي، كعب بن عجره نه روايت كوي، رسول الله صلے الله عليه وسلّم هغه داسے حال كښې اوليدلو، چه سپږے د هغه په مخ راغرخيدلے، نو حضور صلے الله عليه وسلّم اوفرمائيل آيا سپږے تاته تكليف دركوي. كعب اووے، او، بيا حضور صلے الله عليه وسلّم حكم وركه، چه سر اوخريه دغه وخت حضور صلے الله عليه وسلّم حديبيه كښې وو، ليكن حضور صلے الله عليه وسلّم هغے خلقوته دا، اونه فرمائيل، چه هغه خلق به د دے په سبب د، احرام نه بهر شي، او هغوي دغه وخت دے اُميد كښې وو، چه مكه كښې به داخل شي، نو الله تعالي د فديے آيت نازل كړلو. كعب ته رسول الله صلے الله عليه وسلّم حكم وركړلو، چه يو فرق شپږ مسكينانو باندے اوخوروه يا يوه چيلئ قرباني كړه، يا درے روژے اونيسه. او محمد بن يوسف بيان اوكه، چه مونږ ته ورقاء په واسطه د، ابن ابي نجيح. مجاهد. عبدالرحمن. ابي ليلي. كعب بن عجره روايت اوكه، چه رسول الله صلے الله عليه وسلّم هغه، داسے حالت كښې اوليدلو، چه سپږے د هغه په مخ راغرخيدلے، او دغه شان روايت ئے اوكه.

## بَاب ۲۶۶: قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰی فَلَا رَفَثَ.

## باب ۲۶۶: د الله تعالي قول، د، فَلَا رَفَث بيان.

۴۰۳: حَدَّثَنَا سُلَیْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ مَنْصُوْرٍ عَنْ اَبِیْ حَازِمٍ عَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ

۴۰۳: سليمان بن حرب. شعبه. منصور. ابوحازم. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت كوي، رسول الله صلے الله عليه وسلّم او فرمائيل چا چه د دے كور حج اوكه، او نه ئے فحش حركات اوكړل، او نه د ګناه څه

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ حَجَّ هٰذَا الْبَيْتَ فَلَمْ يَرْفُثْ وَلَمْ يَفْسُقْ رَجَعَ كَمَا وَلَدَتْهُ اُمُّهُ.

خبره ئے او کړله، نو هغه به د حج نه په واپسي داسې بې ګناه شي، څنګه چه د مور نه د پیدا کیدو په وخت بې ګناه وي.

## بـاب ۲۶۷ : قَوْلِ اللّٰهِ عَزَّ وَجَلَّ وَلَا فُسُوْقَ وَلَا جِدَالَ فِي الْحَجِّ.

## باب ۲۶۷ : دَ اللّٰه تعالٰي قول، چه حج کښې دې نه خرابه خبره اونه جګړه کوي.

۴۰۴ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوْسُفَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ مَنْصُوْرٍ عَنْ اَبِيْ حَازِمٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ حَجَّ الْبَيْتَ فَلَمْ يَرْفُثْ وَلَمْ يَفْسُقْ رَجَعَ كَيَوْمِ وَلَدَتْهُ اُمُّهُ.

۴۰۴ : محمد بن یوسف. سفیان. منصور. ابوحازم. ابوهریرهؓ نه روایت کوي، نبي صلی الله علیه وسلم او فرمائیل، چا چه دَ دې کور حج اوکه. او دَ شهوت خبره ئې اونهٔ کړه، اونه ئې ګناه اوکړه، نو حج نه به داسې معصوم واپس شي، څنګه چه د مور نه پیدا کیدو په وخت معصوم وي.

## باب ۲۶۸ : قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى لَا تَقْتُلُوا الصَّيْدَ وَ اَنْتُمْ حُرُمٌ وَمَنْ قَتَلَهُ مِنْكُمْ مُتَعَمِّدًا فَجَزَآءٌ مِّثْلُ مَا قَتَلَ مِنَ النَّعَمِ يَحْكُمُ بِهٖ ذَوَا عَدْلٍ مِّنْكُمْ هَدْيًا بٰلِغَ الْكَعْبَةِ اَوْ كَفَّارَةٌ طَعَامُ مَسٰكِيْنَ اَوْ عَدْلُ ذٰلِكَ صِيَامًا لِّيَذُوْقَ وَبَالَ اَمْرِهٖ عَفَا اللّٰهُ عَمَّا سَلَفَ وَمَنْ عَادَ فَيَنْتَقِمُ اللّٰهُ مِنْهُ وَاللّٰهُ عَزِيْزٌ ذُوانْتِقَامٍ اُحِلَّ لَكُمْ صَيْدُ الْبَحْرِ وَ طَعَامُهٗ مَتَاعًا لَّكُمْ وَ لِلسَّيَّارَةِ وَ حُرِّمَ عَلَيْكُمْ صَيْدُ الْبَرِّ مَا دُمْتُمْ حُرُمًا وَّاتَّقُوا اللّٰهَ الَّذِيْٓ اِلَيْهِ

## باب ۲۶۸ : دَ اللّٰه تعالٰي قول، چه ښکار مهٔ کوئې، داسې حال کښې چه تاسو احرام تړلې وي، او تاسو کښې چه قصدًا دا چا، اوویشتلو، نو دَ کوم قسم څناور چه اُوولي، هغه شان بدله دې ورکړي ؏. دَ هغې فیصله دې دوه انصاف دار سړي اوکړي دا، دې قربانئې دِ پاره کعبې ته اولیږي، یا فقیرانو باندې دې طعام اوخوروي، یا دَ دې برابر روژې دې اونیسي، دَ پاره دَ دې چه دَ خپلو کړومزه اوڅکي، څهٔ چه تیر شو، الله هغه معاف کړل، او څوک چه دوباره داسې اوکړي، نو الله تعالٰي به ترې بدله آخلي، او الله تعالٰي زبردست بدله آخستونکې دې. دَ دریاب ښکار او دَ هغې خوراک ستاسو او مسافرو دَ فائدې دَ پاره حلال کړې شوې دې، او دَ خشکي ښکار ستاسو دَ پاره حرام کړې شوې دې، څو پورې چه تاسو دَ احرام په حالت کښې ئې، او

تُحْشَرُوْنَ. د، اللّٰه نه ويريږئ، چه هغه طرف ته به تاسو پاسولے شئ.

۱. په دې د ټول امت اتفاق دې چه د ښكار كولو د حرم په علاقه كښې د جزا واجيدو به حقله د قصداً يا د هيريدو هيڅ دخل نشته. ځكه چه دا جزا واجيدل د كار په وجه ندي بلكې د حرم شريف د خصوصي عزت په وجه واجيبږي نو په هغې كښې د قصد يا د هيرې هيڅ فرق نشته.

په آيت شريف چه د قصد قيد (شرط) لګيدلے دے. هغې صرف د دے كار د قباحت او د خرابئ ښكاره كولو د پاره دے په آيت شريف كښې د جزا حكم دے. په دے كښې د احنافو امامانو مشهور اختلاف دے امام ابو يوسف رحمة اللّٰه عليه وائي آيت كښې د ښكار شوي ځاروي د قيمت ادا كولو حكم دے او امام محمد رحمة اللّٰه عليه او نور امامان وائي د ښكار شوي ځاروي پشان د بل ځاروي فديه وركول دي او كه د هغے پشان ځاروے نه پيدا كيږي نو بيا به قيمت وركوي. دا اختلاف ډير معمولي دے آيت شريف دواړه امامان خپل دليل ګرځوي.

بَابُ ۲۶۹: اِذَا صَادَ الْحَلَالُ فَاَهْدٰى لِلْمُحْرِمِ اَكَلَهُ وَلَمْ يَرَى ابْنُ عَبَّاسٍ وَّ اَنَسٌ بِالذَّبْحِ بَأْسًا وَهُوَ غَيْرُ الصَّيْدِ نَحْوَ الْاِبِلِ وَالْغَنَمِ وَالْبَقَرِ وَالدَّجَاجِ وَالْخَيْلِ يُقَالُ عَدْلُ ذٰلِكَ مِثْلُ فَاِذَا كُسِرَتْ عَدْلٌ فَهُوَ زِنَةُ ذٰلِكَ قِيَامًا قِوَامًا يَعْدِلُوْنَ يَجْعَلُوْنَ عَدْلًا.

باب ۲۶۹: كهٔ غير محرم ښكار او كړي او چا محرم ته تحفه اوليږي، نو هغه دے هغه اوخوري. او ابن عباسؓ او، انسؓ دَ ښكار نه علاوه ځناور مثلاً اوښ، چيلئ، غوا، چرګه او دَ، اَس په ذبح كښې څهٔ حرج نهٔ دے ګنړلے. عَدْلُ ذٰلِكَ نه مرادمثل دے. كهٔ عدل زير سره وي، نو دَ هغے معنئ دَ، هم وزن كيدو دي. قِيَامًا كښې قوامًا او يَعْدِلُوْنَ معنئ دَدے دَ برابر كيدو، دي[۱].

۱. د امام بخاري رحمة اللّٰه عليه دا عادت دے چه كله كومے مسئله كښې د قرآن شريف آياتونه راشي. په هغه آياتونو چه كوم ګران الفاظ راشي د هغے معنئ بيانوي او ورسره د هغے الفاظو معني ګانے بيانوي چه كوم الفاظ هغے ته نزدے، نزدے وي.

۱۷۰۵: حَدَّثَنَا مُعَاذُ بْنُ فُضَالَةَ حَدَّثَنَا هِشَامٌ عَنْ يَحْيٰى عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِيْ قَتَادَةَ قَالَ انْطَلَقَ اَبِيْ عَامَ الْحُدَيْبِيَةِ فَاَحْرَمَ اَصْحَابُهُ وَلَمْ يُحْرِمْ وَ حُدِّثَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّ عَدُوًّا يَغْزُوْهُ فَانْطَلَقَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

۱۷۰۵: معاذ بن فضاله. هشام. يحيئ عبداللّٰه بن ابي قتاده بيان كوي، چه ځما پلار دَ حديبيه په كال لاړ، دَ هغهٔ ملګرو احرام اوتړلو، ليكن هغهٔ احرام اونهٔ تړلو. او نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم ته اووئيلے شو، چه يو دښمن تاسو سره جنګ كول غواړي. نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم روان شو. زهٔ هم دَ حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم صحابه وُ سره ووم بعضے بعضو ته كتل، خاندل ئے. ما يو ځنګلي خر (ګورخر) اوليدو، نو ما پرے حمله اوكړه. ما په نيزه

فَبَيْنَمَا اَنَا مَعَ اَصْحَابِهِ يَضْحَكُ بَعْضُهُمْ اِلٰى بَعْضٍ فَنَظَرْتُ فَاِذَا اَنَا بِحِمَارِ وَّحْشٍ فَحَمَلْتُ عَلَيْهِ فَطَعَنْتُهُ فَاَثْبَتُّهُ وَاسْتَعَنْتُ بِهِمْ فَاَبَوْا اَنْ يُّعِيْنُوْنِيْ فَاَكَلْنَا مِنْ لَحْمِهِ وَ خَشِيْنَا اَنْ نُّقْتَطَعَ فَطَلَبْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَرْفَعُ فَرَسِيْ شَأْوًا وَّ اَسِيْرُ شَأْوًا فَلَقِيْتُ رَجُلًا مِّنْ بَنِيْ غِفَارٍ فِيْ جَوْفِ اللَّيْلِ قُلْتُ اَيْنَ تَرَكْتَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ تَرَكْتُهُ بِتَعِهْنَ وَهُوَ قَائِلُ السُّقْيَا فَقُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّ اَهْلَكَ يَقْرَءُوْنَ عَلَيْكَ السَّلَامَ وَ رَحْمَةَ اللّٰهِ اِنَّهُمْ قَدْ خَشُوْا اَنْ يُّقْتَطَعُوْا دُوْنَكَ فَانْتَظِرْهُمْ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَصَبْتُ حِمَارَ وَحْشٍ وَّ عِنْدِيْ مِنْهُ فَاضِلَةٌ فَقَالَ لِلْقَوْمِ كُلُوْا وَهُمْ مُحْرِمُوْنَ.

اوويشتلو، پړے م بنودلو، ما ذ خلقو نه مدد اوغوښتلو، خو هغوي ذ مدد نه انکار اوکړلو. مونږ خلقو ذ هغے غوښه اوخوړله. او مونږ سره خوف پيدا شو، چه چرته ذ نبي صلے الله عليه وسلّم نه جُدا نهٔ شو. ما نبي صلے الله عليه وسلّم پسے تلاش شروع که، کله به م خپل اس تيز زغلولو، او کله په مزه. نيمه شپه کښې م ذ بني غفار يو سړي سره ملاقات اوشو، ما ترے تپوس اوکهٔ، تا نبي صلے الله عليه وسلّم کوم ځائے پريښودلو، هغه اووے. ما حضور صلے الله عليه وسلّم تعهن کښې پريښودلو. "سقيا" سره ئے ذ قيلولے اراده وه. ما عرض اوکهٔ، يا رسول الله، ستاسو ملګري سلام عرض کوي. هغه خلق ويريږي، چه چرته تاسو ذ هغوی نه جُدا نشئے، نو تاسو ذ هغے خلقو انتظار اوکړئے. بيا ما عرض اوکهٔ، يا رسول الله، ما يو ګورخر (ګور: معنٰي ځنګل او، خر: معنٰي خر، يعني ځنګلي خر) ښکار کړے دے. او ذ هغے بچ شوے غوښه ما سره ده، نو حضور صلے الله عليه وسلّم جماعت ته اووے، چه خورئے، حالانکه هغے خلقو احرام تړلے وو.

بَاب ۲۷۰ : اِذَا رَاَى الْمُحْرِمُوْنَ صَيْدًا فَضَحِكُوْا فَفَطِنَ الْحَلَالُ.

باب ۲۷۰ : محرم چه ښکار ته اوګوري، او او خاندي او غير محرم پوهه شي.

۱۷۰۶ : حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ الرَّبِيْعِ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ الْمُبَارَكِ عَنْ يَحْيٰى عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِيْ قَتَادَةَ اَنَّ اَبَاهُ حَدَّثَهُ قَالَ انْطَلَقْنَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَامَ الْحُدَيْبِيَةِ

۱۷۰۶ : سعيد بن ربيع. علي بن مبارک. يحيٰي. عبدالله بن ابي قتاده، ذ خپل پلار متعلق روايت کوي، هغهٔ اووے، مونږ خلق ذ حديبيه په کال نبي صلے الله عليه وسلّم سره لاړو. ذ حضور صلے الله عليه وسلّم صحابه وُ احرام اوتړلو، خو ما احرام اونهٔ تړلو، مونږ ته معلومه

فَاَحْرَمَ اَصْحَابُهُ وَلَمْ اُحْرِمْ فَاُنْبِئْنَا بِعَدُوٍّ بِغَيْقَةَ فَتَوَجَّهْنَا نَحْوَهُمْ فَبَصُرَ اَصْحَابِيْ بِحِمَارِ وَحْشٍ فَجَعَلَ بَعْضُهُمْ يَضْحَكُ اِلٰى بَعْضٍ فَنَظَرْتُ فَرَاَيْتُهُ فَحَمَلْتُ عَلَيْهِ الْفَرَسَ فَطَعَنْتُهُ فَاَثْبَتُّهُ فَاسْتَعَنْتُهُمْ فَاَبَوْا اَنْ يُعِيْنُوْنِيْ فَاَكَلْنَا مِنْهُ ثُمَّ لَحِقْتُ بِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ خَشِيْنَا اَنْ نُقْتَطَعَ اَرْفَعُ فَرَسِيْ شَاْوًا وَّ اَسِيْرُ عَلَيْهِ شَاْوًا فَلَقِيْتُ رَجُلًا مِّنْ بَنِيْ غِفَارٍ فِيْ جَوْفِ اللَّيْلِ فَقُلْتُ اَيْنَ تَرَكْتَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ تَرَكْتُهُ بِتَعْهِنَ وَهُوَ قَائِلُ السُّقْيَا فَلَحِقْتُ بِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتّٰى اَتَيْتُهُ فَقُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّ اَصْحَابَكَ اَرْسَلُوْا يَقْرَءُوْنَ عَلَيْكَ اَلسَّلَامَ وَ رَحْمَةَ اللّٰهِ وَ بَرَكَاتِهٖ وَ اِنَّهُمْ قَدْ خَشُوْا اَنْ يَقْتَطِعَهُمُ الْعَدُوُّ دُوْنَكَ فَانْظُرْهُمْ فَفَعَلَ فَقُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّا اَصَدْنَا حِمَارَ وَحْشٍ وَّ اِنَّ عِنْدَنَا فَاضِلَةً فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِاَصْحَابِهٖ كُلُوْا وَهُمْ مُحْرِمُوْنَ.

شوه، چه غیقه کښې دُشمن موجود دے، نو مونږ هغوي پله متوجه شو. خمونږ ملګرو یو ځنګلي خر اولید یو بل ته کتو سره په خندا شو، ما چه نظر اوچت کۀ، نو ځنګلي خر، م اولید، ما هغه په نیزه اوویشتلو، او نیزه م پکښې پریښوده، او ذ هغې خلقو نه م مدد او غوښتلو، خو هغوي ذ مدد کولو نه انکار اوکۀ. مونږ ذ هغې غوښه اوخوړله. بیا، زۀ رسول الله صلے الله علیه وسلّم سره یو ځائے شوم. او مونږ سره ویره وه، چه چرته حضور صلے الله علیه وسلّم خمونږ نه جُدا نشي نو کله به ما خپل اس تیز اوکله په مزه زغلولو. نیمه شپه ذ بني غفار یو سړي سره م ملاقات اوشو. ما ذ هغۀ نه تپوس اوکۀ، چه تا رسول الله صلے الله علیه وسلّم کوم ځائے پریښے دے. هغۀ اووے، تعهن کښې پاتے شوے دے. حضور صلے الله علیه وسلّم سقیا کښې ذ قیلولے اراده کوله، نو زۀ راغلم، رسول الله صلے الله علیه وسلّم سره یو ځائے شوم. او عرض م اوکۀ، یا رسول الله، ستاسو صحابهؓ ستاسو خدمت کښې سلام عرض کوي او هغوي ویریدل، چه چرته دُشمن ستاسو او ذ هغوي مینځ کښې حائل نشي، نو تاسو، ذ هغوئ انتظار اوکړئے. حضور صلے الله علیه وسلّم انتظار اوکړلو. بیا ما عرض اوکۀ، یا رسول الله، مونږ یو ځنګلي خر ښکار کړے دے. او مونږ سره ذ هغې بچ شوے غوښه شته. رسول الله صلے الله علیه وسلّم خپلو صحابهؓ ته او فرمائیل، چه دا، او خورئے، حالانکه هغې خلقو احرام تړلے وو[1].

[1]. د دینه معلومه شوه چه مُحرم د ښکار غوښه خوړلے شي د بعضے اسلافو عالمانو دا مسلک دے چه څرنګ مُحرم ته ښکار کول روا نۀدي داسے مُحرم ته د ښکار غوښه خوړل حرام دي. دے کښې څه فرق

نښته کـه مُـحرم پخپله ښکار کړے وي. یا ذ هغه د پاره چا ښکار کړے وي یایے د هغه د پاره ښکار کړے نه وي.

د احـنـافو په پـډے سلسله کښ دا مسلک دے که چرے مُحرم پخپله ښکار نه وي کړے یائے د ښکار کونکي مَدد نه وي کړے نو بیا هغه مُحرم د ښکار غوښه خوړلے شي. دے حدیث شریف کښ هم دا صورت دے. ابو قتاده رضي الله عنه مُحرم نه وو. د هغه چه کوم ملګري وو هغوي د ابو قتاده رضي الله عنه څه مدد نه وو کړے. ابو قتاده رضي الله عنه ښکار اوکړو. ټولو ملګرو د هغے ښکار غوښه او خوړله او د رسول الله صلي الله علیه وسلم ملګرو هم دغه د ښکار غوښه او خوړله.

۱. مـطـلـب ئے دا دے. چـه ښـکار مخامخ وي مُحرمان یو بل ته او ګوري او خاندي. هغه خائے کښ داسے یـو بـنـده وي چـه هـغـه مُحرم نه وي. هغه په خبره پوهه شي او ښکار ئے کړي. په دے کښ څه ګناه نشته. دا په مدد او اشاره کولو کښ نه راځي.

## بَاب ۱۷۲: لَا يُعِينُ الْمُحْرِمُ الْحَلَالَ فِيْ قَتْلِ الصَّيْدِ.

## باب ۱۷۲: مـحرم دے ښکار قتلولو کښ ذ غیر محرم مدد نه کوي.

۱۷۰۴: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا سُفْيٰنُ حَدَّثَنَا صَالِحُ بْنُ كَيْسَانَ عَنْ اَبِيْ مُحَمَّدٍ عَنْ نَافِعٍ مَوْلٰى اَبِيْ قَتَادَةَ سَمِعَ اَبَا قَتَادَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ كُنَّا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْقَاحَةِ مِنَ الْمَدِيْنَةِ عَلٰى ثَلٰثٍ ح وَ حَدَّثَنَا عَلِيُّ ابْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيٰنُ حَدَّثَنَا صَالِحُ ابْنُ كَيْسَانَ عَنْ اَبِيْ مُحَمَّدٍ عَنْ اَبِيْ قَتَادَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ كُنَّا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْقَاحَةِ وَ مِنَّا الْمُحْرِمُ وَ مِنَّا غَيْرُ الْمُحْرِمِ فَرَاَيْتُ اَصْحَابِيْ يَتَرَآءُوْنَ شَيْئًا فَنَظَرْتُ فَاِذَا حِمَارُ وَحْشٍ يَعْنِيْ وَ قَعَ سَوْطُهٗ فَقَالُوْا لَا نُعِيْنُكَ عَلَيْهِ بِشَيْءٍ اِنَّا مُحْرِمُوْنَ

۱۷۰۴: عبدالله بن محمد. سفیان. صالح بن کیسان. ابـو مـحمد. نافع (ذ ابو قتاده غلام) ابو قتادهؓ نه روایـت اوکـهٔ. ذ ابـو قتاده بیان دے، چه مونږ خلق قاحه کـښ ذ مدینے نه په درے میله فاصله وو. ح (دوئم سند) علي بن عبدالله. سفیان. صالح بن کیسان. ابو محمد. ابـو قتـاده نه روایت کوي. ذ هغهٔ بیان دے، چه مونږ خلق نبـي صـلے الله علیه وسلم سره قاحه کښ وو. مونږ کښ بـعـضو احرام تړلے وو. او بعضے غیر محرم وو. ما خپل ملـګـري اولیـدل، چـه یو بل ته ئے څهٔ څیز ښودلو. ما یو خنګلي خر اولید (کوړے او نیزے سره سور شوم، او هغه پـلـه ورغلم) کوړه اوغرځیدله. خلقو راته اووے چه مونږ ستـا هیـڅ مـدد نـهٔ کـوو. ځـکه چه مونږ ذ احرام حالت کـښ یُو. ما خپله هغه (خنګلي خر) اونیولو. بیا، زهٔ ذ یو کیلے (ذ بوټي) ذ شا، نه هغے خنګلي خر طرف ته راغلم، هـغـه م زخـمـي کـهٔ، او خپلو ملګرو، له م راوړلو. هغوي کـښ بـعـضـو اووے، چـه خـورئے، او بـعـضـو اووے،

فَتَنَاوَلْتُهُ فَأَخَذْتُهُ ثُمَّ اَتَيْتُ الْحِمَارَ مِنْ وَّرَآءِ اَكَمَةٍ فَعَقَرْتُهُ فَاَتَيْتُ بِهٖ اَصْحَابِيْ فَقَالَ بَعْضُهُمْ كُلُوْا وَ قَالَ بَعْضُهُمْ لَا تَأْكُلُوْا فَاَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ اَمَامَنَا فَسَأَلْتُهُ فَقَالَ كُلُوْهُ حَلَالٌ قَالَ لَنَا عَمْرٌو اذْهَبُوْا اِلٰى صَالِحٍ فَسَلُوْهُ عَنْ هٰذَا اَوْ غَيْرِهٖ وَ قَدِمَ عَلَيْنَا هٰهُنَا.

مه خورئے. زۀ نبي صلے الله علیه وسلّم له راغلم او هغوي خمونږ نه وړاندے وو. ما حضور صلے الله علیه وسلّم نه تپوس اوکړ. نو حضور صلے الله علیه وسلّم او فرمائیل، خورئے. حلال دے. ذ سفیان بیان دے، مونږ ته عمرو بن دینار اووے. صالح له لاړ شئے، او ذ هغه نه ذ دے حدیث متعلق یا، ذ دے نه علاوه ذ نورو حدیثونو متعلق تپوس اوکړئے، هغه دلته راغلے وو.

## باب ۲۷۲: لَا يُشِيْرُ الْمُحْرِمُ اِلَى الصَّيْدِ لِكَيْ يَصْطَادَهُ الْحَلَالُ.

## باب ۲۷۲: محرم دے ښکار طرف ته ذ غیر محرم ذ ښکار کولو ذ پاره اشاره نۀ کوي.

۴۰۸: حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ اِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا اَبُوْ عَوَانَةَ حَدَّثَنَا عُثْمَانُ هُوَ ابْنُ مَوْهِبٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ اَبِيْ قَتَادَةَ اَنَّ اَبَاهُ اَخْبَرَهٗ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَرَجَ حَاجًّا فَخَرَجُوْا مَعَهٗ فَصَرَفَ طَآئِفَةً مِّنْهُمْ فِيْهِمْ اَبُوْ قَتَادَةَ فَقَالَ خُذُوْا سَاحِلَ الْبَحْرِ حَتّٰى نَلْتَقِيَ فَاَخَذُوْا سَاحِلَ الْبَحْرِ فَلَمَّا انْصَرَفُوْا اَحْرَمُوْا كُلُّهُمْ اِلَّا اَبُوْ قَتَادَةَ لَمْ يُحْرِمْ فَبَيْنَمَا هُمْ يَسِيْرُوْنَ اِذْ رَاَوْا حُمُرَ وَحْشٍ فَحَمَلَ اَبُوْ قَتَادَةَ عَلَى الْحُمُرِ فَعَقَرَ مِنْهَا اَتَانًا فَنَزَلُوْا فَاَكَلُوْا مِنْ لَحْمِهَا وَ قَالُوْا اَنَأْكُلُ لَحْمَ صَيْدٍ وَّ نَحْنُ مُحْرِمُوْنَ فَحَمَلْنَا مَا بَقِيَ مِنْ لَحْمِ الْاَتَانِ فَلَمَّا اَتَوْا رَسُوْلَ اللّٰهِ

۴۰۸: موسی بن اسمٰعیل. ابو عوانه. عثمان بن موهب. عبدالله بن ابي قتاده ذ خپل پلار نه روایت کوي چه رسول الله صلے الله علیه وسلّم حج ذ پاره اووتلو. یو جماعت ئے، چه هغے کښے ابو قتاده هم وو، په بله لار، اولیږلو. او، وے فرمائیل، چه تاسو ذ، دریاب لاره اختیار کړئے. تردے چه مونږ سره یوځائے شئے. نو دا خلق ذ، دریاب په غاړه، غاړه تلل. کوم وخت چه دغه خلق واپس شو، نو ټولو احرام اوتړلو. خو، ابو قتاده احرام اونۀ تړلو هغه خلق روان وو، یو خو ځنګلي خرونو باندے ذ هغوي نظر اوغرځیدلو. نو ابو قتاده په هغے حمله اوکړله. او هغے کښې ئے یوه ماده ښکار کړله. خلق راکوز شو. او ذ هغے غوښه ئے اوخوړله. بیا ئے وئیل، آیا مونږ ذ ښکار غوښه اوخورو، حالانکه احرام مو تړلے دے. مونږ ذ هغے باقي غوښه اوچته کړه. کوم وخت چه خلق رسول الله صلے الله علیه وسلّم ته اورسیدل، نو عرض ئے اوکۀ، یا رسول الله، مونږ احرام

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالُوْا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّا كُنَّا اَحْرَمْنَا وَ قَدْ كَانَ اَبُوْ قَتَادَةَ لَمْ يُحْرِمْ فَرَاَيْنَا حُمَرَ وَحْشٍ فَحَمَلَ عَلَيْهَا اَبُوْ قَتَادَةَ فَعَقَرَ مِنْهَا اَتَانًا فَنَزَلْنَا فَاَكَلْنَا مِنْ لَحْمِهَا ثُمَّ قُلْنَا اَنَاكُلُ لَحْمَ صَيْدٍ وَّ نَحْنُ مُحْرِمُوْنَ فَحَمَلْنَا مَا بَقِيَ مِنْ لَحْمِهَا قَالَ مِنْكُمْ اَحَدٌ اَمَرَهٗ اَنْ يَّحْمِلَ عَلَيْهَا اَوْ اَشَارَ اِلَيْهَا قَالُوْا لَا قَالَ فَكُلُوْا مَا بَقِيَ مِنْ لَحْمِهَا.

ترلي وو. او ابو قتاده احرام نه وو ترلے. مونږ څو ځنګلي خرونه اوليدل. ابو قتاده په هغې حمله او کړه. او هغې کښې ئې يوه ماده ترے ښکار کړله. بيا مونږ راکوز شو. او مونږ د هغې غوښه اوخوړله. بيا مونږ اووے' آيا مونږ د ښکار غوښه اوخورو' هر کله چه احرام مو' ترلے دے. نو خلقو د هغې بچ شوے غوښه اوچته کړه. حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل' چه تاسو کښې چا په دے د حملے کولو د پاره حکم يا اشاره کړے وه. خلقو اووے' نه' حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل. د دے بچ شوے غوښه خورئې.

بَابُ ۲۷۳ : اِذَا اَهْدٰى لِلْمُحْرِمِ حِمَارًا وَّحْشِيًّا حَيًّا لَمْ يَقْبَلْ.

باب ۲۷۳ : کهٔ محرم ته ژوندے ځنګلي خر' اوليږي' نو نهٔ دے قبلوي.

۴۰۹ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُتْبَةَ بْنِ مَسْعُوْدٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبَّاسٍؓ عَنِ الصَّعْبِ بْنِ جَثَّامَةَ اللَّيْثِيِّ اَنَّهٗ اَهْدٰى لِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِمَارًا وَّحْشِيًّا وَّهُوَ بِالْاَبْوَآءِ اَوْ بِوَدَّانَ فَرَدَّهٗ عَلَيْهِ فَلَمَّا رَاٰى مَا فِيْ وَجْهِهٖ قَالَ اِنَّا لَمْ نَرُدَّهٗ عَلَيْكَ اِلَّا اَنَّا حُرُمٌ.

۴۰۹ : عبداللّٰه بن يُوسف. مالک ابن شهاب. عبيداللّٰه بن عبداللّٰه بن عتبه بن مسعود. عبداللّٰه بن عباسؓ. صعب بن جثامه ليثيؓ نه روايت دے' چه هغه رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلّم ته يو ځنګلي خر' تحفه کښې اوليږلو' دغه وخت حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم ابواء' يا' په ودان کښې وو' نو حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم هغه واپس کړلو' د هغهٔ په مخ' حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم د خفګان اثرات بيا مُندل' نو حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم ورته او فرمائيل' چه زهٔ دا نهٔ واپس کوم' خو د مُحرم کيدو په سبب ئې واپس کومـ[۱].

۱. د باب د سرليک په ذريعه امام بخاري رحمة اللّٰه عليه دا ښودل غواړي. چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم ښکار ځکه واپس کړے وو چه ښکار شوے خناور ژوندے وو. په دے حديث شريف، کښې دا نشته چه د صعب رضي اللّٰه عنه ښکار شوے خناور ژوندے وو خو امام بخاري رحمة اللّٰه عليه د نورو

روایاتو نه معلومه کړے وه. پدے مسئله کښې امام بخاري رحمة الله علیه د احنافو مسلک خوښ کړے دے.

باب ۱۲۷۴: مَا يَقْتُلُ الْمُحْرِمُ مِنَ الدَّوَآبِ.

۱۴۱۰: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفُ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ نَافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ خَمْسٌ مِّنَ الدَّوَآبِ لَيْسَ عَلَى الْمُحْرِمِ فِيْ قَتْلِهِنَّ جُنَاحٌ ح وَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ دِيْنَارٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ.

۱۴۱۱: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا اَبُوْ عَوَانَةَ عَنْ زَيْدِ بْنِ جُبَيْرٍ قَالَ سَمِعْتُ ابْنَ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا يَقُوْلُ حَدَّثَتْنِيْ اِحْدٰى نِسْوَةِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْتُلُ الْمُحْرِمُ.

۱۴۱۲: حَدَّثَنَا اَصْبَغُ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ وَهْبٍ عَنْ يُوْنُسَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ سَالِمٍ قَالَ قَالَ عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَتْ حَفْصَةُ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَمْسٌ مِنَ الدَّوَآبِ لَا حَرَجَ عَلَى مَنْ قَتَلَهُنَّ

باب ۱۲۷۴: محرم کوم قسم ځناور وژلے شي.

۱۴۱۰: عبدالله بن یوسف. مالک. نافع. عبدالرحمٰن بن عمر نه روایت کوي، د هغه بیان دے، رسول الله صلے الله علیه وسلّم او فرمائیل، د پنځو ځناوررو په وژلو په محرم څۀ ګناه نشته. او عبدالله بن دینار هم د عبدالله بن عمرؓ نه روایت کوي چه رسول الله صلے الله علیه وسلّم دغسے او فرمائیل.

۱۴۱۱: مسدد. ابو عوانه. زید بن جبیر. حضرت ابن عمرؓ نه روایت کوي، چه ماته د نبي صلے الله علیه وسلّم یوے بي بي بیان او کړۀ، هغے د نبي صلے الله علیه وسلّم نه روایت اوکړۀ، چه محرم دے او وژني.

۱۴۱۲: اصبغ. عبدالله بن وهب. یونس. ابن شهاب. سالم. عبدالله بن عمرؓ نه روایت کوي، بي بي حفصےؓ بیان اوکړۀ، رسول الله صلے الله علیه وسلّم فرمائیلے دي، پنځه ځناور موذي دي، هغه په حرم کښې قتل کیدے شي (۱) قارغه (۲) تپوس

الْـغُرَابُ وَالْحِدَاَةُ وَالْفَارَةُ وَالْعَقْرَبُ وَالْكَلْبُ الْعَقُوْرُ.

(۳) لـرم (۴) مـږه (۵) او چیچونکے سپے.

۴۱۳: حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصِ بْنِ غِيَاثٍ حَدَّثَنَا اَبِيْ حَدَّثَنَا الْاَعْمَشُ قَالَ حَدَّثَنِيْ اِبْرَاهِيْمُ عَنِ الْاَسْوَدِ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ بَيْنَمَا نَحْنُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ غَارٍ بِمِنًى اِذْ نَزَلَ عَلَيْهِ وَالْمُرْسَلٰتِ وَ اِنَّهُ لَيَتْلُوْهَا وَ اِنِّيْ لَاَتَلَقَّاهَا مِنْ فِيْهِ وَ اِنَّ فَاهُ لَرَطْبٌ بِهَا اِذْ وَثَبَتْ عَلَيْنَا حَيَّةٌ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اقْتُلُوْهَا فَابْتَدَرْنَاهَا فَذَهَبَتْ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وُقِيَتْ شَرَّكُمْ كَمَا وُقِيْتُمْ شَرَّهَا قَالَ اَبُوْ عَبْدِ اللّٰهِ اِنَّمَا اَرَدْنَا بِهٰذَا اَنَّ مِنًى مِنَ الْحَرَمِ وَ اِنَّهُمْ لَمْ يَرَوْا بِقَتْلِ الْحَيَّةِ بَأْسًا.

۴۱۳: عمرو بن حفص بن غیاث. حفص بن غیاث. اعمش. ابراهیم. اسود. عبدالله بن مسعودؓ نه روایت کوي، یو ځلے مونږ نبي صلے الله علیه وسلّم سره منـي کښې یو غار کښې وو، چه په حضور صلے الله علیه وسلّم سورۀ والمرسلات نازل شولو، حضور صلے الله علیه وسلّم دا تلاوت کولو، او ما دا، دَ حضور صلے الله علیه وسلّم نه آوریدلو او زده کولو. اوس لا ختم کړے مو هم نۀ وو، چه په مونږ یو مار راپریوتلو نبي صلے اللّٰه علیه وسلّم او فرمائیل، دا، مړ، کړئے. مونږ هغۀ پسله ورداؤ کړے، خو هغه اوتښتیدلو. نبي صلے اللّٰه علیه وسلّم او فرمائیل، هغه ستاسو دَ شر نه بچ شو، څنګکه چه تاسو دَ هغۀ دَ شر نه بچ شوئے، ابو عبداللّٰه (بخاري) بیان اوکۀ، دَ دے حدیث نه څما مقصد دا دے، چه منـي حرم کښې داخل ځائے دے، او صحابهؓ هلته دَ مار، وژلو کښې څۀ حرج نۀ دے ګنړلے.

۴۱۴: حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُرْوَةَ ابْنِ الزُّبَيْرِ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لِلْوَزَغِ فُوَيْسِقٌ وَلَمْ اَسْمَعْهُ اَمَرَ بِقَتْلِهِ.

۴۱۴: اسماعیل. مالک. ابن شهاب. عروه بن زبیر. دَ نبي صلے اللّٰه علیه وسلّم دَ تبر بي بي عائشےؓ نه روایت کوي، نبي صلے اللّٰه علیه وسلّم او فرمائیل، چرمخکنے (چپکلي) موذي خیز دے. لیکن ما دَ حضور صلے اللّٰه علیه وسلّم نه دَ دے دَ وژلو حکم نۀ دے آوریدلے [1].

۱. دا حکم وړاندے تیر شویدے چه مُحرِم ته بنکار کول روا نۀدي. لیکن د بعضے ضرر رسونکو

خاورو د مړ کولو اِجازت دے د دے حديث شريف نه د هغے تفصيل معلوميږي. دے مسئله کښې د امامانو حضراتو اختلاف دے د امام شافعي رحمة الله عليه په نزد، مُحرِم هغه ټول خاور وژلے شي چه د هغے غوښه خوړل په شريعت کښې منعه دي. د اِمام مالک رحمة الله عليه په نزد د ټولو ضرر رسونکو خاورو وژل روا دي.

امام ابو حنيفه رحمة الله عليه فرمايلي دي. چه د کومو ضرر رسونکو خاورو د وژلو اجازت حديث شريف کښې شته دے مُحرِم هغه وژلے شي مثلاً د لړم وژلو اجازت حديث شريف کښې دے نو چه کوم حشرات الارض د لړم پشان دي. د هغے وژل روا دي. په بعضے حالاتو کښې د زمري و پړانګ پشان خاورو وژل روا دي. په احاديثو مبارکو کښې د څو خاصو خاورو په حرم کښې او په هر ځائے کښې مُحرِم او غير محرم ته د وژلو اجازت دے. په دے سلسله کښې کوم عام حکم نشته. امامانو حضراتو په دے حقله ټولو احاديثو باندے غور نه روستو اِجتهاد کړيدے او د دے اصلي مقصد باندے پوهه شوے دي.

باب ۲۷۵: لَا يُعْضَدُ شَجَرُ الْحَرَمِ وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يُعْضَدُ شَوْكُهُ.

باب ۲۷۵: دَ حرم اُونه دے نشي وهلے. او ابن عباسؓ دَ نبي صلي الله عليه وسلّم نه روايت کړے دے، چه دَ دے آزغي دے نشي پريکولے.

۱۵۴۱: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ اَبِيْ سَعِيْدِ ن الْمَقْبُرِيِّ عَنْ اَبِيْ شُرَيْحٍ ن الْعَدَوِيِّ اَنَّهُ قَالَ لِعَمْرِو بْنِ سَعِيْدٍ وَهُوَ يَبْعَثُ الْبُعُوْثَ اِلٰى مَكَّةَ ائْذَنْ لِيْ اَيُّهَا الْاَمِيْرُ اُحَدِّثْكَ قَوْلًا قَامَ بِهٖ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْغَدَ مِنْ يَوْمِ الْفَتْحِ فَسَمِعَتْهُ اُذُنَايَ وَ وَعَاهُ قَلْبِيْ وَ اَبْصَرَتْهُ عَيْنَايَ حِيْنَ تَكَلَّمَ بِهٖ اِنَّهُ حَمِدَ اللّٰهَ وَ اَثْنٰى عَلَيْهِ ثُمَّ قَالَ اِنَّ مَكَّةَ حَرَّمَهَا اللّٰهُ وَلَمْ يُحَرِّمْهَا النَّاسُ فَلَا يَحِلُّ لِامْرِئٍ يُّؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ اَنْ يَّسْفِكَ بِهَا دَمًا وَّلَا يَعْضُدُ بِهَا شَجَرَةً فَاِنْ اَحَدٌ تَرَخَّصَ

۱۵۴۱: قتيبه. ليث. سعيد بن ابي سعيد مقبري. ابو شريح عدوي. روايت کوي، هغه عمرو بن سعيد ته، کوم وخت چه هغهٔ مکے ته فوځونه ليږل، اووے اے اميره. ماته اجازت راکړه، چه زهٔ تاته هغه قول بيان کړم، چه رسول الله صلي الله عليه وسلّم دَ مکے دَ فتح په دونمه ورځ فرمائيلے وو، چه خما دواړو غوږونو واوريدلو. او قلب هغه محفوظ کړلو، او دواړو سترګو هغه اوليدو. کوم وخت چه حضور صلي الله عليه وسلّم کلام او فرمائيلو. دَ الله حمد و ثنا، ئے بيان کړلو او وے فرمائيل، چه مکه الله حرام جوړه کړے ده. خلقو نه ده حرام کړے، په دے وجه هيڅ سړي دَ پاره چه هغه په الله او دَ قيامت په ورځ ايمان لري، جائز نهٔ دي، چه هلته وينے توے کړي، او نه دے دَ هغه ځائے اُونهٔ وهلے شي، او کهٔ يو سړے دَ نبي صلي الله عليه وسلّم دَ جنګ

لِقِتَالِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُوْلُوْا لَهُ اِنَّ اللّٰهَ اَذِنَ لِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَمْ يَأْذَنْ لَكُمْ وَ اِنَّمَا اَذِنَ لِيْ سَاعَةً مِّنْ نَهَارٍ وَّقَدْ عَادَتْ حُرْمَتُهَا الْيَوْمَ كَحُرْمَتِهَا بِالْاَمْسِ وَلْيُبَلِّغِ الشَّاهِدُ الْغَائِبَ فَقِيْلَ لِاَبِيْ شُرَيْحٍ مَّا قَالَ لَكَ عَمْرٌو وَ قَالَ اَنَا اَعْلَمُ بِذٰلِكَ مِنْكَ يَا اَبَا شُرَيْحٍ اِنَّ الْحَرَمَ لَا يُعِيْذُ عَاصِيًا وَّلَا فَارًّا بِدَمٍ وَّلَا فَارًّا بِخَرْبَةٍ خَرْبَةٌ بَلِيَّةٌ.

په سبب د دے اجازت او ګنړي، نو هغهٔ ته اووائے چه الله تعالٰي، رسول الله صلے الله علیه وسلّم ته اجازت ورکړے وو. خو تاسوته اِجازت نشته. او دَ هغے اجازت دَ، ورځے دَ، یوے لږے حصے دَ پاره وو، بیا دَ هغے حرمت دغسے شولو، څنګه چه پرون ئے حرمت وو. ابن شريح نه تپوس اوشو، چه عمرو تاسوته څهٔ اووے. هغه ورته اووے، عمرو، اووے، چه اے ابو شريح زهٔ په دے ستانه زیات پوهیږم. حرم نافرماني ته، قتل کونکي تښتیدونکي ته او فساد کونکي تښتیدونکي ته ته پناه نهٔ ورکوي. خر به نه مراد بلیه یعني فتنه او فساد دے[۱].

۱. په دے حقله په بخاري شريف کښ ډير احادیث مبارک وړاندے تیر شویدي. د عبدالله بن الزبير رضي الله عنهما خلاف د بني اُميه د حکومت په دوران کښ مکے مکرّمے ته فوخونه څکه لیږلے شوے وو چه عبدالله بن الزبير رضي الله عنهما په مکه مکرمه کښ پخپل کور کښ اوسیدلو. او عمرو بن سعید د خلافتِ اُموي نوکر وو پدے وجه ئے فوخونه لیږل. ابو شريح رضي الله عنه صحابي دے هغه عمرو بن سعید د دے خلافِ شریعت عمل نه منعه کولو کوشش او کړو. او په هغه وخت کښ موجود او غیر موجود خلقو ته ئے د الله تعالٰي حکم او رسوّو چه په مکه مکرمه حمله کول ورته فوخونه لیږل حرام دي. د رسول الله صلي الله علیه وسلم مبارک حدیث ورته بیان کړو عمرو بن سعید چه حدیث شریف واوریدو. نو اوئے ویل "څهٔ پدے مسئله ستا نه زیات پوهه یم" دا د عمرو بن سعید د حدیث مبارک خلاف بدماشي وه. د عمرو بن سعید وینا د هغه ذاتي غلط خیال دے د رسول الله صلي الله علیه وسلم حدیث شریف ندے.

## بَاب ۲۷۶ : لَا يُنَفَّرُ صَيْدُ الْحَرَمِ.

## بـاب ۲۷۶ : دَ حرم ښکـار دے نشـي زغلولے.

۱۶۱۴: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنّٰى حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ حَدَّثَنَا خَالِدٌ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِنَّ اللّٰهَ حَرَّمَ مَكَّةَ فَلَمْ تَحِلَّ لِاَحَدٍ قَبْلِيْ وَلَا تَحِلُّ

۱۶۱۴: محمّد بن مثنٰي. عبدالوهاب. خالد. عکرمه. ابن عباسؓ روایت کوي. نبي صلے الله علیه وسلّم او فرمائیل، الله، مکه حرام جوړه کړه، نه څما نه مخکښ چا دَ پاره حلال وه، او نه به څما نه پس چا دَ پاره حلاله وي. او ما دَ پاره هم صرف دَ، ورځے یوه حصّه کښ حلال کړے شوے وه. دَ هغے خائے واښهٔ دے

لِاَحَدٍ بَعْدِیْ وَ اِنَّمَا اُحِلَّتْ لِیْ سَاعَةٌ مِّنْ نَّهَارٍ لَّا يُخْتَلٰى خَلَاهَا وَلَا يُعْضَدُ شَجَرُهَا وَلَا يُنَفَّرُ صَيْدُهَا وَلَا يُلْتَقَطُ لُقَطَتُهَا اِلَّا لِمُعَرِّفٍ وَ قَالَ الْعَبَّاسُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِلَّا الْاِذْخِرَ لِصَاغَتِنَا وَ قُبُوْرِنَا فَقَالَ اِلَّا الْاِذْخِرَ وَ عَنْ خَالِدٍ عَنْ عِكْرَمَةَ قَالَ هَلْ تَدْرِیْ مَا لَا يُنَفَّرُ صَيْدُهَا هُوَ اَنْ يُّنَحِّيَهُ مِنَ الظِّلِّ يَنْزِلُ مَكَانَهٗ.

نشي اوبنکلے. ذ هغې اُونې دے نشي وهلے' او نه دے د هغه خائے ښکار زغلولے شي. او نه دے ذ هغې خائے غُرځیدلې څیز اوچتولے شي. خو شهرت ور کونکے ئے اوچتولے شي. حضرت عباسؓ عرض او کهٔ' یا رسول اللّٰه' ذ' اذخر' اجازت' خمونږ ذ' زرګرانو او خمونږ په قبرونو ذ پاره' راکړے. حضور صلے اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل' سِوا' ذ 'اذخر' نه خالد. عکرمه نه روایت کوي' هغهٔ اووے' ذ ښکار' ذ زغلولو څهٔ مطلب دے (ذ دے مطلب دا دے' چه) ذ' سوري نه هغه اوزغلوي او خپله په هغې خائے کوز شي.

بَابُ ۲۷۷: لَا يَحِلُّ الْقِتَالُ بِمَكَّةَ وَ قَالَ اَبُوْ شُرَيْحٍ رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِیِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَسْفِكُ بِهَا دَمًا.

باب ۲۷۷: مکه کښې جنګ کول حلال نهٔ دي ابو شریح ذ نبي صلے اللّٰه علیه وسلّم نه روایت کړے دے' چه هلته دے وینې نهٔ تویوي.

۱۷۴۳: حَدَّثَنَا عُثْمَانُ ابْنُ اَبِیْ شَيْبَةَ حَدَّثَنَا جَرِيْرٌ عَنْ مَنْصُوْرٍ عَنْ مُّجَاهِدٍ عَنْ طَاؤسٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ قَالَ النَّبِیُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ افْتَتَحَ مَكَّةَ لَا هِجْرَةَ وَلٰكِنْ جِهَادٌ وَ نِيَّةٌ وَ اِذَا اسْتُنْفِرْتُمْ فَانْفِرُوْا فَاِنَّ هٰذَا بَلَدٌ حَرَّمَ اللّٰهُ يَوْمَ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ وَهُوَ حَرَامٌ بِحُرْمَةِ اللّٰهِ اِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ وَ اِنَّهٗ لَمْ يَحِلَّ الْقِتَالُ فِيْهِ لِاَحَدٍ قَبْلِیْ وَلَمْ يَحِلَّ لِیْ اِلَّا سَاعَةً مِّنْ نَّهَارٍ فَهُوَ حَرَامٌ بِحُرْمَةِ اللّٰهِ اِلٰى

۱۷۴۳: عثمان بن ابي شیبه. جریر. منصور. مجاهد. طاؤس. ابن عباسؓ نه روایت کوي' چه نبي صلے اللّٰه علیه وسلّم په کومه ورځ مکه فتح کړه' نو وے فرمائیل' چه هجرت باقي پاتے نهٔ شو. لیکن جهادٔ او نیت دے. کله چه تاسو جهاد ذ پاره او بللے شئے' نو جهاد ذ پاره اوځے. دا' ښار دے' چه اللّٰه تعالٰي حرام کړے دے' په کومه ورځ چه اللّٰه' آسمان او زمکه پیدا کړل' او ذ' اللّٰه تعالٰي قائم کړے حرمت به ذ قیامته پورے باقي وي. ذ دے ازغي دے نهٔ شي پریکولے' او نه دے ذدے ښکار تښتولے شي' او نه دے ذ دے خائے غُرځیدلې څیز اوچتولے شي' خو هغه سړے ئے اوچتولے شي. چه ذ دے شهرت اوکړي' او نه دے

يَوْمِ الْقِيٰمَةِ لَا يُعْضَدُ شَوْكُهُ وَلَا يُنَفَّرُ صَيْدُهُ وَلَا يُلْتَقَطُ لُقَطَتُهُ إِلَّا مَنْ عَرَّفَهَا وَلَا يُخْتَلٰى خَلَاهَا قَالَ الْعَبَّاسُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ إِلَّا الْإِذْخِرَ فَإِنَّهُ لِقَيْنِهِمْ وَلِبُيُوْتِهِمْ قَالَ قَالَ إِلَّا الْإِذْخِرَ.

ذ دے خائے وابنۀ اوبنکلے شي. او عباسؓ عرض اوکۀ یا رسول اللّٰه ذ دے ذ' زرگرانو او کورونو ذ پاره ذ' اذخر اجازت اوکړئے' نو حضور صلے اللّٰه علیه وسلّم او فرمائیل' ذ' اذخر اجازت دے.

۱. چه کله مکه مکرمه د اِسلام کور شو نو ښکاره خبره وه چه بیا د مکے مکرمے نه د هجرت سوال نه پیدا کیږي د دے وجے نه رسول اللّه صلي اللّه علیه وسلم اعلان او فرمایلو. "چه د هجرت سلسله ختم شوه. لیکن د جهاد او د ښه نیت ثواب قیامته پورے باقي دے.

**باب۲۷۸: اَلْحِجَامَةِ لِلْمُحْرِمِ** وَ كَوَى ابْنُ عُمَرَ ابْنَهُ وَهُوَ مُحْرِمٌ وَ يَتَدَاوٰى مَا لَمْ يَكُنْ فِيْهِ طِيْبٌ.

**باب۲۷۸:** محرم ته ذ ښکر لګولو ( ﭽﮭﻨﮯ لګوانے) بیان. او ابن عمرؓ خپل ځوئ ته داغ اولږولو' هغے حال کښ چه هغه محرم وو' او داسے دارو لږولے شي' چه خوشبوئي پکښے نه وي.

۱. عبداللّه بن عمر رضي اللّه عنهما مکے مکرمے ته روان وو د هغه ځوئے واقد بن عبداللّه رضي اللّه عنهما ورسره ملګرے وؤ هغه په لاره کښ ناجوړه وو په عربستان کښ د هغے مرض په هغه زمانه کښ علاج داغ لګول وو د دے وجے ته عبداللّه بن عمر رضي اللّه عنهما د خپل ځوي دا علاج او کړو دښکر لګولو په حقله دا مسئله ده که مُحرِم سرِي ته د ښکر لګولو په وجه د هغه ذ ویښتو پریکول ضروري وؤ نو خیرات ورکول دي. او که ویښته نه پریکیږي. نو بیا په ښکر لګولو کښ هیڅ ګناه نشته.

**۱۸ ۴ ۱:** حَدَّثَنَا عَلِيُّ ابْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ قَالَ عَمْرٌو أَوَّلُ شَيْءٍ سَمِعْتُ عَطَاءً يَقُوْلُ سَمِعْتُ ابْنَ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا يَقُوْلُ احْتَجَمَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ مُحْرِمٌ ثُمَّ سَمِعْتُهُ يَقُوْلُ حَدَّثَنِيْ طَاوُسٌ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍؓ فَقُلْتُ لَعَلَّهُ سَمِعَهُ مِنْهُمَا.

**۱۸ ۴ ۱:** علي بن عبداللّٰه. سفیان. عمرو بیان اوکۀ' ذ ټولونه وړمبے حدیث چه ما ذ عطاء نه واوریدلو هغه دا چه هغۀ بیان اوکۀ' ما ذ' ابن عباسؓ نه واوریدل' رسول اللّٰه صلے اللّٰه علیه وسلّم ښکر اولږولو' داسے حال کښ' چه احرام ئے تړلے وو. بیا ما ذ عمرو' نه واوریدل' چه ما ته عطاء په واسطه ذ' ابن عباسؓ بیان اوکۀ. ما اووے شاید دا حدیث ئے طاؤس او عطاء دواړو نه آوریدلے وي.

**۱۹ ۴ ۱:** حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ مَخْلَدٍ

**۱۹ ۴ ۱:** خالد بن مخلد. سلیمان بن بلال.

حَدَّثَنَا سُلَيْمٰنُ بْنُ بِلَالٍ عَنْ عَلْقَمَةَ ابْنِ اَبِيْ عَلْقَمَةَ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ الْاَعْرَجِ عَنِ ابْنِ بُحَيْنَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ احْتَجَمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ مُحْرِمٌ بِلَحْيِ جَمَلٍ فِيْ وَسْطِ رَأْسِهٖ.

علقمه بن ابي علقمه. عبدالرحمن اعرج. ابن بحينهؓ نه روايت کوي، چه نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم لحي جمل کښ ذ خپل سر مينځ کښ ښکر اولږولو، داسے حال کښ چه حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم احرام تړلے وو.

باب ۲۷۹ : تَزْوِيْجِ الْمُحْرِمِ.

باب ۲۷۹ : ذ محرم ذ نکاح کولو بيان.

۴۲۰ : حَدَّثَنَا اَبُوْ الْمُغِيْرَةِ عَبْدُ الْقُدُّوْسِ ابْنُ الْحَجَّاجِ حَدَّثَنَا الْاَوْزَاعِيُّ حَدَّثَنِيْ عَطَاءُ بْنُ اَبِيْ رَبَاحٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَزَوَّجَ مَيْمُوْنَةَ وَهُوَ مُحْرِمٌ.

۴۲۰ : ابوالمغيره. عبدالقدوس بن حجاج. اوزاعي. عطاء ابن ابي رباح. حضرت ابن عباسؓ نه روايت کوي، چه نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم بي بي ميمونهؓ سره نکاح اوکړله، داسے حال کښ چه حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم احرام تړلے وو[1].

۱. پدے مسئله کښ د امامانو حضراتو اختلاف دے چه د إحرام په حالت کښ نکاح کول روا دي يا نه، د امام ابو حنيفه رحمة الله عليه دا مسلک دے. چه د إحرام په حالت کښ نکاح کول روا دي پدے کښ څه ګناه نشته. د إحرام په حالت کښ ښځے سره جماع کول منعه دي. د بخاري شريف دا حديث مبارک واضحه دے او دا د امام ابو حنيفه رحمة الله عليه دليل دے چه رسول الله صلي الله عليه وسلم د احرام په حالت کښ ميمونے بي بي رضي الله عنها سره نکاح کړے وه. د نورو امامانو حضراتو په نزد د احرام په حالت کښ نکاح نه کيږي. بل روايت د هغوي دليل دے.

باب ۲۸۰ : مَا يُنْهٰى مِنَ الطِّيْبِ لِلْمُحْرِمِ وَالْمُحْرِمَةِ وَ قَالَتْ عَائِشَةُ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا لَا تَلْبَسُ الْمُحْرِمَةُ ثَوْبًا بِوَرْسٍ اَوْ زَعْفَرَانٍ.

باب ۲۸۰ : محرم سړي او ښځے ته ذ خوشبو لږولو ذ ممانعت بيان[1]. او ذ بي بي عائشےؓ بيان دے، چه محرمه ښځه دے ورس يا زعفران کښ رنګ کړے کپړه نۀ اغندي.

۱. د احرام تړلو نه اول، د احنافو په نزد د خوشبوئ استعمال روا دے او کومه خوشبوئ چه د احرام نه مخکښ لګولے شوے وي د هغے داغ وغيره د احرام نه پس پاتے شوي وي نو بيا پکښ هم ګناه نشته رسول اللّٰه صلي الله عليه وسلم د احرام تړلو نه مخکښ خوشبوئ استعمال کړے ده. د احرام نه روستو د علاج په طور د دارو د پاره د خوشبوئ استعمال هم روا دے.

۱۴۲۱: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يَزِيْدَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ حَدَّثَنَا نَافِعٌ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ قَامَ رَجُلٌ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ مَاذَا تَأْمُرُنَا اَنْ نَّلْبَسَ مِنَ الثِّيَابِ فِي الْاِحْرَامِ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَلْبَسِ الْقَمِيْصَ وَلَا السَّرَاوِيْلَاتِ وَلَا الْعَمَائِمَ وَلَا الْبَرَانِسَ اِلَّا اَنْ يَّكُوْنَ اَحَدٌ لَيْسَتْ لَهُ نَعْلَانِ فَلْيَلْبَسِ الْخُفَّيْنِ وَلْيَقْطَعْ اَسْفَلَ مِنَ الْكَعْبَيْنِ وَلَا تَلْبَسُوْا شَيْئًا مَسَّهُ زَعْفَرَانٌ وَلَا الْوَرْسُ وَلَا تَنْتَقِبِ الْمَرْاَةُ الْمُحْرِمَةُ وَلَا تَلْبَسِ الْقُفَّازَيْنِ تَابَعَهُ مُوْسَى ابْنُ عُقْبَةَ وَ اِسْمٰعِيْلُ بْنُ اِبْرَاهِيْمَ ابْنِ عُقْبَةَ وَ جُوَيْرِيَةُ وَابْنُ اِسْحَاقَ فِي النِّقَابِ وَالْقُفَّازَيْنِ وَ قَالَ عُبَيْدُ اللّٰهِ وَلَا وَرْسٌ وَ كَانَ يَقُوْلُ لَا تَتَنَقَّبِ الْمُحْرِمَةُ وَلَا تَلْبَسِ الْقُفَّازَيْنِ وَ قَالَ مَالِكٌ عَنْ نَّافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ لَا تَتَنَقَّبِ الْمُحْرِمَةُ وَ تَابَعَهُ لَيْثُ ابْنُ اَبِيْ سُلَيْمٍ.

۱۴۲۱: عبداللّٰه بن یزید. لیث. نافع عبداللّٰه بن عمرؓ نه روایت کوي، چه یو سړے اودرید او عرض ئے او کړه، یا رسول اللّٰه، ‌ذ احرام حالت کښ ذ کوم قسم کپړو اغستو حکم راکوئے. نبي صلے اللّٰه علیه وسلّم ورته او فرمائیل. قمیص. پرتوګ. پټکي. او ټوپئ دے نه استعمالوي، خو، دا چه څوک سړے داسے وي، چه هغه سره پنړے نه وي، نو هغه موزے اچولے شي. او ذ ګیټو ذ لاندے نه دے پریکړي، او، نه دے داسے کپړه اغندي چه هغے کښ زعفران یا ورس لړیدلے وي. او احرام والـه ښځه دے په مخ نقاب نه اچوي، او نه دے دستانے اچوي. موسي بن عقبه. اسمٰعیل بن ابراهیم بن عقبه. جویریه. او ابن اسحاق ذ نقاب او دستانو متعلق ذ دے متابع حدیث روایت کړے دے. او ذ عبیداللّٰه روایت کښ ولا، ورس لفظ دے، او هغه به وئیلے، چه احرام والـه ښځه دے نقاب نه اچوي. او لیث بن ابي سلیم ذ دے متابع حدیث روایت کړے دے.

۱۴۲۲: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا جَرِيْرٌ عَنْ مَنْصُوْرٍ عَنِ الْحَكَمِ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ وَ قَصَتْ بِرَجُلٍ مُحْرِمٍ نَاقَتُهُ فَقَتَلَتْهُ فَاُتِيَ بِهٖ رَسُوْلَ

۱۴۲۲: قتیبه. جریر. منصور. حکم. سعید بن جبیر. ابن عباسؓ نه روایت کوي، چه ذ، یو محرم سړي ګردن ذ هغهٔ اوښے مات کړ، او هغه ئے اووژلو. او رسول اللّٰه صلے اللّٰه علیه وسلّم ته راوړلے شو، نو حضور صلے اللّٰه علیه وسلّم او فرمائیل، دهٔ له غُسل ورکړئے. او دے

اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ اغْسِلُوْهُ وَ كَفِّنُوْهُ وَلَا تُغَطُّوْا رَأْسَهُ وَلَا تُقَرِّبُوْهُ طِيْبًا فَاِنَّهُ يُبْعَثُ يُهِلُّ.

کفن کړے. او ذ' ده سر' مه پټوے. او دے خوشبوئي ته مـهٔ نـزدے کـوے' خکـه چه دے به لبّیک ونیلو سره پاسولے شي.

بـــاب ۱۲۸۱: اَلْاِغْتِسَـــالِ لِلْمُحْرِمِ وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا يَدْخُلِ الْمُحْرِمُ الْحَمَّامَ وَلَمْ يَرَ ابْنُ عُمَرَ وَ عَآئِشَةُ بِـالْحَكِّ بَأْسًا.

بـاب ۱۲۸۱: ذ مـحـرم ذ غسل کـولـو بیان. او ابـن عبــاسؓ او فـرمـائيل. مـحـرم حـمـام کـښې داخـلیـدے شـي. او ابـن عـمرؓ او بي بي عـائشےؓ د مـحـرم ذ پـاره بـدن ګـرولـو کـښې څهٔ حـرج نـهٔ دے ګنړلے.

۴۲۳: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ زَيْدِ بْنِ اَسْلَمَ عَنْ اِبْرَاهِيْمَ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ حُنَيْنٍ عَنْ اَبِيْهِ اَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عَبَّاسٍؓ وَالْمِسْوَرَ بْنَ مَخْرَمَةَ اخْتَلَفَا بِالْاَبْوَاءِ فَقَالَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عَبَّاسٍؓ يَغْسِلُ الْمُحْرِمُ رَأْسَهُ وَ قَالَ الْمِسْوَرُ لَا يَغْسِلُ الْمُحْرِمُ رَأْسَهُ فَاَرْسَلَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ الْعَبَّاسِ اِلٰى اَبِيْ اَيُّوْبَ الْاَنْصَارِيِّ فَوَجَدْتُهُ يَغْتَسِلُ بَيْنَ الْقَرْنَيْنِ وَهُوَ يُسْتَرُ بِثَوْبٍ فَسَلَّمْتُ عَلَيْهِ فَقَالَ مَنْ هٰذَا فَقُلْتُ اَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ حُنَيْنٍ اَرْسَلَنِيْ اِلَيْكَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ الْعَبَّاسِ اَسْأَلُكَ كَيْفَ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَغْسِلُ رَأْسَهُ وَهُوَ مُحْرِمٌ فَوَضَعَ اَبُوْ اَيُّوْبَ يَدَهُ عَلَى الثَّوْبِ فَطَأْطَاَهُ حَتّٰى بَدَالِيْ رَأْسُهُ ثُمَّ قَالَ لِاِنْسَانٍ يَّصُبُّ

۴۲۳: عبـداللّٰـه بـن يُـوسف. مـالـک. زید بن اسلم. ابـراهیـم بـن عبـداللّٰـه بن حنین ذ خپل پلار نه روایـت کـوي' چـه ذ عـبداللّٰـه بن عباسؓ او مسور بن مـخـرمـه مینـځ کـښې مقام ابواء کـښې اختلاف پیدا شـو. عـبـداللّٰـه بـن عبـاسؓ اووے' چـه محرم خپل سر' ویـنـزلے شي. او مسور اووے' چـه نـهٔ دے ویـنـزي. زهٔ عبـداللّٰـه بـن عبـاسؓ ابـو ایوب انصاريؓ له اولیږلم' ما هغـه اولیـد' چـه ذ کـونـي ذ دوو لـرګو خوا کـښې ئے غسـل کـولـو. او یـوے کـپـړے سـره ئے پرده کـړے وه. ما هغـهٔ تـه سـلام او کـهٔ' هغـهٔ تپوس او کـهٔ' څوک دے. ما جـواب ورکـهٔ' چـه عبـداللّٰـه بن حنین یم. عبداللّٰه بـن عـبـاسؓ زهٔ تـاسـولـه رالیـږلے یم' چه معلومه کړم' چه رسـول اللّٰه صلے اللّٰه علیه وسلّم به ذ' احرام په حـالـت کـښې څـنـګـه سـر' ویـنـزلو. ابو ایوب خپل لاس پـه کـپـړه کـیـښـود' او هغـه ئے ښکته کـهٔ' تردے چه ذ هغـهٔ سـر ښـکـاره شـو. بیـا یو سړي چه اوبهٔ ئے اچولے' ورتـه ئے اووے' چـه اوبـهٔ اچـوه' هغـه ذ هغـه پـه سـر اوبـهٔ واچـولے. بیـائے خپل سـر خپلو دواړو لاسونو

عَلَيْهِ اُصْبُبْ فَصَبَّ عَلٰى رَأْسِهٖ ثُمَّ حَرَّكَ رَأْسَهٗ بِيَدَيْهِ فَأَقْبَلَ بِهِمَا فَأَدْبَرَ وَ قَالَ هٰكَذَا رَأَيْتُهٗ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَفْعَلُ.

سره اوخوزولو. او دواړه لاسونه ئے وړاندے بوتلل. بيائے په ورستو راوستل. اووے وئيل، چه ما نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم په دغسے كولو ليدلے دے.

**باب ۲۸۲ : لُبْسِ الْخُفَّيْنِ لِلْمُحْرِمِ اِذَا لَمْ يَجِدِ النَّعْلَيْنِ.**

**باب ۲۸۲ : دَ محرم دَ موزو اچولو بيان، هر كله چه هغهٔ سره پنړے نهٔ وي.**

۴۲۴: حَدَّثَنَا اَبُو الْوَلِيْدِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عَمْرُو بْنُ دِيْنَارٍ سَمِعْتُ جَابِرَ بْنَ زَيْدٍ سَمِعْتُ ابْنَ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَخْطُبُ بِعَرَفَاتٍ مَنْ لَمْ يَجِدِ النَّعْلَيْنِ فَلْيَلْبَسِ الْخُفَّيْنِ وَمَنْ لَمْ يَجِدْ اِزَارًا فَلْيَلْبَسْ سَرَاوِيْلَ لِلْمُحْرِمِ.

۴۲۴: ابوالوليد. شعبه. عمرو بن دينار. جابر بن زيد. ابن عباسؓ نه روايت كوي. دَ هغهٔ بيان دے، ما دَ نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم نه عرفات كښې خطبه كښې واوريدل، كوم سړي سره چه پيزار نهٔ وي، هغه دے موزے واچوي، او كوم محرم سره چه تهٔ بند (لنګ) نهٔ وي، هغه دے پرتوګ واغندي.

۴۲۵: حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ يُوْنُسَ حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ سَعْدٍ حَدَّثَنَا ابْنُ شِهَابٍ عَنْ سَالِمٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ سُئِلَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا يَلْبَسُ الْمُحْرِمُ مِنَ الثِّيَابِ فَقَالَ لَا يَلْبَسِ الْقَمِيْصَ وَلَا الْعَمَائِمَ وَلَا السَّرَاوِيْلَاتِ وَلَا الْبُرْنُسَ وَلَا ثَوْبًا مَسَّهٗ زَعْفَرَانٌ وَلَا وَرْسٌ وَ اِنْ لَمْ يَجِدْ نَعْلَيْنِ فَلْيَلْبَسِ الْخُفَّيْنِ وَلْيَقْطَعْهُمَا حَتّٰى يَكُوْنَا اَسْفَلَ مِنَ الْكَعْبَيْنِ.

۴۲۵: احمد بن يونس. ابراهيم بن سعد. ابن شهاب. سالم عبداللّٰه نه روايت كوي، دَ هغهٔ بيان دے، دَ رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلّم نه تپوس اوشو، چه محرم به كوم قسم كپړے اغندي. حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم ورته او فرمائيل، نه دے قميص اغندي، او نه پټكے او، نه پرتوګ او، نه دے داسے كپړه اغندي، چه په هغے زعفران يا ورس لړيدلے وي، او كهٔ هغهٔ سره پنړے (پيزار) نهٔ وي. نو موزے دے واچوي، او هغه دے پريكړي دَ ګټو نه دے لاندے كړي.

**باب ۲۸۳ : اِذَا لَمْ يَجِدِ الْاِزَارَ فَلْيَلْبَسِ السَّرَاوِيْلَ.**

**باب ۲۸۳ :** چا سره چه ته بند نه وي هغه دے پرتوک واغندي.

۴۲۶ : حَدَّثَنَا اٰدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا عَمْرُوْ بْنُ دِيْنَارٍ عَنْ جَابِرِ بْنِ زَيْدٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ خَطَبَنَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِعَرَفَاتٍ فَقَالَ مَنْ لَمْ يَجِدِ الْاِزَارَ فَلْيَلْبَسِ السَّرَاوِيْلَ وَمَنْ لَمْ يَجِدِ النَّعْلَيْنِ فَلْيَلْبَسِ الْخُفَّيْنِ.

۴۲۶ : آدم. شعبه. عمرو بن دینار. جابر بن زید. ابن عباسؓ نه روایت کوي د هغه بیان دے، مونږ ته عرفات کښې نبي صلے اللّٰه علیه وسلّم خطبه راکړه. او وے فرمائیل، چا سره چه ته بند، نه وي، هغه دے پرتوک واغندي، او چا سره چه پنړے نه وي هغه دے موزے واچوي.

**باب ۲۸۴ : لُبْسِ السِّلَاحِ لِلْمُحْرِمِ وَ قَالَ عِكْرَمَةُ اِذَا خَشِيَ الْعَدُوَّ لَبِسَ السِّلَاحَ وَافْتَدٰى وَلَمْ يُتَابَعْ عَلَيْهِ فِي الْفِدْيَةِ.**

**باب ۲۸۴ :** دَ محرم دَ اسلحے اچولو بیان. او عکرمه اووے، هر کله چه دَ دشمن خوف وي، نو اسلحه دے واچوي، او فدیه دے ورکړي. لیکن دَ فدیے ورکولو متعلق دَ هغې متابع حدیث هیچا روایت کړے نهٔ دے.

۴۲۷ : حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ عَنْ اِسْرَاءِيْلَ عَنْ اَبِيْ اِسْحٰقَ عَنِ الْبَرَاءِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ اعْتَمَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ ذِي الْقَعْدَةِ فَاَبٰى اَهْلُ مَكَّةَ اَنْ يَّدَعُوْهُ يَدْخُلُ مَكَّةَ حَتّٰى قَاضَاهُمْ لَا يُدْخِلُ مَكَّةَ سِلَاحًا اِلَّا فِي الْقِرَابِ.

۴۲۷ : عبیدالله. اسرائیل. ابو اسحٰق. براء نه روایت کوي، چه نبي صلے اللّٰه علیه وسلّم دَ ذي قعده میاشت کښې عمره اوکړه، نو مکه والو مکے ته ننوتلو ته پرے نهٔ ښودلو، تردے چه حضور صلے اللّٰه علیه وسلّم خلقو سره په دے شرط صلح اوکړه، چه هغوي به مکے ته داسے حال کښې داخلیږي چه تورے به ئے تیکو کښې وي.

**باب ۲۸۵ : دُخُوْلِ الْحَرَمِ وَ مَكَّةَ بِغَيْرِ اِحْرَامٍ وَّ دَخَلَ ابْنُ عُمَرَ حَلَالًا وَّ اِنَّمَا اَمَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْاِهْلَالِ لِمَنْ اَرَادَ الْحَجَّ وَالْعُمْرَةَ وَلَمْ يَذْكُرْ لِلْحَطَّابِيْنَ**

**باب ۲۸۵ :** حرام او مکه کښې بغیر احرام تړلو، دَ داخلیدلو بیان. او ابن عمرؓ بغیر احرام تړلو داخل شولو. او نبي صلے اللّٰه علیه وسلّم دَ احرام تړلو حکم هغې سړي له ورکړلو، چه دَ حج او عمرے اراده او کړي، او دَ لرګو خرڅونکو او دَ دوئ نه علاوه دَ نورو خلقو

وَغَيْرِهِمْ. ذکر ئے اونۂ کړلو۔

۱. عبدالله بن عباس رضي الله عنهما روایت کړے دے چه رسول الله صلي الله علیه وسلم فرمایلے دي. "کوم خلق چه د حج یا د عمرے په اراده روان شي د کوره اوخي' نو هغه خلق به احرام تړلو نه روستو مکه مکرمه کښې داخلیږي. د امام بخاري رحمة الله علیه په نظر کښې هم دغه حدیث شریف دے چه په هغے کښې صرف د حج او عمرے ذکر دے. ډیر خلق د خپل ذاتي کارونو د پاره حرم شریف ته خي. د هغوي په دے حدیث کښې ذکر نشته. د دینه معلومیږي چه احرام تړل یواځے د هغے خلقو د پاره شرط دے کوم چه د حج یا د عمرے اراده کوي. او حدیث شریف کښې هغوي ته د احرام تړلو حکم دے. د امام شافعي رحمة الله علیه دا مسلک دے.

لیکن د امام ابو حنیفه رحمة الله علیه په نزد د حرم شریف د أدب په وجه' احرام د هر بنده د پاره ضروري دے کوم چه د حرم شریف په حدودو کښې داخلیږي پدے کښې د حج یا د عمرے څه خصوصیت نشته' د عبدالله بن عباس رضي الله عنهما په روایت کړي حدیث شریف د حج او د عمرے ذکر څکه دے چه کوم وخت هغه دا حدیث شریف بیانوو. نو هغه د حج اراده کړے وه په دے وجه ئے د هغے خاص ذکر اوکړو. په حدیث شریف کښې دي چه حرم نه څما نه مخکښې د چا د پاره حلال شوے وو. نه څما نه روستو د چا د پاره حلال دے. څما د پاره د (لږ) ساعت د پاره حلال شوے وؤ احناف وائي. چه د دینه یواځے د جنګ کولو روا کیدل مراد ندے. بلکے د احرام نه بغیر د داخلیدو اجازت مراد دے د دینه روستو بغیر د احرام نه د رسول الله صلي الله علیه وسلم مکے مکرمے د داخلیدو روایت نشته.

۴۲۸: حَدَّثَنَا مُسْلِمٌ حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ حَدَّثَنَا ابْنُ طَاوُسٍ عَنْ أَبِيهِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَّتَ لِأَهْلِ الْمَدِينَةِ ذَا الْحُلَيْفَةِ وَلِأَهْلِ نَجْدٍ قَرْنَ الْمَنَازِلِ وَلِأَهْلِ الْيَمَنِ يَلَمْلَمَ هُنَّ لَهُنَّ وَلِكُلِّ آتٍ أَتَى عَلَيْهِنَّ مِنْ غَيْرِهِمْ مَنْ أَرَادَ الْحَجَّ وَالْعُمْرَةَ فَمَنْ كَانَ دُونَ ذَلِكَ فَمِنْ حَيْثُ أَنْشَأَ حَتَّى أَهْلُ مَكَّةَ مِنْ مَكَّةَ.

۴۲۸: مسلم. وهیب. ابن طاؤس ذَ خپل پلار نه' هغه ذَ' ابن عباسؓ نه روایت کوي' چه نبي صلے الله علیه وسلّم مدینه والو ذَ پاره ذوالحلیفه او' اهل نجد ذَ پاره قرن منازل او' اهل یمن ذَ پاره یلملم' میقات مقرر کړلو' دا' ذَ هغے ځائے ذَ' اوسیدونکو ذَ پاره هم او ذَ هغوي ذَ پاره هم میقات دي' چه ذَ دے نه علاوه ذَ نورو ځایونو نه ذَ حج او عُمرے په اراده راځي. او کوم سړے چه ذَ دے ځایونو دننه اوسیدونکے وي' هغه دے ذَ هغے ځائے نه احرام تړي' ذَ کوم ځائے نه چه راځي' تر دے چه اهل مکه دے' ذَ مکے نه احرام تړلو سره راوځي.

۴۲۹: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ أَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ

۴۲۹: عبدالله بن یُوسف. مالک. ابن شهاب. انس بن مالکؓ روایت دے' چه رسول الله صلے الله علیه وسلّم ذَ مکے ذَ فتح په کال' داسے حال کښې' داخل

أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَخَلَ عَامَ الْفَتْحِ وَ عَلٰى رَأْسِهِ الْمِغْفَرُ فَلَمَّا نَزَعَهُ جَآءَ رَجُلٌ فَقَالَ إِنَّ ابْنَ خَطَلٍ مُّتَعَلِّقٌ بِأَسْتَارِ الْكَعْبَةِ فَقَالَ اقْتُلُوْهُ.

شو، چه حضور صلے اللّٰه علیه وسلّم خود، اچولے وو، کوم وخت چه حضور صلے اللّٰه علیه وسلّم هغه کوز کړلو، نو یو سړے راغے، او هغهٔ عرض اوکهٔ، چه ابن خطل دَ کعبے پردے سره انښتے دے. حضور صلے اللّٰه علیه وسلّم او فرمائیل، قتل ئے کړئے[۱].

ف: خود: دَ اوسپنے ټوپۍ چه فوځیان ئے دَ جنګ په وخت په سروي.

۱. دا هغه وخت دے چه د دے په حقله رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلم فرمایلي وو. "چه حرم ځما د پاره د لږ وخت د پاره حلال شوے وؤ". پدے وجه ئے د اوسپنے ټوپۍ (خود) پسر وه. او مُحرم ټوپۍ پړولے نشي "اِبن خطل" د اسلام ازلي دښمن وو او هغے دښمنانو کښ شمیر وو. چه هغه وخت هم معاف کیدے نشو. چه کوم وخت د اسلام خلاف ټولو جنګیالو د پاره د معافئ اعلان رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلم او کړلو.

## باب ۲۸۶: إِذَا أَحْرَمَ جَاهِلًا وَّ عَلَيْهِ قَمِيْصٌ وَّ قَالَ عَطَاءٌ إِذَا تَطَيَّبَ أَوْ لَبِسَ جَاهِلًا أَوْ نَاسِيًا فَلَا كَفَّارَةَ عَلَيْهِ.

## باب ۲۸۶: کهٔ ناواقفیت کښ څوک قمیص واغُندي او، احرام اوتړي. او عطاء اووے، کهٔ ناواقفیت کښ یا په هیره خوشبوي اولږوي. یا کپړه واغُندي نو په هغهٔ کفاره نشته.

۰ ۴۳: حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيْدِ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ حَدَّثَنَا عَطَآءٌ قَالَ حَدَّثَنِيْ صَفْوَانُ بْنُ يَعْلٰى عَنْ أَبِيْهِ قَالَ كُنْتُ مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَتَاهُ رَجُلٌ عَلَيْهِ جُبَّةٌ وَبِهِ أَثَرُ صُفْرَةٍ أَوْ نَحْوُهُ كَانَ عُمَرُ يَقُوْلُ لِيْ تُحِبُّ إِذَا نَزَلَ عَلَيْهِ الْوَحْيُ أَنْ تَرَاهُ وَ نَزَلَ عَلَيْهِ ثُمَّ سُرِّيَ عَنْهُ فَقَالَ اصْنَعْ فِيْ عُمْرَتِكَ مَا تَصْنَعُ فِيْ حَجِّكَ وَعَضَّ رَجُلٌ

۰ ۴۳: ابوالولید. همام. عطاء. صفوان بن یعلٰي دَ خپل پلار نه روایت کوي، زهٔ رسول اللّٰه صلے اللّٰه علیه وسلّم سره ووم، نو یو سړے رسول اللّٰه صلے اللّٰه علیه وسلّم له راغے، چه په هغهٔ دَ زیړ خوشبو یا، دَ دے قسم دَ څهٔ څیز نښه وه. او عمرؓ ما ته وئیلے، آیا تهٔ دا خبره خوښوے، چه کوم وخت په رسول اللّٰه صلے اللّٰه علیه وسلّم وحي راځي، نو تهٔ دے هغه وخت اووینے. نو په حضور صلے اللّٰه علیه وسلّم وحي نازله شوه. بیا هغه کیفیت زائل شو، نو حضور صلے اللّٰه علیه وسلّم او فرمائیل، خپلے عمرے کښ هغه کوئے، چه تاسوئے حج کښ کوئے. او یو سړي دَ بل سړي لاس غاښ سره

يَدَ رَجُلٍ يَعُضُّهُ فَانْتَزَعَ ثَنِيَّتَهُ فَأَبْطَلَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

او چيچلو. هغه لاس راښكلو، نو دَ بل سړي غاښ اوختلو. نبي صلى الله عليه وسلّم هغه باطل او ګرځولو. (يعني څهٔ معاوضه ئې ورنهٔ كړله)

باب۲۸۷: اَلْمُحْرِمِ يَمُوْتُ بِعَرَفَةَ وَلَمْ يَأْمُرِ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنْ يُؤَدَّىٰ عَنْهُ بَقِيَّةُ الْحَجِّ.

باب۲۸۷: دَ محرم بيان، چه عرفات كښې مړ شي. او نبي صلى اللّٰه عليه وسلّم دا حكم نهٔ دے وركړے، چه دَ هغهٔ دَ طرف نه دے دَ حج باقي اركان ادا كړے شي.

۱۴۳۱: حَدَّثَنَا سُلَيْمٰنُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ عَمْرِو بْنِ دِيْنَارٍ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قَالَ بَيْنَا رَجُلٌ وَاقِفٌ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِعَرَفَةَ اِذْ وَقَعَ عَنْ رَاحِلَتِهِ فَوَقَصَتْهُ اَوْ قَالَ فَاَقْعَصَتْهُ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اغْسِلُوْهُ بِمَآءٍ وَّ سِدْرٍ وَ كَفِّنُوْهُ فِيْ ثَوْبَيْنِ اَوْ قَالَ ثَوْبَيْهِ وَلَا تُحَنِّطُوْهُ وَلَا تُخَمِّرُوا رَاْسَهُ فَاِنَّ اللَّهَ يَبْعَثُهُ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ يُلَبِّيْ.

۱۴۳۱: سليمان بن حرب. حماد بن زيد. عمرو بن دينار. سعيد بن جبير. ابن عباسؓ نه روايت كوي، دَ هغهٔ بيان دے، يو سړے عرفه كښې نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم سره ولاړ وو، هغه دَ خپلے سورلئ نه اوغورځيدلو، نو دَ هغهٔ سورلئ دَ هغهٔ ګردن مات كړلو. نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، دهٔ له اُبو او دَ بيري (پاڼړو) سره غُسل وركړئ، او دوو كپړو كښې يا، دا، ئې او فرمائيل چه دے دوو كپړو كښې كفن كړئ. ورته خوشبو مهٔ لږوئے. او، مهٔ ورله سر پټوئے. الله تعالى به دے دَ قيامت په ورځ لبيك ويونكے پاسوي.

۱۴۳۲: حَدَّثَنَا سُلَيْمٰنُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا حَمَّادٌ عَنْ اَيُّوْبَ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قَالَ بَيْنَا رَجُلٌ وَّاقِفٌ مَّعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِعَرَفَةَ اِذْ وَقَعَ عَنْ رَّاحِلَتِهِ فَوَقَصَتْهُ اَوْ قَالَ فَاَوْقَصَتْهُ فَقَالَ النَّبِيُّ

۱۴۳۲: سُليمان بن حرب. حماد. ايوب. سعيد بن جبير. ابن عباسؓ نه روايت كوي. دے اثناء كښې يو سړے نبي صلے اللّٰه عليه وسلم سره عرفه كښې ولاړ وو، چه ناساپه هغه دَ خپلے سورلئ نه پريوتلو. دَ هغهٔ سورلئ دَ هغهٔ ګردن مات كړلو، نبي صلي الله عليه وسلّم او فرمائيل. دهٔ له اوبو او بيري سره غسل وركړئ.

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اغْسِلُوْهُ بِمَاءٍ وَّ سِدْرٍ وَّ كَفِّنُوْهُ فِيْ ثَوْبَيْنِ وَلَا تَمَسُّوْهُ طِيْبًا وَّلَا تُخَمِّرُوْا رَأْسَهُ وَلَا تُحَنِّطُوْهُ فَاِنَّ اللّٰهَ يَبْعَثُهُ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ مُلَبِّيًا.

او دوو کپړو کښې نې کفن کړئ، او خوشبو پرې مه لګوئ. او مه ورله سر پټوئ. او مه ورله حنوط لګوئ، ځکه چه اللّٰه تعالیٰ به د قیامت په ورځ دې لبّیک ویونکې پاسوي.

## باب ۲۸۸ : سُنَّةِ الْمُحْرِمِ اِذَا مَاتَ.

## باب ۲۸۸ : محرم چه مړ شي، نو د هغه د کفن دفن د طریقو بیان.

۴۳۳ : حَدَّثَنَا يَعْقُوْبُ بْنُ اِبْرَاهِيْمَ حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ اَخْبَرَنَا اَبُوْ بِشْرٍ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا اَنَّ رَجُلًا كَانَ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَوَقَصَتْهُ نَاقَتُهُ وَهُوَ مُحْرِمٌ فَمَاتَ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اغْسِلُوْهُ بِمَاءٍ وَّ سِدْرٍ وَّ كَفِّنُوْهُ فِيْ ثَوْبَيْنِ وَلَا تَمَسُّوْهُ بِطِيْبٍ وَّلَا تُخَمِّرُوْا رَأْسَهُ فَاِنَّهُ يُبْعَثُ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ مُلَبِّيًا.

۴۳۳ : یعقوب بن ابراهیم. هشیم. ابوبشر. سعید بن جبیر. ابن عباسؓ نه روایت کوي، یو سړے چه نبي صلے اللّٰه علیه وسلّم سره وو، د هغه اوښې د هغهٔ ګردن مات کړلو. او هغه مړ شولو، داسې حال کښې، چه هغه محرم وو. رسول اللّٰه صلے اللّٰه علیه وسلّم او فرمائیل، چه دهٔ له اوبو او بیرې سره غسل ورکړئ. او دوو کپړو کښې ئې کفن کړئ. او مهٔ ورته خوشبو لګوئ، او مهٔ ورته سر پټوئ. او مهٔ ورته حنوط لګوئ، ځکه چه د قیامت په ورځ به اللّٰه پاک دے لبّیک ویونکې پاسوي.

## باب ۲۸۹ : اَلْحَجِّ وَالنُّذُوْرِ عَنِ الْمَيِّتِ وَالرَّجُلُ يَحُجُّ عَنِ الْمَرْاَةِ.

## باب ۲۸۹ : د مړي د طرف نه د حج او نذرونو د پوره کولو بیان. او، د سړي د خپلې ښځې د طرف نه د حج کولو بیان.

۴۳۴ : حَدَّثَنَا مُوْسٰى ابْنُ اِسْمَاعِيْلَ حَدَّثَنَا اَبُوْ عَوَانَةَ عَنْ اَبِيْ بِشْرٍ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا اَنَّ امْرَاَةً مِّنْ جُهَيْنَةَ جَآءَتْ اِلَى

۴۳۴ : موسٰي بن اسمٰعیل. ابو عوانه. ابوبشر. سعید بن جبیر. ابن عباسؓ نه روایت کوي، د جهینه یوه ښځه د نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم په خدمت کښې حاضره شوه. او عرض ئې او کړ. خما مور د حج نذر منلے وو. لیکن هغې حج اونه کړے

النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَتْ إِنَّ أُمِّيْ نَذَرَتْ أَنْ تَحُجَّ فَلَمْ تَحُجَّ حَتّٰى مَاتَتْ أَفَأَحُجُّ عَنْهَا قَالَ نَعَمْ حُجِّيْ عَنْهَا أَرَأَيْتِ لَوْ كَانَ عَلٰى أُمِّكِ دَيْنٌ أَكُنْتِ قَاضِيَةً اقْضُوا اللّٰهَ فَاللّٰهُ أَحَقُّ بِالْوَفَاءِ.

شو، او، مره شوله، نو آیا زهٔ دَ هغې دَ طرف نه حج اوکړم. حضور صلی الله علیه وسلم ورته او فرمائیل او، دَ هغې دَ طرفه حج اوکه، کهٔ ستا په مور څهٔ قرض وې، نو آیا تا به هغه نهٔ ادا کولو، دَ الله تعالی حق خو، نور، هم دَ، پوره کولو مستحق زیات دې [۱].

۱. عبادتونه درې قسمه دي (۱) اول هغه چه د هغې تعلق د انسان د بدن او روح سره وي لکه مونځ روژه. (۲) دویم هغه عبادت چه هغه یو اخې مال دولت سره ادا کیږي لکه زکات. (۳) دریم هغه عبادت دې چه د بدن روح او مال دولت لګولو سره ادا کیږي. لکه حج. اولنې عبادت، مونځ روژه، دا صرف هغه بنده ادا کولې شي چه په چا فرض وي. دا عبادت بل څوک د چا پځائې ادا کولې نشي د نیابت وکالت پکښې سوال نشته ځکه چه د دې عبادت مقصد ځان ستړې کول دي. او دا مقصد هله حاصلیږي چه په چا فرض وي هغه ئې پخپله ادا کړي.

دویم قسم عبادت بل بنده، د هغه چا پځائې ادا کولې شي چه په چا فرض وي. ځکه چه د دې عبادت مقصد، حقدار ته د هغه حق رَسُوَل دي او حقدار ته حق د نائب، او د وکیل په ذریعه رسیږي.

دریم قسم حج کښې یو بنده د بل بنده پځائې د عذر په وخت کښې ادا کولې شي. ځکه چه دا بدني او مالي دواړه قسمه عبادت دې. شریعت د عُذر په وخت کښې یو بنده ته د بل بنده پځائې اجازت ورکړې دې.

امام بُخاري رحمة الله علیه د دې حدیث شریف په سر لیک کښې لیکلي دي "چه سړې د ښځې په ځائې حج کولې شي. حدیث شریف کښې د دې ذکر نشته، مسئله واضحه ده. چه د دواړو په احرام کښې معمولي (څه لږ) فرق دې نو پدې کښې څه بدي نشته.

## بَابٌ ۲۹۰: اَلْحَجُّ عَمَّنْ لَّا يَسْتَطِيْعُ الثُّبُوْتَ عَلَى الرَّاحِلَةِ.

## باب ۲۹۰: دَ هغې سړي دَ طرف نه دَ حج کولو بیان، چه په سورلۍ کیناستې نشي.

۴۳۵: حَدَّثَنَا أَبُوْ عَاصِمٍ عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ عَنِ بْنِ شِهَابٍ عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ يَسَارٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنِ الْفَضْلِ بْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ أَنَّ امْرَأَةً ح حَدَّثَنَا مُوْسَى ابْنُ إِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ أَبِيْ

۴۳۵: ابو عاصم. ابن جریج. ابن شهاب. سلیمان بن یسار. حضرت ابن عباسؓ. فضل بن عباس نه روایت کوي. ح. (دوئم سند) موسی بن اسمٰعیل عبدالعزیز بن ابي سلمه. ابن شهاب. سلیمان بن یسار. حضرت ابن عباسؓ نه روایت کوي،

سَلَمَةَ حَدَّثَنَا ابْنُ شِهَابٍ عَنْ سُلَيْمٰنَ بْنِ يَسَارٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ جَآءَتِ امْرَاَةٌ مِّنْ خَثْعَمٍ عَامَ حَجَّةِ الْوَدَاعِ قَالَتْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّ فَرِيْضَةَ اللّٰهِ عَلٰى عِبَادِهٖ فِي الْحَجِّ اَدْرَكَتْ اَبِيْ شَيْخًا كَبِيْرًا لَا يَسْتَطِيْعُ اَنْ يَّسْتَوِيَ عَلَى الرَّاحِلَةِ فَهَلْ يَقْضِيْ عَنْهُ اَنْ اَحُجَّ عَنْهُ قَالَ نَعَمْ.

چه حجة الوداع كښې دقبيلــه خثعم يوه ښځه راغلــه. او عرض ئې اوكـړ: يا رسول اللّـه، خما په پلار هغې حال كښې حج فرض شوې دې، چه هغه ډير بوډا شوے دے. او په سورلئ نيغ كيناستے نشي. كه زۀ دَ هغه دَ طرفه حج اوكړم. نو آيا حج به ادا شي. حضور صلي اللّـه عليه وسلّم ورته او فرمائيل. او.

## بـاب ۱ ۲۹: حَجِّ الْمَـرْاَةِ عَنِ الرَّجُلِ.

## باب ۱ ۲۹: دَ ښځے دَ خپل خاوند دَ طرف نه دَ حج كولو بيان.

۴۳۶: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْلَمَةَ عَنْ مَالِكٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ سُلَيْمَانَ ابْنِ يَسَارٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ كَانَ الْفَضْلُ رَدِيْفَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ جَآءَتِ امْرَاَةٌ مِّنْ خَثْعَمٍ فَجَعَلَ الْفَضْلُ يَنْظُرُ اِلَيْهَا وَ تَنْظُرُ اِلَيْهِ فَجَعَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَصْرِفُ وَجْهَ الْفَضْلِ اِلَى الشِّقِّ الْاٰخَرِ فَقَالَتْ اِنَّ فَرِيْضَةَ اللّٰهِ اَدْرَكَتْ اَبِيْ شَيْخًا كَبِيْرًا لَّا يَثْبُتُ عَلَى الرَّاحِلَةِ اَفَاَحُجُّ عَنْهُ قَالَ نَعَمْ وَ ذٰلِكَ فِيْ حَجَّةِ الْوَدَاعِ.

۴۳۶: عبداللّـه بن مسلمه. مالك ابن شهاب. سليمان بن يسار. عبداللّـه. ابن عباسؓ نه روايت كوي، فضلؓ نبي صلے اللّـه عليه وسلّم پسے ورستو سور، وو. دَ قبيلــه خثعم يوه ښځه راغلـه فضل هغې طرفته كتل شروع كړل او هغې ښځې هغۀ ته كتل. نبي صلے اللّـه عليه وسلّم به دَ هغۀ رُخ بل طرف ته كرځولو. هغې ښځې عرض اوكړ، يا رسول اللّـه خما پلار باندې حج داسې حال كښې فرض شوے دے، چه هغه به خپله سورلئ كيناستے نشي، آيا زۀ دَ هغه دَ طرف نه حج اوكرم. حضور صلي اللّـه عليه وسلّم ورته او فرمائيل. او. او دا، دَ، حجة الوداع واقعه ده.

## باب ۲۹۲: حَجِّ الصِّبْيَانِ.

## باب ۲۹۲: دَ بچو دَ حج كولو بيان[1].

[1]. د ورو ماشومانو ټول عبادتونه شريعت منظور كړيدي واړه، د بالغ كيدو نه مخكښې مُكَلَف نَدي په

هغوي هیڅ عبادت فرض ندے ځومره فرض عبادتونه چه ماشومان ادا کړي. هغه د هغوي نفلي عبادتونه دي حج کښې دا مسئله ده. په ورړ کوالي که څوک حج ادا کړي نو هغه شریعت کښې منظور دے خو دا نفلي حج دے چه کله لوئے او بالغ شي. او بیا ورباندے حج فرض شي نو بیا به حج ادا کوي څکه چه اولنے حج نے نفلي وو.

۴۳۷: حَدَّثَنَا اَبُو النُّعْمَانِ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِيْ يَزِيْدَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ سَمِعْتُ ابْنَ عَبَّاسٍ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا يَقُوْلُ بَعَثَنِيْ اَوْ قَدَّمَنِيْ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الثَّقْلِ مِنْ جَمْعٍ بِلَيْلٍ.

۴۳۷: ابوالنعمان. حماد بن زید. عبیداللّٰه بن عبداللّٰه بن ابي زید نه روایت کوي. ذ هغه بیان دے، ما ذ' ابن عباسؓ نه واوریدل، چه زهٔ نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم سامان سره ذ' مزدلفے نه ذ شپے په وخت اولیږلم.

۴۳۸: حَدَّثَنَا اِسْحَاقُ اَخْبَرَنَا يَعْقُوْبُ بْنُ اِبْرَاهِيْمَ حَدَّثَنَا ابْنُ اَخِيْ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عَمِّهٖ اَخْبَرَنِيْ عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُتْبَةَ بْنِ مَسْعُوْدٍ اَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ اَقْبَلْتُ وَقَدْنَاهَزْتُ الْحُلُمَ اَسِيْرُ عَلٰى اَتَانٍ لِّيْ وَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَآئِمٌ يُصَلِّيْ بِمِنًى حَتّٰى سِرْتُ بَيْنَ يَدَيْ بَعْضِ الصَّفِّ الْاَوَّلِ ثُمَّ نَزَلْتُ عَنْهَا فَرَتَعَتْ فَصَفَفْتُ مَعَ النَّاسِ وَرَآءَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ قَالَ يُوْنُسُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ بِمِنًى فِيْ حَجَّةِ الْوِدَاعِ.

۴۳۸: اسحٰق. یعقوب بن ابراهیم. ذ' ابن شهاب ورارهٔ. عبیداللّٰه بن عبداللّٰه بن عتبه بن مسعود نه روایت کوي، عبداللّٰه بن عباسؓ بیان اوکهٔ، چه زهٔ بلوغ ته نږدے ووم. په خپله خره (گدهی) سور، راغلم، او رسول اللّٰه صلے اللّٰه علیه وسلّم منٰي کښې ولاړ وو، مونځ نے کولو. زهٔ روان ووم، تردے چه ذ وړمبني صف مخے ته تیر شوم. بیا زهٔ ذ' خرے نه راکوز شوم، هغه خریدله. زهٔ رسول اللّٰه صلے اللّٰه علیه وسلّم پسے خلقو سره صف کښې شریک شوم. او، یونس ذ' ابن شهاب نه روایت اوکهٔ، چه دا، حجة الوداع کښې اوشو.

۴۳۹: حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ يُوْنُسَ حَدَّثَنَا حَاتِمُ بْنُ اِسْمٰعِيْلَ

۴۳۹: عبدالرحمٰن بن یونس. حاتم بن اسمٰعیل. محمّد بن یوسف. سائب بن

عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ يُوْسُفَ عَنِ السَّائِبِ بْنِ يَزِيْدَ قَالَ حَجَّ بِيْ مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَنَا ابْنُ سَبْعِ سِنِيْنَ.

يـزيـد. نـه روايـت کوي، چـه مـا رسـول اللّٰـه صـلـې الـلّٰـه عـلـيـه وسـلّم سـره حج اوکـړے شـو، او هـغـه وخـت خـمـا عُـمـر اووه کـالـه وو.¹

۱. سائب رضي الله عنه د حَجَة الوداع په موقعه د نبي کريم صلي الله عليه وسلم سامان سره وو دے روايت کښ دي چه د اوه کالو وو. نورو روايتونو کښ دي نابالغه وو. راتلونکي روايت کښ تفصيل سره د عمر بن عبدالعزيز رحمة الله عليه سوال او د السّائب بن يزيد رضي الله عنهما جواب را روان دے.

۱۴۴۰: حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ زُرَارَةَ اَخْبَرَنَا الْقَاسِمُ بْنُ مَالِكٍ عَنِ الْجُعَيْدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ قَالَ سَمِعْتُ عُمَرَ بْنَ عَبْدِ الْعَزِيْزِ يَقُوْلُ لِلسَّائِبِ ابْنِ يَزِيْدَ وَ كَانَ قَدْ حُجَّ بِهٖ فِيْ ثَقَلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۱۴۴۰: عـمـرو بـن زراره. قـاسـم بـن مـالـک. جـعـيـد بـن عـبـدالـرحـمٰـن نـه روايـت دے. د هغهٔ بيـان دے، چـه مـا د عـمـر بـن عـبـدالـعـزيـز نـه او هـغـه د سـائـب بـن يـزيـد نـه واوريـدل، چـه پـه هغهٔ د نبي صلّي الـلّٰـه عـلـيـه وسـلّم سـامـان (بـال بچ) سره حج اوکړے شو.

## باب ۲۹۳: حَجِّ النِّسَآءِ

باب ۲۹۳: د ښـځـو د حج کـولـو بيـان.

وَ قَالَ لِيْ اَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ جَدِّهٖٓ اَذِنَ عُمَرُ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ لِاَزْوَاجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ اٰخِرِ حَجَّةٍ حَجَّهَا فَبَعَثَ مَعَهُنَّ عُثْمَانَ بْنَ عَفَّانَ وَ عَبْدَ الرَّحْمٰنِ.

او مـاتـه احـمـد بـن مـحـمّد بيان اوکهٔ، چه ماته ابراهيم هغهٔ د خپـل پـلار نـه او هـغـهٔ د هـغـه د نيـکـهٔ (دادا) نـه روايـت اوکـهٔ، چـه حـضـرت عمرؓ خپل آخري حج کښ د نبي صـلـي الـلّٰـه عـلـيـه وسـلّم بيبيانوؓ تـه د حج کولو اجـازت ورکـهٔ. او هـغـوي سـره ئـے عثمان بن عفّان او عبدالرحمٰن اوليږلو.

۱۴۴۱: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ حَدَّثَنَا حَبِيْبُ بْنُ اَبِيْ عَمْرَةَ قَالَ حَدَّثَتْنَا عَآئِشَةُ بِنْتُ طَلْحَةَ عَنْ عَآئِشَةَ اُمِّ الْمُؤْمِنِيْنَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَتْ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَلَا نَغْزُوْا وَ نُجَاهِدُ مَعَكُمْ فَقَالَ لَكُنَّ

۱۴۴۱: مـسـدد. عـبـدالـواحـد. حبيـب بـن ابـي عـمـره. عـائـشـه بـن طـلـحـه. اُمّ الـمؤمنين بي بي عـائـشـےؓ نـه روايـت کـوي، د هغې بيـان دے، مـا عرض اوکـهٔ، يـا رسـول الـلّٰـه، مونږ تـاسو سره غزا يا جهاد کـښ شـريـکـے نـهٔ شـو؟ نو حـضـور صلـے اللّٰه عليه وسـلّم او فـرمـائيـل. ستـاسـو د پـاره د ټولو نـه بهتر

اَحۡسَنُ الۡجِهَادِ وَ اَجۡمَلُهُ الۡحَجُّ حَجٌّ مَبۡرُوۡرٌ فَقَالَتۡ عَآئِشَةُ فَلَا اَدَعُ الۡحَجَّ بَعۡدَ اِذۡ سَمِعۡتُ هٰذَا مِنۡ رَسُوۡلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ.

او، بنه جهاد، حج مقبول دے. بي بي عائشه به ونيلے، چه نبي صلے الله عليه وسلم نه د دے آوريدو نه پس به زهٔ حج هيڅ کله پرے نهٔ ږدم.

۲۴۴: حَدَّثَنَا اَبُو النُّعۡمَانِ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بۡنُ زَيۡدٍ عَنۡ عَمۡرٍو عَنۡ اَبِيۡ مَعۡبَدٍ مَوۡلَى ابۡنِ عَبَّاسٍ عَنِ ابۡنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنۡهُمَا قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ لَا تُسَافِرِ الۡمَرۡاَةُ اِلَّا مَعَ ذِيۡ مَحۡرَمٍ وَّلَا يَدۡخُلۡ عَلَيۡهَا رَجُلٌ اِلَّا وَّ مَعَهَا مَحۡرَمٌ فَقَالَ رَجُلٌ يَّا رَسُوۡلَ اللّٰهِ اِنِّيۡ اُرِيۡدُ اَنۡ اَخۡرُجَ فِيۡ جَيۡشِ كَذَا اَوۡ كَذَا وَامۡرَاَتِيۡ تُرِيۡدُ الۡحَجَّ فَقَالَ اخۡرُجۡ مَعَهَا.

۲۴۴: ابوالنعمان. حماد بن زيد. عمر. ابوسعيد (دَ ابن عباسؓ غلام) دَ حضرت ابن عباسؓ نه روايت کوي، نبي صلے الله عليه وسلم او فرمائيل، چه ښځه دے صرف داسے خپلوان (رشته دار) سره سفر کوي، چه هغهٔ سره ئے نکاح حرام وي، او ښځے له دے هيڅ سړے نهٔ ورځي. خو، داسے حال کښ، چه هغے سره څوک محرم موجود، وي. يو سړي عرض اوکهٔ، يا رسول الله، زهٔ فلاني فلاني لښکر ته تلل غواړم او خما ښځه حج ته تلل غواړي، حضور صلے الله عليه وسلم او فرمائيل، تهٔ خپلے ښځے سره لاړ شه.

۲۴۳: حَدَّثَنَا عَبۡدَانُ اَخۡبَرَنَا يَزِيۡدُ بۡنُ زُرَيۡعٍ اَخۡبَرَنَا حَبِيۡبُ الۡمُعَلِّمُ عَنۡ عَطَآءٍ عَنِ ابۡنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنۡهُمَا قَالَ لَمَّا رَجَعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ مِنۡ حَجَّتِهٖ قَالَ لِاُمِّ سِنَانٍ الۡاَنۡصَارِيَّةِ مَا مَنَعَكِ مِنَ الۡحَجِّ قَالَتۡ اَبُوۡ فُلَانٍ تَعۡنِيۡ زَوۡجَهَا كَانَ لَهٗ نَاضِحَانِ حَجَّ عَلٰى اَحَدِهِمَا وَالۡاٰخَرُ يَسۡقِيۡ اَرۡضًا لَّنَا قَالَ فَاِنَّ عُمۡرَةً فِيۡ رَمَضَانَ تَقۡضِيۡ حَجَّةً اَوۡ حَجَّةً مَّعِيۡ رَوَاهُ ابۡنُ جُرَيۡجٍ عَنۡ عَطَآءٍ سَمِعۡتُ

۲۴۳: عبدان. يزيد بن زريع. حبيب. معلم. عطاء. ابن عباسؓ نه روايت کوي، کوم وخت چه نبي صلے الله عليه وسلم دَ خپل حج نه واپس شولو نو، اُمّ سنان! نصاريه ته ئے اوفرمائيل، تهٔ څهٔ څيز دَ حج نه منع کړے ئے. هغے جواب ورکهٔ، دَ فلانے پلار، يعني خما خاوند. هغه سره دَ، اوبو راوړلو دوه اوښان وو. هغے کښ په يو هغه حج له لاړ. او دوئم اوښ باندے مونږ زمکه اوبه کوو. حضور صلے الله عليه وسلم ورته اوفرمائيل رمضان کښ عُمره کول دَ يو حج برابر يا ما سره دَ حج کولو برابر دهٔ. ابن جريج دَ عطاء نه روايت اوکهٔ. ما دَ، ابن عباسؓ نه واؤريدل،

ابْنَ عَبَّاسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ قَالَ عُبَيْدُ اللّٰهِ عَنْ عَبْدِ الْكَرِيْمِ عَنْ عَطَاءٍ عَنْ جَابِرٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

هغـهٔ ذ نبي صـلـي اللّٰه علیـه وسلّم نـه روایت او کـهٔ او عُبیـد الـلّٰـه ذ عبـدالکریم نه' هغهٔ ذ' عطاء نه' هغهٔ د' جابر نـه او هغـهٔ ذ نبي صـلـي الـلّٰـه عـلیـه وسلّم نـه روایت او کهٔ[۱].

۱. د رسـول الـلّٰـه صـلـي اللّٰه علیه وسلم په ملګرتیا کښ د حج ادا کولو ډیر زیات فضیلت وو. د دې فـضیلـت نـه اُمّ سِـنان رضي اللّٰه عنها محرومه پاتې شوه. حج په هغې فرض نه وو رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسـلم د هغې خفګان لرې کولو او خوشالولو د پاره او فرمایل. "که هغه رمضان کښ عمره ادا کړي. نو د هغې محرومتیا کفاره به ادا شي هغه ثواب به ورکړې شي" د دې حدیث شریف نه په رمضان کښ د عمرې فضیلت معلومیږي.

۴۴۴: حَدَّثَنَا سُلَيْمٰنُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ عُمَيْرٍ عَنْ قَزَعَةَ مَوْلٰى زِيَادٍ قَالَ سَمِعْتُ اَبَا سَعِيْدٍ وَّ غَزَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثِنْتَيْ عَشْرَةَ غَزْوَةً قَالَ اَرْبَعٌ سَمِعْتُهُنَّ مِنْ رَّسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَوْ قَالَ يُحَدِّثُهُنَّ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ اٰلِهٖ وَسَلَّمَ فَاَعْجَبْنَنِيْ وَ اٰنَقْنَنِيْ اَنْ لَّا تُسَافِرَ امْرَاَةٌ مَّسِيْرَةَ يَوْمَيْنِ لَيْسَ مَعَهَا زَوْجُهَا اَوْ ذُوْ مَحْرَمٍ وَّلَا صَوْمَ يَوْمَيْنِ الْفِطْرِ وَالْاَضْحٰى وَلَا صَلٰوةَ بَعْدَ صَلٰوتَيْنِ بَعْدَ الْعَصْرِ حَتّٰى تَغْرُبَ الشَّمْسُ وَ بَعْدَ الصُّبْحِ حَتّٰى تَطْلُعَ الشَّمْسُ وَلَا تُشَدُّ الرِّحَالُ اِلَّا اِلٰى ثَلٰثَةِ مَسَاجِدَ مَسْجِدِ الْحَرَامِ وَ مَسْجِدِيْ وَ مَسْجِدِ الْاَقْصٰى.

۴۴۴: سُلیمان بن حرب. شعبه. عبدالملک بن عمیر. قزعـه (ذ' زیاد غلام) بیان کوي' چـه ما ذ' ابو سعیـد نـه واوریـدل' او هغـه نبي صلې اللّٰه علیـه وسلّـم سره دولس غزا ګانې کړې وې. هغهٔ اووې' څلور خبرې ما ذ نبي صلي اللّٰـه علیـه وسلّم نـه آوریدلې دي یا' وې وئیل' چـه څلور خبرې ئې ذ نبي صلي اللّٰـه علیه وسلّم نـه نقل کولې. څما هغه څلور خبرې ډیرې خوښې شوې (اوّل دا چـه) هیڅ ښځه دې ذ دوو ورځو سفر داسې حال کښ نهٔ کوي چه هغې سره خپل خاوند یا محرم نهٔ وي (دونم دا چه) ذ' وروکي اختر' او لوئې آخر' په ورځ دې روژه نهٔ نیسي (درئم دا چـه) ذ دوو مونځونو پس دې مونځ نهٔ کوي' یعني ذ مازیګر نه پس ځو پورې چه نمر ډوب نشي. او ذ سحر (ذ مونځ) نه پس ځو پورې چه نمر راونهٔ خیژي. (څلورم دا چـه) مسجد حرام او څما جُمات او مسجدِ اقصي نـه سِوا' بل جُمات طرف ته دې ذ سفر سامان نهٔ تړي.

## بَابٌ ۲۹۴: مَنْ نَّذَرَ الْمَشْيَةَ

## باب ۲۹۴: کعبې طرف تـه ذ پیاده تلو ذ نذر

اِلَى الْكَعْبَةِ.

۴۴۵: حَدَّثَنَا ابْنُ سَلَامٍ اَخْبَرَنَا الْفَزَارِيُّ عَنْ حُمَيْدٍ الطَّوِيْلِ قَالَ حَدَّثَنِيْ ثَابِتٌ عَنْ اَنَسٍ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَاٰى شَيْخًا يُّهَادٰى بَيْنَ ابْنَيْهِ قَالَ مَا بَالُ هٰذَا قَالُوْا نَذَرَ اَنْ يَّمْشِيَ قَالَ اِنَّ اللّٰهَ عَنْ تَعْذِيْبِ هٰذَا نَفْسَهُ لَغَنِيٌّ وَ اَمَرَهُ اَنْ يَّرْكَبَ.

۴۴۶: حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ مُوْسٰى اَخْبَرَنَا هِشَامُ ابْنُ يُوْسُفَ اَنَّ ابْنَ جُرَيْجٍ اَخْبَرَهُمْ قَالَ اَخْبَرَنِيْ سَعِيْدُ بْنُ اَبِيْ اَيُّوْبَ اَنَّ يَزِيْدَ ابْنَ اَبِيْ حَبِيْبٍ اَخْبَرَهُ اَنَّ اَبَا الْخَيْرِ حَدَّثَهُ عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ قَالَ نَذَرَتْ اُخْتِيْ اَنْ تَمْشِيَ اِلٰى بَيْتِ اللّٰهِ وَ اَمَرَتْنِيْ اَنْ اَسْتَفْتِيَ لَهَا النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاسْتَفْتَيْتُهُ فَقَالَ عَلَيْهِ السَّلَامُ لِتَمْشِ وَلْتَرْكَبْ قَالَ وَ كَانَ اَبُو الْخَيْرِ لَا يُفَارِقُ عُقْبَةَ.

۴۴۷: حَدَّثَنَا اَبُوْ عَاصِمٍ عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ عَنْ يَّحْيَى ابْنِ اَيُّوْبَ عَنْ يَّزِيْدَ عَنْ اَبِي الْخَيْرِ عَنْ عُقْبَةَ فَذَكَرَ الْحَدِيْثَ.

منلو بیان.

۴۴۵: ابن سلام. فزاري. حمید طویل ثابت. انسؓ نه روایت کوي. نبي صلی الله علیه وسلّم یو بوډا اولیدلو. چه ذ خپلو دوو ځامنو په تکیه روان وو. حضور صلی الله علیه وسلّم او فرمائیل' ذ' دهٔ څهٔ حال دے. خلقو عرض اوکهٔ. دهٔ خانه کعبے ته ذ' پیاده تلو نذر منلے وو. حضور صلی الله علیه وسلّم او فرمائیل. الله تعالیٰ' یو نفس په عذاب کښې ذ' آخته کولو نه بے نیازه دے. او هغهٔ ته ئے ذ سوریدو حکم ورکړلو.

۴۴۶: ابراهیم بن موسٰي. هشام بن یوسف. ابن جریج. سعید بن ابي ایوب. یزید بن ابي حبیب. ابوالخیر. عقبه بن عامر نه روایت کوي. ذ هغهٔ بیان دے' خما خور خانه کعبے ته ذ پیاده تلو نذر اومنلو' او ماته ئے حکم راکهٔ' چه هغے ذ پاره ذ' رسول الله صلی الله علیه وسلّم نه ذ مسئلے تپوس اوکړم' ما ذ رسول الله صلی الله علیه وسلّم نه تپوس اوکهٔ نو حضور صلی الله علیه وسلّم او فرمائیل پیاده دے ځي. او سوریږي دے هم. او ابوالخیر به همیشه عقبه سره وو.

۴۴۷: ابو عاصم. ابن جریج. یحیٰي بن ایوب. یزید. ابوالخیر. عقبه نه (دا حدیث) دغه شان روایت کوي.

باب ۲۹۵: حَرَمِ الْمَدِيْنَةِ.

باب ۲۹۵: ذ مدینے ذ حرم بیان.

۴۴۸: حَدَّثَنَا اَبُو النُّعْمَانِ

۴۴۸: ابوالنعمان. ثابت بن یزید.

حَدَّثَنَا ثَابِتُ بْنُ يَزِيْدَ حَدَّثَنَا عَاصِمٌ أَبُوْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ الْأَحْوَلُ عَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الْمَدِيْنَةُ حَرَمٌ مِّنْ كَذَا إِلَى كَذَا لَا يُقْطَعُ شَجَرُهَا وَلَا يُحْدَثُ فِيْهَا حَدَثٌ مَّنْ أَحْدَثَ حَدَثًا فَعَلَيْهِ لَعْنَةُ اللّٰهِ وَالْمَلٰئِكَةِ وَالنَّاسِ أَجْمَعِيْنَ.

عاصم ابو عبدالرحمٰن احول. انسؓ نبي صلی اللّٰه علیه وسلّم نه روایت کوي، حضور صلی اللّٰه علیه وسلّم او فرمائیل. مدینه ذ دې خائې نه دغه خائې پورې حرم دې. ذ دې اُونه دې نشي وهلې. او نه دې دې کښې څه بدعت کیږي. چا چه دې کښې څه بدعت اوکهٔ، نو په هغهٔ ذ اللّٰه، فریښتو او ذ ټولو خلقو لعنت دې.

۴۴۹: حَدَّثَنَا أَبُوْ مَعْمَرٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ عَنْ أَبِي التَّيَّاحِ عَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ قَدِمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمَدِيْنَةَ وَأَمَرَ بِبِنَاءِ الْمَسْجِدِ فَقَالَ يَا بَنِي النَّجَّارِ ثَامِنُوْنِيْ فَقَالُوْا لَا نَطْلُبُ ثَمَنَهُ إِلَّا إِلَى اللّٰهِ تَعَالٰى فَأَمَرَ بِقُبُوْرِ الْمُشْرِكِيْنَ فَنُبِشَتْ ثُمَّ بِالْخِرَبِ فَسُوِّيَتْ وَبِالنَّخْلِ فَقُطِعَ فَصَفُّوا النَّخْلَ قِبْلَةَ الْمَسْجِدِ.

۴۴۹: ابو معمر. عبدالوارث. ابوالتیاح. انسؓ نه روایت کوي، چه نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم مدینې ته اورسیدلو، او، ذ جُمات جوړولو حکم ئې ورکړلو. نو وې فرمائیل، اې بني نجارو. مانه ذ، زمکې قیمت واخلئې. هغوي اووې، ذ دې قیمت به مونږ صرف ذ، اللّٰه نه اخلو. بیائې ذ مشرکینو ذ قبرونو ذ کنستلو حُکم اوکړلو، نو هغه اوکنستلې شو، بیا ذ، ویرانې متعلّق ئې حکم اوکهٔ، نو هغه هموارہ کړې شوه. او ذ، اُونو ذ پریکولو حُکم ئې اوکهٔ نو هغه پریکړې شوې. او ذ جُمات ذ قبلې سمت کښې ذ صف په طور کیښودلې شوې.

۴۵۰: حَدَّثَنَا إِسْمٰعِيْلُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنِيْ أَخِيْ عَنْ سُلَيْمٰنَ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ عَنْ سَعِيْدٍ الْمَقْبُرِيِّ عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ حُرِّمَ مَا بَيْنَ لَابَتَيِ الْمَدِيْنَةِ عَلٰى لِسَانِيْ قَالَ وَأَتَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَنِيْ

۴۵۰: اسمٰعیل بن عبداللّٰه. برادر اسمٰعیل (عبدالحمید) سُلیمان. عُبید اللّٰه. سعید مقبري. حضرت ابوهریرهؓ نه روایت کوي. هغهٔ بیان اوکهٔ، نبي صلې اللّٰه علیه وسلّم او فرمائیل. ذ، مدینې ذ، دوارو کانړیجنو (سنگلاخ) میدانونو درمیانه مقام څما په ژبه حرام گرځولې شوې دې. او نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم بني حارثه له راغې، نو وې فرمائیل، اې بني حارثه، زهٔ پوهیږم، چه تاسو ذ حرم نه بهر شوئې.

خَارِثَةَ فَقَالَ اَرَاكُمْ يَا بَنِيْ حَارِثَةَ قَدْ خَرَجْتُمْ مِنَ الْحَرَمِ ثُمَّ الْتَفَتَ فَقَالَ بَلْ اَنْتُمْ فِيْهِ.

بيا حضور صلى الله عليه وسلّم اخوا ديخوا او كتل، نو وې ونيل نه، بلكه تاسو حرم كښې دننه يئ.

۱۴۵۱: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمٰنِ حَدَّثَنَا سُفْيٰنُ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ اِبْرَاهِيْمَ التَّيْمِيّ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَلِيّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ مَا عِنْدَنَا شَيْءٌ اِلَّا كِتَابُ اللّٰهِ وَ هٰذِهِ الصَّحِيْفَةُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمَدِيْنَةُ حَرَمٌ مَّا بَيْنَ عَائِرٍ اِلٰى كَذَا مَنْ اَحْدَثَ فِيْهَا اَوْ اٰوٰى مُحْدِثًا فَعَلَيْهِ لَعْنَةُ اللّٰهِ وَالْمَلٰٓئِكَةِ وَالنَّاسِ اَجْمَعِيْنَ لَا يُقْبَلُ مِنْهَا صَرْفٌ وَّلَا عَدْلٌ وَ قَالَ ذِمَّةُ الْمُسْلِمِيْنَ وَاحِدَةٌ فَمَنْ اَخْفَرَ مُسْلِمًا فَعَلَيْهِ لَعْنَةُ اللّٰهِ وَالْمَلٰٓئِكَةِ وَالنَّاسِ اَجْمَعِيْنَ لَا يُقْبَلُ مِنْهُ صَرْفٌ وَّلَا عَدْلٌ وَمَنْ تَوَلّٰى قَوْمًا بِغَيْرِ اِذْنِ مَوَالِيْهِ فَعَلَيْهِ لَعْنَةُ اللّٰهِ وَالْمَلٰٓئِكَةِ وَالنَّاسِ اَجْمَعِيْنَ لَا يُقْبَلُ مِنْهُ صَرْفٌ وَّلَا عَدْلٌ.

۱۴۵۱: محمد بن بشار. عبدالرحمٰن. سُفيان. اعمش. ابراهيم تيمي دَ خپل پلار نه، هغه دَ حضرت عليؑ نه روايت كوي. هغهٔ اووې، ما سره خو صرف دَ الله كتاب او دَ نبي صلي الله عليه وسلّم دا صحيفه[۱] ده (چه هغې كښې ليكلي دي) مدينه دَ، عائر، نه واخله، دَ فلاني فلاني مقاماتو پورې حرم دې. كوم سړې چه دې ځائې كښې څه نوې خبره راوكاږي يا يو بدعتي ته پناه وركړي، نو په هغهٔ دَ الله لعنت او دَ فريښتو او دَ ټولو خلقو لعنت دې. نه دَ هغهٔ فرض عبادت مقبول دې، او نه نفل. او حضور صلى الله عليه وسلّم او فرمائيل. دَ مسلمانانو ذمّه يوه ده. څوک چه دَ، يو مُسلمان عهد مات كړي. په هغهٔ دَ الله، فريښتو او دَ ټولو خلقو لعنت دې. نه به دَ هغهٔ فرض عبادت مقبول وي، او نه نفل. او كوم سړې چه دَ خپل مالک دَ، اجازت نه بغير يو قوم سره موالات (دوستي) كوي، نو په هغهٔ دَ، الله تعالىٰ او دَ هغهٔ دَ فريښتو او دَ ټولو خلقو لعنت دې. نه به دَ هغهٔ فرض عبادت مقبول وي، او نه څهٔ نفل عبادت.

۱. حضرت علي رضي الله عنه ډير احاديث مبارک ليکلي وو. بخاري شريف كښې كِتَابُ الاعتِصَامِ بالكِتٰبِ وَالسُّنَّة دا وضاحت شته چه د حضرت علي رضي الله عنه د احاديثو مجموعه "چه په صحيفهٔ علي مشهوره ده. يو غټ كتاب وو. په هغې كښې د زكات، د مديني منورې د احترام، د حجة الوَداع، او د اسلامي قانون په حقله احاديث وو. دا احاديث، حضرت علي رضي الله عنه د رسول الله صلي الله عليه وسلم نه اوريدلي وو بيانې ليكلي وو دې حديث شريف كښې د كِتَابُ الله سره چه د كومې صحيفې ذكر دې هغه صحيفهٔ علي ده. حضرت علي رضي الله عنه به اكثر د هغې حواله وركوله.

۲. يعني د كافرو سره په حالتِ جنګ كښې' كه چرې يو مسلمان' كوم دښمن كافر له امان وركړو نو ټولو مسلمانانو د پاره دا ضروري ده. چه هغوي د هغه مسلمان رور د امان وركولو خيال او ساتي او هغې كافر ته هيڅ قسم نقصان يا ضرر او نه رسوي. كه چرې كوم مسلمان د هغې امام د عهد خيال او نه ساتلو او بدعهدي ئے اوكړه. نو په هغه لعنت دے.

## باب ۲۹۶: فَضْلِ الْمَدِيْنَةِ وَ اَنَّهَا تَنْفِي النَّاسَ.

## باب ۲۹۶: د مدينے فضيلت او' د' دے بيان چه هغه خراب سړے اُباسي.

۴۵۲: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيْدٍ قَالَ سَمِعْتُ اَبَا الْحُبَابِ سَعِيْدَ بْنِ يَسَارٍ يَقُوْلُ سَمِعْتُ اَبَا هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ يَقُوْلُ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اُمِرْتُ بِقَرْيَةٍ تَاْكُلُ الْقُرٰى يَقُوْلُوْنَ يَثْرِبُ وَهِيَ الْمَدِيْنَةُ تَنْفِي النَّاسَ كَمَا يَنْفِي الْكِيْرُ خَبَثَ الْحَدِيْدِ.

۴۵۲: عبدالله بن يُوسف. مالک. يحيي بن سعيد. ابوالحباب سعيد بن يسار. حضرت ابوهريرةؓ نه روايت كوي' رسول الله صلے الله عليه وسلّم' ماته داسے ښهر ته د تلو حكم شوے دے' چه نور ښارونه به اوخوري. منافق خلق دے يثرب وائي. د دے نوم مدينه دے. او خراب خلق به داسے لرے كړي' ځنګه چه بهټۍ د' اوسپنے خيرے (مَيل) لرے كوي.

## باب ۲۹۷: اَلْمَدِيْنَةُ طَابَةٌ.

## باب ۲۹۷: مدينه طابه ده.

۴۵۳: حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ مَخْلَدٍ حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ قَالَ حَدَّثَنِيْ عَمْرُو بْنُ يَحْيَى عَنْ عَبَّاسِ بْنِ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ عَنْ اَبِيْ حُمَيْدٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ اَقْبَلْنَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ تَبُوْكَ حَتّٰى اَشْرَفْنَا عَلَى الْمَدِيْنَةِ فَقَالَ هٰذِهٖ طَابَةٌ.

۴۵۳: خالد بن مخلد. سُليمان. عمرو بن يحيي. عباس بن سهل بن سعد. ابوحميدؓ نه روايت كوي' د هغهٔ بيان دے' چه مونږ خلق نبي صلے الله عليه وسلّم سره د تبوک نه واپس راغلو' تردے چه مدينے ته نزدے شو' نو حضور صلے الله عليه وسلّم او فرمائيل' دا طابه ده (طابه: د مدينے منوّرے نوم دے).

## باب ۲۹۸: لَا بَتَيِ الْمَدِيْنَةِ.

## باب ۲۹۸: د مدينے د' دوارو كانړيجنو ميدانونو بيان.

۴۵۴: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ

۴۵۴: عبدالله بن يُوسف. مالک. ابن شهاب. سعيد بن مسيب. حضرت ابوهريرهؓ

عَنْ سَعِيْدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ اَنَّهٗ كَانَ يَقُوْلُ لَوْ رَاَيْتُ الظِّبَآءَ بِالْمَدِيْنَةِ تَرْتَعُ مَاذَ عَرْتُهَا قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا بَيْنَ لَا بَتَيْهَا حَرَامٌ.

نه روايت كوي. هغه فرمائي كه زهٔ مدينه كښ اوسئ په ځرند اووينم' نو هغه به نهٔ ويروم' ځكه چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم فرمائيلي دي' چه دَ دے دواړو كانړيجنو ميدانونو دَ مينځ حصّه حرام ده[۱].

۱. دے ځو بابونو كښ چه امام بخاري رحمة اللّٰه عليه كوم احاديث نقل كړيدي. دے سره امام بخاري رحمة اللّٰه عليه دا ښودل غواړي. چه ځنګ مكه مكرمه حرم دے داسے مدينه منوره هم حرم دے دے احاديثو مباركو كښ مدينے منورے ته حرم ويلے شويدے. د حنفي فقهے بعض كتابونو كښ دا بيان موجود دے چه مدينه منوره كوم حرم ندے.

علامه انور شاه كشميري رحمة اللّٰه عليه ليكلي دي. چه كله په احاديثو مباركو كښ دا په صراحت سره شته چه مدينه منوره حرم دے نو بيا د فقهے په كتابونو كښ چه كوم بيان دے. دا بيان ئے صحيح ندے اګرچه د بنياد په لحاظ سره د فقهي كتابونو دا خبره صحيح ده. خو عبادت داسے پكار وو. چه مدينه منوره حرم دے ليكن د مكے مكرّمے د حرم پشان حرم ندے. ځكه چه د مكے مكرّمے د حرم كوم احكام دي. هغه احكام د مدينے د حرم ندي. اګرچه د مدينے د حرم' حرمت ثابت دے ليكن د مكے مكرّمے د حرمت پشان ندے. د ټول اُمّت پدے اتفاق دے كه چرے د مكے شريف د حرم شريف كومه اونه ځوك پريكړي په هغے "جزاء" واجب كيږي. ليكن د مدينے منورے د حرم شريف كومه اونه كه ځوك پريكړي د هغے "جزاء نشته" په حديث شريف كښ دا واقعه په تفصيل سره شته دے چه نبي كريم صلي اللّٰه عليه وسلم كله مدينے منورے ته هجرت اوكړو. او مدينے منورے ته ئے تشريف راوړو. او د جومات (مسجد) د جوړولو اراده ئے اوكړه. نو د جومات پځائے كښ چه ځومره اونے د كهجورو وے هغه ئے ټولے پريكړے. داسے د مدينے منورے نور واقعات په احاديثو او قرآن مجيد كښ شته دے مثلاً د بنو نضير يهودي قبيلے د باغونو اونے ئے پريكړے وے.

باقي پاتے شوے دَ مدينے منورے د حرم شريف هغه اونے چه د كومے د پريكولو نه ئے منعه كړے ده نو د هغے مقصد دا وو چه د مدينے منورے داسے اونے مه پريكوئ چه د كومو پريكولو سره د حرم شريف رولق او ځائست ته نقصان رسيږي. باقي د مدينے منورے حرم شريف يو مقدس حرم دے او احكام ئے د مكے مكرمے د حرم شريف نه مختلف دي.

۴۵۵: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ اَخْبَرَنِيْ سَعِيْدُ ابْنُ الْمُسَيَّبِ اَنَّ اَبَا هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

۴۵۵: ابواليمان. شعيب. زهري. سعيد بن مسيب. ابوهريرهؓ نه روايت كوي' دَ هغهٔ بيان دے' ما دَ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم نه آوريدلے دي' چه تاسو خلق به مدينه ښهٔ حال كښ پريږدئے. بيا به

يَقُوْلُ يَتْرُكُوْنَ الْمَدِيْنَةَ عَلٰى خَيْرِ مَا كَانَتْ لَا يَغْشَاهَا اِلَّا الْعَوَافِ يُرِيْدُ عَوَافِي السِّبَاعِ وَالطَّيْرِ وَ اٰخِرُ مَنْ يُحْشَرُ رَاعِيَانِ مِنْ مُزَيْنَةَ يُرِيْدَانِ الْمَدِيْنَةَ يَنْعِقَانِ بِغَنَمِهِمَا فَيَجِدَانِهَا وَحُشًا حَتّٰى اِذَا بَلَغَ ثَنِيَّةَ الْوَدَاعِ خَرَّ عَلٰى وُجُوْهِهِمَا.

هلته خنګلي خناور يعنې درندګان او چرندګان خوارهٔ شي' او آخر کښ به دَ مزينه دوه غوبه يا ګله به (چرواهے) مدينے ته راشي' چه خپلے چيلئے اوشړي' نو هلته به صرف وحشي خناور يا مومي. بيا چه ثنية الوداع ته اورسي' نو پړمخے به راپريوځي.

۴۵۶: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ الزُّبَيْرِ عَنْ سُفْيَانَ بْنِ اَبِيْ زُهَيْرٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ اَنَّهٗ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ يُفْتَحُ الْيَمَنُ فَيَاْتِيْ قَوْمٌ يُبِسُّوْنَ فَيَتَحَمَّلُوْنَ بِاَهْلِيْهِمْ وَمَنْ اَطَاعَهُمْ وَالْمَدِيْنَةُ خَيْرٌ لَّهُمْ لَوْ كَانُوْا يَعْلَمُوْنَ وَ يُفْتَحُ الشَّامُ فَيَاْتِيْ قَوْمٌ يُبِسُّوْنَ فَيَتَحَمَّلُوْنَ بِاَهْلِيْهِمْ وَمَنْ اَطَاعَهُمْ وَالْمَدِيْنَةُ خَيْرٌ لَّهُمْ لَوْ كَانُوْا يَعْلَمُوْنَ وَ يُفْتَحُ الْعِرَاقُ فَيَاْتِيْ قَوْمٌ يُبِسُّوْنَ فَيَتَحَمَّلُوْنَ بِاَهْلِيْهِمْ وَمَنْ اَطَاعَهُمْ وَالْمَدِيْنَةُ خَيْرٌ لَّهُمْ لَوْ كَانُوْا يَعْلَمُوْنَ.

۴۵۶: عبدالله بن يوسف. مالک. هشام بن عروه. عروه. عبدالله بن زبير. سُفيان بن ابي زهير نه روايت کوي' ما دَ رسول الله صلي الله عليه وسلّم نه واوريدل' ملک يمن به فتح شي. يو جماعت به دَ سورلئ خناور شړي رابه شي او هغه خلق به خپل کور واله. او خوک چه دَ هغوي خبره مني' په هغے به ئے سوارهٔ بوځي حالانکه کهٔ هغوي پوهيدے' نو مدينه دَ هغوي دَ پاره بهتره وه. او ملک شام به فتح شي. يو جماعت به دَ سورلئ خناور راولي' او خپل کور واله او خوک چه دَ هغوي خبره مني' په هغے به ئے واچوي اوبو' به ئے ځي' حالانکه کهٔ هغوي ته معلومه وے' نو مدينه هغوي دَ پاره بهتره وه او عراق به فتح شي' نو يو جماعت به دَ سورلئ خناور په شړلو شړلو راولي' او خپل کور واله او خوک چه دَ هغوي خبره مني' هغوي به سوارهٔ بوځي. حالانکه مدينه دَ هغوي دَ پاره بهتره وه' کهٔ هغوي پوهيدلے[1].

## بَاب ۲۹۹ : اَلْاِيْمَانُ يَارِزُ اِلَى الْمَدِيْنَةِ.

## باب ۲۹۹ : ايمان به مدينے ته راغونه شي.

[1] دے احاديثو مبارکو کښ چه کومه پيشين ګوئي شويده هغه ټوله په پوره توګه پوره شوه.

او دا د نبي کریم صلي الله علیه وسلم په پیغمبرئ باندې عادل ګواه دے علامه کشمیري رحمة الله علیه لیکلي دي. چه اکثر د صحابهٔ کرامو رضي الله عنهم په حالاتو کښې شته دے چه کله هغوي د ملکونو فتحه کولو د پاره په لرے لرے علاقو کښې خواره واره شو. نو په خپل آخري وختونو مدینے منورے ته واپس راغلل او په دے مقدس ښهر کښې وفات شو او دلته په جنة البقیع کښې په خواره خوب اوده شو.

۴۵۷: حَدَّثَنَا اِبْرَاهِیْمُ بْنُ الْمُنْذِرِ حَدَّثَنَا اَنَسُ بْنُ عِیَاضٍ قَالَ حَدَّثَنِیْ عُبَیْدُ اللّٰهِ عَنْ خُبَیْبِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ حَفْصِ بْنِ عَاصِمٍ عَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِنَّ الْاِیْمَانَ لَیَأْرِزُ اِلَی الْمَدِیْنَةِ كَمَا تَأْرِزُ الْحَیَّةُ اِلٰی جُحْرِهَا.

۴۵۷: ابراهیم بن منذر. انس بن عیاض عبیدالله. خبیب بن عبدالرحمن. حفص بن عاصم حضرت ابوهریرةؓ نه روایت کوي. رسول الله صلی الله علیه وسلم او فرمائیل. ایمان به مدینے طرف ته راغونډ شي، ښکه چه مار خپلے سوړے ته راغونډ شي.

## باب ۳۰۰: اِثْمِ مَنْ كَادَ اَهْلَ الْمَدِیْنَةِ.

## باب ۳۰۰: ذ مدینے خلقو سره ذ فریب کونکو ذ ګناه بیان.

۴۵۸: حَدَّثَنَا حُسَیْنُ ابْنُ حُرَیْثٍ اَخْبَرَنَا الْفَضْلُ عَنْ جُعَیْدٍ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ سَمِعْتُ سَعْدًا رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِیَّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ یَقُوْلُ لَا یَكِیْدُ اَهْلَ الْمَدِیْنَةِ اَحَدٌ اِلَّا انْمَاعَ كَمَا یَنْمَاعُ الْمِلْحُ فِی الْمَآءِ.

۴۵۸: حسین بن حریث. فضل. جعید. عائشه بنت سعد. سعدؓ نه روایت کوي هغه اووے، ما ذ رسول الله صلی الله علیه وسلم نه واوریدل، چه ذ مدینے خلقو سره څوک هم فریب او کړي، هغه به داسے ویلے شي، لکه مالګه چه اوبو کښې ویلے کیږي.

## باب ۳۰۱: اٰطَامِ الْمَدِیْنَةِ.

## باب ۳۰۱: ذ مدینے ذ محلونو بیان.

۴۵۹: حَدَّثَنَا عَلِیٌّ حَدَّثَنَا سُفْیٰنُ حَدَّثَنَا ابْنُ شِهَابٍ قَالَ اَخْبَرَنِیْ عُرْوَةُ سَمِعْتُ اُسَامَةَ رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ اَشْرَفَ النَّبِیُّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ عَلٰی اُطُمٍ مِّنْ

۴۵۹: علي. سفیان. ابن شهاب. عروه. اسامهؓ نه روایت کوي. ذهغهٔ بیان دي، چه نبي صلی الله علیه وسلم ذ مدینے یو اوچت مکان ته اوخت، نو حضور صلی الله علیه وسلم او فرمائیل، آیا تاسو (هغه څه) وینئ، چه زهٔ یې وینم زهٔ ستاسو ذ کورونو

اطَامِ الْمَدِيْنَةِ فَقَالَ هَلْ تَرَوْنَ مَا أَرٰى إِنِّيْ لَأَرٰى مَوَاقِعَ الْفِتَنِ خِلَالَ بُيُوْتِكُمْ كَمَوَاقِعِ الْقَطْرِ تَابَعَهُ مَعْمَرٌ وَ سُلَيْمٰنُ ابْنُ كَثِيْرٍ عَنِ الزُّهْرِيِّ.

مینخ کښې د فتنو ځائے داسې وینم' څنګه چه د باران د څاڅکو د ګرځیدو ځائے معمر او سلیمان بن کثیر' زهري نه د دې متابع حدیث روایت کړے دے.

باب ۳۰۲: لَا يَدْخُلُ الدَّجَّالُ الْمَدِيْنَةَ.

باب ۳۰۲: دجال به مدینه کښې نه داخلیږي.

۴۶۰: حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنِيْ إِبْرَاهِيْمُ بْنُ سَعْدٍ عَنْ أَبِيْهِ عَنْ جَدِّهٖ عَنْ أَبِيْ بَكْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا يَدْخُلُ الْمَدِيْنَةَ رُعْبُ الْمَسِيْحِ الدَّجَّالِ لَهَا يَوْمَئِذٍ سَبْعَةُ أَبْوَابٍ عَلٰى كُلِّ بَابٍ مَلَكَانِ.

۴۶۰: عبدالعزیز بن عبدالله. ابراهیم بن سعد. د خپل پلار نه' هغه د هغه د نیکه (دادا) نه' هغه د ابوبکرهؓ نه' هغه د نبي صلے اللّٰه علیه وسلّم نه روایت کوي. حضور صلے اللّٰه علیه وسلّم او فرمائیل. مدینه کښې به د مسیح دجال خوف نه داخلیږي' هغه زمانه کښې به د مدینې اووه دروازې وي. او په هره دروازه به دوه فرېښتې وي.

۴۶۱: حَدَّثَنَا إِسْمٰعِيْلُ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنْ نُعَيْمِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ الْمُجْمِرِ عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلٰى أَنْقَابِ الْمَدِيْنَةِ مَلٰئِكَةٌ لَّا يَدْخُلُهَا الطَّاعُوْنُ وَلَا الدَّجَّالُ.

۴۶۱: اسمٰعیل. مالک. نعیم بن عبداللّٰه مجمر. حضرت ابوهریرهؓ نه روایت کوي. د هغه بیان دے. رسول اللّٰه صلے اللّٰه علیه وسلّم او فرمائیل د مدینې په دروازو به فرېښتې وي' هلته به نه طاعون او' نه دجال داخلیږي.

۴۶۲: حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيْمُ بْنُ الْمُنْذِرِ حَدَّثَنَا الْوَلِيْدُ حَدَّثَنَا أَبُوْ عَمْرٍو حَدَّثَنَا إِسْحٰقُ حَدَّثَنِيْ أَنَسُ بْنُ مَالِكٍ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَيْسَ مِنْ بَلَدٍ إِلَّا سَيَطَؤُهُ الدَّجَّالُ إِلَّا مَكَّةَ

۴۶۲: ابراهیم بن منذر. ولید. ابو عمرو. اسحٰق. انس بن مالکؓ. نبي صلے اللّٰه علیه وسلّم نه روایت کوي. حضور صلے اللّٰه علیه وسلّم او فرمائیل' هیڅ ښهر داسې نشته' چه هغه به دجال د خپو لاندې نه کړي' خو مکه او مدینه' چه هلته د' داخلیدو څومره لارې دي'

وَالْمَدِيْنَةَ لَيْسَ لَهُ مِنْ نِقَابِهَا نَقْبٌ اِلَّا عَلَيْهِ مَلٰئِكَةٌ صَافِّيْنَ يَحْرُسُوْنَهَا ثُمَّ تَرْجُفُ الْمَدِيْنَةُ بِاَهْلِهَا ثَلٰثَ رَجَفَاتٍ فَيُخْرِجُ اللّٰهُ كُلَّ كَافِرٍ وَّ مُنَافِقٍ.

په هغې به فرېښتې صف بسته موجود وي. او د هغوي نګراني به کوي. بیا مدینه به په مدینې والو درې ځله او رپېږي. او اللّٰه تعالیٰ به هر کافر او مُنافق دَ هلته نه بهر کړي.

۴۶۳: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنِ عُتْبَةَ اَنَّ اَبَا سَعِيْدٍ الْخُدْرِيَّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ حَدَّثَنَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَدِيْثًا طَوِيْلًا عَنِ الدَّجَّالِ فَكَانَ فِيْمَا حَدَّثَنَا بِهٖ اَنْ قَالَ يَاْتِي الدَّجَّالُ وَهُوَ مُحَرَّمٌ عَلَيْهِ اَنْ يَدْخُلَ نِقَابَ الْمَدِيْنَةِ بَعْضَ السِّبَاخِ بِالْمَدِيْنَةِ فَيَخْرُجُ اِلَيْهِ يَوْمَئِذٍ رَجُلٌ وَّهُوَ خَيْرُ النَّاسِ اَوْ مِنْ خَيْرِ النَّاسِ فَيَقُوْلُ اَشْهَدُ اَنَّكَ الدَّجَّالُ الَّذِيْ حَدَّثَنَا عَنْكَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَدِيْثَهُ فَيَقُوْلُ الدَّجَّالُ اَرَاَيْتَ اِنْ قَتَلْتُ هٰذَا ثُمَّ اَحْيَيْتُهُ هَلْ تَشُكُّوْنَ فِي الْاَمْرِ فَيَقُوْلُوْنَ لَا فَيَقْتُلُهُ ثُمَّ يُحْيِيْهِ فَيَقُوْلُ حِيْنَ يُحْيِيْهِ وَاللّٰهِ مَا كُنْتُ قَطُّ اَشَدَّ بَصِيْرَةً مِّنِّي الْيَوْمَ فَيَقُوْلُ الدَّجَّالُ اَقْتُلُهُ فَلَا يُسَلَّطُ عَلَيْهِ.

۴۶۳: یحیٰي. بن بکیر. لیث. عقیل. ابن شهاب. عبیداللّٰه بن عبداللّٰه بن عتبه. حضرت ابو سعید خدريؓ نه روایت کوي، هغه وائي، مونږ ته نبي صلے اللّٰه علیه وسلّم دَ، دجال متعلق یو اوږد حدیث بیان کړ. هغې کښې ئې دا هم بیان اوکړ، چه دجال به دَ مدینې په یوه ترخه زمکه راشي، او په هغه مدینه کښې دننه داخلیدل حرام کړې شوې دي په دغه ورځ به هغهٔ ته یو سړې راشي، چه بهترینو خلقو کښې به وي. او وائي به، زهٔ ګواهي کوم، تهٔ دجال ئې چه دَ هغهٔ متعلق رسول اللّٰه صلے اللّٰه علیه وسلّم مونږ ته حدیث بیان کړې دې. دجال به وائي. اووائې کهٔ زهٔ دا سړې قتل کړم او بیائې ژوندې کړم، نو بیا خما معامله کښې به خو، ستاسو څهٔ شک نهٔ وي. خلق به اووائي، نه، نو هغه به هغه سړې قتل کړي. او بیا به ئې ژوندې کړي، هر کله چه دجال هغه سړې ژوندې کړي، نو هغه سړې به وائي، په خدائې چه، دَ نن نه مخکښې ما ته دَ دې نه زیات حال معلوم نهٔ وو، تهٔ هم هغه دجال ئې. بیا به دجال وائي زهٔ دې قتلوم. لیکن په هغهٔ به ئې دا خل قدرت نهٔ وي.

باب ۳۰۳: اَلْمَدِيْنَةُ تَنْفِي الْخَبَثَ.

باب ۳۰۳: مدینه خراب سړې لرې کوي.

۴۶۴: حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَبَّاسٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمٰنِ حَدَّثَنَا سُفْيٰنُ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْكَدِرِ عَنْ جَابِرٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ جَآءَ اَعْرَابِيٌّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَبَايَعَهُ عَلَى الْإِسْلَامِ فَجَآءَ مِنَ الْغَدِ مَحْمُوْمًا فَقَالَ اَقِلْنِيْ فَاَبٰى ثَلٰثَ مِرَارٍ فَقَالَ الْمَدِيْنَةُ كَالْكِيْرِ تَنْفِيْ خَبَثَهَا وَ يَنْصَعُ طَيِّبُهَا.

۴۶۴: عمرو بن عباس. عبدالرحمن سفیان. محمد بن منکدر. جابر' نه روایت کوي يو اعرابي' نبي صلے الله علیه وسلّم له راغے' او د حضور صلے الله علیه وسلّم نه ئے په اسلام بیعت اوکۀ. ډ هغے نه په دوئمه ورځ داسے حال کښې راغے' چه تبے نیولے وو. هغه عرض اوکۀ' خما بیعت فسخ کړه. حضور صلے الله علیه وسلّم ترے درے ځله انکار اوکۀ' اوورے فرمائیل چه مدینه ډ بهټئ په شان ده چه میل کچیل لرے کوي او خالص پریږدي.

۴۶۵: حَدَّثَنَا سُلَيْمٰنُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَدِيِّ بْنِ ثَابِتٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ يَزِيْدَ قَالَ سَمِعْتُ زَيْدَ بْنَ ثَابِتٍ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ يَقُوْلُ لَمَّا خَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِلٰى اُحُدٍ رَّجَعَ نَاسٌ مِّنْ اَصْحَابِهٖ فَقَالَتْ فِرْقَةٌ نَقْتُلُهُمْ وَ قَالَ فِرْقَةٌ لَّا نَقْتُلُهُمْ فَنَزَلَتْ فَمَا لَكُمْ فِي الْمُنَافِقِيْنَ فِئَتَيْنِ وَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّهَا تَنْفِي الرِّجَالَ كَمَا تَنْفِي النَّارُ خَبَثَ الْحَدِيْدِ.

۴۶۵: سلیمان بن حرب. شعبه. عدي بن ثابت. عبدالله بن یزید. زید بن ثابت نه روایت کوي. کوم وخت چه ډ حضور صلے الله علیه وسلّم اُحد طرف ته روان شو. نو ډ حضور صلے الله علیه وسلّم ډ ملګرو يو جماعت (منافقین) واپس شولو. نو ځنے خلقو اووے' چه مونږ به دوئ قتل کړو. او بعضو اووے' چه مونږ ئے نۀ قتلوو' نو دا' آیت: فما لکم في المنافقین فئتین الخ نازل شو. او نبي صلے الله علیه وسلّم او فرمائیل' مدینه خراب سړي داسے لرے کوي' څنګه چه اُور ډ' اُوسپنے نه خیرے (میل) لرے کوي.

## باب ۳۰۴:

## باب ۳۰۴: (ډ دے باب عنوان نشته)

۴۶۶: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا وَهْبُ بْنُ جَرِيْرٍ حَدَّثَنَا اَبِيْ سَمِعْتُ يُوْنُسَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ اَنَسٍ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اَللّٰهُمَّ

۴۶۶: عبدالله بن محمد. وهب بن جریر. یونس. ابن شهاب. حضرت انسؓ. نبي صلے الله علیه وسلّم نه روایت کوي. حضور صلے الله علیه وسلّم او فرمائیل اے الله' مکه کښې چه کوم برکت تا

اجْعَلْ بِالْمَدِيْنَةِ ضِعْفَيْ مَا جَعَلْتَ بِمَكَّةَ مِنَ الْبَرَكَةِ تَابَعَهُ عُثْمٰنُ بْنُ عُمَرَ عَنْ يُوْنُسَ.

ایښے دے. مدینه کښې د هغے دوچند برکت واچوے. عثمان بن عمر، یونس نه د دے متابع حدیث روایت کړے دے.

۴۶۷: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ بْنُ جَعْفَرٍ عَنْ حُمَيْدٍ عَنْ اَنَسٍ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ اِذَا قَدِمَ مِنْ سَفَرٍ فَنَظَرَ اِلَى جُدُرَاتِ الْمَدِيْنَةِ اَوْضَعَ رَاحِلَتَهُ وَ اِنْ كَانَ عَلٰى دَآبَّةٍ حَرَّكَهَا مِنْ حُبِّهَا.

۴۶۷: قتیبه. اسمٰعیل بن جعفر. حمید. انسؓ نه روایت کوي. نبي صلے اللّٰه علیه وسلّم چه به سفر نه واپس کیدلو، او د مدینے دیوالونو ته به ئے کتل، نو خپله سورلي به ئے تیزوله. او که څه بل څه څناور باندے به سور، وو. نو د مدینے د محبّت د، وجے نه به ئے پونده ور کوله.

۴۶۸: حَدَّثَنَا ابْنُ سَلَامٍ اَخْبَرَنَا الْفَزَارِيُّ عَنْ حُمَيْدٍ الطَّوِيْلِ عَنْ اَنَسٍ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ اَرَادَ بَنُوْ سَلِمَةَ اَنْ يَّتَحَوَّلُوْا اِلٰى قُرْبِ الْمَسْجِدِ فَكَرِهَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنْ تُعْرَى الْمَدِيْنَةُ وَ قَالَ يَا بَنِيْ سَلِمَةَ اَلَا تَحْتَسِبُوْنَ اٰثَارَكُمْ فَاَقَامُوْا.

۴۶۸: ابن سلام. فزاري. حمید طویل. حضرت انسؓ نه روایت کوي. د هغهٔ بیان دے، چه بنو سلمه د مسجد نبوي قرب کښې منتقل کیدل غوښتل، نو نبي صلے اللّٰه علیه وسلّم مدینه پریښودل نا خوښه کړل. او وے فرمائیل اے بني سلمه، آیا تاسو د خپلو قدمونو ثواب نهٔ خوښوئے. نو هغه خلق هلته پاتے شو.

باب ۳۰۵:

باب ۳۰۵: (دا باب بے عنوانه دے)

۴۶۹: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ عَنْ يَحْيٰى عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ قَالَ حَدَّثَنِيْ خُبَيْبُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ حَفْصِ بْنِ عَاصِمٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَا بَيْنَ بَيْتِيْ وَ مِنْبَرِيْ رَوْضَةٌ مِّنْ رِّيَاضِ الْجَنَّةِ وَ

۴۶۹: مسدد. یحیٰي. عُبید اللّٰه بن عمر خبیب بن عبدالرحمٰن. حفص بن عاصم. حضرت ابوهریرهؓ. نبي صلے اللّٰه علیه وسلّم نه روایت کوي، حضور صلے اللّٰه علیه وسلّم او فرمائیل، خما د کور او خما د منبر په مینځ کښې د جنّت د باغونو نه یو باغ دے. او خما منبر خما په حوض

مِنْبَرِیْ عَلٰی حَوْضِیْ.

دے. (حوض نه مطلب حوض کوثر دے).

۱۷۰: حَدَّثَنَا عُبَیْدُ بْنُ اِسْمٰعِیْلَ حَدَّثَنَا اَبُوْ اُسَامَةَ عَنْ هِشَامٍ عَنْ اَبِیْهِ عَنْ عَآئِشَةَ رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ لَمَّا قَدِمَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ الْمَدِیْنَةَ وُعِكَ اَبُوْ بَكْرٍ وَ بِلَالٌ فَكَانَ اَبُوْ بَكْرٍ اِذَا اَخَذَتْهُ الْحُمّٰی یَقُوْلُ كُلُّ امْرِیءٍ مُّصَبَّحٌ فِیْ اَهْلِهٖ وَالْمَوْتُ اَدْنٰی مِنْ شِرَاكِ نَعْلِهٖ وَ كَانَ بِلَالٌ اِذَا اُقْلِعَ عَنْهُ الْحُمّٰی یَرْفَعُ عَقِیْرَتَهٗ یَقُوْلُ اَلَا لَیْتَ شِعْرِیْ هَلْ اَبِیْتَنَّ لَیْلَةً بِوَادٍ وَّ حَوْلِیْ اِذْخِرٌ وَّ جَلِیْلُ وَهَلْ اَرِدَنْ یَوْمًا مِیَاهَ مَجِنَّةٍ وَهَلْ یَبْدُوَنْ لِیْ شَآمَةٌ وَّ طَفِیْلُ قَالَ اَللّٰهُمَّ الْعَنْ شَیْبَةَ بْنَ رَبِیْعَةَ وَ عُتْبَةَ بْنَ رَبِیْعَةَ وَ اُمَیَّةَ بْنَ خَلَفٍ كَمَا اَخْرَجُوْنَا مِنْ اَرْضِنَا اِلٰی اَرْضِ الْوَبَآءِ ثُمَّ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ اَللّٰهُمَّ حَبِّبْ اِلَیْنَا الْمَدِیْنَةَ كَحُبِّنَا مَكَّةَ اَوْ اَشَدَّ اَللّٰهُمَّ بَارِكْ لَنَا فِیْ صَاعِنَا وَ فِیْ مُدِّنَا وَ صَحِّحْهَا لَنَا وَانْقُلْ حُمَّاهَا اِلَی الْجُحْفَةِ قَالَتْ وَ قَدِمْنَا الْمَدِیْنَةَ وَهِیَ اَوْبَا اَرْضِ اللّٰهِ قَالَتْ فَكَانَ بُطْحَانُ یَجْرِیْ نَجْلًا تَعْنِیْ مَآءً اٰجِنًا.

۱۷۰: عُبید بن اسمٰعیل. ابواسامه. هشام. عروه. بـي بـي عـائشـے نـه روایـت کـوي. د هغے بیان دے. کوم وخت چه رسـول الـلّـه صـلـے الـلّـه علیه وسلّم مدینے ته تشـریف راوړلـو. نـو ابـوبـکـرؓ او بلالؓ تبے اونیول. او پـه ابـوبـکـرؓ چه به تبه راغله. نو دا شعر به ئے ونیلے (ترجمه) هـر سـړے په خپل کور کښ صبا کوي، حالانکه مرګ د هـغـهٔ د پـنړو د تسمو نه هم زیات قریب دے. او د بلالؓ تبه چـه بـه لاړه، نـو اوچـت آواز سـره بـه ئے دا شعر ونیلے (ترجمه) کاش چه زهٔ د مکے وادئ کښ یو شپه پاتے وے، داسے حال کښ چه خما کیر چاپیره اِذخر او جلیل وابنهٔ وے. کـاش چـه مـا یـو ورځـے د مجنه اوبهٔ څکلے وے. او کـاش چـه مـا، شامه او طفیل بیا لیدلے وے. وے ونیل، اے اللّه، شیبه بن ربیعه او عتبه بن ربیعه او امیّه بن خلف باندے لـعـنت کـړے، ځنګه چه هغے خلقو مونږ د خپل وطن نه د وبـا زمـکـے تـه راوشـړلـو بیـا نبي صلي اللّه علیه وسلّم او فـرمـائل اے اللّه. خمونږ زړونو کښ د مدینے محبت پیدا کـړے، ځـنګه چه خمونږ مکے سره محبّت دے. یا، د دے نـه زیـات (محبّت مو پیدا کړے) اے اللّه، خمونږ صاع او خـمـونږ مد کښ برکت پیدا کړے. او د دے خائے آب و هوا خمونږ مطابق کړے. او د دے تبه (بخار) جحفه طرف تـه منتقل کـړے. د بي بي عائشےؓ بیان دے، چه مونږ مدینے تـه راغـلـو، نـو هغه د، اللّه زمکه کښ د تپولونه زیاته د، وبا واله زمکه وه[1]. او هلـته بطحان یوه ناله وه، چه د هغے نه ډیرے بدبوداره اوبهٔ لږے لږے بهیدلے.

[1] د رسـول الـلّـه صـلـي اللّه علیه وسلم په برکتي دعاګانو سره تپولے وبائي بیمارئي او تپول مرضونه

ختم شو.

**۴۷۱: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ خَالِدِ بْنِ يَزِيْدَ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ اَبِيْ هِلَالٍ عَنْ زَيْدِ بْنِ اَسْلَمَ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ اَللّٰهُمَّ ارْزُقْنِيْ شَهَادَةً فِيْ سَبِيْلِكَ وَاجْعَلْ مَوْتِيْ فِيْ بَلَدِ رَسُوْلِكَ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ قَالَ ابْنُ زُرَيْعٍ عَنْ رَوْحِ بْنِ الْقٰسِمِ عَنْ زَيْدِ بْنِ اَسْلَمَ عَنْ اُمِّهٖ عَنْ حَفْصَةَ بِنْتِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَتْ سَمِعْتُ عُمَرَ نَحْوَهٗ وَ قَالَ هِشَامٌ عَنْ زَيْدٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ حَفْصَةَ سَمِعْتُ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ تَعَالٰى عَنْهُ.**

۴۷۱: يحيي بن بکير. ليث. خالد بن يزيد. سعيد بن ابي هلال. زيد بن اسلم دَ خپل پلار نه، هغه دَ حضرت عمرؓ نه روايت کوي، هغهٔ دُعا اوکړه، چه اے اللّٰه، ځما خپله لاره کښې شهادت نصيب کړے. او ماله دَ خپل رسول اللّٰه صلی اللّٰه عليه وسلّم په ښهر کښې مرګ راکړے. او ابن زريع په واسطه دَ" روح بن قاسم. زيد بن اسلم دَ زيد بن اسلم مور. دَ حفصے بنت عُمر، قول نقل کړه، چه ما دَ عُمرؓ نه واؤريدل، او دغه شان حديث ئے بيان کهٔ. او هشام دَ، زيد نه، هغه دَ خپل پلار نه او هغهٔ دَ بي بي حفصےؓ نه روايت کړے دے، چه ما دَ حضرت عُمرؓ نه دغسے واؤريدل.

# كِتَابُ الصَّوْمِ

# دَ روژے بيان

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ط

**بَابُ ٣٠٦: وُجُوْبِ صَوْمِ رَمَضَانَ وَ قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا كُتِبَ عَلَيْكُمُ الصِّيَامُ كَمَا كُتِبَ عَلَى الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِكُمْ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُوْنَ.**

باب ٣٠٦: دَ، رمضان دَ، روژو دَ فرض کيدو بيان، او، دَ، اللّٰه تعالي قول، چه اے ايمان والؤ، په تاسو روژے فرض شوي دي، ځنګه چه ستاسو نه مخکنو خلقو بانديے فرض شوے وے. شايد چه تاسو پرهيزګار شئے.

**۴۷۲: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ بْنُ جَعْفَرٍ عَنْ اَبِيْ سُهَيْلٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ طَلْحَةَ بْنِ عُبَيْدِ اللّٰهِ اَنَّ اَعْرَابِيًّا**

۴۷۲: قتيبه بن سعيد. اسمٰعيل بن جعفر ابو سهيل دَ خپل پلار نه هغهٔ دَ طلحه بن عُبيد اللّٰه نه روايت کوي، يو اعرابي دَ رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلّم په خدمت کښې حاضر شو، ويښته ئے ګډوډ (پريشانه) وو.

جَآءَ اِلٰی رَسُوْلِ اللّٰہِ صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْہِ وَسَلَّمَ ثَائِرَ الرَّاْسِ فَقَالَ یَا رَسُوْلَ اللّٰہِ اَخْبِرْنِیْ مَاذَا فَرَضَ اللّٰہُ عَلَیَّ مِنَ الصَّلٰوۃِ فَقَالَ الصَّلَوَاتِ الْخَمْسَ اِلَّا اَنْ تَطَوَّعَ شَیْئًا فَقَالَ اَخْبِرْنِیْ مَا فَرَضَ اللّٰہُ عَلَیَّ مِنَ الصِّیَامِ فَقَالَ شَھْرَ رَمَضَانَ اِلَّا اَنْ تَطَوَّعَ شَیْئًا فَقَالَ اَخْبِرْنِیْ بِمَا فَرَضَ اللّٰہُ عَلَیَّ مِنَ الزَّکٰوۃِ فَقَالَ فَاَخْبَرَہٗ رَسُوْلُ اللّٰہِ صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْہِ وَسَلَّمَ شَرَآئِعَ الْاِسْلَامِ قَالَ وَالَّذِیْ اَکْرَمَکَ لَا اَتَطَوَّعُ شَیْئًا وَّلَا اَنْقُصُ مِمَّا فَرَضَ اللّٰہُ عَلَیَّ شَیْئًا فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰہِ صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْہِ وَسَلَّمَ اَفْلَحَ اِنْ صَدَقَ اَوْ دَخَلَ الْجَنَّۃَ اِنْ صَدَقَ.

هغهٔ عرض اوکهٔ' یا رسول اللّٰه' مونږ ته اوښایه' چه په مونږ اللّٰه خومره مونځونه فرض کړے دي. حضور صلے اللّٰه علیه وسلّم ورته او فرمائیل' پنځه مونځونه خو کهٔ ته نفل کوے' نو دا بیله خبره ده. بیا هغهٔ عرض او کهٔ' مونږ ته اوښائیے' چه اللّٰه په مونږ څو روژے فرض کړي دي. حضور صلے اللّٰه علیه وسلّم ورته او فرمائیل. دَ رمضان دَ میاشتے روژے. خو کهٔ ته نفلي روژے نیسے' نو دا بیله خبره ده. بیا هغهٔ عرض او که' مونږ ته اوښائیے' چه اللّٰه په مونږه څومره زکوٰة فرض کړے دے. دَ راوي بیان دے' چه رسول اللّٰه صلے اللّٰه علیه وسلّم هغهٔ ته دَ اِسلام طریقے اوښودلے. نو هغے سړي اووے' قسم دے په هغے ذات' چه هغه تاسو باعزته جوړ کړے ئے' زهٔ به نه دَ دے نه څهٔ زیات کوم. او نه به دَ دے نه کم. کوم چه اللّٰه تعالٰي په مونږ فرض کړے وي. رسول اللّٰه صلے اللّٰه علیه وسلّم او فرمائیل. دا سړے کامیاب دے' کهٔ په خپله خبره ټینګ پاتے شو. یا' دا' ئے او فرمائیل' دا سړے به جنت له ځي' کهٔ رښتینے وي.

۴۷۳: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا اِسْمٰعِیْلُ عَنْ اَیُّوْبَ عَنْ نَّافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِیَ اللّٰہُ عَنْھُمَا قَالَ صَامَ النَّبِیُّ صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْہِ وَ اٰلِہٖ وَسَلَّمَ عَاشُوْرَآءَ وَ اَمَرَ بِصِیَامِہٖ فَلَمَّا فُرِضَ رَمَضَانُ تُرِکَ وَ کَانَ عَبْدُ اللّٰہِ لَا یَصُوْمُہٗ اِلَّا اَنْ یُّوَافِقَ صَوْمَہٗ.

۴۷۳: مسدد. اسمٰعیل. ایوب. نافع. ابن عمرؓ نه روایت کوي' چه رسول اللّٰه صلے اللّٰه علیه وسلّم دَ عاشورے روژه اونیوله' او دَ دے دَ روژے حُکم ئے او کهٔ. کوم وخت چه دَ رمضان روژے فرض شوے. نو هغه ئے پریښودله او عبداللّٰه به په دغه ورځ روژه نهٔ نیوله' خو' دَ هغهٔ دَ روژو په ورځ چه به راتله' نو نیوله به ئے (په کومه ورځ چه به دَ هغهٔ دَ روژے عادت وو' کهٔ په هغه ورځ به راتله' نو نیوله به ئے)

۴۷۴: حَدَّثَنَا قُتَیْبَۃُ بْنُ سَعِیْدٍ

۴۷۴: قتیبه بن سعید. لیث. یزید

حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ يَزِيْدَ بْنِ اَبِيْ حَبِيْبٍ اَنَّ عِرَاكَ بْنَ مَالِكٍ حَدَّثَهُ اَنَّ عُرْوَةَ اَخْبَرَهُ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ تَعَالٰى عَنْهَا قَالَتْ اَنَّ قُرَيْشًا كَانَتْ تَصُوْمُ يَوْمَ عَاشُوْرَآءَ فِي الْجَاهِلِيَّةِ ثُمَّ اَمَرَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِصِيَامِهِ حَتّٰى فُرِضَ رَمَضَانُ وَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ شَآءَ فَلْيَصُمْهُ وَمَنْ شَآءَ اَفْطَرَ.

بن ابي حبيب. عراک بن مالک. عروه. بي بي عائشې نه روايت کوي. د هغې بيان دے. چه قريشو به د جاهليت به زمانه کښې د عاشورے روژه نيوله بيا رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلّم هم د هغې روژې حُکم او کړو. تردے چه کله د رمضان روژې فرض شوے نو رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل: څوک چه غواړي روژه دے کړي. او څوک چه غواړي کوژه دے کړي.

## باب۳۰۷: فَضْلِ الصَّوْمِ.

## باب۳۰۷: د روژو د فضيلت بيان.

۴۷۵: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْلَمَةَ عَنْ مَالِكٍ عَنْ اَبِي الزِّنَادِ عَنِ الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الصِّيَامُ جُنَّةٌ فَلَا يَرْفُثْ وَلَا يَجْهَلْ وَ اِنِ امْرُؤٌا قَاتَلَهُ اَوْ شَاتَمَهُ فَلْيَقُلْ اِنِّيْ صَائِمٌ مَرَّتَيْنِ وَالَّذِيْ نَفْسِيْ بِيَدِهٖ لَخُلُوْفُ فَمِ الصَّائِمِ اَطْيَبُ عِنْدَ اللّٰهِ تَعَالٰى مِنْ رِيْحِ الْمِسْكِ يَتْرُكُ طَعَامَهُ وَ شَرَابَهُ وَ شَهْوَتَهُ مِنْ اَجْلِيْ اَلصِّيَامُ لِيْ وَ اَنَا اَجْزِيْ بِهٖ وَالْحَسَنَةُ بِعَشْرِ اَمْثَالِهَا.

۴۷۵: عبداللّٰه بن مسلمه. مالک. ابوالزناد. اعرج. حضرت ابوهريرة نه روايت کوي، د هغهٔ بيان دے، رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، روژه ډهال دے[۱]. نو نه دے خرابه خبره کوي، او نه دے د جهالت خبره کوي. کهٔ څوک ورسره جګړه کوي يا ورته کنځل کوي، نو ورته دے وائي: چه زهٔ روژه دار يم. دوه ځله دے اووائي. قسم دے په هغه ذات چه د هغهٔ په قبضه کښې ځما ساه ده، چه د روژه دار د خوليونې د اللّٰه په نزد د مشکو د خوشبوئي نه بهتر دے. هغه خوراک څکاک او خپل زړهٔ پورے څيزونه ځما د خاطره پريږدي. روژے ځما دي[۲] او زهٔ د هغې بدله ورکوم. او نيکي په لس چنده ده.

۱. روژه، دنيا کښې د نفساني خواهشاتونه ډهال دے او په آخرت کښې د اللّٰه تعالیٰ د غضب، عذاب او دوزخ نه ډهال دے.

۲. د روژے نه علاوه نور عبادتونه داسے دي چه هغه د رياکارئ (د ځان ښودلو) د پاره کيدے شي.

بواخیے روژه داسے عبادت دے چه د هغے د اللّٰه تعالیٰ او د بنده په مینخ کښ تعلق وي. که یو بنده به بته خوراک څښاک کوي نو کولے شي. او که روژه پوره آدابو سره ساتي نو د هغے سبب د اللّٰه تعالیٰ ویره، د اللّٰه تعالیٰ د رضا مینه او د زړه تقوي کیدے شي. نو کله چه د روژے سبب د اللّٰه تعالیٰ ویره شوه. نو اللّٰه تعالیٰ به پخپله د هغے بدله ورکوي. نو پدے دے یو بنده غور اوکړي. چه کله انعام ورکونکے اللّٰه تعالیٰ وي او هغه پخپله انعام ورکوي. پدے وجه چه یو کار خاص د هغه د پاره شوے دے نو هغه انعام به د څومره لویے درجے وي. اګرچه د نورو عملونو بدله به هم د اللّٰه تعالیٰ د طرفه ورکولے شي. لیکن داسے معلومیږي چه روژه کښ څه لوئے خاصیت دے. چه اللّٰه تعالیٰ دا عمل خپل خان د پاره ګرځوي. او بدله به ئے هم پخپله ورکوي. اللّٰه تعالیٰ د ټولو غنیانو نه لوئے غني دے هغه چه کله انعام ورکوي بے حسابه بے اندازے رحمت، ببښنه، او سخا مخکښ وي نو بیا د اللّٰه تعالیٰ د انعام و اکرام اندازه څوک لګولے شي عامه قاعده دا ده. چه د نیکئ بدله د اصل نه لس چنده زیاته وي.

## باب ۳۰۸: اَلصَّوْمُ كَفَّارَةٌ.

۴۷۶: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيٰنُ حَدَّثَنَا جَامِعٌ عَنْ اَبِيْ وَائِلٍ عَنْ حُذَيْفَةَ قَالَ قَالَ عُمَرُ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ مَنْ يَّحْفَظُ حَدِيْثًا عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْفِتْنَةِ قَالَ حُذَيْفَةُ اَنَا سَمِعْتُهُ يَقُوْلُ فِتْنَةُ الرَّجُلِ فِيْ اَهْلِهٖ وَمَالِهٖ وَ جَارِهٖ تُكَفِّرُهَا الصَّلٰوةُ وَالصِّيَامُ وَ الصَّدَقَةُ قَالَ لَيْسَ اَسْاَلُ عَنْ ذِهٖ اِنَّمَا اَسْئَلُ عَنِ الَّتِيْ تَمُوْجُ كَمَا يَمُوْجُ الْبَحْرُ قَالَ وَاِنَّ دُوْنَ ذٰلِكَ بَابًا مُغْلَقًا قَالَ فَيُفْتَحُ اَوْ يُكْسَرُ قَالَ يُكْسَرُ قَالَ ذَاكَ اَجْدَرُ اَنْ لَّا يُغْلَقَ اِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ فَقُلْنَا لِمَسْرُوْقٍ سَلْهُ اَكَانَ عُمَرُ يَعْلَمُ مَنِ الْبَابُ فَسَاَلَهٗ فَقَالَ نَعَمْ كَمَا يَعْلَمُ اَنَّ دُوْنَ غَدٍ اللَّيْلَةَ.

## باب ۳۰۸: روژه ذ ګناهونو کفاره ده.

۴۷۶: علي بن عبداللّٰه. سُفیان. جامع ابو وائل. حذیفه. حضرت عمرؓ او فرمائیل، ذ نبي صلے اللّٰه و اله وسلم نه ذ فتنے متعلق حدیثونه چاته زیات یاد دي. حذیفه اووے، زۀ ئے تاسوته آوروم، چه ذ انسان آزمائش ذ هغه بال بچ ذ هغۀ مال او ګوانډي کښ کیږي. مونځ، روژه او صدقه د هغے ذ پاره کفاره وي. حضرت عمرؓ او فرمائیل، زۀ د دے متعلق تپوس نۀ کوم، زۀ خو، د هغے متعلق تپوس کوم، چه ذ سمندر ذ موجونو په شان به چپے وهي. وے وئیل. د دے نه وړاندے یوه بنده دروازه ده. تپوس ئے اوکۀ، پرابه نستے شي یا ماته به کړے شي. وے وئیل، ماته به کړے شي او دا، به ذ دے لائق نۀ وي، چه ذ قیامته پورے دے بنده شي. مونږ خلقو مسروق ته اووے، چه د هغۀ نه تپوس اوکړئے، آیا عمرؓ ته معلومه وه، چه دروازه څوک دے. مسروق د هغۀ نه تپوس اوکۀ، نو هغۀ ورته اووے، او، څنګه چه هغۀ ته ذ صبا ورځے نه پس ذ، راتلونکے شپے یقین دے.

## بـــاب ۳۰۹: الـــرَّيَّـــانِ

## باب ۳۰۹: روژه دارو ذ پـاره ريّان ده. (ذ جنّت

لِلصَّآئِمِيْنَ.

٤٧٧: حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ مَخْلَدٍ حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ بِلَالٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبُوْ حَازِمٍ عَنْ سَهْلٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِنَّ فِي الْجَنَّةِ بَابًا يُّقَالُ لَهُ الرَّيَّانُ يَدْخُلُ مِنْهُ الصَّآئِمُوْنَ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ لَا يَدْخُلُ مِنْهُ اَحَدٌ غَيْرُهُمْ فَاِذَا دَخَلُوْا اُغْلِقَ فَلَمْ يَدْخُلْ مِنْهُ اَحَدٌ.

يوه دروازه)

٤٧٧: خالد بن مخلد. سُليمان بن بلال. ابو حازم. سهل. نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم نه روايت کوي. حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، جنت کښې يوه دروازه ده، چه هغې ته ريّان[1] وئيلے شي. دَ قيامت په ورځ به په دې دروازه روژه دار، داخليږي بل څوک به نهٔ داخليږي. او به وئيلے شي، چه روژه دار کوم ځائے دي. دغه خلق به اودريږي، په دې دروازه به دَ هغوي نه سِوا نور څوک نشي داخليدے. کوم وخت چه هغوي داخل شي، نو هغه دروازه به بنده کړے شي. او هغې کښې به بل هيڅوک نهٔ داخليږي.

١. رَيّان د رَيّ لفظ نه جوړ دے چه د هغې معني خړوب کول دي. د دې دروازې نوم د روژه دارو د خصوصيت په وجه کيخودے شويدي. او د قيامت په ورځې يواځې روژه لرونکے خلقو ته جنت کښې ننوتلو د پاره د دې دروازې خاص اعزاز ورکولے شي. حديث شريف کښې دي. چه څوک د دې دروازې نه جنت ته لاړ شي هغه به چرې نه تږے کيږي.

٤٧٨: حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ ابْنُ الْمُنْذِرِ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَعْنٌ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ حُمَيْدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ اَنْفَقَ زَوْجَيْنِ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ نُوْدِيَ مِنْ اَبْوَابِ الْجَنَّةِ يَا عَبْدَ اللّٰهِ هٰذَا خَيْرٌ فَمَنْ كَانَ مِنْ اَهْلِ الصَّلٰوةِ دُعِيَ مِنْ بَابِ الصَّلٰوةِ وَمَنْ كَانَ مِنْ اَهْلِ الْجِهَادِ دُعِيَ مِنْ بَابِ الْجِهَادِ وَمَنْ كَانَ مِنْ اَهْلِ الصِّيَامِ دُعِيَ مِنْ بَابِ

٤٧٨: ابراهيم بن منذر. معن. مالک. ابن شهاب. حميد بن عبدالرحمٰن. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت کوي، نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل چا چه دَ خدائے په لار کښې جوړه (دوه څيزونه) خرڅ کړل، هغه به دَ جنت دَ دروازو نه بللے شي اے دَ خدائے بنده، دا، دروازه ښهٔ ده. څوک چه مونځ ګذار، وي، هغه به دَ، مونځ دَ دروازې نه بللے شي. او کوم سړے چه مجاهد وي، هغه به دَ، جهاد، دروازې نه بللے شي. او کوم سړے چه دَ صدقه ورکونکو نه وي، هغه به دَ صدقې دَ، دروازې نه بللے شي. حضرت ابوبکرؓ عرض او کهٔ، يا رسول اللّٰه، خما مور پلار دې په تاسو قربان وي. دې

الرَّيَّانِ وَمَنْ كَانَ مِنْ اَهْلِ الصَّدَقَةِ دُعِيَ مِنْ بَابِ الصَّدَقَةِ فَقَالَ اَبُوْ بَكْرٍ رَضِيَ اللّٰهِ مَا عَلٰى مَنْ دُعِيَ مِنْ تِلْكَ الْاَبْوَابِ مِنْ ضَرُوْرَةٍ فَهَلْ يُدْعٰى اَحَدٌ مِّنْ تِلْكَ الْاَبْوَابِ كُلِّهَا قَالَ نَعَمْ وَ اَرْجُوْٓا اَنْ تَكُوْنَ مِنْهُمْ.

دروازو کښې چه د کومې دروازې نه څوک 'و بللې شي' په هغۀ څۀ حرج نشته. خو څوک داسې به هم وي' چه د دې ټولو دروازو نه به بللې شي. حضور صلی الله علیه وسلّم او فرمائیل. او. اوزۀ اُمید کوم. چه تۀ به د' دوئ نه ئې (یعني د ټولو دروازو نه به بللې شې).

باب ١٠٣١: هَلْ يُقَالُ رَمَضَانُ اَوْ شَهْرُ رَمَضَانَ وَمَنْ رَّاٰى كُلَّهٗ وَاسِعًا وَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ صَامَ رَمَضَانَ وَقَالَ لَا تُقَدِّمُوْا رَمَضَانَ.

باب ١٠٣١: کۀ رمضان او وئيلې شي يا ماهِ رمضان اووئيلې شي. او بعضو دواړه جائز ګڼړلې دي. او نبي صلی الله علیه وسلّم فرمائيلې دي چا چه د رمضان روژې اونيولې. او فرمائيلې دي. د' رمضان نه مخکښې روژې مۀ نيسئ.

۹۷۹: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ بْنُ جَعْفَرٍ عَنْ اَبِيْ سُهَيْلٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِذَا جَآءَ رَمَضَانُ فُتِحَتْ اَبْوَابُ الْجَنَّةِ.

۹۷۹: قتيبه. اسمٰعيل بن جعفر. ابو سهيل' د خپل پلار نه' او هغه د حضرت ابوهريرهؓ نه روايت کوي هغه وائي' رسول الله صلی الله علیه وسلّم او فرمائيل' کوم وخت چه رمضان راځي' نو د جنت دروازې پرانستې شي.

۹۸۰: حَدَّثَنِيْ يَحْيَى ابْنُ بُكَيْرٍ قَالَ حَدَّثَنِي اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ اَخْبَرَنِي ابْنُ اَبِيْ اَنَسٍ مَوْلَى التَّيْمِيِّيْنَ اَنَّ اَبَاهُ حَدَّثَهٗ سَمِعَ اَبَا هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ يَقُوْلُ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا دَخَلَ شَهْرُ رَمَضَانَ فُتِحَتْ اَبْوَابُ السَّمَآءِ وَ غُلِّقَتْ اَبْوَابُ جَهَنَّمَ وَ سُلْسِلَتِ الشَّيٰطِيْنُ.

۹۸۰: يحيي بن بکير. ليث. عقيل ابن شهاب. ابن ابي انس (د' تيميانو غلام) ابي انس حضرت ابوهريرهؓ نه روايت کوي' رسول الله صلی الله علیه وسلّم اوفرمائيل. کله چه د' رمضان مياشت راشي' نو د' آسمان دروازې پرانستې شي. او د جهنم دروازې بندې شي. او شيطانان زنځيرونو کښې اوتړلې شي.

١٨٤١: حَدَّثَنَا يَحْيَى ابْنُ بُكَيْرٍ قَالَ حَدَّثَنِي اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ اَخْبَرَنِي سَالِمٌ اَنَّ ابْنَ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ اِذَا رَاَيْتُمُوْهُ فَصُوْمُوْا وَ اِذَا رَاَيْتُمُوْهُ فَاَفْطِرُوْا فَاِنْ غُمَّ عَلَيْكُمْ فَاقْدُرُوْا لَهٗ وَ قَالَ غَيْرُهٗ عَنِ اللَّيْثِ حَدَّثَنِيْ عُقَيْلٌ وَّ يُوْنُسُ لِهِلَالِ رَمَضَانَ.

١٨٤١: يحيي بن بكير. ليث. عقيل ابن شهاب. سالم. ابن عمرؓ روايت كوي، ما دَ رسول الله صلي الله عليه وسلم نه واؤريدل چه كله تاسو دَ رمضان مياشت اووينئ، نو روژے نيسئ. او د شوال مياشت چه اووينئ، نو افطار كوئ. كهٔ په تاسو وريخ خوره شوے وي، نو دَ هغے اندازه واخلئ (ديرش ورځے پوره كړئ) او دَ يحيي نه علاوه نورو خلقو دَ ليث نه دغه شان روايت كړے دے، چه ماته عقيل او يونس دَ رمضان دَ مياشت متعلق بيان او كهٔ.

بَابُ ١١٣١: مَنْ صَامَ رَمَضَانَ اِيْمَانًا وَّاحْتِسَابًا وَّنِيَّةً وَ قَالَتْ عَائِشَةُ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُبْعَثُوْنَ عَلٰى نِيَّاتِهِمْ.

باب ١١٣١: دَهغے سړي بيان، چه هغه ايمان سره، دَ ثواب په غرض نيت اوكهٔ. او دَ رمضان روژے ئے اونيولے. او بي بي عائشہؓ دَ نبي صلي الله عليه وسلم نه روايت كړے دے، چه خلق به دَ خپلو نيتونو مطابق پاسولے شي.

١٨٤٢: حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ اِبْرَاهِيْمَ حَدَّثَنَا هِشَامٌ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ اَبِيْ سَلَمَةَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ قَامَ لَيْلَةَ الْقَدْرِ اِيْمَانًا وَّ احْتِسَابًا غُفِرَ لَهٗ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهٖ.

١٨٤٢: مسلم بن ابراهيم. هشام. يحيي بن ابي سلمه. ابوهريرةؓ. نبي صلے الله عليه وسلم نه روايت كوي. حضور صلے الله عليه وسلم او فرمائيل، كوم سړے چه شب قدر كښې ايمان سره او دَ ثواب په نيت (مانځه ته) اودريږي، نو دَ هغهٔ تيرے گناه ببنلے شي، او چا چه ايمان سره او دَ ثواب په نيت دَ رمضان روژے اونيولے، دَ هغهٔ مخكښے گناه ببنلے شي.

١٨٤٣: حَدَّثَنَا مُوْسَى ابْنُ اِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ سَعْدٍ اَخْبَرَنَا بْنُ شِهَابٍ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُتْبَةَ اَنَّ ابْنَ عَبَّاسٍ

١٨٤٣: موسي بن اسمعيل. ابراهيم بن سعد. ابن شهاب. عبيدالله بن عبدالله بن عتبه. ابن عباسؓ نه روايت كوي، نبي صلے الله عليه وسلم نفع رسولو كښې خلقو كښې دَ ټولو نه زيات سخي وو.

قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَجْوَدَ النَّاسِ بِالْخَيْرِ وَ كَانَ اَجْوَدَ مَا يَكُوْنُ فِيْ رَمَضَانَ حِيْنَ يَلْقَاهُ جِبْرِيْلُ وَ كَانَ جِبْرِيْلُ عَلَيْهِ السَّلَامُ يَلْقَاهُ كُلَّ لَيْلَةٍ فِيْ رَمَضَانَ حَتّٰى يَنْسَلِخَ يَعْرِضُ عَلَيْهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْقُرْاٰنَ فَاِذَا لَقِيَهٗ جِبْرِيْلُ عَلَيْهِ السَّلَامُ كَانَ اَجْوَدَ بِالْخَيْرِ مِنَ الرِّيْحِ الْمُرْسَلَةِ.

او رمضان كښې چه جبرائيلؑ به ورسره يوځائے كيدلو، نو نور به هم سخي كيدلو. او جبرائيلؑ به حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم سره رمضان كښې هره شپه يوځائے كيدلو، تردے چه رمضان به تير شولو. جبرائيلؑ به د حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم مخكښې قرآن لوستلو. كله چه به جبرائيل حضور سره يوځائے كيدلو، نو حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم به د رواني هوانه هم زيات سخي كيدلو.

بَابٌ ١٢١٣: مَنْ لَّمْ يَدَعْ قَوْلَ الزُّوْرِ وَالْعَمَلَ بِهٖ فِي الصَّوْمِ.

باب ١٢١٣: د هغے سړي بيان، چه هغه روژه كښې دروغ وئيل، او په هغے نے عمل كول ترک نۀ كړل.

٤٨٤: حَدَّثَنَا اٰدَمُ ابْنُ اَبِيْ اِيَاسٍ حَدَّثَنَا ابْنُ اَبِيْ ذِئْبٍ حَدَّثَنَا سَعِيْدُ نِ الْمَقْبُرِيُّ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ لَّمْ يَدَعْ قَوْلَ الزُّوْرِ وَالْعَمَلَ بِهٖ فَلَيْسَ لِلّٰهِ حَاجَةٌ فِيْ اَنْ يَّدَعَ طَعَامَهٗ وَ شَرَابَهٗ.

٤٨٤: آدم بن ابي اياس. ابن ابي ذئب. سعيد مقبري د خپل پلار نه او هغه د حضرت ابوهريرةؓ نه روايت كوي، رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، چا چه دروغ وئيل او په هغے نے عمل كول ترک نۀ كړل، نو اللّٰه تعالي ته د هغه د خوراک څښاک پريښودلو هيڅ ضرورت نشته.

بَابٌ ١٢١٣: هَلْ يَقُوْلُ اِنِّيْ صَائِمٌ اِذَا شُتِمَ.

باب ١٢١٣: كۀ چاته كنځل اوشي، نو آيا دا وئيلے شي، چه زۀ روژه داريم.

٤٨٥: حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ ابْنُ مُوْسٰى اَخْبَرَنَا هِشَامُ بْنُ يُوْسُفَ عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عَطَآءٌ عَنْ اَبِيْ صَالِحِ نِ الزَّيَّاتِ اَنَّهٗ سَمِعَ اَبَا هُرَيْرَةَ

٤٨٥: ابراهيم بن موسي. هشام بن يوسف. ابن جريج. عطاء. ابو صالح زيات. ابوهريرةؓ روايت كوي، رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، اللّٰه تعالي فرمائيلے دي. د انسان د هر عمل بدله ده، خو روژه چه

رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ يَقُوْلُ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اللّٰهُ كُلُّ عَمَلِ ابْنِ اٰدَمَ لَهٗ اِلَّا الصِّيَامَ فَاِنَّهٗ لِيْ وَ اَنَا اَجْزِيْ بِهٖ وَالصِّيَامُ جُنَّةٌ وَّ اِذَا كَانَ يَوْمُ صَوْمِ اَحَدِكُمْ فَلَا يَرْفُثْ وَلَا يَصْخَبْ فَاِنْ سَابَّهٗ اَحَدٌ اَوْ قَاتَلَهٗ فَلْيَقُلْ اِنِّيْ امْرُؤٌا صَآئِمٌ وَالَّذِيْ نَفْسُ مُحَمَّدٍ بِيَدِهٖ لَخَلُوْفُ فَمِ الصَّآئِمِ اَطْيَبُ عِنْدَ اللّٰهِ مِنْ رِّيْحِ الْمِسْكِ لِلصَّآئِمِ فَرْحَتَانِ يَفْرَحُهُمَا اِذَا اَفْطَرَ فَرِحَ وَ اِذَا لَقِيَ رَبَّهٗ فَرِحَ بِصَوْمِهٖ.

هغه خاص خما دَ پاره ده، او زهٔ دَ هغې بدله ورکوم، او روژه ډهال دے. هر کله چه تاسو کښې دَ چا دَ روژے ورځ وي. نو نه دے شور کوي او نه دے فحش خبرے کوي. کهٔ څوک سړے هغهٔ سره جګړه کوي یا کنځل ورته کوي، نو ورته دے اووائي، چه زهٔ روژه داریم. او قَسم دے په هغه ذات، چه دَ هغهٔ قبضه کښې دَ محمّدْ ساه ده، دَ روژه دار، دَ خولے بوئي دَ اللّٰه په نزد دَ مشکو دَ خوشبوئے زیات بهتر دے. روژه دارته دوه خوشحالئے حاصلیږي (۱) کوم وخت چه روژه ماتوي، نو خوشحالیږي (۲) او کوم وخت چه خپل رب سره یوځائے شي، نو دَ روژے په سبب به خوشحاله شي.

**باب ۳۱۴: الصَّوْمِ لِمَنْ خَافَ عَنْ نَّفْسِهِ الْعُزُوْبَةَ.**

**باب ۳۱۴:** دَ هغے سړي دَ روژے بیان، چه دَ ناوادهٔ کیدو په وجه زنا کښې دَاخته کیدو نه یریږي.

**۴۸۶:** حَدَّثَنَا عَبْدَانُ عَنْ اَبِيْ حَمْزَةَ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ اِبْرَاهِيْمَ عَنْ عَلْقَمَةَ قَالَ بَيْنَا اَنَا اَمْشِيْ مَعَ عَبْدِ اللّٰهِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ فَقَالَ كُنَّا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ مَنِ اسْتَطَاعَ الْبَآءَةَ فَلْيَتَزَوَّجْ فَاِنَّهٗ اَغَضُّ لِلْبَصَرِ وَ اَحْصَنُ لِلْفَرْجِ وَمَنْ لَّمْ يَسْتَطِعْ فَعَلَيْهِ بِالصَّوْمِ فَاِنَّهٗ لَهٗ وِجَآءٌ.

**۴۸۶:** عبدان. ابوحمزه. اعمش. ابراهیم. علقمه نه روایت دے. هغه وائي. زهٔ عبدالرحمٰن سره روان ووم، نو هغهٔ اووے. مونږ نبي صلے اللّٰه علیه وسلّم سره وو، حضور صلے اللّٰه علیه وسلّم او فرمائیل. کوم سړے چه دَ مهر ادا کولو صلاحیت لري، نو هغه دے نکاح اوکړي، ځکه چه هغه نظر ښکته کوي او شرم ګاه دَ زنا نه محفوظ ساتي. او دَ چا چه دَ دے طاقت نهٔ وي، نو هغه دے روژے نیسي، ځکه چه روژے هغه خصي کوي.

**باب ۳۱۵: قَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا رَاَيْتُمُ الْهِلَالَ فَصُوْمُوْا وَ اِذَا رَاَيْتُمُوْهُ فَاَفْطِرُوْا** وَ قَالَ صِلَةُ عَنْ عَمَّارٍ مَّنْ صَامَ يَوْمَ الشَّكِّ

**باب ۳۱۵:** دَ نبي صلے اللّٰه علیه وسلّم فرمائیل، چه کله تاسو میاشت اووینئے، نو روژه نیسئے. او کله چه میاشت اووینئے، نو روژه ماته کړئے. او صله دَ عمار نه روایت اوکهٔ، چه چا دَ شک په ورځ روژه اونیوله، نو

فَقَدْ عَصٰی اَبَا الْقَاسِمِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ

هغه دَ ابوالقاسم صلّي اللّٰه علیه وسلّم نافرماني او کړله۱.

۱. چه کله دا شک وي چه دا ورځے د شعبان د میاشتے یو کم دیرشم تاریخ دے او دا شک وي چه سپوږمۍ اولیدے شوه یا نه، نو د دغے ورځے روژه نیول مکروهه دي د احنافو علماؤ په کتابونو کښ لیکلے دي "که خواص، فقهاء، عالمان که د شک په ورځ روژه اونیسي نو پدے کښ څه ګناه نشته.

۴۸۷: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ مَسْلَمَةَ عَنْ مَّالِكٍ عَنْ نَّافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ ذَکَرَ رَمَضَانَ فَقَالَ لَا تَصُوْمُوْا حَتّٰی تَرَوُا الْهِلَالَ وَلَا تُفْطِرُوْا حَتّٰی تَرَوْهُ فَاِنْ غُمَّ عَلَیْکُمْ فَاقْدِرُوْا لَهٗ.

۴۸۷: عبداللّٰه بن مسلمه. مالک. نافع. عبداللّٰه بن عمرؓ نه روایت کوي. دَ هغهٔ بیان دے، چه رسول اللّٰه صلی اللّٰه علیه وسلّم دَ رمضان تذکره اوکړه، نو وے فرمائیل. څو پورے چه میاشت اونهٔ وینئے، نو روژه مهٔ نیسئے او، مه ئے ماتوئے، تر دے چه میاشت اووینئے. او کهٔ وریځ وي، نو دیرش ورځے پوره کړئے.

۴۸۸: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْلَمَةَ حَدَّثَنَا مَالِكٌ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ دِیْنَارٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الشَّهْرُ تِسْعٌ وَّ عِشْرُوْنَ لَیْلَةً فَلَا تَصُوْمُوْا حَتّٰی تَرَوْهُ فَاِنْ غُمَّ عَلَیْکُمْ فَاَکْمِلُوا الْعِدَّةَ ثَلٰثِیْنَ.

۴۸۸: عبداللّٰه بن مسلمه. مالک. عبداللّٰه بن عمرؓ. عبداللّٰه بن عمرؓ نه روایت کوي. دَ هغهٔ بیان دے، نبي صلے اللّٰه علیه وسلّم فرمائیلے دي، چه میاشت دَ یو کم دیرشو شپو هم وي، نو څو پورے چه تاسو میاشت اونهٔ وینئے. روژه مهٔ نیسئے، او څو پورے چه میاشت اونهٔ وینئے، نو افطار مهٔ کوئے. او کهٔ وریځ وي، نو دیرش ورځے پوره کړئے.

۴۸۹: حَدَّثَنَا اَبُو الْوَلِیْدِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ جَبَلَةَ بْنِ سُحَیْمٍ قَالَ سَمِعْتُ ابْنَ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا یَقُوْلُ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ الشَّهْرُ هٰکَذَا وَ هٰکَذَا وَ خَنَسَ الْاِبْهَامَ فِي الثَّالِثَةِ.

۴۸۹: ابوالولید. شعبه. جبله بن سحیم. حضرت ابن عمرؓ نه روایت کوي، هغه وائي نبي صلے اللّٰه علیه وسلّم او فرمائیل میاشت دَ، دومره دومره ورځو وي. او غټه ګوته ئے په دریم وار، دباؤ کړله۱.

۱. د کوټو په اشارو سره رسول الله صلي الله علیه وسلم د یو میاشتې د ورځو حد او ښودلو. په یو لاس کښې پنځه ګوتې وي او په دوه لاسونو کښې لس ګوتې وي. د دواړه لاسونو لس ګوتې ئې درې ځله اوچتې کړې او اوئې ښودلې چه میاشت کښې دیرش ورځې وي د روایت مطابق په دریم ځل ئې قتهه ګوته بنده کړه. چه د هغې دا مطلب دې چه میاشت کښې یو کم دیرش ورځې هم وي. یو میاشت په قمري حساب کښې د دیرشو نه زیاتې ورځې نوي او یو کم دیرش باندې هم ختمیږي.

۴۹۰: حَدَّثَنَا اٰدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ زِيَادٍ قَالَ سَمِعْتُ اَبَا هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ يَقُوْلُ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَوْ قَالَ قَالَ اَبُو الْقَاسِمِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صُوْمُوْا لِرُؤْيَتِهٖ وَ اَفْطِرُوْا لِرُؤْيَتِهٖ وَ اِنْ غُبِّيَ عَلَيْكُمْ فَاَكْمِلُوْا عِدَّةَ ثَلٰثِيْنَ.

۴۹۰: ادم. شعبه. محمد بن زیاد. حضرت ابوهریره نه روایت کوي هغه وائي. نبي صلی الله علیه وسلم او فرمائیل. یا دائې اووې، ابوالقاسم صلی الله علیه وسلم او فرمائیل، چه میاشت اووینئې، نو روژې نیسئې. او، چه میاشت اووینئې، نو ماتوئې ئې. او که وریځ وي، نو دیرش ورځې په شمار پوره کړئې.

۴۹۱: حَدَّثَنَا اَبُوْ عَاصِمٍ عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ عَنْ يَحْيَى بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ صَيْفِيٍّ عَنْ عِكْرَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ اُمِّ سَلَمَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اٰلٰى مِنْ نِسَائِهٖ شَهْرًا فَلَمَّا مَضٰى تِسْعَةٌ وَّ عِشْرُوْنَ يَوْمًا غَدَا اَوْ رَاحَ فَقِيْلَ لَهٗ اِنَّكَ حَلَفْتَ اَنْ لَّا تَدْخُلَ شَهْرًا فَقَالَ اِنَّ الشَّهْرَ يَكُوْنُ تِسْعَةً وَّ عِشْرِيْنَ يَوْمًا.

۴۹۱: ابوعاصم. ابن جریج. یحيٰی بن عبدالله بن صیفي. عکرمه بن عبدالرحمٰن. اُم سلمهؓ نه روایت کوي، چه نبي صلی الله علیه وسلم خپلو بیبیانو سره یوه میاشت ذ صحبت نهٔ کولو قسم خوړلې وو. کوم وخت یو کم دیرش ورځې پوره شوې نو سحر یا ماښام وخت حضور صلی الله علیه وسلم هغوئ پله تشریف راوړلو، حضور صلی الله علیه وسلم ته عرض اوشو، تاسو خو، یو میاشت پورې کور والو ته د، نهٔ راتلو قسم خوړلې وو، حضور صلی الله علیه وسلم ورته او فرمائیل. میاشت ذ، یو کم دیرش ورځو هم وي.

۴۹۲: حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُلَيْمٰنُ بْنُ بِلَالٍ عَنْ حُمَيْدٍ عَنْ اَنَسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ اٰلٰى رَسُوْلُ

۴۹۲: عبدالعزیز بن عبدالله. سُلیمان بن بلال. حمید. انسؓ نه روایت کوي. هغه اووې، رسول الله صلی الله علیه وسلم قسم خوړلې وو. چه یو میاشت به خپلو بیبیانوله نهٔ ورځي. او ذ حضور صلی الله علیه وسلم پښو

اللهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ نِسَائِهِ وَ كَانَتِ انْفَكَّتْ رِجْلُهُ فَاَقَامَ فِيْ مَشْرَبَةٍ تِسْعًا وَّ عِشْرِيْنَ لَيْلَةً ثُمَّ نَزَلَ فَقَالُوْا يَا رَسُوْلَ اللهِ آلَيْتَ شَهْرًا فَقَالَ إِنَّ الشَّهْرَ يَكُوْنُ تِسْعًا وَّ عِشْرِيْنَ.

كښې بـريـخ پيدا شوے وو. حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم يو كـم ديـرش شپـو پـورے بالاخانه كښې وو. بيا راكوز شـولـو. خلقو عرض اوكړو يا رسول اللّٰه، تاسو خو دَ يو مياشت پـورے دَ جدائي قسم خوړلے وو. حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل. مياشت دَ، يو كم ديرش ورځو هم وي.

**بـاب۲۱٦: شَهْـــرَا عِيْــدٍ لَّا يَنْقُصَانِ** قَالَ اَبُوْ عَبْدِاللهِ قَالَ اِسْحٰقُ وَ اِنْ كَانَ نَاقِصًا فَهُوَ تَمَامٌ وَّ قَالَ مُحَمَّدٌ لَّا يَجْتَمِعَانِ كِلَاهُمَا نَاقِصٌ.

**باب۲۱٦: دَ، اختـر دواړه مياشتے كمے نهٔ وي**

دَ، ابـو عبـداللّٰه (بخاري) بيان دے، چه اسحاق اووے، كهٔ كمے وي، نو ثواب (يعني دَ، ديرشو ورځو) ورکيږي. او محمّد بن سيرين اووے چه دواړه دے دَ يو كم ديرشو ورځو وي، داسے نشي كيدے[1].

[1] حديث شريف كښې دا خوشخبري وركړے شويده. كه د مياشت ورځے يو كم ديرش دي نو بيا هم د ديرشو ورځو پوره ثواب وركيږي.

**۴۹۳:** حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا مُعْتَمِرٌ قَالَ سَمِعْتُ اِسْحٰقَ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ اَبِيْ بَكْرَةَ عَنْ اَبِيْهِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ح وَ حَدَّثَنِيْ مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا مُعْتَمِرٌ عَنْ خَالِدٍ الْحَذَّاءِ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ اَبِيْ بَكْرَةَ عَنْ اَبِيْهِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ شَهْرَانِ لَا يَنْقُصَانِ شَهْرَا عِيْدٍ رَمَضَانُ وَ ذُو الْحَجَّةِ.

**۴۹۳:** مسدد. معتمر. اسحق. عبدالرحمٰن بن ابي بكر. ابوبكر. نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم نه روايت كوي. ح (دوئم سند) مسدد. معتمر. خالد. حذاء. عبدالرحمٰن بن ابي بكره. ابوبكرهؓ. نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم روايت كوي، حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، دَ، اختر دواړه مياشتے يعني رمضان او ذي الحجه كمے نهٔ وي.

**باب۲۱۷: قَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا نَكْتُبُ وَلَا نَحْسُبُ.**

**بـاب۲۱۷: دَ نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم فرمائيل، چه مونږ خلق حساب كتاب نهٔ پيژنو.**

۴۹۴: حَدَّثَنَا اٰدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا الْاَسْوَدُ بْنُ قَيْسٍ حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ عَمْرٍو اَنَّهٗ سَمِعَ ابْنَ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهٗ قَالَ اِنَّا اُمَّةٌ اُمِّيَّةٌ لَا نَكْتُبُ وَلَا نَحْسُبُ الشَّهْرُ هٰكَذَا وَ هٰكَذَا يَعْنِيْ مَرَّةً تِسْعَةً وَّ عِشْرِيْنَ وَ مَرَّةً ثَلٰثِيْنَ.

۴۹۴: آدم. شعبه. اسود بن قیس. سعید بن عمرو. حضرت ابن عمرؓ. نبي صلی الله علیه وسلّم نه روایت کوي، حضور صلی الله علیه وسلّم اوفرمائیل، مونږ خلق ناخوانده (آن پړه) قوم یو. لیک لوست او حساب کتاب نه پیژنو. میاشت دَ دومره دومره ورځو، یعني کله دَ یو کم دیرشو ورځو، او کله دَ دیرشو ورځو، وي.

باب ۳۱۸: لَا يَتَقَدَّمَنَّ رَمَضَانَ بِصَوْمِ يَوْمٍ وَّلَا يَوْمَيْنِ.

باب ۳۱۸: دَ رمضان نه یو، دوه، ورځې مخکښې دې روژه نهٔ نیسي.

ا. داسې احادیثو مبارکو کښې مخکښې دا حکم تیر شویدې چه د شک په ورځې دې روژه نشي ساتلې. که چرې یو کم دیرشم تاریخ باندې سپوږمئ او نه لیدې شوه دوړه وه. یا وریځ وه او دا فیصله او نشوه چه سپوږمئ اولیدې شوه یا نه، نو د راتلونکې ورځ دې نشي نیولې. دې حدیث شریف کښې دا حکم دې چه د رمضان نه یوه ورځې یا دوه ورځې مخکښې دې روژه نشي ساتلې. د دې احادیثو دا مقصد دې چه داسې روژه ساتلو سره د رمضان بلې میاشتې سره د ګډوډ کیدو خطره ده او شریعت داسې طریقه نه خوښوي. په دې وجه بیا، بیا رسول الله صلي الله علیه وسلم او فرمایل "چه سپوږمئ اوینئې نو روژې شروع کړئ او چه سپوږمئ اوینئې نو اختر اوکړئ" په دې سلسله کښې یو بل حدیث شریف هم دې چه د هغې روایت امام ترمذي رحمة الله علیه کړې دې. "چه کله د شعبان میاشت نیمې ته اورسي نو بیا روژې مه نیسی" علامه انور شاه کشمیري رحمة الله علیه لیکلې دي. چه په اُمت باندې د شفقت او د مهربانئ په وجه د روژې ساتلو نه، منعه شویده، چه د رمضان مبارکه میاشت را روانه ده. نو اوس د هغې د پاره تیاري کول دي او روژې ساتل پکار ندي. چه هسې نه چرته کمزورې شئ خکه چه رمضان د عبادت او د خوارئ (محنت) میاشت ده. او چه کوم حدیث شریف کښې د یوې ورځ یا د دوو ورځو د رمضان نه مخکښې د روژو منعه شویده. د هغې مقصد دا دې چه د شریعت مقرر کړي حدونو کښې د هیڅ قسم مداخلت اونشي او د زیات احتیاط په وجه د نفلو او فرضو فرق پاتې نشي" د دې وجې نه بعضې احناف فقهاؤ (عالمانو) لیکلې دي. چه خاص عالمانو د پاره د شک د ورځې روژه ساتلو کښې څه ګناه نشته. خکه چه عالمانو نه دا امید کیدې شي. چه د شریعت حدونه قائم اوساتي. د حدیث شریف د آخري حصې دا مطلب دې چه د یو بنده دا عادت وي چه په یو خاص ورځ روژه نیسي او هغه ورځې په اتفاقي ډول په یو کم دیرشم یا اتویشتم تاریخ باندې راشي نو هغه بنده دې په هغه ورځ روژه اونیسي.

۴۹۵: حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ

۴۹۵: مسلم بن ابراهیم. هشام. یحیٰي

اِبْرَاهِيْمَ حَدَّثَنَا هِشَامٌ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ اَبِيْ كَثِيْرٍ عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا يَتَقَدَّمَنَّ اَحَدُكُمْ رَمَضَانَ بِصَوْمِ يَوْمٍ اَوْ يَوْمَيْنِ اِلَّا اَنْ يَكُوْنَ رَجُلٌ كَانَ يَصُوْمُ صَوْمَهُ فَلْيَصُمْ ذَالِكَ الْيَوْمَ.

بن ابي كثير. ابو سلمه. حضرت ابوهريرهؓ نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم نه روايت كوي، حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، تاسو كښې دې څوک دَ رمضان روژې يو يا دوه ورځې مخكښې نه نيسي. خو هغه سړے چه په دغه ورځ ئے برابر روژه برابر ساتله. نو هغه دې په هغه ورځ روژه اونيسي.

بَاب ۳۱۹: قَوْلِ اللّٰهِ جَلَّ ذِكْرُهٗ اُحِلَّ لَكُمْ لَيْلَةَ الصِّيَامِ الرَّفَثُ اِلٰى نِسَآئِكُمْ هُنَّ لِبَاسٌ لَّكُمْ وَاَنْتُمْ لِبَاسٌ لَّهُنَّ عَلِمَ اللّٰهُ اَنَّكُمْ كُنْتُمْ تَخْتَانُوْنَ اَنْفُسَكُمْ فَتَابَ عَلَيْكُمْ وَعَفَا عَنْكُمْ فَالْئٰنَ بَاشِرُوْهُنَّ وَابْتَغُوْا مَا كَتَبَ اللّٰهُ لَكُمْ.

باب ۳۱۹: دَ اللّٰه تعالٰي فرمائيل، چه ستاسو دَ پاره دَ روژو په شپو كښې خپلو بيبيانو سره صحبت كول حلال كړے شو. هغه ښځے ستاسو دَ پاره او تاسو دَ هغوي دَ پاره لباس ئے. اللّٰه تعالٰي ته معلومه ده، چه تاسو به په پټه داسے كول، هغه تاسوته توجّه اوكړه او معاف ئے كړئے. نو اوس تاسو هغوئ سره صحبت كوئے. او اللّٰه تعالٰي چه څهٔ ستاسو دَ پاره ليكلے دي، هغه تلاش كوے.

۱۷۹٦: حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ مُوْسٰى عَنْ اِسْرَآءِيْلَ عَنْ اَبِيْ اِسْحٰقَ عَنِ الْبَرَآءِ قَالَ كَانَ اَصْحٰبُ مُحَمَّدٍ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا كَانَ الرَّجُلُ صَآئِمًا فَحَضَرَ الْاِفْطَارُ فَنَامَ قَبْلَ اَنْ يُّفْطِرَلَمْ يَاْكُلْ لَيْلَتَهٗ وَلَا يَوْمَهٗ حَتّٰى يُمْسِيَ وَاِنَّ قَيْسَ بْنَ صِرْمَةَ الْاَنْصَارِيَّ كَانَ صَآئِمًا فَلَمَّا حَضَرَ الْاِفْطَارُ اَتَى امْرَاَتَهٗ فَقَالَ لَهَا اَعِنْدَكِ طَعَامٌ قَالَتْ لَا. وَلٰكِنْ اَنْطَلِقُ

۱۷۹٦: عُبيداللّٰه بن موسي. اسراء يل ابو اسحاق. براء. روايت كوي، دَ مُحمّد صلے اللّٰه عليه وسلّم صحابهؓ كښې به چه كله څوک روژه دار وو، او دَ روژه ماتے وخت به راغے. او دَ روژه ماتے نه مخكښې به اُودهٔ شولو، نو نه به ئے په هغه شپه خوراک كولو، او نه دَ ورځے، تردے چه مابنام به شولو. قيس بن صرمه انصاري يو وار روژه دار وو، چه دَ روژه ماتي وخت راغے، نو خپلے بي بي له راغے، او تپوس ئے اوكړ، چه تاسره دَ خوراک څهٔ څيز شته. ښځے جواب وركړ. نه. خو، زهٔ ځم، او ستا دَ پاره كورم، راوړم، هغه زمانه كښې به

فَاَطْلُبُ لَكَ وَ كَانَ يَوْمَهُ يَعْمَلُ فَغَلَبَتْهُ عَيْنَاهُ فَجَآءَ تْهُ امْرَاَتُهُ فَلَمَّا رَاَتْهُ قَالَتْ خَيْبَةً لَكَ فَلَمَّا انْتَصَفَ النَّهَارُ غُشِيَ عَلَيْهِ فَذُكِرَ ذَالِكَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَنَزَلَتْ هٰذِهِ الْاٰيَةُ اُحِلَّ لَكُمْ لَيْلَةَ الصِّيَامِ الرَّفَثُ اِلٰى نِسَآئِكُمْ فَفَرِحُوْا بِهَا فَرَحًا شَدِيْدًا وَ نَزَلَتْ فَكُلُوْا وَاشْرَبُوْا حَتّٰى يَتَبَيَّنَ لَكُمُ الْخَيْطُ الْاَبْيَضُ مِنَ الْخَيْطِ الْاَسْوَدِ.

دهٔ مزدوري کوله، نو خوب پرې غلبه اوکړه. او اُوده شولو. چه ښځې اولید، نو وې وئیل، په تا افسوس دې. په دونمه ورځ چه دَ زوال وخت شو، نو بیهوشه شولو. نبي صلی الله علیه وسلّم ته دا واقعه بیان کړې شوه، نو دا آیت نازل شو، چه: دَ روژو په شپو کښې ستاسو دَ پاره خپلو بیبیانو سره صحبت کول حلال کړې شو. صحابهٔ په دې ډېر خوشحاله شو. او دا آیت نازل شو، چه خورئ، څکئ، ځو پورې چه سپین مزې دَ تور مزي نه په تاسو څرګند نشي[۱]. (یعني ځو پورې چه صُبح صادق نشي)

۱. د دې آیتونو شان نزول کښې د نورو واقعاتو په احادیثو مبارکو کښې ذکر دې خو دا څه لرې نده. چه د آیت نازلیدو ډېرې وجې کېدې شي.

باب ۱۰۲۰: قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى وَ كُلُوْا وَاشْرَبُوْا حَتّٰى يَتَبَيَّنَ لَكُمُ الْخَيْطُ الْاَبْيَضُ مِنَ الْخَيْطِ الْاَسْوَدِ مِنَ الْفَجْرِ ثُمَّ اَتِمُّوا الصِّيَامَ اِلَى الَّيْلِ فِيْهِ الْبَرَآءُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

باب ۱۰۲۰: دَ اللّٰه تعالٰي فرمائیل چه خورئ څکئ، څو پورې چه سپین تار، دَ تور تار نه تاسو ته څرګند نشي. بیا روژې دَ شپې پورې پوره کړئ. دې باب کښې دَ براءؓ حدیث دَ نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم نه منقول دې.

۱۷۹۷: حَدَّثَنَا حَجَّاجُ بْنُ مِنْهَالٍ حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ قَالَ اَخْبَرَنِيْ حُصَيْنُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنِ الشَّعْبِيِّ عَنْ عَدِيِّ بْنِ حَاتِمٍ قَالَ لَمَّا نَزَلَتْ حَتّٰى يَتَبَيَّنَ لَكُمُ الْخَيْطُ الْاَبْيَضُ مِنَ الْخَيْطِ الْاَسْوَدِ عَمَدْتُ اِلٰى عِقَالٍ اَسْوَدَ وَ اِلٰى عِقَالٍ اَبْيَضَ فَجَعَلْتُهُمَا تَحْتَ وِسَادَتِيْ فَجَعَلْتُ اَنْظُرُ فِيْ

۱۷۹۷: دَ حجاج بن منهال. هشیم. حصین بن عبدالرحمٰن. شعبي. عدي بن حاتم. نه روایت کوي، چه هر کله آیت: حتي یتبین لکم الخیط الابیض من الخیط الاسود الخ نازل شولو، نو مونږ دَ تور او سپین دواړو رنګونو رسۍ دَ بالښت لاندې کېښودلې. ما دَ شپې کتل لیکن دَ دې رنګ ظاهر نه شولو، سحر وخت کښې دَ رسول اللّٰه صلی اللّٰه علیه وسلّم خدمت

اللَّيۡلِ فَلَا يَسۡتَبِيۡنُ لِيۡ فَغَدَوۡتُ اِلٰى رَسُوۡلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ فَذَكَرۡتُ لَهٗ ذَالِكَ فَقَالَ اِنَّمَا ذَالِكَ سَوَادُ اللَّيۡلِ وَ بَيَاضُ النَّهَارِ.

کښې حاضر شوم ما ورته دا حال بیان کړلو نو حضور صلے اللّٰه علیه وسلّم او فرمائیل د دې نه مراد د شپې تور والې او د سحر سپین والې دې.

۴۹۸: حَدَّثَنَا سَعِيۡدُ بۡنُ اَبِيۡ مَرۡيَمَ حَدَّثَنَا ابۡنُ اَبِيۡ حَازِمٍ عَنۡ اَبِيۡهِ عَنۡ سَهۡلِ بۡنِ سَعۡدٍ ح وَ حَدَّثَنِيۡ سَعِيۡدُ بۡنُ اَبِيۡ مَرۡيَمَ حَدَّثَنَا اَبُوۡ غَسَّانَ مُحَمَّدُ بۡنُ مُطَرِّفٍ قَالَ حَدَّثَنِيۡ اَبُوۡ حَازِمٍ عَنۡ سَهۡلِ بۡنِ سَعۡدٍ قَالَ اُنۡزِلَتۡ وَ كُلُوۡا وَاشۡرَبُوۡا حَتّٰى يَتَبَيَّنَ لَكُمُ الۡخَيۡطُ الۡاَبۡيَضُ مِنَ الۡخَيۡطِ الۡاَسۡوَدِ وَلَمۡ يَنۡزِلۡ مِنَ الۡفَجۡرِ فَكَانَ رِجَالٌ اِذَا اَرَادُوا الصَّوۡمَ رَبَطَ اَحَدُهُمۡ فِيۡ رِجۡلِهِ الۡخَيۡطَ الۡاَبۡيَضَ وَالۡاَسۡوَدَ وَلَمۡ يَزَلۡ يَاۡكُلُ حَتّٰى يَتَبَيَّنَ لَهٗ رُؤۡيَتُهُمَا فَاَنۡزَلَ اللّٰهُ بَعۡدُ مِنَ الۡفَجۡرِ فَعَلِمُوۡٓا اَنَّهٗ اِنَّمَا يَعۡنِي اللَّيۡلَ وَالنَّهَارَ.

۴۹۸: سعید بن ابي مریم. ابن ابي حازم ابو حازم. سهل بن سعد. ح. (دوئم سند) سعید بن ابي مریم. ابو غسّان. مُحمّد بن مطرف. ابو حازم. سهل بن سعدؓ نه روایت کوي، هغهٔ بیان اوکهٔ، کوم وخت چه آیت: کلوا واشربوا حتي یتبین لکم الخیط الابیض من الخیط الاسود نازل شولو. او دَ من الفجر لفظ لا نازل شوے نهٔ وو، او خلقو چه به دَ روژے ساتلو اراده کوله، نو بعضے خلقو به خپلو پښو کښې سپین او تور تار اوتړلو، او برابر خوراک څکاک به ئے کولو، څو پورے چه دَ هغے رنګ به څرګند شوے نهٔ وو، نو اللّٰه تعالي من الفجر لفظ نازل کړلو، اوس خلقوته معلومه شوه، چه دَ دے نه مراد شپه او ورځ ده.

باب ۱۳۲۱: قَوۡلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ لَا يَمۡنَعَنَّكُمۡ مِنۡ سُحُوۡرِكُمۡ اَذَانُ بِلَالٍ.

باب ۱۳۲۱: دَ نبي صلے اللّٰه علیه وسلّم فرمائیل، چه دَ بلالؓ آذان دے تاسو، دَ پیشمني خوړلو نه منع نهٔ کړي.

۴۹۹: حَدَّثَنَا عُبَيۡدُ بۡنُ اِسۡمٰعِيۡلَ عَنۡ اَبِيۡ اُسَامَةَ عَنۡ عُبَيۡدِ اللّٰهِ عَنۡ نَافِعٍ عَنِ ابۡنِ عُمَرَ وَالۡقَاسِمِ بۡنِ مُحَمَّدٍ عَنۡ عَائِشَةَ اَنَّ بِلَالًا كَانَ يُؤَذِّنُ بِلَيۡلٍ فَقَالَ رَسُوۡلُ اللّٰهِ صَلَّى

۴۹۹: عُبید بن اسمٰعیل. ابو اسامه. عُبید اللّٰه. نافع. ابن عمر او قاسم بن محمّد. بي بي عائشےؓ نه روایت کوي، چه بلالؓ به دَ شپے آذان ورکولو، نو رسول اللّٰه صلے اللّٰه علیه او فرمائیل، خورئے څکئے، څو پورے چه ابن مکتوم آذان اونهٔ کړي، ځکه

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كُلُوْا وَاشْرَبُوْا حَتّٰى يُؤَذِّنَ ابْنُ اُمِّ مَكْتُوْمٍ فَاِنَّهُ لَا يُؤَذِّنُ حَتّٰى يَطْلُعَ الْفَجْرُ قَالَ الْقَاسِمُ وَلَمْ يَكُنْ بَيْنَ اَذَانِهِمَا اِلَّا اَنْ يَّرْقِيَ ذَا وَ يَنْزِلَ ذَا.

چه ابن مکتوم هغه وخته پورے آذان نهٔ کوي، ځو پورے چه سحر راونهٔ خیژي. او قاسم بیان اوکړ، چه دَ دے دواړو دَ آذانونو په مینځ کښې به صرف دومره فرق وو، چه یو به ختلو، او بل به کوزیدلو[۱].

۱. دا حدیث شریف وړاندے تیر شویدے او دا حدیث شریف په کتاب الصوم کښې امام بخاري رحمة اللّٰه علیه د دے د پاره ذکر کوي چه اولنے اذان د پیشمني د وخت ښودلو د پاره وو ځرنګ چه احناف واني.

د دینه دا هم معلومیږي. چه دوي به پیشمنے په آخري وخت کښې کوو د پیشمني د خوراک اوز کاریدو نه به سمدستي صبا ختلو او رمضان کښې به د صبا مونځ رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلم صبا ختلو سره سمدستي په تیاره کښې ادا کوو ځکه چه هغوي ته به مونځ کښې شاملیدو د پاره، مسجد نبوي ته حاضریدل وو او بیا بیا راتلل ګران وو.

## باب ۳۲۲: تَاخِيْرِ السُّحُوْرِ.

باب ۳۲۲: پیشمني کښې دَ تاخیر کولو بیان.

۵۰۰: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عُبَيْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ اَبِيْ حَازِمٍ عَنْ اَبِيْ حَازِمٍ عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍؓ قَالَ كُنْتُ اَتَسَحَّرُ فِيْ اَهْلِيْ ثُمَّ تَكُوْنُ سُرْعَتِيْ اَنْ اُدْرِكَ السُّجُوْدَ مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۵۰۰: محمد بن عبید اللّٰه. عبدالعزیز بن ابي حازم. ابو حازم. سهل بن سعد نه روایت کوي، دَ هغهٔ بیان دے، چه ما به خپل کور کښې پیشمنے اوکړلو. بیا به په ما، دَ دے خبرے تادي وه، چه زهٔ رسول اللّٰه صلے اللّٰه علیه وسلّم سره دَ سحر مونځ اوکړم.

## بَابٌ ۳۲۳: قَدْرِ كَمْ بَيْنَ السُّحُوْرِ وَ صَلٰوةِ الْفَجْرِ.

باب ۳۲۳: دَ پیشمني او دَ سحر مونځ کښې به څومره فرق وو.

۵۰۱: حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ اِبْرَاهِيْمَ حَدَّثَنَا هِشَامٌ حَدَّثَنَا قَتَادَةُ عَنْ اَنَسٍؓ عَنْ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍؓ قَالَ تَسَحَّرْنَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ قَامَ اِلَى الصَّلٰوةِ قُلْتُ كَمْ كَانَ بَيْنَ الْاَذَانِ وَالسُّحُوْرِ قَالَ قَدْرُ

۵۰۱: مسلم بن ابراهیم. هشام. قتاده. انس. زید بن ثابت روایت کوي، چه مونږ به نبي صلے اللّٰه علیه وسلّم سره پیشمنے اوخوړلو، نو بیا به حضور صلے اللّٰه علیه وسلّم مونځ دَ پاره اودریدلو. دَ انسؓ بیان دے، ما تپوس اوکړ، دَ آذان او پیشمني په مینځ کښې څومره فرق وو، نو هغهٔ اووے، دَ پنځوس آیتونو دَ لوستو

خَمْسِيْنَ اٰيَةً.

برابر.

باب ۳۲۴: بَرَكَةِ السُّحُوْرِ مِنْ غَيْرِ اِيْجَابٍ لِاَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَصْحٰبَهٗ وَاصَلُوْا وَلَمْ يُذْكَرِ السُّحُوْرُ.

باب ۳۲۴: دَ پيشمني دَ بركت بيان، خو، دا چه دا واجب نهٔ دے، ځکه چه نبي صلے الله عليه وسلّم او د حضور صلے الله عليه وسلّم صحابه وٓ پرله پسے روژے نيسلے. او هغے کښ دَ پيشمني ذکر نشته.

۵۰۲: حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ اِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا جُوَيْرِيَةُ عَنْ نَّافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَاصَلَ فَوَاصَلَ النَّاسُ فَشَقَّ عَلَيْهِمْ فَنَهَاهُمْ قَالُوْا اِنَّكَ تُوَاصِلُ قَالَ لَسْتُ كَهَيْئَتِكُمْ اِنِّيْ اَظَلُّ اُطْعَمُ وَ اُسْقٰى.

۵۰۲: موسي بن اسمٰعيل. جويريه. نافع عبدالله نه روايت دے، چه نبي صلے الله عليه وسلّم پرله پسے روژے اونيولے، نو خلقوهم پرله پسے روژے اونيولے. رسول الله صلے الله عليه وسلّم اوفرمائيل زهٔ ستاسو خلقو په شان نهٔ يم، په ما خو، خوروَلے څکولے شي.[۱]

۱. پرله پسے څو ورځے پيشمنے او د روژے ماتے خوراک څښاک نه کول او روژه ساتلو ته صَوم الوصَال وئيلے شي نبي كريم صلي الله عليه وسلم به داسے روژے نيولے. او اُمّت ئے د داسے روژو نيولو نه منعه کړے وو. چه په اُمّت مشقت او تکليف رانشي.

۵۰۳: حَدَّثَنَا اٰدَمُ ابْنُ اَبِيْ اِيَاسٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ عَنْ صُهَيْبٍ قَالَ سَمِعْتُ اَنَسَ بْنَ مَالِكٍ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَسَحَّرُوْا فَاِنَّ فِي السُّحُوْرِ بَرَكَةً.

۵۰۳: آدم بن ابي اياس. شعبه. عبدالعزيز بن صهيب. انس بن مالکؓ نه روايت کوي. دَ هغه بيان دے، نبي صلے الله عليه وسلّم او فرمائيل پيشمنے کونے، ځکه چه پيشمني کولو کښ بركت دے.

باب ۳۲۵: اِذَا نَوٰى بِالنَّهَارِ صَوْمًا وَّ قَالَتْ اُمُّ الدَّرْدَاءِ كَانَ اَبُو الدَّرْدَاءِ يَقُوْلُ عِنْدَكُمْ طَعَامٌ فَاِنْ قُلْتُ لَا قَالَ فَاِنِّيْ صَائِمٌ يَوْمِيْ هٰذَا وَ فَعَلَهٗ اَبُوْ طَلْحَةَ وَ اَبُوْ هُرَيْرَةَ وَابْنُ

باب ۳۲۵: دَ، روژے نيت دَ، ورځے دَ کولو بيان او اُم درداء بيان کوي، ابو درداء به تپوس کولو چه تاسره دَ خوراک څهٔ څيز شته، کهٔ ما به جواب ورکهٔ، چه نشته، نو هغهٔ به وئيلے، چه نن خما روژه ده، ابو طلحهؓ. ابوهريرهؓ. ابن عباسؓ او حذيفهؓ هم دغسے کړے

عَبَّاسٍ وَ حُذَيْفَةَ.

دي.

۵۰۴ : حَدَّثَنَا اَبُوْ عَاصِمٍ عَنْ يَزِيْدَ بْنِ اَبِيْ عُبَيْدٍ عَنْ سَلَمَةَ ابْنِ الْاَكْوَعِ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعَثَ رَجُلًا يُنَادِيْ فِي النَّاسِ يَوْمَ عَاشُوْرَآءَ اَنْ مَنْ اَكَلَ فَلْيُتِمَّ اَوْ فَلْيَصُمْ وَمَنْ لَمْ يَاْكُلْ فَلَا يَاْكُلْ.

۵۰۴ : ابوعاصم. يزيد بن ابي عُبيد. سلمه بن اکوع. نه روايت کوي، چه نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم د عاشورے په ورځ يو سړے اوليږلو، چه اعلان اوکړي: چه چا دوډي خوړلے ده، هغه دے مابندامه پورے نه خوري. يا، دے روژه اونيسي، او چا چه نۀ ده خوړلے هغه دے اوس نه خوري[۱].

۱. د عاشورے روژه، د رمضان د روژو نه مخکښې فرض وه نو چه کله د رمضان روژے فرض شوے. نو څنګه چه د عاشورے د روژے د پاره د شپے نه، نيت ضروري نه وو نو داسے د رمضان د پاره د روژو د پاره د شپے نه نيت ضروري ندے. نو چه کله د عاشورے روژه فرض وه نو پخپله رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم خلقو ته ويلے وو څرنګ چه دے حديث شريف کښې دي د چا چه د شپے نه د روژے نيت نه وو کړے، هغوي ته اعلان اوشو چه چا د شپے نه خوراک ندے کړے هغه دے باقي ورځ روژه اوساتي او خوراک څښاک دے نه کوي. معلوميږي چه روژه د دغے ورځ نه فرض شوے ده.

## بَابٌ ۳۲۶: الصَّآئِمِ يُصْبِحُ جُنُبًا.

## باب ۳۲۶: دَ جنابت حالت کښې دَ، روژه دار دَ سحر دَ پاسيدو بيان.

۵۰۵ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْلَمَةَ عَنْ مَالِكٍ عَنْ سُمَيٍّ مَوْلٰى اَبِيْ بَكْرِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ الْحَارِثِ بْنِ هِشَامِ بْنِ الْمُغِيْرَةِ اَنَّهُ سَمِعَ اَبَا بَكْرِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ قَالَ كُنْتُ اَنَا وَ اَبِيْ حِيْنَ دَخَلْنَا عَلٰى عَائِشَةَ وَ اُمِّ سَلَمَةَ ح وَ حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ اَخْبَرَنِيْ اَبُوْ بَكْرِ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ الْحَارِثِ ابْنِ هِشَامٍ اَنَّ اَبَاهُ عَبْدَ الرَّحْمٰنِ اَخْبَرَ مَرْوَانَ اَنَّ عَائِشَةَ وَ اُمَّ سَلَمَةَ اَخْبَرَتَاهُ اَنَّ رَسُوْلَ

۵۰۵ : عبداللّٰه بن مسلمه. مالک. سمي. (دَ، ابوبکر بن عبدالرحمٰن بن حارث بن هشام بن مغيره غلام) ابوبکر بن عبدالرحمٰن نه روايت کوي. دَ هغۀ بيان دے، زۀ او څما پلار، بي بي عائشے رض له ورغلو. ح. (دوئم سند) ابواليمان. شعيب. زهري. ابوبکر بن عبدالرحمٰن بن حارث بن هشام. عبدالرحمٰن مروان ته خبر ورکۀ، چه بي بي عائشے رض او اُمّ سلمے رض اووے، چه دَ رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلّم دَ جنابت حالت کښې به سحر شو. بيا به ئے غُسل کولو. او روژه به ئے ساتله. او مروان، عبدالرحمٰن بن حارث ته اووے، زۀ تاله په خدائے قسم درکوم، چه ابوهريره ته ئے

اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُدْرِكُهُ الْفَجْرُ وَهُوَ جُنُبٌ مِّنْ اَهْلِهٖ ثُمَّ يَغْتَسِلُ وَ يَصُوْمُ وَ قَالَ مَرْوَانُ لِعَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ الْحَارِثِ اُقْسِمُ بِاللّٰهِ لَتُقَرِّعَنَّ بِهَآ اَبَا هُرَيْرَةَ وَ مَرْوَانُ يَوْمَئِذٍ عَلَى الْمَدِيْنَةِ فَقَالَ اَبُوْبَكْرٍ فَكَرِهَ ذَالِكَ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ ثُمَّ قُدِّرَ لَنَا اَنْ نَّجْتَمِعَ بِذِي الْحُلَيْفَةِ وَكَانَتْ لِاَبِيْ هُرَيْرَةَ هُنَالِكَ اَرْضٌ فَقَالَ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ لِاَبِيْ هُرَيْرَةَ اِنِّيْ ذَاكِرٌ لَّكَ اَمْرًا وَلَوْلَا مَرْوَانُ اَقْسَمَ عَلَيَّ فِيْهِ لَمْ اَذْكُرْهُ لَكَ فَذَكَرَ قَوْلَ عَآئِشَةَ وَ اُمِّ سَلَمَةَ وَ قَالَ كَذَالِكَ حَدَّثَنِيَ الْفَضْلُ بْنُ عَبَّاسٍ وَّهُوَ اَعْلَمُ وَ قَالَ هَمَّامٌ وَّابْنُ عَبْدِ اللّٰهِ ابْنِ عُمَرَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَاْمُرُ بِالْفِطْرِ وَالْاَوَّلُ اَسْنَدُ.

تـوک سـره واوروه. او مـروان هغـه وخـت کـښ د مـدینـې حـاکـم وو. ابـوبـکـر اووې، چـه عبـدالـرحـمٰـن دا خبـره نـاخوښـه کـړه. بیـا اتـفـاقـًا مـونـږ خلق ذي الحليفه کـښ جـمـع شـو. او د حـضـرت ابـوهـريـرهؓ هلـتـه يـوه زمـکـه وه، نـو عبـدالـرحـمٰـن، حـضـرت ابـوهـريـرهؓ تـه اووې زهٔ تـاتـه يـوه داسـې خبـره بيـا نـوم، کـهٔ مـروان، مـاتـه د دې قسـم نـهٔ وې راکـړې، نـو مـا بـه تـاتـه نـهٔ وه بيـان کـړې، نـو د، بي بي عـائشـې او بـي بـي اُمّ سـلـمـهؓ قول نـې ورتـه بيـان کـهٔ. او وې وئيـل، چـه مـاتـه فـضـل بـن عبـاسؓ دغـسـې بيـان کـړې دې، او هـغـه زيـات پـوهـيـږي. او هـمـام او ابـن عبـدالـلّٰـه بـن عـمـرؓ د، ابـوهـريـرهؓ نـه روايـت کـوي، چـه نـبـي صـلـى الـلّٰـه علـيـه وسـلّـم بـه د، افـطـار حـکـم ورکـولـو، ليـکـن ورمبـنـې حـديث زيـات مستند دې.

## باب ۳۲۷: اَلْمُبَاشَرَةُ لِلصَّآئِمِ

وَ قَالَتْ عَآئِشَةُ يَحْرُمُ عَلَيْهِ فَرْجُهَا.

باب ۳۲۷: د روژه دار، د، مباشـرت بيان. او بي بي عائشـېؓ او فرمائيل، په روژه دار، د ښځې شرم ګاه حرام دې.

ف. مباشر. جماع. کوروالې. صحبت. بدن لګول.

۱. شيـخ ابـن الهـمـام فـرمايلې دي. که خوک تو کانړي (لاړې) په خوله کښ جمع کړي بيائې په يو خائې تيرې کړي نو دا مکروهه دي او هسې د معمول مطابق که لاړې تيرې شي نو پکښ څه ګناه نشته.

۱۸۰۶: حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ قَالَ عَنْ شُعْبَةَ عَنِ الْحَكَمِ عَنْ اِبْرَاهِيْمَ عَنِ الْاَسْوَدِ عَنْ عَآئِشَةَ قَالَتْ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

۱۸۰۶: سليمان بن حرب. شعبه. حکم. ابراهيم. عـائشـېؓ نـه روايـت دې، چه نبي صلى الله عليه وسلّم به کـوکـنـې (بوسه) اخسته، او مُباشرت به ئې کولو، داسې حـال کښ، چه روژه دار به وو. او هغه تاسو کښ د ټولو

يُقَبِّلُ وَ يُبَاشِرُ وَهُوَ صَائِمٌ وَ كَانَ أَمْلَكَكُمْ لِإِرْبِهِ وَ قَالَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ مَآرِبُ حَاجَةٌ قَالَ طَاوُسٌ أُولِي الْإِرْبَةِ الْأَحْمَقُ لَا حَاجَةَ لَهُ فِي النِّسَاءِ.

نه زيات په خپلو خواهشاتو قادر وو. او ابن عباسؓ او فرمائيل، چه مارب معني حاجت دے. او طاؤس اووے چه، اولي الاربة نه هغه احمق مراد دے، چه ذ هغهٔ ښځو ته حاجت نهٔ وي.

بَابٌ ۳۲۸: الْقُبْلَةِ لِلصَّائِمِ وَ قَالَ جَابِرُ بْنُ زَيْدٍ إِنْ نَظَرَ فَأَمْنَى يُتِمَّ صَوْمَهُ.

باب ۳۲۸: ذ، روژه دار، ذ، کوکنې (بوسه) اخستو بیان. او جابر بن زید اووے، کهٔ هغه ښځے طرف ته (شهوت سره) اوګوري. او مني ئے راوځي، نو خپله روژه دے پوره کړي.

۵۰۷: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى حَدَّثَنَا يَحْيَى عَنْ هِشَامٍ قَالَ أَخْبَرَنِي أَبِي عَنْ عَائِشَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ح وَ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْلَمَةَ عَنْ مَالِكٍ عَنْ هِشَامٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ إِنْ كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيُقَبِّلُ بَعْضَ أَزْوَاجِهِ وَهُوَ صَائِمٌ ثُمَّ ضَحِكَتْ.

۵۰۷: محمد بن مثنې. یحیٰي. هشام. عروه. عائشهؓ. نبي صلے اللّٰه علیه وسلّم نه روایت کوي. ح. عبداللّٰه بن مسلمه. مالک. هشام. عروه. بي بي عائشےؓ نه روایت کوي. هغے اووے، چه نبي صلے اللّٰه علیه وسلّم به ذ خپلو بعضو بيبيانو نه کوکنې اخستله داسے حال کښې چه روژه دار وو. بيا هغے او خاندل.

۵۰۸: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيَى عَنْ هِشَامِ بْنِ أَبِي عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ أَبِي كَثِيرٍ عَنْ أَبِي سَلَمَةَ عَنْ زَيْنَبَ ابْنَةِ أُمِّ سَلَمَةَ عَنْ أُمِّهَا قَالَتْ بَيْنَمَا أَنَا مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْخَمِيلَةِ إِذْ حِضْتُ فَانْسَلَلْتُ فَأَخَذْتُ ثِيَابَ حِيضَتِي فَقَالَ مَا لَكِ أَنُفِسْتِ قُلْتُ نَعَمْ فَدَخَلْتُ مَعَهُ فِي الْخَمِيلَةِ وَ

۵۰۸: مسدد. یحیٰي. هشام بن ابي عبداللّٰه. یحیٰي بن ابي کثیر. ابوسلمه. زینب بنت ام سلمه ذ خپلے مور نه روایت کوي. هغه وائي، زهٔ رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم سره یو څادر کښې ووم. نو ماته حیض راغے ما ذ حیض کپړے رااخستے. او، غلے شان اووتلم. حضور صلے اللّٰه علیه وسلّم تپوس اوکهٔ. آیا تاته حیض راغے، ما اووے، او. بیا زهٔ حضور صلے اللّٰه علیه وسلّم سره څادر کښې ننوتم. او اُمِ سلمهؓ او حضور صلے

كَانَتْ هِيَ وَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَغْتَسِلَانِ مِنْ اِنَآءٍ وَّاحِدٍ وَّ كَانَ يُقَبِّلُهَا وَهُوَ صَآئِمٌ.

اللّٰه عليه وسلّم به دَ' يو لوښي نه غُسل كولو. او دَ' روژے حالت كښې به حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم دَ هغے نه كوكنړے (بوسه)اخستله.

## بــــاب ۳۲۹: اِغْتِسَــــالِ الصَّـآئِـمِ

وَبَلَّ ابْـنُ عُـمَـرَ ثَـوْبًـا فَـأَلْـقَــاهُ عَـلَـيْــهِ وَهُـوَ صَـآئِـمٌ وَ دَخَـلَ الشَّـعْبِـيُّ الْـحَـمَّـامَ وَهُـوَ صَـآئِـمٌ وَ قَـالَ ابْنُ عَبَّاسٍؓ لَا بَـأْسَ اَنْ يَّتَـطَـعَّـمَ الْقِـدْرَ اَوِ الشَّـيْءَ وَ قَــالَ الْــحَسَــنُ لَا بَــــأْسَ بِـالْمَـضْـمَـضَةِ وَالتَّبَـرُّدِ لِلصَّـآئِمِ وَ قَــالَ ابْـــنُ مَسْــعُــوْدٍ اِذَا كَـــانَ صَــوْمُ اَحَــدِكُــمْ فَــلْيُـصْبِـحْ دَهِيْـنًــا مُّتَـرَجِّلًا وَ قَــالَ اَنَـــسٌ اِنَّ لِيْ اَبْـزَنَ اَتَـقَـحَّـمُ فِيْـهِ وَ اَنَا صَآئِمٌ وَيُـذْكَـرُ عَنِ الـنَّبِـيِّ صَـلَّـى اللّٰهُ عَـلَيْـهِ وَسَـلَّـمَ اَنَّــهُ اسْتَـاكَ وَهُـوَ صَـآئِـمٌ وَ قَـالَ ابْـنُ عُـمَـرَ يَسْتَـاكُ اَوَّلَ الــنَّـهَــارِ وَ اٰخِــرَهٗ وَلَا يَبْــلَـعُ رِيْــقَــهُ وَ قَــالَ عَـطَــآءٌ اِنِ ازْدَرَدَ رِيْــقَــهُ لَآ اَقُـوْلُ يُـفْـطِـرُ وَ قَـالَ ابْــنُ سِيْـرِيْـنَ لَا بَـأْسَ بِـالسِّوَاكِ الرَّطْبِ قِيْـلَ لَــهُ طَـعْـمٌ قَــالَ وَالْـمَـآءُ لَــهُ طَـعْـمٌ وَّ اَنْــتَ تُـمَـضْـمِـضُ بِـــهٖ وَلَــمْ يَـــرَ اَنَـــسٌ وَّ الْحَسَنُ وَ اِبْـرَاهِيْـمُ بِـالْـكُـحْـلِ لِـلـصَّـآئِـمِ

## باب ۳۲۹: دَ' روژه دار دَ غُسل كولو بيان.

او ابن عمرؓ يوه كپړه تر كړله' او په خپل جسم ئے واچوله' داسے حال كښې چه هغه روژه دار' وو. او شعبي به دَ' روژے حالت كښې حمام كښې داخليدلو. او ابن عباسؓ او فرمائيل' چه كټوئ يا' دَ څۀ څيز خوند څكلو كښې څۀ حرج نشته. او حسن بصري اوفرمائيل' چه خوله كنگالولو او خپل ځان يخولو كښې روژه دار دَ پاره څۀ حرج نشته او ابن مسعود اوفرمائيل' كله چه تاسو كښې دَ چا روژه وي' نو پكار دي' چه داسے حال كښې صبا كړي' چه تيل ئے لږولے وي. او ګومنز' ئے كړے وي. او انسؓ او فرمائيل' ماسره حوضي ده' چه هغے كښې دَ' روژے په حالت كښې داخليږم. او دَ نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم نه منقول دي چه حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم دَ' روژے په حالت كښې مسواک اوكۀ. او ابن عُمرؓ اوفرمائيل' چه دَ' ورځے ابتدا' او' دَ مابنام په وخت به ئے مسواک كولو. او تو كانړي به ئے نۀ تيرولے. او عطاء اووے' كۀ لاړے تيرے شي' نو زۀ نۀ وائم' چه روژه ئے ماته شوه. او ابن سيرين اووے چه په مسواک كولو كښې هيڅ حرج نشته' هغۀ ته اوونيلے شو' چه دے كښې مزه وي' نو هغۀ اووے' چه اوبو كښې هم مزه وي' او تۀ دے سره خوله كنګالولے او انسؓ او ابراهيم او حسن دَ' روژه دار رانجه اچولو كښې څۀ حرج نۀ دے ګنړلے. حوضي. ابزن. دَ ګرمو اوبو لوښے چه هغے كښې بيمار په

بَأْسًا.

ناسته لامبوي.

۵۰۹: حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ حَدَّثَنَا يُوْنُسُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُرْوَةَ وَ اَبِيْ بَكْرٍ قَالَتْ عَائِشَةُ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُدْرِكُهُ الْفَجْرُ فِيْ رَمَضَانَ مِنْ غَيْرِ حُلْمٍ فَيَغْتَسِلُ وَ يَصُوْمُ.

۵۰۹: احمد بن صالح. ابن وهب. يونس ابن شهاب. عروه. او ابوبكر. بي بي عائشےؓ نه روايت كوي. ذ هغے بيان دے، چه نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم ته به رمضان كښې بغير احتلام نه يعني ذ جماع په وجه ذ لامبلو ضرورت كيدلو، او سحر به شو، نو حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم به غُسل او كړلو، او روژه به ئے نيوله.

۵۱۰: حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنْ سُمَيٍّ مَّوْلٰى اَبِيْ بَكْرِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ ابْنِ الْحَارِثِ بْنِ هِشَامِ بْنِ الْمُغِيْرَةِ اَنَّهُ سَمِعَ اَبَا بَكْرِ بْنَ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ كُنْتُ اَنَا وَ اَبِيْ فَذَهَبْتُ مَعَهُ حَتّٰى دَخَلْنَا عَلٰى عَائِشَةَؓ قَالَتْ اَشْهَدُ عَلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنْ كَانَ لَيُصْبِحُ جُنُبًا مِّنْ جِمَاعٍ غَيْرِ احْتِلَامٍ ثُمَّ يَصُوْمُهُ ثُمَّ دَخَلْنَا عَلٰى اُمِّ سَلَمَةَ فَقَالَتْ مِثْلَ ذَالِكَ.

۵۱۰: اسمٰعيل. مالك. سمي (ذ ابوبكر بن عبدالرحمٰن بن حارث بن هشام بن مغيره غلام) ابوبكر بن عبدالرحمٰن نه واوريدل. چه زهٔ او خما پلار، روان شو، تر دے چه بي بي عائشےؓ ته اورسيدو. بي بي عائشے بيان اوكهٔ، زهٔ په رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلّم گواهي وركوم، چه حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم به ذ احتلام په سبب نه، بلكه ذ جماع په سبب ذ جنابت حالت كښې صبا كولو. بيا به ئے روژه نيوله. بيا مونږ بي بي اُم سلمےؓ له ورغلو، نو هغے هم دغسے بيان اوكه.

باب ۳۳۰: الصَّائِمِ اِذَا اَكَلَ اَوْ شَرِبَ نَاسِيًا وَ قَالَ عَطَاءٌ اِنِ اسْتَنْثَرَ فَدَخَلَ الْمَاءُ فِيْ حَلْقِهِ لَا بَأْسَ اِنْ لَمْ يَمْلِكْ وَ قَالَ الْحَسَنُ اِنْ دَخَلَ حَلْقَهُ الذُّبَابُ فَلَا شَيْءَ عَلَيْهِ وَ قَالَ الْحَسَنُ وَ مُجَاهِدٌ اِنْ جَامَعَ نَاسِيًا فَلَا شَيْءَ عَلَيْهِ.

باب ۳۳۰: ذ روژه دار په هيره ذ خوراك څكاك كولو بيان. او عطاء اووے، كهٔ پوزه كښې اوبهٔ واچوي، او اوبهٔ حلق ته لاړے شي، نو هيڅ حرج نشته، كهٔ ذ هغے په واپسئ قادر نهٔ وي. او حسن اووے كهٔ ذ هغهٔ حلق كښې مچ (مكهي) لاړ شي. نو په هغه هيڅ نشته. او حسن او مجاهد اووے، كهٔ په هيره جماع اوكړي، نو په هغهٔ هيڅ نشته.

۵۱۱: حَدَّثَنَا عَبْدَانُ اَخْبَرَنَا

۵۱۱: عبدان. يزيد بن زريع. هشام ابن سيرين.

يَزِيْدُ بْنُ زُرَيْعٍ حَدَّثَنَا هِشَامٌ حَدَّثَنَا ابْنُ سِيْرِيْنَ عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِذَا نَسِيَ فَأَكَلَ وَ شَرِبَ فَلْيُتِمَّ صَوْمَهُ فَإِنَّمَا أَطْعَمَهُ اللّٰهُ وَ سَقَاهُ.

حضرت ابوهریرهؓ. ذ نبي صلے اللّٰه علیه وسلّم نه روایت کوي، حضور صلے اللّٰه علیه وسلّم او فرمائیل، کله چه څوک په هیره خوراک څکاک اوکړي، نو خپله روژه دې پوره کړي، په هغه اللّٰه اوخوړول او، اوڅکول.

باب ۱۳۳۱: سِوَاكِ الرَّطْبِ وَالْيَابِسِ لِلصَّائِمِ وَ يُذْكَرُ عَنْ عَامِرِ بْنِ رَبِيْعَةَ قَالَ رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَسْتَاكُ وَهُوَ صَائِمٌ مَالَا أُحْصِيْ أَوْ أَعُدُّ وَ قَالَ أَبُوْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَوْلَا أَنْ أَشُقَّ عَلٰى أُمَّتِيْ لَأَمَرْتُهُمْ بِالسِّوَاكِ عِنْدَ كُلِّ وُضُوْءٍ وَّ يُرْوٰى نَحْوُهُ عَنْ جَابِرٍ وَّ زَيْدِ ابْنِ خَالِدٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَمْ يَخُصَّ الصَّائِمَ مِنْ غَيْرِهِ وَ قَالَتْ عَائِشَةُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَطْهَرَةٌ لِّلْفَمِ مَرْضَاةٌ لِّلرَّبِّ وَ قَالَ عَطَاءٌ وَّ قَتَادَةُ يَبْتَلِعُ رِيْقَهُ.

باب ۱۳۳۱: ذ روژه دار، ذ، تر، او خشک مسواک کولو بیان. او عامر بن ربیعه نه منقول دي، چه ما نبي صلے اللّٰه علیه وسلّم ذ، روژے په حالت کښ دومره خله په مسواک کولو لیدلے دے، چه زه ئے شمارلے نشم. او ابوهریرهؓ ذ نبي صلے اللّٰه علیه وسلّم نه روایت اوکۀ، کۀ ما ذ خپل اُمت ذ پاره مشکله نۀ ګنړلے، نو ما به هغوئ ته هر مانځه ذ پاره ذ مسواک کولو حکم ورکړے وو. دغه شان جابرؓ او زید بن خالد ذ نبي صلے اللّٰه علیه وسلّم نه روایت کوي، او دے کښ ئے ذ، روژه دار او غیر روژه دار تخصیص نۀ دے فرمائیلے. او بي بي عائشےؓ ذ نبي صلے اللّٰه علیه وسلّم نه روایت اوکۀ چه ذ خولے پاک کول ذ، رب ذ، رضا سبب دے. او عطاء او قتاده اووے، چه روژه دار خپلے لاړے تیرولے شي.

۲۱۵ : حَدَّثَنَا عَبْدَانُ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ قَالَ حَدَّثَنَا الزُّهْرِيُّ عَنْ عَطَاءِ ابْنِ يَزِيْدَ عَنْ حُمْرَانَ رَأَيْتُ عُثْمَانَ تَوَضَّأَ فَأَفْرَغَ عَلٰى يَدَيْهِ ثَلٰثًا ثُمَّ تَمَضْمَضَ وَاسْتَنْثَرَ ثُمَّ غَسَلَ وَجْهَهُ ثَلٰثًا ثُمَّ غَسَلَ يَدَهُ الْيُمْنٰى إِلَى الْمِرْفَقِ ثُمَّ قَالَ

۲۱۵ : عبدان. عبداللّٰه. معمر. زهري. عطاء بن یزید. حمران نه روایت کوي. ذ هغۀ بیان دے، چه ما حضرت عثمان په اودس کولو اولیدلو. په خپلو دواړو لاسونوئے درے خله اوبۀ واچولے بیائے خپل ښے لاس ذ څنګلے پورے اووینزلو. بیائے خپل ګس لاس ذ څنګلے پورے درے خله اووینزلو. بیائے اوفرمائیل، ما رسول اللّٰه صلے اللّٰه علیه وسلّم دغسے په اودس کولو لیدلے دے

رَأَيْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَوَضَّأَ وُضُوْئِيْ هٰذَا ثُمَّ يُصَلِّيْ رَكْعَتَيْنِ لَا يُحَدِّثُ نَفْسَهُ فِيْهِمَا بِشَيْءٍ إِلَّا غُفِرَلَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهٖ.

خنكه چه ما اوكړلو. بيائے اوفرمائيل. څوك چه څما د اودس په شان اودس اوكړي. بيا دوه ركعاته مونځ اوكړي، داسے حال كښ چه هيڅ قسم خيال (وسوسه) ئے زړهٔ كښ پيدا نشي نو دَ هغهٔ مخكښنے ګناه اوبښلے شي.

بَابُ ۳۳۲: قَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا تَوَضَّأَ فَلْيَسْتَنْشِقْ بِمَنْخَرِهِ الْمَاءَ وَلَمْ يُمَيِّزْ بَيْنَ الصَّائِمِ وَغَيْرِهٖ وَ قَالَ الْحَسَنُ لَا بَأْسَ بِالسَّعُوْطِ لِلصَّائِمِ إِنْ لَمْ يَصِلْ إِلٰى حَلْقِهٖ وَ يَكْتَحِلُ وَ قَالَ عَطَاءٌ إِنْ تَمَضْمَضَ ثُمَّ أَفْرَغَ مَا فِيْ فِيْهِ مِنَ الْمَاءِ لَا يَضِيْرُهُ إِنْ لَمْ يَزْدَرِدْ رِيْقَهٗ وَمَا بَقِيَ فِيْ فِيْهِ وَلَا يَمْضَغُ الْعِلْكَ فَإِنِ ازْدَرَدَ رِيْقَ الْعِلْكِ لَا أَقُوْلُ إِنَّهٗ يُفْطِرُ وَلٰكِنْ يُنْهٰى عَنْهُ فَإِنِ اسْتَنْثَرَ فَدَخَلَ الْمَاءُ حَلْقَهٗ لَا بَأْسَ لِأَنَّهٗ لَمْ يَمْلِكْ.

باب ۳۳۲: دَ نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم فرمائيل، كله چه څوك اودس كوي، نو سپيږمو (نتھنوں) كښے دے اوبهٔ اچوي. او دَ روژه دار او غير روژه دار ئے هيڅ تفريق اونهٔ كړ. او حسن اووے، چه روژه دار دَ پاره پوزه كښ دوائي اچولو كښ هيڅ حرج نشته، كهٔ حلق ته اونهٔ رسي. او رانجهٔ لږولے شي. او عطاء اووے، كهٔ روژه دار خوله كښ اوبهٔ واچوي بيا څهٔ چه دَ هغهٔ خوله كښ اوبهٔ وي، هغه اوغرځوي، نو هغهٔ دَ پاره هيڅ حرج نشته، كهٔ خپل توكانړي تيرے نهٔ كړي او، دَ هغه په خوله كښ چه څهٔ تري پاتے شوے وي (هغه هم نقصاني نهٔ ده) او چيړ دے نه جوئ. كهٔ دَ چيړ توكانړے تيرے شي نو زهٔ نهٔ وائم، چه دَ هغهٔ روژه لاړه. ليكن ممنوع دي. او كهٔ پوزه كښ اوبهٔ واچوي. او اوبهٔ دَ هغهٔ حلق كښ داخلے شي، نو هيڅ حرج نشته، خكه چه په هغے ئے اختيار نهٔ وو.

بَابُ ۳۳۳: إِذَا جَامَعَ فِيْ رَمَضَانَ وَ يُذْكَرُ عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ رَفَعَهٗ مَنْ أَفْطَرَ يَوْمًا مِنْ رَمَضَانَ مِنْ غَيْرِ عُذْرٍ وَلَا مَرَضٍ لَمْ يَقْضِهٖ صِيَامُ الدَّهْرِ وَ إِنْ صَامَهٗ وَبِهٖ قَالَ ابْنُ مَسْعُوْدٍ وَ قَالَ سَعِيْدُ بْنُ الْمُسَيَّبِ وَالشَّعْبِيُّ وَابْنُ جُبَيْرٍ وَّ إِبْرَاهِيْمُ وَ

باب ۳۳۳: هر كله چه يو سړے رمضان كښ قصداً جماع اوكړي. او ابوهريرهؓ نه مرفوعاً روايت دے، چه چا رمضان كښ بغير عذر او مرض نه يوه ورځ روژه اونهٔ ساتله، نو ټول عُمر روژه ساتل هم دَ هغے بدل كيدے نهٔ شي او دا، دَ ابن مسعودؓ هم قول دے، چه سعيد بن مسيب. شعبي. ابن جبير. ابراهيم. قتاده او حماد اووے، چه دَهغے بدله كښ دے يوه روژه

قَتَادَةُ وَ حَمَّادٌ يَقْضِي يَوْمًا مَكَانَهُ.

اونيسي.

**۱۳ ۵ ۱**: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّهِ بْنُ مُنِيرٍ سَمِعَ يَزِيْدَ بْنَ هَارُوْنَ حَدَّثَنَا يَحْيٰى هُوَ ابْنُ سَعِيدٍ اَنَّ عَبْدَ الرَّحْمٰنِ ابْنَ الْقَاسِمِ اَخْبَرَهُ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ جَعْفَرِ بْنِ الزُّبَيْرِ بْنِ الْعَوَّامِ بْنِ خُوَيْلِدٍ عَنْ عَبَّادِ بْنِ عَبْدِ اللّهِ ابْنِ الزُّبَيْرِ اَخْبَرَهُ اَنَّهُ سَمِعَ عَآئِشَةَ تَقُوْلُ اِنَّ رَجُلًا اَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ اِنَّهُ احْتَرَقَ قَالَ مَالَكَ قَالَ اَصَبْتُ اَهْلِيْ فِيْ رَمَضَانَ فَأُتِيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمِكْتَلٍ يُدْعَى الْعَرَقَ فَقَالَ اَيْنَ الْمُحْتَرِقُ قَالَ اَنَا قَالَ تَصَدَّقْ بِهٰذَا.

**۱۳ ۵ ۱**: عبدالله بن منير. يزيد بن هارون. يحيي بن سعيد. عبدالرحمن بن قاسم. محمّد بن جعفر بن زبير بن عوام بن خويلد، عباد بن عبدالله بن زبير. بي بي عائشۂ نه روايت كوي. هغې اووې، يو سړے د نبي صلے الله خدمت كښې حاضر شو. او عرض ئې اوكه، زهٔ اوسوزيدم، حضور صلے الله عليه وسلّم ترے تپوس اوكه، څهٔ خبره ده. هغهٔ عرض اوكهٔ، چه زهٔ خپلے بنځے تـه رمضان كښې ورغلم. نبي صلے الله عليه وسلّم ته د قجوررو يـوه تهيلي راوړے شوه، چه هغې ته عرق وئيلے شي. حضور صلے الله عليه وسلّم او فرمائيل، هغه سوزيدونكے كوم ځائے دے. هغې سړے اووے، زهٔ يم، نو حضور صلے الله عليه وسلّم او فرمائيل. دا خيرات كړه.

## بَابٌ ۳۳۴: اِذَا جَامَعَ فِيْ رَمَضَانَ وَلَمْ يَكُنْ لَهُ شَيْءٌ فَتُصُدِّقَ عَلَيْهِ فَلْيُكَفِّرْ.

## باب ۳۳۴: كه يو سړے رمضان كښې جماع اوكړي او هغه سره هيڅ څيز نهٔ وي، بيا هغه ته صدقه راشي، نو هغه دے كفاره كښې وركړي.

**۱۴ ۵ ۱**: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ اَخْبَرَنِيْ حُمَيْدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ اَنَّ اَبَا هُرَيْرَةَ قَالَ بَيْنَمَا نَحْنُ جُلُوْسٌ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذْ جَآءَهُ رَجُلٌ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّهِ هَلَكْتُ قَالَ مَالَكَ قَالَ وَاقَعْتُ عَلَى امْرَاَتِيْ وَ اَنَا صَائِمٌ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّهِ صَلَّى

**۱۴ ۵ ۱**: ابواليمان. شعيب. زهري. حميد بن عبدالرحمن. ابوهريرهٔ نه روايت كوي. مونږ نبي صلے الله عليه وسلّم سره ناست وو، چه حضور صلے الله عليه وسلّم له يو سړے راغے، او عرض ئې اوكهٔ، يا رسول الله، زهٔ خو هلاك شولم. حضور صلے الله عليه وسلّم ترے تپوس اوكه، څهٔ خبره ده، هغهٔ ورته اووے، ما خپلے بنځے سره د روژے په حالت كښې جماع اوكړله. رسول الله صلے الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل، آيا تا سره غلام شته، چه هغهٔ ته آزاد كړے. هغهٔ اووے، نه. حضور صلے

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَلْ تَجِدُ رَقَبَةً تُعْتِقُهَا قَالَ لَا قَالَ فَهَلْ تَسْتَطِيعُ أَنْ تَصُومَ شَهْرَيْنِ مُتَتَابِعَيْنِ قَالَ لَا فَقَالَ فَهَلْ تَجِدُ إِطْعَامَ سِتِّينَ مِسْكِينًا قَالَ لَا قَالَ فَمَكَثَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَبَيْنَا نَحْنُ عَلَى ذَالِكَ أُتِيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِعَرَقٍ فِيهَا تَمْرٌ وَّالْعَرَقُ الْمِكْتَلُ قَالَ أَيْنَ السَّائِلُ فَقَالَ أَنَا قَالَ خُذْهَا فَتَصَدَّقْ بِهِ فَقَالَ الرَّجُلُ أَعَلَى أَفْقَرَ مِنِّي يَا رَسُولَ اللّٰهِ فَوَاللّٰهِ مَا بَيْنَ لَابَتَيْهَا يُرِيدُ الْحَرَّتَيْنِ أَهْلُ بَيْتٍ أَفْقَرُ مِنْ أَهْلِ بَيْتِي فَضَحِكَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتَّى بَدَتْ أَنْيَابُهُ ثُمَّ قَالَ أَطْعِمْهُ أَهْلَكَ.

اللّٰه علیه وسلّم ورته او فرمائیل' ته دوه میاشتې پرله پسې روژې نیولې شې. هغهٔ اوویل' نه' بیا ورته حضور صلی اللّٰه علیه وسلّم او فرمائیل' آیا ته شپیتهٔ مسکینانو ته طعام ورکولې شې' هغهٔ اوویل' نه' نبي صلی اللّٰه علیه وسلّم څهٔ ساعت ایسار شولو' مونږ دې حال کښې وو' چه نبي صلی اللّٰه علیه وسلّم ته یوه تهیلئ راوړې شوه' هغې کښې قجورې وې. او د عرق نه مراد مکتل دې. حضور صلی اللّٰه علیه وسلّم تپوس اوکړهٔ. سوال کونکې کوم ځائې دې' هغهٔ اوویل' زهٔ یم' حضور صلی اللّٰه علیه وسلّم ورته او فرمائیل. دا یوسه او خیرات ئې کړهٔ. هغې سړي تپوس اوکړهٔ. آیا هغې چا له ئې ورکړم' چه څما نه زیات محتاج وي' یا رسول اللّٰه' د مدینې د دواړو کانړیجنو میدانونو مینځ کښې یو کور داسې نشته' چه څما د کور والو نه زیات محتاج وي. نبي صلی اللّٰه علیه وسلّم او خاندل' تردې چه د حضور صلی اللّٰه علیه وسلّم مخکښې غاښونه څرګند شول. بیا حضور صلی اللّٰه علیه وسلّم او فرمائیل' څه په خپل کوروالو' ئې اوخوروه.

**بَاب ۳۳۵: الْمُجَامِعِ فِي رَمَضَانَ هَلْ يُطْعِمُ أَهْلَهُ مِنَ الْكَفَّارَةِ إِذَا كَانُوا مَحَاوِيجَ.**

**باب ۳۳۵:** آیا رمضان کښې قصداً جماع کونکې په خپل کور' والو' د کفارې طعام خوړلې شي. هر کله چه هغه د هر چا نه زیات محتاج وي[۱].

۱. د روژې د کفارې احکام "د جمهور اُمت په نزد داسې دي." "چه کفاره ورکونکي سره که چرې غلام وي نو هغه به آزاده وي. اسلام د غلامئ رسم نه خوښوو لیکن د غلامئ ډیر مختلف قسمونه په دنیا کښې موجود وو چه یو دم د غلامئ ختمول ممکن نه وو. رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلم پدې سلسله کښې ډیر اصلاحات اوکړل او په غلام ساتلو د ظلم کولو چه څومره صورتونه وو د هغې د ختمولو اعلان ئې اوکړو. بیائې د غلامانو آزادولو باندې ډیر زور او لګولو او ډیرو حالاتو کښې ئې غلامان (مرئي) آزاده ول ضروري او ګنړل. بیائې رو' رو د دنیائې اسلام نه د مرئیانو (غلامانو) رواج ختم کړو نو کفاره کښې د ترتیب

اعتبار سره' اول د غلام (مریي) ازاده ول ضروري دي. اوس د غلامئ رواج ختم شویدے. د مرئي په کفاره کښې د ورکولو سوال نه پیدا کیږي. په دویمه درجه کښې اسلام دا بنودلي دي. که مرئے (غلام) نه پیدا کیږي. نو دوه میاشتے پرله پسے روژے نیول دي. که د دوو میاشتو روژو نیولو طاقت نه لري نو بیا به شپیتو مسکینانو ته صبا مابنام خوراک ورکوي.

اوس امام بخاري دا ښودل غواړي. که څوک دغه درے واړه کفاره کښې د ورکولو طاقت نه لري. او څوک ورله خیرات کښې څه ورکړي. نو هغه دغه صدقه کفاره کښې ورکولے شي.

لیکن نورو احادیثو کښې دا واقعه په تفصیل سره ده. چه رسول الله صلي الله علیه وسلم هغے صحابي ته فرمایلي وو. چه دا صدقه کفاره کښې ستا د پاره ورکول روا دي. د دے نه پس بل چا د پاره دا طریقه روا نه ده.

صدقه کفاره کښې ورکول د یو امام مسلک هم ندے. ټول امامان دغه وړاندے ذکر شوے درے قسمه کفارے واجبوي د امام بخاري رحمة الله علیه دا مسلک هیڅوک نه مني.

امام بخاري دا سرلیک داسے خکه کیخودلے دے چه داسے یو حدیث شریف وو چه دا واقعه پکښې ذکر وه نو داسے سرلیک ئے ورله کیخودلو او داسے خپله رائے ئے ذکر نکړه چه صدقه د اسلامي کفارے په ځائے ورکیدے شي.

**۱۵۱۵ : حَدَّثَنَا عُثْمَانُ ابْنُ اَبِيْ شَيْبَةَ حَدَّثَنَا جَرِيْرٌ عَنْ مَنْصُوْرٍ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ حُمَيْدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ جَآءَ رَجُلٌ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ اِنَّ الْاٰخِرَ وَقَعَ عَلٰى امْرَاَتِهٖ فِيْ رَمَضَانَ فَقَالَ اَتَجِدُ مَا تُحَرِّرُ رَقَبَةً قَالَ لَا قَالَ فَتَسْتَطِيْعُ اَنْ تَصُوْمَ شَهْرَيْنِ مُتَتَابِعَيْنِ قَالَ لَا قَالَ اَفَتَجِدُ مَا تُطْعِمُ بِهٖ سِتِّيْنَ مِسْكِيْنًا قَالَ لَا قَالَ فَاُتِيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِعَرَقٍ فِيْهِ تَمْرٌ وَهُوَ الزَّبِيْلُ قَالَ اَطْعِمْ هٰذَا عَنْكَ**

۱۵۱۵ : عثمان بن ابي شیبه. جریر. منصور. زهري. حمید بن عبدالرحمٰن. ابوهریرةؓ نه روایت کوي' یو سړے ذ نبي صلے الله علیه وسلّم خدمت کښې حاضر شو. هغهٔ عرض اوکهٔ' چه دے بدنصیب په رمضان کښې خپلے ښځے سره صحبت کړے دے. حضور صلے الله علیه وسلّم ورته او فرمائیل' آیا تا سره غلام شته' چه هغه آزاد کړے. هغهٔ اووے' نه. حضور صلے الله علیه وسلّم ترے تپوس اوکهٔ' آیا تهٔ دوه میاشتے متواتر روژے نیولے شے هغهٔ اووے' نه. حضور صلے الله علیه وسلّم ترے تپوس اوکهٔ' آیا تهٔ شپیتهٔ (۶۰) مسکینانو ته طعام ورکولے شے' هغهٔ اووے' نه. بیا نبي صلے الله علیه وسلّم ته یوه تهیلے راوړے شوه' چه هغے کښې قجورے وے. حضور صلے الله علیه وسلّم ورته او فرمائیل' دا یوسه او ذ خپل طرف نه ئے اوخوره. هغهٔ عرض اوکهٔ ذ مدینے ذ

قَالَ عَلٰى اَحْوَجَ مِنَّا مَا بَيْنَ لَا بَتَيْهَا اَهْلُ بَيْتٍ اَحْوَجَ مِنَّا قَالَ فَاَطْعِمْهُ اَهْلَكَ.

کانړيجن ميدانونو مينځ کښې خمونږ نه زياته محتاجه کورنئ نشته. حضور صلے الله عليه وسلم ورته او فرمائيل. په کور والو ئے اوخوروه.

## باب ۳۳۶: اَلْحِجَامَةِ وَالْقَيْءِ لِلصَّائِمِ

وَ قَالَ لِيْ يَحْيَى بْنُ سَالِمٍ حَدَّثَنَا مُعَاوِيَةُ بْنُ سَلَامٍ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ عَمْرِو بْنِ الْحَكَمِ بْنِ ثَوْبَانَ سَمِعَ اَبَا هُرَيْرَةَ اِذَا قَآءَ فَلَا يُفْطِرُ اِنَّمَا يُخْرِجُ وَلَا يُوْلِجُ وَ يُذْكَرُ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّهُ يُفْطِرُ وَالْاَوَّلُ اَصَحُّ وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ وَّ عِكْرَمَةَ الصَّوْمُ مِمَّا دَخَلَ وَ لَيْسَ مِمَّا خَرَجَ وَكَانَ ابْنُ عُمَرَ يَحْتَجِمُ وَهُوَ صَائِمٌ ثُمَّ تَرَكَهُ فَكَانَ يَحْتَجِمُ بِاللَّيْلِ وَاحْتَجَمَ اَبُوْ مُوْسٰى لَيْلًا وَّ يُذْكَرُ عَنْ سَعْدٍ وَّ زَيْدِ ابْنِ اَرْقَمَ وَ اُمِّ سَلَمَةَ احْتَجَمُوْا صِيَامًا وَّ قَالَ بُكَيْرٌ عَنْ اُمِّ عَلْقَمَةَ كُنَّا نَحْتَجِمُ عِنْدَ عَائِشَةَ فَلَا تَنْهٰى وَ يُرْوٰى عَنِ الْحَسَنِ عَنْ غَيْرَ وَاحِدٍ مَرْفُوْعًا فَقَالَ اَفْطَرَ الْحَاجِمُ وَالْمَحْجُوْمُ وَ قَالَ لِيْ عَيَّاشٌ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْاَعْلٰى حَدَّثَنَا يُوْنُسُ عَنِ الْحَسَنِ مِثْلَهُ قِيْلَ لَهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ نَعَمْ ثُمَّ قَالَ اللّٰهُ اَعْلَمُ.

## باب ۳۳۶: دَ روژه دار، ښکر لګول[۱] او دَ قې کولو بيان

او ماته يحيٰي بن سالم په واسطه دَ معاويه بن سلام. يحيٰي. عمرو بن حکم بن ثوبان. ابوهريرهؓ بيان اوکۀ، هر کله چه سړے قے او کړي، نو روژه نۀ ماتيږي، ځکه چه هغه خو بهرته راوکاږي. دننه څۀ څيز نۀ داخلوي. او ابوهريرهؓ نه دا هم منقول دي چه روژه ماتيږي. ليکن وړمبنے روايت زيات صحيح دے. او ابن عباسؓ او عکرمه او فرمائيل، روژه دَ هغې څيز سره ماتيږي، چه دننه لاړ شي، هغې څيز سره نۀ ماتيږي چه بهرته راووځي. او ابن عمر به دَ روژے په حالت کښې ښکر لګولو. بيائے دا ترک کړلو. او دَ شپے ئے ښکر لګولو. او ابو موسٰي دَ شپے ښکر لګولو. او سعد. زيد بن ارقم او اُمّ سلمهؓ نه منقول دي، چه دغے خلقو دَ روژے په حالت کښې ښکر اولګولو. او بکير دَ، اُمّ علقمه نه روايت کړے دے، چه مونږ دَ بي بي عائشےؓ خوا کښې ښکر لګولو، نو هغے به مونږ نۀ منع کولو. او حسن بصري ګڼړو طريقو سره مرفوعًا روايت کړے دے، چه ښکر لګولو واله او چاته چه ښکر لګولے شي، دَ، دواړو روژه ماتيږي. او ماته عياش په واسطه دَ عبدالاعلٰي. يُونس. حسن. دَ دے په مثل روايت اوکۀ. حسن نه تپوس اوشو. آيا دَ نبي صلے الله عليه وسلّم نه روايت دے. ونيلے، او، بيائے اووے، الله زيات پوهيږي.

۱. امام بخاري رحمة الله عليه دے باب کښې دوه مسئلے يو ځائے کړيدي ځکه چه د ده په نزد بنيادي

اصول د روژے د ماتیدو او د نه ماتیدو دا دي. "که چرے یو څیز خیته کښ ورشي یا د بدن حصه جوړه شي نو هغے سره روژه ماتیږي لیکن د خیتے یا د انسان د بدن نه' څه څیز بهر را اوزي نو هغے سره روژه نه ماتیږي. پخوا زمانه کښ په عربو کښ د خرابے وینے د اوباسلو طریقه ښکر لګول وو پدے صورت کښ وینه ویستونکي به په خوله باندے د ښکر په ذریعه وینه راخکله' په حدیث شریف کښ دي "چه د چا د پاره ښکر لګولے شي نو د هغه' او د ښکر لګونکي دواړو روژه ماتیږي".

دے حدیث شریف نه د جمهور اُمت عالمان حقیقي معنی نه اخلي بلکے تاویل پکښ کوي.

داسے د "قیئ" (الټي) په سلسله کښ د امام بخاري مسلک په خپلو اصولو دے "چه د بدن نه څه څیز بهر را اوزي په هغے روژه نه ماتیږي. لیکن د جمهور اُمت د عالمانو د روژے د نه ماتیدو دا اصول ندے بلکے د قیئ په بعضے صورتونو کښ روژه ماتیږي د دے تفصیل د فقهے په کتابونو کښ دے.

۵۱۶: حَدَّثَنَا مُعَلَّى بْنُ اَسَدٍ حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ عَنْ اَيُّوْبَ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ احْتَجَمَ وَهُوَ مُحْرِمٌ وَّاحْتَجَمَ وَهُوَ صَائِمٌ.

۵۱۶: معلی بن اسد. وهیب. ایوب. عکرمه. حضرت ابن عباسؓ نه روایت کوي' چه نبي صلے اللّٰه علیه وسلّم ذ احرام حالت کښ هم ښکر اولږولو. او ذ' روژے په حالت کښ ئے هم ښکر اولږولو.

۵۱۷: حَدَّثَنَا اَبُوْ مَعْمَرٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ حَدَّثَنَا اَيُّوْبُ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ احْتَجَمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ صَائِمٌ.

۵۱۷: ابو معمر. عبدالوارث. ایوب. عکرمه. حضرت ابن عباسؓ نه روایت کوي' چه نبي صلے اللّٰه علیه وسلّم ذ' روژے په حالت کښ ښکر اولږولو.

۵۱۸: حَدَّثَنَا اٰدَمُ بْنُ اَبِي اِيَاسٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ سَمِعْتُ ثَابِتَنِ الْبُنَانِيَّ يَسْاَلُ اَنَسَ بْنَ مَالِكٍ اَكُنْتُمْ تَكْرَهُوْنَ الْحِجَامَةَ لِلصَّائِمِ قَالَ لَا اِلَّا مِنْ اَجْلِ الضَّعْفِ وَ زَادَ شَبَابَةُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَلٰى عَهْدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۵۱۸: آدم بن ابي ایاس. شعبه. ثابت بناني. انس بن مالک. نه تپوس کولو سره واوریدل' چه آیا تاسو روژه دار ذ پاره ښکر لږول مکروه ګنړل' هغهٔ جواب ورکهٔ' نه' خو' ذ کمزورئ په سبب (به مو دا بد ګنړل) او شبابه په واسطه ذ شعبه' علي عهد النبي صلے اللّٰه علیه وسلّم الفاظ زیات بیان کړل.

## باب۷۳۳: الصَّوْمِ فِي السَّفَرِ وَالْاِفْطَارِ.

## باب۷۳۳: سفر کښ ذ روژے ساتلو او ماتولو بیان.

۵۱۹: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ اَبِيْ اِسْحٰقَ الشَّيْبَانِيِّ سَمِعَ ابْنَ اَبِيْ اَوْفٰى قَالَ كُنَّا مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ سَفَرٍ فَقَالَ لِرَجُلٍ انْزِلْ فَاجْدَحْ لِيْ قَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ الشَّمْسُ قَالَ انْزِلْ فَاجْدَحْ لِيْ قَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ الشَّمْسُ قَالَ انْزِلْ فَاجْدَحْ لِيْ فَنَزَلَ فَجَدَحَ لَهُ فَشَرِبَ ثُمَّ رَمٰى بِيَدِهٖ هٰهُنَا ثُمَّ قَالَ اِذَا رَاَيْتُمُ اللَّيْلَ اَقْبَلَ مِنْ هٰهُنَا فَقَدْ اَفْطَرَ الصَّائِمُ تَابَعَهُ جَرِيْرٌ وَّ اَبُوْبَكْرِ بْنُ عَيَّاشٍ عَنِ الشَّيْبَانِيِّ عَنِ ابْنِ اَبِيْ اَوْفٰى قَالَ كُنْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ سَفَرٍ.

۵۱۹: علي بن عبدالله. سفیان. ابو اسحاق شیباني. ابن ابي اوفي نه روایت دے چه یو سفر کښې مونږ رسول الله صلی الله علیه وسلم سره وو یو سړي ته رسول الله صلی الله علیه وسلم اووے. کوز شه او ماذ پاره ستوان تیار کړه. هغه عرض اوکړ یا رسول الله اوس لا نمر باقي دے حضور صلی الله علیه وسلم ورته او فرمائیل کوز شه ما ذ پاره ستوان تیار کړه. هغه راکوز شو او حضور صلی الله علیه وسلم ذ پاره ئے ستوان اوخولول. حضور صلی الله علیه وسلم هغه اوڅکل. بیا حضور صلی الله علیه وسلم خپل ښي لاس سره هغې طرف ته اشاره اوکړه او وے فرمائیل کله چه تاسو ذ شپے تاریکي اووینئ چه ذ دے ځائے نه شروع شوه نو پوه شئے چه ذ روژے ماتولو وخت راغے. جریر. او ابوبکر بن عیاش په واسطه ذ شیباني. ابن ابي اوفي ذ دے متابع حدیث روایت کړے دے. هغه اووے چه زه نبي صلی الله علیه وسلم سره یو سفر کښې ووم.

۵۲۰: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ هِشَامٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبِيْ عَنْ عَائِشَةَ اَنَّ حَمْزَةَ بْنَ عَمْرٍو الْاَسْلَمِيَّ قَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنِّيْ اَسْرُدُ الصَّوْمَ ح وَ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّ حَمْزَةَ بْنَ عَمْرٍو الْاَسْلَمِيَّ قَالَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ

۵۲۰: مسدد. یحیی. هشام. عروه. بي بي عائشې نه روایت دے حمزه بن عمر واسلمي عرض اوکړ یا رسول الله زه پرلسه پسے روژے نیسم. ح (دونم سند) عبدالله بن یوسف. مالک. هشام بن عروه. عروه. بي بي عائشې تېر ذ نبي صلی الله علیه وسلم نه روایت کوي چه حمزه بن عمر اسلمي نبي صلی الله علیه وسلم ته عرض اوکړ چه زه سفر کښې روژے نیسم او هغه به ډېرے زیاتے روژے نیولے. حضور صلی الله علیه وسلم

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَصُوْمُ فِي السَّفَرِ وَ كَانَ كَثِيْرَ الصِّيَامِ فَقَالَ اِنْ شِئْتَ فَصُمْ وَ اِنْ شِئْتَ فَاَفْطِرْ.

ورته او فرمائيل، كه ته غواړې نو روژه اونيسه. او كه غواړې نو ماته يې كړه.

باب ۳۳۸: اِذَا صَامَ اَيَّامًا مِّنْ رَمَضَانَ ثُمَّ سَافَرَ.

باب ۳۳۸: د رمضان څو روژې نيول او د سفر كولو بيان.

۱۵۲۱: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُتْبَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍؓ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَرَجَ اِلٰى مَكَّةَ فِيْ رَمَضَانَ فَصَامَ حَتّٰى بَلَغَ الْكَدِيْدَ اَفْطَرَ فَاَفْطَرَ النَّاسُ قَالَ اَبُوْ عَبْدِ اللّٰهِ وَالْكَدِيْدُ مَآءٌ بَيْنَ عُسْفَانَ وَ قُدَيْدٍ.

۱۵۲۱: عبدالله بن يوسف. مالك. ابن شهاب. عبيد الله بن عبدالله بن عتبه. ابن عباسؓ نه روايت كوي، رسول الله صلے الله عليه وسلم رمضان كښې مكے طرفته روان شولو. حضور صلے الله عليه وسلم روژه اونيوله، تر دې چه كوم وخت كديد، ته اورسيدلو، نو حضور صلے الله عليه وسلم روژه ماته كړه. خلقو هم ماته كړه. ابو عبدالله (بخاري) اووې، چه كديد د، عسفان او قديد د، درميانه اوبو، ځائے دے.

۱. د دے حديث شريف نه معلوميږي چه په رمضان كښې په كومه ورځ سفر شروع كوي د هغے ورځ روژه غوره ده. بيا د سفر په نورو ورځو كښې روژه نه ساتل بهتر دي. ځكه چه رسول الله صلي الله عليه وسلم داسے كړے وو.

۱۵۲۲: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ حَدَّثَنَا يَحْيٰى بْنُ حَمْزَةَ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ يَزِيْدَ بْنِ جَابِرٍ اَنَّ اِسْمٰعِيْلَ بْنَ عُبَيْدِ اللّٰهِ حَدَّثَهٗ عَنْ اُمِّ الدَّرْدَآءِ عَنْ اَبِي الدَّرْدَآءِ قَالَ خَرَجْنَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ بَعْضِ اَسْفَارِهٖ فِيْ يَوْمٍ حَارٍّ حَتّٰى يَضَعَ الرَّجُلُ يَدَهٗ عَلٰى رَاْسِهٖ مِنْ شِدَّةِ الْحَرِّ وَمَا فِيْنَا صَآئِمٌ اِلَّا مَا كَانَ مِنَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَابْنِ

۱۵۲۲: عبدالله بن يوسف. يحيى بن حمزه. عبدالرحمن بن يزيد بن جابر. اسمعيل بن عبيدالله. امّ درداءؓ نه روايت كوي. هغه وائي، مونږ نبي صلے الله عليه وسلم سره يو سفر كښې روان شو. د گرمۍ ورځ وه. د سختے گرمۍ په وجه به سړي خپل لاس په خپل سر ايښودلو. او مونږ كښې د رسول الله صلے الله عليه وسلم او ابن رواحهؓ نه سوا بل څوك روژه دار نه

رَوَاحَةَ.

باب ۹ ۳۳: قَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِمَنْ ظُلِّلَ عَلَيْهِ وَاشْتَدَّ الْحَرُّ لَيْسَ مِنَ الْبِرِّ الصَّوْمُ فِي السَّفَرِ.

۵۲۳: حَدَّثَنَا اٰدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ الْاَنْصَارِيُّ قَالَ سَمِعْتُ مُحَمَّدَ بْنَ عَمْرِو بْنِ الْحَسَنِ بْنِ عَلِيِّ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ سَفَرٍ فَرَاٰى زِحَامًا وَّ رَجُلًا قَدْ ظُلِّلَ عَلَيْهِ فَقَالَ مَا هٰذَا فَقَالُوْا صَآئِمٌ فَقَالَ لَيْسَ مِنَ الْبِرِّ الصَّوْمُ فِي السَّفَرِ.

باب ۳۴۰: لَمْ يَعِبْ اَصْحٰبُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعْضُهُمْ بَعْضًا فِي الصَّوْمِ وَالْاِفْطَارِ.

باب ۳۴۱: مَنْ اَفْطَرَ فِي السَّفَرِ لِيَرَاهُ النَّاسُ.

۵۲۴: حَدَّثَنَا مُوْسَى ابْنُ اِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا اَبُوْ عَوَانَةَ عَنْ مَنْصُوْرٍ عَنْ مُجَاهِدٍ عَنْ طَاؤُسٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍؓ قَالَ خَرَجَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنَ الْمَدِيْنَةِ اِلٰى مَكَّةَ فَصَامَ حَتّٰى بَلَغَ عُسْفَانَ ثُمَّ دَعَا بِمَآءٍ فَرَفَعَهُ اِلٰى يَدَيْهِ لِيُرِيَهُ

وو.

باب ۳۳۹: دَ نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم هغې سړي نه، چه په هغهٔ دَ ګرمئ دَ زیاتې په وجه سورے کړے شوے وو، دا فرمائیل، چه سفر کښې روژه نیول بهتر نهٔ دي.

۵۲۳: آدم. شعبه. محمّد بن عبدالرحمٰن انصاري. محمّد بن عمرو بن حسن بن علي. جابر بن عبداللّٰهؓ نه روایت کوي، هغهٔ اوے، رسول اللّٰه صلے اللّٰه علیه وسلّم یو سفر کښې وو، حضور صلے اللّٰه علیه وسلّم دَ خلقو یوه ګڼړه اولیده. او یو سړے ئې اولیدو، چه په هغهٔ سورے کړے شوے وو، حضور صلے اللّٰه علیه وسلّم تپوس اوکړ څهٔ خبره ده. خلقو ورته اووے. روژه دار دے. نو حضور صلے اللّٰه علیه وسلّم او فرمائیل. سفر کښې روژه نیول ښهٔ خبره نهٔ ده.

باب ۳۴۰: دَ نبي صلّي اللّٰه علیه وسلّم صحابهؓ به په یو بل دَ روژے نیولو، او ماتولو عیب نهٔ لږولو.

باب ۳۴۱: دَ هغې سړي بیان، چه سفر کښې ئې روژه ماته کړه، چه خلقو ته ئې ښکاری کړي.

۵۲۴: موسٰي بن اسمعیل. ابو عوانه. منصور. مجاهد. طاؤس. ابن عباسؓ نه روایت کوي. دَ هغهٔ بیان دے. رسول اللّٰه صلے اللّٰه علیه وسلّم مدینے نه مکے طرف ته روان شولو. حضور صلے اللّٰه علیه وسلّم روژه ساتلے، تردے چه عسفان ته اورسیدلو، نو اوبهٔ ئې اوغوښتلے. بیا حضور صلے اللّٰه علیه وسلّم خپل دواړه لاسونه اوچت کړل. چه خلقو ته ئې ښکاره کړي. بیا

النَّاسُ فَأَفْطَرَ حَتّٰى قَدِمَ مَكَّةَ وَ ذَالِكَ فِيْ رَمَضَانَ فَكَانَ ابْنُ عَبَّاسٍؓ يَقُوْلُ قَدْ صَامَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَفْطَرَ فَمَنْ شَآءَ صَامَ وَمَنْ شَآءَ اَفْطَرَ.

حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم روژه ماته کړه. تر دے چه مکے ته اورسيدلو' او دا' دَ' رمضان واقعه ده. ابن عباسؓ او فرمائيل. رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلّم روژه هم اونيسله' او ماته ئے هم کړه. دَ چاچه زړهٔ غواړي روژه دے کړي او دَ چا چه زړهٔ غواړي' ماته دے کړي.

باب ۲۳۴۲: وَ عَلَى الَّذِيْنَ يُطِيْقُوْنَهٗ فِدْيَةٌ قَالَ ابْنُ عُمَرَ وَ سَلَمَةُ بْنُ الْاَكْوَعِ نَسَخَتْهَا شَهْرُ رَمَضَانَ الَّذِيْٓ اُنْزِلَ فِيْهِ الْقُرْاٰنُ هُدًى لِّلنَّاسِ وَ بَيِّنٰتٍ مِّنَ الْهُدٰى وَالْفُرْقَانِ فَمَنْ شَهِدَ مِنْكُمُ الشَّهْرَ فَلْيَصُمْهُ وَمَنْ كَانَ مَرِيْضًا اَوْ عَلٰى سَفَرٍ فَعِدَّةٌ مِّنْ اَيَّامٍ اُخَرَ يُرِيْدُ اللّٰهُ بِكُمُ الْيُسْرَ وَلَا يُرِيْدُ بِكُمُ الْعُسْرَ وَلِتُكْمِلُوا الْعِدَّةَ وَلِتُكَبِّرُوا اللّٰهَ عَلٰى مَا هَدٰىكُمْ وَلَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ وَ قَالَ ابْنُ نُمَيْرٍ حَدَّثَنَا الْاَعْمَشُ حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ مُرَّةَ حَدَّثَنَا ابْنُ اَبِيْ لَيْلٰى حَدَّثَنَا اَصْحٰبُ مُحَمَّدٍ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَزَلَ رَمَضَانُ فَشَقَّ عَلَيْهِمْ فَكَانَ مَنْ اَطْعَمَ كُلَّ يَوْمٍ مِّسْكِيْنًا تَرَكَ الصَّوْمَ مِمَّنْ يُّطِيْقُهٗ وَ رُخِّصَ لَهُمْ فِيْ ذٰلِكَ فَنَسَخَتْهَا وَ اَنْ تَصُوْمُوْا خَيْرٌ لَّكُمْ فَاُمِرُوْا بِالصَّوْمِ.

باب ۲۳۴۲: په هغه خلقو' چه طاقت لري' فديه ده. ابن عمر او سلمه بن اکوع اووے' چه دا آيت دے آيت منسوخ کړے دے. دَ' رمضان مياشت هغه ده' چه هغے کښ قرآن نازل شوے دے: خلقو دَ پاره دے کښ هدايت او دَ هدايت روښانه دليلونه دي. او دَ حق او باطل مينځ کښ فرق کونکے دے. تاسو کښ چه څوک دا مياشت بيا مومي (اووينى) نو روژه دے اونيسي. او کوم سړے چه مريض وي يا سفر کښ وي' نو نورو ورځو کښ دے په شمار اونيسي. اللّٰه تعالىٰ تاسو سره آسانى کول غواړي. تاسو سره سختي کول نهٔ غواړي. او شمار پوره کړئ. او دَ' اللّٰه لوئي بيان کړئ' په دے خيز' چه تاسو شکر گزار شئ' چه تاسوته ئے هدايت کړے دے. او ابن نمير اووے' چه ماته اعمش او هغه دَ عمرو بن مره نه او هغه دَ' ابن ابي ليلىٰ نه روايت او کهٔ' چه مونږ ته دَ نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم صحابهؓ بيان اوکهٔ' چه دَ' رمضان حکم نازل شو' نو په هغوي گرانه شوه. نو کومو خلقو چه هره ورځ يو مسکين ته طعام ورکولے شو. او دَ' روژے طاقت ئے لرلو' هغوي روژه پريښوده. او هغوي ته دَ دے اجازت هم ورکړے شوے وو. بيا آيت: و ان تصوموا خير لکم' هغه منسوخ کړلو' او دغے خلقوته دَ' روژے حکم ورکړے شو.

۵۲۵: حَدَّثَنَا عَيَّاشٌ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْاَعْلٰى حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَرَأَ فِدْيَةٌ طَعَامُ مَسْكِيْنَ قَالَ هِيَ مَنْسُوْخَةٌ.

۵۲۵: عياش. عبدالاعلي. عُبيد اللّٰه. نافع. ابن عمرؓ نه روايت كوي' چه هغه آيت فِديه طعام مسكين اولوستو. او وې ونيل چه دا منسوخ دې.

باب ۳۴۳: مَتٰى يُقْضٰى قَضَاءُ رَمَضَانَ وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ لَا بَأْسَ اَنْ يُّفَرَّقَ لِقَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى فَعِدَّةٌ مِّنْ اَيَّامٍ اُخَرَ وَ قَالَ سَعِيْدُ بْنُ الْمُسَيَّبِ فِيْ صَوْمِ الْعَشْرِ لَا يَصْلُحُ حَتّٰى يَبْدَأُ بِرَمَضَانَ وَ قَالَ اِبْرَاهِيْمُ اِذَا فَرَّطَ حَتّٰى جَآءَ رَمَضَانُ اٰخَرُ يَصُوْمُهُمَا وَلَمْ يَرَ عَلَيْهِ طَعَامًا وَّ يُذْكَرُ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ مُرْسَلًا وَّابْنِ عَبَّاسٍ اَنَّهُ يُطْعِمُ وَلَمْ يَذْكُرِ اللّٰهُ الْاِطْعَامَ اِنَّمَا قَالَ فَعِدَّةٌ مِّنْ اَيَّامٍ اُخَرَ.

باب ۳۴۳: دَ رمضان قضا روژې به كله پوره كړي. او ابن عباسؓ اووې' چه جدا جدا روژو نيولو كښې هيڅ حرج نشته خكه چه اللّٰه تعالي فرمائيلې دي. په نورو ورځو كښې په شمار پوره كړئې. او سعيد ابن مسيب او فرمائيل' دَ ذي الحجې لس نفل روژې هغهٔ پورې بهترې نهٔ دي' څو پورې چه دَ رمضان روژې اونهٔ نيسي. او ابراهيم اووې' كهٔ كوتاهي ئې اوكړه. او دوئم رمضان راغې' نو دَ دواړو روژې دې اونيسي' او په هغې ئې فديه واجب اونهٔ ګنړله. او ابوهريرةؓ نه مرسلًا او ابن عباسؓ نه منقول دي' چه هغه دې طعام اوخوروي' حالانكه اللّٰه تعالي ذ طعام خورولو ذكر نهٔ دې كړې' بلكه صرف دومره ئې اوفرمائيل' چه نورو ورځو كښې دې شمير پوره كړي.

۵۲۶: حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ يُوْنُسَ حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ قَالَ سَمِعْتُ عَائِشَةَ تَقُوْلُ كَانَ يَكُوْنُ عَلَيَّ الصَّوْمُ مِنْ رَّمَضَانَ فَمَا اَسْتَطِيْعُ اَنْ اَقْضِيَ اِلَّا فِيْ شَعْبَانَ قَالَ يَحْيٰى الشُّغْلُ مِنَ النَّبِيِّ اَوْ بِالنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۵۲۶: احمد بن يونس. زهير. يحيٰي. ابو سلمه. بي بي عائشېؓ روايت كوي. هغه وائي' په ما باندې به دَ رمضان قضا باقي وې. ما به ذ هغې قضا نهٔ شوه كولې' تردې چه ذ شعبان مياشت به راغله. يحيي بيان اوكهٔ' چه ذ نبي صلې اللّٰه عليه وسلّم خدمت كښې ذ مشغوله كيدو په سبب سره (به ورته موقع په لاس نهٔ ورتله)

باب ۳۴۴: اَلْحَائِضِ تَتْرُكُ الصَّوْمَ وَالصَّلٰوةَ وَ قَالَ اَبُو الزِّنَادِ اِنَّ

باب ۳۴۴: حائضه (ښځه) دې مونځ او روژې پريږدي. او ابوالزناد اووې' چه سُنت او ذ

السُّنَنَ وَ وُجُوْهَ الْحَقِّ لَتَأْتِيْ كَثِيْرًا عَلٰى خِلَافِ الرَّأْيِ فَلَا يَجِدُ الْمُسْلِمُوْنَ بُدًّا مِّنْ اِتِّبَاعِهَا مِنْ ذٰلِكَ اِنَّ الْحَائِضَ تَقْضِي الصِّيَامَ وَلَا تَقْضِي الصَّلٰوةَ.

حق طریقے اکثر دٔ رائے او عقل خلاف وي. لیکن مُسلمانانو دٔ پاره ذدے دٔ پیروي نه بغیر بل څه طریقه نشته. دغسے امورونه داهم دے چه حائضه دے دٔ روژے قضا کوي او د مونځ قضا دے نهٔ کوي.[۱]

۱. خمونږ ایمان په رسول الله صلي الله علیه وسلم او د هغه په رسالت دے چه هغه ربښتونے دے او د هغه رسالت او نبوّت حق دے او ښکاره دے د هغه ټولے خبرے د الله تعالٰي د طرفه دي. هغه د خان نه څه نه وائي. څه چه وائي هغه ټول د الله تعالٰي وحي ده. که د قرآن مجید آیت دي او که حدیث شریف وي. د دے ثبوت نه پس، د هغه فرمان مونږ له بغیر د ټال متهول نه، منل ضروري دي. صحیح او حق خبرے د پاره دا ضروري نده. چه هر څوک دے ورباندے پوهیږي. دنیا کښ ډیر څیزونه حق او صحیح دي. د دنیا خلق د هغے په حقله اختلاف کوي ټول ئے نه مني. ځکه چه د انسان عقل، د حق او د صداقت معیار نه دے انسان فطري طور ضعیف دے (وَ خُلِقَ الْاِنْسَانُ ضَعِيْفًا) نو کله چه مونږ رسول الله صلي الله علیه وسلم، پحقه د الله تعالٰي نبي او رسول او منلو. نو بیا د هغه هره خبره منل ضروري دي د انسان د عقل په نزد، حق او صداقت د حالاتو په وجه بدلیږي نن یو کار ښه دے ټول ئے مني او خوښوي او روستو راتلونکي خلق ئے نه مني، او چا چه کوم کار خوښولو. د هغوي نمسي کړوسي هغه کار ډیر زیات بد ګنړي. پدے وجه مونږ وایو. حق هغه څیز او هغه عمل دے چه کوم د الله تعالٰي په نزد حق دے او دا داسے یو ربښتینے خبره ده چه دا په هیڅ وخت کښ نه بدلیږي. د مختلفو زمانو حالات د هغے مطابق سَمُوْل دي. او په خپله خوښه د الله تعالٰي حکم د خپلے مرضي. د پاره بدلول خطرناک هلاکونکے عمل دے. ابو الزناد رحمة الله علیه خبردارے ورکړے دے چه د ښځے د حیض په حالت کښ مونځ کول او روژه ساتل دواړه منعه دي. او چه کله د حیض نه، پاکه شي. نو پاتے شوے روژے به نیسي قضائے کول فرض دي او مونځونه معاف دي د هغے قضا نیشته. مونځ او رَوژه دواړه فرض دي د مونځ قضا په حائضه واجبه نده. او د روژے قضاء ورباندے واجبه ده ابو الزناد رحمة الله علیه واني د دے رازونو د حل تلاش کولو کوشش مه کوئ. د رسول الله صلي الله علیه وسلم فرمان باندے عمل کوني دا د الله تعالٰي حکم دے.

یوے ښځے خمونږ مور حضرت عائشه رضي الله عنها نه پوښتنه او کړه. چه د حیض په دوران کښ خمانه مونځونه پاتے شوے دي نو چه څرنګ د روژو قضا کوم داسے د مونځونو قضا راوړل به غوره عمل نه وي؟ خمونږ مور بي بي او قهریده او ونے فرمایل آیاتهٔ حروریه (یوه خارجي فرقه) ئے چه د اسلام احکامو کښ زد و بدل غواړے، مونږ به د حیض نه پس د روژو قضا راوړله او د مونځ قضا معاف وه دا د رسول الله صلي الله علیه وسلم ښودلے طریقه ده.

۵۲۷: حَدَّثَنَا ابْنُ اَبِيْ مَرْيَمَ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ

۵۲۷: ابن ابي مریم. محمد بن جعفر. زید. عیاض. حضرت ابوسعید خدري نه روایت کوي

زَيْدٌ عَنْ عِيَاضٍ عَنْ اَبِيْ سَعِيْدٍ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلَيْسَ اِذَا حَاضَتْ لَمْ تُصَلِّ وَلَمْ تَصُمْ فَذٰلِكَ نُقْصَانُ دِيْنِهِمَا.

ذ هغهٔ بيان دے، نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم فرمائيلے دي، ښځه چه کله حائضه شي، نو آيا هغه مونځ او روژے نـهٔ پريږدي، او دغـه ذ هغے ذ دين کمے دے.

باب ۳۴۵: مَنْ مَّاتَ وَعَلَيْهِ صَوْمٌ وَ قَالَ الْحَسَنُ اِنْ صَامَ عَنْهُ ثَلٰثُوْنَ رَجُلًا يَوْمًا وَّاحِدًا جَازَ.

باب ۳۴۵: ذ هغے سړي بيان، چه مړ شي او په هغه روژے واجب وي. او حسن بصري او فرمائيل، کهٔ ديرش سړي ذ هغهٔ ذ طرف نه روژے اونيسي، نو کافي دي.

۵۲۸: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ خَالِدٍ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ ابْنُ مُوْسَى ابْنُ اَعْيَنَ حَدَّثَنَا اَبِيْ عَنْ عَمْرِو بْنِ الْحَارِثِ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِيْ جَعْفَرٍ اَنَّ مُحَمَّدَ ابْنَ جَعْفَرٍ حَدَّثَهُ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ مَّاتَ وَعَلَيْهِ صِيَامٌ صَامَ عَنْهُ وَلِيُّهُ تَابَعَهُ ابْنُ وَهْبٍ عَنْ عَمْرٍو رَّوَاهُ يَحْيٰى ابْنُ اَيُّوْبَ عَنِ ابْنِ اَبِيْ جَعْفَرٍ[۱].

۵۲۸: محمد بن خالد. محمد بن موسٰي بن اعين. موسٰي بن اعين. عمرو بن حارث. عبيد اللّٰه بن ابي جعفر. محمد بن جعفر عروه. بي بي عائشےؓ نه روايت کوي. هغه وائي، چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل کوم سړے چه مړ شي. او ذ هغهٔ په ذمه روژے واجب وي، نو ذ هغهٔ وارث دے ذ هغهٔ ذ طرفه روژے اونيسي. ابن وهب ذ عمرو نه ذ دے متابع حديث روايت کهٔ. او دا يحيٰي بن ايوب ذ، ابن ابي جعفر نه روايت کهٔ.

۱. د دے حديث شريف په وجه، امام احمد بن حنبل رحمة اللّٰه عليه فرمايلے دي "چه چا د روژو نذر (منخته) کړے وي او د منختے د روژو نيولو نه وړاندے وفات شي که چرے د هغه څوک وارث ولي، د هغه پخانے روژے نيسي نو ادا کيږي دے کښ څه ګناه نشته. ليکن د رمضان روژے چه چا نه وي نيولے او د روژو د قضا راوړلو نه وړاندے وفات شي د هغه پخانے څوک روژے نشي نيولے. ځکه چه د دے حديث شريف حکم د نذر د روژو په حقله دے.

د امام ابو حنيفه رحمة اللّٰه عليه په نزد، هيڅوک د بل چا پخانے نه، د نذر روژے نيولے شي نه د رمضان، بلکے فديه به ورکوي. د احنافو د مسلک په تائيد کښ نور احاديث هم شته دے چه "هيڅوک دے د بل چا په ځانے روژے نه، نيسي".

۵۲۹: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحِيْمِ حَدَّثَنَا مُعٰوِيَةُ بْنُ عَمْرٍو

۵۲۹: محمد بن عبدالرحيم. معاويه بن عمرو. زائده. اعمش. مسلم بطين. سعيد بن

حَدَّثَنَا زَائِدَةُ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ
مُسْلِمٍ الْبَطِيْنِ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ جُبَيْرٍ
عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ جَآءَ رَجُلٌ اِلَى
النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ
يَارَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّ اُمِّيْ مَاتَتْ وَ عَلَيْهَا
صَوْمُ شَهْرٍ اَفَاَقْضِيْهِ عَنْهَا قَالَ نَعَمْ
فَدَيْنُ اللّٰهِ اَحَقُّ اَنْ يُّقْضٰى قَالَ
سُلَيْمَانُ فَقَالَ الْحَكَمُ وَ سَلَمَةُ وَ
نَحْنُ جَمِيْعًا جُلُوْسٌ حِيْنَ حَدَّثَ
مُسْلِمٌ بِهٰذَا الْحَدِيْثِ قَالَ سَمِعْنَا
مُجَاهِدًا يَذْكُرُ هٰذَا عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ وَ
يُذْكَرُ عَنْ اَبِيْ خَالِدٍ حَدَّثَنَا الْاَعْمَشُ
عَنِ الْحَكَمِ وَ مُسْلِمٍ الْبَطِيْنِ وَ سَلَمَةَ
بْنِ كُهَيْلٍ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ جُبَيْرٍ وَّ
عَطَآءٍ وَّ مُجَاهِدٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَتِ
امْرَاَةٌ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
اِنَّ اُخْتِيْ مَاتَتْ وَ قَالَ يَحْيٰى وَ اَبُوْ
مُعٰوِيَةَ حَدَّثَنَا الْاَعْمَشُ عَنْ مُّسْلِمٍ
عَنْ سَعِيْدٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَتِ امْرَاَةٌ
لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّ
اُمِّيْ مَاتَتْ وَ قَالَ عُبَيْدُ اللّٰهِ عَنْ زَيْدِ
بْنِ اَبِيْ اُنَيْسَةَ عَنِ الْحَكَمِ عَنْ سَعِيْدِ
بْنِ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَتْ اِمْرَاَةٌ
لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّ
اُمِّيْ مَاتَتْ وَ عَلَيْهَا صَوْمُ نَذْرٍ وَّ قَالَ
اَبُوْ حَرِيْزٍ حَدَّثَنَا عِكْرِمَةُ عَنِ ابْنِ

جبیر. ابن عباسؓ نه روایت کوي، هغه اووې یو
سړې د نبي صلی الله علیه وسلّم خدمت کښې
حاضر شو. او عرض ئې اوکهٔ. یا رسول الله،
خما مور مړه شوه، او د هغې په ذمه د، یوې
میاشتې روژې واجب وې. آیا زهٔ د هغې د طرف
نه قضا (روژې) اونیسم. حضور صلی الله علیه
وسلّم ورته او فرمائیل. او، د، الله قرض د، ادا
کیدو زیات مستحق دې. سلیمان بیان اوکهٔ، حکم
او سلمه اووې، مونږ خلق ناست وو، کوم
وخت چه مسلم دا حدیث بیان کهٔ. دغې دواړو
اووې، مونږ د مجاهد نه واوریدل، چه دا، د، ابن
عباسؓ نه منقول دې. مونږ ته اعمش بیان کهٔ.
هغوي د حکم او مسلم بطین او سلمه بن کهیل
نه او هغوي د سعید بن جبیر او عطاء او مجاهد نه،
هغوي د، ابن عباسؓ نه بیان اوکهٔ، چه یوې ښځې
نبي صلی الله علیه وسلّم ته عرض اوکهٔ، خما خور
مړه شوه، او یحیی او ابو معاویه بیان اوکهٔ، چه
ماته اعمش په واسطه د مسلم. سعید. ابن عباسؓ
روایت اوکهٔ، یوې ښځې د نبي صلی الله علیه وسلّم
په خدمت کښ عرض اوکهٔ. خما مور مړه شوه. او
عبید الله په واسطه د، زید بن ابي انیسه. حکم. سعید
بن جبیر. ابن عباسؓ بیان اوکهٔ، چه یوې ښځې نبي
صلی الله علیه وسلّم ته عرض اوکهٔ خما مور مړه
شوه. او په هغې د، نذر روژې واجب وې. او د
ابو هریرهؓ بیان دې، ماته عکرمه او هغهٔ ته
ابن عباسؓ بیان اوکهٔ، یوې ښځې نبي

عَبَّاسٍ قَالَتِ امْرَأَةٌ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَاتَتْ أُمِّيْ وَ عَلَيْهَا صَوْمُ خَمْسَةَ عَشَرَ يَوْمًا.

صلے اللّٰه عليه وسلّم تـه عرض اوكـهٔ خما مور مـړه شوه، او پـه هغـې پنـځلس روژې واجب وې.

باب ۹۴۶: مَتٰى يَحِلُّ فِطْرُ الصَّائِمِ وَ أَفْطَرَ أَبُوْ سَعِيْدِ نِ الْخُدْرِيُّ حِيْنَ غَابَ قُرْصُ الشَّمْسِ.

بـاب ۹۴۶: روژه دار ذ پـاره كوم وخت روژه مـاتـول درسـت دي. او ابو سعيد خدريّ روژه ماته كړه، كوم وخت چه نمر ډوب شولو.

۱۵۳۰: حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِيُّ حَدَّثَنَا سُفْيٰنُ حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ قَالَ سَمِعْتُ أَبِيْ يَقُوْلُ سَمِعْتُ عَاصِمَ ابْنَ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ عَنْ أَبِيْهِ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أَقْبَلَ اللَّيْلُ مِنْ هٰهُنَا وَ أَدْبَرَ النَّهَارُ مِنْ هٰهُنَا وَ غَرَبَتِ الشَّمْسُ فَقَدْ أَفْطَرَ الصَّائِمُ.

۱۵۳۰: حـمـيـدي. سـفـيـان. هشـام بـن عـروه. عـروه. عـاصـم بـن عـمـر بن خطـاب حـضـرت عـمـر بـن خطـاب نـه روايـت كوي: هـغـه وائي رسـول اللّٰه صلے اللّٰه عليـه وسلّم او فـرمـائيـل، هـر كـلـه چـه شپـه ذ هغې طرف نـه راشـي. او ورځ ذ دې طـرف نـه لاړه شـي. او نـمـر ډوب شـي نـو ذ روژه دار ذ روژې مـاتـولو وخت راغې.

۱۵۳۱: حَدَّثَنَا إِسْحٰقُ الْوَاسِطِيُّ حَدَّثَنَا خَالِدٌ عَنِ الشَّيْبَانِيِّ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ أَبِيْ أَوْفٰى قَالَ كُنَّا مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ سَفَرٍ وَّهُوَ صَائِمٌ فَلَمَّا غَرَبَتِ الشَّمْسُ قَالَ لِبَعْضِ الْقَوْمِ يَا فُلَانُ قُمْ فَاجْدَحْ لَنَا فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ لَوْ أَمْسَيْتَ قَالَ انْزِلْ فَاجْدَحْ لَنَا قَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ فَلَوْ أَمْسَيْتَ قَالَ انْزِلْ فَاجْدَحْ لَنَا قَالَ إِنَّ عَلَيْكَ نَهَارًا قَالَ

۱۵۳۱: اسـحق. واسطي. خالد. شيباني عبدالله بن ابي اوفي نه روايت كوي، چه مونږ رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلّم سره يو سفر كښ وو، او ذ حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم روژه وه. كوم وخت چه نمر ډوب شو، نو خپل جماعت كښې يې چاته او فرمائيل، اې فلانيه پاسه، ما ذ پاره ستوان اوخولوه. هغهٔ عرض اوكهٔ يا رسول اللّٰه. پريږده چه مابنام شي. حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل ما ذ پاره ستوان تيار كړه. هغهٔ عرض اوكهٔ پريږده چه مابنام شي. حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل. كوز شه او ما د پاره ستوان تيار كړه. هغهٔ عرض اوكهٔ. اوس لا ورځ باقي ده. حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل. كوز شه او

انْزِلْ فَاجْدَحْ لَنَا فَنَزَلَ فَجَدَحَ لَهُمْ فَشَرِبَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ قَالَ اِذَا رَاَيْتُمُ اللَّيْلَ قَدْ اَقْبَلَ مِنْ هٰهُنَا فَقَدْ اَفْطَرَ الصَّآئِمُ.

ما ذ پاره ستوان تيار كړه. نو هغه سړے ز اكوز شولو. او خلقو د پاره هغهٔ ستوان تيار كړل. نبي صلے الله عليه وسلّم هغه اوڅكل ؛ او وے فرمائيل ' كله چه تاسو اووينئے ' چه شپه ذ هغے طرف نه راغله. نو د' روژه دار د' روژے ماتولو وخت راغے.

۱. د صحابي رضي الله عنه دا خيال وو چه نمر ډوب شوے ندے كني د بيا بيا خبرے كولو وجه نه وه. ټولو په يو ځائے سفر كولو په عربستان كښ غرونه ډير دي په غرنيزو علاقو كښ چه نمر ډوب شي نو بيا هم داسے محسوسيږي چه نمر لا ولاړ دے.

بابـ۳۴۷: يُفْطِرُ بِمَا تَيَسَّرَ عَلَيْهِ بِالْمَآءِ وَغَيْرِهٖ.

بابـ۳۴۷: اوبهٔ وغيره كهٔ آسانئ سره پيدا شي هغے سره دے روژه ماته كړي.

۵۳۲: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ حَدَّثَنَا الشَّيْبَانِيُّ قَالَ سَمِعْتُ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ اَبِيْ اَوْفٰى قَالَ سِرْنَا مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ صَآئِمٌ فَلَمَّا غَرَبَتِ الشَّمْسُ قَالَ انْزِلْ فَاجْدَحْ لَنَا قَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ لَوْ اَمْسَيْتَ قَالَ انْزِلْ فَاجْدَحْ لَنَا قَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّ عَلَيْكَ نَهَارًا قَالَ انْزِلْ فَاجْدَحْ لَنَا فَنَزَلَ فَجَدَحَ ثُمَّ قَالَ اِذَا رَاَيْتُمُ اللَّيْلَ اَقْبَلَ مِنْ هٰهُنَا فَقَدْ اَفْطَرَ الصَّآئِمُ وَ اَشَارَ بِاِصْبَعِهٖ قِبَلَ الْمَشْرِقِ.

۵۳۲: مسدد. عبدالواحد. شيباني. عبدالله بن ابي اوفي نه روايت دے. چه مونږ رسول الله صلے الله عليه وسلّم سره يو سفر كښ روان شو. او ذ حضور صلے الله عليه وسلّم روژه وه. كوم وخت چه نمر ډوب شو. نو وے فرمائيل چه كوز شه ' او مونږ ذ پاره ستوان تيار كړه. هغهٔ عرض اوكهٔ ' يا رسول الله ' پريږده چه ماښام شي ' حضور صلے الله عليه وسلّم ورته ا ز فرمائيل كوز شه ' مونږ له ستوان تيار كړه. هغهٔ عرض اوكهٔ. اوس خو ورځ باقي ده. حضور صلے الله عليه وسلّم ورته و فرمائيل ' كوز شه مونږ له ستوان تيار كړه. نو هغه راكوز شو ' او هغهٔ ستوان تيار كړل. بيا حضور صلے الله عليه وسلّم او فرمائيل ' كله چه تاسو اووينئے ' چه شپه ذ هغے طرف نه راغله ' نو ذ ' روژه دار ذ ' روژه ماتي وخت راغے. او خپلو ګوتو سره ئے مشرق طرف ته اشاره اوكړله.

## الحمد لله و الشكر لله ' اوومه پاره ختمه شوه









شارح: مولانا ظهور الباری اعظمی فاضل دار العلوم دیوبند

پښتو ترجمه مولانا محمد امین درانی

نظرثانی: حافظ قاری فضل کریم

اهتمام: ډاکتور محمد دین البشاوری

تاج کتب خانه رجسټرډ

قصه خوانی پشاور
فون: 214454

C-21

# تاج البخاري پاره ٨ دمضامينو فهرست

# اتمه پاره

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

بَـــابٌ ۳۴۸: تَـعْـجِيْـلِ الْاِفْطَارِ.

باب ۳۴۸: روژه ماتولو کښې د تادئ کولو بیان.

۵۳۳: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ اَبِيْ حَازِمٍ عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا يَزَالُ النَّاسُ بِخَيْرٍ مَّا عَجَّلُوا الْفِطْرَ.

۵۳۳: عبدالله بن یوسف. مالک. ابي حازم. سهل بن سعدؓ نه روایت کوي' رسول الله صلي الله علیه وسلم او فرمائیل' خلق به همیشه خیریت سره اوسي' څو پورې چه روژې ماتولو کښې تادي کوي.

۵۳۴: حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ يُوْنُسَ حَدَّثَنَا اَبُوْبَكْرٍ عَنْ سُلَيْمَانَ عَنِ ابْنِ اَبِيْ اَوْفٰى قَالَ كُنْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ سَفَرٍ فَصَامَ حَتّٰى اَمْسٰى قَالَ لِرَجُلٍ اِنْزِلْ فَاجْدَحْ لِيْ قَالَ لَوِ انْتَظَرْتَ حَتّٰى تُمْسِيَ قَالَ اِنْزِلْ فَاجْدَحْ لِيْ اِذَا رَاَيْتَ اللَّيْلَ قَدْ اَقْبَلَ مِنْ هٰهُنَا فَقَدْ اَفْطَرَ الصَّائِمُ.

۵۳۴: احمد بن یونس. ابوبکر. سلیمان ابن ابي اوفي نه روایت کوي' چه زهٔ نبي صلے الله علیه وسلم سره سفر کښې ووم' د حضور صلے الله علیه وسلم روژه وه' تر دې چه ماښام شو' تو یو سړي ته یې اووې' کوز شه' ما د پاره ستوان خوشته کړه' هغه اووې' کاش' تاسو ماښام کیدو پورې انتظار کړې وې. حضور صلے الله علیه وسلم ورته اوفرمائیل' کوز شه' ما د پاره ستوان تیار کړه کله چه تهٔ اووینې' چه شپه د دې طرف نه راغلـه' نو د' روژه دار د' روژې ماتولو وخت راغې.

بَـــابٌ ۳۴۹: اِذَا اَفْطَرَ فِيْ رَمَضَانَ ثُمَّ طَلَعَتِ الشَّمْسُ.

باب ۳۴۹: کهٔ یو سړے رمضان کښې روژه ماته کړي' بیا نمر راوخیژي.

۵۳۵: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ اَبِيْ شَيْبَةَ حَدَّثَنَا اَبُوْ اُسَامَةَ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ فَاطِمَةَ عَنْ اَسْمَآءَ بِنْتِ اَبِيْ بَكْرٍ قَالَتْ اَفْطَرْنَا

۵۳۵: عبدالله بن ابي شیبه. ابو اسامه. هشام بن عروه. فاطمه بنت منذر. اسماء بنت ابي بکرؓ نه روایت کوي. هغه وائي' مونږ خلقو د نبي صلے الله علیه وسلم زمانه کښې یوې وریځ ناکې ورځ روژه ماته کړه' بیا نمر

عَلٰى عَهْدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ غَيْمٍ ثُمَّ طَلَعَتِ الشَّمْسُ قِيْلَ لِهِشَامٍ فَأُمِرُوْا بِالْقَضَاءِ قَالَ بُدٌّ مِّنْ قَضَاءٍ وَ قَالَ مَعْمَرٌ سَمِعْتُ هِشَامًا لَآ اَدْرِيْٓ اَقْضَوْا اَمْ لَا.

راوختلو هشام نه تپوس اوشو، چه هغې خلقوته ذ قضا حکم ورکړے شو، هغهٔ اووے، ذدے نه سوائے بله څه طریقه ده. او معمر بیان اوکهٔ، ما ذ هشام نه واوریدل، ماته معلومه نهٔ ده، چه هغې خلقو ذ هغې روژے قضا اوکړه یا، نه.

## باب ۳۵۰: صَوْمِ الصِّبْيَانِ

## باب ۳۵۰: ذ بچو ذ، روژے نیولو بیان.

وَ قَالَ عُمَرُ لِنَشْوَانَ فِيْ رَمَضَانَ وَيْلَكَ وَ صِبْيَانُنَا صِيَامٌ فَضَرَبَهٗ.

او عمرؓ یو نشه باز ته رمضان کښ اووے، تهٔ هلاک شے، ځمونږ بچي خو، روژے نیسي (او، تهٔ شراب څکے) او په هغهٔ ئے حد جاري۱ کهٔ.

۱. دا د یو سړي واقعه ده چه رمضان کښ ئے شراب څښلي وو هغه چه کله خلیفه حضرت عمر رضي اللّٰه عنه ته پیش کړے شو نو هغه نشئ ته ډیره زور نه ورکړه او ورته ئے اویل "اوشرمیږه، د مسلمانانو واړه واړه ماشومان روژے نیسي او تا یواځے روژه نده ماته کړے بلکے شراب دے هم څښلي دي". بیا حضرت عمر رضي اللّٰه عنه په هغه حد جاري کړو. اتیا درے ئے اووهلو او شام ته ئے (جلا وطن) اوشړلو.
ددے واقعے نه د امام بخاري رحمة اللّٰه علیه دا مقصد دے چه د ماشومانو روژے نیول روا دي ځکه چه حضرت عمر رضي اللّٰه عنه ئے بیان کړیدے.

۵۳۶: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ الْمُفَضَّلِ حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ ذَكْوَانَ عَنِ الرُّبَيِّعِ بِنْتِ مُعَوِّذٍ قَالَتْ اَرْسَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غَدَاةَ عَاشُوْرَاءَ اِلٰى قُرَى الْاَنْصَارِ مَنْ اَصْبَحَ مُفْطِرًا فَلْيُتِمَّ بَقِيَّةَ يَوْمِهٖ وَمَنْ اَصْبَحَ صَائِمًا فَلْيَصُمْ قَالَتْ فَكُنَّا نَصُوْمُهٗ بَعْدُ وَ نُصَوِّمُ صِبْيَانَنَا وَ نَجْعَلُ لَهُمُ اللُّعْبَةَ مِنَ الْعِهْنِ فَاِذَا بَكٰى اَحَدُهُمْ عَلَى الطَّعَامِ اَعْطَيْنَاهُ ذَاكَ حَتّٰى يَكُوْنَ عِنْدَ الْاِفْطَارِ.

۵۳۶: مسدد. بشر بن مُفضل. خالد بن ذکوان. ربیع بنت معوذ نه روایت دے، چه نبي صلے اللّٰه علیه وسلّم ذ، عاشورے په سحر ذ، انصارو کلي ته خبر اولیږلو، چه چا صبا په داسے حال کښ کړے وي، چه روژه ئے نهٔ وي، نو هغه دِے خپله باقي ورځ پوره کړي او څوک چه روژه دار، وي، نو هغه دے روژه اونیسي. ذ، ربیع بیان دے دے نه پس به مونږ خلقو خپله روژه نیوله. او په خپلو بچو به مو روژه نیوله. او مونږ به هغوي ذ پاره ذ، مالوچو ګوډئے جوړولے، کله چه به هغوي کښ چا ذ، خوراک ذ پاره مړژل، نو مونږ به هغهٔ لههغه ګوډئے ورکوله، تردے چه ذ، روژے ماتیدو وخت به راغے.

## باب ۳۵۱: اَلْوِصَالِ وَمَنْ

## باب ۳۵۱: ذ متواتر۱ (پرله پسے) روژے نیولو

قَالَ لَيْسَ فِي اللَّيْلِ صِيَامٌ لِقَوْلِهِ تَعَالَى ثُمَّ اَتِمُّوا الصِّيَامَ اِلَى اللَّيْلِ وَ نَهَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْهُ رَحْمَةً لَّهُمْ وَ اِبْقَآءً عَلَيْهِمْ وَمَا يُكْرَهُ مِنَ التَّعَمُّقِ.

بيان. او' ذَ هغوي بيان' چه ذَ دے قائل دي' چه ذَ شپے روژه نشته' څکه چه اللّٰه تعالىٰ فرمائيلے دي' روژے دَشپے پورے پوره۲ کرئے. او نبي صلے الله عليه وسلّم' خلق' دَ مهربانۍ دَ کبلے او دَ طاقت باقي ساتلو دَ پاره دَ دے نه منع فرمائيلے دي. او عبادت کښ دَ شدت اختيارولو دَ کراهيت بيان:

۱. روژے د ورځے ساتلے شي ورځے د "صُبح صادق" نه شروع کيږي. او د نمر ډوبيدو سره ورځ ختمه شي شپه شروع شي. او شپه د صبح صادق ختلو پورے وي "صَوْمُ الْوِصَال" داسے روژے ته ويلے شي چه د ورځ او د شپے دواړو کښ پرله پسے روژه وي.

د شريعت د روژے مقصد' د ورځے په روژه پوره کيږي څکه چه د روژے مقصد سترے کول تنګول نه دي. د دے وجينه د صوم الوصال نه' منعه اوشوه.

رسول الله صلے الله عليه وسلّم ته الله تعالىٰ خصوصي طاقت ورکړے وو هغه به (صَوْمُ الْوِصَال) پرله پسے روژے نيولے د شپے به ئے هم روژه وه د ورځے هم.

۲. څکه چه د روژے حد شپے پورے دے چه شپه راشي روژه ختمه شي.

۵۳۷: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ قَالَ حَدَّثَنِيْ يَحْيٰى عَنْ شُعْبَةَ قَالَ حَدَّثَنِيْ قَتَادَةُ عَنْ اَنَسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا تُوَاصِلُوْا قَالُوْا اِنَّكَ تُوَاصِلُ قَالَ لَسْتُ كَاَحَدٍ مِّنْكُمْ اِنِّيْ اُطْعَمُ وَ اُسْقٰى اَوْ اِنِّيْ اَبِيْتُ اُطْعَمُ وَ اُسْقٰى.

۵۳۷: مسدد. يحيٰي. شعبه. قتاده. انس. نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم نه روايت کوي حضور صلے الله عليه وسلّم اوفرمائيل' پرله پسے روژے مهٔ نيسئے' خلقو عرض اوکهٔ' چه تاسو' خو' پرله پسے روژے نيسئے. حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل' چه زهٔ ستاسو په شان نهٔ يم' په ما خو' خوړولے او څکولے شي. يا' دا' ئے اوفرمائيل' چه زهٔ خو' شپه داسے حال کښ تيروم' چه په ما خوړولے او څکولے شي.

۵۳۸: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ نَّافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ قَالَ نَهَى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْوِصَالِ قَالُوْا اِنَّكَ تُوَاصِلُ قَالَ اِنِّيْ

۵۳۸: عبدالله بن يُوسف. مالک. نافع. عبدالله بن عمرؓ نه روايت دے' چه نبي صلے الله عليه وسلّم دَ' صوم وصال (پرله پسے روژو) نه منع فرمائيلے ده. خلقو عرض اوکهٔ' چه تاسو خو پرله پسے روژے نيسئے. نو حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل' چه زهٔ

لَسْتُ مِثْلَكُمْ اِنِّيْ اُطْعَمُ وَ اُسْقٰى.

ستاسو په شان نه یم. په ما خو خوړولے او څکولے شي.

٥٣٩: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ حَدَّثَنِيْ اِبْنُ الْهَادِ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ خَبَّابٍ عَنْ اَبِيْ سَعِيْدٍ اَنَّهٗ سَمِعَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ لَا تُوَاصِلُوْا فَاَيُّكُمْ اِذَا اَرَادَ اَنْ يُّوَاصِلَ فَلْيُوَاصِلْ حَتّٰى السَّحَرِ قَالُوْا فَاِنَّكَ تُوَاصِلُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ اِنِّيْ لَسْتُ كَهَيْئَتِكُمْ اِنِّيْ اَبِيْتُ لِيْ مُطْعِمٌ يُّطْعِمُنِيْ وَسَاقٍ يَّسْقِيْنِ.

٥٣٩: عبدالله بن یوسف. لیث. ابن هاد. عبدالله بن خباب. ابوسعید نه روایت دے هغه د نبي صلے الله علیه وسلم نه واوریدل چه تاسو پرله پسے روژے مه نیسئے. او تاسو کښ چه څوک پرله پسے روژے نیول غواړي نو د سحر پورے دے وصال اوکړي. خلقو عرض اوکړ تاسو خو صوم وصال نیسئے. حضور صلے الله علیه وسلم ورته اوفرمائیل زه ستاسو په شان نه یم. زه شپه تیروم داسے حال کښ چه په ما خوړولے او څکولے شي او څکونکے په ما څکوي.

ا. یعني دغه بنده دے مابنام روژه نه ماتوي تو له شپه دے څه خوراک څښاک نه کوي. لیکن چه کله چه د پیشمني وخت راشي نو پیشمنے به ضرور کوي. ددے نه زیات د پرله پسے روژے اجازت نشته.

## باب ٣٥٢: التَّنْكِيْلِ لِمَنْ اَكْثَرَ الْوِصَالَ رَوَاهُ اَنَسٌ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

## باب ٣٥٢: اکثر صوم وصال نیونکي ته د سزا ورکولو بیان.

٥٤٠: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبُوْ سَلَمَةَ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ اَنَّ اَبَا هُرَيْرَةَ قَالَ نَهٰى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْوِصَالِ فِي الصَّوْمِ فَقَالَ لَهٗ رَجُلٌ مِّنَ الْمُسْلِمِيْنَ اِنَّكَ تُوَاصِلُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ وَ اَيُّكُمْ مِثْلِيْ اِنِّيْ اَبِيْتُ يُطْعِمُنِيْ رَبِّيْ وَ يَسْقِيْنِ فَلَمَّا اَبَوْا اَنْ يَّنْتَهُوْا

٥٤٠: ابوالیمان. شعیب. زهري. ابوسلمه بن عبدالرحمن. حضرت ابوهریرهؓ نه روایت کوي چه نبي صلے الله علیه وسلم د صوم وصال نه منع فرمائیلے ده. بعضے مسلمانانو عرض اوکړ یا رسول اللهؐ تاسو خو صوم وصال نیسئے نو حضور صلے الله علیه وسلم ورته اوفرمائیل تاسو کښ څوک سړے څما په مثل شته په ماخو څما رب خوړوي او څکوي. هر کله چه خلق د صوم وصال نه منع نه شو نو حضور صلے الله علیه وسلم هغے خلقو سره صوم وصال اونیولو. بیا خلقو میاشت اولیده. حضور صلے الله علیه وسلم اوفرمائیل که نن

عَنِ الْوِصَالِ وَاصَلَ بِهِمْ يَوْمًا ثُمَّ رَأَوُا الْهِلَالَ فَقَالَ لَوْ تَأَخَّرَ لَزِدْتُكُمْ كَالتَّنْكِيلِ لَهُمْ حِيْنَ اَبَوْا اَنْ يَّنْتَهُوْا.

میاشت لیدلے شوے نه وے نو ما به خو ورځو پورے ستاسو د پاره دغسے روژے نیولے. ګویا د هغے خلقو د انکار په بنا د سزا ورکولو د پاره حضور صلے الله علیه وسلم دا او فرمائیل۱.

۱. د شریعت د ټولونه زیات اهم مقصد دا دے چه انسان دے بغیر د څه تال متول د الله تعالي حکم ـه سر ښکته کړي. څرنګ چه حکم وي په هغے عمل کول ضروري دي. په هغے کښ زیاتے کمے کول حطرناکه تباهي ده. کله چه مونږ د رسول الله صلے الله علیه وسلم په رسالت ایمان راوړو او قرآن و سنت مو پوره پوره اومنل. چه دا ټول د الله تعالي د طرفنه دي. نو بیا هغے کښ د څه ترددیا د شک ځائے نشته حکه چه الله تعالي خمونږ په کمزورو خمونږ نه زیات خبر دے هغه خمونږ فطرت جوړ کړیدے هغه خمونږ د فطرت موافق احکام رالیږلے دي دے احکامو کښ د عزیمت سره د رخصت احکام هم شته دے. او کله چه کومه معامله کښ شریعت پخپله رخصت ورکړي نو په هغے رخصت عمل کول ضروري دي. ځکه چه دغه احکام د الله تعالي خوښ دي د هغه د مرضي مطابق دي.

رسول الله صلے الله علیه وسلم د "صوم الوصال" نه خلق منعه کړل. دا منعه کول د الله تعالي حکم دے په بنیاد مونږ شفقت او مهرباني اوکړه. بعضے صحابه ؤ رضي الله عنهم دا اوګڼل د الله تعالي رضا داده چه چه "صوم الوصال" اونیولے شي لیکن د شریعت په نظر کښ د مشقت او تکلیف اهمیت نشته مونږ ته د الله تعالي حکم منل دي او دهغه رضا خمونږ رضا ده.

۱۵۴۱: حَدَّثَنَا يَحْيٰى حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ عَنْ مَّعْمَرٍ عَنْ هَمَّامٍ اَنَّهٗ سَمِعَ اَبَا هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِيَّاكُمْ وَالْوِصَالَ مَرَّتَيْنِ قِيْلَ اِنَّكَ تُوَاصِلُ قَالَ اِنِّيْ اَبِيْتُ يُطْعِمُنِيْ رَبِّيْ وَيَسْقِيْنِ فَاكْلَفُوْا مِنَ الْعَمَلِ مَا تُطِيْقُوْنَ.

۱۵۴۱: یحیي. عبدالرزاق. معمر. همّام. حضرت ابوهریرةؓ نه او هغه د نبي صلے الله علیه وسلم نه روایت کوي. حضور صلے الله علیه وسلم دوه ځله اوفرمائیل تاسو د صوم وصال ساتلو نه بچ اوسئے. عرض اوشو چه تاسو خو صوم وصال نیسئے. نو حضور صلے الله علیه وسلم ورته اوفرمائیل زۀ داسے حال کښ شپه تیروم چه خما رب په ما خوروي او څکوي. تاسو خپل عمل کښ دومره مشقت اوچتوئے څومره چه مو طاقت وي.

## بَابٌ ۳۵۳: اَلْوِصَالُ اِلَى السَّحَرِ.

## باب ۳۵۳: صبا پورے د صوم وصال ساتلو بیان.

۱۵۴۲: حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ حَمْزَةَ حَدَّثَنِيْ ابْنُ اَبِيْ حَازِمٍ عَنْ

۱۵۴۲: ابراهیم بن حمزه. ابن ابي حازم. یزید. عبدالله بن خباب. ابوسعید خدريؓ نه روایت کوي هغه

يَزِيْدَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ خَبَّابٍ عَنْ أَبِيْ سَعِيْدٍ رضي الله عنه الْخُدْرِيِّ أَنَّهُ سَمِعَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ لَا تُوَاصِلُوْا فَأَيُّكُمْ أَرَادَ أَنْ يُوَاصِلَ فَلْيُوَاصِلْ حَتَّى السَّحَرِ قَالُوْا فَإِنَّكَ تُوَاصِلُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ لَسْتُ كَهَيْئَتِكُمْ إِنِّيْ أَبِيْتُ لِيْ مُطْعِمٌ يُطْعِمُنِيْ وَ سَاقٍ يَسْقِيْنِ.

دَ نبي صلے الله عليه وسلّم نه واوريدل، تاسو، دَ وصال روژے مهٔ نيسے. تاسو كښې چه كوم سړے دَ وصال روژے نيسل غواړي، نو دَ سحر پورے دے اوساتي. خلقو عرض اوكړ، يا رسول اللّٰه، تاسو خو، دَ وصال روژے نيسئے حضور صلے الله عليه وسلّم ورته او فرمائيل، زهٔ ستاسو په شان نهٔ يم. زهٔ شپه تيروم، داسے حال كښې، چه په ما خورونكے خوروي او څكونكے څكوي.

## بَابٌ ۳۵۴: مَنْ أَقْسَمَ عَلٰى أَخِيْهِ لِيُفْطِرَ فِي التَّطَوُّعِ وَلَمْ يَرَ عَلَيْهِ قَضَاءً إِذَا كَانَ أَوْفَقَ لَهُ.

## باب ۳۵۴: كهٔ څوک خپل وروړته دَ نفل روژے دَ ماتولو دَ پاره قسم وركړي[۱] او په هغهٔ قضا واجب نهٔ ده، هر كله چه روژه نهٔ نيول دَهغهٔ دَ پاره بهتر وي.

۱. د احنافو په دے سلسله كښې دا مسلک دے كه چرے نفلي روژه يا نفلي مونځ چا مات كړو. په عذر سره وي يا بغير د عذر نه، په دواړه صورته كښې د هغے قضا دوباره ادا كول واجب دي. ځكه چه اللّٰه تعالٰي په نفلي عباداتو، انسان مكلّف كړے ندے كه پخپله څوک نفل ادا كوي نو اللّٰه تعالٰي د نفلو ثواب وركوي. ليكن څرنګ چه منخته نذر منلو سره واجبيږي داسے انسان چه كله نفلي عبادت شروع كړي نو دهغه د نذر پشان واجب شي كه چرے نفلي عبادت مات كړي نو قضا به واجبيږي. امام بخاري رحمة الله دا بيانول غواړي كه چا په څه وجه نفلي روژه ماته كړه. نو قضا نشته او نه ئے دوباره ادا كول واجبيږي.

۵۴۳: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا جَعْفَرُ بْنُ عَوْنٍ حَدَّثَنَا أَبُو الْعُمَيْسِ عَنْ عَوْنِ بْنِ أَبِيْ جُحَيْفَةَ عَنْ أَبِيْهِ قَالَ آخَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَ سَلْمَانَ وَ أَبِي الدَّرْدَاءِ فَزَارَ سَلْمَانُ أَبَا الدَّرْدَاءِ فَرَأَى أُمَّ الدَّرْدَاءِ مُتَبَذِّلَةً فَقَالَ لَهَا مَا شَأْنُكِ قَالَتْ أَخُوْكَ أَبُو الدَّرْدَاءِ لَيْسَ لَهُ حَاجَةٌ فِي الدُّنْيَا فَجَاءَ أَبُو الدَّرْدَاءِ

۵۴۳: مُحَمَّد بن بشار. جعفر بن عون. ابوالعميس. عون بن ابي جحيفه د خپل پلار نه روايت كوي، دَ هغهٔ بيان دے، چه نبي صلے الله عليه وسلّم دَ سلمان او ابو درداء په مينځ كښې وروروليي جوړه كړے وه. سلمان دَ، ابو درداء ملاقات له ورغے. نو اُم درداء ئے ډيره پريشان حاله اوليده. هغے نه ئے تپوس اوكړ څهٔ حال دے. هغے جواب وركړ. ستا دَ، ورور ابو درداء خو دُنيا سره هيڅ واسطه نشته. بيا ابو درداء راغے. نو سلمان دَ پاره ئے طعام تيار كړلو. اووے وئيل، چه خوره،

فَصَنَعَ لَهُ طَعَامًا فَقَالَ كُلْ فَإِنِّي صَائِمٌ قَالَ مَا أَنَا بِآكِلٍ حَتَّى تَأْكُلَ قَالَ فَأَكَلَ فَلَمَّا كَانَ اللَّيْلُ ذَهَبَ أَبُو الدَّرْدَاءِ يَقُومُ قَالَ نَمْ فَنَامَ ثُمَّ ذَهَبَ يَقُومُ فَقَالَ نَمْ فَلَمَّا كَانَ مِنْ آخِرِ اللَّيْلِ قَالَ سَلْمَانُ قُمِ الْآنَ فَصَلَّيَا فَقَالَ لَهُ سَلْمَانُ إِنَّ لِرَبِّكَ عَلَيْكَ حَقًّا وَلِنَفْسِكَ عَلَيْكَ حَقًّا وَلِأَهْلِكَ عَلَيْكَ حَقًّا فَأَعْطِ كُلَّ ذِي حَقٍّ حَقَّهُ فَأَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَكَرَ ذَلِكَ لَهُ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَدَقَ سَلْمَانُ.

او خپله ئې اووې' خما خو روژه ده' نوهغهٔ ورته اووې' زهٔ نهٔ خورم' څو پورې چه ته نهٔ خورې' نو هغهٔ ورسره خوراک اوکهٔ چه شپه راغله' نو ابو درداء پاسید' چه عبادت اوکړي. سلمان ورته اووې' اُودهٔ شه' نوهغه اُودهٔ شو. بیا عبادت دَ پاره پاسیدلو' نو هغهٔ ورته اووې' اُودهٔ شه. چه دَ شپې آخري حصّه شوه نو سلمانؓ ورته اووې' اوس پاسه. بیا دواړو مونځ اوکهٔ. سلمان هغهٔ ته اووې. ستا دَ رب په تاحق دې او' ستا دَ ځان په تاحق دې او ستا' دَ ښځې او بچو په تا حق دې' نو دَ هر مستحق حق ادا کوه. بیا نبي صلی الله علیه وسلّم له راغې' او حضور صلی الله علیه وسلّم ته ئې دا بیان اوکهٔ' نو نبي صلی الله علیه وسلّم ورته اوفرمائیل. سلمان ټیک اووې.

۱. ددې حدیث شریف په نورو روایاتو کښې دي. چه د ورځې ئې روژه وي او د شپې مونځونه کوي. په بل یو روایت کښې دي چه ابوالدرداء رضي الله عنه ښځو طرفته هیڅ توجّه نه وه. حضرت سلمان رضي الله عنه چه پدې وخت کښې کومه طریقه خوښه کړه. د هغې مقصد' ابوالدرداء رضي الله عنه رائې بدلول وو ځکه چه الله تعالیٰ د بندیانو حقونه هم واجب کړیدې د الله تعالیٰ د حقونونه روستو د هغې حقونو پوره کول ضروري دي. اُمّ الدرداء رضي الله عنه ته شکایت وو هغه پخپله د لوئې مرتبې صحابیه وه د صحابي لور وه. رسول الله صلي الله علیه وسلّم په پخپله په عبادت کښې د جبر و مشقت نه منعه کړیده ددې وجې نه سلمان رضي الله عنه هغه پوهه کولو چه دومره زیاتې پکار ندې.

## باب ۳۵۵: صَوْمِ شَعْبَانَ.

## باب ۳۵۵: دَ شعبان دَ روژې بیان.

۵۴۴: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ أَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ أَبِي النَّضْرِ عَنْ أَبِي سَلَمَةَ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَصُومُ حَتَّى نَقُولَ لَا يُفْطِرُ وَيُفْطِرُ حَتَّى نَقُولَ لَا يَصُومُ فَمَا رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

۵۴۴: عبدالله بن یوسف. مالک. ابوالنضر. ابوسلمه. بي بي عائشې نه روایت دې' چه نبي صلی الله علیه وسلّم به روژه نیوله' تردې چه مونږ به وئیلې' اوس به روژه نهٔ ماتوي. او' روژه به ئې ماتونه' تردې چه مونږ به وئیلې' چه اوس به روژه نهٔ نیسي. او ما نهٔ دي لیدلې' چه نبي صلی الله علیه وسلّم دَ رمضان دَ روژو نه سِوا بله میاشت کښې پوره روژې نیولې وي. او نه دَ شعبان دَ

ستكمل صيام شهر الا رمضان وما رأيته اكثر صياما منه في شعبان.

مياشتې نه زياتې بلې مياشتې كښې د حضور صلى الله عليه وسلم په روژو نيولو ليدلى دے.

۵۴۵: حدثنا معاذ بن فضالة حدثنا هشام عن يحيى عن ابي سلمة ان عائشة حدثته قالت لم يكن النبي صلى الله عليه وسلم يصوم شهرا اكثر من شعبان فانه كان يصوم شعبان كله و كان يقول خذوا من العمل ما تطيقون فان الله لا يمل حتى تملوا واحب الصلوة الى النبي صلى الله عليه وسلم ما دووم عليه و ان قلت و كان اذا صلى صلوة داوم عليها.

۵۴۵: معاذ بن فضاله. هشام. يحيى. ابو سلمه وائي چې بي بي عائشې هغه ته بيان او كړ چې نبي صلى الله عليه وسلم به د شعبان نه زياتې هيڅ مياشتې كښې روژې نه نيولې. حضور صلى الله عليه وسلم به د شعبان پوره مياشت كښې روژې نيولې او فرمائيل به ئې: دومره عمل اختياروئې د څومره چې تاسو طاقت لرئې. الله تعالى نه ستړے كيږي څو پورې چې تاسو ستړي نه شئې. او د ټولو نه محبوب مونځ د نبي صلى الله عليه وسلم په نزد هغه وو چې هغه هميشه كولے شي اگر كه كم وي. او هر كله چې به هغوئ مونځ كولو نو هميشه به ئې كولو.

باب ۳۵۶: ما يذكر من صوم النبي صلى الله عليه وسلم و افطاره.

باب ۳۵۶: د نبي صلى الله عليه وسلم د روژے او افطار متعلق چې كوم روايتونه راغلي دي.

۵۴۶: حدثنا موسى بن اسمعيل حدثنا ابو عوانة عن ابي بشر عن سعيد عن ابن عباس قال ما صام النبي صلى الله عليه وسلم شهرا كاملا قط غير رمضان و يصوم حتى يقول القائل لا والله لا يفطر و يفطر حتى يقول القائل لا و الله لا يصوم.

۵۴۶: موسى بن اسمعيل. ابو عوانه. ابوبشر. سعيد. ابن عباسؓ نه روايت كوي: چې نبي صلى الله عليه وسلم هيڅ كله پوره پوره مياشت سوا د رمضان نه هيڅ مياشت كښې روژے نه دي نيولې. حضور صلى الله عليه وسلم به روژه نيوله تردے چې ويونكي به وئيلې: په خدائے چې حضور صلى الله عليه وسلم به روژه نه ماتوي. او د حضور صلى الله عليه وسلم به كوژه وه تردے چې ويونے به وئيلے: په خدائے چې حضور صلى الله عليه وسلم به روژه نه نيسي.

۵۴۷: حدثني عبد العزيز

۵۴۷: محمد. ابو خالد احمر. حميد بيان كوي:

بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ عَنْ حُمَيْدٍ اَنَّهُ سَمِعَ اَنَسًا يَقُوْلُ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُفْطِرُ مِنَ الشَّهْرِ حَتّٰى نَظُنَّ اَنْ لَّا يَصُوْمَ مِنْهُ وَ يَصُوْمُ حَتّٰى نَظُنَّ اَنْ لَّا يُفْطِرَ مِنْهُ شَيْئًا وَّ كَانَ لَا تَشَآءُ تَرَاهُ مِنَ اللَّيْلِ مُصَلِّيًا اِلَّا رَاَيْتَهٗ وَلَا نَائِمًا اِلَّا رَاَيْتَهٗ وَ قَالَ سُلَيْمٰنُ عَنْ حُمَيْدٍ اَنَّهُ سَاَلَ اَنَسًا فِى الصَّوْمِ.

ماته: انس نه د نبي صلى الله عليه وسلّم د روژو متعلق تپوس اوکه. نو هغه اووے چه مابه کومه میاشت کښې حضور صلى الله عليه وسلّم د روژے په حالت کښې ليدل غوښتل نو ليدۀ به م. او که د افطار حالت کښې به م ليدل غوښتل نو هم ليدۀ به م. او د شپې د بيدارۍ حالت کښې يا خوب کښې کوم حال کښې چه به م ليدل غوښتل نو ليدۀ به م. او هيڅ ريښمينې کپړے م هم د رسول الله صلي الله عليه وسلّم د تلي (ہتھیلی) نه زياتے نرمے او نازکے نه دي ليدلے. او نه م داسے د مشک او عنبر خوشبوني بوئے کړے ده چه د رسول الله صلي الله عليه وسلّم د خوشبوئي نه پاکيزه او بهتره وي.

## بَابُ ۳۵۷: حَقِّ الضَّيْفِ فِى الصَّوْمِ.

باب ۳۵۷: روژه کښې د ميلمه د حق ادا کولو بيان.

۵۴۸: حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ اَخْبَرَنَا هٰرُوْنُ بْنُ اِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا عَلِيٌّ حَدَّثَنَا يَحْيٰى قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبُوْ سَلَمَةَ قَالَ حَدَّثَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عَمْرِو ابْنِ الْعَاصِ قَالَ دَخَلَ عَلَيَّ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَكَرَ الْحَدِيْثَ يَعْنِيْ اِنَّ لِزَوْرِكَ عَلَيْكَ حَقًّا وَّ اِنَّ لِزَوْجِكَ عَلَيْكَ حَقًّا فَقُلْتُ وَمَا صَوْمُ دَاوُدَ قَالَ نِصْفُ الدَّهْرِ.

۵۴۸: اسحٰق. هارون بن اسمٰعيل. علي. يحيي. ابوسلمه. عبدالله بن عمرو بن عاص نه روايت کوي. هغه وائي: ما پلے رسول الله صلے الله عليه وسلّم تشريف راوړلو. او پوره حديث ئے بيان کړه. يعني ستا د ميلمه په تا حق دے. او ستا د ښځے په تا حق دے. ما تپوس اوکه. د داؤد عليه السّلام روژه څنګه وه. حضور صلے الله عليه وسلّم اوفرمائيل: يوه ورځ به ئے روژه وه. او بله ورځ به ئے کوژه وه.

## بَابُ ۳۵۸: حَقِّ الْجِسْمِ فِى الصَّوْمِ.

باب ۳۵۸: روژه کښې د جسم د حق بيان.

۵۴۹: حَدَّثَنَا ابْنُ مُقَاتِلٍ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا الْاَوْزَاعِيُّ

۵۴۹: ابن مقاتل. عبدالله. اوزاعي. يحيي بن ابي کثير. ابوسلمه بن عبدالرحمن. عبدالله بن

قَالَ حَدَّثَنِيْ يَحْيَى بْنُ اَبِيْ كَثِيْرٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبُوْ سَلَمَةَ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ قَالَ حَدَّثَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِؓ قَالَ لِيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَا عَبْدَ اللّٰهِ اَلَمْ اُخْبَرْ اَنَّكَ تَصُوْمُ النَّهَارَ وَ تَقُوْمُ اللَّيْلَ فَقُلْتُ بَلٰى يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ فَلَا تَفْعَلْ صُمْ وَ اَفْطِرْ وَقُمْ وَنَمْ فَاِنَّ لِجَسَدِكَ عَلَيْكَ حَقًّا وَّ اِنَّ لِعَيْنِكَ عَلَيْكَ حَقًّا وَّ اِنَّ لِزَوْجِكَ عَلَيْكَ حَقًّا وَّ اِنَّ لِزَوْرِكَ عَلَيْكَ حَقًّا وَّ اِنَّ بِحَسْبِكَ اَنْ تَصُوْمَ كُلَّ شَهْرٍ ثَلٰثَةَ اَيَّامٍ فَاِنَّ لَكَ بِكُلِّ حَسَنَةٍ عَشْرَ اَمْثَالِهَا فَاِنَّ ذٰلِكَ صِيَامُ الدَّهْرِ كُلِّهٖ فَشَدَّدْتُ فَشُدِّدَ عَلَيَّ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنِّيْ اَجِدُ قُوَّةً قَالَ فَصُمْ صِيَامَ نَبِيِّ اللّٰهِ دَاوُدَ عَلَيْهِ السَّلَامُ وَلَا تَزِدْ عَلَيْهِ قُلْتُ وَمَا كَانَ صِيَامُ نَبِيِّ اللّٰهِ دَاوُدَ عَلَيْهِ السَّلَامُ قَالَ نِصْفُ الدَّهْرِ فَكَانَ عَبْدُ اللّٰهِؓ يَقُوْلُ بَعْدَ مَا كَبِرَ يَا لَيْتَنِيْ قَبِلْتُ رُخْصَةَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

عمرو بن عاص نه روايت كوي، ذ هغهٔ بيان دے، ماته رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل. اے عبداللّٰه، ماته معلومه شوے ده، چه تهٔ ذ، ورځے روژه نيسے، او ذ شپے (مانځه ته) ولاړ ئے. ما اووے او. يا رسول اللّٰه. حضور او فرمائيل. داسے مهٔ كوه. روژه كوه هم، او كوژه كوه هم. مونځ ذ پاره چه اودريږے، نو ذ شپے خوب هم كوه. ځكه چه ستا ذ بدن په تا حق دے. او ستا ذ ستركو په تا حق دے، او ستا ذ ښځے په تا حق دے او ستا ذ ميلمه په تا حق دے، او ستا ذ پاره هره مياشت كښ درے روژے نيول كافي دي. ذ، هرے نيكئ بدله كښ ذ هغے لس چنده اجر دے، نو گويا ټول عُمر روژه شو. ما په خپل ځان سختي كول غوښتل، نو سختي اوشوه. ما عرض اوكهٔ، يا رسول اللّٰه، زهٔ خپل ځان كښ ذ دے قوت بيا مومم. حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، ذ، اللّٰه ذ، نبي، داؤد عليه السّلام په شان روژے نيسه. او په هغے زياتے مهٔ كوه. ما تپوس اوكهٔ، ذ، اللّٰه ذ نبي داؤد عليه السّلام روژه څنګه وه. حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، يوه ورځ به ئے روژه وه، او بله ورځ كوژه. عبداللّٰه چه بُوډا شو، نو وئيل به ئے، كاش چه ما ذ نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم رُخصت قبول كړے وے[1].

۱. د صحابهٔ كرامو رضي اللّٰه عنهم دا طريقه وه چه د رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم سره ئے كوم عهد كړے وو په ټول ژوند كښ به ئے هغه پوره پوره ساتلو. كوم وخت چه عبداللّٰه بن عمرو بن العاص رضي اللّٰه عنهما دا خبرے نبي كريم صلي اللّٰه عليه وسلّم سره كړے وے. هغه وخت عبداللّٰه رضي اللّٰه عنه ځوان وو، هغه وخت د هغه په خيال كښ دانه وو. چه چرے به بوډا شي او بيا به ورته ګرانه شي ليكن د اللّٰه تعالي په نظر كښ د ژوند ټول حالات مخكښ وي او د هغے په نظر كښ د ساتلو مطابق احكام

جاري کوي. عبدالله بن عمرو رضي الله عنهما رسول الله صلي الله عليه وسلّم ته د صوم داود عليه السلام چه یوه ورځ به روژه نیسي او بله ورځ به نے کوژه وي. وعده کړے وه هغه وعده نے به هر حال پوره کوله.

باب ۳۵۹: صَوْمِ الدَّهْرِ.

باب ۳۵۹: د همیشه روژے نیولو بیان.

۵۵۰: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ اَخْبَرَنِيْ سَعِيْدُ بْنُ الْمُسَيَّبِ وَ اَبُوْ سَلَمَةَ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ اَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عَمْرٍو قَالَ اُخْبِرَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنِّيْ اَقُوْلُ وَاللّٰهِ لَا صُوْمَنَّ النَّهَارَ وَلَا قُوْمَنَّ اللَّيْلَ مَا عِشْتُ فَقُلْتُ لَهُ قَدْ قُلْتُهُ بِاَبِيْ اَنْتَ وَ اُمِّيْ قَالَ فَاِنَّكَ لَا تَسْتَطِيْعُ ذٰلِكَ فَصُمْ وَ اَفْطِرْ وَقُمْ وَ نَمْ وَ صُمْ مِنَ الشَّهْرِ ثَلٰثَةَ اَيَّامٍ فَاِنَّ الْحَسَنَةَ بِعَشْرِ اَمْثَالِهَا وَ ذٰلِكَ مِثْلُ صِيَامِ الدَّهْرِ قُلْتُ اِنِّيْ اُطِيْقُ اَفْضَلَ مِنْ ذٰلِكَ قَالَ فَصُمْ يَوْمًا وَّ اَفْطِرْ يَوْمَيْنِ قُلْتُ اِنِّيْ اُطِيْقُ اَفْضَلَ مِنْ ذٰلِكَ قَالَ فَصُمْ يَوْمًا وَ اَفْطِرْ يَوْمًا فَذٰلِكَ صِيَامُ دَاوُدَ عَلَيْهِ السَّلَامُ وَهُوَ اَفْضَلُ الصِّيَامِ فَقُلْتُ اِنِّيْ اُطِيْقُ اَفْضَلَ مِنْ ذٰلِكَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا اَفْضَلَ مِنْ ذٰلِكَ.

۵۵۰: ابو الیمان. شعیب. زهري. سعید بن مسیب. ابو سلمه بن عبدالرحمن: عبدالله بن عمرو نه روایت کوي. هغه او وئیل رسول الله صلے الله علیه وسلّم ته خما متعلق معلومه شوه چه زه وائم، په خدائے چه، خو پورے ژوندے یئم. د ورځے به روژے نیسم. او د شپے به (مانځه ته) اودریږم. ما حضور صلے الله علیه وسلّم ته عرض اوکړو. خما مور پلار دے په تاسو قربان وي. ما داسے وئیلے دي. حضور صلے الله علیه وسلّم او فرمائیل: ته د دے طاقت نه لرے، خو ځکه ته روژه کوه هم او کوژه کوه هم. او د شپے عبادت د پاره او دریږه او خوب هم کوه. او هره میاشت کښې درے روژے نیسه، ځکه چه د هرے نیکئ لس چنده اجر دے، او دا د ټول عمر د روژو نیولو برابر دي. ما عرض او کړو زه د دے نه زیات طاقت لرم. حضور صلے الله علیه وسلّم او فرمائیل، یوه ورځ روژه کوه، او بله ورځ کوژه کوه. دا د داؤد علیه السّلام روژه ده. او دا د ټولو روژو نه افضله ده. ما عرض او کړو زه د دے نه ډیر زیات طاقت لرم. نبي صلے الله علیه وسلّم او فرمائیل. د دے نه افضله روژه نشته.

باب ۳۶۰: حَقِّ الْاَهْلِ فِي الصَّوْمِ رَوَاهُ اَبُوْ جُحَيْفَةَ عَنِ النَّبِيِّ

باب ۳۶۰: روژه کښې د ښځے بچو حق دے: ابو جحیفه دا، د نبي صلے الله علیه وسلّم نه روایت

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

**۱۵۵۱: حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ** عَلِيٍّ أَخْبَرَنَا أَبُو عَاصِمٍ عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ سَمِعْتُ عَطَاءً أَنَّ أَبَا الْعَبَّاسِ الشَّاعِرَ أَخْبَرَهُ أَنَّهُ سَمِعَ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عَمْرٍو بَلَغَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنِّي أَسْرُدُ الصَّوْمَ وَأُصَلِّي اللَّيْلَ فَإِمَّا أَرْسَلَ إِلَيَّ وَإِمَّا لَقِيتُهُ فَقَالَ أَلَمْ أُخْبَرْ أَنَّكَ تَصُومُ وَلَا تُفْطِرُ وَتُصَلِّي فَصُمْ وَأَفْطِرْ وَقُمْ وَنَمْ فَإِنَّ لِعَيْنِكَ عَلَيْكَ حَقًّا وَإِنَّ لِنَفْسِكَ وَأَهْلِكَ عَلَيْكَ حَقًّا قَالَ إِنِّي لَأَقْوَى لِذَٰلِكَ قَالَ فَصُمْ صِيَامَ دَاوُدَ عَلَيْهِ السَّلَامُ قَالَ وَكَيْفَ قَالَ كَانَ يَصُومُ يَوْمًا وَيُفْطِرُ يَوْمًا وَلَا يَفِرُّ إِذَا لَاقَى قَالَ مَنْ لِي هٰذِهِ يَا نَبِيَّ اللّٰهِ قَالَ عَطَاءٌ لَا أَدْرِي كَيْفَ ذَكَرَ صِيَامَ الْأَبَدِ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا صَامَ مَنْ صَامَ الْأَبَدَ مَرَّتَيْنِ.

کړے دے.

**۱۵۵۱:** عمرو بن علي. ابو عاصم. ابن جريج. عطاء. ابو العباس شاعر د عبدالله بن عمرو نه واوريدل. نبي صلے الله عليه وسلم ته خبر اورسيد چه زهٔ برابر روژے نيسم. او د شپے مونځ هم کوم. نو حضور صلے الله عليه وسلم زهٔ راوغوښتلم، يازهٔ خپله حضور صلے الله عليه وسلم له راغلم نو حضور صلے الله عليه وسلم راته اوفرمائيل ماته معلومه شوے ده، چه ته روژے نيسے. او کوژه کوے نه. او مونځ کوے، نو روژه هم کوه، او کوژه هم کوه. د شپے عبادت د پاره هم اودريږه، او اوده کيږه هم، ځکه چه ستا د سترګو په تا حق دے، او ستا د ځان او ستا د ښځے هم په تا حق دے. ما عرض اوکهٔ زهٔ خپل ځان د دے نه زيات قوي ګنړم، حضور صلے الله عليه وسلم ورته اوفرمائيل. د داؤد عليه السّلام روژے نيسه ما تپوس اوکهٔ هغه به څنګه روژے نيولے. حضور صلے الله عليه وسلم اوفرمائيل، يوه ورځ به ئے روژه وه، او بله ورځ به ئے کوژه وه، او کله چه به ئے دشمن سره مقابله وه، نو ورستو کيدلو به نه، عبدالله اووے، ما عرض اوکهٔ، چه څما دطرف نه د دے ذمه واري څوک آخلي. عطاء اووے، زهٔ نهٔ پوهيږم، چه د هميشه روژے نيولو ذکر، ئے څنګه اوکهٔ. نبي صلے الله عليه وسلم دوباره اوفرمائيل، چا چه هميشه د پاره روژے اونيولے، هغه ګويا روژے اونه نيولے.

## بَابٌ ۱۳۶۱: صَوْمِ يَوْمٍ وَإِفْطَارِ يَوْمٍ.

**باب ۱۳۶۱:** يوه ورځ د روژے نيولو او يوه ورځ د افطار کولو بيان.

**۱۵۵۲: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ**

**۱۵۵۲:** محمد بن بشار. غندر. شعبه. مجاهد.

بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ مُغِيْرَةَ قَالَ سَمِعْتُ مُجَاهِدًا عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ صُمْ مِنَ الشَّهْرِ ثَلٰثَةَ اَيَّامٍ قَالَ اُطِيْقُ اَكْثَرَ مِنْ ذٰلِكَ فَمَا زَالَ حَتّٰى قَالَ صُمْ يَوْمًا وَّ اَفْطِرْ يَوْمًا فَقَالَ اقْرَءِ الْقُرْاٰنَ فِيْ كُلِّ شَهْرٍ قَالَ اِنِّيْ اُطِيْقُ اَكْثَرَ فَمَا زَالَ حَتّٰى قَالَ فِيْ ثَلٰثٍ.

عبداللّٰه بن عمرو' نبي صلی اللّٰه علیه وسلّم نه روایت کوي. حضور صلی اللّٰه علیه وسلّم او فرمائیل' میاشت کښې درې روژې نیسه' هغه عرض او کړو' زۀ ددې نه زیات طاقت لرم. دغه شان خبرې اترې کیدلې تردې چه حضور صلی اللّٰه علیه وسلّم ورته او فرمائیل' یو ورځ روژه کوه او یوه کوژه کړه حضور صلی اللّٰه علیه وسلّم او فرمائیل' قرآن میاشت کښې یو ځل ختموه. عبداللّٰه عرض او کړو' زۀ ددې نه زیات طاقت لرم' تردې چه حضور ورته او فرمائیل' درې ورځو کښې یو ځل ختموه.

## باب ۱۲۶۲: صَوْمِ دَاوُدَ عَلَيْهِ السَّلَامُ.

## بـاب ۱۲۶۲: دَ داؤد علیه السّلام دَ روژو بیان.

۵۵۳: حَدَّثَنَا اٰدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا حَبِيْبُ ابْنُ اَبِيْ ثَابِتٍ قَالَ سَمِعْتُ اَبَا الْعَبَّاسِ الْمَكِّيَّ وَ كَانَ شَاعِرًا وَ كَانَ لَا يُتَّهَمُ فِيْ حَدِيْثِهٖ قَالَ سَمِعْتُ عَبْدَ اللّٰهِ ابْنَ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ قَالَ قَالَ لِيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّكَ لَتَصُوْمُ الدَّهْرَ وَ تَقُوْمُ اللَّيْلَ فَقُلْتُ نَعَمْ قَالَ اِنَّكَ اِذَا فَعَلْتَ ذٰلِكَ هَجَمَتْ لَهُ الْعَيْنُ وَ نَفِهَتْ لَهُ النَّفْسُ لَا صَامَ مَنْ صَامَ الدَّهْرَ صَوْمُ ثَلٰثَةِ اَيَّامٍ صَوْمُ الدَّهْرِ كُلِّهٖ قُلْتُ فَاِنِّيْ اُطِيْقُ اَكْثَرَ مِنْ ذٰلِكَ قَالَ فَصُمْ صَوْمَ دَاوُدَ عَلَيْهِ السَّلَامُ كَانَ يَصُوْمُ يَوْمًا وَّ يُفْطِرُ يَوْمًا وَّلَا يَفِرُّ اِذَا

۵۵۳: آدم. شعبه. حبیب بن ابي ثابت ابو العباس مکي (چه شاعر وو' او حدیث کښې ورباندې تهمت نۀ وۀ) عبداللّٰه بن عمرو بن عاص نه روایت کوي' دَ هغۀ بیان دے' ماته رسول اللّٰه صلی اللّٰه علیه وسلّم او فرمائیل' ته برابر روژې نیسې. او دَ شپې عبادت دَ پاره اودریږې' ما عرض او کړو "او". حضور صلی اللّٰه علیه وسلّم او فرمائیل' هر کله چه ته داسې کوې' نو ستا سترګو کښې به کنډې جوړې شي' او بدن به دې کمزور شي' چا چه همیشه روژه اونیوله هغه نه ده نیولې میاشت کښې درې روژې نیسل دَ همیشه روژې نیولو برابر دي. ما عرض او کړو. زۀ ددې نه زیات طاقت لرم. حضور صلی اللّٰه علیه وسلّم او فرمائیل. دَ داؤد علیه السّلام روژې نیسه. دَ هغۀ به یوه ورځ روژه وه او بله ورځ کوژه. او کله چه به نې دشمن سره مقابله شوه' نو شا

لَاتِي. کوله به ئې نه.

۱. شاعري د انسان په طبیعت کښ مبالغه کول، او خیالي تصورات پیدا کوي. ددې وجې نه راوي په وصاحت سره اوویل چه راوي شاعر وو خو بیا هم ثقه (اعتباري) وو ذ هغه په طبیعت کښ مبالغه وغیره نه وو بلکه احتیاط، اعتماد او د واقعاتو د صحت به ئې خیال ساتلو په هغه باندې د احادیثو په روایتونو کولو څه تهمت نه وو.

۵۵۴: حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ الْوَاسِطِيُّ حَدَّثَنَا خَالِدٌ عَنْ خَالِدٍ عَنْ اَبِيْ قِلَابَةَ قَالَ اَخْبَرَنِيْ اَبُو الْمَلِيْحِ قَالَ دَخَلْتُ مَعَ اَبِيْكَ عَلٰى عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو فَحَدَّثَنَا اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذُكِرَ لَهُ صَوْمِيْ فَدَخَلَ عَلَيَّ فَاَلْقَيْتُ لَهُ وِسَادَةً مِّنْ اَدَمٍ حَشْوُهَا لِيْفٌ فَجَلَسَ عَلَى الْاَرْضِ وَ صَارَتِ الْوِسَادَةُ بَيْنِيْ وَ بَيْنَهُ فَقَالَ اَمَا يَكْفِيْكَ مِنْ كُلِّ شَهْرٍ ثَلٰثَةُ اَيَّامٍ قَالَ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ خَمْسًا قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ سَبْعًا قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ تِسْعًا قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ اِحْدٰى عَشْرَةَ ثُمَّ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا صَوْمَ فَوْقَ صَوْمِ دَاوُدَ عَلَيْهِ السَّلَامُ شَطْرُ الدَّهْرِ صُمْ يَوْمًا وَ اَفْطِرْ يَوْمًا.

۵۵۴: اسحٰق واسطي. خالد (بن عبدالله) خالد (حذاء) ابوقلابه. ابوالمليح. ابو قلابه ته اووې، چه زهٔ ستا پلار سره عبدالله بن عمرو له ورغلم. نو هغهٔ مونږته اووې، رسول الله صلی الله وسلّم ته څما ذ، روژې ذکر اوشولو، نو حضور صلی الله علیه وسلّم ماله تشریف راوړلو، ما ذ حضور صلی الله علیه وسلّم ذ پاره ذ څرمنې تکیه، چه ذ قجورو ذ پوستکو نه ډکه وه، اوغوړوله حضور صلی الله علیه وسلّم په زمکه کیناستو، او هغه تکیه څما او ذ حضور صلی الله علیه وسلّم په مینځ کښ حائله وه[۱]. حضور صلی الله علیه وسلّم او فرمائیل آیا تاله هره میاشت کښ درې روژې کافي نهٔ دي. ما اووې، یا رسول الله، څهٔ نور نو حضور صلی الله علیه وسلّم او فرمائیل پنځه، ما اووې څه نور اې ذ خدائې رسوله نو هغه او فرمائیل اووهٔ نو ما اووې څه نور، حضور صلی الله علیه وسلّم اوفرمائیل، نهه. ما عرض اوکهٔ، یا رسول الله، څهٔ نور نو حضور صلی الله علیه وسلّم اوفرمائیل ذ، داؤد علیه السّلام ذ، روژو نه زیاته هیڅ روژه نشته. یوه ورځ روژه کوه، او یوه ورځ کوژه کوه.

۱. الله ډیر لوئې دې په رَحْمَةً لِّلْعَالَمِين، د دوارو جهانونو سردار، د رحمت پیغمبر کښ څومره خاکساري عاجزي وه څومره متواضع وو د هغه په یوه معمولي اشاره به صحابه کرامو رضي الله عنهم خانونه قربانول او په تواضع کښې د رسول الله صلي الله علیه وسلّم دا حال وو چه کله به ئې مجلس کښ خان له

خدا امتيازي نه برداشت كولو په ټول مبارك ژوند كښې د دواړو جهانونو د سردار د رحمة اللعالمين ذاتِ د تواضع شان وو نو الله تعالیٰ دې په هغه، د هغه په ال او په ټولو صحابهٔ كرامو رضي الله عنهم رحمتونه او بركتونه نازل كړي.

باب ۳۶۳: صِيَامِ اَيَّامِ الْبِيضِ ثَلٰثَ عَشْرَةَ وَ اَرْبَعَ عَشْرَةَ وَ خَمْسَ عَشْرَةَ.

باب ۳۶۳: ايام بيض يعني ذ هرې مياشت په ديارلسمه، څوارلسمه او پنځلسمه ذ روژې نيولو بيان.

۵۵۵: حَدَّثَنَا اَبُوْ مَعْمَرٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ حَدَّثَنَا اَبُو التَّيَّاحِ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبُوْ عُثْمٰنَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ اَوْصَانِيْ خَلِيْلِيْ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِثَلٰثٍ صِيَامِ ثَلٰثَةِ اَيَّامٍ مِنْ كُلِّ شَهْرٍ وَّ رَكْعَتَيِ الضُّحٰى وَ اَنْ اُوْتِرَ قَبْلَ اَنْ اَنَامَ.

۵۵۵: ابو معمر. عبدالوارث. ابو التياح. ابو عثمان. ابوهريرهؓ نه روايت كوي، ذ هغهٔ بيان دې، ماته خما دوست صلى الله عليه وسلّم ذ درې خبرو وصيت كړې دې. (۱) هرې مياشت كښې درې ورځې روژې نيول (۲) ذ چاشت دوه ركعاته كول (۳) او ذ اوده كيدو نه مخكښې ئې راته ذ وتر وصيت اوفرمائيلو.

باب ۳۶۴: مَنْ زَارَ قَوْمًا فَلَمْ يُفْطِرْ عِنْدَهُمْ.

باب ۳۶۴: ذ هغې سړي بيان، چه ذ چا ملاقات له لاړ شي، او هلته خپله (نفلي) روژه ماته نهٔ كړي.

۵۵۶: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنّٰى قَالَ حَدَّثَنِيْ خَالِدٌ هُوَ ابْنُ الْحَارِثِ حَدَّثَنَا حُمَيْدٌ عَنْ اَنَسٍؓ دَخَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلٰى اُمِّ سُلَيْمٍ فَاَتَتْهُ بِتَمْرٍ وَّ سَمْنٍ قَالَ اَعِيْدُوْا سَمْنَكُمْ فِيْ سِقَائِهٖ وَ تَمْرَكُمْ فِيْ وِعَائِهٖ فَاِنِّيْ صَائِمٌ ثُمَّ قَامَ اِلٰى نَاحِيَةٍ مِّنَ الْبَيْتِ فَصَلّٰى غَيْرَ الْمَكْتُوْبَةِ فَدَعَا لِاُمِّ سُلَيْمٍ وَّ اَهْلِ بَيْتِهَا فَقَالَتْ

۵۵۶: محمّد بن مثنٰي. خالد بن حارث. حميد. انسؓ نه روايت كوي، چه نبي صلى الله عليه وسلّم ته ئې قجورې او، غوړي راوړل. حضور صلى الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل، غوړي او قجورې خپلو لوښو كښې كيږده، ځكه چه زهٔ روژه دار، يم. بيا ذ كور په يو كُټ كښې اودريدلو. او ذ فرض نه سِوا يعني نفل مونځ ئې اوكهٔ. اُم سليم او، ذ هغې ذ كور، والو ذ پاره ئې دُعا اوكړله. اُم سليم عرض اوكهٔ، يا رسول الله، چه خما ايكې يو بچوړې دې هغه ته هم دعا اوكړئ، حضور صلعم اوفرمائيل هغه څوك دې ما عرض اوكړو ستاسو خادم انس

أُمُّ سُلَيْمٍ يَا رَسُولَ اللهِ إِنَّ لِي خُوَيْصَةً قَالَ مَا هِيَ قَالَتْ خَادِمُكَ أَنَسٌ فَمَا تَرَكَ خَيْرَ آخِرَةٍ وَلَا دُنْيَا إِلَّا دَعَا بِهِ قَالَ اللَّهُمَّ ارْزُقْهُ مَالًا وَوَلَدًا وَبَارِكْ لَهُ فَإِنِّي لَمِنْ أَكْثَرِ الْأَنْصَارِ مَالًا وَحَدَّثَتْنِي ابْنَتِي أُمَيْنَةُ أَنَّهُ قَالَ دُفِنَ لِصُلْبِي مَقْدَمَ حَجَّاجٍ الْبَصْرَةَ بِضْعٌ وَعِشْرُونَ وَمِائَةٌ.

دے صرف ما د پاره مو' دعا اوکړله' حضور صلے الله علیه وسلم ورته اوفرمائیل' نور څه' اوسلیم ورته عرض اوکړه. خپل خادم انسؓ د پاره هم دعا اوکړئے. حضور صلے الله علیه وسلم د' دنیا او آخرت هیڅ ښیګړه پرے نه ښوده' چه د هغے دعائے ورته اونه کړله. حضور صلے الله علیه وسلم اوفرمائیل' اے خدایه دۀ ته مال او اولاد ورکړے. او برکت ورکړے' د' انسؓ بیان دے' چه زۀ د' انصارو نه زیات مالداریم. او ماته خما لور امینه بیان اوکۀ' چه د حجاج بصرے ته د' راتلو د' وخت پورے خما د نسل نه د' شپږ شلو نه زیات بچي دفن شوے وو.

٥٥٧: حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي مَرْيَمَ أَخْبَرَنَا يَحْيَى قَالَ حَدَّثَنِي حُمَيْدٌ سَمِعَ أَنَسًا عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

٥٥٧: ابن ابي مريم. يحيي. حميد. انسؓ نه' هغه د نبي صلے الله عليه وسلم نه دغه حديث نقل كوي.

**باب ٣٦٥: الصَّوْمِ آخِرَ الشَّهْرِ.**

**باب ٣٦٥: آخر مياشت كښې د' روژے نيولو بيان.**

٥٥٨: حَدَّثَنَا الصَّلْتُ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا مَهْدِيٌّ عَنْ غَيْلَانَ ح وَحَدَّثَنَا أَبُو النُّعْمَانِ حَدَّثَنَا مَهْدِيُّ بْنُ مَيْمُونٍ حَدَّثَنَا غَيْلَانُ بْنُ جَرِيرٍ عَنْ مُطَرِّفٍ عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍؓ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ سَأَلَهُ أَوْ سَأَلَ رَجُلًا وَعِمْرَانُ يَسْمَعُ فَقَالَ يَا أَبَا فُلَانٍ أَمَا صُمْتَ سَرَرَ هَذَا الشَّهْرِ قَالَ أَظُنُّهُ

٥٥٨: صلت بن محمد. مهدي. غيلان. ح (دوئم سند) ابو النعمان. مهدي بن ميمون. غيلان بن جرير. مطرف. عمران بن حصينؓ نبي صلے الله عليه وسلم نه روايت كوي. حضور صلے الله عليه وسلم د عمران نه تپوس اوكۀ' يا' د بل چا نه' چه هغه عمران آوريدل' حضور صلے الله عليه وسلم او فرمائيل. اے ابو فلان' آيا تا' د دے مياشت آخر كښے روژے نۀ دي نيولے. د' ابوالنعمان بيان دے' خما خيال كښ د حضور صلے الله عليه وسلم مقصد' رمضان وو. هغے سړي

قَالَ يَعْنِيُ رَمَضَانَ قَالَ الرَّجُلَ لَا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ فَإِذَا اَفْطَرْتَ فَصُمْ يَوْمَيْنِ لَمْ يَقُلِ الصَّلْتُ اَظُنُّهُ يَعْنِيُ رَمَضَانَ قَالَ اَبُوْ عَبْدِ اللّٰهِ وَ قَالَ ثَابِتٌ عَنْ مُطَرِّفٍ عَنْ عِمْرَانَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ سَرَرِ شَعْبَانِ.

عرض او كۀ، نه، يا رسول اللّٰه، حضور صلے الله عليه وسلّم اوفرمائيل، كله چه ته روژه ماتوے نو دوه ورځے روژه ساته. صلت دا، اونۀ وے، چه د دے نه د حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم مقصد رمضان وو. او ابوعبدالله (بخاري) اووے، چه ثابت دَ مطرف نه، هغۀ دَ عمران نه او هغۀ دَ نبي صلے الله عليه وسلّم نه مِنْ سَرَرِ شعبان (رمضان) لفظ روايت كۀ.

بَــابُ ٣٦٦: صَــوْمِ يَـوْمِ الْجُمُعَةِ فَــإِذَا اَصْبَحَ صَــائِمًا يَّوْمَ الْجُمُعَةِ فَعَلَيْهِ اَنْ يُّفْطِرَ.

باب ٣٦٦: دَ جمعے په ورځ دَ روژے نيولو بيان. كۀ څوک دَ جمعے روژه اوساتي، نو په هغۀ لازم دي چه روژه ماته[1] كړي.

۱. د فقهے حنفي مستند كتاب "الدُّرُّ الْمُختار" فتاوي شاميه كښې دي. چه د جمعے په ورځ روژه نيول مكروهه دي ليكن دا هم ډيره سختي ده. زيات نه زيات بے ضرورته ورته ويلے شے. او دا ددے په وجه، چه هسے نه، د خلقو عقيده خرابه شي او عام خلق نے د ضرورت نه زياته بركتي ورځ اومني. كني د جمعے ورځ د اختر د ورځ پشان نه ده. چه روژه نے منعه شي. د خالي په ورځ د روژے نيولونه ځكه منعه شويده چه د يهودو سره مشابهت رازي. (فيض الباري جلد دريم ص ١٤٦)

۵۵۹: حَدَّثَنَا اَبُوْ عَاصِمٍ عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ عَنْ عَبْدِ الْحَمِيْدِ ابْنِ جُبَيْرٍ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَبَّادٍ قَالَ سَأَلْتُ جَابِرًا نَهَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ صَوْمِ يَوْمِ الْجُمُعَةِ قَالَ نَعَمْ زَادَ غَيْرُ اَبِيْ عَاصِمٍ اَنْ يَّنْفَرِدَ بِصَوْمٍ.

۵۵۹: ابو عاصم. ابن جريج. عبدالحميد بن جبير. محمد بن عباد نه روايت دے، ما دَ جابرؓ نه تپوس او كۀ: آيا نبي صلے الله عليه وسلّم دَ جمعے دَ ورځے دَ روژے نه منع فرمائيلے ده. هغۀ اووے، او، ابو عاصم نه سوا نورو راويانو دومره زياتے سره بيان كړے دے، چه خانله د جُمعے د ورځے روژے نيولو نه.

۵٦۰: حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصِ ابْنِ غِيَاثٍ حَدَّثَنَا اَبِيْ حَدَّثَنَا الْاَعْمَشُ حَدَّثَنَا اَبُوْ صَالِحٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ

۵٦۰: عمر بن حفص بن غياث. حفص بن غياث. اعمش. ابو صالح. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت كوي، ما د نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم نه واوريدل چه تاسو كښې دے څوک د جمعے په ورځ روژه نۀ نيسي، خو، دا چه د هغے نه

لَا يَصُومَنَّ اَحَدُكُمْ يَوْمَ الْجُمُعَةِ اِلَّا يَوْمًا قَبْلَهُ اَوْ بَعْدَهُ.

يو ورځ مخکښې يا ورستو دے ورسره يوځائے کړي نو روژه دے اونيسي.

۱۵۶۱: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ شُعْبَةَ ح وَ حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدٌ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ اَبِيْ اَيُّوْبَ عَنْ جُوَيْرِيَةَ بِنْتِ الْحَارِثِ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَخَلَ عَلَيْهَا يَوْمَ الْجُمُعَةِ وَهِيَ صَآئِمَةٌ فَقَالَ اَصُمْتِ اَمْسِ قَالَتْ لَا قَالَ تُرِيْدِيْنَ اَنْ تَصُوْمِيْنَ غَدًا قَالَتْ لَا قَالَ فَاَفْطِرِيْ وَ قَالَ حَمَّادُ بْنُ الْجَعْدِ سَمِعَ قَتَادَةَ حَدَّثَنِيْ اَبُوْ اَيُّوْبَ اَنَّ جُوَيْرِيَةَ حَدَّثَتْهُ فَاَمَرَهَا فَاَفْطَرَتْ.

۱۵۶۱: مسدد. يحيٰي. شعبه. ح. (دونم سند) محمّد. غندر. شعبه. قتاده. ابوايوب جويريه بنت حارث نه روايت كوي، نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم جويريهؓ ته د جمعے په ورځ تشريف راوړلو او د هغے روژه وه. حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل، پرون تا روژه نيولے وه، هغے جواب ورکۀ، نه. حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل، حضور او فرمائيل سبا له به روژه نيسے؟ هغے اووے نه، حضور او فرمائيل بيا ماته ئے کړه. او حماد بن جعد بيان اوکۀ، هغۀ د قتاده نه واوريدل، هغۀ ته ابو ايوب بيان اوکۀ. جويريهؓ اووے، چه حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم هغے ته د، روژے ماتولو حُکم ورکړلو، نو هغے روژه ماته کړه.

## باب ۳۶۷: هَلْ يَخُصُّ شَيْئًا مِّنَ الْاَيَّامِ.

باب ۳۶۷: آيا د، روژے د پاره يوه ورځ مخصوص کولے شي.

۱۵۶۲: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ سُفْيَانَ عَنْ مَّنْصُوْرٍ عَنْ اِبْرَاهِيْمَ عَنْ عَلْقَمَةَ قُلْتُ لِعَآئِشَةَ هَلْ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَخْتَصُّ مِنَ الْاَيَّامِ شَيْئًا قَالَتْ لَا كَانَ عَمَلُهٗ دِيْمَةً وَ اَيُّكُمْ يُطِيْقُ مَا كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُطِيْقُ.

۱۵۶۲: مُسدد. يحيٰي. سُفيان. منصور. ابراهيم. علقمه نه روايت دے، چه ما د بي بي عائشےؓ نه تپوس اوکۀ، آيا رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلّم څۀ ورځ د، روژے د پاره مخصوص کوله. هغے جواب ورکۀ، د حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم عمل کښې به هميشګي وه، او تاسو کښې څوک د، رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلّم برابر طاقت لري.

## باب ۳۶۸: صَوْمِ يَوْمِ عَرَفَةَ.

باب ۳۶۸: د، عرفے په ورځ د، روژے نيولو بيان.

۵٦٣ : حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ مَّالِكٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ سَالِمٌ قَالَ حَدَّثَنِيْ عُمَيْرٌ مَّوْلٰى اُمِّ الْفَضْلِ اَنَّ اُمَّ الْفَضْلِ حَدَّثَتْهُ ح وَ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ اَبِي النَّضْرِ مَوْلٰى عُمَرَ بْنِ عُبَيْدِ اللّٰهِ عَنْ عُمَيْرٍ مَّوْلٰى عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ الْعَبَّاسِ عَنْ اُمِّ الْفَضْلِ بِنْتِ الْحٰرِثِ اَنَّ نَاسًا تَمَارَوْا عِنْدَهَا يَوْمَ عَرَفَةَ فِيْ صَوْمِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ بَعْضُهُمْ هُوَ صَائِمٌ وَّ قَالَ بَعْضُهُمْ لَيْسَ بِصَائِمٍ فَاَرْسَلَتْ اِلَيْهِ بِقَدَحِ لَبَنٍ وَّهُوَ وَاقِفٌ عَلٰى بَعِيْرِهٖ فَشَرِبَهٗ.

۵٦٣ : مسدد. يحيٰي. مالک. سالم. عمير (دَ اُم فضل غلام) اُم فضل. ح. (دونم سند) عبداللّٰه بن يوسف. مالک. ابوالنصر (دَ عمر بن عبيداللّٰه غلام) عمير (دَ عبداللّٰه بن عباسؓ غلام) اُم فضل بنت حارث نه روايت دے، چه خنے خلقو هغے سره دَ عرفے په ورځ دَ رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلّم دَ روژے متعلق اختلاف کولو. بعضو اووے، دَ حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم روژه ده، او بعضو اووے، روژه ئے نـۀ ده. اُم فضل دَ پئيو يوه پيالے دَ حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم خدمت کښ اوليږله، داسے حال کښ، چه حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم په اوبښ سور، وو نو حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم هغه اوڅکله.

۵٦۴ : حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سُلَيْمَانَ حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ اَوْ قُرِئَ عَلَيْهِ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عَمْرٌو عَنْ بُكَيْرٍ عَنْ كُرَيْبٍؓ عَنْ مَّيْمُوْنَةَ اَنَّ النَّاسَ شَكُّوْا فِيْ صِيَامِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ عَرَفَةَ فَاَرْسَلَتْ اِلَيْهِ بِحِلَابٍ وَّهُوَ وَاقِفٌ فِي الْمَوْقِفِ فَشَرِبَ مِنْهُ وَالنَّاسُ يَنْظُرُوْنَ.

۵٦۴ : يحيٰي بن سُليمان. ابن وهب عمرو. بکير. کريب. ميمونهؓ نه روايت کوي، چه خلقو دَ عرفے په ورځ دَ نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم دَ روژے متعلق شک اوکه. بي بي ميمونےؓ حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم ته پئے اوليږل، داسے حال کښ، چه حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم عرفات کښ ايسار شوے وو. حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم دَ هغے نه اوڅکل، او خلقو ليدل.

## بَاب ٣٦٩: صَوْمِ يَوْمِ الْفِطْرِ.

## باب ٣٦٩: دَ وړوکي اختر په ورځ دَ روژے نيولو بيان.

۵٦۵ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ اَبِيْ عُبَيْدٍ مَّوْلَى ابْنِ اَزْهَرَ قَالَ

۵٦۵ : عبداللّٰه بن يُوسف. مالک. ابن شهاب. ابو عُبيد. (دَ ابن زبير غُلام) نه روايت کوي، دَ هغـۀ بيان دے، زۀ دَ اختر په ورځ عُمر بن

شَهِدْتُ الْعِيْدَ مَعَ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ فَقَالَ هٰذَانِ يَوْمَانِ نَهَى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ صِيَامِهِمَا يَوْمُ فِطْرِكُمْ مِنْ صِيَامِكُمْ وَالْيَوْمُ الْاٰخَرُ تَاْكُلُوْنَ فِيْهِ مِنْ نُسُكِكُمْ.

خطاب سره حاضر ووم. هغه اووې: دې دواړو ورځو کښې حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم د روژې نيولو نه منع فرمائيلې ده. يو خو د روژې د ماتولو ورځ ده، او دوئمه هغه ورځ ده، چه هغې کښې د خپلې قربانئې غوښه خورئې.

۵٦٦: حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ اِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ يَحْيٰى عَنْ اَبِيْهِ عَنْ اَبِىْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ قَالَ نَهَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ صَوْمِ يَوْمِ الْفِطْرِ وَالنَّحْرِ وَعَنِ الصَّمَّآءِ وَاَنْ يَّحْتَبِيَ الرَّجُلُ فِيْ ثَوْبٍ وَّاحِدٍ وَعَنْ صَلٰوةٍ بَعْدَ الصُّبْحِ وَالْعَصْرِ.

۵٦٦: موسي بن اسمٰعيل. وهيب. عمرو بن يحيي د خپل پلار نه، هغه د ابو سعيد خدريؓ نه روايت كوي، د هغهٔ بيان دې، چه نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم د، وړوکي آختر او د لوئې آختر په ورځ د روژې نيولو نه منع فرمائيلې ده او صماء[1] او يوه کپړه کښې د احتباء کولو نه او د سحر او د مازيګر نه پس د مونځ کولو نه منع فرمائيلې ده.

[1] صمّا: ديته وائي چه يو سړے په جامه کښې مكمل خان اونه تړي او د جامې پلوونه اوتړي لكه چه ماشوم په اوړنړي کښې تړلے شي. او احتباء ديته وائي چه يو سړے د كوناټو په سر كېنيني او زنګونان خيتې سره جوښت كړي او لاس خپے د مثاسره يو خائې اوتړي. ۱۲ ناصح كاكا خيل غفرله.

## بَابُ ۳٧۰: الصَّوْمِ يَوْمَ النَّحْرِ.

## باب ۳٧۰: د قرباني په ورځ د روژې نيولو بيان.

۵٦٧: حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ مُوْسٰى اَخْبَرَنَا هِشَامٌ عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عَمْرُو بْنُ دِيْنَارٍ عَنْ عَطَآءِ ابْنِ مِيْنَآءَ قَالَ سَمِعْتُهٗ يُحَدِّثُ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ يَنْهٰى عَنْ صِيَامَيْنِ وَبَيْعَتَيْنِ الْفِطْرِ وَالنَّحْرِ وَالْمُلَامَسَةِ وَالْمُنَابَذَةِ.

۵٦٧: ابراهيم بن موسي. هشام. ابن جريج. عمرو بن دينار. عطاء. ابن ميناء. هغه د حضرت ابوهريرهؓ نه روايت كوي. د هغهٔ بيان دې. دوه قسمه روژې او دوه قسمه خريدو فروخت منع دې. د، وړوکي او لوئې اختر په ورځ روژه نيول. او بيع ملامسه او بيع منابذه منع ده.

۵۶۸: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى حَدَّثَنَا مُعَاذٌ أَخْبَرَنَا ابْنُ عَوْنٍ عَنْ زِيَادِ بْنِ جُبَيْرٍ قَالَ جَآءَ رَجُلٌ إِلَى ابْنِ عُمَرَ فَقَالَ رَجُلٌ نَذَرَ أَنْ يَصُومَ يَوْمًا قَالَ أَظُنُّهُ قَالَ الْإِثْنَيْنِ فَوَافَقَ يَوْمَ عِيدٍ فَقَالَ ابْنُ عُمَرَ أَمَرَ اللّٰهُ بِوَفَاءِ النَّذْرِ وَ نَهَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ صَوْمِ هٰذَا الْيَوْمِ.

۵۶۸: محمد بن مثنی. معاذ. ابن عون. زیاد بن جبیر نه روایت کوي هغه وائي چه یو سړے ابن عمرؓ له راغے. اوورے وئیل. یو سړي نذر اومنه چه یوه ورځ به روژه نیسي. او د هغه بیان دے خما گمان دے چه هغه د گُل (پیر) ورځ ده. او اتفاق سره هغه د اختر په ورځ راغله. ابن عمرؓ اوفرمائیل الله د نذر پوره کولو حکم کړے دے او نبي صلے الله علیه وسلم په هغے ورځ د روژے نیولو نه منع فرمائیلے ده.

۵۶۹: حَدَّثَنَا حَجَّاجُ بْنُ مِنْهَالٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْمَلِكِ بْنُ عُمَيْرٍ قَالَ سَمِعْتُ قَزَعَةَ قَالَ سَمِعْتُ أَبَا سَعِيدٍ الْخُدْرِيَّ وَ كَانَ غَزَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثِنْتَيْ عَشْرَةَ غَزْوَةً قَالَ سَمِعْتُ أَرْبَعًا مِنَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَعْجَبْنَنِي قَالَ لَا تُسَافِرِ الْمَرْأَةُ مَسِيرَةَ يَوْمَيْنِ إِلَّا وَ مَعَهَا زَوْجُهَا أَوْ ذُو مَحْرَمٍ وَلَا صَوْمَ فِي يَوْمَيْنِ الْفِطْرِ وَالْأَضْحٰى وَلَا صَلٰوةَ بَعْدَ الصُّبْحِ حَتّٰى تَطْلُعَ الشَّمْسُ وَلَا بَعْدَ الْعَصْرِ حَتّٰى تَغْرُبَ وَلَا تُشَدُّ الرِّحَالُ إِلَّا إِلٰى ثَلٰثَةِ مَسَاجِدَ مَسْجِدِ الْحَرَامِ وَ مَسْجِدِ الْأَقْصٰى وَ مَسْجِدِي هٰذَا.

۵۶۹: حجاج بن منهال. شعبه. عبدالملک بن عمیر. قزعه بیان کوي ما د ابو سعید خدريؓ نه واوریدل او هغه نبي صلے الله علیه وسلم سره دولس غزاگانے کړے وے. د هغه بیان دے ما څلور خبرے د نبي صلے الله علیه وسلم نه آوریدلے دي چه خما ډیرے خوښے شوے دي. حضور صلے الله علیه وسلم او فرمائیل ښځه دے د دوو ورځو سفر نه کوي خو داسے حال کښ چه داسے رشته دار ورسره وي چه هغه سره نکاح حرام وي یا د هغے خاوند هغے سره وي. او د وړوکي اختر او لوئے اختر په ورځو کښ دے روژه نه نیسي. او نه دے د سحر نه پس مونځ کوي څو پورے چه نمر نه وي راختلے او نه دے د مازیگر نه پس مونځ کوي څو پورے چه نمر ډوب نشي. او د درے جماتونو نه سوا بل ځمات د پاره دے د سفر سامان نه تړي (هغه درے جماتونه دادي) (۱) مسجد حرام (۲) مسجد اقصي (۳) مسجدنبويؐ.

بَابُ ۱۳۷۱: صِيَامِ أَيَّامِ

باب ۱۳۷۱: د ایام تشریق د روژو بیان. او ماته

التَّشْرِيْقِ وَ قَالَ لِيْ مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنّٰى حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ هِشَامٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ اَبِيْ كَانَتْ عَآئِشَةُ تَصُوْمُ اَيَّامَ مِنًى وَّ كَانَ اَبُوْهُ يَصُوْمُهَا.

محمد بن مثني په واسطه ذَ يحيي. هشام. عروه بيان اوکهٔ، بي بي عائشےؓ به ذَ منٰي په ورخو کښ روژه ساتله. او ذَ عروه به هم دغے ورخو کښ روژه وه۔ ۱.

۱. د لونے اختر ورځ لسم د ذي الحجينه پس يولسمه دولسمه ديارلسمه ورخ ايام تشريق دي. بعضے علماء يولسمه او دولسمه ورخ ايام تشريق مني. د احنافو په نزد په دغو ورخو کښ روژے نيول مکروهه دي (مکروه تحريمي دي) په دے کښ د حاجي قارن، او متمتع حاجي فرق نشته. ليکن بعضے عالمانو ددے ورخو د روژو نيولو اجازت ور کړے دے. او بعضو عالمانو تمتع کونکي حاجي ته اجازت ور کړے دے داسے معلوميږي چه د امام بخاري رحمة اللّٰه عليه په نزد تمتع کونکي حاجي ته په دے ورخو کښ روژے نيول روا دي. په دے وجه امام بخاري رحمة اللّٰه عليه د ابن عمر رضي اللّٰه عنهما او د حضرت عائشه رضي اللّٰه عنها روايات ذکر کړيدے چه د هغوي دا مسلک وو. په صحيح احاديثو کښ د حضرت علي او د حضرت عبداللّٰه بن عمرو بن العاص رضي اللّٰه عنهم د احنافو د مسلک تائيد کوي چه په دے ورخو کښ روژے نيول مکروه تحريمي دي.

۱۸۷۰: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ سَمِعْتُ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عِيْسٰى عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَآئِشَةَ وَ عَنْ سَالِمٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَا لَمْ يُرَخَّصْ فِيْ اَيَّامِ التَّشْرِيْقِ اَنْ يُّصَمْنَ اِلَّا لِمَنْ لَّمْ يَجِدِ الْهَدْيَ.

۱۸۷۰: محمد بن بشار. غندر. شعبه. عبدالرحمن بن عيسٰي. زهري. عروه. عائشهؓ او سالم دواړه ذَ حضرت ابن عمرؓ نه روايت کوي، چه ايام تشريق کښ ذَ روژو ساتلو اجازت نهٔ دے ورکړے شوے، خو هغے چاته چه هغهٔ سره ذَ قرباني څناور نهٔ وي. (اجازت ورکړے دے)

۱۸۷۱: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ سَالِمِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ الصِّيَامُ لِمَنْ تَمَتَّعَ بِالْعُمْرَةِ اِلَى الْحَجِّ اِلٰى يَوْمِ عَرَفَةَ فَاِنْ لَّمْ يَجِدْ هَدْيًا وَّلَمْ يَصُمْ صَامَ اَيَّامَ مِنًى وَّ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَآئِشَةَ مِثْلَهُ تَابَعَهُ اِبْرَاهِيْمُ بْنُ سَعْدٍ

۱۸۷۱: عبداللّٰه بن يُوسف. مالک. ابن شهاب. سالم بن عبداللّٰه. ابن عمرؓ نه روايت کوي، ذَ هغهٔ بيان دے، ذَ هغے سړي ذَ پاره چه حج عمرے سره يوځائے کړي، تمتع اوکړي، ذَ عرفے ذَ ورځے پورے روژے ساتل دي خو کهٔ هغهٔ سره ذَ قرباني څناور نهٔ وي، او نه ئے روژه اونيسله، نو ذَ منٰي په ورخو کښ دے روژے اونيسي، او ذَ ابن شهاب نه په واسطه ذَ عروه، بي بي عائشےؓ دغسے منقول دي. او ابراهيم بن سعد، ذَ ابن

عَنِ ابْنِ شِهَابٍ.

شهاب نه ذ دے متابع حدیث روایت کړے دے.

## بـاب ۳۷۲: صِيَـامِ يَـوْمِ عَاشُوْرَآءِ.

## بـاب ۳۷۲: دَ عـاشـورے دَ ورځے دَ روژے بیان.

۵۷۲: حَـدَّثَـنَا اَبُوْ عَاصِمٍ عَنْ عُمَرَ بْـنِ مُحَمَّدٍ عَنْ سَالِمٍ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ عَاشُوْرَآءَ اِنْ شَآءَ صَامَ.

۵۷۲: ابـو عـاصم. عمر بن محمد. سالم ذ خپل پـلار نه روایت کوي، هغه وائي، نبي صلے الله علیه وسلّم او فـرمـائیل دَ عاشورے په ورځ کۀ (څوک) غواړي، نو روژه دے طے اونیسي.

۱. عاشوره د محرّم د میاشتے لسم تاریخ ته وائي د عبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه دا روایت دے چه د عاشورے ورځ نهم تاریخ دے د هغے مطلب دا دے چه د لسمے ورځ سره، سره د نهمے ورځ روژے نیول سُنّت دي. بل روایت کښ د عبدالله بن عباس رضي الله عنهما په وضاحت سره شته دے چه رسول الله صلي الله علیه وسلّم د عاشورے د لسم محرّم د روژے نیولو حکم کړے وو.

۵۷۳: حَـدَّثَـنَـا اَبُـو الْيَـمَـانِ اَخْبَـرَنَـا شُعَيْـبٌ عَنِ الزُّهْـرِيِّ قَـالَ اَخْبَـرَنِـيْ عُـرْوَةُ بْنُ الزُّبَيْرِ اَنَّ عَآئِشَةَ قَـالَتْ كَـانَ رَسُـوْلُ الـلّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْـهِ وَسَـلَّـمَ اَمَـرَ بِـصِيَـامِ يَوْمِ عَاشُـوْرَآءَ فَـلَـمَّا فُرِضَ رَمَضَانَ كَانَ مَنْ شَآءَ صَامَ وَمَنْ شَآءَ اَفْطَرَ.

۵۷۳: ابوالیمان. شعیب. زهري. عروه بن زبیر. بـي بـي عـائشے رضي الله عنها نـه روایت کوي، هغے اووے رسول الله صـلے الـلّٰـه علیه وسلّم به دَ عاشورے په ورځ دَ روژے نیـولـو حـکـم ورکـولو. کوم وخت چه دَ رمضان روژے فـرض شـوے، نـو دَ چا، چه بـه خواهش وو، روژه به نے نیـولـه، او دَ چـا چـه بـه خـواهـش نۀ وو، نو روژه به نے نۀ نیوله.

۵۷۴: حَـدَّثَـنَـا عَبْـدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْلَمَةَ عَنْ مَّالِكٍ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ اَبِيْـهِ عَنْ عَآئِشَةَ قَالَتْ كَانَ يَوْمُ عَـاشُـوْرَآءَ تَـصُـوْمُـهُ قُـرَيْـشٌ فِـي الْجَاهِلِيَّةِ وَ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَصُوْمُهُ فَلَمَّا قَدِمَ الْـمَدِيْـنَةَ صَـامَهُ وَ اَمَرَ بِصِيَامِهِ فَلَمَّا فُـرِضَ رَمَـضَـانُ تَرَكَ يَوْمَ عَاشُوْرَآءَ فَـمَـنْ شَـآءَ صَـامَـهُ وَمَـنْ شَـآءَ

۵۷۴: عـبـدالـلّٰـه بـن مسـلـمه. مالک. هشام بن عـروه ذ خپـل پـلار نـه، هـغـه دَ بـي بي عائشے رضي الله عنها نه روایت کـوي، چه قریشو به دَ جاهلیت په زمانه کښ دَ عاشورے په ورځ روژه نیوله، او رسول الله صلے الله علیه وسلّم به هـم روژه نیـولـه، کوم وخت چه مدینے ته راغلل، نو هلته نے خپله دَ هغے روژه اونیسله، او نوروته نے هم دَ روژے نیـولـو حـکـم ورکـړلو. کوم وخت چه دَ رمضان روژے فـرض شـوے، نـو دَ عـاشـورے پـه ورځ روژه نیول نے پـریښودل، خو، دَ چا چه به خوښه وه، په هغے ورځ به نے

تَرَكَهُ.

روژه نيوله، او چا چه به نهٔ غوښتله، نو نهٔ به ئې نيوله.

۵۷۵: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْلَمَةَ عَنْ مَّالِكٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ حُمَيْدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ اَنَّهُ سَمِعَ مُعٰوِيَةَ بْنَ اَبِيْ سُفْيَانَ يَوْمَ عَاشُوْرَآءَ عَامَ حَجَّ عَلَى الْمِنْبَرِ يَقُوْلُ يَا اَهْلَ الْمَدِيْنَةِ اَيْنَ عُلَمَآؤُكُمْ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ هٰذَا يَوْمُ عَاشُوْرَآءَ وَلَمْ يُكْتَبْ عَلَيْكُمْ صِيَامُهُ وَ اَنَا صَائِمٌ فَمَنْ شَآءَ فَلْيَصُمْ وَمَنْ شَآءَ فَلْيُفْطِرْ.

۵۷۵: عبدالله بن مسلمه. مالک. ابن شهاب. حميد بن عبدالرحمٰن بيان کوي، چه هغه دَ معاويه بن ابو سفيان نه، په کوم کال چه هغهٔ حج کړے وو، په منبر واوريدل، اے دَ مدينې خلقو، ستاسو علماء کوم ځائے دي، ما د رسول الله صلے الله عليه وسلّم نه آوريدلے دي، چه دا' دَ عاشورے ورځ ده. او' دَ دے روژے په تاسو فرض نهٔ دي، او څـه روژه ده، نو څوک چه غواړي، روژه دے کړي، او څوک چه نهٔ غواړي نهٔ دے نيسي.

۵۷۶: حَدَّثَنَا اَبُوْ مَعْمَرٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ حَدَّثَنَا اَيُّوْبُ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ سَعِيْدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍؓ قَالَ قَدِمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمَدِيْنَةَ فَرَاَى الْيَهُوْدَ تَصُوْمُ يَوْمَ عَاشُوْرَآءَ فَقَالَ مَا هٰذَا قَالُوْا هٰذَا يَوْمٌ صَالِحٌ هٰذَا يَوْمٌ نَجَّى اللّٰهُ بَنِيْ اِسْرَآئِيْلَ مِنْ عَدُوِّهِمْ فَصَامَهُ مُوْسٰى قَالَ فَاَنَا اَحَقُّ بِمُوْسٰى مِنْكُمْ فَصَامَهُ وَ اَمَرَ بِصِيَامِهِ.

۵۷۶: ابو معمر. عبدالوارث. ايوب. عبدالله بن سعيد بن جبير. سعيد بن جبير. ابن عباسؓ نه روايت دے، چه نبي صلے الله عليه وسلّم مدينے ته تشريف راوړلو، نو يهود، ئې اوليدل، چه دَ عاشورے په ورځ روژه ساتي. حضور صلے الله عليه وسلّم ترے تپوس اوکهٔ. دا' روژه څنګه ده، نو هغې خلقو اووے، چه بهتره ورځ ده. په دے ورځ الله تعالي بني اسرائيل دَ دشمن نه خلاص کړي وو، په دے وجه موسي عليه السّلام په دے ورځ روژه نيولے وه. حضور صلے الله عليه وسلّم اوفرمائيل، مونږ ستاسو په نسبت د موسي عليه السلام زيات حقدار يو، نو حضور صلے الله عليه وسلّم په دے ورځ روژه اوساتله، او خلقوته ئے هم په دے ورځ دَ روژے نيولو حکم اوکهٔ[۱].

۱. ددے نه وړاندے څمونږ د مور بي بي حضرت عائشے رضي الله عنها يو حديث شريف تير شويدے. چه د قريشو مشر کانو به د جاهليت په زمانه کښې د عاشورے روژه نيوله کيدے شي چه د کوم

پیغمبر علیه السلام طریقه وه. په دے روایت کښې دي چه رسول الله صلي الله علیه وسلّم به مکه شریفه کښې دا روژه نیوله او چه کله نے مدینے منورے ته تشریف راوړلو نو انصارو ته نے ددے روژے د نیولو حکم ورکړو. بعضے روایاتو کښې دي. چه عیسایانو به هم د عاشورے روژه نیوله ددینه معلومیږي چه محکي شریعتونو کښې د عاشورے روژه هم روا وه. بهرحال د یهودو نه پوښتنه کول او د حضرت موسی علیه السلام تعلق ښکاره کولو کښې دا هم احتمال شته. چه رسول الله صلي الله علیه وسلّم د یهودو زړه اسلام ته د مائل کولو دا طریقه خوښه کړې لکه چه بعضے مسائلو کښې رسول الله صلي الله علیه وسلّم داسے کړے وو.

۵۷۷: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللهِ حَدَّثَنَا اَبُوْ اُسَامَةَ عَنْ اَبِيْ عُمَيْسٍ عَنْ قَيْسِ بْنِ مُسْلِمٍ عَنْ طَارِقِ بْنِ شِهَابٍ عَنْ اَبِيْ مُوْسٰى قَالَ كَانَ يَوْمُ عَاشُوْرَآءَ تَعُدُّهُ الْيَهُوْدُ عِيْدًا قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَصُوْمُوْهُ اَنْتُمْ.

۵۷۷: علي بن عبدالله. ابو اسامه. ابو عمیس. قیس بن مسلم. طارق بن شهاب. قیس بن مسلم. طارق بن شهاب. حضرت ابو موسیٰ نه روایت کوي، ذ هغه بیان دے، یهودیانو به د، عاشورے ورځ اختر ګنړله، نو نبي صلے الله علیه وسلّم خپلو صحابه وُ ته اوفرمائیل. چه تاسو هم په دے ورځ روژه نیسئ.

۵۷۸: حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللهِ بْنُ مُوْسٰى عَنِ ابْنِ عُيَيْنَةَ عَنْ عُبَيْدِ اللهِ بْنِ اَبِيْ يَزِيْدَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ مَا رَاَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَحَرّٰى صِيَامَ يَوْمٍ فَضَّلَهٗ عَلٰى غَيْرِهٖٓ اِلَّا هٰذَا الْيَوْمَ يَوْمَ عَاشُوْرَآءَ وَ هٰذَا الشَّهْرَ يَعْنِيْ شَهْرَ رَمَضَانَ.

۵۷۸: عبدالله بن موسیٰ. ابن عیینه عبدالله بن ابي یزید. حضرت ابن عباسؓ نه روایت کوي، ذهغه بیان دے، ما نبي صلے الله علیه وسلّم نه دے لیدلے، چه یوه ورځ سوا، د دے ورځے یعني عاشورے نه او سوا، د، دے میاشتے یعني رمضان نه افضله ګنړلے وي او هغے کښې نے روژه نیولے وي.

۵۷۹: حَدَّثَنَا الْمَكِّيُّ ابْنُ اِبْرَاهِيْمَ حَدَّثَنَا يَزِيْدُ عَنْ سَلَمَةَ ابْنِ الْاَكْوَعِ قَالَ اَمَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجُلًا مِّنْ اَسْلَمَ اَنْ اَذِّنْ فِي النَّاسِ اَنَّ مَنْ كَانَ اَكَلَ

۵۷۹: مکي بن ابراهیم. یزید. سلمه بن اکوع نه روایت کوي، هغه وائي، نبي صلے الله علیه وسلّم ذ بني اسلم یو سړي ته حکم ورکه چه خلقو کښې اعلان اوکړي، چا چه څه خوړلے دي، هغه دے ذ باقي ورځے پورے څه نه خوري،

فَلْيَصُمْ بَقِيَّةَ يَوْمِهِ وَمَنْ لَمْ يَكُنْ اَكَلَ فَلْيَصُمْ فَاِنَّ الْيَوْمَ يَوْمُ عَاشُوْرَآءَ.

او چا چه خه نه دي خوړلے، هغه دې روژه اونيسي، ځکه چه نن دَ عاشورے ورځ ده.

## بَاب ۱۳۷۳: فَضْلِ مَنْ قَامَ رَمَضَانَ.

## باب ۱۳۷۳: دَ هغې سړي دَ فضيلت بيان، چه دَ رمضان شپو کښې اودريږي.

۱۵۸۰: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ اَبُوْ سَلَمَةَ اَنَّ اَبَا هُرَيْرَةَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ لِرَمَضَانَ مَنْ قَامَهُ اِيْمَانًا وَّ اِحْتِسَابًا غُفِرَ لَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ.

۱۵۸۰: يحيي بن بكير. ليث. عقيل ابن شهاب. ابوسلمه. ابوهريرهؓ نه روايت كوي، هغه وائي، ما دَ رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلّم نه واوريدل، كوم سړے چه دَ رمضان شپو كښې، ايمان سره، دَ ثواب په نيت اودريږي، نو دَ هغه مخكنئے ګناه اوبښلے شي.

۱۵۸۱: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ حُمَيْدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ قَامَ رَمَضَانَ اِيْمَانًا وَّ اِحْتِسَابًا غُفِرَلَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ قَالَ ابْنُ شِهَابٍ فَتُوُفِّيَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالْاَمْرُ عَلٰى ذٰلِكَ ثُمَّ كَانَ الْاَمْرُ عَلٰى ذٰلِكَ فِيْ خِلَافَةِ اَبِيْ بَكْرٍؓ وَّ صَدْرًا مِّنْ خِلَافَةِ عُمَرَ وَعَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُرْوَةَ ابْنِ الزُّبَيْرِ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ عَبْدِ الْقَارِيِّ اَنَّهُ قَالَ خَرَجْتُ مَعَ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِؓ لَيْلَةً فِيْ رَمَضَانَ

۱۵۸۱: عبداللّٰه بن يوسف. مالك. ابن شهاب. حميد بن عبدالرحمٰن. ابوهريرهؓ نه روايت كوي، رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، څوك چه دَ رمضان شپو كښې، ايمان سره، دَ ثواب په نيت (عبادت دَ پاره) اودريږي نو دَ هغهٔ مخكنئے ګناه اوبښلے شي. دَ ابن شهاب بيان دے، چه نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم وفات شو. او حالت دغسے وو، بيا دَ حضرت ابوبكرؓ خلافت او دَ حضرت عمرؓ دَ ابتدائي خلافت زمانه كښې هم دغه حال وو. او په سند، دَ ابن شهاب عروه بن زبير، عبدالرحمٰن بن عبدالقاري منقول دي. عبدالرحمٰن اووے، چه زهٔ حضرت عمرؓ بن خطاب سره دَ رمضان يوه شپه كښې جُمات طرف ته اووتلم، هلته مو خلق ليدل چه څوك جُدا

اِلَى الْمَسْجِدِ فَاِذَا النَّاسُ اَوْزَاعٌ مُتَفَرِّقُوْنَ يُصَلِّي الرَّجُلُ لِنَفْسِهٖ وَ يُصَلِّيْ الرَّجُلُ فَيُصَلِّيْ بِصَلٰوتِهِ الرَّهْطُ فَقَالَ عُمَرُ اِنِّيْ اَرٰى لَوْجَمَعْتُ هٰٓؤُلَآءِ عَلٰى قَارِئٍ وَّاحِدٍ لَّكَانَ اَمْثَلَ ثُمَّ عَزَمَ فَجَمَعَهُمْ عَلٰى اُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ ثُمَّ خَرَجْتُ مَعَهُ لَيْلَةً اُخْرٰى وَالنَّاسُ يُصَلُّوْنَ بِصَلٰوةِ قَارِئِهِمْ قَالَ عُمَرُ نِعْمَ الْبِدْعَةُ هٰذِهٖ وَالَّتِيْ تَنَامُوْنَ عَنْهَا اَفْضَلُ مِنَ الَّتِيْ تَقُوْمُوْنَ يُرِيْدُ اٰخِرَ اللَّيْلِ وَ كَانَ النَّاسُ يَقُوْمُوْنَ اَوَّلَهٗ.

مونـخ كـوي. او چـرتـه یو سړے مونـخ کـوي نو هغـه سره خنـے خلق مونـخ كـوي، عمرؓ اوفرمـائیل، خمـا خیـال دے، چـه دا ټـول پـه یو قـاري مُتفق کړم، نـو زیـاتـه بهتـره بـه وي. بیـا ذ هغے اراده ئے او کړه، هغوي ئے ابي بن كعب تـه جمع کړل. بیـا زهٔ هغه سـره پـه دوئـمـه شپـه اووتـم. خـلقـو خپـل قـاري سـره مـونـخ كـولو. عـمـرؓ اوفـرمـائیـل، دا، ښـه بـدعـت دے، او ذ شپـے هـغـه حـصَـه یـعـنـي آخـري حـصَـه چـه هـغـے کـښې خـلـق اودهٔ شـي، ذ هـغـے نـه بهتـره ده، چـه هـغـے کـښې اودريږي، او خـلـک بـه پـه مـخـکـښې اولـنـئـے حـصـه کـښې اودريدل[۱].

۱. دا د تـراويـح متعـلـق احـاديث دي چه رسول الله صلي الله عليه وسلّم يو خل دے کښې امامت هم کړے وو او بيائے په دے خيال دا مونځ پريخودلو چه د صحابه كرامو رضي الله عنهم د ډيرے مينے او شوق به وجه دا مـونـخ فـرض نشي ددے وجے نه ذ رسول الله صلي الله عليه وسلّم په مبارکه زمانه کښې د دے شپو نه سيوا پـه جـمـاعـت سـره نـه وو شـوے. پـه امـامتي سره په جماعت سره مونځ كول، دا د فرضو د خصـوصياتو نه دے. ددے وجے نه رسول الله صلي الله عليه وسلّم دا د تراويح مونځ پريخودلو. خکه چه دا د وحي د نازليدو زمانه وه. او د صحابهٔ کرامو د عبادت شوق ډير زيات شوے وو او بيا د ابوبكر رضي الله عنه د خلافت زمانه شروع شوه نو هغه هم دا د تراويح مونځ په خپل شكل باقي پريښودلو. څرنګ چه د رسول الله صلي الله عليه وسلّم په زمانه کښې كيدلو. ليكن حضرت عمر رضي الله عنه دا د تراويح مونځ په امامت سره مقرر کړو. او ددے د پاره ئے خاص امام هم مقرر کړو. په ټولو صحابهٔ کرامو کښې ئے د قرآن مجيد ښه قاري حضرت ابي بن كعب رضي الله عنه مقرر کړو دا خبره د غور قابله ده. چه د مسلمانانو خليفه په خپله امامت اونه کړو ددينه معلوميږي چه د تراويح د مونځ حيثيت د نورو مونځونو د حيثيت نه مختلف دے که مختلف نه وے نو حضرت عمر رضي الله عنه له پكار وو چه پخپله ئے امامت كولے. خکه چه امير المؤمنين وو غالبًا ددے په بنياد ډيرو د احنافو فقهاؤ ويلے دي چه د حافظ قرآن د پاره دا غوره ده چه د امامتي نه بغير خان له په كور كښې تراويح اوکړي. چه كله بل حافظ موجود وي. چه هغه په جومات کښې خلقوته د تراويح په مونځ كښې امام وي د امام طحاوي رحمة الله عليه هم دا قول خوښ وے او په آخري زمانه كښې د فقه حنفي امام علامه انور شاه كشميري رحمة الله عليه هم دا حكم خوښ کړے دے چه به خپل كور كښې ورلـه تـراويـح كـول غـوره دي. د ډيرو لويو صحابه كرامو رضي الله عنهم په حقله دا

روایت ثابت دے چه هغوي خان له یواخے په کور کښې د تراویح مونځ کولو. پخپله حضرت عمر رضي الله عنه به خان له یواخے په کور کښې تراویح کولے او هیچرے حضرت عمر رضي الله عنه په جماعت' امامتی سره تراویح نه دي ادا کړے. حالانکه هغه امیر المؤمنین وو هغه پخپله د تراویح د مونځ د جماعت' د امامتې د مونځ انتظام کړے وو. البته عالمانو ته دا فتوے ورکول پکارندي. خکه چه خلق به سستي شروع کړي چه کله عالمان د جمعے تراویح ته نه حاضریږي او د فتوے نه خبر شي خو خلق به ئے غنیمت اوګنړي. او جومات ته به نه رازي. د سُنَت مونځونو په حقله حکم دا دے چه په کور کښې ادا شي. لیکن په عام ډول فتوي داسے ده. چه خلق دے سنت مونځ جومات کښې ادا کوي خکه چه دا خطره ده. چه په کور کښې د سنتو ادا کولو فتوي اوشي نو خلق به د سُستۍ په وجه سنت مونځونه ادا کول پریږدي خمونږ د مور بي بي د حضرت عائشه رضي الله عنها نه روایت دے. که د رمضان المبارک میاشت وه یا نورے میاشتے' رسول الله صلي الله علیه وسلم به د شپے مونځ د یولسو رکعاتونه زیات نه ادا کول. رسول الله صلي الله علیه وسلم به خلور رکعاته ادا کول ته د هغے د خایسته والي او د اوږد والي پوښتنه مه کوه. بیا به ئے خلور رکعاته ادا کول. ته د هغے د خائست او د اوږد والي تپوس مه کوه. آخر کښې به ئے درے رکعاته وتر ادا کول ماترے پوښتنه اوکړه اے د الله رسوله ته د وترو اداکولونه مخکښې اوده کیږے رسول الله صلي الله علیه وسلم او فرمایل "عائشے خما سترے اوده کیږي. لیکن زړه مے نه اوده کیږي".

۵۸۲: حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيلُ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُرْوَةَ ابْنِ الزُّبَيْرِ عَنْ عَائِشَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلّٰى وَ ذٰلِكَ فِيْ رَمَضَانَ ح وَ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ اَخْبَرَنِيْ عُرْوَةُ اَنَّ عَائِشَةَ اَخْبَرَتْهُ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَرَجَ لَيْلَةً مِّنْ جَوْفِ اللَّيْلِ فَصَلّٰى فِي الْمَسْجِدِ وَ صَلّٰى رِجَالٌ بِصَلٰوتِهٖ فَاَصْبَحَ النَّاسُ فَتَحَدَّثُوْا فَاجْتَمَعَ اَكْثَرُ مِنْهُمْ فَصَلَّوْا مَعَهٗ فَاَصْبَحَ النَّاسُ فَتَحَدَّثُوْا فَكَثُرَ اَهْلُ الْمَسْجِدِ مِنَ اللَّيْلَةِ الثَّالِثَةِ

۵۸۲: اسمٰعیل. مالک. ابن شهاب. عروه بن زبیر. د نبي صلے الله علیه وسلّم دَ ښځو بي بي عائشہؓ نه روایت کوي' چه رسول الله صلے الله علیه وسلّم مونځ اوکهٔ' او دا' رمضان کښې وو' ح. یحيٰي بن بکیر. لیث. عقیل. ابن شهاب. عروه. بي بي عائشہؓ بیان اوکهٔ. چه رسول الله صلے الله علیه وسلّم (دَ' رمضان) یوه درمیاني شپه کښې اووتلو. حضور صلے الله علیه وسلّم جُمات کښې مونځ اوکهٔ. او خلقو هم حضور صلے الله علیه وسلّم پسے مونځ اوکړلو. سحر ته خلقو دَ هغے یو بل ته شهرت اوکهٔ. په دوئمه ورځ دَ هغے نه زیات خلق جمع شو. او حضور صلے الله علیه وسلّم سره ئے مونځ اوکړلو. بیا سحر شو' نو خلقو یو بل ته بیان اوکهٔ په دریمه شپه دَ هغے نه زیات خلق جمع شو. نو رسول الله صلے الله علیه وسلّم بهر ته تشریف راوړلو' حضور صلے الله علیه وسلّم مونځ اوکړلو' نو خلقو هم حضور

فَخَرَجَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَصَلَّى فَصَلَّوْا بِصَلٰوتِهٖ فَلَمَّا كَانَتِ اللَّيْلَةُ الرَّابِعَةُ عَجَزَ الْمَسْجِدُ عَنْ اَهْلِهٖ حَتّٰى خَرَجَ لِصَلٰوةِ الصُّبْحِ فَلَمَّا قَضَى الْفَجْرَ اَقْبَلَ عَلَى النَّاسِ فَتَشَهَّدَ ثُمَّ قَالَ اَمَّا بَعْدُ فَاِنَّهٗ لَمْ يَخْفَ عَلَيَّ مَكَانُكُمْ وَلٰكِنِّيْ خَشِيْتُ اَنْ تُفْتَرَضَ عَلَيْكُمْ فَتَعْجِزُوْا عَنْهَا فَتُوُفِّيَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالْاَمْرُ عَلٰى ذٰلِكَ.

صلے اللّٰه عليه وسلّم سره مونځ اوكړلو. چه څلورمه شپه راغله، نو جمات كښ د خلقو ځائے كيدل ګران شو. خو حضور صلے الله عليه وسلّم د سحر د مونځ د پاره راووتلو. د سحر مونځ چه ئے ادا كړ، نو خلقو ته متوجه شو. او وے فرمائيل، اما بعد، خما نه ستاسو خلقو موجودګي پټه نه وه. ليكن ماسره ويره پيدا شوه، چه چرته تاسو باندے فرض نشي، او تاسو، د هغے د، ادا كولو نه به عاجزه شئے. رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلّم وفات شو، او حالت دغه وو.

۵۸۳ : حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ الْمَقْبُرِيِّ عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ اَنَّهٗ سَاَلَ عَائِشَةَ كَيْفَ كَانَتْ صَلٰوةُ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَتْ مَا كَانَ يَزِيْدُ فِيْ رَمَضَانَ وَلَا فِيْ غَيْرِهَا عَلٰى اِحْدٰى عَشْرَةَ رَكْعَةً يُصَلِّيْ اَرْبَعًا فَلَا تَسْئَلْ عَنْ حُسْنِهِنَّ وَطُوْلِهِنَّ ثُمَّ يُصَلِّيْ اَرْبَعًا فَلَا تَسْئَلْ عَنْ حُسْنِهِنَّ وَ طُوْلِهِنَّ ثُمَّ يُصَلِّيْ ثَلٰثًا فَقُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَتَنَامُ قَبْلَ اَنْ تُوْتِرَ قَالَ يَا عَائِشَةُ اِنَّ عَيْنَيَّ تَنَامَانِ وَلَا يَنَامُ قَلْبِيْ.

۵۸۳ : اسمٰعيل. مالك. سعيد مقبري. ابوسلمه بن عبدالرحمٰن نه روايت كوي. هغه (يعني ابوسلمه) د بي بي عائشے نه تپوس اوكړ، د رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلّم (د شپے) مونځ به څنګه وو. هغے جواب وركړ، رمضان كښ او د هغے نه علاوه ورځو كښ به ئے د، يولس ركعاتو نه زيات نۀ كولو څلور ركعاته به ئے كول، د هغے د، اوږدوالي او حُسن تپوس مۀ كوه. بيا څلور ركعاته به ئے كول، د هغے د، اوږدوالي او حُسن به ئے څۀ وائے. بيا به ئے درے ركعاته كول، ما عرض اوكړ، يا رسول اللّٰه، تاسو د، وتر كولو نه مخكښ اودۀ كيږئے. حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل. اے عائشے، خما دواړه ستركے اودے وي. ليكن خما زړۀ اودۀ نۀ وي.

۱. دا حديث شريف د تهجدو د باب سره متعلق دے د عبداللّٰه بن عباس رضي اللّٰه عنهما نه روايت دے. چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم به رمضان شريف كښ شل ركعته مونځ كولو. وتر به ددينه علاوه وو (يعني درويشت ركعته مونځ) د عائشه رضي اللّٰه عنها حديث شريف ددينه مخالف دے په دواړو احاديثو

مبارکو د امامانو حضراتو عمل دے دَ امام ابوحنيفه رحمة الله عليه مسلک شل رکعته تراويح دي. او د امام شافعي رحمة الله عليه د يوولس رکعتونو په روايت عمل دے.

بـــاب ۳۷۴: فَـضْـلِ لَيْـلَةِ الْقَـدْرِ وَ قَـوْلِ اللّٰـهِ تَعَالٰى اِنَّا اَنْزَلْنٰهُ فِـىْ لَيْـلَةِ الْـقَـدْرِ وَمَـا اَدْرٰكَ مَـا لَيْـلَةُ الْـقَـدْرِ ۞ لَيْـلَةُ الْـقَـدْرِ خَيْـرٌ مِّـنْ اَلْفِ شَهْرٍ تَـنَـزَّلُ الْمَلٰٓئِكَةُ وَالـرُّوْحُ فِيْـهَـا بِـاِذْنِ رَبِّـهِـمْ مِّـنْ كُلِّ اَمْرٍ ۙ سَلَامٌ هِـىَ حَتّٰـى مَـطْـلَعِ الْـفَـجْـرِ ۞ قَـالَ ابْـنُ عُيَيْـنَـةَ مَـا كَـانَ فِـى الْـقُـرْاٰنِ مَـآ اَدْرٰكَ فَـقَـدْ اَعْـلَـمَـهٗ وَمَـا يُـدْرِيْكَ فَـاِنَّـهٗ لَـمْ يُعْلِمْهُ.

باب ۳۷۴: دَ شـب قـدر دَ فـضيلت بيان. او دَ اللّٰـه تـعـالٰي قول، چه مونږ دا شب قدر کښې نازل کړۀ او تـاتـه څۀ معلومه ده، چه شب قدر يعني دَ قدر شپه څۀ ده. شـب قـدر دَ، زر، مـيـاشـتـو نـه بـهـتـره ده، چه هغې کښې فـريښتے او، روح دَ خپل پروردګار په حکم راکوزيږي. دَ هـر، امرنه سلامتي ده. دا، دَ سحر راختو پورے وي. او دَ، ابـن عـيـنـيه بيان دے، چه قرآن کښې کوم ځائے کښې دَ، مَا اَدْرٰكَ، الـفـاظـو سره خطاب شوے دے، نو اللّٰه تعالٰي حـضـور صـلـے الله عليه وسلّم ته اوښودل، او کوم ځائے چه، مَا يُدْرِيْكَ لـفـظـونـه راغـلـے دي، نو هلته اللّٰه تعالٰي حضور صلے اللّٰه ته اونۀ ښودل.

۵۸۴: حَـدَّثَـنَـا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ حَفِظْنَاهُ وَ اِنَّمَا حَفِظَ مِنَ الزُّهْرِيِّ عَنْ اَبِىْ سَلَمَةَ عَنْ اَبِــىْ هُــرَيْـرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّے اللّٰهُ عَـلَيْـهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ صَامَ رَمَضَانَ اِيْـمَانًا وَّاحْتِسَابًا غُفِرَلَهٗ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهٖ وَمَـنْ قَـامَ لَيْـلَةَ الْقَدْرِ اِيْمَـانًـا وَّاحْتِسَابًا غُـفِـرَلَهٗ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهٖ تَابَعَهٗ سُلَيْمَانُ بْنُ كَثِيْرٍ عَنِ الزُّهْرِيِّ.

۵۸۴: عـلـي بـن عـبـداللّٰـه. سـفـيـان. زهـري. ابـوسـلـمـه. ابـوهـريـرهؓ نـبي صـلـے اللّٰـه عليه وسـلّـم، او فـرمـائـيـدل، چـا چـه ايـمـان سره، دَ ثواب په نـيـت دَ، رمـضـان روژے اونـيـولـے، دَ هـغـه مـخـکـنـئ ګـنـاه اوبښـلـے شـي. او څـوک چـه شـب قـدر کښې ايـمـان سـره، دَ ثـواب پـه نـيـت (عـبـادت دَ پـاره) اودريږي، نـو دَ هـغـۀ مـخـکـني ګناه معاف شي. سليمان بـن کـثيـر دَ، زهـري نـه دَ دے متـابعـت کـښې روايت اوکۀ.

بـاب ۳۷۵: اَلْتِـمَـاسِ لَيْـلَةِ الْقَدْرِ فِى السَّبْعِ الْاَوَاخِرِ.

باب ۳۷۵: شب قدر، دَ رمضان آخري اوو شپو کښې دَ لټولو بيان.

۵۸۵: حَـدَّثَـنَـا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ نَّافِعٍ عَنِ ابْنِ

۵۸۵: عـبـداللّٰـه بـن يـوسف. مـالک. نـافـع. ابـن عـمـرؓ نـه روايـت کـوي، دَ نبي صلے

عُمَرَ اَنَّ رِجَالًا مِّنْ اَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اُرُوْا لَيْلَةَ الْقَدْرِ فِي الْمَنَامِ فِي السَّبْعِ الْاَوَاخِرِ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَرٰى رُؤْيَاكُمْ قَدْ تَوَاطَأَتْ فِي السَّبْعِ الْاَوَاخِرِ فَمَنْ كَانَ مُتَحَرِّيْهَا فَلْيَتَحَرَّهَا فِي السَّبْعِ الْاَوَاخِرِ.

اللّٰه عليه وسلّم صحابه ؤ كښې خنو كسانو ته شب قدر، خوب كښې، آخري اوو شپو كښې اوښودلے شو. رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، زهٔ وينم چه ستاسو خوب آخري اوو شپو كښې متفق شوے دے، نو كوم سړے چه دَ دے تلاش كونكے وي، هغه دے آخري اوو شپو كښې تلاش كړي.

۵۸۶ : حَدَّثَنَا مُعَاذُ بْنُ فَضَالَةَ حَدَّثَنَا هِشَامٌ عَنْ يَحْيٰى عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ قَالَ سَاَلْتُ اَبَا سَعِيْدٍ وَّ كَانَ لِيْ صَدِيْقًا فَقَالَ اعْتَكَفْنَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْعَشْرَ الْاَوْسَطَ مِنْ رَّمَضَانَ فَخَرَجَ صَبِيْحَةَ عِشْرِيْنَ فَخَطَبَنَا وَ قَالَ اِنِّيْ اُرِيْتُ لَيْلَةَ الْقَدْرِ ثُمَّ اُنْسِيْتُهَا اَوْ نُسِّيْتُهَا فَالْتَمِسُوْهَا فِي الْعَشْرِ الْاَوَاخِرِ فِي الْوِتْرِ وَ اِنِّيْ رَاَيْتُ اَنِّيْ اَسْجُدُ فِيْ مَآءٍ وَّطِيْنٍ فَمَنْ كَانَ اعْتَكَفَ مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلْيَرْجِعْ فَرَجَعْنَا وَمَا نَرٰى فِي السَّمَآءِ قَزَعَةً فَجَآءَتْ سَحَابَةٌ فَمَطَرَتْ حَتّٰى سَالَ سَقْفُ الْمَسْجِدِ وَ كَانَ مِنْ جَرِيْدِ النَّخْلِ وَ اُقِيْمَتِ الصَّلٰوةُ فَرَاَيْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَسْجُدُ فِي الْمَآءِ وَالطِّيْنِ حَتّٰى رَاَيْتُ اَثَرَ الطِّيْنِ فِيْ جَبْهَتِهٖ.

۵۸۶ : معاذ بن فضاله. هشام. يحيٰي. ابوسلمه نه روايت كوي، ابوسعيد، خما دوست وو، هغهٔ نه ما تپوس اوكهٔ، نو هغهٔ اووے، مونږ نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم سره دَ رمضان درميانه عشره كښې اعتكاف اوكهٔ. حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم په شلمه سحر كښې بهر راووتلو. او مونږ خلقو ته ئے خُطبه راكړله، او وے فرمائيل، ماته شب قدر اوښودلے شوه، بيا مانه هيره شوله. يا، دا، ئے اوفرمائيل، چه مانه هيره كړے شوه، خكه دا، آخري عشره كښې طاق شپو كښې لټوئے. او ما خوب كښې اوليدل، چه زهٔ اُوبو او خټه كښې سجده كوم، نو چا چه رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلّم سره اعتكاف كړے دے، هغه دے واپس شي. او آسمان كښې دَ وريځے يوه ټكړه هم مونږ ته په نظر نهٔ راتله، چه دے كښې دَ وريځے يوه ټكړه ښكاره شوه، او باران شروع شو، تردے چه دَ جُمات دَ چهت نه اُوبهٔ څڅيدل شروع شو، چه دَ قجورو دَ څانګونه جوړ شوے وو. او مونږ اوشولو، نو ما رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلّم اُوبو اوخټه كښې په سجده كولو اوليدلو، تردے چه دَ حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم په مخ مُبارک ماته دَ خټے اثر ښكاره شولو.

## باب ۱۲۷۶: تَحَرِّیْ لَيْلَةِ الْقَدْرِ فِى الْوِتْرِ مِنَ الْعَشْرِ الْاَوَاخِرِ فِيْهِ عُبَادَةُ.

۵۸۷: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ ابْنُ جَعْفَرٍ حَدَّثَنَا اَبُوْ سُهَيْلٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ تَحَرَّوْا لَيْلَةَ الْقَدْرِ فِى الْوِتْرِ مِنَ الْعَشْرِ الْاَوَاخِرِ مِنْ رَمَضَانَ.

۵۸۸: حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ حَمْزَةَ قَالَ حَدَّثَنِىْ ابْنُ اَبِىْ حَازِمٍ وَ الدَّرَاوَرْدِىُّ عَنْ يَزِيْدَ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ اِبْرَاهِيْمَ عَنْ اَبِىْ سَلَمَةَ عَنْ اَبِىْ سَعِيْدٍ الْخُدْرِىِّ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُجَاوِرُ فِىْ رَمَضَانَ الْعَشْرَ الَّتِىْ فِىْ وَسْطِ الشَّهْرِ فَاِذَا كَانَ حِيْنَ يُمْسِىْ مِنْ عِشْرِيْنَ لَيْلَةً تَمْضِىْ وَ يَسْتَقْبِلُ اِحْدٰى وَ عِشْرِيْنَ رَجَعَ اِلٰى مَسْكَنِهٖ وَ رَجَعَ مَنْ كَانَ يُجَاوِرُ مَعَهٗ وَ اَنَّهٗ اَقَامَ فِىْ شَهْرٍ جَاوَرَ فِيْهِ اللَّيْلَةَ الَّتِىْ كَانَ يَرْجِعُ فِيْهَا فَخَطَبَ النَّاسَ فَاَمَرَهُمْ مَاشَاءَ اللّٰهُ ثُمَّ قَالَ كُنْتُ اُجَاوِرُ هٰذِهِ الْعَشْرَ ثُمَّ قَدْ بَدَالِىْ اَنْ اُجَاوِرَ هٰذِهِ الْعَشْرَ الْاَوَاخِرَ فَمَنْ كَانَ اعْتَكَفَ

## باب ۱۲۷۶: شب قدر' د آخري عشرے طاق (ناتكے) شپو كښې ذ لټولو بيان. دے كښې عباده هم راوي دے.

۵۸۷: قتيبه بن سعيد. اسمعيل بن جعفر. ابو سهيل د خپل پلار نه هغه ذ بي بي عائشے نه روايت كوي' رسول الله صلے الله عليه وسلم اوفرمائيل' شب قدر ذ' رمضان آخري عشرے طاق شپو كښې لټوئے.

۵۸۸: ابراهيم بن حمزه. ابن ابي حازم و دراوردي. يزيد. محمد ابراهيم. ابو سلمه. حضرت ابوسعيد خدريؓ نه روايت كوي' رسول الله صلي الله عليه وسلم ذ' رمضان درمياني عشرے كښې اعتكاف كولو. چه شلمه شپه به تيره شوه' او يويشتمه شپه به راغله' نو خپل كور ته به واپس راتلو. او كوم خلق چه به حضور صلے الله عليه وسلم سره اعتكاف كښې ود' هغوي به هم واپس راغلل' يو خل رمضان كښې حضور صلے الله عليه وسلم په هغه شپه اعتكاف كښې وو' كومه شپه چه به واپس راتلو. هغے نه پس حضور صلے الله عليه وسلم خلقو ته خُطبه وركړه او څه چه الله ته منظوره وه' د هغے حضور صلے الله حكم وركړلو. بيائے اوفرمائيل' ما به دے عشره كښې اعتكاف كولو' ليكن اوس ښكاره شوه' چه دے آخري عشره كښې اعتكاف اوكړم' نو كوم خلق چه ماسره اعتكاف كښې دي' هغوي دے د خپل اعتكاف خائے كښې پاتے شي. او ماته خوب

مَعِيْ فَلْيَثْبُتْ فِيْ مُعْتَكِفِهٖ وَقَدْ أُرِيْتُ هٰذِهِ اللَّيْلَةَ ثُمَّ أُنْسِيْتُهَا فَابْتَغُوْهَا فِي الْعَشْرِ الْأَوَاخِرِ وَابْتَغُوْهَا فِيْ كُلِّ وِتْرٍ وَ قَدْ رَأَيْتُنِيْ أَسْجُدُ فِيْ مَآءٍ وَّ طِيْنٍ فَاسْتَهَلَّتِ السَّمَآءُ فِيْ تِلْكَ اللَّيْلَةِ فَأَمْطَرَتْ فَوَكَفَ الْمَسْجِدُ فِيْ مُصَلَّى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيْلَةَ إِحْدٰى وَ عِشْرِيْنَ فَبَصُرَتْ عَيْنِيْ نَظَرْتُ إِلَيْهِ انْصَرَفَ مِنَ الصُّبْحِ وَ وَجْهُهٗ مُمْتَلِئٌ طِيْنًا وَّ مَآءً.

كښې شب قدر اوښودلې شوه. بيا هغه خما نه هيره كړلې شوه، نو دې آخري عشره او هر طاق (ناتكې) شپو كښې لټوئې. او ما خوب كښې ليدلې دي، چه اُوبو او خټه كښې سجده كوم. بيا په هغه شپه ذ، آسمانه اوبه اووريدې، او ذ نبي صلې اللّٰه عليه وسلّم ذ مونځ ځائې كښې څڅمات اوڅڅيدلو، هغه يويشتمه شپه وه. ما خپلو سترګو سره اوليدل، چه حضور صلې اللّٰه عليه وسلّم ذ سحر ذ مونځ نه فارغ شو، او ذ حضور صلې اللّٰه عليه وسلّم مخ مُبارک ذ، خټې او اُوبو نه ډک وو.

۵۸۹ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنّٰى حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ هِشَامٍ قَالَ أَخْبَرَنِيْ أَبِيْ عَنْ عَآئِشَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الْتَمِسُوْا.

۵۸۹ : مُحَمَّد بن مثنّٰي. يحيٰي. هشام. عروه. بي بي عائشه‌ؓ ذ نبي صلې اللّٰه عليه وسلّم نه روايت كوي، حضور صلې اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، شب قدر اولټوئې.

۵۹۰ : حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدٌ أَخْبَرَنَا عَبْدَةُ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ أَبِيْهِ عَنْ عَآئِشَةَ قَالَتْ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُجَاوِرُ فِي الْعَشْرِ الْأَوَاخِرِ مِنْ رَّمَضَانَ وَ يَقُوْلُ تَحَرَّوْا لَيْلَةَ الْقَدْرِ فِي الْعَشْرِ الْأَوَاخِرِ مِنْ رَّمَضَانَ.

۵۹۰ : مُحَمَّد. عبده. هشام بن عروه. بي بي عائشې‌ؓ نه روايت كوي. ذ هغې بيان دې، چه رسول اللّٰه صلې اللّٰه عليه وسلّم به ذ، رمضان آخري عشرې كښې اعتكاف كولو. او فرمائيل به ئې، چه شب قدر ذ، رمضان آخري عشرې كښې تلاش كړئې.

۵۹۱ : حَدَّثَنَا مُوْسَى ابْنُ إِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ حَدَّثَنَا أَيُّوْبُ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍؓ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ

۵۹۱ : موسي بن اسمٰعيل. وهيب. ايوب. عكرمه. حضرت ابن عباسؓ نه روايت كوي، نبي صلې اللّٰه عليه وسلّم فرمائيلې دي، شب قدر ذ، رمضان آخري عشرې كښې لټوئې.

اَلْتَمِسُوْهَا فِي الْعَشْرِ الْاَوَاخِرِ مِنْ رَمَضَانَ لَيْلَةَ الْقَدْرِ فِيْ تَاسِعَةٍ تَبْقٰى فِيْ سَابِعَةٍ تَبْقٰى فِيْ خَامِسَةٍ تَبْقٰى.

او شب قدر دې شپو کښې ده: هر کله چه نهمه یا اوومه یا پنځمه شپه باقي پاتې شي.

۱. د عزتمندې شپې لیلة القدر په باره کښې احادیث مختلف دي بعضو کښې د کومې شپې د خاص کولو نه بغیر په آخري لسو شپو کښې د عبادت حکم دې. او بعضو کښې په آخري لسو کښې "د ناتکو" شپو د عبادت حکم دې او داسې خان له جدا حدیث شریفنشته چه "تکو" شپو کښې عبادت کوی نهمه، اوومه او پنځمه ناتکې شپې دې. شریعت د لیلة القدر د خاص شپې د مسلمانانو د فائدې د خاطره وضاحت ندې کړې. د عبدالله بن عباس رضي الله عنهما یو حدیث شریف بخاري کښې راروان دې چه په څلیریشتمه شپه کښې لیلة القدر او کوری. څلیریشتمه شپه ناتکې نه ده بلکې تکې ده.

۵۹۲: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ اَبِي الْاَسْوَدِ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ حَدَّثَنَا عَاصِمٌ عَنْ اَبِيْ مِجْلَزٍ وَ عِكْرَمَةَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍؓ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هِيَ فِي الْعَشْرِ هِيَ فِيْ تِسْعٍ يَّمْضِيْنَ اَوْ فِيْ سَبْعٍ يَّبْقِيْنَ يَعْنِيْ لَيْلَةَ الْقَدْرِ قَالَ عَبْدُ الْوَهَّابِ عَنْ اَيُّوْبَ وَ عَنْ خَالِدٍ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍؓ اِلْتَمِسُوْا فِيْ اَرْبَعٍ وَّ عِشْرِيْنَ.

۵۹۲: عبدالله بن ابي الاسود. عبدالواحد. عاصم. ابي مجلز او عکرمه. ابن عباسؓ نه روایت کوي، ابن عباسؓ اووې: رسول الله صلے الله علیه وسلم او فرمائیل چه هغه (یعني شب قدر) آخري عشرې کښې ده، چه نهه شپې تیرې شوې، یا اوۀ شپې به پاتې شوې. عبدالوهاب د، ایوب نه او خالد په واسطه ذ عکرمه ابن عباسؓ روایت اوکۀ چه څلیریشتمه شپه کښې ئې لټوئې.

۵۹۳: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنّٰى حَدَّثَنَا خَالِدُ ابْنُ الْحَارِثِ حَدَّثَنَا حُمَيْدٌ حَدَّثَنَا اَنَسٌ عَنْ عُبَادَةَ ابْنِ الصَّامِتِؓ قَالَ خَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِيُخْبِرَنَا بِلَيْلَةِ الْقَدْرِ فَتَلَاحٰى رَجُلَانِ مِنَ الْمُسْلِمِيْنَ فَقَالَ خَرَجْتُ لِاُخْبِرَكُمْ بِلَيْلَةِ الْقَدْرِ فَتَلَاحٰى فُلَانٌ وَّ فُلَانٌ

۵۹۳: مُحمّد بن مثنى. خالد بن حارث. حمید. انس. عباده بن صامتؓ نه روایت کوي، نبي صلے الله علیه وسلم بهر تشریف راوړلو، چه مونږ ته شب قدر اوښائي (چه کومه شپه کښې ده) نو دوه مُسلمانان خپلو کښې په جګړه وو. حضور صلے الله علیه وسلم اوفرمائیل. زۀ خکه راوتلے ووم، چه تاسو ته شب قدر اوښائم. لیکن فلانے فلانے سره په جګړه وو، نو د هغې علم خما نه پورته کړے شو.

فَرُفِعَتْ وَ عَسٰى اَنْ يَّكُوْنَ خَيْرًا لَّكُمْ فَالْتَمِسُوْهَا فِى التَّاسِعَةِ وَالسَّابِعَةِ وَالْخَامِسَةِ.

او ممکنه ده، چه دې کښې ستاسو بهتري وي، نو دا (آخري عشرې کښې) نو دا په نهمه، اوومه، او پینځمه اولټوئ.

**باب۳۷۷: اَلْعَمَلِ فِى الْعَشْرِ الْاَوَاخِرِ مِنْ رَّمَضَانَ.**

**باب۳۷۷: د رمضان آخري عشرې کښې د زیات کار (عبادت) کولو بیان.**

۵۹۴: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ اَبِيْ يَعْفُوْرَ عَنْ اَبِى الضُّحٰى عَنْ مَسْرُوْقٍ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا دَخَلَ الْعَشْرُ شَدَّ مِئْزَرَهٗ وَ اَحْيَا لَيْلَهٗ وَ اَيْقَظَ اَهْلَهٗ.

۵۹۴: علي بن عبدالله. سفیان. ابو یعفور. ابوالضحي. مسروق. بي بي عائشهؓ نه روایت کوي، د هغې بیان دې، چه آخري عشره به راغله، نو نبي صلے الله علیه وسلّم به خپل ته بند مضبوط اوتړلو (ډیر زیات مستعد به شو) د شپې چه به خپله پاسیدلو، او د کور خلق به ئې هم پاسول.

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ط

بسم الله الرحمٰن الرحیم ط

**باب۳۷۸: اَلْاِعْتِكَافِ فِى الْعَشْرِ الْاَوَاخِرِ وَالْاِعْتِكَافِ فِى الْمَسَاجِدِ كُلِّهَا لِقَوْلِهٖ تَعَالٰى وَلَا تُبَاشِرُوْهُنَّ وَ اَنْتُمْ عَاكِفُوْنَ فِى الْمَسٰجِدِ تِلْكَ حُدُوْدُ اللّٰهِ فَلَا تَقْرَبُوْهَا كَذٰلِكَ يُبَيِّنُ اللّٰهُ اٰيٰتِهٖ لِلنَّاسِ لَعَلَّهُمْ يَتَّقُوْنَ.**

**باب۳۷۸: آخري عشره کښې د اعتکاف کولو، او ټولو جماتونو کښې د اعتکاف کولو بیان.** ځکه چه الله تعالٰي اوفرمائيل، چه تاسو خپلو بیبیانو سره صحبت مه کوئې، کله چه تاسو جماتونو کښې د اعتکاف په حالت ئې، دا د الله حدود دي، نو دې ته نزدې مه ورځئې، دغه شان الله تعالي خپل آیتونه خلقو د پاره بیانوي، د پاره ددې چه هغوي پرهیزګار شي.

۵۹۵: حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنِيْ ابْنُ وَهْبٍ عَنْ يُوْنُسَ اَنَّ نَافِعًا اَخْبَرَهٗ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَعْتَكِفُ الْعَشْرَ الْاَوَاخِرَ مِنْ رَّمَضَانَ.

۵۹۵: اسمٰعیل بن عبدالله. ابن وهب. یونس. نافع. عبدالله بن عمرؓ نه روایت کوي هغه وائي، رسول الله صلے الله علیه وسلّم به د رمضان آخري عشره کښې اعتکاف کولو.

۵۹۶: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ

۵۹۶: عبدالله بن یوسف. لیث. عقیل بن

يُوسُفَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُرْوَةَ ابْنِ الزُّبَيْرِ عَنْ عَائِشَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَعْتَكِفُ الْعَشْرَ الْاَوَاخِرَ مِنْ رَمَضَانَ حَتّٰى تَوَفَّاهُ اللّٰهُ ثُمَّ اعْتَكَفَ اَزْوَاجُهُ مِنْ بَعْدِهِ.

شهاب. عروه بن زبير. دَ نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم دَ ټبر بي بي عائشےؓ نه روايت كوي، چه نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم به دَ، رمضان آخري عشره كښې اعتكاف كولو. تردے چه اللّٰه، حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم وفات كړلو. بيا دَ حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم نه پس دَ حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم بيبيانو به هم اعتكاف كولو.

٥٩٧ : حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنْ يَزِيْدَ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ الْهَادِ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ اِبْرَاهِيْمَ بْنِ الْحٰرِثِ التَّيْمِيِّ عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ اَبِيْ سَعِيْدِ ن الْخُدْرِيِّ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَعْتَكِفُ فِي الْعَشْرِ الْاَوْسَطِ مِنْ رَمَضَانَ فَاعْتَكَفَ عَامًا حَتّٰى اِذَا كَانَ لَيْلَةَ اِحْدٰى وَ عِشْرِيْنَ وَهِيَ اللَّيْلَةُ الَّتِيْ يَخْرُجُ مِنْ صَبِيْحَتِهَا مِنِ اعْتِكَافِهِ قَالَ مَنْ كَانَ اعْتَكَفَ مَعِيَ فَلْيَعْتَكِفِ الْعَشْرَ الْاَوَاخِرَ وَقَدْ اُرِيْتُ هٰذِهِ اللَّيْلَةَ ثُمَّ اُنْسِيْتُهَا وَقَدْ رَاَيْتُنِيْ اَسْجُدُ فِيْ مَاءٍ وَّ طِيْنٍ مِنْ صَبِيْحَتِهَا فَالْتَمِسُوْهَا فِي الْعَشْرِ الْاَوَاخِرِ وَالْتَمِسُوْهَا فِيْ كُلِّ وِتْرٍ فَمَطَرَتِ السَّمَآءُ تِلْكَ اللَّيْلَةَ وَ كَانَ الْمَسْجِدُ عَلٰى عَرِيْشٍ فَوَكَفَ الْمَسْجِدُ فَبَصُرَتْ عَيْنَايَ رَسُوْلَ اللّٰهِ

٥٩٧ : اسمٰعيل. مالک. يزيد بن عبداللّٰه بن هاد. محمد بن ابراهيم بن حارث تيمي ابو مُسلم بن عبدالرحمٰن. ابو سعيد خدريؓ نه روايت كوي، چه رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلّم به دَ، رمضان آخري عشره كښې اعتكاف كولو يو كال حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم اعتكاف اوكړلو. چه يويشتمه شپه شوه. او دا هغه شپه وه، چه دَ هغې په سحر به حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم دَ، اعتكاف نه بهر كيدلو، حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، چا چه ما سره اعتكاف كړے دے، هغهٔ له پكار دي، چه آخري عشرے كښې اعتكاف اوكړي، ځكه چه دا شپه ماته خوب كښې ښودلے شوے ده. بيا ځما نه هيره كړے شوه. او ما خوب كښې ليدلي دي، چه زهٔ اوبو او ختې كښې دَ دے شپے په سحر سجده كوم، په دے وجه دا، آخري عشره كښې تلاش كوئے. او ناتكے (طاق) شپو كښې ئے تلاش كوئے بيا په دغه شپه باران اوشو. او دَ جُمات چهت دَ قجورو وو، په دے وجه جُمات په څڅيدو شو. ځما دواړو سترګو دَ، يويشتمے په سحر رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلٰى جَبْهَتِهٖ اَثَرُ الْمَآءِ وَالطِّيْنِ مِنْ صُبْحِ اِحْدٰى وَ عِشْرِيْنَ.

وسلّم اوليدلو، چه د حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم په مخ مُبارک د اوبو او ختې نښې وې.

## باب ۳۷۹: اَلْحَائِضِ تُرَجِّلُ الْمُعْتَكِفَ.

باب ۳۷۹: د اعتکاف کونکي سرې سر کښې د حائضې ښځې د گومنځ وهلو بيان.

۵۹۸: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنّٰى حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ هِشَامٍ قَالَ اَخْبَرَنِىْ اَبِىْ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصْغِيْ اِلَيَّ رَأْسَهٗ وَهُوَ مُجَاوِرٌ فِى الْمَسْجِدِ فَاُرَجِّلُهٗ وَ اَنَا حَائِضٌ.

۵۹۸: مُحمّد بن مثنٰي. يحيٰي. هشام. عروه. بي بي عائشےؓ نه روايت کوي. د هغې بيان دے، چه نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم به خپل سر ځما طرف ته رانښکته کولو، داسې حال کښې، چه حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم به جُمات کښې معتکف وو، او ما به ورله سر گومنځ کولو، حالانکه زهٔ به حائضه ووم (يعني ځما به حيض وو).

## باب ۳۸۰: اَلْمُعْتَكِفُ لَا يَدْخُلُ الْبَيْتَ اِلَّا لِحَاجَةٍ.

باب ۳۸۰: اعتکاف کونکے دے بغير د څهٔ ضرورت نه کور کښې نهٔ داخليږي.

ف: اعتكاف: خپل نفس د دُنياوي خواهشاتونه منع کول. جُمات کښې په مقرره طريقې کُتې کښې کيناستل او عبادت کول.

۵۹۹: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا لَيْثٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُرْوَةَ وَ عَمْرَةَ بِنْتِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ اَنَّ عَائِشَةَ زَوْجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَتْ وَ اِنْ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيُدْخِلُ عَلَيَّ رَأْسَهٗ وَهُوَ فِى الْمَسْجِدِ فَاُرَجِّلُهٗ وَ كَانَ لَا يَدْخُلُ الْبَيْتَ اِلَّا لِحَاجَةٍ اِذَا كَانَ مُعْتَكِفًا.

۵۹۹: قتيبه. ليث. ابن شهاب. عروه و عَمره بنت عبدالرحمٰن. بي بي عائشےؓ تېر، د نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم نه روايت کوي د هغې بيان دے، رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلّم به خپل سر مُبارک ځما طرف ته راتيټ کړلو، حالانکه حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم به جُمات کښې (د اعتکاف حالت کښې) وو، او ما به ورله سر گومنځ کولو. او کله چه به اعتکاف کښې وو، نو بغير د څهٔ ضرورت نه به کور کښې نهٔ داخليدلو.

## باب ۳۸۱: غُسْلِ الْمُعْتَكِفِ.

باب ۳۸۱: د معتکف د غُسل کولو بيان.

۲۰۰۰ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوسُفَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ مَنْصُورٍ عَنْ إِبْرَاهِيمَ عَنِ الْاَسْوَدِ عَنْ عَآئِشَةَ قَالَتْ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُبَاشِرُنِي وَ اَنَا حَآئِضٌ وَّ كَانَ يُخْرِجُ رَاْسَهُ مِنَ الْمَسْجِدِ وَهُوَ مُعْتَكِفٌ فَاَغْسِلُهُ وَ اَنَا حَآئِضٌ.

۲۰۰۰ : مُحـمَّد بن يُوسف. سُفيان. منصور. ابراهيم. اسود. بي بي عائشےؓ نه روايت كوي. ذ هغے بيان دے چه نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم به زه خپل بدن سره لګؤلم. او زهٔ به ذ حيض حالت كښ ووم، او خپل سر، به ئے دَ، اعتكاف په حالت كښ بهر راوبښکلو. او ما به هغه وينزلو، حالانکه څما به حيض وو.

## باب ۳۸۲ : اَلْاِعْتِكَافِ لَيْلًا.

## باب ۳۸۲ : دَ، شپے دَ اعتكاف كولو بيان.

۲۰۰۱ : حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ اَخْبَرَنِي نَافِعٌ عَنِ ابْنِ عُمَرَؓ اَنَّ عُمَرَ سَاَلَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ كُنْتُ نَذَرْتُ فِي الْجَاهِلِيَّةِ اَنْ اَعْتَكِفَ لَيْلَةً فِي الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ قَالَ فَاَوْفِ بِنَذْرِكَ.

۲۰۰۱ : مُسدد. يحيي بن سعيد. عُبيداللّٰه. نافع. ابن عمرؓ نه روايت كوي، هغهٔ اووے، نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم نه حضرت عمرؓ تپوس اوكۀ، چه ما دَ جاهليت زمانه كښ نذر منلے وو، چه يوه شپه به مسجد حرام كښ اعتكاف كوم. حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل، خپل نذر پُوره كړه.

## باب ۳۸۳ : اِعْتِكَافِ النِّسَاءِ.

## باب ۳۸۳ : دَ ښځو دَ اعتكاف كولو بيان.

۲۰۰۲ : حَدَّثَنَا اَبُو النُّعْمَانِ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ حَدَّثَنَا يَحْيَى عَنْ عَمْرَةَ عَنْ عَآئِشَةَؓ قَالَتْ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَعْتَكِفُ فِي الْعَشْرِ الْاَوَاخِرِ مِنْ رَمَضَانَ فَكُنْتُ اَضْرِبُ لَهُ خِبَآءً فَيُصَلِّي الصُّبْحَ ثُمَّ يَدْخُلُهُ فَاسْتَاْذَنَتْ حَفْصَةُ عَآئِشَةَ اَنْ تَضْرِبَ خِبَآءً فَاَذِنَتْ لَهَا فَضَرَبَتْ خِبَآءً فَلَمَّا رَاَتْهُ زَيْنَبُ ابْنَةُ جَحْشٍ ضَرَبَتْ خِبَآءً

۲۰۰۲ : ابوالنعمان. حماد بن زيد. يحيي. عمره. بي بي عائشےؓ نه روايت كوي، دَ هغے بيان دے، نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم دَ، رمضان آخري عشره كښ اعتكاف كولو. ما به دَ حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم د پاره يوه خيمه لګوله حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم چه به د سحر مونځ اوکهٔ نو هغے كښ به داخل شو. بيا بي بي حفصےؓ د بي بي عائشےؓ نه د خيمے لګولو اجازت اوغوښتلو. هغے اجازت وركه. نو بي بي حفصےؓ هم يوه خيمه اولګوله هر كله چه زينب بنت جحش اوكتل، نو هغے هم يوه خيمه اولګوله. چه سحر شو، نبي صلے اللّٰه عليه

خبر فَلَمَّا اَصْبَحَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَاَى الْاَخْبِيَةَ فَقَالَ مَا هٰذَا فَاُخْبِرَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْبِرَّ تُرَوْنَ بِهِنَّ فَتَرَكَ الْاِعْتِكَافَ ذٰلِكَ الشَّهْرَ ثُمَّ اعْتَكَفَ عَشْرًا مِنْ شَوَّالٍ.

وسلَم خو خيمے اوليدلے نو حضور صلے اللّٰه عليه وسلَم اوفرمائيل دا خيمے څنګه دي. حضور صلے اللّٰه عليه وسلَم ته واقعه بيان کړے شوه نو حضور صلے اللّٰه عليه وسلَم اوفرمائيل آيا تاسو دے کښې نيکي ګنړئ نو حضور صلے اللّٰه عليه وسلَم هغے مياشت کښې اعتکاف پريښودلو بيا د شوال يوه عشره کښې ئے اعتکاف اوکړلو ١.

١. ددے حديث شريف نه معلوميږي چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم د ښځو اعتکاف خوښ نه کړو. ليکن په واضح ښکاره ډول ئے ترے منعه اونکړه. خو داسے خو ارشادات ئے اوفرمايل چه د هغے نه ناخوښي ښکاره شوه.

## بَابُ ٣٨٤: اَلْاَخْبِيَةِ فِي الْمَسْجِدِ.

باب ٣٨٤: جمات کښې د خيمو لږولو بيان.

٦٠٣: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيْدٍ عَنْ عَمْرَةَ بِنْتِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ عَائِشَةَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَرَادَ اَنْ يَّعْتَكِفَ اِذَا اَخْبِيَةٌ خِبَاءُ عَائِشَةَ وَ خِبَاءُ حَفْصَةَ وَ خِبَاءُ زَيْنَبَ فَقَالَ الْبِرَّ تَقُوْلُوْنَ بِهِنَّ ثُمَّ انْصَرَفَ فَلَمْ يَعْتَكِفْ حَتّٰى اعْتَكَفَ عَشْرًا مِنْ شَوَّالٍ.

٦٠٣: عبداللّٰه بن يوسف. مالک. يحيي بن سعيد. عمره بنت عبدالرحمٰن. بي بي عائشےؓ نه روايت کوي نبي صلے اللّٰه عليه وسلَم د اعتکاف اراده اوکړله. کوم وخت چه هغے ځائے ته اورسيد چه هلته ئے د اعتکاف اراده وه نو وے ليدل چه ګڼړے خيمے لګيدلے دي. د بي بي عائشےؓ. بي بي حفصےؓ او بي بي زينبؓ خيمے وے. حضور صلے اللّٰه عليه وسلَم اوفرمائيل تاسو په دے کښې نيکي ګنړئ. بيا حضور صلے اللّٰه عليه وسلَم واپس شولو او اعتکاف ئے اونۀ کۀ تردے چه د شوال يوے عشرے کښې ئے اعتکاف اوکړلو.

## بَابُ ٣٨٥: هَلْ يَخْرُجُ الْمُعْتَكِفُ لِحَوَائِجِهِ اِلَى بَابِ الْمَسْجِدِ.

باب ٣٨٥: آيا اعتکاف کونکے د خپلو ضرورتونو د پاره د جمات دروازے پورے راتلے شي.

٦٠٤ : حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عَلِيُّ بْنُ الْحُسَيْنِ اَنَّ صَفِيَّةَ زَوْجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَزُوْرُهٗ فِيْ اِعْتِكَافِهٖ فِي الْمَسْجِدِ فِي الْعَشْرِ الْاَوَاخِرِ مِنْ رَّمَضَانَ فَتَحَدَّثَتْ عِنْدَهٗ سَاعَةً ثُمَّ قَامَتْ تَنْقَلِبُ فَقَامَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَعَهَا يَقْلِبُهَا حَتّٰى اِذَا بَلَغَتْ بَابَ الْمَسْجِدِ عِنْدَ بَابِ اُمِّ سَلَمَةَ مَرَّ رَجُلَانِ مِنَ الْاَنْصَارِ فَسَلَّمَا عَلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ لَهُمَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلٰى رِسْلِكُمَا اِنَّمَا هِيَ صَفِيَّةُ بِنْتُ حُيَيٍّ فَقَالَا سُبْحَانَ اللّٰهِ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ وَكَبُرَ عَلَيْهِمَا فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّ الشَّيْطَانَ يَبْلُغُ مِنَ الْاِنْسَانِ مَبْلَغَ الدَّمِ وَ اِنِّيْ خَشِيْتُ اَنْ يَّقْذِفَ فِيْ قُلُوْبِكُمَا شَيْئًا.

٦٠٤ : ابواليمان. شعيب. زهري. علي بن حسين. بي بي صفيهؓ دَ نبي صلے الله عليه وسلّم تېر روايت کوي. دَ هغې بيان دے، چه هغه نبي صلے الله عليه وسلّم له ملاقات له راغله او دغه وخت حضور صلے الله عليه وسلّم جُمات کښې دَ، رمضان آخري عشره کښې اعتکاف کښې وو. حضور صلے الله عليه وسلّم سره ئې نزدے لږ ساعت خبرے اترے اوکړے. بيا تلو دَ پاره اودريده، نو نبي صلے الله عليه وسلّم هم هغې سره اودريدلو، چه هغه اورسوي، تردے چه باب اُمّ سلمه سره دَ جُمات دروازے ته اورسيدل. دے کښې دوه انصار سړي تيريدل، هغوي دواړو رسول الله صلے الله عليه وسلّم ته سلام اوکړ، نو نبي صلے الله عليه وسلّم هغوئ ته اوفرمائيل، تاسو دواړه لږ ايسار شئے. دا صفيه بنت حي (ځما ښځه) ده. هغوي دواړو اووے. سُبحان اللّٰه، يا رسول الله (ستاسو متعلق بدګماني نشي کيدے) په هغوي دواړو دَ نبي صلے الله عليه وسلّم دا خبره لږه سخته شان تيره شوه، نو حضور صلے الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل. شيطان دَ، وينے رسيدو په شان دَ، انسان جسم کښې ګرځي او ما سره وَيره شوه، چه چرته (شيطان) ستاسو زړونو کښې بدګماني پيدانهٔ کړي.

١. د حضرت اُمّ سلمه رضي الله عنها دا دروازه په لاره کښې وه. شپه وه. رسول الله صلے الله عليه وسلم حضرت صفيه رضي الله عنها د کور دروازے پورے بوتلله، نورو روایاتو کښې دي چه دے دواړو حضراتو کله رسول الله صلي الله عليه وسلم اوليدو نو لږ مخکښې لاړل ددے وجے نه رسول الله صلي الله عليه وسلّم د حقيقت حال خبر ورکړو چه دا ځما ښځه ده.

دے حديث شريف مونږ ته د شک د ځايونو نه د بچ کيدو او د معاملاتو د واضحه صاف کولو تاکيد کريدے. رسول الله صلي الله عليه وسلّم د الله نبي وو د صحابهٔ کرامو په زړه کښې د نبي کريم صلي الله عليه وسلّم په حقله پاک صاف خيالات وو. د بل چا د پاره پاک صاف خيالات نشي کيدلے، ليکن ددے

سره نبي كريم صلي الله عليه وسلّم د حقيقت حال صفائي او كړه.

**باب ۳۸۶: الْاِعْتِكَافِ وَ خَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَبِيْحَةَ عِشْرِيْنَ.**

**باب ۳۸۶: د اعتكاف بيان او نبي صلي الله عليه وسلّم د شلمې په صبا د اعتكاف نه اووتلو.**

۲۰۵: حَدَّثَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُنِيْرٍ سَمِعَ هَارُوْنَ ابْنَ اِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ الْمُبَارَكِ قَالَ حَدَّثَنِيْ يَحْيَى ابْنُ اَبِيْ كَثِيْرٍ قَالَ سَمِعْتُ اَبَا سَلَمَةَ بْنَ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ قَالَ سَأَلْتُ اَبَا سَعِيْدِ ن الْخُدْرِيَّ قُلْتُ هَلْ سَمِعْتَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَذْكُرُ لَيْلَةَ الْقَدْرِ قَالَ نَعَمْ اعْتَكَفْنَا مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْعَشْرَ الْاَوْسَطَ مِنْ رَمَضَانَ قَالَ فَخَرَجْنَا صَبِيْحَةَ عِشْرِيْنَ فَقَالَ اِنِّيْ اُرِيْتُ لَيْلَةَ الْقَدْرِ وَ اِنِّيْ نُسِّيْتُهَا فَالْتَمِسُوْهَا فِي الْعَشْرِ الْاَوَاخِرِ فِيْ وِتْرٍ فَاِنِّيْ رَاَيْتُ اَنْ اَسْجُدَ فِيْ مَاءٍ وَ طِيْنٍ وَمَنْ كَانَ اعْتَكَفَ مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلْيَرْجِعْ فَرَجَعَ النَّاسُ اِلَى الْمَسْجِدِ وَمَا نَرٰى فِي السَّمَاءِ قَزَعَةً قَالَ فَجَاءَتْ سَحَابَةٌ فَمَطَرَتْ وَ اُقِيْمَتِ الصَّلٰوةُ فَسَجَدَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الطِّيْنِ وَالْمَاءِ حَتّٰى رَاَيْتُ الطِّيْنَ فِيْ اَرْنَبَتِهٖ وَ

۲۰۵: عبدالله بن منير. هارون بن اسمعيل. علي بن مُبارک. يحيي بن ابي كثير. ابو سلمه بن عبدالرحمن نه روايت كوي د هغه بيان دے ما د ابو سعيد خدريٌ نه تپوس اوکړ آيا تا د رسول الله صلي الله عليه وسلّم نه د شب قدر ذکر آوريدلے دے. هغه اووے. او. مونږ رسول الله صلي الله عليه وسلّم سره د رمضان درمياني عشره کښې اعتکاف اوکړ. مونږ د شلمې په صبا راووتلو نو رسول الله صلي الله عليه وسلّم مونږ ته د شلم تاريخ په صبا خطبه راکړه او وے فرمائيل ماته شب قدر اوښودلے شوه. بيا مانه هيره کړے شوه نو دا آخري عشره کښې طاق شپو کښې تلاش کوئے خکه چه ما خوب ليدلے دے چه زه اوبو او ختې کښې سجده کوم. او کوم سړے چه رسول الله صلي الله عليه وسلّم سره اعتکاف کښې وو هغه له واپس كيدل پكار دي. نو خلق جُمات طرفته واپس شولو او مونږ خلقو ته آسمان کښې د وريځې يوه ټکړه هم په نظر نه راتله. خو يوه وريخ رابښکاره شوه او باران شو. او مونخ اوشولو نو رسول الله صلي الله عليه وسلّم ختو او اوبو کښې سجده اوکړله تردے چه ما د حضور صلي الله عليه وسلّم په مخ او پوزه مبارکه د ختو نښه

جبهته.

باب ۳۸۷: اِعْتِكَافِ الْمُسْتَحَاضَةِ.

۲۰۶: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ عَنْ خَالِدٍ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتِ اعْتَكَفَتْ مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ امْرَأَةٌ مِنْ أَزْوَاجِهِ مُسْتَحَاضَةٌ فَكَانَتْ تَرَى الْحُمْرَةَ وَالصُّفْرَةَ فَرُبَّمَا وَضَعْنَا الطَّسْتَ تَحْتَهَا وَهِيَ تُصَلِّي.

باب ۳۸۸: زِيَارَةِ الْمَرْأَةِ زَوْجَهَا فِيْ اعْتِكَافِهِ.

۲۰۷: حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ عُفَيْرٍ قَالَ حَدَّثَنِي اللَّيْثُ قَالَ حَدَّثَنِي عَبْدُ الرَّحْمٰنِ ابْنُ خَالِدٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عَلِيِّ بْنِ الْحُسَيْنِ اَنَّ صَفِيَّةَ زَوْجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَخْبَرَتْهُ ح وَ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا هِشَامٌ اَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عَلِيِّ بْنِ الْحُسَيْنِ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْمَسْجِدِ وَ عِنْدَهُ اَزْوَاجُهُ فَرُحْنَ فَقَالَ لِصَفِيَّةَ بِنْتِ حُيَيٍّ لَا تَعْجَلِي حَتّٰى اَنْصَرِفَ مَعَكِ وَ كَانَ بَيْتُهَا فِيْ دَارِ اُسَامَةَ فَخَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَعَهَا فَلَقِيَهُ رَجُلَانِ مِنَ

اوليده.

باب ۳۸۷: د مستحاضه د اعتكاف كولو بيان.

۲۰۶: قتيبه. يزيد بن زريع. خالد. عكرمه. بي بي عائشې نه روايت كوي. هغې اووې رسول اللّه صلے اللّه عليه وسلّم سره د هغوي يوې بي بي د استحاضه كيدو په حالت كښې اعتكاف اوكه. او هغې به سرخي او زردي ليدله. اكثر به مونږ خلقو د هغې لاندې يو لوښې ايښودلو او هغې به مونځ كولو.

باب ۳۸۸: د ښځې خپل خاوند سره د هغه د اعتكاف حالت كښې د ملاقات كولو بيان.

۲۰۷: سعيد بن عفير. ليث. عبدالرحمٰن بن خالد. ابن شهاب. علي بن حسين. د نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم د ټبر بي بي صفيې نه روايت كوي. هغې علي بن حسين ته بيان اوكه. ح (دوئم سند) عبداللّٰه بن محمّد. هشام. معمر. زهري. علي بن حسين نه راويت كوي نبي صلے اللّه عليه وسلّم جُمات كښې وو. او حضور صلے اللّه عليه وسلّم سره د هغوي بيبيانې وې. هغوي روانې شوې. نو حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم صفيهٔ بنت حيي ته اوفرمائيل. تادي مه كوه تردې چه زهٔ هم تاسره لاړ شم. او د هغې كوټكښې د اسامه بن زيدٌ په كور كښې وه. نبي صلے اللّه عليه وسلّم هغې سره روان شو نو حضور صلے اللّه عليه وسلّم سره دوه انصار سړي يوځائې شولو هغې دواړو نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم اوليدلو. بيا په وړاندې لاړل. نو نبي صلے اللّٰه عليه

الْاَنْصَارِ فَنَظَرَ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ اَجَازَا وَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَعَالَيَا اِنَّهَا صَفِيَّةُ بِنْتُ حُيَيٍّ قَالَا سُبْحَانَ اللّٰهِ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ اِنَّ الشَّيْطٰنَ يَجْرِيْ مِنَ الْاِنْسَانِ مَجْرَى الدَّمِ وَ اِنِّيْ خَشِيْتُ اَنْ يُلْقِيَ فِيْ اَنْفُسِكُمَا شَيْئًا.

وسلّم هغے دواړو ته آواز اوکړلو، اووے فرمائیل، تاسو دواړه راشے. دا صفیه بنت حي ده. هغے دواړو عرض اوکړ. سبحان الله، یا رسول الله (ستاسو په حقله د د بدګماني سوال نه پیدا کیږي) حضور صلے الله علیه وسلّم ورته اوفرمائیل. شیطان د انسان جسم کښې د وینې په شان زغلي، او ما سره خوف شو چه چرته ستاسو په زړونو کښې بدګماني پیدا نه کړي.

**باب ۳۸۹: هَلْ يَدْرَءُ الْمُعْتَكِفُ عَنْ نَفْسِهٖ.**

**باب ۳۸۹:** آیا اعتکاف کونکے د خپل طرفه بدګماني لرے کولے شي.

**۲۰۸:** حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ اَخْبَرَنِيْ اَخِيْ عَنْ سُلَيْمَانَ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ اَبِيْ عَتِيْقٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عَلِيِّ بْنِ الْحُسَيْنِ عَنْ صَفِيَّةَ اَخْبَرَتْهُ ح وَحَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيٰنُ قَالَ سَمِعْتُ الزُّهْرِيَّ يُخْبِرُ عَنْ عَلِيِّ بْنِ الْحُسَيْنِ اَنَّ صَفِيَّةَ اَتَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ مُعْتَكِفٌ فَلَمَّا رَجَعَتْ مَشٰى مَعَهَا فَاَبْصَرَهُ رَجُلٌ مِّنَ الْاَنْصَارِ فَلَمَّا اَبْصَرَهُ دَعَاهُ فَقَالَ هِيَ صَفِيَّةُ وَ رُبَّمَا قَالَ هٰذِهٖ صَفِيَّةُ فَاِنَّ الشَّيْطَانَ يَجْرِيْ مِنِ ابْنِ آدَمَ مَجْرَى الدَّمِ قُلْتُ لِسُفْيٰنَ اَتَتْهُ لَيْلًا قَالَ وَ هَلْ هُوَ اِلَّا لَيْلٌ.

**۲۰۸:** اسمٰعیل بن عبدالله. برادر اسمٰعیل. سلیمان. محمد بن ابي عتیق. ابن شهاب علي بن حسین. بي بي صفیهؓ نه روایت کوي. د هغے بیان دے. ح (دوئم سند) علي بن عبدالله سُفیان. زهري. علي بن حسین نه روایت کوي چه بي بي صفیهؓ نبي صلے الله علیه وسلّم له راغله، حالانکه حضور صلے الله علیه وسلّم اعتکاف کښې وو. کوم وخت چه هغه واپس شوه، نو حضور صلے الله علیه وسلّم هغے سره روان شو یو انصاري سړي حضور صلے الله علیه وسلّم اولیدلو. کوم وخت چه حضور صلے الله علیه وسلّم هغه اولید، نو هغه ته ئے آواز اوکړ. اووے فرمائیل دلته راشه. دا صفیه ده (او کله هی صفیة په ځائے هذه صفیة، سفیان بیان اوکړ) شیطان د بني آدم په جسم کښې د وینې په شان زغلي. د علي بیان دے. ما د سُفیان نه تپوس اوکړ، چه هغه حضور صلے الله علیه وسلّم ته د شپے راغلے وه. نو هغه اووے د شپے وخت وو.

**باب ۳۹۰: مَنْ خَرَجَ مِنْ**

**باب ۳۹۰:** د هغے سړي بیان چه د خپل

اعْتِكَافِهٖ عِنْدَ الصُّبْحِ.

اعتکاف نه د سحر وخت بهر راوخي.

۲۰۹: حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمٰنِ حَدَّثَنَا سُفْيٰنُ عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ عَنْ سُلَيْمَانَ الْاَحْوَلِ خَالِ ابْنِ اَبِيْ نَجِيْحٍ عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ عَنْ اَبِيْ سَعِيْدٍ قَالَ سُفْيٰنُ وَ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَمْرٍو عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ عَنْ اَبِيْ سَعِيْدٍ قَالَ وَ اَظُنُّ اَنَّ ابْنَ اَبِيْ لَبِيْدٍ حَدَّثَنَا عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ عَنْ اَبِيْ سَعِيْدٍ قَالَ اعْتَكَفْنَا مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْعَشْرَ الْاَوْسَطَ فَلَمَّا كَانَ صَبِيْحَةَ عِشْرِيْنَ نَقَلْنَا مَتَاعَنَا فَاَتَانَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ كَانَ اعْتَكَفَ فَلْيَرْجِعْ اِلٰى مُعْتَكَفِهٖ فَاِنِّيْ رَاَيْتُ هٰذِهِ اللَّيْلَةَ وَ رَاَيْتُنِيْ اَسْجُدُ فِيْ مَآءٍ وَّ طِيْنٍ فَلَمَّا رَجَعَ اِلٰى مُعْتَكَفِهٖ وَ هَاجَتِ السَّمَآءُ فَمُطِرْنَا فَوَالَّذِيْ بَعَثَهٗ بِالْحَقِّ لَقَدْ هَاجَتِ السَّمَآءُ مِنْ اٰخِرِ ذٰلِكَ الْيَوْمِ وَ كَانَ الْمَسْجِدُ عَرِيْشًا فَلَقَدْ رَاَيْتُ عَلٰى اَنْفِهٖ وَ اَرْنَبَتِهٖ اَثَرَ الْمَآءِ وَالطِّيْنِ.

۲۰۹: عبدالرحمن. سفیان. ابن جریج سُلیمان احول. (د ابن ابي نجیح ماما). ابوسلمه. ابوسعید نه روایت کوي. د سُفیان بیان دے ماته محمد بن عمرو هغه د ابوسعید نه روایت او کۀ. د هغه بیان دے. خما گُمان دے ابن ابي لبید مونږ ته په واسطه د ابوسلمه. ابو سعید روایت او کۀ. ابوسعید اووے. مونږ رسول اللّٰه صلے اللّٰه علیه وسلّم سره درمیاني عشره کښې اعتکاف او کۀ. چه د شلم صبا شو، نو مونږ خپل سامان منتقل کۀ. مونږ پله رسول اللّٰه تشریف راوړلو. او وے فرمائیل، خوک چه اعتکاف کښې وو، هغه دے د خپل اعتکاف خائے ته واپس شي. ما (خوب کښې) دا شپه (یعني شب قدر) لیدلے ده. د او ما لیدلے دي، چه زۀ اوبو او ختے کښې سجده کوم. کوم وخت چه دَ خپل اعتکاف خائے ته واپس شولو نو په آسمان وریځ خوره شوه. او باران شو. قسم دے په هغه ذات، چه حضور صلے اللّٰه علیه وسلّم ئے حق سره رالیږلے دے. په آسمان دَ هغے ورځ په، آخري حصه کښې وریځ راغله. او هغے ورخو کښې په جُمات دَ قجورو چهت وو. ما د حضور صلے اللّٰه علیه وسلّم په پوزه او مخ مُبارک د ختے نښه اولیدله.

## بَابُ ۱۹۳: اَلْاِعْتِكَافُ فِيْ شَوَّالٍ.

## باب ۱۹۳: شوال کښې دَ اعتکاف کولو بیان.

۲۱۰: حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ اَخْبَرَنَا مُحَمَّدُ بْنُ فُضَيْلِ بْنِ

۲۱۰: مُحمّد. مُحمّد بن فضیل بن غزوان. یحیي بن سعید. عمره بنت عبدالرحمن. بي بي عائشے[۳]

غَزْوَانَ عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ عَنْ عَمْرَةَ بِنْتِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَعْتَكِفُ فِيْ رَمَضَانَ وَ إِذَا صَلَّى الْغَدَاةَ دَخَلَ مَكَانَهُ الَّذِي اعْتَكَفَ فِيْهِ قَالَ فَاسْتَأْذَنَتْهُ عَائِشَةُ أَنْ تَعْتَكِفَ فَأَذِنَ لَهَا فَضَرَبَتْ فِيْهِ قُبَّةً فَسَمِعَتْ بِهَا حَفْصَةُ فَضَرَبَتْ قُبَّةً وَّ سَمِعَتْ زَيْنَبُ بِهَا فَضَرَبَتْ قُبَّةً أُخْرٰى فَلَمَّا انْصَرَفَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنَ الْغَدِ أَبْصَرَ أَرْبَعَ قِبَابٍ فَقَالَ مَا هٰذَا فَأُخْبِرَ خَبَرَهُنَّ فَقَالَ مَا حَمَلَهُنَّ عَلٰى هٰذَا آلْبِرُّ انْزِعُوْهَا فَلَا أَرَاهَا فَنُزِعَتْ فَلَمْ يَعْتَكِفْ فِيْ رَمَضَانَ حَتّٰى اعْتَكَفَ فِيْ آخِرِ الْعَشْرِ مِنْ شَوَّالٍ.

نه روايت كوي. هغې اووې، رسول الله صلى الله عليه وسلّم به هر رمضان كښې اعتكاف كولو. او د سحر مونځ چه به ئې اوكړ، نو هغې خائې ته به تلو. كوم خائې چه به ئې اعتكاف كولو. بي بي عائشې د حضور صلى الله عليه وسلّم نه د اعتكاف اجازت اوغوښتلو. نو حضور صلى الله عليه وسلّم اجازت ور كړلو هغې هلته يو خيمه اولږوله، بي بي حفصې چه دا خبره واؤريده، نو هغې هم يو خيمه اولږوله بي بي زينب ته چه معلومه شوه، نو هغې هم يو خيمه اولږوله. څه وخت چه رسول الله صلى الله عليه وسلّم د سحر د مونځ نه فارغ شو، نو حضور صلى الله عليه وسلّم څلور خيمې اوليدې او وې فرمائيل، دا څه دي. حضور صلى الله عليه وسلّم ته د هغې حال بيان شو. نو حضور صلى الله عليه وسلّم اوفرمائيل. دې كار ته دوئ نيكئ نه دي آماده كړې. دا لرې كړئې، چه اوس زه دا، اونه وينم. نو هغه خيمې لرې كړې شوې. او رمضان كښې ئې اعتكاف اونه كړ، تر دې چه د شوال آخري عشره كښې حضور صلى الله عليه وسلّم اعتكاف[1] اوكړلو.

[1]. د شوال مياشت كښې رسول الله صلى الله عليه وسلّم د رمضان د اعتكاف د قضا په طور اعتكاف كړې ؤ. رمضان كښې رسول الله صلى الله عليه وسلّم خكه اعتكاف نه وو كړې چه پاكو بيبيانو او د هغوي په واسطه نورو مسلمانانو ښخو ته د اعتكاف په حقله اسلامي حكم معلوم شي. چه سري به جومات كښې اعتكاف كوي بل طرفته خپلو ښخو سره د ښه سلوك خيال ئې اوساتلو. چه پاكې بيبيانې ئې كله منعه كړې نو پخپله ئې هم اعتكاف اونه كړلو.

## بَابٌ ۲۹۲: مَنْ لَّمْ يَرَ عَلَيْهِ صَوْمًا إِذَا اعْتَكَفَ.

## باب ۲۹۲: د هغې خلقو بيان چه هغوي د اعتكاف كونكي روژه نيول ضروري نه ګنړي.

۱۱ ۲: حَدَّثَنَا إِسْمٰعِيْلُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ عَنْ أَخِيْهِ عَنْ سُلَيْمَانَ عَنْ

۱۱ ۲: اسمٰعيل. بن عبدالله. برادر اسمٰعيل. سليمان. عُبيد الله بن عُمر. نافع.

عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ عَنْ نَّافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ ابْنِ عُمَرَ عَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ اَنَّهٗ قَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنِّيْ نَذَرْتُ فِي الْجَاهِلِيَّةِ اَنْ اَعْتَكِفَ لَيْلَةً فِي الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ فَقَالَ لَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَوْفِ نَذْرَكَ فَاعْتَكَفَ لَيْلَةً.

عبدالله بن عمر. حضرت عمر بن خطاب نه روايت كوي هغه عرض اوكه: يا رسول الله. ما د جاهليت زمانه كښ نذر منلے وو چه مسجد حرام كښ به يوه شپه اعتكاف كوم. نبي صلے الله عليه وسلم هغه ته اوفرمائيل خپل نذر پوره كره. نو هغه د شپے اعتكاف اوكه [١].

١. امام بخاري رحمة الله عليه دا بنودل غواړي. چه كوم خلق دا وائي. چه د اعتكاف د پاره روژه ضروري نده. نو د هغوي دليل دا حديث شريف دے خكه چه حضرت عمر رضي الله عنه د شپے اعتكاف كړے وو. دا ښكاره خبره ده چه د شپے د روژے سوال نه پيدا كيږي. خكه هغه بغير د روژے اعتكاف اوكړو.

بَابُ ۳۹۳: اِذَا نَذَرَ فِي الْجَاهِلِيَّةِ اَنْ يَّعْتَكِفَ ثُمَّ اَسْلَمَ.

باب ۳۹۳: كۀ يو سړے د جاهليت زمانه كښ د اعتكاف نذر اومني او بيا مسلمان شي.

۲۱۲: حَدَّثَنَا عُبَيْدُ بْنُ اِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا اَبُوْ اُسَامَةَ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ عَنْ نَّافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ اَنَّ عُمَرَ نَذَرَ فِي الْجَاهِلِيَّةِ اَنْ يَّعْتَكِفَ فِي الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ قَالَ اُرَاهُ قَالَ لَيْلَةً قَالَ لَهٗ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَوْفِ بِنَذْرِكَ.

۲۱۲: عبيد بن اسمعيل. ابو اسامه. عبيدالله. نافع. ابن عمرؓ نه روايت كوي، حضرت عمرؓ د جاهليت زمانه كښ نذر منلے وو چه مسجد حرام كښ به اعتكاف كوي. د راوي بيان دے خما گمان دے چه د شپے لفظ ئے هم فرمائيلے وو. هغه ته رسول الله صلے الله عليه وسلم اوفرمائيل، خپل نذر پوره كره.

بَابُ ۳۹۴: اَلْاِعْتِكَافُ فِي الْعَشْرِ الْاَوْسَطِ مِنْ رَّمَضَانَ.

باب ۳۹۴: د رمضان درمياني عشرے كښ د اعتكاف كولو بيان.

۲۱۳: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ اَبِيْ شَيْبَةَ حَدَّثَنَا اَبُوْ بَكْرٍ عَنْ اَبِيْ حَصِيْنٍ عَنْ اَبِيْ صَالِحٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَعْتَكِفُ فِيْ كُلِّ رَمَضَانَ

۲۱۳: عبدالله بن ابي شيبه. ابوبكر. ابوحصين. ابوصالح. حضرت ابوهريرۀ نه روايت كوي چه نبي صلے الله عليه وسلم به هر رمضان كښ لس ورځے اعتكاف كولو. كله چه هغه كال راغے په كوم كښ چه حضور صلے

عَشَرَةَ اَيَّامٍ فَلَمَّا كَانَ الْعَامُ الَّذِىْ قُبِضَ فِيْهِ اعْتَكَفَ عِشْرِيْنَ يَوْمًا.

اللّٰه علیه وسلّم وفات شولو' نو شل ورځے اعتکاف ئې او کړ.

**بــاب۵ ۹ ۳: مَــنْ اَرَادَ اَنْ يَّعْتَكِفَ ثُمَّ بَدَالَهٗ اَنْ يَّخْرُجَ.**

**باب۵ ۹ ۳: کۀ یو سړے اعتکاف او کړي او هغه** ته مناسب ښکاره شي' چه د' اعتکاف نه بهر شي

۲۱۴: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مُقَاتِلٍ اَبُو الْحَسَنِ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا الْاَوْزَاعِىُّ قَالَ حَدَّثَنِىْ يَحْيَى بْنُ سَعِيْدٍ قَالَ حَدَّثَتْنِىْ عَمْرَةُ بِنْتُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ عَآئِشَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَكَرَ اَنْ يَّعْتَكِفَ الْعَشْرَ الْاَوَاخِرَ مِنْ رَمَضَانَ فَاسْتَأْذَنَتْهُ عَآئِشَةُ فَاَذِنَ لَهَا وَسَاَلَتْ حَفْصَةُ عَآئِشَةَ اَنْ تَسْتَأْذِنَ لَهَا فَفَعَلَتْ فَلَمَّا رَاَتْ ذٰلِكَ زَيْنَبُ ابْنَةُ جَحْشٍ اَمَرَتْ بِبِنَآءٍ فَبُنِىَ لَهَا قَالَتْ وَ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا صَلَّى انْصَرَفَ اِلٰى بِنَآئِهٖ فَبَصُرَ بِالْاَبْنِيَةِ فَقَالَ مَا هٰذَا قَالُوْا بِنَاءُ عَآئِشَةَ وَ حَفْصَةَ وَ زَيْنَبَ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلْبِرَّ اَرَدْنَ بِهٰذَا مَا اَنَا بِمُعْتَكِفٍ فَرَجَعَ فَلَمَّا اَفْطَرَ اعْتَكَفَ عَشْرًا مِّنْ شَوَّالٍ.

۲۱۴: محمد بن مقاتل. ابوالحسن. عبدالله. اوزاعي. یحیي بن سعید. عمره بنت عبدالرحمن بي بي عائشےؓ نه روایت کوي' چه رسول الله صلے الله علیه وسلّم د' رمضان آخري عشرے کښې د' اعتکاف ذکر او کړ' نو حضور صلے الله علیه وسلّم نه بي بي عائشے (د' اعتکاف) اجازت اوغوښتلو' حضور صلے الله علیه وسلّم هغے له اجازت ورکړ. او بي بي حفصےؓ بي بي عائشےؓ ته خواست او کړ' چه هغے د پاره هم اجازت اوغواړي' نو هغے ته هم اجازت اوشو. زینبؓ بنت جحش چه دا' اولیدل نو هغې هم د' یوے خیمے لګولو حکم او کړ' هغے د پاره هم خیمه اولګولے شوه' د بي بي عائشےؓ بیان دے' رسول الله صلے الله علیه وسلّم چه د سحر مونځ نه فارغ شو. خپلے خیمے طرفته ورغے. د حضور صلے الله علیه وسلّم نظر په یو څو خیمو پریوتلو' نو تپوس ئے او کړ' دا څه دي. خلقو ورته اووے. د' عائشےؓ حفصےؓ او زینبؓ خیمے دي. رسول الله صلي الله علیه وسلّم اوفرمائیل' چه هغوي دے سره د' نیکۍ اراده نه ده کړے. زۀ اعتکاف کښې نۀ پاتے کیږم' حضور صلے الله علیه وسلّم واپس شولو' چه روژے ختمے شوے. نو د شوال یوے عشرے کښې ئے اعتکاف او کړ.

**باب۶ ۹ ۳: اَلْمُعْتَكِفِ يُدْخِلُ رَاْسَهُ الْبَيْتَ لِلْغُسْلِ.**

**باب۶ ۹ ۳: معتکف کۀ خپل سر' وینځلو د پاره** کور کښې دننه کړي.

۲۱۵: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا هِشَامٌ اَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا اَنَّهَا كَانَتْ تُرَجِّلُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهِيَ حَائِضٌ وَّهُوَ مُعْتَكِفٌ فِي الْمَسْجِدِ وَهِيَ فِيْ حُجْرَتِهَا يُنَاوِلُهَا رَأْسَهُ.

۲۱۵: عبدالله بن مُحمّد. هشام. معمر. زهري. عروه. بي بي عائشےؓ نه روايت کوي، چه هغې به د نبي صلے الله عليه وسلّم سر، کومنز کولو، کوم وخت چه حضور صلے الله عليه وسلّم به د، اعتکاف حالت کښ جُمات کښ وو. حالانکه حائضه به وه. او خپلے کوټکۍ کښ به وه، نو حضور صلے الله عليه وسلّم به خپل سر مُبارک هغې طرف ته وروړاندے کړو.

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ۞

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ۞

# كِتَابُ الْبُيُوْعِ

# دَ خريد و فروخت بيان

وَ قَوْلِ اللّٰهِ عَزَّ وَ جَلَّ وَ اَحَلَّ اللّٰهُ الْبَيْعَ وَ حَرَّمَ الرِّبٰو وَ قَوْلُهُ اِلَّآ اَنْ تَكُوْنَ تِجَارَةً حَاضِرَةً تُدِيْرُوْنَهَا بَيْنَكُمْ.

د، الله تعالٰي قول، چه الله بيع حلال کړے ده، او سود ئے حرام کړے دے. او د، الله تعالٰي قول، خو، دا چه نقد تجارت وي، چه تاسوئے خپلو کښ جاري کوئے.

باب ۳۹۷: مَا جَآءَ فِيْ قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى فَاِذَا قُضِيَتِ الصَّلٰوةُ فَانْتَشِرُوْا فِي الْاَرْضِ وَابْتَغُوْا مِنْ فَضْلِ اللّٰهِ وَاذْكُرُوا اللّٰهَ كَثِيْرًا لَّعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ ۞ وَ اِذَا رَاَوْا تِجَارَةً اَوْ لَهْوًا انْفَضُّوْا اِلَيْهَا وَ تَرَكُوْكَ قَآئِمًا قُلْ مَا عِنْدَ اللّٰهِ خَيْرٌ مِّنَ اللَّهْوِ وَمِنَ التِّجَارَةِ وَاللّٰهُ خَيْرُ الرّٰزِقِيْنَ ۞ وَ قَوْلِهٖ لَا تَاْكُلُوْٓا اَمْوَالَكُمْ بَيْنَكُمْ بِالْبَاطِلِ اِلَّآ اَنْ تَكُوْنَ تِجَارَةً عَنْ تَرَاضٍ مِّنْكُمْ.

باب ۳۹۷: د، الله تعالٰي قول دے، چه مونځ پوره شي، نو زمکه کښ خوارۀ شئے او د الله تعالٰي فضل تلاش کړئے. او الله ډير زيات يادوئے، چه خلاصي بيامومئے. او کله چه څۀ تجارت يا لوبه ووينې نو هغې ته وَرمنډے کړي، او تا ولاړ پريږدي. ورته اُوايه چه څه الله سره دي هغه د تماشے او سوداګرۍ نه بهتر دي او الله تعالٰي بهترين رزق ورکونکے دے. او د، الله تعالٰي قول چه خپلو کښ د، يو بل مال په ناحقه مه خورئے، خو دا چه تجارت ستاسو خپلو کښ په رضامندۍ وي.

۲۱۶: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ

۲۱۶: ابواليمان. شعيب. زهري. سعيد

حَدَّثَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ أَخْبَرَنِيْ سَعِيْدُ ابْنُ الْمُسَيَّبِ وَ أَبُوْ سَلَمَةَ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ أَنَّ أَبَا هُرَيْرَةَ قَالَ إِنَّكُمْ تَقُوْلُوْنَ إِنَّ أَبَا هُرَيْرَةَ يُكْثِرُ الْحَدِيْثَ عَنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ تَقُوْلُوْنَ مَا بَالُ الْمُهَاجِرِيْنَ وَالْأَنْصَارِ لَا يُحَدِّثُوْنَ عَنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمِثْلِ حَدِيْثِ أَبِيْ هُرَيْرَةَ وَ إِنَّ إِخْوَتِيْ مِنَ الْمُهَاجِرِيْنَ يَشْغَلُهُمْ صَفْقٌ بِالْأَسْوَاقِ وَ كُنْتُ أَلْزَمُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلٰى مِلْءِ بَطْنِيْ فَأَشْهَدُ إِذَا غَابُوْا وَ أَحْفَظُ إِذَا نَسُوْا وَ كَانَ يَشْغَلُ إِخْوَتِيْ مِنَ الْأَنْصَارِ عَمَلُ أَمْوَالِهِمْ وَ كُنْتُ امْرَأً مِسْكِيْنًا مِنْ مَسَاكِيْنِ الصُّفَّةِ أَعِيْ حِيْنَ يَنْسَوْنَ وَقَدْ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ حَدِيْثٍ يُحَدِّثُهُ أَنَّهُ لَنْ يَبْسُطَ أَحَدٌ ثَوْبَهُ حَتّٰى أَقْضِيَ مَقَالَتِيْ هٰذِهٖ ثُمَّ يَجْمَعَ إِلَيْهِ ثَوْبَهُ إِلَّا وَعٰى مَا أَقُوْلُ فَبَسَطْتُ نَمِرَةً عَلَيَّ حَتّٰى إِذَا قَضٰى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَقَالَتَهُ جَمَعْتُهَا إِلٰى صَدْرِيْ فَمَا نَسِيْتُ مِنْ مَقَالَةِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تِلْكَ مِنْ شَيْءٍ.

بـن مسيب و ابوسلمه بن عبدالرحمن دواړه بيان كوي، چه حضرت ابوهريرهؓ اوفرمائيل، تاسو وائى، چه ابوهريرهؓ ذ رسول الله صلى الله عليه وسلم نه زيات حديثونه بيانوي، او تاسو وائى، څهٔ خبره ده، چه مهاجرين او انصار ذ رسول الله صلى الله عليه وسلم نه ذ، ابوهريرهؓ په شان روايت نهٔ كوي نو حال دا دے، چه خمونږ ورونړه مهاجرين بازار كښې خريد و فروخت كښې مصروف دي. او زهٔ چه به په خيټه موړ، ووم، نو ذ، رسول الله صلي الله عليه وسلّم په صحبت كښې به ووم. چه هغه خلق به غائب شو، نو زهٔ به حاضر ووم. چه هغے خلقو به هيرول نو ما به ياد ساتل. او خمونږ انصارو رونړوته ذ خپلومالي كارونونه فرصت نهٔ وو. زهٔ ذ صُفَّه ذ فقيرانونه يو فقير ووم. ما به ياد ساتل، چه هغوئ نه به هير شولو. او رسول الله صلے الله عليه وسلم حديث بيانولو سره اوفرمائيل، چه كوم سړے خپله كپړه خوره كړي، تردے چه زهٔ خپلے خبرے ختمے كړم، بيا هغه خپله كپړه راغُنډه كړي، نو كومه خبره چه زهٔ او كړم، هغهٔ ته به ياده وي. ما خپله شړئ (كملي) خوره كړه. چه ما به په سرؤله، تردے چه څهٔ وخت رسول الله صلى الله عليه وسلّم خپلے خبرے ختمے كړے، نو ما هغه راغُنډه كړه او خپلے سينے سره م اولړوله. ذ هغے ورځے نه پس ما ذ، رسول الله صلے الله عليه وسلم هيڅ خبره هيره نهٔ كړله.

۱. قريشو به تجارت كولو. د مدينے خلقو د كر كروندے د زمينداري كار كولو. چه كله اسلام راغے او مسلمانانو د مكے شريفے نه هجرت اوكړو. مهاجرينو كښ اكثر قريش وو هغوي په مدينه منوره كښ تجارتي كاروبار شروع كړو. انصارو به خپله زميداري او مالي توب كولو. امام بخاري رحمة الله عليه دا ښودل غواړي. چه د سوداګرئ او زميندارئ كاروبار د ژوند د ضروورياتونه' دے. اسلام د الله تعالى راليګلے شوے دين دے. الله مونږ پيدا كړے يو. بيا د ژوند د ضرورياتو د پورا كولونه مونږ نه منعه كوي. مونږ ته الله تعالى دا حكم راكړے دے چه د خپل كاروبار تجارت او د ژوند په كارونو كښ د خپلے فائدے د پاره بل چاته د هيڅ قسمه نقصان رسولو كوشش اونكړو د رسول الله صلي الله عليه وسلم زمانه'مباركه زمانه وه په هغه بركتي زمانه كښ به خلقو تجارتي د زميندارئ او مالي توب او نور كاروبارونه كول. حضرت ابوهريره رضي الله عنه د ډيرو زياتو احاديثو مباركو د روايت كولو وجه بيانوي. چه هغه به رسول الله صلي الله عليه وسلم سره هر وخت اوسيدلو. او بله وجه ئے دا وه چه رسول الله صلي الله عليه وسلم هغه ته د يادولو او د پوهے دعا كړے وه. چه ددے حديث شريف په آخر كښ د هغے بيان دے.

۱۹۱۷: حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ ابْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ سَعْدٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ جَدِّهٖ قَالَ قَالَ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ ابْنُ عَوْفٍ لَمَّا قَدِمْنَا الْمَدِيْنَةَ اٰخٰى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنِيْ وَ بَيْنَ سَعْدِ بْنِ الرَّبِيْعِ فَقَالَ سَعْدُ ابْنُ الرَّبِيْعِ اِنِّيْ اَكْثَرُ الْاَنْصَارِ مَالًا فَاَقْسِمُ لَكَ نِصْفَ مَالِيْ وَانْظُرْ اَيَّ زَوْجَتَيَّ هَوِيْتَ نَزَلْتُ لَكَ عَنْهَا فَاِذَا حَلَّتْ تَزَوَّجْتَهَا قَالَ فَقَالَ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ لَا حَاجَةَ لِيْ فِيْ ذٰلِكَ هَلْ مِنْ سُوْقٍ فِيْهِ تِجَارَةٌ قَالَ سُوْقُ قَيْنُقَاعٍ قَالَ فَغَدَآ اِلَيْهِ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ فَاَتٰى بِاَقِطٍ وَّ سَمَنٍ قَالَ ثُمَّ تَابَعَ الْغُدُوَّ فَمَا لَبِثَ اَنْ جَآءَ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ عَلَيْهِ اَثَرُ صُفْرَةٍ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَزَوَّجْتَ قَالَ نَعَمْ

۱۹۱۷: عبدالعزيز بن عبدالله. ابراهيم بن سعد ذ خپل پلار نه او ذ هغهٔ ذ نيكه (دادا) نه روايت كوي. د حضرت عبدالرحمٰن بن عوف بيان دے' كوم وخت چه مونږ مدينے ته راغلو' نو رسول الله صلے الله عليه وسلم خما او سعد بن ربيع په مينځ كښ ورورولي جوړه كړه. سعد بن ربيع اووے زهٔ انصارو كښ زيات مالدار يم' په دے وجه زهٔ خپل نيم مال تاله دركوم' او' ګوره' خما كومه بي بي چه ستا خوښه وي' زهٔ هغه ستا ذ پاره پريږدم' كله چه هغه ذ' عدّت نه فارغه شي' نو تهٔ هغے سره نكاح اوكړه. عبدالرحمٰن اووے' ماته ذ دے ضرورت نشته. دلته څهٔ بازار شته چه هلته تجارت كيږي. هغهٔ ورته اووے. ذ قينقاع بازار شته. نو عبدالرحمٰن هلته لاړ. پنير او غوړي ئے راوړل. بيا به برابر سحر تلو. څهٔ ورځے تيرے شوے' عبدالرحمٰن داسے حال كښ راغے' چه په هغه ذ' زردي اثر وو. رسول الله صلے الله عليه وسلم ترے تپوس اوكهٔ' آيا تا وادهٔ كړے دے' هغهٔ جواب وركهٔ' او. حضور صلے الله

فَالَ وَمَنْ قَالَ امْرَأَةٌ مِّنَ الْاَنْصَارِ قَالَ كَمْ سُقْتَ قَالَ زِنَةَ نَوَاةٍ مِّنْ ذَهَبٍ اَوْنَوَاةً مِّنْ ذَهَبٍ فَقَالَ لَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَوْلِمْ وَلَوْ بِشَاةٍ.

علیه وسلّم ترے تپوس او کۀ' چاسره. ورے ونیل' یوے انصاري ښځے سره. حضور صلے الله علیه وسلّم ترے تپوس او کۀ' څومره مهر دے ورکۀ' وے ونیل' دَ قجورے اډوکي برابر سرۀ (سونا) نبي صلے الله علیه وسلّم اوفرمائیل. ولیمه اوکړه' اګر کۀ یوه چیلي ولے نۀ وي.

۲۱۸ : حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ يُوْنُسَ حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ حَدَّثَنَا حُمَيْدٌ عَنْ اَنَسٍ قَالَ قَدِمَ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ عَوْفٍ الْمَدِيْنَةَ فَاٰخَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَهُ وَ بَيْنَ سَعْدِ بْنِ الرَّبِيْعِ الْاَنْصَارِيِّ وَ كَانَ سَعْدٌ ذَاغِنًى فَقَالَ لِعَبْدِ الرَّحْمٰنِ اُقَاسِمُكَ مَالِيْ نِصْفَيْنِ وَ اُزَوِّجُكَ قَالَ بَارَكَ اللّٰهُ لَكَ فِيْ اَهْلِكَ وَمَالِكَ دُلُّوْنِيْ عَلَى السُّوْقِ فَمَا رَجَعَ حَتّٰى اسْتَفْضَلَ اَقِطًا وَّسَمْنًا فَاَتٰى بِهٖ اَهْلَ مَنْزِلِهٖ فَمَكَثْنَا يَسِيْرًا اَوْ مَا شَآءَ اللّٰهُ فَجَاءَ وَ عَلَيْهِ وَ ضَرٌ مِّنْ صُفْرَةٍ فَقَالَ لَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَهْيَمْ قَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ تَزَوَّجْتُ امْرَاَةً مِّنَ الْاَنْصَارِ قَالَ مَا سُقْتَ اِلَيْهَا قَالَ نَوَاةً مِّنْ ذَهَبٍ اَوْ وَزْنَ نَوَاةٍ مِّنْ ذَهَبٍ قَالَ اَوْلِمْ وَلَوْ بِشَاةٍ.

۲۱۸ : احمد بن یونس. زهیر. حمید. انسؓ نه روایت کوي' چه عبدالرحمٰن بن عوف مدینے ته اورسید' نو نبي صلے الله علیه وسلّم دَ هغۀ او' دَ سعد بن ربیع انصاري مینځ کښ وروروليي جوړه کړه. او سعد مالدار وو' نو عبدالرحمٰن ته ئے اووے' چه زۀ خپل ګټ نیم مال تاله درکوم. او زۀ ستا نکاح کوم. هغۀ ورته اووے. اللّٰه دے ستا بیبیانو او ستا مال کښ برکت واچوي' ماته دَ بازار پته راکړه. نو بازار ته واپس نۀ شولو' څو پورے چه پنیر او غوړي ئے بچ نۀ کړل' او هغه ئے خپل کور والوله راوړل' چه څۀ ورځے تیرے شوے' نو یوه ورځ داسے حال کښ راغے' چه په هغۀ دَ' زردئ اثر وو. هغۀ ته نبي صلے الله علیه وسلّم اوفرمائیل. څۀ خبره ده. هغۀ عرض او کۀ' یا رسول اللّٰه' ما یوے انصاري ښځے سره نکاح کړے ده. حضور صلے الله علیه وسلّم ترے تپوس او کۀ' هغے له دے څومره مَهر ورکړے دے. وے ونیل' د قجورے اډوکے برابر' سرۀ زر (نواة من ذهب ئے اووے' یا وزن نواة من ذهب ئے اووے) حضور صلے اللّٰه علیه وسلّم ورته اوفرمائیل. ولیمه اوکړه' اګر کۀ یوه چیلئ وي.

ف: ولیمه: دَ' وادۀ روټۍ یا' دعوت خو' چه شپه تیره شي. دَ' وادۀ دَ خلمي دَ' وادۀ په موقع میلمنو ته دوډئ ورکول.

۱. د نواة من ذهب معني دہ. د قجورے دا ډوکي برابر سره زر' د عربو په اصطلاح کښې دا لفظ پنځو درهمو ته ویلے شي او خاص ددے د پاره استعمالیږي. لیکن "زنة نواة من ذهب" د قجورے دا ډوکي د وزن برابر سره زر' او دا یو جُدا ترکیب دے د قجورے دا ډوکي د وزن برابر سره زر د پنځو درهمو د سرو زرو د سکے نه زیات کیدے شي. ځکه چه اډوکے کله غټ او درونډ هم کیدے شي. نو پدے صورت کښې هغه د پنځو درهمو' نه' زیات کیدے شي.

۱۹ ۷: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا سُفْيٰنُ عَنْ عَمْرٍو عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍؓ قَالَ كَانَتْ عُكَاظُ وَ مَجِنَّةُ وَ ذُو الْمَجَازِ اَسْوَاقًا فِي الْجَاهِلِيَّةِ فَلَمَّا كَانَ الْاِسْلَامُ فَكَانَّهُمْ تَأَثَّمُوْا فِيْهِ فَنَزَلَتْ لَيْسَ عَلَيْكُمْ اَنْ تَبْتَغُوْا فَضْلًا مِّنْ رَّبِّكُمْ فِيْ مَوَاسِمِ الْحَجِّ قَرَاَهَا ابْنُ عَبَّاسٍؓ.

۱۹ ۷: عبداللّٰه بن محمّد. سُفیان. عمرو. ابن عباسؓ نه روایت کوي' چه عکاظ مجنه او ذوالمجاز' د جاهلیت په زمانه کښې بازارونه وو. چه د' اسلام زمانه راغله' نو مُسلمانانو دے بازارونو کښې تجارت بد ګڼړلو' نو دا' آیت نازل شولو' چه: په تاسو دے خبره کښې څهٔ حرج نشته' چه ذ خپل رب فضل (روزي) ذ حج په زمانهۍ کښې تلاش کړئے د' ابن عباسؓ قرأت کښې دغسے دي.

۱. ددے آیت شریف په عام قراء تونو کښې فیْ مواسم الْحجّ الفاظ نشته. دا یواځے د حضرت عبداللّٰه بن عباس رضي اللّٰه عنهما قرأت دے. په دے حدیث شریف کښې چه د کومو بازارونو بیان دے دا په هغه زمانهٔ کښې د مکے شریفے مشهور بازارونه وو تهولو عربو به د حج په موسمونو کښې دے بازارونو کښې تجارتي میلے لګیدلے چه هغے کښې بین الاقوامي تجارت سره سره عرب قومونو د خپل فخر او لوئیے قصیدے هم ویلے.

## بـــاب۳۹۸: اَلْحَلَالُ بَيِّنٌ وَّالْحَرَامُ بَيِّنٌ وَّ بَيْنَهُمَا مُشْتَبِهَاتٌ.

باب۳۹۸: حلال ظاهر دي او حرام ظاهر دي' او ذ دے دواړو مینځ کښې مشتبه څیزونه دي.

۷۲۰: حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنّٰى حَدَّثَنَا ابْنُ اَبِيْ عَدِيٍّ عَنْ ابْنِ عَوْنٍ عَنِ الشَّعْبِيِّ سَمِعْتُ النُّعْمَانَ بْنَ بَشِيْرٍ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ح وَ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا ابْنُ عُيَيْنَةَ عَنْ اَبِيْ فَرْوَةَ عَنِ الشَّعْبِيِّ قَالَ سَمِعْتُ النُّعْمَانَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ

۷۲۰: مُحمّد بن مثنٰي. ابن ابي عدي. ابن عون. شعبي. نعمان بن بشیر. ح. (دوئم سند) عبداللّٰه بن مُحمّد. ابن عینیه. ابو فروه. شعبي نعمان بن بشیر. ح. (دوئم سند) مُحمّد بن کثیر. سُفیان. ابوفروه. شعبي. نعمان بن بشیر نه روایت کوي. ذ هغهٔ بیان دے' نبي صلے اللّٰه علیه وسلّم

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ح وَ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا ابْنُ عُيَيْنَةَ عَنْ أَبِي فَرْوَةَ سَمِعْتُ الشَّعْبِيَّ سَمِعْتُ النُّعْمَانَ ابْنَ بَشِيْرٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ح وَ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيْرٍ أَخْبَرَنَا سُفْيٰنُ عَنْ أَبِي فَرْوَةَ عَنِ الشَّعْبِيِّ عَنِ النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيْرٍ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْحَلَالُ بَيِّنٌ وَّالْحَلَالُ بَيِّنٌ وَ بَيْنَهُمَا أُمُوْرٌ مُّشْتَبِهَةٌ فَمَنْ تَرَكَ مَا شُبِّهَ عَلَيْهِ مِنَ الْإِثْمِ كَانَ لِمَا اسْتَبَانَ أَتْرَكَ وَمَنِ اجْتَرَءَ عَلٰى مَا يَشُكُّ فِيْهِ مِنَ الْإِثْمِ أَوْشَكَ أَنْ يُّوَاقِعَ مَا اسْتَبَانَ وَالْمَعَاصِيْ حِمَى اللهِ مَنْ يَّرْتَعُ حَوْلَ الْحِمٰى يُوْشِكُ أَنْ يُّوَاقِعَهُ.

فرمائيلي دي. حلال هم خرګند دي او حرام هم خرګند دي. او د دې مينځ کښې څو امور مشتبه دي، چا چه هغه پريښودل چه د هغې د ګناه شبه وي. نو هغه به هغه هم پريږدي، چه خرګنده ګناه ده. او چا چه د، داسې کار جرأت اوکړو چه د هغې د ګناه شک وي. نو هغه به خرګنده ګناه کښې آخته شي. او ګناه د الله تعالى ورشوګانې دي، څوک چه د، ورشو خواؤشا کښې ډنګر څروي. نو قريب ده. چه هغه ورشو کښې داخل شي[۱].

۱. د عربو د جاهليت په زمانه کښې بادشاهونو او اميرانو به د خپلو څارو د پاره خاص خاص ورشو لرلې بل هيچا به هغه ځايونو کښې خپل څاروي څره ولې نشو. که چرې څاروې به غلطئ سره هغه ورشوته ورننوتلو نو د هغې مالکانوته به سخت سزا ورکيدې شوه. ددې ويرې په وجه به خلقو خپل څاروي د هغې نه لرې لرې ساتل. ددې ويرې نه چه چرې د هغوي څاروي هلته ور داخل نشي. په دې حديث شريف د جرې د پوهولو په دغه طريقه بيان شويدې. د حديث شريف مطلب دا دې چه څرنګ د بادشاهانو د ورشو عزت ساتلې شي او په هغې کښې کوم بنده د ورتلو جرأت نشي کولې داسې الله تعالى کوم څيزونه حرام کړيدي. او د حرامو څيزونه د الله تعالي ورشو دي. کوم يو بنده چه دغه ورشو کښې د ورننوتلو يا دهغې عزت ماتولو کوشش کوي. هغه له به سخته سزا ورکولې شي. او چه څوک د هغې د عزت خيال ساتي هغه به نزدې نه ورزي. خکه چه د الله عذاب ډير سخت دې. او د هغې حرامو څيزونو نزدې نور څيزونه دي. چه هغه شريعت د څه مصلحت او ښيګړې په خاطر حرام يا مکروهه ندي ګرخولي. ليکن هغه دشريعت په نظر کښې هغه ښه کارونه ندي کله چه څه ښکاره علامې سره د کوم څيز يا د کوم کار روا والې په شک کښې شو. هغې ته په دې حديث شريف کښې مشتبهات ويلې شويدي. دا حديث شريف مخکښې کتاب الايمان کښې تير شويدې او دلته ئې کتاب البُيُوع کښې هم ذکر کړو. امام بخاري رحمة الله عليه

ويلے دي. چه ددے حديث شريف تعلق' نكاح' ذبح كولو بنكار' او دَ خوراک څښاک مسئلو سره هم دے د مُشتبهاتو تفسير په مختلفو طريقو سره شويدے.

باب ۳۹۹: تَفْسِيرِ الْمُشَبَّهَاتِ

وَ قَالَ حَسَّانُ ابْنُ اَبِىْ سِنَانٍ مَّا رَاَيْتُ شَيْـئًا اَهْـوَنَ مِنَ الْوَرَعِ دَعْ مَا يُرِيْبُكَ اِلٰى مَا لَا يُرِيْبُكَ.

باب ۳۹۹: دَ مُشبّهات دَ تفسير بيان او حسّان بن ابي سنان اووے' چه ما دَ پرهيزگارئ نه زيات آسان څيز اونه ليدلو. كوم څيز چه دَ شک دے' هغه پريږده. او هغه څيز اختيار كه' چه هغے كښې شک نشته.

۱۲۱: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيْرٍ اَخْبَرَنَا سُفْيٰنُ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ اَبِىْ حُسَيْنٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ اَبِىْ مُلَيْكَةَ عَنْ عُقْبَةَ بْنِ الْحَارِثِ اَنَّ امْرَاَةً سَوْدَآءَ جَآءَ تْ فَزَعَمَتْ اَنَّهَا اَرْضَعَتْهُمَا فَذَكَرَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَعْرَضَ عَنْهُ وَ تَبَسَّمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ كَيْفَ وَقَدْ قِيْلَ وَقَدْ كَانَتْ تَحْتَهُ ابْنَةُ اَبِىْ اِهَابٍ ن التَّمِيْمِيِّ.

۱۲۱: محمد بن كثير. سفيان. عبدالله بن عبدالرحمٰن بن ابي حسين. عبدالله بن عبدالرحمٰن بن ابي حُسين. عبدالله بن ابي مليكه. عقبه بن حارث نه روايت دے' يوه توره ښځه راغله' او دعويٰ ئے اوكړه' چه هغے عقبه او دَ هغهٔ ښځے له (دَ تې) پئے وركړے دي. عقبه' نبي صلے الله عليه وسلم ته دا بيان اوكه' نو حضور صلے الله عليه وسلم مخ واړولو' او مُسكے شولو' وے فرمائيل' اوس تهٔ دا ښځه څنګه ساتلے شے. هر كله چه دَ هغے باره كښې داسے خبره كيږي. دَ عقبه ښځه دَ' ابو اِهاب تيمي لور وه.

ا. دا د مُشتبهاتو يو مثال دے. د احنافو د مسلک مطابق يواځے د يې وركونكے ښځے په ګواهئ نكاح نه ماتيږي. چه دا اووائي چه ما دواړو (ښځے خاوند) له تے وركړيدے' اګرچه دا ګواهي په قانوني حيثيت نه قبليږي. خو بيا هم شک شبه ضرور پيدا كوي ددے شک په وجه رسول الله صلي الله عليه وسلم د نكاح ماتيدو د پاره ويلے وؤ.

۱۲۲: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ قَزَعَةَ حَدَّثَنَا مَالِكٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ عَنْ عَآئِشَةَؓ قَالَتْ كَانَ عُتْبَةُ بْنُ اَبِىْ وَقَّاصٍ عَهِدَ اِلٰى اَخِيْهِ سَعْدِ بْنِ اَبِىْ وَقَّاصٍ اَنَّ ابْنَ وَلِيْدَةِ زَمْعَةَ مِنِّىْ فَاقْبِضْهُ قَالَتْ فَلَمَّا كَانَ

۱۲۲: يحيي بن قزعه. مالک. ابن شهاب. عروه بن زبير. بي بي عائشےؓ نه روايت كوي. هغه اووے' چه عقبه بن ابي وقاص خپل ورور سعد بن ابي وقاص ته وصيّت اوكه' چه دَ' زمعه دَ' وينزے څوئے څما دے' نو په هغه قبضه اوكړه. دَ' بي بي عائشےؓ بيان دے په كوم كال چه مكه فتح شوه' نو هغه هلک سعد بن ابي

عَامَ الْفَتْحِ اَخَذَهُ سَعْدُ بْنُ اَبِیْ وَقَّاصٍ
وَقَالَ ابْنُ اَخِیْ عَهِدَ اِلَیَّ فِیْهِ فَقَامَ
عَبْدُ بْنُ زَمْعَةَ فَقَالَ اَخِیْ وَابْنُ وَلِیْدَةِ
اَبِیْ وُلِدَ عَلٰی فِرَاشِهٖ فَتَسَاوَقَا اِلَی
النَّبِیِّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ
سَعْدٌ یَا رَسُوْلَ اللّٰهِ ابْنُ اَخِیْ کَانَ قَدْ
عَهِدَ اِلَیَّ فِیْهِ فَقَالَ عَبْدُ بْنُ زَمْعَةَ
اَخِیْ وَابْنُ وَلِیْدَةِ اَبِیْ وُلِدَ عَلٰی
فِرَاشِهٖ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ
عَلَیْهِ وَسَلَّمَ هُوَ لَكَ یَا عَبْدَ بْنَ زَمْعَةَ
ثُمَّ قَالَ النَّبِیُّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ
وَسَلَّمَ الْوَلَدُ لِلْفِرَاشِ وَلِلْعَاهِرِ الْحَجَرُ
ثُمَّ قَالَ لِسَوْدَةَ بِنْتِ زَمْعَةَ زَوْجِ النَّبِیِّ
صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ احْتَجِبِیْ
مِنْهُ لِمَا رَاٰی مِنْ شِبْهِهٖ بِعُتْبَةَ فَمَا رَاٰهَا
حَتّٰی لَقِیَ اللّٰهَ.

وقاص واخست. او ونیلے ' چه دا خما ورارهٔ دے. خما
ورور ذ دهٔ متعلق وصیّت کړے وو. عبد بن زمعه او درید
او وے ونیل ' چه دا خما ورور دے ' او خما ذ پلار ' د
وینزے خوئے دے ذ هغهٔ په بستره پیدا شوے دے. دواړو
خپله مقدمه نبي صلے الله علیه وسلّم له یوړله. سعد
عرض او کهٔ ' یا رسول الله خما ورارهٔ دے. خما ورور ذ '
دهٔ متعلق وصیت کړے وو. عبد بن زمعه عرض او کهٔ '
خما ورور دے ' او خما ذ پلار ذ ' وینزے خوئے دے. او ذ
هغهٔ په بستره پیدا شوے دے. رسول الله صلے الله علیه
وسلّم اوفرمائیل. اے عبد بن زمعه دا هلک به ستا رسي.
بیا نبي صلے الله علیه وسلّم او فرمائیل ' هلک ذ هغے چا
دے ' چه د هغه په بستره پیدا شوے وي ' او زاني ذ پاره
کانړے دے. بیا خپل تېر سوده بنت زمعه ته نبي صلے
الله علیه وسلّم اوفرمائیل ' ذدے هلک نه پرده کوه '
خکه چه دهٔ کښ ذ عتبه مشابهت بیا مُندے شي. نو هغے
هلک بي بي سودهؓ ذ مرګه پورے اونهٔ لیده.

۱. د جاهلیت په زمانه کښ دا یو دستور وو چه یوے ښځے سره چه اکثر به هغه وینځه وه. د ګنړو
سړو ناروا تعلقات وو. چه کله به د هغې ښځے بچې پیدا شو نو په هغه خلقو کښ چه د چا به هغه ښځے سره
بارانه وه. او هغه به د هغې بچي دعوه او کړه نو هغه به د هغې سړي د نسب نه شمارلے شو. او هغه به ئے پالنه
کوله حدیث شریف کښ چه د کومے واقعې ذکر دے هغه ددے قسمه وه. عتبه کافر مړ شوے وو د اسلام
سخت دښمن وو د عتبه رور ' سعد بن ابي وقاص رضي الله عنه جلیل القدر صحابي وو. د زمعه یوه وینځه وه
هغې سره عتبه زنا کړے وه. چه کله عتبه مړ کیدو هغه خپل رور سعد بن ابي وقاص رضي الله عنه ته وصیت
اوکړو. چه ددغے وینځے کله بچے پیداشي د هغې پالنه به ته کوي هغه خما خوي دے. بیا سعد رضي الله
عنه د مکے شریفے نه مدینے منورے ته هجرت او کړو. د مکے شریفې خلقو سره ئے هر قسم تعلقات ختم
شو. د هغې وینځے خوېږے پیدا شو لیکن شکل و صورت کښ عتبه ته نزدے وو لیکن سعد بن ابي وقاص
رضي الله عنه د هغې هلک پالنه اونکړے شوه. خکه چه دے مدینه منوره کښ وو. او هغه هلک مکه
شریفه کښ وو. عتبه اګر چه کافر وو د اسلام دښمن وو. رسول الله صلي الله علیه وسلّم او مسلمانانو ته ئے
ډېر تکلیفونه رسولے وو لیکن اسلام د صلهٔ رحمي د خپلولي د پاللو خیال ساتلو په سختي سره حکم کړے

دے . چه کله مکه مکرمه فتحه شوه سعد رضي الله عنه د خپل رور د وصیت پوره کولو د پاره د هغے هلک د پالنے مطالبه اوکړه. چه دغه د وینځے خونے د عتبه د زنا خویے دے . لیکن د هغے وینځے د مالک خوي عبد بن زمعه انکار اوکړو . او هغه ته ئے اویل چه دا خما د پلار د وینځے خویے دے ددے وجے نه دده جائز حقدار یم. ددے په حقله چه رسول الله صلے الله علیه وسلم کوم تاریخي فیصله اوکړه چه د غور و فکر مقام دے . حضرت سوده ام المؤمنین رضي الله عنها د زمعه لور ده هغه هلک د زمعه د وینځے خوے وو د هغے رور کیدو. خو رسول الله صلي الله علیه وسلم حضرت سوده رضي الله عنها ته د هغے هلک نه د پردے کولو حکم اوکړو خکه چه پکښې دا شبه وه چه دا هلک ددے رور نه وي. او د عتبه د زنا خویے وي خکه چه د هغے هلک شکل څه نه څه عتبه پشاني وؤ. د احتیاط د پاره داسے د پردے کولو حکم اوشو بل طرفته د نبي کریم صلي الله علیه وسلم د فیصلے مطابق هغه هلک عبد بن زمعه ته اوسپارلے شو . او اوئے فرمایل اَلْوَلَدُ لِلْفِراش. بچے دبستری (د فراش) وي.

مطلب ئے دا دے چه بچے د هغه چا وي چه د چا د هغے ښځے سره د جماع کولو (په کټ کښې د خملاستلو) حق وي. احناف ددے حدیث شریف دا مطلب اخلي. چه بچے به د هغه چا وي. د چا چه هغه ښځه یا وینځه وي خو نسب به ئے ترے نه ثابتیږي.

د امام شافعي رحمة الله علیه په نزد نسب ئے ترے هم ثابتیږي. کتاب النکاح کښې د فقهے په کتابونو کښې ددے تفصیل شته دے.

۱۹۲۳ : حَدَّثَنَا اَبُو الْوَلِيدِ. حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ اَخْبَرَنِي عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ اَبِي السَّفَرِ عَنِ الشَّعْبِيِّ عَنْ عَدِيِّ بْنِ حَاتِمٍ قَالَ سَأَلْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْمِعْرَاضِ فَقَالَ اِذَا اَصَابَ بِحَدِّهِ فَكُلْ وَ اِذَا اَصَابَ بِعَرْضِهِ فَلَا تَأْكُلْ فَاِنَّهُ وَقِيْذٌ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اُرْسِلُ كَلْبِيْ وَ اُسَمِّيْ فَاَجِدُ مَعَهُ عَلَى الصَّيْدِ كَلْبًا اٰخَرَ لَمْ اُسَمِّ عَلَيْهِ وَلَآ اَدْرِيْ اَيُّهُمَا اَخَذَ قَالَ لَا تَأْكُلْ اِنَّمَا سَمَّيْتَ عَلٰى كَلْبِكَ وَلَمْ تُسَمِّ عَلَى الْاٰخَرِ.

۱۹۲۳ : ابوالید. شعبه. عبدالله بن ابي السفر. شعبي. عدي بن حاتم نه روایت کوي، ما ذ نبي صلے الله علیه وسلم نه ذ غشي د ښکار متعلق تپوس اوکهٔ نو حضور صلے الله علیه وسلم اوفرمائیل، کهٔ دَ هغے دَ څوکے ذ طرف نه اولږي، نو هغه خوره، اوکهٔ دَ هغے دَ چوړائي نه ورته صدمه اورسي، نو مهٔ ئے خوره، هغه مردار دے، ما عرض اوکهٔ، یا رسول الله، زهٔ خپل سپے پریږدم، او بسم الله وائم، بیا هغهٔ سره په ښکار یو بل سپے وینم، چه په هغهٔ ما بسم الله نه وي وئیلي، او زهٔ نهٔ پوهیږم، چه هغوئ کښې کوم یو، اونیولو، حضور صلے الله علیه وسلم ورته اوفرمائیل، مهٔ ئے خوره، خکه چه په خپل سپي دے بسم الله وئیلے ده. په بل دے نهٔ ده وئیلے.

۱ . دا حدیث شریف د ښکار په حقله دے عرب خلقو به په ښکاري سپي ښکار کولو او هغوي ته به ئے د ښکار طریقے ښودلے وے کله به داسے هم کیده چه ښکار شوي څیز ته د ښکاري سپي د رسیدو نه

ګڼکېږي به د ښکار خاوند مړ شوے وو. شريعت ددے اجازت ورکړو چه ښکاري سړي بسم الله ويلے وي او بيا لے شوے سپے نے ورپسے پريخودلے وي بيا هغه ښکار شوے خاوند د ښکاري سړي د رسيدو نه مخکښې مړ شوے وي هغه حلال دے ددے تفصيلات به كتابُ الصَّيْد کښې رازي. دلته امام بخاري رحمة الله عليه دا ښودل غواړي. چه په داسے موقعه کښې د خپل سپي سره د بل سپي موجود والے شک او شبه پيدا کوي. چه دا ښکار هغے بل سپي کړے وي چه په کوم بسم الله نده ويلے شو په دے وجه رسول الله صلي الله عليه وسلّم د داسے ښکار د غوښے خوړلو نه منعه او کړه. دا مثال هم دا دمشتبه کارونو دے.

## بَـابٌ ۴۰۰: مَـا يُتَنَـزَّهُ مِـنَ الشُّبُهَاتِ.

## باب ۴۰۰: ذ شبهے ذ څيزونونه ذ پرهيز کولو بيان.

۲۲۴: حَـدَّثَـنَـا قَبِيْصَةُ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ مَّنْصُوْرٍ عَنْ طَلْحَةَ عَنْ اَنَسٍ قَالَ مَرَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِتَمْرٍ مَّسْقُوْطَةٍ فَقَالَ لَوْلَآ اَنْ تَكُوْنَ صَدَقَةً لَاَ كَلْتُهَا وَ قَالَ هَمَّامٌ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اَجِدُ تَمْرَةً سَاقِطَةً عَلٰى فِرَاشِيْ.

۲۲۴: قبيصه. سُفيان. منصور. طلحه. حضرت انسؓ نه روايت کوي، چه نبي صلے الله عليه وسلّم يو غُرځيدلے قجورے سره تير شولو، نو حضور صلے الله عليه وسلّم اوفرمائيل، کهٔ ددے متعلق ذ صدقے شبهه نهٔ وے، نو ما به دا خوړلے وه. او همام ذ ابوهريرهؓ نه او هغه ذ نبي صلے الله عليه وسلّم نه روايت کړيدے. چه په خپله بستره غُرځيدلے قجوره بياموم.

## بَـــابُ ۴۰۱: مَـــنْ لَّـــمْ يَرَالْوَسَاوِسَ وَ نَحْوَهَا مِنَ الْمُشَبَّهَاتِ.

## بـاب ۴۰۱: ذهغے خلقو بيـان. چـه هغوي وسوسے وغيره، ذ شبهے څيز نهٔ دے ګڼړلے.

۲۲۵: حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا ابْنُ عُيَيْنَةَ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عَبَّادِ بْنِ تَمِيْمٍ عَنْ عَمِّهٖ قَالَ شُكِيَ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الرَّجُلُ يَجِدُ فِي الصَّلٰوةِ شَيْئًا اَيَقْطَعُ الصَّلٰوةَ قَالَ لَا حَتّٰى يَسْمَعَ صَوْتًا اَوْ يَجِدَ رِيْحًا وَ قَالَ ابْنُ حَفْصَةَ عَنِ الزُّهْرِيِّ لَا وُضُوْٓءَ اِلَّا فِيْمَا وَجَدْتَ الرِّيْحَ اَوْ سَمِعْتَ الصَّوْتَ.

۲۲۵: ابونعيم. ابن عينيه. زهري. عباد بن تميم ذ خپل تره (عبدالله بن زيد مازني) نه روايت کوي، نبي صلے الله عليه وسلّم ته ذ، يو سړي متعلق شکايت اوکړے شو، چه هغه مانځه کښې څهٔ (وسوسه) بيا مومي، نو آيا هغه دے مونځ مات کړي. حضور صلے الله عليه وسلّم ورته او فرمائيل، نه، څو پورے چه هغه آواز واونهٔ ري يا بوئي ورنشي. او ذ، ابن حفصهؓ په واسطه ذ، زهري نقل دے، چه اودس هغے حالت کښې واجب دے، چه تاله بوئي درشي يا آواز واؤرے.

۶۲۶: حَدَّثَنِيْ اَحْمَدُ بْنُ الْمِقْدَامِ الْعِجْلِيُّ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ الطُّفَاوِيُّ حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ اَنَّ قَوْمًا قَالُوْا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّ قَوْمًا يَّاْتُوْنَنَا بِاللَّحْمِ لَا نَدْرِيْ اَذَكَرُوا اسْمَ اللّٰهِ عَلَيْهِ اَمْ لَا فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَمُّوا اللّٰهَ عَلَيْهِ وَكُلُوْهُ.

۶۲۶: احمد بن مقدام عجلي. محمد بن عبدالرحمن طفاوي. هشام بن عروه خپل پلار نه هغه د بي بي عائشې نه روايت کوي چه څه خلقو عرض اوکړ يا رسول الله يو جماعت موږ له غوښه راوړي. موږ ته نه ده معلومه چه هغوی به دے د الله نوم اخستے دے يا نه (يعني بسم الله ئې پرے وئيلے ده يا نه) رسول الله صلی الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل په هغې بسم الله وائې او خورے ئې.

باب ۴۰۲: قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى وَاِذَا رَاَوْا تِجَارَةً اَوْلَهْوَا نِ انْفَضُّوْا اِلَيْهَا.

باب ۴۰۲: د الله تعالٰي قول چه کله دغه خلق تجارت يا د لوبو څيز اووينی نو د هغې طرف ته ورزغلي [1].

[1] دا د اسلام د اولنی زمانے واقعه ده. چه رسول الله صلی الله عليه وسلّم د جمعے مبارک خطبه ورکوله چه د شام نه تجارتي قافله راغله په هغه زمانه کښې به خطبه د اختر د خطبے پشان د مونځ نه روستو وه. د خطبے د اوريدو تاکيد نه وو دغه خلقو د جمعے مونځ کړے وو. خو د خطبے اوريدو نه اوتختيدل. دا خبره د الله تعالي خوښه نشوه په قرآن مجيد کښې ئې زورنه را اوليږله. دا حديث شريف مخکښې کتاب الجمعه کښې تير شويدے.

۶۲۷: حَدَّثَنَا طَلْقُ بْنُ غَنَّامٍ حَدَّثَنَا زَائِدَةُ عَنْ حُصَيْنٍ عَنْ سَالِمٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ جَابِرٌ قَالَ بَيْنَمَا نَحْنُ نُصَلِّيْ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذْ اَقْبَلَتْ مِنَ الشَّامِ عِيْرٌ تَحْمِلُ طَعَامًا فَالْتَفَتُوْا اِلَيْهَا حَتّٰى مَا بَقِيَ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِلَّا اثْنَا عَشَرَ رَجُلًا فَنَزَلَتْ وَاِذَا رَاَوْا تِجَارَةً اَوْ لَهْوَا نِ انْفَضُّوْا اِلَيْهَا.

۶۲۷: طلق بن غنام. زائدة. حصين سالم. حضرت جابرؓ نه روايت دے يو ځل چه موږ نبي صلی الله عليه وسلّم سره مونځ کولو. د شام نه د اوښانو يوه ډکه قافله راغله. خلق هغې پلے متوجه شو. تردے چه نبي صلی الله عليه وسلّم سره صرف دولس کسان پاتے شو. نو دا آيت نازل شو، چه خلق لوبه يا د تجارت څيز اووينی نو هغے طرف ته ورزغلي.

باب ۴۰۳: مَنْ لَّمْ يُبَالِ مِنْ

باب ۴۰۳: د هغے سړي بيان چه هيڅ پروانه

حَيْثُ كَسَبَ الْمَالَ.

۶۲۸: حَدَّثَنَا اٰدَمُ حَدَّثَنَا ابْنُ اَبِيْ ذِئْبٍ حَدَّثَنَا سَعِيْدُ ن الْمَقْبُرِيُّ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يَأْتِيْ عَلَى النَّاسِ زَمَانٌ لَّا يُبَالِي الْمَرْءُ مَآ اَخَذَ مِنْهُ اَمِنَ الْحَلَالِ اَمْ مِّنَ الْحَرَامِ.

لري، چه مال ئې د کوم ځائې نه حاصل کړلو.

۶۲۸: آدم. ابن ابي ذئب. سعيد مقبري. ابوهريرهٔ نه، هغه د نبي صلے الله عليه وسلم نه روايت کوي، حضور صلے الله عليه وسلم اوفرمائيل: په خلقو به داسے زمانه راشي، چه سړے به د دے پرواه نه کوي: چه حلال يا حرام کومے ذريعے سره هغه مال حاصل کړے دے.

بَابُ ۴۰۴: التِّجَارَةُ فِي الْبَرِّ وَ قَوْلُهُ رِجَالٌ لَّا تُلْهِيْهِمْ تِجَارَةٌ وَّلَا بَيْعٌ عَنْ ذِكْرِ اللّٰهِ وَ قَالَ قَتَادَةُ كَانَ الْقَوْمُ يَتَبَايَعُوْنَ وَ يَتَّجِرُوْنَ وَلٰكِنَّهُمْ اِذَا نَابَهُمْ حَقٌّ مِّنْ حُقُوْقِ اللّٰهِ لَا تُلْهِيْهِمْ تِجَارَةٌ وَّلَا بَيْعٌ عَنْ ذِكْرِ اللّٰهِ حَتّٰى يُؤَدُّوْهُ اِلَى اللّٰهِ.

باب ۴۰۴: خشکئ کښې د تجارت کولو بيان او د الله تعالي قول، هغه خلق چه هغوئ تجارت او خريد و فروخت د، ذکر الٰهي نه، نه غافله کوي. او قتاده اووے، چه خلقو به تجارت او خريد و فروخت کولو. ليکن کله چه به په هغوئ د، الله د حقوقونه څه حق راغے نو تجارت او خريد و فروخت هغوي د، ذکر الٰهي نه، نهٔ غافل کول: تردے چه هغوئ به هغه ادا کړلو.

۶۲۹: حَدَّثَنَا اَبُوْ عَاصِمٍ عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عَمْرُو بْنُ دِيْنَارٍ عَنْ اَبِي الْمِنْهَالِ قَالَ كُنْتُ اَتَّجِرُ فِي الصَّرْفِ فَسَأَلْتُ زَيْدَ بْنَ اَرْقَمَ فَقَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ح وَ حَدَّثَنِي الْفَضْلُ بْنُ يَعْقُوْبَ حَدَّثَنَا الْحَجَّاجُ بْنُ مُحَمَّدٍ قَالَ ابْنُ جُرَيْجٍ اَخْبَرَنِيْ عَمْرُو بْنُ دِيْنَارٍ وَ عَامِرُ بْنُ مُصْعَبٍ اَنَّهُمَا سَمِعَا اَبَا الْمِنْهَالِ يَقُوْلُ سَأَلْتُ الْبَرَآءَ بْنَ عَازِبٍ وَّ زَيْدَ بْنَ اَرْقَمَ عَنِ الصَّرْفِ فَقَالَا كُنَّا تَاجِرَيْنِ عَلٰى عَهْدِ رَسُوْلِ

۶۲۹: ابو عاصم. ابن جريج. عمرو بن دينار. ابوالمنهال نه روايت کوي. هغه واني. ما به بيع صرف کولو. نو ما د، زيد بن ارقم نه تپوس او کهٔ هغهٔ اووے، چه نبي صلے الله عليه وسلم اوفرمائيل او ماته (دوئم سند) فضل بن يعقوب په واسطه د حجاج بن محمد بن جريج. عمرو بن دينار، و عامر بن مصعب بيان او کهٔ: چه دے دواړو، د، ابوالمنهال نه واوريدل (هغه واني) چه ما د براء بن عازب او زيد بن ارقم نه د صرف متعلق تپوس او کهٔ نو هغے دواړو اووے، مونږ د، رسول الله صلے الله عليه وسلم په زمانه کښې تجارت کولو مونږ د حضور صلے الله عليه وسلم

اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَأَلْنَا رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الصَّرْفِ فَقَالَ اِنْ كَانَ يَدًا بِيَدٍ فَلَا بَأْسَ وَ اِنْ كَانَ نَسَآءً فَلَا يَصْلُحُ.

نه دَ بیع صرف متعلق تپوس او کـه حضور صلے اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل، کـهٔ لاس په لاس وي، نو هیڅ حرج نشته، او کهٔ قرض وي، نو بهتره نهٔ ده.

بَابُ ۴۰۵: اَلْخُرُوْجُ فِي التِّجَارَةِ وَ قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى فَانْتَشِرُوْا فِي الْاَرْضِ وَابْتَغُوْا مِنْ فَضْلِ اللّٰهِ.

باب ۴۰۵: تجارت دَ پاره دَ وتلو بیان، او دَ اللّٰه تعالٰي قول، چه زمکه کښې خوارهٔ شئ، او دَ اللّٰه فضل تلاش کړئ.

۱۹۳۰: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَلَامٍ اَخْبَرَنَا مَخْلَدُ ابْنُ يَزِيْدَ اَخْبَرَنَا بْنُ جُرَيْجٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عَطَاءٌ عَنْ عُبَيْدِ بْنِ عُمَيْرٍ اَنَّ اَبَا مُوْسَى الْاَشْعَرِيَّ اسْتَأْذَنَ عَلٰى عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِؓ فَلَمْ يُؤْذَنْ لَهٗ وَ كَاَنَّهٗ كَانَ مَشْغُوْلًا فَرَجَعَ اَبُوْ مُوْسٰى فَفَرَغَ عُمَرُ فَقَالَ اَلَمْ اَسْمَعْ صَوْتَ عَبْدِ اللّٰهِ ابْنِ قَيْسٍ ائْذَنُوْا لَهٗ قِيْلَ قَدْ رَجَعَ فَدَعَاهُ فَقَالَ كُنَّا نُؤْمَرُ بِذٰلِكَ فَقَالَ تَأْتِيْنِيْ عَلٰى ذٰلِكَ بِالْبَيِّنَةِ فَانْطَلَقَ اِلٰى مَجْلِسِ الْاَنْصَارِ فَسَاَلَهُمْ فَقَالُوْا لَا يَشْهَدُ لَكَ عَلٰى هٰذَا اِلَّا اَصْغَرُنَا اَبُوْ سَعِيْدِ نِ الْخُدْرِيُّ فَذَهَبَ بِاَبِيْ سَعِيْدِ نِ الْخُدْرِيِّ فَقَالَ عُمَرُ خَفِيَ عَلَيَّ مِنْ اَمْرِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلْهَانِي الصَّفْقُ بِالْاَسْوَاقِ يَعْنِي الْخُرُوْجَ اِلٰى تِجَارَةٍ.

۱۹۳۰: مُحمَّد بن سلام. مخلد بن یزید. ابن جریج. عطاء. عبید بن عمیر نه روایت کوي، ابو موسٰي اشعري د حضرت عمر بن خطاب نه دَ داخلے اجازت اوغوښتلو. هغهٔ ته اجازت اونهٔ شولو، شاید حضرت عمرؓ مشغول وو، نو ابو موسٰيؓ واپس لاړ. کوم وخت چه حضرت عمرؓ فارغ شو، نو وے فرمائیل، آیا ما دَ عبداللّٰه بن قیس آواز نهٔ وو آوریدلے. هغهٔ له اجازت ورکړئ. ورته اووئیلے شو، هغه واپس تلے دے. حضرت عُمرؓ هغه راوغوښتلو، نو وے وئیل، مونږ ته به دَ دغے خبرے حکم راکولے شو، حضرت عمرؓ اوفرمائیل، تهٔ به په دے ګواه پیش کړے، نو هغه دَ انصارو مجلس ته لاړ، او هغے خلقو نه ئے تپوس اوکهٔ، نو هغوي ورته اووے. د دے ګواهي خو مونږ کښې د ټولونه ورکوټے ابو سعید خدريؓ هم ورکولے شي، هغه ابوسعید خدري بوتلو، نو حضرت عمرؓ اوفرمائیل، په ما دَ رسول اللّٰه صلے اللّٰه علیه وسلّم حکم پټ وو، زهٔ بازارونو کښې د خرید و فروخت یعني تجارت د پاره وتلو ددے حکم نه غافل کړم.

بَابُ ۴۰۶: اَلتِّجَارَةُ فِي الْبَحْرِ

باب ۴۰۶: سمندر کښې دَ تجارت کولو بیان.

وَقَالَ مَطَرٌ لَا بَأْسَ بِهٖ وَمَا ذَكَرَهُ اللّٰهُ فِى الْقُرْاٰنِ اِلَّا بِحَقٍّ ثُمَّ تَلَا وَتَرَى الْفُلْكَ مَوَاخِرَ فِيْهِ وَلِتَبْتَغُوْا مِنْ فَضْلِهٖ وَالْفُلْكُ السُّفُنُ الْوَاحِدُ وَالْجَمْعُ سَوَآءٌ وَّ قَالَ مُجَاهِدٌ تَمْخَرُ السُّفُنُ الرِّيْحَ وَلَا تَمْخَرُ الرِّيْحَ مِنَ السُّفُنِ اِلَّا الْفُلْكُ الْعِظَامُ وَ قَالَ اللَّيْثُ حَدَّثَنِىْ جَعْفَرُ بْنُ رَبِيْعَةَ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ هُرْمُزَ عَنْ اَبِىْ هُرَيْرَةَ عَنْ رَّسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهٗ ذَكَرَ رَجُلًا مِّنْ بَنِىْٓ اِسْرَآءِيْلَ خَرَجَ فِى الْبَحْرِ فَقَضٰى حَاجَتَهٗ وَ سَاقَ الْحَدِيْثَ.

او مطر اووې' دې کښې هيڅ حرج نشته او کوم بيان چه قرآن کښې دې' هغه بالکل ټيک دې. بيانې دا آيت تلاوت کۀ: تاسو کشتئ وينې' چه کشتئ اوبۀ شلوي (يعني اوبو کښې روانې دي) چه تاسو د الله تعالٰي رزق اولټوئ او د فلک نه مراد سفن دې' او دې کښې واحد او جمع يو شان دي. او مجاهد اووې' چه کشتئ هوا شلوي' او هوا هغه کشتئ شلوي چه لوئې وي. اوليث اووې' ماته جعفر بن ربيعه په واسطه ډ عبدالرحمٰن بن هرمز. حضرت ابوهريرهؓ ډ' رسول الله صلے الله عليه وسلّم نه روايت کړې دې' چه حضور صلے الله عليه وسلّم ډ بني اسرائيلو ډ' يو سړي ذکر اوکۀ' چه ډ' درياب سفر ته اووتلو او خپل ضرورت ئې پوره کۀ' او پوره حديث ئې بيان اوکۀ (دې باب کښې هيڅ حديث بيان نۀ کړې شو).

باب۷۰۴: وَ اِذَا رَاَوْا تِجَارَةً اَوْ لَهْوَا نِ انْفَضُّوْا اِلَيْهَا وَ قَوْلُهٗ جَلَّ ذِكْرُهٗ رِجَالٌ لَّا تُلْهِيْهِمْ تِجَارَةٌ وَّلَا بَيْعٌ عَنْ ذِكْرِ اللّٰهِ وَ قَالَ قَتَادَةُ كَانَ الْقَوْمُ يَتَّجِرُوْنَ وَلٰكِنَّهُمْ كَانُوْٓا اِذَا نَابَهُمْ حَقٌّ مِّنْ حُقُوْقِ اللّٰهِ لَمْ تُلْهِهِمْ تِجَارَةٌ وَّلَا بَيْعٌ عَنْ ذِكْرِ اللّٰهِ حَتّٰى يُؤَدُّوْهُ اِلَى اللّٰهِ.

باب۷۰۴: ډ' الله تعالٰي قول' چه کله خلق ډ تجارت يا' ډ لوبو څيز اووينې' نو هغې ته ورزغلي' او ډ الله تعالٰي قول' هغه خلق چه هغوي تجارت او خريد و فروخت ډ' ذکر الٰهي نه نۀ غافل کوي. او' قتاده اووې' چه خلقو به تجارت کولو' ليکن کله چه به ډ' الله ډ حقوقو نه ډ' يو حق ډ' ادائيګي وخت راغې' نو هغوي به تجارت او خريد و فروخت ډ' ذکر الٰهي نه غافله کولې نه شو تردې چه هغه حق به ئې ادا کړلو.

۱۶۳۱: حَدَّثَنِىْ مُحَمَّدٌ قَالَ حَدَّثَنِىْ مُحَمَّدُ ابْنُ فُضَيْلٍ عَنْ حُصَيْنٍ عَنْ سَالِمِ بْنِ اَبِى الْجَعْدِ عَنْ جَابِرٍ قَالَ اَقْبَلَتْ عِيْرٌ وَّ نَحْنُ نُصَلِّىْ

۱۶۳۱: محمد. محمد بن فضيل. حصين سالم بن ابي الجعد. جابرؓ نه روايت کوي. د هغۀ بيان دې' ډ' اوښانو يوه قافله راغله' او مونږ نبي صلے الله عليه وسلّم سره دجمعې مونځ

مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْجُمُعَةَ فَانْفَضَّ النَّاسُ اِلَّا اثْنَيْ عَشَرَ رَجُلًا فَنَزَلَتْ هٰذِهِ الْاٰيَةُ وَ اِذَا رَاَوْا تِجَارَةً اَوْ لَهْوًا ن انْفَضُّوْا اِلَيْهَا وَ تَرَكُوْكَ قَآئِمًا.

كولو. نو سوا' دَ دولسو كسانو نه نورو ټولو خلقو هغې طرف ته ورمنډې كړې. په دې دا' آيت نازل شولو' چه كله هغوئ تجارت يا' ذلوبې څيز اوويني' نو هغې پله ورزغلي او' تا' ولاړ پريږدي.

## باب۴۰۸: قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى اَنْفِقُوْا مِنْ طَيِّبٰتِ مَا كَسَبْتُمْ.

## باب ۴۰۸: دَ' اللّٰه تعالٰي قول چه د خپلې پاكيزه ګټې (ګټې) نه خرچ كوئې.

۶۳۲: حَدَّثَنَا عُثْمٰنُ بْنُ اَبِيْ شَيْبَةَ حَدَّثَنَا جَرِيْرٌ عَنْ مَّنْصُوْرٍ عَنْ اَبِيْ وَآئِلٍ عَنْ مَّسْرُوْقٍ عَنْ عَآئِشَةَ قَالَتْ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَآ اَنْفَقَتِ الْمَرْاَةُ مِنْ طَعَامِ بَيْتِهَا غَيْرَ مُفْسِدَةٍ كَانَ لَهَآ اَجْرُهَا بِمَآ اَنْفَقَتْ وَ لِزَوْجِهَا بِمَا كَسَبَ وَ لِلْخَازِنِ مِثْلُ ذَالِكَ لَا يَنْقُصُ بَعْضُهُمْ اَجْرَ بَعْضٍ شَيْئًا.

۶۳۲: عثمان بن ابي شيبه. جرير. منصور. ابووائل. مسروق. بي بي عائشې نه روايت كوي' نبي صلې اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل. هر كله چه ښځه دَ خپل كور' غله خيرات كړي' په شرط دَ دې چه كورته دَ نقصان رسولو نيت ئې نه وي نو هغې ښځې ته به دَ هغې اجر وركيږي' ځكه چه هغې خرچ اوكه. او دَهغې خاوند ته به هم اجر وركيږي' ځكه چه هغه ګټه كړې ده' او خزانچي ته به هم هغو مره اجر وركيږي. او دَ يو بل اجر كښ به هيڅ كمې نه راځي.

۶۳۳: حَدَّثَنِيْ يَحْيَى بْنُ جَعْفَرٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ عَنْ مَّعْمَرٍ عَنْ هَمَّامٍ قَالَ سَمِعْتُ اَبَا هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِذَا اَنْفَقَتِ الْمَرْاَةُ مِنْ كَسْبِ زَوْجِهَا مِنْ غَيْرِ اَمْرِهٖ فَلَهَا نِصْفُ اَجْرِهٖ.

۶۳۳: يحيي بن جعفر. عبدالرزاق. معمر. همام. حضرت ابوهريرة نه روايت كوي' حضور صلې اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل' هر كله چه ښځه د خپل خاوند دَ' ګټې (ګټې) نه دَ هغهٔ دَ' اجازت نه بغير خيرات اوكړي' نو هغې ته به دَ خاوند مقابله كښ نيم اجر كيږي[1].

[1] ددې حديث شريف دا مطلب نه دې چه اجر به نيميږي نيم به د خاوند او نيم به د ښځې وي. د مخكني حديث شريف هم دا مطلب نه دې. مطلب ئې دادې چه خاوند ګټه كوي خواري محنت كوي. نو د هغه ثواب به زيات وي هر بنده ته به د هغه د اخلاص او د عمل برابر ثواب وركيږي او د يو بنده ثواب به د بل بنده ثواب كښ كمې نه راولي.

## باب۴۰۹: مَنْ اَحَبَّ الْبَسْطَ

## باب ۴۰۹: دَ' هغې سړي بيان' چه رزق كښ

فِي الرِّزْقِ.

۶۳۴ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ ابْنُ اَبِيْ يَعْقُوْبَ الْكِرْمَانِيُّ حَدَّثَنَا حَسَّانُ حَدَّثَنَا يُوْنُسُ حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ مَنْ سَرَّهٗ اَنْ يُبْسَطَ لَهٗ رِزْقُهٗ اَوْ يُنْسَاَلَهٗ فِيْ اَثَرِهٖ فَلْيَصِلْ رَحِمَهٗ.

باب ۱۰۴۱ : شِرَاءِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالنَّسِيْئَةِ.

۶۳۵ : حَدَّثَنَا مُعَلَّى بْنُ اَسَدٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ حَدَّثَنَا الْاَعْمَشُ قَالَ ذَكَرْنَا عِنْدَ اِبْرَاهِيْمَ الرَّهْنَ فِي السَّلَمِ فَقَالَ حَدَّثَنِيْ الْاَسْوَدُ عَنْ عَائِشَةَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اشْتَرٰى طَعَامًا مِّنْ يَّهُوْدِيٍّ اِلٰى اَجَلٍ وَّ رَهَنَهٗ دِرْعًا مِّنْ حَدِيْدٍ.

۶۳۶ : حَدَّثَنَا مُسْلِمٌ حَدَّثَنَا هِشَامٌ حَدَّثَنَا قَتَادَةُ عَنْ اَنَسٍ ح وَ حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ حَوْشَبٍ حَدَّثَنَا اَسْبَاطُ اَبُو الْيَسَعِ الْبَصْرِيُّ حَدَّثَنَا هِشَامٌ ن الدَّسْتَوَائِيُّ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ اَنَسٍ اَنَّهٗ مَشٰى اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِخُبْزِ شَعِيْرٍ وَّ اِهَالَةٍ سَنِخَةٍ وَّلَقَدْ رَهَنَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دِرْعًا

فراخي غواړي.

۶۳۴ : مُحمّد بن ابي يعقوب كرماني. حسان. يونس. محمّد. انس بن مالک نه روايت كوي: هغه وائي: ما د رسول اللّه صلي اللّه عليه وسلّم نه واوريدل: د كوم سړي چه خوښه وي: چه د هغه رزق كښ د فراخي وي يا: د هغه عمر: اوږود شي: نو صله رحمي د كوي (قريبي رشته دارانو) سره دے ښه سلوک كوي.

باب ۱۰۴۱ : د نبي صلے اللّه عليه وسلّم په قرض د: اخستلو بيان.

۶۳۵ : معلي بن اسد. عبدالواحد اعمش بيان كوي: چه مونږ ابراهيم نخعي ته سلم كښ د: رهن كولو ذكر اوكه: نو هغهٔ اووے: ماته اسود په واسطه د بي بي عائشے بيان اوكه: چه نبي صلے اللّه عليه وسلّم د: يو يهودي نه يو مقرر وخت پورے غله واخسته: او د: او سپنے يوه زغره ئے هغهٔ سره كانړه كيښوده.

۶۳۶ : مسلم. هشام. قتاده. انس ح. مُحمّد بن عبداللّه بن حوشب. اسباط ابواليسع بصري. هشام دستوائي. قتاده. حضرت انس نه روايت كوي: چه هغه نبي صلے اللّه عليه وسلّم له د: وربشو ډوډئ او بدبوداره چربي يوړله. او هغه وخت نبي صلے اللّه عليه وسلّم يو يهودي سره مدينه كښ زغره كانړه ايښے وه: او د هغه نه ئے خپل كور والو د پاره وربشے اخستے وے. او ما د حضور صلے اللّه عليه وسلّم نه

بِالْمَدِيْنَةِ عِنْدَ يَهُوْدِيّ وَ اَخَذَ مِنْهُ شَعِيْرًا لِاَهْلِهٖ وَلَقَدْ سَمِعْتُهُ يَقُوْلُ مَآ اَمْسٰى عِنْدَ اٰلِ مُحَمَّدٍ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَاعُ بُرٍّ وَّلَا صَاعُ حَبٍّ وَ اِنَّ عِنْدَهٗ لَتِسْعَ نِسْوَةٍ.

واوريدل، چه آل محمد صلے اللّٰه عليه وسلّم سره يو صاع غنم يا، يو صاع غله يو مابنام نه دو پاتے شوے، حالانکه د حضور صلے اللّٰه عليه و اٰله وسلّم نهه بيبيانے وے.

باب ۱۱۴۱: كَسْبِ الرَّجُلِ وَ عَمَلِهٖ بِيَدِهٖ.

باب ۱۱۴۱: د سړي ګټه (کمائی) او خپل لاس سره د محنت کولو بيان.

۶۳۷: حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنِى ابْنُ وَهْبٍ عَنْ يُوْنُسَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ حَدَّثَنِىْ عُرْوَةُ ابْنُ الزُّبَيْرِ اَنَّ عَآئِشَةَ قَالَتْ لَمَّا اسْتُخْلِفَ اَبُوْبَكْرٍ الصِّدِّيْقُ قَالَ لَقَدْ عَلِمَ قَوْمِىْ اَنَّ حِرْفَتِىْ لَمْ تَكُنْ تَعْجِزُ عَنْ مُّؤْنَةِ اَهْلِىْ وَ شُغِلْتُ بِاَمْرِ الْمُسْلِمِيْنَ فَسَيَاْكُلُ اٰلُ اَبِىْ بَكْرٍ مِّنْ هٰذَا الْمَالِ وَ يَحْتَرِفُ لِلْمُسْلِمِيْنَ فِيْهِ.

۶۳۷: اسمعيل بن عبداللّٰه. ابن وهب يونس. ابن شهاب. عروه بن زبير بيان کوي: بي بي عائشےؓ اوفرمائيل، کوم وخت چه حضرت ابوبکر صديقؓ خليفه کړے شو. نو وے فرمائيل خما پيشه خما د، اهل و عيال د ګزارے د پاره نا کافي نۀ وه. او اوس د مسلمانانو په کار کښ مشغول شوے يم. نو د، ابوبکرؓ اولاد به د دے مال نه خوري او ابوبکر به مسلمانانو د پاره دے کښ تجارت کوي.

۶۳۸: حَدَّثَنِىْ مُحَمَّدٌ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يَزِيْدَ حَدَّثَنَا سَعِيْدٌ قَالَ حَدَّثَنِىْ اَبُو الْاَسْوَدِ عَنْ عُرْوَةَ قَالَ قَالَتْ عَآئِشَةُ كَانَ اَصْحَابُ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عُمَّالَ اَنْفُسِهِمْ وَ كَانَ يَكُوْنُ لَهُمْ اَرْوَاحٌ فَقِيْلَ لَهُمْ لَوِاغْتَسَلْتُمْ رَوَاهُ هَمَّامٌ عَنْ هِشَامٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَآئِشَةَ.

۶۳۸: محمد. عبداللّٰه بن يزيد. سعيد. ابوالاسود. عروه نه روايت کوي. دهغۀ بيان دے بي بي عائشےؓ اوفرمائيل چه د رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلّم صحابهؓ په خپل لاس مزدوري کوله او دهغوئ د جسم نه به بوئے راتۀ. هغوئ ته اووئيلے شو، کاش، چه تاسو خلقو غُسل کولے. همام د هشام نه، هغه د خپل پلار نه، هغه د بي بي عائشےؓ نه دا روايت اوکۀ.

۶۳۹: حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ

۶۳۹: ابراهيم بن موسي. عيسي. ثور خالد

مُوْسٰى اَخْبَرَنَا عِيْسٰى عَنْ ثَوْرٍ عَنْ خَالِدِ بْنِ مَعْدَانَ عَنِ الْمِقْدَامِ عَنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَا اَكَلَ اَحَدٌ طَعَامًا قَطُّ خَيْرًا مِّنْ اَنْ يَّأْكُلَ مِنْ عَمَلِ يَدِهٖ وَ اِنَّ نَبِيَّ اللّٰهِ دَاوُدَ عَلَيْهِ السَّلَامُ كَانَ يَأْكُلُ مِنْ عَمَلِ يَدِهٖ.

بن معدان. مقدام، رسول الله صلے الله علیه وسلّم نه روایت کوي. حضور صلے الله علیه وسلّم او فرمائیل، ذ دے نه بهتر خوراک هیچا اونه کړ، چه د خپل لاس محنت سره ئے اوخوړلو. او ذ الله نبي داؤد علیه السّلام به د خپل لاس محنت سره خوراک کولو (یعني د خپل لاس ګټلے روزي به ئے خوړله)

۶۴۰ : حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ مُوْسٰى حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ اَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنْ هَمَّامِ بْنِ مُنَبِّهٍ حَدَّثَنَا اَبُوْ هُرَيْرَةَ عَنْ رَّسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّ دَاوُدَ عَلَيْهِ السَّلَامُ كَانَ لَا يَأْكُلُ اِلَّا مِنْ عَمَلِ يَدِهٖ.

۶۴۰ : یحیي بن موسي. عبدالرزاق. معمر. همام بن منبه. حضرت ابوهریرهؓ نبي صلے الله علیه وسلّم نه روایت کوي، چه حضرت داؤد علیه السّلام د خپل لاس ګټه خوړله.

۶۴۱ : حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ اَبِيْ عُبَيْدٍ مَّوْلٰى عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ عَوْفٍ اَنَّهٗ سَمِعَ اَبَا هُرَيْرَةَ يَقُوْلُ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَاَنْ يَّحْتَطِبَ اَحَدُكُمْ حُزْمَةً عَلٰى ظَهْرِهٖ خَيْرٌ مِّنْ اَنْ يَّسْأَلَ اَحَدًا فَيُعْطِيَهٗ اَوْ يَمْنَعَهٗ.

۶۴۱ : یحیي بن بکیر. لیث. عقیل ابن شهاب. ابوعبید (ذ عبدالرحمٰن بن عوف غلام) نه روایت کوي، هغه ذ ابوهریرهؓ نه واوریدل رسول الله صلے الله علیه وسلّم اوفرمائیل، تاسو کښ چه څوک لرګي په شا راوړي (اوپه هغے رزق اوګټي) نو هغه ذ دے نه بهتر دے، چه ذ چا نه سوال او کړي (او ذ چا نه چه ئے سوال کړے وي) هغهٔ دهٔ له ورکړي یا ورنهٔ کړي.

۶۴۲ : حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ مُوْسٰى حَدَّثَنَا وَكِيْعٌ حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ عَنْ اَبِيْهِ عَنِ الزُّبَيْرِ بْنِ الْعَوَّامِ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَاَنْ يَّأْخُذَ اَحَدُكُمْ

۶۴۲ : یحیي بن موسي. وکیع. هشام بن عروه. عروه بن زبیر. زبیر بن عوامؓ نه روایت کوي. ذ هغهٔ بیان دے، نبي صلے الله علیه وسلّم اوفرمائیل. تاسو کښ د چا خپلو رسو (رسیوں) سره تلل (چه هغے سره لرګي په شا راوړي) ذ دے نه بهتر دي، چه ذ خلقو نه سوال

اَحْبُلَهُ خَيْرٌ لَّهُ مِنْ اَنْ يَّسْأَلَ النَّاسَ.

او کړي.

**باب ۱۴۱۲: السُّهُوْلَةِ وَالسَّمَاحَةِ فِي الشِّرَاءِ وَالْبَيْعِ وَمَنْ طَلَبَ حَقًّا فَلْيَطْلُبْهُ فِيْ عَفَافٍ.**

**باب ۱۴۱۲:** خرید و فروخت کښې سهولت او د فیاضي بیان. او کوم سړے چه حق طلب کړي، نو د سختئ نه بچ کیدو سره دے طلب کړي.

**۶۴۳:** حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَيَّاشٍ حَدَّثَنَا اَبُوْ غَسَّانَ مُحَمَّدُ بْنُ مُطَرِّفٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ الْمُنْكَدِرِ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ رَحِمَ اللّٰهُ رَجُلًا سَمْحًا اِذَا بَاعَ وَ اِذَا اشْتَرٰى وَ اِذَا اقْتَضٰى.

**۶۴۳:** علي بن عیاش. ابوغسان محمد بن مطرف. محمد بن منکدر. جابر بن عبداللّٰه نه روایت کوي، رسول اللّٰه صلی اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل، اللّٰه دے په هغه سړي رحم او کړي، چه فیاض (سخی) وي، هر کله چه خرخول او اخستل او کړي او (ذ خپل حق) تقاضا او کړي.

**باب ۱۴۱۳: مَنْ اَنْظَرَ مُوْسِرًا.**

**باب ۱۴۱۳:** مالدارته ذ مهلت ورکولو بیان.

**۶۴۴:** حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ يُوْنُسَ حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ حَدَّثَنَا مَنْصُوْرٌ اَنَّ رِبْعِيَّ بْنَ حِرَاشٍ حَدَّثَهُ اَنَّ حُذَيْفَةَ حَدَّثَهُ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَلَقَّتِ الْمَلٰٓئِكَةُ رُوْحَ رَجُلٍ مِّمَّنْ كَانَ قَبْلَكُمْ قَالُوْا اَعَمِلْتَ مِنَ الْخَيْرِ شَيْئًا قَالَ كُنْتُ اٰمُرُ فِتْيَانِيْ اَنْ يُّنْظِرُوْا وَ يَتَجَاوَزُوْا عَنِ الْمُوْسِرِ قَالَ قَالَ فَتَجَاوَزُوْا عَنْهُ وَ قَالَ اَبُوْ مَالِكٍ عَنْ رِبْعِيٍّ كُنْتُ اُيَسِّرُ عَلَى الْمُوْسِرِ وَ اُنْظِرُ الْمُعْسِرَ وَ تَابَعَهٗ شُعْبَةُ عَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ عَنْ رِبْعِيٍّ وَّ قَالَ اَبُوْ عَوَانَةَ عَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ عَنْ رِبْعِيٍّ اُنْظِرُ الْمُوْسِرَ وَ اَتَجَاوَزُ عَنِ

**۶۴۴:** احمد بن یونس. زهیر. منصور. ربعي بن حراش. حذیفه نه روایت دے. نبي صلی اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل. ستاسو نه ذ وړمبني اُمت ذ، یو سړي روح سره فریښتے یوځائے شوے. نو هغے فریښتو ترے تپوس او کړ، آیا تا څۀ نیکي کړے ده. هغۀ اووے. ما به خپلو ځلمو ته حکم ورکولو، چه مُهلت ورکوئے او محتاجونه درګزر کوئے (کۀ مهلت غواړي، نو مهلت ورکوئے) فریښتو هم هغۀ ته درګزر او کۀ او مالک ذ، ربعي نه نقل او کۀ. ربعي بیان او کۀ، چه ما به مالدارو سره نرمي کوله، او محتاجوته به م مهلت ورکولو. او شعبه په واسطه ذ عبدالملک ربعي. ذدے متابعت کښې روایت کړے دے. او ابوعوانه په واسطه ذ عبدالملک. ذ، ربعي قول نقل کۀ، چه ما به مالدارو له مهلت ورکولو،

الْمُعْسِرِ وَ قَالَ نُعَيْمُ بْنُ اَبِیْ هِنْدٍ عَنْ رِبْعِیٍّ فَاَقْبَلُ مِنَ الْمُوْسِرِ وَ اَتَجَاوَزُ عَنِ الْمُعْسِرِ.

او تـنـګـدسـتـوتـه به م عفوه کوله. او نعیم بن ابي هند' ذ' ربـعـي نه نقل کړے دے' چه ذ مالدارو عذر به م قبولولو. او تنګدست به م معاف کول.

**باب ۱۴ ۱ ۴: مَنْ اَنْظَرَ مُعْسِرًا.**

**باب ۱۴ ۱ ۴: تنګدستوته ذ مهلت ورکولو بیان.**

۶۴۵: حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ عَمَّارٍ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ حَمْزَةَ حَدَّثَنَا الزُّبَيْدِیُّ عَنِ الزُّهْرِیِّ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ اَنَّهُ سَمِعَ اَبَا هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِیِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ كَانَ تَاجِرٌ يُدَايِنُ النَّاسَ فَاِذَا رَاٰى مُعْسِرًا قَالَ لِفِتْيَانِهٖ تَجَاوَزُوْا عَنْهُ لَعَلَّ اللّٰهَ اَنْ يَتَجَاوَزَ عَنَّا فَتَجَاوَزَ اللّٰهُ عَنْهُ.

۶۴۵: هشـام بـن عمار. یحیٰي بن حمزه زبیدي. زهـري. عبیـدالـلّـه بـن عبـدالـلّٰه. حضرت ابوهریره' نبي صـلے الـلّٰـه علیه وسلّم نه روایت کوي حضور صلي اللّٰه عـلیـه وسـلّـم اوفـرمـائیـل' یـو سوداګر به خلقوله قرض ورکـولـو' چـه خـوک بـه ئے تنګدست اولیدلو' نو خپلو خـلـموته به ئے وئیلے' چه دے معاف کړئے' شاید چه اللّٰه تـعـالٰي مونږ هم معاف کړي' نو اللّٰه تعالٰي هغه هم معاف کړلو. (اللّٰه پاک دے په مونږ هم دا فضل اوکړي. اللّٰهم آمین)

**بـاب ۱۵ ۱ ۴: اِذَا بَيَّنَ الْبَيِّعَانِ وَلَمْ يَكْتُمَا وَ نَصَحَا وَ يُذْكَرُ عَنِ الْعَدَّآءِ بْنِ خَالِدٍ قَالَ كَتَبَ لِیَ النَّبِیُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هٰذَا مَا اشْتَرٰى مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنَ الْعَدَّآءِ ابْنِ خَالِدٍ بَيْعُ الْمُسْلِمِ الْمُسْلِمَ لَا دَآءَ وَلَا خِبْثَةَ وَلَا غَآئِلَةَ وَ قَالَ قَتَادَةُ الْغَآئِلَةُ الزِّنَا وَالسَّرِقَةُ وَالْاِبَاقُ وَ قِيْلَ لِاِبْرَاهِيْمَ اِنَّ بَعْضَ النَّخَّاسِيْنَ يُسَمِّیْ اٰرِیَّ خُرَاسَانَ وَ سَجِسْتَانَ فَيَقُوْلُ جَآءَ الْيَوْمَ مِنْ سَجِسْتَانَ**

**بـاب ۱۵ ۱ ۴:** هـر کـلـه چـه خـرخـونـکے او اخسـتـونکے صاف صاف بیان اوکړي. او هیڅ عیب پټ نهٔ کړي' او دواړه ذ' یو بل خیر خواهي اوکړي. او عداء بـن خـالـد نـه مـنـقـول دي' هغهٔ اووے' ماته نبي صلے اللّٰه علیـه وسـلّـم دا لیـکلے راکړل' چه دا تحریر دے' ذ دے خبـرے چـه مُـحـمّـد رسـول اللّٰه صلے اللّٰه علیه وسلّم ذ' عداء بن خالد نه فلانے څیز اخستے دے' او دا' ذ مُسلمان لاس کښ ذ مُسلمان ذ خرید و فروخت په شان دے دے کـښ نـه څـهٔ بیماري شته او نه څهٔ خرابي او نه غائله دے. او قـتـاده اووے' غـائـلـه نه مراد' زنا' علا' او تیښته ده. او ابـراهیـم نـخـعـي نـه تپـوس اوشو' چـه بعضـے دلال ذ' خـراسـان او سـجستان نوم اخلي اووائي' چه دا (خناور) پـرون ذ' خراسان نه راغلے دے. نن ذ سجستان نه راغلے

فَكَرِهَهُ كِرَاهِيَةً شَدِيْدَةً وَ قَالَ عُقْبَةُ بْنُ عَامِرٍ لَّا يَحِلُّ لِامْرِىءٍ يَّبِيْعُ سِلْعَةً يَّعْلَمُ اَنَّ بِهَا دَآءً اِلَّا اَخْبَرَهُ.

دے. ابراهیم دا' ډیر بد او کنړل. او عقبه بن عامر بیان او کړ: هیڅا د پاره داسے سامان خرڅول جائز نه دي' چه ذ هغے متعلق هغهٔ ته معلومه وي' چه هغے کښ عیب دے. خو' دا چه هغه بیان کړي.

۶۴۲: حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ صَالِحٍ اَبِي الْخَلِيْلِ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ الْحَارِثِ رَفَعَهُ اِلٰى حَكِيْمِ بْنِ حِزَامٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلْبَيِّعَانِ بِالْخِيَارِ مَالَمْ يَتَفَرَّقَا اَوْ قَالَ حَتّٰى يَتَفَرَّقَا فَاِنْ صَدَقَا وَ بَيَّنَا بُوْرِكَ لَهُمَا فِيْ بَيْعِهِمَا وَ اِنْ كَتَمَا وَ كَذَبَا مُحِقَتْ بَرَكَةُ بَيْعِهِمَا.

۶۴۲: سلیمان بن حرب. شعبه. قتاده. صالح ابو الخلیل. عبدالله بن حارث. حکیم بن حزام نه روایت کوي' نبي صلے الله علیه وسلّم اوفرمائیل. خرخونکي او اخستونکي ته اختیار دے څو پورے چه دواړه جداشوے نهٔ وي (مالم یتفرقا' ئے اووے یا حتٰی یتفرقا' ئے اووے) که دواړه ریښتیا اووائي' او' صاف صاف بیان اوکړي نو د هغے دواړو بیع کښ به برکت وي. او کهٔ دواړو (عیب) پټ کړلو' او دروغ ئے اووے' نو دَ هغے دواړو د بیع برکت به ختم کړے شي.

## بَابُ ۱۳۱۶: بَيْعِ الْخِلْطِ مِنَ التَّمْرِ.

## باب ۱۳۱۶: قجورے یوځائے کول او دَ خرخولو بیان.

۶۴۷: حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا شَيْبَانُ عَنْ يَّحْيٰى عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ عَنْ اَبِيْ سَعِيْدٍ قَالَ كُنَّا نُرْزَقُ تَمْرَ الْجَمْعِ وَهُوَ الْخِلْطُ مِنَ التَّمْرِ وَ كُنَّا نَبِيْعُ صَاعَيْنِ بِصَاعٍ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا صَاعَيْنِ بِصَاعٍ وَّلَا دِرْهَمَيْنِ بِدِرْهَمٍ.

۶۴۷: ابونعیم. شیبان. یحیٰي. ابوسلمة. ابوسعید خدريؓ نه روایت کوي' چه مونږ خلقو ته به مختلف قسم قجورے راتلے. هغے به بنیے' خرابے قجورے ګډے وډے وے. او مونږ به دوه صاع قجورے دَ یو صاع په بدله کښ خرخولے. نو نبي صلے الله علیه وسلّم اوفرمائیل. دوه صاع قجورے دے دَ یو صاع قجورو بدله کښ نهٔ خرخیږي' او نه دے دوه درهمه دَ یو درهم په بدله کښ خرخیږي[۱].

۱. د مختلفو علاقو قجورے که یوځائے ګډے کړے شي نو څه به بنیے وي څه به خرابے وي نو بنکاره خبره ده چه د فرق په وجه به ددے خرخول اغستل روا وي یا نه؟ امام بخاري رحمة الله علیه ددے حدیث په روایت سره دا بنودل غواړي چه د داسے ګډو وډو قجورو خرخولو اغستلو کښ څه ګناه نشته. ځکه چه

د فجورو خرابئ یا بنه والے دواړه خکاره وي.

او که چرے څه تږکړئ یا لوښي کښ په دے طریقه فجورے کیخودے شي. چه لاندے پټه حصه کښې خرابے وي او د پاسه ښے فجورے نو دا صورت ناروا دے خکه چه دهوکه ده.

حدیث شریف کښ دا حکم هم دے چه یو درهم د دوو درهمو په بدله خرخولے نشي داسے یو صاع (یوه دهړني) فجورے دے په دوه صاعه نشي خرخولے دا بحث وړاندے رازي).

## بـاب۷ ۱ ۳: مَـا قِيْـلَ فِـي اللَّحَّامِ وَالْجَزَّارِ.

۲۳۸: حَـدَّثَـنَـا عُـمَـرُو بْـنُ حَفْصٍ حَدَّثَنَا الْاَعْمَشُ قَالَ حَدَّثَنِيْ شَقِيْـقٌ عَـنِ ابْـنِ مَسْـعُوْدٍ قَـالَ جَـآءَ رَجُـلٌ مِّـنَ الْاَنْـصَـارِ يُكْنٰى اَبَا شُعَيْبٍ فَقَـالَ لِغُلَامٍ لَـهٗ قَصَّابٍ اِجْعَلْ لِيْ طَعَامًا يَّـكْـفِيْ خَمْسَةً فَاِنِّيْ اُرِيْدُ اَنْ اَدْعُوَا النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَامِـسَ خَـمْسَةٍ فَـاِنِّيْ قَدْ عَرَفْتُ فِيْ وَجْهِهِ الْجُـوْعَ فَدَعَاهُمْ فَجَآءَ مَعَهُمْ رَجُلٌ فَـقَـالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَـلَّـمَ اِنَّ هٰـذَا قَدْ تَبِعَنَا فَاِنْ شِئْتَ اَنْ تَـأْذَنَ لَـهٗ فَـأْذَنْ لَـهٗ وَ اِنْ شِئْتَ اَنْ يَّرْجِعَ رَجَعَ فَقَالَ لَابَلْ قَدْ اَذِنْتُ لَهٗ.

## باب۷ ۱ ۳: د هغے روایتونو بیان چه د غوښے خرخونکي او قصاب په حقله نقل دي.

۲۳۸: عمرو بن حفص. حفص. اعمش. شقیق. ابن مسعودؓ نه روایت کوي هغه اووے یو انصاري چه د هغهٔ کُنیت ابوشعیب وو، راغے او خپل یو غلام چه قصاب وو، ته ئے اووے، ما دَ پاره طعام تیار کړه چه پنخو سړو دَ پاره کافي وي، زهٔ غواړم چه نبي صلے الله علیه وسلّم سره پنخو سړو ته دعوت ورکړم، ماته دَ حضور صلے الله علیه وسلّم دَ مخ مُبارک نه دَ لوږے اثر معلوم شو. هغوي ئے اوبلل نو هغوئ سره یو سړے بل هم راغے. نبي صلے الله علیه وسلّم اوفرمائیل چه دا سړے ماسره راغلے دے. کهٔ تهٔ غواړے نو دهٔ له هم اجازت ورکړه او کهٔ تهٔ غواړے چه واپس شي نو واپس به شي. هغهٔ اووے بلکه زهٔ دهٔ له هم اجازت ورکوم.

## باب۸ ۱ ۳: مَا يَمْحَقُ الْكَذِبُ وَالْكِتْمَانُ فِي الْبَيْعِ.

۲۳۹: حَـدَّثَـنَا بَدَلُ بْنُ مُحَبَّرٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ قَتَادَةَ قَالَ سَمِعْتُ اَبَا الْخَلِيْـلِ يُـحَدِّثُ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ ابْنِ الْحَارِثِ عَنْ حَكِيْمِ بْنِ حِزَامٍ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

## باب۸ ۱ ۳: بیع کښ عیب پټولو او دروغ ونیلو سره برکت خي.

۲۳۹: بدل بن محبر. شعبه. قتاده. ابوالخلیل. عبدالله بن حارث. حکیم بن حزامؓ نبي صلے الله علیه وسلّم نه روایت کوي، حضور صلے الله علیه وسلّم اوفرمائیل، خرخونکي

وَسَلَّمَ قَالَ الْبَيِّعَانِ بِالْخِيَارِ مَالَمْ يَتَفَرَّقَا اَوْ قَالَ حَتّٰى يَتَفَرَّقَا فَاِنْ صَدَقَا وَ بَيَّنَا بُوْرِكَ لَهُمَا فِيْ بَيْعِهِمَا وَ اِنْ كَتَمَا وَ كَذَبَا مُحِقَتْ بَرَكَةُ بَيْعِهِمَا.

او اخستونكي ته اختيار دے. خو پورے چه جُدا نشي. يا دا' نے اوفرمائيل' تردے چه دواړه جُدا شي.

باب ۱۹ ۴: قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَاْكُلُوا الرِّبٰوٓا اَضْعَافًا مُّضٰعَفَةً وَّاتَّقُوا اللّٰهَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ.

باب ۱۹ ۴: دَ اللّٰه تعالٰي قول' اے ايماندارو' سود څو چنده مه خورئے. او دَ اللّٰه تعالٰي نه ويريږئے' چه كامياب شئے.

۱۵۰ ۲: حَدَّثَنَا اٰدَمُ حَدَّثَنَا ابْنُ اَبِىْ ذِئْبٍ حَدَّثَنَا سَعِيْدُ الْمَقْبُرِىُّ عَنْ اَبِىْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَيَاْتِيَنَّ عَلَى النَّاسِ زَمَانٌ لَّا يُبَالِى الْمَرْءُ بِمَآ اَخَذَ الْمَالَ اَمِنْ حَلَالٍ اَمْ مِّنْ حَرَامٍ.

۱۵۰ ۲: آدم. ابن ابي. ذئب. سعيد مقبري. حضرت ابوهريرهؓ. نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم نه روايت كوي. حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل' په خلقو به داسے زمانه راشي' چه خلق به دا پروا نۀ ساتي' چه حلال يا حرام مال ئے په كومه ذريعه حاصل كړے دے.

باب ۴۲۰: اٰكِلِ الرِّبٰوا وَ شَاهِدِهٖ وَ كَاتِبِهٖ وَ قَوْلِهٖ تَعَالٰى اَلَّذِيْنَ يَاْكُلُوْنَ الرِّبٰوا لَا يَقُوْمُوْنَ اِلَّا كَمَا يَقُوْمُ الَّذِىْ يَتَخَبَّطُهُ الشَّيْطٰنُ مِنَ الْمَسِّ ط ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ قَالُوْٓا اِنَّمَا الْبَيْعُ مِثْلُ الرِّبٰوا وَ اَحَلَّ اللّٰهُ الْبَيْعَ وَ حَرَّمَ الرِّبٰوا فَمَنْ جَآءَهٗ مَوْعِظَةٌ مِّنْ رَّبِّهٖ فَانْتَهٰى فَلَهٗ مَا سَلَفَ وَ اَمْرُهٗٓ اِلَى اللّٰهِ وَمَنْ عَادَ فَاُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ النَّارِ هُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ.

باب ۴۲۰: دَ سُود خور. دَ هغے دَ گواهي كونكي او ليكونكي دَ گناه بيان. او دَ اللّٰه تعالٰي قول' چه كوم خلق سُود خوري' هغوئ به داسے ولاړ' وي' څنګه چه هغه سړے ولاړ وي' چه دَ هغه دَ شيطان دَ لاسه دماغ خراب شوے وي' دا ځكه چه هغوئ به وئيلے' چه بيع هم دَ سود په شان ده' او اللّٰه بيع حلال كړے ده' او سُود ئے حرام كړے دے' نو چا ته چه دَ هغۀ دَ رب دَ طرف نه نصيحت راغے' او هغه دَ سُود نه منع شو. نو څۀ چه اوشو' هغه دَ هغۀ دي او دَ هغۀ معامله اللّٰه ته حواله ده. او څوک چه دَ دے باوجود دوباره سُود آخلي' نو هغوئ دوزخيان دي. هميشه به هغے كښ اوسيږي.

۱۵۱ ۲: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ

۱۵۱ ۲: محمّد بن بشار. غندر. شعبه.

حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ مَنْصُوْرٍ عَنْ اَبِي الضُّحٰى عَنْ مَّسْرُوْقٍ عَنْ عَآئِشَةَ قَالَتْ لَمَّا نَزَلَتْ اٰخِرُ الْبَقَرَةِ قَرَاَهُنَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَيْهِمْ فِي الْمَسْجِدِ ثُمَّ حَرَّمَ التِّجَارَةَ فِي الْخَمْرِ.

منصور. ابو الضحي. مسروق. بي بي عائشې نه روايت كوي. ذ هغې بيان دے. كوم وخت چه ذ سورهٔ بقره آخري آيتونه نازل شو. نو هغه آيتونه نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم جمات كښې واورول، بيا ذ شرابو تجارت هم حرام كړے شو.

**۲۵۲ :** حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ اِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا جَرِيْرُ بْنُ حَازِمٍ حَدَّثَنَا اَبُوْ رَجَآءٍ عَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدُبٍ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَاَيْتُ اللَّيْلَةَ رَجُلَيْنِ اَتَيَانِيْ فَاَخْرَجَانِيْ اِلٰى اَرْضٍ مُّقَدَّسَةٍ فَانْطَلَقْنَا حَتّٰى اَتَيْنَا عَلٰى نَهْرٍ مِّنْ دَمٍ فِيْهِ رَجُلٌ قَآئِمٌ وَّ عَلٰى وَسْطِ النَّهْرِ رَجُلٌ بَيْنَ يَدَيْهِ حِجَارَةٌ فَاَقْبَلَ الرَّجُلُ الَّذِيْ فِي النَّهْرِ فَاِذَا اَرَادَ الرَّجُلُ اَنْ يَّخْرُجَ رَمَى الرَّجُلُ بِحَجَرٍ فِيْ فِيْهِ فَرَدَّهٗ حَيْثُ كَانَ فَجَعَلَ كُلَّمَآ جَآءَ لِيَخْرُجَ رَمٰى فِيْ فِيْهِ بِحَجَرٍ فَيَرْجِعُ كَمَا كَانَ فَقُلْتُ مَا هٰذَا فَقَالَ الَّذِيْ رَاَيْتَهٗ فِي النَّهْرِ اٰكِلُ الرِّبَا.

**۲۵۲ :** موسي بن اسمٰعيل. جرير بن حازم. ابو رجاء. سمره بن جندب نه روايت دے، نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، مادوه سړي خوب كښې ذ شپے اوليدل، چه ماته راغلل، اوزهٔ ئے ارضِ مقدس طرف ته بوتلم. مونږ تول روان شو، تردے چه مونږ ذ وينے يو نهر ته اورسيدو، هغے كښې يو سړے ولاړ وو. او ذ نهر په مينځ كښې يو سړے وو، چه ذ هغهٔ مخكښې كانړي پراتهٔ وو، نو هغه سړے چه نهر كښې وو، راروان شو، كوم وخت چه هغهٔ ذ بهر وتلو اراده اوكړه نو هغے سړي په كانړي اوويشتلو، كوم چه (ذ نهر) په غاړه وو، نو هلته واپس شو، كوم ځائے چه مخكښې وو. او كله چه به هغهٔ بهر كيدل غوښتل نو هغه به ئے په كانړي ويشتلو، او هغه به ئے هلته واپس كولو، كوم ځائے چه به مخكښې وو. ما تپوس اوكهٔ، دا څهٔ دي، نو هغے سړي جواب راكهٔ، چه څوك تاسو په نهر كښې ليدلے دے، هغه سُود خور دے.

**باب ۴۲۱ :** مُؤْكِلِ الرِّبَا لِقَوْلِهٖ تَعَالٰى يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا اتَّقُوا اللّٰهَ وَ ذَرُوْا مَا بَقِيَ مِنَ الرِّبٰوٓا اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ فَاِنْ لَّمْ تَفْعَلُوْا فَاْذَنُوْا بِحَرْبٍ مِّنَ اللّٰهِ

**باب ۴۲۱ :** ذ سُود خور (ذ ګناه) بيان، په دليل ذ، ارشاد خداوندي، چه اے ايماندارو، ذ اللّٰه نه اويريږئے، او تاسو پريږدئے، كوم سُود چه باقي پاتے شوے دے، كهٔ تاسو ايمان لرونكي ئے. كهٔ تاسو داسے اونهٔ كړل، نو اللّٰه او ذ هغهٔ رسول سره اعلان جنګ

وَ رَسُوْلِهٖ وَ اِنْ تُبْتُمْ فَلَكُمْ رُءُوْسُ اَمْوَالِكُمْ لَا تَظْلِمُوْنَ وَلَا تُظْلَمُوْنَ ○ وَ اِنْ كَانَ ذُوْ عُسْرَةٍ فَنَظِرَةٌ اِلٰى مَيْسَرَةٍ وَ اَنْ تَصَدَّقُوْا خَيْرٌ لَّكُمْ اِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ ○ وَاتَّقُوْا يَوْمًا تُرْجَعُوْنَ فِيْهِ اِلَى اللّٰهِ ثُمَّ تُوَفّٰى كُلُّ نَفْسٍ مَّا كَسَبَتْ وَهُمْ لَا يُظْلَمُوْنَ ○ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍؓ هٰذِهٖ اٰخِرُ اٰيَةٍ نَّزَلَتْ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

او كړئ. او كهٔ تاسو توبه كړه، نو تاسو د پاره ستاسو اصلي مال دے. مه تاسو چا ته تكليف وركوئ، او نه دے تاسو ته تكليف دركړے شي. او كهٔ څوك تنګ دست وي، نو د خوشحالي (آسودګئ) دَ وخته پورے مهلت وركړئ. او معاف كول ستاسو د پاره بهتر دي. كهٔ تاسو پوهيږئ، او د هغے ورځے نه اويريږئ، چه هغے كښې به اللّٰه طرف ته ګرځولے شئ. بيا به هرچاته پوره بدله وركولے شي، د هغے، چه هغه كړے وي او ظلم به پرے نه كيږي. ابن عباسؓ اوفرمائيل، دا آخري آيت دے، چه په نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم نازل شوے دے.

۲۵۳ : حَدَّثَنَا اَبُو الْوَلِيْدِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَوْنِ ابْنِ اَبِيْ جُحَيْفَةَ قَالَ رَاَيْتُ اَبِي اشْتَرٰى عَبْدًا حَجَّامًا فَسَاَلْتُهٗ فَقَالَ نَهَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ ثَمَنِ الْكَلْبِ وَ ثَمَنِ الدَّمِ وَ نَهٰى عَنِ الْوَاشِمَةِ وَالْمَوْشُوْمَةِ وَ اٰكِلِ الرِّبَا وَ مُوْكِلِهٖ وَ لَعَنَ الْمُصَوِّرَ.

۲۵۳ : ابوالوليد. شعبه. عون بن ابي جحيفه نه روايت دے وائي ما خپل پلار اوليد، هغهٔ يو غلام واخست، چه ښكر، به ئے لږولو (هغهٔ دَ هغهٔ اوزار مات كړل) ما ترے د هغے وجه اوپښتله۱، نو هغهٔ اووے چه نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم د سپي دَ قيمت او دَ وينے دَ قيمت نه منع فرمائيلے ده. او، دَ خال لږول (خان ته يا بل ته) او سود خوړلو يا خوړولو نه ئے منع فرمائيلے ده. او تصوير اوښكونكي باندے ئے لعنت كړے دے.

۱. د بخاري شريف په بل روايت كښې دا تفصيل شته دے چه د مرئي د اخستلو نه پس مرئي د ښكر لګولو هغه سامان مات كړو (تورتيے ئے كړو) نو اوس دے حديث شريف كښې چه د سوال بيان دے چه دهٔ دا خپل سامان ولے مات كړو. نو اوس ئے ددے حديث شريف نه دهغهٔ د سوال جواب معلوميږي.

باب ۲ ۴ ۲ : يَمْحَقُ اللّٰهُ الرِّبَا وَ يُرْبِي الصَّدَقٰتِ وَاللّٰهُ لَا يُحِبُّ كُلَّ كَفَّارٍ اَثِيْمٍ.

باب ۲ ۴ ۲ : اللّٰه سود، بربادئ، او صدقات زياتوي، او اللّٰه تعالٰي هر ناشكره ګنهګار نه خوښوي.

۲۵۴ : حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ يُوْنُسَ عَنِ ابْنِ

۲۵۴ : يحيٰي بن بكير. ليث. يونس ابن شهاب. ابن مسيب نه روايت كوي.

شِهَابٍ قَالَ ابْنُ الْمُسَيَّبِ اَنَّ اَبَا هُرَيْرَةَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ الْحَلْفُ مُنَفِّقَةٌ لِلسِّلْعَةِ مُمْحِقَةٌ لِلْبَرَكَةِ.

ابوهريرهؓ بيان كوي چه ما د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه واوريدل چه قسم سره مال خرخيږي خو بركت ئې ختميږي.

## بَابٌ ۴۲۳: مَا يُكْرَهُ مِنَ الْحَلْفِ فِي الْبَيْعِ.

## باب ۴۲۳: بيع كښې د قسم خوړلو د كراهت بيان.

۱۵۵: حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ اَخْبَرَنَا الْعَوَّامُ عَنْ اِبْرَاهِيْمَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِيْ اَوْفٰى اَنَّ رَجُلًا اَقَامَ سِلْعَةً وَهُوَ فِي السُّوْقِ فَحَلَفَ بِاللّٰهِ لَقَدْ اُعْطِيَ بِهَا مَالَمْ يُعْطَ لِيُوْقِعَ فِيْهَا رَجُلٌ مِنَ الْمُسْلِمِيْنَ فَنَزَلَتْ اِنَّ الَّذِيْنَ يَشْتَرُوْنَ بِعَهْدِ اللّٰهِ وَ اَيْمَانِهِمْ ثَمَنًا قَلِيْلًا.

۱۵۵: عمرو بن مُحمّد. هشيم. عوام ابراهيم بن عبدالرحمن. عبدالله بن ابي اوفي نه روايت كوي يو سړي بازار كښې خپل سامان اولږولو. او په خدائے قسم خوړل ئې شروع كړل چه د دې قيمت دومره راكولې شي حالانكه هغه هومره قيمت ورته نه شو وركيدې. د قسم نه ئې دا مقصد وو چه مُسلمانانو كښې يو كس اونخلوي (دهوكه وركړي) نودا آيت نازل شو بيشكه هغه خلق چه د الله د عهد او د خپل قسمونو په عوض كښې لږ مال اخلي".

## بَابٌ ۴۲۴: مَا قِيْلَ فِي الصَّوَّاغِ وَ قَالَ طَاوُسٌ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍؓ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يُخْتَلٰى خَلَاهَا وَقَالَ الْعَبَّاسُ اِلَّا الْاِذْخِرَ فَاِنَّهُ لِقَيْنِهِمْ وَ بُيُوْتِهِمْ فَقَالَ اِلَّا الْاِذْخِرَ.

## باب ۴۲۴: د زرګر د پيشې متعلق چه كوم روايتونه راغلي دي او طاؤس د ابن عباسؓ نه روايت كړې دې چه نبي صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل د حرم واښه نهٔ شي پريكولې. او عباسؓ عرض اوكړ سِوا د اذخر نه (د دې اجازت اوكړئې) خكه چه دا د زرګرانو او د خلقو په كورونو كښې په كارراځي. نو حضورؐ اوفرمائيل. ښهٔ ده د اذخر اجازت دې.

۱۵۶: حَدَّثَنَا عَبْدَانُ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا يُوْنُسُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ اَخْبَرَنَا عَلِيُّ بْنُ حُسَيْنٍ اَنَّ حُسَيْنَ بْنَ عَلِيٍّ اَخْبَرَهُ اَنَّ عَلِيًّا

۱۵۶: عبدان. عبدالله. يونس. ابن شهاب. علي بن حسين. حسين بن علي. د هغه نه بيان اوكړ حضرت علي كرم الله وجهه اوفرمائيل مال غنيمت كښې يو اوښ

رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ كَانَتْ لِيْ شَارِفٌ مِنْ نَصِيْبِيْ مِنَ الْمَغْنَمِ وَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَعْطَانِيْ شَارِفًا مِّنَ الْخُمُسِ فَلَمَّا اَرَدْتُ اَنْ اَبْتَنِيَ بِفَاطِمَةَ عَلَيْهَا السَّلَامُ بِنْتِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَعَدْتُ رَجُلًا صَوَّاغًا مِّنْ بَنِيْ قَيْنُقَاعَ اَنْ يَّرْتَحِلَ مَعِيَ فَنَأْتِيَ بِاِذْخِرٍ اَرَدْتُ اَنْ اَبِيْعَهُ مِنَ الصَّوَّاغِيْنَ وَ اَسْتَعِيْنَ بِهٖ فِيْ وَلِيْمَةِ عُرْسِيْ.

خما حصه كښې رسيدلے وو. او نبي صلے الله عليه وسلّم يو اوښ ماته خمس كښې راكړے وو. نو هر كله چه ما اراده اوكړه، چه بي بي فاطمه بنت رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلّم په رخصتي، راواده كړم، راولم، نو ما د بني قينقاع يو زرګر سره خبره اوكړه، چه ماسره لاړ شي او مونږ اذخر راوړل. ما اراده كړے وه، چه دا په زرګرانو خرڅ كړم او د خپل وادهٔ وليمه كښې ترے مدد واخلم.

٧٥٦ : حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ عَنْ خَالِدٍ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍؓ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِنَّ اللّٰهَ حَرَّمَ مَكَّةَ وَلَمْ تَحِلَّ لِاَحَدٍ قَبْلِيْ وَلَا لِاَحَدٍ بَعْدِيْ فَاِنَّمَا حَلَّتْ لِيْ سَاعَةً مِّنْ نَّهَارٍ لَا يُخْتَلٰى خَلَاهَا وَلَا يُعْضَدُ شَجَرُهَا وَلَا يُنَفَّرُ صَيْدُهَا وَلَا يُلْتَقَطُ لُقْطَتُهَا اِلَّا لِمُعَرِّفٍ وَ قَالَ عَبَّاسُ بْنُ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ اِلَّا الْاِذْخِرَ لِصَاغَتِنَا وَلِسَقُفِ بُيُوْتِنَا فَقَالَ اِلَّا الْاِذْخِرَ فَقَالَ عِكْرِمَةُ هَلْ تَدْرِيْ مَا يُنَفَّرُ صَيْدُهَا هُوَ اَنْ تُنَحِّيَهُ مِنَ الظِّلِّ وَ تَنْزِلَ مَكَانَهُ قَالَ عَبْدُ الْوَهَّابِ عَنْ

٧٥٦ : اسحٰق. خالد بن عبداللّٰه. خالد. عكرمه. ابن عباسؓ نه روايت دے. رسول اللّٰه صلے الله عليه وسلّم اوفرمائيل، اللّٰه پاك مكه حرم ګرځولے ده، اونه خما نه مخكښې اونه خما نه پس چا د پاره حلال ده. او ما د پاره هم صرف د، ورځے يو ساعت كښې حلال كړے شوه. د هغے وابنهٔ دے نشي اوبنكلے. نه دِ د هغے اُونه وهلے شي، اونه دے د هغے ښكار زغلولے شي، اونه دِ د هغے پريوتے څيز اوچتولے شي. خو هغے سړي د پاره (جائز دي) چه د هغے مشهورتيا اوكړي. او عباس بن عبدالمطلب عرض اوكهٔ، چه څمونږ زرګرانو او كورونو د چهت د پاره د، اذخر، اجازت اوكړئے، نو حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، ښهٔ ده، د اذخر، اجازت دے. عكرمه اووے، آيا تاسو ته معلومه ده، چه د دے ښكار زغلول څهٔ دي، ددے ښكار زغلول دادي، چه تاسو هغه د سوري (سائے) نه لرے كړے او د هغے ځائے اونيسئے. عبدالوهاب د، خالد نه روايت اوكهٔ، چه څمونږ د،

خَالِدٍ لِصَاغَتِنَا وَ قُبُوْرِنَا.

زرگرانو او خمونږ قبرونو د پاره ددې اجازت او کړې.

## بَابٌ ٤٢٥: ذِكْرِ الْقَيْنِ وَالْحَدَّادِ.

## باب ٤٢٥: د لوهارانو بيان.

٦٥٨ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا ابْنُ عَدِيٍّ عَنْ شُعْبَةَ عَنْ سُلَيْمَانَ عَنْ اَبِي الضُّحٰى عَنْ مَسْرُوْقٍ عَنْ خَبَّابٍ قَالَ كُنْتُ قَيْنًا فِي الْجَاهِلِيَّةِ وَ كَانَ لِيْ عَلَى الْعَاصِ ابْنِ وَآئِلٍ دَيْنٌ فَاَتَيْتُهُ اَتَقَاضَاهُ قَالَ لَا اُعْطِيْكَ حَتّٰى تَكْفُرَ بِمُحَمَّدٍ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْتُ لَا اَكْفُرُ حَتّٰى يُمِيْتَكَ اللّٰهُ ثُمَّ تُبْعَثَ قَالَ دَعْنِيْ حَتّٰى اَمُوْتَ وَ اُبْعَثَ فَسَاُوْتٰى مَالًا وَّ وَلَدًا فَاَقْضِيْكَ فَنَزَلَتْ اَفَرَاَيْتَ الَّذِيْ كَفَرَ بِاٰيٰتِنَا وَ قَالَ لَاُوْتَيَنَّ مَالًا وَّ وَلَدًا اَطَّلَعَ الْغَيْبَ اَمِ اتَّخَذَ عِنْدَ الرَّحْمٰنِ عَهْدًا.

٦٥٨ : محمد بن بشار. ابن عدي. شعبه. سليمان. ابوالضحي. مسروق. خباب نه روايت دے. چه زهٔ د جاهليت زمانه کښې لوهار ووم. او عاص بن وائل باندې خما څهٔ قرض وو، زهٔ هغهٔ پسې غوښتوله ورغلم نو هغهٔ اووې، زهٔ ئې نهٔ درکوم، څو پورې چه تهٔ د محمد صلي الله عليه وسلم نه انکار اونهٔ کړې. ما جواب ورکهٔ. زهٔ انکار نهٔ کوم، ترديې چه الله تعالٰي تا مړ کړي. بيا تا پورته کړي. هغهٔ اووې ما پريږده، تردې چه مړ شم. بيا پورته کړې شم. اوماته مال او اولاد راکړې شي، نو ستا قرض به ادا کړم. په دې خبره دا آيت نازل شو، آيا تا هغه سړې اوليد، چه هغه خمونږ د آيتونو نه انکار اوکهٔ. او وې وئيل. چه البته ماله به مال او اولاد راکړې شي، آيا هغهٔ په غيب اطلاع بيا مُندې ده، يا، د الله نه ئې عهد آخستې دې.

## بَابٌ ٤٢٦: ذِكْرِ الْخَيَّاطِ.

## باب ٤٢٦: دَ درزي بيان.

٦٥٩ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ اِسْحٰقَ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِيْ طَلْحَةَ اَنَّهٗ سَمِعَ اَنَسَ بْنَ مَالِكٍ يَّقُوْلُ اِنَّ خَيَّاطًا دَعَا رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِطَعَامٍ صَنَعَهٗ قَالَ اَنَسُ بْنُ مَالِكٍ فَذَهَبْتُ مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِلٰى ذٰلِكَ الطَّعَامِ فَقَرَّبَ

٦٥٩ : عبدالله بن يُوسف. مالک. اسحٰق بن عبدالله بن ابي طلحهٔ نه روايت کوي، هغه دَ انس بن مالکؓ نه واوريدل، يو درزي نبي صلي الله عليه وسلم تهٔ دَ هغې طعام دعوت ورکړلو، چه حضور صلي الله عليه وسلم دَ پاره ئې تيار کړې وو، دَ انس بن مالکؓ بيان دې، چه زهٔ هم حضور صلي الله عليه وسلم سره دې دعوت له لاړم، هغه رسول الله صلي الله عليه وسلم ته روټئ، او خوروا،

إِلَى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خُبْزًا وَّ مَرَقًا فِيْهِ دُبَّآءٌ وَّ قَدِيْدٌ فَرَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَتَبَّعُ الدُّبَّآءَ مِنْ حَوَالِي الْقَصْعَةِ قَالَ فَلَمْ اَزَلْ اُحِبُّ الدُّبَّآءَ مِنْ يَّوْمَئِذٍ.

چه هغے کښې کدو وو' او سره کړے غوښه وه کیښوده. ما نبي صلے اللّٰه علیه وسلّم اولیدلو. چه حضور صلے اللّٰه علیه وسلّم ذ پیالئے ذ څلورو طرفونه کدو لټولو' او خوړلو. ذ هغهٔ بیان دے' چه ما ذ هغے ورځ نه برابر کدو خوښولو.

## باب۴۲۷: ذِكْرِ النَّسَّاجِ.

## باب۴۲۷: ذ' جولا بیان.

۶۶۰: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا يَعْقُوْبُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ اَبِيْ حَازِمٍ قَالَ سَمِعْتُ سَهْلَ بْنَ سَعْدٍ قَالَ جَآءَتِ امْرَأَةٌ بِبُرْدَةٍ قَالَ اَتَدْرُوْنَ مَا الْبُرْدَةُ فَقِيْلَ لَهٗ نَعَمْ هِيَ الشَّمْلَةُ مَنْسُوْجٌ فِيْ حَاشِيَتِهَا قَالَتْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنِّيْ نَسَجْتُ هٰذِهٖ بِيَدِيْ اَكْسُوْكَهَا فَاَخَذَهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُحْتَاجًا اِلَيْهَا فَخَرَجَ اِلَيْنَا وَ اِنَّهَا اِزَارُهٗ فَقَالَ رَجُلٌ مِّنَ الْقَوْمِ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اُكْسُنِيْهَا فَقَالَ نَعَمْ فَجَلَسَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْمَجْلِسِ ثُمَّ رَجَعَ فَطَوَاهَا ثُمَّ اَرْسَلَ بِهَآ اِلَيْهِ فَقَالَ لَهُ الْقَوْمُ مَا اَحْسَنْتَ سَاَلْتَهَا اِيَّاهُ لَقَدْ عَلِمْتَ اَنَّهٗ لَا يَرُدُّ سَآئِلًا فَقَالَ الرَّجُلُ وَاللّٰهِ مَا سَاَلْتُهٗ

۶۶۰: یحیٰي بن بکیر. یعقوب بن عبدالرحمن. ابو حازم. سهل بن سعد نه روایت کوي' چه یوے ښځے یو برده راوړه. سهل اووے تاسو ته معلومه ده' چه برده څهٔ خیز دے. جواب ورکړے شو. او' یو څادر دے' چه ذ هغے حاشیے جوړوے شوے وي. هغے عرض اوکهٔ' یا رسول اللّٰه دا ما خپل لاس سره جوړ کړے دے' چه تاسو ته ئے واغندوم. نبي صلے اللّٰه علیه وسلّم هغه واخستلو. او هغه وخت حضور صلے اللّٰه علیه وسلّم ته ضرورت هم وو. نبي صلے اللّٰه علیه وسلّم هغه راواخست. بیا مونږ پله راغے. هغه څادر ذ حضور صلے اللّٰه علیه وسلّم ته بند وو. جماعت نه یو سړي عرض اوکهٔ' یا رسول اللّٰه' دا څادر ماته راکړئے. نو حضور صلے اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل' ښهٔ ده نبي صلے اللّٰه علیه وسلّم هغے مجلس کښې لږ ساعت کیناست. بیا دننه لاړلو. او هغه څادر' ئے اونغښت او هغے سړي ته ئے راولیږلو. خلقو هغهٔ ته اووے تا ښهٔ اونکړل. چه تا ترے څادر اوغوښتلو. تاته معلومه ده' چه حضور صلے اللّٰه علیه وسلّم یو سوالکړے نهٔ ردکوي. هغهٔ جواب ورکهٔ. په په خدائے چه' ما خو صرف دے ذ پاره اوغوښتلو' چه کله زهٔ

لِتَكُوْنَ كَفَنِيْ يَوْمَ اَمُوْتُ قَالَ سَهْلٌ فَكَانَتْ كَفَنَهٗ.

مرشم. نو چه خما کفن شي. د سهل بیان دے چه هغه څادر ذ هغهٔ کفن شولو.

## بَابٌ ۴۲۸: النَّجَّارِ.

## باب ۴۲۸: دَ ترکانړ بیان.

۱۱۶۱: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ عَنْ اَبِيْ حَازِمٍ قَالَ اَتٰى رِجَالٌ اِلٰى سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ يَسْأَلُوْنَهٗ عَنِ الْمِنْبَرِ فَقَالَ بَعَثَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِلٰى فُلَانَةَ امْرَاَةٍ قَدْ سَمَّاهَا سَهْلٌ اَنْ مُرِيْ غُلَامَكِ النَّجَّارَ يَعْمَلْ لِيَ اَعْوَادًا اَجْلِسُ عَلَيْهِنَّ اِذَا كَلَّمْتُ النَّاسَ فَاَمَرَتْهُ يَعْمَلُهَا مِنْ طَرْفَاءِ الْغَابَةِ ثُمَّ جَاءَ بِهَا فَاَرْسَلَتْ اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِهَا فَاَمَرَ بِهَا فَوُضِعَتْ فَجَلَسَ عَلَيْهِ.

۱۱۶۱: قتیبه بن سعید. عبدالعزیز ابو حازم نه روایت کوي. ځینې خلق سهل بن سعد د منبر متعلق د تپوس کولو ذ پاره جمع شو. نو هغهٔ اووے. چه رسول الله صلے الله علیه وسلّم، فلانئے ښځے ته چه ذ هغے نوم سهل آخستے وو، خبر اولیږلو، چه خپل ترکانړ هلک له حکم ورکړي، چه څو لرګي یو ځائے کړي، چه زهٔ په هغے کینم، کوم وخت چه خلقو سره خبرے کوم. هغے ښځے هغے هلک ته حکم ورکړلو، چه ذ غابه ذ جهاؤ (غز. یا ذ غز په شان یوے اُونے) نه منبر جوړ کړي. هغه چه ئے تیار کهٔ، راوئے ړلو، نو هغے ښځے رسول الله صلے الله علیه وسلّم ته اولیږلو. حضور صلے الله علیه وسلّم ذ هغے حکم ورکړلو، نو هغه کیښودے شو. او حضور صلے الله علیه وسلّم په هغے کیناست.

۱۱۶۲: حَدَّثَنَا خَلَّادُ بْنُ يَحْيٰى حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ بْنُ اَيْمَنَ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ اَنَّ امْرَاَةً مِّنَ الْاَنْصَارِ قَالَتْ لِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَلَا اَجْعَلُ لَكَ شَيْئًا تَقْعُدُ عَلَيْهِ فَاِنَّ لِيْ غُلَامًا نَجَّارًا قَالَ اِنْ شِئْتِ قَالَ فَعَمِلَتْ لَهُ الْمِنْبَرَ فَلَمَّا كَانَ يَوْمُ الْجُمُعَةِ قَعَدَ النَّبِيُّ

۱۱۶۲: خلاد بن یحیي. عبدالواحد بن ایمن ذ خپل پلار نه، هغه ذ جابر بن عبدالله نه روایت کوي، یوے انصاري ښځے رسول الله صلے الله علیه وسلّم ته عرض اوکهٔ، یا رسول الله، آیا زهٔ تاسو ذ پاره داسے څیز جوړ نهٔ کړم، چه تاسو پرے کینئے، ځما یو هلک ترکانړ دے. حضور صلے الله علیه وسلّم ورته اوفرمائیل، کهٔ ستا خواهش وي (نو جوړ کړه) حضور صلے الله علیه وسلّم ذ پاره منبر تیار کړے شو. ذ جُمعے ورځ چه راغله، نو نبي صلے الله علیه وسلّم په هغے منبر کیناست کوم چه جوړ کړے شوے وے. نو ذ قجورے هغه تنه په چغو شوه،

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى الْمِنْبَرِ الَّذِيْ صُنِعَ فَصَاحَتِ النَّخْلَةُ الَّتِيْ كَانَ يَخْطُبُ عِنْدَهَا حَتّٰى كَادَتْ اَنْ تَنْشَقَّ فَنَزَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتّٰى اَخَذَهَا فَضَمَّهَا اِلَيْهِ فَجَعَلَتْ تَئِنُّ اَنِيْنَ الصَّبِيِّ الَّذِيْ يُسَكَّتُ حَتّٰى اسْتَقَرَّتْ قَالَ بَكَتْ عَلٰى مَا كَانَتْ تَسْمَعُ مِنَ الذِّكْرِ.

چه په هغې به حضور صلے الله علیه وسلّم خطبه ورکوله تر دې چه نزدې وه، چه اوچوي. نو نبي صلے الله علیه وسلّم راکوز شولو. هغه ئې اونیوله، او خپلې سینې مُبارکې سره ئې جختِه کړه. هغه تنه ذ هغې ماشوم بچي په شان په ژړا شوه، چه هغه چپ کولے شي، تر دې چه هغه په قرار شوه. حضور صلے الله علیه وسلّم اوفرمائیل، دا، لرګے په دې وجه په ژړا شو، چه دې سره کوم ذکر کیدلو، هغه ئې آوریدلو.

## باب ۴۲۹: شِرَآءِ الْاِمَامِ الْحَوَآئِجَ بِنَفْسِهٖ

وَ قَالَ ابْنُ عُمَرَؓ اشْتَرَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَمَلًا مِّنْ عُمَرَ وَ قَالَ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ اَبِيْ بَكْرٍ جَآءَ مُشْرِكٌ بِغَنَمٍ فَاشْتَرَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْهُ شَاةً وَّاشْتَرٰى مِنْ جَابِرٍ بَعِيْرًا.

باب ۴۲۹: ذ ضروورت څیزونه خپله ذ اخستلو بیان. او ابن عمرؓ اووې، چه نبي صلے الله علیه وسلّم ذ حضرت عمرؓ نه یو اوښ واخست، او عبدالرحمٰن بن ابي بکر بیان اوکړ چه یو مُشرک چیلئې راوستې، نو نبي صلے الله علیه وسلّم ذ هغه نه یوه چیلۍ واخسته، او جابرؓ نه ئې یو اوښ واخست.

٢٦٣: حَدَّثَنَا يُوْسُفُ بْنُ عِيْسٰى حَدَّثَنَا اَبُوْ مُعٰوِيَةَ حَدَّثَنَا الْاَعْمَشُ عَنْ اِبْرَاهِيْمَ عَنِ الْاَسْوَدِ عَنْ عَآئِشَةَؓ قَالَتِ اشْتَرٰى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ يَّهُوْدِيٍّ طَعَامًا بِنَسِيْئَةٍ وَ رَهَنَهٗ دِرْعَهٗ.

٢٦٣: یُوسف بن عیسي. ابو معاویه. اعمش. ابراهیم. اسود. بي بي عائشےؓ نه روایت کوي ذ هغې بیان دې، چه رسول الله صلے الله علیه وسلّم ذ یو یهودي نه قرض غله واخسته. او خپله زغره ئې ورسره ګانړه کیښوده.

## باب ۴۳۰: شِرَآءِ الدَّوَابِّ وَالْحَمِيْرِ

وَ اِذَا اشْتَرٰى دَآبَّةً اَوْ جَمَلًا وَّهُوَ عَلَيْهِ هَلْ يَكُوْنُ ذٰلِكَ قَبْضًا قَبْلَ اَنْ يَّنْزِلَ وَ قَالَ ابْنُ عُمَرَ قَالَ النَّبِيُّ

باب ۴۳۰: ذ څاروو او خرونو ذ آخستلو بیان. او هر کله چه یو سړې یو څناور یا اوښ واخلي او خرخونکې په هغې سور، وي نو آیا ذ کوزیدونه مخکښې به پرې ذ خریدار قبضه وي. او ذ ابن عمرؓ بیان دې، چه

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِعُمَرَ بِعْنِيهِ يَعْنِيْ جَمَلًا صَعْبًا.

۲۲۴ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ عَنْ وَهْبِ بْنِ كَيْسَانَ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ كُنْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ غَزَاةٍ فَأَبْطَأَ بِيْ جَمَلِيْ وَ أَعْيَا فَأَتٰى عَلَيَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ جَابِرٌ فَقُلْتُ نَعَمْ قَالَ مَا شَأْنُكَ قُلْتُ أَبْطَأَ عَلَيَّ جَمَلِيْ وَ أَعْيَا فَتَخَلَّفْتُ فَنَزَلَ يَمْجُنُهُ بِمِحْجَنَةٍ ثُمَّ قَالَ ارْكَبْ فَرَكِبْتُ فَلَقَدْ رَأَيْتُهُ أَكُفُّهُ عَنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ تَزَوَّجْتَ قُلْتُ نَعَمْ قَالَ بِكْرًا أَمْ ثَيِّبًا قُلْتُ بَلْ ثَيِّبًا قَالَ أَفَلَا جَارِيَةً تُلَاعِبُهَا وَ تُلَاعِبُكَ قُلْتُ إِنَّ لِيْ أَخَوَاتٍ فَأَحْبَبْتُ أَنْ أَتَزَوَّجَ امْرَأَةً تَجْمَعُهُنَّ فَتَمْشُطُهُنَّ وَ تَقُوْمُ عَلَيْهِنَّ قَالَ أَمَا إِنَّكَ قَادِمٌ فَإِذَا قَدِمْتَ فَالْكَيْسَ الْكَيْسَ ثُمَّ قَالَ أَتَبِيْعُ جَمَلَكَ قُلْتُ نَعَمْ فَاشْتَرَاهُ مِنِّيْ بِأُوْقِيَةٍ ثُمَّ قَدِمَ

نبي صلے اللّه علیه وسلّم حضرت عمر ته اوفرمایل: د سرکش اوښ په ما خرڅ کړه.

۲۲۴ : محمّد بن بشار. عبدالوهاب. عبیدالله وهب بن کیسان. جابر بن عبدالله روایت کوي: زهٔ یو جنګ کښې نبي صلے اللّه علیه وسلّم سره ووم. خما اوښ ورستو شو، او ستړے شو. نو نبي صلے اللّه علیه وسلّم ما پله تشریف راوړلو، اووے فرمائیل: جابر نے. ما عرض اوکړ. جي حضور. حضور صلے اللّه علیه وسلّم تپوس اوکړ: څهٔ خبره ده. ما اووے. اوښ مے ورستو شو، او ستړے شو نو زهٔ ورستو پاتے شوم. حضور صلے اللّه علیه وسلّم راکوز شولو، او هغه ئے ډنډے سره اووهلو. بیائے اوفرمائیل، سور شه. زهٔ سور شوم، نو (د هغهٔ د تیزئ په سبب به) ما هغه رسول اللّه صلے اللّه علیه وسلّم سره برابر رسیدونه منع کولو، حضور صلے اللّه علیه وسلّم تپوس اوکړ، آیا تا نکاح کړے ده. ما اووے. او. حضور صلے اللّه علیه وسلّم اوفرمائیل. پیغلے سره یا کونډے سره. ما اووے. کونډے سره. حضور صلے اللّه علیه وسلّم اوفرمائیل، پیغلے سره دے ولے نکاح اونه کړله، چه تهٔ هغے سره لوبیدے، او هغه تاسره لوبیده. ما اووے، خما څو خویندے دي، نو ما اوغوښتل: چه داسے ښځے سره وادهٔ اوکړم. چه هغوئ راغونډے کړي. د هغوئ ګومنز اوکړي او د هغوئ نګراني اوکړي. حضور صلے اللّه علیه وسلّم اوفرمائیل. اوس تهٔ رسیدونکے نے. چه اورسے، نو هوښیارتیا نه کار آخله. بیا ئے اوفرمائیل. آیا خپل اوښ خرڅوے، ما عرض اوکړ، او. نو حضور صلے اللّه علیه وسلّم مانه هغه، د یو، اوقیه چاندي په

رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَبْلِي وَ قَدِمْتُ بِالْغَدَاةِ فَجِئْنَا اِلَى الْمَسْجِدِ فَوَجَدْتُهُ عَلٰى بَابِ الْمَسْجِدِ قَالَ الْاٰنَ قَدِمْتَ قُلْتُ نَعَمْ قَالَ فَدَعْ جَمَلَكَ فَادْخُلْ فَصَلِّ رَكْعَتَيْنِ فَدَخَلْتُ فَصَلَّيْتُ فَاَمَرَ بِلَالًا اَنْ يَّزِنَ لَهٗ اُوْقِيَةً فَوَزَنَ لِيْ بِلَالٌ فَاَرْجَحَ فِي الْمِيْزَانِ فَانْطَلَقْتُ حَتّٰى وَلَّيْتُ فَقَالَ ادْعُ لِيْ جَابِرًا قُلْتُ الْاٰنَ يَرُدُّ عَلَيَّ الْجَمَلَ وَلَمْ يَكُنْ شَيْءٌ اَبْغَضَ اِلَيَّ مِنْهُ قَالَ خُذْ جَمَلَكَ وَلَكَ ثَمَنُهٗ.

عوض کښې واخستو رسول اللّٰه صلے اللّٰه علیه وسلّم خما نه مخکښې اورسیدلو' او زۀ بل صبا اورسیدم. مونږ د جُمات دروازې ته اورسیدو' نو ما نبي صلے اللّٰه علیه وسلّم د جُمات په دروازه اولیدلو. حضور صلے اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل. تۀ اوس راغلې' ما عرض اوکړو. او. حضور صلے اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل. خپل اوښ پریږده دننه لاړ شه' دوه رکعاته مونځ اوکه. زۀ جُمات ته لارم. او مونځ م اوکړو. حضور صلے اللّٰه علیه وسلّم بلالؓ ته حکم ورکړو. چه ما ذ پاره یو اوقیه چاندي اوتلي. نو بلالؓ سر خکته چاندي اوتلله. زۀ واپس شوم' نو حضور صلے اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل ماته جابرؓ راولئې. ما (خپل زړۀ کښې) اووې' حضور صلے اللّٰه علیه وسلّم به هغه اوښ ماته واپس کړي. او ذ دې نه زیات ناګواره هیڅ خیز خما په نزد نۀ وو. حضور صلے اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل. خپل اوښ واخله. او ذدې قیمت هم واخله.

**ف**: صحابه ؤ به زر' هم درانۀ تلل' چه جائې چه غنم' جوار وغیره.

## بَابُ ۱۳۴۱ : اَلْاَسْوَاقِ الَّتِيْ كَانَتْ فِي الْجَاهِلِيَّةِ فَتَبَايَعَ بِهَا النَّاسُ فِي الْاِسْلَامِ.

**باب ۱۳۴۱** : ذ هغې بازارونو بیان' چه ذ جاهلیت په زمانه کښې وو. او ذ' اسلام په زمانه کښې به هم خلقو هلته خریدوفروخت کولو.

۲۶۵ : حَدَّثَنَا عَلِيُّ ابْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيٰنُ عَنْ عَمْرٍو عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍؓ قَالَ كَانَتْ عُكَاظُ وَ مَجَنَّةُ وَ ذُو الْمَجَازِ اَسْوَاقًا فِي الْجَاهِلِيَّةِ فَلَمَّا كَانَ الْاِسْلَامُ تَاَثَّمُوْا مِنَ التِّجَارَةِ فِيْهَا فَاَنْزَلَ اللّٰهُ لَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ فِيْ مَوَاسِمِ الْحَجِّ قَرَاَ ابْنُ عَبَّاسٍؓ كَذَا.

۲۶۵ : علي بن عبداللّٰه. سفیان. عمرو. ابن عباسؓ نه روایت کوي' چه عکاظ. مجنه او ذوالمجاز ذ جاهلیت زمانه کښې بازارونه وو. کوم وخت چه ذ' اسلام زمانه راغله' هلته خرید و فروخت کول خلقو ګناه اوګنړله. نو دا' آیت نازل شو' چه ستاسو ذ پاره ذ حج زمانه کښې خرید و فروخت کښې څۀ ګناه نشته. ذ حضرت ابن عباس به قرات کښې دغسې دي.

**باب ۴۳۲: شِرَآءِ الْإِبِلِ الْهِيْمِ أَوِ الْأَجْرَبِ الْهَآئِمُ الْمُخَالِفُ لِلْقَصْدِ فِيْ كُلِّ شَيْءٍ.**

**باب ۴۳۲:** کوم اوښ ته چه د استسقاء مرض لېږیدلی وي یا د خارښي اوښ د حريد و فروخت بيان د هائم معنی ده هر څيز کښې د ميانه روي خلاف کونکے.

۲۲۶: حَدَّثَنَا عَلِيٌّ حَدَّثَنَا سُفْيٰنُ قَالَ قَالَ عَمْرٌو كَانَ هٰهُنَا رَجُلٌ ـ اسْمُهُ نُوَاسٌ وَكَانَتْ عِنْدَهُ إِبِلٌ هِيْمٌ فَذَهَبَ ابْنُ عُمَرَ فَاشْتَرٰى تِلْكَ الْإِبِلَ مِنْ شَرِيْكٍ لَهُ فَجَآءَ إِلَيْهِ شَرِيْكُهُ فَقَالَ بِعْنَا تِلْكَ الْإِبِلَ فَقَالَ مِمَّنْ بِعْتَهَا قَالَ مِنْ شَيْخٍ كَذَا وَكَذَا فَقَالَ وَيْحَكَ ذَاكَ وَاللّٰهِ ابْنُ عُمَرَ فَجَآءَهُ فَقَالَ إِنَّ شَرِيْكِيْ بَاعَكَ إِبِلًا هِيْمًا وَلَمْ يُعَرِّفْكَ قَالَ فَاسْتَقْهَا قَالَ فَلَمَّا ذَهَبَ يَسْتَاقُهَا فَقَالَ دَعْهَا رَضِيْنَا بِقَضَآءِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا عَدْوٰى سَمِعَ سُفْيَانُ عَمْرًوا.

۲۲۶: علي. سفيان. عمرو بيان کوي. دلته يو سړے وو چه د هغه نوم نواس وو. او هغه سره اوښ وو چه هغه ته د استسقاء مرض وو. ابن عمر لاړ او د هغه د يو شريک نه ئے هغه اوښ واخستل. نو هغه له د هغه هغه شريک راغے. او وے وئيل چه مونږ هغه اوښ خرڅ کړل. هغه ترے تپوس اوکړ په چا مو خرڅ کړ. هغه ورته اووے د فلاني شکل و صورت په يو بوډا مو خرڅ کړے دے. هغه ورته اووے خوار شے په خدائے چه هغه خو ابن عمر وو. بيا ابن عمر له راغے. او وے وئيل چه خما شريک په تاسو يو اوښ خرڅ کړے دے چه هغه ته د استسقاء مرض دے. او هغه تاسو ته (دا عيب) نه دے ښودلے. هغه ورته اووے دا بوځه کوم وخت چه هغه ئے بوتلو نو هغه ورته اووے دا پريږده. مونږ د رسول الله صلى الله عليه وسلم په هغے فيصله راضي يو چه لا عدوي (يعني مرض لګيدل نشته) او سفيان د عمرو نه آوريدلے دي.

**باب ۴۳۳: بَيْعِ السِّلَاحِ فِي الْفِتْنَةِ وَغَيْرِهَا وَكَرِهَ عِمْرَانُ بْنُ حُصَيْنٍ بَيْعَهُ فِي الْفِتْنَةِ.**

**باب ۴۳۳:** د فتنے او فساد وغيره زمانه کښې د وسلو د خرڅولو بيان. او عمران بن حصين د فتنے زمانه کښې د دے خرڅول مکروه ګنړلے دي.

۲۲۷: حَدَّثَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْلَمَةَ عَنْ مَالِكٍ عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيْدٍ عَنِ ابْنِ أَفْلَحَ عَنْ أَبِيْ مُحَمَّدٍ

۲۲۷: عبدالله بن مسلمه. مالک. يحيي بن سعيد. ابن افلح. ابو محمد (د ابو قتاده غلام) ابو قتاده نه روايت کوي د هغه بيان دے چه مونږ

مَوْلَى اَبِيْ قَتَادَةَ عَنْ اَبِيْ قَتَادَةَ قَالَ خَرَجْنَا مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَامَ حُنَيْنٍ فَاَعْطَاهُ يَعْنِيْ دِرْعًا فَبِعْتُ الدِّرْعَ فَابْتَعْتُ بِهٖ مَخْرَفًا فِيْ بَنِيْ سَلِمَةَ فَاِنَّهٗ لَاَوَّلُ مَالٍ تَاَثَّلْتُهٗ فِي الْاِسْلَامِ.

رسول اللّٰه صلے اللّٰه علیه وسلّم سره د حنین په کال اووتلو. حضور صلے اللّٰه علیه وسلّم یوه زغره راکړه. ما هغه خرڅه کړه، او ما د هغې قیمت بدله کښې بني سلمه کښې یو باغ واخستو او دا وړمبنے مال وو، چه ما اسلام کښې حاصل کړے وو.

## باب ۴۳۴: فِي الْعَطَّارِ وَ بَيْعِ الْمِسْكِ.

## باب ۴۳۴: د عطار او مشک خرڅونکي بیان.

۲۶۸: حَدَّثَنِيْ مُوْسَى بْنُ اِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ حَدَّثَنَا اَبُوْ بُرْدَةَ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ سَمِعْتُ اَبَا بُرْدَةَ بْنَ اَبِيْ مُوْسٰى عَنْ اَبِيْهِ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَثَلُ الْجَلِيْسِ الصَّالِحِ وَالْجَلِيْسِ السَّوْءِ كَمَثَلِ صَاحِبِ الْمِسْكِ وَ كِيْرِ الْحَدَّادِ لَا يَعْدَمُكَ مِنْ صَاحِبِ الْمِسْكِ اِمَّا تَشْتَرِيْهِ اَوْ تَجِدُ رِيْحَهٗ وَ كِيْرُ الْحَدَّادِ يُحْرِقُ بَدَنَكَ اَوْ ثَوْبَكَ اَوْ تَجِدُ مِنْهُ رِيْحًا خَبِيْثَةً.

۲۶۸: موسی بن اسمٰعیل. عبدالواحد. ابوبرده بن عبداللّٰه. ابوبرده بن ابي موسیٰ د خپل پلار نه روایت کوي، د هغه بیان دے رسول اللّٰه صلے اللّٰه علیه وسلّم فرمائیلے دي، د ښهٔ او بد ملګري مثال داسے دے، لکه مشک واله او، د لوهارانو بهټئ. نو د مشک واله نه به ته بغیر فائدے نه واپس نهٔ شے، یا خو به هغه نه واخلے، یا به، د هغے بوئ بیا مومے. او د، لوهار بهټئ به ستا جسم یا ستا کپړے اوسوزوي، او یا تهٔ به د هغے بدبوئ، بوئے کړے.

## باب ۴۳۵: ذِكْرِ الْحَجَّامِ.

## باب ۴۳۵: د ښکر لړونکي (حجام) بیان.

۲۶۹: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ حُمَيْدٍ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍؓ قَالَ حَجَمَ اَبُوْ طَيْبَةَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَمَرَ لَهٗ بِصَاعٍ مِّنْ تَمْرٍ وَّ اَمَرَ اَهْلَهٗ اَنْ يُّخَفِّفُوْا مِنْ خَرَاجِهٖ.

۲۶۹: عبداللّٰه بن یوسف. مالک. حمید. انس بن مالکؓ نه روایت کوي. د هغهٔ بیان دے، چه ابو طیبه رسول اللّٰه صلے اللّٰه علیه وسلّم ته ښکر اولړولو، نو حضور صلے اللّٰه علیه سلّم هغهٔ ته د، یو صاع قجورو ورکولو حکم اوکړلو، او خپل عمال ته ئے حکم ورکهٔ چه د هغه په خراج کښې کمي اوکړي.

۱. د خراج نه مراد دلته د زمکے خراج نه دے بلکه کوم مرینے چه مالک ته د خپل گټے نه څه ورکوي هغے ته خراج ویلے شویدي ددے صورت دا وو چه مریي (غلام) به خپل آزاد کاروبار کوؤ. او هغه به خپل مالک ته د ورځ آمدني کښې څه حصه ورکوله. رسول الله صلي الله علیه وسلّم هغه خپل صحابي ته پیغام اولیږه چه د خپل مرني نه چه کومه حصه اخلي، هغے کښې دے کمے او کړي.

۲۰۷۰ : حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا خَالِدٌ هُوَابْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا خَالِدٌ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ احْتَجَمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَعْطَى الَّذِيْ حَجَمَهُ وَلَوْ كَانَ حَرَامًا لَّمْ يُعْطِهٖ.

۲۰۷۰ : مسدد. خالد بن عبداللّه. خالد (حذاء) عکرمه. ابن عباسؓ نه روایت کوي. ذ هغهٔ بیان دے، چه نبي صلے اللّه علیه وسلّم ښکر اولږولو او چا چه ښکر لږولے وو، هغهٔ له ئے مزدوري ورکړه. او که حرام وے، نو هغهٔ له به ئے مزدوري نه ورکوله.

باب ۶۳۴: التِّجَارَةِ فِيْمَا يُكْرَهُ لُبْسُهُ لِلرِّجَالِ وَالنِّسَاءِ.

باب ۶۳۴: ذ هغے څیزونو ذ تجارت بیان چه ذ هغے استعمال نارینه ؤ او زنانه ؤ ذ پاره مکروه دے۱.

۱. د احنافو په نزد د کوم څیز په بیعه د اخستلو دا مطلب دے چه هغه څیز د اخستونکي په ملکیت کښې راغے. اوس دا خبره، چه په بیعه د اخستلو نه روستو، د هغه څیز استعمال روا یا ناروا دے دا د اخستلو د خرخولو د بحث نه بهر دے. ددے اصولو په رڼا کښې که چرے داسے کپړا یاجامے واخستے چه د هغے استعمال نارینه له ناروا دے نو دا په بیعه اخستل روا دي. دا بحث جدا دے چه د هغے آغوستل روا یا ناروا دي. دا خو به خریدار گوري. چه پخپله د دغه څیز استعمال دهٔ لره روا دے یا ناروا. ممکنه ده. چه دغه خریدار ریښمینه کپړا یا جامے د لونړو یا د ښځو د پاره په بیعه اخلي. یائے څه بل ضرورت وي. ددے تفصیلات مخکښې راغلي.

۲۰۷۱ : حَدَّثَنَا اٰدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا اَبُوْ بَكْرِ بْنُ حَفْصٍ عَنْ سَالِمِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ اَرْسَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِلٰى عُمَرَ بِحُلَّةِ حَرِيْرٍ اَوْ سِيَرَآءَ فَرَاٰهَا عَلَيْهِ فَقَالَ اِنِّيْ لَمْ اُرْسِلْ بِهَا اِلَيْكَ لِتَلْبَسَهَا اِنَّمَا يَلْبَسُهَا مَنْ لَّا خَلَاقَ لَهٗ اِنَّمَا بَعَثْتُ

۲۰۷۱ : آدم. شعبه. ابوبکر بن حفص. سالم بن عبداللّه بن عمر ذ خپل پلار نه روایت کوي. ذ هغهٔ بیان دے، چه نبي صلے اللّه علیه وسلّم حضرت عمرؓ ته یوه ریښمینه جوړه اولیږله. حضور صلے اللّه علیه وسلّم، حضرت عمرؓ اولید، چه هغه ئے اغستے وه، نو حضور صلے اللّه علیه وسلّم ورته اوفرمائیل، چه ما ستا ذ استعمال ذ پاره نهٔ وه درلیږلے، دا هغه سړے اُغندي، چه ذ هغهٔ (آخرت کښې) څهٔ حصّه نهٔ وي. ما خو صرف دے ذ پاره درلیږلے وه، چه دا خرڅه کړه او فائده ترے

اِلَيْكَ لِتَسْتَمْتِعَ بِهَا يَعْنِيْ تَبِيْعُهَا.

واخله.

۲۷۲: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ نَافِعٍ عَنِ الْقَاسِمِ بْنِ مُحَمَّدٍ عَنْ عَائِشَةَ اُمِّ الْمُؤْمِنِيْنَ اَنَّهَا اَخْبَرَتْهُ اَنَّهَا اشْتَرَتْ نُمْرُقَةً فِيْهَا تَصَاوِيْرُ فَلَمَّا رَاٰهَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَامَ عَلَى الْبَابِ فَلَمْ يَدْخُلْهُ فَعَرَفْتُ فِيْ وَجْهِهِ الْكَرَاهِيَةَ فَقُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَتُوْبُ اِلَى اللّٰهِ وَ اِلٰى رَسُوْلِهٖ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا اَذْنَبْتُ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا بَالُ هٰذِهِ النُّمْرُقَةِ قُلْتُ اشْتَرَيْتُهَا لَكَ لِتَقْعُدَ عَلَيْهَا وَ تَوَسَّدَهَا فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّ اَصْحَابَ هٰذِهِ الصُّوَرِ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ يُعَذَّبُوْنَ فَيُقَالُ لَهُمْ اَحْيُوْا مَا خَلَقْتُمْ وَ قَالَ اِنَّ الْبَيْتَ الَّذِيْ فِيْهِ الصُّوَرُ لَا تَدْخُلُهُ الْمَلٰٓئِكَةُ.

۲۷۲: عبداللّٰه بن يوسف. مالک. نافع. قاسم بن محمد. اَمّ المؤمنين بي بي عائشۃ نه روايت كوي. د هغې بيان دے هغې يو تكيه واخسته چه په هغې تصويرونه وو. رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم چه هغه اوليده نو په دروازه اودريدلو. دننه لانه ړلو. ما د حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم په مخ د ناګوارئ (ناخوښيے) اثرات بيامندل. ما عرض اوكه يا رسول اللّٰه زه اللّٰه او د هغه رسول خدمت كښې توبه كوم. ما كوم قصور كړے دے. رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل. دا تكيه څنګه ده. ما عرض اوكه دا ما اخستے ده د پاره د دے چه تاسو پرے كينيے او تكيه ورسره اولږوئے. رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل. ددے تصويرونو جوړونكي به د قيامت په ورځ عذاب كښې آخته كولے شي. او هغوئ ته به وئيلے شي چه څه تاسو جوړ كړے دي هغې كښې ساه واچوئے. او وے فرمائيل چه كوم كور كښې تصويرونه دي هلته فريښتے نه داخليږي.

## بَابٌ ۴۳۷: صَاحِبُ السِّلْعَةِ اَحَقُّ بِالسَّوْمِ.

## باب ۴۳۷: د مال مالک د قيمت بيانولو زيات مستحق دے.

۲۷۳: حَدَّثَنَا مُوْسَى ابْنُ اِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ عَنْ اَبِي التَّيَّاحِ عَنْ اَنَسٍ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَا بَنِي النَّجَّارِ ثَامِنُوْنِيْ بِحَآئِطِكُمْ وَ فِيْهِ

۲۷۳: موسي بن اسمٰعيل. عبدالوارث. ابوالتياح. انسؓ نه روايت دے نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل اے بني نجار تاسو د خپل باغ قيمت ماته اوښائے. او هغے كښې څه غير آباد وو او څه حصه كښې قجورے

خربٌ ؤ نخلٌ.

وي.

## باب ۴۳۸: كَمْ يَجُوْزُ الْخِيَارُ.

## باب ۴۳۸: كله پورې د بيع ماتولو اختيار لږ دے.

۱. دلته د اختيار نه مراد: د خرڅولو او په بيعه د اخستلو هغه اختيار دے. چه د هغے په وجه د كوم سامانيا د څه څيز خريدار ته د هغه مال: سامان يا د هغه څيز د واپس كولو يا خرڅونكي ته د هغے د واپس اخستلو اختيار وي. د احنافو په نزد: د تړلو نه په اوله درجه كښې د قبلولو اختيار دے مثلا خرڅونكي يا خريدار ديو څيز قيمت مقرر كړو او بل ئے نه قبلوي نو دا خرڅول يا په بيعه اخستل نه منظوريږي. د دواړو ډيقينو ايجاب و قبول ضروري دے. د ايجاب و قبول نه پس د بعضے امامانو په نزد "خيار مجلس" هم شته دے د هغے مطلب دا دے چه د خرڅونكي او د خريدار د هغے ځائے نه تلل: جدا كيدل ضروري دي كله چه دواړه په هغه ځائے كښې موجود وي چه كوم ځائے كښې خرڅول اغستل شوے وي. نو ددغے "بيعے" د ماتولو اختيار باقي وے. امام بخاري رحمة الله عليه د "خيار" مجلس بحث كول غواړي. چه دا اختيار شته دے. ليكن خومره احاديث چه دے بابونو كښې رازي د هغے په واضح او ښكاره ډول د "خيار مجلس" مسئله نه معلوميږي. كله چه خرڅونكے او اخستونكے (خريدار) په يو نتيجه رضا شو اوس پكښې د تړل متول ګنجائش نشته په حديث شريف د "ما لم يتفرّقا" الفاظ دي د هغے معني دا ده "تر څو چه دواړه جدا شوے نه وي"

د احنافو د طرفه دا جواب دے چه دلته د "تفرّق" (د جدائي مطلب د ايجاب و قبول د الفاظو ختميدل دي. چه دواړه په يوه خبره رضا شي. چه كله ايجاب و قبول ختم شو نو خريدار: او خرڅونكے ديو بل د خبرو نه جدا شو. ددے مطلب دا شو. چه كله بيعه فيصله شوه نو بيا اختيار نشته د فيصلے (ايجاب و قبول) پورے اختيار دے.

۶۷۴: حَدَّثَنَا صَدَقَةُ أَخْبَرَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ قَالَ سَمِعْتُ يَحْيَى قَالَ سَمِعْتُ نَافِعًا عَنِ ابْنِ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّ الْمُتَبَايِعَيْنِ بِالْخِيَارِ فِيْ بَيْعِهِمَا مَالَمْ يَتَفَرَّقَا أَوْ يَكُوْنُ الْبَيْعُ خِيَارًا قَالَ نَافِعٌ وَكَانَ ابْنُ عُمَرَ إِذَا اشْتَرَى شَيْئًا يُعْجِبُهُ فَارَقَ صَاحِبَهُ.

۶۷۴: صدقه. عبدالوهاب. يحيي. نافع. ابن عمرؓ. نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم نه روايت كوي. حضور صلے الله عليه وسلّم اوفرمائيل: چه بائع او مشتري ته بيع كښې هغه وخته پورے اختيار دے: څو پورے چه دواړه جُدا شوے نه وي. يا بيع كښې د: اختيار شرط وي. د نافع بيان دے: چه د: ابن عمر به كله يو څيز خوښ شو: نو د خرڅونكي نه به جدا شولو.

۶۷۵: حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ أَبِي الْخَلِيْلِ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ الْحَارِثِ

۶۷۵: حفص بن عمرو. همام. قتاده. ابوالخليل. عبداللّٰه بن حارث. حكيم بن حزام. نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم نه روايت

عَنْ حَكِيْمِ بْنِ حِزَامٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الْبَيِّعَانِ بِالْخِيَارِ مَالَمْ يَتَفَرَّقَا وَ زَادَ اَحْمَدُ حَدَّثَنَا بَهْزٌ قَالَ قَالَ هَمَّامٌ فَذَكَرْتُ ذٰلِكَ لِاَبِي التَّيَّاحِ فَقَالَ كُنْتُ مَعَ اَبِي الْخَلِيْلِ لَمَّا حَدَّثَهُ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ الْحَارِثِ هٰذَا الْحَدِيْثَ.

كوي' حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم نه روايت كوي' حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل' چه خرخونكي (بائع) او اخستونكي (مشتري) ته اختيار دے' څو پورے چه دواړه جُدا نشي. يا هغوئ كښې يو' بل ته اووائي چه تاته اختيار دے' او كله ئے داسے اوفرمائيل' چه يا' بيع خيار وي.

**باب ۹ ۴۳: اِذَا لَمْ يُوَقِّتْ فِي الْخِيَارِ هَلْ يَجُوْزُ الْبَيْعُ.**

**باب ۹ ۴۳:** كهٔ دَ' اختيار تعيَن اونهٔ كړي' نو آيا بيع جائز ده.

۱۷٦: حَدَّثَنَا اَبُو النُّعْمَانِ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ حَدَّثَنَا اَيُّوْبُ عَنْ نَّافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْبَيِّعَانِ بِالْخِيَارِ مَالَمْ يَتَفَرَّقَا اَوْ يَقُوْلُ اَحَدُهُمَا لِصَاحِبِهٖ اِخْتَرْ وَ رُبَّمَا قَالَ اَوْ يَكُوْنُ بَيْعَ خِيَارٍ.

۱۷٦: ابوالنعمان. حماد بن زيد. ايوب. نافع. ابن عمرؓ نه روايت دے' نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل. بائع (خرخونكي) او مشتري (اخستونكي) ته اختيار دے. څو پورے چه دواړه جُدا نشي. يا هغوئ كښې يو' بل ته اووائي چه تاته اختيار دے او كله ئے داسے اوفرمائيل' چه يا' بيع خيار[۱] وي.

۱. ددے حديث شريف دا مطلب دے چه د "مجلس اختيار" د خرخولو اخستلو د فيصلے نه پس هم باقي دے دا اختيار د امام شافعي رحمة اللّٰه عليه په نزد واجب دے او د احنافو په نزد مستحب دے ليكن كه چرے خريدار يا خرخونكے د بيعے په وخت كښې په هغه مجلس كښې اووائي چه خبره ختمه كړه. او معامله اوشوه. نو بيا "اختيار مجلس' دے خبرے سره ختم شو. او شوافع هم دا مني. دلته كښې د حديث شريف پوره بله جمله هم ده. "كه چرے په بيعه كښې د اختيار شرط كيخودلے شي. نو بيا به هغه بيعه د هغے شرط د خيال ساتلو سره صحيح وي.

**باب ۴۴۰: اَلْبَيِّعَانِ بِالْخِيَارِ مَالَمْ يَتَفَرَّقَا وَ بِهٖ قَالَ ابْنُ عُمَرَ وَ شُرَيْحٌ وَّالشَّعْبِيُّ وَ طَاؤُسٌ وَّ عَطَاءٌ وَّابْنُ اَبِيْ مُلَيْكَةَ.**

**باب ۴۴۰:** خرخونكي او اخستونكي ته اختيار دے' څو پورے چه دواړه جُدا نشي. ابن عمرؓ. شريح. شعبي. طاؤس. عطاء او ابن ابي مليكه دَ دے قائل دي.

۱۷۷: حَدَّثَنِيْ اِسْحٰقُ اَخْبَرَنَا

۱۷۷: اسحٰق. حبان. شعبه. قتاده.

حَبَّانُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ قَتَادَةُ اَخْبَرَنِيْ عَنْ صَالِحٍ اَبِي الْخَلِيْلِ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ الْحَارِثِ قَالَ سَمِعْتُ حَكِيْمَ بْنَ حِزَامٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الْبَيِّعَانِ بِالْخِيَارِ مَالَمْ يَتَفَرَّقَا فَاِنْ صَدَقَا وَ بَيَّنَا بُوْرِكَ لَهُمَا فِيْ بَيْعِهِمَا وَ اِنْ كَذَبَا وَ كَتَمَا مُحِقَتْ بَرَكَةُ بَيْعِهِمَا.

صالح. ابوالخليل. عبدالله بن حارث. حكيم بن حزام. نبي صلے الله عليه وسلّم نه روايت كوي، حضور صلے الله عليه وسلّم اوفرمائيل: خرڅونكي او اخستونكي ته اختيار دے، ځو پورے چه دواړه جُدا نشي. كۀ دواړه ريښتنے وي، او، صاف صاف دواړه بيان اوكړي، نو ذ هغے دواړو په بيع كښ به بركت وي. او كۀ دواړه دروغجن وي، نو ذ، دواړو ذ بيع نه به بركت لاړ شي.

٦٧٨: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ نَافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اَلْمُتَبَايِعَانِ كُلُّ وَاحِدٍ مِّنْهُمَا بِالْخِيَارِ عَلٰى صَاحِبِهٖ مَالَمْ يَتَفَرَّقَا اِلَّا بَيْعَ الْخِيَارِ.

٦٧٨: عبدالله بن يوسف. مالك. نافع. حضرت عبدالله بن عمرؓ نه روايت كوي، رسول الله صلے الله عليه وسلّم اوفرمائيل. بائع اومشتري دواړو ته اختيار دے، ځو پورے چه دواړه جُدا شوے نۀ وي، خو، ذا چه ذ، اختيار بيع وي.

باب ١٣٤١: اِذَا خَيَّرَ اَحَدُهُمَا صَاحِبَهٗ بَعْدَ الْبَيْعِ فَقَدْ وَجَبَ الْبَيْعُ.

باب ١٣٤١: هر كله چه بائع او مشتري كښ يو، بل له اختيار وركړي، نو بيع پوره شوه.

٦٧٩: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ عَنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهٗ قَالَ اِذَا تَبَايَعَ الرَّجُلَانِ فَكُلُّ وَاحِدٍ مِّنْهُمَا بِالْخِيَارِ مَا لَمْ يَتَفَرَّقَا وَ كَانَا جَمِيْعًا اَوْ يُخَيِّرُ اَحَدُهُمَا الْاٰخَرَ فَتَبَايَعَا عَلٰى ذٰلِكَ فَقَدْ وَجَبَ الْبَيْعُ وَ اِنْ تَفَرَّقَا بَعْدَ اَنْ يَّتَبَايَعَا وَلَمْ يَتْرُكْ وَاحِدٌ مِّنْهُمَا الْبَيْعَ فَقَدْ وَجَبَ الْبَيْعُ.

٦٧٩: قتيبه. ليث. نافع. ابن عمر. رسول الله صلے الله عليه وسلّم نه روايت كوي حضور صلے الله عليه وسلّم اوفرمائيل، كله چه دوه سړي ذ خريد و فروخت معامله كوي، نو هغے دواړو كښ هر يو ته اختيار دے، ځو پورے چه دواړه يو ځائے وي، او جُدا نشيـٔ. يا هغوئ كښ يو بل له اختيار وركۀ. او په دے شرط ئے ذ بيع معامله اوكړه، نو بيع واجب شوه. او كۀ ذ بيع كولو نه پس ذ يو بل نه جُدا شو. او هغوئ كښ چا ذ بيع انكار اونۀ كۀ، نو بيع اوشوله.

۱. محکښ دا وضاحت شویدے چه د جدا کیدلو مطلب د خرخونکي او خریدار ایجاب و قبول دے لیکن شوافع ددے لفظ "مالم یتفرقا" نه د مجلس اختیار ثابتوي په حقیقت کښ د مجلس اختیار د سره نشته اوله مرحله د "بیعے" قبلول دي. چه کله خریدار یا خرخونکے اواني چه زه دا څیز په دومره قیمت اخلم یا په دومره قیمت ورکوم دویم بنده به هغه قبلوي یا نه؟ که چرے قبول ئے کړو نو بیا د مجلس د اختیار باقي کیدلو مطلب په پوهه کښ نه راځي البته د احنافو په نزد د شرط لګولو اختیار شته. لکه بغیر د لیدلو بر خریدار یو څیز واخستلو نو د لیدلو کتلو نه پس د خریدار دا اختیار شته چه بیعه ماته کړي. یا په هغه څیز کښ څه عیب یا نقصان وو. نو بیا هم په دے صورت کښ بیعه ماتیدے شي.

## بَابٌ ۲۴۴: اِذَا كَانَ الْبَائِعُ بِالْخِيَارِ هَلْ يَجُوزُ الْبَيْعُ.

## باب ۲۴۴: که بائع د پاره اختیار وي نو آیا بیع جائز ده.

۱۸۰: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوسُفَ حَدَّثَنَا سُفْيٰنُ عَنْ عَبْدِ بْنِ دِيْنَارٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ كُلُّ بَيِّعَيْنِ لَا بَيْعَ بَيْنَهُمَا حَتّٰى يَتَفَرَّقَا اِلَّا بَيْعَ الْخِيَارِ.

۱۸۰: محمد بن یوسف. سفیان. عبدالله بن دینار. حضرت ابن عمرؓ. نبي صلے الله علیه وسلم نه روایت کوي. حضور صلے الله علیه وسلم اوفرمائیل: د بائع او مشتري مینځ کښ هیڅ بیع نه کیږي: څو پورے چه دواړه جدا نشي: خو هغه بیع چه هغے کښ خیار وي.

۱۸۱: حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ حَدَّثَنَا حَبَّانُ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ حَدَّثَنَا قَتَادَةُ عَنْ اَبِي الْخَلِيْلِ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ الْحٰرِثِ عَنْ حَكِيْمِ بْنِ حِزَامٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الْبَيِّعَانِ بِالْخِيَارِ مَالَمْ يَتَفَرَّقَا قَالَ هَمَّامٌ وَجَدْتُ فِيْ كِتَابِيْ يَخْتَارُ ثَلٰثَ مِرَارٍ فَاِنْ صَدَقَا وَ بَيَّنَا بُوْرِكَ لَهُمَا فِيْ بَيْعِهِمَا وَ اِنْ كَذَبَا وَ كَتَمَا فَعَسٰى اَنْ يَرْبَحَا رِبْحًا وَ يُمْحَقَا بَرَكَةَ بَيْعِهِمَا قَالَ وَ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ حَدَّثَنَا اَبُو التَّيَّاحِ اَنَّهُ سَمِعَ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ الْحَارِثِ

۱۸۱: اسحق. حبان. همام. ابوالخلیل. عبدالله بن حارث. حکیم بن حزام نه روایت کوي. رسول الله صلے الله علیه وسلم اوفرمائیل: بائع او مشتري ته اختیار دے: څو پورے چه دواړه جُدا نشي. همام اووے: ما خپل کتاب کښ داسے بیامندل: چه درے ځله دے اختیار کړي: که هغه دواړه ریښتنے وي او: صاف صاف بیان او کړي: نو د هغے دواړو بیع کښ به برکت وي. او که دواړه دروغجن وي. او حقه خبره ئے پټه کړه: نو ممکنه ده: چه څه نفع ورته (په ظاهره) اوشي. خو د هغے دواړو نه برکت لاړ شي او حبان بیان او که: چه مونږ ته همام د ابوالتیاح په واسطه بیان او که:

يُحَدِّثُ بِهٰذَا الْحَدِيْثِ عَنْ حَكِيْمِ
ابْنِ حِزَامٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ
عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

**بَابُ ٣٤٣: إِذَا اشْتَرٰى**
شَيْئًا فَوَهَبَ مِنْ سَاعَتِهٖ قَبْلَ
أَنْ يَّتَفَرَّقَا وَلَمْ يُنْكِرِ الْبَائِعُ
عَلَى الْمُشْتَرِيْ أَوِ اشْتَرٰى
عَبْدًا فَأَعْتَقَهٗ وَقَالَ طَاوُسٌ
فِيْمَنْ يَّشْتَرِي السِّلْعَةَ عَلَى
الرِّضَا ثُمَّ بَاعَهَا وَجَبَتْ لَهٗ وَالرِّبْحُ لَهٗ
وَقَالَ الْحُمَيْدِيُّ حَدَّثَنَا سُفْيٰنُ
حَدَّثَنَا عَمْرٌو عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ
كُنَّا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ
عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ سَفَرٍ فَكُنْتُ
عَلٰى بَكْرٍ صَعْبٍ لِّعُمَرَ فَكَانَ
يَغْلِبُنِيْ فَيَتَقَدَّمُ أَمَامَ الْقَوْمِ
فَيَزْجُرُهٗ عُمَرُ وَيَرُدُّهٗ ثُمَّ يَتَقَدَّمُ
فَيَزْجُرُهٗ عُمَرُ وَيَرُدُّهٗ فَقَالَ النَّبِيُّ
صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِعُمَرَ بِعْنِيْهِ
قَالَ هُوَ لَكَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ بِعْنِيْهِ
فَبَاعَهٗ مِنْ رَّسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ
عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ
عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هُوَ لَكَ يَا عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ
عُمَرَ تَصْنَعُ بِهٖ مَا شِئْتَ قَالَ أَبُوْ عَبْدِ
اللّٰهِ وَقَالَ اللَّيْثُ حَدَّثَنِيْ عَبْدُ
الرَّحْمٰنِ بْنُ خَالِدٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ

چه هغه دا حديث د عبدالله بن حارث نه واوريدلو او
هغه د حكيم بن حزام نه او هغه د نبي صلى الله عليه
وسلم نه روايت اوكړلو.

**باب ٣٤٣:** هر كله چه يو څيز واخلي او د جدا
كيدو نه مخكښ هغه وخت ئې چاته هبه كړي. او بائع د
مشتري نه انكار اونه كړي. يا يو غلام ئې واخستو او هغه
ئې آزاد كړه. او د هغې سړي متعلق چه رضا مندي سره
څه سامان واخلي بيا هغه خرڅ كړي طاؤس اووې چه
بيع واجب شوه. او نفع به خريدار ته رسي. او حميدي
اووې ماته سفيان بيان اوكړ هغه ته عمرو او هغه د ابن
عمرؓ نه روايت اوكړ چه مونږ نبي صلى الله عليه وسلم
سره يو سفر كښ وو. زه د حضرت عمرؓ په يو تند خويه
اوښ سور ووم هغه به په مونږ غالب راته. او د جماعت
نه به مخكښ كيدۀ. حضرت عمرؓ به هغه را منع كولو او
په ورستو كولو به ئې. بيا به هغه مخكښ كيدلو. نو
حضرت عمرؓ به هغه وهلو. او ورستو كولو به ئې. نبي
صلى الله عليه وسلم عمرؓ ته اوفرمائيل چه دا په ما خرڅ
كړه. حضرت عمرؓ عرض اوكړ يا رسول الله دا ستاسو
دې. حضور صلى الله عليه وسلم ورته اوفرمائيل. په ما
ئې خرڅ كړه. هغه ئې په نبي صلى الله عليه وسلم خرڅ
كړلو. نو نبي صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل اې ابن
عمرؓ دا ستا دې. څه چه غواړې ورسره اوكړه. ابو
عبدالله (بخاري) اووې د ليث بيان دې ماته
عبدالرحمن بن خالد په واسطه د ابن شهاب. سالم بن
عبدالله. عبدالله بن عمر بيان اوكړ عبدالله بن عمرؓ
اووې چه ما په امير المؤمنين حضرت عثمانؓ خپله

سَالِمِ بْنِ عَبْدِاللّٰهِ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ قَالَ بِعْتُ مِنْ اَمِيْرِ الْمُؤْمِنِيْنَ عُثْمَانَ مَالاً بِالْوَادِيْ بِمَالٍ لَهُ بِخَيْبَرَ فَلَمَّا تَبَايَعْنَا رَجَعْتُ عَلٰى عَقِبِيْ حَتّٰى خَرَجْتُ مِنْ بَيْتِهِ خَشْيَةَ اَنْ يُرَآدَّنِي الْبَيْعَ وَ كَانَتِ السُّنَّةُ اَنَّ الْمُتَبَايِعَيْنِ بِالْخِيَارِ حَتّٰى يَتَفَرَّقَا قَالَ عَبْدُ اللّٰهِ فَلَمَّا وَجَبَ بَيْعِيْ وَ بَيْعُهُ رَأَيْتُ اَنِّيْ قَدْ غَبَنْتُهُ بِاَنِّيْ سُقْتُهُ اِلٰى اَرْضِ ثَمُوْدَ بِثَلٰثِ لَيَالٍ وَّ سَاقَنِيْ اِلَى الْمَدِيْنَةِ بِثَلٰثِ لَيَالٍ.

زمکه ذ هغه ذ هغې زمکې په عوض خرڅه کړه، چه خيبر کښې وه. او هر کله چه مونږ دواړو عقد بيع اوکړه، نو زه واپس راغلم، ترديے چه زهٔ ذهغهٔ ذ کور نه راووتلم، ذ ديے ويرے نه چه چرته هغه خما بيع فسخ نهٔ کړي او طريقه دا وه، چه بائع او مشتري ته به اختيار وو، ځو پورے چه دواړه به ذ يو بل نه جُدا شوے نهٔ ووځ. عبداللّٰه بيان اوکړ، کوم وخت چه خما او ذ هغهٔ بيع پوره شوه، نو ما خيال اوکړ، چه حضرت عثمانؓ خساره کښې ديے، ځکه چه ما هغه ذ ثمودو زمکې طرف ته ذ دريے شپو په مسافت ور اوديکلو، او هغهٔ زهٔ مدينې طرف ته ذ دريے شپو په مسافت راوليږلم.

۱. امام بخاري رحمة اللّٰه عليه د "خيار مجلس" په سلسله کښې د شوافعو په مدد کښې لګيا ديے د احنافو د مسلک خلاف ديے ليکن ديے باب نه معلوميږي چه د امام بخاري رحمة اللّٰه عليه په مسلک کښې د شوافعو نه زياته فراخي ده د شوافعو په نزد د "خيار مجلس" د ختميدو دوه صورته دي چه يا خريدار او خرڅونکے د يو بل نه جدا شي يا د خوښولو آخري فيصله اوکړي. دريم صورت نشته ليکن امام بخاري رحمة اللّٰه عليه د "خيار مجلس" د ختميدو دريم صورت بيانوي چه د خرڅونکي په موجودتيا کښې خريدار په اخستلي شوي څيز کښې خپل اختيار نه کار واخست مثلاً هغه څيز ئے چاته اوبخلو يا مريئے (غلام) وو آزاد ئے کړو خرڅونکي ورباندے څه اعتراض اونه کړو نو بياهم "خيار مجلس" ختم شو. په دے مسئله کښې د امام بخاري رحمة اللّٰه عليه مسلک د احنافو او د شوافعو په مينځ کښې ديے.

۱. دا مخکښې بيان تير شويدے چه د احنافو په نزد "خيار مجلس" زيات نه زيات مستحب ديے او دا ښکاره خبره ده چه صحابهٔ کرامو رضي اللّٰه عنهم په عامو حالاتو کښې هم د مستحباتو ډير خيال ساتلو په هغے به ئے داسے عمل کولو لکه چه فرض يا واجب وي د عبداللّٰه بن عمر رضي اللّٰه عنهما عمل پدے موقعه يو ښکاره مثال ديے.

## بَابُ ۴۴۴: مَا يُكْرَهُ مِنَ الْخِدَاعِ فِي الْبَيْعِ.

## باب ۴۴۴: بيع کښې ذ دهوکے ورکولو ذ کراهت بيان.

۷۸۲: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ ابْنِ دِيْنَارٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ اَنَّ

۷۸۲: عبداللّٰه بن يوسف. مالک. عبداللّٰه بن دينار. عبداللّٰه بن عمرؓ نه روايت کوي. يو سړي نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم ته بيان اوکړ، چه هغهٔ له بيع کښې

رَجُلًا ذَكَرَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهُ يُخْدَعُ فِي الْبُيُوْعِ فَقَالَ اِذَا بَايَعْتَ فَقُلْ لَا خِلَابَةَ.

دهوكه وركولے شي' نو حضور صلے الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل' كله چه ته خريد كوے' نو وايه: لا خلابة[۱] (يعني زۀ دے دهوكه نشم).

۱. په دے الفاظو ويلو سره به هغه شنګه د خلقو دهوكے نه بچ شي. علماؤ ددے مختلف توجيهات كړيدي بعض اكابر علماؤ ليكلے دي. چه ددے الفاظو مطلب' خيار شرط دے په دے الفاظو خريدار ته د درے ورځو اختيار وو كه درے ورځو كښ څه فرق پيدا شو. نو خريدار هغه څيز واپس كولے شو.

بَابُ ۴۴۵: مَا ذُكِرَ فِي الْاَسْوَاقِ وَ قَالَ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنِ عَوْفٍ لَمَّا قَدِمْنَا الْمَدِيْنَةَ قُلْتُ هَلْ مِنْ سُوْقٍ فِيْهِ تِجَارَةٌ قَالَ سُوْقُ قَيْنُقَاعَ وَ قَالَ اَنَسٌ قَالَ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ دُلُّوْنِيْ عَلَى السُّوْقِ وَ قَالَ عُمَرُ اَلْهَانِي الصَّفْقُ بِالْاَسْوَاقِ.

باب ۴۴۵: د بازارونو متعلق چه ونيلے شوي دي' د هغے بيان. او عبدالرحمٰن بن عوف بيان اوكۀ' چه كوم وخت مونږ مدينے ته راغلو' نو ما تپوس اوكۀ' دلته څۀ بازار هم شته' چه هلته تجارت كيږي' نو اوونيلے شو. د قينقاع بازار شته. او د انسؓ بيان دے' چه عبدالرحمٰن اووے' ماته بازار اوښائے. او حضرت عمرؓ او فرمائيل' چه زۀ بازار كښ خريد و فروخت غافل كړم.

۲۸۳: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الصَّبَّاحِ حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ ابْنُ زَكَرِيَّآءَ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ سُوْقَةَ عَنْ نَّافِعِ بْنِ جُبَيْرِ ابْنِ مُطْعِمٍ قَالَ حَدَّثَتْنِيْ عَائِشَةُ قَالَتْ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَغْزُوْ جَيْشٌ نِ الْكَعْبَةَ فَاِذَا كَانُوْا بِبَيْدَآءَ مِنَ الْاَرْضِ يُخْسَفُ بِاَوَّلِهِمْ وَ اٰخِرِهِمْ قَالَتْ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ كَيْفَ يُخْسَفُ بِاَوَّلِهِمْ وَ اٰخِرِهِمْ وَ فِيْهِمْ اَسْوَاقُهُمْ وَمَنْ لَّيْسَ مِنْهُمْ قَالَ يُخْسَفُ بِاَوَّلِهِمْ وَ اٰخِرِهِمْ ثُمَّ يُبْعَثُوْنَ عَلٰى نِيَّاتِهِمْ.

۲۸۳: محمّد بن صباح. اسمعيل بن زكريا. محمّد بن سوقه. نافع بنجبير بن مطعم. بي بي عائشےؓ نه روايت كوي' نبي صلے الله عليه وسلّم اوفرمائيل. په كعبه به يو لښكر حمله اوكړي. كوم وخت چه هغوئ بيداء (خر كند ميدان) ته را اورسي' نو د' اول نه آخره پورے ټول به زمكه كښ ور ننيستے شي. د بي بي عائشےؓ بيان دے. ما عرض اوكۀ' يا رسول الله' ولے به هغوی د' ابتدا نه انتها پورے په زمكه ورننيستے شي' هر كله چه هغوئ كښ به بازارونه وي' او هغه خلق به وي' چه د هغوئ نه به نۀ وي. حضور صلے الله عليه وسلّم اوفرمائيل اوّل نه آخره پورے به ورننيستے شي. بيا به هغوئ د هغوئ د نيتونو موافق اوچتولے شي.

۲۸۴: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا

۲۸۴: قتيبه. جرير. اعمش. ابو صالح. حضرت

جَرِيْرٌ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ اَبِيْ صَالِحٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلٰوةُ اَحَدِكُمْ فِيْ جَمَاعَةٍ تَزِيْدُ عَلٰى صَلٰوتِهٖ فِيْ سُوْقِهٖ وَ بَيْتِهٖ بِضْعًا وَّ عِشْرِيْنَ دَرَجَةً وَّ ذٰلِكَ بِاَنَّهٗ اِذَا تَوَضَّاَ فَاَحْسَنَ الْوُضُوْٓءَ ثُمَّ اَتَى الْمَسْجِدَ لَا يُرِيْدُ اِلَّا الصَّلٰوةَ لَا يَنْهَزُهٗ اِلَّا الصَّلٰوةُ لَمْ يَخْطُ خَطْوَةً اِلَّا رُفِعَ لَهٗ بِهَا دَرَجَةٌ اَوْ حُطَّتْ عَنْهُ بِهَا خَطِيْئَةٌ وَّالْمَلٰٓئِكَةُ تُصَلِّيْ عَلٰى اَحَدِكُمْ مَّادَامَ فِيْ مُصَلَّاهُ الَّذِيْ يُصَلِّيْ فِيْهِ اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلَيْهِ اَللّٰهُمَّ ارْحَمْهُ مَالَمْ يُحْدِثْ فِيْهِ مَالَمْ يُؤْذِ فِيْهِ وَ قَالَ اَحَدُكُمْ فِيْ صَلَاةٍ مَّا كَانَتِ الصَّلٰوةُ تَحْبِسُهٗ.

ابوهريرةً نه روايت كوي. د هغهٔ بيان دے، رسول الله صلے الله عليه وسلم اوفرمائيل، تاسو كښې د چا د جماعت مونځ د بازار او كور د مونځ نه شل او څو چنده فضيلت لري. او دا په دے سبب، چه اودس ئے اوكۀ، او ښه اودس ئے اوكۀ. بيا جمات ته صرف د مانځه په اراده راغے. هغه بس مونځ جمات ته په راتلو آماده كوي، نو هغه چه هر قدم اوچتوي، د هغے په ذريعه ئے يوه درجه اوچتيږي، يا، د هغه گناه رژيږي. او فريښتے تاسو كښې هر سړي د پاره دُعائے خير كوي، څو پورے چه هغه د خپل مانځه ځائے كښې وي (فريښتے دا، دُعا كوي) يا الله، په دهٔ رحمت نازل كړے او په دهٔ مهرباني اوكړے او څو پورے چه دے بے اودسه نهٔ وي، چه د هغے نه فريښتو ته تكليف وي، اووے فرمائيل، چه تاسو كښې څوک مونځ ايسار كړي، نو هغه مونځ كښې وي.

۲۸۵ : حَدَّثَنَا اٰدَمُ بْنُ اَبِيْ اِيَاسٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ حُمَيْدِ الطَّوِيْلِ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي السُّوْقِ فَقَالَ رَجُلٌ يَّا اَبَا الْقٰسِمِ فَالْتَفَتَ اِلَيْهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ اِنَّمَا دَعَوْتُ هٰذَا فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَمُّوْا بِاسْمِيْ وَلَا تَكَنَّوْا بِكُنْيَتِيْ.

۲۸۵ : آدم بن ابي اياس. شعبه. حميد طويل. انس بن مالک نه روايت كوي. د هغه بيان دے، رسول الله صلے الله عليه وسلم بازار كښې وو. نو يو سړي اووے. اے ابوالقاسم. نبي صلے الله عليه وسلم هغهٔ طرف ته متوجه شو، نو هغهٔ اووے، ما هغے سړي ته آواز كړے دے، نو نبي صلے الله عليه وسلم اوفرمائيل، خما په نامه، نامه اږدئے، خو خما په كنيت، كنيت مهٔ اږدئے.

۲۸۶ : حَدَّثَنَا مَالِكُ بْنُ اِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ عَنْ

۲۸۶ : حديث. مالک بن اسمعيل. زهير. حميد. انسٌ نه روايت كوي. يو سړي بقيع كښې آواز اوكۀ اے

حُمَيْدٍ عَنْ اَنَسٍؓ دَعَا رَجُلٌ بِالْبَقِيْعِ يَا اَبَا الْقَاسِمِ فَالْتَفَتَ اِلَيْهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ لَمْ اَعْنِكَ قَالَ سَمُّوْا بِاسْمِيْ وَلَا تَكْتَنُوْا بِكُنْيَتِيْ.

ابو القاسم، نو نبي صلی الله علیه وسلم هغه طرف ته متوجه شو. هغه اووې: خما مقصد تاسو ته آواز کول نه وو. نو حضور صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل: خما د نوم په شان نوم اږدئې لیکن خما کنیت (یعني ابو القاسم) مه اږدئې[1].

[1]. د عربو دا عادت وو چه د چا د هغوي په زړه کښې قدر وو لویې به کنړلو نو هغه ته به ئې نوم نه اخستلو بلکه په کنیت به ئې یادوو. لیکن د نبي کریم صلي الله علیه وسلم کنیت د نورو صحابهٔ کرامو رضي الله عنهم وو لیکن د رسول الله صلي الله علیه وسلم پشان د هیچا نوم نه وو پدې وجه رسول الله صلي الله علیه وسلم خلق منعه کړل او اوئې فرمایل: "خما نوم ماته اخلئ او د کنیت ماته ضرورت نشته. دا د یاد ساتلو خبره ده دا یواځې د هغوي د مبارکې زمانې پورې ده. د هغوي د وصال نه پس هغوي په کنیت یادول روا دي. د رسول الله صلي الله علیه وسلم د وصال نه روستو صحابهٔ کرامو رضي الله عنهم اجمعین هغوي د یادولو په وخت د هغوي کنیت وایه. دې باب کښې دا حدیث شریف ذکر شو خکه چه پدې کښې دا واقعه ده چه رسول الله صلي الله علیه وسلم بازار ته تشریف اوړلې وو.

۲۸۷: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيٰنُ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِيْ يَزِيْدَ عَنْ نَافِعِ بْنِ جُبَيْرِ بْنِ مُطْعِمٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ الدَّوْسِيِّ قَالَ خَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ طَائِفَةِ النَّهَارِ لَا يُكَلِّمُنِيْ وَلَا اُكَلِّمُهُ حَتّٰى اَتٰى سُوْقَ بَنِيْ قَيْنُقَاعَ فَجَلَسَ بِفِنَاءِ بَيْتِ فَاطِمَةَ فَقَالَ اَثَمَّ لُكَعُ فَحَبَسَتْهُ شَيْئًا فَظَنَنْتُ اَنَّهَا تُلْبِسُهُ سِخَابًا اَوْ تُغَسِّلُهُ فَجَاءَ يَشْتَدُّ حَتّٰى عَانَقَهُ وَ قَبَّلَهُ وَ قَالَ اللّٰهُمَّ اَحْبِبْهُ وَ اَحِبَّ مَنْ يُحِبُّهُ قَالَ

۲۸۷: علي بن عبدالله. سفیان. عبیدالله بن ابي زید. نافع بن جبیر بن مطعم. ابوهریره دوسي نه روایت دې: چه نبي صلی الله علیه وسلم د ورځې څهٔ حصه کښې اووتلو، نو نه حضور صلی الله علیه وسلم څهٔ خبره اوکړه، اونه ما حضور صلی الله علیه وسلم سره څهٔ خبره اوکړه تردې چه حضور صلی الله علیه وسلم د بني قینقاع بازارته اورسیدلو. بیا ذ بي بي فاطمېؓ د کور په صحن کښې کیناستلو. اووې فرمائیل: آیا دلته بچې شته (یعني حضرت حسنؓ) بي بي فاطمېؓ لږ ساعت حضور صلی الله علیه وسلم ایسار کړلو. ما ګمان اوکهٔ چه شاید: هغه، هغهٔ ته هار په غاړه کوي، یائې لامبوي، نو هغه په منډه راغې، تردې چه حضور صلی الله علیه وسلم هغه غاړې سره اولږولو. اوښکل ئې کړلو. اووې فرمائیل. اې الله، دهٔ سره محبت اوکړې او هغې چا سره

سُفْيٰنُ قَالَ عُبَيْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنِيْ اَنَّهٗ رَاٰى نَافِعَ ابْنَ جُبَيْرٍ اَوْ تَرَ بِرَكْعَةٍ.

محبت او کړے څوک چه دۀ سره محبت کوي. سفيان اووے. دَ عبيداللّٰه بيان دے، چه هغه نافع بن جبير دۀ، وتر، يو رکعت کولو باندے اوليدلو.

۶۸۸: حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ الْمُنْذِرِ حَدَّثَنَا اَبُوْ ضَمْرَةَ حَدَّثَنَا مُوْسٰى عَنْ نَافِعٍ حَدَّثَنَا ابْنُ عُمَرَ اَنَّهُمْ كَانُوْا يَشْتَرُوْنَ الطَّعَامَ مِنَ الرُّكْبَانِ عَلٰى عَهْدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَيَبْعَثُ عَلَيْهِمْ مَنْ يَّمْنَعُهُمْ اَنْ يَّبِيْعُوْهُ حَيْثُ اشْتَرَوْهُ حَتّٰى يَنْقُلُوْهُ حَيْثُ يُبَاعُ الطَّعَامُ قَالَ وَ حَدَّثَنَا ابْنُ عُمَرَؓ قَالَ نَهَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنْ يُّبَاعَ الطَّعَامُ اِذَا اشْتَرَاهُ حَتّٰى يَسْتَوْفِيَهٗ.

۶۸۸: ابراهيم بن منذر. ابو حمزه. موسي. نافع. ابـن عـمرؓ نه روايت کوي، هغه بيان او کۀ، چه مونږ خلقو به دَ سوررو (سوارو) نه دَ نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم زمانه کښې غله اخستله، نو نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم به هغے خلقو ته څوک اوليږلو، چه هغوئ به هغه ځائے دَ غلے خرخولو نه منع کړي، په کوم ځائے چه ئے اخستے دہ، څو پورے چه هغه غله هلته منتقل نشي، کوم ځائے چه غله خرخيږي. او دَ نافع بيان دے، حضرت عمرؓ مونږ ته بيان او کـۀ چـه نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم دَ هغے غلے دَ خرخولو نه منع فرمائيلے دہ، چه هغه ئے اخستے دہ، څو پورے چه هغه په هغے پوره قبضه[۱] اونۀ کړي.

۱. ددے حديث شريف الفاظ په بعضے رواياتو کښې مختلف دي په بعضو کښې. چه کوم ځائے غله واخستلے شوه د هغه ځائے نه بل خواته د اوړلو حکم وو. د بعضے حديثو الفاظ دا دي. چه په يو څيز پوره قبضه نه وي شوي. په هغے کښې د هر قسمه تصرف نه منعه کړيده لکه څنګکه چه د امام بخاري رحمة اللّٰه عليه دے روايت کښې دي. په بعضے روايات کښې صرف د قبضه کولو حکم دے په دے ټولو رواياتو کښې دا يوه خبره شرئ کړه وه "چه د خرخونکي نه څه څيز واخستلے شي هغه ئے جدا کړي" چه هغه د يو ځائينه بل ځائے ته کول وي يا په هغے قبضه کول وي. زمکه چه واخلي د هغے د قبضے به جدا طريقه وي. په روايت کښې دغلے د هغه ځائے نه بل ځائے ته د اوړلو حکم شويدے چه کوم ځائے واخستلے شي هلته ئے خرخول بنه نه بنکاري. هغه ځائے کښې خرخول پکار دي. کوم ځائے چه خرخول اخستل کيږي منډئ وي.

## باب ۴۴۶: كَرَاهِيَةِ السَّخَبِ فِي السُّوْقِ.

## باب ۴۴۶: بازار کښې دَ شور کولو دَ کراهت بيان.

۶۸۹: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سِنَانٍ حَدَّثَنَا فُلَيْحٌ حَدَّثَنَا هِلَالٌ عَنْ عَطَاءِ ابْنِ يَسَارٍ قَالَ لَقِيْتُ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ

۶۸۹: مُحمّد بن سنان. فليح. هلال. عطاء بن يسار نه روايت کوي، چه زۀ عبداللّٰه بن عمرو بن عاص سره يوځائے شوم، او ما اووے ماته دَ رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلّم هغه بيان او کۀ، چه تورات کښې دے. هغة

قُلْتُ اَخْبِرْنِيْ عَنْ صِفَةِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي التَّوْرٰةِ قَالَ اَجَلْ وَاللّٰهِ اِنَّهُ لَمَوْصُوْفٌ فِي التَّوْرٰةِ بِبَعْضِ صِفَتِهِ فِي الْقُرْاٰنِ يٰٓاَيُّهَا النَّبِيُّ اِنَّآ اَرْسَلْنٰكَ شَاهِدًا وَّ مُبَشِّرًا وَّ نَذِيْرًا وَّ حِرْزًا لِّلْاُمِّيِّيْنَ اَنْتَ عَبْدِيْ وَ رَسُوْلِيْ سَمَّيْتُكَ الْمُتَوَكِّلَ لَيْسَ بِفَظٍّ وَّلَا غَلِيْظٍ وَّلَا سَخَّابٍ فِي الْاَسْوَاقِ وَلَا يَدْفَعُ بِالسَّيِّئَةِ السَّيِّئَةَ وَلٰكِنْ يَّعْفُوْ وَ يَغْفِرُ وَلَنْ يَّقْبِضَهُ اللّٰهُ حَتّٰى يُقِيْمَ بِهِ الْمِلَّةَ الْعَوْجَآءَ بِاَنْ يَّقُوْلُوْا لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَ يَفْتَحُ بِهَا اَعْيُنًا عُمْيًا وَّ اٰذَانًا صُمًّا وَ قُلُوْبًا غُلْفًا تَابَعَهُ عَبْدُ الْعَزِيْزِ ابْنُ اَبِيْ سَلَمَةَ عَنْ هِلَالٍ وَّ قَالَ سَعِيْدٌ عَنْ هِلَالٍ عَنْ عَطَآءٍ عَنِ ابْنِ سَلَامٍ غُلْفٌ كُلُّ شَيْءٍ فِيْ غِلَافٍ سَيْفٌ اَغْلَفُ وَ قَوْسٌ غَلْفَآءُ وَ رَجُلٌ اَغْلَفُ اِذَا لَمْ يَكُنْ مَخْتُوْنًا.

اووے' ښه' په خدائے چه' تورات کښې د حضور صلے اللّه عليه وسلّم بعضے صفتونه هغه بيان شوے دي' کوم چه قرآن کښې بيان شوے دي' اے نبي' مونږ نه گواهي کونکے او خوشخبري آوروونکے او ويروونکے' او د اُن پړه خلقو حفاظت کونکے ليږلے نے. نه خما بنده او خما رسول نے ستا نوم مونږ متوکل ايښے دے' نه نه بد خويه نے' نه سنګدله نے او نه بازار کښې شور کونکے نے. او د بدي بدله به بدي سره نه ور کوي' بلکه معاف کوي' او' بښي' او هغه به اللّه تعالی نه پورته کوي' څو پورے چه کوږ مذهب ذ هغهٔ په ذريعه نيغ نه کړي' په دے طور چه خلق لا اله الاّ اللّه وئيل شروع کړي' او په دے ذريعه ړندے سترگے' او کاڼړهٔ غوږونه او غلاف کښې انغښتے زړونه پرانزي[۱]. عبدالعزيز بن ابي سلمه ذ هلال نه ذ دے متابع حديث روايت کړے دے. او ذ سعيد نه په واسطه ذ هلال. عطاء. ابن سلام روايت دے' چه غلف هر هغے څيز ته وائي' چه غلاف کښې وي' سيف اغلف هغے تورے ته او قوس غلفاء هغے لينديے نه وائي' چه خلاف کښې وي. او رجل اغلف هغے سړي ته وائي' چه هغه سُنت شوے نهٔ وي.

۱. دا د غور مقام دے چه حضرت عبداللّه بن عمرو بن العاص رضي اللّه عنهما يو جليل القدر لوئے عالم صحابه وؤ د تورات هم ډير لوئے عالم وؤ. پکښې ماهر وو.

## بَاب۷۴۴: الْكَيْلِ عَلَى الْبَآئِعِ

## باب۷۴۴: ذ ناپ کولو اُجرت په خرڅونکي

وَالْمُعْطِيْ لِقَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى وَ اِذَا كَالُوْهُمْ اَوْ وَّزَنُوْهُمْ يُخْسِرُوْنَ يَعْنِيْ كَالُوْا لَهُمْ وَ وَزَنُوْا لَهُمْ كَقَوْلِهِ يَسْمَعُوْنَكُمْ يَسْمَعُوْنَ لَكُمْ وَ قَالَ

او ور کونکي دے' ځکه چه اللّه تعالٰی اوفرمائيل' هر کله چه هغوئ ته په ناپ يا تول ور کوي' نو کم ور کوي. کالوهم نه مراد دے' هغوئ ذ پاره وزن کوي. ځنگه چه يسمعونکم نه مراد يسمعون لکم

النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اكْتَالُوْا حَتَّى يَسْتَوْفُوْا وَ يُذْكَرُ عَنْ عُثْمٰنَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَهُ اِذَا بِعْتَ فَكِلْ وَ اِذَا ابْتَعْتَ فَاكْتَلْ.

دے. او نبي صلے اللّه عليه وسلم فرمانيلے دي چه پوره طور سره ناپ تول کوئے. او حضرت عثمان نه منقول دي نبي صلے اللّه عليه وسلم هغه ته اوفرمانيل. چه خرڅوے نو ناپ کړه او هر کله چه اخلے نو ناپ کړه.

۲۰۹۰: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ نَافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنِ ابْتَاعَ طَعَامًا فَلَا يَبِيْعُهُ حَتَّى يَسْتَوْفِيَهُ.

۲۰۹۰: عبداللّه بن يوسف. مالک. نافع. عبداللّه بن عمر نه روايت کوي رسول اللّه صلے اللّه عليه وسلم فرمانيلے دي کوم سړي چه غله واخسته نو څو پورے چه په هغے قبضه او نه کړي هغه دے نه خرڅوي.

۲۰۹۱: حَدَّثَنَا عَبْدَانُ اَخْبَرَنَا جَرِيْرٌ عَنْ مُغِيْرَةَ عَنِ الشَّعْبِيِّ عَنْ جَابِرٍ قَالَ تُوُفِّيَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عَمْرِو بْنِ حَرَامٍ وَ عَلَيْهِ دَيْنٌ فَاسْتَعَنْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلٰى غُرَمَآئِهِ اَنْ يَّضَعُوْا مِنْ دَيْنِهِ فَطَلَبَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِلَيْهِمْ فَلَمْ يَفْعَلُوْا فَقَالَ لِيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اذْهَبْ فَصَنِّفْ تَمْرَكَ اَصْنَافًا الْعَجْوَةَ عَلٰى حِدَةٍ ثُمَّ اَرْسِلْ اِلَيَّ فَفَعَلْتُ ثُمَّ اَرْسَلْتُ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَجَلَسَ عَلٰى اَعْلَاهُ اَوْفِيْ وَسَطِهِ ثُمَّ قَالَ كِلْ لِلْقَوْمِ فَكِلْتُهُمْ حَتَّى اَوْفَيْتُهُمُ الَّذِيْ لَهُمْ وَ بَقِيَ تَمْرِيْ

۲۰۹۱: عبداللّه. جرير. مغيره. شعبي. جابر نه روايت کوي. د هغه بيان دے چه عبداللّه بن عمرو بن حزام وفات شو. او په هغه قرض وو. نو ما د نبي صلے اللّه عليه وسلم په ذريعه کوشش اوکړ چه د هغه قرض خواه د هغه په قرض کښ څه کمے اوکړي. نبي صلے اللّه عليه وسلم هغے خلقو ته د دے خواهش ظاهر کړه. ليکن هغے خلقو معاف نه کړ نو ماته نبي صلے اللّه عليه وسلم اوفرمانيل. لاړ شه او خپلے قجورے چانړ کړه عجوه يو طرف ته کړه او عذق زيد بل طرف ته کړه. بيا ما راوبله. زه لاړم دغسے م اوکړل. بيا ما نبي صلے اللّه عليه وسلم راوبللو. حضور صلے اللّه عليه وسلم د هغے د پاسه يا د هغے مينځ کښ کيناستلو. بيائے اوفرمانيل چه ناپ کړه او دے خلقو له ورکړه. نو ما ناپ کول شروع کړل. تردے چه ما د هغے ټولو قرض ادا کړه. او

كَأَنَّهُ لَمْ يَنْقُصْ مِنْهُ شَيْءٌ وَ قَالَ فِرَاسٌ عَنِ الشَّعْبِيِّ حَدَّثَنِي جَابِرٌ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَمَا زَالَ يَكِيلُ لَهُمْ حَتَّى أَدَّاهُ وَ قَالَ هِشَامٌ عَنْ وَهْبٍ عَنْ جَابِرٍ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جُذَّلَهُ فَأَوْفِ لَهُ.

**باب ۴۴۸: مَا يُسْتَحَبُّ مِنَ الْكَيْلِ.**

**۲۹۲**: حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ عَنْ ثَوْرٍ عَنْ خَالِدِ بْنِ مَعْدَانَ عَنِ الْمِقْدَامِ بْنِ مَعْدِيكَرِبَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ كِيلُوا طَعَامَكُمْ يُبَارَكْ لَكُمْ.

**باب ۴۴۹: بَرَكَةِ صَاعِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ مُدِّهِ** فِيهِ عَائِشَةُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

**۲۹۳**: حَدَّثَنَا مُوسَى حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ يَحْيَى عَنْ عَبَّادِ بْنِ تَمِيمٍ الْأَنْصَارِيِّ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ زَيْدٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّ إِبْرَاهِيمَ حَرَّمَ مَكَّةَ وَ دَعَا لَهَا وَ حَرَّمْتُ الْمَدِينَةَ كَمَا حَرَّمَ إِبْرَاهِيمُ مَكَّةَ وَ دَعَوْتُ لَهَا فِي مُدِّهَا وَ

خما قجورې لا باقي وې. ګویا هغې کښې څه کمي رانغله. او فراس د شعبي نه روایت اوکه چه جابر برابر د هغې قرض خواهانو د پاره ناپ کولو. تردې چه قرض ادا کړې شو. او هشام په واسطه د وهب. جابر نه روایت اوکه: چه نبي صلې الله علیه وسلم اوفرمائیل. قجورې او شوکوه. او د قرض خواهانو قرض پوره ادا کړه.

**باب ۴۴۸**: د غلې پیمانه کول مستحب دي.

**۲۹۲**: ابراهیم بن موسی. ولید. ثور. خالد بن معدان. مقدام بن معدیکرب نبي صلې الله علیه وسلم نه روایت کوي. حضور صلې الله علیه وسلم اوفرمائیل. خپله غله پیمانه کوئې. ستاسو د پاره به په کښې برکت وي.

**باب ۴۴۹**: د نبي صلې الله علیه وسلم صاع او مُد کښې د برکت بیان. دې باب کښې د بي بي عائشې حدیث د نبي صلې الله علیه وسلم نه دې.

**۲۹۳**: موسی. وهیب. عمرو بن یحیی. عباد بن تمیم انصاري. عبدالله بن زید. نبي صلې الله علیه وسلم اوفرمائیل. حضرت ابراهیم علیه السلام مکه حرام اوګرځوله او هغې د پاره ئې دُعا اوکړه. او ما مدینه حرام اوګرځوله: څنګه چه ابراهیم علیه السلام مکه حرام ګرځولې ده. او ما د مدینې د صاع او مُد د پاره دُعا اوکړله: څنګه چه

صَاعِهَا مِثْلَ مَا دَعَا اِبْرَاهِيْمُ عَلَيْهِ السَّلَامُ لِمَكَّةَ.

ابراهيم عليه السّلام مکے ذ پاره دُعا کړے ده.

۱۹۴ : حَدَّثَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْلَمَةَ عَنْ مَّالِكٍ عَنْ اِسْحٰقَ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِيْ طَلْحَةَ عَنْ اَنَسِ ابْنِ مَالِكٍ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اللّٰهُمَّ بَارِكْ لَهُمْ فِيْ مِكْيَالِهِمْ وَ بَارِكْ لَهُمْ فِيْ صَاعِهِمْ وَ مُدِّهِمْ يَعْنِيْ اَهْلَ الْمَدِيْنَةِ.

۱۹۴ : عبدالله بن مسلمه. مالک. اسحٰق بن عبدالله بن ابي طلحه. انس بن مالکؓ نه روايت کوي. نبي صلے الله عليه وسلّم اوفرمائيل اے الله ذ دے خلقو (يعني ذ مدينے ذ خلقو) په پيمانو کښې برکت واچوے. او دوئ ذ پاره ذ، دوئ په صاع او مُد کښې برکت کيږدئے ؎۱.

۱. په هغه مبارکه زمانه کښې به دغلے اخستل خرخول په پيمانه کيدل مثلا يوه غټه توکرئ باندے ناپ (اندازه) د کاروبار په سلسله کښې په تللو (تول) سره د خرخولو اخستلو رواج نه وؤ. د اندازه کولو، ناپ کولو د پاره د صاع او ذ مُد پيمانے وے د هغه د برکت د پاره نبي کريم صلي اللّٰه عليه وسلّم دعاګانے هم اوکړے.
(مُدّ: په هغه زمانه کښې د دوو رطل برابر وو تقريباً يو سير' کيلو)

## باب ۴۵۰: مَا يُذْكَرُ فِيْ بَيْعِ الطَّعَامِ وَالْحُكْرَةِ.

باب ۴۵۰: ذ هغے روايتونو بيان، چه ذ غلے خرخولو او احتکار (ذخيره کولو) متعلق نقل دي.

۱۹۵ : حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ ابْنُ اِبْرَاهِيْمَ اَخْبَرَنَا الْوَلِيْدُ بْنُ مُسْلِمٍ عَنِ الْاَوْزَاعِيِّ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ سَالِمٍ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ رَاَيْتُ الَّذِيْنَ يَشْتَرُوْنَ الطَّعَامَ مُجَازَفَةً يُضْرَبُوْنَ عَلٰى عَهْدِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنْ يَّبِيْعُوْهُ حَتّٰى يُؤْوُوْهُ اِلٰى رِحَالِهِمْ.

۱۹۵ : اسحٰق بن ابراهيم. وليد بن مسلم. اوزاعي. زهري. سالم ذ خپل پلار نه روايت کوي ذ هغه بيان دے، ما اوليدل، چه کومو خلقو غله اندازے سره آخستله، ذ رسول الله صلے الله عليه وسلّم زمانه کښې به هغے خلقو له سزا ورکولے شوه، ذ پاره ذدے چه دا خپلو خايونو ته اورسوي او هلته ئے خرڅه کړي.

۱۹۶ : حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ اِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ عَنِ ابْنِ طَاوُسٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍؓ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

۱۹۶ : موسي بن اسمٰعيل. وهيب. ابن طاؤس. طاؤس. ابن عباسؓ نه روايت کوي، رسول الله صلے الله عليه وسلّم ذ دے خبرے نه منع فرمائيلے ده، چه يو سړے قبضه کښې ذ، راوستو نه

نَهٰى اَنْ يَّبِيْعَ الرَّجُلُ طَعَامًا حَتّٰى يَسْتَوْفِيَهٗ قُلْتُ لِابْنِ عَبَّاسٍ كَيْفَ ذَاكَ قَالَ دَرَاهِمُ بِدَرَاهِمَ وَالطَّعَامُ مُرْجًا.

مخکښې غله خرڅه کړي. ما دَ ابن عباسؓ نه تپوس اوکړه. داسې ولې، نو هغه اووے، دا خو دَ درهمونو دَ درهمونو په عوض خرڅول دي. او غله ورستو ورکولے شي.

۲۹۷: حَدَّثَنِيْ اَبُو الْوَلِيْدِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ دِيْنَارٍ قَالَ سَمِعْتُ ابْنَ عُمَرَ يَقُوْلُ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنِ ابْتَاعَ طَعَامًا فَلَا يَبِيْعُهٗ حَتّٰى يَقْبِضَهٗ.

۲۹۷ : ابوالوليد. شعبه. عبدالله بن دينار. حضرت ابن عمرؓ نه روايت كوي. دَ هغهٔ بيان دے، نبي صلے الله عليه وسلّم فرمائيلي دي، چه كوم سړے غله واخلي، نو څو پورے چه په هغې قبضه اونهٔ كړي، هغه دے نهٔ خرڅوي.

۲۹۸: حَدَّثَنَا عَلِيٌّ حَدَّثَنَا سُفْيٰنُ كَانَ عَمْرُو بْنُ دِيْنَارٍ يُحَدِّثُهٗ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ مَالِكِ بْنِ اَوْسٍ اَنَّهٗ قَالَ مَنْ عِنْدَهٗ صَرْفٌ فَقَالَ طَلْحَةُ اَنَا حَتّٰى يَجِيْءَ خَازِنُنَا مِنَ الْغَابَةِ قَالَ سُفْيٰنُ هُوَ الَّذِيْ حَفِظْنَاهُ مِنَ الزُّهْرِيِّ لَيْسَ فِيْهِ زِيَادَةٌ فَقَالَ اَخْبَرَنِيْ مَالِكُ بْنُ اَوْسٍ سَمِعَ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ يُخْبِرُ عَنْ رَّسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الذَّهَبُ بِالذَّهَبِ رِبًا اِلَّا هَاءَ وَهَاءَ وَالْبُرُّ بِالْبُرِّ رِبًا اِلَّا هَاءَ وَهَاءَ وَالتَّمْرُ بِالتَّمْرِ رِبًا اِلَّا هَاءَ وَهَاءَ وَالشَّعِيْرُ بِالشَّعِيْرِ رِبًا اِلَّا هَاءَ وَهَاءَ.

۲۹۸ : علي. سفيان. عمرو بن دينار. زهري. مالک بن اوس نه روايت كوي. هغهٔ اووے څوک سړے شته، چه دَ صرفه (يعني روپيے، اشرفي وغيره) معامله كولے شي. طلحه اووے. زهٔ كولے شم، خو څما خزانچي چه دَ غابه نه راشي. سفيان اووے: دا روايت دَ زهري نه دغسې ماته ياد دے. دے كښ څهٔ زياتے نشته. اووے ونيل چه ماته مالک بن اوس بيان اوكهٔ. هغه دَ حضرت عمرؓ بن خطاب نه واوريدل. هغه دَ رسول الله صلے الله عليه وسلّم نه خبر وركولو، چه حضور صلے الله عليه وسلّم اوفرمائيل. دَ سرو زرو په عوض كښې سرهٔ زر خرڅول سُود دے، خو، دا چه نقد، وي. او دَ غنمو په بدله كښې غنم خرڅول سود دے، خو، دا چه نقد، وي. او دَ قجورو په عوض قجورے خرڅول سود دے، خو، دا چه نقد وي، او دَ وربشو په عوض وربشے خرڅول سود دے. خو، دا چه نقد وي.

**بَابُ ۴۵۱: بَيْعِ الطَّعَامِ قَبْلَ اَنْ يُّقْبَضَ وَبَيْعِ مَا لَيْسَ**

**باب ۴۵۱:** دَ قبضے كولو نه مخكښې دَ غلے خرڅولو بيان. او دَ هغې څيز خرڅول چه سردست

عِنْدَكَ.

موجود نه وي.

۷۹۹: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيٰنُ قَالَ الَّذِيْ حَفِظْنَاهُ مِنْ عَمْرِو بْنِ دِيْنَارٍ سَمِعَ طَاوُسًا يَقُوْلُ سَمِعْتُ ابْنَ عَبَّاسٍ يَقُوْلُ اَمَّا الَّذِيْ نَهٰى عَنْهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَهُوَ الطَّعَامُ اَنْ يُّبَاعَ حَتّٰى يُقْبَضَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ وَّلَا اَحْسِبُ كُلَّ شَيْءٍ اِلَّا مِثْلَهُ.

۷۹۹: علي بن عبدالله. سفیان. عمرو بن دینار. طاؤس روایت کوي. ما د حضرت ابن عباسؓ نه واؤریدل. هغه ونیلې د کوم څیز نه چه حضور صلی الله علیه وسلم منع فرمائیلې ده هغه غله ده چه د قبضې نه مخکښې خرڅه کړې شي. او حضرت ابن عباسؓ اوفرمائیل چه زه ټول څیزونه دغسې گنړم.

۷۰۰: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْلَمَةَ حَدَّثَنَا مَالِكٌ عَنْ نَّافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنِ ابْتَاعَ طَعَامًا فَلَا يَبِيْعُهُ حَتّٰى يَسْتَوْفِيَهُ زَادَ اِسْمٰعِيْلُ مَنِ ابْتَاعَ طَعَامًا فَلَا تَبِيْعُهُ حَتّٰى يَقْبِضَهُ.

۷۰۰: عبدالله بن مسلمه. مالک. نافع. ابن عمرؓ نه روایت دے نبي صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل. کوم سړي چه غله واخیسته نو هغه دے نه خرڅوي، څو پورې چه په هغې قبضه اونه کړي. او اسمعیل دومره زیات بیان اوکه. چه چا غله واخیسته نو هغه دے نه خرڅوي څو پورې چه په هغې قبضه اونه کړي (یستوفیه بدله کښ یقبضه روایت که).

بَابُ ۴۵۲: مَنْ رَّاٰى اِذَا اشْتَرٰى طَعَامًا جِزَافًا اَنْ لَّا يَبِيْعَهُ حَتّٰى يُؤْوِيَهُ اِلٰى رَحْلِهِ وَالْاَدَبِ فِيْ ذٰلِكَ.

باب ۴۵۲: هر کله چه یو سړے غله اندازے سره واخلي. نو د بعضے خلقو خیال دے چه هغه دے نه خرڅوي څو پورې چه خپل ځائے ته ئې اونه رسوي. او په هغې د سزا ورکولو بیان.

۷۰۱: حَدَّثَنَا يَحْيَى ابْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ يُّوْنُسَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ سَالِمُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ اَنَّ ابْنَ عُمَرَ قَالَ لَقَدْ رَاَيْتُ النَّاسَ فِيْ عَهْدِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَبَايَعُوْنَ جِزَافًا

۷۰۱: یحیی بن بکیر. لیث. ابن شهاب. سالم بن عبدالله ابن عمرؓ نه روایت کوي. د هغه بیان دے ما خلق د رسول الله صلی الله علیه وسلم په زمانه کښ اولیدل، چه اندازے سره به ئې غله اخستله، نو هغوی ته به سزا ورکولے شوه، په دے خبره چه خپل

يَعْنِى الطَّعَامَ يُضْرَبُوْنَ اَنْ يَّبِيْعُوْهُ فِىْ مَكَانِهِمْ حَتّٰى يُؤْوُهُ اِلٰى رِحَالِهِمْ.

خانې ته د رارسولو نه يې مخکښې خرڅه کړي.

**باب ۴۵۳: اِذَا اشْتَرٰى مَتَاعًا اَوْ دَابَّةً فَوَضَعَهُ عِنْدَ الْبَائِعِ اَوْمَاتَ قَبْلَ اَنْ يُّقْبَضَ وَ قَالَ ابْنُ عُمَرَ مَا اَدْرَكَتِ الصَّفْقَةُ حَيًّا مَّجْمُوْعًا فَهُوَ مِنَ الْمُبْتَاعِ.**

**باب ۴۵۳:** هر كله چه څوک سامان يا خناور واخلي او هغه بائع سره پريږدي. يا د قبضې كولو نه مخكښې مړشي. او ابن عمرؓ اوفرمائيل هر كله چه يو ژوندي او هتوش و حواس لرونكي سره معامله اوشي نو هغه خريدار دے.

٢٠٧٠: حَدَّثَنَا فَرْوَةُ بْنُ اَبِى الْمَغْرَآءِ اَخْبَرَنَا عَلِىُّ بْنُ مُسْهِرٍ عَنْ هِشَامٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَآئِشَةَ قَالَتْ لَقَلَّ يَوْمٌ كَانَ يَاْتِىْ عَلَى النَّبِىِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِلَّا يَاْتِىْ فِيْهِ بَيْتَ اَبِىْ بَكْرٍ اَحَدَ طَرَفَىِ النَّهَارِ فَلَمَّا اُذِنَ لَهُ فِى الْخُرُوْجِ اِلَى الْمَدِيْنَةِ لَمْ يَرُعْنَا اِلَّا وَقَدْ اَتَانَا ظُهْرًا فَخُبِّرَ بِهٖ اَبُوْ بَكْرٍ فَقَالَ مَا جَآءَنَا النَّبِىُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِىْ هٰذِهِ السَّاعَةِ اِلَّا لِاَمْرٍ حَدَثَ فَلَمَّا دَخَلَ عَلَيْهِ قَالَ لِاَبِىْ بَكْرٍ اَخْرِجْ مَنْ عِنْدَكَ قَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّمَا هُمَا ابْنَتَاىَ يَعْنِىْ عَآئِشَةَ وَ اَسْمَآءَ قَالَ اَشَعَرْتَ اَنَّهٗ قَدْ اُذِنَ لِىْ فِى الْخُرُوْجِ قَالَ الصُّحْبَةَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ الصُّحْبَةَ قَالَ يَا

٢٠٧٠: فروه بن ابي المغراء. علي بن مسهر. هشام د خپل پلار نه او هغه د بي بي عائشې نه روايت كوي. ډيره كمه ورځ به داسې وه چه سحر مابنام به رسول الله صلى الله عليه وسلم د حضرت ابوبكرؓ كورته تشريف نه راوړلو. كوم وخت چه حضور صلى الله عليه وسلم ته مدينې ته د هجرت حكم اوشو. نو د ماسپخين په وخت د حضور صلى الله عليه وسلم د تشريف آوري په وجه خمونږ زړه كښې خوف پيدا شو. حضرت ابوبكرؓ ته ددې خبر وركړے شو. نو وې وئيل چه دې وخت كښې څه نوې خبره پيښه شوې ده خكه خو حضور صلى الله عليه وسلم تشريف راوړلے دے. كوم وخت چه حضور صلى الله عليه وسلم حضرت ابوبكرؓ ته رااورسيد نو هغه ته يې اوفرمائيل كوم خلق چه تاسره دي هغوئ لرې كړه. ابوبكرؓ عرض اوكړ يا رسول الله دا دواړه خما لونړه عائشهؓ او اسماءؓ دي. حضور صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل آيا تاته معلومه ده چه ماته د هجرت حكم اوشولو ابوبكرؓ عرض اوكړ يا رسول الله آيا زۀ به هم درسرې يم. حضور صلى الله عليه وسلم ورته اوفرمائيل تۀ به هم راسرې يې. ابوبكرؓ عرض

رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّ عِنْدِيْ نَاقَتَيْنِ اَعْدَدْتُهُمَا لِلْخُرُوْجِ فَخُذْ اِحْدٰهُمَا قَالَ قَدْ اَخَذْتُهَا بِالثَّمَنِ.

او کهٔ، یا رسول الله ما سره دوه اوښے دي. چه ما سفر د پاره تیارے کړے دي. نو دے کښې یوه تاسو واخلئ. حضور ورته اوفرمائیل. ما دا، دَ قیمت په عوض واخسته.

## باب ۴۵۴: لَا يَبِيْعُ عَلٰى بَيْعِ اَخِيْهِ وَلَا يَسُوْمُ عَلٰى سَوْمِ اَخِيْهِ حَتّٰى يَأْذَنَ لَهٗ اَوْ يَتْرُكَ.

## باب ۴۵۴: دَ خپل ورور په بیع دے بیع نهٔ کوي. او نه دے دَ خپل ورور په نرخ نرخ کوي، څو پورے چه هغه اجازت ورنهٔ کړي، یا پریږدي ئې[۱].

۱. ددے باب سرلیک کښې دوه جملے دي یوه جمله کښې د خرڅونکو د پاره هدایت دے او بله جمله کښې خریدارانو ته رهنمائي ده. مثلاً دوه کسان دي یو خرڅونکے او بل خریدار دے هغوي دواړه خپله کښې د خرڅ معامله شروع کړے ده هغه خرڅونکے چه کوم څیز خرڅوي هغه بل خرڅونکي سره هم وي هغه دا غواړي چه دهغه مال خرڅ شي هغه بل خرڅونکے خریدار پسے راشي ورته اوائي او چه دا څیز ماسره شته دے څما نه ئے په کم قیمت واخله" په دے کښې هغه اولني خرڅونکي ته تاوان او نقصان دے په دے وجه شریعت دا کار منعه کړو. چه کله دوه کسان خرڅولو اخستلو کښې لګیا وي. نو دریم دے په کښې بے ځایه نه رادانګي.

د دویمے جملے مثال دا دے مثلاً یو خریدار یو څیز په بیعه اخستلو، د خرڅونکي سره هغهٔ قیمت په حقله خبرے کولے یو دریم بنده اولیدل چه دا څیز خو د هغه پکار دے دا دریم بنده اوائي "چه دا څیز په ما خرڅ کړه. زهٔ به زیات قیمت درکړم" د دے نه هم شریعت منعه اوکړه. چه کله ستا رور په قیمت سره څه څیز اخلي او د خرڅونکي سره د قیمت په حقله خبرے کوي نو د دریم کړي د پاره دا مناسب ندي چه هغه په مینځ کښې بے ځایه راشي. او معامله خرابه کړي که چرے هغه خریدار ترے روستو شي بیعه پریږدي. نو بیا که وررزي نو څه ګناه پکښې نشته.

۲۰۴۳: حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنْ نَافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا يَبِيْعُ بَعْضُكُمْ عَلٰى بَيْعِ اَخِيْهِ.

۲۰۴۳: اسمٰعیل. مالک. نافع. عبدالله بن عمرؓ نه روایت کوي. رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل، تاسو کښې دے څوک دَ خپل ورور په بیع، بیع نهٔ کوي.

۲۰۴۴: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا الزُّهْرِيُّ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ عَنْ اَبِيْ

۲۰۴۴: علي بن عبدالله. سفیان. زهري. سعید بن مسیب. حضرت ابوهریرهٔ نه روایت کوي. رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل، چه ښهري دے دَ بانډه

هُرَيْرَةَ قَالَ نَهٰى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنْ يَّبِيْعَ حَاضِرٌ لِّبَادٍ وَلَا تَنَاجَشُوْا وَلَا يَبِيْعُ الرَّجُلُ عَلٰى بَيْعِ اَخِيْهِ وَلَا يَخْطُبُ عَلٰى خِطْبَةِ اَخِيْهِ وَلَا تَسْأَلُ الْمَرْأَةُ طَلَاقَ اُخْتِهَا لِتَكْفَأَ مَا فِيْ اِنَائِهَا.

چې په لاس نهٔ خرڅوي۱. او خپلو کښې نجش مهٔ کوے (يعنې خامخا قيمت زياتول، حالانکه دَ هغے آخستل منظور نهٔ وي) اونه دے يو سړے دَ خپل ورور په بيع، بيع کوي. او نه دے دَ خپل ورور دَ نکاح په پيغام، پيغام ليږي. او نه دے يوه ښځه دَ خپلې خور طلاقول کوي، دَ پاره دَ دے چه څهٔ دَ هغے حصه ده. خپله هغه حاصله کړي.

۱. د کلو (د باندو) خلق د ښهر دبازارونو د قيمت او دنرخ د ښکته پورته کيدونه ډير کم خبر دي. د خپل مالونه او سامان د لرو لرو علاقونه ښهرته راوړي اوچه خرڅ ئے کړي بيا واپس خي. په عربستان کښې به داسے کيدل او په هر يو داسے ملک کښې به کيدل چرته چه سرمايه دارانه نظام به وو. چه د باندو او د کلو خلقو به ښهر ته د خرڅولو د پاره سامانونه راوړل چه کله به څه سامان د خرڅ نه پاتے شو نو د ښهر چالاک دوکاندار به ورته دا اويل "سامان ماسره کيږده په مناسب قيمت به ئے خرڅ کړم او قيمت به ئے تاته درکړم" نو چه کله به نرخ ګران شو نو هغه به هغه سامان خرڅ کړو، په دے طريقو به عامو خريدارو ته نقصان اورسيدلو. په دے وجه شريعت ددے نه منعه وکړه چه د کلو د باندو خلقچه کوم سامان خرڅ له راوړي. د هغے نفعه او فائده دے يو سړے وانخلي بلکے ټول عوام دے ترے فائده واخلي الله تعالٰي دا غواړي چه بازار کښې دے خلق مالونه، نه ذخيره کوي او د نرخ د زياتيدو نفعه او د کمي نقصان دے يو بنده نه، برداشت کوي.

بَابٌ ۴۵۵: بَيْعِ الْمُزَايَدَةِ وَ قَالَ عَطَاءٌ اَدْرَكْتُ النَّاسَ لَا يَرَوْنَ بَأْسًا بِبَيْعِ الْمَغَانِمِ فِيْمَنْ يَّزِيْدُ.

باب ۴۵۵: دَ نيلام دَ بيع بيان. او عطاء اووے، ما خلق اوليدل، چه مال غنيمت نيلام کولو کښې ئے څهٔ حرج نهٔ ګنړلو.

۲۰۵: حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ مُحَمَّدٍ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا الْحُسَيْنُ الْمُكْتِبُ عَنْ عَطَاءِ بْنِ اَبِيْ رِبَاحٍ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ اَنَّ رَجُلًا اَعْتَقَ غُلَامًا لَّهٗ عَنْ دُبُرٍ فَاحْتَاجَ فَاَخَذَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ مَنْ يَّشْتَرِيْهِ مِنِّيْ فَاشْتَرَاهُ نُعَيْمُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ بِكَذَا وَ كَذَا فَدَفَعَهٗ اِلَيْهِ.

۲۰۵: بشر بن محمّد. عبدالله. حسين مکتب. عطاء بن ابي رباح. جابر بن عبدالله نه روايت کوي، يو سړي خپل غلام په دے طور آزاد کهٔ، چه څما دَ مرګ نه پس آزاد دے. ليکن هغه نادار شو. نو هغه نبي صلے الله عليه وسلّم واخستو. اووے فرمائيل، دے مانه څوک آخلي نعيم بن عبدالله دَ، دومره دومره روپو په عوض واخست. نو حضور صلے الله عليه وسلّم دَ هغهٔ قيمت دَ هغهٔ مالک۱ ته ورکهٔ.

۱. دے حديث شريف کښې د کوم شرط سره د غلام (دمرني) د آزادولو د پاره ويلے وُو شريعت کښې

داسے مرنے ته مُدبّر ویلے شي. شوافع دا حدیث شریف خان له دلیل جوړوي چه د مُدبّر خرخول روا دي. احناف وائي چه دغه مرنے عامِ مدبر نه وو لیکن دے مدبر سره دا شرط لګولے شوے وو که چرے مالک محتاجه شو بیائے خرخولے شي. دا مُدبّر مُقیّد وو شرط ورسره وو خکه نے خرخول روا وو. او رسول الله صلے الله علیه وسلم خرڅ کړو.

باب ۴۵۶: النَّجْشِ وَمَنْ قَالَ لَا يَجُوْزُ ذَالِكَ الْبَيْعُ وَ قَالَ ابْنُ أَبِي أَوْفَى النَّاجِشُ اٰكِلُ رِبًا خَائِنٌ وَهُوَ خِدَاعٌ بَاطِلٌ لَا يَحِلُّ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْخَدِيْعَةُ فِي النَّارِ وَمَنْ عَمِلَ عَمَلًا لَيْسَ عَلَيْهِ اَمْرُنَا فَهُوَ رَدٌّ.

باب ۴۵۶: د نجش بیان او د بعضو خیال دے چه دا بیع جائز نه ده. او ابن ابي اوفي اووے. نجش کونکے سود خور خائن دے. او دا فریب باطل دے. جائز نه دے. نبي صلے اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل. فریب دوزخ ته بوتلونکے دے. او کوم سړي چه هغه کار اوکړ چه د هغے ما حکم نه دے کړے نو هغه مردود دے.

۷۰۶: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْلَمَةَ حَدَّثَنَا مَالِكٌ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ نَهَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ النَّجْشِ.

۷۰۶: عبداللّٰه بن مسلمه. مالک. نافع حضرت عمرؓ نه روایت کوي چه نبي صلے اللّٰه علیه وسلّم د نجش[۱] نه منع فرمائیلے ده.

۱. نجش عربي ژبه کښې ښکار راپارولے ته وائي. دلته یو خاصے شرعي معنی کښې استعمال شویدے. د هغے مطلب دادے چه دوکاندار یو بنده داسے ساتلے وي چه د دوکان نه بهر لږ لرے ولاړ وي. کله چه څوک ګاک (خریدار) راشي دغه سړے راشي. او خریدار چه کوم قیمت وائي هغه بهرنے سړے دهغے څیز د زیات قیمت د اخستلو خوښه څرګنده کړي. او هغه ګاک (خریدار) دهوکه کړي او په زیات قیمت ئے خرڅ کړي دا ډیره لویه دهوکه د خریدار ته ئے پته نه لږي او هغه دهوکه خوړے شي.

باب ۴۵۷: بَيْعِ الْغَرَرِ وَ حَبَلِ الْحَبَلَةِ.

باب ۴۵۷: د دهوکے بیع او د حبله الحبله د بیع بیان.

۷۰۷: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ نَافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ ابْنِ عُمَرَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى عَنْ بَيْعِ حَبَلِ الْحَبَلَةِ وَ كَانَ بَيْعًا يَتَبَايَعُهُ اَهْلُ الْجَاهِلِيَّةِ كَانَ الرَّجُلُ يَبْتَاعُ الْجَزُوْرَ

۷۰۷: عبداللّٰه بن یوسف. مالک. نافع. عبداللّٰه بن عمرؓ نه روایت کوي. رسول اللّٰه صلے اللّٰه علیه وسلّم د حبل الحبله د بیع نه منع فرمائیلے ده. دا یوه بیع وه چه د هغے رواج د جاهلیت په زمانه کښې وو. یو سړي به اوښه په دے شرط آخسته چه د هغے قیمت به هغه وخت ورکوي کوم وخت

اِلٰى اَنْ تُنْتَجَ النَّاقَةُ ثُمَّ تُنْتَجُ الَّتِیْ فِیْ بَطْنِهَا. چه د هغې اوښې بچې پیدا شي. او بیا د هغې بچې بچې پیدا شي.

۱. د جاهلیت په زمانه کښې دا یو طریقه وه چه یو خاروې به ئې بهر راوست. او خلقوته به ئې ویل چه ددې خاروي بچي کله پیدا شي هغه به ستا شي هغه په دومره قیمت واخله. او بعضو به داسې ویل چه ددې خاروي بچي اوشي او د هغې بچې بچي اوشي هغه په دومره قیمت واخله دې ته به هغوي بیع حبل الحبله وې. دا ټولې د دهوکې معاملې وې شریعت منعه کړې.

**باب ۴۵۸: بَيْعِ الْمُلَامَسَةِ وَ قَالَ اَنَسٌ نَّهٰى عَنْهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.**

**باب ۴۵۸:** د بیع ملامسه بیان. او حضرت انسؓ بیان اوکه چه نبي صلی الله علیه وسلم د دې نه منع فرمائیلې ده.

**۷۰۸:** حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ عُفَيْرٍ قَالَ حَدَّثَنِي اللَّيْثُ قَالَ حَدَّثَنِيْ عُقَيْلٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عَامِرُ بْنُ سَعْدٍ اَنَّ اَبَا سَعِيْدٍ اَخْبَرَهُ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهٰى عَنِ الْمُنَابَذَةِ وَهِيَ طَرْحُ الرَّجُلِ ثَوْبَهُ بِالْبَيْعِ اِلَى الرَّجُلِ قَبْلَ اَنْ يُقَلِّبَهُ اَوْ يَنْظُرَ اِلَيْهِ وَ نَهٰى عَنِ الْمُلَامَسَةِ وَالْمُلَامَسَةُ لَمْسُ الثَّوْبِ لَا يَنْظُرُ اِلَيْهِ.

**۷۰۸:** سعید بن عفیر. لیث. عقیل. ابن شهاب. عامر بن سعید. ابو سعید خدريؓ نه روایت کوي چه رسول الله صلی الله علیه وسلم د منابذه نه منع فرمائیلې ده. او منابذه دا ده چه یو سړې بیع کښې چا طرف ته کپړه اوغرځوي قبل د دې نه چه هغه خریدار هغه واړوي راواړوي وې کوري او ملامسه نه ئې منع فرمائیلې ده دا چه د کپړې بغیر لیدو مس کول دي.

**۷۰۹:** حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ حَدَّثَنَا اَيُّوْبُ عَنْ مُحَمَّدٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ نُهِيَ عَنْ لِبْسَتَيْنِ اَنْ يَحْتَبِيَ الرَّجُلُ فِي الثَّوْبِ الْوَاحِدِ ثُمَّ يَرْفَعَهُ عَلٰى مَنْكِبِهِ وَ عَنْ بَيْعَتَيْنِ اللِّمَاسِ وَالنِّبَاذِ.

**۷۰۹:** قتیبه. عبدالوهاب. ایوب. محمد. ابوهریرهؓ نه روایت کوي. د هغهٔ بیان دې. چه دوه قسمه لباس ممنوع دې یو دا چه یو سړې یوه کپړه کښې احتبا اوکړي بیا هغه د اوږې پورې اوچته کړي. او دوه قسمه بیع نه منع شوې ده یو بیع ملامسه او بله بیع منابذه.

**باب ۴۵۹: بَيْعِ الْمُنَابَذَةِ وَ قَالَ اَنَسٌ نَّهٰى عَنْهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.**

**باب ۴۵۹:** د بیع منابذه بیان. او د حضرت انسؓ بیان دې چه نبي صلی الله علیه وسلم ددې نه منع فرمائیلې ده.

۲۰۱۰: حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ يَحْيٰى بْنِ حَبَّانَ وَ عَنْ اَبِي الزِّنَادِ عَنِ الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهٰى عَنِ الْمُلَامَسَةِ وَالْمُنَابَذَةِ.

۲۰۱۰: اسمٰعیل. مالک. محمد بن یحیٰی بن حبان او ابو الزناد. اعرج، حضرت ابوهریرهؓ نه روایت کوي چه رسول اللّٰه صلی اللّٰه علیه وسلم دَ ملامسه او منابذه نه منع فرمائیلے ده.

۲۰۱۱: حَدَّثَنَا عَيَّاشُ بْنُ الْوَلِيْدِ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْاَعْلٰى حَدَّثَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَزِيْدَ عَنْ اَبِيْ سَعِيْدٍ قَالَ نَهَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ لِبْسَتَيْنِ وَ عَنْ بَيْعَتَيْنِ الْمُلَامَسَةِ وَالْمُنَابَذَةِ.

۲۰۱۱: عیاش بن ولید. عبدالاعلی. معمر. زهري. عطاء بن یزید. ابوسعید خدريؓ نه روایت کوي، دَ هغهٔ بیان دے، چه نبي صلی اللّٰه علیه وسلّم دَ دوه قسمه لباس نه منع فرمائیلے ده. او دَ دوه قسمه بیع یعني لامسه او منابذه نه ئے منع فرمائیلے ده.

## بَابٌ ۹۶۰: النَّهْيِ لِلْبَآئِعِ اَنْ لَّا يُحَفِّلَ الْاِبِلَ وَالْبَقَرَ وَالْغَنَمَ وَ كُلَّ مُحَفَّلَةٍ وَالْمُصَرَّاةُ الَّتِيْ صُرِّيَ لَبَنُهَا وَ حُقِنَ فِيْهِ وَ جُمِعَ فَلَمْ يُحْلَبْ اَيَّامًا وَّ اَصْلُ التَّصْرِيَةِ حَبْسُ الْمَاءِ يَقَالُ مِنْهُ صَرَّيْتُ الْمَاءَ.

## باب ۹۶۰: بائع دَ پاره ممنوع دي چه اوښه، غوا، یا چیلئیے اونهٔ لشي. (دَ پاره دَدے چه پئے زیات معلوم شي) او محفله او مصراة هغه څناور دے، چه دَ هغے پئے نهٔ وي لشلے شوے. او پئے ئے غلانز کښ جمع کړے شوے وي. او څو ورځو پورے نهٔ وي لشلے شوے[۱]. او دَ تصریه اصل معنٰي دَ، اوبو ایسارول دي. او دَدے نه راخي، صریت الماء (یعني ما اوبه ایسارے کړے)

۱. بعضے خرڅونکي، خریدارو ته د دهوکے ورکولو د پاره به دا کول. چه کوم څاروے به ئے خرڅول غوښتل او هغه به پیئ ورکول. نو څو ورځے به ئے د هغے پیئ نه لوشل. چه کله خریدار راشي او د هغے څاروي تې اوکوري او غلانځه ئے ډکه وي. هغه خریدار به دا خیال کوي چه دا څاروے ډیر پیئ ورکوي. نو دهوکه به شي په زیات قیمت به ئے واخلي، دهغے به روستو پته لګیده چه د هغے څاروي پیئ څومره دي. اسلام ددینه منعه کړیده. چه څوک خپل رور مسلمان ته دهوکه ورکړي. که څوک داسے دهوکه اوکړي نو شریعت خریدار ته حق ورکړیدے. چه هغه، هغه څاروے واپس کړي. یائے اوساتي. او د خرڅونکي نه دَ تاوان مطالبه اوکړي کوم چه د دهوکے په وجه خریدار ته رسیدلے دے دے باب کښ ډیر احادیث ددے

مسئلے په حقله دي. د فقهې د علماؤ په مينځ کښې دے مسئله کښې اختلاف ډير مشهور دے داسے څاروي نه مُصَرَّاة ويلے شي. ددے باب احاديثو مبارکو کښې دا حکم دے. چه مُصَرَّاة څارويے چه خپل خرڅونکي اصل مالک تـه واپـس کوي. ورسره به يو صاع تقريبًا څلور کيلو قجورے ورکوي په بعضے رواياتو به يو صاع غلـه ورسره ورکوي. د شوافعو مسلک هم دا دے. دا زيات يو صاع قجورے يا يو صاع غله ورکول ځکه ضروري شو. چه نوي خريدار د هغے پيئ (شوده) استعمال کړيدي. ليکن د احنافو دا مسلک ندے. هغوي وائي. چه دهـو کـه خو خرڅونکي کړيده. خريدار ته چه کله د حقيقت پته اولګيده نو هغه څارويے واپس کړو. اصل ذمه واري خو د خرڅونکي ده نو د خريدار نه تاوان نشي اخستلے. بيا دا هم ښکاره خبره ده که تاوان ورکول وي. نو د خرڅونکي چه څومره تاوان شويدے د هغے برابر تاوان ورکول وي. د تاوان اندازه ولـے مقرر شويده. چه ددينه به نه کم تاوان ورکوي نه زيات امام طحاوي رحمة الله عليه د احنافو د طرفنـه بـل جـواب پـه خپـل خـاص طرز ورکړيدے. ليکن بهرحال' حديث شريف واضح دے چه يو صاع قجورے يـا يو صاع غله به ورکولے شي. علامه انور شاه کشميري رحمة الله عليه د امام شافعي رحمة الله عليه د مسلک تـائيد کښې ليکلے دي. او زړه ته پريوتونکے خبره ئے ليکلے ده. چه حديث شريف کښې د تاوان حکـم د ديـانـت پـه وجـه دے. او احـنـاف چـه څه وائي دا خبره دهغه وخت ده. چه خبـره عدالت ته اورسي. عـدالـت کـښې به فيصلے په پوره تحقيق سره کيږي او هلته به اصل واقعه او د خريدار مجبوري په دواړو به نظر اچولے شي. د خرڅونکے دهو که به هم کتلے شي. ښکاره چه فيصله به بغير د تاوان ورکولو نه' وي. پـخپلـه کښې خريدار د ښه سلوک په وجه د تاوان څه مقرر مقدار کښې قجورے يا غله ورکړي. ځکه چه څه وخته پورے د بل چا څيز ئے استعمال کړے دے دا د تقويٰ او د ديانت حدود دي. او حديث شريف کښې په دے اړخ کښې رڼړا اچولے شويده. دا علامه انور شاه کشميري رحمة الله عليه خوښه کړيده.

۲۱۷: حَدَّثَنَا ابْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ جَعْفَرِ بْنِ رَبِيْعَةَ عَنِ الْأَعْرَجِ قَالَ أَبُوْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَصُرُّوْا الْإِبِلَ وَالْغَنَمَ فَمَنِ ابْتَاعَهَا بَعْدُ فَإِنَّهُ بِخَيْرِ النَّظَرَيْنِ بَعْدَ أَنْ يَحْتَلِبَهَا إِنْ شَآءَ أَمْسَكَ وَ إِنْ شَآءَ رَدَّهَا وَ صَاعَ تَمْرٍ وَ يُذْكَرُ عَنْ أَبِيْ صَالِحٍ وَّ مُجَاهِدٍ وَّ الْوَلِيْدِ بْنِ رِبَاحٍ وَّ مُوْسَى بْنِ يَسَارٍ عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَاعَ تَمْرٍ وَّ قَالَ بَعْضُهُمْ

۲۱۷: ابـن بـکيـر. ليث. جعفر بن ربيعه. اعرج. حـضـرت ابـوهـريرهؓ نبي صلے الله عليه وسلّم نه روايت کـوي' حـضور صلے الله عليه وسلّم اوفرمائيل' دَ' اوښے او چيلـے غلانزِ کښې پئے مهٔ ساتئے' او چا چه دا' ددے نه پـس واخستـه' نـو هـغهٔ ته دَ لَشلو نه پس اختيار دے' چه وے سـاتي' او کهٔ غواړي' نو واپس دے کړي. او يو صاع قـجـورے دے ورسـره ورکړي او ابو صالح او مجاهد او وليـد بـن رباح. موسيٰ بن يسار. ابوهريرهؓ. نبي صلے الله عليـه وسـلّـم نه يو صاع قجورے نقل کړے دي. اوو‌ے ونيـل چه هغهٔ ته درے ورځو پورے اختيار دے. او بعضے دَ' ابـن سيرين نه يو صاع قجورے خو نقل کوي' ليکن دَ'

عَنِ ابْنِ سِيْرِيْنَ صَاعًا مِّنْ تَمْرٍ وَّلَمْ يَذْكُرْ ثَلٰثًا وَّ التَّمْرُ اَكْثَرُ.

درے ورځو اختيار ئے نه دے ذكر كړے. او اكثر خلقو تمر (قجورے) لفظ روايت كړے دے.

۲۱۳: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا مُعْتَمِرٌ قَالَ سَمِعْتُ اَبِيْ يَقُوْلُ حَدَّثَنَا اَبُوْ عُثْمٰنَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ مَنِ اشْتَرٰى شَاةً مُّحَفَّلَةً فَرَدَّهَا فَلْيَرُدَّ مَعَهَا صَاعًا وَّ نَهَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنْ تُلَقَّى الْبُيُوْعَ.

۲۱۳: مسدد. معتمر. د معتمر پلار (عثمان) ابوعثمان. عبدالله بن مسعود نه روايت دے. چا چه داسے چيلئے خرڅه كړه چه د هغے پئے لشلے شوے وي. نو يو صاع دے هغے سره ور كړي. واپس دے كړي او نبي صلے الله عليه وسلم منع فرمائيلے دي. چه د سوداګرو پيشوائي دے اوشي (يعني د تجارت د مال د راتلو خبر آوريدل او د آبادئ نه بهر وتل. په كم قيمت دے. د سوداګرو پيشوائي دے اوشي (يعني د تجارت د مال د راتلو خبر آوريدل او د آبادئ نه بهر وتل په كم قيمت دے د سوداګرونه د مال اخستو كوشش نه كوي).

۲۱۴: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ اَبِي الزِّنَادِ عَنِ الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا تَلَقَّوا الرُّكْبَانَ وَلَا يَبِيْعُ بَعْضُكُمْ عَلٰى بَيْعِ بَعْضٍ وَّلَا تَنَاجَشُوْا وَلَا يَبِيْعُ حَاضِرٌ لِّبَادٍ وَّلَا تُصَرُّوا الْغَنَمَ وَمَنِ ابْتَاعَهَا فَهُوَ بِخَيْرِ النَّظَرَيْنِ بَعْدَ اَنْ يَّحْتَلِبَهَا اِنْ رَّضِيَهَآ اَمْسَكَهَا وَ اِنْ سَخِطَهَا رَدَّهَا وَ صَاعًا مِّنْ تَمْرٍ.

۲۱۴: عبدالله بن يوسف. مالك. ابو الزناد. اعرج. ابوهريره نه روايت كوي. نبي صلے الله عليه وسلم او فرمائيل. قافلے والو سره مخكښ ورتلو سره مه يو ځائے كيږئ. او نه دے تاسو كښ بعضے د بعضو په بيع بيع كوي نجش مه كوئ. او نه دے شهري د ديهاتي په لاس خرڅوي. او نه د چيلو په غلانزو كښ پئے ايساروي. او كوم سړے چه دا واخلي نو لشلو نه پس هغه ته اختيار دے. كه غواړي نو هغه دے اوساتي. او كه خوښه ئے نه وي نو هغه څناور دے يو صاع قجورو سره واپس كړي.

## بَابُ ۴۲۱: اِنْ شَآءَ رَدَّ الْمُصَرَّاةَ وَ فِيْ حَلْبَتِهَا صَاعٌ مِّنْ تَمْرٍ.

## باب ۴۲۱: كه غواړي نو د مصراة څناور دے واپس كړي او د هغے د پيو په عوض كښ دے يو صاع قجورے ور كړي.

۷۱۵: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَمْرٍو حَدَّثَنَا الْمَكِّيُّ أَخْبَرَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ قَالَ أَخْبَرَنِيُ زِيَادٌ أَنَّ ثَابِتًا مَوْلَى عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ زَيْدٍ أَخْبَرَهُ أَنَّهُ سَمِعَ أَبَا هُرَيْرَةَ يَقُوْلُ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنِ اشْتَرٰى غَنَمًا مُصَرَّاةً فَاحْتَلَبَهَا فَإِنْ رَضِيَهَا أَمْسَكَهَا وَإِنْ سَخِطَهَا فَفِيْ حَلْبَتِهَا صَاعٌ مِنْ تَمْرٍ.

۷۱۵: محمد بن عمرو. مکي (بن ابراهیم). ابن جریج. زیاد. ثابت (د عبدالرحمن بن زید غلام). حضرت ابوهریرة نه روایت کوي هغه ونیلي چا چه مصراة چیلني واخستې. بیائي هغه اولشلې که خوښه ئې شوه نو او دې ساتي او که خوښه نې نه شوه نو د پیو په عوض کښې دې یو صاع قجورې واپس کړي.

باب ۴۶۲: بَيْعَ الْعَبْدِ الزَّانِيُ وَقَالَ شُرَيْحٌ إِنْ شَآءَ رَدَّ مِنَ الزِّنَا.

باب ۴۶۲: د زناکار غلام د بیع بیان. او شریح اووې که غواړي نو د زنا په سبب دې هغه واپس کړي.

۷۱۶: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ قَالَ حَدَّثَنِيُ سَعِيْدُ ـ الْمَقْبُرِيُّ عَنْ أَبِيْهِ عَنْ أَبِيُ هُرَيْرَةَ أَنَّهُ سَمِعَهُ يَقُوْلُ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا زَنَتِ الْأَمَةُ فَتَبَيَّنَ زِنَاهَا فَلْيَجْلِدْهَا وَلَا يُثَرِّبْ ثُمَّ إِنْ زَنَتْ فَلْيَجْلِدْهَا وَلَا يُثَرِّبْ ثُمَّ إِنْ زَنَتِ الثَّالِثَةَ فَلْيَبِعْهَا وَلَوْ بِحَبْلٍ مِنْ شَعْرٍ.

۷۱۶: عبدالله بن یوسف. لیث. سعید بن مقبري د خپل پلار نه هغه د حضرت ابوهریرة نه روایت کوي نبي صلے الله علیه وسلّم اوفرمائیل هر کله چه وینزه زنا اوکړي او د هغې زنا ظاهره شي نو هغه دې په کوړو اووهي. او هغه دې ملامته کوي نه. بیا که زنا اوکړي نو په کوړو دې اووهي او ملامته کوي دې نه. بیا که په دریم ځل زنا اوکړي نو هغه دې خرڅه کړي اګر که د ویښتو د رسی په عوض وي.

۷۱۷: حَدَّثَنَا إِسْمٰعِيْلُ قَالَ حَدَّثَنِيُ مَالِكٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ عَنْ أَبِيُ هُرَيْرَةَ وَزَيْدِ بْنِ خَالِدٍ أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

۷۱۷: اسمٰعیل. مالک. ابن شهاب. عبیدالله بن عبدالله. ابوهریره او زید بن خالد نه روایت کوي رسول الله صلے الله علیه وسلّم نه د وینزې متعلق تپوس اوشو چه هغې زنا کړې وي او واده شوې نه وي. حضور صلے الله علیه وسلّم ورته اوفرمائیل که زنائې کړې

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سُئِلَ عَنِ الْاَمَةِ اِذَا زَنَتْ وَلَمْ تُحْصِنْ قَالَ اِنْ زَنَتْ فَاجْلِدُوْهَا ثُمَّ اِنْ زَنَتْ فَبِيْعُوْهَا وَلَوْ بِضَفِيْرٍ وَّ قَالَ ابْنُ شِهَابٍ لَآ اَدْرِىْ بَعْدَ الثَّالِثَةِ اَوِ الرَّابِعَةِ.

وي'نو په کوړو' ئے اووهئے بیا کهٔ زنائے کړے وي'نو په کوړو' ئے اووهئے بیا کهٔ زنا اوکړي' نو خرخه ئے کړئے' اګر کهٔ د یوے رسئ په عوض کېنې وي. او ابن شهاب بیان اوکهٔ' ماته یاد نهٔ دي' چه حضور صلے الله علیه وسلّم دریم ځل یا څلورم ځل نه پس دا' اوفرمائیل[۱].

۱. ددے احادیثو مبارکونه معلومیږي چه د زناکارے وینځے خرڅول روا دي حنفي فقهاؤ لیکلے دي. چه زنا' د وینځے عیب دے نو د خرڅولو په وخت' خریدار ته ئے وضاحت کول ضروري دي که چرے ددے عیب نه ئے خریدار خبر نه کړو. نو چه کله خریدار خبر شي. نو هغه ئے واپس کولے هم شي.

## باب ۴۶۳: اَلْبَيْعِ وَالشِّرَآءِ مَعَ النِّسَاءِ.

## باب ۴۶۳: بنځو سره د خرید و فروخت بیان.

۷۱۸: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ عُرْوَةُ بْنُ الزُّبَيْرِ قَالَتْ عَائِشَةُ دَخَلَ عَلَيَّ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَكَرْتُ لَهُ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اشْتَرِىْ وَ اَعْتِقِىْ فَاِنَّ الْوَلَآءِ لِمَنْ اَعْتَقَ ثُمَّ قَامَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنَ الْعَشِيِّ فَاَثْنٰى عَلَى اللّٰهِ بِمَا هُوَ اَهْلُهُ ثُمَّ قَالَ مَا بَالُ النَّاسِ يَشْتَرِطُوْنَ شُرُوْطًا لَّيْسَ فِىْ كِتَابِ اللّٰهِ مَنِ اشْتَرَطَ شَرْطًا لَّيْسَ فِىْ كِتَابِ اللّٰهِ فَهُوَ بَاطِلٌ وَ اِنِ اشْتَرَطَ مِائَةَ شَرْطٍ شَرْطُ اللّٰهِ اَحَقُّ وَ اَوْثَقُ.

۷۱۸: ابو الیمان. شعیب. زهري. عروه بن زبیر. د' بي بي عائشے رضي الله عنها قول نقل کهٔ. د هغے بیان دے' ما پله رسول الله صلے الله علیه وسلّم تشریف راوړلو' ما حضور صلے الله علیه وسلّم ته د' بریرے د خریدارئ ذکر اوکهٔ' رسول الله صلے الله علیه وسلّم اوفرمائیل وائے خله' او آزاد ئے کړه. ولاء خو' د هغے چا ده' چه آزاده ئے کړي. بیا نبي صلے الله علیه وسلّم په منبر ازدریدلو' د' الله تعریف ئے بیان کهٔ چه د هغے' هغه مستحق دے. بیائے اوفرمائیل د خلقو څهٔ حال دے' چه داسے شرطونه لګوي چه کتاب الله کېنې نشته. چا چه داسے شرط اولګولو' چه کتاب الله کېنې نشته. هغه باطل دے' اګر که سل شرطونه اولګوي. د' الله شرط زیات مضبوط او ریښتنے دے.

۷۱۹: حَدَّثَنَا حَسَّانُ ابْنُ اَبِىْ عَبَّادٍ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ قَالَ سَمِعْتُ نَافِعًا

۷۱۹: حسان بن ابي عباد. همام. نافع. عبدالله بن عمر نه روایت کوي' د بریرة رضي الله عنها د قیمت

يُحَدِّثُ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ اَنَّ عَائِشَةَ سَاوَمَتْ بَرِيْرَةَ فَخَرَجَ اِلَى الصَّلٰوةِ فَلَمَّا جَآءَ قَالَتْ اِنَّهُمْ اَبَوْا اَنْ يَّبِيْعُوْهَآ اِلَّآ اَنْ يَّشْتَرِطُوْا الْوَلَآءَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّمَا الْوَلَآءُ لِمَنْ اَعْتَقَ قُلْتُ لِنَافِعٍ حُرًّا كَانَ زَوْجُهَا اَوْ عَبْدًا فَقَالَ مَا يُدْرِيْنِيْ.

په حقله د هغې مالکانو سره خبرې او کړې نو رسول الله صلی الله علیه وسلّم مانځه د پاره اووتلو نو چه کله راغې بي بي عائشې رضي الله عنها اوفرمایل چه د هغې وارثانو، ذ هغې ذ خرڅولو نه انکار او کۀ، خو دې شرط سره، چه ولاء به ذ هغې خلقو وي. نبي صلی الله علیه وسلّم اوفرمائیل. ولاء ذ، آزاد کونکې ذ پاره ده. ما، ذ نافع نه تپوس او کۀ، چه ذ، بریرې خاوند آزاد وو، یا غلام، هغۀ اووې، ماته نۀ ده معلومه [1].

۱. دلته امام بخاري رحمة الله علیه دا ښودل غواړي چه ښځه اختیل، خرڅول تجارتي کاروبار کولې شي.

**بَابُ ۴۶۴: هَلْ يَبِيْعُ حَاضِرٌ لِّبَادٍ بِغَيْرِ اَجْرٍ وَّهَلْ يُعِيْنُهٗ اَوْ يَنْصَحُهٗ وَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا اسْتَنْصَحَ اَحَدُكُمْ اَخَاهُ فَلْيَنْصَحْ لَهٗ وَ رَخَّصَ فِيْهِ عَطَآءٌ.**

**باب ۴۶۴:** آیا شهري (ښاري) دیهاتي (کلي وال) ذ پاره بغیر آجرنه خرڅولې شي، او آیا ذ هغۀ مدد یا خیر خواهي کولې شي. او نبي صلی الله علیه وسلّم اوفرمائیل کله چه تاسو کښې یو سړې ذ خپل ورور نه نیکه مشوره طلب کړي، نو هغۀ له نیکه مشوره ورکول پکار دي. او عطاء، ذ دې اجازت ورکړې [1] دې.

۱. امام بخاري رحمة الله علیه دا ښودل غواړي. چه په حدیث شریف کښې کوم حکم راغلې دې چه دښهر دوکاندار به د بانډې د سړي مال نه خرڅوي ددې منعه په خاص صورت کښې ده. چه د ښهر د دوکاندار نیت خراب وي که د خیر خواهۍ په وجه داسې کوي. او څه مزدوري نې نۀ اخلي. نو بیا پدې کښې څه ګناه نشته ځکه چه هر مسلمان له پکار دي چه د بل مسلمان خیر خواهي او کړي د هغه مدت اوکړي.

۲۰۷۰: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ اِسْمٰعِيْلَ عَنْ قَيْسٍ سَمِعْتُ جَرِيْرًا بَايَعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلٰى شَهَادَةِ اَنْ لَّآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَ اَنَّ مُحَمَّدًا رَسُوْلُ اللّٰهِ وَ اِقَامِ الصَّلٰوةِ وَ اِيْتَآءِ

۲۰۷۰: علي بن عبدالله. سفیان. اسمٰعیل. قیس. حضرت جریر روایت کوي ما ذ، رسول الله صلی الله علیه وسلّم نه ذ، لا اله الا الله محمد رسول الله په ګواهي، په مونځ کولو، زکٰوة ورکولو، آوریدو او اطاعت کولو، او ذ، هر

الزَّکٰوةِ وَالسَّمْعِ وَالطَّاعَةِ وَالنُّصْحِ لِکُلِّ مُسْلِمٍ.

مسلمان خیر خواهي کولنو باندے بیعت کړے دے.

۱۷۲۱: حَدَّثَنَا الصَّلْتُ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ حَدَّثَنَا مَعْمَرٌ عَبْدُ اللّٰهِ ابْنِ طَاؤُسٍ عَنْ اَبِیْهِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ لَا تَلَقَّوُا الرُّکْبَانَ وَلَا یَبِیْعُ حَاضِرٌ لِّبَادٍ قَالَ قُلْتُ لِابْنِ عَبَّاسٍ مَا قَوْلُهٗ لَا یَبِیْعُ حَاضِرٌ لِّبَادٍ قَالَ لَا یَکُوْنُ لَهٗ سِمْسَارًا.

۱۷۲۱: صلت بن محمد. عبدالواحد. معمر عبداللّٰه بن طاؤس. حضرات ابن عباسؓ نه روایت دے. رسول اللّٰه صلے اللّٰه علیه وسلم اوفرمائیل: قافلے والو سره په مخکښ ورتلو مه یوځائے کیږے. او شهري دے دیهاتي د پاره بیع نه کوي. د طاؤس بیان دے، چه ما د ابن عباسؓ نه تپوس اوکه. شهري دے د دیهاتي د پاره نه خرخوي، د دے څه مطلب دے، نو هغهٔ اووے، چه دلالي دے نه کوي[۱].

۱. د عبداللّٰه بن عباس رضي اللّٰه عنهما مطلب دا دے چه د ښهر سړے به د بانډے د سړي دلال نه جوړیږي.

باب ۴۶۵: مَنْ کَرِهَ اَنْ یَّبِیْعَ حَاضِرٌ لِّبَادٍ بِاَجْرٍ.

باب ۴۶۵: بعضے خلقو دیهاتي ذ پاره د شهري بیع بغیر آجر نه مکروه ګڼړلے ده.

۱۷۲۲: حَدَّثَنِیْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ صَبَّاحٍ حَدَّثَنَا اَبُوْ عَلِیٍّ ن الْحَنَفِیُّ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ دِیْنَارٍ قَالَ حَدَّثَنِیْ اَبِیْ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ قَالَ نَهٰی رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ اَنْ یَّبِیْعَ حَاضِرٌ لِّبَادٍ وَّ بِهٖ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ.

۱۷۲۲: عبداللّٰه بن صباح. ابو علي حنفي. عبدالرحمن بن عبداللّٰه دینار. عبداللّٰه بن دینار. حضرت عبداللّٰه بن عمرؓ نه روایت کوي. ذهغهٔ بیان دے. نبي صلے اللّٰه علیه وسلم ذ دے نه منع فرمائیلے ده، چه شهري دے دیهاتي ذ پاره خرڅ کړي (یعني دلالي او کړي). او حضرت ابن عباسؓ هم دغه وئیلے دي.

باب ۴۶۶: لَا یَبِیْعُ حَاضِرٌ لِّبَادٍ بِالسَّمْسَرَةِ وَ کَرِهَ ابْنُ سِیْرِیْنَ وَ اِبْرَاهِیْمُ لِلْبَآئِعِ وَالْمُشْتَرِیْ وَ قَالَ اِبْرَاهِیْمُ اِنَّ الْعَرَبَ تَقُوْلُ بِعْ لِیْ ثَوْبًا وَّهِیَ تَعْنِی الشِّرَآءِ.

باب ۴۶۶: شهري، دیهاتي ذ پاره دلالي سره نه خرخوي. او ابن سیرین بائع (خرخونکي) او مشتري (اخستونکي) دواړه ذ پاره مکروه ګڼړلے دي. او ابراهیم اووے، چه عربو به وئیلے بع لي ثوبا[۱]. او دے نه د هغوی مراد، دا، وو، چه ما د پاره کپړه واخله.

۱. حدیث شریف کښې د بیع لفظ راغلے دے عامه معنې ئې د خلقو په نزد خرڅول دي. لیکن عرب خلق ئې د اخستلو او د خرڅولو د پاره استعمالوي. دلته امام بخاري رحمة الله علیه دا ښودل غواړي چه زمونږ محدثینو د لفظ دواړه معنے ترے مراد کړیدي.

۲۲۴۷: حَدَّثَنَا الْمَكِّيُّ بْنُ اِبْرَاهِمَ قَالَ اَخْبَرَنِى ابْنُ جُرَيْجٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ اَنَّهُ سَمِعَ اَبَا هُرَيْرَةَ يَقُوْلُ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَبْتَاعُ الْمَرْءُ عَلٰى بَيْعِ اَخِيْهِ وَلَا تَنَاجَشُوْا وَلَا يَبِيْعُ حَاضِرٌ لِبَادٍ.

۲۲۴۷: مکي بن ابراهیم. ابن جریج. ابن جریج. ابن شهاب. سعید بن مسیب. حضرت ابوهریرهؓ نه روایت کوي. رسول الله صلے الله علیه وسلم فرمائیلي دي. چه هیڅوک دے د خپل وړور په بیع، بیع نه کوي. او مه نجش کوے. او نه دے شهري دیهاتي د پاره خرڅ کوي.

۲۲۴۸: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنّٰى حَدَّثَنَا مَعَاذٌ حَدَّثَنَا ابْنُ عَوْنٍ عَنْ عَنْ مُحَمَّدٍ قَالَ اَنَسُ ابْنُ مَالِكٍ نُهِيْنَا اَنْ يَّبِيْعَ حَاضِرٌ لِبَادٍ.

۲۲۴۸: مُحمّد بن مثني. معاذ. ابن عون. مُحمّد. انس بن مالکؓ نه روایت کوي. هغه اووے مونږ خلق د دے نه منع کړے شوي وو چه شهري دے د بهرني د پاره خرڅ اوکړي.

باب ۷۶۴: اَلنَّهْيِ عَنْ تَلَقِّي الرُّكْبَانِ وَ اَنَّ بَيْعَهُ مَرْدُوْدٌ لِاَنَّ صَاحِبَهُ عَاصٍ اٰثِمٌ اِذَا كَانَ بِهٖ عَالِمًا وَهُوَ خِدَاعٌ فِى الْبَيْعِ وَالْخِدَاعُ لَا يَجُوْزُ.

باب ۷۶۴: مخکښې ورتلو سره قافلے والو سره د پوخانۍ کیدو ممانعت[۱]. او د هغے بیع مردود ده، نو ځکه د دے کونکے نافرمان ګنهګار دے، هر کله چه هغه پوهیږي، چه دا بیع یو قسم دهوکه ده او دهوکه جائز نه ده.

۱. د سوداګرۍ قافلوته مخے له ورتللو د پاره لفظ "تلقي الرُّكبان" استعمال کړیدے. ددے مطلب دادے چه ښهر کښې ګراني زیاته شوے وي یو سوداګر خبر شي چه تجارتي قافله ښهر ته راروانه ده هغه ورله مخے ته لاړ شي او ښهر ته د خبر رسیدو نه مخکښې، مخکښې ټول مال اسباب په بیعه واخلي. دے کښې یو نقصان د ښهر د خلقو دے. که چرے د سوداګرو قافلے پخپله سامان خرڅ کړے وے نو د عام قیمت نه به خلقوته ارزان ورکړے شوے وو. بل نقصان د قافلے د سوداګرو اوشو. چه هغوي په بے خبرۍ کښې خپل سامان په کم قیمت خرڅ کړو. ځکه احناف دا عمل مکروهه ګڼړي. د امام بخاري رحمة الله علیه د عبادت نه دا معلومیږي چه دا عمل باطل او یقیني حرام دے ددے معاملے د سخت والي نه احناف هم انکار نه کوي لیکن باطل ئې نه ګڼړي مکروهه ورته وائي هغوي دا هم وائي که چرے ددے عمل نه چاته نقصان نه رسیږي او حالات ټولو سوداګروته معلوم وي نو بیا پکښې څه ګناه نشته.

۲۵ ۷: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ عَنْ سَعِيدِ بْنِ اَبِيْ سَعِيْدٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ نَهَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ التَّلَقِّي وَ اَنْ يَبِيعَ حَاضِرٌ لِبَادٍ.

۲۵ ۷: محمد بن بشار. عبدالوهاب. عبيدالله سعيد بن ابي مسيب. حضرت ابوهريرة نه روايت كوي. د هغه بيان دے نبي صلے الله عليه وسلم قافلے والو سره مخكښ ورتلو نه منع فرمائيلے ده. او دے نه ئے منع كړے ده چه شهري دے ديهاتي د پاره خرڅ او كړي.

۲۶ ۷: حَدَّثَنَا عَيَّاشُ بْنُ عَبْدِ الْوَلِيدِ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْاَعْلٰى حَدَّثَنَا مَعْمَرٌ عَنِ ابْنِ طَاوُسٍ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ سَاَلْتُ ابْنَ عَبَّاسٍ مَا مَعْنٰى قَوْلِهِ لَا يَبِيْعَنَّ حَاضِرٌ لِبَادٍ فَقَالَ لَا يَكُنْ لَهُ سِمْسَارًا.

۲۶ ۷: عياش بن عبدالوليد. عبدالاعلے. معمر. ابن طاؤس د خپل پلار نه روايت كوي. هغه وائي ما د حضرت ابن عباسؓ نه تپوس او كړ چه د حضور صلے الله عليه وسلم د قول لا يبيعن حاضر لباد څه معني دي نو هغه اووے چه د هغه دلال دے نه جوړيږي.

۲۷ ۷: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَزِيدُ ابْنُ زُرَيْعٍ قَالَ حَدَّثَنَا التَّيْمِيُّ عَنْ اَبِيْ عُثْمٰنَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ مَنِ اشْتَرٰى مُحَفَّلَةً فَلْيَرُدَّ مَعَهَا صَاعًا قَالَ وَ نَهَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ تَلَقِّي الْبُيُوْعِ.

۲۷ ۷: مسدد. يزيد بن زريع. تيمي. ابوعثمان. عبدالله (بن مسعود) نه روايت كوي د هغه بيان دے چا چه (غلانړ كښ) پئے جمع كړے چيلئے-واخسته نو هغه دے يو صاع سره واپس كړي. او بيان ئے او كړ چه نبي صلے الله عليه وسلم قافلے والو ته مخكښ ورتلو نه منع فرمائيلے ده.

۲۸ ۷: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ نَافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا يَبِيعُ بَعْضُكُمْ عَلٰى بَيْعِ بَعْضٍ وَّلَا تَلَقَّوُا السِّلَعَ حَتّٰى يُهْبَطَ اِلَى السُّوْقِ.

۲۸ ۷: عبدالله بن يوسف. مالك. نافع. عبدالله بن عمرؓ نه روايت كوي. د هغه بيان دے رسول الله صلے الله عليه وسلم او فرمائيل تاسو كښ دے بعضے د بعضو په بيع بيع نهٔ كوي او كوم سامان چه د بهر نه راځي، څو پورے چه بازار ته راونهٔ رسي مخكښ ورتلو سره ورسره مهٔ يوځائے كيږئ.

## بَابٌ ۴۶۸: مُنْتَهَى التَّلَقِّي.

## باب ۴۶۸: (د مال والو) پيشوائي د كوم مقام پورے ممنوع ده.

۷۲۹: حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ اِسْمٰعِیْلَ حَدَّثَنَا جُوَیْرِیَّةُ عَنْ نَافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ کُنَّا نَتَلَقَّى الرُّکْبَانَ فَنَشْتَرِیْ مِنْهُمُ الطَّعَامَ فَنَهَانَا النَّبِیُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ اَنْ نَبِیْعَهُ حَتّٰى یَبْلُغَ بِهِ سُوْقَ الطَّعَامِ قَالَ اَبُوْ عَبْدِ اللّٰهِ هٰذَا فِیْ اَعْلَى السُّوْقِ یُبَیِّنُهُ حَدِیْثُ عُبَیْدِ اللّٰهِ.

۷۲۹: موسی بن اسمعیل. جویریه. نافع. عبدالله (بن عمرؓ) نه روایت کوي: چه مونږ خلق به مخکښ ورتلو سره قافلې والو سره یو ځائې کیدلو. او د هغوئ نه به مو غله اخستله. نو مونږ نبي صلی الله علیه وسلم منع کړو. چه هغه به هغه ځائې خرڅه کړي څو پورې چه هغه غله بازار ته راونه رسي. ابو عبدالله (بخاري) اووې. دا یو ځائې کیدل به دبازار په او چته ځاي وو. چه د عبیدالله د حدیث نه معلومیږي.

۷۳۰: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا یَحْیٰى عَنْ عُبَیْدِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنِیْ نَافِعٌ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ کَانُوْا یَبْتَاعُوْنَ الطَّعَامَ فِیْ اَعْلَى السُّوْقِ فَیَبِیْعُوْنَهُ فِیْ مَکَانِهِمْ فَنَهَاهُمْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ اَنْ یَبِیْعُوْهُ فِیْ مَکَانِهِ حَتّٰى یَنْقُلُوْهُ.

۷۳۰: مسدد. یحیی. عبیدالله. نافع. عبدالله (بن عمرؓ) نه روایت کوي: چه خلقو به غله د بازار بلندي طرف ته اخیسته. او هلته به ئې خرڅوله. نو نبي صلی الله علیه وسلم د دې نه منع کړل چه دغلته ئې خرڅه کړي څو پورې چه هغه منتقل نه کړي (یعنې بازار ته ئې رانه وړي).

باب ۴۶۹: اِذَا اشْتَرَطَ شُرُوْطًا فِی الْبَیْعِ لَا تَحِلُّ.

باب ۴۶۹: بیع کښې د داسې شرطونو لږولو بیان. چه جائز نه دي.

۷۳۱: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ یُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِکٌ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ اَبِیْهِ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ جَآءَتْنِیْ بَرِیْرَةُ فَقَالَتْ کَاتَبْتُ اَهْلِیْ عَلٰى تِسْعِ اَوَاقٍ فِیْ کُلِّ عَامٍ اُوْقِیَّةٌ فَاَعِیْنِیْنِیْ فَقُلْتُ اِنْ اَحَبَّ اَهْلُکِ اَنْ اَعُدَّهَا لَهُمْ وَ یَکُوْنَ وَلَآءُکِ لِیْ فَعَلْتُ فَذَهَبَتْ بَرِیْرَةُ اِلٰى اَهْلِهَا فَقَالَتْ لَهُمْ فَاَبَوْا

۷۳۱: عبدالله بن یوسف. مالک. هشام بن عروه. عروه. بي بي عائشې نه روایت کوي. د هغې بیان دې، ماته بریره راغله. او وې وئیل چه ما خپل مالک سره د نهه اوقیه چاندي په عوض په دې شرط مکاتبت کړې دې، چه هر کال به یو اوقیه چاندي درکوم. نو ته خما مدد او کړه. ما ورته اووې، که ستا مالکان غواړي، نو زه به تولې روپئې هغوئ له ورکړم، او ستا ولاء به خما وي. بریره لاړه، خپلو مالکانو ته ئې اووې، نو هغې

عَلَيْهَا فَجَآءَتْ مِنْ عِنْدِهِمْ وَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَالِسٌ فَقَالَتْ اِنِّيْ قَدْ عَرَضْتُ ذَالِكَ عَلَيْهِمْ فَاَبَوْا اِلَّا اَنْ يَّكُوْنَ الْوَلَآءُ لَهُمْ فَسَمِعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَخْبَرَتْ عَآئِشَةُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ خُذِيْهَا وَاشْتَرِطِيْ لَهُمُ الْوَلَآءَ فَاِنَّمَا الْوَلَآءُ لِمَنْ اَعْتَقَ فَفَعَلَتْ عَآئِشَةُ ثُمَّ قَامَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي النَّاسِ فَحَمِدَ اللّٰهَ وَ اَثْنٰى عَلَيْهِ ثُمَّ قَالَ اَمَّا بَعْدُ مَابَالُ رِجَالٍ يَشْتَرِطُوْنَ شُرُوْطًا لَيْسَتْ فِيْ كِتَابِ اللّٰهِ مَا كَانَ مِنْ شَرْطٍ لَيْسَ فِيْ كِتَابِ اللّٰهِ فَهُوَ بَاطِلٌ وَّ اِنْ كَانَ مِائَةَ شَرْطٍ قَضَآءُ اللّٰهِ اَحَقُّ وَ شَرْطُ اللّٰهِ اَوْثَقُ وَ اِنَّمَا الْوَلَآءُ لِمَنْ اَعْتَقَ.

خلقو ذدې نه انكار اوكۀ، هغه د خپلو مالكانو د طرف نه راغله. رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلّم ناست وو. نو هغې بيان اوكۀ چه ما خپلو مالكانوته دا خبره پيش كړه، نو هغې خلقو انكار اوكۀ، خو دا چه ولاء به دَ هغوئ وي. نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم واوريدل. نو بي بي عائشې نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم ته دا حالت بيان كۀ. حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم ته دا حالت بيان كۀ. حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل، تۀ دا، واخله او دَ ولاء شرط دَ هغوي دَ پاره كيږده. ولاء خو هغې چا دَ پاره ده، چه آزاد ئې كړي. نو بي بي عائشې دغسې اوكړل. بيا رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلّم دَ خلقو مينځ كښې اودريدلو. دَ اللّٰه تعالى حمد و ثنائے بيان كړل. بيائې اوفرمائيل. اما بعد، دَ خلقو څۀ حال دې، چه داسې شرطونه لږوي، چه كتاب اللّٰه كښې نشته. داسې شرط چه كتاب اللّٰه كښې نۀ وي. باطل دې. اګر كۀ سل شرطونه اولږوي، دَ اللّٰه فيصله دَ ټولونه ريښتنې او دَ اللّٰه شرط (دَ ټولو شرطونونه) زيات مضبوط دې. ولاء دَ هغې چا، ده، چه آزاده ئې[۱] كړي.

۱ . مُكاتبت دې غمل ته ويلې شي چه مريئے خپل مالك سره دا فيصله اوكړي. "چه دومره موده كښې دومره سامان يا روپئ به خپل مالك ته وركړي. او هغه به ئې آزاد كړي" نو چه كله مريئے دغه شرط پوره كړي نو هغه دَ شريعت په لحاظ مريئے نه پاتې كيږي بلكه آزاد به شي. دَ بريره رضي اللّٰه عنها خپل مالكانو سره دا معامله وه هغې ددې خبرې بيان حضرت عائشې رضي اللّٰه عنها ته كړې وو.

۲ . دَ مريئ او دَ مالك خپله كښې تعلق دَ غلامئ او دَ مالك توب وي. ليكن كه چرې مريئے آزاد شي نو اسلام دا لاره بنائي. چه مريئے او مالك دې خپل تعلقات پوره نه ختموي بلكې دَ رورولئ تعلق دې قائم كړي. دا تعلق اګرچه دَ وينې دَ رشتې پشان تعلق نه وي ليكن بيا هم ددوي پخپله كښې په يو بل حقونه وي چه دواړه طرفونه به ئې خيال ساتي، دې تعلق ته ولاء ويلې شي اسلام دَ غلامئ شكلونو كښې اصلاح كړې ده په دې سلسله كښې دَ څه قسم ظلم زياتي په سختئ سره منعه كړې ده دَ مريئ او دَ مالك تصوّر ئې

ختم کړو. مرئیے او مالک نے پخپله کښ د یو بل سره د نزدے کولو کوشش کړیدے. د مرنیانو د آزاده ولونیے ډیره حوصله افزائي کړیده. مریئے چه آزاد شي د کور نه بے کوره شي ددے وجے نه چه کله آزاد شي. نو اوس دده خپلوان رونړه ددۀ زاره مالکان دي حضرت عائشه رضي الله عنها دا غوښتل چه بریره رضي الله عنها په بیعه واخلي او آزاده نے کړي اوس د مکاتبت شکل نه جوړیدو خکه چه هغے کښ نهه کاله میعاد وو د بریره رضي الله عنها د آزادئ دا یوه لاره وه چه حضرت عائشه رضي الله عنها نے په بیعه واخلي. په قانوني طور "د ولاء" دغه تعلق د عائشه بي بي رضي الله عنها سره کیدو دا صورت نے زړو مالکانوته منظور نه وؤ.

۲۳۲: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بُنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ نَافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ اَنَّ عَائِشَةَ اُمَّ الْمُؤْمِنِيْنَ اَرَادَتْ اَنْ تَشْتَرِيَ جَارِيَةً فَتُعْتِقَهَا فَقَالَ اَهْلُهَا نَبِيْعُكِهَا عَلٰى اَنَّ وَلَاءَ هَا لَنَا فَذَكَرَتْ ذٰلِكَ لِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ لَا يَمْنَعُكِ ذٰلِكِ فَاِنَّمَا الْوَلَاءُ لِمَنْ اَعْتَقَ.

۲۳۲: عبدالله بن یوسف. مالک. نافع. عبدالله بن عمرؓ نه روایت کوي، چه اُمّ المؤمنین بي بي عائشےؓ اوغښتل، چه یوه وینزه آزاده کړي. نو ذ هغے مالکانو اووے، مونږ نے په دے شرط خرخوو، چه ولاء به مونږ ذ پاره وي. بي بي عائشےؓ دا، واقعه نبي علیه السلام ته ذکر کړه رسول الله صلے الله علیه وسلّم اوفرمائیل، دا شرط دے تا ذ، آخستلو نه منع نۀ کړي، ولاء خو، ذ هغے چا ده، چه آزاده نے کړيؒ.

۱. د امام ابو حنیفه رحمة الله علیه په نزد که چرے بیعے (خرخولو) سره فاسد یا داسے شرطونه اولګولے شي چه هغه د خرخولو اخستلو د شرعي اصولو خلاف وي نو د سره بیعه نه نافذ کیږي. لیکن که چرے یو شرط لګولو سره، خرخونکي یا اخستونکي ته د هغے بیعے نه فائده رسي لکه د حضرت عائشه رضي الله عنه د حدیث نه، معلومیږي نو بیعه به نافذ شي. او شرط به لغوه شي. په فاسد شرط به عمل نه کیږي.

احناف وائي دا یوه خاصه معامله ده د رسول الله صلي الله علیه وسلم د هدایت مطابق نافذ شوے وه. په حدیث شریف کښ چه کومه قانوني ضابطه بیان شویده. هغه دا ده. چه رسول الله صلي الله علیه وسلم د "بیع" سره شرط لګولو نه منعه کړیده. ددے وجے نه، احناف په دے حدیث شریف عمل کوي د عائشه رضي الله عنها په واقعه باندے زیات بحث راروان دے د هغے نه به پوره پوره وضاحت اوشي.

## بَابُ ۴۷۰: بَيْعِ التَّمْرِ بِالتَّمْرِ.

## باب ۴۷۰: ذ قجورو په عوض د قجورو خرخولو بیان.

۷۳۳: حَدَّثَنَا اَبُو الْوَلِيْدِ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ مَالِكِ بْنِ اَوْسٍ سَمِعَ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الْبُرُّ

۷۳۳: ابوالولید. لیث. ابن شهاب. مالک بن اوس. حضرت عمرؓ. نبي صلے الله علیه وسلّم نه روایت کوي، حضور صلے الله علیه وسلّم اوفرمائیل، د، غنمو په عوض غنم خرخول سُود دے، خو دا چه لاس په لاس

بِالْبَرِّ رِبًا اِلَّا هَآءَ وَهَآءَ وَالشَّعِيْرُ بِالشَّعِيْرِ رِبًا اِلَّا هَآءَ وَهَآءَ وَالتَّمْرُ بِالتَّمْرِ رِبًا اِلَّا هَآءَ وَهَآءَ.

وي. او د وربشو په عوض وربشې خرخول سود دي خو دا چه لاس په لاس وي. او د قجورو په عوض قجورې خرخول دي خو دا چه نقد وي [۱].

۱. دوه یو شان څیزونه چه کله بدلولې شي نو دا ضروري ده چه نغد کاروبار وي. قرض او نیته پکښې نه وي کني بیا به سود شي.

باب ۱ ۷ ۴: بَيْعِ الزَّبِيْبِ بِالزَّبِيْبِ وَالطَّعَامِ بِالطَّعَامِ.

باب ۱ ۷ ۴: د منقي په عوض منقي او د غلې په عوض د غلې خرخولو بیان.

۷۳۴: حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ حَدَّثَنَا مَالِكٌ عَنْ نَافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهٰى عَنِ الْمُزَابَنَةِ وَالْمُزَابَنَةُ بَيْعُ التَّمْرِ بِالتَّمْرِ كَيْلًا وَبَيْعُ الزَّبِيْبِ بِالْكَرْمِ كَيْلًا.

۷۳۴: اسمعیل. مالک. نافع. عبدالله بن عمرؓ نه روایت کوي. رسول الله صلی الله علیه وسلم د مزابنة نه منع فرمائیلې ده. او مزابنه دا چه یو سړې تر قجورې د اوچو قجورو په عوض. او منقي د انګورو په عوض ناپ کړې خرڅې کړي.

۷۳۵: حَدَّثَنَا اَبُو النُّعْمَانِ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ اَيُّوْبَ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهٰى عَنِ الْمُزَابَنَةِ قَالَ وَالْمُزَابَنَةُ اَنْ يَبِيْعَ التَّمْرَ بِكَيْلٍ اَنْ زَادَ فَلِيْ وَاِنْ نَقَصَ فَعَلَيَّ قَالَ وَحَدَّثَنِيْ زَيْدُ ابْنُ ثَابِتٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَخَّصَ فِي الْعَرَايَا بِخَرْصِهَا.

۷۳۵: ابو النعمان. حماد بن یزید. ایوب. نافع. حضرت ابن عمرؓ نه روایت کوي چه نبي صلی الله علیه وسلم د مزابنه نه منع فرمائیلې ده او مزابنه داده چه میوه پیمانه کړي او یو سړې په دې شرط خرڅه کړي. که زیاته وي نو خما ده او که کمه وي نو زۀ به یې درکړم. او د عبدالله بن عمرؓ بیان دې ماته زید بن ثابت اووې چه نبي صلی الله علیه وسلم آندازې سره د عرایا اجازت ورکړلو.

باب ۲ ۷ ۴: بَيْعِ الشَّعِيْرِ بِالشَّعِيْرِ.

باب ۲ ۷ ۴: د وربشو په عوض د وربشو خرخولو بیان.

۷۳۶: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنِ

۷۳۶: عبدالله بن یوسف. مالک. ابن شهاب. مالک بن اوسؓ نه روایت کوي. دهغه بیان دې. ماته د

ابْنِ شِهَابٍ عَنْ مَالِكِ بْنِ اَوْسٍ اَخْبَرَهُ اَنَّهُ الْتَمَسَ صَرْفًا بِمِائَةِ دِيْنَارٍ فَدَعَانِيْ طَلْحَةُ بْنُ عُبَيْدِ اللّٰهِ فَتَرَاوَضْنَا حَتّٰى اصْطَرَفَ مِنِّيْ فَاَخَذَ الذَّهَبَ يُقَلِّبُهَا فِيْ يَدِهٖ ثُمَّ قَالَ حَتّٰى يَاْتِيَ خَازِنِيْ مِنَ الْغَابَةِ وَ عُمَرُ يَسْمَعُ ذٰلِكَ فَقَالَ وَاللّٰهِ لَا تُفَارِقُهُ حَتّٰى تَاْخُذَ مِنْهُ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الذَّهَبُ بِالذَّهَبِ رِبًا اِلَّا هَآءَ وَ هَآءَ وَالْبُرُّ بِالْبُرِّ رِبًا اِلَّا هَآءَ وَ هَآءَ وَالشَّعِيْرُ بِالشَّعِيْرِ رِبًا اِلَّا هَآءَ وَ هَآءَ وَالتَّمْرُ بِالتَّمْرِ رِبًا اِلَّا هَآءَ وَ هَآءَ.

سلو اشرفو د بدلولو ضرورت پيښ شو. زهٔ طلحه بن عبيدالله او غوښتلم مونږ دواړو ددے متعلق خبرے اترے اوكړے، تردے چه هغه ماسره د صرف معامله طے كړه. او دينار ئے خپل لاس كښ واخستل اړول راړول ئے. بيائے اووے خو پورے چه خما خزانچي د غابه نه رانشي هغے پورے انتظار اوكړه. او حضرت عمرؓ دا خبرے آوريدلے. نو وے فرمائيل ستا دے په خدائے قسم وي دهٔ نه جُدا كيږه مه خو پورے چه ته د دهٔ نه روپے وانخلے. رسول الله صلے الله عليه وسلم فرمائيلے دي د سرو (زرو) په عوض سره خرخول سُود دے. خو دا چه لاس په لاس وي. د غنمو په عوض غنم خرخول سود دے، خو دا چه لاس په لاس وي. د وربشو په عوض وربشے خرخول سود دے، خو دا چه لاس په لاس وي. او د قجورو په عوض قجورے خرخول سود دے. خو دا چه نقد وي.

**بـاب ۳۷۴: بَيْعِ الذَّهَبِ بِالذَّهَبِ.**

**باب ۳۷۴:** د سرو زرو په عوض د سرو زرو د خرخولو بيان.

۷۳۷: حَدَّثَنَا صَدَقَةُ بْنُ الْفَضْلِ اَخْبَرَنَا اِسْمٰعِيْلُ بْنُ عُلَيَّةَ قَالَ حَدَّثَنِيْ يَحْيَى بْنُ اَبِيْ اِسْحٰقَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ اَبِيْ بَكْرَةَ قَالَ قَالَ اَبُوْ بَكْرَةَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَبِيْعُوا الذَّهَبَ بِالذَّهَبِ اِلَّا سَوَآءً بِسَوَآءٍ وَّالْفِضَّةَ اِلَّا سَوَآءً بِسَوَآءٍ وَ بِيْعُوا الذَّهَبَ بِالْفِضَّةِ وَالْفِضَّةَ بِالذَّهَبِ كَيْفَ شِئْتُمْ.

۷۳۷: صدقه بن فضيل. اسمعيل بن عُليّه. يحيى بن ابي اسحٰق. عبدالرحمٰن بن ابي بكره. حضرت ابوبكرؓ نه روايت كوي د هغهٔ بيان دے. رسول الله صلے الله عليه وسلم اوفرمائيل د سرو زرو په عوض سرهٔ زر مهٔ خرخوئے، خو دا چه برابر برابر وي او د چاندي په عوض چاندي مهٔ خرخوئے، خو دا چه برابر په برابر وي. او د سرو په عوض چاندي او د چاندي په عوض سره خرخوئے څنګه چه غواړئے.

## بـــاب ۴۷۴: بَيْـعِ الْـفِـضَّةِ بِالْفِضَّةِ.

## باب ۴۷۴: دَ سپینو زرو په عوض د سپینو زرو د خرڅولو بیان.

۷۳۸: حَـدَّثَـنَـا عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ سَعْدٍ حَدَّثَنِيْ عَمِّيْ حَدَّثَنَا ابْنُ اَخِي الزُّهْرِيِّ عَنْ عَمِّهٖ قَالَ حَدَّثَنِيْ سَالِمُ ابْنُ عُبَيْدِ اللّٰهِ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ اَنَّ اَبَـا سَعِيْدٍ حَدَّثَهٗ مِثْلُ ذٰلِكَ حَدِيْثًا عَـنْ رَّسُوْلِ الـلّٰـهِ صَـلَّـے اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَـلَّـمَ فَـلَـقِيَـهٗ عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ عُمَرَ فَقَالَ يَا اَبَا سَعِيْدٍ مَا الَّذِيْ تُحَدِّثُ عَنْ رَسُوْلِ الـلّٰهِ صَلَّے اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَـقَـالَ اَبُـوْ سَعِيْدٍ فِي الصَّرْفِ سَمِعْتُ رَسُـوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَـقُـوْلُ الـذَّهَـبُ بِـالذَّهَبِ مِثْلًا بِمِثْلٍ وَالْوَرِقُ بِالْوَرِقِ مِثْلًا بِمِثْلٍ.

۷۳۸: عبـدالـلّٰـه بـن سـعـد. ذ عبـدالـلّٰـه تـرهٔ (یـعـقـوب بـن ابـراهیـم) ذ زهـري وراره (مـحـمـد بـن عبـدالـلّٰـه). زهـري. سـالـم بـن عبـدالـلّٰـه. عبداللّٰه بن عـمـرؓ نـه روایـت کـوي. چـه حضرت ابو سعید خدريؓ هغـه تـه ذدے پـه مثـل د رسـول الـلّٰـه صلے اللّٰـه علیه وسلّم حدیـث بیـان کـهٔ. حـضـرت عبـداللّٰه بن عمرؓ هغـهٔ سـره یـوځـائـے شـو. اووے وئیـل اے ابـوسعید. تـهٔ ذ رسـول الـلّٰـه صـلـے الـلّٰـه عـلیـه وسـلّم نـه حدیث څـنـګـه روایـت کـوے. ابـوسعیدؓ اووے. مـا ذ صـرف متـعـلـق رسـول الـلّٰـه صـلـے الـلّٰـه عـلیـه وسـلّم نـه واوریـدل. حـضـور صـلـے اللّٰه علیه وسلّم فرمائیلے دي. ذ سـرو پـه عـوض سـره او ذ سپین زر پـه عوض سپین زرو برابر خرڅوئے ط۱.

۱. سـره زر د سـرو زرو په بدله کښې او سپین زر د سپینو زرو په بدله کښې چه کله معامله برابر برابر وي او د چا د طرفـه پـکـښې زیـاتے کمے نه وي شوے نو دا روا دي. لیکن که چرے خرڅونکي یا خریدار پـکـښې قـرض اوکـړو. نـو دا سود ګرځیګي. دا د قرض سودي معامله نن هم شته او د رسول اللّٰه صلے اللّٰه عـلیـه وسـلم په مبارک زمانه کښې په مشرکینو کښې رائج وه. مثلاً چاته د قرض ضرورت وو هغه به په میعاد قـرض واخـسـت هغه به هغه قرض ادا نه کړے شو چه د چا به مال وو هغه به ورته اویل چه میعاد زیات واخله او دومره روپۍ به نورے ورکوے هغه ته به د خپلو روپو په بدله کښې زیاتے روپۍ ورکړے شوے په دے کښې د یو فریق (د قرضدار) نقصان وو په دے وجه شریعت منعه کړو.

۷۳۹: حَـدَّثَـنَـا عَبْـدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ نَّافِعٍ عَنْ اَبِيْ سَعِيْدِ ن الْـخُـدْرِيِّ اَنَّ رَسُـوْلَ اللّٰهِ صَـلَّـى الـلّٰـهُ عَـلَيْـهِ وَسَلَّمَ قَـالَ لَا تَبِيْـعُوْا الذَّهَبَ بِالذَّهَبِ اِلَّا مِثْلًا بِمِثْلٍ

۷۳۹: عـبـدالـلّٰـه بـن یـوسف. مـالک. نـافـع. حـضـرت ابـوسـعـیـد خـدريؓ نـه روایـت کـوي رسـول الـلّٰـه صـلـے الـلّٰـه عـلیـه وسـلّم فرمائیلے دي. ذ سـرو پـه عـوض سـره (زر) مـه خـرڅـوئـے خـو دا چـه برابـر برابـر وي. او یـو بـل تـه زیـات یـا کـم

وَلَا تُشِفُّوا بَعْضَهَا عَلَى بَعْضٍ وَلَا تَبِيْعُوْا مِنْهَا غَائِبًا بِنَاجِزٍ.

مه خرخونې او قرض د نقد په عوض مه خرخونې.

**بـاب ۴۷۵: بَيْعِ الدِّيْنَارِ بِالدِّيْنَارِ نَسَاءً.**

**باب ۴۷۵: د دینار په عوض دینار په قرض خرخولو بیان.**

۷۴۰: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا الضَّحَّاكُ بْنُ مَخْلَدٍ حَدَّثَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عَمْرُو بْنُ دِيْنَارٍ اَنَّ اَبَا صَالِحٍ الزَّيَّاتَ اَخْبَرَهُ اَنَّهُ سَمِعَ اَبَا سَعِيْدٍ الْخُدْرِيَّ يَقُوْلُ الدِّيْنَارُ بِالدِّيْنَارِ وَالدِّرْهَمُ بِالدِّرْهَمِ فَقُلْتُ لَهُ فَاِنَّ ابْنَ عَبَّاسٍ لَا يَقُوْلُهُ فَقَالَ اَبُوْ سَعِيْدٍ فَسَاَلْتُهُ فَقُلْتُ سَمِعْتَهُ مِنَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَوْ وَجَدْتَهُ فِيْ كِتَابِ اللّٰهِ قَالَ كُلَّ ذٰلِكَ لَا اَقُوْلُ وَ اَنْتُمْ اَعْلَمُ بِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا رِبًا اِلَّا فِي النَّسِيْئَةِ.

۷۴۰: علي بن عبدالله. ضحاک بن مخلد. ابن جریج. عمرو بن دینار. ابو صالح زیات. ابو سعید خدريؓ نه روایت کوي. هغهٔ ونیلې د دینار په عوض دینار، او د درهم په عوض درهم خرخونې. ما هغهٔ ته اووې حضرت ابن عباسؓ خو به داسې نهٔ وئیلې حضرت ابوسعید اووې. ما د ابن عباسؓ نه تپوس اوکهٔ آیا تا دَ نبي صلے الله علیه وسلّم نه آوریدلې دي یا کتاب الله کښې دې لیدلې دي. هغهٔ جواب اوکهٔ زهٔ دې کښې هیڅ خبره نهٔ کوم او تهٔ رسول الله صلے الله علیه وسلّم خمانه زیات پیژنې. لیکن ما ته اسامه بیان اوکهٔ نبي صلے الله علیه وسلّم فرمائیلې دي چه سود نشته خو قرض کښې.

**بـاب ۴۷۶: بَيْعِ الْوَرِقِ بِالذَّهَبِ نَسِيْئَةً.**

**باب ۴۷۶: دَ سپینو زرو په عوض د سرو زرو د خرخولو بیان.**

۷۴۱: حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ اَخْبَرَنِيْ حَبِيْبُ بْنُ اَبِيْ ثَابِتٍ قَالَ سَمِعْتُ اَبَا الْمِنْهَالِ قَالَ سَاَلْتُ الْبَرَاءَ بْنَ عَازِبٍ وَّ زَيْدَ بْنَ اَرْقَمَ عَنِ الصَّرْفِ فَكُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا يَقُوْلُ هٰذَا مِنِّيْ فَكِلَاهُمَا يَقُوْلُ نَهٰى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

۷۴۱: حفص بن عمرو. شعبه. حبیب بن ابي ثابت. ابو المنهال بیان کوي چه براء بن عازبؓ او زید بن ارقمؓ نه مونږ د صرف متعلق تپوس اوکهٔ. دې دواړونه هر یو دا او وئیل چه هغه خما نه زیات بهتر دې. او دواړو اووئیل چه رسول الله صلے الله علیه وسلّم د چاندي په عوض د سرو زرو د خرخولو نه منع

عَنْ بَيْعِ الذَّهَبِ بِالْوَرِقِ دَيْنًا.

فرمائيلے ده.

بـاب ۷۷۴: بَيْـعِ الـذَّهَـبِ بِالْوَرِقِ يَدًا بِيَدٍ.

باب ۷۷۴: د سپينو زرو په عوض د سرو زرو د خرڅولو بيان.

۲۰۴۲: حَـدَّثَـنَا عِمْرَانُ بْـنُ مَيْسَرَةَ حَدَّثَنَا عَبَّادُ بْنُ الْعَوَّامِ اَخْبَرَنَا يَحْيَـى بْـنُ اَبِـيْ اِسْحٰقَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْـمٰـنِ بْنُ اَبِيْ بَكْرَةَ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ نَهَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْفِضَّةِ بِالْفِضَّةِ وَالذَّهَبِ بِالذَّهَبِ اِلَّا سَوَآءً بِسَوَآءٍ وَّ اَمَـرَنَـا اَنْ نَّبْتَاعَ الذَّهَبَ بِـالْفِضَّةِ كَيْفَ شِئْنَا وَالْفِضَّةَ بِالذَّهَبِ كَيْفَ شِئْنَا.

۲۰۴۲: عـمـران بـن ميسـره. عبـاده بـن عـواء. يـحيـي بـن ابـي اسـحـاق' عبدالـرحمٰن بن ابي بكره د خپـل پـلار نــه روايـت كـوي' ذ هغـوئ بيـان دے چـه نبي صلـے اللّٰـه عـلـيه وسلّم ذ چـاندي پـه عوض چـانـدي او ذ سـرو زرو پـه عـوض سـرهٔ زر د خرڅولونه منـع فـرمـائيلـے ده مـگـر دا كهٔ برابر وي او مونږ له ئے حـكـم راكـهٔ چـه ذ چـانـدي پـه عـوض سـرهٔ زر او ذ سـرو زرو پـه عـوض چـانـدي اخـلـئ. څـنگـه چه مو خوښه وي.

باب ۷۷۸: بَيْعِ الْمُزَابَنَةِ وَ هِيَ بَيْـعُ التَّـمْـرِ بِـالتَّمْرِ وَ بَيْعِ الزَّبِيْـبِ بِـالْـكَـرْمِ وَ بَيْعِ الْعَرَايَا قَالَ اَنَسٌ نَهَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْمُزَابَنَةِ وَالْمُحَاقَلَةِ.

باب ۷۷۸: بيـع مـزابنه' مزابنه دا ده چه ذ اوچو قـجـورو پـه عوض اُونه كښې لگيدلے قجورے' او منقي ذ انـگورو په عوض خرڅوي' او بيع عرايا' ذ انسؓ بيان دے چـه نبـي صـلـے اللّٰه عليه وسلّم ذ محاقله او مزابنه نه منع فرمائيلے[1] ده.

[1] . قجورے به په ناپ كولو (په ټوكرئ به اندازه كيدلے) خرڅيدلے. د باغ مالكانو به قجورے په ناپ كـولـو خـرڅـولـے. ښكاره ده. چه قجورے كله اونه كښې وي. هغه ناپ كيدے نشي د اوچو قجورو په بدله كښې په اونه كښې د لگيدلو قجورو باندے د خرڅولو اسلام څكه اجازت او كړو. چه پدے كښې د فقيرانو او حـاجتمنو فائده ده. چه زياتو ورخو پورے به هغوي ته انتظار تكليف نه وو. او د باغ د مالک به د قجورو په حـقـلـه تسلي اوشوه بل دا' چه دا كوم خرڅول نه وو. بلكه هبه وه (بخشش). د زيد بن ثابت انصاري رضي اللّٰـه عـنـه روايت باندے د احنافو عمل دے څكه چه هغه انصاري وو او د قجورو باغونه مدينه منوره كښې د انصارو وو.

۲۰۴۳: حَدَّثَنَا يَحْيَى ابْنُ بُكَيْرٍ حَـدَّثَـنَـا الـلَّيْـثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ اَخْبَـرَنِـيْ سَالِمُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ

۲۰۴۳: يـحيـي بـن بـكيـر. ليـث. عـقيـل. ابـن شهـاب. سـالـم بـن عبدالـلّٰـه' دوئ ذ عبداللّٰـه بـن عـمـرؓ نـه روايـت كـوي' چـه حـضـور صلے اللّٰه

عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا تَبِيْعُوْا التَّمَرَ حَتّٰى يَبْدُوَ صَلَاحُهُ وَلَا تَبِيْعُوْا التَّمَرَ بِالتَّمْرِ قَالَ سَالِمٌ وَ اَخْبَرَنِىْ عَبْدُ اللّٰهِ عَنْ زَيْدِ ابْنِ ثَابِتٍ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَخَّصَ بَعْدَ ذَالِكَ فِيْ بَيْعِ الْعَرِيَّةِ بِالرُّطَبِ اَوْ بِالتَّمْرِ وَلَمْ يُرَخِّصْ فِيْ غَيْرِهٖ.

عليه وسلّم و فرمائيل چه تاسو ميوے مه خرخوي تر هغے چه هغه قابل د كيتے نشي او په اونه كښ لګيدلے قجورے د اوچو په عوض مه خرخوي. سالم وائي چه ماته عبداللّه د زيد بن ثابت په روايت اوے چه رسول اللّه صلے اللّه عليه وسلّم له دے نه روستو د عريه په رطب او په تمر اجازت وركړو او په بل څيز كښ ئے ورنه كړو.

۷۴۴: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ نَافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ ابْنِ عُمَرَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهٰى عَنِ الْمُزَابَنَةِ وَالْمُزَابَنَةُ اشْتِرَآءُ التَّمَرِ بِالتَّمْرِ كَيْلًا وَّ بَيْعُ الْكَرَمِ بِالزَّبِيْبِ كَيْلًا.

۷۴۴: عبداللّه بن يوسف. مالك. نافع. عبداللّه بن عمرؓ نه روايت كوي چه رسول اللّه صلے اللّه عليه وسلّم د مزابنه د خشك قجورو په عوض پيمانے سره تر قجورے اخستل او د منقي په عوض انګور ناپ سره خرخول منع كړے دي.

۷۴۵: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ دَاوُدَ ابْنِ الْحُصَيْنِ عَنْ اَبِىْ سُفْيٰنَ مَوْلَى ابْنِ اَبِىْ اَحْمَدَ عَنْ اَبِىْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهٰى عَنِ الْمُزَابَنَةِ وَالْمُحَاقَلَةِ وَالْمُزَابَنَةُ اشْتِرَآءُ التَّمَرِ بِالتَّمْرِ فِيْ رُؤُوْسِ النَّخْلِ.

۷۴۵: عبداللّه بن يوسف. مالك. داؤد بن حصين. ابوسفيان (د ابن ابي احمد غلام) حضرت ابوسعيد خدريؓ نه روايت كوي چه رسول اللّه صلے اللّه عليه وسلّم د مزابنه او محاقله نه منع فرمائيلے ده. او مزابنه دا ده چه د خشك قجورو په عوض اونه كښ لګيدلے قجورے واخلي.

۷۴۶: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا اَبُوْ مُعٰوِيَةَ عَنِ الشَّيْبَانِيِّ عَنْ عِكْرَمَةَ

۷۴۶: مُسدّد. ابو معاويه. شيباني. عكرمه. حضرت ابن عباسؓ نه روايت كوي.

عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ نَهَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْمُحَاقَلَةِ وَالْمُزَابَنَةِ.

ذَ هغه بيان دے، رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلّم محاقلے او مزابنے نه منع فرمائيلے ده.

۷۴۷: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ مَسْلَمَةَ حَدَّثَنَا مَالِكٌ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ عَنْ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَرْخَصَ لِصَاحِبِ الْعَرِيَّةِ اَنْ يَّبِيْعَهَا بِخَرْصِهَا.

۷۴۷: عبداللّٰه بن مسلمه. مالک. نافع. حضرت ابن عمرؓ. حضرت زيد بن ثابتؓ نه روايت كوي چه رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلّم ذ عريه مالک له اجازت وركړے دے، چه دا اندازے سره خرڅے كړي.

## باب ۴۷۹: بَيْعِ الثَّمَرِ عَلٰى رُءُوْسِ النَّخْلِ بِالذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ.

## باب ۴۷۹: ذ سرو، سپينو په عوض اُونه كښ لړيدلے قجوررو ذ خرڅولو بيان.

۷۴۸: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سُلَيْمَانَ حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ اَخْبَرَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ عَنْ عَطَاءٍ وَّ اَبِي الزُّبَيْرِ عَنْ جَابِرٍ قَالَ نَهَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ بَيْعِ الثَّمَرِ حَتّٰى يَطِيْبَ وَلَا يُبَاعُ شَيْءٌ مِّنْهُ اِلَّا بِالدِّيْنَارِ وَالدِّرْهَمِ اِلَّا الْعَرَايَا.

۷۴۸: يحيي بن سليمان. ابن وهب. ابن جريج. عطاء او ابي الزبير. جابرؓ نه روايت كوي. ذهغهٔ بيان دے، نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم ذ ميوو، ذ خرڅولونه، خو پورے چه ذ هغے پوخوالے ظاهر نشي، منع فرمائيلے ده. او هغے كښ دے هيڅ څيز لاړ نشي، خو، ذ درهم او دينار په عوض (دے خرڅے شي) سوا، ذ عريا، نه (چه ذ هغے اجازت دے).

۷۴۹: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عَبْدِ الْوَهَّابِ قَالَ سَمِعْتُ مَالِكًا وَّسَاَلَهُ عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ الرَّبِيْعِ اَحَدَّثَكَ دَاوُدُ عَنْ اَبِيْ سُفْيَانَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَخَّصَ فِيْ بَيْعِ الْعَرَايَا فِيْ خَمْسَةِ اَوْسُقٍ اَوْ دُوْنَ خَمْسَةِ اَوْسُقٍ قَالَ نَعَمْ.

۷۴۹: عبدالوهاب. مالک. عبيداللّٰه بن ربيع. مالک نه تپوس او كړه، آيا ته ذ داؤد نه، هغه ذ ابوسفيان نه، هغه ذ حضرت ابوهريرهؓ نه دا حديث روايت كړے دے، چه نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم ذ پنځه وسق يا، ددے نه كم كښ ذ بيع عرايا اجازت كړے دے. هغه اووے او.

۷۵۰: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ

۷۵۰: علي بن عبداللّٰه. سُفيان. يحيي بن

حدثنا سفين قال قال يحيى بن
سعيد سمعت بشيرا قال سمعت
سهل بن ابى حثمة ان رسول الله
صلى الله عليه وسلم نهى عن بيع
التمر بالتمر و رخص في العرية ان
تباع بخرصها يأكلها اهلها رطبا و
قال سفين مرة اخرى الا انه رخص
في العرية يبيعها اهلها بخرصها
يأكلوا رطبا قال هو سوآء قال
سفين فقلت ليحيى و انا غلام ان
اهل مكة يقولون ان النبى صلى
الله عليه وسلم رخص في بيع
العرايا فقال وما يدرى اهل مكة
قلت انهم يروونه عن جابر فسكت
قال سفين انما اردت ان جابرا من
اهل المدينة قيل لسفين و ليس
فيه نهى عن بيع الثمر حتى يبدو
صلاحه قال لا.

سعيد. بشير. سهل بن ابي حثمه نه روايت کوي. رسول الله صلی الله عليه وسلم د خشک قجورو په عوض اُونه کښې ذُ لړيدلې قجورو ذ خرخولو نه منع فرمائيلې ده. او عريه کښې ئې ذ دې اجازت ورکړې دې، چه آندازه دې کړي، خرڅې دې کړي، د پاره ذدې چه مالک ئې تازه قجورې اوخوري. او سُفيان په دونم وار دا بيان اوکۀ. عريه کښې اجازت دې چه ذ دې مالک ئې آندازې سره خرڅې کړي چه قجورې اوخوري، مقصد يودې. او ذ سُفيان بيان دې، چه زۀ کم عُمره ووم، يحيي ته ما اووې، اهل مکه وائي، چه نبي صلی الله عليه وسلم ذ بيع عرايا اجازت کړې دې. هغۀ اووې، مکه والو ته ذ کوم ځائې نه معلومه شوه. ما اووې، هغه خلق ذ حضرت جابرؓ نه روايت کوي. يحيي خاموش شو. سُفيان اووې. ځما مقصد دا وو، چه حضرت جابرؓ خو، ذ اهل مدينه نه دې. سُفيان ته اووئيلې شو، اودې کښې ذ ميوې ذ خرخولو نه منع نۀ ده کړې، خو پورې چه ذ دې قابل انتفاع کيدل ظاهر نشي. هغۀ اووې. نه.

باب ۴۸۰: تفسير العرايا و
قال مالك العرايا ان يعرى الرجل
الرجل النخلة ثم يتأذى بدخوله
عليه فرخص له ان يشتريها منه
بتمر و قال ابن ادريس العرية لا
تكون الا بالكيل من التمر يدا بيد لا
يكون بالجزاف و مما يقويه قول
سهل بن ابى حثمة بالاوسق

باب ۴۸۰: ذ عرايا تفسير. عريه دې ته وائي، چه يو سړې چاته ذ قجورې اُونه ورکړي. بيا ذ هغه بار، بار راتلو سره هغه ته تکليف وي، نو هغه ته اجازت ورکړې شوې دې، چه اوچې قجورې ورکړي او هغه اُونه واخلي. او ابن ادريس اُووې ذ، عريه تمر عوض لاس په لاس ناپ (پيمانه) کول وي. آندازې سره نۀ وي. او ذ سهل بن ابي حثمه قول ذدې تائيد کوي، چه عريا وسق سره ناپ (پيمانه) کيږي. او ابن اسحق خپل

الْمُوْسَقَةِ وَقَالَ ابْنُ اِسْحٰقَ فِيْ حَدِيْثِهٖ عَنْ نَافِعٍ ابْنِ عُمَرَ كَانَتِ الْعَرَايَا اَنْ يُعْرِيَ الرَّجُلُ فِيْ مَالِهٖ النَّخْلَةَ وَالنَّخْلَتَيْنِ وَقَالَ يَزِيْدُ عَنْ سُفْيَانَ بْنِ حُسَيْنٍ الْعَرَايَا نَخْلٌ كَانَتْ تُوْهَبُ لِلْمَسَاكِيْنَ فَلَا يَسْتَطِيْعُوْنَ اَنْ يَنْتَظِرُوْا بِهَا رَخَّصَ لَهُمْ اَنْ يَبِيْعُوْهَا بِمَا شَآءُوْا مِنَ التَّمْرِ.

حدیث کښې نافع نه' هغه دَ ابن عمرؓ نه روایت اوکړ: عرایا دا' ده' چه یو سړے دَ خپل مال نه دَ قجورو یوه یا دوه اُونې ورکړي. یزید' دَ سُفیان بن حسین نه نقل اوکړ. چه عرایا' به دَ قجورو اُونې وې' چه مسکینانو ته به ورکولے شوے[۱]' خو هغوئ به دَ هغے دَ پخیدو انتظار نۀ کولو' نو هغوي ته دَدے خبرے اجازت ورکړے شو' چه دَ څومره قجورو په عوض غواړي' خرڅے دے کړي.

[۱] دا دَ هِبَې (ځان ته دَ ښځانې) صُورت دے. ذیته امام مالک رحمة الله علیه دَ خرخولو اخستلو معامله وائي. دَ امام ابو حنیفه رحمة الله علیه په نز دَ هبه ده.

۱۷۵۱: حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا مُوْسٰى بْنُ عُقْبَةَ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ عَنْ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَخَّصَ فِي الْعَرَايَا اَنْ تُبَاعَ بِخَرْصِهَا كَيْلًا قَالَ مُوْسٰى بْنُ عُقْبَةَ وَالْعَرَايَا نَخَلَاتٌ مَعْلُوْمَاتٌ تَأْتِيْهَا فَتَشْتَرِيْهَا.

۱۷۵۱: محمد. عبدالله. موسي بن عقبه. نافع. ابن عمرؓ. زید بن ثابتؓ نه روایت کوي' رسول الله صلے الله علیه وسلم عرایا کښې دَدے خبرے اجازت ورکړے دے' چه دَ ناپ آندازے دے اوکړي' خرڅے دے کړي. موسي بن عقبه اووے. عرایا هغے معیَن اُونو ته وائي چه هغے له ته راشے. او وائخلے.

## بَابُ ۱۴۸۱: بَيْعِ الثِّمَارِ قَبْلَ اَنْ يَبْدُوَ صَلَاحُهَا وَقَالَ اللَّيْثُ عَنْ اَبِي الزِّنَادِ كَانَ عُرْوَةُ ابْنُ الزُّبَيْرِ يُحَدِّثُ عَنْ سَهْلِ بْنِ اَبِيْ حَثْمَةَ الْاَنْصَارِيِّ مِنْ بَنِيْ حَارِثَةَ اَنَّهٗ حَدَّثَهٗ عَنْ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ قَالَ كَانَ النَّاسُ فِيْ عَهْدِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَبَايَعُوْنَ الثِّمَارَ فَاِذَا جَدَّ النَّاسُ وَ

## باب ۱۴۸۱: دَ قابل انتفاع کیدو نه مخکښې دَ قجورو دَ خرڅولو بیان

او' لیث دَ' ابو الزناد نه نقل اوکۀ' چه عروه بن زبیر. سهل بن ابي حثمه انصاري نه' چه دَ بني حارثه نه وو' نقل کولو' هغه دَ زید بن ثابت نه روایت اوکۀ' چه خلقو به دَ' رسول الله صلي الله علیه وسلم په زمانه کښې دَ میوو خرید و فروخت کولو. چه دَ شوکیدو وخت به راغے نو خریدار به تقاضا کولو له راتلو خریدار به وئیلے' چه میوے ته دُمان شو. دے ته

حضر تقاضيهم قال المبتاع انه اذا اصاب الثمر الدمان اصابه مراض اصابه قشام عاهات يحتجون بها فقال رسول الله صلى الله عليه وسلم لما كثرت عنده الخصومة في ذالك فاما لا فلا تتبايعوا حتى يبدو صلاح الثمر كالمشورة يشير بها لكثرة خصومتهم و اخبرني خارجة بن زيد بن ثابت ان زيد بن ثابت لم يكن يبيع ثمار ارضه حتى يطلع الثريا فيتبين الاصفر من الاحمر قال ابو عبد الله رواه علي بن بحر حدثنا حكام حدثنا عنبسة عن زكرياء عن ابي الزناد عن عروة عن سهل عن زيد.

مراض شو. قشام شو (دمان مراض. قشام د اونو د بیمارو نومونه دي). ددې قسم د نورو آفتونو ذکر به ئې کولو. او جګړې به ئې کولې. رسول صلی الله علیه وسلّم ته چه ددې قسم مقدمې کثرت سره راتلل شروع شوې نو حضور صلی الله علیه وسلّم اوفرمائیل یا' خو میوې مه خرڅوئې' څو پورې چه د میوې پوخ والے ظاهر نشي او دا حضور صلی الله علیه وسلّم د مشورې په طور اوفرمائیل' ځکه چه کثرت سره مقدمې راتلې' او ما ته خارجه بن زید بن ثابت بیان اوکړ' چه زید بن ثابت به د خپلې زمکې میوې نه خرڅولې' څو پورې چه تلې پیرونه ثریا[۱] ستورې به راختلې نهٔ وو' او سرخي او زردي به ئې ښکاره شوه ابو عبدالله (بخاري) اووې' دا' علي بن بحر بیان کړ. ماته حکام په واسطه د عنبسه. زکریا. ابوالزناد. عروه. سهل. زیا. بیان اوکړ.

۱. په داسې موقعه چه د "ثریا" د تلې پیروته ستوري د راختلو ذکر کیږي. د هغې نه د هغې خلقو مراد داور چه کله دغه ستورې د صبا په وخت را اوخیژي. علامه انور شاه کشمیري رحمة الله علیه به ویل ثریا د صبا په وخت په پشکال کښې راخیژي. په دغه وخت کښې په باغونو آفت نه راځي تولې میوې پخې شوې وي. د دنیا په تولو مقاماتو کښې په دغه ورځو کښې د میوو د اونو آفتونه ختم شي. په عربو کښې په دغه موسم کښې قجورې پنیې شي د نقصان نه محفوظ شي. په دغه وخت کښې به د میوو په اونو آفتونه مرضونه' نه راتلل.

۲۵۲: حدثنا عبد الله بن يوسف اخبرنا مالك عن نافع عن عبد الله ابن عمر ان رسول الله صلى الله عليه وسلم نهى عن بيع الثمار حتى يبدو صلاحها نهى البائع والمبتاع.

۲۵۲: عبدالله بن یوسف. مالک. نافع. عبدالله بن عمرؓ نه روایت کوي' رسول الله صلی الله علیه وسلّم د میوو د خرڅولو نه منع فرمائیلې ده' تردې چه د هغې قابل انتفاع کیدل ظاهر شي (یعني پوخ والے یا قابل فائده کیدل ئې خرګند شي) او بائع اومشتري دواړه حضور صلی الله علیه وسلّم منع فرمائیلې دي.

۷۵۳: حَدَّثَنَا ابْنُ مُقَاتِلٍ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا حُمَيْدُ الطَّوِيْلُ عَنْ اَنَسٍ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهٰى اَنْ تُبَاعَ ثَمَرَةُ النَّخْلِ حَتّٰى تَزْهُوَ قَالَ اَبُوْ عَبْدِ اللّٰهِ يَعْنِيْ حَتّٰى تَحْمَرَّ.

۷۵۳: ابن مقاتل. عبدالله. حمید طویل. حضرت انسؓ نه روایت کوي: رسول الله صلی الله علیه وسلم منع فرمائیلې ده: د دې نه چه د قجورې میوه خرڅه کړې شي، تردې چه بحه شي. ابو عبدالله (بخاري) اووې: یعني سره (سُرخ) شي.

۷۵۴: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيْدٍ عَنْ سُلَيْمِ بْنِ حَيَّانَ حَدَّثَنَا سَعِيْدُ ابْنُ مِيْنَاءَ قَالَ سَمِعْتُ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ نَهَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنْ تُبَاعَ الثَّمَرَةُ حَتّٰى تُشَقِّحَ فَقِيْلَ مَا تُشَقِّحُ قَالَ تَحْمَارُّ وَ تَصْفَارُّ وَ يُؤْكَلُ مِنْهَا.

۷۵۴: مسدد. یحیي بن سعید. سلیم بن حبان. سعید بن میناء. جابر بن عبداللهؓ روایت کوي. د هغه بیان دې. نبي صلی الله علیه وسلم منع کړې ده: چه میوه دې خرڅه شي، تردې چه مشقح شي. تپوس اوشو: مشقح کیدل څه ته وائي، اوونیلې شو: چه سره (سُرخ) شي، او زیړه شي، او د خوراک لائقه شي.

باب ۴۸۲: بَيْعِ النَّخْلِ قَبْلَ اَنْ يَّبْدُوَ صَلَاحُهَا.

باب ۴۸۲: د قابل انتفاع کیدو (پخیدو) نه مخکښ د قجورو، د خرڅولو بیان.

۷۵۵: حَدَّثَنِيْ عَلِيُّ بْنُ الْهَيْثَمِ حَدَّثَنَا مُعَلًّى حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ اَخْبَرَنَا حُمَيْدٌ حَدَّثَنَا اَنَسُ بْنُ مَالِكٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهُ نَهٰى عَنْ بَيْعِ الثَّمَرَةِ حَتّٰى يَبْدُوَ صَلَاحُهَا وَ عَنِ النَّخْلِ حَتّٰى يَزْهُوَ قِيْلَ وَمَا يَزْهُوَ قَالَ يَحْمَارُّ اَوْ يَصْفَارُّ.

۷۵۵: علي بن هشیم. معلي. هشیم. حمید. انس بن مالکؓ نبي صلی الله علیه وسلم نه روایت کوي: حضور صلی الله علیه وسلم منع فرمائیلي ده: د میوې خرڅولو نه، څو پورې چه پخه نشي او د قجورو د خرڅولو نه، څو پورې چه زهو، نشي تپوس اوشو، چه زهو څه څیز دې. اوونیلې شو، چه سره (سُرخ) شي، یا زیړه شي.

باب ۴۸۳: اِذَا بَاعَ الثِّمَارَ قَبْلَ اَنْ يَّبْدُوَ صَلَاحُهَا ثُمَّ اَصَابَتْهُ عَاهَةٌ فَهُوَ مِنَ الْبَائِعِ.

باب ۴۸۳: هر کله چه د قابل انتفاع کیدونه مخکښ چا میوې خرڅې کړې بیا په هغې څه آفت راغې، نو د بائع نقصان وي.

۷۵۶: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ حُمَيْدٍ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ اَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهٰى عَنْ بَيْعِ الثِّمَارِ حَتّٰى تُزْهِيَ فَقِيلَ لَهُ وَمَا تُزْهِيْ قَالَ حَتّٰى تَحْمَرَّ فَقَالَ اَرَاَيْتَ اِذَا مَنَعَ اللّٰهُ الثَّمَرَةَ بِمَ يَاْخُذُهُ اَحَدُكُمْ مَالَ اَخِيْهِ وَقَالَ اللَّيْثُ حَدَّثَنِيْ يُوْنُسُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ لَوْ اَنَّ رَجُلًا ابْتَاعَ ثَمَرًا قَبْلَ اَنْ يَبْدُوَ صَلَاحُهُ ثُمَّ اَصَابَتْهُ عَاهَةٌ كَانَ مَا اَصَابَهُ عَلٰى رَبِّهٖ اَخْبَرَنِيْ سَالِمُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ عَنِ ابْنِ عُمَرَ اَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا تَتَبَايَعُوا الثَّمَرَ حَتّٰى يَبْدُوَ صَلَاحُهَا وَلَا تَبِيْعُوا الثَّمَرَ بِالتَّمْرِ.

۷۵۶: عبدالله بن یوسف. مالک. حمید. انس بن مالک نه روایت کوي رسول الله صلے الله علیه وسلم د میوو د خرخولونه څو پورے چه زهو نشي. منع فرمانیلے ده. تپوس اوشو زهو څۀ ته وائي اوونیلے شو، تردے چه سره (سرخ) شي. بیائے اوفرمانیل ښۀ اوښایئے، هر کله چه الله میوه اونۀ کړه نو : کوم څیز په عوض به تاسو کښې څوک د خپل ورور مال خوري. لیث اووے. ماته یونس په واسطه د ابن شهاب بیان اوکۀ. ابن شهاب اووے کۀ یو سړي د پخیدو نه مخکښې څۀ میوه واخسته. بیا په هغې څۀ آفت راغے نو دهغے ذمه واري د هغے په مالک (بائع) شوه. د ابن شهاب بیان دے. ماته سالم بن عبدالله په واسطه د ابن عمر بیان اوکۀ، رسول الله صلے الله علیه وسلم اوفرمائیل د میوو خرید و فروخت مۀ کوے څو پورے چه پخے نشي. او د خشک قجورو په عوض اُونه کښې لړیدلے قجورے مۀ خرڅوئے.

باب ۴۸۴: شِرَاءِ الطَّعَامِ اِلٰى اَجَلٍ.

باب ۴۸۴: د یو مودے په وعده د غلے آخستلو بیان.

۷۵۷: حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصِ بْنِ غِيَاثٍ حَدَّثَنَا اَبِيْ حَدَّثَنَا الْاَعْمَشُ قَالَ ذَكَرْنَا عِنْدَ اِبْرَاهِيْمَ الرَّهْنَ فِي السَّلَفِ فَقَالَ لَا بَاْسَ بِهٖ ثُمَّ حَدَّثَنَا عَنِ الْاَسْوَدِ عَنْ عَائِشَةَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اشْتَرٰى طَعَامًا مِّنْ يَّهُوْدِيٍّ اِلٰى اَجَلٍ فَرَهَنَهٗ دِرْعَهٗ.

۷۵۷: عمرو بن حفص بن غیاث. حفص بن غیاث. اعمش بیان کوي چه مونږ ابراهیم سره قرض کښې د ګانړه ایښودلو ذکر اوکۀ، نو هغۀ اووے څۀ حرج نشته. بیا په واسطه د اسود. د بي بي عائشےؓ نه ئے نقل اوکۀ چه نبي صلے الله علیه وسلم یو یهودي سره د یو مودے په وعده غله واخسته. او خپله زغره ئے هغه سره ګانړه کیښوده.

باب ۴۸۵: إِذَا اَرَادَبَيْعَ تَمْرٍ بِتَمْرٍ خَيْرٍ مِّنْهُ.

۷۵۸: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ عَنْ مَالِكٍ عَنْ عَبْدِ الْمَجِيْدِ بِنْ سُهَيْلِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ عَنْ اَبِيْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيّ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَسْتَعْمَلَ رَجُلًا عَلٰى خَيْبَرَ فَجَآءَهُ بِتَمْرٍ خَيْبَرَ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَكُلُّ تَمْرِ خَيْبَرَ هٰكَذَا قَالَ لَا وَاللّٰهِ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّا لَنَاْخُذُ الصَّاعَ مِنْ هٰذَا بِالصَّاعَيْنِ وَالصَّاعَيْنِ بِالثَّلَاثَةِ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَفْعَلْ بِعِ الْجَمْعَ بِالدَّرَاهِمِ ثُمَّ ابْتَعْ بِالدَّرَاهِمِ جَنِيْبًا.

باب ۴۸۵: ذ ښو قجورو په بدله کښ ګډ ځوک خرابے قجورے خرڅول غواړي.

۷۵۸: قتیبه. مالک. عبدالمجید بن سهل بن عبدالرحمن. سعید بن مسیب حضرت ابوسعید خدريؓ حضرت ابوهریرةؓ نه روایت کوي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم یو سړے ذ خیبر عامل مقرر کۀ. هغه حضور صلے الله علیه وسلّم له ذ ښۀ قسم قجورے راوړے. رسول اللّٰه صلے اللّٰه علیه وسلّم تپوس او کۀ. آیا ذ خیبر ټولے قجورے داسے دي. هغۀ عرض او کۀ، نه، په خدائے چه، یا رسول اللّٰه، مونږ دا قجورے یو صاع ذ، دوه صاع په عوض واخلو. او دوه صاع ذ، درے صاع په عوض اخلو نو رسول اللّٰه صلے اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل. داسے مۀ کوه، ټولے قجورے ذ درهمونو په عوض خرڅے کړه. بیا درهمونو سره ښے قجورے واخله.

باب ۴۸۶: مَنْ بَاعَ نَخْلًا قَدْ اُبِّرَتْ اَوْ اَرْضًا مَّزْرُوْعَةً اَوْ بِاِجَارَةٍ قَالَ اَبُوْ عَبْدِ اللّٰهِ وَقَالَ لِيْ اِبْرَاهِيْمُ اَخْبَرَنَا هِشَامٌ اَخْبَرَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ قَالَ سَمِعْتُ ابْنَ اَبِيْ مُلَيْكَةَ يُخْبِرُ عَنْ نَافِعٍ مَوْلَى ابْنِ عُمَرَ اَنَّ اَيُّمَا نَخْلٍ بِيْعَتْ قَدْ اُبِّرَتْ لَمْ يُذْكَرِ الثَّمَرُ فَالثَّمَرُ لِلَّذِيْ اَبَّرَهَا وَكَذٰلِكَ الْعَبْدُ وَالْحَرْثُ سَمّٰى لَهُ نَافِعٌ هٰؤُلَآءِ الثَّلَاثَ.

باب ۴۸۶: ذ هغے سړي بیان چه پیوند کړے شوي قجورے یا زمکه چه هغے کښ فصل لړیدلے وي، خرڅه کړي یا په ټیکه ورکړي ابو عبداللّٰه (بخاري) اووے ماته ابراهیم بیان او کۀ، چه مونږ ته هشام په واسطه ذ، ابن جریج ابن ابي ملیکه. نافع (ذ ابن عمرؓ غلام) بیان او کۀ چه کله هم ذ، پیوند لړیدلے قجورو اُونے خرڅے شي. او هغے کښ ذ میوے ذکر نۀ وي، نو میوه ذ هغۀ چا ده، چه هغۀ پیوند لړوے دے. او دغه حال ذ غلام او پټي (کهیت) دے. نافع ذ دے درے واړو څیزونو نوم هغۀ ته آخستے وو.

۱. د قجورو په اونو کښې بعضې نر قجوره وي او بعضې ښځه وي په مدینه کښې دا عادرواج چه د نر
بوټي به نې ماده قجورې کښې پیوند لږولو دهغوي دا خیال وو چه دې کار سره قجورې زیاتې پیدا
کېږي. دې نه عربۍ کښې تأبیر ویلې شي.
۲. که چرې کوم بنده خپل مرینې په چا خرڅ کړي. د خرڅېدو په وخت چه څومره مال مرني سره
هغه د خرڅونکي شو خکه چه د خرڅېدو په وخت مرینې د هغه په ملکیت کښې وو داسې چه کومه
ځمکه کښې فصل ولاړ وي. او هغه زمکه په چا خرڅه کړي. او د فصل وضاحت یا بیان پکښې اونشي نو
فصل د خرڅونکي دې.
د تابیر (د پیوند لګیدلو د قجورو د اونو په حقله امام ابو حنیفه رحمة الله علیه فرمایلي دي. چه ددې
په خه فرق نه پرېوزي که تابیر چا کړې هم نه وي او د میوې په وخت فصل خرڅ کړي نو میوه به د
خرڅونکي ملکیت وي. حدیث شریف کښې اګرچه د تابیر لفظ راغلې دې خو امام صاحب واني چه دا
قید اتفاقي دې. دویم صورت دا دې چه د خرڅولو په وخت پکښې میوه هم شامل وي. نو بیا د خرڅونکي
ملکیت سوال نه پیدا کیږي.

۷۵۹: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ نَافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ اَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ بَاعَ نَخْلًا قَدْ اُبِّرَتْ فَثَمَرُهَا لِلْبَائِعِ اِلَّا اَنْ يَشْتَرِطَ الْمُبْتَاعُ.

۷۵۹: عبدالله بن یوسف. مالک. نافع. عبدالله بن عمرؓ نه روایت کوي، رسول الله صلی الله علیه وسلّم فرمائیلي دي، چا چه پیوند لږولې د قجورې اونه خرڅه کړه، نو د هغې میوه د بائع ده، خو، دا چه خریدار د هغې شرط او کړي.

## باب۴۸۷: بَيْعِ الزَّرْعِ بِالطَّعَامِ كَيْلًا.

## باب۴۸۷: د فصل د غلې په عوض د ناپ په حساب سره د خرڅولو بیان.

۷۶۰: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ نَهٰى رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْمُزَابَنَةِ اَنْ يَبِيعَ ثَمَرَ حَائِطِهٖ اِنْ كَانَ نَخْلًا بِتَمْرٍ كَيْلًا وَ اِنْ كَانَ كَرْمًا اَنْ يَبِيعَهُ بِزَبِيبٍ كَيْلًا اَوْ كَانَ زَرْعًا اَنْ يَبِيعَهُ بِكَيْلِ طَعَامٍ وَ نَهٰى عَنْ ذَالِكَ كُلِّهٖ.

۷۶۰: قتیبه. لیث. نافع. ابن عمرؓ نه روایت دې، چه رسول الله صلی الله علیه وسلّم د مزابنه نه منع فرمائیلې ده، یعني د باغ میوه که قجورې وي. د خشک قجورو په عوض د ناپ په حساب سره دې خرڅې کړي. او که انګور، وي، نو د ناپ په حساب سره د غلې په عوض دې هغه خرڅ کړي. او حضور صلی الله علیه وسلّم د دې ټولو صورتونو نه منع فرمائیلې ده.

۱. ددې معاملو د منعه کولو وجه داده. چه یو طرفته په ناپ تول، غله قجورې یا انګور ورکولې شي سل طرفته ناپ نشته صرف اندازه ده. شریعت کښې دا ضروري ده. چه اختسل خرخولو کښې دې هره معامله صفا او واضحه وي. او شک شبه دې پکښې نه وي. د کومو معاملاتو نه چه منعه شویده په هغې کښې په خرخولو اخستلو کښې د دهوکې او یو فریق د نقصان ښکاره احتمالات دي. شریعت معاملات صفا او واضحه غواړي.

باب۴۸۸: بَيْعِ النَّخْلِ بِأَصْلِهِ.

باب۴۸۸: د کجورې اُونه جرړې سره د خرخولو بیان.

۱۶۱ ۷: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اَيُّمَا امْرِىءٍ اَبَّرَ نَخْلًا ثُمَّ بَاعَ اَصْلَهَا فَلِلَّذِيْ اَبَّرَ ثَمَرُ النَّخْلِ اِلَّا اَنْ يَشْتَرِطَهُ الْمُبْتَاعُ.

۱۶۱ ۷: قتیبه بن سعید. لیث. نافع. حضرت ابن عمرؓ نه روایت کوي، نبي صلے اللّٰه علیه وسلم اوفرمائیل. کوم سړي چه د قجورې اُونې کښې پیوند اولږولو. بیا د هغې جرړه ئې خرخه کړه. نو د، اُونې میوه د هغې چا ده چه چا لږولې ده. خو، دا چه مشتري د هغې شرط اوکړي.

باب۴۸۹: بَيْعِ الْمُخَاضَرَةِ.

باب۴۸۹: د، بیع مخاضره بیان.

۱. (مخاضره) د پښیدو د فصل نه وړاندې، فصل په پټي کښې خرخولو ته وائي.

۱۶۲ ۷: حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ بْنُ وَهْبٍ حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ يُونُسَ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبِيْ قَالَ حَدَّثَنِيْ اِسْحٰقُ بْنُ اَبِيْ طَلْحَةَ الْاَنْصَارِيُّ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ اَنَّهُ قَالَ نَهٰى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْمُحَاقَلَةِ وَالْمُخَاضَرَةِ وَالْمُلَامَسَةِ وَالْمُنَابَذَةِ وَالْمُزَابَنَةِ.

۱۶۲ ۷: اسحاق. بن وهب. عمر بن یونس. یونس. اسحاق بن ابي طلحه انصاري حضرت انس بن مالکؓ روایت کوي. د هغه بیان دې، چه رسول اللّٰه صلے اللّٰه علیه وسلّم د، محاقله، مخاضره، ملامسه منابذه او مزابنه نه منع فرمائیلې ده.

۱۶۳ ۷: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ بْنُ جَعْفَرٍ عَنْ حُمَيْدٍ عَنْ اَنَسٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهٰى عَنْ بَيْعِ التَّمْرِ بِالتَّمْرِ

۱۶۳ ۷: قتیبه. اسمٰعیل بن جعفر. حمید. انسؓ نه روایت کوي، چه نبي صلے اللّٰه علیه وسلّم د خشک قجورو په عوض اُونه کښې د، لږیدلې قجورو د خرخ نه منع فرمائیلې وه، خو پورې چه زهو نشي. مونږ د، انس

حَتّٰى تَزْهُوَ فَقُلْنَا لِاَنَسٍ مَّا زَهُوُهَا قَالَ تَحْمَرُّ وَ تَصْفَرُّ اَرَاَيْتَ اِنْ مَنَعَ اللّٰهُ الثَّمْرَةَ بِمَ تَسْتَحِلُّ مَالَ اَخِيْكَ.

نه تپوس او كړ: د دے زهو كيدل څه دي: هغه اووے: چه سرے (سُرخ) شي او زيړے شي. ښه او ښايه: كه الله ميوه اونه كړي: نو د څه څيز په عوض كښې به د خپل ورور مال خوري.

## بـــــاب ۴۹۰: بَيْـــعِ الْـــجُـــمَّـــــــــارِ وَ اَكْلِه.

## باب ۴۹۰: د قجورو د جُمّار (د قجورے د اونے ګوند چه د چربي په شان سپين وي) خرخولو او د هغے د خوړلو بيان.

۱. د قجورے په اونه كښې چيرته جُمّار وائي. دا د وازدے پشان وي او خوړلے هم شي. چه كله د قجورے اونه كښې چيرِ رااوخيژي. بيا هغه قجورے نه كوي.

۴۶۷: حَـدَّثَـنَـا اَبُـوْ الْـوَلِيْـدِ هِشَامُ بْـنُ عَبْـدِ الْـمَـلِكِ حَـدَّثَـنَـا اَبُوْ عَوَانَةَ عَنْ اَبِيْ بَشْرٍ عَنْ مُجَاهِدٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ كُنْتُ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ يَأْكُلُ جُمَّارًا فَقَالَ مِنَ الشَّجَرِ شَجَرَةٌ كَالرَّجُلِ الْمُؤْمِنِ فَاَرَدْتُ اَنْ اَقُوْلَ النَّخْلَةُ فَاِذَآ اَنَا اَحْدَثُهُمْ قَالَ هِيَ النَّخْلَةُ.

۴۶۷: ابوالوليد. هشام بن عبدالملك. ابو عوانه. ابوالبشر. مجاهد. ابن عمرؓ نه روايت كوي: د هغه بيان دے: زهٔ رسول الله صلے الله عليه وسلّم سره ووم: او حضور صلے الله عليه وسلّم د قجورو جُمار خوړلو. بيا حضور صلے الله عليه وسلّم اوفرمائيل: اُونو كښې يوه اُونه داسے ده: چه ذ مردِ مؤمن په شان ده: ما غوښتل: چه اووائم هغه ذ قجورے اُونه ده. ليكن هغه وخت زهٔ كم عمره ووم: نو حضور صلے الله عليه وسلّم خپله اوفرمائيل: هغه ذ قجورے اُونه ده.

## بـاب ۴۹۱: مَـنْ اَجْـرٰى اَمْرَ الْاَمْصَارِ عَلٰى مَا يَتَعَارَفُوْنَ بَيْنَهُمْ فِـى الْـبُـيُـوْعِ وَالْاِجَارَةِ وَالْمِكْيَالِ وَالْوَزْنِ وَ سُنَنِهِمْ عَلٰى نِيَّاتِهِمْ وَ مَذَاهِبِهِمُ الْمَشْهُوْرَةِ وَ قَالَ شُرَيْحٌ لِلْغَزَّالِيْنَ سُنَّتُكُمْ بَيْنَكُمْ رِبْحًا وَّ قَالَ عَبْدُ الْوَهَّابِ عَنْ اَيُّوْبَ عَنْ مُحَمَّدٍ لَا بَـأْسَ الْـعَـشَرَةُ بِاَحَدَ عَشَرَ وَ يَأْخُذُ

## باب ۴۹۱: خريد و فروخت: ټيكه او ناپ تول كښې به د هر ښار: دخلقو په عرف د هغوي رسم و رواج د ينونو او مشهورو طريقو باندے حكم جاري وي. او شريح كپړے جوړونكو ته اووے: چه ستاسو د رسم و رواج مطابق به حكم كولے شي. او عبدالوهاب په واسطه د ايوب. محمّد بيان او كړ: چه د لس د څيز د يولس په عوض خرخولو كښې هيڅ حرج نشته. او د خرچ په عوض كښې دے نفع واخلي او نبي صلے الله

لِلنَّفَقَةِ رِبْحًا وَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِهِنْدٍ خُذِيْ مَا يَكْفِيْكِ وَلَدَكِ بِالْمَعْرُوْفِ وَ قَالَ تَعَالٰى وَمَنْ كَانَ فَقِيْرًا فَلْيَاْكُلْ بِالْمَعْرُوْفِ وَاكْتَرَى الْحَسَنُ مِنْ عَبْدِ اللّٰهِ ابْنِ مِرْدَاسٍ حِمَارًا فَقَالَ بِكَمْ قَالَ بِدَانَقَيْنِ فَرَكِبَهٗ ثُمَّ جَآءَ مَرَّةً اُخْرٰى فَقَالَ الْحِمَارَ الْحِمَارَ فَرَكِبَهٗ وَلَمْ يُشَارِطْهُ فَبَعَثَ اِلَيْهِ بِنِصْفِ دِرْهَمٍ.

عليه وسلّم هند ته فرمائيلے وو. دٔ قاعدے مطابق دو[illegible] واخله، چه ستا او ستا دٔ بچو دٔ پاره کافي وي. او[illegible] تعالي فرمائيلے دي، چه څوک فقير وي، نو دٔ قاعدے مطابق دے خوري، او حسن دٔ عبدالله بن مرداس نه[illegible] خر په کرايه واخست، نو تپوس ئے او کۀ، څومره کرايه ده، وے وئيل، دوه دانق. بيا په هغے سور شو. بيا په دويم[illegible] ځل راغے، نو وے وئيل، خر پکار دے. خر پکار دے، په هغے سور شو. او څۀ کرايه ئے فيصله نۀ کړه. او عبدالله ته ئے نيم درهم اوليږلو[1].

۱. په کوم ځائے کښې چه د ناپ تول، د خرخولو، اخستلو کومے طريقے رائج وي که چرے هغه د شرعي اصولو ضابطو خلاف نه دي نو ټولو معاملاتو کښې به هغه عرفي معلومے طريقے د عمل د پاره وي. او که کومه معامله کښې اختلاف وغيره اوشي. نو د فيصلے په وخت د علاقے رسم و رواج ته به کتلے شي د دے مسئلو تفصيلات د فقهے په کتابونو کښې کتلے شي. امام بخاري رحمة الله عليه هم څو مسئلے روايت کړيدي.

۷۶۵: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ حُمَيْدِ الطَّوِيْلِ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ حَجَمَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَبُوْ طَيْبَةَ فَاَمَرَ لَهٗ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِصَاعٍ مِّنْ تَمْرٍ وَّ اَمَرَ اَهْلَهٗ اَنْ يُّخَفِّفُوْا عَنْهُ مِنْ خَرَاجِهٖ.

۷۶۵: عبدالله بن يوسف. مالک. حميد طويل. انس بن مالکؓ نه روايت کوي. دٔ هغهٔ بيان دے، رسول الله صلے الله عليه وسلّم ته ابو طيبه ښکر اولږولو. نو رسول الله صلے الله عليه وسلّم هغهٔ ته دٔ يو صاع قجورو ورکولو حکم اوکهٔ. او د هغهٔ مولي ته ئے حکم اوکهٔ، چه خراج ئے کم کړي.

۷۶۶: حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا سُفْيٰنُ عَنْ هِشَامٍ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَآئِشَةَ قَالَتْ هِنْدُ اُمُّ مُعٰوِيَةَ لِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّ اَبَا سُفْيَانَ رَجُلٌ شَحِيْحٌ فَهَلْ عَلَيَّ جُنَاحٌ اَنْ اٰخُذَ مِنْ مَّالِهٖ سِرًّا قَالَ

۷۶۶: ابو نعيم. سُفيان. هشام. عروه. بي بي عائشےؓ نه روايت کوي، دٔ هغے بيان دے، چه د معاويهؓ مور رسول الله صلے الله عليه وسلّم ته عرض اوکهٔ چه ابو سفيان يو بخيل سړے دے آيا ما د پاره جائز دي، چه دٔ هغهٔ د مال نه په پټه څه واخلم. حضور ورته اوفرمائيل، تهٔ دٔ قاعدے

خُذِيْ اَنْتِ وَ بَنُوْكِ مَا يَكْفِيْكِ بِالْمَعْرُوْفِ.

مطابق دومره اخله، چه تا، له او ستا بچو له كافي وي.

۲۶۷: حَدَّثَنِيْ اِسْحٰقُ حَدَّثَنَا ابْنُ نُمَيْرٍ اَخْبَرَنَا هِشَامٌ ح وَ حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدٌ قَالَ سَمِعْتُ عُثْمٰنَ ابْنَ فَرْقَدٍ قَالَ سَمِعْتُ هِشَامَ بْنَ عُرْوَةَ يُحَدِّثُ عَنْ اَبِيْهِ اَنَّهُ سَمِعَ عَائِشَةَ تَقُوْلُ وَ مَنْ كَانَ غَنِيًّا فَلْيَسْتَعْفِفْ وَمَنْ كَانَ فَقِيْرًا فَلْيَاْكُلْ بِالْمَعْرُوْفِ اُنْزِلَتْ فِيْ وَالِي الْيَتِيْمِ الَّذِيْ يُقِيْمُ عَلَيْهِ وَ يُصْلِحُ فِيْ مَالِهِ اِنْ كَانَ فَقِيْرًا اَكَلَ مِنْهُ بِالْمَعْرُوْفِ.

۲۶۷: اسحق. ابن نمير. هشام. ح. محمد. عثمان بن فرقد. هشام بن عروه. بي بي عائشې نه روايت كوي: هغې فرمائيل: كوم سړے چه مالدار وي، هغه دے خان بچ كړي او كوم سړے چه فقير وي، نو هغه دے د دستور مطابق خوري، او دا آيت د يتيم د سرپرست په باره كښې نازل شوے دے، چه د هغه نګراني كوي، او د هغه د مال نګراني كوي، كه فقير وي، نو د دستور مطابق دے د هغې نه خوري.

## باب ۴۹۲: بَيْعِ الشَّرِيْكِ مِنْ شَرِيْكِه.

## باب ۴۹۲: د، يو شريک د بل شريک په لاس د خرڅولو بيان.

۲۶۸: حَدَّثَنِيْ مَحْمُوْدٌ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ اَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ عَنْ جَابِرٍ جَعَلَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الشُّفْعَةَ فِيْ كُلِّ مَالٍ لَمْ يُقْسَمْ فَاِذَا وَقَعَتِ الْحُدُوْدُ وَ صُرِّفَتِ الطُّرُقُ فَلَا شُفْعَةَ.

۲۶۸: محمود. عبدالرزاق. معمر. زهري. ابوسلمه. حضرت جابر نه روايت كوي، چه شفعه هر هغې مال كښې قائم كړے شوے ده، چه تقسيم شوے نه وي، او هر كله چه حد بندي شوے وي، او لارے كرخولے شوي وي، نو شفعه نشته.

۱. شفعه هغې حق ته وائي چه دګاوندي يا د شريک مال كښې د خرڅولو په وخت د بنده وي. چه كله د چا ګاونډي يا شريكوال خپل كور جائيداد خرڅوي نو ګاونډي يا شريک به خبره وي. كه خبرئے نه كړو او چاپردي سړي باندے ئې جائيداد خرڅ كړو او هغه پرے دعوه اوكړه. نو ګاونډي يا شريک له به ترجيح وركولے شي چاته چه د شفعے حق حاصل دے.

## باب ۴۹۳: بَيْعِ الْاَرْضِ وَ الدُّوْرِ وَالْعُرُوْضِ مُشَاعًا غَيْرَ مَقْسُوْمٍ.

## باب ۴۹۳: د مشتركے زمكے، مكانونو او سامان د خرڅولو بيان چه تقسيم شوے نه وي.

۷۶۹: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مَحْبُوْبٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ حَدَّثَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ قَضَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالشُّفْعَةِ فِيْ كُلِّ مَالٍ لَمْ يُقْسَمْ فَاِذَا وَقَعَتِ الْحُدُوْدُ وَ صُرِّفَتِ الطُّرُقُ فَلَا شُفْعَةَ حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ بِهٰذَا وَ قَالَ فِيْ كُلِّ مَا لَمْ يُقْسَمْ تَابَعَهُ هِشَامٌ عَنْ مَعْمَرٍ قَالَ عَبْدُ الرَّزَاقِ فِيْ كُلِّ مَالٍ وَرَوَاهُ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ اِسْحٰقَ عَنِ الزُّهْرِيِّ.

۷۶۹: محمد بن محبوب. عبدالواحد. معمر. زهري. ابوسلمه بن عبدالرحمٰن. جابر بن عبداللّٰه نه روایت کوي، ذ هغهٔ بیان دے، چه نبي صلے اللّٰه علیه وسلّم ذ شفعے په هر هغے مال کښ حکم ورکهٔ، چه تقسیم شوے نهٔ وي کوم وخت چه حد بندي اوشي. او لارے بدلے شي، نو شفعه نشته. مونږ ته مُسدد بیان اوکهٔ چه مونږ ته عبدالواحد دا حدیث بیان کهٔ او وئیلے، هر هغے څیز کښ شفعه شته، چه تقسیم شوے نهٔ وي. هشام ذ معمر نه ذ دے متابع حدیث روایت کړے دے. عبدالرزاق اووے، ذ، هر مال نه، او عبدالرحمٰن بن اسحاق ذ، زهري نه دغسے نقل کړے دے.

## باب ۴۹۴: اِذَا اشْتَرٰى شَيْئًا لِغَيْرِهٖ بِغَيْرِ اِذْنِهٖ فَرَضِيَ.

## باب ۴۹۴: کهٔ یو څیز بل ذ پاره ذ، هغهٔ ذ، اجازت نه بغیر واخلي او بیا هغه راضي شي.

۷۷۰: حَدَّثَنَا يَعْقُوْبُ بْنُ اِبْرَاهِيْمَ حَدَّثَنَا اَبُوْ عَاصِمٍ اَخْبَرَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ مُوْسَى بْنُ عُقْبَةَ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ خَرَجَ ثَلٰثَةٌ يَمْشُوْنَ فَاَصَابَهُمُ الْمَطَرُ فَدَخَلُوْا فِيْ غَارٍ فِيْ جَبَلٍ فَانْحَطَّتْ عَلَيْهِمْ صَخْرَةٌ قَالَ فَقَالَ بَعْضُهُمْ لِبَعْضٍ اُدْعُوا اللّٰهَ بِاَفْضَلِ عَمَلٍ عَمِلْتُمُوْهُ فَقَالَ اَحَدُهُمْ اَللّٰهُمَّ اِنِّيْ كَانَ لِيْ اَبَوَانِ شَيْخَانِ كَبِيْرَانِ فَكُنْتُ اَخْرُجُ فَاَرْعٰى ثُمَّ اَجِيْءُ

۷۷۰: یعقوب بن ابراهیم. ابوعاصم. ابن جریج. موسیٰ بن عقبه. نافع. ابن عمرؓ نبي صلے اللّٰه علیه وسلّم نه روایت کوي، حضور صلے اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل. درے سړي روان وو، نو باران شو. هغوي درے واړه ذے، غر یو غارته ننوتل. یو کټ ذ پورته نه را پریوت (او ذ، غار خوله بنده شوه) نو یو بل ته ئے اووے، ذ، اللّٰه نه ذ، یو بهتر عمل په واسطه دُعا اوغواړئ، چه تاسو کړے وي. هغوي کښ یو، اووے. اے خما اللّٰه. خما مور پلار ډیر بوډاګان وو. زهٔ به بهر تلم او څناور به م څرول. بیا به واپس راتلم، نو پئے به م اولشل، او مور پلار له به م راوړل، چه هغوي به اوڅکل، نو بښخے، بچو او کور والو ته به م ورکول. یوه شپه په ما ناوخته شو. زهٔ راغلم، نو

فَاَحْلُبُ فَاَجِيءُ بِالْحِلَابِ فَاٰتِيْ بِهٖ
اَبَوَيَّ فَيَشْرِبَانِ ثُمَّ اَسْقِي الصِّبْيَةَ وَ
اَهْلِيْ وَامْرَاَتِيْ فَاحْتَبَسْتُ لَيْلَةً
فَجِئْتُ فَاِذَا هُمَا نَائِمَانِ قَالَ فَكَرِهْتُ
اَنْ اُوْقِظَهُمَا وَالصِّبْيَةُ يَتَضَاغَوْنَ عِنْدَ
رِجْلَيَّ فَلَمْ يَزَلْ ذَالِكَ دَأْبِيْ وَ دَأْبُهُمَا
حَتّٰى طَلَعَ الْفَجْرُ اَللّٰهُمَّ اِنْ كُنْتَ
تَعْلَمُ اِنِّيْ فَعَلْتُ ذَالِكَ ابْتِغَاۤءَ وَجْهِكَ
فَافْرُجْ عَنَّا فُرْجَةً نَّرٰى مِنْهَا السَّمَاۤءَ
قَالَ فَفُرِجَ عَنْهُمْ وَ قَالَ الْاٰخَرُ اَللّٰهُمَّ
اِنْ كُنْتَ تَعْلَمُ اَنِّيْ كُنْتُ اُحِبُّ امْرَاَةً
مِّنْ بَنَاتِ عَمِّيْ كَاَشَدِّ مَا يُحِبُّ
الرَّجُلُ النِّسَاۤءَ فَقَالَتْ لَا تَنَالُ ذٰلِكَ
مِنْهَا حَتّٰى تُعْطِيَهَا مِائَةَ دِيْنَارٍ فَسَعَيْتُ
فِيْهَا حَتّٰى جَمَعْتُهَا فَلَمَّا قَعَدْتُ بَيْنَ
رِجْلَيْهَا قَالَتْ اِتَّقِ اللّٰهَ وَلَا تَفُضَّ
الْخَاتَمَ اِلَّا بِحَقِّهٖ فَقُمْتُ وَ تَرَكْتُهَا فَاِنْ
كُنْتَ تَعْلَمُ اَنِّيْ فَعَلْتُ ذٰلِكَ ابْتِغَاۤءَ
وَجْهِكَ فَافْرُجْ عَنَّا فُرْجَةً قَالَ فَفُرِجَ
عَنْهُمُ الثُّلُثَيْنِ وَ قَالَ الْاٰخَرُ اَللّٰهُمَّ اِنْ
كُنْتَ تَعْلَمُ اَنِّيْ اسْتَاْجَرْتُ اَجِيْرًا
بِفَرَقٍ مِّنْ ذُرَةٍ فَاَعْطَيْتُهٗ وَ اَبٰى ذَاكَ
اَنْ يَّاْخُذَ فَعَمَدْتُ اِلٰى ذَالِكَ الْفَرَقِ
فَزَرَعْتُهٗ حَتّٰى اشْتَرَيْتُ مِنْهُ بَقَرًا
وَرَاعِيَهَا ثُمَّ جَاۤءَ فَقَالَ يَا عَبْدَ اللّٰهِ
اَعْطِنِيْ حَقِّيْ فَقُلْتُ اِنْطَلِقْ اِلٰى تِلْكَ

دواړه (خما مور پلار) اُودهٔ شوي وو. ماته دا مناسب
ښکاره نهٔ شوه، چه هغوي راويښ کړم. او بچو خما پښو
سره دَ لوږې نه ژړل. سحر ختو پورې خما دغه حالت
وو. اے اللّٰه، تاته معلومه ده، کهٔ دا ما ستا دَ رضامندي دَ
پاره کړي وي، نو دا کټ خمونږ نه لږ لرے کړے، چه
آسمان خو، اوليدے شو. نو کټ څهٔ قدرے اخوا شو. بيا
دوئم سړي اووے. اے اللّٰه، خما دَ خپل ترهٔ يوے لور
سره بے انتها محبت وو، څومره چه يو سړے ښځو سره
محبت کوي. خو هغے اووے، تهٔ خپل مقصد مانه، نهٔ شے
حاصلولے، څو پورې چه سل ديناره، رانهٔ کړے. ما
محنت سره سل ديناره جمع کړل، کوم وخت چه زهٔ دَ
هغے دَ دواړو پښو مينځ کښېناستم. نو هغے اووے.
دَ اللّٰه نه اويريږه مُهر ناجائز طور سره مهٔ ماتوه. زهٔ
اُودريدم. او هغه م پريښوده. اے اللّٰه، تاته معلومه ده، چه
ما صرف ستا دَ رضا دَ پاره دغسے او کړل، نو دا کټ څهٔ
قدرے لرے کړے. نو هغه کاڼړے ۲/۳ حصه اخوا شو. بيا
هغے دريم سړي اووے. اے اللّٰه. ما يو مزدور، دَ يو
فرق (يوه پيمانه) جوارو په عوض په کار اولږولو
کوم وخت چه ما هغه ورکول، نو هغه دَ آخستو نه
انکار او کهٔ. ما هغه جوار پټي کښې او کرل، ترڅو
چه په هغے (يعنے دَ هغے په آمدن) ما، غوا، غوئ او
غوبه واخستل. بيا هغه سړے راغے، او، وے وئيل،
اے دَ اللّٰه بنده، تهٔ ماله خپل حق راکړه. ما ورته
اووے، دے غواګانو، غويانو او غوبه له ورشه، او،
دا، واخله، دا، ستادي. هغهٔ اووے، آيا ما سره ټوقے
کوے، ما هغهٔ ته اووے، زهٔ تاسره ټوقے نهٔ

الْبَـقَـرِ وَ رَاعِيُهَـا فَـاِنَّهَا لَكَ فَـقَـالَ اَتَسْتَهْزِئُ بِـيْ فَقُلْتُ مَا اَسْتَهْزِئُ بِكَ وَلٰـكِنَّهَا لَكَ اَللّٰهُمَّ اِنْ كُنْتَ تَعْلَمُ اَنِّيْ فَعَلْتُ ذَالِكَ اِبْتِغَآءَ وَجْهِكَ فَافْرُجْ عَنَّا فَكُشِفَ عَنْهُمْ.

كـوم. دا (هـرڅـهٔ) ستـا دي. نـو، اے خـدا اللّٰه تـاتـه مـعـلـومـه ده، كـهٔ مـا صـرف ستـا خـوشـنـودئ د پـاره داسـے كـړے وي نو دا كـږ خـمـوږ نـه بيـرتـه كـړے. نو هغه كټ د هغوئ نه بيرته شو ـا.

ا. ددے دعـا كـونـكـي دا عمل نيـک اوبنه كار نه دے بلكے په خپل بال بچ بنكاره ظلم او زياتے دے چـه هـغـوي د لـوږے نه ژاړي ولاړ دي. او دے ورله شوده (پي) نه وركوي. علامه انور شاه كشميري رحمه اللّٰـه عليه ليكلے دي. چه دا واقعه ظلم دے خو ددغـے سړي په بنه نيت او صالح كيدو كښې هيڅ شک نشته. هغه ته د هغه په نيت اجر وركړے شويدے كني په دے كښې څه لرے والے نشته كه چرے يو پوهه عـالم بنده داسے كار كوي نو هغه پرے نيولے شي كه نيت بنه وي. نو د جاهل ناپوهه ناكاره عمل باندے الله تعالٰي اجر وركوي. دا د هغه د جهالت او بے خبرئ په وجه دا واقعه د يو نيک بے وقوفه مثال دے.

## باب ۴۹۵: اَلشِّـرَآءِ وَالْبَيْعِ مَعَ الْمُشْرِكِيْنَ وَ اَهْلِ الْحَرْبِ.

## بـاب ۴۹۵: مشـركـيـنـو او دارالـحـرب كښې اوسيدونكو سره دَ خريد و فروخت كولو بيان.

۱۷۷: حَـدَّثَـنَـا اَبُـو النُّعْمَـانِ حَـدَّثَـنَـا مُعْتَمِرُ بْنُ سُلَيْمٰنَ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ اَبِيْ عُثْمٰنَ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ اَبِـيْ بَـكْـرٍ قَـالَ كُنَّا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰـهُ عَـلَيْـهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ جَـآءَ رَجُلٌ مُّشْرِكٌ مُشْعَـانٌ طَوِيْلٌ بِغَنَمٍ يَّسُوْقُهَا فَـقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْـعًـا اَمْ عَطِيَّةً اَوْ قَالَ اَمْ هِبَةً قَالَ لَا بَلْ بَيْعٌ فَاشْتَرٰى مِنْهُ شَاةً.

۱۷۷: ابـوالنعمان. معتمر بن سُليمٰن. ابوعثمان. عـبـدالـرحـمٰن بن ابي بكر نه روايت دے، دَهغهٔ بيان دے چـه مـونږ نبـي صـلـے الـلّٰـه عليـه وسلّم سره وو. بيا يو مشـرک سـړے راغـے، چـه اوږود، وو، او دَ هـغـهٔ دسر ويښتـه پـريشـانه وو چيلئے ئے شړلے. نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم د هـغهٔ نه تپوس اوكهٔ، خرڅول غواړے، يا عطيه يا هبه په طرز وركول غواړے، هغهٔ اووے نه، بلكه خرڅول غواړم، نـو حـضـور صـلـے الـلّٰـه عليه وسلّم د هغهٔ نه يوه چيلئے واخسته.

## باب ۴۹۶: شِـرَآءِ الْـمَـمْلُوْكِ مِنَ الْـحَـرْبِـيِّ وَ هِبَتِهٖ وَ عِتْقِهٖ وَ قَالَ النَّبِـيُّ صَـلَّـى الـلّٰـهُ عَلَيْـهِ وَسَلَّمَ لِسَلْمَانَ كَاتِبْ وَ كَانَ حُرًّا فَظَلَمُوْهُ وَ بَـاعُـوْهُ وَسُبِيَ عَمَّارٌ وَ صُهَيْبٌ وَّ بِلَالٌ

## باب ۴۹۶: حـربـي نـه دَ، غلام اخستو، د هغه دَ هـبـه كـولـو او آزادولـو بيـان او نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم سـلـمـان ته اوفرمائيل كتابت اوكړه. دے آزاد وو. ليكن په دهٔ خلقو ظلم اوكهٔ. او دے ئے خرڅ كړلو. او عمار، صـهـيـب او بلال قيد كړے شو او اللّٰه تعالٰي اوفرمائيل، چه

وَقَالَ اللّٰهُ تَعَالٰى وَاللّٰهُ فَضَّلَ بَعْضَكُمْ عَلٰى بَعْضٍ فِى الرِّزْقِ فَمَا الَّذِيْنَ فُضِّلُوْا بِرَآدِّىْ رِزْقِهِمْ عَلٰى مَا مَلَكَتْ اَيْمَانُهُمْ فَهُمْ فِيْهِ سَوَآءٌ اَفَبِنِعْمَةِ اللّٰهِ يَجْحَدُوْنَ.

اللّٰه تاسو کښې بعضو له په بعضو رزق کښې فضیلت ورکړے دے. نو کومو خلقو ته چه زیاته روزي ورکړے شوه، هغوي په خپلو وینزو او غلامانو خپل رزق نه واپس کوي چه هغوي ټول برابر شي. آیا دا خلق دَ اللّٰه دَ نعمتونو نه انکار کوي.

۲۷۷: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ حَدَّثَنَا اَبُو الزِّنَادِ عَنِ الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِىْ هُرَيْرَةَ رَضِىَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ النَّبِىُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَاجَرَ اِبْرَاهِيْمُ عَلَيْهِ السَّلَامُ بِسَارَةَ فَدَخَلَ بِهَا قَرْيَةً فِيْهَا مَلِكٌ مِّنَ الْمُلُوْكِ اَوْ جَبَّارٌ مِّنَ الْجَبَابِرَةِ فَقِيْلَ دَخَلَ اِبْرٰهِيْمُ بِامْرَاَةٍ هِىَ مِنْ اَحْسَنِ النِّسَآءِ فَاَرْسَلَ اِلَيْهِ اَنْ يَّا اِبْرَاهِيْمُ مَنْ هٰذِهِ الَّتِىْ مَعَكَ قَالَ اُخْتِىْ ثُمَّ رَجَعَ اِلَيْهَا فَقَالَ لَا تُكَذِّبِىْ حَدِيْثِىْ فَاِنِّىْ اَخْبَرْتُهُمْ اَنَّكِ اُخْتِىْ وَاللّٰهِ اِنْ عَلَى الْاَرْضِ مُؤْمِنٌ غَيْرِىْ وَغَيْرُكِ فَاَرْسَلَ بِهَا اِلَيْهِ فَقَامَ اِلَيْهَا فَقَامَتْ تَوَضَّاُ وَتُصَلِّىْ فَقَالَتْ اَللّٰهُمَّ اِنْ كُنْتُ اٰمَنْتُ بِكَ وَبِرَسُوْلِكَ وَاَحْصَنْتُ فَرْجِىْ اِلَّا عَلٰى زَوْجِىْ فَلَا تُسَلِّطْ عَلَىَّ الْكَافِرَ فَغُطَّ حَتّٰى رَكَضَ بِرِجْلِهٖ

۲۷۷: ابوالیمان. شعیب. ابوالزناد. اعرج. ابوهریره نه روایت دے، نبي صلی اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل. ابراهیم علیه السّلام بي بي سارهؓ سره هجرت اوکۀ. هغې سره داسې آبادئ ته اورسید، چه هلته بادشاهانو کښې یو بادشاه یا ظالم حکمرانانو کښې یو ظالم حکمران اوسیدلو هغۀ ته بیان اوشو، چه ابراهیم علیه السّلام دلته یوه خائسته ښځه راوستې ده. ابراهیمؑ علیه السلام ته هغۀ یو سړے دریافت دَ پاره اولیږلو، چه اے ابراهیمهٔ (علیه السّلام) دا ښځه تاسره څوک ده. ابراهیم علیه السلام ورته اووے دا خما خور، ده. بیا حضرت ابراهیم علیه السلام بي بي ساره له راغے، او ورته ئے اووے، چه خما خبره دروغ نۀ کړے. ما هغې خلقوته اووے، چه تۀ خما خور، ئے. په خدائے چه، په دے زمکه خما او ستا، نه سوا، څوک مؤمن نشته. او بي بي سارهؓ ئے هغه بادشاه ته اولیږله. هغه بادشاه بي بي سارهؓ له ورغے، نو هغه اودریدله اودس نه پس ئے مونځ اوکۀ، او دُعائے اوکړله، چه یا اللّٰه، کۀ ما په تا او ستا په رسول ایمان راوړے وي. او ما دَ خپل شرمګاه ماسوا، دَ خپل خاوند نه حفاظت کړے وي، نو په ما دا کافر مُسلّط مۀ کړے، نو هغه بادشاه په زمکه راپریوت، خرړا، ئے شروع کړه، تردے چه لتے ئے ټکولے. اعرج وائي. ابوسلمه بن

قَالَ الْاَعْرَجُ قَالَ اَبُوْ سَلْمَةَ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ اَنَّ اَبَا هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَتْ اَللّٰهُمَّ اِنْ يَّمُتْ يُقَالُ هِيَ قَتَلَتْهُ فَاُرْسِلَ ثُمَّ قَامَ اِلَيْهَا فَقَامَتْ تَوَضَّأُ تُصَلِّيْ وَ تَقُوْلُ اَللّٰهُمَّ اِنْ كُنْتُ اٰمَنْتُ بِكَ وَ بِرَسُوْلِكَ وَ اَحْصَنْتُ فَرْجِيْ اِلَّا عَلٰى زَوْجِيْ فَلَا تُسَلِّطْ عَلَيَّ هٰذَا الْكَافِرَ فَغُطَّ حَتّٰى رَكَضَ بِرِجْلِهٖ قَالَ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ قَالَ اَبُوْ سَلَمَةَ قَالَ اَبُوْ هُرَيْرَةَ فَقَالَتْ اَللّٰهُمَّ اِنْ يَّمُتْ فَيُقَالُ هِيَ قَتَلَتْهُ فَاُرْسِلَ فِي الثَّانِيَةِ اَوْ فِي الثَّالِثَةِ قَالَ وَاللّٰهِ مَا اَرْسَلْتُمْ اِلَيَّ اِلَّا شَيْطَانًا اِرْجِعُوْهَا اِلٰى اِبْرَاهِيْمَ وَ اَعْطُوْهَا اٰجَرَ فَرَجَعَتْ اِلٰى اِبْرَاهِيْمَ عَلَيْهِ السَّلَامُ فَقَالَتْ اَشَعَرْتَ اَنَّ اللّٰهَ كَبَتَ الْكَافِرَ وَ اَخْدَمَ وَلِيْدَةً.

عبدالرحمن بیان اوکهٔ' چه حضرت ابوهریرهؓ اووے' بي بي سارهؓ دُعا اوکړه' اے اللّٰه' کهٔ دے مړشي' نو خلق به وائي' چه دے ښځے دا بادشاه قتل کړے دے. نو د بادشاه هغه حالت لرے شو. خو بیا هغے طرف ته ورپاسید. بي بي سارهؓ بیا اودریده اودس نه پس ئے مونځ اوکهٔ. بیائے دُعا اوکړه' چه اے اللّٰه' کهٔ ما په تا او ستا په رسول ایمان راوړے وي' او ما بغیر د خپل خاوند نه د ټولو نه د خپل شرمګاه حفاظت کړے وي' نو دا کافر په ما مُسلط مکړے' نو هغه کافر په زمکه راوغرځید' او خرړا' ئے شروع کړه' تردے چه پښے ئے وهلے. عبدالرحمن په واسطه دَ ابوسلمه ابوهریره نه نقل اوکهٔ' چه بي بي سارهؓ اووے' یا اللّٰه' کهٔ دے مړشو' نو خلق به وائي' چه دے ښځے دے قتل کهٔ. نو دَ هغهٔ دا حالت ختم شو' بادشاه په دوئم یا په درئم وار' اووے' په خدائے چه' تاسو ما ته یو شیطان راولیږلو' دا ابراهیم علیه السّلام له بوځئے او آجر (هاجره) وینزه هغهٔ له ورکړئے' هغه واپس حضرت ابراهیم علیه السّلام ته لاړه' نو وے وئیل' تاسو اولیدل' چه اللّٰه هغه کافر ذلیل کړلو. او یوه وینزه ئے خدمت دَ پاره راکړه.

۷۷۳: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ اِبْنِ شِهَابٍ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ اَنَّهَا قَالَتْ اِخْتَصَمَ سَعْدُ بْنُ اَبِيْ وَقَّاصٍ وَ عَبْدُ بْنُ زَمْعَةَ فِيْ غُلَامٍ فَقَالَ سَعْدُ هٰذَا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِبْنُ اَخِيْ عُتْبَةَ بْنِ اَبِيْ وَقَّاصٍ عَهِدَ اِلَيَّ اَنَّهُ اِبْنُهُ اُنْظُرْ اِلٰى شَبَهِهٖ وَ قَالَ

۷۷۳: قتیبه. لیث. ابن شهاب. عروه. بي بي عائشےؓ نه روایت کوي. د هغے بیان دے' چه سعد بن ابي وقاص او عبد بن زمعه دَ یو هلک متعلق په جګړه شو. سعد عرض اوکهٔ' یا رسول اللّٰه' دا خما دَ ورور عتبه بن ابي وقاص خوئے دے. هغه ماته وصیت کړے وو' چه دا' د هغهٔ خوئے دے. تاسو دَ ده شکل اوګورئے (چه عتبه سره لږي) عبد بن زمعه عرض اوکهٔ' یا رسول اللّٰه دا خما

عَبْدُ بْنُ زَمْعَةَ هٰذَا اَخِيْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وُلِدَ عَلٰى فِرَاشِ اَبِيْ مِنْ وَلِيْدَتِهٖ فَنَظَرَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِلٰى شَبَهِهٖ فَرَاٰى شَبَهًا بَيِّنًا بِعُتْبَةَ فَقَالَ لَكَ يَا عَبْدُ الْوَلَدُ لِلْفِرَاشِ وَ لِلْعَاهِرِ الْحَجَرُ وَاحْتَجِبِيْ مِنْهُ يَا سَوْدَةُ بِنْتُ زَمْعَةَ فَلَمْ تَرَهُ سَوْدَةُ قَطُّ.

وورور دے' خما د پلار په بستره د هغهٔ د' وينزے نه پيدا شوے دے. رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلّم چه د هغهٔ صورت اوليد' دهغه عتبه سره صاف مناسبت وو. نو حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل' دے به تاته دركيدے شي' اے عبد. هلک د هغه دے' د چا په بستره چه پيدا شوے وي. او زاني ذ پاره كانړي دي. او' اے سودهٔ بنت زمعه' ته د' دهٔ نه پرده كوه' نو بي بي سودهٔ هغه هلک هيڅ كله اونهٔ ليد.

۷۷۴: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ سَعْدٍ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ عَوْفٍ لِصُهَيْبٍ اِتَّقِ اللّٰهَ وَلَا تَدَّعِ اِلٰى غَيْرِ اَبِيْكَ فَقَالَ صُهَيْبٌ مَا يَسُرُّنِيْ اَنَّ لِيْ كَذَا وَ كَذَا وَاِنِّيْ قُلْتُ ذٰلِكَ وَلٰكِنِّيْ سُرِقْتُ وَ اَنَا صَبِيٌّ.

۷۷۴: محمد بن بشار. غندر. شعبه. سعد بن ابراهيم دَ خپل پلار نه روايت كوي' چه عبدالرحمٰن بن عوفؓ. صهيبؓ ته اووے. دَ خدائے نه اويريږه' او دَ خپل پلار نه سِوا بل چاته خان مهٔ منسوب كوه' كه ماته دومره دومره دولت په لاس راشي' نو هم داسے خبره كول به خوښ نهٔ كړم. زهٔ ماشوم توب كښ تښتولے شوے ووم' په دے وجه خما ژبه رومي شوه' كني اصل كښ خما پلار عرب وو.

١. صُهيب رضي اللّٰه عنه د خپل نسب' نسبت سنان بن مالک نه كوي اووائي چه ددهٔ مور د بني تميم نه وه. ليكن دے درو ميانو مريئے (غلام) وو ددهٔ ژبه رومي وه. خلقو به ويل: دده ژبه عربي نده. نو څرنگ عرب كيدے شي. صُهيب رضي اللّٰه عنه وائي "خه ماشوم وم. چا' اوتښتولم په روميانوئے خ‍ر‌خ كړم. د هغوي مريئے شوم څكه خما ژبه بدله شوه.

۷۷۵: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عُرْوَةُ بْنُ الزُّبَيْرِ اَنَّ حَكِيْمَ بْنَ حِزَامٍ اَخْبَرَهُ اَنَّهُ قَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَرَاَيْتَ اُمُوْرًا كُنْتُ اَتَحَنَّثُ اَوْ اَتَحَنَّتُ بِهَا فِي الْجَاهِلِيَّةِ مِنْ صِلَةٍ وَ عَتَاقَةٍ وَ صَدَقَةٍ هَلْ لِيْ فِيْهَا اَجْرٌ قَالَ

۷۷۵: ابواليمان. شعيب. زهري. عروه بن زبير. حكيم بن حزام نه روايت دے. هغه عرض اوكړه' يا رسول اللّٰه' چه كوم نيک كار ما جاهليت كښ كولو' يعني صله رحمي. غُلام آزادول او صدقه كول' نو آيا ماته به دهغے هم آجر راكولے شي. ذ حكيم بيان دے' رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل' تا چه

حَكِيمٌ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَسْلَمْتَ عَلٰى مَا سَلَفَ لَكَ مِنْ خَيْرٍ.

خومره نیکئے کړے دي، ته خو په هغے مُسلمان شوے یے یعنے دَ هغے ټولو به آجر بیا مومے.

باب۴۹۷: جُلُوْدِ الْمَيْتَةِ قَبْلَ اَنْ تُدْبَغَ.

باب۴۹۷: د باغت نه مخکښ دَ، مُردارے دَ څرمنے بیان.

۷۷۶: حَدَّثَنَا زُهَيْرُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا يَعْقُوْبُ ابْنُ اِبْرَاهِيمَ حَدَّثَنَا اَبِيْ عَنْ صَالِحٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ ابْنُ شِهَابٍ اَنَّ عُبَيْدَ اللّٰهِ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ اَخْبَرَهٗ اَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عَبَّاسٍ اَخْبَرَهٗ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَرَّ بِشَاةٍ مَّيِّتَةٍ فَقَالَ هَلَّا اسْتَمْتَعْتُمْ بِاِهَابِهَا قَالُوْا اِنَّهَا مَيِّتَةٌ قَالَ اِنَّمَا حَرُمَ اَكْلُهَا.

۷۷۶: زهیر بن حرب. یعقوب بن ابراهیم. ابراهیم. صالح. ابن شهاب. عبیدالله بن عبدالله. عبدالله بن عباسؓ نه روایت کوي، رسول الله صلي الله علیه وسلّم دَ، یوے مُردارے چیلئے په خوا کښ تیر شو، نو حضور صلے الله علیه وسلّم اوفرمائیل، دَدے دَ څرمنے نه تاسو فائده ولے وانخسته. خلقو عرض اوکۀ دا خو مُرداره ده. حضور صلے الله علیه وسلّم اوفرمائیل. صرف دَ دے خوړل حرام دي.

باب۴۹۸: قَتْلِ الْخِنْزِيْرِ وَ قَالَ جَابِرٌ حَرَّمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْعَ الْخِنْزِيْرِ.

باب۴۹۸: دَ، سور، دَ، وژلو بیان. او دَ جابرؓ بیان دے چه نبي صلے الله علیه وسلّم دَ، سور (خنزیر)، دَ، بیع نه منع فرمائیلے ده.

۷۷۷: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنِ ابْنِ الْمُسَيَّبِ اَنَّهٗ سَمِعَ اَبَا هُرَيْرَةَ يَقُوْلُ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالَّذِيْ نَفْسِيْ بِيَدِهٖ لَيُوْشِكَنَّ اَنْ يَّنْزِلَ فِيْكُمْ ابْنُ مَرْيَمَ حَكَمًا مُّقْسِطًا فَيَكْسِرَ الصَّلِيْبَ وَ يَقْتُلَ الْخِنْزِيْرَ وَ يَضَعَ الْجِزْيَةَ وَ يَفِيْضُ الْمَالُ حَتّٰى لَا يَقْبَلَهٗ اَحَدٌ.

۷۷۷: قتیبه بن سعید. لیث. ابن شهاب. ابن مسیب. حضرت ابوهریرهؓ نه روایت کوي، رسول الله صلے الله علیه وسلّم اوفرمائیل قسم دے په هغے ذات، چه دَ هغه په قبضه کښ ځما ساه ده، عنقریب تاسو کښ به ابن مریم راکوز شي. هغه به منصف حاکم وي. صلیب، به مات کړي. او سُور (خنزیر) به اووژني. او جزیه به موقوف کړي. او مال به دومره زیات وي، چه څوک آخستونکے به ئے نۀ وي.

ل: صلیب: (۱) هغه لرګې چه په هغې دَ عیسایانو د کمان مطابق حضرت عیسی علیه السلام په سولي شوې وو. هر هغه څیز چه دَ دوو خطو په شکل وي چه خپلو کښې یو بل قطع کوي چه په هغې په سولي کولې شي. (۲) سُولي. مکړک دا دَ لرګي وي په دې شان چه د لرګي یوه اوږده او مضبوطه ستني وي او پاس په سر کښې ئې یو بل لوئې لرګې برابراً تکو هلې شوې وي. په دې شکل دا لرګې په زمکه ښخ کړي. بیا چاته چه سزاوار کوي هغه پرې اوخیژوي دواړه لاسونه ئې اوغزوي او په پاسني لرګي ئې په میخونو ټک وهي. بیائې دواړه آویزانده پښې لاندې باندې کړي او په دې ستني ئې په میخ ټک وهي. په دې شان مصلوب سړې یو څو ورځې آویزاند وي. او آخر په کړاکونو مړ شي. دَ عیسایانو دا خیال دې چه حضرت عیسی علیه السّلام په سُولي خیژولې شوې وو نو په دې سبب دَ هغوي په خیال کښې صلیب ډیر متبرک او مقدس شې دې. په دې وجه دَ رومن کیتهولک دَ عقیدې عیسایان دَ مختلفو دهاتونو واړه واړه صلیبونه څان سره ساتي او په غاړه کښې ئې هم آویزانډوي. صلیبي: دَ صلیب. صلیب ته منسوب شوې یا صلیب سره متعلق عیسائي. نصاريٰ.

صلیبي جنګ: هغه مذهبي جنګونه چه دَ یورپ عیسایانو دَ مُسلمانانو سره په دې غرض کړې وو چه یروشلم دَ مُسلمانانو نه واخلي. دا اووهٔ تاریخي جنګونه دي.

باب ۴۹۹: لَا يُذَابُ شَحْمُ الْمَيْتَةِ وَلَا يُبَاعُ وَدَكُهُ رَوَاهُ جَابِرٌ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

باب ۴۹۹: دَ مُردارې وازده دې ویلې کولې نشي اونه دې دَ هغې ډلا (چکنائي) خرخولې شي دا جابرؓ دَ نبي صلي الله علیه وسلّم نه نقل کړې دې.

۱. وذک عربئ کښې هغې واز دې (غوړ والې) ته ویلې شي چه غوښه کښې دَننه وي او چه کومه وازده د غوښې نه بهر وي هغې ته شحم ویلې شي.

۷۷۸: حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِيُّ حَدَّثَنَا سُفْيٰنُ حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ دِيْنَارٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ طَاؤُسٌ اَنَّهُ سَمِعَ ابْنَ عَبَّاسٍ يَقُوْلُ بَلَغَ عُمَرَ اَنَّ فُلَانًا بَاعَ خَمْرًا فَقَالَ قَاتَلَ اللّٰهُ فُلَانًا اَلَمْ يَعْلَمْ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ قَاتَلَ اللّٰهُ الْيَهُوْدَ حُرِّمَتْ عَلَيْهِمُ الشُّحُوْمِ فَجَمَلُوْهَا فَبَاعُوْهَا.

۷۷۸: حمیدي. سُفیان. عمرو بن دینار. طاؤس. ابن عباسؓ نه روایت کوي هغه وئیلې حضرت عمرؓ ته معلومه شوه چه فلاني سړي شراب خرخ کړي دي نو وې فرمائیل الله تعالیٰ دې فلانې تباه کړي آیا هغهٔ ته نهٔ ده معلومه رسول الله صلي الله علیه وسلّم فرمائیلې دي چه الله دې یهود تباه کړي په هغوئ وازده (چربي) حرام کړې شوه. لیکن هغه ئې ویلې کړه او خرخه ئې کړها.

۱. یعني تاسو باندې شراب حرام شویدي. لیکن تاسوئې خرخوئې د حضرت عمر رضي الله عنه یو مقرر کړې شوي افسر د یو ذِمّي (کافر) نه د شرابو خرخولو ټیکس وصول کړې وو. هغې افسر پخپله شراب خرخ کړي نه وو. بلکې یو کافر ذِمّي په لاره د خرخولو د پاره اوړل. نو هغه ترې په لاره کښې ټیکس واخست.

۴۷۹: حَدَّثَنَا عَبْدَانُ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا يُوْنُسُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ سَمِعْتُ سَعِيْدَ ابْنَ الْمُسَيَّبِؓ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ قَاتَلَ اللّٰهُ الْيَهُوْدَ حُرِّمَتْ عَلَيْهِمُ الشُّحُوْمُ فَبَاعُوْهَا وَ اَكَلُوْا اَثْمَانَهَا.

۴۷۹: عبدان. عبداللّٰه. يونس. ابن شهاب. سعيد بن مسيب. حضرت ابو هريرةؓ نه روايت كوي، رسول اللّٰه صلى اللّٰه عليه وسلّم فرمائيلي دي، اللّٰه تعالىٰ دې يهود تباه كړي، په هغوي چربي حرام كړې شوه، ليكن هغې خلقو هغه خرڅه كړه او د هغې قيمتونه ئې اوخوړل.

باب ۵۰۰: بَيْعِ التَّصَاوِيْرِ الَّتِيْ لَيْسَ فِيْهَا رُوْحٌ وَّمَا يُكْرَهُ مِنْ ذَالِكَ.

باب ۵۰۰: د هغې څيزونو د تصويرونو د خرڅولو بيان، چه هغې كښې ساه نۀ وي او هغې كښې كوم صورت حرام دې.

۴۸۰: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ عَبْدِ الْوَهَّابِ حَدَّثَنَا يَزِيْدُ بْنُ زُرَيْعٍ اَخْبَرَنَا عَوْفٌ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ اَبِي الْحَسَنِ قَالَ كُنْتُ عِنْدَ ابْنِ عَبَّاسٍ اِذَا اَتَاهُ رَجُلٌ فَقَالَ يَا اَبَا عَبَّاسٍؓ اِنِّيْ اِنْسَانٌ اِنَّمَا مَعِيْشَتِيْ مِنْ صَنْعَةِ يَدِيْ وَ اِنِّيْ اَصْنَعُ هٰذِهِ التَّصَاوِيْرَ فَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ لَا اُحَدِّثُكَ اِلَّا مَا سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ سَمِعْتُهُ مَنْ صَوَّرَ صُوْرَةً فَاِنَّ اللّٰهَ مُعَذِّبُهُ حَتّٰى يَنْفُخَ فِيْهَا الرُّوْحَ وَ لَيْسَ بِنَافِخٍ فِيْهَا اَبَدًا فَرَبَا الرَّجُلُ رَبْوَةً شَدِيْدَةً وَ اصْفَرَّ وَجْهُهُ فَقَالَ وَيْحَكَ اِنْ اَبَيْتَ اِلَّا اَنْ تَصْنَعَ فَعَلَيْكَ بِهٰذَا الشَّجَرِ كُلِّ شَيْءٍ لَيْسَ فِيْهِ رُوْحٌ قَالَ اَبُوْ عَبْدِ اللّٰهِ سَمِعَ سَعِيْدُ ابْنُ اَبِيْ

۴۸۰: عبداللّٰه بن عبدالوهاب. يزيد بن زريع. عوف. سعيد بن ابي الحسن نه روايت كوي. د هغۀ بيان دې، زۀ ابن عباسؓ سره ووم، هغۀ له يو سړې راغې، اووئيلې، زۀ يو داسې سړې يم، چه څما ذريعه معاش څما د لاس صنعت دې، او زۀ دا تصويرونه جوړوم ابن عباسؓ هغۀ ته اووې، زۀ به تاته هغه څيز بيان كړم، چه ما د رسول اللّٰه صلى اللّٰه عليه وسلّم نه آوريدلې دې، ما د حضور صلى اللّٰه عليه وسلّم نه واوريدل، چا چه د يو څيز تصوير جوړ كۀ نو اللّٰه تعالىٰ به هغۀ ته عذاب وركوي، تردې چه هغه په هغه كښې ساه واچوي، او هغه هيڅ كله په هغه كښې ساه نشي اچولې. هغې سړي ډيره يخه ساه واخسته، د هغۀ مخ زيړ شو، نو حضرت ابن عباسؓ ورته اووې، په بده ورځ شې كۀ ته خامخا تصويرونه جوړوې. نو ددې اُونو او هغه څيزونو چه پكښې ساه نشته، تصويرونه جوړه وه، ابو عبداللّٰه (بخاري) اووې. سعيد بن ابي عروه

عَرُوْبَةَ مِنَ النَّضْرِ بْنِ اَنَسٍ هٰذَا الْوَاحِدَ.

دَ نضر بن انس نه دغه يو حديث آوريدلے دے.

**باب ۱ ۰ ۵: تَحْرِيْمِ التِّجَارَةِ فِي الْخَمْرِ وَ قَالَ جَابِرٌ حَرَّمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْعَ الْخَمْرِ.**

**باب ۱ ۰ ۵:** دَ شرابو دَ تجارت حرام كيدل او دَ جابرؓ بيان دے، چه نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم شراب خرخول حرام گنړلے دي.

**۱ ۸ ۷:** حَدَّثَنَا مُسْلِمٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ اَبِي الضُّحٰى عَنْ مَسْرُوْقٍ عَنْ عَائِشَةَ لَمَّا نَزَلَتْ اٰيَاتُ سُوْرَةِ الْبَقَرَةِ عَنْ اٰخِرِهَا خَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ حُرِّمَتِ التِّجَارَةُ فِي الْخَمْرِ.

**۱ ۸ ۷:** مسلم. شعبه. اعمش. ابوالضحي. مسروق. بي بي عائشےؓ نه روايت كوي. كوم وخت چه د سورة بقره آخري آيتونه نازل شو، نو نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم بهر تشريف راوړلو، اووے فرمائيل، دَ شرابو تجارت حرام كړے شو.

**بَابٌ ۲ ۰ ۵: اِثْمِ مَنْ بَاعَ حُرًّا.**

**باب ۲ ۰ ۵:** دَ هغے سړي گناه چه هغه يو آزاد خرڅ كۀ.

**۲ ۸ ۷:** حَدَّثَنِي بِشْرُ بْنُ مَرْحُوْمٍ حَدَّثَنَا يَحْيٰى بْنُ سُلَيْمٍ عَنْ اِسْمٰعِيْلَ بْنِ اُمَيَّةَ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ اَبِي سَعِيْدٍ عَنْ اَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ قَالَ اللّٰهُ ثَلٰثَةٌ اَنَا خَصْمُهُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ رَجُلٌ اَعْطٰى بِي ثُمَّ غَدَرَ وَ رَجُلٌ بَاعَ حُرًّا فَاَكَلَ ثَمَنَهُ وَ رَجُلٌ اسْتَاْجَرَ اَجِيْرًا فَاسْتَوْفٰى مِنْهُ وَلَمْ يُعْطِ اَجْرَهُ.

**۲ ۸ ۷:** بشر بن مرحوم. يحيٰي بن سليم. اسمٰعيل بن اُميه. سعيد بن ابي سعيد. ابوهريرهؓ. نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم نه روايت كوي، حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، دَ اللّٰه پاک ارشاد دے، دَ قيامت په ورځ به زۀ دَ درے سړو دُشمن يم، يو هغه چه ځما نوم واخلي، عهد اوكړي. بيائے مات كړي، دوئم هغه سړے چه هغه يو آزاد خرڅ كۀ، او هغه قيمت ئے اوخوړ. او دريم هغه سړے، چه هغه يو مزدور په كار اولګولو، كار ئے ترے پوره واخستۀ. ليكن دَ هغے مزدوري ئے ورنۀ كړله.

**بَابٌ ۳ ۰ ۵: بَيْعِ الْعَبِيْدِ وَالْحَيَوَانِ بِالْحَيَوَانِ نَسِيْئَةً وَاشْتَرَى ابْنُ عُمَرَ رَاحِلَةً بِاَرْبَعَةِ اَبْعِرَةٍ مَضْمُوْنَةٍ عَلَيْهِ يُوْفِيْهَا صَاحِبُهَا**

**باب ۳ ۰ ۵:** دَ حيوان په عوض حيوان اوغلام په قرض دَ خرخولو بيان. او ابن عمرؓ يوه اوښه دَ څلورو اوښو په عوض واخسته، چه دَ هغے متعلق ئے ذمه واري آخستے وه، چه ربذه كښې به ئے حواله كړي. او ابن

بِالرَّبْذَةِ وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ قَدْ يَكُوْنُ الْبَعِيْرُ خَيْرًا مِّنَ الْبَعِيْرَيْنِ وَاشْتَرٰى رَافِعُ بْنُ خَدِيْجٍ بَعِيْرًا بِبَعِيْرَيْنِ فَاَعْطَاهُ اَحَدَهُمَا وَ قَالَ اٰتِيْكَ بِالْاٰخَرِ غَدًا رَهْوًا اِنْ شَآءَ اللّٰهُ وَ قَالَ ابْنُ الْمُسَيَّبِ لَا رِبَا فِي الْحَيَوَانِ الْبَعِيْرُ بِالْبَعِيْرَيْنِ وَالشَّاةُ بِالشَّاتَيْنِ اِلٰى اَجَلٍ وَ قَالَ ابْنُ سِيْرِيْنَ لَا بَأْسَ بَعِيْرٌ بِبَعِيْرَيْنِ نَسِيْئَةً.

عباسؓ اوفرمائیل کله یو اوښ دَ دوو اوښانونه بهتر وي. او رافع بن خدیج یو اوښ دَ دوو اوښانو په عوض واخست هغے کښ ئے یو خو بائع ته ورکۀ. او دَ دونم متعلق ئے اووے، چه سحر له به ئے انشاء الله بلا تاخیر درکړم. ابن مسیب اووے. حیوان کښ سُود نشته. یو اوښ دَ دوو اوښانو په عوض او یوه چیلئے دَ دوو چیلو په عوض په قرض آخستے شي. او ابن سیرین اووے. دَ دوو اوښانو په عوض یو اوښ خرخولو کښ هیڅ حرج نشته[۱].

۱. خاروي، ځناور په هغه مالونو کښ نه حسابیږي کومو کښ چه سود شته ددے وجے نه یو خاروے دَ کنړو خاروو په بدله کښ خرڅولے شي لیکن قرض کښ دا معامله پکار نه ده. ترڅو چه خاروي مخکښ نه وي نو اندازه لګیاے نشي په خاروو کښ دَ یو عمر دَ یو نسل کیدو سره سره په قیمت کښ یے فرق وي. ددے وجے نه چه کوم څیز خرڅولے شي او کوم څیز اخستلے شي هغه په موقعه موجود پکار دي.

۷۸۳: حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ ثَابِتٍ عَنْ اَنَسٍ قَالَ كَانَ فِي السَّبْيِ صَفِيَّةُ فَصَارَتْ اِلٰى دِحْيَةَ الْكَلْبِيِّ ثُمَّ صَارَتْ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۷۸۳: سُلیمان بن حرب. حماد بن زید. ثابت. انسؓ نه روایت کوي، دَ هغه بیان دے، چه قیدیانو کښ بي بي صفیهؓ هم وه، هغه دَ دحیه کلبي په حصه کښ راغله. بیا رسول اللّٰه صلے اللّٰه علیه وسلّم واخسته.

## باب ۵۰۴: بَيْعِ الرَّقِيْقِ.

## باب ۵۰۴: دَ وینزے، غلام خرڅولو بیان.

۷۸۴: حَدَّثَنَا اَبُوا الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ اَخْبَرَنِيْ ابْنُ مُحَيْرِيْزٍ اَنَّ اَبَا سَعِيْدِ الْخُدْرِيَّ اَخْبَرَهُ اَنَّهُ بَيْنَمَا هُوَ جَالِسٌ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّا نُصِيْبُ سَبْيًا فَنُحِبُّ الْاَثْمَانَ فَكَيْفَ تَرٰى فِي الْعَزْلِ

۷۸۴: ابوالیمان. شعیب. زهري. ابن محیریز. ابو سعید خدريؓ نه روایت کوي. دَ هغهٔ بیان دے، یو ځل هغه نبي صلے الله علیه وسلّم سره ناست وو، نو عرض ئے اوکهٔ، یا رسول اللّٰه، مونږ قیدي ښځو له ورځو، نو جماع ورسره کوو. او هغوئ مونږ خرڅول غواړو. نو تاسو دَ عزل متعلق څهٔ حکم کوئے. حضور صلے اللّٰه علیه وسلّم

فَقَالَ اَوَ اِنَّكُمْ تَفْعَلُوْنَ ذٰلِكَ لَا عَلَيْكُمْ اَنْ لَّا تَفْعَلُوْا ذَالِكُمْ فَاِنَّهَا لَيْسَتْ نَسَمَةٌ كَتَبَ اللّٰهُ اَنْ تَخْرُجَ اِلَّا هِيَ خَارِجَةٌ.

ورته اوفرمائيل آيا تاسو خلق داسے کوئے' که تاسو خلق داسے اونه کړئے' نو هم څه حرج نشته' څکه چه د چا پيدا کيدل مقدر کبن ليکلے وي' هغه به پيدا کيږي.

## باب ۵۰۵: بَيْعِ الْمُدَبَّرِ.

## باب ۵۰۵: دَ مُدَبَّر (غُلام) خرڅولو بيان.

۱. مُدَبَّر هغے غلام ته وائي چه کوم ته خپل مالک ويلے وي چه ته خما د مرګ نه پس آزاد يئے' داسے غلام وينځه د خپل مالک د مرګ نه پس آزاد وي. او د مالک نے بيا دا اختيار نه وي چه هغه نے خرڅ کړي. دا واقعه داسے وه. چه يو سړي خپل مريئے مُدَبَّر کړے وو. هغه سړے چه ډير نادار او غريب بدحاله شو نبي کريم صلي الله عليه وسلم د "تعزير" (د سزا) په طور هغه مريئے خرڅ کړے وو. بعضے عالمانو دا هم ليکلے دي. چه هغه نے خرڅ کړے نه وو. په مزدورئ يے لګولے وو. رسول الله صلي الله عليه وسلم پخپله د مُدَبَّر غلام د خرڅولو نه منعه کړيده.

۷۸۵: حَدَّثَنَا ابْنُ نُمَيْرٍ حَدَّثَنَا وَكِيْعٌ حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ عَنْ سَلَمَةَ ابْنِ كُهَيْلٍ عَنْ عَطَآءٍ عَنْ جَابِرٍ قَالَ بَاعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمُدَبَّرَ.

۷۸۵: ابن نمير. وکيع. اسمٰعيل. سلمه بن کهيل. عطاء. حضرت جابرؓ نه روايت کوي' ذ هغه بيان دے' چه نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم مدبّر (غلام) خرڅ کړلو.

۷۸۶: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَمْرٍو سَمِعَ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ يَقُوْلُ بَاعَهُ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۷۸۶: قتيبه. سُفيان. عمرو. جابر بن عبداللّٰهؓ نه روايت کوي. ذهغه بيان دے' چه رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلّم هغه (غُلام) خرڅ کړلو.

۷۸۷: حَدَّثَنَا زُهَيْرُ ابْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا يَعْقُوْبُ حَدَّثَنَا اَبِيْ عَنْ صَالِحٍ قَالَ حَدَّثَ ابْنُ شِهَابٍ اَنَّ عُبَيْدَ اللّٰهِ اَخْبَرَهُ اَنَّ زَيْدَ بْنَ خَالِدٍ وَّ اَبَا هُرَيْرَةَ اَخْبَرَاهُ اَنَّهُمَا سَمِعَا رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُسْئَلُ عَنِ الْاَمَةِ

۷۸۷: زهير بن حرب. يعقوب ذ يعقوب پلار (ابراهيم بن سعد) صالح. ابن شهاب. عبيداللّٰه. زيد بن خالد او ابوهريرهؓ نه روايت کوي. ذ هغے دواړو بيان دے' چه رسول الله صلے الله عليه وسلّم نه نے واؤريدل' حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم نه ذهغے وينزے متعلق تپوس اوشو' چه زنا اوکړي' او' وادهٔ شوے نهٔ وي. حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل' هغه په کوړو

تَزْنِيْ وَلَمْ تُحْصِنْ قَالَ اَجْلِدُوْهَا ثُمَّ اِنْ زَنَتْ فَاجْلِدُوْهَا ثُمَّ بِيْعُوْهَا بَعْدَ الثَّالِثَةِ اَوِ الرَّابِعَةِ.

اووهئے. بیا کۀ زنا او کړي، نو په کوړو ئې اووهئے بیا کۀ زنا او کړي، نو په کوړو ئې اووهئے. بیائے خرڅ کړئے، دریم یا څلورم خل نه پس حضورؐ اوفرمائیل.

۲۸۸: حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ اَخْبَرَنِي اللَّيْثُ عَنْ سَعِيْدٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ اِذَا زَنَتْ اَمَةُ اَحَدِكُمْ فَتَبَيَّنَ زِنَاهَا فَلْيَجْلِدْهَا الْحَدَّ وَلَا يُثَرِّبْ عَلَيْهَا ثُمَّ اِنْ زَنَتْ فَلْيَجْلِدْهَا الْحَدَّ وَلَا يُثَرِّبْ ثُمَّ اِنْ زَنَتِ الثَّالِثَةَ فَتَبَيَّنَ زِنَاهَا فَلْيَبِعْهَا وَلَوْ بِحَبْلٍ مِّنْ شَعْرٍ.

۲۸۸: عبدالعزیز. بن عبدالله. لیث سعید. ابوسعید. ابوهریرهؓ نه روایت کوي، ما د نبي صلے الله علیه وسلّم نه واؤریدل، هر کله چه تاسو کښې د چا وینځه زنا او کړي، او د هغې زنا څرګنده شي، نو په هغې دې حد اولږوي. او هغه دې نۀ ملامته کوي. بیا کۀ زنا او کړي، نو په کوړو دې اووهي. او ملامته کوي دې نه. بیا کۀ په دریم خل زنا او کړي، او دَ هغې زنا ثابته شي، نو هغه دې خرڅه کړي، اګر کۀ دَ ویښتو دَ یوے رسئ په عوض وي.

بَابُ ۵۰۶: هَلْ يُسَافِرُ بِالْجَارِيَةِ قَبْلَ اَنْ يَّسْتَبْرِئَهَا وَلَمْ يَرَ الْحَسَنُ بَأْسًا اَنْ يُّقَبِّلَهَا اَوْ يُبَاشِرَهَا وَ قَالَ ابْنُ عُمَرَ اِذَا وُهِبَتِ الْوَلِيْدَةُ الَّتِيْ تُوْطَأُ اَوْ بِيْعَتْ اَوْ عَتَقَتْ فَلْتُسْتَبْرَأْ رَحِمُهَا بِحَيْضَةٍ وَلَا تُسْتَبْرَاءِ الْعَذْرَآءُ وَ قَالَ عَطَآءٌ لَا بَأْسَ اَنْ يُّصِيْبَ مِنْ جَارِيَتِهِ الْحَامِلِ مَا دُوْنَ الْفَرْجِ وَ قَالَ اللّٰهُ تَعَالٰى اِلَّا عَلٰى اَزْوَاجِهِمْ اَوْ مَا مَلَكَتْ اَيْمَانُهُمْ.

باب ۵۰۶: آیا وینځے سره، قبل دَ دینه چه دَ هغې نه استبراء (بریَت. په ډډه اوسیدل) او کړي. سفر کولے شي. او حسن بصري بوسه یا مباشرت کښې څه حرج نۀ دے ګڼرلے. او ابن عمرؓ اووے، کۀ داسے وینځه هبه کړے شي یا خرڅه کړے شي یا آزاده وي، چه هغې سره صحبت کیدلو، نو یو حیض پورے دے ترے استبراء او کړي. او جینۍ ښځه دے استبراء نۀ کوي. عطاء وئیلے دي، چه دَ حامله وینځے نه دَ شرم ګاه نه سوا فائده حاصلولو کښې څۀ حرج نشته. او الله تعالي فرمائیلے دي، خو خپلو بیبیانو یا وینزو باندے.

۴۸۹: حَدَّثَنَا عَبْدُ الْغَفَّارِ بْنُ دَاوُدَ حَدَّثَنَا يَعْقُوْبُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ عَمْرِو بْنِ

۴۸۹: عبدالغفار بن داؤد. یعقوب بن عبدالرحمٰن. عمرو بن ابي عمرو. انس بن مالکؓ نه روایت کوي. دَ هغۀ بیان دے، کوم وخت چه نبي صلے

بيْ عَمْرٍو عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ قَدِمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ الْحِصْنَ ذُكِرَ لَهُ جَمَالُ صَفِيَّةَ بِنْتِ حُيَيِّ بْنِ اَخْطَبَ وَقَدْ قُتِلَ زَوْجُهَا وَكَانَتْ عَرُوْسًا فَاصْطَفَاهَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِنَفْسِهٖ فَخَرَجَ بِهَا حَتّٰى بَلَغْنَا سَدَّ الرَّوْحَاءِ حَلَّتْ فَبَنٰى بِهَا ثُمَّ صَنَعَ حَيْسًا فِي نِطْعٍ صَغِيْرٍ ثُمَّ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اٰذِنْ مَنْ حَوْلَكَ فَكَانَتْ تِلْكَ وَلِيْمَةُ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلٰى صَفِيَّةَ ثُمَّ خَرَجْنَا اِلَى الْمَدِيْنَةِ قَالَ فَرَاَيْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُحَوِّيْ لَهَا وَرَآءَهٗ بِعَبَآءَةٍ ثُمَّ يَجْلِسُ عِنْدَ بَعِيْرِهٖ فَيَضَعُ رُكْبَتَهٗ فَتَضَعُ صَفِيَّةُ رِجْلَهَا عَلٰى رُكْبَتِهٖ حَتّٰى تَرْكَبَ.

الله علیه وسلّم خیبر ته تشریف راوړلو او الله پرے د خیبر قلعه فتح کړه، نو حضور صلے الله علیه وسلّم ته د صفیه بنت حي بن اخطب د حسن و جمال بیان او کړے شو. د هغے خاوند وژلے شوے وو. او هغه تازه ناوے (دلهن) وه. رسول الله صلے الله علیه وسلّم هغه خان د پاره منتخب کړه. او هغه ئے خان سره کړه، روان شولو. تردے چه مونږ سدّ الروحا ته اورسیدلو. نو حضور صلے الله علیه وسلّم هغے سره خلوت او کۀ. بیا په یو وړو کي دستر خوان ئے حیس تیار کۀ او کینبودلو، رسول الله صلے الله علیه وسلّم اوفرمائیل، د خپل خواوشا خلق خبر کړئے (چه وړے خوري) دا، د بي بي صفیےؓ متعلق د، رسول الله صلے الله علیه وسلّم ولیمه وه. بیا مونږ مدینے طرف ته لاړو. د حضرت انسؓ بیان دے، ما رسول الله صلے الله علیه وسلّم اولید، چه بي بي صفیهؓ ئے خپلے عباء کښې دننه کړے وه. بیا به اوښ سره کیناستلو خپل زنګون به ئے کینبودلو. او بي بي صفیےؓ به خپله پښه د حضور صلے الله علیه وسلّم په زنګون کینبوده او سوره به شوه.

ف: (۱) **حیس**: یو قسم طعام چه قجورو، غوړو او ستوانونه تیاریږي (۲) **عباء**. چغه.

۱. صفیه رضي الله عنها اول یهودي وه. د خیبر د سردار لور وه خیبر چه فتحه شو. نو هغه هم قیدیانو کښې وه. بعضے صحابهٔ کرامو رضي الله عنهم رسول الله صلي الله علیه وسلم ته اوویل. صفیّه د سردار لور ده. او ستاسو د پاره مناسب ده. رسول الله صلي الله علیه وسلم هغه آزاده کړه او ورسره ئے نکاح او کړه. صحیح روایاتو کښې دي. چه حضرت صفیه بي بي پخوا خوب لیدلے وو "چه سپوږمي د هغے په غیږ کښې ده" هغے خپل یهودي خاوند ته اوے. هغه غصّه شو. او ورته ئے اویل چه تۀ حضرت محمد صلي الله علیه وسلم سره نکاح کول غواړے. صفیّے بي بي رضي الله عنها د خپل وړو کوالي قیصې پخپله بیان کړیده. چه کله رسول الله صلي الله علیه وسلم مدینے منورے ته هجرت او کړو او تشریف ئے راوړو. نو د هغے پلار او تره دواړه د رسول الله صلي الله علیه وسلم لیدوله راغلے وو. په یهودیانو کښې د نبي آخر الزمان عام شهرت وۀ. چه هغوي کله واپس خیبر ته لاړل. د هغے پلار خپل رور ته اویل. چه دا هغه نبي آخر الزمان

دي. رور ئې اويل "او" د حضرت صفيې رضي الله عنها پلار اويل "مونږ له څه كول پكار دي. نو دې جواب ورکړو. چه مونږ به هيڅرې ايمان نه راوړو. پلار ئې اوېل خما هم دا اراده ده. دواړه ډير حقه رو صفيه رضي الله عنها اګرچه وړه وه خو بيانې هم دا خبرې اوريدلې. علامه انور شاه كشميري رحمة الله عليه ليكلي دي چه د نبي كريم صلي الله عليه وسلم ټولې نكاح ګانې د تقديري اسبابو موافق شوې وې او په ټولو کښې د امت بنيګړې وې د صفيه رضي الله عنها د رسول الله صلي الله عليه وسلم سره د نکاح په سلسله کښې چه واقعات ليكلي شويدي. د هغې نه د اُمت فائدې او بنيګړې معلوميدې شي. دا ضروري هم نده. چه د الله تعالي ټول مصلحتونه بنيګړې دې بنديانوته اوښودلې شي.

### بـــاب۷۰۵: بَيْــعِ الْـمَيْتَةِ وَالْاَصْنَامِ.

### باب۷۰۵: دَ مُـردارې او دَ بُتـانو دَ خرڅولو بيان.

۷۹۰: حَدَّثَـنَـا قُتَيْبَةُ حَـدَّثَنَا الـلَّيْـثُ عَنْ يَزِيْدَ بْنِ اَبِيْ حَبِيْبٍ عَنْ عَـطَـآءِ بْـنِ اَبِـيْ رَبَـاحٍ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْـدِ اللّٰهِ اَنَّهٗ سَمِعَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى الـلّٰـهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ عَامَ الْفَتْحِ وَهُـوَ بِـمَـكَّةَ اَنَّ الـلّٰـهَ وَ رَسُوْلَهٗ حَرَّمَ بَيْــعَ الْـخَـمْـرِ وَالْـمَيْتَةِ وَالْخِـنْـزِيْـرِ وَالْاَصْنَامِ فَقِيْلَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَرَاَيْتَ شُحُوْمَ الْمَيْتَةِ فَاِنَّهَا يُطْلٰى بِهَا السُّفُنُ وَ يُـدْهَـنُ بِهَـا الْجُلُوْدُ وَ يَسْتَصْبِحُ بِهَا الـنَّـاسُ فَـقَـالَ لَا هُـوَ حَـرَامٌ ثُمَّ قَالَ رَسُـوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عِنْدَ ذٰلِكَ قَاتَلَ اللّٰهُ الْيَهُوْدَ اِنَّ اللّٰهَ لَمَّا حَـرَّمَ شُـحُـوْمَـهَـا اَجْـمَلُوْهُ ثُمَّ بَاعُوْهُ فَـاَكَـلُـوْا ثَـمَنَهٗ قَالَ اَبُوْ عَاصِمٍ حَدَّثَنَا عَبْـدُ الْـحَـمِيْـدِ حَدَّثَنَا يَزِيْدُ كَتَبَ اِلَيَّ عَـطَـآءٌ سَمِعْتُ جَابِرًا عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۷۹۰: قتيبه. ليث. يزيد بن ابي حبيب. عطاء بن رباح. جابر بن عبدالله نه روايت کوي هغه دَ رسول الله صلي الله عليه وسلم نه دَ فتح په کال چه حضور مکه کښې وو، واوريدل، چه الله او دَ هغهٔ رسول، شراب. مُرداره. خنزير او دَ بُتانو خريد و فروخت حرام کړې دې. عرض اوکړې شو، يا رسول الله. دَ مُردارې دَ چربۍ څهٔ حکم دې، هغه په کشتو مږي او په څرمنو ئې روغن خيږوي او دې سره خلق ډيوې بلوي حضور صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل، نه، هغه حرام ده. بيا رسول الله هغه وخت اوفرمائيل، الله دې يهود تباه کړي الله چه په هغوي چربي حرام کړه، نو دغې خلقو هغه ويلې کړه او دَ هغې خرڅول او دَ هغې قيمت خوړل ئې شروع کړل. ابو عاصم اووې، ماته عبدالحميد، هغهٔ ته يزيد بيان اوکهٔ، ماته عطاء اوليکل، چه ما دَ جابر نه واوريدل، هغه دَ نبي صلي الله عليه وسلم نه روايت اوکهٔ.

باب۵۰۸: ثَمَنِ الْكَلْبِ.

۱ ۹ ۷: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنِ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ اَبِيْ بَكْرِ بْنِ اَبِيْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ اَبِيْ مَسْعُوْدِ ن الْاَنْصَارِيِّ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهٰى عَنِ ثَمَنِ الْكَلْبِ وَ مَهْرِ الْبَغِيِّ وَ حُلْوَانَ الْكَاهِنِ.

۲ ۹ ۷: حَدَّثَنَا حَجَّاجُ ابْنُ مِنْهَالٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عَوْنُ بْنُ اَبِيْ جُحَيْفَةَ قَالَ رَأَيْتُ اَبِيْ اشْتَرٰى حَجَّامًا فَاَمَرَ بِمَحَاجِمِهٖ فَكُسِرَتْ فَسَاَلْتُهٗ عَنْ ذٰلِكَ قَالَ اِنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهٰى ثَمَنِ الدَّمِ وَ ثَمَنِ الْكَلْبِ وَ كَسْبِ الْاَمَةِ وَلَعَنَ الْوَاشِمَةَ وَالْمُسْتَوْشِمَةَ وَ اٰكِلَ الرِّبَا وَ مُوْكِلَهٗ وَ لَعَنَ الْمُصَوِّرَ.

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ط

باب۵۰۸: دَ سپي دَ قيمت بيان.

۱ ۹ ۷: عبدالله بن يُوسف. مالک. ابن شهاب. ابوبکر بن عبدالرحمٰن. حضرت ابو مسعود انصاريؓ نه روايت کوي، دَ هغه بيان دے چه رسول الله صلے الله عليه وسلم دَ سپي دَ قيمت دَ زانيه دَ اُجرت او دَ کاهن دَ اُجرت نه منع فرمائيلے ده.

۲ ۹ ۷: حجاج بن منهال. شعبه. عون بن ابي جُحيفه نه روايت کوي، هغهٔ اووے، ما خپل پلار اوليد، چه هغه يو ښکر لګرونکے غُلام واخست (نو دَ هغهٔ آوزار ئے مات کړل) نو ما د هغهٔ نه دَدے متعلق تپوس او کهٔ، هغهٔ اووے، رسول الله صلے الله عليه وسلم دَ وينے قيمت. دَ سپي قيمت او دَ وينزے دَ کټے نه منع فرمائيلے ده. او دَ وجود په څرمن خال يا نښه جوړولو باندے (خواه خان له وي يا بل چاله) لعنت کړے دے. او سود خور او سود خورونکي باندے او تصوير اوښکونکي باندے ئے لعنت کړيدے.

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

# كِتَابُ السَّلَمِ — دَ بيع سلم بيان

۱. سلم يو داسے خرڅول دي چه قيمت اول اخلي او خرڅ کړے شوے سامان روستو ور کوي. يعني اصل سامان چه کوم خرڅولے شي هغه په موقعه نه وي. ددے وجے نه دا ضروري ده. چه د خرڅ شوي څيز مقدار، جنس، اصل، مال د حواله کولو ځائے وخت، چه کله به خريدار ته هغه خرڅ شوے څيز په کوم ځائے کښې حواله کيږي. دا ټول تفصيل معلوم شوے وي په داسے طريقه باندے چه خريدار ته هغه څيز داسے ښکاري لکه مخامخ موجود دي. ددے وجے نه په ټولو مالونو څيزونو کښې دا معامله نشي کيدے. بغير دهغے نه چه تللے شي ناپ کولے شي يا شمارلے شي. او په هغے کښې د څه فرق راتلو امکان نه وي. اصل مقصد دادے چه خرڅ شوے مال، څيز په موقع نشته نو په داسے صورت کښې خرڅول اخستل اوشي چه

روستو خریدار ته د مال حواله کولو په وخت جګړه نه وي.

**باب ۵۰۹: السَّلَمِ فِي كَيْلٍ مَّعْلُوْمٍ.**

**باب ۵۰۹:** یومعین ناپ کښې د سلم کولو بیان.

**۷۹۳:** حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ زُرَارَةَ اَخْبَرَنَا اِسْمٰعِيْلُ بْنُ عُلَيَّةَ اَخْبَرَنَا ابْنُ اَبِيْ نَجِيْحٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ كَثِيْرٍ عَنْ اَبِي الْمِنْهَالِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَدِمَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمَدِيْنَةَ وَالنَّاسُ يُسْلِفُوْنَ فِي الثَّمَرِ الْعَامَ وَالْعَامَيْنِ اَوْ قَالَ عَامَيْنِ اَوْ ثَلٰثَةً شَكَّ اِسْمٰعِيْلُ فَقَالَ مَنْ سَلَّفَ فِيْ تَمْرٍ فَلْيُسْلِفْ فِيْ كَيْلٍ مَّعْلُوْمٍ وَّ وَزْنٍ مَّعْلُوْمٍ.

**۷۹۳:** عمرو بن زراره. اسمٰعیل بن علیه ابن ابي نجیح. عبدالله بن کثیر. ابوالمنهال. ابن عباسؓ نه روایت کوي، ذ هغهٔ بیان دے، رسول الله صلے الله علیه وسلّم مدینے ته تشریف راوړلو، نو خلقو به هغه وخت میوو کښې د یو کال یا دوو کالو په موده سلم کولو. یا، دا، ئې اووے، چه د، دوو یا درے کالو په موده به ئې سلم کولو. اسمٰعیل ته شک شو، حضور صلے الله علیه وسلّم اوفرمائیل کوم سړے چه قجورو کښې سلم کوي، نو پکار دي، چه معین ناپ او مقرر وزن سره اوکړي.

**ف:** سَلَم: محفوظ کیدل. د څهٔ څیز قیمت پیشکي ورکول، چه تیاریدو سره هغه واخستے شي، لکه زمیدارانو ته چه په غله پیشکي رقم ورکولے شي. په اردو کښې بیع سره یو ځائے استعمالیږي لکه بیع وسلم.

**۷۹۴:** حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ اَخْبَرَنَا اِسْمٰعِيْلُ عَنِ ابْنِ اَبِيْ نَجِيْحٍ بِهٰذَا فِي كَيْلٍ مَّعْلُوْمٍ وَّ وَزْنٍ مَّعْلُوْمٍ.

**۷۹۴:** مُحمّد. اسمٰعیل. ابن ابي نجیح نه دغه روایت د معین ناپ او معین وزن متعلق روایت کوي.

**باب ۵۱۰: السَّلَمِ فِيْ وَزْنٍ مَّعْلُوْمٍ.**

**باب ۵۱۰:** معین وزن کښې د سلم کولو بیان.

**۷۹۵:** حَدَّثَنَا صَدَقَةُ اَخْبَرَنَا ابْنُ عُيَيْنَةَ اَخْبَرَنَا ابْنُ اَبِيْ نَجِيْحٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ كَثِيْرٍ عَنْ اَبِي الْمِنْهَالِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَدِمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمَدِيْنَةَ وَهُمْ يُسْلِفُوْنَ بِالتَّمَرِ السَّنَتَيْنِ

**۷۹۵:** صدقه. ابن عیینه. ابن ابي نجیح. عبدالله بن کثیر. ابوالمنهال. حضرت ابن عباسؓ نه روایت کوي، د هغهٔ بیان دے، چه نبي صلے الله علیه وسلّم مدینے ته تشریف راوړلو، نو خلقو به قجورو کښې د دوو یا درے کالو په موده سلم کولو، نو حضور صلے الله علیه وسلّم

بِالسَّلَفِ فَقَالَ مَنْ اَسْلَفَ فِيْ شَيْءٍ فَفِيْ كَيْلٍ مَّعْلُوْمٍ وَّ وَزْنٍ مَّعْلُوْمٍ اِلٰى اَجَلٍ مَّعْلُوْمٍ.

اوفرمائيل. كوم سړے چه په څيز كښې سلم كوي' نو معين ناپ او معين وزن كښې د يوے مقررے مودے دپاره دے پورے كوي.

۷۹۶: حَدَّثَنَا عَلِيٌّ حَدَّثَنَا سُفْيٰنُ قَالَ حَدَّثَنِيْ ابْنُ اَبِيْ نَجِيْحٍ وَ قَالَ فَلْيُسْلِفْ فِيْ كَيْلٍ مَّعْلُوْمٍ اِلٰى اَجَلٍ مَّعْلُوْمٍ.

۷۹۶: علي. سفيان. ابن ابي نجيح. هم دغه روايت بيان كړے دے' هغے كښې دا' راغلے دي' چه مقرره وزن كښې دے د مقررے مودے پورے بيع سلم كوي.

۷۹۷: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا سُفْيٰنُ عَنْ اَبِيْ نَجِيْحٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ كَثِيْرٍ عَنْ اَبِي الْمِنْهَالِ قَالَ سَمِعْتُ ابْنَ عَبَّاسٍ يَّقُوْلُ قَدِمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ قَالَ فِيْ كَيْلٍ مَّعْلُوْمٍ وَ وَزْنٍ مَّعْلُوْمٍ اِلٰى اَجَلٍ مَّعْلُوْمٍ.

۷۹۷: قتيبه. سفيان. ابو نجيح. عبدالله بن كثير. ابوالمنهال نه روايت كوي. د هغهٔ بيان دے' ما د' ابن عباسؓ نه واوريدل' نبي صلے الله عليه وسلم مدينے ته تشريف راوړلو. او بيائے دغه حديث بيان كۀ. چه مقررے مودے پورے دے مقرر ناپ او وزن كښې سلم كوي.

۷۹۸: حَدَّثَنَا اَبُو الْوَلِيْدِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنِ ابْنِ اَبِي الْمُجَالِدِ ح وَحَدَّثَنَا يَحْيٰى حَدَّثَنَا وَكِيْعٌ عَنْ شُعْبَةَ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ اَبِي الْمُجَالِدِ حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ اَخْبَرَنِيْ مُحَمَّدٌ وَّ عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ اَبِي الْمُجَالِدِ قَالَ اخْتَلَفَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ شَدَّادِ بْنِ الْهَادِ وَ اَبُوْ بُرْدَةَ فِي السَّلَفِ فَبَعَثُوْنِيْ اِلَى ابْنِ اَبِيْ اَوْفٰى فَسَاَلْتُهُ فَقَالَ اِنَّا كُنَّا نُسْلِفُ عَلٰى عَهْدِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَبِيْ بَكْرٍ وَّ عُمَرَ فِي الْحِنْطَةِ

۷۹۸: ابوالوليد. شعبه. ابن ابي المجالد ح. (دونم سند) يحيي. وكيع. شعبه. محمد بن ابوالمجالد. حفص بن عمرو. شعبه. محمد و عبدالله بن ابي المجالد نه روايت كوي. چه عبدالله بن شداد بن هاد او ابوبرده' د بيع سلم متعلق اختلاف او كۀ هغے خلقو زۀ ابن ابي اوفي ته اوليږلم. ما د هغۀ نه تپوس اوكۀ' هغۀ اووے. مونږ خلقو به د' رسول الله صلے الله عليه وسلم او حضرت ابوبكرؓ او حضرت عمرؓ په زمانه كښې غنم. وربشے. منقي او قجورو كښې بيع سلم كولو. او ما د' ابن ابزي

وَالشَّعِيْرِ وَالزَّبِيْبِ وَالتَّمْرِ وَ سَأَلْتُ ابْنَ اَبْزٰى فَقَالَ مِثْلَ ذٰلِكَ.

نــه تپـوس اوكــه، نـو هـغـــهٔ هـم دغـسـې بيـان اوكړ.

## بـاب ۱۱۵۱: اَلسَّلَمِ اِلٰى مَنْ لَّيْسَ عِنْدَهٗ اَصْلٌ.

## باب ۱۱۵۱: هغې سړي سره دَ سلم كولو بيان چه هغهٔ سره اصل مال نه وي[۱].

۱. بيع سلم كښې دا شرط نشته چه كوم څيز يا مال خرڅولې شي هغه دې خرڅونكي سره په كور كښې يا د هغه په ملكيت كښې بل خائې وي. بلكه دومره كافي ده. چه د خرڅونكي دا قدرت وي چه هغه مال يا هغه څيز په مقرر وخت حواله كولې شي. ترديې كه د بازار نه ئې اخلي يائې څه بلې روا طريقې سره پيدا كولې شي.

۷۹۹: حَـدَّثَـنَـا مُـوْسَى بْـنُ اِسْمٰعِيْـلَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ حَدَّثَنَا الشَّيْبَانِـيُّ حَـدَّثَـنَـا مُـحَـمَّدُ بْنُ اَبِيْ الْمُـجَـالِدِ قَـالَ بَـعَثَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ شَـدَّادٍ وَّ اَبُـوْ بُـرْدَةَ اِلَى عَبْدِ اللّٰهِ ابْنِ اَبِـيْ اَوْفٰـى فَـقَـالَا سَلْهُ هَلْ كَـانَ اَصْـحٰبُ الـنَّبِيِّ صَـلَّـى اللّٰهُ عَلَيْـهِ وَسَـلَّـمَ فِـيْ عَهْـدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَـلَيْـهِ وَسَـلَّمَ يُسْلِفُوْنَ فِي الْحِنْطَةِ قَـالَ عَبْـدُ اللّٰهِ كُنَّا نُسْلِفُ نَبِيْطَ اَهْلِ الشَّامِ فِـي الْحِنْطَةِ وَالشَّعِيْرِ وَالزَّيْتِ فِـيْ كَيْـلٍ مَّـعْـلُوْمٍ اِلٰى اَجَلٍ مَّعْلُوْمٍ قُـلْـتُ اِلٰـى مَنْ كَانَ اَصْلُهٗ عِنْدَهٗ قَالَ مَـا كُـنَّـا نَسْأَلُهُمْ عَنْ ذَالِكَ ثُمَّ بَعَثَانِي اِلٰى عَبْـدِ الـرَّحْـمٰنِ بْنِ اَبْزٰى فَسَأَلْتُهٗ فَـقَالَ كَانَ اَصْحَابُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَمْ نَسْأَلْهُمْ اَلَهُمْ حَرْثٌ اَمْ لَا.

۷۹۹: مـوسـي بـن اسـمٰعيـل. عبدالواحد شيبـانـي. مـحـمّـد بـن ابي الـمـجـالـد نـه روايت كـوي. دَ هغـهٔ بيـان دې چـه زهٔ عبـداللّٰـه بـن شـداد، او ابـوبـرده عـبـداللّٰـه بـن ابـي اوفٰي لـه اوليـږلـم. اووې وئيـل، دَ هـغـهٔ نـه معلومـه كـړه، چـه آيـا دَ نبـي صـلـې اللّٰـه عـليـه وسلّـم زمـانـه كـښې بـه خلقو غنمو كـښې بيـع سـلـم كـولـو. عـبـداللّٰـه اووې. مـونـږ خلقو بــه دَ اهــل شــام دَ كـاشـتـكـارانـو نـه غـنـم. وربشـو او زيتـون كــښې دَ مـقــرره مـودې پـورې مـقـرره نــاپ او وزن كــښې ســلـم كـولـو. مـا تپـوس اوكـهٔ، هـغـه خـلـقـو سـره ئې كـولـو چـه هغوئ سره بـه اصل مـال مـوجـود وو. هـغـهٔ اووې، مـونـږ بـه دَ هغوئ نه دَ دې مـتـعـلـق تپـوس نـــه كـولـو. بيـا هغـې دواړو زهٔ عبدالـرحـمٰـن بـن ابـزيٰ تـه اوليـږلـم، مـا دَ هغهٔ نه تپـوس اوكـهٔ، نـو هـغـهٔ اووې دَ نبـي صـلـې اللّٰه عليه وسـلّـم صـحـابـهٔ بـه دَ حـضـور صـلـې اللّٰه عليه وسلّم زمـانـه كـښې سـلـم كـولـو، او مـونـږ به دَ هغوئ نه تپوس نه كولو چه هغوئ سره فصل شته يا نه.

۸۰۰: حَـدَّثَـنَـا اِسْحٰقُ حَدَّثَنَا

۸۰۰: اسـحـاق. خـالـد بـن عـبـداللّٰـه

خَالِدُ بْنُ عَبْدُ اللّٰهِ عَنِ الشَّيْبَانِيِّ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ اَبِيْ مُجَالِدٍ بِهٰذَا وَ قَالَ نُسْلِفُهُمْ فِي الْحِنْطَةِ وَالشَّعِيْرِ وَ قَالَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ الْوَلِيْدِ عَنْ سُفْيَانَ حَدَّثَنَا الشَّيْبَانِيُّ وَ قَالَ وَ الزَّيْتِ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا جَرِيْرٌ عَنِ الشَّيْبَانِيِّ وَ قَالَ فِي الْحِنْطَةِ وَالشَّعِيْرِ وَالزَّبِيْبِ.

شيبان. محمد بن ابي مجالد نه دا' روايت بيان كوي' هغه اووے' چه مونږ په غنمو او وربشو كښې سلم كولو. عبدالله بن وليد ذ سفيان قول نقل كه' مونږ ته شيباني بيان اوكه' اووے وئيل چه زيتون (كښې ئے هم سلم كولو) او قتيبه په واسطه ذ' جرير' شيباني روايت اوكه' چه غنمو' وربشو او منقي كښې (سلم كولو).

۱ ۸۰: حَدَّثَنَا اٰدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ اَخْبَرَنَا عَمْرٌو وَّ قَالَ سَمِعْتُ اَبَا الْبُخْتَرِيِّ الطَّائِيَّ قَالَ سَأَلْتُ ابْنُ عَبَّاسٍ عَنِ السَّلَمِ فِي النَّخْلِ قَالَ نَهَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ بَيْعِ النَّخْلِ حَتّٰى يُؤْكَلُ مِنْهُ وَ حَتّٰى يُوْزَنَ فَقَالَ الرَّجُلُ وَ اَىُّ شَيْءٍ يُوْزَنُ قَالَ رَجُلٌ اِلَى جَانِبِهٖ حَتّٰى يُحْزَرَ وَ قَالَ مُعَاذُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَمْرٍو وَ قَالَ اَبُو الْبُخْتَرِيِّ سَمِعْتُ ابْنَ عَبَّاسٍ نَهَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِثْلَهُ.

۱ ۸۰: آدم. شعبه. عمرو. ابوالبختري طائي نه روايت كوي' چه ما قجورو كښې (چه اُونه كښې لريدلے وي) ذ' سلم متعلق ذ' ابن عباسؓ نه تپوس اوكه. هغه اووے' نبي صلے الله عليه وسلّم ذ قجورو ذ' اُونو ذ خرخولو نه منع فرمائيلے ده' خو پورے چه ذ دے قابلے نشي' چه ذ خوراک شي او وزن كړے شي. يو سړي تپوس اوكه' كوم څيز وزن كړے شي (هر كله چه ذ قجورے اُونے سره لريدلے وي) يو بل سړي چه ابن عباسؓ سره ناست وو' اووے' چه ذ' اندازے كولو لائق شي او معاذ اووے. مونږ ته شعبه' هغه ذ عمرو نه چه كوم حديث روايت ابوالبختري اووے' ما ذ' ابن عباسؓ نه واوريدل' چه نبي صلے الله عليه وسلّم منع فرمائيلے ده' او دغه شان روايت ئے اوكه.

بَابٌ ۲ ۱ ۵: السَّلَمِ فِي النَّخْلِ.

باب ۲ ۱ ۵: چوهارو كښې ذ سلم كولو بيان.

۲ ۸۰: حَدَّثَنَا اَبُو الْوَلِيْدِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَمْرٍو وَ عَنْ اَبِي

۲ ۸۰: ابوالوليد. شعبه. عمرو ابوالبختري نه روايت كوي. ذ هغه بيان دے' ما چوهارو كښې ذ سلم

الْبُخْتَرِيِّ قَالَ سَأَلْتُ ابْنَ عُمَرَ عَنِ السَّلَمِ فِي النَّخْلِ فَقَالَ نَهَى عَنْ بَيْعِ النَّخْلِ حَتَّى يَصْلُحَ وَ عَنْ بَيْعِ الْوَرِقِ نَسَاءً بِنَاجِزٍ وَّ سَأَلْتُ ابْنَ عَبَّاسٍ عَنِ السَّلَمِ فِي النَّخْلِ فَقَالَ نَهَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ بَيْعِ النَّخْلِ حَتَّى يُؤْكَلَ مِنْهُ اَوْ يَأْكُلَ مِنْهُ وَ حَتَّى يُوْزَنَ.

کولو متعلق دَ' ابن عمرؓ نه تپوس او کهٔ' نو هغهٔ اووے' دَ چوهارو دَ خرخولو نه منع شوے ده' څو پورے چه هغے کښ صلاحیت پیدا نشي. او دَ نقد چاندي په عوض دَ قرض خرخولو نه منع شوے ده. او ما دَ' ابن عباسؓ نه چوهارو کښ دَ سلم متعلق تپوس او کهٔ' نو هغه اووے' نبي صلے اللّٰه علیه وسلّم دَ چوهارو دَ بیع نه منع فرمائیلے ده' څو پورے چه دَ خوراک یا' دَ وزن کولو جوګه نشي.

۸۰۳: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَمْرٍو عَنْ اَبِي الْبُخْتَرِيِّ سَأَلْتُ ابْنَ عُمَرَ عَنِ السَّلَمِ فِي النَّخْلِ فَقَالَ نَهَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ بَيْعِ الثَّمَرِ حَتَّى يَصْلُحَ وَ نَهَى عَنِ الْوَرِقِ بِالذَّهَبِ نَسَاءً بِنَاجِزٍ وَّ سَأَلْتُ ابْنَ عَبَّاسٍ فَقَالَ نَهَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ بَيْعِ النَّخْلِ حَتَّى يَأْكُلَ اَوْ يُؤْكَلَ وَ حَتَّى يُوْزَنَ قُلْتُ وَمَا يُوْزَنُ قَالَ رَجُلٌ عِنْدَهُ حَتَّى يُحْرَزَ.

۸۰۳: محمد بن بشار. غندر. شعبه. عمرو. ابو البختري نه روایت کوي' چه ما دَ' ابن عمرؓ نه دَ چوهارو دَ سلم متعلق تپوس او کهٔ' نو هغهٔ اووے' نبي صلے اللّٰه علیه وسلّم دَ میوو دَ خرخولو نه منع فرمائیلے ده' څو پورے چه هغے کښ صلاحیت پیدا نشي' او دَ سرو زرو عوض کښ چاندي په دے طور' دَ خرخولو نه منع فرمائیلے ده' چه یو نقد وي او بل قرض. او ما دَ' ابن عباسؓ نه تپوس او کهٔ' نو هغهٔ اووے' نبي صلے اللّٰه علیه وسلّم دَ چوهارو دَ خرخولو نه منع فرمائیلے ده' څو پورے چه دَ خوراک نشي او وزن نهٔ کړے شي. ما تپوس او کهٔ' څهٔ خیز وزن کړے شي نو یو سړے چه هغهٔ سره ناست وو' وے وئیل' یعني اندازه کړے شي.

## بَابٌ ۱۳ ۵: اَلْكَفِيْلِ فِي السَّلَمِ.

## باب ۱۳ ۵: سلم کښ دَ ضمانت ورکولو بیان.

۸۰۴: حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ حَدَّثَنَا يَعْلٰى حَدَّثَنَا الْاَعْمَشُ عَنْ اِبْرَاهِيْمَ عَنِ الْاَسْوَدِ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتِ اشْتَرٰى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

۸۰۴: محمد. یعلي. اعمش. ابراهیم. اسود. بي بي عائشےؓ نه روایت کوي' دَ هغے بیان دے' چه رسول اللّٰه صلے اللّٰه علیه وسلّم دَ' یو یهودي نه قرض غله واخسته. او دَ'

طَعَامًا مِنْ يَهُودِيٍّ بِنَسِيئَةٍ وَ رَهَنَهُ دِرْعًا لَهُ مِنْ حَدِيدٍ.

**باب ۱۵۱۴: الرَّهْنِ فِي السَّلَمِ.**

۸۰۵: حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ مَحْبُوبٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ حَدَّثَنَا الْأَعْمَشُ قَالَ تَذَاكَرْنَا عِنْدَ إِبْرَاهِيمَ الرَّهْنَ فِي السَّلَفِ فَقَالَ حَدَّثَنِي الْأَسْوَدُ عَنْ عَائِشَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اشْتَرَى مِنْ يَهُودِيٍّ طَعَامًا إِلَى أَجَلٍ مَعْلُومٍ وَارْتَهَنَ مِنْهُ دِرْعًا مِنْ حَدِيدٍ.

**باب ۱۵۱۵: السَّلَمِ إِلَى أَجَلٍ مَعْلُومٍ** وَبِهِ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ وَ أَبُو سَعِيدٍ وَالْأَسْوَدُ وَالْحَسَنُ وَ قَالَ ابْنُ عُمَرَ لَا بَأْسَ فِي الطَّعَامِ الْمَوْصُوفِ بِسِعْرٍ مَعْلُومٍ إِلَى أَجَلٍ مَعْلُومٍ مَا لَمْ يَكُ ذَلِكَ فِي زَرْعٍ لَمْ يَبْدُ صَلَاحُهُ.

۸۰۶: حَدَّثَنَا أَبُو نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنِ ابْنِ أَبِي نَجِيحٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ كَثِيرٍ عَنْ أَبِي الْمِنْهَالِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَدِمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمَدِينَةَ وَهُمْ يُسْلِفُونَ فِي الثِّمَارِ السَّنَتَيْنِ وَالثَّلَاثَ فَقَالَ أَسْلِفُوا فِي الثِّمَارِ فِي كَيْلٍ مَعْلُومٍ إِلَى أَجَلٍ مَعْلُومٍ وَ قَالَ عَبْدُ

اُوسپنے يوه زغره ئے هغه سره ګانړه کړه.

**باب ۱۵۱۴: سلم کښې د ګانړې کولو بيان.**

۸۰۵: محمد بن محبوب. عبدالواحد. اعمش بيان کوي. مونږ' ابراهيم ته قرض کښې د ګانړه ايښودو ذکر اوکړه' نو هغه اووے' ماته اسود' هغه د بي بي عائشےؓ نه نقل اوکړه' چه نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم يو يهودي سره د' يوے مقررے مودے په وعده غله واخسته' او د' اوسپنے يوه زغره ئے هغه سره ګانړه کړه.

**باب ۱۵۱۵: د' يوے مقررے مودے په وعده سلم کول پکار دي.** ابن عباسؓ. ابوسعيدؓ. اسودؒ او حسن بصري دغسے اووے. او ابن عمرؓ اووے' هغه غله چه د هغے صفت بيان شوے وي' د' معين نرخ په عوض د' مقررے مودے په وعده سلم کولو کښې څۀ حرج نشته' هر کله چه داسے فصل کښې نه وي چه د هغے صلاحيت ظاهر شوے نه وي.

۸۰۶: ابونعيم. سُفيان. ابن نجيح. عبداللّٰه بن کثير. ابوالمنهال. حضرت ابن عباسؓ نه روايت کوي' د هغه بيان دے' نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم مدينے ته تشريف راوړلو' او خلقو ميوو کښې د' دوو يا درے کالو سلم کولو. نو حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل' ميوو کښې معين ناپ کښې' د مقررے مودے په وعده سلم کوئے او عبداللّٰه بن وليد اووے'

اللّٰهِ بْنُ الْوَلِيْدُ حَدَّثَنَا سُفْيٰنُ حَدَّثَنَا ابْنُ اَبِيْ نَجِيْحٍ وَ قَالَ فِيْ كَيْلٍ مَّعْلُوْمٍ وَ وَزْنٍ مَّعْلُوْمٍ.

چه مونږ ته سُفيان او هغهٔ ته ابن ابي نجيح بيان اوکړ، اووئيلے، چه مقرره پيمانه او مقرره وزن کښې دے وي.

۸۰۷: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مُقَاتِلٍ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا سُفْيٰنُ عَنْ سُلَيْمَانَ الشَّيْبَانِيِّ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ اَبِيْ مُجَالِدٍ قَالَ اَرْسَلَنِيْ اَبُوْ بُرْدَةَ وَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ شَدَّادٍ اِلٰى عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ اَبْزٰى وَ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِيْ اَوْفٰى فَسَاَلْتُهُمَا عَنِ السَّلَفِ فَقَالَا كُنَّا نُصِيْبُ الْمَغَانِمَ مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَكَانَ يَاْتِيْنَا اَنْبَاطٌ مِّنْ اَنْبَاطِ الشَّامِ فَنُسْلِفُهُمْ فِي الْحِنْطَةِ وَالشَّعِيْرِ وَالزَّبِيْبِ اِلٰى اَجَلٍ مُّسَمًّى قَالَ قُلْتُ اَكَانَ لَهُمْ زَرْعٌ اَوْلَمْ يَكُنْ لَهُمْ زَرْعٌ قَالَ مَا كُنَّا نَسْئَلُهُمْ عَنْ ذَالِكَ.

۸۰۷: محمد بن مقاتل. عبداللّٰه. سُفيان. سُليمان شيباني. محمّد بن ابي مجالد نه روايت کوي، هغهٔ اووے، چه زهٔ ابو برده او عبداللّٰه بن شداد، عبدالرحمٰن بن ابزيٰ او عبداللّٰه بن ابي اوفي ته اوليږلم. ما دَ هغے دواړو نه دَ سلم متعلق تپوس اوکړ، نو دواړو اووے، چه مونږ ته به دَ غنيمت مال رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلّم سره حاصليدلو. او دَ شام کاشتکار به مونږ ته راتلل، نو مونږ به هغوئ سره دَ غنمو، وربشو، منقي کښې دَ يوے مقررے مودے په وعده سلم کولو. ما دَ هغوئ نه تپوس اوکړ، چه هغوي به کر کيله کوله يا نه، نو هغے دواړو اووے، چه مونږ به دَ هغوي نه دَ دے متعلق تپوس نهٔ کولو.

## بَابُ ۱۵۱۶: السَّلَمِ اِلٰى اَنْ تُنْتَجَ النَّاقَةُ.

## باب ۱۵۱۶: دَ اُوښے دَ بچي پيدا کيدو پورے دَ سلم کولو بيان.

۸۰۸: حَدَّثَنَا مُوْسٰى بْنُ اِسْمٰعِيْلَ اَخْبَرَنَا جُوَيْرِيَةُ عَنْ نَافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ كَانُوْا يَتَبَايَعُوْنَ الْجَزُوْرَ اِلٰى حَبَلِ الْحَبَلَةِ فَنَهَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْهُ فَسَّرَهٗ نَافِعٌ اَنْ تُنْتَجَ النَّاقَةُ مَا فِيْ بَطْنِهَا.

۸۰۸: موسيٰ بن اسمٰعيل. جويريه. نافع. عبداللّٰه (بن عمرؓ) نه روايت کوي. دَ هغهٔ بيان دے، چه خلقو به حبل الحبله په وعده خريد و فروخت کولو، نو نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم دَ دے نه منع اوفرمائيله. نافع دَدے تفسير بيان کړ، چه دَ اُوښے بچے پيداشي، کوم چه دَ هغے خيټے کښې وي.

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

# كِتَابُ الشُّفُعَةِ (دَ شُفعې بَيان)

باب۷ ۱ ۵: الشُّفُعَةِ فِي مَا لَمْ يُقْسَمْ فَإِذَا وَقَعَتِ الْحُدُوْدُ فَلَا شُفُعَةَ.

باب۷ ۱ ۵: شُفعه په زمکه کیږي' چه تقسیم شوې نۀ وي' او کله چه حد بندي اوشي' نو شُفعه نشته[1].

۱. د احنافو په نزد' د شفعې کولو حق د هغه چا دې چه د خرڅونکي په مال کښ شریک' یائې په حقونو کښ شریک یائې گاونډ کښ وي. نو شفعه کولې شي. تفصیل د فقهې په کتابونو کښ دې.

۸۰۹: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ حَدَّثَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ أَبِيْ سَلْمَةَ ابْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ قَضٰى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالشُّفُعَةِ فِيْ كُلِّ مَالَمْ يُقْسَمْ فَإِذَا وَقَعَتِ الْحُدُوْدُ وَ صُرِفَتِ الطُّرُقُ فَلَا شُفُعَةَ.

۸۰۹: مسدد. عبدالواحد. معمر. زهري. ابوسلمه بن عبدالرحمٰن' جابر بن عبداللّٰه نه روایت کوي' ذ هغۀ بیان دې' چه رسول اللّٰه صلی اللّٰه علیه وسلّم دَ شفعې هر هغه زمکه کښ حُکم ورکړې دې' چه تقسیم شوې نۀ وي' کوم وخت چه حد بندي اُوشي' او لارې بدلې شي' نو بیا شُفعه نشته.

باب۸ ۱ ۵: عَرْضِ الشُّفُعَةِ عَلٰى صَاحِبِهَا قَبْلَ الْبَيْعِ وَ قَالَ الْحَكَمُ إِذَا أَذِنَ لَهٗ قَبْلَ الْبَيْعِ فَلَا شُفُعَةَ لَهٗ وَ قَالَ الشَّعْبِيُّ مَنْ بِيْعَتْ شُفُعَتُهٗ وَهُوَ شَاهِدٌ لَّا يُغَيِّرُهَا فَلَا شُفُعَةَ لَهٗ.

باب۸ ۱ ۵: دَ خرڅولو نه مخکښ شُفعه' شفیع ته دَ پیش کولو بیان. او حَکم اُووې' کۀ دَ خرڅولو نه مخکښ شفیع اجازت ورکړي' نو هغۀ ته دَ شفعې حق نشته. او شعبي اووې' هر کله چه شُفعه خرڅه شوه' او شفیع موجود وو. لیکن هغۀ اعتراض اونۀ کۀ' نو دَ هغۀ دَ شفعې حق نشته.

۸۱۰: حَدَّثَنَا الْمَكِّيُّ بْنُ إِبْرَاهِيْمَ أَخْبَرَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ أَخْبَرَنِيْ إِبْرَاهِيْمُ بْنُ مَيْسَرَةَ عَنْ عَمْرِو بْنِ الشَّرِيْدِ قَالَ وَقَفْتُ عَلٰى سَعْدِ بْنِ أَبِيْ وَقَّاصٍ فَجَآءَ الْمِسْوَرُ بْنُ مَخْرَمَةَ فَوَضَعَ يَدَهٗ عَلٰى إِحْدٰى مَنْكِبَيَّ إِذْ جَآءَ أَبُوْ رَافِعٍ مَّوْلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ

۸۱۰: مکي بن ابراهیم. ابن جریج. ابراهیم بن میسره. عمرو بن شرید نه روایت کوي' دَ هغۀ بیان دې. چه زۀ سعد بن ابي وقاص سره ناستووم' نو مِسور بن مخرمه راغې' او خپل لاس ئې خما په یوه اوږه کیښود' هغه وخت ابورافع (دَ نبي صلی اللّٰه علیه وسلّم غلام) راغې' اووئیلې' ائې سعد' مانه خما دواړه کورونه چه ستا محَلّه کښ دي' واخله' سعد ورته اووې' په خدائې چه'

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَا سَعْدُ ابْتَعْ مِنِّيْ بَيْتَيَّ فِيْ دَارِكَ فَقَالَ سَعْدٌ وَاللّٰهِ لَا أَزِيْدُكَ عَلٰى أَرْبَعَةِ الْآفٍ مُنَجَّمَةٍ أَوْ مُقَطَّعَةٍ قَالَ أَبُوْ رَافِعٍ لَقَدْ أُعْطِيْتُ بِهَا خَمْسَ مِائَةِ دِيْنَارٍ وَلَوْلَا أَنِّيْ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ الْجَارُ أَحَقُّ بِسَقَبِهِ مَا أَعْطَيْتُكَهَا بِأَرْبَعَةِ الْآفٍ وَ أَنَا أُعْطٰى بِهِمَا خَمْسَ مِائَةِ دِيْنَارٍ فَأَعْطَاهُمَا إِيَّاهُ.

زهٔ خو هغه، نه آخلم (نهيں خريدتا) مسور اووې: په خدائ چه، ته به ئې اخلې. سعدٌ اووې: زهٔ تاله د څلور زره (درهم) نه زيات نهٔ دركوم، او هغه هم څو قسطونو کښې ابو رافع اووې، ماته د دې پنځه سوه ديناره راکولې شي، که ما د نبي صلے الله عليه وسلّم نه، نه وې آوريدلې چه ګوانډي د شفعې زيات مستحق دې، نو ما به تاله هيڅ کله په څلور زره درهمه کښې نه وې درکړې، هر کله چه ماته پنځه سوه ديناره راکولې شي، نو هغه دواړه کورونه ابو رافعٌ، سعدٌ له ورکړل.

## باب ۱۹ ۵: أَيُّ الْجِوَارِ أَقْرَبُ.

## باب ۱۹ ۵: کوم ګوانډي زيات نزدې دې؟

۱۸۱۱: حَدَّثَنَا حَجَّاجٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ ح وَ حَدَّثَنِيْ عَلِيُّ ابْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا شَبَابَةُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا أَبُوْ عِمْرَانَ قَالَ سَمِعْتُ طَلْحَةَ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ عَنْ عَائِشَةَ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ أَنَّ لِيْ جَارَيْنِ فَإِلٰى أَيِّهِمَا أُهْدِيْ قَالَ إِلٰى أَقْرَبِهِمَا مِنْكَ بَابًا.

۱۸۱۱: حجاج. شعبه. ح. علي بن عبدالله. شبابه. شعبه. ابو عمران. طلحه بن عبدالله بي بي عائشۓ نه روايت کوي، فرمائي، ما عرض اوکړ يا رسول الله، څما دوه ګوانډيان دي، نو هغوئ کښې کوم يو ته هديه اوليږم، حضور صلے الله عليه وسلّم اوفرمائيل، د چا دروازه چه تاته زياته نزدې وه.

الحمدللّٰه والشكر للّٰه اتمه سپاره ختمه شوه





تاج
تاج البخاری
پښتو شرح صحیح البخاری
پاره ۹
شارح: مولانا ظهور الباری اعظمی فاضل دارالعلوم دیوبند
پښتو ترجمه: مولانا محمد امین دراني
نظرثانی: حافظ قاری فضل کریم
اهتمام: دکتور محمد دین البشاوری
تاج کتب خانه رجسٹرڈ
قصه خوانی پشاور
فون: 214454
C-20

# تاج البخاري پاره ۹ دمضامينو فهرست

# نهمه پاره

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ط

باب ۵۲۰: فِــي الِاجَــارَاتِ، اِسْتِئْجَارِ الرَّجُلِ الصَّالِحِ وَ قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى اِنَّ خَيْرَ مَنِ اسْتَأْجَرْتَ الْقَوِيُّ الْاَمِيْنُ وَالْخَــازِنُ الْاَمِيْــنُ وَمَنْ لَمْ يَسْتَعْمِلْ مَنْ اَرَادَهُ.

باب ۵۲۰: د مزدورئ يا كرائي بيان[1]. د مرد صالح په مزدورئ لېږول، او د الله تعالىٰ قول د چا نه چه تاسو مزدوري اخلئ، هغې كښې ښهٔ هغه دے، چه قوي امين وي، او ايمانداره خزانچي او د هغې سري بيان چه د څه كار خواهش اوكړي د هغهٔ نه كار نه اخلي.

۱. اجاره په عربئ ژبه كښې مزدورئ ته وئيلے شي. د فقهې په اصطلاح كښې ديته اجاره وئيلے شي. چه څوک يو انسان د خپل ذات د فائدو په يو معلوم اُجرت باندے مالک جوړ كړي د اَجير (د مزدور) فقهاؤ دوه قسمه ليكلے دي. (۱) اَجير مشترک. هغه مزدور ته وائي چه تر څو هغه كار چه د كوم مزدوري مقرر شويده تر څوني چه نوي كړے نو د اجرت د مزدورئ حقدار نه دے (۲) اجير خاص هغه مزدور ته وئيلے شي چه هغه خپل خان د مقرر مودے د پاره حواله كړي نو هغه د مزدورئ حقدار وي كه كار اوكړي يا اونه كړي.

۸۱۲: حَــدَّثَـنَـا مُـحَـمَّـدُ بْــنُ يُوْسُفَ حَـدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ اَبِيْ بُرْدَةَ قَالَ اَخْبَرَنِيْ جَدِّيْ اَبُوْ بُرْدَةَ عَنْ اَبِيْهِ اَبِيْ مُوْسٰى الْاَشْعَرِيِّ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْخَازِنُ الْاَمِيْنُ الَّذِيْ يُـؤَدِّيْ مَا اُمِرَ بِهٖ طَيِّبَةً نَفْسُهٗ اَحَدُ الْمُتَصَدِّقِيْنَ.

۸۱۲: مـحـمـد بـن يـوسف. سـفيـان. ابوبـرده. (يـزيـد بـن عـبدالـلـه) ابـو بـرده (عـامـر) ابـو مـوسـي اشـعـريؒ نـه روايـت كـوي، د هـغـهٔ بـيـان دے، نبي صـلـي الـلـه عـليـه وسـلـم اوفرمائيل، امانتداره خزانچي هـم د خيـرات كـونـكـو نـه يـو دے، چـه د خپل زړهٔ پــه خــوښـــه د مــالـک رقـم پـوره پـوره وركړي.

۸۱۳: حَـدَّثَـنَـا مُسَـدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ قُرَّةَ بْنِ خَالِدٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ حُمَيْدُ بْنُ هِلَالٍ حَدَّثَنَا اَبُوْ بُرْدَةَ عَنْ اَبِيْ مُـوْسٰى قَـالَ اَقْبَلْتُ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى الـلّٰـهُ عَـلَيْـهِ وَسَلَّمَ وَ مَعِيَ رَجُلَانِ مِـنَ الْاَشْـعَـرِيِّيْـنَ فَـقُلْتُ مَـا

۸۱۳: مسـدد. يـحـيٰي. قـره بن خالد. حميد بن هـلال. ابـوبـرده. ابـو مـوسيؓ نه روايت كوي د هغهٔ بيان دے، زهٔ نبي صـلـي الـلـه عليه وسلم له راغلم، او ماسره د قبيله اشعـر دوه سـري نور هم وو. ما عرض اوكه، زهٔ نه پـوهـيـږم چـه دا دواړه عـامـل جوړيدل غواړي. حضور صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل. مونږ هيڅكله هغه سړے

عَلِمْتُ أَنَّهُمَا يَطْلُبَانِ الْعَمَلَ فَقَالَ لَنْ أَوْلَا نَسْتَعْمِلُ عَلٰى عَمَلِنَا مَنْ أَرَادَهُ.

عامل جوړول نه غواړو څوک چه خپله عامل جوړيدل غواړي.

ف: دې حديث نه معلومه شوه كۀ څوک خپله يو منصب غواړي نو هغه ذ هغې قابل نه دې، څو پورې چه نور څوک نې ذ هغې قابل اونه ګڼړي.

## باب ۱۵۲۱: رَعِيُ الْغَنَمِ عَلٰى قَرَارِيطَ.

باب ۱۵۲۱: ذ څو قيراطو په عوض ذ چيلو څرولو بيان.

۸۱۴: حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بن مُحَمَّدٍ الْمَكِّيُّ حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنِ يَحْيٰى عَنْ جَدِّهِ عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمْ قَالَ مَا بَعَثَ اللّٰهُ نَبِيًّا إِلَّا رَعَى الْغَنَمَ فَقَالَ أَصْحَابُهُ وَ أَنْتَ فَقَالَ نَعَمْ كُنْتُ أَرْعَاهَا عَلٰى قَرَارِيطَ لِأَهْلِ مَكَّةَ.

۸۱۴: احمد بن محمد مكي. عمرو بن يحيٰي. ذ خپل نيكۀ (دادا) نه، هغه ذ، ابوهريرةؓ نه، هغه ذ نبي صلي اللّٰه عليه وسلم نه روايت كوي، حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، اللّٰه هيڅ نبي داسې نه دې راليږلې، چه هغۀ چيلئې څرولې نه وي، ذ حضور صلي اللّٰه عليه وسلم صحابهؓ ؤ اووې، او تاسوهم، نو حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، ما به ذ مكې والو چيلئې په څو قيراطه څرولې.

## باب ۱۵۲۲: اِسْتِيْجَارِ الْمُشْرِكِيْنَ عِنْدَ الضَّرُوْرَةِ وَ إِذَا لَمْ يُوجَدْ أَهْلُ الْإِسْلَامِ وَ عَامَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَهُوْدَ خَيْبَرَ.

باب ۱۵۲۲: ذ ضرورت په وخت يا كله چه مسلمان بيانه منده شي په مشركانو د، مزدورئ كولو بيان[1].

[1] عربستان كښې ډيرې لوئې صحراګانې او غرونه وو. لارې معلومول ډير ګران وو معمولي هيريدو سره به لوئې، لوئې مصيبتونه پيښيدل كله چه به چرته تجارتي قافلې تللې. هغوي سره به د "لارې ماهر" په سفر كښې ضرور ملګرې وو. چه هغوي د لارو د خطرو نه پوره پوره خبر وو داسې ماهران به خلقو په مزدورئ، كرايه بوتلل. رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم مدينې منورې ته د هجرت په وخت د لارې ماهر "الدِّيْلى" په مزدورئ ځان سره روان كړې وؤ. ددې زيات تفصيل به كتاب الهجرت كښې رازي دلته ددې حديث شريف سره امام بخاري رحمة اللّٰه عليه دا ښودل غواړي چه مشرک او كافر په مزدورئ نيول روا دي.

۸۱۵: حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيْمُ بْنُ مُوْسٰى أَخْبَرَنَا هِشَامٌ عَنْ مَعْمَرٍ عَنِ

۸۱۵: ابراهيم بن موسٰي. هشام. معمر. زهري. عروه بن زبير. بي بي عائشےؓ نه روايت

الزُّهْرِيِّ عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ عَنْ عَائِشَةَ وَاسْتَاجَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَبُوْبَكْرٍ رَجُلًا مِّنْ بَنِي الدِّيلِ ثُمَّ مِنْ بَنِي عَبْدِ بْنِ عَدِيٍّ هَادِيًا خِرِّيْتًا وَالخِرِّيْتُ الْمَاهِرُ بِالهِدَايَةِ قَدْ غَمَسَ يَمِيْنَ حِلْفٍ فِي اٰلِ الْعَاصِ بْنِ وَائِلٍ وَهُوَ عَلٰى دِيْنِ كُفَّارِ قُرَيْشٍ فَاَمِنَاهُ فَدَفَعَا اِلَيْهِ رَاحِلَتَيْهِمَا وَ وَعَدَاهُ غَارَ ثَوْرٍ بَعْدَ ثَلٰثِ لَيَالٍ فَاَتَاهُمَا بِرَاحِلَتَيْهِمَا صَبِيْحَةَ لَيَالٍ ثَلٰثٍ فَارْتَحَلَا وَانْطَلَقَ مَعَهُمَا عَامِرُ بْنُ فُهَيْرَةَ وَالدَّلِيْلُ الدِّيْلِيُّ فَاَخَذَ بِهِمْ طَرِيْقَ السَّاحِلِ.

کوي (د هجرت واقعه کښ) چه نبي صلي الله عليه وسلم او ابوبکر د بني ويل يو سړے بيا د بني عبد بن عدي يو رهبر چه لار ښودلو کښ ډير هوښيار وو، په مزدورئ اونيولو. هغهٔ د عاص بن وائل خاندان سره د قسم معاهده کړے وه، او هغه د کفار قريش په دين وو. هغوي دواړو په هغه اعتماد اوکړ او هغه له دواړو خپلے خپلے سورلئے ورکړے. او هغهٔ ته ئے هدايت اوکړ. چه درے شپو نه پس ئے غار ثور له راولي. نو هغهٔ درے شپونه پس سحر وختي د دواړو سورلئے راوستے، هغوي دواړه روان شو، او هغوي سره عامر بن فهيره وو. او لار ښودونکے د قبيله ديل يو سړے وو، چه دا ټول ئے د ساحل په لاره بوتلل.

## بَابٌ ٥٢٣: اِذَا اسْتَاجَرَ اَجِيْرًا لِيَعْمَلَ لَهٗ بَعْدَ ثَلٰثَةِ اَيَّامٍ اَوْ بَعْدَ شَهْرٍ اَوْ بَعْدَ سَنَةٍ جَازَ وَهُمَا عَلٰى شَرْطِهِمَا الَّذِيْ اشْتَرَطَاهُ اِذَا جَآءَ الْاَجَلُ.

## باب ٥٢٣: کهٔ يو سړے يو مزدور پهٔ مزدورئ اولېږوي چه درے ورځے يا يو مياشت يا يو کال پس دے کار اوکړي نو جائز دي. او هر کله چه هغه مقرر وخت راشي، نو دواړه به په خپلو شرطونو قائم وي.

٢١٨٦: حَدَّثَنَا يَحْيٰى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ قَالَ ابْنُ شِهَابٍ فَاَخْبَرَنِيْ عُرْوَةُ ابْنُ الزُّبَيْرِ اَنَّ عَائِشَةَ زَوْجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَتْ وَاسْتَاجَرَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَبُوْ بَكْرٍ رَجُلًا مِنْ بَنِي الدِّيْلِ هَادِيًا خِرِّيْتًا وَّهُوَ عَلٰى دِيْنِ كُفَّارِ قُرَيْشٍ فَدَفَعَا اِلَيْهِ رَاحِلَتَيْهِمَا وَ وَعَدَاهُ غَارَ ثَوْرٍ بَعْدَ

٢١٨٦: يحيي بن بکر. ليث. عقيل. ابن شهاب. عروه بن زبير. د نبي صلي الله عليه وسلم ښځے بي بي عائشےؓ نه روايت کوي. هغے (د هجرت واقعه کښ) اووے، رسول الله صلي الله عليه وسلم او ابوبکرؓ د بني ديل يو سړے چه لار ښودونکے وو. د لار ښودلو د پاره په مزدورئ اونيولو. او هغه د کفار قريش په دين وو. دواړو خپلے سورلئے هغهٔ ته حواله کړے. او هغهٔ نه ئے لوظ واخست چه درے شپونه پس سحر وخت به غار

ثَلٰثِ لِيَالٍ بِرَاحِلَتِهِمَا صُبْحَ ثَلٰثٍ.

ثور ته سورلئ راولي.

## بَـــابٌ ۵۲۴: اَلْاَجِيْـــرِ فِـــى الْغَزْوِ.

## باب ۵۲۴: جهاد كښې ذ مزدور خان سره ذ بوتلو بيان.

۱۸۱۷: حَـدَّثَـنَـا يَـعْـقُـوْبُ بْـنُ اِبْـرَاهِيْـمَ حَـدَّثَـنَـا اِسْـمٰـعِيْـلُ بْـنُ عُـلَيَّةَ اَخْبَـرَنَـا اِبْـنُ جُرَيْجٍ قَـالَ فَـاَخْبَـرَنِـىْ عَـطَـآءٌ عَـنْ صَفْوَانَ بْنِ يَـعْـلٰـى عَـنْ يَّـعْـلـى ابْنِ اُمَيَّةَ قَـالَ غَـزَوْتُ مَـعَ الـنَّـبِـيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَيْشَ الْعُسْرَةِ فَكَانَ مِنْ اَوْثَقِ اَعْـمَـالِىْ فِـىْ نَـفْسِىْ فَكَانَ لِىْ اَجِيْرٌ فَـقَـاتَـلَ اِنْسَـانًـا فَعَضَّ اَحَدُهُمَا اِصْبَعَ صَـاحِـبِـهٖ فَـانْتَزَعَ اِصْبَعَهٗ فَاَنْدَرَ ثَنِيَّتَهٗ فَسَـقَـطَـتْ فَـانْطَلَقَ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَهْدَرَ ثَنِيَّتَهٗ وَ قَالَ اَفَيَـدَعُ اِصْبُـعَهٗ فِىْ فِيْكَ تَقْضَمُهَا قَالَ اَحْسِبُـهٗ قَـالَ كَـمَا يَقْضِمُ الْفَحْلُ قَالَ ابْـنُ جُـرَيْـجٍ وَ حَـدَّثَنِىْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ اَبِـىْ مُـلَيْـكَةَ عَـنْ جَـدِّهٖ بِـمِثْلِ هٰذِهِ الصِّفَةِ اَنَّ رَجُلًا عَضَّ يَدَ رَجُلٍ فَاَنْدَرَ ثَنِيَّتَهٗ فَاَهْدَرَهَا اَبُوْبَكْرٍؓ.

۱۸۱۷: يعقوب بن ابراهيم. اسمعيل بن عليه. ابن جريج. عطاء. صفوان بن يعلي. يعلي بن اُميه نه روايت دے. چه زهٔ نبي صلي الله عليه وسلم سره جيش عسره (يعني غزوه تبوک) كښې شريک شوے ووم. او خما خيال كښې دا' ذ ټولو نه زيات قابل اعتماد عمل وو. خما يو مزدور وو' هغهٔ سره چا جګړه اوکړله' يو ذَ بل ګوته په غاښ كښې دباؤ كړه' هغهٔ خپله ګوته راښكله' نو ذَ هغهٔ غاښونه اوغرځيدل' هغه نبي صلي الله عليه وسلّم له شكايت لـه لاړ' حضور صلي الله عليه وسلّم ذَ هغهٔ ذَ غاښ ذَ معاوضے حكم اونهٔ كړلو' او وے فرمائيل' هغه خپله ګوته ستا پهٔ خلهٔ كښې پريښے وے' چه تا چيچلے وے. ذَ' يعلي بيان دے' هغه وائي' خما خيال دے' حضور صلي الله عليه وسلّم دا هم اوفرمائيل' څنګه چه اوښ څه څيز چيچي. او ابن جريج اووے' ماته عبدالرحمٰن بن ابي مليكه' او هغهٔ ذَ خپل پلار نه داسے روايت اوكهٔ' چه يو سړي ذَ چا لاس غاښونو كښې دباؤ كړلو' هغهٔ خپل لاس راښكلو' ذَ هغهٔ غاښ پريوترلو. نو ابوبكرؓ ذَ هغے معاوضه ورنه كړله.

## بَـابٌ ۵۲۵: مَـنِ اسْتَـاْجَـرَ اَجِيْـرًا فَبَيَّـنَ لَـهُ الْاَجَـلَ وَلَـمْ يُبَيِّـنِ الْـعَـمَـلَ لِقَـوْلِـهٖ اِنِّـىْ اُرِيْـدُ اَنْ اُنْـكِحَكَ اِحْـدَى ابْـنَتَـىَّ هَـا تَيْنِ اِلَـى قَـوْلِـهٖ عَـلـٰـى مَـا نَقُوْلُ وَكِيْلٌ

## باب ۵۲۵: كوم سړي چه يو مزدور پهٔ اجرت اولګولو' ذ هغهٔ موده خوئے بيان كړه' ليكن كارئے بيان نهٔ كهٔ (نو جائز دي) څكه چه الله تعالي فرمائيلي دي (ذ شعيبؑ په واقعه كښې هغه موسيٰؑ ته وائي) چه زهٔ خپلو دوؤ لونړو كښې يو تاته په نكاح دركول غواړم. عَلٰى ما

يَأْجُرُ فُلَانًا يُعْطِيهِ أَجْرًا وَمِنْهُ فِي التَّعْزِيَةِ أَجَرَكَ اللّٰهُ.

نَقُولُ وَكِيل پورے. يا جر فلانًا معني دي هغه' هغه ته آجر ور كوي. او د تعزيت په موقع اجرک اللّٰه (اللّٰه دے تاله بدله در كړي) ونيلے شي' نو هغه ددے نه ماخوذ دے.

باب ۵۲۶: إِذَا اسْتَأْجَرَ أَجِيرًا عَلٰى أَنْ يُقِيمَ حَائِطًا يُرِيدُ أَنْ يَنْقَضَّ جَازَ.

باب ۵۲۶: كه يو سړے يو مزدور په دے كار اولګوي' چه ديوال نيغ كړي' چه هغه غرځيدو ته نزدے وي' دا جائز دي.

۸۱۸: حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوْسٰى أَخْبَرَنَا هِشَامُ بْنُ يُوْسُفَ أَنَّ ابْنَ جُرَيْجٍ أَخْبَرَهُمْ قَالَ أَخْبَرَنِيْ يَعْلَى بْنُ مُسْلِمٍ وَّ عَمْرُو بْنُ دِينَارٍ عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ يَّزِيْدُ أَحَدُهُمَا عَلٰى صَاحِبِهٖ وَغَيْرُهُمَا قَدْ سَمِعْتُهُ يُحَدِّثُهُ عَنْ سَعِيْدٍ قَالَ قَالَ لِي ابْنُ عَبَّاسٍ حَدَّثَنِيْ أُبَيُّ بْنُ كَعْبٍ قَالَ قَالَ لِيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَانْطَلَقَا فَوَجَدَا جِدَارًا يُرِيْدُ أَنْ يَنْقَضَّ قَالَ سَعِيْدٌ بِيَدِهٖ هٰكَذَا وَ رَفَعَ يَدَيْهِ فَاسْتَقَامَ قَالَ يَعْلٰى حَسِبْتُ أَنَّ سَعِيْدًا قَالَ فَمَسَحَهٗ بِيَدِهٖ فَاسْتَقَامَ قَالَ لَوْ شِئْتَ لَا تَّخَذْتَ عَلَيْهِ أَجْرًا قَالَ سَعِيْدٌ أَجْرًا نَّأْكُلُهٗ.

۸۱۸: ابراهيم بن موسٰي. هشام بن يوسف. ابن جريج. يعلي بن مسلم و عمرو بن دينار' دَ يو بل نه څه زياتے سره روايت كوي دَ ابن جريج بيان دے' ددے دواړونه علاوه دَ نورو خلقو نه ئے هم روايت كول اوريدلے دي' ماته ابن عباسؓ او هغۀ ته ابي بن كعب بيان اوكۀ' ماته نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل' چه دواړه (حضرت موسٰيؑ او خضرؑ) روان شو' نو دواړو ديوال اوليد' چه غرځيدوته نزدے وو. سعيد اووے' چه خضرؑ دا شان خپل لاس سره اشاره اوكړه' او خپل دواړه لاسونه ئے اوچت كړل' نو ديوال نيغ شولو' يعلي اووے' خما خيال دے' سعيد اووے' چه خپل لاس ئے په ديوال راښكلو' نو هغه نيغ شولو. موسٰي عليه السلام ورته اووے' كه تاغوښتلے' نو په دے به دے اجر اخستلے وے. سعيد اووے كۀ اجر دے اخستے وے نو مونږ به خوړلے وے.

بَابُ ۵۲۷: الْإِجَارَةِ إِلَى نِصْفِ النَّهَارِ.

باب ۵۲۷: غرمے پورے دَ مزدور د لګولو بيان.

۸۱۹: حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا حَمَّادٌ عَنْ أَيُّوْبَ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ عَنِ

۸۱۹: سليمان بن حرب. حماد. ايوب. نافع. ابن عمرؓ نبي صلي اللّٰه عليه وسلم نه روايت كوي. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل ستاسو او دَ

النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَثَلُكُمْ وَ مَثَلُ اَهْلِ الْكِتَابَيْنِ كَمَثَلِ رَجُلٍ ن اسْتَاجَرَ اُجَرَآءَ فَقَالَ مَنْ يَّعْمَلُ لِيْ من غُدْوَةٍ اِلٰى نِصْفِ النَّهَارِ عَلٰى قِيْرَاطٍ فَعَمِلَتِ الْيَهُوْدُ ثُمَّ قَالَ مَنْ يَّعْمَلُ لِيْ مِنْ نِصْفِ النَّهَارِ اِلٰى صَلٰوةِ الْعَصْرِ عَلٰى قِيْرَاطٍ فَعَمِلَتِ النَّصَارٰى ثُمَّ قَالَ مَنْ يَّعْمَلُ لِيْ مِنَ الْعَصْرِ اِلٰى اَنْ تَغِيْبَ الشَّمْسُ عَلٰى قِيْرَاطَيْنِ فَاَنْتُمْ فَغَضِبَتِ الْيَهُوْدُ وَالنَّصَارٰى فَقَالُوْا مَالَنَا اَكْثَرُ عَمَلًا وَّ اَقَلُّ عَطَآءً قَالَ هَلْ نَقَصْتُكُمْ مِنْ حَقِّكُمْ قَالُوْا لَا قَالَ فَذٰلِكَ فَضْلِيْ اُوْتِيْهِ مَنْ اَشَآءُ.

دواړو اهل كتابو يهودو او نصاراؤ مثال ذ هغې سړي دے، چه هغهٔ څو مزدوران په كار اولګول، او ورته ئے اووے، څوک دے، چه ذ سحر نه تر غرمې پورے د، يو قيراط په عوض خما كار اوكړي، نو يهودو كار اوكهٔ. بيائے اووے، څوک دے، چه د، غرمې نه تر، مازيګره پورے د، يو قيراط په عوض خما كار اوكړي، نو نصاراؤ كار اوكهٔ. بيا هغهٔ اووے، څوک دے، چه ذ مازيګر نه نمر پريوتو پورے ذ دوه قيراطه په عوض خما كار اوكړي، دا تاسو خلق ئے، په دے يهودو او نصاراؤ له غصه ورغله. اووے وئيل، دا څه خبره ده. چه مونږ خلقو كار زيات اوكه، او مزدوري مو، كمه واخسته، نو هغې سړي ورته اووے، آيا ستاسو حق كښې ما څه كمے كړے دے، نو هغې خلقو ورته اووے، چه نه، نو هغه اووے، دا زما احسان دے چاله ئے چه وركول غواړم، هغوي له ئے وركوم.

باب٥٢٨: اَلْاِجَارَةِ اِلٰى صَلٰوةِ الْعَصْرِ.

باب٥٢٨: ذ مازيګر ذ مونځ ذ وخت پورے ذ مزدور لګولو بيان.

٨٢٠: حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ بْنُ اَبِيْ اُوَيْسٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ دِيْنَارٍ مَّوْلٰى عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ ؓ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِنَّمَا مَثَلُكُمْ وَالْيَهُوْدِ وَالنَّصَارٰى كَرَجُلٍ اسْتَعْمَلَ عُمَّالًا فَقَالَ مَنْ يَّعْمَلُ لِيْ اِلٰى نِصْفِ النَّهَارِ عَلٰى قِيْرَاطٍ قِيْرَاطٍ فَعَمِلَتِ

٨٢٠: اسمعيل بن ابي اويس. مالک. عبدالله بن دينار (ذ عبدالله بن عمر آزاد كرده غلام) عبدالله بن عمر ؓ بن خطاب نه روايت كوي، رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل، ستاسو او ذ يهودو او نصارٰي مثال ذ هغې سړي دے، چه هغهٔ څو مزدوران په كار اولګول، هغه اووے، خما كار به ذ، غرمې پورے ذ، يو، يو قيراط په عوض څوک اوكړي، نو يهودو په يو، يو قيراط كار اوكړلو. بيا نصاري ذ، يو يو قيراط په عوض (مازيګر پورے) كار اوكهٔ. بيا

الْيَهُودُ عَلٰى قِيْرَاطٍ قِيْرَاطٍ ثُمَّ عَمِلَتِ النَّصَارٰى عَلٰى قِيْرَاطٍ قِيْرَاطٍ ثُمَّ اَنْتُمُ الَّذِيْنَ تَعْمَلُوْنَ مِنْ صَلٰوةِ الْعَصْرِ اِلٰى مَغَارِبِ الشَّمْسِ عَلٰى قِيْرَاطَيْنِ قِيْرَاطَيْنِ فَغَضِبَتِ الْيَهُوْدُ وَالنَّصَارٰى وَقَالُوْا نَحْنُ اَكْثَرُ عَمَلًا وَّ اَقَلُّ عَطَآءً قَالَ هَلْ ظَلَمْتُكُمْ مِّنْ حَقِّكُمْ شَيْئًا قَالُوْا لَا فَقَالَ فَذَالِكَ فَضْلِيْ اُوْتِيْهِ مَنْ اَشَآءُ.

تاسو خلق ئے. چه هغوي د مازيگر نه نمر پريوتو پورے د' دوه دوه قيراطو په عوض كار او كه. په دے يهود او نصاري په غصه شو. او وے وئيل' چه مونږ د كار زيات كوو' او مزدوري دے كمه اخلو. نو هغے سړے ورته اووے' آيا ما ستاسو حق كښې څه كمے كړے دے. هغے خلقو ورته اووے' نه' نو هغه ورته اووے. دا خو خما احسان دے' چه چا سره ئے كول غواړم هغه سره ئے كوم.

## باب ۵۲۹: اِثْمِ مَنْ مَّنَعَ اَجْرَ الْاَجِيْرِ.

## باب ۵۲۹: د هغے سړي د گناه بيان' چه د مزدور' مزدوري ورنه كړي.

۸۲۱: حَدَّثَنَا يُوْسُفُ بْنُ مُحَمَّدٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ يَحْيٰى بْنُ سُلَيْمٍ عَنْ اِسْمٰعِيْلَ بْنِ اُمَيَّةَ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ اَبِيْ سَعِيْدٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ قَالَ اللّٰهُ تَعَالٰى ثَلٰثَةٌ اَنَا خَصْمُهُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ رَجُلٌ اَعْطٰى بِيْ ثُمَّ غَدَرَ وَ رَجُلٌ بَاعَ حُرًّا فَاَكَلَ ثَمَنَهُ وَ رَجُلٌ اسْتَاْجَرَ اَجِيْرًا فَاسْتَوْفٰى مِنْهُ وَلَمْ يُعْطِهٖ اَجْرَهٗ.

۸۲۱: يوسف بن محمد. يحيٰي بن سليم. اسمٰعيل بن اُميّه. سعيد بن ابي سعيد. ابوهريرةؓ نبي صلي اللّه عليه وسلّم نه روايت كوي. حضور صلي اللّه عليه وسلّم اوفرمائيل' اللّه تعالٰي فرمائي' درے سړي دي' چه زه به د قيامت په ورځ د هغوي دشمن يم يو هغه سړے' چه هغهٔ خما واسطه وركړه' عهد ئے او كړ. بيائے بے وفائي اوكړه' دوئم هغه سړے' چه هغهٔ يو آزاد خرڅ كړلو. او د هغه قيمت ئے اوخوړلو. دريم هغه سړے چه هغه يو مزدور په كار اولږولو. د هغهٔ نه ئے كار پوره واخستو' او د هغهٔ مزدوري ئے ورنه كړله.

## باب ۵۳۰: الْاِجَارَةُ مِنَ الْعَصْرِ اِلَى اللَّيْلِ.

## باب ۵۳۰: مازيگر نه د شپے پورے د مزدور لږولو بيان.

۸۲۲: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَآءِ حَدَّثَنَا اَبُوْ اُسَامَةَ عَنْ بُرَيْدٍ عَنْ اَبِيْ بُرْدَةَ عَنْ اَبِيْ مُوْسٰى عَنِ النَّبِيِّ

۸۲۲: محمد بن علاء. ابو اسامه. بريد. ابوبرده. ابو موسٰي. نبي صلي اللّه عليه وسلّم نه روايت كوي. حضور صلي اللّه عليه وسلم اوفرمائيل. د

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَثَلُ الْمُسْلِمِيْنَ وَالْيَهُوْدِ وَالنَّصَارٰى كَمَثَلِ رَجُلٍ اسْتَاجَرَ قَوْمًا يَعْمَلُوْنَ لَهُ عَمَلًا يَوْمًا اِلَى اللَّيْلِ عَلٰى اَجْرٍ مَّعْلُوْمٍ فَعَمِلُوْا لَهُ اِلٰى نِصْفِ النَّهَارِ فَقَالُوْا لَا حَاجَةَ لَنَا اِلٰى اَجْرِكَ الَّذِىْ شَرَطْتَّ لَنَا وَمَا عَمِلْنَا بَاطِلٌ فَقَالَ لَهُمْ لَا تَفْعَلُوْا اَكْمِلُوْا بَقِيَّةَ عَمَلِكُمْ وَ خُذُوْا اَجْرَكُمْ كَامِلًا فَاَبَوْا وَ تَرَكُوْا وَاسْتَاْجَرَ اَجِيْرَيْنِ بَعْدَهُمْ فَقَالَ لَهُمَا اَكْمِلَا بَقِيَّةَ يَوْمِكُمَا هٰذَا وَلَكُمَا الَّذِىْ شَرَطْتُّ لَهُمْ مِّنَ الْاَجْرِ فَعَمِلُوْا حَتّٰى اِذَا كَانَ حِيْنَ صَلٰوةِ الْعَصْرِ قَالَ لَكَ مَا عَمِلْنَا بَاطِلٌ وَلَكَ الْاَجْرُ الَّذِىْ جَعَلْتَ لَنَافِيْهِ فَقَالَ لَهُمَا اَكْمِلَاهُ بَقِيَّةَ عَمَلِكُمَا فَاِنَّ مَا بَقِيَ مِنَ النَّهَارِ شَيْءٌ يَّسِيْرٌ فَاَبَيَا وَاسْتَاجَرَ قَوْمًا اَنْ يَّعْمَلُوْا لَهُ بَقِيَّةَ يَوْمِهِمْ فَعَمِلُوْا بَقِيَّةَ يَوْمِهِمْ حَتّٰى غَابَتِ الشَّمْسُ وَاسْتَكْمَلُوْا اَجْرَ الْفَرِيْقَيْنِ كِلَيْهِمَا فَذٰلِكَ مَثَلُهُمْ وَ مَثَلُ مَا قَبِلُوْا مِنْ هٰذَا النُّوْرِ.

مسلمانانو، يهوديانو او نصاراؤ مثال ذ هغے سړي دے. چه هغهٔ څو سړي په كار اولږول، چه ذ سحر نه د شپے پورے به ذ، يو مقررے مزدورئ په عوض كار اوكړي. هغوي ذ غرمے پورے كار اوكۀ، نو وئيلے، مونږ ته ستا ذ اجرت ضرورت نشته، چه تا مونږ له مقرر كړأ و. كوم كار چه مونږه اوكۀ، هغه مو دغسے اوكۀ، هغه سړي ورته اووے، داسے مۀ كوئے. خپل كار پوره كړئے، او پوره مزدوري واخلئے، خو، هغوي انكار اوكۀ، او كارئے پريښودلو. هغوي نه پس هغۀ دوه نور مزدوران په كار اولږول. او هغوي ته ئے اووے، چه باقي ورځ كار پوره كړئے، او تاسو دواړو له به هغه مزدوري دركوم، چه ما هغے خلقو د پاره مقرر كړے وه. نو هغوي كار شروع كۀ، تردے چه ذ مازيگر ذ مونځ وخت راغے نو هغوي اووے، چه مونږ څه اوكړل، هغه مو دغسے اوكړل، ته خپله مزدوري خان سره اوساته، چه مونږ د پاره دے مقرر كړے وه. هغه ورته اووے، خپل كار پوره كړئے، څكه چه ورځ لږه پاتے ده. خو هغے دواړو انكار اوكۀ، نو هغۀ څه خلق به كار اولږول چه باقي ورځ ذ هغۀ كار پوره كړي، نو هغے خلقو باقي ورځ كښ كار پوره كۀ، تردے چه نمر پريوت. او ذ دواړو فريقو (وړومبے او دونم) اُجرت هغوي ته وركړے شو. دغه مثال ذدے خلقو دے، او ذ هغے نُورءا. چه دے خلقو قبول كۀ.

ا. دے مثال كښ دا بيان شويدے چه يهودو او نصاريٰ د اللّٰه تعالٰي د دين نه مخ اړولے دے او دے كښ دا پيشينگوئي شويده. چه د رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم امّت به د اللّٰه د دين كار په ښه طريقه پوره كوي. كار د اللّٰه تعالٰي دے. اول اللّٰه تعالٰي د يهودو نه كار واخست. هغوي په مينځ كښ د اللّٰه تعالٰي كار پريخودو. بيا اللّٰه تعالٰي عيسايان (نصاريٰ) په كار اولگول هغوي هم كار پريخود. آخر كښ اللّٰه تعالٰي د رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم اُمّت ته دا كار حواله كړو او اللّٰه تعالٰي او فرمايل چه دوي به دا كار سرته

بوي. رسول الله صلي الله علیه وسلّم هم په دے حدیث شریف کښې پیشینګوئي کړے ده چه دهٔ امت به الله تعالٰي د دین کار پوره پوره کوي. د اسلام مخالفین او موافق ټول دا مني چه شریعت محمدیٌ کښې هیڅ قسم تبدیلي نه ده راغلے. قرآن مجید چه په کوم حالت کښې نازل شوے وو هغه په هغه حالت کښې اوس هم دے او مسلمانان په هغے څه نه څه عمل کوي. او دا هم ټول مني چه د یهودو او نصاري کتابونه محفوظ نه دي څرنګ چه په رسولانو علیهم السلام نازل شوي وو. الله تعالٰي په دے امت خاص انعام کړے دے او د دوي حفاظت کوي.

بـاب ۱۵۳۱: مَـنِ اسْتَـاجَـرَ اَجِيْرًا فَتَـرَكَ اَجْـرَهٗ فَـعَـمِلَ فِيْـهِ الْـمُسْتَـاجِـرُ فَـزَادَ وَمَـنْ عَـمِـلَ فِـي مَـالِ غَيْـرِهٖ فَاسْتَفْضَلَ.

باب ۱۵۳۱: دَ هغے سړي بیان، چه یو مزدور په کار اولګوي او هغه خپله مزدوري پرېږدي لاړ شي، نو مزدور نیونکے هغے اجرت کښې محنت اوکړي، هغه زیات کړي، او دَ هغے سړي بیان، چه دَ نورو مال کښې محنت اوکړي، هغه زیات کړي.

۸۲۳: حَـدَّثَـنَـا اَبُـو الْيَمَـانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ حَدَّثَنِي سَالِمُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ اَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عُمَرَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ انْطَلَقَ ثَلٰثَةُ رَهْطٍ مِمَّنْ كَانَ قَبْلَكُمْ حَتّٰى اَوَ وُالْمَبِيْتَ اِلٰى غَارٍ فَدَخَلُوْهُ فَانْحَدَرَتْ صَـخْـرَةٌ مِّنَ الْجَبَلِ فَسَدَّتْ عَلَيْهِمُ الْغَارُ فَقَالُوْا اِنَّهٗ لَا يُنْجِيْكُمْ مِنْ هٰذِهِ الصَّخْرَةِ اِلَّا اَنْ تَدْعُوا اللّٰهَ بِصَالِحِ اَعْمَالِكُمْ فَقَالَ رَجُلٌ مِّنْهُمْ اَللّٰهُمَّ كَانَ لِي اَبَوَانِ شَيْخَانِ كَبِيْرَانِ وَ كُنْتُ لَا اَغْبِقُ قَبْلَهُمَا اَهْلًا وَّلَا مَالًا فَنَاٰى بِيْ فِيْ طَلَبِ شَيْءٍ يَّوْمًا فَلَمْ اُرِحْ عَلَيْهِمَا حَتّٰى نَامَا فَحَلَبْتُ لَهُمَا غَبُوْقَهُمَا فَوَجَدْتُّهُمَا نَائِمَيْنِ وَ كَرِهْتُ

۸۲۳: ابوالیمان. شعیب. زهري. سالم بن عبدالله بیان کوي، چه عبدالله بن عمرؓ اووے، ما رسول الله صلي الله علیه وسلّم نه اوریدلي دي، چه تاسو نه مخکښې اُمت کښې درے سړي (په لاره) تلل، تردے چه دَ شپے پناه اخستو د پاره یو غار کښې داخل شو. دَ غر نه یو ګټ راپریوت، هغے سره دَ، غار خلهٔ بنده شوه. هغے سړو خپلو کښې وئیل شروع کړل، چه تاسو، دَ دے ګټ نه خلاصي نه شے بیاموندے، بغیر دَ دے صورت نه، چه دَ الله نه دَ خپل بهترین عمل په ذریعه دعا اوغواړئے، نو هغوي کښې یو سړي اووے. اے خُدا الله، خما مور پلار ډیر بوډاګان وو. او ما به دَ هغوي نه مخکښې په هیڅا پنے نه څکول، نه ښځے بچوته، نه وینزے غلامانوته. یوه ورځ دَ یو څیز په تلاش کښې زهٔ ډیر لرے اووتلم، نو زه هغوي (مور پلار) ته هغه وخت واپس شوم، چه دواړه اُوده شوي وو. ما دَ هغے دواړو د پاره پئے اُولوشل، خو هغوي مِ اُوده بیامندل، او، ما دا خبره نه خوښوله، چه دَ

اَنْ اَغْبِقَ قَبْلَهُمَا اَهْلًا اَوْ مَالًا فَلَبِثْتُ
وَالْقَدَحُ عَلٰى يَدَيَّ اَنْتَظِرُ
اِسْتِيْقَاظَهُمَا حَتّٰى بَرَقَ الْفَجْرُ
فَاسْتَيْقَظَا فَشَرِبَا غَبُوْقَهُمَا اَللّٰهُمَّ اِنْ
كُنْتُ فَعَلْتُ ذَالِكَ ابْتِغَاءَ وَجْهِكَ
فَفَرِّجْ عَنَّا مَا نَحْنُ فِيْهِ مِنْ هٰذِهِ
الصَّخْرَةِ فَانْفَرَجَتْ شَيْئًا لَّا يَسْتَطِيْعُوْنَ
الْخُرُوْجَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ
وَسَلَّمَ وَ قَالَ الْاٰخِرُ اَللّٰهُمَّ كَانَتْ لِيْ
بِنْتُ عَمٍّ كَانَتْ اَحَبَّ النَّاسِ اِلَيَّ
فَاَرَدْتُّهَا عَنْ نَّفْسِهَا فَامْتَنَعَتْ مِنِّيْ
حَتّٰى اَلَمَّتْ بِهَا سَنَةٌ مِّنَ السِّنِيْنَ
فَجَاءَتْنِيْ فَاَعْطَيْتُهَا عِشْرِيْنَ وَمِائَةَ
دِيْنَارٍ عَلٰى اَنْ تُخَلِّيَ بَيْنِيْ وَ بَيْنَ
نَفْسِهَا فَفَعَلَتْ حَتّٰى اِذَا قَدَرْتُ عَلَيْهَا
قَالَتْ لَا اُحِلُّ لَكَ اَنْ تَفُضَّ الْخَاتَمَ اِلَّا
بِحَقِّهٖ فَتَحَرَّجْتُ من الْوُقُوْعِ عَلَيْهَا
فَانْصَرَفْتُ عَنْهَا وَهِيَ اَحَبُّ النَّاسِ اِلَيَّ
وَ تَرَكْتُ الذَّهَبَ الَّذِيْ اَعْطَيْتُهَا اَللّٰهُمَّ
اِنْ كُنْتُ فَعَلْتُ ذَالِكَ ابْتِغَاءَ وَجْهِكَ
فَافْرُجْ عَنَّا مَا نَحْنُ فِيْهِ فَانْفَرَجَتِ
الصَّخْرَةُ غَيْرَ اَنَّهُمْ لَا يَسْتَطِيْعُوْنَ
الْخُرُوْجَ مِنْهَا قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى
اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ قَالَ
الثَّالِثُ اَللّٰهُمَّ اِنِّيْ اسْتَاْجَرْتُ
اُجَرَاءَ فَاَعْطَيْتُهُمْ اَجْرَهُمْ غَيْرَ

هغوي نه مخکښې خپلې ښځې، بچو يا وينزو غلامانو باندے پئے اوڅکوم، نو زۀ ايسار ووم، او پيالۍ خما لاس کښې وه، ما د هغوي د ويښيدلو انتظار اوکړو تردے چه صبا شو، نو هغوي بيدار شو، او پئے ئے اوڅکل، اے خما الله، کۀ ما دا کار صرف ستا د رضا په خاطر کړے وي، نو مونږ نه دا مصيبت بيرته کړے، چه هغے کښې د دے کټ په سبب ګرفتار، يو نو هغه کټ څه قدرے بيرته شو. خو، هغوي بهر نه شو وتلے. نبي صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل، او دوئم اووے. اے خما الله، خما د تره (چچا) يوه لور وه. هغه ماته د ټولو خلقو نه زياته محبوبه وه. ما د هغے نه د خراب کار تقاضا اوکړه، خو هغه راضي نه شوه، تردے چه يو کال ورته سخت ضرورت شو، نو هغه ماله راغله. ما هغې له شپږ شلے ديناره ورکړل، په دے شرط، چه هغه به خما او د خپل ځان په مينځ کښې حائله کيږي نه (يعني هم بستري به راسره کوي) هغه راضي شوه، تردے چه زۀ په هغے قادر شوم، نو هغے اووے، زۀ تاله ددے اجازت نه درکوم، چه ته مهر ناحق مات کړے، ما هغے سره هم بستري کول ګناه اوګنړله. او د هغے نه جدا شوم، حالانکه ماته هغه د ټول جهان نه ګرانه وه. او ما هغه سرۀ زر (سونا) هم پريښودل، چه هغے له م ورکړے وه، نو اے خما معبوده، کۀ دا ما صرف ستا د رضا د پاره کړے وي، نو مونږ نه دا مصيبت لرے کړے، چه هغه کښې مونږ راګير يو، نو هغه کټ څه قدرے نور بيرته شو. خو مونږ ترے بهر نه شو وتلے. نبي صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل، او دريم سړي اووے، اے خما الله، ما څو مزدوران په کار لږولي

رَجُلٍ وَاحِدٍ تَـرَكَ الَّـذِیْ لَـهُ وَ ذَهَبَ فَثَمَّرْتُ اَجْرَهُ حَتّٰی كَثُرَتْ مِنْـهُ الْاَمْـوَالُ فَـجَـآءَ نِی بَعْدَ حِیْنٍ فَقَـالَ یَـا عَبْـدَ اللّٰـهِ اَدِّ اِلَیَّ اَجْرِیْ فَقُلْتُ لَـهُ كُـلُّ مَـا تَرٰی مِنْ اَجْرِكَ مِنَ الْاِبِـلِ وَالْبَـقَـرِ وَالْغَنَمِ وَالرَّقِیْقِ فَـقَـالَ یَـا عَبْـدَ اللّٰـهِ لَا تَسْتَهْـزِیْٔ بِیْ فَـقُـلْـتُ اِنِّـی لَا اَسْتَهْـزِیُٔ بِكَ فَاَخَذَهُ كُلَّـهُ فَـاسْتَـاقَهُ فَلَمْ یَتْرُكْ مِنْـهُ شَیْـئًـا اَللّٰهُمَّ فَاِنْ كُنْتُ فَعَلْتُ ذٰلِكَ ابْتِـغَـآءَ وَجْهِكَ فَـافْرُجْ عَنَّـا مَـا نَحْنُ فِیْهِ فَانْفَرَجَتِ الصَّخْرَةُ فَخَرَجُوْا یَمْشُوْنَ.

وو. مـا هـغـوي لـه مـزدوري ور كـره، خـو يو سړي خپله مزدوري پريښودہ، لاړ. ما د هغه مزدوري زياتول شروع كړل. تردے چه د هغے نه م ډير زيات مال حاصل كۀ، څه مـوده پـس هغه سړے ماله راغے، او وئيلے، اے د خدائے بـنـده، مـاله هغه خپله مزدوري راكړه. ما ورته اووے، دا اوښـان، غـواكانے، چيلئ او غلامان څه چه ته وينے، دا هر څـه ستـا دي. هـغـه اووے. اے د خـدائے بنده، ته ماسره ټـوقے مه كوه. ما ورته اووے. زۀ تاسره ټوقے نه كوم، نو هـغـه، هـغـه ټـول څيزونه واخستل او، لاړ. هغے كښې ئے هيڅ پرے نه ښودل. نو، اے خدا اللّٰه، كۀ ما دا كار صرف ستـا د رضـا د پـاره كړے وي، نو مونږ نه دا مصيبت لرے كـړے، چـه هـغـے كښې مونږ كيوتے يو، نو هغه كټ لرے شو. او هغه سړي بهر راووتل، روان شول.

باب ۵۳۲ : مَـنْ اٰجَـرَا نَفْسَهُ لِيَحْـمِـلَ عَلٰى ظَهْرِهٖ ثُمَّ تَصَدَّقَ بِهٖ وَ اُجْرَةِ الْحَمَّالِ.

باب ۵۳۲ : د هـغـے سړي بيان، چه خپل ځان به دے كـار اولګوي، چه په شا، پيټي يوسي، بيا هغه خيرات كړي. او د حمال (بوج اوچتونكي) د اُجرت بيان.

۸۲۴ : حَدَّثَنَا سَعِیْدُ بْنُ یَحْیٰی بْنِ سَعِیْدٍ حَدَّثَنَا الْاَعْمَشُ عَنْ شَقِیْقٍ عَنْ اَبِـیْ مَسْعُوْدٍ الْاَنْصَارِیِّ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ اِذَا اَمَـرَنَـا بِالصَّدَقَةِ انْطَلَقَ اَحَدُنَا اِلَى السُّوْقِ فَیُحَـامِـلُ فَیُصِیْبُ الْمُدَّ وَ اِنَّ لِبَعْضِهِـمْ لَـمِـائَةَ اَلْفٍ قَالَ مَا نَرَاهُ اِلَّا نَفْسَهُ.

۸۲۴ : سعيد بن يحيٰي بن سعيد. يحيٰي بن سعيد. اعـمـش. شـقـيـق. ابـو مسعود انصاري روايت كوي، چه رسـول الـلّٰـه صـلـي الـلّٰـه عليه وسلّم به مونږ ته د صدقے حـكـم راكو، نو مونږ كښې به څوك سرے بازار ته لاړلو، بـوج بـه ئے اوچتولو، او يو مُد غله به ئے حاصله كړه (بيا بـه ئے هـغـه خيـرات كـړه) نن هغوي كښې بعضو سره به لكهونو روپے موجود دي. د شقيق بيان دے، چه خما په خيال هغه (ابو مسعود) خپل ځان مراد اخستے دے.

باب ۵۳۳ : اَجْرِ السَّمْسَرَةِ وَلَمْ یَرَابْنُ سِیْرِیْـنَ وَ عَـطَـآءٌ وَ اِبْرَاهِیْمُ

باب ۵۳۳ : د دلالي د اجرت بيـان لے. او ابن سيـريـن. عطاء. ابراهيم او حسن د دلالي به اجرت كښې

وَالْحَسَنُ بِاَجْرِ السِّمْسَارِ بَأْسًا وَّ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ لَا بَأْسَ اَنْ يَّقُوْلَ بِعْ هٰذَا الثَّوْبَ فَمَا زَادَ عَلٰى كَذَا وَ كَذَا فَهُوَ لَكَ وَ قَالَ ابْنُ سِيْرِيْنَ اِذَا قَالَ بِعْهُ بِكَذَا فَمَا كَانَ مِنْ رِبْحٍ فَهُوَ لَكَ اَوْ بَيْنِيْ وَ بَيْنَكَ فَلَا بَاسَ بِهٖ وَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلْمُسْلِمُوْنَ عِنْدَ شُرُوْطِهِمْ.

هيڅ بَدِيَت نه دے گنړلے. او ابن عباسؓ اووے: كه يو سړے اووائي، چه ته دا كپړے خرڅے كړه، او دومره رقم نه زيات ستا شو. نو دے كښې هيڅ حرج نشته. او ابن سيرين اووے، هر كله چه چا اووے، چه ته په دومره رقم په عوض دا خرڅ كړه، او څومره نفع چه اوشي، هغه څما او ستا مينځ كښې نيم په نيمه ده يا، ستا، ده، نو هيڅ حرج نشته. او نبي صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل مسلمانان به په خپل شرطونو قائم وي.

۱. د خرڅولو، اخستلو د پاره څوک دلال د ځان د پاره جوړول روا دي كه دلال د خرڅونكي د طرفنه وي. او كه دلال د خريدار د طرفه وي ليكن د دلال اُجرت معلومول، مقرره ول ضروري دي. امام بخاري رحمة الله عليه چه د عبدالله ابن عباس رضي الله عنهما قول نقل كړے دے په دے عمل نشي كيدے. ځكه چه په دغه روايت كښې د اصل قيمت مقررتيا شته او د دلال د اجرت ذكر پكښې نشته. كه چرے قيمت، او د دلال اجرت معلوم شي. نو بيا پكښې گناه نشته. د رسول الله صلي الله عليه وسلّم د حكم مطلب دا دے چه هغه ټول شرطونه پوره كول ضروري دي كوم چه د شريعت د اصولو مخالف نه وي او شريعت ئے برداشت كولے شي.

۸۲۵: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ حَدَّثَنَا مَعْمَرٌ عَنِ ابْنِ طَاوُسٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ نَهٰى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنْ يَّتَلَقَّى الرُّكْبَانُ وَلَا يَبِيْعُ حَاضِرٌ لِبَادٍ قُلْتُ يَا ابْنَ عَبَّاسٍ مَا قَوْلُهٗ لَا يَبِيْعُ حَاضِرٌ لِبَادٍ قَالَ لَا يَكُوْنُ لَهٗ سِمْسَارًا.

۸۲۵: مسدد. عبدالواحد. معمر. ابن طاؤس. طاؤس. ابن عباسؓ نه روايت كوي، رسول الله صلي الله عليه وسلّم ذ دے نه منع فرمائيلے ده، چه مخكښې لاړ شي، ذ قافلے والو سره يوځائے شي. او شهري دے ذ، يو ديهاتي د پاره بيع نه كوي. ما تپوس اوكۀ. اے ابن عباسؓ. شهري دے ديهاتي د پاره بيع نه كوي. ذ دے ارشاد څه مطلب دے. نو هغه اووے. يعني دلال دے نه جوړيږي.

## باب ۵۳۴: هَلْ يُؤَاجِرُ الرَّجُلُ نَفْسَهٗ مِنْ مُّشْرِكٍ فِيْ اَرْضِ الْحَرْبِ.

## باب ۵۳۴: آيا دارالحرب كښې د، يو مشرك مزدوري څوک مسلمان سړے كولے شي.

۸۲۶: حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصٍ حَدَّثَنَا اَبِيْ حَدَّثَنَا الْاَعْمَشُ

۸۲۶: عمرو بن حفص. اعمش. مسلم. مسروق. خباب وائي. چه زۀ يو لوهار ووم، ما ذ، عاص

عَنْ مُسْلِمٍ عَنْ مَسْرُوْقٍ حَدَّثَنَا خَبَّابٌ قَالَ كُنْتُ رَجُلًا قَيْنًا فَعَمِلْتُ لِلْعَاصِ بْنِ وَآئِلٍ فَاجْتَمَعَ لِيْ عِنْدَهُ فَاَتَيْتُهُ اَتَقَاضَاهُ فَقَالَ وَاللّٰهِ لَا اَقْضِيْكَ حَتّٰى تَكْفُرَ بِمُحَمَّدٍ فَقُلْتُ اَمَا وَاللّٰهِ حَتّٰى تَمُوْتَ ثُمَّ تُبْعَثُ فَلَا قَالَ وَ اِنِّي لَمَيِّتٌ ثُمَّ مَبْعُوْثٌ قُلْتُ نَعَمْ قَالَ فَاِنَّهُ سَيَكُوْنُ لِيْ ثَمَّ مَالٌ وَّ وَلَدٌ فَاَقْضِيْكَ فَاَنْزَلَ اللّٰهُ تَعَالٰى اَفَرأَيْتَ الَّذِيْ كَفَرَ بِاٰيٰتِنَا وَ قَالَ لَاُوْتَيَنَّ مَالًا وَّ وَلَدًا.

بن وائل كار اوكهٔ' نو خما مزدوري هغهٔ سره جمع شوه. ما د هغهٔ نه تقاضا اوكړله' نو هغه اووے. په خدائے چه زهٔ ئے تاله درنه كړم' څو پورے چه ته د محمد (صلعم) نه انكار اونه كړے ما جواب وركهٔ' قسم په خدائے' زهٔ به داسے اونه كړم' تردے چه ته مړشے' بيا پورته كړے شي هغه اووے' آيا زهٔ به د مرګ نه پس بيا راپورته كولے شم' ما ورته اووے' او' هغه اووے' هغه وخت به ماسره مال او اولاد وي. زهٔ به ستا قرضه ادا كړم' نو دا آيت نازل شولو. اے پيغمبره' آيا تا هغه اوليد' چه هغه خما د نښو نښانو نه انكار اوكهٔ' اووے ونيل چه ماله به مال و اولاد راكړے شي.

## بَابٌ ٥٣٥: مَا يُعْطٰى فِي الرُّقْيَةِ عَلٰى اَحْيَآءِ الْعَرَبِ بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ

وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَحَقُّ مَآ اَخَذْتُمْ عَلَيْهِ اَجْرًا كِتَابُ اللّٰهِ وَ قَالَ الشَّعْبِيُّ لَا يَشْتَرِطُ الْمُعَلِّمُ اِلَّا اَنْ يُعْطٰى شَيْئًا فَلْيَقْبَلْهُ وَ قَالَ الْحَكَمُ لَمْ اَسْمَعْ اَحَدًا كَرِهَ اَجْرَ الْمُعَلِّمِ وَ اَعْطَى الْحَسَنُ دَرَاهِمَ عَشَرَةً وَّلَمْ يَرَا بْنُ سِيْرِيْنَ بِاَجْرِ الْقَسَّامِ بَاْسًا وَ قَالَ كَانَ يُقَالُ السُّحْتُ الرِّشْوَةُ فِي الْحُكْمِ وَ كَانُوْا يُعْطُوْنَ عَلَى الْخَرْصِ.

باب ٥٣٥: عربو قبائلو ته د سورة فاتحے د چف كولو په عوض كښې د' اُجرت وركولو بيان. او ابن عباسؓ د نبي صلي الله عليه وسلم نه نقل كوي' حضور صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل. د ټولو نه زيات د' اُجرت اخستو لائق د خدائے كتاب دے. او شعبه اووے' چه معلّم دے څهٔ شرط نه اږدي. خو كهٔ څه څيز هغه له وركړے شي' نو هغه دے قبول كړي. او حكم اووے' ما د هيچا نه' نهٔ دي اوريدلي' چه د معلّم اُجرت ئے مكروه ګنړلے دے. او حسن لس درهمه وركړل' او ابن سيرين د تقسيم كونكي په اجرت كښې څه حرج نه دے ګنړلے' اووئيلے' چه سُحت' فيصله كښې رشوت اخستونكي ته وئيلے شي. او خلقوبه اندازه كولو كښې اُجرت وركولو[1].

[1] امام بخاري رحمة الله عليه ډيرے مسئلے دلته يوځائے كړيدي يوه دا ده چه د دم درود يا د تعويز اُجرت اخستل' كه دا د شريعت په حدونو كښې دننه وي. نو ددے اجرت جائز او حلال دے څكه چه پدے

كښې د هيڅ قسم عبادت تصوّر نشته دويمه مسئله داده. د قرآن مجيد د تعليم، اذان يا د اقامت اُجرت، نو دے مسئله کښې قاضي خان ليکلے دي. چه پخوا زمانه کښې د دے کارونو د پاره د بيت المال نه تنخواه او وظيفے ورکيدے شوے ددے وجے نه عالمان په آرام وو او څه د معاش پريشانئ ئے نه وے. په دے وجه عالمانو ته په هغه وخت کښې د خلقو نه د دے کارونو اُجرت اخستل منعه وو ځکه چه بيت المال نه ورته مالي مدت ورکولے شو. اوس بيت المال يا سرکاري خزانه عالمانوته څه نه ورکوي. ذمه واري په عوامو راغلے ده چه هغوي دے پخپله د قرآن و حديث تعليم ورکونکو امامانو او اذان کونکو ته مالي مدت ورکوي. دواړه مسئلے جُدا جُدا قسمونه دي.

٨٢٧: حَدَّثَنَا أَبُو النُّعْمَانِ حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ عَنْ أَبِيْ بِشْرٍ عَنْ أَبِي الْمُتَوَكِّلِ عَنْ أَبِيْ سَعِيْدٍ قَالَ انْطَلَقَ نَفَرٌ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ سَفْرَةٍ سَافَرُوْهَا حَتّٰى نَزَلُوْا عَلٰى حَيٍّ مِّنْ أَحْيَاءِ الْعَرَبِ فَاسْتَضَافُوْهُمْ فَأَبَوْا أَنْ يُّضَيِّفُوْهُمْ فَلُدِغَ سَيِّدُ ذَالِكَ الْحَيِّ فَسَعَوْا لَهٗ بِكُلِّ شَيْءٍ لَّا يَنْفَعُهٗ شَيْءٌ فَقَالَ بَعْضُهُمْ لَوْ أَتَيْتُمْ هٰؤُلَاءِ الرَّهْطِ الَّذِيْنَ نَزَلُوْا لَعَلَّهٗ أَنْ يَّكُوْنَ عِنْدَ بَعْضِهِمْ شَيْءٌ فَأَتَوْهُمْ فَقَالُوْا يَاأَيُّهَا الرَّهْطُ إِنَّ سَيِّدَنَا لُدِغَ وَسَعَيْنَا لَهٗ بِكُلِّ شَيْءٍ لَّا يَنْفَعُهٗ فَهَلْ عِنْدَ أَحَدٍ مِّنْكُمْ مِّنْ شَيْءٍ فَقَالَ بَعْضُهُمْ نَعَمْ وَاللّٰهِ إِنِّيْ لَأَرْقِيْ وَلٰكِنْ وَاللّٰهِ لَقَدْ اسْتَضَفْنَاكُمْ فَلَمْ تُضَيِّفُوْنَا فَمَا أَنَا بِرَاقٍ لَّكُمْ حَتّٰى تَجْعَلُوْا لَنَا جُعْلًا فَصَالَحُوْهُمْ عَلٰى قَطِيْعٍ مِّنَ الْغَنَمِ

٨٢٧: ابوالنعمان. ابو عوانه. ابوبشر. ابوالمتوکل. ابوسعيد نه روايت دے، چه د نبي صلي الله عليه وسلم ذ صحابهؓ ؤ يو جماعت سفر د پاره روان شولو، تردے چه ذ عربو يو قبيلے ته اورسيدل او ذ هغے خلقو نه ئے ميلمستيا او غوښته، خو هغوي ذ ميلمستيا ورکولونه انکار اوکړ. ذ هغے قبيلے يو سردار لړم اوخوړلو. خلقو هر قسم کوشش اوکړ، خو څۀ فائده ورته اونه شوه، نو هغوي کښې بعضو اووے، که تاسو دغے خلقو له ورغلے وے، چه راکوز شوي دي، نو شايد چه هغوي سره څه (دم درود) وي، نو هغه خلق راغلل، او هغوي ته ئے اووے اے خلقو، خمونږ سردار لړم چيچلے دے. او مونږ هر قسم تدبيرونه اوکړل، ليکن څۀ فائده ئے اونه شوه. آيا تاسو کښې چاته څۀ تدبير معلوم دے. هغوي کښې بعضے اووے، او، په خدائے چه زۀ دم چف کوم. خو مونږ تاسونه ميلمستيا اوغوښته او تاسو خمونږ ميلمستيا اونه کړه، نو، قسم په خدائے زه به دم ذرهه اونه کړم، څو پورے چه مونږ د پاره د هغے معاوضه مقرر نه کړے. نو هغوي د چيلو يوه رمه (ريوړ) باندے جوړه اوکړه (يعني اجرت ئے مقرر کۀ) نو يو صحابيؓ ورغے، او سورة فاتحه ئے پرے چُف کړله. (نو سمدستي ښۀ شولو)

فَانْطَلَقَ يَتْفُلُ عَلَيْهِ وَ يَقْرَأُ الْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ فَكَاَنَّمَا نُشِطَ مِنْ عِقَالٍ فَانْطَلَقَ يَمْشِي وَمَا بِهٖ قَلَبَةٌ قَالَ فَاَوْفُوْهُمْ جُعْلَهُمُ الَّذِيْ صَالَحُوْهُمْ عَلَيْهِ فَقَالَ بَعْضُهُمْ اَقْسِمُوْا فَقَالَ الَّذِيْ رَقٰى لَا تَفْعَلُوْا حَتّٰى نَاْتِيَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَنَذْكُرَ لَهُ الَّذِيْ كَانَ فَنَنْظُرَ مَا يَاْمُرُنَا فَقَدِمُوْا عَلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَكَرُوْا لَهُ فَقَالَ وَمَا يُدْرِيْكَ اَنَّهَا رُقْيَةٌ ثُمَّ قَالَ قَدْ اَصَبْتُمْ فَقَالَ وَمَا يُدْرِيْكَ اَنَّهَا رُقْيَةٌ ثُمَّ قَالَ قَدْ اَصَبْتُمْ اَقْسِمُوْا وَ اضْرِبُوْا لِيْ مَعَكُمْ سَهْمًا فَضَحِكَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ قَالَ شُعْبَةُ حَدَّثَنَا اَبُوْ بِشْرٍ سَمِعْتُ اَبَا الْمُتَوَكِّلِ بِهٰذَا.

گویا چه یو څناور د' رسئ نه پرانستے شوے وي' او هغه دغسے روان شولو' چه کښې هډو څۀ تکلیف ورته نه وو. هغه اووے' دوي له هغه معاوضه ورکړے' چه تاسو ورسره پرے جوړه کړے ده. هغوي کښې بعضو اووے' دا چیلئ تقسیم کړئ' چا چه دم چُف کړے دے. هغوي اووے داسے مۀ کوئ' خو پورے چه نبي صلي الله علیه وسلّم ته اونه رسي. او حضور صلي الله علیه وسلّم ته دا واقعه بیان کړئ' کومه چه تیره شوے ده. بیا گورو' چه حضور صلي الله علیه وسلّم څه حکم کوي. هغه خلق حضور صلي الله علیه وسلم له راغلل' او حضور صلي الله علیه وسلّم ته ئے واقعه بیان کړه' نو حضور صلي الله علیه وسلّم ورته اوفرمائیل' تاته څنګه معلومه شوه' چه سورة فاتحه یو منتر (دَم) دے. بیائے اوفرمائیل' تا ټیک کار او کۀ. تاسو تقسیم کړئ' او دے کښې یوه حصه خما هم اولږوئے. او دے خبرے سره حضور اوخاندل' او شعبه اووے' ماته ابوبشر بیان او کۀ' ما د ابوالمتوکل نه دا حدیث آوریدلے دے.

۱. پخوا زمانه کښې په عربستان کښې هوټلونه نه وو کوم ځائے کښې د اوسیدلو او د خوراک څښاک' د چا د میلمه کیدو نه بغیر څه انتظام نه وو ددے وجے نه' صحابة کرامو رضي الله عنهم هغے د قبیلے خلقوته اوویل چه تاسو مونږ میلمانه کړئ ددے وجے نه' رسول الله صلي الله علیه وسلّم د نااشنا خلقو د میلمه کولو تاکید کړیدے. د میلمستیا په اسلام کښې ډیر فضیلتونه او اجرونه بیان شویدي.

۱. په همدے بخاري شریف کښې داسے ډیر واقعات ذکر دي چه کله صحابة کرامو رضي الله عنهم ته په کومو مسئله کښې تردد راغے نو پاک حضرت صلي الله علیه وسلّم به په پوره توګه د هغوئ شبهات لرے کولو د پاره او د هغوئ زړه ساتلو د پاره به ئے اوفرمائیل چه په دے کښې خما حصه هم او کړئ. اوس اوس د ابو قتاده رضي الله عنه د ښکار قصه تیره شوے ده کومه چه بالکل د همدے نوعیت ده.

## بَابُ ۵۳۶: ضَرِيْبَةِ الْعَبْدِ

## باب ۵۳۶: غلام او وینزو نه ذَ یو مقررَه رقم

وَتَعَاهُدِ ضَرَآئِبِ الْإِمَآءِ.

اخستو بیان۱.

۱. مالک چه د خپل غلام یا وینځې نه کوم ټیکس اخلي چه روزانه یا ماهانه یا هفته وار به ته ماله دومره رقم راکوې، د دې د پاره په حدیث کښې د خراج غله، اجر او ضریبة لفظ استعمال شوې دې. دلته کښې همدغه مراد دې.

۸۲۸: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوسُفَ حَدَّثَنَا سُفْيٰنُ عَنْ حُمَيْدِ الطَّوِيْلِ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ حَجَمَ اَبُوْ طَيْبَةَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَمَرَ لَهٗ بِصَاعٍ اَوْ صَاعَيْنِ مِنْ طَعَامٍ وَّكَلَّمَ مَوَالِيَهٗ فَخَفَّفَ عَنْ غَلَّتِهٖ اَوْ ضَرِيْبَتِهٖ.

۸۲۸: محمد بن يوسف. سفيان. حمد طويل. انس بن مالک نه روايت کوي، ذ هغهٔ بيان دې، چه ابوطيبه، نبي صلي الله عليه وسلم ته ښکر اولږولو، نو حضور صلي الله عليه وسلم هغه ته ذ، يو يا دوه صاع غله ورکولو حکم اوکهٔ، او ذ هغې مالکانو سره ئې خبرې اترې اوکړې، نو ذ هغهٔ په مقرره رقم (محصول) کښې کمې اوکړې شو.

ف: پچهنې يا ښکر لګول. يو ځائې پز، وهل اوچقول او پرې د پاسه ښکر لګول. پچهنا: هغه آله چه ذ ښکر لګولونه اول ذ، وجود يو ځائې په هغې پز، وهي يا اوچقوي. بيا په هغې ځائې ښکر اولګوي.

## بَاب ۵۳۷: خَرَاجِ الْحَجَّامِ.

## باب ۵۳۷: ذ ښکر لږونکي ذ اُجرت بيان.

۸۲۹: حَدَّثَنَا مُوْسٰى بْنُ اِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ حَدَّثَنَا ابْنُ طَاوُسَ عَنْ اَبِيْهِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ احْتَجَمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَعْطَى الْحَجَّامَ اَجْرَهٗ.

۸۲۹: موسٰي بن اسمٰعيل. وهيب. ابن طاؤس. ابن عباسؓ نه روايت کوي، ذ هغه بيان دې، چه نبي صلي الله عليه وسلم ښکر اولګولو، او ښکر لږونکي له ئې ذ هغې اجرت ورکهٔ.

۸۳۰: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَزِيْدُ بْنُ زُرَيْعٍ عَنْ خَالِدٍ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ احْتَجَمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَعْطَى الْحَجَّامَ اَجْرَهٗ وَلَوْ عَلِمَ كَرَاهِيَةً لَّمْ يُعْطِهٖ.

۸۳۰: مسدد. يزيد بن زريع. خالد. عکرمه. ابن عباس نه روايت کوي، هغه وائي، چه نبي صلي الله عليه وسلم ښکر اولږولو او ښکر لږونکي ته ئې ذ هغې اُجرت ورکهٔ، کهٔ دا، ئې مکروه ګنړلې، نو، نه به ئې ورکولې.

۸۳۱: حَدَّثَنَا اَبُو نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا

۸۳۱: ابو نعيم. مسعر. عمرو بن عامر

مِسْعَرٌ عَنْ عَمْرِو بْنِ عَامِرٍ قَالَ سَمِعْتُ اَنَسًا يَقُوْلُ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَحْتَجِمُ وَلَمْ يَكُنْ يَظْلِمُ اَحَدًا اَجْرَهُ.

نه روایت کوي، ما د انس نه واؤریدل. هغه وئیلے، چه نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم به ښکر لړولو. او دَ چا په مزدورئ کښ به ئے کمے نه کولو.

بَابٌ ۵۳۸: مَنْ كَلَّمَ مَوَالِي الْعَبْدِ اَنْ يُخَفِّفُوْا عَنْهُ مِنْ خَرَاجِهٖ.

باب ۵۳۸: دَ هغے سړي بیان چه هغه د غلام مالکانو ته سفارش اوکهٔ چه د هغه په محصول کښ کمے اوکړي.

۸۳۲: حَدَّثَنَا اٰدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ حُمَيْدِ الطَّوِيْلِ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ دَعَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غُلَامًا حَجَّامًا فَحَجَمَهٗ وَ اَمَرَ لَهٗ بِصَاعٍ اَوْ صَاعَيْنِ اَوْ مُدٍّ اَوْ مُدَّيْنِ وَ كَلَّمَ فِيْهِ فَخُفِّفَ مِنْ ضَرِيْبَتِهٖ.

۸۳۲: آدم. شعبه. حمید. طویل. انس بن مالک نه روایت کوي، دَ هغه بیان دے چه نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم یو ښکر لړونکے غلام رااوبلهٔ، چه هغه حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم ته ښکر اولړولو، او هغه ته ئے یو صاع یا دوه صاع یا یو مُد، یا دوه مُد غله ورکولو حکم اوکهٔ، او دَ هغهٔ متعلق ئے (دَ هغه مالکانو سره) خبرے اوکړے، نو دَ هغهٔ پهٔ محصول کښ کمے اوکړے شو.

بَابٌ ۵۳۹: كَسْبِ الْبَغِيِّ وَالْاِمَاءِ وَ كَرِهَ اِبْرَاهِيْمُ اَجْرَ النَّائِحَةِ وَالْمُغَنِّيَةِ وَ قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى لِتَبْتَغُوْا عَرَضَ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا وَمَنْ يُّكْرِهْهُّنَّ فَاِنَّ اللّٰهَ مِنْ بَعْدِ اِكْرَاهِهِنَّ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ فَتَيَاتِكُمْ اِمَاۤءِ كُمْ.

باب ۵۳۹: دَ زناکار او وینزے دَ گټے (کمائي) بیان. او ابراهیم دَ سیندے (نوحه) کونکے او سندرے ویونکے ښځے اُجرت مکروه ګڼړلے دے، او دَ اللّٰه تعالٰي قول، چه خپلے وینزے که هغوي دَ پاکدامني ژوند تیرول غواړي، نو په حرام کار ئے مهٔ مجبوروئ، د پاره ددے چه دَ دنیاوي ژوند سامان حاصل کړئے، او چا چه هغوي مجبورے کړے، نو اللّٰه تعالٰي دَ هغوي دَ مجبورولو نه پس ښښونکے مهربانه دے، فتیاتکم نه مراد، وینزے دي.

۸۳۳: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ عَنْ مَالِكٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ اَبِيْ بَكْرِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ الْحَارِثِ بْنِ

۸۳۳: قتیبه بن سعید. مالک. ابن شهاب. ابوبکر بن عبدالرحمٰن بن حارث بن هشام. حضرت ابومسعود انصاريؓ نه روایت

هِشَامٍ عَنْ اَبِیْ مَسْعُوْدِ الْاَنْصَارِیِّ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ نَهٰی عَنْ ثَمَنِ الْکَلْبِ وَ مَهْرِ الْبَغِیِّ وَ حُلْوَانِ الْکَاهِنِ.

کوي چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم ذَ سپي ذَ قیمت اخستونه او ذَ زنا کارۍ ذَ أجرت نه او ذَ کاهن ذَ أجرت نه منع فرمائیلې ده.

۸۳۴: حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ اِبْرَاهِیْمَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ جُحَادَةَ عَنْ اَبِیْ حَازِمٍ عَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ قَالَ نَهَی النَّبِیُّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ عَنْ کَسْبِ الْاِمَاءِ.

۸۳۴: مسلم بن ابراهیم. شعبه. محمد بن جحاده. ابو حازم. ابوهریرهؓ نه روایت کوي، ذَ هغهٔ بیان دې، چه نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم ذَ وینزو ذَ کمائي نه منع فرمائیلې ده.

بَابٌ ۵۴۰: عَسْبُ الْفَحْلِ.

باب ۵۴۰: دَ نر، دَ جفتي کولو، دَ أجرت بیان.

د ساندۀ ختلو یعني ذَ نر خاوري په مادې ذَ دنګلو او تیزولو په عوض اجرت اخستل.

۸۳۵: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ وَ اِسْمٰعِیْلُ بْنُ اِبْرَاهِیْمَ عَنْ عَلِیِّ بْنِ الْحَکَمِ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ نَهَی النَّبِیُّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ عَنْ عَسْبِ الْفَحْلِ.

۸۳۵: مسدد. عبدالوارث. و اسمٰعیل بن ابراهیم. علي بن حکم. نافع. حضرت ابن عمرؓ نه روایت کوي. ذَ هغهٔ بیان دې، چه نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم دَ نر، ذَ جفتي کولو ذَ أجرت نه منع فرمائیلې ده.

بَابٌ ۵۴۱: اِذَا اسْتَاْجَرَ اَرْضًا فَمَاتَ اَحَدُهُمَا وَ قَالَ ابْنُ سِیْرِیْنَ لَیْسَ لِاَهْلِهٖ اَنْ یُّخْرِجُوْهُ اِلٰی تَمَامِ الْاَجَلِ وَ قَالَ الْحَکَمُ وَالْحَسَنُ وَ اِیَاسُ بْنُ مُعَاوِیَةَ تُمْضِی الْاِجَارَةُ اِلٰی اَجَلِهَا وَ قَالَ ابْنُ عُمَرَ اَعْطَی النَّبِیُّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ خَیْبَرَ بِالشَّطْرِ فَکَانَ ذٰلِكَ عَلٰی عَهْدِ النَّبِیِّ صَلَّی اللّٰهُ

باب ۵۴۱: هر کله چه یو سړې زمکه په اجاره واخلي او هغوي کښې څوک سړې مړشي. ابن سیرین اووې، چه ذَ مقرره مودې ذَ ختمیدو نه مخکښې ذَ هغه کور والو ته اختیار نشته، چه هغه اوکاږي. او. حکم. حسن. او ایاس بن معاویه اووې چه اجاره به ذَ خپل مقرره مودې پورې جاري وي. او ابن عمرؓ اووې، چه نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم خیبر (یهودیانوته) په نیم پیداوار ورکړې وو. نو دا، اجاره ذَ نبي صلي اللّٰه علیه

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَبِيْ بَكْرٍ وَّ صَدْرًا مِّنْ خِلَافَةِ عُمَرَ وَلَمْ يُذْكَرْ اَنَّ اَبَا بَكْرٍ وَّ عُمَرَ جَدَّدَ الْاِجَارَةَ بَعْدَ مَا قُبِضَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

وسلّم او ابوبكرؓ او عمرؓ دَ، ابتدائي خلافت د زمانے پورے قائمه وه. او دا منقول نه دي چه حضرت ابوبكرؓ او عمرؓ دَ نبي صلي الله عليه وسلم دَ، وفات نه پس دَ اجارے تجديد كرے دے[۱].

۱. د احنافو په نزد عقد اجاره، په دواړو عقد كونكو كښ د يو كس په مرګ سره فسخ كيږي. د حضرت حسن وغيره رحمهم الله فتويٰ د احنافو مسلک نه خلاف ده. امام بخاريؒ د ابن عمر رضي الله عنه د حديث نه استدلال كړے دے چه د خيبر د زمكے معامله عقد اجاره وه. بعضو محدثينو د امام بخاري رحمة الله عليه په دے فيصلے باندے د حيرانتيا اظهار كړے دے. احناف وائي چه دا خو خراج مقاسمه وو. جزيه د اهل خيبر نه نۀ رسول الله صلي الله عليه وسلّم چرے اخستے ده او نه ابوبكر او عمر رضي الله عنهما. ظاهره ده چه هغویٔ د اسلام بدترين دشمنان وو، د جزيے د معافئ هلو سوال نشو پيدا كيدے. او د هغوئ نه به جزيه په همدے صورت كښ اخستے كيدله د كوم ذكر چه په حديث كښے دے. په دے كښے دَ څه تجديد هلو ضرورت نيشته، تر څو پورے چه سلطنت باقي دے دا به هم باقي وي.

۸۳۶: حَدَّثَنَا مُوْسَى ابْنُ اِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا جُوَيْرِيَةُ بْنُ اَسْمَآءَ عَنْ نَّافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ اَعْطَى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَيْبَرَ اَنْ يَّعْمَلُوْهَا وَ يَزْرَعُوْهَا وَلَهُمْ شَطْرُ مَا يَخْرُجُ مِنْهَا وَ اَنَّ ابْنَ عُمَرَ حَدَّثَهٗ اَنَّ الْمَزَارِعَ كَانَتْ تُكْرٰى عَلٰى شَيْءٍ سَمَّاهُ نَافِعٌ لَّا اَحْفَظُهٗ وَ اَنَّ رَافِعَ بْنَ خَدِيْجٍ حَدَّثَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهٰى عَنْ كِرَآءِ الْمَزَارِعِ وَ قَالَ عُبَيْدُ اللّٰهِ عَنْ نَّافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ حَتّٰى اَجْلَاهُمْ عُمَرُؓ.

۸۳۶: موسي بن اسمٰعيل. جويريه بن اسماء. نافع. عبدالله (بن عمر) نه روايت دے، چه نبي صلي الله عليه وسلّم خيبر (يهودو) ته په دے شرط وركۀ، چه هغوي به دے كښ محنت او كاشتكاري كوي، او دَ هغے پيداوار كښ به دَ هغوي نيمه حصه وي. او ابن عمرؓ، نافع ته بيان اوكۀ، چه زمكے به دَ څۀ رقم په عوض، چه دَ هغے هغه ذكر اوكۀ، خو ماته ياد پاتے نه شو. په كرايه وركولے شوے، او رافع بن خديج حديث بيان كۀ، چه نبي صلي الله عليه وسلّم، پټي (کھیتوں کو) په كيرائے وركولو نه منع فرمائيلے ده. او عبيدالله په واسطه دَ، نافع. ابن عمرؓ دومره زيات بيان اوكه تردے چه هغه (يهوديان) حضرت عمرؓ جلاوطن كړل (يعني دَ وطن نه ئے اوبنكل).

# كِتَابُ الْحَوَالَاتِ

# دَ حوالو بيان

## بَابٌ ۵۴۲: فِى الْحَوَالَةِ

## باب ۵۴۲: دَ، حواله (قرض چا طرف ته دَ

وَهَلْ يَرْجِعُ فِي الْحَوَالَةِ وَ قَالَ الْحَسَنُ وَ قَتَادَةُ اِذَا كَانَ يَوْمَ اَحَالَ عَلَيْهِ مَلِيًّا جَازَ وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ يَتَخَارِجُ الشَّرِيْكَانِ وَ اَهْلُ الْمِيْرَاثِ فَيَاخُذُ هٰذَا عَيْنًا وَ هٰذَا دَيْنًا فَاِنْ تَوِيَ لِاَحَدِهِمَا لَمْ يَرْجِعْ عَلٰى صَاحِبِهٖ.

منتقل) كولو بيان. او آيا حواله كښې رجوع كولے شي. او حسن او قتاده' وئيلے دي' چه په كومه ورځ ئے حواله اوكړه' په هغه ورځ هغه (چا طرف ته چه قرض منتقل كړے شو) خوشحاله وو' نو درست ده. او ابن عباسؓ اووے چه دوه شريک يا تركه (ميراث) بيامندونكي دے داسے تقسيم اوكړي چه يو عين (نقد مال) او بل دين (قرض) واخستـه او هغوي كښې دَ يو مال هلاک شو' نو هغه دَ خپل ملگري نه مطالبه نشي كولے.

۸۳۷: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ اَبِي الزِّنَادِ عَنِ الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَطْلُ الْغَنِيِّ ظُلْمٌ فَاِذَا اُتْبِعَ اَحَدُكُمْ عَلٰى مَلِيٍّ فَلْيَتْبَعْ.

۸۳۷: عبدالله بن يوسف. مالک. ابو الزناد. اعرج. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت كوي' هغهٔ اووے. رسول الله صلي الله عليه وسلّم فرمائيلي دي. دَ مالدار قرض ادا كولو كښې ټال مټول كول ظلم دے. او هر كله چه تاسو كښې دَ يو سړي قرض دَ مالدار په حواله كړے شي. نو هغه قبلول پكار دي.

بَابُ ۵۴۳: اِذَا اَحَالَ عَلٰى مَلِيٍّ فَلَيْسَ لَهٗ رَدٌّ.

باب ۵۴۳: هر كله چه قرض مالدارته حواله كړے شي' نو دَ هغے دَ قبلولو نه پس دَ هغے دَ رد كولو اختيار نشته.

۸۳۸: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوْسُفَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنِ ابْنِ ذَكْوَانَ عَنِ الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَطْلُ الْغَنِيِّ ظُلْمٌ وَمَنْ اُتْبِعَ عَلٰى مَلِيٍّ فَلْيَتْبِعْ.

۸۳۸: محمد بن يوسف. سفيان. ابن ذكوان. اعرج. ابوهريرهؓ نبي صلي الله عليه وسلّم نه روايت كوي. حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل. مالدار له قرض ادا كولو كښې ټال مټول نه دي كول پكار. او دَ كوم سړي قرض چه يو مالدار ته حواله كړے شي' نو هغه دے قبول كړي (يعني د هغه نه دے تقاضا اوكړي).

بَابُ ۵۴۴: اِذَا اَحَالَ دَيْنَ الْمَيِّتِ عَلٰى رَجُلٍ جَازَ.

باب ۵۴۴: كهٔ دَ' مړي قرض چاته منتقل كړي' نو جائز دي.

۸۳۹: حَدَّثَنَا الْمَكِّيُّ

۸۳۹: مكي بن ابراهيم. يزيد بن ابي. عبيد.

ن إِبْرَاهِيْمَ حَدَّثَنَا يَزِيْدُ
ن أَبِيْ عُبَيْدٍ عَنْ سَلَمَةَ بْنِ
اَكْوَعِ قَالَ كُنَّا جُلُوْسًا عِنْدَ
نَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
ذْ اُتِيَ بِجَنَازَةٍ فَقَالُوْا صَلِّ عَلَيْهَا
فَقَالَ هَلْ عَلَيْهِ دَيْنٌ قَالُوْا لَا قَالَ
فَهَلْ تَرَكَ شَيْئًا قَالُوْا لَا فَصَلّٰى
عَلَيْهِ ثُمَّ اُتِيَ بِجَنَازَةٍ اُخْرٰى فَقَالُوْا
يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلِّ عَلَيْهَا قَالَ
هَلْ عَلَيْهِ دَيْنٌ قِيْلَ نَعَمْ
قَالَ فَهَلْ تَرَكَ شَيْئًا قَالُوْا
ثَلٰثَةَ دَنَانِيْرَ فَصَلّٰى عَلَيْهَا
ثُمَّ اُتِيَ بِالثَّالِثَةِ فَقَالُوْا
صَلِّ عَلَيْهَا قَالَ هَلْ تَرَكَ
شَيْئًا قَالُوا لَا قَالَ فَهَلْ عَلَيْهِ
دَيْنٌ قَالُوْا ثَلٰثَةُ دَنَانِيْرَ قَالَ
صَلُّوْا عَلٰى صَاحِبِكُمْ
قَالَ اَبُوْ قَتَادَةَ صَلِّ
عَلَيْهِ يَا رَسُوْلَ
اللّٰهِ وَعَلَيَّ دَيْنُهُ فَصَلّٰى
عَلَيْهِ.

سلمه بن اكوع نه روايت دے، چه مونږ نبي صلي الله عليه وسلّم سره ناست وو. دے دوران كښې يوه جنازه راوړے شوه. خلقو عرض اوكړ، په دے مونځ اوكړئ. حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل. په دۀ څۀ قرض شته. مونږ اووے، نه، حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل دۀ څۀ پريښے دي. خلقو اووے، نه، نو حضور صلي الله عليه وسلم په هغه مونځ اوكړ. بيا يوه بله جنازه راوړے شوه. خلقو عرض اوكړ، يا رسول اللّٰه په دۀ مونځ اوكړئ. حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، په ده څه قرض شته. خلقو جواب وركړ او. حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل دۀ څه پريښے دي. خلقو اووے. درے ديناره. نو حضور صلي الله عليه وسلّم په هغه مونځ اوكړ. بيا يوه دريمه جنازه راوړے شوه، نو خلقو عرض اوكړ، تاسوّ په دے مونځ اوكړئ. حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، دۀ څه پريښے دي، خلقو اووے، نه، حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، په ده څه قرض شته، خلقو اووے، درے ديناره. حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، تاسو په خپل ملګري مونځ اوكړئ. ابو قتاده عرض اوكړ يا رسول اللّٰه! تاسوّ په دۀ مونځ اوكړئ، زه دَ دۀ دَ قرض ذمه وار يم. نو حضور صلي الله عليه وسلّم په هغه دَ جنازے مونځ اوكړ.

## بَابٌ ۵۴۵: اَلْكَفَالَةُ فِيْ الْقَرْضِ وَالدُّيُوْنِ بِالْاَبْدَانِ وَغَيْرِهَا

## باب ۵۴۵: دين او قرض كښې دَ جاني او مالي ذمه واري اخستو بيان.

وَقَالَ اَبُو الزِّنَادِ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ حَمْزَةَ بْنِ عَمْرٍو الْاَسْلَمِيِّ عَنْ اَبِيْهِ اَنَّ عُمَرَ بَعَثَهُ مُصَدِّقًا

او ابوالزناد په واسطه دَ محمد بن حمزه بن عمرو اسلمي. حمزه بن عمرو اسلمي نقل كړے دے، چه عمرؓ، حمزه بن عمرو اسلمي دَ صدقے وصولو د پاره اوليږلو. هلته چا دَ خپلے ښځے، وينزے

فَوَقَعَ رَجُلٌ عَلٰى جَارِيَةِ امْرَأَتِهٖ فَاَخَذَ حَمْزَةُ مِنَ الرَّجُلِ كَفِيْلًا حَتّٰى قَدِمَ عَلٰى عُمَرَ وَ كَانَ عُمَرُ قَدْ جَلَدَهٗ مِائَةَ جَلْدَةٍ فَصَدَّقَهُمْ وَ عَذَرَهٗ بِالْجَهَالَةِ وَ قَالَ جَرِيْرٌ وَّالْاَشْعَثُ لِعَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ فِي الْمُرْتَدِّيْنَ اسْتَتِبْهُمْ وَ كَفِّلْهُمْ فَتَابُوْا وَ كَفَلَهُمْ عَشَائِرُهُمْ وَ قَالَ حَمَّادٌ اِذَا تَكَفَّلَ بِنَفْسٍ فَمَاتَ فَلَا شَيْءَ عَلَيْهِ وَ قَالَ الْحَكَمُ يَضْمَنُ قَالَ اَبُوْ عَبْدِ اللّٰهِ وَ قَالَ اللَّيْثُ حَدَّثَنِيْ جَعْفَرُ بْنُ رَبِيْعَةَ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ هُرْمُزَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهٗ ذَكَرَ رَجُلًا مِنْ بَنِيْ اِسْرَآئِيْلَ اَنْ يُّسْلِفَهٗ اَلْفَ دِيْنَارٍ فَقَالَ ائْتِنِيْ بِالشُّهَدَآءِ اُشْهِدُهُمْ فَقَالَ كَفٰى بِاللّٰهِ شَهِيْدًا قَالَ ائْتِنِيْ بِالْكَفِيْلِ قَالَ كَفٰى بِاللّٰهِ كَفِيْلًا قَالَ صَدَقْتَ فَدَفَعَهَا اِلَيْهِ اِلٰى اَجَلٍ مُّسَمًّى فَخَرَجَ فِي الْبَحْرِ فَقَضٰى حَاجَتَهٗ ثُمَّ الْتَمَسَ مَرْكَبًا يَّرْكَبُهَا يَقْدَمُ عَلَيْهِ لِلْاَجَلِ الَّذِيْ اَجَّلَهٗ فَلَمْ يَجِدْ مَرْكَبًا فَاَخَذَ خَشَبَةً فَنَقَرَهَا فَاَدْخَلَ فِيْهَا اَلْفَ دِيْنَارٍ وَّصَحِيْفَةً

سره زنا اوکړه، نو حمزه ځنې خلق ذ هغې ضامن کړل تردې چه هغه حضرت عمرؓ له راغې او حضرت عمرؓ هغه سل کوړې وهلې وو. حضرت عمرؓ ذ هغې خلقو نه ذ هغه تصديق اوکړو او هغه ذ جهالت (چه ذ ښځې وينزې سره جماع حرام ده) په بنا معذور اوګنړلو. او جرير او اشعث عبدالرحمٰن بن مسعودؓ ته ذ مرتدانو متعلق اووې، چه په هغوي توبه اوباسه او ځوک د هغوي ضامن کړه. نو هغې خلقو توبه کړه، او ذ هغوي قبيلې واله ذ هغوي ضامن شو. او حماد اووې. که يو سړې ضامن شي، او مړ شي، نو په هغه هيڅ تاوان نشته. او حکم اووې، تاوان به ورکوي. ابو عبداللّٰه (بخاري) وائي، چه ليث په واسطه ذ جعفر بن ربيعه. عبدالرحمٰن بن هرمز، ابوهريرهؓ نبي صلي اللّٰه عليه وسلم نه نقل کړيدې. چه حضور صلي اللّٰه عليه وسلم ذ بني اسرائيلو ذ يو سړي ذکر اوکه، چه هغه ذ بني اسرائيلو ذ يو سړي نه يو زر دينار قرض واخستل، نو هغه اووې، ځوک ګواه راوله، چه زۀ هغه ګواه مقرر کړم. هغه ورته اووې، ذ اللّٰه ګواهي کافي ده، بيا هغه اووې، ځوک ضامن راوله. نو هغه اووې، ذ اللّٰه ضمانت کافي دې. هغه ورته اووې، ته رشتيا وائې، نو هغه له ئې دينار، ذ يوې مقررې مودې په وعده ورکړل. قرض اخستونکې په بحري سفر روان شو، او خپل ضرورت ئې پوره کۀ، بيائې سورلي تلاش کړه، چه قرض ورکونکي ته ذ هغې مُودې دننه اورسي، چه هغه سره ئې مقرر کړې وه. خو څه سورلي ئې بيانه مونده، نو هغه يو لرګې واخست، هغې ئې اوکنولو، او هغې کښې ئې زر دينار او يو خط ذ قرض

مِنْهُ اِلٰى صَاحِبِهٖ ثُمَّ زَجَّجَ مَوْضِعَهَا ثُمَّ اَتٰى بِهَا اِلَى الْبَحْرِ فَقَالَ اَللّٰهُمَّ اِنَّكَ تَعْلَمُ اَنِّىْ كُنْتُ تَسَلَّفْتُ فُلَانًا اَلْفَ دِيْنَارٍ فَسَاَلَنِىْ كَفِيْلًا فَقُلْتُ كَفٰى بِاللّٰهِ شَهِيْدًا فَرَضِىَ بِكَ وَ اِنِّىْ جَهَدْتُ اَنْ اَجِدَ مَرْكَبًا اَبْعَثُ اِلَيْهِ الَّذِىْ لَهٗ فَلَمْ اَقْدِرْ وَ اِنِّىْ اَسْتَوْدَعْتُكَهَا فَرَمٰى بِهَا فِى الْبَحْرِ حَتّٰى وَلَجَتْ فِيْهِ ثُمَّ انْصَرَفَ وَهُوَ فِىْ ذٰلِكَ يَلْتَمِسُ مَرْكَبًا يَخْرُجُ اِلٰى بَلَدِهٖ فَخَرَجَ الرَّجُلُ الَّذِىْ كَانَ اَسْلَفَهٗ يَنْظُرُ لَعَلَّ مَرْكَبًا قَدْ جَآءَ بِمَالِهٖ فَاِذَا بِالْخَشَبَةِ الَّتِىْ فِيْهَا الْمَالُ فَاَخَذَهَا لِاَهْلِهٖ حَطَبًا فَلَمَّا نَشَرَهَا وَجَدَ الْمَالَ فَاَخَذَهَا وَالصَّحِيْفَةَ ثُمَّ قَدِمَ الَّذِىْ كَانَ اَسْلَفَهٗ فَاَتٰى بِالْاَلْفِ دِيْنَارٍ فَقَالَ وَاللّٰهِ مَازِلْتُ جَاهِدًا فِىْ طَلَبِ مَرْكَبٍ لِاٰتِيَكَ بِمَالِكَ فَمَا وَجَدْتُ مَرْكَبًا قَبْلَ الَّذِىْ اَتَيْتُ فِيْهِ قَالَ هَلْ كُنْتَ بَعَثْتَ اِلَىَّ بِشَىْءٍ قَالَ اُخْبِرُكَ لَمْ اَجِدْ مَرْكَبًا قَبْلَ الَّذِىْ جِئْتُ

ورکونکي په نوم لیکلے کینبودل. بیائے د هغے خله بنده کړه او د سمندر غاړے ته راغے. او وے وئیل: اے خدایه! ته پوهیږے، چه ما د فلاني سړي نه یو زر دینار قرض اوغوښتل نو هغهٔ خما نه ضامن طلب کهٔ، نو ماته ضمانت کښې پیش کړے، نو هغه په دے راضي شو. هغه خما نه ګواه اوغوښته نو ما اووے د اللّٰه ګواهي کافي ده، هغه په دے رضامند شو. او قرض ئے راکهٔ ما ډیر کوشش اوکړو، چه څه سورلي پیدا شي، نو زه به د هغه قرض اولیږم خو بیا م نه مندهٔ، نو زهٔ دا تاته سپارم، (دے وئیلو سره) هغهٔ هغه لرګے په سمندر کښې اوغورزولو، تر دے چه لرګے ډوب شو. او خپله واپس شو. دے دوران کښې هغهٔ خپل ښهر ته د تلو د پاره سورلي تلاش کوله. او کوم سړي چه دهٔ له قرض ورکړے وو، یو ورځ دے کتلو د پاره بهر راووتلو. چه شاید یو جهاز د هغه مال راوړے وي، د هغهٔ نظر په هغه لرګي پریوتلو، چه هغے کښې دینار وو. کور د پاره د خشاک په خاطر، ئے هغه یوړلو. کوم وخت چه هغه ئے اوڅیرلو، نو هغه مال او خط ئے بیاموند. هغے نه پس هغه سړے هم راغے، چاله چه ئے قرض ورکړے وو. او زر دینار، ئے راوړل، او وئیلے، قسم په خدائے، چه زهٔ د سورلي په سخت تلاش کښې ووم، چه ستا مال تاته در اورسوم. لیکن کوم جهاز سره چه زه راغلم، د هغے نه مخکښې هیڅ جهاز ما بیانه مند، نو هغه ورته اووے، چه تا څه څیز ماته رالیږلے وو قرض اخستونکي اووے. زهٔ خو وایم، چه کوم جهاز سره زه راغلے یم. د هغے نه مخکښې هیڅ جهاز ما بیانه موند، قرض ورکونکي ورته اووے. اللّٰه ستا هغه څیز ماته

فِيهِ قَالَ فَإِنَّ اللّٰهِ قَدْ اَدّٰى عَنْكَ الَّذِىْ بَعَثْتَ فِي الْعَشْبَةِ فَانْصَرَفَ بِالْأَلْفِ الدِّيْنَارِ رَاشِدًا.

راورسولو' چه لرګي کښې تاماله رالیږلې وې. نو هغه خپلې زر اشرفۍ واخستې' په خوشحالۍ خوشحالۍ واپس شولو.

۱. مسئله داده چه څوک سړے د خپلې ښځې د مال مالک نه وي' ليکن دغه صاحب دا اوګنړل چه د ښځې وينزې نه هم دغه شان فائده اخستے شي ځنګه چه د خپلې وينزې نه ورته حق شته دے. په دے غلط فهمۍ کښې هغه د زنا مرتکب شوے وو. ديځوا حدود د بعضې وخت شبهاتو سره ساقط کيږي. د حضرت عمر رضي الله عنه په وړاندې چه صورتحال بيان کړے شو نو هغوئ د دغه سړي نه حد خو ساقط کړو کوم چه دَ شادي شده کيدلو په وجه رَجم کيدل پکار وو. ليکن تعزيراً ئې ورله سل کوړے ورکړے بيا چه کله حضرت حمزه د صدقې وصولولو د پاره لاړو نو په څه ذريعه د هغوي په علم کښې هم دا خبره راغله. هغوئ اوګنړل چه څه نوے واقعه ده ليکن خلقو ورته اووے چه د دے فيصله خو حضرت عمر رضي الله عنه ډير مخکښې کړے ده. د هغهٔ په دے خبره پوره يقين رانغے په دے وجه د قبيلې والؤ نه يو کَس خپل ضمانت پيش کړو چه ته د حضرت عمر رضي الله عنه نه ددے تصديق اوکړه' پدا شان هغه دا ضمانت قبول کړو او دَ حضرت عمر رضي الله عنه نه ئې ددے تصديق اوغوښتلو.

۲۰۴۰: حَدَّثَنَا الصَّلْتُ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا اَبُوْ اُسَامَةَ عَنْ اِدْرِيْسَ عَنْ طَلْحَةَ بْنِ مُصَرِّفٍ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ وَلِكُلٍّ جَعَلْنَا مَوَالِيَ قَالَ وَرَثَةً وَالَّذِيْنَ عَاقَدَتْ اَيْمَانُكُمْ قَالَ كَانَ الْمُهَاجِرُوْنَ لَمَّا قَدِمُوا الْمَدِيْنَةَ يَرِثُ الْمُهَاجِرُ الْاَنْصَارِيَّ دُوْنَ ذَوِيْ رَحِمِهٖ لِلْاُخُوَّةِ الَّتِيْ اٰخَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَهُمْ فَلَمَّا نَزَلَتْ وَلِكُلٍّ جَعَلْنَا مَوَالِيَ نَسَخَتْ ثُمَّ قَالَ الَّذِيْنَ عَاقَدَتْ اَيْمَانُكُمْ اِلَّا النَّصْرَ وَالرِّفَادَةَ وَالنَّصِيْحَةَ وَقَدْ ذَهَبَ الْمِيْرَاثُ وَ يُوْصٰى لَهٗ.

۲۰۴۰: صلت بن محمد. اَبو اسامه. ادريس. طلحه بن مصرف. سعيد بن جبير. ابن عباسؓ نه روايت کوي چه آيت: "لِكُلٍّ جَعَلْنَا مَوَالِيَ" کښې موالي نه مراد ورثه وي. او' دَ: الّذين عاقدت ايمانكم" تفسير ئې داسې بيان کهٔ' چه مهاجرين کوم وخت مدينې ته اورسيدل' نو مهاجر به دَ' انصاري دَ هغې بهائي بندي په بنا وارث کيدلو' چه رسول الله صلي الله عليه وسلّم دَ هغوي په مينځ کښې جوړه کړے وه. خو' دَ انصاري رشته دارانو ته به هيڅ په ګوتو نه ورتلل. کوم وخت چه آيت: "لكل جعلنا موالي" نازل شو' نو آيت: "والذين عاقدت" منسوخ شولو. بيائې اووے "والذين عاقدت" کښې امداد' امانت او خير خواهي باقي پاتے شوه. ليکن ترکه پاتے نه شوه' هغوي د پاره وصيّت کيدے شي.

۲۰۴۱: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا

۲۰۴۱: قتيبه. اسمٰعيل بن جعفر.

...سْمٰعِيلُ بْنُ جَعْفَرٍ عَنْ حُمَيْدٍ عَنْ أَنَسٍ قَالَ قَدِمَ عَلَيْنَا عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ عَوْفٍ فَاٰخَى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَهُ وَ بَيْنَ سَعْدِ بْنِ الرَّبِيْعِ.

حميد انس نه روايت كوي. ذ هغه بيان دے' مونږ له عبدالرحمٰن بن عوف راغے' نو رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم ذ هغه او ذ سعد بن رُبيع مينځ كښې روروَلي جوړه كړله.

۸۴۲: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الصَّبَّاحِ حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيلُ بْنُ زَكَرِيَّاءَ حَدَّثَنَا عَاصِمٌ قَالَ قُلْتُ لِاَنَسٍ اَبَلَغَكَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَاحِلْفَ فِي الْاِسْلَامِ فَقَالَ قَدْ حَالَفَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَ قُرَيْشٍ وَّالْاَنْصَارِ فِيْ دَارِيْ.

۸۴۲: محمد بن صباح. اسمٰعيل بن ذكريا. عاصم نه روايت كوي. ذ هغه بيان دے' ما ذ' انس بن مالك نه تپوس اوكه آيا تاته دا حديث معلوم دے' چه نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم فرمائيلي دي. اسلام كښې ذ جاهليت عهد و پيمان نشته' نو هغه اووے' نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم خما كور كښې ذ قريشو او انصارو مينځ كښې عهد و پيمان كړے وو.

باب ۵۴۶: مَنْ تَكَفَّلَ عَنْ مَيِّتٍ دَيْنًا فَلَيْسَ لَهُ اَنْ يَّرْجِعَ وَبِهِ قَالَ الْحَسَنُ.

باب ۵۴۶: كوم سړے چه ذ' مړي ذ طرف نه ذ قرض ضمانت واخلي' نو هغه ته ذ' رجوع كولو اختيار نشته' او حسن بصري ذ'دے قائل دے.

۸۴۳: حَدَّثَنَا اَبُوْ عَاصِمٍ عَنْ يَزِيْدَ بْنِ اَبِيْ عُبَيْدٍ عَنْ سَلَمَةَ بْنِ الْاَكْوَعِ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اُتِيَ بِجَنَازَةٍ لِيُصَلِّيَ عَلَيْهَا فَقَالَ هَلْ عَلَيْهِ مِنْ دَيْنٍ قَالُوْا لَا فَصَلّٰى عَلَيْهِ ثُمَّ اُتِيَ بِجَنَازَةٍ اُخْرٰى فَقَالَ هَلْ عَلَيْهِ مِنْ دَيْنٍ قَالُوْا نَعَمْ قَالَ صَلُّوْا عَلٰى صَاحِبِكُمْ قَالَ اَبُوْ قَتَادَةَ عَلَيَّ دَيْنُهُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ فَصَلّٰى

۸۴۳: ابو عاصم. بن ابي عبيد. سلمه بن اكوع نه روايت كوي' چه نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم ته يوه جنازه راوړے شوه' چه حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم په هغے جنازه اوكړي' نو حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم تپوس اوكړ' آيا په دهٔ څهٔ قرض شته. خلقو اووے' نه. نو حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم په هغه (ذ جنازے) مونځ اوكړ. بيا يوه دونمه جنازه راوړے شوه' حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم تپوس اوكړ' په ده څه قرض شته' خلقو اووے' او' حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل' تاسو خلق په خپل ورور جنازه اوكړئ. ابو قتاده عرض اوكړ. يا رسول اللّٰه! زهٔ ذ' ده ذ قرض ذمه وار يم. نو حضو...

عَلَيْهِ.

۸۴۴: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا عَمْرٌو سَمِعَ مُحَمَّدَ بْنَ عَلِيٍّ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَوْ قَدْ جَآءَ مَالُ الْبَحْرَيْنِ قَدْ اَعْطَيْتُكَ هٰكَذَا وَ هٰكَذَا فَلَمْ يَجِئْ مَالُ الْبَحْرَيْنِ حَتّٰى قُبِضَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمَّا جَآءَ مَالُ الْبَحْرَيْنِ اَمَرَ اَبُوْبَكْرٍ فَنَادٰى مَنْ كَانَ لَهٗ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عِدَةٌ اَوْ دَيْنٌ فَلْيَاتِنَا فَاَتَيْتُهٗ فَقُلْتُ اِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لِيْ كَذَا وَ كَذَا فَحَثٰى لِيْ حَثْيَةً فَعَدَدْتُهَا فَاِذَا هِيَ خَمْسُ مِائَةٍ وَّ قَالَ خُذْ مِثْلَيْهَا.

صلي الله عليه وسلّم په هغه مونځ اوّ کۀ.

۸۴۴: علي بن عبدالله. سفيان. عمرو. محمد بن علي. جابر بن عبدالله نه روايت کوي. دَ هغه بيان دے، نبي صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل: کـه دَ بحرين مـال راغـے. نو زه بـه تـالـه داسے داسے (ډکـه لپـه) درکړم، خو، د بحرين مال رانغے، تردے چـه رسول اللّه صلي اللّه عليه وسلّم وفات شو. کوم وخت چه دَ بحرين مال راغے. نو ابوبکرؓ اعلان اوکۀ، کوم سړي سره چه نبي صلي الله عليه وسلّم څـه وعده کړي وي، يـا پـه حضور صلي الله عليه وسلّم دَ چا څه قرض وي، ماله دے راشي، نو زه هغه له ورغلم، ما ورتـه اووے، چه نبي صلي الله عليه وسلم ماسره دَ، دومره دومره (ډکے لپے) وعده کړے وه، بيا ماله ابوبکرؓ يوه ډکه لپه راکړه. ما چه هغه شمار کړے، نو په هغے کښې پنځه سوه وے، او وے وئيل، چه د دے دوچند واخله.

باب۵۴۷: جَوَارِ اَبِيْ بَكْرٍ فِيْ عَهْدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ عَقْدِهٖ.

باب۵۴۷: د نبي صلي اللّه عليه وسلم زمانه کښې حضرت ابوبکرؓ ته (د مشرک) امن ورکول او د هغه د عهد کولو بيان.

۸۴۵: حَدَّثَنَا يَحْيٰى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ قَالَ ابْنُ شِهَابٍ فَاَخْبَرَنِيْ عُرْوَةُ بْنُ الزُّبَيْرِ اَنَّ عَآئِشَةَ زَوْجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَتْ لَمْ اَعْقِلْ اَبَوَيَّ قَطُّ اِلَّا وَهُمَا يَدِيْنَانِ الدِّيْنَ وَ قَالَ اَبُوْ صَالِحٍ حَدَّثَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ عَنْ يُوْنُسَ عَنِ

۸۴۵: يحيي بن بکير. ليث. عقيل ابن شهاب. عروه بن زبير روايت کوي. چه دَ نبي صلي الله عليه وسلّم ټبر، بي بي عائشےؓ بيان اوکۀ، چه کوم وخت خما هوش په خـانـے شو، نو خپل مور پلار، م پـه دين حق بيامـونـدل. او ابـو صـالـح بيان اوکۀ، چه ماته عبدالله په واسطه دَ، يونس، زهري. عروه بن زبير بيان اوکۀ، بي بي عائشےؓ اوفرمائيل، ما خپل مور پلار کوم وخت چه ما

الزُّهْرِيِّ قَالَ أَخْبَرَنِي عُرْوَةُ ابْنُ الزُّبَيْرِ أَنَّ عَائِشَةَ قَالَتْ لَمْ أَعْقِلْ أَبَوَيَّ قَطُّ إِلَّا وَهُمَا يَدِينَانِ الدِّينَ وَلَمْ يَمُرَّ عَلَيْنَا يَوْمٌ إِلَّا يَأْتِينَا فِيهِ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ طَرَفَيِ النَّهَارِ بُكْرَةً وَعَشِيَّةً فَلَمَّا ابْتُلِيَ الْمُسْلِمُونَ خَرَجَ أَبُوبَكْرٍ مُهَاجِرًا قِبَلَ الْحَبَشَةِ حَتَّى إِذَا بَلَغَ بَرْكَ الْغِمَادِ لَقِيَهُ ابْنُ الدَّغِنَةِ وَهُوَ سَيِّدُ الْقَارَةِ فَقَالَ أَيْنَ تُرِيدُ يَا أَبَابَكْرٍ فَقَالَ أَبُوبَكْرٍ أَخْرَجَنِي قَوْمِي فَأَنَا أُرِيدُ أَنْ أَسِيحَ فِي الْأَرْضِ فَأَعْبُدَ رَبِّي قَالَ ابْنُ الدَّغِنَةِ إِنَّ مِثْلَكَ لَا يَخْرُجُ وَلَا يُخْرَجُ فَإِنَّكَ تَكْسِبُ الْمَعْدُومَ وَتَصِلُ الرَّحِمَ وَتَحْمِلُ الْكَلَّ وَتَقْرِي الضَّيْفَ وَتُعِينُ عَلَى نَوَائِبِ الْحَقِّ وَأَنَا لَكَ جَارٌ فَارْجِعْ فَاعْبُدْ رَبَّكَ بِبِلَادِكَ فَارْتَحَلَ ابْنُ الدَّغِنَةِ فَرَجَعَ أَبِي بَكْرٍ فَطَافَ فِي أَشْرَافِ كُفَّارِ قُرَيْشٍ فَقَالَ لَهُمْ أَنَّ أَبَابَكْرٍ لَا يُخْرُجُ مِثْلُهُ وَلَا يُخْرَجُ وَأَتُخْرِجُونَ رَجُلًا يَكْسِبُ الْمَعْدُومَ وَيَصِلُ الرَّحِمَ وَيَحْمِلُ الْكَلَّ وَيَقْرِي الضَّيْفَ وَيُعِينُ عَلَى نَوَائِبِ الْحَقِّ فَأَنْفَذَتْ قُرَيْشٌ جِوَارَ ابْنِ الدَّغِنَةِ وَأَمَنُوا أَبَابَكْرٍ وَقَالُوا لِابْنِ الدَّغِنَةِ مُرْ أَبَابَكْرٍ فَلْيَعْبُدْ رَبَّهُ فِي دَارِهِ فَلْيُصَلِّ

هوش سنبال كۀ په دين اسلام بيامُندل. او يوه ورځ به داسې نه تيريده، چه سحر مابنام به رسول الله صلي الله عليه وسلّم مونږ كره نه راتلو. كوم وخت چه مسلمانان په آزمائش (تكليف) كښې وو. نو ابوبكرؓ حبشه طرف ته هجرت د پاره اووتلو. كوم وخت چه برک غماد ته اورسيدو. نو هغه سره دَ قاره، دَ سردار، ابن دغنه ملاقات اوشو. هغه ترې تپوس اوكۀ، ابوبكر، دَ كوم خائې اراده دې ده هغه جواب وركۀ چه زۀ خپل قوم اوبنكلے يم. نو زه غوارم، چه دَ زمكې سيل اوكړم، او دَ خپل پروردګار عبادت اوكړم. ابن دغنه ورته اووې، چه ستا شان سړے نه وتلے شي، او نه ئې څوک اوبنكلے شي، ځكه چه ته دَ بې ماله خلقو د پاره كمائي كوې، صله رحمي كوې، او دَ عاجز او مجبور بوج اوچتوې. دَ ميلمه ميلمستيا كوې. دَ حق لار كښې راتلونكي مصيبت كښې مدد كوې. زه ستا ګوانډي يم. ته واپس شه او خپل ملک كښې دَ خپل رب عبادت كوه نو ابن دغنه روان شو. ابوبكرؓ ئې خان سره كۀ، واپس شولو، او دَ كفار قريش سردارانو كښې اوګرځيدل. او هغوي ته ئې اووې، چه دَ ابوبكرؓ په شان سړې نه وتلے شي، او نه ئې څوک اوبنكلے شي. آيا تاسو داسې سړے اوكاږئ، چه تنګدستو خلقو د پاره كمائي كوي، صله رحمي كوي، دَ عاجزانو بوج اوچتوي دَ ميلمه ميلمستيا كوي. راه حق كښې راتلونكي مصيبت كښې مدد كوي. نو قريشو دَ ابن دغنه پناه منظور كړله. او ابوبكرؓ له ئې امان وركۀ او، ابن دغنه ته ئې اووې، ابوبكرؓ ته اووايه، چه دَ خپل رب عبادت خپل كور كښې كوي، او څه چه ئې زړۀ غواړي،

وَلْيَقْرَأْ مَا شَاءَ وَلَا يُؤْذِيْنَا بِذَالِكَ وَلَا
يَسْتَعْلِنْ بِهٖ فَاِنَّا قَدْ خَشِيْنَا اَنْ يَّفْتِنَ
اَبْنَآءَ نَا وَ نِسَآءَ نَا قَالَ ذٰلِكَ ابْنُ
الدَّغِنَةِ لِاَبِيْ بَكْرٍ فَطَفِقَ اَبُوْبَكْرٍ يَعْبُدُ
رَبَّهٗ فِيْ دَارِهٖ وَلَا يَسْتَعْلِنُ بِالصَّلٰوةِ وَ
لَا الْقِرَآءَةِ فِيْ غَيْرِ دَارِهٖ ثُمَّ بَدَا لِاَبِيْ
بَكْرٍ فَابْتَنٰى مَسْجِدًا بِفِنَاءِ دَارِهٖ وَبَرَزَ
فَكَانَ يُصَلِّيْ فِيْهِ وَيَقْرَأُ الْقُرْاٰنَ
فَيَتَقَصَّفُ عَلَيْهِ نِسَاءُ الْمُشْرِكِيْنَ وَ
اَبْنَآءُ هُمْ يَعْجَبُوْنَ وَيَنْظُرُوْنَ اِلَيْهِ وَ
كَانَ اَبُوْبَكْرٍ رَجُلًا بَكَّآءً لَا يَمْلِكُ
دَمْعَهٗ حِيْنَ يَقْرَأُ الْقُرْاٰنَ فَاَفْزَعَ ذٰلِكَ
اَشْرَافَ قُرَيْشٍ مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ
فَاَرْسَلُوْا اِلَى ابْنِ الدَّغِنَةِ فَقَدِمَ
عَلَيْهِمْ فَقَالُوْا لَهٗ اِنَّا كُنَّا اَجَرْنَا اَبَابَكْرٍ
عَلٰى اَنْ يَّعْبُدَ رَبَّهٗ فِيْ دَارِهٖ وَ اِنَّهٗ
جَاوَزَ ذَالِكَ فَابْتَنٰى مَسْجِدًا بِفِنَاءِ
دَارِهٖ وَ اَعْلَنَ الصَّلٰوةَ وَالْقِرَآءَةَ وَقَدْ
خَشِيْنَا اَنْ يَّفْتِنَ اَبْنَآءَ نَا وَنِسَآءَ نَا
فَأْتِهٖ فَاِنْ اَحَبَّ اَنْ يَّقْتَصِرَ عَلٰى اَنْ
يَّعْبُدَ رَبَّهٗ فِيْ دَارِهٖ فَعَلَ وَاِنْ اَبٰى اِلَّا
اَنْ يُّعْلِنَ ذَالِكَ فَسْئَلْهُ اَنْ يَّرُدَّ اِلَيْكَ
ذِمَّتَكَ فَاِنَّا كَرِهْنَا اَنْ نُّخْفِرَكَ وَلَسْنَا
مُقِرِّيْنَ لِاَبِيْ بَكْرٍ الْاِسْتِعْلَانَ قَالَتْ
عَائِشَةُ فَاَتَى ابْنُ الدَّغِنَةِ اَبَابَكْرٍ فَقَالَ
قَدْ عَلِمْتَ الَّذِيْ عَقَدْتُ لَكَ عَلَيْهِ

هغه دِ لولي' ليکن مونږ له دِ تکليف نه راکوي. او نه دے
دَ هغې اعلان کوي. ځکه چه مونږ ته خطره ده' چې
ځمونږ بچي او ښځے فتنه کښې اخته نشي ابن دغنه'
ابوبکرؓ ته دغسے اووے. نو ابوبکرؓ خپل کور کښې دَ
خپل رب عبادت کولو او نه به ئے په ځرگنده مونځ کولو
او نه قرأت. بيا دَ ابوبکرؓ په زړهٔ کښې څه خيال راغے' نو
هغه دَ خپل کور په صحن کښې يو جمات جوړ کړ. او
بهر به ئے هلته مونځ کولو' قرآن ئے لوستلو نو دَ مشرکينو
ښځے او بچي په هغه ته جمع کيدل. هغوي له به ئے
خوند ور کولو' چه ابوبکرؓ به ئے ليدلو. ابوبکرؓ داسے
سړے وو. چه ډير به ئے ژړل' او چه قرآن به ئے لوستلو'
نو په اوښکو' ئے اختيار نه وو. (يعني بے اختياره به ئے
اوښکے بهيدے). دَ مشرکين قريش سرداران اويريدل'
ابن دغنه ئے رااوښکلو' هغه ورله راغے' نو هغوي ابن
دغنه ته اووے' مونږ ابوبکرؓ له په دے شرط امان ورکړے
وو' چه هغه به خپل کور کښې دَ خپل پروردگار عبادت
کوي. خو هغه زياتے رااوخست' دَ خپل کور آنگړ کښې
ئے جماعت جوړ کړ. علانيه مونځ او قرآن لوستل ئے
شروع کړل. او مونږ ته خطره ده' چه ځمونږ بچي او
ښځے گمراه نشي' نو هغه له ورشه' ورته اووايه' کهٔ هغه
خپل کور کښې دننه دَ خپل رب په عبادت اکتفا کوي' نو
کوي دے' خو که ذدے نه انکار کوي او په ځرگنده ئے
کوي' نو ورته اووايه' چه ستا ذمه دے واپس کړي. ځکه
چه مونږ دا' نهٔ غواړو چه مونږ ستا امان مات کړو' او نه
مونږ ابوبکرؓ په ځرگنده عبادت ته پريښودے شو. دَ بي
بي عائشےؓ بيان دے' ابن دغنه حضرت ابوبکرؓ له راغے'

فَأَمَّا أَنْ تَقْتَصِرَ عَلٰى ذٰلِكَ وَ إِمَّا أَنْ تَرُدَّ إِلَيَّ ذِمَّتِي فَإِنِّي لَا أُحِبُّ أَنْ تَسْمَعَ الْعَرَبُ إِنِّي اخْفِرْتُ فِي رَجُلٍ عَقَدْتُ لَهُ قَالَ أَبُوْبَكْرٍ إِنِّي أَرُدُّ إِلَيْكَ جِوَارَكَ وَ أَرْضٰى بِجِوَارِ اللّٰهِ وَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَئِذٍ بِمَكَّةَ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ أُرِيْتُ دَارَ هِجْرَتِكُمْ رَأَيْتُ سَبْخَةً ذَاتَ نَخْلٍ بَيْنَ لَابَتَيْنِ وَهُمَا الْحَرَّتَانِ فَهَاجَرَ مَنْ هَاجَرَ قِبَلَ الْمَدِيْنَةِ حِيْنَ ذَكَرَ ذٰلِكَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ رَجَعَ إِلَى الْمَدِيْنَةِ بَعْضُ مَنْ كَانَ هَاجَرَ إِلٰى أَرْضِ الْحَبْشَةِ وَ تَجَهَّزَ أَبُوْبَكْرٍ مُهَاجِرًا فَقَالَ لَهُ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلٰى رِسْلِكَ فَإِنِّي أَرْجُوْا أَنْ يُّؤْذَنَ لِيْ قَالَ أَبُوْبَكْرٍ هَلْ تَرْجُوْا ذٰلِكَ بِأَبِيْ أَنْتَ قَالَ نَعَمْ فَحَبَسَ أَبُوْبَكْرٍ نَفْسَهُ عَلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِيَصْحَبَهُ وَ عَلَفَ رَاحِلَتَيْنِ كَانَتَا عِنْدَهُ وَرَقَ السَّمُرِ أَرْبَعَةَ أَشْهُرٍ ط.

او ورته نے اووے' تاته معلومه ده' چه ما ستا ذمه په يو شرط اخستے وه. يا خو په هغے اكتفا اوكړه' يا خما ذمه ماته واپس كړه' ځكه چه زه دا' نه غواړم' چه عرب دا خبره واوري' چه ما د يو سړي ذمه اخستے وه' او خما ذمه ماته كړے شوه ابوبكرؓ جواب ور كړ' زهٔ ستا ذمه تاته واپس كوم. او د الله په پناه راضي يم. دغه زمانه كښ رسول الله صلي الله عليه وسلّم مكه كښ وو. حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل' ماته ستاسو د هجرت ځائے ښودلے شوے دے. ما يو ترخه زمكه اوليده' چه هلته د قجورو اونے دي' او د' دوو كانړيجنو غارو په مينځ كښ ده. كوم وخت چه دا خبره رسول الله صلي الله عليه وسلّم بيان كړه. نو چاچه هجرت اوكړ' مدينے طرف ته نے اوكړ. او كومو خلقو چه حبشه طرف ته هجرت كړے وو' هغوي هم مدينے طرف ته په هجرت لاړل' او ابوبكرؓ هم د هجرت تياري اوكړه' نو هغه ته رسول الله صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل ته ايسار شه' خما اُميد دے' چه ماته به هم د هجرت حكم اوشي. ابوبكرؓ عرض اوكړ. خما مور پلار دے په تاسو قربان وي' آيا ستاسو اُميد شته' چه ذدے اجازت به اوشي. حضور صلي الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل' او' نو ابوبكرؓ رسول الله صلي الله عليه وسلّم سره تلو ته ايسار شو' او دوه اوښان چه هغه سره وو' هغوي ته نے څلورو مياشتو پورے د سمر (كيكر) پاڼرے وركولے[1].

[1] د پاره ددے چه ښه ځاربهٔ شي او په سفر كښے اساني وي. يو د نبي كريم صلي الله عليه وسلّم د پاره وو او يو د خپل خان د پاره. دا حديث به آئنده د هجرت د بيان په سلسله كښ په نور تفصيل سره راشي. دلته ددے د ذكر كولو مقصد دا دے چه ددے حديث نه ثابتيږي چه ابوبكرؓ د يو مشرك ضمانت

قبول کړے وو او دَ رسول الله صلي الله عليه وسلّم په علم کښ هم دا خبره وه.

باب ۵۴۸ : اَلدَّيْن.

۸۴۶ : حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ أَبِيْ سَلَمَةَ عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُؤْتَى بِالرَّجُلِ الْمُتَوَفّٰى عَلَيْهِ الدَّيْنِ فَيَسْأَلُ هَلْ تَرَكَ لِدَيْنِهِ فَضْلًا فَإِنْ حُدِّثَ أَنَّهُ تَرَكَ لِدَيْنِهِ وَفَاءً صَلّٰى عَلَيْهِ وَ إِلَّا قَالَ لِلْمُسْلِمِيْنَ صَلُّوْا عَلٰى صَاحِبِكُمْ فَلَمَّا فَتَحَ اللّٰهُ عَلَيْهِ الْفُتُوْحَ قَالَ أَنَا أَوْلٰى بِالْمُؤْمِنِيْنَ مِنْ أَنْفُسِهِمْ فَمَنْ تُوُفِّيَ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ فَتَرَكَ دَيْنًا فَعَلَيَّ قَضَاؤُهُ وَمَنْ تَرَكَ مَالًا فَلِوَرَثَتِهِ.

باب ۵۴۸ : قرض.

۸۴۶ : يحيي بن بكير. ليث. عقيل. ابن شهاب. ابوسلمه. ابوهريرهؓ نه روايت کوي، چه رسول الله صلي الله عليه وسلم ته به جنازه راوړے شوه، نو حضور صلي الله عليه وسلّم به تپوس کولو، آيا هغه خپل قرض د پاره څه زيات مال پريښے دے. کهٔ خلقو به اووے، چه هغه دَ خپل قرض ادائيگي د پاره څه مال پريښے دے، نو حضور صلي الله عليه وسلّم به په هغهٔ مونځ کولو، گني فرمائيل به ئے، چه تاسو په خپل ملګري مونځ اوکړئ. هر کله چه الله تعالٰي دَ فتح دروازه پرانسته، نو حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، زه دَ مسلمانانو خپله دَ هغوي دَ ذات نه هم زيات خير خواه يم، کوم مسلمان چه مړشي او قرض پريږدي، نو دَ هغے ادا کول زما په ذمه وي. او چا چه مال پريښود، نو هغه دَ هغوي دَ وارثانو حق دے.

# كِتَابُ الْوَكَالَةِ (دَ وکالت بيان)

۱. وکالت د سپارلو او نگراني کولو په معني کښے راځي. شرعي نقطهٔ نظر سره وکالت دے ته وائي چه يو سړے بل سړي لره په خپله څه معامله کښے قائم مقام جوړ کړي. دا وکالت مطلق يعني د څه شرط نه بغير هم کيدے شي او مقيد هم، يعني چه د جانبينو يا د يو طرفه په شرعي حدود کښ اوسيدلو سره څه شرط اولګولے شي.

بَابُ ۵۴۹ : وَكَالَةِ الشَّرِيْكِ الشَّرِيْكَ فِي الْقِسْمَةِ وَغَيْرِهَا وَقَدْ أَشْرَكَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلِيًّا فِيْ هَدْيِهِ ثُمَّ أَمَرَهُ بِقِسْمَتِهَا.

باب ۵۴۹ : تقسيم وغيره کښ دَ يو شريک دَ بل شريک دَ وکيل کيدو بيان، او نبي صلي الله عليه وسلّم، حضرت عليؓ خپلے قرباني کښ شريک کهٔ بيائے دَ هغے د تقسيم حکم اوکهٔ.

۸۴۷ : حَدَّثَنَا قَبِيْصَةُ حَدَّثَنَا

۸۴۷ : قبيصه. سفيان. ابن ابي نجيح.

سُفْيَانُ عَنِ ابْنِ اَبِيْ نَجِيْحٍ عَنْ مُجَاهِدٍ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ اَبِيْ لَيْلٰى عَنْ عَلِيٍّ قَالَ اَمَرَنِيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنْ اَتَصَدَّقَ بِجِلَالِ الْبُدْنِ الَّتِيْ نُحِرَتْ وَ بِجُلُوْدِهَا.

مجاهد. عبدالرحمٰن بن ابي ليلي. حضرت عليٌّ نه روايت كوي. ذ هغه بيان دے: ماته رسول الله صلي الله عليه وسلم حكم راكړه، چه ذ قربانئ ذ اوښانو تغر (بوجے) او ذ هغے څرمنے خيرات كړے.

۸۴۸: حَدَّثَنَا عَمْرُوْ بْنُ خَالِدٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ يَزِيْدَ عَنْ اَبِي الْخَيْرِ عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَعْطَاهُ غَنَمًا يُقَسِّمُهَا عَلٰى صَحَابَتِهِ فَبَقِيَ عَتُوْدٌ فَذَكَرَهُ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ ضَحِّ بِهٖ اَنْتَ.

۸۴۸: عمرو بن خالد. ليث. يزيد. ابوالخير. عقبه بن عامر نه روايت كوي، چه نبي صلي الله عليه وسلّم هغه له څيلے چيلئ وركړے چه صحابهٌ ؤ كښ تقسيم كړي، نو ذ چيلئے يو بچے باقي پاتے شو، هغه نبي صلي الله عليه وسلم ته ذ هغے ذكر اوكړه، نو حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، ته څپله ذدے قرباني اوكړه.

باب ۵۵۰: اِذَا وَكَّلَ الْمُسْلِمُ حَرْبِيًّا فِيْ دَارِ الْحَرْبِ اَوْفِيْ دَارِ الْاِسْلَامِ جَازَ.

باب ۵۵۰: مسلمان كه څوك حربي دارالحرب يا دارالاسلام كښ وكيل مقرر كړي، نو جائز دي.

۸۴۹: حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنِيْ يُوْسُفُ بْنُ الْمَاجِشُوْنَ عَنْ صَالِحِ بْنِ اِبْرَاهِيْمَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ عَوْفٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ جَدِّهٖ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ عَوْفٍ قَالَ كَاتَبْتُ اُمَيَّةَ بْنَ خَلَفٍ كِتَابًا بِاَنْ يَحْفَظَنِيْ فِيْ صَاغِيَتِيْ بِمَكَّةَ وَ اَحْفَظَهُ فِيْ صَاغِيَتِهٖ بِالْمَدِيْنَةِ فَلَمَّا ذَكَرْتُ الرَّحْمٰنَ قَالَ لَا اَعْرِفُ الرَّحْمٰنَ كَاتِبْنِيْ بِاسْمِكَ الَّذِيْ كَانَ فِيْ

۸۴۹: عبدالعزيز بن عبدالله. يوسف بن ماجشون. صالح بن ابراهيم بن عبدالرحمٰن بن عوف ذ څپل پلار نه، هغه ذ هغهٔ ذ نيكه (دادا) عبدالرحمٰن بن عوف نه روايت كوي. ذ هغهٔ بيان دے، چه ما اُميه بن خلف ته يو خط اوليكهٔ، چه هغه مكه كښ خما ذ سامان حفاظت اوكړي، زه به مدينه كښ ذ هغه ذ سامان حفاظت كوم. هر كله چه ما خط كښ څپل نوم عبدالرحمٰن اوليكهٔ، نو هغه اووے، زه عبدالرحمٰن نه پيژنم. ته څپل هغه نوم اوليكه، چه جاهليت كښ وو، نو ما عبد عمرو اوليكهٔ. چه ذ بدر ورځ راغله، نو زهٔ يو غر

الْجَاهِلِيَّةِ فَكَاتَبْتُهُ عَبْدُ عَمْرٍو فَلَمَّا كَانَ يَوْمُ بَدْرٍ خَرَجْتُ إِلَى جَبَلٍ لِأُحْرِزَهُ حِينَ نَامَ النَّاسُ فَأَبْصَرَهُ بِلَالٌ فَخَرَجَ حَتَّى وَقَفَ عَلَى مَجْلِسٍ مِنَ الْأَنْصَارِ فَقَالَ أُمَيَّةُ بْنُ خَلَفٍ لَا نَجَوْتُ إِنْ نَجَا أُمَيَّةُ فَخَرَجَ مَعَهُ فَرِيقٌ مِنَ الْأَنْصَارِ فِي آثَارِنَا فَلَمَّا خَشِيتُ أَنْ يَلْحَقُونَا خَلَّفْتُ لَهُمُ ابْنَهُ لِأَشْغَلَهُمْ فَقَتَلُوهُ ثُمَّ أَبَوْا حَتَّى يَتْبَعُونَا وَكَانَ رَجُلًا ثَقِيلًا فَلَمَّا أَدْرَكُونَا قُلْتُ لَهُ ابْرُكْ فَبَرَكَ فَأَلْقَيْتُ عَلَيْهِ نَفْسِي لِأَمْنَعَهُ فَتَخَلَّلُوهُ بِالسُّيُوفِ مِنْ تَحْتِي حَتَّى قَتَلُوهُ وَأَصَابَ أَحَدُهُمْ رِجْلِي بِسَيْفِهِ وَكَانَ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ عَوْفٍ يُرِينَا ذٰلِكَ الْأَثَرَ فِي ظَهْرِ قَدَمِهِ.

طرف ته لاړم، چه زهٔ دَ هغه حفاظت اوکړم. کوم وخت چه خلق اوده وو. نو بلال هغه اولیدلو. هغه اووتلو، او دَ انصارو یو مجلس ته اورسیدو. اووے وئیل، چه دا امیه بن خلف دے، کهٔ امیه بچ شو، نو خما خیر نشته، نو هغه سره دَ انصارو یو جماعت مونږ پسے اووتلو کوم وخت چه ماسره ویره شوه، چه هغوي به مونږ ته راورسي، ما دَ هغے خلقو دَ پاره دَ هغه ځوئے پریښودلو، چه هغه خلق هغهٔ ته متوجه شي. لیکن هغے خلقو هغه قتل کهٔ، په دے هم هغه خلقو اونه منله او مونږ پسے اولړیدل. او هغه یو ثقیل (په وجود، درونډ) سړے وو. کوم وخت چه انصار مونږ ته راورسیدل. نو ما هغه ته اووے، کینه، هغه کیناست. او ما خپل ځان دَ هغه دَ پاسه اوغورځولو. چه هغه بچ کړم. لیکن هغوي خما، دَ لاندے هغه په تورو اووهلو، تردے چه هغه ئے قتل کهٔ، هغوي کښې دَ یو توره باندے خما پښه هم اولږیدله. او عبدالرحمن بن عوف به دَ هغے زخم نښه دَ خپل قدم په شا، مونږ ته ښودله۔

۱. امیه بن خلف د اسلام سخت تریں دشمن وو، او په مکه کښې د بلال رضي الله عنه آقا وو. هغه چه بلال رضي الله عنه ته کوم انتهائي سخت تکلیفونه د اسلام نه اړولو د پاره ورکړي وو هغهٔ ټولو ته معلوم دي لیکن هغهٔ سره هم چه کله یو صحابي لوظ کوي نو پدا شان هغه لوظ پوره کوي. امام بخاري رحمة الله علیه دا ښودل غواړي چه په وکالت کښې د دین یووالے شرط نه دے، دا خو دَ ژوند یو عام ضرورت دے کوم کښې چه د مسلمان او غیر مسلم هر چا تعاون حاصلولے شي.

## بَابُ ۱۵۵: الْوَكَالَةِ فِي الصَّرْفِ وَالْمِيزَانِ وَقَدْ وَكَّلَ عُمَرُ وَابْنُ عُمَرَ فِي الصَّرْفِ.

## باب ۱۵۵: صرف کښې او، وزن سره خرڅیدونکي څیزونو کښې دَ وکیل جوړولو بیان. او حضرت عمرؓ او ابن عمرؓ صرف کښې وکیل جوړ کړے وو.

۸۵۰: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوسُفَ أَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ

۸۵۰: عبدالله بن یوسف. مالک. عبدالمجید بن سهیل بن عبدالرحمن بن عوف. سعید بن مسیب.

عَبْدِ الْمَجِيْدِ بْنِ سُهَيْلِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ عَوْفٍ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ عَنْ اَبِيْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ وَ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِسْتَعْمَلَ رَجُلًا عَلٰى خَيْبَرَ فَجَآءَهُمْ بِتَمْرٍ جَنِيْبٍ فَقَالَ اَكُلُّ تَمْرِ خَيْبَرَ هٰكَذَا فَقَالَ اِنَّا لَنَأْخُذُ الصَّاعَ مِنْ هٰذَا بِالصَّاعَيْنِ وَالصَّاعَيْنِ بِالثَّلٰثَةِ فَقَالَ لَا تَفْعَلْ بِعِ الْجَمْعَ بِالدَّرَاهِمِ ثُمَّ ابْتَعْ بِالدَّرَاهِمِ جَنِيْبًا وَّقَالَ فِي الْمِيْزَانِ مِثْلَ ذٰلِكَ.

ابوسعيد خدريؓ او ابوهريرهؓ نه روايت كوي' چه رسول الله صلي الله عليه وسلّم يو سړے ذ خيبر عامل مقرر كړو. نو هغه حضور صلي الله عليه وسلّم له ذ ښه قسم قجورے راوړے. حضور صلي الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل' آيا' ذ خيبر ټولے قجورے دغسے دي' هغه اووے' مونږ داسے قجورے' يو صاع ذ دوه۱ صاع په عوض او دوه صاع ذ درے صاع په عوض اخلو' حضور صلي الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل' داسے مه كوه' ټولے قجورے ذ' درهمو په عوض خرخے كړه. بيا ذ هغے درهمو په عوض قجورے واخله. او وزن سره ذ خرڅيدونكي څيزونو متعلق هم حضور صلي الله عليه وسلّم ذغسے اوفرمائيل.

۱. صاع يوه پيمانه وه هغه پيمانے سره ناپ كولو سره به سودا خرخولے شوه. مطلب دا دے چه د كومو څيزونو خرڅول اخستل په تول سره كيدلو نو حضور صلي الله عليه وسلّم د هغے هم دا حكم بيان اوفرمائيلو چه دا دِ برابر برابر خرخ كړے شي. داسے دِ نهوي چه ذهم جنس كيدلو باوجود د وزن كمي او زياتي سره هغه خرخ كړے شي.

باب ۵۵۲: اِذَا اَبْصَرَ الرَّاعِيُ اَوِ الْوَكِيْلُ شَاةً تَمُوْتُ اَوْ شَيْئًا يَفْسُدُ ذَبَحَ وَ اَصْلَحَ مَا يَخَافُ عَلَيْهِ الْفَسَادَ.

باب ۵۵۲: هر كله چه گډ به يا وكيل' چيلئے مړه كيدونكے اووينې يا څه څيز خرابيدونكے اووينې' نو هغه دے ذبح كړي' يا هغه خرابيدونكے څيز دے درست كړي.

۱۸۵۱: حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ بْنُ اِبْرَاهِيْمَ سَمِعَ الْمُعْتَمِرَ اَنْبَاَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ عَنْ نَافِعٍ اَنَّهُ سَمِعَ ابْنَ كَعْبِ ابْنِ مَالِكٍ يُحَدِّثُ عَنْ اَبِيْهِ اَنَّهُ كَانَتْ لَهُمْ غَنَمٌ تَرْعٰي بِسَلْعٍ فَاَبْصَرَتْ جَارِيَةٌ لَنَا بِشَاةٍ مِّنْ غَنَمِنَا مَوْتًا فَكَسَرَتْ حَجَرًا

۱۸۵۱: اسحٰق بن ابراهيم. معتمر. عبيدالله. نافع. ابن كعب بن مالك ذ خپل پلار (كعب بن مالک) نه روايت كوي' چه هغه سره چيلئے وے' چه مقام سلع كښې خرڅيدلے خمونږ يوے وينزے اوليدل' چه خمونږ يوه چيلئ مري' نو هغے يو كاڼړے مات كۀ' او په هغے ئے هغه چيلئے ذبح كړه. كعب خلقو ته اووے' تاسو ئے مه خورئ' څو پورے چه زه ذ نبي صلي الله عليه وسلّم نه

فَذَبَحَتْهَا بِهِ فَقَالَ لَهُمْ لَا تَأْكُلُوا حَتّٰى أَسْأَلَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَوْ أُرْسِلَ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ يَّسْأَلُهُ وَ أَنَّهُ سَأَلَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ ذَاكَ أَوْ أُرْسِلَ فَأَمَرَهُ بِأَكْلِهَا قَالَ عُبَيْدُ اللّٰهِ فَيُعْجِبُنِي أَنَّهَا أَمَةٌ وَ أَنَّهَا ذَبَحَتْ تَابَعَهُ عَبْدَةُ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ.

تپوس اونه کړم. یا' دا' ئې اووے چه څوک نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم له اولیږم' چۀ حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم نه تپوس اوکړي. هغه خپله دَدے متعلق دَ نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم نه تپوس اوکۀ. یا هغې چا تپوس اوکۀ' چه هغه لیږلے وو. نو حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم دَ' هغې دَ' خوړلو حکم اوکۀ' دَ عبیداللّٰه بیان دے' ماته دا خبره ډیره ښه معلومه شوه' چه هغې' سره دَدے چه وینزه وه' چیلئې ئې ذبحه کړه. عبده دَ عبیداللّٰه نه دَدے متابع حدیث روایت کړیدے.

**باب ۵۵۳:** وَكَالَةُ الشَّاهِدِ وَالْغَائِبِ جَائِزَةٌ وَ كَتَبَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عَمْرٍو إِلٰى قَهْرَمَانِهِ وَهُوَ غَائِبٌ عَنْهُ أَنْ يُزَكِّيَ عَنْ أَهْلِهِ الصَّغِيرِ وَالْكَبِيرِ.

**باب ۵۵۳:** حاضر او غائب وکیل جوړول درست دي. او عبداللّٰه بن عمرؓ د خپل وکیل ته اولیکل' چه دَ خپل کور' دَ ټولو وړو' لویو سړو دَ طرف نه صدقه فطر ادا کړي.

**۸۵۲:** حَدَّثَنَا أَبُو نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ سَلَمَةَ عَنْ أَبِي سَلَمَةَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ كَانَ لِرَجُلٍ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سِنٌّ مِنَ الْإِبِلِ فَجَاءَهُ يَتَقَاضَاهُ فَقَالَ أَعْطُوهُ فَطَلَبُوا سِنَّهُ فَلَمْ يَجِدُوا لَهُ إِلَّا سِنًّا فَوْقَهَا فَقَالَ أَعْطُوهُ فَقَالَ أَوْفَيْتَنِي أَوْفَى اللّٰهُ بِكَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ خِيَارَكُمْ أَحْسَنُكُمْ قَضَاءً.

**۸۵۲:** ابو نعیم. سفیان. سلمه. ابوسلمه. حضرت ابوهریرهؓ نه روایت کوي' چه دَ' یو خاص عمر اوښ په نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم دَ چا سړي قرض وو. هغه حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم ته تقاضا کولو د پاره راغے' نو حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم صحابهؓ ؤ ته اوفرمائیل' ده له ورکړئ. خلقو دَ هغې عمر اوښ تلاش کۀ. دَ هغې عمر اوښ' خو ئې بیانه موند' لیکن دَ هغې نه دَ زیات عمر اوښ ئې بیاموند. حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل' دۀ له ئې ورکړئ. هغې سړي اووے' تاسو ماله پوره حق راکه. اللّٰه دِ تاسو له هم پوره حق درکړي. نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم ورته اوفرمائیل. تاسو کښې دَ ټولو نه بهتر سړے هغه دے' چه قرض ښه طور سره ادا کړي.

باب ۵۵۴: اَلْوَكَالَةِ فِيْ قَضَاءِ الدُّيُوْنِ.

۸۵۳: حَدَّثَنَا سُلَيْمٰنُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ سَلَمَةَ ابْنِ كُهَيْلٍ سَمِعْتُ اَبَا سَلَمَةَ بْنَ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَجُلًا اَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَقَاضَاهُ فَاَغْلَظَ فَهَمَّ بِهٖ اَصْحَابُهٗ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَعُوْهُ فَاِنَّ لِصَاحِبِ الْحَقِّ مَقَالًا ثُمَّ قَالَ اَعْطُوْهُ سِنًّا مِثْلَ سِنِّهٖ قَالُوْا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِلَّا اَمْثَلَ مِنْ سِنِّهٖ فَقَالَ اَعْطُوْهُ فَاِنَّ مِنْ خَيْرِكُمْ اَحْسَنَكُمْ قَضَاءً.

باب ۵۵۴: د قرض ادا کولو کښې د، وکیل جوړولو بیان.

۸۵۳: سلیمان بن حرب. شعبه. سلمه بن کهیل، ابوسلمه بن عبدالرحمٰن. ابوهریرهؓ نه روایت کوي، یو سړے نبي صلي الله علیه وسلّم له تقاضا کولو (اوبن غوښتلو) د پاره راغے، او سختي ئې شروع کړه. صحابهؓو د هغه وهل غوښتل، نو رسول الله صلي الله علیه وسلّم اوفرمائیل. دے پرېږدئ. د چا چه حق وي. هغه دغسې خبرے کوي. بیائے اوفرمائیل ده له د، ده د، اوبن د عمر اوبن ورکړئ. خلقو عرض اوکه، یا رسول اللّٰه. د هغهٔ د عمر خو نشته. لیکن د هغه نه د زیات عمر شته. حضور صلي الله علیه وسلّم اوفرمائیل، هم هغه ده له ورکړئ. تاسو کښې بهتر هغه سړے دے چه په ښه طریقه قرض ادا کړي.

باب ۵۵۵: اِذَا وَهَبَ شَيْئًا لِوَكِيْلٍ اَوْ شَفِيْعِ قَوْمٍ جَازَ لِقَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِوَفْدِ هَوَازِنَ حِيْنَ سَاَلُوْهُ الْمَغَانِمَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَصِيْبِيْ لَكُمْ.

باب ۵۵۵: هر کله چه وکیل یا، د یو قوم سفارشي ته څه څیز هبه کړي، نو جائز دي. ځکه چه نبي صلي الله علیه وسلّم د، هوازن وفد ته، چه هغوي د غنیمت مال واپس اوغوښتلو، نو حضور صلي الله علیه وسلّم ورته اوفرمائیل، زه خپله حصه تاسو له درکوم.

۸۵۴: حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ عُفَيْرٍ قَالَ حَدَّثَنِي اللَّيْثُ قَالَ حَدَّثَنِيْ عُقَيْلٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ وَ زَعَمَ عُرْوَةُ اِنَّ مَرْوَانَ ابْنَ الْحَكَمِ وَالْمِسْوَرَ بْنَ مَخْرَمَةَ اَخْبَرَاهُ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَامَ حِيْنَ

۸۵۴: سعید بن عفیر. لیث. عقیل. ابن شهاب. عروه. مروان بن حکم او مسور بن مخرمه بیان کوي، رسول الله صلي الله علیه وسلّم ته چه د، هوازن وفد راغے، نو حضور صلي الله علیه وسلّم اودریدلو. حضور صلي الله علیه وسلّم ته هغے خلقو خواست اوکه، چه د هغوي قیدیان د واپس کړے شي.

جَاءَهُ وَفْدُ هَوَازِنَ مُسْلِمِيْنَ فَسَأَلُوْهُ
اَنْ يُرَدَّ اِلَيْهِمْ اَمْوَالَهُمْ وَ سَبْيَهُمْ
فَقَالَ لَهُمْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ
عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَحَبُّ الْحَدِيْثِ اِلَيَّ
اَصْدَقُهُ فَاخْتَارُوا اِحْدَى الطَّائِفَتَيْنِ
اِمَّا السَّبْيَ وَ اِمَّا الْمَالَ وَقَدْ كُنْتُ
اَسْتَأْنَيْتُ بِهِمْ وَقَدْ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ
صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ انْتَظَرَهُمْ
بِضْعَ عَشَرَةَ لَيْلَةً حِيْنَ قَفَلَ مِنَ
الطَّائِفِ فَلَمَّا تَبَيَّنَ لَهُمْ اَنَّ رَسُوْلَ
اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غَيْرُ رَآدٍّ
اِلَيْهِمْ اِلَّا اِحْدَى الطَّائِفَتَيْنِ قَالُوْا فَاِنَّا
نَخْتَارُ سَبْيَنَا فَقَامَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى
اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْمُسْلِمِيْنَ
فَاَثْنٰى عَلَى اللّٰهِ بِمَا هُوَ اَهْلُهُ ثُمَّ قَالَ
اَمَّا بَعْدُ فَاِنَّ اِخْوَانَكُمْ هٰؤُلَآءِ قَدْ
جَاءُوْنَا تَائِبِيْنَ وَ اِنِّيْ قَدْ رَاَيْتُ اَنْ
اُرُدَّ اِلَيْهِمْ سَبْيَهُمْ فَمَنْ اَحَبَّ مِنْكُمْ
اَنْ يُطَيِّبَ بِذٰلِكَ فَلْيَفْعَلْ وَمَنْ اَحَبَّ
اَنْ يَكُوْنَ عَلٰى حَظِّهٖ حَتّٰى نُعْطِيَهُ اِيَّاهُ
مِنْ اَوَّلِ مَا يُفِيْءُ اللّٰهُ عَلَيْنَا فَلْيَفْعَلْ
فَقَالَ النَّاسُ قَدْ طَيَّبْنَا ذٰلِكَ لِرَسُوْلِ
اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّا لَا
نَدْرِيْ مَنْ اَذِنَ مِنْكُمْ فِيْ ذٰلِكَ مِمَّنْ
لَمْ يَاْذَنْ فَارْجِعُوْا حَتّٰى يَرْفَعُوْا اِلَيْنَا
عُرَفَاؤُكُمْ اَمْرَكُمْ فَرَجَعَ النَّاسُ

رسول الله صلي الله عليه وسلم ورته اوفرمائيل خما
ريښتنې خبره ډيره خوښه ده، نو دوه خبرو کښې يوه خبره
اختيار کړئ، يا قيديان واپس واخلئ. يا مال او ما خو د
هغوي د راتلو (جعرانه کښې) انتظار کړے وو. رسول الله
صلي الله عليه وسلم ددے خلقو د لسو شپونه زيات
انتظار کړے وو. کوم وخت چه د طائف نه واپس شوے
وو. هر کله چه هغې خلقو ته معلومه شوه، چه رسول الله
صلي الله عليه وسلم دوه څيزونو کښې يو څيز واپس
کوي، نو هغې خلقو اووے، چه مونږ خپل قيديان اخلو.
(يعني قيديان واپس کړئ) رسول الله صلي الله عليه
وسلم د مسلمانانو مينځ کښې اودريدلو، او د الله تعريف
ئے بيان کړ چه د هغې، هغه مستحق دے. بيائے
اوفرمائيل. اما بعد (دے نه پس) ستاسو دا ورونړه مونږ
ته توبه ګار راغلي دي. او خما خيال دے، چه د، دوي
قيديان دوي ته واپس کړو، نو کوم سړے چه په خوښه
(بخوشي) واپس کول غواړي نو واپس دې کړي. او کوم
سړے چه دا غواړي، چه د هغه حصه دے باقي وي، په
دے طور، چه کوم د ټولو نه مخکښې فتح وي، نو مونږ به
(هغې کښې) د هغه عوض ورکړو، نو دغسے دې اوکړي.
خلقو اووے، مونږ، د، رسول الله صلي الله عليه وسلم په
خاطر دا ټول بے معاوضے واپس کوو. رسول الله صلي
الله عليه وسلم اوفرمائيل، مونږ ته نه ده معلومه، چه تاسو
کښې چاته دا خبره منظوره ده، او چاته نامنظوره.
تاسو خلق واپس شئ، او ستاسو سرداران دے
راشي، مونږ ته دے اووائي، خلق واپس شو، د
هغوي سردارانو هغوي سره خبرے اوکړے، بيا

فَكَلَّمَهُمْ عُرَفَاؤُهُمْ ثُمَّ رَجَعُوْا إِلَى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَخْبَرُوْهُ أَنَّهُمْ قَدْ طَيَّبُوْا وَ أَذِنُوْا.

رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم ته واپس راغلل نو هغے خلقو اووے چه خلق قيديانو واپس كولو باندے راضي دي.

باب۵۵۶: إِذَا وَكَّلَ رَجُلٌ أَنْ يُعْطِيَ شَيْئًا وَلَمْ يُبَيِّنْ كَمْ يُعْطِيْ فَأَعْطٰى عَلٰى مَا يَتَعَارَفُهُ النَّاسُ.

باب۵۵۶: يو سړي څوك د څه وركولو د پاره وكيل جوړ كړ' او دائے بيان نه كړه' چه څومره وركړي او هغه د' دستور مطابق وركړي.

۸۵۵: حَدَّثَنَا الْمَكِّيُّ بْنُ إِبْرَاهِيْمَ حَدَّثَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ عَنْ عَطَاءِ بْنِ أَبِيْ رَبَاحٍ وَغَيْرُهُ يَزِيْدُ بَعْضُهُمْ عَلٰى بَعْضٍ وَلَمْ يُبَلِّغْهُ كُلُّهُمْ رَجُلٌ وَاحِدٌ مِّنْهُمْ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ كُنْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ سَفَرٍ فَكُنْتُ عَلٰى جَمَلٍ ثِقَالٍ إِنَّمَا هُوَ فِيْ اٰخِرِ الْقَوْمِ فَمَرَّبِيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ مَنْ هٰذَا قُلْتُ جَابِرُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ مَالَكَ قُلْتُ إِنِّيْ عَلٰى جَمَلٍ ثِقَالٍ قَالَ أَمَعَكَ قَضِيْبٌ قُلْتُ نَعَمْ قَالَ أَعْطِنِيْهِ فَأَعْطَيْتُهُ فَضَرَبَهُ فَزَجَرَهُ فَكَانَ مِنْ ذٰلِكَ الْمَكَانَ مِنْ أَوَّلِ الْقَوْمِ قَالَ بِعْنِيْهِ فَقُلْتُ بَلْ هُوَ لَكَ يَا

۸۵۵: مكي بن ابراهيم. ابن جريج. عطاء بن ابي رباح وغيره نه روايت دے. يو د بل نه څه زياتي سره روايت كوي' ټولو دا جابر ته اونه رسولو' بلكه هغوي كښې يو سړي جابر بن عبداللّٰه نه روايت اوكړ' هغه اووے' چه زۀ يو سفر كښې نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم سره ووم. خو زۀ يو سست اوښ باندے سور' ووم. او هغه به د ټولو نه روستو وو. نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم خما په خوا كښې تير شو' او تپوس ئے اوكړ' څوك دے' ما عرض اوكړ' جابر بن عبداللّٰه. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم تپوس اوكړ' څه خبره ده. ما جواب وركړ' زۀ يو سست رفتار اوښ باندے سور يم. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل' تا سره څه لختة (چهړى) هم شته. ما عرض اوكړ جي او' حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل ماله ئے راكړه. ما هغه لختة (يا لرگے) حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم له وركړه. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم په هغے اوښ اووهلو. د هغے ځائے نه چه روان شو نو د ټولو نه مخكښې شو. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل' دا په ما خرڅ كړه. ما عرض اوكړ يا رسول اللّٰه! دا ستاسو دے (يعني بے معاوضے ئے واخلئ) حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل' دا په ما خرڅ كړه. بيائے

رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ بِعْنِيْهِ قَالَ اَخَذْتُهُ بِاَرْبَعَةِ دَنَانِيْرَ وَلَكَ ظَهْرُهُ اِلَى الْمَدِيْنَةِ فَلَمَّا دَنَوْنَا مِنَ الْمَدِيْنَةِ اَخَذْتُ اَرْتَحِلُ قَالَ اَيْنَ تُرِيْدُ قُلْتُ تَزَوَّجْتُ اِمْرَاَةً قَدْ خَلَا مِنْهَا قَالَ فَهَلَّا جَارِيَةً تُلَاعِبُهَا وَ تُلَاعِبُكَ قُلْتُ اِنَّ اَبِيْ تُوُفِّيَ وَ تَرَكَ بَنَاتٍ فَاَرَدْتُ اَنْ اَنْكِحَ اِمْرَاَةً قَدْ جَرَّبَتْ خَلَا مِنْهَا قَالَ فَذَالِكَ فَلَمَّا قَدِمْنَا الْمَدِيْنَةَ قَالَ يَا بِلَالُ اَقْضِهِ وَزِدْهُ فَاَعْطَاهُ اَرْبَعَةَ دَنَانِيْرَ وَ زَادَهُ قِيْرَاطًا قَالَ جَابِرٌ لَا تُفَارِقُنِيْ زِيَادَةُ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمْ يَكُنِ الْقِيْرَاطُ يُفَارِقُ جِرَابَ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰه.

اوفرمائیل، ذَ څلورو دینارو په عوض دا ما واخست. او ته به مدینې پورې په دې سور، ئې. کوم وخت چه مونږ مدینې ته نزدې اورسیدو، نو زهٔ خپل مکان طرف ته روان ووم. حضور صلي الله علیه وسلّم تپوس اوکهٔ د کوم خائې دې اراده ده. ما عرض اوکهٔ، چه ما یوې کُنډې ښځې سره نکاح کړې ده. حضور صلي الله علیه وسلّم اوفرمائیل، جینۍ ښځه دې ولې نه کوله، چه ته هغې سره لوبیدې، او هغه تاسره لوبیده، ما عرض اوکهٔ، خما پلار مړشوې دې. او څو لونړه ترې پاتې شوې دي. نو ما اوغوښتل چه داسې ښځې سره نکاح اوکړم، چه تجربه کاره کُنډه وي. حضور صلي الله علیه وسلّم اوفرمائیل، ته ټیک وائې. کوم وخت چه مونږ مدینې ته اورسیدو، نو حضور صلي الله علیه وسلّم اوفرمائیل، اې بلالؓ، جابرؓ له ذدې قیمت ورکړه، او زیات ورکړه، نو ماته ئې څلور دیناره او یو قیراط سره زر هغه نه زیات راکړل. ذَ جابرؓ بیان دې، ذَ، رسول الله صلي الله علیه وسلّم راکړې یو قیراط سرهٔ زر (سونا) څمونږ نه جدا کیږي نه. هغه به برابر ذَجابر په تهیلۍ کښې وؤ. کله به ترې جدا کیدل نهٔ[۱].

۱. کتاب الشروط کښې به دا حدیث دوباره راځي. دلته ئې دا مفصل دده د آخري حصې په وجې سره ذکر کړې دې. په هغې کښې دي چه حضور صلي الله علیه وسلّم بلال رضي الله عنه ته اوفرمائیل چه جابر رضي الله عنه له هغه قیمت سره څه زیات هم ورکړه. پاک حضرت بلال رضي الله عنه لده وکیل جوړ کړو او قیمت نه ذَ زیات ورکولو ئې ورته اووې لیکن د هغې تعیین ئې اونه کړو چه څومره زیات ورکړه. بیا بلال رضي الله عنه یو قیراط زیات ورکړو. ددې نه دا خبره معلومه شوه چه که چرې دا قسمه صورتحال پیښ شي نو په دې کښې هیڅ بدیت نیشته.

## بَابُ ۵۵۷: وَكَالَةِ الْاِمْرَاَةِ الْاِمَامَ فِي النِّكَاحِ.

باب ۵۵۷: نکاح کښې ذ ښځې، امام لره ذَ وکیل جوړولو بیان.

۸۵۶: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ اَبِيْ حَازِمٍ عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ قَالَ جَآءَ تِ امْرَاَةٌ اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَتْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنِّيْ قَدْ وَهَبْتُ لَكَ مِنْ نَّفْسِيْ فَقَالَ رَجُلٌ زَوِّجْنِيْهَا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ قَدْ زَوَّجْنَاكَهَا بِمَا مَعَكَ مِنَ الْقُرْاٰنِ.

بَابُ ۵۵۸: اِذَا وَكَّلَ رَجُلًا فَتَرَكَ الْوَكِيْلُ شَيْئًا فَاَجَازَهُ الْمُوَكِّلُ فَهُوَ جَآئِزٌ وَّ اِنْ اَقْرَضَهُ اِلٰى اَجَلٍ مُسَمًّى جَازَ وَ قَالَ عُثْمَانُ بْنُ الْهَيْثَمِ اَبُوْ عَمْرٍو حَدَّثَنَا عَوْفٌ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ سِيْرِيْنَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ وَ كَّلَنِيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ بِحِفْظِ زَكٰوةِ رَمَضَانَ فَاَتَانِيْ اٰتٍ فَجَعَلَ يَحْثُوْا مِنَ الطَّعَامِ فَاَخَذْتُهُ وَقُلْتُ وَاللّٰهِ لَاَرْفَعَنَّكَ اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِنِّيْ مُحْتَاجٌ وَ عَلَيَّ عِيَالٌ وَّلِيْ حَاجَةٌ شَدِيْدَةٌ قَالَ فَخَلَّيْتُ عَنْهُ فَاَصْبَحْتُ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَا اَبَا هُرَيْرَةَ مَا فَعَلَ اَسِيْرُكَ الْبَارِحَةَ قَالَ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ شَكَا حَاجَةً شَدِيْدَةً وَّ عِيَالًا

۸۵۶: عبدالله بن یوسف. مالک. ابو حازم. سهیل بن سعد نه روایت کوي. یو ښځه د رسول الله صلي الله علیه وسلّم خدمت کښې حاضره شوه، او عرض ئے اوکهٔ یا رسول الله! ما خپل ځان تاسو ته هبه کهٔ (اوبښهٔ) یو سړي اووے. حضورٌ خما نکاح دے ښځے سره اوکړئ. حضور صلي الله علیه سلّم اوفرمائیل، ما ستا نکاح دے ښځے سره دَ هغے قرآن په عوض کښې اوکړه، چه تاته یاد دے.

باب ۵۵۸: کهٔ یو سړے وکیل جوړ کړي او وکیل څه څیز پریږدي. بیا مؤکل هغه جائز اوګنړي، نو جائز دي، او کهٔ وکیل دَ مقرره وخته پورے قرض ورکړي، نو جائز دي. عثمان بن هیثم ابو عمرو بیان اوکهٔ، چه ماته عوف، هغه دَ محمد بن سیرین نه، هغه دَ ابو هریرهٌ نه حدیث بیان که، هغه اووے، چه زهٔ رسول الله صلي الله علیه وسلّم دَ، رمضان دَ، زکوٰة په حفاظت مقرر کړم. ماته یو سړے راغے، او د غلے نه ئے لپے ډکول شروع کړل ما هغه اونیولو. او اوم وے، قسم په خدائے زهٔ به تا رسول الله صلي الله علیه وسلم له بوځم. هغه اووے زهٔ محتاج یم، او خما په سر، د ښځے او د بچو د پرورش ذمه واري ده او ماته سخت ضرورت دے. ما هغه پریښودلو، چه سحر شو. نو نبي صلي الله علیه وسلّم اوفرمائیل ستا دَ شپے قیدي څه اووے، ما عرض اوکهٔ، یا رسول الله! هغه دَ سخت ضرورت او دَ بال بچ شکایت اوکړو. نو خما پرے رحم راغے. او ما هغه پریښودلو. حضور صلي الله علیه وسلّم ورته اوفرمائیل، هغه دروغجن دے. او بیا به راځي. د رسول الله صلي

فَرَحِمْتُهُ فَخَلَّيْتُ سَبِيْلَهُ قَالَ اَمَا
اَنَّهُ قَدْ كَذَبَكَ وَ سَيَعُوْدُ فَعَرَفْتُ اَنَّهُ
سَيَعُوْدُ لِقَوْلِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ
عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّهُ سَيَعُوْدُ فَرَصَدْتُّهُ
فَجَآءَ يَحْثُوْا مِنَ الطَّعَامِ فَاَخَذْتُهُ
فَقُلْتُ لَاَرْفَعَنَّكَ اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ
صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ دَعْنِىْ
فَاِنِّىْ مُحْتَاجٌ وَّ عَلَىَّ عِيَالٌ لَّا اَعُوْدُ
فَرَحِمْتُهُ فَخَلَّيْتُ سَبِيْلَهُ فَاَصْبَحْتُ
فَقَالَ لِىْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ
عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَا اَبَا هُرَيْرَةَ مَا فَعَلَ
اَسِيْرُكَ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ شَكَا
حَاجَةً شَدِيْدَةً وَّ عِيَالًا فَرَحِمْتُهُ
فَخَلَّيْتُ سَبِيْلَهُ قَالَ اَمَا اَنَّهُ قَدْ كَذَبَكَ
وَ سَيَعُوْدُ فَرَصَدْتُّهُ الثَّالِثَةَ فَجَآءَ
يَحْثُوْا مِنَ الطَّعَامِ فَاَخَذْتُهُ فَقُلْتُ
لَاَرْفَعَنَّكَ اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ
عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ هٰذَا اٰخِرُ ثَلٰثِ مَرَّاتٍ
اَنَّكَ كَلِمٰتٍ يَنْفَعُكَ اللّٰهُ تَزْعَمُ لَا تَعُوْدُ
ثُمَّ تَعُوْدُ قَالَ دَعْنِىْ اُعَلِّمْكَ كَلِمٰتٍ
يَنْفَعُكَ اللّٰهُ بِهَا قُلْتُ مَاهُوَ قَالَ اِذَا
اَوَيْتَ اِلٰى فِرَاشِكَ فَاقْرَاْ اٰيَةَ الْكُرْسِيِّ
اَللّٰهُ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ الْحَيُّ الْقَيُّوْمُ
حَتّٰى تَخْتِمَ الْاٰيَةَ فَاِنَّكَ لَنْ يَزَالَ
عَلَيْكَ مِنَ اللّٰهِ حَافِظٌ وَّلَا يَقْرَبَنَّكَ
شَيْطَانٌ حَتّٰى تُصْبِحَ فَخَلَّيْتُ سَبِيْلَهُ

اللّٰه عليه وسلّم دَ فرمائيلو په وجه ماته يقين راغے چه هغه
به بيا راځي. نو زهٔ دَ هغه منتظر ووم. هغه راغے' او لپے
ډکول ئے شروع کړل. ما هغه اونيولو. او ورته م اووے
چه زهٔ به تا دَ' رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم په خدمت
کښ حاضروم. هغه اووے ما پريږده زه محتاج يم او په
ما دَ ښځے او بچو د پرورش ذمه واري ده بيا به زهٔ نه
راځم' نو ځما پرے رحم راغے. او ما هغه پريښودلو. چه
سحر شو' نو ماته رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم
اوفرمائيل' ستا قيدي څه اووے. ما عرض اوکهٔ' يا رسول
اللّٰه! هغه سخت ضرورت بيان کهٔ' او دَ ښځے او بچو دَ
ذمه وارئ شکايت ئے اوکهٔ. نو ځما پرے رحم راغے' او
ما هغه پريښودو. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم
اوفرمائيل' ياد لره هغه دروغجن دے. بيا به هم راځي. زه
په دريمه ورځ دَ هغه په انتظار کښ ووم. هغه راغے او
غله اخستل ئے شروع کړل. نو ما اونيوؤ. او اوم وے
ورته' زهٔ به تا رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم له ضرور
بوځم او دا دريم ځل دے' تا هر' وارے دغه اووے' چه
بيا به نه راځم. خو ته هر ځلے راځے. هغه ورته اووے' ما
پريږده' زه به تاته داسے کلمات اوښايم' چه دَ هغے په
ذريعه به اللّٰه تعالي تاته فائده اورسوي. ما ترے تپوس
اوکه هغه کوم کلمات دي. هغه اووے کوم وخت چه ته
خپلے بسترے ته ورځے نو آيت کرسي لا الٰه الا هو
الحيي القيوم اخر ايت پورے لوله. نو دَ' اللّٰه دَ' طرف نه
به يوه فرښته ستا نگراني کوي. او سحر پورے به شيطان
تاله نه راځي. نو ما هغه پريښودو' چه سحر شو' نو رسول
اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم تپوس اوکه' ستا دَ شپے دَ قيدي

فَأَصْبَحْتُ فَقَالَ لِيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا فَعَلَ أَسِيْرُكَ الْبَارِحَةَ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ زَعَمَ أَنَّهُ يُعَلِّمُنِيْ كَلِمَاتٍ يَّنْفَعُنِيَ اللّٰهُ بِهَا فَخَلَّيْتُ سَبِيْلَهُ قَالَ مَاهِيَ قُلْتُ قَالَ لِيْ إِذَا أَوَيْتَ إِلَى فِرَاشِكَ فَاقْرَأْ آيَةَ الْكُرْسِيِّ مِنْ أَوَّلِهَا حَتّٰى تَخْتِمَ اللّٰهُ لَا إِلٰهَ إِلَّا هُوَ الْحَيُّ الْقَيُّوْمُ وَ قَالَ لِيْ لَنْ يَّزَالَ عَلَيْكَ مِنَ اللّٰهِ حَافِظٌ وَّلَا يَقْرَبُكَ شَيْطَانٌ حَتّٰى تُصْبِحَ وَ كَانُوْا أَحْرَصَ شَيْءٍ عَلَى الْخَيْرِ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمَا إِنَّهُ قَدْ صَدَقَكَ وَهُوَ كَذُوْبٌ تَعْلَمُ مَنْ تُخَاطِبُ مُنْذُ ثَلَاثٍ لَيَالٍ يَا أَبَا هُرَيْرَةَ قَالَ لَا قَالَ ذَاكَ شَيْطَانٌ.

څه چل اوشو. ما عرض اوکهٔ یا رسول اللّٰه! هغه اووے چه هغه به ماته داسے کلمات اوښائي چه هغے نه به اللّٰه تعالی ماتـه فائده اورسوي نو په دے وجه ما هغه پریښودلو حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم ترے تپوس اوکهٔ هغه کلمات کوم دي ما عرض اوکهٔ چه هغه ماته اوښودل چه کله ته خپلے بسترے ته ځے نو ایت کرسي د ابتدا نه لوله تردے چه لا الـه الا هو الحی القیوم ختم کړے. او هغه بیان اوکهٔ چه د اللّٰه د طرف نه به ستا یو محافظ وي او تاته به د سحر پورے شیطان نه راځي. او صحابهٔ د خیر ډیر حریص وو. حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل چه دا خو هغه ټیک خبره کړے ده لیکن هغه ډیر دروغجن دے اے ابوهریرهٔ ته پوهیږے چه درے شپے تا چاسره خبرے اترے کولے. ابوهریره جواب ورکړ نه نو حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم ورته اوفرمائیل هغه شیطان وو.

ف: دے حدیث کښې د آیت کرسي فیوضات په ګوته شوي دي. چه هر څوک ترے فیضیاب کیدے شي اللّٰه پاک دے ترے مونږ هم فیضیاب کړي. آمین

## بَابُ ۹۵۵: إِذَا بَاعَ الْوَكِيْلُ شَيْئًا فَاسِدًا فَبَيْعُهُ مَرْدُوْدٌ.

## باب ۹۵۵: هر کله چه وکیل څه خراب څیز خرڅ کړي نو د هغه بیع مقبول نه ده.

۸۵۷: حَدَّثَنَا إِسْحٰقُ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ صَالِحٍ حَدَّثَنَا مُعْوِيَةُ هُوَابْنُ سَلَامٍ عَنْ يَّحْيَى قَالَ سَمِعْتُ عُقْبَةَ بْنَ عَبْدِ الْغَافِرِ أَنَّهُ سَمِعَ أَبَا سَعِيْدِ الْخُدْرِيَّ قَالَ جَآءَ بِلَالٌ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِتَمْرٍ بَرْنِيٍّ فَقَالَ لَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

۸۵۷: اسحٰق. یحیی بن صالح. معاویه بن سلام. یحیی. عقبه بن عبدالغافر. ابو سعید خدري متعلق بیان کوي ما د هغه نه واوریدل. چه بلال حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم له برني (د یو اعلی قسم) قجورے راوړے حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم ترے تپوس اوکهٔ. د کوم ځائے نه دے راوړے. بلال عرض اوکهٔ ماسره د خراب قسم قجورے

وَسَلَّمَ مِنْ اَیْنَ هٰذَا قَالَ بِلَالٌ کَانَ عِنْدَنَا تَمْرٌ رَدِیٌّ فَبِعْتُ مِنْهُ صَاعَیْنِ بِصَاعٍ لِنُطْعِمَ النَّبِیَّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ النَّبِیُّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ عِنْدَ ذَالِكَ اَوَّهْ اَوَّهْ عَیْنُ الرِّبَا عَیْنُ الرِّبَا لَا تَفْعَلْ وَلٰکِنْ اِذَا اَرَدْتَّ اَنْ تَشْتَرِیَ فَبِعِ التَّمْرَ بِبَیْعٍ اٰخَرَ ثُمَّ اشْتَرِ بِهٖ.

وی' ما دَ' یو صاع په عوض دوه صاع قجوری خرڅی کړی' چه په نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم ئی اوخوروم. نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم هغه وخت اوفرمائیل' اوّه. اوّه. دا' خو بالکل سود دی. دا خو بالکل سود دی. داسی مه کوه' بلکه ته چه اخستل غواړی' نو خپلی قجوری دَ څه څیز په بدله خرڅی کړه. بیا دَ' هغی په عوض نوری قجوری واخله.

**باب ۰ ۵۶ : اَلْوَکَالَةِ فِی الْوَقْفِ وَ نَفَقَتِهٖ وَ اَنْ یُّطْعِمَ صَدِیْقًا لَّهٗ وَ یَاْکُلَ بِالْمَعْرُوْفِ.**

**باب ۰ ۵۶ :** وقف کښ دَ' وکیل کیدو' او دَ' وکیل دَ خرڅ او په خپلو دوستانو' دَ خوړلو او خپله دَ' دستور مطابق[۱] دَ' خوړلو بیان.

۱. دلته وکیل نه مراد ناظر او متولي دی که چری د وقف کونکي اجازت وي نو د هغهٔ مال خپلو دوستانو باندی صدقه کولی شي او دا خو ښکاره ده چه کله متولي د وقف دپاره کار کوي نو د خپل گذران د پاره به د هغی نه اخلي.

۸۵۸ : حَدَّثَنَا قُتَیْبَةُ بْنُ سَعِیْدٍ حَدَّثَنَا سُفْیَانُ عَنْ عَمْرٍو قَالَ فِیْ صَدَقَةِ عُمَرَ لَیْسَ عَلَی الْوَلِیِّ جُنَاحٌ اَنْ یَّاْکُلَ وَ یُوْکِلَ صَدِیْقًا لَّهٗ غَیْرَ مُتَاَثِّلٍ مَّالًا فَکَانَ ابْنُ عُمَرَ هُوَ یَلِیْ صَدَقَةَ عُمَرَ یُهْدِیْ لِلنَّاسِ مِنْ اَهْلِ مَکَّةَ کَانَ یُنْزِلُ عَلَیْهِمْ.

۸۵۸ : قتیبه بن سعید. سفیان. عمرو نه روایت کوي' دَ هغه بیان دی' دَ حضرت عمرؓ دَ صدقه کتاب کښ دا مضمون وو' چه د متولّي خوړلو او دَ' دوستانو په خوړولو کښ څه گناه نشته. په شرط دَ دی چه دَ مال جمع کولو اراده ئی نه وي. ابن عمرؓ دَ حضرت عمرؓ دَ صدقی متولي وو. اهل مکه چه به کله ورتلل' نو هدیه به ئی ورته لیږله.

**باب ۱ ۵۶ : اَلْوَکَالَةِ فِی الْحُدُوْدِ.**

**باب ۱ ۵۶ :** حدودو کښ دَ' وکالت بیان.

۸۵۹ : حَدَّثَنَا اَبُو الْوَلِیْدِ اَخْبَرَنَا اللَّیْثُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُبَیْدِ اللّٰهِ عَنْ زَیْدِ بْنِ خَالِدٍ وَّ اَبِیْ

۸۵۹ : ابو الولید. لیث. ابن شهاب. عبیداللّٰه. زید بن خالد او ابوهریرهؓ دَ نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم نه روایت کوي. حضور

هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ وَاغْدُيَا أُنَيْسُ إِلَى امْرَأَةِ هٰذَا فَإِنِ اعْتَرَفَتْ فَارْجُمْهَا.

صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل' اے انيس' هغے ښځے له ورشه' که هغه اقرار او کړي' نو هغه سنګساره کړئ.

۱. دا روايت د کتاب الحدود دے او هلته به تفصيل سره راخي. دا د يوے ښځے د زنا واقعه ده دلته ئے اختصار سره صرف د حديث هغه حصه بيانه کړه کومه کښے چه حضور صلي الله عليه وسلّم انيس لره خپل وکيل جوړ کړے او ليګلے وو.

۸۶۰: حَدَّثَنَا ابْنُ سَلَامٍ أَخْبَرَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ الثَّقَفِيُّ عَنْ أَيُّوبَ عَنِ ابْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ عَنْ عُقْبَةَ بْنِ الْحَارِثِ قَالَ جِيءَ بِالنُّعَيْمَانِ أَوِ ابْنِ النُّعَيْمَانِ شَارِبًا فَأَمَرَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ كَانَ فِي الْبَيْتِ أَنْ يَضْرِبُوا قَالَ فَكُنْتُ أَنَا فِيمَنْ ضَرَبَهُ فَضَرَبْنَاهُ بِالنِّعَالِ وَالْجَرِيدِ.

۸۶۰: ابن سلام. عبدالوهاب. ثقفي. ايوب. ابن ابي مليکه. عقبه بن حارث نه روايت دے' چه نعيمان يا ابن نعيمان داسے حالت کښې راوستے شو' چه هغه شراب څکلي وو. نو رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم هغے خلقو ته چه کور کښې موجود وو' حکم او کړو' چه دے اووهي. د هغه په وهونکو کښې زه هم ووم' او مونږ هغه په پڼرو' او' په لختو اووهلو.

## باب ۵۶۲: اَلْوَكَالَةِ فِي الْبُدْنِ وَتَعَاهُدِهَا.

## باب ۵۶۲: د قربانئ په اوښانو کښې د وکالت' او' د هغوي د نګرانئ بيان.

۸۶۱: حَدَّثَنَا إِسْمٰعِيلُ بْنُ عَبْدِ اللهِ قَالَ حَدَّثَنِي مَالِكٌ عَنْ عَبْدِ اللهِ ابْنِ أَبِي بَكْرِ بْنِ حَزْمٍ عَنْ عَمْرَةَ بِنْتِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ أَنَّهَا أَخْبَرَتْهُ قَالَتْ عَائِشَةُ أَنَا فَتَلْتُ قَلَائِدَ هَدْيِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِيَدَيَّ ثُمَّ قَلَّدَهَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِيَدِهِ ثُمَّ بَعَثَ بِهَا مَعَ أَبِي بَكْرٍ فَلَمْ يَحْرُمْ عَلَى رَسُولِ

۸۶۱: اسمعيل بن عبداللّٰه. مالک. عبداللّٰه بن ابي بکر بن حزم. عمره بن عبدالرحمٰن د بي بي عائشے متعلق بيان کوي. هغه فرمائي' ما د رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم د قربانئ د څناورو هار په خپل لاس جوړ کړلو (او پنړلو) بيا رسول اللّٰه صلي الله عليه وسلّم خپل لاس سره د هغوي په ګردنونو کښې واچولو' او هغه ئے څما پلار سره اوليږلو. رسول الله صلي الله عليه وسلّم باندے د' اللّٰه حلال کړے هيڅ حلال

اللّٰه صلّى اللّٰه عليه وسلّم شيءٍ أحلّه اللّٰه له حتّى نحر الهدي.

**باب ۵۶۳: إذا قال الرّجل لوكيله ضعه حيث أراك اللّٰه وقال الوكيل قد سمعت ما قلت.**

**۸۶۴:** حدّثني يحيى بن يحيى قال قرأت على مالك عن إسحٰق بن عبد اللّٰه أنّه سمع أنس بن مالك يقول كان أبو طلحة أكثر الأنصار بالمدينة مالاً وكان أحبّ أمواله إليه بيرحاء وكانت مستقبلة المسجد وكان رسول اللّٰه صلّى اللّٰه عليه وسلّم يدخلها ويشرب من ماءٍ فيها طيّبٍ فلمّا نزلت لن تنالوا البرّ حتّى تنفقوا ممّا تحبّون قام أبو طلحة إلى رسول اللّٰه صلّى اللّٰه عليه وسلّم فقال يا رسول اللّٰه إنّ اللّٰه تعالى يقول في كتابه لن تنالوا البرّ حتّى تنفقوا ممّا تحبّون وإنّ أحبّ أموالي إليّ بيرحاء وإنّها صدقة للّٰه أرجو برّها وذخرها عند اللّٰه فضعها يا رسول اللّٰه حيث شئت فقال بخ ذلك مال رائح ذلك مال رائح قد سمعت ما قلت فيها وأرى أن تجعلها في الأقربين قال

څيز حرام شوی نه وو' تر دې چې هغه هدي قرباني کړې شو.

**باب ۵۶۳:** هر کله چه يو سړې خپل وکيل ته وائي چه دا خرچ کوه' کوم ځائې چه تا ته مناسب ښکاري' او وکيل اووائي ما واوريدل' څه چه تا اووې.

**۸۶۴:** يحيى بن يحيى. مالک. اسحق بن عبدالله د' انس بن مالک نه واوريدل' چه ابو طلحه انصار مدينه کښې د ټولونه زيات مالدار وو. او بير حاء (باغ) هغه ته د ټولو نه زيات زړه پورې وو. د هغې رخ جمات طرف ته وو. رسول الله صلي الله عليه وسلم به هلته تلو. او د هغې خوږې اوبه به ئې څکلې. کوم وخت چه دا' آيت نازل شو. لن تنالوا البر' يعني تاسو نيکي هيڅ کله نه شې بيامندې' تر دې چه تاسو' د خپل محبوب ترين څيز نه خرڅ کړې. ابو طلحه رسول الله صلي الله عليه وسلم سره اودريدلو. او عرض ئې اوکړ' يا رسول الله' الله تعالي خپل کتاب کښې فرمائي' تاسو نيکي نه شئ بيامندې' څو پورې چه خپل محبوب ترين څيز صدقه نه کړئې. او ماته د ټولو نه زيات خوږ بيرحاء (باغ) دې. او هغه الله د پاره خيرات کوم' زه ددې د' نيکئ او د دې د ثواب' د' الله نه اميدوار يم' يا رسول الله' تاسو چه کوم ځائې غواړئ' دا اولګوئ. حضور صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل. ډير ښه. دا مال خو تلونکې. دا مال خو تلونکې دې (يا دا مال خو فائده رسونکې دې) تا چه څه اووې' هغه ما واوريدل. او زه مناسب ګڼړم' چه ته دا خپلو رشته دارانو کښې تقسيم کړه' ابو طلحه اووې. دغسې به کوم' يا رسول الله' نو

اَفْعَلُ يَا رَسُولَ اللّٰهِ فَقَسَمَهَا أَبُو طَلْحَةَ فِي أَقَارِبِهِ وَ بَنِي عَمِّهِ تَابَعَهُ إِسْمٰعِيلُ عَنْ مَالِكٍ وَ قَالَ رَوْحٌ عَنْ مَالِكٍ رَابِحٌ.

ابو طلحه هغه خپلو رشته دارانو او د تره خامنو كښې تقسيم كۀ اسمعيل د مالک نه د دې متابع حديث روايت كۀ او روح د مالک نه د رائج په ځائے رابح (فائده رسونكے) لفظ بيان كۀ.

باب ۵۶۴: وَكَالَةِ الْأَمِينِ فِي الْخِزَانَةِ وَ نَحْوِهَا.

باب ۵۶۴: خزانه وغيره كښې د امانتدار د وكيل جوړولو بيان.

۸۶۳: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ عَنْ بُرَيْدِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ عَنْ أَبِي بُرْدَةَ عَنْ أَبِي مُوسٰى عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الْخَازِنُ الْأَمِينُ الَّذِي يُنْفِقُ وَ رُبَّمَا قَالَ الَّذِي يُعْطِي مَا أُمِرَ بِهِ كَامِلًا مُوَفَّرًا طَيِّبٌ نَفْسُهُ إِلَى الَّذِي أُمِرَ بِهِ أَحَدُ الْمُتَصَدِّقِينَ.

۸۶۳: محمد بن علاء. ابو اسامه. بريد بن عبدالله. ابوبرده. ابو موسىٰ د نبي صلي الله عليه وسلم نه روايت كوي. حضور صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل امانتدار خزانچي چه خرچ كوي او كله ئے داسے اووے هغه سړے چه د حكم مطابق پوره په پوره خوشحالي سره هغه ور كوي چه د هغے د وركولو ورته حكم شوے وي نو هغه هم خيرات كونكو كښې دے.

مَا جَاءَ فِي الْحَرْثِ وَالْمُزَارَعَةِ.

د كر كيلے او نيم كارے په حقله چه كوم روايتونه نقل دي.

بَابٌ ۵۶۵: فَضْلِ الزَّرْعِ وَالْغَرْسِ إِذَا أُكِلَ مِنْهُ وَ قَوْلِهٖ تَعَالٰى أَفَرَءَ يْتُمْ مَّا تَحْرُثُونَ ءَ أَنْتُمْ تَزْرَعُونَهٗ أَمْ نَحْنُ الزَّارِعُونَ لَوْ نَشَآءُ لَجَعَلْنٰهُ حُطَامًا.

باب ۵۶۵: د فصل او ميوه دارو ونو د لګولو فضيلت هر كله چه خلق ترے اوخوري او د الله تعالي قول اوښائے هر كله چه تاسو كر كيله كوئ (فصل كرئ) نو آيا تاسو هغه رازرغنوئ كه مونږ ئے رازرغنونكي (راټوكونكي) يا كۀ مونږ اوغواړو نو هغه به ريزه ريزه كړو.

۸۶۴: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ ح وَ حَدَّثَنِي عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ الْمُبَارَكِ حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ أَنَسٍ قَالَ قَالَ

۸۶۴: قتيبه بن سعيد. ابوعوانه. ح (دوئم سند) عبدالرحمن بن مبارک. ابوعوانه. قتاده. حضرت انسؓ نه روايت كوي د هغه بيان دے رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل چه

رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا مِنْ مُسْلِمٍ يَغْرِسُ غَرْسًا اَوْ يَزْرَعُ زَرْعًا فَيَاكُلُ مِنْهُ طَيْرٌ اَوْ اِنْسَانٌ اَوْ بَهِيْمَةٌ اِلَّا كَانَ لَهُ بِهِ صَدَقَةٌ وَ قَالَ مُسْلِمٌ حَدَّثَنَا اَبَانٌ حَدَّثَنَا قَتَادَةُ حَدَّثَنَا اَنَسٌ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

مسلمان كومه ميوه داره اُونه لګوي يا كرونده كوي، او ذ هغې نه مارغان، سړي او څوپايه (څاروي، ځناور ۲۱ ناصح) خوري، نو ذ هغې ثواب هغه ته رسي. او ذ مسلم بيان دے، چه مونږ ته ابان هغه ته قتاده او قتاده ذ، انس نه او، انس ذ نبي صلي الله عليه وسلم نه روايت كړے دے.

بَاب ۵۶۶: مَا يُحْذَرُ مِنْ عَوَاقِبِ الْاِشْتِغَالِ بِاٰلَةِ الزَّرْعِ اَوْ مُجَاوِزَةِ الْحَدِّ الَّذِيْ اُمِرَ بِهِ.

باب ۵۶۶: ذ كركيلې په آلاتو كس ذ مصروف كيدو، يا ذ حد نه زيات ذ، تجاوز كولو ذ، بدي بيان.

۸۶۵: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ سَالِمٍ الْحِمْصِيُّ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ زِيَادٍ الْاَلْهَانِيُّ عَنْ اَبِيْ اُمَامَةَ الْبَاهِلِيِّ قَالَ وَرَاٰى سِكَّةً وَّ شَيْئًا مِّنْ اٰلَةِ الْحَرْثِ فَقَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ لَا يَدْخُلُ هٰذَا بَيْتَ قَوْمٍ اِلَّا اَدْخَلَهُ الذُّلُّ.

۸۶۵: عبدالله بن يوسف. عبدالله بن سالم حمص. محمد بن زياد الهاني. ابو امامه باهلي نه روايت كوي، چه هغه ذ يوې (هل) او كركيلې آلات اوليدل، نو وې وئيل ميا ذ نبي صلي الله عليه وسلم نه واوريدل حضور صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل، چه ذ كوم قوم په كور كښې دا داخل شي، نو هغې كور كښې ذلت داخل شي[۱].

۱. په معاشي ژوند كښې د زراعت د اهميت نه انكار نشي كيدے. ليكن دا داسې پيشه ده چه چرے سړے په دے كښې د ضرورت نه زيات ورډوبخت شي نو په طبيعت كښې د شوډ والي او ذ هقانيت غلبه راځي، ښه سم دم خلق ليدلې شوي دي كوم چه په خپل ژوند كښې كافي مهذب او شُسته وُو چه كله هغوئ په څه وجې سره زراعت او زميدارئ كښې زيانه مشغولتيا او بوختيدل اختيار كړل نو هغوئ په ژوند كښې ډير لوئے انقلاب راغے د هغوئ هر انداز بدل شو او په هيڅ كښې هم د كلي د زميدارو او كرونده كرونه هغوئ مختلف پاتې نشو.

اسلام غواړي چه اسلام د ژوند په كومه شعبه كښې هم وي، متمدن او مهذب دِ اوسي. اسلام د معاشرے متعلق يو خاص تخيل وړاندے كړے دے كوم كښې چه بنيادي حيثيت په تقوي، د خدائې ويرے او عامو انسانانو سره دهغوئ د مرتبو مطابق د معاملاتو په ښه والي باندے دے. كله چه انسان پر كركيله يا بل يو داسې دنياوي كار كښې زيات بوختيدل اختيار كړي كوم سره چه د اسلام بنيادي نظريات پيژندلو او په

مغې باندې عمل کولو نه بې پرواهي او لرې والې پیدا شي نو دا به د هغهٔ دیني او دنیاوي دواړو ژندګو د پاره هلاکونکي ثابت شي.

په دې حدیث کښې د زراعت محدود مذمت د همدې نقطه نظر په بنیاد باندې دې ځکه چه امام بخاري رحمة الله علیه هم د حدیث په عنوان کښې ددې په پوره توګه وضاحت کړې دې چه د حدیث نه مراد څه دې، ګنې تاسو ددې نه مخکښې باب په حدیث کښې چه د اونې لګونکي او زمیداره کونکي د پاره د ثواب کومه وعده لوستلې ده د هغې نه زیات ددې پیښې نور خومره همت زیاتول کیدې شو. دا قسمه احادیث ډیر راغلي دي.

اسلام د تجارت، زراعت او صنعت د ټولو په فراخه زړه همت افزائي کړې ده لیکن په هره موقعه ئې ددې خیال ساتلې دې چه دا څیزونه انسان د خدائې د یادو نه غافل نه کړي، او چرته د ختیې غم ئې په یو بل باندې ظلم او د یو بل حق په ناجائزه توګه شوکولو باندې آماده نه کړي. انسان چه هر یو کسب اختیار کړي په عزتمنده طریقې دِ کوي، او خدائې پاک دِ په هیڅ موقعه باندې نه هیروي...

## باب ۵۶۷: اِقْتِنَاءِ الْكَلْبِ لِلْحَرْثِ.

باب ۵۶۷: دَ پټي (کھیت) دَ حفاظت د پاره دَ سپي ساتلو بیان.

۸۶۶: حَدَّثَنَا مُعَاذُ بْنُ فَضَالَةَ حَدَّثَنَا هِشَامٌ عَنْ يَحْيٰى ابْنُ كَثِيْرٍ عَنْ أَبِيْ سَلَمَةَ عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ أَمْسَكَ كَلْبًا فَإِنَّهُ يَنْقُصُ كُلَّ يَوْمٍ مِنْ عَمَلِهِ قِيْرَاطٌ إِلَّا كَلْبَ حَرْثٍ أَوْ مَاشِيَةٍ قَالَ ابْنُ سِيْرِيْنَ وَ أَبُوْ صَالِحٍ عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَّا كَلْبَ غَنَمٍ أَوْ حَرْثٍ أَوْ صَيْدٍ وَ قَالَ أَبُوْ حَازِمٍ عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَلْبَ صَيْدٍ أَوْ مَاشِيَةٍ.

۸۶۶: معاذ بن فضاله. هشام. یحیٰي بن ابي کثیر. ابوسلمه. حضرت ابوهریرهٔ نه روایت کوي. دَ هغه بیان دې، رسول الله صلي الله علیه وسلم اوفرمائیل، چا چه سپې اوساتلو، نو روزانه دَ هغهٔ دَ عمل نه یو، یو قیراط ثواب کښې کمې کیږي، خو، دا چه دَ فصل یا ځناورو دَ حفاظت د پاره ئې ساتلې وي او ابن سیرین او ابو صالح دَ، ابوهریرهٔ نه او هغه دَ نبي صلي الله علیه وسلم نه روایت کوي، خو که چیلو، فصل یا ښکار د پاره.او ابو حازم په واسطه دَ، ابوهریرهٔ دَ نبي صلي الله علیه وسلم نه نقل اوکهٔ، خو کهٔ ښکار د پاره دَ ځناورو دَ حفاظت د پاره وي (نو بیا خیر دې ساتلې ئې شي).

۸۶۷: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ أَخْبَرَهُ مَالِكٌ عَنْ يَزِيْدَ بْنِ

۸۶۷: عبدالله بن یوسف. مالک. یزید بن خصیفه. سائب بن زید. سفیان بن ابي

خُصَيْفَةَ اَنَّ السَّائِبَ بْنَ يَزِيْدَ حَدَّثَهُ اَنَّهُ سَمِعَ سُفْيَانَ بْنَ اَبِيْ زُهَيْرٍ رَجُلًا مِّنْ اَزْدِشَنُوْءَةَ وَ كَانَ مِنْ اَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ مَنِ اقْتَنٰى كَلْبًا لَّا يُغْنِيْ عَنْهُ زَرْعًا وَّلَا ضَرْعًا نَقَصَ كُلَّ يَوْمٍ مِنْ عَمَلِهٖ قِيْرَاطٌ قُلْتُ اَنْتَ سَمِعْتَ هٰذَا مِنْ رَّسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِيْ وَ رَبِّ هٰذَا الْمَسْجِدِ.

باب۵۶۸: اِسْتِعْمَالِ الْبَقَرِ لِلْحِرَاثَةِ.

۸۶۸: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ اِبْرَاهِيْمَ سَمِعْتُ اَبَا سَلَمَةَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ بَيْنَمَا رَجُلٌ رَاكِبٌ عَلٰى بَقَرَةٍ الْتَفَتَتْ اِلَيْهِ فَقَالَتْ لَمْ اُخْلَقْ لِهٰذَا خُلِقْتُ لِلْحِرَاثَةِ قَالَ اٰمَنْتُ بِهٖ اَنَا وَ اَبُوْبَكْرٍ وَّ عُمَرُ وَ اَخَذَ الذِّئْبُ شَاةً فَتَبِعَهَا الرَّاعِيْ فَقَالَ الذِّئْبُ مَنْ لَّهَا يَوْمَ السَّبُعِ يَوْمَ لَا رَاعِيَ لَهَا غَيْرِيْ قَالَ اٰمَنْتُ بِهٖ اَنَا وَ اَبُوْبَكْرٍ وَّ عُمَرُ قَالَ اَبُوْ سَلَمَةَ وَمَا هُمَا يَوْمَئِذٍ فِي الْقَوْمِ.

زهیر. د ازدشنوة د یو سړي نه چه صحابي وو. روایت کوي. د هغه بیان دے، ما د رسول الله صلي الله علیه وسلّم نه واوریدل، چا چه سپے ساتلے وي. چه د فصل او د خاروو د حفاظت د کار نه وي، نو روزانه د هغه د عمل د ثواب نه یو قیراط کمیږي. ما تپوس اوکړ، آیا تا دا د رسول الله صلي الله علیه وسلّم نه اوریدلي دي. وئیلے او، ددے جمات په پروردګار قسم دے (چه ما د رسول الله صلي الله علیه وسلّم نه اوریدلي دي).

باب ۵۶۸: غوا، غوئے د کر کیلے د پاره د استعمالولو بیان.

۸۶۸: محمد بن بشار. غندر. شعبه. سعد. ابوسلمه. ابوهریرهؓ د نبي صلي الله علیه وسلّم نه روایت کوي. حضور صلي الله علیه وسلّم اوفرمائیل. یو سړے په یو غوي سور وو، نو هغه غوے هغه طرف ته متوجه شو، او وے وئیل چه زه دے کار د پاره نه یم پیدا کړے شوے. زه خو د کر کیلے د پاره پیدا شوے یم حضور صلي الله علیه وسلّم، اُفرمائیل ما، او ابوبکرؓ او عمرؓ په دے ایمان راوړے دے. او چیلئے یو شرمخ اوتښتوله. ګډو به هغه پسے روان شو، نو شرمخ ورته اووے، چه نن خو، به نے ته خلاصه کړے. لیکن یوم سبع کښې به دا څوک خلاصوي، هر کله چه خما نه سیوا، به هیڅوک نګران نه وي. حضور صلي الله علیه وسلم اوفرمائیل، ما، ابوبکرؓ او عمرؓ په دے ایمان راوړے دے. ابوسلمه بیان اوکړ، چه هغوي دواړه (ابوبکرؓ او عمرؓ) هغه وخت مجلس کښې موجود نه وو.

۱. يعني د حضور صلي الله عليه وسلم په ابوبكر او عمر رضي الله عنهما باندے دومره اعتماد وو چه د خرق عادت واقعه يېانولو نه پس هغوئ خپل خان سره د دوئ هم په دے باندے د ايمان گواهي ور كړه.

**باب ۵۶۹ : إِذَا قَالَ اكْفِنِيْ مُؤْنَةَ النَّخْلِ اَوْ غَيْرِهٖ وَ تُشْرِكُنِيْ فِي الثَّمَرِ.**

**باب ۵۶۹ : هر كله چه يو سړے اووائي چه خما د چوهارو وغيره اونو كښې ته محنت كوه او ميوه كښې به مونږ دواړه شريک يو.**

۸۶۹ : حَدَّثَنَا الْحَكَمُ بْنُ نَافِعٍ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ حَدَّثَنَا اَبُو الزِّنَادِ عَنِ الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَتِ الْاَنْصَارُ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَقْسِمْ بَيْنَنَا وَبَيْنَ اِخْوَانِنَا النَّخِيْلَ قَالَ لَا فَقَالُوْا فَتَكْفُوْنَا الْمُؤْنَةَ وَ نُشْرِكُكُمْ فِي الثَّمَرَةِ قَالُوْا سَمِعْنَا وَ اَطَعْنَا.

۸۶۹ : حكم بن نافع. شعيب. ابوالزناد. اعرج. ابوهريرهؓ نه روايت كوي. د هغه بيان دے انصارو نبي صلي الله عليه وسلم ته عرض اوكړ چه خمونږ او مهاجرو رونړو په مينځ كښې اونے تقسيم كړئ. حضور صلي الله عليه وسلم ورته اوفرمائيل نه. نو انصارو مهاجرينو ته اووے تاسو اونو كښې محنت كوئ او مونږ به ميوه كښې تاسو سره شريک شو. نو هغے خلقو اووے مونږ واوريدل او قبول مو كړل (يعني ستاسو خبره په سر سترګو منو).

**بَابٌ ۵۷۰ : قَطْعِ الشَّجَرِ وَالنَّخْلِ وَ قَالَ اَنَسٌ اَمَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالنَّخْلِ فَقُطِعَ.**

**باب ۵۷۰ : د قجورو او د ميوه دارو اونو د پريكولو بيان.** انسؓ اووے نبي صلي الله عليه وسلم د قجورو د اونو د پريكولو حكم اوكړ نو پريكړے شوے.

۸۷۰ : حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ اِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا جُوَيْرِيَةُ عَنْ نَافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهٗ حَرَّقَ نَخْلَ بَنِي النَّضِيْرِ وَ قَطَعَ وَهِيَ الْبُوَيْرَةُ وَلَهَا يَقُوْلُ حَسَّانُ وَ هَانَ عَلٰى سَرَاةِ بَنِيْ لُؤَيٍّ حَرِيْقٌ بِالْبُوَيْرَةِ مُسْتَطِيْرُ.

۸۷۰ : موسي بن اسمعيل. جويريه. نافع. عبدالله. نبي صلي الله عليه وسلم نه روايت كوي چه حضور صلي الله عليه وسلم د بني نضير د قجورو اونے اوسوزولے او پرے ئے كړے. د هغے باغ نوم بويره وو. چه د هغے متعلق حسان بن ثابت خپل شعر كښې بيان كوي (ترجمه) د بني لؤي د سردارانو د پاره غالب راتلل آسان شو چه بويره كښې يو اور لګيدلے دے.

**بَابٌ ۵۷۱ :**

**باب ۵۷۱ : د دے باب څه عنوان نشته.**

**۸۷۱:** حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيْدٍ عَنْ حَنْظَلَةَ ابْنِ قَيْسٍ الْاَنْصَارِيِّ سَمِعَ رَافِعَ بْنَ خَدِيْجٍ قَالَ كُنَّا اَكْثَرَ اَهْلِ الْمَدِيْنَةِ مُزْدَرَعًا كُنَّا نُكْرِى الْاَرْضَ بِالنَّاحِيَةِ مِنْهَا مُسَمًّى لِسَيِّدِ الْاَرْضِ قَالَ فَمِمَّا يُصَابُ ذٰلِكَ وَ تَسْلَمُ الْاَرْضُ وَ مِمَّا تُصَابُ الْاَرْضُ وَ يَسْلَمُ ذٰلِكَ فَنُهِيْنَا وَ اَمَّا الذَّهَبُ وَالْوَرِقُ فَلَمْ يَكُنْ يَوْمَئِذٍ.

**۸۷۱:** محمد. عبدالله. يحيي بن سعيد. حنظله بن قيس انصاري. رافع بن خديج نه روايت كوي. د هغه بيان دے. اهل مدينه كښې زمونږ پټې (كهيت) ډېر زيات وو، مونږ به زمكه په كرايه وركوله، په دے شرط چه د زمكے د يوے حصے پيداوار به د زمكے د مالك وي. نو كله به د زمكے په هغې حصه آفت راغے، او باقي (حصه) به محفوظه وه. نو په دے سبب چه په بعضے حصه به آفت راغے، او بعضے به محفوظه وه. مونږ خلق ددے نه منعې كړے شو. او هغه زمانه كښې نرۀ (زر) د چاندئ په عوض په كرايه د وركولو رواج نه وو.

## باب ۵۷۲: الْمُزَارَعَةِ بِالشَّطْرِ وَ نَحْوِهٖ

وَ قَالَ قَيْسُ بْنُ مُسْلِمٍ عَنْ اَبِيْ جَعْفَرٍ قَالَ مَا فِي الْمَدِيْنَةِ اَهْلُ بَيْتِ هِجْرَةٍ اِلَّا يَزْرَعُوْنَ عَلَى الثُّلُثِ وَالرُّبُعِ وَ زَارَعَ عَلِيٌّ وَّ سَعْدُ بْنُ مَالِكٍ وَّ عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ مَسْعُوْدٍ وَّ عُمَرُ بْنُ عَبْدِ الْعَزِيْزِ وَالْقَاسِمُ وَالْعُرْوَةُ وَ اٰلُ عَلِيٍّ وَّابْنُ سِيْرِيْنَ وَ قَالَ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ الْاَسْوَدِ كُنْتُ اُشَارِكُ عَبْدَ الرَّحْمٰنِ بْنَ يَزِيْدَ فِي الزَّرْعِ وَ عَامَلَ عُمَرُ النَّاسَ عَلٰى اِنْ جَآءَ عُمَرُ بِالْبَذْرِ مِنْ عِنْدِهٖ فَلَهُ الشَّطْرُ وَ اِنْ جَآءُوْا بِالْبَذْرِ فَلَهُمْ كَذَا وَ قَالَ الْحَسَنُ لَا بَأْسَ اَنْ تَكُوْنَ الْاَرْضُ لِاَحَدِهِمَا فَيُنْفِقَانِ جَمِيْعًا فَمَا خَرَجَ فَهُوَ بَيْنَهُمَا وَرَاٰى ذٰلِكَ الزُّهْرِيُّ وَ قَالَ الْحَسَنُ لَا بَأْسَ

## باب ۵۷۲: نيم يا دُدے قريب پيداواز باندے د كاشت كولو بيان.

او قيس بن مسلم د ابو جعفر نه نقل اوكۀ. د هغۀ بيان دے، مدينه كښې د مهاجرو هيڅ كور داسے نه وو، چه دريمه او څلورمه حصه باندے به ئے كاشت نه كولو. او عليؓ. سعد بن مالك، عبدالله بن مسعودؓ. عمر بن عبدالعزيز. قاسم عروه او د ابوبكرؓ د خاندان خلقو او عمرؓ او د عليؓ د خاندان خلقو او ابن سيرين هم زميداري (كرونده) كړے ده. او عبدالرحمٰن بن اسود بيان اوكۀ، چه زه د عبدالرحمٰن بن يزيد كرونده كښې شريك ووم. او حضرت عمرؓ خلقو سره په دے شرط معامله اوكړه، كۀ تخم حضرت عمرؓ وركړي، نو نيم پيداوار به د هغه وي. او كۀ هغه خلق تخم راوړي، دومرۀ حصه پيداوار به د هغے خلقو وي. او حسن اووے، كۀ زمكه هغوي كښې د يو كښې وي، او دواړه هغے كښې خرچ كوي، نو پيداوار برابر تقسيمولو كښې څه حرج نشته او د زهري هم دغه خيال دے او حسن

...أَنْ يُعْتِنَى الْقُطْنَ عَلَى النِّصْفِ وَ قَالَ إِبْرَاهِيمُ وَابْنُ سِيْرِيْنَ وَ عَطَاءٌ وَ الْحَكَمُ وَالزُّهْرِيُّ وَ قَتَادَةُ لَا بَأْسَ أَنْ يُعْطِيَ الثَّوْبَ بِالثُّلُثِ أَوِ الرُّبُعِ وَ نَحْوِهِ وَقَالَ مَعْمَرٌ لَا بَأْسَ أَنْ تَكُوْنَ الْمَاشِيَةُ عَلَى الثُّلُثِ وَالرُّبُعِ إِلَى أَجَلٍ مُسَمًّى.

اووے، کہ مالوچ په دے شرط چنز کړے شي چه د دوارو به نیم په نیمه وي، نو حرج نشته. زهري او قتاده اووے. چه کپړا په دریمه یا څلورمه (حصه) جولا له ورکولو کښې څه حرج نشته. او معمر اووے چه څاروي په دریمه او څلورمه (حصه) یو مقررے مودے پورے په کرایه ورکولو کښې څه حرج نشته.

۸۷۲: حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ ابْنُ الْمُنْذِرِ حَدَّثَنَا أَنَسُ بْنُ عِيَاضٍ عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ عَنْ نَافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ أَخْبَرَهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَامَلَ خَيْبَرَ بِشَطْرِ مَا يَخْرُجُ مِنْهَا مِنْ ثَمَرٍ أَوْ زَرْعٍ فَكَانَ يُعْطِي أَزْوَاجَهُ مِائَةَ وَسْقٍ ثَمَانُوْنَ وَسْقَ تَمْرٍ وَ عِشْرُوْنَ وَسْقَ شَعِيْرٍ فَقَسَمَ عُمَرُ خَيْبَرَ فَخَيَّرَ أَزْوَاجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يُقْطِعَ لَهُنَّ مِنَ الْمَاءِ وَالْأَرْضِ أَوْ يُمْضِيَ لَهُنَّ فَمِنْهُنَّ مَنِ اخْتَارَ الْأَرْضَ وَ مِنْهُنَّ مَنِ اخْتَارَ الْوَسْقَ وَ كَانَتْ عَائِشَةُ اخْتَارَتِ الْأَرْضَ.

۸۷۲: ابراهیم بن منذر. انس بن عیاض. عبیدالله. نافع. عبدالله بن عمر نبي صلي الله علیه وسلم نه روایت کوي، چه نبي صلي الله علیه وسلم د خیبر یهودیانو سره د غلے او میوے په نیم پیداوار معامله اوکړه. نو د هغے نه به حضور صلي الله علیه وسلم خپلو بیبیانو ته سل وسق ورکولو. چه اتیا وسق به قجورے او شل وسق به وربشے وے. حضرت عمر د خیبر زمکه تقسیم کړه، نو د نبي صلي الله علیه وسلم بیبیانو له ئے اختیار ورکړه، چه یا خو دے زمکه او اوبه واخلي، یا هغوي د پاره دے هغه قائم وي (چه د نبي زمکه کښې جاري وو) هغوي کښې بعضو زمکه واخسته، او بعضو وسق اختیار کړ. بي بي عائشے زمکه خوښه کړه.

## بَابٌ ۵۷۳: إِذَا لَمْ يَشْتَرِطِ السِّنِيْنَ فِي الْمُزَارَعَةِ.

## باب ۵۷۳: کله مزارعت (کرکیله) کښې کال معیّن نه کړي.

۱. کله چه څوک سړے خپل پټے بل چا له کرلو د پاره ورکړي نو دے ته مزارعت وائي. ددے معاملے مختلف شکلونه کیدے شي. یو دا چه روپئ معینے کړے شي چه د دومره جیربو لګان به دومره وصولولے شي، دا صورت خو بهرحال جائز دے. دویم صورت دا دے چه د زمکے یوه لویه شان حصه ده د

پښتي مالک معامله پداشان اوکړي چه دفلاني حصے نه کوم پيداوار حاصل شي هغه به خما وي نو دا صورت قطعاً جائز نه دے.

همدغه شان که چرے د مخکښ نه دا متعين کړي چه بهر حال زه به دومره غله اخلم خواه که هر څومره پيداوار اوشي. دا هم جائز نه ده ولے چه دا داسے معامله ده چه په دے کښې هر څه نتيجه راځي هغه به آئنده راځي معامله کولو وخت کښې دواړه فريقه په تياره کښې دي. داسے معاملے په مستقبل کښې بعضے وخت ډيرے خطرناک نتيجے پيدا کوي دے د پاره شريعت د دے قطعا بنديز اوکړو. په حديث کښې ددے نه مخکښې د دا قسمه معاملے منع والے بيان شوے دے.

دريم صورت د معاملے دا دے چه په دريمه يا څلورمه يا نيمه باندے معامله اوکړے شي. دا صورت جائز دے او دلته همدا صورت بيانول مقصود دي.

۸۷۳: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ حَدَّثَنِي نَافِعٌ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ عَامَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَيْبَرَ بِشَطْرِ مَا يَخْرُجُ مِنْهَا مِنْ ثَمَرٍ أَوْ زَرْعٍ.

۸۷۳: مسدد. يحيي بن سعيد. عبيدالله. نافع. ابن عمر نه روايت کوي، د هغه بيان دے، چه نبي صلي الله عليه وسلم خيبر کښې د ميوے او غلے په نيم پيداوار معامله اوکړله.

باب ۵۷۴:

باب ۵۷۴: دا باب عنوان نه لري.

۸۷۴: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ عَمْرٌو قُلْتُ لِطَاوُسٍ لَوْ تَرَكْتَ الْمُخَابَرَةَ فَإِنَّهُمْ يَزْعُمُونَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى عَنْهُ قَالَ أَيْ عَمْرُو وَإِنِّي أُعْطِيهِمْ وَأُغْنِيهِمْ وَإِنَّ أَعْلَمَهُمْ أَخْبَرَنِي يَعْنِي ابْنَ عَبَّاسٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمْ يَنْهَ عَنْهُ وَلَكِنْ قَالَ أَنْ يَمْنَحَ أَحَدُكُمْ أَخَاهُ خَيْرٌ لَهُ مِنْ أَنْ يَأْخُذَ عَلَيْهِ خَرْجًا مَعْلُومًا.

۸۷۴: علي بن عبدالله. سفيان. عمرو بيان کوي، ما طاؤس ته اووے. کاش چه ته مخابره پريږدے[۱]، ځکه چه د خلقو خيال دے، چه نبي صلي الله عليه وسلم ددے نه منع فرمائيلے ده. طاؤس اووے. اے عمرو. زۀ خو هغوي له ورکوم او د هغوي فائده کوم، او د هغوي د ټولونه زيات پوهيدونکے يعني ابن عباس بيان کوي چه نبي صلي الله عليه وسلم ددے نه منع نه ده فرمائيلے، بلکه دا ئے اووے، که تاسو کښې ئے څوک خپل ورور ته اوبښي، نو دا ددے نه بهتره ده، چه په هغے يو معين محصول واخلي[۲].

۱. مخابره دے ته وائي چه په نيم کاره باندے چاله پټے کرلو د پاره ورکړي هر کله چه تخم هم د کار کونکي وي. په عامه اصطلاح کښے زمونږه خلق دے ته زميداره (يا نيم کاره) وائي.

۲. مطلب دا دے چه کومو خلقو سره دومره زمکه وي چه هغه ئے نوروله په زمیداره ورکولے شي نو معوی د پاره زیاته بهتره همدا ده چه د بخشش په طور باندے د کر کیلے او د هغے د پیداوار نه فائده حاصلولو د پاره د هغه ورکړي کویا اسلام په زمیداره باندے د ورکولو اګرچه قانوني او شرعي اجازت خو ورکړے دے لیکن دا صورت ئے څه دومره زیات خوښ کړے نه دے.

حقیقت دا دے چه د شریعت په نظر کښې د ملکیت باره کښې د زمکے هغه حیثیت نه دے کوم چه د عام منقولاتو دے. په دے وجه دے باب کښې بهتره داده چه هر څومره ده سرے د پخپله په هغې کښې کار کوي. او که چرے د ضرورت نه زیاته وي نو په زمیداره باندے ورکولو نه بهتره داده چه ویړ یا د ورکړي. مسے خو په قانوني حیثیت کښې خو بهرحال دے د هغے مالک دے او په زمیداره باندے هم ورکولے شي شریعت دده نه بندیز نه کوي البته خپل خوښ کړے نقطه نظر ئے واضحه کړے ضرور دے.

باب ۵۷۵: اَلْمُزَارِعَةُ مَعَ الْيَهُوْدِ.

باب ۵۷۵: یهودو سره د مزارعت (په نیم کاره د کر کیلے) کولو بیان.

۸۷۵: حَدَّثَنَا ابْنُ مُقَاتِلٍ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَعْطَى خَيْبَرَ الْيَهُوْدَ عَلٰى اَنْ يَّعْمَلُوْهَا وَ يَزْرَعُوْهَا وَلَهُمْ شَطْرُ مَا خَرَجَ مِنْهَا.

۸۷۵: ابن مقاتل. عبدالله. عبیدالله. نافع. ابن عمرؓ نه روایت کوي رسول الله صلي الله علیه وسلّم د خیبر زمکه یهودو ته په دے شرط ورکړه چه هغے کښې به محنت او کاشتکاري (کر کیله) کوي او هغوي ته به د هغوي د پیداوار نیمه ورکیږي.

باب ۵۷۶: مَا يُكْرَهُ مِنَ الشُّرُوْطِ فِي الْمُزَارِعَةِ.

باب ۵۷۶: د هغے شرطونو بیان چه زمیدارۍ کښې مکروه دي.

۸۷۶: حَدَّثَنَا صَدَقَةُ بْنُ الْفَضْلِ اَخْبَرَنَا ابْنُ عُيَيْنَةَ عَنْ يَّحْيٰى سَمِعَ حَنْظَلَةَ الزُّرَقِيَّ عَنْ رَّافِعٍ قَالَ كُنَّا اَكْثَرَ اَهْلِ الْمَدِيْنَةِ حَقْلًا وَّ كَانَ اَحَدُنَا يُكْرِيْ اَرْضَهُ فَيَقُوْلُ هٰذِهِ الْقِطْعَةُ لِيْ وَ هٰذِهٖ لَكَ فَرُبَّمَا اَخْرَجَتْ ذِهٖ وَلَمْ تُخْرِجْ ذِهٖ فَنَهَاهُمُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۸۷۶: صدقه بن فضل. ابن عیینه. یحیٰي. حنظله زرقي. رافع نه روایت، چه اهل مدینه کښې به څمونږ کاشت ډیر کیدلو. او مونږ کښې به یو سړي خپله زمکه په کرایه ورکوله. او وئیل به ئے، چه دا ټکړه څما ده، او دا ستا ده، نو هغے زمکے کښې به کله پیداوار اوشو، او دوئمے زمکے کښې به پیداوار اونه شو. نو نبي صلي الله علیه وسلّم ددے نه منع اوفرمائیله.

باب ۵۷۷: اِذَا زَرَعَ بِمَالِ

باب ۵۷۷: کله د یو قوم په روپو د هغوي د

قَوْمٍ بِغَيْرِ اِذْنِهِمْ وَ كَانَ فِيْ ذَالِكَ صَلَاحٌ لَهُمْ.

۸۷۷: حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ الْمُنْذِرِ حَدَّثَنَا اَبُوْ ضَمْرَةَ حَدَّثَنَا مُوْسٰى بْنُ عُقْبَةَ عَنْ نَافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ بَيْنَمَا ثَلٰثَةُ نَفَرٍ يَمْشُوْنَ اَخَذَهُمُ الْمَطَرُ فَاَوَوْا اِلٰى غَارٍ فِيْ جَبَلٍ فَانْحَطَّتْ عَلٰى فَمِ غَارِهِمْ صَخْرَةٌ مِّنَ الْجَبَلِ فَانْطَبَقَتْ عَلَيْهِمْ فَقَالَ بَعْضُهُمْ لِبَعْضٍ اُنْظُرُوْا اَعْمَالًا عَمِلْتُمُوْهَا صَالِحَةً لِلّٰهِ فَادْعُوا اللّٰهَ بِهَا لَعَلَّهُ يُفَرِّجُهَا عَنْكُمْ قَالَ اَحَدُهُمْ اَللّٰهُمَّ اِنَّهُ كَانَ لِيْ وَالِدَانِ شَيْخَانِ كَبِيْرَانِ وَلِيْ صِبْيَةٌ صِغَارٌ كُنْتُ اَرْعٰى عَلَيْهِمْ فَاِذَا رُحْتُ عَلَيْهِمْ حَلَبْتُ فَبَدَاْتُ بِوَالِدَيَّ اَسْقِيْهِمَا قَبْلَ بَنِيَّ وَ اِنِّيْ اسْتَاْخَرْتُ ذَاتَ يَوْمٍ فَلَمْ اٰتِ حَتّٰى اَمْسَيْتُ فَوَجَدْتُّهُمَا نَامَا فَحَلَبْتُ كَمَا كُنْتُ اَحْلُبُ فَقُمْتُ عِنْدَ رُؤُسِهِمَا وَ اَكْرَهُ اَنْ اُوْقِظَهُمَا وَ اَكْرَهُ اَنْ اَسْقِيَ الصِّبْيَةَ وَالصِّبْيَةُ يَتَضَاغَوْنَ عِنْدَ قَدَمَيَّ حَتّٰى طَلَعَ الْفَجْرُ فَاِنْ كُنْتَ تَعْلَمُ اَنِّيْ فَعَلْتُهُ ابْتِغَآءَ وَجْهِكَ فَافْرُجْ لَنَا فُرْجَةً نَّرٰى مِنْهَا السَّمَآءَ فَفَرَّجَ

اجازت نه بغير، کاشتکاري او کړي او هغې کښې د هغوي بهتري وي.

۸۷۷: ابراهيم بن منذر. ابوضمره. موسي بن عقبه. نافع. عبدالله بن عمرؓ نبي صلي الله عليه وسلم نه روايت کوي. حضور صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل. يوځلے درے سړي تلل، نو باران شو. هغے خلقو دَ غر په يو غار کښې پناه واخسته، نو دَ هغې غار په خوله کښې دَ غر نه يو ګټ راورغړيدلو، او دَ غار خولهٔ ئے بنده کړه. يو، بل ته ئے اووے، چه په خپلو اعمالو غورا کړئے. کوم چه تاسو خدائے د پاره کړے وي، او دَ هغے په واسطه دَ خدائے نه دعا اوغواړئے، شايد چه الله دا مصيبت تاسو نه لرے کړي. هغوي کښې يو کس اووے. يا الله، ځما مور پلار ډير بوډاګان شوي وو او ځما واړه واړه بچي وو. ما به هغوي د پاره ښاروي ځرول. ماښام چه به کورته واپس شوم، نو ښاروي به مِ اولشل. او دَ خپلو بچو نه مخکښې به مِ په مور پلار پئے اوڅکول يو ځلے په ما ناوخته شو. او زهٔ ماښام پورے رانغلم. کوم وخت چه راغلم، نو هغوي اودهٔ شوي وو. ما پئے اولشل، څنګه چه به مِ لشل، او دَ هغوي سر ته اودريدم. خو ما، نامناسب اوګنړله، چه هغوي راويښ کړم، او دا، مِ هم خوښه نه وه، چه په هغے بچو، ئے اوڅکوم، چه ځما قدمونو سره نزدے ژړيدل، تردے چه صبا شو. اے الله، تاته معلومه دهٔ، که ما صرف ستا دَ، رضا د پاره دغسے کړے وي، نو مونږ د پاره دا ګټ لږ لرے کړے، چه مونږ آسمان اوليدلے شو، نو الله پاک هغه ګټ لږ شان اخوا کهٔ، نو هغوي ته آسمان په نظر راغے، دونم سړي اووے، يا الله، ځما دَ

لَـهُ فَرَاَوُا السَّمَآءَ وَ قَالَ الْاٰخَرُ اَللّٰهُمَّ اِنَّهَا كَانَتْ لِيْ بِنْتُ عَمٍ اَحْبَبْتُهَا كَاَشَدِّ مَا يُحِبُّ الرِّجَالُ النِّسَآءَ فَطَلَبْتُ مِنْهَا فَاَبَتْ حَتّٰى اَتَيْتُهَا بِمِائَةِ دِيْنَارٍ فَبَغَيْتُ حَتّٰى جَمَعْتُهَا فَلَمَّا وَقَعْتُ بَيْنَ رِجْلَيْهَا قَالَتْ يَا عَبْدَ اللّٰهِ اتَّقِ اللّٰهَ وَلَا تَفْتَحِ الْخَاتَمَ اِلَّا بِحَقِّهٖ فَقُمْتُ فَاِنْ كُنْتَ تَعْلَمُ اَنِّيْ فَعَلْتُهُ ابْتِغَآءَ وَجْهِكَ فَافْرُجْ عَنَّا فُرْجَةً فَفَرَجَ وَ قَالَ الثَّالِثُ اَللّٰهُمَّ اِنِّيْ اسْتَاْجَرْتُ اَجِيْرًا بِفَرَقِ اَرُزٍّ فَلَمَّا قَضٰى عَمَلَهٗ قَالَ اَعْطِنِيْ حَقِّيْ فَعَرَضْتُ عَلَيْهِ فَرَغِبَ عَنْهُ فَلَمْ اَزَلْ اَزْرَعُهٗ حَتّٰى جَمَعْتُ مِنْهُ بَقَرًا وَّ رَاعِيَهَا فَجَآءَنِيْ فَقَالَ اتَّقِ اللّٰهَ فَقُلْتُ اذْهَبْ اِلٰى ذٰلِكَ الْبَقَرِ وَرُعَاتِهَا فَخُذْ فَقَالَ اتَّقِ اللّٰهَ وَلَا تَسْتَهْزِئُ بِيْ فَقُلْتُ اِنِّيْ لَا اَسْتَهْزِئُ بِكَ فَخُذْ فَاَخَذَهٗ فَاِنْ كُنْتَ تَعْلَمُ اَنِّيْ فَعَلْتُ ذٰلِكَ ابْتِغَآءَ وَجْهِكَ فَافْرُجْ مَا بَقِيَ فَفَرَجَ اللّٰهُ قَالَ اَبُوْ عَبْدِ اللّٰهِ وَ قَالَ ابْنُ عُقْبَةَ عَنْ نَّافِعٍ فَسَعَيْتُ.

تره یوه لور وه، څما ورسره ډیر محبت وو، څنګه چه د سړو، ښځو سره محبت وي. ما د هغې نه طلب او کړ (یعني خراب کار کول م ورسره اوغوښتلو) خو هغې انکار او کړ، څو پورې چه زۀ هغې له سل دیناره، راونه وړم، نو کوشش سره ما سل دیناره جمع کړل او هغې له م راوړل، کوم وخت چه زه د هغې د دواړو پښو مینځ کښې کیناستم، نو هغې اووې: اے د، الله بنده، د خدائے نه اویریږه، او مهر ناحق مۀ ماتوه. زۀ اودریدم. اے الله، تاته معلومه ده، که دا کار ما صرف ستا د رضا د پاره کړے وي، نو مانه دا کښ لرے کړې. نو هغه کښ څه قدرے بیرته شو. هغې دریم سړي اووې، چه ما د یو فرق (یو پیمانه) رو جو (چاول) په عوض یو مزدور اونیولو. کوم وخت چه هغه خپل کار پوره کۀ. نو مانه ئې خپل حق اوغوښتلو، چه ما ور کولو. نو هغه انکار او کۀ. ما په هغې کر کیله شروع کړل، ترڅو چه ما په هغې غوا، غویان او غوبه جمع کړل. بیا هغه سړے راغے. او وئیلې د، الله نه اویریږه. ما ورته اووې، دا غوا، غوي او غوبه (خان سره بوځه) هغه اووې، د الله نه اویریږه او ماسره ټوقې مه کوه. ما ورته اووې، زه تاسره ټوقې نه کوم، دا واخله، نو هغه واخستل. اے الله، تاته معلومه ده، که دا ما صرف ستا د رضا په خاطر کړي وي، نو باقي کښ هم مونږ نه لرې کړې، نو هغه کښ ترے الله لرې کۀ ابن عقبه د نافع نه فَبَغَيْتُ په ځائے فَسَعَيْتُ لفظ بیان کۀ.

## باب ۵۷۸: اَوْقَافِ اَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَرْضِ الْخَرَاجِ وَ مُزَارِعَتِهِمْ وَ

باب ۵۷۸: د نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم د، اصحابو د، اوقافو او د خراج زمکه او هغې کښ کر کیله او د معاملې کولو بیان. او نبي صلے الله علیه وسلم

مُعَامِلَتِهِمْ وَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِعُمَرَ تَصَدَّقْ بِاَصْلِهِ لَا يُبَاعُ وَلٰـكِنْ يُنْفَقُ ثَمَرُهُ فَتَصَدَّقَ بِهِ.

حضرت عمرؓ ته اوفرمائيل' چه اصل زمكه وقف كړه په دې طور' چه خرڅه نه كړې شي. بلكه د هغې ميوه (آمدني) دې خوړلې شي' نو حضرت عمرؓ هغه وقف كړله.

۸۷۸: حَدَّثَنَا صَدَقَةُ اَخْبَرَنَا عَبْدُ الرَّحْمٰنِ عَنْ مَالِكٍ عَنْ زَيْدِ بْنِ اَسْلَمَ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ قَالَ عُمَرُ لَوْلَا اٰخِرُ الْمُسْلِمِيْنَ مَا فَتَحْتُ قَرْيَةً اِلَّا قَسَّمْتُهَا بَيْنَ اَهْلِهَا كَمَا قَسَمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَيْبَرَ.

۸۷۸: صدقه. عبدالرحمٰن. مالك. زيد بن اسلم د خپل پلار نه روايت كوي' چه حضرت عمرؓ اوفرمائيل' كه ما سره د آخري مسلمانانو خيال نه وې نو كومه علاقه چه به ما فتح كوله' د هغې د' اوسيدونكو په مينځ كښې به م تقسيموله؛ څنګه چه نبي صلي الله عليه وسلّم د خيبر زمكه تقسيم كړې وه.

بَابٌ ۵۷۹: مَنْ اَحْيَا اَرْضًا مَوَاتًا وَرَاٰى ذَالِكَ عَلِيٌّ فِيْ اَرْضِ الْخَرَابِ بِالْكُوفَةِ مَوَاتًا وَ قَالَ عُمَرُ مَنْ اَحْيَا اَرْضًا مَيِّتَةً فَهِيَ لَهُ وَ يُرْوٰى عَنْ عَمْرِو ابْنِ عَوْفٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ قَالَ فِيْ غَيْرِ حَقِّ مُسْلِمٍ وَ لَيْسَ لِعِرْقٍ ظَالِمٍ فِيْهِ حَقٌّ وَّ يُرْوٰى فِيْهِ عَنْ جَابِرٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

باب ۵۷۹: د بنجر او غير آباد زمكې د آبادونكي بيان. حضرت عليؓ د كوفې غير آباده زمكه كښې دا مناسب ګنړلې وو' چه هغه د آبادونكي ملكيت دې. او حضرت عمرؓ اوفرمائيل' چا چه غير آباد زمكه آباده كړه[۱]' هغه د هغۀ ده' او عمرو بن عوف د نبي صلي الله عليه وسلّم نه دغسې نقل كوي. حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل' چه د مسلمانانو په حق كښې نه وي. او نه د' يو ظالم سړي په هغې كښې حق وي. او دې باب كښې د جابر نه هم روايت دې' هغه د نبي صلي الله عليه وسلّم نه روايت كوي.

۱. په دې كښې يو شرط بل زياتول پكار دي چه د هر قسمه شاړه زمكه ابادؤلو نه پس به د ملكيت حق هغه وخت متحقق كيږي كله چه د حكومت يا امير المؤمنين په اجازت سره ئې داسې كړې وي. د حكومت په انتظاماتو كښې د څه قسمه ګړانتيا نۀ راتللو تر مخه هم ددې شرط لګول ضروري دي.

۸۷۹: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ ابْنِ اَبِيْ جَعْفَرٍ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ

۸۷۹: يحيي بن بكير. ليث. عبدالله بن جعفر. محمد بن عبدالرحمٰن. عروه. بي بي عائشهؓ د نبي صلي الله عليه وسلّم روايت كوي. حضور صلي الله عليه

عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ أَعْمَرَ أَرْضًا لَيْسَتْ لِأَحَدٍ فَهُوَ أَحَقُّ قَالَ عُرْوَةُ قَضٰى بِهِ عُمَرُ فِيْ خِلَافَتِهِ.

وسلَم اوفرمائيل' چا چه داسے زمکه آباده کړه' چه د چا ملکيت نه وي' نو هغه د هغے مستحق دے. عروه بيان اوکه' چه حضرت عمرؓ خپل خلافت کښ د دے حکم ور کړلو.

## باب ۵۸۰:

## باب ۵۸۰: دے باب کښ عنوان نشته.

۸۸۰: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا إِسْمٰعِيْلُ بْنُ جَعْفَرٍ عَنْ مُوْسَى بْنِ عُقْبَةَ عَنْ سَالِمِ ابْنِ عَبْدِ اللّٰهِ ابْنِ عُمَرَ عَنْ أَبِيْهِ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أُرِيَ وَهُوَ فِيْ مُعَرَّسِهِ مِنْ ذِي الْحُلَيْفَةِ فِيْ بَطْنِ الْوَادِيْ فَقِيْلَ لَهُ إِنَّكَ بِبَطْحَاءَ مُبَارَكَةٍ فَقَالَ مُوْسٰى وَقَدْ أَنَاخَ بِنَا سَالِمٌ بِالْمُنَاخِ الَّذِيْ كَانَ عَبْدُ اللّٰهِ يُنِيْخُ بِهِ يَتَحَرّٰى مُعَرَّسَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ أَسْفَلُ مِنَ الْمَسْجِدِ الَّذِيْ بِبَطْنِ الْوَادِيْ بَيْنَهُ وَبَيْنَ الطَّرِيْقِ وَسَطٌ مِنْ ذٰلِكَ.

۸۸۰: قتيبه. اسمٰعيل بن جعفر. موسي بن عقبه. سالم بن عبدالله بن عمر د خپل پلار (عبدالله بن عمر) نه روايت کوي، چه نبي صلي الله عليه وسلَم بطن وادي کښ ذي الحليفه کښ[۱] د شپے د کوزيدو ځائے کښ وو' نو حضور صلي الله عليه وسلَم خوب اوليدو' چه ځوک سړے ورته وائي' تاسو مبارک ميدان کښ يئ. او د موسي بيان دے' چه مونږ سره سالم په دے ځائے اوښه کينولے وه' کوم ځائے چه به عبدالله خپله اوښه کينوله' او دغه ځائے به ئے تلاش کولو' کوم ځائے چه به رسول الله صلي الله عليه وسلَم کوزيدلو' او هغه ځائے د هغے جمات لاندے دے' کوم چه بطن وادي کښ دے. او د هغے جمات او لارے درميانه حصه ده.

۱. دا حديث سره متعلق دے. په دے باندے څه عنوان هم مصنف رحمة الله عليه نه دے لکولے. بعضو شارحينو ليکلي دي چه ددے نه مقصد دا دے چه که چرے ځوک ذوالحليفه ابادول غواړي نو دے سره هغه خپل ملکيت د هغه ځائے په زمکه باندے ثابتولے نشي. ولے چه هغه د حاجيانو او نورو مسافرو د قيام ځائے دے او د عام استعمال د پاره دے که چرے په څه شان له هم دغه زمکه د چا په ملکيت کښ ورکړے شي نو خلقوته به تکليف وي او په سفر وغيره کښے به مشکلات پيدا شي. ليکن دا خبره زړه ته سمه نه لکي. علامه انور شاه صاحب کشميري رحمة الله عليه ليکلي دي چه مصنف دا خبره نوره هم واضحه کول غواړي چه يوه شاړه او غير اباده زمکه اړونکے او په هغے باندے کر کيله شروع کونکے د هغه زمکے مالک شي ولے چه نبي کريم صلي الله عليه وسلَم په وادي عقيق کښ قيام اوفرمائيلو دغه وادي د چا په ملکيت کښ نه وه دے د پاره د نبي کريم صلي الله عليه وسلَم د قيام او وخت تيرولو ځائے جوړ شو. همدغه شان چه کوم سړے يو داسے زمکه اباده کړي د کومے چه ځوک مالک نه وو نو هغه زمکه به د هغه

شي.

دا خبره د یاده وي چه د احنافو په نزد دے کښې رومبے شرط د حکومت اجازت دے.

۱۸۸۱: حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ بْنُ اِبْرَاهِيْمَ اَخْبَرَنَا شُعَيْبُ ابْنُ اِسْحٰقَ عَنِ الْاَوْزَاعِيِّ قَالَ حَدَّثَنِيْ يَحْيٰى عَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنْ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اللَّيْلَةَ اَتَانِيْ اٰتٍ مِّنْ رَّبِّيْ وَهُوَ بِالْعَقِيْقِ اَنْ صَلِّ فِيْ هٰذَا الْوَادِيْ الْمُبَارَكِ وَقُلْ عُمْرَةٌ فِيْ حَجَّةٍ.

۱۸۸۱: اسحٰق بن ابراهیم. شعیب بن اسحٰق. اوزاعي. یحیي. عکرمه ابن عباسؓ. حضرت عمرؓ نبي صلي الله علیه وسلّم نه روایت کوي. حضور صلي الله علیه وسلّم اوفرمائیل نن شپه ماله یو راتلونکے خما د رب د طرف نه راغے. دغه وخت حضور صلي الله علیه وسلّم عتیق کښې وو. هغه اووے، چه دے مبارکې وادي کښې مونځ اوکه، او تاسو اووائے. چه عمره حج کښې داخله ده.

باب ۱۵۸۱: اِذَا قَالَ رَبُّ الْاَرْضِ اُقِرُّكَ مَا اَقَرَّكَ اللّٰهُ وَلَمْ يَذْكُرْ اَجَلًا مَّعْلُوْمًا فَهُمَا عَلٰى تَرَاضِيْهِمَا.

باب ۱۵۸۱: که د زمکې مالک اووائي، چه تا به زۀ د هغې وخته پورې قائم ساتم، څو پورې چه دے الله قائم ساتي، او څه موده ئې مقرر نه کړه، نو هغوي دواړه به خپلو کښې د رضامندئ پورې معامله کوي.

۱۸۸۲: حَدَّثَنَا اَحْمَدُ ابْنُ الْمِقْدَامِ حَدَّثَنَا فُضَيْلُ بْنُ سُلَيْمَانَ حَدَّثَنَا مُوْسٰى اَخْبَرَنَا نَافِعٌ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ح وَقَالَ عَبْدُ الرَّزَّاقِ اَخْبَرَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ مُوْسٰى ابْنُ عُقْبَةَ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ اَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ اَجْلَى الْيَهُوْدَ وَ النَّصَارٰى مِنْ اَرْضِ الْحِجَازِ وَ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمَّا ظَهَرَ عَلٰى خَيْبَرَ اَرَادَ اِخْرَاجَ الْيَهُوْدِ مِنْهَا وَ كَانَتِ الْاَرْضُ

۱۸۸۲: احمد بن مقدام. فضیل بن سلیمان. موسي. نافع. ابن عمرؓ نه روایت کوي، د هغه بیان دے، رسول الله صلي الله علیه وسلّم اوفرمائیل (دوئم سند) عبدالرزاق. ابن جریج. موسي بن عقبه. نافع. ابن عمرؓ نه روایت کوي، چه حضرت عمرؓ بن خطاب یهود او نصاري د حجاز د زمکې نه جلاوطن کړل، او رسول الله صلي الله علیه وسلّم چه خیبر باندے غالب شو، نو یهود ئې د هغه ځائے نه اوباسکل او غوښتل. ځکه چه کوم وخت د حضور صلي الله علیه وسلّم هلته غلبه شوه، نو د هغه ځائے زمکه د الله، او د هغه د رسول او د ټولو مسلمانانو شوه، چه یهودیان ئې اوباسکل او غوښتل. نو یهودیانو رسول الله صلي الله علیه وسلّم ته خواست

حِيْنَ ظَهَرَ عَلَيْهَا لِلّٰهِ وَلِرَسُوْلِهٖ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِيُقِرَّهُمْ بِهَا اَنْ يَّكْفُوْا عَمَلَهَا وَلَهُمْ نِصْفُ الثَّمَرِ فَقَالَ لَهُمْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نُقِرُّكُمْ بِهَا عَلٰى ذَالِكَ مَا شِئْنَا فَقَرُّوْابِهَا حَتّٰى اَجْلَاهُمْ عُمَرُ اِلٰى تَيْمَاءَ وَ اَرِيْحَاءَ.

او کهٔ، چه هغه خلق په زمکه قائم پریږدي. د کر کیلې کار به کوي او نیم پیداوار به اخلي. نو رسول الله صلي الله علیه وسلم هغې یهودیانو ته اوفرمائیل. مونږ تاسو په دې زمکه قائم پریږدو، خو څو پورې چه خمونږ مرضي وي. نو هغه خلق په دې قائم وو. تردې چه حضرت عمرؓ (دَ خپل خلافت زمانه کښې) یهودیان تیماء او اریحاء طرف ته جلاوطن کړلے[۱].

۱. دلته هم مصنف رحمة الله علیه د خیبر د زمکو مالک اسلامي حکومت کرخولے دے او بیانے دے نه دا مسئله اخذ کړے ده چه د زمیداري معامله د مودے مقررؤلو نه بغیر هم هر کله چه دواړه فریقه په دې باندې رضامند وي جائز کیدلے شي، حالانکه په دې خبره باندې د ټولو فقهاؤ اتفاق دے چه د مودے د ابهام په صورت کښې نه مزارعت جائز دے او نه اجاره. دے نه د احنافو ددے مسلک تائید کیږي چه د خیبر د زمکو اصل مالکان یهودیان وُو دَ حضور صلي الله علیه وسلّم هغوی سره معامله د خراج مقاسمه په طور باندې وه چه په دې کښې د مودے د تعیین ضرورت نه وي. د حدیث مفهوم صفا، د احنافو مسلک منلو په صورت کښې کیږي. تیما او اریحا د اسلامي مملکت بناړونه دي شام ته نزدې.

## بَابُ ۵۸۲: مَا كَانَ مِنْ اَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُوَاسِي بَعْضُهُمْ بَعْضًا فِيْ الزِّرَاعَةِ وَالثَّمَرَةِ.

## باب ۵۸۲: دَ نبي صلي الله علیه وسلّم اصحابو به کاشتکارۍ او میوو کښې دَ یو بل مدد کولو.

۸۸۳: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مُقَاتِلٍ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا الْاَوْزَاعِيُّ عَنْ اَبِي النَّجَاشِيِّ مَوْلٰى رَافِعِ بْنِ خُدَيْجٍ سَمِعْتُ رَافِعَ بْنَ خُدَيْجِ بْنِ رَافِعٍ عَنْ عَمِّهٖ ظُهَيْرِ بْنِ رَافِعٍ قَالَ ظُهَيْرٌ لَقَدْ نَهَانَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ اَمْرٍ كَانَ بِنَا رَافِقًا قُلْتُ مَا قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَهُوَ حَقٌّ قَالَ

۸۸۳: محمد بن مقاتل. عبدالله. اوزاعي. ابوالنجاشي (دَ رافع بن خدیج غلام) رافع بن خدیج بن رافع. د خپل تره زهیر بن رافع نه روایت کوي. ظهیر بیان او کهٔ چه مونږ رسول الله صلي الله علیه وسلّم منع کړے وو، د هغې خیز نه چه مونږ د پاره مفید وو. ما اووے، خه چه رسول الله صلي الله علیه وسلّم اوفرمائیل، هغه حق دي. ظهیر اووے، ماته رسول الله صلي الله علیه وسلّم اوبنودل، اووے فرمائیل، چه تاسو خپلو

دَعَانِیْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَا تَصْنَعُوْنَ بِمَحَاقِلِکُمْ قُلْتُ نُؤَاجِرُهَا عَلَی الرُّبُعِ وَ عَلَی الْاَوْسُقِ مِنَ التَّمْرِ وَالشَّعِیْرِ قَالَ لَا تَفْعَلُوْا اِزْرَعُوْهَا اَوْ اَزْرِعُوْهَا اَوْ اَمْسِکُوْهَا قَالَ رَافِعٌ قُلْتُ سَمْعًا وَّ طَاعَةً.

پټو (کھیتوں) سره څه کوئے. ما عرض او کړ مونږ دا په څلورمه حصه او د څو وسق قجورو او وربشو په کرایه ورکوو. حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل. داسے مه کوئ. دے کښې پخپله کاشت کوئ، یا په بل چا کاشت کوئ. یا دغسے ئے بنده کړئ. رافع اووے، چه ما واوریدل او اوم منل.

۸۸۴: حَدَّثَنَا عُبَیْدُ اللّٰهِ ابْنُ مُوْسٰی اَخْبَرَنَا الْاَوْزَاعِیُّ عَنْ عَطَآءٍ عَنْ جَابِرٍ قَالَ کَانُوْا یَزْرَعُوْنَهَا بِالثُّلُثِ وَالرُّبُعِ وَالنِّصْفِ فَقَالَ النَّبِیُّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ مَنْ کَانَتْ لَهٗ اَرْضٌ فَلْیَزْرَعْهَا اَوْ لِیَمْنَحْهَا فَاِنْ لَّمْ یَفْعَلْ فَلْیُمْسِكْ اَرْضَهٗ وَ قَالَ الرَّبِیْعُ بْنُ نَافِعٍ اَبُوْ تَوْبَةَ حَدَّثَنَا مُعَاوِیَةُ عَنْ یَحْیَی بْنِ اَبِیْ هُرَیْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ مَنْ کَانَتْ لَهٗ اَرْضٌ فَلْیَزْرَعْهَا اَوْ لِیَمْنَحْهَا اَخَاهُ فَاِنْ اَبٰی فَلْیُمْسِكْ اَرْضَهٗ.

۸۸۴: عبیداللّٰه بن موسیٰ. اوزاعي. عطاء. جابرؓ نه روایت کوي. چه مونږ خلقو به په دریمه، څلورمه او په نیم پیداوار کرکیله کوله، نو نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل، چا سره چه زمکه وي، هغه دے خپله هغے کښې کاشت کوي یا چاله دے ورکړي او که داسے هم نه کوي، نو خپله زمکه دے دغسے پریږدي. او ربیع بن نافع ابو توبه اووے. ماته معاویه په واسطه د یحییٰ. ابوسلمه. ابوهریرهؓ بیان او کړ، چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل، چا سره چه زمکه وي، هغه دے هغے کښې خپله کاشت کوي یا خپل ورور له دے ورکړي او که هغه داسے نه کوي، نو زمکه دِ دغسے پریږدي[۱].

۱. د شریعت په نظر کښې چه د زمکے کوم قانوني حیثیت وو هغه خو مخکښې بیان شو، دلته مصنف رحمة اللّٰه علیه صرف دا بیانول غواړي چه صحابه کرام د نورو معاملاتو پشان د زمکے په معامله کښې هم ایثار، یو بل سره همدردي او یو بل ته د فائدے رسولو په کوشش کښې څومره وړاندے وُو او د نبي کریم صلي اللّٰه علیه وسلّم په دے ارشاد باندے عمل کولو کښې ئے څومره مسابقت کولو. ګویا دلته د زمکے ملکیت او د نیم کارے وغیره حیثیت نه بلکه صرف دا خودلے کیږي چه یو مسلمان له څنګه کیدل پکار دي.

۸۸۵: حَدَّثَنَا قَبِیْصَةُ حَدَّثَنَا سُفْیَانُ عَنْ عَمْرٍو قَالَ ذَکَرْتُهٗ

۸۸۵: قبیصه. سفیان. عمرو بیان کوي، چه ما طاؤس ته دا حدیث بیان کړ، نو هغه اووے، کاشت دے

لِطَاوُسٍ فَقَالَ يَزْرَعُ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ اِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمْ يَنْهَ عَنْهُ وَلٰكِنْ قَالَ اَنْ يَّمْنَحَ اَحَدُكُمْ اَخَاهُ خَيْرٌ لَّهُ مِنْ اَنْ يَّأْخُذَ شَيْئًا مَّعْلُوْمًا.

کوي. ابن عباسؓ بیان اوکهٔ چه نبي صلي الله علیه وسلّم ذدې نه منع نه ده کړې لیکن حضور صلي الله علیه وسلّم اوفرمائیل چه تاسو کښ د چا خپل وروړ له ورکول ذ دې نه بهتر دي چه څه مقرره رقم ذ هغه نه واخلي.

۸۸۶: حَدَّثَنَا سُلَيْمٰنُ ابْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا حَمَّادٌ عَنْ اَيُّوْبَ عَنْ نَافِعٍ اَنَّ ابْنَ عُمَرَ كَانَ يُكْرِیْ مَزَارِعَهُ عَلٰى عَهْدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَبِيْ بَكْرٍ وَّ عُمَرَ وَ عُثْمَانَ وَ صَدْرًا مِّنْ اِمَارَةِ مُعٰوِيَةَ ثُمَّ حُدِّثَ عَنْ رَافِعِ بْنِ خَدِيْجٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهٰى عَنْ كِرَآءِ الْمَزَارِعِ فَذَهَبَ ابْنُ عُمَرَ اِلٰى رَافِعٍ فَذَهَبْتُ مَعَهُ فَسَاَلَهُ فَقَالَ نَهَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ كِرَآءِ الْمَزَارِعِ فَقَالَ ابْنُ عُمَرَ قَدْ عَلِمْتَ اِنَّا كُنَّا نُكْرِیْ مَزَارِعَنَا عَلٰى عَهْدِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمَا عَلَى الْاَرْبِعَآءِ وَ بِشَیْءٍ مِّنَ التِّبْنِ.

۸۸۶: سلیمان بن حرب. حماد. ایوب. نافع. نه روایت کوي چه ابن عمرؓ به خپل پټي (کھیتوں) ذ نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم او ابوبکرؓ او عمرؓ او عثمانؓ او معاویهؓ د ابتدائي حکومت زمانه کښ په کرایه ورکول. بیاذ رافع بن خدیج دا حدیث هغه ته بیان کړے شو. چه نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم پټي په کرایه ورکولو نه منع فرمائیلے ده. ابن عمرؓ رافع له ورغے زه هم هغه سره لاړم هغه ذ رافع نه تپوس اوکهٔ نو رافع بیان اوکهٔ چه نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم پټي په کرایه ذ ورکولو نه منع فرمائیلے ده. ابن عمرؓ اووے تاته معلومه ده چه مونږ به د رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم په زمانه کښ خپل پټي (کھیت) په څلورمه حصه پیداوار او څه قدرے ذ واښو په عوض په کرایه ورکولو۱.

۱. رافع بن خدیج رضي اللّٰه عنه قانون نه بلکه د احسان او ایثار طریقه نے اوښودله. د ابن عمر رضي اللّٰه عنه په ذهن کښ د جواز او عدم جواز صورت وو. د هغوئ د ارشاد مقصد دا دے چه په مدینه کښ کومه دا طریقه رائجه وه چه نهر ته نیزدے زمکے پیداوار به د زمکے مالک اخستلو نو پاک حضرت صلي اللّٰه علیه وسلّم د دے نه منعه فرمائیلے وه مطلقاً زمیدارے نه نے منع نه وه فرمائیلے خنگه چه ددے نه پس والا حدیث کښ صراحت دے چه عبداللّٰه بن عمر رضي اللّٰه عنه هم بیا زمکه په زمیداره یا لګان باندے ورکول بند کړي وُو. دا په مستحباتو باندے عمل او د ایثار او خپلو کښ د همدردئ یو مثال دے.

۸۸۷: حَدَّثَنَا يَحْيَى ابْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ اَخْبَرَنِيْ سَالِمٌ اَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ ابْنَ عُمَرَ قَالَ كُنْتُ اَعْلَمُ فِيْ عَهْدِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّ الْاَرْضَ تُكْرٰى ثُمَّ خَشِيَ عَبْدُ اللّٰهِ اَنْ يَّكُوْنَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ اَحْدَثَ فِيْ ذَالِكَ شَيْئًا لَمْ يَكُنْ يَعْلَمُهُ فَتَرَكَ كِرَآءَ الْاَرْضِ.

۸۸۷: يحيى بن بكير. ليث. قيل ابن شهاب. سالم. عبدالله بن عمر بيان اوكه، ماته د رسول الله صلي الله عليه وسلم په زمانه كښ معلومه وه چه زمكه به په كيرايه وركولے شوه. بيا عبدالله او يريد، د دے خبرے نه، چه چرته نبي صلي الله عليه وسلم، د دے متعلق څه نوے حكم كړے وي، نو زمكه په كيرايه وركول ئے پريښودل.

## بَابٌ ۵۸۳: كِرَآءِ الْاَرْضِ بِالذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ اِنَّ اَمْثَلَ مَا اَنْتُمْ صَانِعُوْنَ اَنْ تَسْتَاجِرُوْا الْاَرْضَ الْبَيْضَآءَ مِنَ السَّنَةِ اِلَى السَّنَةِ.

## باب ۵۸۳: د سرو سپينو په عوض زمكه په كيرايه باندے د وركولو بيان، ابن عباسؓ اوفرمائيل، چه كوم كول غواړئے هغے كښ د ټولو نه زيات بهتر دادے، چه خپله خالي زمكه د يو كال پورے په كيرايه وركوئے.

۸۸۸: حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ خَالِدٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ رَّبِيْعَةَ ابْنِ اَبِيْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ حَنْظَلَةَ بْنِ قَيْسٍ عَنْ رَّافِعِ بْنِ خَدِيْجٍ حَدَّثَنِيْ عَمَّايَ اَنَّهُمْ كَانُوْا يُكْرُوْنَ الْاَرْضَ عَلٰى عَهْدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمَا يَنْبُتُ عَلَى الْاَرْبِعَاءِ اَوْ شَيْءٍ يَسْتَثْنِيْهِ صَاحِبُ الْاَرْضِ فَنَهَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ ذَالِكَ فَقُلْتُ لِرَافِعٍ فَكَيْفَ هِيَ بِالدِّيْنَارِ وَالدِّرْهَمِ فَقَالَ رَافِعٌ لَيْسَ بِهَا بَاْسٌ بِالدِّيْنَارِ وَالدِّرْهَمِ وَ قَالَ اللَّيْثُ وَ

۸۸۸: عمرو بن خالد. ليث. ربيعه بن ابي عبدالرحمن. حنظله بن قيس رافع بن خديج نه روايت كوي، د هغه بيان دے، ماته خما ترونو اووے چه هغے خلقو به د نبي صلي الله عليه وسلم په زمانه كښ په څلورمه حصه پيداوار يا د داسے څيز په عوض، چه هغه به د زمكے مالك مستثنے كولو، زمكه په كيرايه وركوله، نو نبي صلي الله عليه وسلم د هغے نه منع اوفرمائيله ما د رافع نه تپوس اوكه، چه د دينار او د درهم په عوض په كيرايه وركول څنګه دي، رافع اووے، د درهم او د دينار په عوض په وركولو كښ څه حرج نشته او ليث اووے، چه د كوم څيز نه نبي صلي الله عليه وسلم منع

أَنَّ النَّبِيَّ نُهِيَ عَنْ ذَالِكَ مَالَوْ نَظَرَ فِيهِ ذُو الْفَهْمِ بِالْحَلَالِ وَالْحَرَامِ لَمْ يُجِيزُوْهُ لِمَا فِيهِ مِنَ الْمُخَاطَرَةِ.

فرمائیلے دہ' کہ د حلال او حرام پوھہ لرونکے سړے دے کښې غور اوکړي' نو دا' بہ جائزہ اونہ ګنړي' پہ دے سبب چہ دے کښې خطرہ دہ.

## بَابُ ۵۸۴:

## باب ۵۸۴: (دا باب بے عنوانہ دے)

۸۸۹: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سِنَانٍ حَدَّثَنَا فُلَيْحٌ حَدَّثَنَا هِلَالٌ ح وَ حَدَّثَنَا عَبْدُاللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا اَبُوْ عَامِرٍ حَدَّثَنَا فُلَيْحٌ عَنْ هِلَالِ بْنِ عَلِيٍّ عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. كَانَ يَوْمًا يُحَدِّثُ وَ عِنْدَهُ رَجُلٌ مِّنْ اَهْلِ الْبَادِيَةِ اَنَّ رَجُلًا مِّنْ اَهْلِ الْجَنَّةِ اسْتَاْذَنَ رَبَّهُ فِي الزَّرْعِ فَقَالَ لَهُ اَلَسْتَ فِيْمَا شِئْتَ قَالَ بَلٰى وَلٰكِنِّي اُحِبُّ اَنْ اَزْرَعَ قَالَ فَبَذَرَ فَبَادَرَ الطَّرْفَ نَبَاتُهُ وَاسْتِوَاؤُهُ وَاسْتِحْصَادُهُ فَكَانَ اَمْثَالَ الْجِبَالِ فَيَقُوْلُ اللّٰهُ دُوْنَكَ يَا ابْنَ اٰدَمَ فَاِنَّهُ لَا يُشْبِعُكَ شَيْءٌ فَقَالَ الْاَعْرَابِيُّ وَاللّٰهِ لَا تَجِدُهُ اِلَّا قُرَشِيًّا اَوْ اَنْصَارِيًّا فَاِنَّهُمْ اَصْحَابُ زَرْعٍ وَ اَمَّا نَحْنُ فَلَسْنَا بِاَصْحَابِ زَرْعٍ فَضَحِكَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۸۸۹: محمد بن سنان. فليح. هلال (دونم سند) عبداللّٰه بن محمد. ابو عامر. فليح. هلال بن علي. عطاء بن يسار. ابوهريرةؓ نہ روايت کوي' چہ نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم يوه ورځ خبرے کولے' يو کلي وال سړے حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم سره ناست وو (حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل) جنتيانو کښې بہ يو د خپل پروردګار نہ د کاشتکارۍ اجازت اوغواړي. نو اللّٰه تعالي بہ هغه تہ وائي' آيا تہ پہ خپل موجودہ وخت راضي نہ ئے. هغه بہ اووائي' او' خو' زۀ کاشتکاري کول خوښوم' نو هغه بہ تخم اوکړي' او د سترګے پہ رپ کښې بہ هغه زرغون شي او تيغے بہ شي' او د ريبلو لائق بہ شي. اللّٰه تعالي بہ ورتہ اوفرمائي' چہ اے بني آدمہ' دا واخلہ' تا هيڅ خيز اسودہ کولے نہ شي. هغے اعرابي (کلي وال) اووے' پہ خدائے چہ هغه سړے بہ قريشي وي يا انصاري' ځکہ چہ دا خلق کرکيلہ کونکي دي. مونږ خو کرکيلہ نہ کوو' نو نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم (چہ دا' واوريدل) پہ خندا شو.

## بَابُ ۵۸۵: مَا جَاءَ فِي الْغَرْسِ.

## باب ۵۸۵: د' اونو لږولو بيان.

۸۹۰: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا يَعْقُوْبُ عَنْ اَبِيْ حَازِمٍ عَنْ

۸۹۰: قتيبه بن سعيد. يعقوب. ابوحازم. سهيل بن سعد نہ روايت کوي چہ مونږ خلق بہ د

سَهْلِ ابْنِ سَعْدٍ اَنَّهُ قَالَ اِنَّا كُنَّا نَفْرَحُ بِيَوْمِ الْجُمُعَةِ كَانَتْ لَنَا عَجُوْزٌ تَأْخُذُ مِنْ اُصُوْلِ سِلْقٍ لَنَا كُنَّا نَغْرِسُهُ فِيْ اَرْبِعَاءِ نَا فَتَجْعَلُهُ فِيْ قِدْرٍ لَّهَا فَتَجْعَلُ فِيْهِ حَبَّاتٍ مِّنْ شَعِيْرٍ لَّا اَعْلَمُ اِلَّا اَنَّهُ قَالَ لَيْسَ فِيْهِ شَحْمٌ وَّلَا وَدْكٌ فَاِذَا صَلَّيْنَا الْجُمُعَةَ زُرْنَاهَا فَقَرَّبَتْهُ اِلَيْنَا فَكُنَّا نَفْرَحُ بِيَوْمِ الْجُمُعَةِ مِنْ اَجْلِ ذَالِكَ وَمَا كُنَّا نَتَغَدّٰى وَلَا نَقِيْلُ اِلَّا بَعْدَ الْجُمُعَةِ.

جمعے په ورځ راتلوته ډير خوشحاليدو، ځکه چه يوه بوډۍ وه، چه د چقندر جرړے، چه مونږ به خپلو باړو کښې لږولے، هغه به ئے راوښکلے او خپل ديګچي کښې به ئے اچولے، او هغے کښې به ئے د وربشو څه دانے هم اچولے، ماته دومره هم معلومه ده، چه هغے کښې به غوړ والے يا چربي نه وه. چه مونږ به د جمعے مونځ اوکه، نو هغے بوډۍ له به راتلو، هغے به مونږ ته دغه چقندر ابينودلو، د جمعے د ورځے خوشحالي به مونږ ته په دغے سببوه، او مونږ به د جمعے د مانځه نه پس طعام خوړلو، او قيلوله به مو کوله.

**ف**: قيلوله: د غرمے آرام.

**۱۸۹۱**: حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ اِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ سَعْدٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنِ الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ يَقُوْلُوْنَ اِنَّ اَبَا هُرَيْرَةَ يُكْثِرُ الْحَدِيْثَ وَاللّٰهُ الْمَوْعِدُ وَ يَقُوْلُوْنَ مَا لِلْمُهَاجِرِيْنَ وَالْاَنْصَارِ لَا يُحَدِّثُوْنَ مِثْلَ اَحَادِيْثِهِ وَ اِنَّ اِخْوَانِيْ مِنَ الْمُهَاجِرِيْنَ كَانَ يَشْغَلُهُمُ الصَّفْقُ بِالْاَسْوَاقِ وَ اِنَّ اِخْوَتِيْ مِنَ الْاَنْصَارِ كَانَ يَشْغَلُهُمْ عَمَلُ اَمْوَالِهِمْ وَكُنْتُ امْرَاءً مِسْكِيْنًا اَلْزَمُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلٰى مِلْاِ بَطْنِيْ فَاَحْضُرُ حِيْنَ يَغِيْبُوْنَ وَ اَعِيْ حِيْنَ يَنْسَوْنَ وَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمًا لَنْ يَّبْسُطَ اَحَدٌ مِّنْكُمْ

**۱۸۹۱**: موسى بن اسمٰعيل. ابراهيم بن سعد. ابن شهاب. اعرج. ابوهريرهؓ نه روايت کوي. د هغه بيان دے، خلق وائي، چه ابوهريرهؓ ډير زيات حديثونه بيانوي، حالانکه هغه ته الله ته پيش کيدل دي، او وائي څه خبره ده، چه مهاجرين او انصار، د، د ابوهريرهؓ په شان حديثونه نه بيانوي، حالانکه حقيقت دادے، چه مهاجرين به په بازارونو کښې خريدوفروخت کښې اخته وو، او ځمونږ انصار رونړه په خپلو مالي معاملو کښې مشغول وو. او زه يو مسکين سړے ووم. چه په ځيټه به موړ شوم، نو برابر به د رسول الله صلي الله عليه وسلّم په خدمت کښې حاضر ووم، نور خلق به غير حاضر وو، او زه به موجود ووم. او کوم ځيز چه به خلقو هيرولو، ما به ياد ساتلو، او نبي صلي الله عليه وسلّم يوه ورځ اوفرمائيل چه تاسو کښې څوک خما د دے خبرو ختميدو پورے خپله کپړا غوړولے اوساتي، بيائے راغونډه کړي او خپلے سينے

ثَوْبَهُ حَتّٰى اَقْضِيَ مَقَالَتِيْ هٰذِهٖ ثُمَّ يَجْمَعَهُ اِلٰى صَدْرِهٖ فَيَنْسٰى مِنْ مَقَالَتِيْ شَيْئًا اَبَدًا فَبَسَطْتُ نَمِرَةً لَيْسَ عَلَيَّ ثَوْبٌ غَيْرُهَا حَتّٰى قَضَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَقَالَتَهُ ثُمَّ جَمَعْتُهَا اِلٰى صَدْرِيْ فَوَالَّذِيْ بَعَثَهُ بِالْحَقِّ مَا نَسِيْتُ مِنْ مَقَالَتِهٖ تِلْكَ اِلٰى يَوْمِيْ هٰذَا وَاللّٰهِ لَوْلَا اٰيَتَانِ فِيْ كِتَابِ اللّٰهِ مَا حَدَّثْتُكُمْ شَيْئًا اَبَدًا اِنَّ الَّذِيْنَ يَكْتُمُوْنَ مَا اَنْزَلْنَا مِنَ الْبَيِّنَاتِ اِلٰى قَوْلِهِ الرَّحِيْمُ.

سره نے جخته كړي، نو څما خبره به هيڅكله نه هيروي. نو ما خپل څادر خور كړلو. او په ما د هغے نه سيوا بله كپړه نه وه تردے چه نبي صلي الله عليه وسلّم خپلے خبرے ختمے كړے، نو ما هغه (څادر) راغونډ كه او خپلے سينے سره م اولګولو په هغے ذات م دے قسم وي چه هغه حضور صلي الله عليه وسلّم حق سره راليږلے دے. ما نه پورے د حضور صلي الله عليه وسلّم هيڅ يوه خبره نه ده هيره كړے. په خدائے چه كه دوه آيتونه كتاب الله كښ نه وے، نو ما به تاسو ته هيڅكله حديث نه وو بيان كړے. او هغه آيت دا دے: اِنَّ الَّذِيْنَ يكتمون ما انزلنا من البينات به الرحيم پورے.

# كِتَابُ الْمُسَاقَاةِ

## (دَ اوبو، دَ تقسيم بيانِ)

۱. مساقات د سَقْيٌ نه مشتق دے چه معني ئے ده خړو بؤل. د مساقات اصطلاحي مفهوم دا دے چه په باغ يا پټي كښ مالك د بل يو سړي نه كار واخلي او د هغه مزدوري د نقدو په صورت كښ ورنه كړي بلكه معامله په دے خبره فيصله شي چه د باغ يا پټي كوم پيداوار وي هغه به د مالك او عامل دواړو تر مينځه مشترك وي.

د دے نه مخكښ د مزارعت باب تير شوے دے او په مزارعت او مساقات كښ هيڅ فرق نيشته.

باب ۵۸۶: فِي الشِّرْبِ وَ قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى وَ جَعَلْنَا مِنَ الْمَآءِ كُلَّ شَيْءٍ حَيٍّ اَفَلَا يُؤْمِنُوْنَ وَ قَوْلِهٖ جَلَّ ذِكْرُهُ اَفَرَاَيْتُمُ الْمَآءَ الَّذِيْ تَشْرَبُوْنَ ءَ اَنْتُمْ اَنْزَلْتُمُوْهُ مِنَ الْمُزْنِ اَمْ نَحْنُ الْمُنْزِلُوْنَ لَوْ نَشَآءُ جَعَلْنٰهُ اُجَاجًا فَلَوْلَا تَشْكُرُوْنَ اَلاُجَاجُ الْمُرُّ وَالْمُزْنُ السَّحَابُ.

باب ۵۸۶: دَ اوبو دَ تقسيم بيان. او دَ الله تعالٰي قول، چه مونږ هر جاندار څيز دَ اوبو نه پيدا كه، آيا دا خلق ايمان نه راوړي، او دَ الله تعالٰي قول چه اوبنائے كومے اوبه چه تاسو څكئے، آيا تاسو هغه دَ وريځے نه راكوزے كړي دي يا مونږ دَ هغے راكوزونكے (راوزونكے) يو. كه مونږ اوغواړو، نو هغه به ترخے جوړے كړو، بيا تاسو شكريه ولے نه ادا كوئ. اجاج معني ترېخ او مزن وريخ ته وائي.

باب ۵۸۷: فِي الشُّرْبِ

باب ۵۸۷: دَ اوبو دَ تقسيم بيان او بعضے خلق

وَمَــنْ رَأَى صَــدَقَةَ الْـمَـآءِ وَهِبَتَـهُ وَ وَصِيَّتَـهُ جَـآئِزَةً مَّقْسُومًا كَـانَ اَوْ غَيْـرَ مَـقْسُوْمٍ وَّ قَـالَ عُثْـمَـانُ قَـالَ الـنَّبِـيُّ صَلَّـى اللّـٰـهُ عَـلَيْــهِ وَسَـلَّـمَ مَـنْ يَّشْتَـرِىْ بِـئْـرَ رُوْمَةَ فَيَـكُـوْنَ دَلْـوُهٗ فِيْهَا كَدِلَآءِ الْمُسْلِمِيْنَ فَاشْتَرَاهَا عُثْمَانُؓ.

ذَ دې قائل دي' چه اوبهٔ خیرات کول' هغه هبه کول' او د هغې وصیت جائز دې' خواه هغه تقسیم شوي وي یا نه وي تقسیم شوې. او ذ حضرت عثمانؓ بیان دې' چه نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل' څوک شته' چه بیر رومه واخلي' او هغه ته به په دې کوئي کښې هغه شان د بوقې ښکته کولو (اوبو اخستلو) حق حاصل وي' څنګه چه ټولو مسلمانو ته وي (یعني چه په بیع ئې واخلي اوو وقف ئې کړي) نو حضرت عثمان هغه واخستلوﷺ.

ا . د حجاز مقدس په زمکې کښې چه د اوبو خاص کر د څکلو د اوبو چه کوم مشکلات وو هغه معلومه دي. بئر رومه د یو یهودي کوهې وو مسلمانانو به هم هغه استعمالولو لیکن هغوئ د دغه اوبو باقاعده قیمت ورکولو' په دې وجه حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم د دې ترغیب ورکړو چه دا کوهې د په بیعه واخستې شي او مسلمانانو د پاره دِ وقف کړې شي چه ددې په استعمال کښې د هیڅ قسمه ګرانتیا پاتې نشي. اسلام د اوبو په مسئله کښې همت افزائي دې د پاره کړې ده چه ددې نفع عامه اوساتلې شي لیکن بهرحال دا یو داسې څیز دې چه د هر یو فرد په ملکیت کښې د راتلو صلاحیت لري. دې د پاره اصولي طور سره په دې کښې هم د هغه تمامو اُمورو اجازت شته کوم چه په دې ضمن کښې راځي. بیع او شراء' وصیت او هبه وغیره د اوبو هم جائز دي.

۸۹۲: حَـدَّثَـنَا سَعِيْدُ ابْـنُ اَبِـىْ مَـرْيَـمَ حَـدَّثَـنَا اَبُـوْ غَسَّـانَ قَـالَ حَـدَّثَـنِـىْ اَبُـوْ حَازِمٍ عَنْ سَهْلِ ابْـنِ سَعْدٍ قَـالَ اُتِـىَ النَّبِـىُّ صَلَّـى اللّـٰـهُ عَـلَيْـهِ وَسَلَّمَ بِقَدَحٍ فَشَرِبَ مِنْـهُ وَ عَنْ يَّـمِيْـنِـهٖ غُلَامٌ اَصْغَرُ الْـقَـوْمِ وَالْاَشْيَـاخُ عَنْ يَّسَارِهٖ فَقَـالَ يَـا غُلَامُ اَتَـأْذَنُ لِـىْ اَنْ اُعْطِيَـهُ الْاَشْيَـاخَ قَـالَ مَـا كُـنْـتُ لِاُوْثِـرَ بِـفَـضْـلِىْ مِـنْكَ اَحَـدًا يَـا رَسُـوْلَ اللّٰهِ فَاَعْطَاهُ اِيَّاهُ.

۸۹۲: سعید بن ابي مریم. ابو غسان. ابوحازم. سهیل بن سعد نه روایت کوي. نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم ته یوه پیاله راوړې شوه' حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم ذ هغې نه اوڅکل' د حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم ښي طرف ته یو کم عمره هلک وو' او ګس طرف ته ئې ذ زیات عمل او بوډاګان خلق وو حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل' اې بچې' آیا ته اجازت کوې' چه زهٔ دا پیاله بوډاګانو ته ورکړم. هغې بچي اووې' یا رسول اللّٰه! زه ستاسو په جوټه اخستلو کښې په خپل ځان بل چاته ترجیح نه ورکوم' نو حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم هغه پیالې هغې بچي له ورکړهﷺ.

۱. دا كم عمره هلک حضرت ابن عباس رضي الله عنه وو. په اسلام كښې د مجلس اصول دا دي چه ي چرې څه څيز تقسيموي نو د صف ښي طرف نه د شروع اوكړے شي. پاک حضرت سيد الناس وو او مشروب هم د هغوی په خدمت كښې پيش كړے شوے وو؛ دے د پاره كله چه حضور د هغے نه څكل وكړل او ياقي ئے تقسيمول اوغوښتل نو د همدے اصولو په بنا باندے هغوی له د ښي طرفه شروع كول وو. بل خوا مجلس په دا شان جوړ وو چه ټول شيوخ او مشران صحابه كس طرفته ناست وو او د حضور ښي طرفته حضرت ابن عباس رضي الله عنه وو. حضور صلي الله عليه وسلّم د مشرانو صحابه ؤ لحاظ ساتلو سره د ابن عباس رضي الله عنه نه د دے اجازت اوغوښتلو چه هغه د خپل حق دوی له ور كړي ليكن هغه په دے ايثار باندے تيار نشو. په حديث كښې ددے تصريح نيشته چه پياله كښې اوبه وے او كه پي وو. غالبًا د مصنف رحمة الله عليه رجحان دا دے چه خالصے اوبه وے يا اوبه گډے شوے پي وو. او ثابتول دا غواړي چه پاک حضرتّ اوبه ابن عباس رضي الله عنه ته هبه كړے.

۸۹۳: حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ حَدَّثَنِي أَنَسُ بْنُ مَالِكٍ أَنَّهَا حُلِبَتْ لِرَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَاةٌ دَاجِنٌ وَهِيَ فِي دَارِ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ وَشِيبَ لَبَنُهَا بِمَاءٍ مِنَ الْبِئْرِ الَّتِي فِي دَارِ أَنَسٍ فَأُعْطِيَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْقَدَحَ فَشَرِبَ مِنْهُ حَتَّى إِذَا نَزَعَ الْقَدَحَ مِنْ فِيهِ وَعَلَى يَسَارِهِ أَبُوبَكْرٍ وَعَنْ يَمِينِهِ أَعْرَابِيٌّ فَقَالَ عُمَرُ وَخَافَ أَنْ يُعْطِيَهُ الْأَعْرَابِيَّ فَقَالَ أَعْطِ أَبَابَكْرٍ يَا رَسُولَ اللّٰهِ عِنْدَكَ فَأَعْطَاهُ الْأَعْرَابِيَّ الَّذِي عَلَى يَمِينِهِ ثُمَّ قَالَ الْأَيْمَنَ فَالْأَيْمَنَ.

۸۹۳: ابو اليمان. شعيب. زهري بيان كړي چه ماته انس بن مالک اووے، رسول الله صلي الله عليه وسلّم د پاره يو چيلۍ د انس بن مالک كور كښې ساتلے شوے وه، هغه د حضور صلي الله عليه وسلّم د پاره اولشلے شوه، او د هغے پيئ كښې د هغے كوني اوبه واچولے شوے، چه د انس بن مالک په كور كښې وو. بيا رسول الله صلي الله عليه وسلّم له پيالۍ ور كړے شوه، او حضور صلي الله عليه وسلّم د هغے نه (پئے) او څكل. تر دے چه پياله ئے كوم وخت د خولے نه جدا كړه، نو د حضور صلي الله عليه وسلّم كس طرف ته ابوبكرؓ وو، او ښي طرف ته يو اعرابي (باندېسے) وو، حضرت عمر سره فكر شو چه حضور صلي الله عليه وسلّم هغه پيالۍ چرته هغه اعرابي له ورنكړي، نو هغه عرض اوكه يا رسول الله! ابوبكرؓ له ئے وركړني، چه تاسو سره ناست دے. ليكن حضور صلي الله عليه وسلّم هغه پيالۍ هغے باندېسي له وركړه چه د حضور صلي الله عليه وسلّم ښي طرف ته وو. بيائے اوفرمائيل د ښي طرف سړے زيات حقدار دے، بيا چه څوک د هغه ښي طرف ته وي.

**بـــاب ۵۸۸: مَـــنْ قَـــالَ اِنَّ صَـاحِبَ الْمَـآءِ اَحَقُّ بِـالْمَآءِ حَتّٰى يَرْوِىَ لِقَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يُمْنَعُ فَضْلُ الْمَآءِ.**

**باب ۵۸۸: دَ هغـې خـلقو بيان، چه دَ دې قائل دي چه دَ، اوبو مالک دَ اوبو زيات مستحق دې، تر دې چه سيـراب شـي، پـه دليل دَ، ارشاد نبوي صلي الله عليه وسلّم، چه زياتي اوبه دې نشي بندولې ۱.**

۱. د دې مـفهوم دا دې چه کـه چرې څـوک سړې پـه يـو داسې غير آباده زمکه کښ د خپل څه ضرورت د پـاره کـوهې او کَني چه هغې سره نزدې دَ اوبو نوم او نشان نه وي او بيا د خپلو څاروؤ څرؤلو دَ پـاره هـلتـه څه خلق لاړ شي نو کوهې کنستونکې د خپل ضرورت مطابق اوبو اخستلو نه پس ددې مجاز نه وي چه هـلته ورتـلـونکي خلق د دغه اوبو د استعمال نه منع کړي. دا ضرور ده چه وړمبې د خپل ضرورت مطابق اوبو اخستلو همدې زيات مستحق دې.

۸۹۴: حَـدَّثَـنَـا عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ يُـوْسُفَ اَخْبَـرَنَـا مَـالِكٌ عَنْ اَبِيْ الزِّنَادِ عَنِ الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰـهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا يُمْنَعُ فَضْلُ الْمَآءِ لِيُمْنَعَ بِهِ الْكَلَا.

۸۹۴: عـبـدالـلّٰـه بـن يـوسف. مالک ابو الزناد. اعـرج. ابوهريرهؓ نه روايت کوي، دَ هغه بيان دې، رسول الـلّٰه صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، دَ ضرورت نه زياتې اوبـه دې څـکـه نـه شـي بـنـدولې چه وابنه (دَ څناورو دَ خوراک نه) بند کړي.

۸۹۵: حَـدَّثَنَا يَحْيٰى بْنُ بُكَيْرٍ حَـدَّثَـنَـا الـلَّـيْـثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنِ ابْنِ الْمُسَيِّبِ وَّ اَبِيْ سَلَمَةَ عَـنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰـهُ عَـلَيْـهِ وَسَـلَّمَ قَالَ لَا تَمْنَعُوْا فَضْلَ الْمَآءِ لِتَمْنَعُوْا بِهٖ فَضْلَ الْكَلَاٰءِ.

۸۹۵: يـحـيـي بـن بـكـيـر. لـيـث. عـقـيـل. ابن شهـاب. ابـن مسيـب و ابـو سـلـمـه. حضرت ابوهريرهؓ نـــه رويــات کــوي، رسـول الـلّٰـه صـلي الـلّٰـه عـلـيـه وسـلّـم فـرمائيلي دي، بچ شوې اوبه مه بندوئ، چه دَدې پــه ذريعــه بـچ شـوې (دَ ضـــرورت نــه زائد) وابنـه هم بند کړئ ۱.

۱. د دې حـديث په عنوان باندې چه کوم نوټ تير شو هغه مخې ته کيدئي کله چه دَاوبو استعمال نه مـنـع او کـړې شي او پـه قُرب و جوار کښ چرته اوبه نه وي نو ظاهره ده چه څوک څاروي څرونکې هلته خپـل څـاروي نشـي بـوتلې. په دا شان چه په دغه علاقه کښ کوم وابنه بچ کيږي نو د اوبو نه بندؤنکې به د هغې نه هم د بندولو سبب جوړيږي.

**بـــاب ۵۸۹: مَـــنْ حَـفَـــرَ بِـــئْــرًا فِـــىْ مِـــلْـــكِـــهٖ لَـمْ يَضْمَنْ.**

**باب ۵۸۹: کـوم سړي چه خپـل ملک کښ کـوئې اوکـنستـهٔ او هـغې کـښ څوک اوغرځيږي، نو تاوان پرې نشته.**

۸۹۶: حَـدَّثَـنَـا مَحْمُوْدُ اَخْبَرَنَا

۸۹۶: مـحـمـود. عبيدالله. اسرائيل. ابوحصين.

عُبَيْدُ اللّٰهِ عَنْ اِسْرَآئِيْلَ عَنْ اَبِيْ حُصَيْنٍ عَنْ اَبِيْ صَالِحٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمَعْدِنُ جُبَارٌ وَّالْبِئْرُ جُبَارٌ وَّالْعَجْمَآءُ جُبَارٌ وَّ فِي الرِّكَازِ الْخُمُسُ.

ابوصالح. ابوهريره روايت کوي: رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي: که کان کنولو کښې خوک مړشي، نو تاوان نشته. او که کوي کنولو کښې خوک مړشي، نو معاف دے. او که ـ خاورو نه مړشي، نو هيڅ تاوان نشته. او رکاز کښې پنځمه ده[۱].

ف: زمکه کښې دننه دَ الله تعالٰي پيدا کړي دهاتونو ته رکاز وائي.

۱. د رکاز بحث په کتاب الزکاة کښې تير شوے دے. مصنف رحمة الله عليه دلته دا ښودل غواړي چه که چرے خوک سړے په خپله زمکه کښې څه کوهے يا کان اوکني او بيا خوک بل سړے په هغې کښې پرېوځي او مړشي يا د هغې نه ورته څه صدمه اورسي نو په مالک باندے دهے څه ذمه واري نه راځي. ددے بعضے تفصيلات او شرائط د فقې په کتابونو کښې کتلے کيدے شي.

## بَابٌ ۵۹۰: اَلْخُصُوْمَةُ فِي الْبِئْرِ وَالْقَضَآءِ فِيْهَا.

## باب ۵۹۰: دَ کوئ معلق دَ جګړے او د هغے د فيصلے بيان.

۸۹۷: حَدَّثَنَا عَبْدَانُ عَنْ اَبِيْ حَمْزَةَ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ شَقِيْقٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ حَلَفَ عَلٰى يَمِيْنٍ يَقْتَطِعُ بِهَا مَالَ امْرِئٍ مُسْلِمٍ هُوَ عَلَيْهَا فَاجِرٌ لَقِيَ اللّٰهَ وَهُوَ عَلَيْهِ غَضْبَانُ فَاَنْزَلَ اللّٰهُ تَعَالٰى اِنَّ الَّذِيْنَ يَشْتَرُوْنَ بِعَهْدِ اللّٰهِ وَ اَيْمَانِهِمْ ثَمَنًا قَلِيْلًا الْاٰيَةَ فَجَآءَ الْاَشْعَثُ فَقَالَ مَا حَدَّثَكُمْ اَبُوْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ فِيَّ اُنْزِلَتْ هٰذِهِ الْاٰيَةُ كَانَتْ لِيْ بِئْرٌ فِيْ اَرْضِ ابْنِ عَمٍّ لِيْ فَقَالَ لِيْ شُهُوْدَكَ قُلْتُ

۸۹۷: عبدان. ابوحمزه. اعمش. شقيق. عبدالله (بن مسعود) نبي صلي الله عليه وسلم نه روايت کوي. حضور صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل، خوک چه دروغ قسمونه خوري: چه دَ چا مسلمان مال[۱]، چه د هغه په ذمه واجب دے، هغه هضم کړي، نو هغه به خدائے سره داسے حال کښې يوځائے کيږي، چه خدائے به ترے ناراض وي، نو الله تعالٰي دا، آيت نازل کړلو، کوم خلق چه دَ الله عهد او د خپلو قسمونو په ذريعه لږ قيمت وصولوي، آخر آيت پورے، بيا اشعث راغے، نو وے وئيل، چه ابو عبدالرحمن تاته څه بيان کړلو. دا، آيت خو زما متعلق نازل شوے دے. ځکه دَ تره دَ خوي په زمکه کښې يو کوئے وو. (دَ هغے متعلق جګړه شوه) نو حضور صلي الله عليه وسلم ماته اووے، خپل ګواه راوله، ما عرض اوکه. خما هيڅوک ګواه نشته. نو حضور صلي

مَالِيْ شُهُوْدٌ قَالَ فَيَمِيْنُهٗ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَنْ يَحْلِفُ فَذَكَرَ النَّبِيُّ هٰذَا الْحَدِيْثَ فَاَنْزَلَ اللّٰهُ ذَالِكَ تَصْدِيْقًا لَهٗ.

اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل هغه به قسم اوخوري. ما عرض اوكه، يا رسول اللّٰه! هغه خو به قسم اوخوري دغه وخت، حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم دا حديث بيان اوكه نو اللّٰه تعالىٰ د حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم تصديق اوكه، دا، آيت نازل شو.

۱. په دې موقعه دا خبره ياد لرل پكار دي چه د مسلمان نوم صرف تاكيد د پاره اخستې شوې دې كنې غير مسلم خواه كه ذمي وي يا نه وي هيڅ سره په حديث كښې ذكر شوې معامله جائز نه ده. د معاملاتو په باب كښې اكثر همدغه شان احاديث بيان شوي دي دې د پاره ځومره احاديث چه په دې سلسله كښې راشي په هغې كښې دا نكته ملحوظ ساتل پكار دي.

باب ۱۵۹۱: اِثْمِ مَنْ مَّنَعَ اِبْنَ السَّبِيْلِ مِنَ الْمَآءِ.

باب ۱۵۹۱: د هغې سړي ذ ګناه بيان چه مسافرو له اوبه ورنه كړي.

۸۹۸: حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ اِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ بْنُ زِيَادٍ عَنِ الْاَعْمَشِ قَالَ سَمِعْتُ اَبَا صَالِحٍ يَقُوْلُ سَمِعْتُ اَبَا هُرَيْرَةَ يَقُوْلُ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثَلٰثَةٌ لَا يَنْظُرُ اللّٰهُ اِلَيْهِمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ وَلَا يُزَكِّيْهِمْ وَلَهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ رَجُلٌ بَايَعَ اِمَامًا لَّا يُبَايِعُهٗ اِلَّا لِدُنْيَا فَاِنْ اَعْطَاهُ مِنْهَا رَضِيَ وَ اِنْ لَمْ يُعْطِهٖ مِنْهَا سَخِطَ وَ رَجُلٌ اَقَامَ سِلْعَتَهٗ بَعْدَ الْعَصْرِ فَقَالَ وَاللّٰهِ الَّذِيْ لَا اِلٰهَ غَيْرُهٗ لَقَدْ اُعْطِيْتُ بِهَا كَذَا وَ كَذَا فَصَدَّقَهٗ رَجُلٌ ثُمَّ قَرَاَ هٰذِهِ الْاٰيَةَ اِنَّ الَّذِيْنَ يَشْتَرُوْنَ بِعَهْدِ اللّٰهِ وَ اَيْمَانِهِمْ ثَمَنًا قَلِيْلًا.

۸۹۸: موسىٰ بن اسمٰعيل. عبدالواحد بن زياد. اعمش. ابوصالح. ابوهريرهؓ نه روايت كوي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل. اللّٰه تعالىٰ به ذ قيامت په ورځ درې كسانو ته نه ګوري، او نه به هغوي پاك كړي او هغوي د پاره دردناك عذاب دې. اول هغه سړې چه هغه سره لار كښې د ضرورت نه زياتې اوبهٔ وي، او هغه مسافر له ورنه كړي، دويم هغه سړې چه هغه ذ، يو امام نه بيعت صرف ذ، دنيا د پاره اوكه، كه هغه ته څه دُنياوي څيز وركوي نو راضي وي، اوكه نه وركوي، نو ناراض وي. دريم هغه سړې، چه خپل سامان ذ مازيګر نه پس واخلي اودريږي، اووائي، په خدائې م دې قسم وي، چه د هغه نه سيوا بل معبود نشته، ما ته ذ دې قيمت دومره دومره راكيدې شو، ليكن ما ورنه كړلو، او څوك سړې هغه ريښتنې هم اوګنړي. بيائې دا آيت اولوستو. ان الّذين يشترون بعهد اللّٰه و ايمانهم ثمنًا قليلًا.

باب ۱۵۹۲: سَكْرِ الْاَنْهَارِ.

باب ۱۵۹۲: د نهر ذ، اوبو، ذ بندولو بيان.

٨٩٩: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ يُوْسُفَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ قَالَ حَدَّثَنِيْ ابْنُ شِهَابٍ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ ابْنِ الزُّبَيْرِ اَنَّهُ حَدَّثَهُ اَنَّ رَجُلًا مِّنَ الْاَنْصَارِ خَاصَمَ الزُّبَيْرَ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ شِرَاجِ الْحَرَّةِ الَّتِيْ يَسْقُوْنَ بِهَا النَّخْلَ فَقَالَ الْاَنْصَارِيُّ سَرِّحِ الْمَآءَ يَمُرُّ فَاَبٰى عَلَيْهِ فَاخْتَصَمَا عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِلزُّبَيْرِ اَسْقِ يَا زُبَيْرُ ثُمَّ اَرْسِلِ الْمَآءَ اِلٰى جَارِكَ فَغَضِبَ الْاَنْصَارِيُّ فَقَالَ اَنْ كَانَ ابْنُ عَمَّتِكَ فَتَلَوَّنَ وَجْهُ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ قَالَ اسْقِ يَا زُبَيْرُ ثُمَّ احْبِسِ الْمَآءَ حَتّٰى يَرْجِعَ اِلَى الْجَدْرِ فَقَالَ الزُّبَيْرُ وَاللّٰهِ اِنِّيْ لَاَحْسِبُ هٰذِهِ الْاٰيَةَ نَزَلَتْ فِيْ ذٰلِكَ فَلَا وَرَبِّكَ لَا يُؤْمِنُوْنَ حَتّٰى يُحَكِّمُوْكَ فِيْمَا شَجَرَ بَيْنَهُمْ.

٨٩٩: عبدالله بن يوسف. ليث. ابن شهاب. عروه. عبدالله بن زبير نه روايت كوي، يو انصاري د حضرت زبير په حقله نبي صلي الله عليه وسلم د، حره نهر، متعلق جګړه پيش کړه، چه د هغې نه به ئې خپلې قجورې اوبه كولې. انصاري اووې، چه اوبه راپريږده (ليكن زبير انكار اوكه) نبي صلي الله عليه وسلم ته مقدمه مخکښې شوه، نو رسول الله صلى الله عليه وسلّم زبير ته اوفرمائيل، اې زبير، خپله زمكه اوبه كړه، بيا اوبه خپل ګوانډي ته پريږده. نو انصاري په دې غصه شو، او وې وئيل، چه هغه ستاسو د ترور خوئې دې كنه، دې اوريدو سره د حضور صلي الله عليه وسلّم د مخ مبارک رنګ شولو بيائې اوفرمائيل. اې زبيره اوبه بندې کړه، تر دې چه ديوال ته اورسي زبير وائي په خدائې چه، خما ګمان دې، چه دا، آيت د هغه متعلق نازل شوې دې: فلا و ربک الخ (قسم دې ستا پروردګار، چه هغه خلق به مومن نه وي، څو پورې چه هغوي تا خپلې مقدمه كښې فيصله كوونكې جوړ نكړي)[1].

[1]. دا حديث به روستو هم راځي او د متعددو عنواناتو لاندې. مصنف رحمة الله عليه ددې نه مستنبط كيدونكو مسائلو وضاحت كړے دے. اوبه د حضرت زبير رضي الله عنه د باغ نه تيريدلې، ولې چه دانصاري رضي الله عنه باغ د هغې نه پس په ژوره كښې وو. د بعضو احاديثو نه دا معلوميږي چه مخكښې به پورته نې علاقه خړوبولې شي او ژورې علاقې به د هغې نه پس خړوبيږي. په حقيقت كښې دا ټول تفصيلات د عُرف او عادت تابع وي. كه چرې عام طور سره په يوځائې كښې دا دستور وي چه مخكښې ژوره زمكه خړوبولې شي بيا اوچته زمكه، نو د همدې مطابق به عمل كولې شي ولې چه په دې قسمه مسائلو كښې د حالاتو او مقاماتو ضرورت او رعايت ته هم دخل وي. په دې حديث كښې د ټولو نه اهمه

مسئله د انصاري صحابيؓ د حضور صلي الله عليه وسلّم په فيصله باندے ناګواري ښکاره کول دي. د قاعدے تر مخه د حضور اکرم صلي الله عليه وسلّم فيصله قطعًا حق بجانب وه او اوبه مخکښ زبير رضي الله عنه ته ملاويدل پکار وو، دے د پاره که چرے حضورﷺ دا فيصله او کړه نو په دے کښ د هيڅ اعتراض څه وجه هم نه وه، ليکن د دے باوجود انصاري رضي الله عنه ناګواري ښکاره کړه او تر دے پورے نے اووے چه هاؤ زبير ستاسو د ترور خوئے دے کنه. دلته دا خبره خيال کښ ساتل پکار دي چه په صحيح روايت سره د دغه انصاري صحابي بدري کيدل ثابت دي په دے وجه په هغوئ باندے د څه قسمه نفاق وغيره الزام به هم غلط وي. محدثينو ددے مختلف توجيهات کړي دي مثلاً دا چه د انصاري رضي الله عنه پيش نظر دا وُو چه د جانز والي تر حده پورے څرنګ چه زبير رضي الله عنه له باغ ته مخکښ اوبه بوتلل جانز دي دغه شان ماله هم جانز دي او حضورﷺ د زبير رضي الله نه په حق کښ فيصله د خپلوئ په وجے سره کوي. چونکه د حلّت او حُرمت دلته څه سوال نه وو چه دا اُويلے شي چه صحابي په حضورﷺ باندے د حُرمت جانب ته د هغوئ د رُجحان الزام اولګولو. دے د پاره خبره څه زياته سنګينه نشوه. ليکن بهرحال په دے کښ هيڅ کلام نشي کيدے چه صحابي رضي الله عنه ډيره غټه خبره کړے وه. په اصل کښيے چه خپل حق کښ نے فيصله اونه ليده نو صحابي له غصه ورغلے وه او د غصے په حالت کښ د سړي د خولے نه دا قسمه خبرے اوځي. د ايمان او کفر په اعتبار سره د يوے خبرے په مختلفو مواقعو کښ فيصله مختلفه وي. د صحابي نيت هر ګز بد نه وو او نه هغوئ دا خبره د اعتراض په طور کړے وه بلکه صرف په غصه کښ د هغوئ د ژبے نه دا الفاظ وتلي وو. هاؤ که چرے پيش نظر اعتراض او الزام وے نو همدے کلماتو د کفر حدونو ته رسؤل کولے شو. مونږ له په داسے ځايونو کښ څه فيصلے ته رسيدلو کښ د انساني طبيعتونو هم لحاظ ساتل ضروري دي.

صحابهؓ د هر څه کيدلو باوجود هم انسانان وو. او د خپل طبيعت نه خلاف څه فيصله اوريدلو سره فوري او وقتي ناګواري د طبعي کيدلو نه انکار ممکن نه دے. تاسو په دے باندے نظر اولرئ چه حضور صلي الله عليه وسلّم به په زرګونو فيصلے په خپل ژوند مبارک کښ کړے وي او په څه فيصله باندے د ناګواري واقعه يو دوؤ خلو نه زياته نه ده پيښه شوے او هغه هم وقتي. دا هم په خيال کښ اوساتئ چه خبره د مسلمانانو متعلق کيږي، د منافقانو خبره په مينځ کښ راتلل نه دي پکار. د کوم رنګ واقعه چه په حديث کښ ذکر ده که چرے د انساني طبيعتونو لحاظ اولرلے شي نو د قومونو په ژوند کښ ددے قسمه واقعاتو هيڅ اهميت نه وي. د انصاري صحابي ناګواري قطعًا وقتي وه او بيا به سمدستي ختمه شوے وي.

حضور اکرم صلي الله عليه وسلّم چه په ابتدا کښ کومه فيصله کړے وه هغه اګرچه د زُبير رضي الله عنه په حق کښ وه ليکن د انصاري صحابي هم په دے کښ تر ډيره حده پورے رعايت ساتلے شوے وو، کله چه هغهٔ د ناګوارئ اظهار اوکړو نو پاک حضرتﷺ په فيصله باندے نظرثاني کښ د هيڅ قسمه رعايت اونه کړو.

## باب ۵۹۳: شِرْبِ الْاَعْلٰى قَبْلَ الْاَسْفَلِ

باب ۵۹۳: دَ اوچتے زمکے دَ لاندے زمکے نه وړومبے دَ اوبه کولو بيان.

۹۰۰: حَدَّثَنَا عَبْدَانُ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عُرْوَةَ قَالَ خَاصَمَ الزُّبَيْرَ رَجُلٌ مِّنَ الْاَنْصَارِ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَا زُبَيْرُ اِسْقِ ثُمَّ اَرْسِلْ. فَقَالَ الْاَنْصَارِيُّ اِنَّهُ ابْنُ عَمَّتِكَ فَقَالَ عَلَيْهِ السَّلَامُ اِسْقِ يَا زُبَيْرُ حَتّٰى يَبْلُغَ الْمَآءُ الْجَدْرَ ثُمَّ اَمْسِكْ فَقَالَ الزُّبَيْرُ فَاَحْسِبُ هٰذِهِ الْاٰيَةَ نَزَلَتْ فِيْ ذَالِكَ فَلَا وَ رَبِّكَ لَا يُؤْمِنُوْنَ حَتّٰى يُحَكِّمُوْكَ فِيْمَا شَجَرَ بَيْنَهُمْ.

۹۰۰: عبدالله. عبدالله معمر. زهري. عروه نه روايت دے، چه حضرت زبيرؓ سره يو انصاري جګړه اوکړه، نو نبي صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل، اے زبيره، خپله زمکه اوبه کړه. بيا اوبه پريږده، انصاري اووے، چه هغه خو ستاسو د ترور خوئے دے. ځکه؟ نو رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل. اے زبيرؓ اوبه کوه، تردے چه اوبه ديوال ته اورسي. بيائے بندے کړه، زبيرؓ اووے، زۀ ګمان کوم، چه دا آيت: فَلَا وَ رَبِّكَ لَا يُؤْمِنُوْنَ الخ. د دے متعلق نازل شوے دے.

## باب ۵۹۴: شِرْبِ الْاَعْلٰى اِلَى الْكَعْبَيْنِ.

## باب ۵۹۴: اوچت پټي (کهيت) واله دے د ګټو پورے اوبه اولري.

۹۰۱: حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ اَخْبَرَنَا مُخَلَّدٌ قَالَ اَخْبَرَنِيْ ابْنُ جُرَيْجٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ ابْنُ شِهَابٍ عَنْ عُرْوَةَ ابْنِ الزُّبَيْرِ اَنَّهُ حَدَّثَهُ اَنَّ رَجُلًا مِّنَ الْاَنْصَارِ خَاصَمَ الزُّبَيْرَ فِيْ شِرَاجٍ مِّنَ الْحَرَّةِ يَسْقِيْ بِهَا النَّخْلَ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِسْقِ يَا زُبَيْرُ فَاَمَرَهُ بِالْمَعْرُوْفِ ثُمَّ اَرْسِلْ اِلٰى جَارِكَ فَقَالَ الْاَنْصَارِيُّ اَنْ كَانَ ابْنُ عَمَّتِكَ فَتَلَوَّنَ وَجْهُ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ اِسْقِ ثُمَّ احْبِسْ حَتّٰى يَرْجِعَ الْمَآءُ اِلَى الْجَدْرِ وَاسْتَوْعٰى لَهُ حَقَّهُ فَقَالَ الزُّبَيْرُ وَاللّٰهِ

۹۰۱: محمد. مخلد. ابن جريج. ابن شهاب. عروه بن زبيرؓ نه روايت کوي. د هغه بيان دے، چه يو انصاري زبيرؓ د، حره، لختي متعلق جګړه اوکړه چه په هغے به ئے د قجورو. اونے سيراب کولے. رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل، اے زبيرؓ، خپله زمکه اوبۀ کړه. بيا د، دستور مطابق ئے هغه ته حکم ورکه، چه خپل ګوانډي د پاره (اوبه) پريږده. نو انصاري اووے، هغه ستاسوٌ د ترور خوئے دے. نو د رسول الله صلي الله عليه وسلم د مخ مبارک رنګ بدل شولو (حضور صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل) بيائے اوبه کړه، بيائے بندے کړه. تردے چه اوبه د پټي ديوال ته اورسي. او زبيرؓ ته حضور صلي الله عليه وسلم

انّ هٰذِهِ الاٰیَةَ اُنْزِلَتْ فِیْ ذَالِكَ فَلَا وَ رَبِّكَ لَا یُؤْمِنُوْنَ حَتّٰی یُحَکِّمُوْكَ فِیْمَا شَجَرَ بَیْنَهُمْ قَالَ ابْنُ شِهَابٍ فَقَدَّرَ الْاَنْصَارُ وَالنَّاسُ قَوْلَ النَّبِیِّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ اِسْقِ ثُمَّ اَحْبِسْ حَتّٰی یَرْجِعَ اِلَی الْجَدْرِ فَکَانَ ذَالِكَ اِلَی الْکَعْبَیْنِ.

پوره پوره حق ورکړلو. زبیر اووې په خدائي چه دا آیت: فَلا و ربک لا یؤمنون الخ. د دې متعلق نازل شوې دې. او د ابن شهاب بیان دې چه انصارو او ټولو خلقو د نبي صلی الله علیه وسلم د دې فرمان چه "اوبه کره تر دې چه د پټي دیوالونو ته اورسي" دا اندازه لګولې ده چه ګټو پورې اوبه اورسي.

## باب ۵۹۵: فَضْلِ سَقْیِ الْمَآءِ.

## باب ۵۹۵: د اوبو څکولو ثواب.

۹۰۲: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ یُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ سُمَیٍّ عَنْ اَبِیْ صَالِحٍ عَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ قَالَ بَیْنَا رَجُلٌ یَمْشِیْ فَاشْتَدَّ عَلَیْهِ الْعَطَشُ فَنَزَلَ بِئْرًا فَشَرِبَ مِنْهَا ثُمَّ خَرَجَ فَاِذَا هُوَ بِکَلْبٍ یَلْهَثُ یَاْکُلُ الثَّرٰی مِنَ الْعَطَشِ فَقَالَ لَقَدْ بَلَغَ هٰذَا مِثْلُ الَّذِیْ بَلَغَ بِیْ فَمَلَاَ خُفَّهٗ ثُمَّ اَمْسَکَهٗ بِفِیْهِ ثُمَّ رَقِیَ فَسَقَی الْکَلْبَ فَشَکَرَ اللّٰهُ لَهٗ فَغَفَرَ لَهٗ قَالُوْا یَا رَسُوْلَ اللّٰهِ وَ اِنَّ لَنَا فِی الْبَهَائِمِ اَجْرًا قَالَ فِیْ کُلِّ کَبِدٍ رَطْبَةٍ اَجْرٌ تَابَعَهٗ حَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ وَالرَّبِیْعُ بْنُ مُسْلِمٍ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ زِیَادٍ.

۹۰۲: عبدالله بن یوسف. مالک. سمي. ابو صالح. ابو هریرة نه روایت دې، رسول الله صلي الله علیه وسلم اوفرمائیل یو سړې روان وو. د دې دوران کښې هغه تږې شو، هغه یو کوهي ته کوز شو، او د هغې نه ئې اوبه اوڅکلې. د کوهي نه چه بهر راووتلو، نو وې لیدل چه یو سپې تندې اخستې دې. او د تندې په وجه ختې ختې هغه اووې چه ده ته هم هغسې تنده لګیدلې ده څنګه چه ماته لګیدلې وه. نو هغه خپله موزه د اوبو نه ډکه کړه. بیا ئې هغه خپلې خولې سره اونیوله بیا پورته راوختلو. او سپي باندې ئې اوبه اوڅکولې، الله د هغه دا عمل قبول که، او هغه ئې اوبښه. خلقو عرض اوکه، یا رسول الله! آیا خناورو کښې هم مونږ د پاره اجر شته حضور صلي الله علیه وسلم اوفرمائیل: هر تر ځګر لرونکي یعني جاندار کښې ثواب دې. حماد بن سلمه او ربیع بن مسلم د محمد بن زیاد نه د دې متابع حدیث روایت کړې دې.

۹۰۳: حَدَّثَنَا ابْنُ اَبِیْ مَرْیَمَ حَدَّثَنَا نَافِعُ بْنُ عُمَرَ عَنِ

۹۰۳: ابن ابي مریم. نافع بن عمر. ابن ابي ملیکه. اسماء بنت ابي بکر نه روایت دې، چه نبي صلي

ابن أبي مُلَيْكَةَ عَنْ أَسْمَآءَ بِنْتِ أَبِي بَكْرٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَّى صَلٰوةَ الْكُسُوفِ فَقَالَ دَنَتْ مِنِّي النَّارُ حَتّٰى قُلْتُ أَيْ رَبِّ وَ أَنَا مَعَهُمْ فَإِذَا امْرَأَةٌ حَسِبْتُ أَنَّهُ قَالَ تَخْدِشُهَا هِرَّةٌ قَالَ مَا شَأْنُ هٰذِهِ قَالُوا حَبَسَتْهَا حَتّٰى مَاتَتْ جُوْعًا.

اللّٰه عليه وسلّم د نمر تندر نيولو مونځ او که. او وې فرمائيل ماته دوزخ قريب کړې شو. تردې چه ما اووې اے پروردګاره! آيا زه به هم دې دوزخيانو سره يم. دې کښې خما نظر په يوه ښخه پريوت. ما خيال اوکه چه هغې نه يوه پيشو (بلي) غوښه شوکوي. حضور صلى الله عليه وسلّم تپوس اوکه دا څه خبره ده؟ نو فرښتو اووې دې ښځې پيشو ساتلې وه، تردې چه د لوږې په سبب مړه شوله.

۹۰۴: حَدَّثَنَا إِسْمٰعِيْلُ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنْ نَافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ عُذِّبَتِ امْرَأَةٌ فِيْ هِرَّةٍ حَبَسَتْهَا حَتّٰى مَاتَتْ جُوعًا فَدَخَلَتْ فِيْهَا النَّارَ قَالَ فَقَالَ وَاللّٰهُ أَعْلَمُ لَا أَنْتِ أَطْعَمْتِهَا وَلَا سَقَيْتِهَا حِيْنَ حَبَسْتِهَا وَلَا أَنْتِ أَرْسَلْتِيْهَا فَأَكَلَتْ مِنْ خِشَاشِ الْأَرْضِ.

۹۰۴: اسمٰعيل. مالک. نافع. عبدالله بن عمرؓ نه روايت دې. رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم اوفرمائيل، يوه ښځه د يوې پيشو په سبب په عذاب کښې اخته کړې شوه، چه هغې، هغه ترلې وه، تردې چه هغه د لوږې نه مړه شوله، نو هغه ښځه دوزخ کښې داخله کړې شوه. او حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، اللّٰه زيات پوهيږي، چه تا نه هغې له خوراک ورکه، او نه دې پرې اوبه اوڅکولې، هر کله چه تا ترلې وه. او نه دې پريښودې، چه چينجو خوراک باندې ئې ګزاره کړې وې.

بَابٌ ۵۹۶: مَنْ رَأَى أَنَّ صَاحِبَ الْحَوْضِ وَالْقِرْبَةِ أَحَقُّ بِمَائِهٖ.

باب ۵۹۶: د هغې سړي بيان، چه خيال ئې اوکه، چه د حوض او مشک مالک د هغې د، اوبو زيات مستحق دې[1].

۱. مطلب دادې چه هر کله اربه څوک په خپل لوښي کښې کيدى يا د خپل ملکيت زمکې په څه حصې کښې ئې حصارې کړي نو اوس د اوبو مالک همدې دې او دده د اجازت نه بغير د هغې نه اوبه اخستل جائز نه دي.

۹۰۵: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ عَنْ

۹۰۵: قتيبه، عبدالعزيز. ابو حازم. سهيل بن سعد نه روايت دې. رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم ته

اَبِيْ حَازِمٍ عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ قَالَ اُتِيَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِقَدَحٍ فَشَرِبَ وَ عَنْ يَمِيْنِهٖ غُلَامٌ هُوَ اَحْدَثُ الْقَوْمِ وَالْاَشْيَاخُ عَنْ يَسَارِهٖ قَالَ يَا غُلَامُ اَتَأْذَنُ لِيْ اَنْ اُعْطِيَ الْاَشْيَاخَ فَقَالَ مَا كُنْتُ لِاُوْثِرَ بِنَصِيْبِيْ مِنْكَ اَحَدًا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ فَاَعْطَاهُ اِيَّاهُ.

يوه پيالۍ راوړے شوه. حضور صلي الله عليه وسلّم د هغے نه (پئے) اوڅکل. او دَ حضور صلي الله عليه وسلّم ښي طرف ته يو هلک ناست وو. چه دَ ټولو نه کم عمره وو. او مشران سړي دَ حضور صلي الله عليه وسلّم گس طرف ته ناست وو. حضور صلي الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل' اے بچيه! آيا ته ماته دَ دے خبرے اجازت رراکوے' چه زه دا پيالۍ دے مشرانو له ورکړم. هغه ورته اووے' يا رسول اللّٰهؐ! ستاسو جُوټے د پاره زه په خپله حصه په خپل ځان هيچا له ترجيح نه ورکوم. نو حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم هم هغه له ورکړه.

۹۰۶: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ زِيَادٍ سَمِعْتُ اَبَا هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ وَالَّذِيْ نَفْسِيْ بِيَدِهٖ لَاَذُوْدَنَّ عَنْ حَوْضِيْ كَمَا تُذَادُ الْغَرِيْبَةُ مِنَ الْاِبِلِ عَنِ الْحَوْضِ تَذُوْدَانِ تَمْنَعَانِ.

۹۰۶: محمد بن بشار. غندر. محمد بن زياد. ابوهريرهؓ نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت کوي. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل' قسم دے په هغه ذات' چه دَ هغه قبضه کښې ځما ساه ده' زه به دَ خپل حوض نه دَ قيامت په ورځ ځنے خلق داسے شړم' څنګه چه اجنبي اوښ دَ حوض نه شړلے شي.

۹۰۷: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ اَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنْ اَيُّوْبَ وَ كَثِيْرِ بْنِ كَثِيْرٍ يَزِيْدُ اَحَدُهُمَا عَلَى الْاٰخَرِ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ جُبَيْرٍ قَالَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَرْحَمُ اللّٰهُ اُمَّ اِسْمٰعِيْلَ لَوْ تَرَكَتْ زَمْزَمَ اَوْ قَالَ لَوْلَمْ تَغْرِفْ مِنَ الْمَآءِ لَكَانَتْ

۹۰۷: عبداللّٰه بن محمد. عبدالرازق. معمر. ايوب و كثير بن كثير. سعيد بن جبير. ابن عباس نه روايت کوي. دَ هغه بيان دے' نبي صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل' الله دے دَ اسمٰعيل په مور رحم اوکړي' که هغے زمزم پريښے وے' يا دا' ئے اوفرمائيل' که په چونګ ئے اوبه نه ډکولے' نو دا به يوه بهيدونکے چينه وے. او (قبيله) جرهم هغے له راغلل' او ورته ئے وئيلے آيا مونږ خلقو ته' ته' خپل خوا کښې دَ کوزيدو اجازت

عَيْنًا مَّعِيْنًا اَقْبَلَ جُرْهُمُ فَقَالُوْا اَتَأْذَنِيْنَ اَنْ نَّنْزِلَ عِنْدَكِ قَالَتْ نَعَمْ وَلَا حَقَّ لَكُمْ فِي الْمَآءِ قَالُوْا نَعَمْ.

راكوې. نو هغې ورته اووې. او. ليكن اوبو كښې به ستاسو هيڅ حق نه وي. هغې خلقو ورته اووې. بنه.

٩٠٨: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَمْرٍو عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ ثَلٰثَةٌ لَا يُكَلِّمُهُمُ اللّٰهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَلَا يَنْظُرُ اِلَيْهِمْ رَجُلٌ حَلَفَ عَلٰى سِلْعَةٍ لَقَدْ اُعْطِيَ بِهَا اَكْثَرَ مِمَّا اُعْطِيَ وَهُوَ كَاذِبٌ وَ رَجُلٌ حَلَفَ عَلٰى يَمِيْنٍ كَاذِبَةٍ بَعْدَ الْعَصْرِ لِيَقْتَطِعَ بِهَا مَالَ رَجُلٍ مُّسْلِمٍ وَّ رَجُلٌ مَّنَعَ فَضْلَ مَآءٍ فَيَقُوْلُ اللّٰهُ الْيَوْمَ اَمْنَعُكَ فَضْلِيْ كَمَا مَنَعْتَ فَضْلَ مَا لَمْ تَعْمَلْ يَدَاكَ قَالَ عَلِيٌّ حَدَّثَنَا سُفْيٰنُ غَيْرَ مَرَّةٍ عَنْ عَمْرٍو سَمِعَ اَبَا صَالِحٍ يَّبْلُغُ بِهِ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

٩٠٨: عبداللّٰه بن محمد. سفيان. عمرو. ابو صالح سمان. ابوهريرهؓ نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، درې سړو سره به د قيامت په ورځ اللّٰه پاك خبرې اونه كړي. او نه به هغوي طرف ته اوګوري، يو هغه سړې چه دَ څه سامان متعلق قسم اوخوري، چه دَ دې قيمت راته دَ دې نه زيات راكولې شو، حالانكه هغه خپل قسم كښې دروغژن وي. دويم هغه سړې چه هغه دَ مازيګر نه پس قسم اوخوړلو، د پاره دَ دې چه دَ يو مسلمان سړي مال هضم كړي، دريم هغه سړې چه هغه دَ ضرورت نه زياتې اوبه بندې كړې. يعني ورئې نه كړلې، نو اللّٰه تعالٰي به اوفرمائي، چه نن زهٔ تانه خپل فضل بندوم، څنګه چه تا دَ خپل ضرورت نه زياتې اوبهٔ بندې كړې وې، چه هغه تا نه وې پيدا كړې.

## بَابٌ ۵۹۷: لَا حِمٰى اِلَّا لِلّٰهِ وَلِرَسُوْلِهٖ.

## باب ۵۹۷: ورشو (چراګاه) مقررول دَ اللّٰه او دَ هغه دَ رسولؐ نه سيوا بل چا د پاره جائز نه دي.

٩٠٩: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ يُّوْنُسَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُتْبَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍؓ اَنَّ الصَّعْبَ بْنَ جَثَّامَةَ قَالَ اِنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا حِمٰى اِلَّا لِلّٰهِ

٩٠٩: يحيي بن بكير. ليث. يونس. ابن شهاب. عبيداللّٰه بن عبداللّٰه بن عتبه. ابن عباسؓ نه روايت كوي. صعب بن جثامه بيان او كه، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم فرمائيلي دي، دَ ورشو مقررولو حق صرف اللّٰه او دَ هغه رسول ته حاصل دې. او هغه اووې، مونږ

وَلِرَسُوْلِهٖ وَ قَالَ بَلَغَنَا اَنَّ النَّبِیَّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ حَمَی النَّقِیْعَ وَ اَنَّ عُمَرَ حَمَی الشَّرَفَ وَالرَّبَذَةَ.

ته خبر رارسیدلے دے. چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم بقیع او حضرت عمرؓ شرف او ربذه ورشو مقرر کړله.

باب۵۹۸: شُرْبِ النَّاسِ وَالدَّوَآبِ مِنَ الْاَنْهَارِ.

باب۵۹۸: د نهرونو نه د سړو' او چارپایه ؤ د اوبو څکلو بیان.

۹۱۰: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ یُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكُ بْنُ اَنَسٍ عَنْ زَیْدِ بْنِ اَسْلَمَ عَنْ اَبِیْ صَالِحِ السَّمَّانِ عَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الْخَیْلُ لِرَجُلٍ اَجْرٌ وَ لِرَجُلٍ سِتْرٌ وَّ عَلٰی رَجُلٍ وِّزْرٌ فَاَمَّا الَّذِیْ لَهٗ اَجْرٌ فَرَجُلٌ رَبَطَهَا فِیْ سَبِیْلِ اللّٰهِ فَاَطَالَ بِهَا فِیْ مَرْجٍ اَوْ رَوْضَةٍ فَمَا اَصَابَتْ فِیْ طِیَلِهَا ذَالِكَ مِنَ الْمَرْجِ اَوِ الرَّوْضَةِ كَانَتْ لَهٗ حَسَنَاتٍ وَّلَوْ اَنَّهٗ اَنْقَطَعَ طِیَلُهَا فَاسْتَنَّتْ شَرَفًا اَوْ شَرَفَیْنِ كَانَتْ اٰثَارُهَا وَ اَرْوَاثُهَا حَسَنَاتٍ لَّهٗ وَلَوْ اَنَّهَا مَرَّتْ بِنَهَرٍ فَشَرِبَتْ مِنْهُ وَلَمْ یُرِدْ اَنْ یَّسْقِیَ كَانَ ذَالِكَ حَسَنَاتٍ لَهٗ فَهِیَ لِذَالِكَ اَجْرٌ وَّ رَجُلٌ رَبَطَهَا تَغَنِّیًا وَّ تَعَفُّفًا ثُمَّ لَمْ یَنْسَ حَقَّ اللّٰهِ فِیْ رِقَابِهَا وَلَا ظُهُوْرِهَا فَهِیَ لِذَالِكَ سِتْرٌ وَّ رَجُلٌ رَبَطَهَا فَخْرًا وَّ رِیَآءً وَّ نِوَاءً لِّاَهْلِ الْاِسْلَامِ فَهِیَ عَلٰی ذَالِكَ وِزْرٌ وَّسُئِلَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی

۹۱۰: عبداللّٰه بن یوسف. مالک بن انس. زید بن اسلم. ابو صالح سمان. ابوهریرهؓ نه روایت کوي. رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل اس د یو سړي د پاره د ثواب باعث دے. او یو سړي د پاره د بچاؤ ذریعه ده' او چا د پاره د ګناه سبب دے. باعث ثواب د هغے سړي د پاره دے چه هغه اس د اللّٰه په لار کښې اوتړلو' او د هغے رسئ باغ یا ورشو کښې اوږده کړي' څومره چه هغه ورشو یا باغ کښې څري' هغومره به هغه ته ثواب حاصلیږي' او که د هغه رسئ اوشلیږي او یو بلندي یا دوه بلندي ټوپ اووهي' او د هغه هر قدم او خاشړو (لید) باندے به ورته ثواب رسي. او که هغه نهر سره تیر شي او د هغے نه اوبه اوڅکي. اګر که د هغه د اوبو څکلو اراده نه وي' نو په هغے به ورته نیکئ (نیکیاں) حاصلیږي. ځکه چه دا د هغه د پاره د اجر سبب دے' او هغه سړے چه د مالدارئ په وجه او سوال نه د بچ کیدو په سبب تړي او د هغه د ګردن او د هغه د شا متعلق چه اللّٰه تعالي کوم حق مقرر کړے دے' هغه هیر نکړئ' نو هغه د پاره د بچاؤ ذریعه ده' او کوم سړے چه دا د فخر او ریا په وجه یا د اهل اسلام دشمنئ د پاره تړي (یعني ساتي) نو دا به هغه د پاره وبال وي. او رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم نه د خرونو (ګدهوں) په حقله

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْحُمُرِ فَقَالَ مَا نُزِلَ عَلَيَّ فِيْهَا شَيْءٌ اِلَّا هٰذِهِ الْاٰيَةُ الْجَامِعَةُ الْفَاذَّةُ فَمَنْ يَّعْمَلْ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ خَيْرًا يَّرَهٗ وَمَنْ يَّعْمَلْ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ شَرًّا يَّرَهٗ.

تیـوس اوشو. نو حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل. ذ دے متعلق په ما څه آيت نه دے نازل شوے' ما سيو'' د دے جامع او بے مثل آيت نه: فمن يعمل الخ (کوم سړے چه ذره برابر نيکي اوکړي' نو هغه به اوويني او څوک چه ذره برابر بدي اوکړي' نو هغه به اوويني).

۹۱۱: حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ حَدَّثَنَا مَالِكٌ عَنْ رَّبِيْعَةَ بْنِ اَبِيْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ يَّزِيْدَ مَوْلَى الْمُنْبَعِثِ عَنْ زَيْدِ بْنِ خَالِدٍ قَالَ جَآءَ رَجُلٌ اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَاَلَهٗ عَنِ اللُّقْطَةِ فَقَالَ اعْرِفْ عِفَاصَهَا وَوِكَآئَهَا ثُمَّ عَرِّفْهَا سَنَةً فَاِنْ جَآءَ صَاحِبُهَا وَ اِلَّا فَشَاْنُكَ بِهَا قَالَ فَضَآلَّةُ الْغَنَمِ قَالَ هِيَ لَكَ اَوْ لِاَخِيْكَ اَوْ لِلذِّئْبِ قَالَ فَضَآلَّةُ الْاِبِلِ قَالَ مَالَكَ وَلَهَا مَعَهَا سِقَآءُهَا وَ حِذَآؤُهَا تَرِدُ الْمَآءَ وَ تَاْكُلُ الشَّجَرَ حَتّٰى يَلْقَاهَا رَبُّهَا.

۹۱۱: اسمٰعيل. مالک. ربيعه بن ابي عبدالرحمن. يزيد (د منبعث غلام) زيد بن خالد نه روايت کوي. يو سړے د رسول الله صلي الله عليه وسلّم په خدمت کښ حاضر شو' او د حضور صلي الله عليه وسلّم نه ئے د پريوتي څيز متعلق تپوس اوکړو' حضور صلي الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل' ذ هغے تهيلئ او سر تړونے او پيژنئے. بيا هغه يو کال پورے مشتهر کړه. که ذ هغے مالک راشي' نو' خير' کني تاته اختيار دے' څه چه غواړے' اوکړه. هغه تپوس اوکه' چه ورکه شوے چيلئ' حضور صلي الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل' هغه ستا يا ستا ذ ورور يا ذ شرمخ ده' هغه تپوس اوکه ورک شوے اوښ' حضور صلي الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل ستا هغه سره څه کار دے' هغه سره د هغه مشک او سُم شته' اوبو ته به رسي' او ذ' اُونے نه خوري' تردے چه د هغه مالک هغه سره يوځائے شي.

## باب ۵۹۹: بَيْعِ الْحَطَبِ وَالْكَلَاِ.

## باب ۵۹۹: اوچ وابنـهٔ او لـرکي ذ خرڅولو بيان.

۹۱۲: حَدَّثَنَا مُعَلَّى بْنُ اَسَدٍ حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ عَنْ هِشَامٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنِ الزُّبَيْرِ بْنِ الْعَوَّامِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَاَنْ

۹۱۲: معلي بن اسد. وهيب. هشام. عروه. زبير بن عوام' نبي صلي الله عليه وسلّم نه روايت کوي' حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل' چه تاسو کښ څوک رسئ واخلي' د لرګو پنډ جوړ کړي او هغه خرڅ

يَّأْخُذَ حُزْمَةً مِّنْ حَطَبٍ فَيَبِيْعَ فَيَكُفَّ اللّٰهُ بِهٖ عَنْ وَجْهِهٖ خَيْرٌ مِّنْ اَنْ يَّسْأَلَ النَّاسَ اُعْطِيَ اَوْ مُنِعَ.

کړي' او اللّٰه هغې سره ذَ هغه عزت بچ کړي' نو دې نه بهتر دې' چه خلقو نه سوال کوي' او هغوي ده له ور کړي یا ورنه کړي.

۹۱۳ : حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ اَبِيْ عُبَيْدٍ مَوْلٰى عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ عَوْفٍ اَنَّهٗ سَمِعَ اَبَا هُرَيْرَةَ يَقُوْلُ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَاَنْ يَّحْتَطِبَ اَحَدُكُمْ حُزْمَةً عَلٰى ظَهْرِهٖ خَيْرٌ لَّهٗ مِنْ اَنْ يَّسْأَلَ اَحَدًا فَيُعْطِيَهٗ اَوْ يَمْنَعَهٗ.

۹۱۳ : یحیٰي بن بکیر. لیث' عقیل. ابن شهاب. ابوعبید (د عبدالرحمٰن بن عوف آزاد کړده غلام) ذَ ابوهریره نه واوریدل چه نبيؐ فرمائیلي دي چه یو سړې ذَ لرګو ګیډې په شا راوړي (خرڅ ئې کړي) دا ورله بهتره ده له دې نه چه سوال او کړي هغه ئې ور کړي یا نه.

۹۱۴ : حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ مُوْسٰى اَخْبَرَنَا هِشَامٌ اَنَّ ابْنَ جُرَيْجٍ اَخْبَرَهُمْ قَالَ اَخْبَرَنِيْ ابْنُ شِهَابٍ عَنْ عَلِيِّ بْنِ حُسَيْنِ بْنِ عَلِيٍّ عَنْ اَبِيْهِ حُسَيْنِ بْنِ عَلِيٍّ عَنْ عَلِيِّ بْنِ اَبِيْ طَالِبٍ اَنَّهٗ قَالَ اَصَبْتُ شَارِفًا مَّعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ مَغْنَمٍ يَّوْمَ بَدْرٍ قَالَ وَ اَعْطَانِيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَارِفًا اُخْرٰى فَاَنَخْتُهُمَا يَوْمًا عِنْدَ بَابِ رَجُلٍ مِّنَ الْاَنْصَارِ وَ اَنَا اُرِيْدُ اَنْ اَحْمِلَ عَلَيْهِمَا اِذْخِرًا لِّاَبِيْعَهٗ وَ مَعِيَ صَائِغٌ مِّنْ بَنِيْ قَيْنُقَاعَ فَاَسْتَعِيْنَ بِهٖ عَلٰى وَلِيْمَةِ فَاطِمَةَ وَ حَمْزَةُ بْنُ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ يَشْرَبُ فِيْ ذٰلِكَ الْبَيْتِ مَعَهٗ

۹۱۴ : ابراهیم بن موسٰي. هشام. ابن جریج. ابن شهاب. علي بن حسین بن علي حسین بن علي. حضرت علي بن ابي طالب نه روایت کوي' ذَ هغه بیان دې' ماته رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم سره ذَ' بدر' په ورځ غنیمت کښې یوه اوښه حاصله شوه' او ماته رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّ یوه بله اوښه هم راکړه. هغه دواړه ما یوه ورځ ذَ یو انصاري په دروازه اوتړلې' او ما اراده کوله' چه په دې دواړو' اذخر بار کړم. چه خرڅ ئې کړم. او ماسره ذَ بني قینقاع یو زرګر وو' چه هغه نه ذَ فاطمېؓ ذَ ولیمې دعوت کښې مدد واخلم. نو حمزه بن عبدالمطلب هغې کور کښې شراب څکل' او هغه سره یو سندرغاړې (ښځه) وه' چه سندرې ئې وئیلې: الا یا حمزه للشرف النوا: (اې حمزه اګاه شه. څربې اوښې واخله) حمزه هغې دواړو اوښو طرف ته توري سره حمله اوکړه. ذَ هغې قُب ئې پریکړل. او ذَ هغې ټوټې

قَيْنَةٌ فَقَالَتْ اَلَا يَا حَمْزُ لِلشُّرُفِ النِّوَآءِ فَثَارَ اِلَيْهِمَا حَمْزَةُ بِالسَّيْفِ فَجَبَّ اَسْنِمَتَهُمَا وَ بَقَرَ خَوَاصِرَهُمَا ثُمَّ اَخَذَ مِنْ اَكْبَادِهِمَا قُلْتُ لِابْنِ شِهَابٍ وَّمِنَ السَّنَامِ قَالَ قَدْ جَبَّ اَسْنِمَتَهُمَا فَذَهَبَ بِهَا قَالَ ابْنُ شِهَابٍ قَالَ عَلِيٌّ فَنَظَرْتُ اِلٰى مَنْظَرٍ اَفْظَعَنِيْ فَاَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ عِنْدَهٗ زَيْدُ بْنُ حَارِثَةَ فَاَخْبَرْتُهُ الْخَبَرَ فَخَرَجَ وَ مَعَهٗ زَيْدٌ فَانْطَلَقْتُ مَعَهٗ فَدَخَلَ عَلٰى حَمْزَةَ فَتَغَيَّظَ عَلَيْهِ فَرَفَعَ حَمْزَةُ بَصَرَهٗ وَ قَالَ هَلْ اَنْتُمْ اِلَّا عَبِيْدٌ لِاٰبَائِيْ فَرَجَعَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُقَهْقِرُ حَتّٰى خَرَجَ عَنْهُمْ وَ ذَالِكَ قَبْلَ تَحْرِيْمِ الْخَمْرِ.

ئے مـات کـرل. بیـانـے ذ هـغـے دواړو اینـه (کلیجي) راوبـنـکـلـه. مـا ذ' ابـن شهاب نه تپوس او که' چه قُب خه شـو. ونیلے' قُب پـریکړے شو. ذ' ابن شهاب بیان دے حـضـرت عـلـي اووے' مـا داسے منظر اولید' چه هغے ما بـانـدے ویره راوسته. نو زه ذ نبي صلي الله علیه وسلّم په خدمت کښ حاضر شوم' او حضور صلي الله علیه وسلّم سـره زیـد بـن حـارث هـم وو. مـا حضور صلي الله علیه وسلّم ته واقعه بیان کړه' نو حضور صلي الله علیه وسلّم روان شـو' او حـضـور صـلـي الله علیه وسلّم سره زید هم وو. زه هـم حضور صلي الله علیه وسلّم سره روان شوم. حضور صلي الله علیه وسلّم حمزه له ورغے' او ډیر غصه شـولـو' حـمـزه سترګے پورته کړے' او ونیلے' آیا تاسو خـمـا ذ پـلار نـیـکـهٔ غـلامان نه یئے. رسول الله صلي الله عـلـیـه وسـلّـم مـخ پـه شـا واپـس شوَلو' او ذ هغه نه روان شولو. دا' ذ شرابو ذ حرام کیدو نه مخکښ واقعه ده[۱].

۱. خـنـګـه چـه پـه حـدیـث کـښ پخپله ددے تصریح ده چه دا واقعه د شرابو د حُرمت نه د مخکښنے وخت ده او هـغـه وخـتـه پـورے بـه ډیـرو مـسـلـمـانانو شراب څکل او ډیر داسے کارونه به ئے کول د کومو حُرمت چه نه وو نازل شوے او بیائے د حرمت نازلیدلو نه پس په یو دم پریښي وُو. حضرت حمزه رضي الله عنـه د حضور اکرم صلي الله علیه وسلّم تره وو او دغه شان په رشته کښ مشر وو. په دے وجه د شرابو په مستئ کښ ئے په ډیر فخر سره هغوي (دغه حرکت او کړو).

حـضـور اکرم صلي الله علیه وسلّم فورًا خکه واپس تشریف راوُړو چه په داسے موقعو کښ کله چه د انسان هوش او حـواس درسـت نـه وي داسـے حالاتو کښ ورسره حصارتیا مناسب نه وي. دا حدیث ئے په دے باب کښ خکه راوړے دے چه په دے کښ ذ واښو خرخولو ذکر دے.

## بَاب ٦٠٠ : الْقَطَائِعِ.

## باب ٦٠٠ : ذ جاګیرونو ورکولو بیان.

٩١٥ : حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيْدٍ قَالَ سَمِعْتُ اَنَسًا

٩١٥ : سـلـیـمـان بـن حـرب. حـمـاد. یحیٰي بن سعید. انسؓ نه روایت کوي' چه نبي صلي الله علیه وسلّم بـحـریـن کـښ ذ جـاګـیـرونـو ورکولو اراده او کړلـه' نو

قَالَ اَرَادَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنْ يُقطِعَ مِنَ الْبَحْرَيْنِ فَقَالَتِ الْاَنْصَارُ حَتّٰى تَقْطِعَ لِاِخْوَانِنَا مِنَ الْمُهَاجِرِيْنَ مِثْلَ الَّذِىْ تُقْطِعُ لَنَا قَالَ سَتَرَوْنَ بَعْدِىْ اَثَرَةً فَاصْبِرُوْا حَتّٰى تَلْقَوْنِىْ.

انصارو عرض اوکړو چه (مونږ خلق نه اخلو) څو پورې چه تاسو خمونږ مهاجرین ورونړو له دغه هومره جاګیرونه ورنه کړئ. حضور صلي الله علیه وسلم اوفرمائیل، خما نه پس به اووینئ، چه خلقو له به په تاسو ترجیح ورکولې شي. نو هغه وخت تاسو صبر کوئ، تردې چه ماسره یو ځائې شئ.

باب ۱۰۲: كِتَابَةِ الْقَطَائِعِ وَ قَالَ اللَّيْثُ عَنْ يَحْيَى ابْنِ سَعِيْدٍ عَنْ اَنَسٍ دَعَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْاَنْصَارَ لِيُقْطِعَ لَهُمْ بِالْبَحْرَيْنِ فَقَالُوْا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنْ فَعَلْتَ فَاكْتُبْ لِاِخْوَانِنَا مِنْ قُرَيْشٍ فَلَمْ يَكُنْ ذٰلِكَ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ اِنَّكُمْ سَتَرَوْنَ بَعْدِىْ اَثَرَةً فَاصْبِرُوْا حَتّٰى تَلْقَوْنِىْ.

باب ۱۰۲: د، جاګیرونو، د لیکلو بیان. او لیث د یحیٰي بن سعید نه، هغه د انسؓ نه نقل او کړ، چه نبي صلي الله علیه وسلم انصار راوغوښتل، چه هغوي له بحرین کښې جاګیرونه ورکړي. خلقو عرض اوکه، یا رسول الله! که تاسو داسې کوئي، نو خمونږ قریش ورونړو له هم دغه هومره جاګیرونه اولیکئ. لیکن حضور صلي الله علیه وسلم سره دومره جاګیرونه وو. حضور صلي الله علیه وسلم اوفرمائیل، عنقریب تاسو به اووینئ چه خلقو له به په تاسو ترجیح ورکولې شي، نو تاسو صبر کوئ، تردې چه ماسره یو ځائې شئ.

باب ۱۰۲: حَلْبِ الْاِبِلِ عَلَى الْمَاءِ.

باب ۱۰۲: اوبو سره د، اوښو د لشلو بیان.

۲۱۹: حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ الْمُنْذِرِ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ فُلَيْحٍ حَدَّثَنِىْ اَبِىْ عَنْ هِلَالِ بْنِ عَلِيٍّ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ ابْنِ اَبِىْ عَمْرَةَ عَنْ اَبِىْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مِنْ حَقِّ الْاِبِلِ اَنْ تُحْلَبَ عَلَى الْمَاءِ.

۲۱۹: ابراهیم بن منذر. محمد بن فلیح. هلال بن علي. عبدالرحمن بن عمره. حضرت ابوهریرهؓ نبي صلي الله علیه وسلم نه روایت کوي. حضور صلي الله علیه وسلم اوفرمائیل، د، اوښانو د، حق دې، چه هغه اوبو سره اولشلې شي.

باب ۱۰۳: الرَّجُلِ يَكُوْنُ لَهُ

باب ۱۰۳: د قجورو باغ کښې که د، یو سړي د

مَمَرٌ اَوْ شِرْبٌ فِيْ حَائِطٍ اَوْ فِيْ نَخْلٍ وَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ بَاعَ نَخْلًا بَعْدَ اَنْ تُؤَبَّرَ فَثَمَرَتُهَا لِلْبَائِعِ فَلِلْبَائِعِ الْمَمَرُّ وَالسَّقْىُ حَتّٰى يُرْفَعَ وَ كَذٰلِكَ رَبُّ الْعَرِيَّةِ.

تلـو لار وي يا د، اوبـو څه چينه وي. نبي صلى الله عليه وسلـم اوفـرمـائيل، چا چه پيوند كولو نه پس يوه اونه خـرڅه كړه، نو د هغې ميوه به د بائع وي او، د تيريدو لار او چينه به د بائع وي. تردے چه هغه لار لرے كړے شي او دا حكم د، عريه واله هم دے[1].

۱. د عريه تفسير دے نه مخكښ تير شوے دے او دغه شان د تابير هم. د ګذرګاه (يعني لارے) هم يو حق وي. زمكه كه چرے د چا خپله مملوكه وي بيا خو ښكاره خبره ده. ليكن كه چرے د هغه مملوكه نه وي نو بيا هم فقهاؤ دا حق منلے دے.

د ميوے خرخونكي ملكيت كښ كيدلو مطلب دادے چه صرف د همدغه كال فصل به دده وي. د هغې نه پس به په باغ يا اونې باندے د خرخونكي حق ختم شي.

۹۱۷: اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ قَالَ حَدَّثَنَا، اللَّيْثُ حَدَّثَنِيْ ابْنُ شِهَابٍ عَنْ سَالِمِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ، عَنْ اَبِيْهِ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ مَنِ ابْتَاعَ نَخْلًا بَعْدَ اَنْ تُؤَبَّرَ فَثَمَرَتُهَا لِلْبَائِعِ اِلَّا اَنْ يَّشْتَرِطَ الْمُبْتَاعُ وَمَنِ ابْتَاعَ عَبْدًا وَلَهُ مَالٌ فَمَالُهُ لِلَّذِيْ، بَاعَهُ اِلَّا اَنْ يَّشْتَرِطَ الْمُبْتَاعُ وَ عَنْ مَالِكٍ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ عَنْ عُمَرَ فِي الْعَبْدِ.

۹۱۷: عبدالله بن يوسف. ليث. ابن شهاب. سالم بن عبدالله، عبدالله نه روايت كوي، ما د رسول الله صلي الله عليه وسلم نه اوريدلي دي، چا چه د قجورو اونه د، پيوند لږولو نه پس واخسته، نو د هغې ميوه د بائع ده. خو كه خريدار، د هغې شرط اوكړي، نو د خريدار به وي. او چا چه غلام واخسته او هغه سره مال وو، نو د هغه مال د خرخونكي دے. خو دا چه اخستونكے د هغې شرط اوكړي. او په واسطه د مالک نافع ابن عمرؓ چه كوم حديث دے هغې كښ صرف د غلام بيان دے.

۹۱۸: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوْسُفَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ يَّحْيَى بْنِ سَعِيْدٍ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ عَنْ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ قَالَ رَخَّصَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنْ تُبَاعَ الْعَرَايَا بِخَرْصِهَا تَمْرًا.

۹۱۸: محمد بن يوسف. سفيان. يحيي بن سعيد. نافع. ابن عمرؓ زيد بن ثابت نه روايت كوي. د هغه بيان دے. چه نبي صلي الله عليه وسلم اندازے سره د اوچو قجورو په عوض د عرايا د خرخولو اجازت وركړے دے.

**۱۹۱۹ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا ابْنُ عُيَيْنَةَ عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ عَنْ عَطَآءٍ سَمِعَ جَابِرَ ابْنَ عَبْدِ اللّٰهِ نَهَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْمُخَابَرَةِ وَالْمُحَاقَلَةِ وَ عَنِ الْمُزَابَنَةِ وَ عَنْ بَيْعِ الثَّمَرِ حَتّٰى يَبْدُوَ صَلَاحُهَا وَ اَنْ لَّا يُبَاعَ اِلَّا بِالدِّيْنَارِ وَالدِّرْهَمِ اِلَّا الْعَرَايَا.**

۱۹۱۹ : عبداللّٰه بن محمد. ابن عيينه. ابن جريج. عطاء. جابر بن عبداللّٰه نه روايت کوي. ذ هغه بيان دے چه نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم دَ مخابره، محاقله، مزابنه نه او دَ ميوو دَ خرڅولو نه، څو پورے چه دَ هغے پوخوالے ظاهر نشي منع فرمائيلے ده. او اُونه کښ لګيدلے ميوه دِے دَ درهم و، ديناز په عوض خرڅه کړے شي، البته دَ عرايا ئے اجازت ورکړے دے.

**۱۹۲۰ : حَدَّثَنَا يَحْيَى ابْنُ قَزَعَةَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ دَاوُدَ بْنِ حُصَيْنٍ عَنْ اَبِيْ سُفْيٰنَ مَوْلٰى اَبِيْ اَحْمَدَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ رَخَّصَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ بَيْعِ الْعَرَايَا بِخَرْصِهَا مِنَ التَّمْرِ فِيْمَا دُوْنَ خَمْسَةِ اَوْسُقٍ اَوْ فِيْ خَمْسَةِ اَوْسُقٍ شَكَّ دَاوُدُ فِيْ ذَالِكَ.**

۱۹۲۰ : يحيٰي بن قزعه. مالک. داؤد بن حصين. ابوسفيان (دَ ابو احمد غلام) دَ حضرت ابوهريرهؓ نه روايت کوي، دَ هغه بيان دے، چه نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم اندازے سره دَ اوچو قجورو په عوض پنځه وسق يا دَ پنځهٔ وسقو نه کم کښ (داؤد ته شک شو) دَ بيع عرايا اجازت کړے دے.

**۱۹۲۱ : حَدَّثَنَا زَكَرِيَّا بْنُ يَحْيٰى اَخْبَرَنَا اَبُوْ اُسَامَةَ اَخْبَرَنِي الْوَلِيْدُ بْنُ كَثِيْرٍ اَخْبَرَنِيْ بُشَيْرُ بْنُ يَسَارٍ مَوْلٰى بَنِيْ حَارِثَةَ اَنَّ رَافِعَ بْنَ خَدِيْجٍ وَّ سَهْلَ بْنَ اَبِيْ حَثْمَةَ حَدَّثَاهُ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهٰى عَنِ الْمُزَابَنَةِ بَيْعِ الثَّمَرِ بِالتَّمْرِ اِلَّا اَصْحَابَ الْعَرَايَا فَاِنَّهٗ اَذِنَ لَهُمْ قَالَ اَبُوْ عَبْدِ اللّٰهِ وَ قَالَ ابْنُ اِسْحٰقَ حَدَّثَنِيْ بُشَيْرٌ مِثْلَهٗ.**

۱۹۲۱ : زکريا بن يحيٰي. ابواسامه. وليد بن کثير. بشير بن يسار (دَ بني حارثه غلام) رافع بن خديج او سهيل بن ابي حثمه روايت کوي، دَ هغه بيان دے. چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم دَ مزابنه يعني اونه کښ لګيدلے دَ ماتے ميوے په عوض دَ خرڅولو نه منع فرمائيلے ده. ليکن عرايا والو ته ئے دَ دے اجازت کړے دے. دَ ابو عبداللّٰه (بخاري) روايت دے. ابن اسحٰق اووے، چه ماته بشير دَ دے په مثل روايت کړے دے.

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

# كِتَابٌ

بَابٌ فِيۡ الۡاِسۡتِقۡرَاضِ وَ اَدَآءِ الدُّيُوۡنِ وَالۡحَجۡرِ وَ التَّفۡلِيۡسِ.

ذ قرض اخستو او قرض ادا کولو او تصرف سره د بندولو او ذ مفلس کیدو بیان.

بَاب ۴ ۰ ۶ : مَنۡ اِشۡتَرٰى بِالدَّيۡنِ وَ لَيۡسَ عِنۡدَهٗ ثَمَنُهٗ اَوۡ لَيۡسَ بِحَضۡرَتِهٖ.

باب ۴ ۰ ۶ : کـۀ یـو سړے څـه څیز قـرض واخلي او هغه سره قیمت نه وي، یا هغه وخت موجود نه وي.

۹۲۲ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ اَخۡبَرَنَا جَرِيۡرٌ عَنِ الۡمُغِيۡرَةِ عَنِ الشَّعۡبِيِّ عَنۡ جَابِرِ بۡنِ عَبۡدِ اللّٰهِ قَالَ غَزَوۡتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ قَالَ كَيۡفَ تَرٰى بَعِيۡرَكَ اَتَبِيۡعُنِيۡهِ قُلۡتُ نَعَمۡ فَبِعۡتُهٗ اِيَّاهُ فَلَمَّا قَدِمَ الۡمَدِيۡنَةَ غَدَوۡتُ اِلَيۡهِ بِالۡبَعِيۡرِ فَاَعۡطَانِيۡ ثَمَنَهٗ.

۹۲۲ : محمد. جریر. مغیره. شعبي. جابر بن عبدالله نه روایت کوي. زۀ نبي صلي الله علیه وسلّم سره جنګ کښې شریک شوم. حضور صلي الله علیه وسلّم اوفرمائیل، آیا ته ذ خپل اوښ متعلق مناسب ګڼرے، چه ته دا په ما خرڅ کړے. ما عرض اوکه او. نو ما په حضورؐ خرڅ کړلو. کوم وخت چه مدینے ته اورسیدو، نو زه سحر وخت اوښ سره ذ حضورؐ خدمت کښې حاضر شوم. حضور صلي الله علیه وسلّم ماته ذ هغے قیمت راکړلو.

۹۲۳ : حَدَّثَنَا مُعَلَّى بۡنُ اَسَدٍ حَدَّثَنَا عَبۡدُ الۡوَاحِدِ حَدَّثَنَا الۡاَعۡمَشُ قَالَ تَذَاكَرۡنَا عِنۡدَ اِبۡرٰهِيۡمَ الرَّهۡنَ فِيۡ السَّلَمِ فَقَالَ حَدَّثَنِيۡ الۡاَسۡوَدُ عَنۡ عَآئِشَةَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ اشۡتَرٰى طَعَامًا مِّنۡ يَّهُوۡدِيٍّ اِلٰى اَجَلٍ وَّ رَهَنَهٗ دِرۡعًا مِّنۡ حَدِيۡدٍ.

۹۲۳ : معلي بن اسد. عبدالواحد. اعمش بیان کوي، چه مونږ خلقو ابراهیم نخعي سره سلم کښې ذ، رهن ذکر اوکه. هغه اووے، ماته اسود په واسطه ذ بي بي عائشے بیان اوکه چه نبي صلي الله علیه وسلّم ذ یو یهودي نه ذ، یوے مودے د پاره غله واخسته او ذ، اوسپنے خپله زغره ئے هغه سره رهن (ګانړه) کېښوده.

بَاب ۵ ۰ ۶ : مَنۡ اَخَذَ اَمۡوَالَ النَّاسِ يُرِيۡدُ اَدَآءَ هَا اَوۡ اِتۡلَافَهَا.

باب ۵ ۰ ۶ : ذ هغے سړي بیان، چه ذ خلقو مال ذ هغے ذ، ادا کولو یا ضائع کولو په نیت واخلي.

۹۲۴ : حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ الْاُوَيْسِيُّ حَدَّثَنَا سُلَيْمٰنُ بْنُ بِلَالٍ عَنْ ثَوْرِ بْنِ زَيْدٍ عَنْ اَبِيْ الْغَيْثِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ اَخَذَ اَمْوَالَ النَّاسِ يُرِيْدُ اَدَآءَ هَا اَدَّى اللّٰهُ عَنْهُ وَمَنْ اَخَذَ يُرِيْدُ اِتْلَافَهَا اَتْلَفَهُ اللّٰهُ.

۹۲۴ : عبدالعزیز بن عبداللّٰه اویسي. سلمان بن بلال. ثور بن زید. ابو الغیث. ابوهریرهؓ نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم نه روایت کوي. حضورؐ اوفرمائیل٬ چا چه دَ٬ خلقو مال د ادا کولو په نیت واخست نو اللّٰه تعالٰي به د هغه د طرفه د٬ ادا کولو بندوبست کوي٬ او څوک چه دَ٬ ضائع کولو په نیت واخلي٬ نو اللّٰه تعالٰي به هغه تباه کړي.

باب ٦٠٦ : اَدَآءِ الدُّيُوْنِ وَ قَالَ اللّٰهُ تَعَالٰى اِنَّ اللّٰهَ يَاْمُرُكُمْ اَنْ تُؤَدُّوْا الْاَمٰنٰتِ اِلٰى اَهْلِهَا وَ اِذَا حَكَمْتُمْ بَيْنَ النَّاسِ اَنْ تَحْكُمُوْا بِالْعَدْلِ اِنَّ اللّٰهَ نِعِمَّا يَعِظُكُمْ بِهٖ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ سَمِيْعًا بَصِيْرًا.

باب ٦٠٦ : د قرضونو دَ٬ ادا کولو بیان. او اللّٰه تعالٰي فرمائیلي دي. چه اللّٰه تعالٰي تاسو ته حکم درکوي٬ چه دَ خلقو امانتونه دَ هغې مالکانو ته ورکړئ٬ او هر کله چه دَ خلقو مینځ کښې فیصله کوئ٬ نو انصاف سره کوئ. اللّٰه چه تاسو ته کوم نصیحت کوي٬ هغه ښه دے. بیشکه اللّٰه لیدونکے او اوریدونکے دے.

۹۲۵ : حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ يُوْنُسَ حَدَّثَنَا اَبُوْ شِهَابٍ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ زَيْدِ بْنِ وَهْبٍ عَنْ اَبِيْ ذَرٍّ قَالَ كُنْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمَّا اَبْصَرَ يَعْنِيْ اُحُدًا قَالَ مَا اُحِبُّ اَنَّهٗ يُحَوَّلُ لِيْ ذَهَبًا يَمْكُثُ عِنْدِيْ مِنْهُ دِيْنَارٌ فَوْقَ ثَلٰثٍ اِلَّا دِيْنَارًا اُرْصِدُهٗ لِدَيْنٍ ثُمَّ قَالَ اِنَّ الْاَكْثَرِيْنَ هُمُ الْاَقَلُّوْنَ اِلَّا مَنْ قَالَ بِالْمَالِ هٰكَذَا وَ هٰكَذَا وَ اَشَارَ اَبُوْ شِهَابٍ بَيْنَ يَدَيْهِ وَ عَنْ يَمِيْنِهٖ وَ عَنْ

۹۲۵ : احمد بن یونس. ابوشهاب. اعمش. زید بن وهب. ابوزرؓ نه روایت کوي٬ چه زه نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم سره ووم٬ چه حضورؐ احد طرف ته اوکتل. نو وے فرمائیل٬ زه دا نه خوښوم٬ چه دا غر٬ دے٬ د سرو زرو شي. او ما سره یو دینارهم دَ٬ درے ورځو نه زیات پاتے شي٬ خو هغه دینار٬ چه قرض ادا کولو د پاره ئے زهٔ کیږدم. بیائے اوفرمائیل٬ کوم خلق چه زیات مال واله دي٬ هغوي زیات محتاج وي. خو هغه خلق چه داسے او داسے خرچ کړي (او ابو شهاب خپل ښي گس او مخکښې طرف ته اشاره اوکړه) او داسے خلق کم دي. او وے فرمائیل٬ په خپل ځائے ایسار٬ اوسه لږ لرے به مخکښې لاړ٬ ما خه آواز واوریدلو٬ نو ما حضورؐ ته ورتلل

بِشِمَالِهِ وَ قَلِيْلٌ مَّاهُمْ وَ قَالَ مَكَانَكَ وَ تَقَدَّمَ غَيْرَ بَعِيْدٍ فَسَمِعْتُ صَوْتًا فَأَرَدْتُ اَنْ اٰتِيَهُ ثُمَّ ذَكَرْتُ قَوْلَهُ مَكَانَكَ حَتّٰى اٰتِيْكَ فَلَمَّا جَآءَ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ الَّذِيْ سَمِعْتُ اَوْ قَالَ الصَّوْتُ الَّذِيْ سَمِعْتُ قَالَ وَهَلْ سَمِعْتَ قُلْتُ نَعَمْ قَالَ اَتَانِيْ جِبْرِيْلُ عَلَيْهِ السَّلَامُ فَقَالَ مَنْ مَّاتَ مِنْ اُمَّتِكَ لَا يُشْرِكُ بِاللّٰهِ شَيْئًا دَخَلَ الْجَنَّةَ قُلْتُ وَ اِنْ فَعَلَ كَذَا وَ كَذَا قَالَ نَعَمْ.

اوغوبنتل. ما ته د حضورؐ حکم راياد شو چه دلته ايسار اوسه، تردے چه زۀ تا پله راشم. کوم وخت چه حضور تشريف راؤړلو، ما عرض اوکه يا رسول الله! هغه څه خيز وو. چه ما واوريدلو يا هغه اواز چه ما واوريدلو حضورؐ تپوس اوکه، آيا تا اوريدلے وو. ما عرض اوکه جي. او، حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، ماله جبرئيلؑ راغے. او وے فرمائيل، چه ستاسو اُمت کښې کوم سړے مړشي، داسے حال کښې چه، هيڅوک د الله شريک نه جوړوي، نو جنت کښې به داخليږي، ما اووے، اګر که داسے داسے کارونه اوکړي. هغوي اووے. او.

**۹۲۶**: حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ شَبِيْبِ بْنِ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا اَبِيْ عَنْ يُوْنُسَ قَالَ ابْنُ شِهَابٍ حَدَّثَنِيْ عُبَيْدُ اللّٰهِ ابْنُ عَبْدِ اللّٰهِ ابْنِ عُتْبَةَ قَالَ قَالَ اَبُوْ هُرَيْرَةَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَوْ كَانَ لِيْ مِثْلُ اُحُدٍ ذَهَبًا مَا يَسُرُّنِيْ اَنْ لَا يَمُرَّ عَلَيَّ ثَلٰثٌ وَّ عِنْدِيْ مِنْهُ شَيْءٌ اِلَّا شَيْءٌ اُرْصِدُهُ لِدَيْنٍ رَّوَاهُ صَالِحٌ وَّ عُقَيْلٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ.

**۹۲۶**: احمد بن شبيب. بن سعيد. يونس. ابن شهاب. عبيدالله بن عبدالله بن عتبه نه روايت کوي. ذ هغه بيان دے، رسول الله صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، که ماسره ذ احد برابر سرۀ زر وے، نو هم خما خوښه نه وه، چه په ما درے ورځے تيرے شي، داسے حال کښې، چه هغے کښې دے څه هم ماسره وي، سيوا، ذ هغے خيز نه، چه زۀ ئے قرض ادا کولو د پاره اوساتم. صالح او عقيل هم زهري نه دا حديث روايت کړے دے.

## بَابُ ۲۰۷ : اِسْتِقْرَاضِ الْاِبِلِ.

## باب ۲۰۷ : ذ، اوبښ په قرض اخستلو بيان.

**۹۲۷**: حَدَّثَنَا اَبُو الْوَلِيْدِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ اَخْبَرَنَا سَلَمَةُ بْنُ كُهَيْلٍ قَالَ سَمِعْتُ اَبَا سَلَمَةَ بِمِنٰى يُحَدِّثُ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَجُلًا تَقَاضٰى

**۹۲۷**: ابوالوليد. شعبه. سلمه بن کهيل. ابوسلمه. ابوهريرهؓ نه روايت کوي، يو سړي ذ، رسول الله صلي الله عليه وسلّم نه تقاضا اوکړه. او سختي ئے اوکړه، نو ذ، حضورؐ صحابهؓ ؤ ذ هغه ذ رانيولو اراده

رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاغْلَظَ لَهُ فَهَمَّ اَصْحَابُهُ فَقَالَ دَعُوْهُ فَاِنَّ لِصَاحِبِ الْحَقِّ مَقَالًا وَاشْتَرُوْا لَهُ بَعِيْرًا فَاَعْطُوْهُ اِيَّاهُ قَالُوْا لَا نَجِدُ اِلَّا اَفْضَلَ مِنْ سِنِّهِ قَالَ اشْتَرُوْهُ فَاَعْطُوْهُ اِيَّاهُ فَاِنَّ خَيْرَكُمْ اَحْسَنُكُمْ قَضَآءً.

او کړله. حضورؐ ورته اوفرمائیل' دے پریږدئ' حق واله دغسے خبرے کوي. ده د پاره یو اوښ واخلئ' او ده له ئے ورکړئ. خلقو عرض اوکه. دَ دے نه دَ زیات عمر اوښ بیامندے شي. حضورؐ اوفرمائیل. وائے خلئ' او ده له ئے ورکړئ' تاسو کښ بهتر هغه سړے دے' چه په ښه طریقه ئے ادا کړي.

۹۲۸ : حَدَّثَنَا خَلَّادُ بْنُ يَحْيٰى حَدَّثَنَا مِسْعَرٌ حَدَّثَنَا مُحَارِبُ ابْنُ دِثَارٍ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ اَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ فِي الْمَسْجِدِ قَالَ مِسْعَرٌ اَرَادَهُ ضُحًى فَقَالَ صَلِّ رَكْعَتَيْنِ وَكَانَ لِيْ عَلَيْهِ دَيْنٌ فَقَضَانِيْ وَزَادَنِيْ.

۹۲۸ : خلاد. مسعر. محارث بن دثار. جابر بن عبدالله نه روایت کوي' زه نبي صلي الله علیه وسلّم له ورغلم' داسے حال کښ چه حضور صلي الله علیه وسلّم جمات کښ وو. مسعر اووے زه پوهیږم' چه دَ چاشت وخت وو. حضور صلي الله علیه وسلّم اوفرمائیل دوه رکعاته اوکړه. او ځما په حضورؐ څه قرض وو. حضورؐ هغه ماله راکړلو. او دَ هغے نه ئے زیات راکړلو.

**بَابُ ۶۰۸ : اِذَا قَضٰى دُوْنَ حَقِّهِ اَوْ حَلَّلَهُ فَهُوَ جَآئِزٌ.**

**باب ۶۰۸ : که یو سړے دَ قرض خواه دَ حق نه کم ادا کړي' یا هغه معاف کړي' نو جائز دي.**

۹۲۹ : حَدَّثَنَا عَبْدَانُ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا يُوْنُسُ' عَنِ الزُّهْرِيِّ حَدَّثَنِي ابْنُ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ اَنَّ جَابِرَ ابْنَ عَبْدِ اللّٰهِ اَخْبَرَهُ اَنَّ اَبَاهُ قُتِلَ يَوْمَ اُحُدٍ شَهِيْدًا وَعَلَيْهِ دَيْنٌ فَاشْتَدَّ الْغُرَمَاءُ فِيْ حُقُوْقِهِمْ فَاَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَاَلَهُمْ اَنْ يَّقْبَلُوْا ثَمَرَ حَائِطِيْ وَيُحَلِّلُوْا اَبِيْ فَاَبَوْا فَلَمْ يُعْطِهِمُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَائِطِيْ وَقَالَ سَنَغْدُوْ عَلَيْكَ فَغَدَا عَلَيْنَا حِيْنَ اَصْبَحَ فَطَافَ

۹۲۹ : عبدان. عبدالله. یونس. زهري. ابن کعب بن مالک. جابر بن عبدالله روایت کوي' چه دَ هغه پلار جنګ احد کښ شهید شو. او په هغه قرض وو. نو قرض خواهانو دَ خپلو حقوقو تقاضا کښ سختي راواخسته. زه نبي صلي الله علیه وسلّم له راغلم' نو نبي صلي الله علیه وسلّم هغأ قرض خواهانو ته اوفرمائیل' چه ځما دَ باغ میوه واخلي' او ځما دَ پلار باقي قرض معاف کړي. خو هغے خلقو انکار اوکړو. نو حضورؐ ځما باغ هغے خلقو له ورنه که. او ماته ئے اوفرمائیل' مونږ به تاله صبا وخت راځو. صبا حضورؐ تشریف راؤړلو' نو باغ کښ ئے چکر اولېرولو. او میوه کښ ئے دَ

فِي النَّخْلِ وَ دَعَا فِيْ ثَمَرِهَا بِالْبَرَكَةِ فَجَدَدْتُهَا فَقَضَيْتُهُمْ وَ بَقِيَ لَنَا مِنْ ثَمَرِهَا.

برکت دعا اوکړله، بیا ما هغه میوه اوشوکوله. او د هغوي ټول قرض م ادا کـه. او ماسره څه قجورے بچ هم شوے.

بـاب ۱۰۹ : اِذَا قَاصَّ اَوْ جَازَفَهُ فِي الدَّيْنِ تَمْرًا بِتَمْرٍ اَوْ غَيْرِهٖ.

باب ۱۰۹ : که یو سړے قرض خواه سره خبرے اترے اوکړي یا قرض کښ قجورے یا، ۮ څه بل څیز عوض کښ قجورے اندازے سره ورکړي[۱].

۱. بعضو حضراتو لیکلي دي چه د صحیح بخاري دا عنوان د اجماع اُمت نه خلاف دے. ولے چه امام بخاريؒ دلته د فقے څه مسئله نه بیانوي بلکه په یو داسے صورت کښے د مسئلے وضاحت کوي کله چه جانبینو کښ هیڅ نزاع نه وي. په داسے صورت کښ هر کله چه جانبین راضي وي معامله په داشان صحیح کیدے شي چه اندازے او تخمینے سره د قرض ادائیګي اوکړے شي. دا ۮ تسامُح او اغماض باب سره تعلق لري د کوم ګنجائش چه شریعت په خپلو احکامو کښ ایښے دے. عام طور سره په فقه کښ دا قسمه احکام نه ملاویږي ولے چه په فقهي مسائلو کښ د حدودو لحاظ کیږي او د دوئ عام تعلق قضا سره دے. که چرے په هره موقعه باندے قانوني پابندئ اولګولے شي نو په عام ژوند کښ به لویه ګرانتیا پیدا شي. که چرے لس سړي په یو دسترخوان باندے خپله خپله روټئ راجمع کړي او ټوله په شریکه اوخوري نو ظاهره ده چه په دے کښ هیڅ بدیت د شریعت په نظر کښ نیشته او د ژوند ۮ مناسب روش نه خلاف هم نه ده لیکن که چرے دا خبره د قانون په تله باندے تول کیدل شروع شي نو د عدم جواز اړخ به راڅخي، په داسے ټولو موقعو کښ شریعت پخپله ۮ توسع، اغماض او تسامح اجازت ورکړے دے.

۹۳۰ : حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ الْمُنْذِرِ حَدَّثَنَا اَنَسٌ عَنْ هِشَامٍ عَنْ وَهْبِ بْنِ كَيْسَانَ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ اَنَّهُ اَخْبَرَهُ اَنَّ اَبَاهُ تُوُفِّيَ وَ تَرَكَ عَلَيْهِ ثَلٰثِيْنَ وَسْقًا لِرَجُلٍ مِنَ الْيَهُوْدِ فَاسْتَنْظَرَهُ جَابِرٌ فَاَبٰى اَنْ يُّنْظِرَهُ فَكَلَّمَ جَابِرُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِيَشْفَعَ لَهُ اِلَيْهِ فَجَاءَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَلَّمَ الْيَهُوْدِيَّ لِيَاْخُذَ ثَمَرَ نَخْلِهٖ بِالَّذِيْ لَهٗ فَاَبٰى فَدَخَلَ رَسُوْلُ

۹۳۰ : ابراهیم بن منذر. انس. هشام. وهب بن کیسان. جابر بن عبدالله نه روایت کوي، ۮ هغهٔ بیان دے، ۮ هغه پلار مړشو. او ۮ یهودي قرض دیرش وسق قجورے پرے پاتے شوے. جابر ۮ هغه نه مهلت اوغوښتلو. خو هغه ۮ مهلت ورکولو نه انکار اوکړو. جابر رسول الله صلي الله علیه وسلّم ته حال بیان که، چه ۮ هغه سفارش اوکړي. رسول الله صلي الله علیه وسلّم تشریف راوړلو. او یهودي سره ئے خبرے اوکړے. چه د خپل قرض په عوض ۮ هغه ۮ، اونو میوه واخلي، لیکن هغه انکار اوکه. رسول الله صلي الله علیه وسلّم باغ کښ داخل شو، او ۮ، اونو خوا کښ ئے چکر

اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ النَّخْلَ فَمَشٰى فِيْهَا ثُمَّ قَالَ لِجَابِرٍ جُدَّلَهُ فَأَوْفِ لَهُ الَّذِيْ لَهُ فَجَدَّهُ بَعْدَ مَا رَجَعَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَوْفَاهُ ثَلٰثِيْنَ وَسْقًا وَّ فَضَلَتْ لَهُ سَبْعَةَ عَشَرَ وَسْقًا فَجَآءَ جَابِرٌ رَّسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِيُخْبِرَهُ بِالَّذِيْ كَانَ فَوَجَدَهُ يُصَلِّي الْعَصْرَ فَلَمَّا انْصَرَفَ اَخْبَرَهُ بِالْفَضْلِ فَقَالَ اَخْبِرْ ذَالِكَ ابْنَ الْخَطَّابِ فَذَهَبَ جَابِرٌ اِلٰى عُمَرَ فَأَخْبَرَهُ فَقَالَ لَهُ عُمَرُ لَقَدْ عَلِمْتُ حَيْنَ مَشٰى فِيْهَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيُبَارَكَنَّ فِيْهَا.

اولېږولو. بيائې جابر ته اوفرمائيل' دا اوشوکوه' او د هغه قرض ادا کړه. دَ' رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم د واپسي نه پس هغه' هغه اوشوکولې' او ديرش وسق قجورې ئې هغه ته پوره کړې. اوِ لس وسق قجورې بچ پاتې شوې. جابر رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم له راغې. چه حضورؐ ته حال بيان کړي. حضورؐ ئې اوليدلو چه دَ مازيګر مونځ ئې کولو. څه وخت چه حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم فارغ شو' نو ما ورته دَ قجورو دَ بچ کيدو حال بيان کړه. حضورؐ اوفرمائيل' ابن خطاب ته بيان کړه' نو جابر حضرت عمرؓ له ورغې' او هغه ته ئې بيان اوکړه. حضرت عمرؓ جواب ورکړه' کوم وخت چه حضورؐ باغ کښې ګرځېدلو' نو زه د مخکښې نه پوهه شوې ووم' چه قجورو کښې به برکت راځي.

## باب ٢١٠ : مَنِ اسْتَعَاذَ مِنَ الدَّيْنِ.

## باب ٢١٠ : د هغې سړي بيان چه د قرض نه پناه غواړي.

١٩٣١ : حَدَّثَنَا اَبُوْ الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ ح وَ حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ حَدَّثَنِيْ اَخِيْ عَنْ سُلَيْمَانَ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ اَبِيْ عَتِيْقٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَآئِشَةَ اَخْبَرَتْهُ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَدْعُوْا فِي الصَّلٰوةِ وَ يَقُوْلُ اللّٰهُمَّ اِنِّيْ اَعُوْذُبِكَ مِنَ الْمَأْثَمِ وَالْمَغْرَمِ فَقَالَ لَهُ قَآئِلٌ مَّا اَكْثَرُ مَا تَسْتَعِيْذُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ مِنَ

١٩٣١ : ابواليمان. شعيب. زهري. (دونم سند) اسمٰعيل. برادر اسمٰعيل (عبدالحميد). سليمان. محمد بن ابي عتيق. ابن شهاب. عروه نه روايت کوي' بي بي عائشهؓ هغه ته بيان اوکه' رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم به چه مانځه کښې دعا کوله' نو فرمائيل به ئې' يا اللّٰه زه د ګناه او قرض نه ستا پناه غواړم. چا ويونکي عرض اوکه' يا رسول اللّٰه' څه خبره ده' چه تاسو د قرض نه اکثر پناه غواړئ. حضورؐ ورته اوفرمائيل سړې چه قرضدارې شي' نو خبره کوي او

الْمَغْرَمِ قَالَ اِنَّ الرَّجُلَ اِذَا غَرِمَ حَدَّثَ فَكَذَبَ وَ وَعَدَ فَاَخْلَفَ.

دروغ وائي. او وعده كوي نو د هغې خلاف كوي.

**باب ۱۲۱۱: الصَّلٰوةِ عَلٰى مَنْ تَرَكَ دَيْنًا.**

**باب ۱۲۱۱:** په هغې سړي د مونځ كولو بيان چه قرض پرې پاتې شوې وي.

**۹۳۲:** حَدَّثَنَا اَبُو الْوَلِيْدِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَدِيِّ بْنِ ثَابِتٍ عَنْ اَبِيْ حَازِمٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ تَرَكَ مَالًا فَلِوَرَثَتِهٖ وَمَنْ تَرَكَ كَلًّا فَاِلَيْنَا.

**۹۳۲:** ابو الوليد. شعبه. عدي بن ثابت. ابو حازم. حضرت ابوهريرهؓ نبي صلى الله عليه وسلم نه روايت كوي. حضور صلى الله عليه وسلم او فرمائيل: چا چه مال پريښودلو هغه د هغه د وارثانو دے. او چا چه قرض پريښودلو هغه خمونږ په ذمه ده.

**۹۳۳:** حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا اَبُوْ عَامِرٍ حَدَّثَنَا فُلَيْحٌ عَنْ هِلَالِ بْنِ عَلِيٍّ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ اَبِيْ عَمْرَةَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَا مِنْ مُؤْمِنٍ اِلَّا وَ اَنَا اَوْلٰى بِهٖ فِي الدُّنْيَا وَالْاٰخِرَةِ اقْرَءُوْا اِنْ شِئْتُمْ اَلنَّبِيُّ اَوْلٰى بِالْمُؤْمِنِيْنَ مِنْ اَنْفُسِهِمْ فَاَيُّمَا مُؤْمِنٍ مَاتَ وَ تَرَكَ مَالًا فَلْيَرِثْهُ عَصَبَتُهٗ مَنْ كَانُوْا وَمَنْ تَرَكَ دَيْنًا اَوْ ضَيَاعًا فَلْيَاْتِنِيْ فَاَنَا مَوْلَاهُ.

**۹۳۳:** عبدالله بن محمد. ابو عامر. فليح. هلال بن علي. عبدالرحمن بن ابي عمره. ابوهريرهؓ نه روايت كوي، رسول الله صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل. هيڅوك مومن نه دے چه زه دنيا او اخرت كښې د هغه د ټولو نه زيات دوست نه يم كه تاسو غواړئ نو دا آيت تلاوت كړئ: النبي اولى بالمومنين الخ (نبيّ مسلمانانو باندے خپله د هغوي د ذات نه زيات مهربانه دے) نو كوم مومن چه مړشي، او مال پريږدي، نو د هغه عصبه (د پلار د طرف نه رشته دار) د هغه وارثان وي، كوم چه موجود وي، او چا چه قرض او اهل و عيال پريښودل نو هغه دے ماله راځي، زه د هغه مولي (ذمه وار يم).

**باب ۱۲۱۲: مَطْلُ الْغَنِيِّ ظُلْمٌ.**

**باب ۱۲۱۲:** د مالدار ټال مټول كول ظلم دے.

**۹۳۴:** حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْاَعْلٰى عَنْ مَعْمَرٍ عَنْ هَمَّامِ بْنِ مُنَبِّهٍ اَخِيْ وَهْبِ بْنِ مُنَبِّهٍ اَنَّهٗ سَمِعَ اَبَا

**۹۳۴:** مسدد. عبدالاعلي. معمر. همام بن منبه (برادر وهب بن منبه) حضرت ابوهريرهؓ نه روايت كوي: د هغه بيان دے، رسول الله صلى الله

هریرة یقول قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَطْلُ الْغَنِيِّ ظُلْمٌ.

علیه وسلم اوفرمائیل. د مالدار تال متهول کول ظلم دے.

**بَاب ۱۲۱۳: لِصَاحِبِ الْحَقِّ مَقَالٌ** وَ يُذْكَرُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهُ قَالَ لَيُّ الْوَاجِدِ يُحِلُّ عِرْضَهُ وَ عُقُوْبَتَهُ قَالَ سُفْيَانُ عِرْضُهُ يَقُوْلُ مَطَلْتَنِيْ وَ عُقُوْبَتُهُ الْحَبْسُ.

**باب ۱۲۱۳: د حق خاوند ته د تقاضے (غوښتلو) حق دے.** او نبي صلي الله علیه وسلم نه منقول دي: د مالدار تاخیر کول د هغه سزا او عزت حلال کوي. او سفیان اووے چه د هغه د عزت حلال کول دادي چه اووائي' تاخیر د اوکه' او د هغه سزا قید کول دي.

**۹۳۵:** حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ شُعْبَةَ عَنْ سَلَمَةَ عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ اَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجُلٌ يَتَقَاضَاهُ فَاَغْلَظَ لَهُ فَهَمَّ بِهٖ اَصْحَابُهُ فَقَالَ دَعُوْهُ فَاِنَّ لِصَاحِبِ الْحَقِّ مَقَالًا.

**۹۳۵:** مسدد. یحیي. شعبه. سلمه. ابی سلمه. ابوهریرهؓ نه روایت دے' نبي صلي الله علیه وسلم له یو سړے تقاضا کولو له راغے او هغه سخت کلامي اوکړه. نو د حضورؐ صحابهؓ هغه ته د سزا ورکولو اراده اوکړه' حضورؐ ورته اوفرمائیل' دے پریږدئ. ځکه چه حقدار ته د خبرو کولو حق دے.

**بَاب ۱۲۱۴: اِذَا وَجَدَ مَالَهُ عِنْدَ مُفْلِسٍ فِي الْبَيْعِ وَالْقَرْضِ وَالْوَدِيْعَةِ فَهُوَ اَحَقُّ بِهٖ** وَ قَالَ الْحَسَنُ اِذَا اَفْلَسَ وَ تَبَيَّنَ لَمْ يَجُزْ عِتْقُهُ وَلَا بَيْعُهُ وَلَا شِرَآؤُهُ وَ قَالَ سَعِيْدُ بْنُ الْمُسَيَّبِ قَضٰى عُثْمَانُ مَنِ اقْتَضٰى مِنْ حَقِّهٖ قَبْلَ اَنْ يُّفْلِسَ فَهُوَ لَهُ وَمَنْ عَرَفَ مَتَاعَهُ بِعَيْنِهٖ فَهُوَ اَحَقُّ بِهٖ.

**باب ۱۲۱۴: بیع' قرض او امانت کښې که یو سړے خپل مال مفلس سره بیامومي' نو هغه د هغے زیات مستحق دے[1].** او حسن بصري اووے' هر کله چه دیوالیه شي او دا ظاهره شي' نو نه د هغه ازاد کول او نه د هغه خریدوفروخت جائز دے. او سعید بن مسیب اووے' چاچه د دیوالیه کیدو نه مخکښې خپل حق وخست' د هغه متعلق حضرت عثمان فیصله اوکړه' چه هغه د هغه دے. او چا چه خپل مال او پیژند' نو هغه د هغے مستحق دے.

ف: د لویو لویو سوداګرو' د خپل تاوانی کیدو او خواریدو اعلان کول. دے اعلان نه پس هغوي د چا د قرض ادا کولو ذمه وار نه شي ګڼړلے.

[1] یعني کله چه چا یو څیز په بیعه واخستو او په بیع باندے ئے قبضه هم اوکړه' لیکن قیمت ئے نه وو ادا کړے چه دیوالیه اوګرځولے شو نو که چرے اصل بیع هغه سره اوس هم موجود وي نو د ائمهؤ په دے کښې اختلاف دے چه په داسے صورت کښې هر کله چه نور قرض غوښتونکي هم موجود وي ددے مال

ستحق به صرف خرخونکے وي او که ټول قرض غوښتونکي به په دے کښې برابر شریک وي. د امام شافعي رحمة الله علیه فیصله داده چه صرف خرخونکے د اصل مبیع مستحق دے او د نورو قرض خواهانو به په دے کښې هیڅ حصه نه وي. د امام بخاري رحمة الله علیه هم دغه رجحان دے او د حدیث ظاهر نه هم دا مفهوم میږي لیکن امام ابو حنیفه او صاحبین رحمهم الله دا وائي چه چونکه مال خرڅ شوے دے او د خریدار قبضے ته هم تلے دے دے د پاره قانوني طور باندے به اوس دا صرف د خریدار ملک وي. دا بله خبره ده چه د دیانت په تقاضو باندے عمل کولو سره نور قرض خواهان او خریداران ټول په دے باندے راضي شي چه مال د صرف خرخونکي له ورکړے شي. او په حدیث کښې چه کوم حکم دے هغه دیانت سره متعلق دے قانوني حکم نه دے بیان شوے.

دا خبره خاص طور سره خیال لرل پکار دي چه د دیانت باب د حضور اکرم په فیصلو کښې ډیر زیات دے او اکثرو موقعو کښې هغوی قانوني حدونه پریښي دي او د خلقو سهولت او انصاف د پاره ئے د دیانت په بنیاد باندے د معاملاتو تصفیے کړے دي. لیکن کله چه د نزاع حدودو ته معامله اورسي نو په هغے کښې د قانون سهاره اخستل ضروري شي. د شریعت د اصولو او کلیاتو په رڼړا کښې او د احادیثو تر مخه احنافو هم هغه مسلک اختیار کړو د کوم بیان چه مونږه اوکړو دا مسلک د عقل په کسوټی باندے هم ډیر صفا او واضحه دے. کوم دلائل چه بیانولے شي مونږ د هغے تفصیلات نه شو بیانولے دے د پاره هغه نظر انداز کړے شو. البته که چرے مال باندے د خریدار قبضه نه وه شوے نو په دے کښې د ټولو اتفاق دے چه د داسے مال مستحق به صرف خرخونکے وي.

۹۳۶: حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ يُوْنُسَ حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيْدٍ اَخْبَرَنِيْ اَبُوْ بَكْرِ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرِو بْنِ حَزْمٍ اَنَّ عُمَرَ بْنَ عَبْدِ الْعَزِيْزِ اَخْبَرَهُ اَنَّ اَبَا بَكْرِ بْنَ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ الْحٰرِثِ بْنِ هِشَامٍ اَخْبَرَهُ اَنَّهُ سَمِعَ اَبَا هُرَيْرَةَ يَقُوْلُ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَوْ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ مَنْ اَدْرَكَ مَالَهُ بِعَيْنِهِ عِنْدَ رَجُلٍ اَوْ اِنْسَانٍ قَدْ اَفْلَسَ فَهُوَ اَحَقُّ بِهِ مِنْ غَيْرِهِ قَالَ اَبُوْ عَبْدِ اللّٰهِ هٰذَا الْاِسْنَادُ كُلُّهُمْ كَانُوْا عَلٰى

۹۳۶: احمد بن یونس. زهیر. یحیي بن سعید. ابوبکر بن محمد. بن عمرو بن حزم. عمر بن عبدالعزیز. ابوبکر بن عبدالرحمن بن حارث بن هشام. حضرت ابوهریره نه روایت کوي. د هغه بیان دے رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي. چا چه خپل مال یو سړي سره بعینه بیاموند. چه مفلس شو. نو هغه د هغے مال زیات مستحق دے. د دے سند ټول راویان د مدینے قاضیان پاتے شوي وو. یعني یحیي

الْقَضَآءِ يَحْيَى بْنُ سَعِيْدٍ وَ اَبُوْبَكْرِ بْنِ مُحَمَّدٍ وَ عُمَرُ بْنُ عَبْدِ الْعَزِيْزِ وَ اَبُوْبَكْرِ بْنِ عَبدالرَّحمٰن وَ اَبُوْ هُرَيْرَةَ كَانُوا كُلُّهُمْ عَلَى الْمَدِيْنَةِ.

بن سعيد. ابوبكر بن محمد. عمر بن عبدالعزيز ابوبكر بن عبدالرحمن. او ابوهريره.

بَاب ۱۵ ۲ : مَنْ اَخَّرَ الْغَرِيْمَ اِلَى الْغَدِ اَوْ نَحْوِهِ وَلَمْ يَرَ ذَالِكَ مَطْلًا وَ قَالَ جَابِرٌ اشْتَدَّ الْغُرَمَآءُ فِيْ حُقُوْقِهِمْ فِيْ دَيْنِ اَبِيْ فَسَأَلَهُمُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنْ يَقْبَلُوْا ثَمَرَ حَائِطِيْ فَاَبَوْا فَلَمْ يُعْطِهِمِ الْحَائِطَ وَلَمْ يَكْسِرْهُ لَهُمْ قَالَ سَأَغْدُوْا عَلَيْكَ غَدًا فَغَدَا عَلَيْنَا حِيْنَ اَصْبَحَ فَدَعَا فِيْ ثَمَرِهَا بِالْبَرَكَةِ فَقَضَيْتُهُمْ.

باب ۲۱۵ : کوم سړي چه قرض خواه د صبا يا بله ورځ پورې په طمع کړ نو بعضو دا تاخير نه دې گنړلې. او د جابر بيان دې چه قرض خواهانو خما د پلار د قرض متعلق د حقونو مطالبه کښې سختي راواخسته. نو نبي صلي الله عليه وسلم هغه خلقو ته اوفرمائيل چه هغوي دې خما د باغ ميوه قبوله کړي. ليکن هغې خلقو د دې نه انکار اوکړو نو حضور هغوي ته نه باغ ورکړ او نه ئې ميوه اوشوکوله. او وې فرمائيل چه زه به صبا له تاپله درشم. چه صبا شولو نو حضور صلي الله عليه وسلم ما پله تشريف راوړلو. او د هغې باغ ميوه کښې ئې د برکت دعا اوکړله نو ما د هغې ټولو قرض ادا کړلو.

بَاب ۲۱٦ : مَنْ بَاعَ مَالَ الْمُفْلِسِ اَوِ الْمُعْدِمِ فَقَسَمَهُ بَيْنَ الْغُرَمَآءِ اَوْ اَعْطَاهُ حَتّٰى يُنْفِقَ عَلٰى نَفْسِهِ.

باب ۲۱٦ : کوم سړي چه د مفلس يا تنگدسته مال خرڅ کړ او هغه ئې په قرض خواهانو کښې تقسيم کړ يا هغه له ئې ورکړ چه په خپل ذات ئې خرچ کړي.

۹۳۷ : حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَزِيْدُ بْنُ زُرَيْعٍ حَدَّثَنَا حُسَيْنٌ الْمُعَلِّمُ حَدَّثَنَا عَطَآءُ بْنُ اَبِيْ رَبَاحٍ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ اَعْتَقَ رَجُلٌ غُلَامًا لَهُ عَنْ دُبُرٍ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ يَشْتَرِيْهِ مِنِّيْ

۹۳۷ : مسدد. يزيد بن زريع. حسين معلم. عطاء بن ابي رباح. جابر بن عبدالله نه روايت کوي د هغه بيان دې چه يو سړي خپل يو غلام د مرگ نه پس ازاد کړ (يعني مدبر کړې وو) نو نبي صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل. دې خما نه څوک اخلي نو هغه نعيم بن عبدالله واخستو. حضور

فَاشْتَرَاهُ نُعَيْمُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ فَاَخَذَ ثَمَنَهُ فَدَفَعَهُ اِلَيْهِ.

د هغه قيمت واخست. بيائي هغه ته د هغه قيمت ورکړلو.

**بـاب ۱۷ ۲ : اِذَا اَقْرَضَهُ اِلٰى اَجَلٍ مُسَمًّى اَوْ اَجَّلَهُ فِي الْبَيْعِ** قَالَ ابْنُ عُمَرَ فِي الْقَرْضِ اِلٰى اَجَلٍ لَا بَأْسَ بِهٖ وَ اِنْ اُعْطِيَ اَفْضَلَ مِنْ دَرَاهِمِهٖ مَالَمْ يَشْتَرِطْ وَ قَالَ عَطَاءٌ وَ عَمْرُو بْنُ دِيْنَارٍ فِي الْقَرْضِ هُوَ اِلٰى اَجَلِهٖ وَ قَالَ اللَّيْثُ جَعْفَرُ بْنُ رَبِيْعَةَ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ هُرْمُزَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهٗ ذَكَرَ رَجُلًا مِنْ بَنِيْ اِسْرَآئِيْلَ سَاَلَ بَعْضَ بَنِيْ اِسْرَآئِيْلَ اَنْ يُسْلِفَهٗ فَدَفَعَهَا اِلَيْهِ اِلٰى اَجَلٍ مُسَمًّى اَلْحَدِيْثَ.

**باب ۲۱۷ : کـه د یوے مقررے مودے په وعده** چاله قرض ورکړي يا بيع کښې څه موده مقرر کړی. ابن عمرؓ اوفرمائيل: چه د يوے مقررے مودے په وعده قرض اخستو کښې څه حرج نشته او که د هغه د دراهمو نه زياتے ورکړي چه د هغے شرط ئے نه وي کړے[۱] (نو حرج نشته) او عطاء او عمرو بن دينار اووے چه هغه په قرض کښې د مقرر کړے مودے پابند وي. او ليث اووے ماته جعفر بن ربيعه په واسطه د عبدالرحمن بن هرمز. ابوهريرهؓ. رسول الله صلي الله عليه وسلم نه روايت اوکه: حضور د بني اسرائيلو د يو سړي ذکر اوکه. چه هغه د بني اسرائيلو د يو سړي نه قرض اوغوښتلو. نو هغه په يو معين ميعاد هغه له قرض ورکه. او اخر پورے حديث ئے بيان که.

۱. يعني د خپل طرفه ئے ورکړے وي، که چرے د مخکښې نه داسے څه شرط اولګولے شي نو همدا صورت حراميږي.

**باب ۲۱۸ : اَلشَّفَاعَةُ فِيْ وَضْعِ الدَّيْنِ.**

**باب ۲۱۸ : قرض کښې د کمي کولو د سفارش بيان.**

**۹۳۸ : حَدَّثَنَا مُوْسٰى حَدَّثَنَا اَبُوْ عَوَانَةَ عَنْ مُغِيْرَةَ عَنْ عَامِرٍ عَنْ جَابِرٍ قَالَ اُصِيْبَ عَبْدُ اللّٰهِ وَ تَرَكَ عِيَالًا وَّ دَيْنًا فَطَلَبْتُ اِلَى اَصْحَابِ الدَّيْنِ اَنْ يَّضَعُوْا بَعْضًا فَاَبَوْا فَاَتَيْتُ النَّبِيَّ صلعم فَاسْتَشْفَعْتُ بِهٖ عَلَيْهِمْ**

۹۳۸ : موسي. ابوعوانه. مغيره. عامر. جابرؓ نه روايت دے، چه عبدالله شهيد شو. او اهل و عيال او قرض پرے پاتے شو. ما قرض خواهانو ته خواست اوکه چه څه قرض معاف کړي، خو هغه خلقو انکار اوکه. نو زه د نبي صلي الله عليه وسلم خدمت کښې حاضر شوم. او هغے خلقو ته د سفارش خواست م ورته اوکه. هغے خلقو د منلو نه انکار اوکه. نو حضورؐ اوفرمائيل: هر قسم

فَأَبَوْا فَقَالَ صِنِّفْ تَمْرَكَ كُلَّ
شَيْءٍ مِنْهُ عَلَى حِدَةٍ عِذْقَ بْنِ
زَيْدٍ عَلَى حِدَةٍ وَاللِّينَ عَلَى حِدَةٍ
وَالْعَجْوَةَ عَلَى حِدَةٍ ثُمَّ أَحْضِرْهُمْ
حَتَّى آتِيَكَ فَفَعَلْتُ ثُمَّ جَاءَ
صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَعَدَ
عَلَيْهِ وَكَالَ لِكُلِّ رَجُلٍ حَتَّى
اسْتَوْفَى وَبَقِيَ التَّمْرُ كَمَا هُوَ
كَأَنَّهُ لَمْ يُمَسَّ وَغَزَوْتُ مَعَ
النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
عَلَى نَاضِحٍ لَنَا فَأَزْحَفَ الْجَمَلُ
فَتَخَلَّفَ عَلَيَّ فَوَكَزَهُ النَّبِيُّ صَلَّى
اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ خَلْفِهِ قَالَ
بِعْنِيهِ وَلَكَ ظَهْرُهُ إِلَى الْمَدِينَةِ فَلَمَّا
دَنَوْنَا اسْتَأْذَنْتُ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللّٰهِ
إِنِّي حَدِيثُ عَهْدٍ بِعُرْسٍ قَالَ صَلَّى
اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَمَا تَزَوَّجْتَ بِكْرًا
أَمْ ثَيِّبًا قُلْتُ ثَيِّبًا أُصِيبَ عَبْدُ اللّٰهِ وَ
تَرَكَ جَوَارِيَ صِغَارًا فَتَزَوَّجْتُ ثَيِّبًا
تُعَلِّمُهُنَّ وَتُؤَدِّبُهُنَّ ثُمَّ قَالَ ائْتِ
أَهْلَكَ فَقَدِمْتُ فَأَخْبَرْتُ خَالِي بِبَيْعِ
الْجَمَلِ فَلَامَنِي فَأَخْبَرْتُهُ بِإِعْيَاءِ
الْجَمَلِ وَبِالَّذِي كَانَ مِنَ النَّبِيِّ
صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَوَكْزِهِ إِيَّاهُ
فَلَمَّا قَدِمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ
وَسَلَّمَ غَدَوْتُ إِلَيْهِ بِالْجَمَلِ فَأَعْطَانِي

قجورې جدا جدا اوساته. عزق بن زید یو طرف ته لین
بل طرف ته او عجوه بل طرف ته جدا کړې. بیا هغه
قرض خواهان راوغوارې ترڅو چې زه تاسو له راشم. نو
ما دغسې اوکړل بیا رسول الله صلی الله علیه وسلم
تشریف راوړلو او د قجورو په ډهیری کیناستلو. او هر
سړي له ئې په ناپ ورکولې ترڅو چې پوره قرض ئې ادا
کړلو. او قجورې هغسې وې ځنګه چه مخکښې وې.
ګویا هغې ته چا لاس نه وو وروړلې. او نبي صلي الله
علیه وسلم سره یو جهاد کښې اوبو راوړنکي اوښ باندې
سور شوم. هغه اوښ ستړې شو او زه ئې وروستو کړم.
نبي صلي الله علیه وسلم د وروستو نه په یوه ډنډا
اووهلو. حضور اوفرمائیل دا په ما خرڅ کړه او تاته
مدینې پورې په دې د سوریدو حق دې. ما عرض اوکه
یا رسول الله! ما تازه واده کړې دې. نو رسول الله صلي
الله علیه وسلم اوفرمائیل تا جینۍ سره واده کړې دې
که کنډې سره. ما عرض اوکه کنډې سره. عبدالله
شهید شوې دې. او وړې وړې لونړه ئې پریښې دي. په
دې وجه ما کنډې سره واده اوکه چه هغوي ته علم و
ادب اوښائي. بیا حضور اوفرمائیل خپلې بي بي له ځه نو
زه لاړم. بیا ما خپل ماما ته د اوښ خرڅولو حال بیان
که نو هغه زه ملامته کړم. ما هغه ته د اوښ د ستړې
کیدو او د نبي صلي الله علیه وسلم د معجزې او د
حضور اوښ په ډنډو وهلو حال بیان که. کوم وخت چه
حضور مدینې ته اورسیدلو نو زه اوښ سره د نبي صلي
الله علیه وسلم خدمت کښې حاضر شوم. نو حضور
صلي الله علیه وسلم ماته د اوښ قیمت او اوښ هم

ثَمَنَ الْجَمَلِ وَالْجَمَلَ وَ سَهْمِيْ مَعَ الْقَوْمِ. راکړلو. او قوم سره نے مال غنیمت کښې ماله حصه هم راکړله.

۱ دا حدیث ددے نه مخکښې هم راغلے دے. د حدیث مضمون کښې خپلو کښې یو بل نه به بعضو خایونو کښې اختلاف دے بعضو محدثینو دا د احادیثو په تعدد باندے محمول کړے دے لیکن دا به حقیقت کښې یو حدیث دے ولې چه واقعه یوه ده او همدا واقعه مختلف راویان بیانوي. صرف د راویانو په تصرف سره مختلفو روایاتو کښې اختلاف شوے دے. واقعي صورتحال چه هر څه وي لیکن بهرحال د حدیث په سلسله کښې د راویانو اختلاف څه زیات اهم هم نه دے ولې چه د اصل مقصد بیانولو کښې هیڅ اختلاف نیشته. صرف د واقعے صورت په نقل کولو کښې لږ شان اختلاف دے او داسے به عامو حالاتو کښې ناګزیر دے (رغیدن تړے نه کیږي) د دے نه پس چه کومه حصه ده هغه یو بل حدیث دے چونکه دواړه په یو سند کښې وو دے د پاره مصنف دوي لره همدغه شان نقل کړل.

بَابُ ۹۱۶: مَا يُنْهٰى عَنْ اِضَاعَةِ الْمَالِ وَ قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى وَاللّٰهُ لَا يُحِبُّ الْفَسَادَ وَلَا يُصْلِحُ عَمَلَ الْمُفْسِدِيْنَ وَ قَالَ اَصَلٰوتُكَ تَأْمُرُكَ اَنْ نَتْرُكَ مَا يَعْبُدُ اٰبَآؤُنَا اَوْ اَنْ نَفْعَلَ فِيْ اَمْوَالِنَا مَا نَشٰٓؤُا وَ قَالَ وَلَا تُؤْتُوا السُّفَهَآءَ اَمْوَالَكُمْ وَالْحَجْرِ فِيْ ذٰلِكَ وَمَا يُنْهٰى عَنِ الْخِدَاعِ.

باب ۹۱۶: د مال د ضائع کولو د ممانعت بیان. او د الله تعالي قول چه الله فساد نه خوښوي او نه د فسادیانو کار جوړوي. او الله تعالي اوفرمایل آیا ستاسو مونځ تاسو له حکم درکوي چه مونږ دا بتان پریږدو چه د هغے عبادت به خمونږ پلار نیکه کولو. یا مونږ خپل مال کښې د خپلے مرضي مطابق تصرف کول پریږدو. او الله تعالي فرمائیلي دي خپل مال بیوقوفانو لمه ورکوني او داسے حال کښې تصرفاتو نه د منع کولو او د فریب د ممانعت بیان.

۹۳۹: حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ ابْنُ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَجُلٌ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنِّيْ اُخْدَعُ فِي الْبُيُوْعِ فَقَالَ اِذَا بَايَعْتَ فَقُلْ لَا خِلَابَةَ فَكَانَ الرَّجُلُ يَقُوْلُهُ.

۹۳۹: ابونعیم. سفیان. عبدالله بن دینار. ابن عمر نه روایت کړي چه یو سړي نبي صلی الله علیه وسلم ته عرض اوکړ چه ماله خرید و فروخت کښې دهوکه راکولے شي نو حضور ورته اوفرمایل چه کله ته خرید و فروخت کوے نو وایه چه ماسره به هیڅ دهوکه نه وي نو هغے سړي به دا وئیلے

۹۴۰: حَدَّثَنَا عُثْمَانُ حَدَّثَنَا جَرِيْرٌ عَنْ مَنْصُوْرٍ عَنِ الشَّعْبِيِّ عَنْ

۹۴۰: عثمان. جریر. منصور. شعبي. وارد (د مغیره بن غلام) مغیره بن شعبه نه روایت کوي

وَّارِدِ مَوْلَى الْمُغِيرَةِ ابْنِ شُعْبَةَ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّ اللّٰهَ حَرَّمَ عَلَيْكُمْ عُقُوْقَ الْاُمَّهَاتِ وَ وَأْدَ الْبَنَاتِ وَ مَنْعًا وَّ هَاتِ وَ كَرِهَ لَكُمْ قِيْلَ وَ قَالَ وَ كَثْرَةَ السُّؤَالِ وَ اِضَاعَةَ الْمَالِ.

نبي صلي الله علیه وسلم اوفرمائیل الله تعالی په تاسو د میندو (ماؤں) نافرماني او لونړه ژوندی ښخول او چالـه نـه ورکول لیکن خپله غوښتل حرام کړي دي. او تاسو د پاره ئې قیل و قال (فضول بک بک کول) ډیر سوال کول او مال ضائع کول مکروه گنړلي دي.

**باب ۶۲۰: اَلْعَبْدُ رَاعٍ فِيْ مَالِ سَيِّدِهٖ وَلَا يَعْمَلُ اِلَّا بِاِذْنِهٖ.**

**باب ۶۲۰**: غلام د خپل آقا د مال نگران دے. او د هغه د اجازت نه بغیر دے هغے کښې هیڅ تصرف نه کوي.

**۱۹۴۱**: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ اَخْبَرَنِيْ سَالِمُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ اَنَّهٗ سَمِعَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ كُلُّكُمْ رَاعٍ وَ مَسْئُوْلٌ عَنْ رَّعِيَّتِهٖ فَالْاِمَامُ رَاعٍ وَهُوَ مَسْئُوْلٌ عَنْ رَعِيَّتِهٖ وَالرَّجُلُ فِيْٓ اَهْلِهٖ رَاعٍ وَهُوَ مَسْئُوْلٌ عَنْ رَعِيَّتِهٖ وَالْمَرْاَةُ فِيْ بَيْتِ زَوْجِهَا رَاعِيَةٌ وَّهِيَ مَسْئُوْلَةٌ عَنْ رَعِيَّتِهَا وَالْخَادِمُ فِيْ مَالِ سَيِّدِهٖ رَاعٍ وَهُوَ مَسْئُوْلٌ عَنْ رَعِيَّتِهٖ قَالَ فَسَمِعْتُ هٰٓؤُلَآءِ مِنْ رَّسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَحْسِبُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ وَالرَّجُلُ فِيْ مَالِ اَبِيْهِ رَاعٍ وَّهُوَ مَسْئُوْلٌ عَنْ رَعِيَّتِهٖ فَكُلُّكُمْ رَاعٍ وَّ كُلُّكُمْ مَسْئُوْلٌ عَنْ رَّعِيَّتِهٖ.

**۱۹۴۱**: ابوالیمان. شعیب. زهري. سالم بن عبدالله. عبدالله بن عمرؓ نه روایت کوي. هغه د رسول الله صلي الله علیه وسلم نه واوریدل ستاسو کښې هر سړے حاکم دے او د هغه د رعیت متعلق به ترے تپوس کیږي. امام (خلیفه) حاکم دے هغه نه به د هغه د رعیت متعلق تپوس کیږي ښځه د خپل خاوند د کور نگرانه ده هغے نه به د خپل رعیت متعلق پښتنه کیږي. خادم د خپل مالک په مال کښې حکومت لري هغه نه به د خپل رعیت تپوس کیږي. ابن عمرؓ اووے. دا ما د نبي صلي الله علیه وسلم نه اوریدلي دي. او پوهیږم چه نبي صلي الله علیه وسلم دا هم فرمائیلي دي سړے د خپل پلار مال کښې صاحب اختیار دے هغه نه به د هغه د رعیت متعلق پښتنه کیږي غرض دا چه تاسو کښې هر سړے په یو شان حاکم دے او تاسو کښې به هر سړي نه د هغه د رعیت متعلق تپوس کیږي.

# كِتَابٌ فِي الْخُصُوْمَاتِ — دَ جګړو بيان

بَابُ ۶۲۱: مَا يُذْكَرُ فِي الْإِشْخَاصِ وَالْمُلَازَمَةِ وَالْخُصُوْمَةِ بَيْنَ الْمُسْلِمِ وَالْيَهُوْدِ.

باب ۶۲۱: د قرضدار د يو ځايه نه بل ځاي ته د منتقل كولو او مسلمان او يهودي كښې د جګړې كيدو بيان ؔ۔

۱. مطلب دا دے چه په دعوي او مقدماتو كښې مدعي او مدعا عليه په خپلو كښې هم مذهب كيدل ضروري نه دي. يو مسلمان په هر كوم غير مسلم باندے دغه شان هر غير مسلم په هريو مسلمان باندے اسلامي عدالت كښې د خپل حق دعوي كولے شي او دا يو بالكل واضحه خبره ده.

۹۴۲: حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيْدِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ عَبْدُ الْمَلِكِ بْنُ مَيْسَرَةَ أَخْبَرَنِي قَالَ سَمِعْتُ النَّزَّالَ بْنَ سَبْرَةَ سَمِعْتُ عَبْدَ اللّٰهِ يَقُوْلُ سَمِعْتُ رَجُلًا قَرَأَ آيَةً سَمِعْتُ مِنَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خِلَافَهَا فَأَخَذْتُ بِيَدِهٖ فَأَتَيْتُ بِهٖ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ كِلَاكُمَا مُحْسِنٌ قَالَ شُعْبَةُ أَظُنُّهُ قَالَ لَا تَخْتَلِفُوْا فَإِنَّ مَنْ كَانَ قَبْلَكُمُ اخْتَلَفُوْا فَهَلَكُوْا.

۹۴۲: ابوالوليد. شعبه. عبدالملك بن ميسره. نزال. عبدالله بن مسعودؓ نه روايت كوي. د هغه بيان دے. چه ما د يو سړي نه يو آيت د نبي صلى الله عليه وسلم د تلاوت خلاف واوريدو ما د هغه لاس اونيولو. او رسول الله صلى الله عليه وسلم له م راوستلو. حضور صلى الله عليه وسلم اوفرمايل. تاسو ښه وايئ. شعبه اوويے زه ګمان كوم. حضور صلى الله عليه وسلم دا اوفرمايل. چه اختلاف مه كوئ. حكه چه تاسو نه مخكښې امتونو اختلاف او كه نو هلاك شو.

۹۴۳: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ قَزَعَةَ حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيْمُ بْنُ سَعْدٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ أَبِي سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ وَ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ الْأَعْرَجِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ اسْتَبَّ رَجُلَانِ رَجُلٌ مِنَ الْمُسْلِمِيْنَ وَ رَجُلٌ مِنَ الْيَهُوْدِ فَقَالَ الْمُسْلِمُ وَالَّذِي اصْطَفَى

۹۴۳: يحيي بن قزعه. ابراهيم بن سعد. ابن شهاب. ابوسلمه او عبدالرحمن اعرج ابوهريره نه روايت كوي. چه دوو سړو يو بل ته كنځل اوكړل. هغوي كښې يو مسلمان او بل يهودي وو. مسلمان اوويے قسم دے په هغه ذات چه هغه محمد (صلعم) له په ټوله دنيا فضيلت وركه. او يهودي قسم دے په هغه ذات. چه هغه موسي له په

مُحَمَّدٍ عَلَى الْعٰلَمِيْنَ فَقَالَ الْيَهُوْدِيُّ وَالَّذِي اصْطَفٰى مُوْسٰى عَلَى الْعٰلَمِيْنَ فَرَفَعَ الْمُسْلِمُ يَدَهُ عِنْدَ ذٰلِكَ فَلَطَمَ وَجْهَ الْيَهُوْدِيِّ فَذَهَبَ الْيَهُوْدِيُّ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمَا كَانَ مِنْ اَمْرِهٖ وَ اَمْرِ الْمُسْلِمِ فَدَعَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمُسْلِمَ فَسَأَلَهُ عَنْ ذَالِكَ فَاَخْبَرَهُ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تُخَيِّرُوْنِيْ عَلٰى مُوْسٰى فَاِنَّ النَّاسَ يُصْعَقُوْنَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فَاُصْعَقُ مَعَهُمْ فَاَكُوْنُ اَوَّلَ مَنْ يُّفِيْقُ فَاِذَا مُوْسٰى بَاطِشٌ جَانِبَ الْعَرْشِ فَلَا اَدْرِيْ اَكَانَ فِيْمَنْ صَعِقَ فَاَفَاقَ قَبْلِيْ اَوْ كَانَ مِمَّنِ اسْتَثْنَى اللّٰهُ.

دنیا فضیلت ورکــه دے اوریدو سره مسلمان حیان لاس اوچت کـه او یهودي نے پـه مخ پـه څپیړه اووهلو. یهودي د نبـي صلـي اللّـه علیـه وسلم پـه خدمت کښې (شکایت) د پاره حاضر شو او څه چه د هغه او مسلمان میـنځ کښې شوي وو هغه ئے ورته بیان کړل. نبی صلی اللّه علیه وسلّم مسلمان راوغوښتو او د دے متعلق نے تپوس اوکـه نو هغه ورته ټول حال بیان کـه. نبي صلي اللّه علیه وسلّم اوفرمائیل مالـه پـه موسي علیـه السلام فضیلت مه راکوئ. ځکه چه د قیامت په ورځ به خلق بیهوشه شي زه به هم هغے خلقو سره بیهوشه شم. د ټولو نه مخکښې به زه هوش کښې راشم. زه بـه وینم چه موسیٰ د عرش ګټ نیولے دے زه نـه پوهیږم چه هغه به بے هوشه شي او څما نه مخکښې به هوش کښې راشي یا اللّه تعالي هغه د بیهوشۍ نه مستثنیٰ کړے دے.

۹۴۴: حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ اِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ يَحْيٰى عَنْ اَبِيْهِ عَنْ اَبِيْ سَعِيْدِنِ الْخُدْرِيِّ قَالَ بَيْنَمَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَالِسٌ جَآءَ يَهُوْدِيٌّ فَقَالَ يَا اَبَا الْقَاسِمِ ضَرَبَ وَجْهِيْ رَجُلٌ مِّنْ اَصْحَابِكَ فَقَالَ مَنْ قَالَ رَجُلٌ مِّنَ الْاَنْصَارِ قَالَ ادْعُوْهُ فَقَالَ اَضَرَبْتَهُ قَالَ سَمِعْتُهُ بِالسُّوْقِ يَحْلِفُ وَالَّذِيْ اصْطَفٰى مُوْسٰى عَلَى الْبَشَرِ قُلْتُ اَيْ خَبِيْثُ عَلٰى مُحَمَّدٍ

۹۴۴: موسي بن اسمعیل. وهیب. عمرو بن یحیي. یحیي. ابو سعید خدريؓ نه روایت کوي د هغـه بیـان دے یـو ځـل رسـول اللّـه صلي اللّه علیه وسلّم ناست وو. (دے کښې) یو یهودي راغے او وے ویل اے ابو القاسم (صلعم) ستا یو ملګري زه پـه مخ اووهلم. حضور تپوس اوکـه چا اووهلے هغـه اووے یو انصاري. حضور اوفرمائیل هغه راوغواړه. بیا ئے تپوس اوکه آیا تا دے وهلے دے هغه اووے د ده نه ما بازار کښې داسے قسم خوړل اوریدلی وو چه قسم دے په هغه ذات چه هغه موسي له په بشر فضیلت ورکـه. ما ورتـه اووے اے خبیثه ایا

صلّي اللّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَخَذَتْنِيُ غَضَبَةُ ضَرَبْتُ وَجْهَهُ فَقَالَ النَّبِيّ صلّي اللّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تُخَيِّرُوْا بَيْنَ الْاَنْبِيَاءِ فَاِنَّ النَّاسَ يُصْعَقُوْنَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فَاَكُوْنَ اَوَّلَ مَنْ تَنْشَقُّ عَنْهُ الْاَرْضُ فَاِذَا اَنَا بِمُوْسٰي اٰخِذٌ بِقَائِمَةٍ مِنْ قَوَائِمِ الْعَرْشِ فَلَا اَدْرِيْ اَكَانَ فِيْمَنْ صَعِقَ اَوْ حُوْسِبَ بِصَعْقَةِ الْاُوْلٰي.

پـه محمـد صلـعـم هـم' او مـاله غصـه راغله' نو ما په مخ او وهلو . نبي صلي الله عليه وسلم او فرمايل پيغمبرانو لـه پـه يـو بل فضيلت مه ور كوئ حكـه چه د قيامت پـه ورځ بـه خلق بيهوشه شي . د ټولو نه مخكښې چـه زمكه او چوي' نو زه بـه بهـر راوځم هغـه وخـت بـه زه اوينم' چـه موسي بـه د عرش يوه پـايه نيولي وي . مـاتـه نـه ده معلومه' چه هغه به بيهوشه خلقو نـه وي . يـا' د هغـه (د كوه طور) بيهوشـي بـه كافي وي ا .

ا . پـه انبيـاؤ كـښې يـو بل بانـدے فضيلت ثابت دے' ليكن د دے منع والے هم حضور فرمائيلے دے . په فضيلت او ترجيح كښې عام طور سره خلق اعتدال پريدي او د يو بل په فضيلت كښې په دا شان لګيا شي چه د بل تنقيص اوشي او منع والے په همدے وجه راغلے دے . تر كومه پورے چه د حضور اكرم صلي الله عليه وسلم د دے ارشاد سوال دے چـه "مـا له په موسي عليه السلام باندے ترجيح مه راكوئ" نو عالمانو دا په تواضع بـاندے محمول كړے دے . دا قسمه ګڼ احاديث د ګڼو انبياؤ په باره كښې په مختلفو موقعو كښې پاك حضرت فرمائيلي دي . مونږ به دا ټول د حضور اكرم صلي الله عليه وسلم په تواضع باندے محمول كوو .

پـه كـومـو روايتـونـو كـښې چـه د حـضـور د فضيلت ذكر راغلے دے هم هغه په اصل كښې عقيده دي . بهرحال د افضليت او مفضوليت په باب كښې د احتياط لاره همدا ده چه د زيات جرات نه كار وانه خيستے شي او نه د په دے كښې څه انهماک اختيار كړے شي' ولے چه پيدا شان عموما خلق د حد نه تجاوز كړي او دا انهماک د ګمراهي سبب جوړ شي . مونږ له د ټولو انبياؤ احترام او د هغوي په عظمت باندے ايمان لرل پكار دي . په فضيلت كښې انبياء د يو بل نه مختلف دي او زمونږه همدا عقيده ده ليكن آيا ضروري دي چه به دا قسمه بحثونو كښې د پريوتل اوكړے شي؟ د يهودي او مسلمان واقعے نه او ګورئ چه نبي كريم صلي الله عليه وسلم په كومه طريقه پوښے كړل او د هغوي نه يے د كومے خبرے مطالبه كړے ده .

۹۴۵ : حَدَّثَنَا مُوْسٰي حَدَّثَنَا هَمَّامٌ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ اَنَسٍ اَنَّ يَهُوْدِيًّا رَضَّ رَأْسَ جَارِيَةٍ بَيْنَ حَجَرَيْنِ قِيْلَ مَنْ فَعَلَ هٰذَا بِكِ اَفُلَانٌ اَفُلَانٌ حَتّٰي سُمِّيَ الْيَهُوْدِيُّ فَاَوْمَتْ بِرَأْسِهَا فَاُخِذَ الْيَهُوْدِيُّ فَاعْتَرَفَ فَاَمَرَ بِهِ النَّبِيّ

۹۴۵ : موسي . همام . قتاده . انس نـه روايت كوي' چـه يـو يهودي د' يوے وينځے سر' په دوو كانړو او چقولو . تپوس اوشو' دا چا اوكړل . آيا فلاني فلاني داسے كړي دي . تر دے' چه د يو يهودي نوم واخستے شو' نو هغے وينځے سر' سره اشاره اوكړه . هغه يهودي اونيولے شو . هغه د جرم اعتراف اوكړ' حضور صلي الله

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَرُضَّ رَأْسُهُ بَيْنَ حَجَرَيْنِ.
علیه وسلم حکم او که، نو د هغه سر دوه کانړو سره او چقولې شو¹.

۱ امام شافعي رحمة الله علیه په قصاص کښې د مماثلت قائل دے او واني چه څرنګ او په کومو اډیټونو سره قاتل قتل کړے وي هم هغه شان به هغه هم قتلولے شي. لیکن د امام ابو حنیفه رحمة الله علیه په نزد قصاص کښې مماثلت نیشته بلکه د قصاص صرف یو طریقه ده چه د هغه څټ په توره اووهلے شي. په دے حدیث کښې اګرچه په قصاص کښې د مماثلت ذکر راغلے دے لیکن د احنافو په نزد ددے حیثیت د تعزیر دے قاتل یهودي ډاکو وو او هغه د دغه ښځے کالي کوز کړي وو او هغه نے په ډیره بے دردئ سره وژلے وه. په دے وجه سیاسةً او تعزیراً هغه له دغسے سزا ورکړے شوه.

## بَابٌ ۶۲۲ : مَنْ رَدَّ أَمْرَ السَّفِيهِ وَالضَّعِيفِ الْعَقْلِ وَإِنْ لَمْ يَكُنْ حَجَرَ عَلَيْهِ الْإِمَامُ

وَيُذْكَرُ عَنْ جَابِرٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَدَّ عَلَى الْمُتَصَدِّقِ، قَبْلَ النَّهْيِ ثُمَّ نَهَاهُ وَقَالَ مَالِكٌ إِذَا كَانَ لِرَجُلٍ عَلَى رَجُلٍ مَالٌ وَلَهُ عَبْدٌ لَا شَيْءَ لَهُ غَيْرُهُ فَأَعْتَقَهُ لَمْ يَجُزْ عِتْقُهُ وَمَنْ بَاعَ عَلَى الضَّعِيفِ وَنَحْوِهِ فَدَفَعَ ثَمَنَهُ إِلَيْهِ وَأَمَرَهُ بِالْإِصْلَاحِ وَالْقِيَامِ بِشَأْنِهِ فَإِنْ أَفْسَدَ بَعْدُ مَنَعَهُ لِأَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى عَنْ إِضَاعَةِ الْمَالِ وَقَالَ لِلَّذِي يُخْدَعُ فِي الْبَيْعِ إِذَا بَايَعْتَ فَقُلْ لَا خِلَابَةَ فَكَانَ يَقُولُهُ وَلَمْ يَأْخُذِ النَّبِيُّ صلعم مَالَهُ.

**باب ۶۲۲ :** بعضے خلقو د کم عقل او نادان معامله رد کړے ده، اګر که امام هغه د تصرفاتو نه منع کړے نه وي. او په واسطه د جابر نبي صلي الله علیه وسلم نه منقول دي، چه حضورؐ د ممانعت نه مخکښې د صدقه ورکونکي صدقه واپس کړه. د هغے نه پس حضورؐ د هغے ممانعت اوفرمائیلو. امام مالک اووے، که د چا په چا قرض وي، او هغه سره صرف غلام وي او د هغه نه سیوا بل څه نه وي، او هغه، هغه آزاد کړلو، نو د هغه ازادول به جائز نه وي. او که چا د چا کم عقل بیوقوف سړي مال خرڅ کړلو او د هغے قیمت نے هغه له ورکه د حالت د، درستي او حفاظت حکم نے ورکه، که د هغے نه پس هم هغه خپل مال ضائع که، نو حاکم به هغه د تصرفاتو نه منع کړي. ځکه چه نبي صلي الله علیه وسلم د مال ضائع کولو نه منع فرمائیلے دي. او هغے سړي ته، چه هغه ته بیع کښې دهوکه ورکولے شوه، حضورؐ اوفرمائیل، چه کله ته د بیع معامله کوے، نو اووایه، چه دهوکه مه راکوه. نبي صلي الله علیه وسلم د هغه مال وانه اخستے¹.

۱. یعني په هغه ئے څه پابندي نه وه لګولے حالانکه سامان اخستل (خریدنا) د هغه نه نه راتلل.

۹۴۶ : حَدَّثَنَا مُوسَى ابْنُ اِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ مُسْلِمٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ دِيْنَارٍ قَالَ سَمِعْتُ ابْنَ عُمَرَ قَالَ كَانَ رَجُلٌ يُخْدَعُ فِي الْبَيْعِ فَقَالَ لَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا بَايَعْتَ فَقُلْ لَا خِلَابَةَ فَكَانَ يَقُوْلُهُ.

۹۴۶ : موسی بن اسمعیل. عبدالعزیز بن مسلم. عبداللّٰه بن دینار بیان کوي چه ما د ابن عمر نه واوریدل د هغه بیان دے یو سړي ته به په بیع کښ دهوکه ورکولے شوه. هغه ته نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمانیل کله چه ته خریدوفروخت کوے نو اووایه چه ماله دهوکه مه راکوه نو هغه به دغسے وئیلے.

۹۴۷ : حَدَّثَنَا عَاصِمُ ابْنُ عَلِيٍّ حَدَّثَنَا ابْنِ اَبِيْ ذِئْبٍ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْكَدِرِ عَنْ جَابِرٍ اَنَّ رَجُلًا اَعْتَقَ عَبْدًا لَهُ لَيْسَ لَهُ مَالٌ غَيْرُهُ فَرَدَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَابْتَاعَهُ نُعَيْمُ بْنُ النَّحَّامِ.

۹۴۷ : عاصم بن علي. ابن ابي ذئب. محمد بن منکدر. جابرؓ نه روایت کړي چه یو سړي خپل غلام ازاد کړه هغه سره د هغه نه سیوا بل څیز نه وو. نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم د هغه ازادول رد کړل او هغه نعیم بن نحام په بیه واخستو.

## باب ۶۲۳ : كَلَامِ الْخُصُوْمِ بَعْضِهِمْ فِيْ بَعْضٍ.

## باب ۶۲۳ : جګړه کونکو کښ د یو د بل متعلق د خبرو کولو بیان[1]

۱. یعني آیا که چرے د عدالت د حاکم په وړاندے مدّعي او مدعی علیه د یو بل خلاف سخت کلامي اوکړه یا نامناسب الفاظ نے استعمال کړل نو په دے باندے عدالت هغوی له څه سزا ورکولے شي؟ د عنوان لاندے وړکړے شوو احادیثو کښ ددے مسئلے وضاحت کړے شوے دے په اصل کښ د مصنف مقصد زیات واضح نشو چه د نامناسبو الفاظو او سخت کلامی حدونه څه دی. همسے خو په دے کښ د شبے ګنجائش څه دے چه د عدالت نه بهر هم که چرے بعضے سخت الفاظ د چا متعلق استعمال کړے شي نو د هغے سزا په خپله په اسلامي قانون کښ موجود ده. بیا د عدالت احترام خو بهرحال ضروري دے او هلته اودریدلو سره څه نامناسب لفظ د چا متعلق استعمالول به یقینا د سزا قابل وي. ددے باب لاندے چه کوم احادیث راغلي دي په هغے کښ صرف دیو قسم اعتراض صورت دے او همدے د پاره په هغے باندے د څه سزا ذکر هم موجود نه دے. او ظاهره ده چه هر یو فریق د خپلے مقدمے زړاندے کولو وخت کښ خپل څه اشکال یا په فریق مخالف باندے د څه شے یا اعتراض پیش کولو مجاز وي. په احادیثو کښ تقریبا د همدے قسمه صورتونه دي او بعضے خو په عدالت کښے دننه د اعتراض کولو د حدونو نه هم بهر دي

۹۴۸ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ اَخْبَرَنَا اَبُوْ مُعَاوِيَةَ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ شَقِيْقٍ

۹۴۸ : محمد. ابومعاویه. اعمش. شقیق. عبداللّٰه (بن مسعودؓ) نه روایت کوي. د هغه بیان دے

عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ حَلَفَ عَلٰى يَمِيْنٍ وَّهُوَ فِيْهَا فَاجِرٌ لِيَقْتَطِعَ بِهَا مَالَ امْرِیءٍ مُّسْلِمٍ لَقِيَ اللّٰهَ وَهُوَ عَلَيْهِ غَضْبَانُ قَالَ فَقَالَ الْاَشْعَثُ فِيَّ وَاللّٰهِ كَانَ ذَالِكَ كَانَ بَيْنِيْ وَ بَيْنَ رَجُلٍ مِّنَ الْيَهُوْدِ اَرْضٌ فَجَحَدَنِيْ فَقَدَّمْتُهُ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ لِيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلَكَ بَيِّنَةٌ قُلْتُ لَا قَالَ فَقَالَ لِلْيَهُوْدِيِّ احْلِفْ قَالَ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِذًا يَّحْلِفُ وَ يَذْهَبُ بِمَا لِيْ فَاَنْزَلَ اللّٰهُ تَعَالٰى اِنَّ الَّذِيْنَ يَشْتَرُوْنَ بِعَهْدِ اللّٰهِ وَ اَيْمَانِهِمْ ثَمَنًا قَلِيْلًا اِلٰى اٰخِرِ الْاٰيَةِ.

رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل. څوک چه قصدا په دروغه قسم اوخوري، د پاره ددے چه د هغے په ذریعه د، یو مسلمان مال اووهي، نو اللّٰه سره به داسے حال کښ یوځائے کیږي. چه اللّٰه تعالي به د هغه نه ناراضه وي، اشعث اووے. په خدائے م دے قسم وي. حضورﷺ دا حدیث ځما متعلق ارشاد فرمائیلے دے. ځما او د، یو یهودي مینځ کښ زمکه مشترکه وه هغه ځما د حق نه انکار اوکه، ما هغه نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم له راوستو. نو رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم ماته اوفرمائیل، آیا ستا څوک ګواه شته. ما اووے نه. بیا حضورﷺ یهودي ته اوفرمائیل، ته قسم اوخوره ما عرض اوکه، یا رسول اللّٰه، دے خو به قسم اوخوري. او ځما مال به اووهي، نو اللّٰه تعالي: ان الذین یشترون، آخر ایت پورے نازل کړلو (بیشکه څوک چه د اللّٰه عهد سره او خپلو قسمونو سره لږ قیمت اخلي.

۹۴۹ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ عُمَرَ اَخْبَرَنَا يُوْنُسُ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ عَنْ كَعْبٍ اَنَّهُ تَقَاضَى ابْنَ اَبِيْ حَدْرَدٍ دَيْنًا كَانَ لَهُ عَلَيْهِ فِي الْمَسْجِدِ فَارْتَفَعَتْ اَصْوَاتُهُمَا حَتّٰى سَمِعَهَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ فِيْ بَيْتِهِ فَخَرَجَ اِلَيْهِمَا حَتّٰى كَشَفَ سِجْفَ حُجْرَتِهِ فَنَادٰى يَا كَعْبُ قَالَ لَبَّيْكَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ ضَعْ مِنْ دَيْنِكَ هٰذَا فَاَوْمَاَ اِلَيْهِ اَيِ

۹۴۹ : عبداللّٰه بن محمد. عثمان بن عمر یونس. زهري. عبداللّٰه بن کعب بن مالک. کعب نه روایت کوي، چه هغه جمات کښ د، ابن ابي حدرد، نه د خپل قرض تقاضا اوکړه چه په هغه اوو. نو د هغے دواړو اوازونه اوچت شو، تردے چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم واوریدل، دغه وخت حضورﷺ حجرے کښ وو، حضورﷺ د خپلے حجرے پرده اوچته کړه. بهر ته ئے تشریف راوړلو، او آواز ئے ورکه، اے کعب، کعب اووے، لبیک، یا رسول اللّٰه حضورﷺ ورته اوفرمائیل، خپل قرض دومره معاف که، او اشارے سره ئے اوښودل، چه نیم معاف کړه. کعب اووے، ما معاف کړلو. یا رسول

الشَّطْرَ قَالَ لَقَدْ فَعَلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ قُمْ فَاقْضِهِ.

**٩٥٠:** حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ عَبْدِ الْقَارِيِّ اَنَّهُ قَالَ سَمِعْتُ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ يَقُوْلُ سَمِعْتُ هِشَامَ بْنَ حَكِيْمِ ابْنِ حِزَامٍ يَقْرَأُ سُوْرَةَ الْفُرْقَانِ عَلٰى غَيْرِ مَا اَقْرَؤُهَا وَ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَقْرَأَنِيْهَا وَكِدْتُ اَنْ اَعْجَلَ عَلَيْهِ ثُمَّ اَمْهَلْتُهُ حَتّٰى انْصَرَفَ ثُمَّ لَبَّبْتُهُ بِرِدَائِهِ فَجِئْتُ بِهِ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْتُ اِنِّيْ سَمِعْتُ هٰذَا يَقْرَأُ عَلٰى غَيْرِ مَا اَقْرَأْتَنِيْهَا فَقَالَ لِيْ اَرْسِلْهُ ثُمَّ قَالَ لَهُ اقْرَأْ فَقَالَ هٰكَذَا اُنْزِلَتْ اِنَّ الْقُرْاٰنَ اُنْزِلَ عَلٰى سَبْعَةِ اَحْرُفٍ فَاقْرَؤُوْا مَا تَيَسَّرَ.

اللّٰه، نو حضور ابن ابي حدرد ته اوفرمائيل: لار شه او قرض ادا کړه. (يعني باقي نيم قرض ادا کړه).

**٩٥٠:** عبدالله بن يوسف. مالک ابن شهاب. عروه بن زبير. عبدالرحمن بن عبدالقاري نه روايت کوي: هغه د عمرو بن خطاب نه واوريدل چه ما د هشام بن حکيم بن حزام نه سورهٔ فرقان د هغې خلاف واوريدو، څنګه چه به ما لوستلو. او رسول الله صلي الله عليه وسلم ماته لوستلې وه، او نږدې وه چه زه په هغه تادي اوکړم. خو ما صبر اوکړه. تردې چه هغه د مانځه نه فارغ شولو. بيا ما د هغه په غاړه کښې څادر واچولو، او رسول الله صلي الله عليه وسلم له م راوستو. او عرض م اوکړه: چه ما دده نه د هغې طريقې خلاف واوريدل څنګه چه تاسو ماته لوستلې کړې وه. حضور ماته اوفرمائيل: دغه شان آيت نازل شوې دې. بيا يې ماته اوفرمائيل: لوله. ما اولوستو نو حضور اوفرمائيل: دا شان نازل شوې دې. قرآن په اووه طرزه نازل شوې دې. څنګه چه تاته اساني وي. هغسې لوله.

## بَابُ ٦٢٤: اِخْرَاجِ اَهْلِ الْمَعَاصِيْ وَالْخُصُوْمِ مِنَ الْبُيُوْتِ بَعْدَ الْمَعْرِفَةِ اَخْرَجَ عُمَرُ اُخْتَ اَبِيْ بَكْرٍ حِيْنَ نَاحَتْ.

## باب ٦٢٤: حال معلومېدو نه پس د ګنهګارو او جګړه مارو د کورونه د اوښکلو بيان. او عمر د ابوبکر خور (ام فروه) اوښکله. کوم وخت چه هغې سيندې (وير) اوکړې (نوحه يا).

**٩٥١:** حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَدِيٍّ عَنْ شُعْبَةَ عَنْ سَعْدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

**٩٥١:** محمد بن بشار. محمد بن عدي. شعبه. سعد بن ابراهيم. حميد بن عبدالرحمن. ابو هريره. نبي صلي الله عليه وسلم نه روايت کوي. حضور صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل: ما

وَسَلَّمَ قَالَ لَقَدْ هَمَمْتُ اَنْ اٰمُرَ بِالصَّلٰوةِ فَتُقَامَ ثُمَّ اُخَالِفَ اِلٰى مَنَازِلِ قَوْمٍ لَّا يَشْهَدُوْنَ الصَّلٰوةَ فَاُحَرِّقَ عَلَيْهِمْ.

اراده او کړه چه د مونځ حکم او کړم. او مونځ قائم شي. نو زه د هغې خلقو کورونو ته لاړ شم چه مونځ کښې نه شريکيږي او د هغوي کورونه او سيزم[۱].

۱. دا حديث ددې نه مخکښې په کتاب الصلوة کښې تير شوې دې. د مصنف خيال دا دې چه هر کله د هغوی کورونه سوزولی کيدې نو مخکښې به نې هغوی د کورونونه ويستل او بيا به نې کورونه سوزول. او د دې نه دا ثابتيږي چه د گناهگارو حالت کله معلوم شي نو تنبيهاً هغوی د کورونونه ويستلې کيدې شي.

## بَاب ۶۲۵ : دَعْوَى الْوَصِيِّ لِلْمَيِّتِ.

باب ۶۲۵ : د مړي د وصي د دعوي کولو بيان.

۹۵۲ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ اَنَّ عَبْدَ بْنَ زَمْعَةَ وَ سَعْدَ بْنَ اَبِيْ وَقَّاصٍ اخْتَصَمَا اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ ابْنِ اَمَةِ زَمْعَةَ فَقَالَ سَعْدٌ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَوْصَانِيْ اَخِيْ اِذَا قَدِمْتُ اَنْ اَنْظُرَ ابْنَ اَمَةِ زَمْعَةَ فَاَقْبِضَهُ فَاِنَّهُ ابْنِيْ وَ قَالَ عَبْدُ ابْنُ زَمْعَةَ اَخِيْ وَابْنُ اَمَةِ اَبِيْ وُلِدَ عَلٰى فِرَاشِ اَبِيْ فَرَاَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَبَهًا بَيِّنًا فَقَالَ هُوَلَكَ يَا عَبْدُ ابْنَ زَمْعَةَ الْوَلَدُ لِلْفِرَاشِ وَاحْتَجِبِيْ مِنْهُ يَا سَوْدَةُ.

۹۵۲ : عبدالله بن محمد. سفيان. زهري. عروه عائشې نه روايت کوي چه عبدالله بن زمعه او سعد بن ابي وقاص د زمعه د وينزې د هلک متعلق خپله مقدمه نبي صلي الله عليه وسلم له يوړه. سعد عرض او کړه ماته م وررور وصيت کړې وو چه زه مکې ته اورسم او د زمعه د وينزې په هلک م نظر او غرځيږي نو په هغه دې قبضه او کړم ځکه چه هغه زما ځوئې دې او عبد بن زمعه اووې چه هغه زما وررور دې او زما د پلار د وينزې ځوې دې. زما د پلار په بستره پيدا شوې دې. نبي صلي الله عليه وسلم د هغه شکل و صورت د عتبه په شان اوليده نو حضور اوفرمائيل. اې عبد بن زمعه ته د دې حقدارې هلک د هغه دې د چا په بستره چه پيدا شوې دې. او اې سوده ته د ده نه پرده کوه.

## بَاب ۶۲۶ : التَّوَثُّقِ مِمَّنْ تَخْشٰى مَعَرَّتَهُ وَقَيَّدَ ابْنُ عَبَّاسٍ عِكْرِمَةَ عَلٰى تَعْلِيْمِ الْقُرْاٰنِ وَالسُّنَنِ

باب ۶۲۶ : د کوم سړي نه چه د شرارت انديښنه وي د هغه د تړلو بيان. او ابن عباس عکرمه د قران سنن او فرائض ښودلو د پاره قيد

وَالْفَرَآئِضِ.

کړے وو.

**۹۵۳ :** حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ سَعِيْدِ ابْنِ اَبِيْ سَعِيْدٍ اَنَّهُ سَمِعَ اَبَا هُرَيْرَةَ يَقُوْلُ بَعَثَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَيْلًا قِبَلَ نَجْدٍ فَجَآءَتْ بِرَجُلٍ مِّنْ بَنِيْ حَنِيْفَةَ يُقَالُ لَهُ ثُمَامَةُ ابْنُ اُثَالٍ سَيِّدِ اَهْلِ الْيَمَامَةِ فَرَبَطُوْهُ بِسَارِيَةٍ مِّنْ سَوَارِيْ الْمَسْجِدِ فَخَرَجَ اِلَيْهِ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَا عِنْدَكَ يَا ثُمَامَةُ قَالَ عِنْدِيْ يَا مُحَمَّدُ خَيْرٌ فَذَكَرَ الْحَدِيْثَ قَالَ اَطْلِقُوْا ثُمَامَةَ.

**۹۵۳ :** قتيبه. ليث. سعيد بن ابي سعيد. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت کوي. هغه وئيلے رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم نجد طرف ته يو لښکر اوليږلو. هغے خلقو د بني حنيفه يو سړے چه د هغه نوم ثمامه بن اثال وو او د يمامه والو سردار وو. ګرفتار راوستلو. او د جمات يو ستنے سره ئے اوتړلو. بيا هغه پله رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم تشريف راوړلو. او تپوس ئے تړے اوکه اے ثمامه تاسره څه دي هغه اووے ما سره مال دے. او پوره حديث ئے بيان که. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمايل ثمامه پريږدئ.

**۹۵۴ :** اَلرَّبْطِ وَالْحَبْسِ فِي الْحَرَمِ وَاشْتَرٰى نَافِعُ بْنُ عَبْدِ الْحٰرِثِ دَارًا لِّلسِّجْنِ بِمَكَّةَ مِنْ صَفْوَانَ بْنِ اُمَيَّةَ عَلٰى اَنَّ عُمَرَ اِنْ رَضِيَ فَالْبَيْعُ بَيْعُهُ وَ اِنْ لَّمْ يَرْضَ عُمَرُ فَلِصَفْوَانَ اَرْبَعُ مِائَةٍ وَ سَجَنَ ابْنُ الزُّبَيْرِ بِمَكَّةَ.

**۹۵۴ :** حرم کښې د چا د تړلو او قيدولو بيان. او نافع بن عبدالحارث مکه کښې د صفوان بن اميه نه قيد خانے د پاره يو کور په دے شرط واخست که حضرت عمر راضي شو نو بيع پوره شوه او که هغه راضي نه شو نو صفوان ته به څلور زره دينار ورکيږي[1]. او ابن زبير مکه کښې قيدول کړي وو.

[1] نافعؒ د حضرت عمر رضي اللّٰه عنه په دور خلافت کښې د مکے والي وو دے د پاره کله چه هغوي جيل خانے د پاره مکان په بيعه واخستو نو د هغے نفاذ ئے د حضرت عمر رضي اللّٰه عنه په فيصله باندے معلق اوساتلو. په دے روايت کښې د ټولونه لوئے اشکال دا دے چه په دے کښې د بيعے سره يو شرط هم لګولے شوے دے کوم سره چه بيع فاسديږي. علامه انور شاه کشميري رحمة اللّٰه عليه په دے باندے بحث کړے دے چه د بيع او شراء په باب کښې داسے ټولو موقعو کښې کومو کښې چه دفساد حکم دے د پاره لګولے شوے دے چه په هغے کښې د نزاع خطره ده نو په دغه تمامو صورتونو کښې به د فساد حکم هغه وخت لګي کله چه د نزاع صورت پيدا شي او عدالت ته معامله اورسي ګنے په عامو حالاتو کښې هر کله

چه د څه نزاع خطره نه وي نو په دغه صورتونو کښې بيع نه فاسديږي خواه که نزاع پيدا شي او که نه شي. په حديث کښې د مخکښې صورت ذکر دے او چونکه د نزاع هيڅ سوال نه وو دے د پاره په داسے شرط کښې هيڅ بديت کيدل نه دي پکار. علامه کشميري رحمة الله عليه ليکلي دي چه په دې باب کښې په قاعدو باندے جمود مناسب نه دے بلکه په عرف او د سلفو په طريقو باندے هم نظر لرل ضروري دي.

۹۵۵ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ يُوسُفَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ قَالَ حَدَّثَنِيْ سَعِيْدُ بْنُ اَبِيْ سَعِيْدٍ سَمِعَ اَبَا هُرَيْرَةَ قَالَ بَعَثَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَيْلًا قِبَلَ نَجْدٍ فَجَاءَ تْ بِرَجُلٍ مِنْ بَنِيْ حَنِيْفَةَ يُقَالُ لَهُ ثُمَامَةُ بْنُ اُثَالٍ فَرَبَطُوْهُ بِسَارِيَةٍ مِّنْ سَوَارِيْ الْمَسْجِدِ.

۹۵۵ : عبدالله بن يوسف. ليث. سعيد بن ابي سعيد. حضرت ابوهريرة نه روايت کوي. د هغه بيان دے. نبي صلي الله عليه وسلم نجد طرف ته يو لښکر اوليږلو. نو هغے خلقو د بني حنيفه يو سړے چه د هغه نوم ثمامه بن اثال وو راوستلو او هغه ئې د جمات يوے ستنے سره اوتړلو.

## بَاب ۶۲۷ : الْمُلَازَمَةِ

## باب ۶۲۷ : قرضدار پسے د ګرځيدو بيان.

۹۵۶ : حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ حَدَّثَنِيْ جَعْفَرُ بْنُ رَبِيْعَةَ وَ قَالَ غَيْرُهُ حَدَّثَنِيْ اللَّيْثُ قَالَ حَدَّثَنِيْ جَعْفَرُ بْنُ رَبِيْعَةَ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ ابْنُ هُرْمُزَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ اَنَّهُ كَانَ لَهُ عَلٰى عَبْدِ اللّٰهِ ابْنِ اَبِيْ حَدْرَدٍ الْاَسْلَمِيِّ دَيْنٌ فَلَقِيَهُ فَلَزِمَهُ فَتَكَلَّمَا حَتّٰى ارْتَفَعَتْ اَصْوَاتُهُمَا فَمَرَّ بِهِمَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَا كَعْبُ وَ اَشَارَ بِيَدِهٖ كَاَنَّهُ يَقُوْلُ النِّصْفَ فَاَخَذَ نِصْفَ مَا عَلَيْهِ وَ تَرَكَ نِصْفًا.

۹۵۶ : يحيي بن بکير. ليث. جعفر بن ربيعه (د يحيي بن بکير نه علاوه نورو خلقو دا شان سلسله سند بيان کړه) ليث جعفر بن ربيعه. عبدالرحمن بن هرمز. عبدالله بن کعب بن مالک انصاري. کعب بن مالک نه روايت کوي. چه د هغه عبدالله بن ابي حدرد اسلمي باندے څه قرض وو. نو هغه سره يو ځائے شو او هغه پسے اوګرځيدو او دواړو خبرے شروع کړے تردے چه د دواړو اوازونه اوچت شول. نبي صلي الله عليه وسلم پرے تير شولو او وے فرمائيل اے کعب او حپل لاس سره ئے ګويا اشارے سره او فرمائيل چه نيم قرض معاف کړه نو هغه نيم قرض واخست او نيم ئې پريښودلو.

## بَاب ۶۲۸ : التَّقَاضِيْ.

## باب ۶۲۸ : د تقاضا کولو بيان.

۹۵۷ : حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ

۹۵۷ : اسحق. وهب بن جرير. بن حازم. شعبه.

حَدَّثَنَا وَهْبُ بْنُ جَرِيْرِ بْنِ حَازِمٍ اَخْبَرَنَا شُعْبَةُ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ اَبِي الضُّحٰى عَنْ مَسْرُوقٍ عَنْ خَبَّابٍ قَالَ كُنْتُ قَيْنًا فِي الْجَاهِلِيَّةِ وَ كَانَ لِيْ عَلَى الْعَاصِ ابْنِ وَآئِلٍ دَرَاهِمُ فَاَتَيْتُهُ اَتَقَاضَاهُ فَقَالَ لَا اَقْضِيْكَ حَتّٰى تَكْفُرَ بِمُحَمَّدٍ فَقُلْتُ لَا وَاللّٰهِ لَا اَكْفُرُ بِمُحَمَّدٍ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتّٰى يُمِيْتَكَ اللّٰهُ ثُمَّ يَبْعَثَكَ قَالَ فَدَعْنِيْ حَتّٰى اَمُوْتَ ثُمَّ اُبْعَثَ فَاُوْتٰى مَالًا وَّ وَلَدًا ثُمَّ اَقْضِيَكَ فَنَزَلَتْ اَفَرَاَيْتَ الَّذِيْ كَفَرَ بِاٰيٰتِنَا وَ قَالَ لَاُوْتَيَنَّ مَالًا وَّ وَلَدًا الْاٰيَةَ.

اعمش. ابوالضحي. مسروق خباب نه روايت کوي: ما د جاهليت زمانه کښې د لوهارۍ پېشه کوله او خما به عاص بن وائل خو درهمه قرض وو. زه هغه له تقاضه کولو د پاره راغلم. هغه اووې زه نې تاله هغه وخت پورې نه درکوم، خو پورې چه ته د محمد (صلعم) نه انکار اونه کړې. ما اووې. په خدائې د دې قسم وي داسې نشي کيدې: زه د محمد (صلعم) نه انکار نشم کولې (او زه به صبر کوم) تردې چه الله تعالى تا مړ کړي. او د مرګ نه پس دې بيا راپورته کړي. هغه ورته اووې، ته ما پرېږده: تردې، چه زه مړشم. بيا راپاسولې شم. او مال او اولاد به ماته راکړې شي: نو ستا قرض به ادا کړم. په دې خبره دا ايت نازل شولو: چه ايا تا هغه سړې اوليد: چه هغه خما د نښو نښانو نه انکار او کړه. او وې وئيل چه ماته به مال او اولاد ضرور راکولې شي: اخر ايت پورې.

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

بسم الله الرّحمن الرّحيم

# كِتَابٌ فِي اللُّقَطَةِ — دَ پريوتي څيز د اوچتولو بيان

لقطه هر هغه څيز ته وائي کوم چه په لارو کښې پروت بيامونده شي او څوک سړې هغه راخلي. په هر داسې متروک څيز باندې هم ددې اطلاق کيږي د کوم چه څوک مالک معلوم نه وي

## بَابٌ ٦٢٩ : وَ اِذَآ اَخْبَرَهُ رَبُّ اللُّقَطَةِ بِالْعَلَامَةِ دَفَعَ اِلَيْهِ.

## باب ٦٢٩ : او هر کله چه د هغې مالک د هغې نښې نښانې اوښائي: نو هغه ته دې واپس کړي

٩٥٨ : حَدَّثَنَا آدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ ح وَ حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ سَلَمَةَ سَمِعْتُ سُوَيْدَ بْنَ

٩٥٨ : آدم. شعبه. ح. محمد بن بشار. غندر. شعبه. سلمه. سويد بن غفله بيان کوي: چه زه ابي بن کعب سره يوځائې شوم. د هغه بيان دې چه زه د سل ديناروتهيلۍ سره نبي صلي الله عليه وسلم له ورغلم.

بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غَفَلَةُ قَالَ لَقِيْتُ أُبَيَّ بْنَ كَعْبٍ فَقَالَ اَخَذْتُ صُرَّةً فِيْهَا مِائَةُ دِيْنَارٍ فَأَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ عَرِّفْهَا حَوْلًا فَعَرَّفْتُهَا حَوْلًا فَلَمْ اَجِدْ مَنْ يَعْرِفُهَا ثُمَّ اَتَيْتُهُ ثَالِثًا فَقَالَ احْفَظْ وِعَاءَ هَا وَ عَدَدَهَا وَ وِكَاءَ بِهَا فَاسْتَمْتَعْتُ فَلَقِيْتُهُ بَعْدُ بِمَكَّةَ فَقَالَ لَا اَدْرِىْ ثَلٰثَةَ اَحْوَالٍ اَوْ حَوْلًا وَّاحِدًا.

حضورؐ اوفرمائيل يو كال پورے د دے اعلان كوه. نو يو كال پورے ما د هغے اعلان كولو. خو د هغے شناخت كوونكے ما هيڅوک اونه ليدو. بيا په دويم خل زه نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم له راغلم نو هغه اوفرمائيل د دے ظرف، شمير او سر تړونے ياد لره كه د دے مالک راشي[۱] نو خير، كني د دے نه فائده اوچته كړه. نو ما د هغے نه فائده واخسته (په كار م راوسته) د شعبه بيان دے، چه زه دے نه پس سلمه سره مكه كښ يو ځائے شوم. نو هغه اووے. ماته ياد نه دي. چه درے كالو پورے يا يو كال پورے[۲] ئے د اعلان كولو اوفرمائيل.

۱. د احنافو په نزد دلته دا حكم صرف ديانة دے كني په عدالت كښ ددے فيصله د شهادت نه بغير نشي كيدے په دے كښ په وجدان او غالب گمان سره هم فيصله كيدے شي.

۲. اعلان سره متعلق په دے حديث كښ چه كوم د يو كال يا كنړو كلونو تحديد دے په هغې كښ د ټولو نه مخكښ ددے لحاظ ساتل پكار دي چه مخاطب يو صحابي دے، جليل القدر صحابي او په همدغه وجه مونږه دا وايو چه دومره او كدے مودے پورے اعلان كولو حكم صرف د انتهائي احتياط او تقوي تر مخه دے. په احنافو كښ پخپله د اعلان د مودے تحديد په حقله اختلاف دے، او علامه انور شاه صاحب كشميري رحمة اللّٰه عليه د مبسوط په حوالے سره نقل كړي دي چه ديانت سره د موندونكے پخپله دا فيصله اوكړي چه تر څو ورځو پورے ده له اعلان كول پكار دي د پاره ددے چه كه چرے په لږے نزدے كښ څوک مالک وي نو هغه پورے به خبره اورسي او بيائے دا قول پخپله هم خوښ كړے دے.

همدغه شان كه چرے پريوتے څيز كوم چه موندے شوے دے (يعني لُقطه) كه د هغې قيمت د لسو درهمو نه كم وي نو په دے كښ هم اختلاف دے كه چرے تر يوے مودے پورے اعلان كولو نه پس هم اصل مالک ملاؤ نشو نو لقطه موندونكے هغې لره په خپل ضرورت كښ خرچ كولے شي، او په دے كښ تفصيل دا دے چه كه چرے موندونكے غريب او محتاج وي نو د اعلان نه پس د هغه په خپلو ضروورياتو كښ خرچ كړي كنے چا بل محتاج باندے صدقه كول ئے بهتر دي. همے خو امام يا د هغه د طرفنه د يو ذمه وار حاكم په اجازت سره كه چرے موندونكے مالدار وي نو هغه هم په خپلو ضرورياتو كښ خرچ كولے شي البته په دے باندے د ټولو اتفاق دے چه كله مالک ملاؤ شي نو بهرحال هغه ته به هغه څيز واپس وركول وي خواه كه تر يوے مودے پورے اعلان كولو نه پس ئے هغه څيز په خپلو ضرورياتو كښے خرچ كړے ولے نه وي.

## باب ۶۳۰ : ضَالَّةُ الْاِبِلِ.

## باب ۶۳۰ : د ورک شوي اوښ بيان.

۹۵۹ : حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَبَّاسٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمٰنِ حَدَّثَنَا سُفْيٰنُ عَنْ رَبِيْعَةَ حَدَّثَنِيْ يَزِيْدُ مَوْلَى الْمُنْبَعِثِ عَنْ زَيْدِ بْنِ خَالِدِ الْجُهَنِيِّ قَالَ جَآءَ اَعْرَابِيٌّ اَلنَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَاَلَهُ عَمَّا يَلْتَقِطُهُ فَقَالَ عَرِّفْهَا سَنَةً ثُمَّ احْفَظْ عِفَاصَهَا وَ وِكَآءَ هَا فَاِنْ جَآءَ اَحَدٌ يُّخْبِرُكَ بِهَا وَ اِلاَّ فَاسْتَنْفِقْهَا قَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ فَضَآلَّةُ الْغَنَمِ قَالَ لَكَ اَوْلِاَخِيْكَ اَوْ لِلذِّئْبِ قَالَ ضَآلَّةُ الْإِبِلِ فَتَمَعَّرَ وَجْهُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ مَالَكَ وَلَهَا مَعَهَا حِذَآؤُهَا وَ سِقَآؤُهَا تَرِدُ الْمَآءَ وَ تَأْكُلُ الشَّجَرَ.

۹۵۹ : عمرو بن عباس. عبدالرحمن. سفيان ربيعه. يزيد (ذ منبعث غلام) زيد بن خالد جهني نه روايت كوي. ذ هغه بيان دے' يو اعرابي (بانډيسے) نبي صلي الله عليه وسلم له راغے. او ذ حضورٌ نه ئے د' پريوتي خيز بيا مندو پحقله تپوس او كه. حضورٌ ورته اوفرمائيل. يو كال پورے د دے اعلان كوه. بيا ذ هغے تهيلي او سر ترونے ياد لره. كه څوك سرے راشي' او تاله ذ دے خبر دركړي' نو خير' ګني ته هغه خرچ كړه. هغه عرض او كه' يا رسولَ الله وركه چيلئے' حضورٌ ورته اوفرمائيل' ستا د پاره ده' يا ستا ذ' ورور د پاره يا د' شرمخ د پاره. هغه تپوس اوكه' وركے شوے اوښ' نو د نبي صلي الله عليه وسلم مخ مبارك متغير شولو' او ږے فرمائيل' ستا دے سره څه كار دے' هغه سره د هغه سَم او مشك دے' هغه به اوبو ته كوزيږي' او د' اونو پانړے به خوريږا.

۱. اوښان په شكلنو او غريزے لارو كښ د تللو ډير ماهر وي او د هغوئ سخت خاني هم مشهوره ده. بل دا چه خپل مالک او خپل كور ښه پيژني. د هغه كران تيرو لارو هم هغوئ ته په ډيره ښه توګه علم وي كوم باندے چه دوئ يو ځل لاړ شي. عربو به په كران تيرو غريزو لارو كښ همدغه اوښانو نه رهنماني حاصلوله. دے د پاره اوښان د عربو په ريګستانونو يا كران تيرو غريزو لارو كښ د وُر كيدلو نه پس خپل مالک ته د عامو خلقو نه هم زيات خوبئ سره رسيدلے شي.

عرب ددے نه واقف وُو او حضور صلي الله عليه وسلم هم په همدے وجے سره په دے سوال باندے د ناګوارئ اظهار اوفرمائيلو. چيلئ البته يو كمزورے مخلوق دے. په لاره كښ درنده او ځنګل ښاور هم هغه حپل خوراک جوړولے شي. د چا اوپره سرئ لاس ته هم ورتلے شي. او دغه وخت اسلامي حكم دا دے چه مالک ته د رسولو كوشش اوكړے شي. كه چرے مالک ملاؤ شي نو ښها ګني د موندونكي ده' كه چرے هغه ئے صدقه كړي نو بهتره ده.

## باب ۱۲۳۱ : ضَآلَّةُ الْغَنَمِ.

## باب ۱۲۳۱ : ذ' وروكے شوے چيلئ بيان.

۹۶۰ : حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنِيْ سُلَيْمٰنُ عَنْ

۹۶۰ : اسمعيل بن عبدالله. سليمان. يحيي. يزيد (ذ' منبعث غلام) زيد بن خالد بيان كوي' نبي صلي

يَحْيٰى عَنْ يَزِيْدَ مَوْلَى الْمُنْبَعِثِ اَنَّهُ سَمِعَ زَيْدَ بْنَ خَالِدٍ يَقُوْلُ سُئِلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ اللُّقَطَةِ فَزَعَمَ اَنَّهُ قَالَ اعْرِفْ عِفَاصَهَا وَ وِكَآءَهَا ثُمَّ عَرِّفْهَا سَنَةً يَقُوْلُ يَزِيْدُ اِنْ لَمْ تُعْتَرَفْ اِسْتَنْفَقَ بِهَا صَاحِبُهَا وَ كَانَتْ وَدِيْعَةً عِنْدَهُ قَالَ يَحْيٰى فَهٰذَا الَّذِيْ لَا اَدْرِيْ اَفِيْ حَدِيْثِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هُوَ اَمْ شَيْءٌ مِنْ عِنْدِهٖ ثُمَّ قَالَ كَيْفَ تَرٰى فِيْ ضَآلَّةِ الْغَنَمِ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خُذْهَا فَاِنَّمَا هِيَ لَكَ اَوْ لِاَخِيْكَ اَوْ لِلذِّئْبِ قَالَ يَزِيْدُ وَ هِيَ تُعَرَّفُ اَيْضًا ثُمَّ قَالَ كَيْفَ تَرٰى فِيْ ضَآلَّةِ الْاِبِلِ قَالَ فَقَالَ دَعْهَا فَاِنَّ مَعَهَا حِذَآءَهَا وَ سِقَآءَهَا تَرِدُ الْمَآءَ وَ تَأْكُلُ الشَّجَرَ حَتّٰى يَجِدَهَا رَبُّهَا.

اللّٰه علیه وسلّم نه د غرخیدلي څیز په حقله تپوس اوشولو، نو حضور اوفرمائیل، چه د هغې تهیلۍ او سر تړونې یاد ساته بیا کال پورې خلقو ته اعلان کوه. یزید اووې، که د هغې شناخت کونکې پیدا نشي، نو د هغې اوچتونکې دې هغه خرچ کړي. لیکن هغه به هغه سره امانت وي. یحیي اووې. ماته معلومه نه ده، چه؛ آیا دا، د رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلم په حدیث کښې وو، یا، د خپل طرفه دا په کښې زیاتې شوې دې. بیا هغه تپوس اوکه، د ورکې شوې چیلئې متعلق ستاسو څه خیال دې. حضور اوفرمائیل، هغه اونیسه. هغه ستا د پاره ده یا، ستا د وررور د پاره، یا، شرمخ د پاره. یزید اووې. چه د دې به هم اعلان کولې شي. بیا هغه تپوس اوکه. د، ورک شوي اوښ متعلق ستاسو څه خیال دې. حضور ورته اوفرمائیل. هغه پریږده. ځکه چه هغه سره خپل سم او مشک شته. هغه به اوبو سره کوزیږي، او د، اونې نه به (پانړې) خوري. تردې، چه د هغه مالک هغه بیاموميي.

بَابٌ ۲۳۲ : اِذَا لَمْ يُوْجَدْ صَاحِبُ اللُّقَطَةِ بَعْدَ سَنَةٍ فَهِيَ لِمَنْ وَّجَدَهَا.

باب ۲۳۲ : که د، پریوتي څیز مالک یو کال پورې پیدا نشي، نو بیا د هغه دې، چا چه بیا موندې وي.

۹۶۱ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ رَّبِيْعَةَ بْنِ اَبِيْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ يَزِيْدَ مَوْلَى الْمُنْبَعِثِ عَنْ زَيْدِ بْنِ خَالِدٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ جَآءَ رَجُلٌ اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ

۹۶۱ : عبداللّٰه بن یوسف. مالک. ربیعه بن ابي عبدالرحمن. یزید (د منبعث غلام. زید بن خالد نه روایت کوي، چه یو سړې د رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم په خدمت کښې حاضر شو، او د حضور نه ئې د پریوتي څیز متعلق تپوس اوکه. حضور اوفرمائیل، د هغې تهیلي او سر تړونې اوپیژنه. بیا یو کال پورې د

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَأَلَهُ عَنِ اللُّقَطَةِ فَقَالَ اعْرِفْ عِفَاصَهَا وَوِكَاءَهَا ثُمَّ عَرِّفْهَا سَنَةً فَإِنْ جَاءَ صَاحِبُهَا وَإِلَّا فَشَأْنَكَ بِهَا قَالَ فَضَالَّةُ الْغَنَمِ قَالَ هِيَ لَكَ أَوْ لِأَخِيكَ أَوْ لِلذِّئْبِ قَالَ فَضَالَّةُ الْإِبِلِ قَالَ مَالَكَ وَلَهَا مَعَهَا سِقَاءُهَا وَحِذَاءُهَا تَرِدُ الْمَاءَ وَتَأْكُلُ الشَّجَرَ حَتَّى يَلْقَاهَا رَبُّهَا.

هغې د خلقو نه تپوس کوه. که د هغې مالک راشي نو خير. کني تاته اختيار دے. بيا هغه تپوس اوکه: د ورکې چيلۍ (څه حکم دے) حضور ورته اوفرمائيل: هغه ستا د پاره. يا ستا د ورور د پاره. يا د شرمخ د پاره ده. بيا هغه تپوس اوکه: د ورکې شوي اوښ (څه حکم دے) حضور ورته اوفرمائيل: اوښ سره ستا څه کار دے. حالانکه هغه سره د هغه موزه او مشک دے. هغه اوبو ته کوزيږي او داونې نه خوري. تردے چه د هغه مالک هغه سره يوځائے شي.

## بَابُ ٦٣٣: إِذَا وَجَدَ خَشَبَةً فِي الْبَحْرِ أَوْ سَوْطًا أَوْ نَحْوَهُ

وَقَالَ اللَّيْثُ حَدَّثَنِي جَعْفَرُ بْنُ رَبِيعَةَ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ هُرْمُزَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنْ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ ذَكَرَ رَجُلًا مِنْ بَنِي إِسْرَائِيلَ وَسَاقَ الْحَدِيثَ فَخَرَجَ يَنْظُرُ لَعَلَّ مَرْكَبًا قَدْ جَاءَ بِمَالِهِ فَإِذَا هُوَ بِالْخَشَبَةِ فَأَخَذَهَا لِأَهْلِهِ حَطَبًا فَلَمَّا نَشَرَهَا وَجَدَ الْمَالَ وَالصَّحِيفَةَ.

## باب ٦٣٣: د درياب کښې لرګي يا کوړا وغيره د بيامونده بيان

او ليث اووے: ماته جعفر بن ربيعه په واسطه د عبدالرحمن بن هرمز. ابوهريره د رسول الله صلي الله عليه وسلم نه روايت کړے دے. حضور د بني اسرائيلو د يو سړي ذکر اوکه. او پوره حديث ي بيان که. هغه سړے بهر راووت: چه شايد څه جهاز د هغه مال راوړے وي. د هغه نظر په يو لرګي پريوت. نو هغه د خشاک په غرض خپل کورته يوړلو. کوم وخت چه هغه ي اوځيرلو: نو هغې کښې ي خپل مال او يو خط بيامندلو.

## بَابُ ٦٣٤: إِذَا وَجَدَ تَمْرَةً فِي الطَّرِيقِ.

٩٦٢: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوسُفَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ مَنْصُورٍ عَنْ طَلْحَةَ عَنْ أَنَسٍ قَالَ مَرَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِتَمْرَةٍ فِي الطَّرِيقِ قَالَ لَوْلَا إِنِّي أَخَافُ أَنْ تَكُونَ

## باب ٦٣٤: لار کښې د قجورې بيامندلو بيان.

٩٦٢: محمد بن يوسف. سفيان. منصور. طلحه. انس نه روايت کوي: چه نبي صلی الله عليه وسلم لار کښې په غورځيدلې قجورې تير شولو. حضور اوفرمائيل: که ما سره دا انديښنه نه وے: چه شايد دا صدقه وي: نو ما به

مِنَ الصَّدَقَةِ لَاَكَلْتُهَا وَ قَالَ يَحْيٰى حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنِيْ مَنْصُوْرٌ وَّ قَالَ زَآئِدَةُ عَنْ مَّنْصُوْرٍ عَنْ طَلْحَةَ حَدَّثَنَا اَنَسٌ ح وَ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مُقَاتِلٍ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنْ هَمَّامِ بْنِ مُنَبِّهٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِنِّيْ لَاَنْقَلِبُ اِلٰى اَهْلِيْ فَاَجِدُ الثَّمَرَةَ سَاقِطَةً عَلٰى فِرَاشِيْ فَاَرْفَعُهَا لِاٰكُلَهَا ثُمَّ اَخْشٰى اَنْ تَكُوْنَ صَدَقَةً فَاُلْقِيْهَا.

دا خوړلے وے. او يحيي اووے، چه مونږ ته سفيان او هغه ته منصور بيان اوكه. او زائده د منصور. طلحه نه روايت اوكه، چه مونږ ته انسؓ حديث بيان كه (دويم سند) محمد بن مقاتل. عبدالله. معمر. همام بن منبه. ابوهريرهؓ ذ نبي صلي الله عليه وسلم نه روايت كوي. حضورؐ اوفرمائيل: زه چه كور ته لاړشم، نو په خپله بستره قجورے غرځيدلے وينم. زه هغه خوړلو د پاره پورته كوم. بيا ما سره ويره شي، چه چرته هغه ذ صدقے نه وي، نو هغه زه اوغرځوم¹.

۱. دا داسے څيز دے چه ددے متعلق يقيني طور سره معلومه وي چه ددے مالک به ددے لټون پسے نه ګرځي بلكه په عامو حالاتو كښ د داسے معمولي څيزونو څوک خيال هم نه كوي. د حضرت عمر رضي الله عنه باره كښ ليكلي دي چه هغوئ چرته روان وو نو يو بانډيچي ئے اوليدو چه د يوے كجورے اعلان ئے كولو چه د چا وي نو يو دِ سي. نو حضرت عمر رضي الله عنه دغه سړے په ذره اووهلو او وے فرمائيل چه د اوچے زبركه! دا پخپله اوخوره.

## بَاب ۶۳۵ : كَيْفَ تُعَرَّفُ لُقَطَةُ اَهْلِ مَكَّةَ

وَ قَالَ طَاوُسٌ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا يُلْتَقَطُ لُقْطَتُهَا اِلَّا مَنْ عَرَّفَهَا وَ قَالَ خَالِدٌ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا تُلْتَقَطُ لُقْطَتُهَا اِلَّا لِمُعَرِّفٍ وَ قَالَ اَحْمَدُ بْنُ سَعْدٍ حَدَّثَنَا رَوْحٌ حَدَّثَنَا زَكَرِيَّآءُ حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ دِيْنَارٍ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا يُعْضَدُ عِضَاهُهَا وَلَا يُنَفَّرُ

باب ۶۳۵ : ذ اهل مكه ذ پريوتي څيز په څنګه اعلان كيږي. او طاؤس. ابن عباس نه او هغه ذ نبي صلي الله عليه وسلم نه روايت كوي، چه مكه كښ غرځيدلے څيز دے هغه څوک اوچتوي چه د هغے اعلان اوكړي. او احمد بن سعد بيان اوكه، مونږ ته روح په واسطه ذ، زكريا. عمرو بن دينار. عكرمه. ابن عباسؓ حديث بيان كه، رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل، ذهغے ځائے اونے دے نشي وهلے، نه دے ذ هغے ښكار زغلولے شي او نه د هغے ځائے پريوتي څيز د اعلان كونكي نه سيوا، بل چا د پاره اوچتول حلال دي او نه دے ذ هغے ځائے وابنه پريكولے شي. عباس عرض

صَيْدُهَا وَلَا تَحِلُّ لُقَطَتُهَا اِلَّا لِمُنْشِدٍ وَّلَا يُخْتَلٰى خَلَاهَا فَقَالَ عَبَّاسٌ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِلَّا الْاِذْخِرَ فَقَالَ اِلَّا الْاَذْخِرَ.

اوکه: یا رسول الله خو د اذخر (اجازت اوکړئ) نو حضور اوفرمائیل: بنه ده، اذکر ریبلے شئ.

۹۶۳ : حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ مُوْسٰى حَدَّثَنَا الْوَلِيْدُ بْنُ الْمُسْلِمِ حَدَّثَنَا الْاَوْزَاعِيُّ قَالَ حَدَّثَنِيْ يَحْيَى بْنُ اَبِيْ كَثِيْرٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبُوْ سَلَمَةَ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ قَالَ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبُوْ هُرَيْرَةَ قَالَ لَمَّا فَتَحَ اللّٰهُ عَلٰى رَسُوْلِهٖ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَكَّةَ قَامَ فِي النَّاسِ فَحَمِدَ اللّٰهَ وَ اَثْنٰى عَلَيْهِ ثُمَّ قَالَ اِنَّ اللّٰهَ حَبَسَ عَنْ مَكَّةَ الْفِيْلَ وَسَلَّطَهَا عَلَيْهَا رَسُوْلَهٗ وَالْمُؤْمِنِيْنَ فَاِنَّهَا لَا تَحِلُّ لِاَحَدٍ كَانَ قَبْلِيْ وَ اِنَّهَا اُحِلَّتْ لِيْ سَاعَةً مِّنْ نَّهَارٍ وَ اِنَّهَا لَا تَحِلُّ لِاَحَدٍ بَعْدِيْ فَلَا يُنَفَّرُ صَيْدُهَا وَلَا يُخْتَلٰى شَوْكُهَا وَلَا تَحِلُّ سَاقِطَتُهَا اِلَّا لِمُنْشِدٍ وَّمَنْ قُتِلَ لَهٗ قَتِيْلٌ فَهُوَ بِخَيْرِ النَّظَرَيْنِ اِمَّا اَنْ يُّفْدٰى وَ اِمَّا اَنْ يُّقِيْدَ فَقَالَ الْعَبَّاسُ اِلَّا الْاِذْخِرَ فَاِنَّا نَجْعَلُهٗ لِقُبُوْرِنَا وَ بُيُوْتِنَا فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِلَّا الْاِذْخِرَ فَقَامَ اَبُوْشَاهٍ رَجُلٌ مِّنْ اَهْلِ الْيَمَنِ فَقَالَ اكْتُبُوْا لِيْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ فَقَالَ اكْتُبُوْا لِاَبِيْ شَاهٍ قُلْتُ لِلْاَوْزَاعِيِّ مَا قَوْلُهٗ اكْتُبُوْا لِيْ يَا

۹۶۳ : یحیی بن موسی. ولید بن مسلم. اوزاعي. یحیی بن ابي کثیر. ابو سلمه بن عبدالرحمن. حضرت ابوهریرهؓ بیان اوکه، کوم وخت چه الله تعالي مکه د خپل رسول په لاس فتح کړه، نو حضورؐ د خلقو مینځ کښ اودریدلو، او د الله تعالي حمد و ثنائے بیان کړله. بیائے اوفرمائیل الله تعالي د مکے نه هاتیان منع کړل. او خپل رسول او مومنان ئے په هغے مسلط کړل. خما نه مخکښ هیچا د پاره مکه حلاله نه شوه. او خما د پاره هم د ورځے صرف یوه ګهړئ کښ حلاله شوه. او خما نه پس به هیچا د پاره حلاله نه وي. د هغے ښکار دے نشي زغلولے، نه دے د، دے ازغي اوښکلے شي. او نه دے، د دے پریوتي څیز اوچتولے شي، خو اعلان کونکي د پاره (جائز دي) او د چا چه څوک سړے هلته قتل شي نو هغه ته اختیار دے، چه یا، دیت واخلي یا قصاص واخلي. عباسؓ عرض اوکه، خو د اذخر اجازت اوکړئ، چه دا مونږ خپلو قبرونو کښ غوړؤو. او د کورونو په چهتونو ئے اچوو. رسول الله صلي الله علیه وسلم اوفرمائیل بنه ده. د اذخر اجازت دے. د اهل یمن نه ابوشاه نومے یو سړے اودریدلو. او عرض ئے اوکه، یا رسول الله، ما د پاره اولیکئ، نو رسول الله صلي الله علیه وسلم حکم اوکه، چه ابوشاه د پاره اولیکئ. د ولید بن مسلم بیان دے. ما د اوزاعي نه تپوس اوکه، د ابوشاه د دے قول نه څه مطلب دے. چه یا

رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ هٰذِهِ الْخُطْبَةَ الَّتِيْ سَمِعَهَا مِنْ رَّسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

رسول الله ما د پاره اوليکي. هغه اوويل دا خطبه چه د رسول الله صلي الله عليه وسلّم نه ئے اوريدلے ده۱.

۱. د احنافو فقهاوُ په نزد د مکے مکرمے او بل خائے په لقطه کښ هيڅ فرق نيشته. په حديث کښ خصوصيت سره د مکے ذکر دے د پاره دے چه هلته د بهر نه خلق ډير راځي. يو سړے راغے او څپل څه څيز ئے پريښودو او لاړلو. هغه به څپل کورته رسيدلے وي. دا خيال کيدے شي چه په داسے صورت کښ که څه څيز بيامونده شي نو د هغے د اعلان نه به څه فائده وي؟ په حديث کښ خصوصيت سره دا ښودلے شوي دي چه ددے احتمال باوجود اعلان کول پکار دي.

بَابٌ ٦٣٦ : لَا تُحْتَلَبُ مَاشِيَةُ اَحَدٍ بِغَيْرِ اِذْنٍ.

باب ٦٣٦ : د چا خناور دے بغير د هغه د اجازت نه نشي لشلے.

٩٦٤ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ نَافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ ابْنِ عُمَرَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا يَحْلُبَنَّ اَحَدٌ مَاشِيَةَ امْرِئٍ بِغَيْرِ اِذْنِهٖ اَيُحِبُّ اَحَدُكُمْ اَنْ تُؤْتٰى مَشْرُبَتُهٗ فَتُكْسَرَ خِزَانَتُهٗ فَيُنْتَقَلَ طَعَامُهٗ فَاِنَّمَا تَخْزُنُ لَهُمْ ضُرُوْعُ مَوَاشِيْهِمْ اَطْعِمَاتِهِمْ فَلَا يَحْلُبَنَّ اَحَدٌ مَاشِيَةَ اَحَدٍ اِلَّا بِاِذْنِهٖ.

٩٦٤ : عبدالله بن يوسف. مالک. نافع. عبدالله بن عمر نه روايت کوي. چه رسول الله صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل. هيڅوک دے د چا خناور د هغه د اجازت نه بغير نه لشي. آيا تاسو کښ څوک سړے دا خوښوي چه څوک د هغه توشه خانے ته راشي. د هغه خزانه ماته کړي. او د هغه غله يوسي د هغوي د خناورو غولانزے د هغوي د پاره د خوراک خزانے جمع کوي. نو څکه څوک دے د چا خناور د هغه د اجازت نه بغير نه لشي.

بَابٌ ٦٣٧ : اِذَا جَاءَ صَاحِبُ اللُّقَطَةِ بَعْدَ سَنَةٍ رَدَّهَا عَلَيْهِ لِاَنَّهَا وَدِيْعَةٌ عِنْدَهٗ.

باب ٦٣٧ : د پريوتي څيز مالک که يو کال پس راشي نو هغه ته دے واپس کړي. په ذے چه دا مندو نکي سره امانت دے.

٩٦٥ : حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ ابْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ بْنُ جَعْفَرٍ عَنْ رَبِيْعَةَ بْنِ اَبِيْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ يَزِيْدَ مَوْلَى الْمُنْبَعِثِ

٩٦٥ : قتيبه بن سعيد. اسمعيل بن جعفر. ربيعه بن ابي عبدالرحمن. يزيد (د منبعث غلام) زيد بن خالد جهني نه روايت کوي. چه يو سړي د رسول الله صلي الله عليه وسلّم نه د پريوتي څيز متعلق تپوس اوکه

عَنْ زَيْدِ ابْنِ خَالِدِ الْجُهَنِيِّ اَنَّ رَجُلًا سَاَلَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ اللُّقَطَةِ قَالَ عَرِّفْهَا سَنَةً ثُمَّ اعْرِف وِكَآءَ هَا وَ عِفَاصَهَا ثُمَّ اسْتَنْفِقْ بِهَا فَاِنْ جَآءَ رَبُّهَا فَاَدِّهَا اِلَيْهِ قَالُوْا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ فَضَالَّةُ الْغَنَمِ قَالَ خُذْهَا فَاِنَّمَا هِيَ لَكَ اَوْ لِاَخِيْكَ اَوْ لِلذِّئْبِ قَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ فَضَآلَّةُ الْاِبِلِ قَالَ فَغَضِبَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتّٰى اِحْمَرَّتْ وَجْنَتَاهُ اَوِ احْمَرَّ وَجْهُهُ ثُمَّ قَالَ مَالَكَ وَلَهَا مَعَهَا حِذَآؤُهَا وَسِقَآؤُهَا حَتّٰى يَلْقَهَا رَبُّهَا.

حضور ورته اوفرمائيل يو كال پورے به د دے اعلان كوے. بيا د دے ظرف او سرتړونے اوپيژنه بيا هغه خرچ كړه. كه د هغے مالک راشي نو نو هغه له يے ورکه خلقو عرض اوكه يا رسول اللّٰه ورکه شوے چيلئ حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل ته هغه واخله خکه چه هغه ستا د پارد ده. يا ستا ورور د پارد يا شرمخ د پاره. هغه عرض اوكه يا رسول اللّٰه ورکب اوبن (د پاره څه حکم دے) رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم ته غصه راغله. تردے چه دواړه انګي ئے سره (سرخ) شو. يا دا ئے اووے چه د حضور مخ مبارک سر (سرخ) شولو. بيائے اوفرمائيل ستا اوبن سره څه کار دے خالانکه هغه سره د هغه پنړه (سم) او مشک دي تردے چه د هغه مالک هغه بيامومي.

## بَاب ۲۳۸ : هَلْ يَأْخُذُ اللُّقْطَةَ وَلَا يَدَعُهَا تَضِيْعُ حَتّٰى لَا يَأْخُذَهَا مَنْ لَّا يَسْتَحِقُّ.

## باب ۲۳۸ : آيا دا جائز دي چه پريوتے څيز اوچت كړي او هغه ضائع كيدو ته پرے نږدي. د پارد د دے چه څوک غير مستحق سړے ئے وانخلي.

۹۲۲ : حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ سَلَمَةَ بْنِ كُهَيْلٍ قَالَ سَمِعْتُ سُوَيْدَ بْنَ غَفْلَةَ قَالَ كُنْتُ مَعَ سَلْمَانَ بْنِ رَبِيْعَةَ وَ زَيْدِ بْنِ صُوْحَانَ فِيْ غَزَاةٍ فَوَجَدْتُّ سَوْطًا فَقَالَ لِيْ اَلْقِهٖ قُلْتُ لَا وَلٰكِنْ اِنْ وَجَدْتُّ صَاحِبَهٗ وَ اِلَّا اسْتَمْتَعْتُ بِهٖ فَلَمَّا رَجَعْنَا حَجَجْنَا فَمَرَرْتُ بِالْمَدِيْنَةِ فَسَاَلْتُ اُبَيَّ ابْنَ كَعْبٍ فَقَالَ وَجَدْتُّ صُرَّةً عَلٰى عَهْدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ

۹۲۲ : سليمان بن حرب. شعبه سلمان بن كهيل. سويد بن غفله بيان كوي. چه زه سليمان بن ربيعه او زيد بن صوحان سره جنګ کښې شريک ووم. ما يو كوړا بيا مونده. نو ماته يو سړي اووے دا اوغورځوه ما ورته اووے نه. بلكه د دے مالک كه پيدا شي نو زه به ئے هغه ته ورکړم. کنې خپله به ترے فائده واخلم. کوم وخت چه مونږ واپس شو نو حج مو اوكه او مدينے ته لاړو. نو ما د ابي ابن كعب ته د دے متعلق تپوس اوكه هغے اووے ما د نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم زمانه کښې يو د تهيلي بيامونده هغے کښې سل دينار وو. ما هغه نبي صلي

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيهَا مِائَةُ دِيْنَارٍ فَاَتَيْتُ بِهَا النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ عَرِّفْهَا حَوْلاً فَعَرَّفْتُهَا حَوْلاً ثُمَّ اَتَيْتُ فَقَالَ عَرِّفْهَا حَوْلاً فَعَرَّفْتُهَا حَوْلاً ثُمَّ اَتَيْتُهُ الرَّابِعَةَ فَقَالَ اعْرِفْ عِدَّتَهَا وَ وِكَاءَ هَا وَ وِعَاءَ هَا فَاِنْ جَاءَ صَاحِبُهَا وَ اِلَّا اسْتَمْتِعْ بِهَا.

اللّٰه علیه وسلّم له راوړل. حضورؐ اوفرمائیل یو کال پورې ددې اعلان کوه نو یو کال ما د هغې اعلان اوکړلو. بیا زه حضورؐ له راغلم، حضورؐ اوفرمائیل یو کال پورې د دې اعلان اوکړه. بیا زه حضورؐ له په څلورم ځل راغلم. نو حضورؐ اوفرمائیل، ددې شمیر سرتړونې او ظرف اوپیژنه، که د دې مالک راشي نو ښه ده، کني ته ترې فائده واخله.

۹۶۷ : حَدَّثَنَا عَبْدَانُ قَالَ اَخْبَرَنِيْ اَبِيْ عَنْ شُعْبَةَ عَنْ سَلَمَةَ بِهٰذَا قَالَ فَلَقِيْتُهُ بَعْدُ بِمَكَّةَ فَقَالَ لَا اَدْرِيْ اَثَلٰثَةَ اَحْوَالٍ اَوْ حَوْلاً وَّاحِدًا.

۹۶۷ : عبدان. د عبدان پلار. شعبه نه، هغه د سلمه نه دا حدیث بیان که. اووې وئیل، چه زه دې نه پس هغه سره مکه کښې یوځائې شوم، نو هغه اووې ماته یاد نه دي، چه درې کاله پورې یا یو کال پورې د، اعلان کولو ئې وئیلي وو.

## باب ۹۳۹ : مَنْ عَرَّفَ اللُّقَطَةَ وَلَمْ يَدْفَعْهَا اِلَى السُّلْطَانِ.

باب ۹۳۹ : د هغې سړي بیان چه د پریوتي څیز ئې اعلان اوکړ او حاکم ته ئې حواله نه که.

۹۶۸ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوْسُفَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ رَبِيْعَةَ عَنْ يَزِيْدَ مَوْلَى الْمُنْبَعَثِ عَنْ زَيْدِ بْنِ خَالِدٍ اَنَّ اَعْرَابِيًّا سَاَلَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ اللُّقَطَةِ قَالَ عَرِّفْهَا سَنَةً فَاِنْ جَاءَ اَحَدٌ يُّخْبِرُكَ بِعِفَاصِهَا وَ وِكَاءِ هَا وَ اِلَّا فَاسْتَنْفِقْ بِهَا وَ سَاَلَهُ عَنْ ضَالَّةِ الْاِبِلِ فَتَمَعَّرَ وَجْهُهُ وَ قَالَ مَالَكَ وَلَهَا مَعَهَا سِقَاءُ هَا وَ حِذَاؤُهَا تَرِدُ الْمَاءَ وَ تَاْكُلُ الشَّجَرَ دَعْهَا

۹۶۸ : محمد بن یوسف. سفیان. ربیعه. یزید. (د منبعث غلام) زید بن خالد نه روایت کوي، چه یو بانډیسي (اعرابي) نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم نه د پریوتي څیز متعلق تپوس اوکه، نو حضورؐ اوفرمائیل، یو کال پورې ددې اعلان کوه. که څوک د دې د ظرف او سرتړوني پته اوښائي، نو ښه ده، کني هغه خرچ کړه. بیا هغې بانډیسي د ورک شوي اوښ متعلق تپوس اوکه، نو د حضورؐ د مخ مبارک رنګ متغیر شولو، او وې فرمائیل اوښ سره ستا څه کار دې، حالانکه هغه سره د هغه مشک او موزه (سم) شته. هغه اوبو له راځي، او د اونې نه خوري. ته هغه پریږده، تردې چه د هغه مالک هغه بیاموي. او د ورکې شوې چیلۍ متعلق تپوس ئې

حَتّٰى يَجِدَهَا رَبُّهَا وَسَأَلَهُ عَنْ ضَالَّةِ الْغَنَمِ فَقَالَ هِيَ لَكَ أَوْ لِأَخِيكَ أَوْ لِلذِّئْبِ.

اوکه' نو حضور صلي الله عليه وسلم ورته اوفرمائيل' هغه ستا د پاره ده يا ستا د' ورور د پاره يا' د شرمخ د پاره ده.

## باب ۶۴۰:

## باب ۶۴۰ : دا باب عنوان نه لري.

۹۲۹ : حَدَّثَنَا إِسْحٰقُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ أَخْبَرَنَا النَّضْرُ أَخْبَرَنَا إِسْرَائِيلُ عَنْ أَبِي إِسْحٰقَ قَالَ أَخْبَرَنِي الْبَرَاءُ عَنْ أَبِي بَكْرٍ ح حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ رَجَاءٍ حَدَّثَنَا إِسْرَائِيلُ عَنْ أَبِي إِسْحٰقَ عَنْ أَبِي بَكْرٍ قَالَ انْطَلَقْتُ فَإِذَا أَنَا بِرَاعِي غَنَمٍ يَسُوقُ غَنَمَهُ فَقُلْتُ لِمَنْ أَنْتَ قَالَ لِرَجُلٍ مِنْ قُرَيْشٍ فَسَمَّاهُ فَعَرَفْتُهُ فَقُلْتُ هَلْ فِي غَنَمِكَ مِنْ لَبَنٍ فَقَالَ نَعَمْ فَقُلْتُ هَلْ أَنْتَ حَالِبٌ لِي قَالَ نَعَمْ فَأَمَرْتُهُ فَاعْتَقَلَ شَاةً مِنْ غَنَمِهِ ثُمَّ أَمَرْتُهُ أَنْ يَنْفُضَ ضَرْعَهَا مِنَ الْغُبَارِ ثُمَّ أَمَرْتُهُ أَنْ يَنْفُضَ كَفَّيْهِ بِالْأُخْرٰى فَحَلَبَ كُثْبَةً مِنْ لَبَنٍ وَقَدْ جَعَلْتُ لِرَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِدَاوَةً عَلٰى فَمِهَا خِرْقَةٌ فَصَبَبْتُ عَلَى اللَّبَنِ حَتّٰى بَرَدَ أَسْفَلُهُ فَانْتَهَيْتُ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْتُ اشْرَبْ يَا رَسُولَ اللّٰهِ فَشَرِبَ حَتّٰى رَضِيتُ.

۹۲۹ : اسحق بن ابراهيم. نضر. اسرائيل. ابو اسحق. براء. ابوبكر صديق. ح. عبدالله بن رجاء. اسرائيل. ابو اسحق. حضرت ابوبكرؓ نه روايت کوي' د هغه بيان دے' چه زه مديني طرف ته په هجرت روان ووم' چه په يو چيلني خرخونکي م نظر اوغرځيد' چه خپلے چيلئے ئے شړلے. ما د هغه نه تپوس اوکه' چه ته د چا شپون (گډبه. غوباچي) ئے' هغه د قريشو د يو سړي نوم واخست' چه هغه ما پيژندلو' ما تپوس اوکه' آيا ته به ما د پاره لشل اوکړے. هغه اووے او. نو ما هغه ته د لشلو اوونيلے' نو هغه د' چيلو د' رمے نه يوه چيلئ' اونيوله. بيا ما هغه ته اووے' چه د دے غلانزه د گرد و غبار نه پاکه کړه. او خپل لاس هم پاک کړه. هغه دغسے اوکړل' چه خپل يو لاس ئے په بل لاس اووهلو. او يوه پيالئ پئے ئے اولشل. ما د' رسول الله صلي الله عليه وسلم د پاره يو بتکے (چهاگل) ايښے وو. چه د هغے په خله کپړا وه. د هغے نه ما په پيو کښې اوبه واچولے. تر دے' چه د هغے لاندے حصه يخه شوه ما نبي صلي الله عليه وسلم له هغه پئے يوړل. او عرض م اوکه' يا رسول الله' دا' اوڅکئ. حضورؐ هغه اوڅکل' تر دے چه زه خوشحاله شوم[1].

۱ د عربو ښاروي به په صحرا او ځنګلو کښ خريدل. د کران تيرو او بے آب و گياه لارو باندے

تېریدونکو تېرو مسافرو د پاره ددغه څریدونکو څاروو پې څکلو به عام اجازت وو په دې کښې هیڅ نامعې نه وه بلکه دا یو عُرف او عادت جوړ شوې وو. که چرې دغسې عُرف او عادت جوړ شي نو اسلام هم د اصل مالک نه اجازت غوښتل ضروري نه دي ګرځولي بلکه د استفادې اجازت نې ورکړې دې. او حضور علیه السلام هم د عربو همدې عُرف په بنا باندې د مالک د اجازت نه بغیر پې نوش فرمائیلي وو.

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

# كِتَابٌ فِي الْمَظَالِمِ وَالْغَصْبِ

٩٧٠: وَقَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى وَلَا تَحْسَبَنَّ اللّٰهَ غَافِلًا عَمَّا يَعْمَلُ الظّٰلِمُوْنَ اِنَّمَا يُؤَخِّرُهُمْ لِيَوْمٍ تَشْخَصُ فِيْهِ الْاَبْصَارُ مُهْطِعِيْنَ مُقْنِعِيْ رُءُوْسِهِمْ رَافِعَ الْمُقْنِعِ وَالْمُقْمِحِ وَاحِدٌ وَقَالَ مُجَاهِدٌ مُهْطِعِيْنَ مُدِيْمِي النَّظَرِ وَيُقَالُ مُسْرِعِيْنَ لَا يَرْتَدُّ اِلَيْهِمْ طَرْفُهُمْ وَاَفْئِدَتُهُمْ هَوَآءٌ يَعْنِيْ جُوْفًا لَّا عُقُوْلَ لَهُمْ وَاَنْذِرِ النَّاسَ يَوْمَ يَاْتِيْهِمُ الْعَذَابُ فَيَقُوْلُ الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا رَبَّنَآ اَخِّرْنَآ اِلٰى اَجَلٍ قَرِيْبٍ نُّجِبْ دَعْوَتَكَ وَنَتَّبِعِ الرُّسُلَ اَوَلَمْ تَكُوْنُوْا اَقْسَمْتُمْ مِّنْ قَبْلُ مَا لَكُمْ مِّنْ زَوَالٍ وَّسَكَنْتُمْ فِيْ مَسٰكِنِ الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا اَنْفُسَهُمْ وَتَبَيَّنَ لَكُمْ كَيْفَ فَعَلْنَا بِهِمْ وَضَرَبْنَا لَكُمُ الْاَمْثَالَ وَقَدْ مَكَرُوْا مَكْرَهُمْ وَعِنْدَ اللّٰهِ مَكْرُهُمْ وَاِنْ كَانَ مَكْرُهُمْ

بسم الله الرحمن الرحيم

# دَ ظلم او غصب بیان

٩٧٠: او د اللّٰه تعالي قول، چه اللّٰه تعالي د هغې نه غافل مه ګڼړه چه ظالمان ئې کوي. هغوي ته خو اللّٰه تعالي صرف د هغې ورځې د پاره مهلت ورکوي په کومه ورځ چه به سترګې سپینې شي. خلقو به نظر ښکته کړې وي. سرونه به پورته وي (مقنع نه مراد اوچتے کړی المقنع المقمح یو معني دي) او مجاهد اووئې: مهطعین معني برابر نظر اچونکي. او بعضي خلق دا هم وائي: تیز زغلیدونکي. د هغوي بانړه نه رپي. او د هغوي زړونه به د عقل نه خالي وي (هواء نه مراد هغه خالي ځائے دے، چه هغې کښې عقل نه وي) او خلق د هغې ورځې نه اویروه په کومه ورځ چه عذاب راشي. نو کومو خلقو چه ظلم کړې وي. وائي به: خمونږ پروردګاره! مونږ له یوې نږدې مودې پورې مهلت راکړه. چه مونږ ستا دعوت واورو. او د رسولانو پیروي اوکړو. آیا تاسو خلقو قسم نه وو خوړلے. چه مونږ له زوال نشته. او تاسو د هغه خلقو په کورونو کښې پاتې شوئ، چه هغوي پخپل ځان ظلم اوکړه. او تاسو ته معلومه شوه، چه مونږ هغوي سره څه اوکړل. او مونږ تاسو ته مثالونه بیان کړل. او دوي به لوې لوې مکرونه کول. او اللّٰه سره د هغوي د مکر جواب شته. اګر که د هغوي مکر داسې وي، چه هغې

لِتَزُوْلَ مِنْهُ الْجِبَالُ ۞ فَلَا تَحْسَبَنَّ اللّٰهَ مُخْلِفَ وَعْدِهٖ رُسُلَهٗ اِنَّ اللّٰهَ عَزِيْزٌ ذُوانْتِقَامٍ.

سره غر اوخوزي' نو' اللّٰه تعالي داسے مه ګنړئ' چه هغه د خپلے وعدے خلاف کوی' بیشکه اَللّٰه غالب او بدله اخستونکے دے.

## باب ۱۴۶۱ : قِصَاصِ الْمَظَالِمِ.

## باب ۱۴۶۱ : د ظلمونو د قصاص بیان.

۱۷۹۱ : حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ بْنُ اِبْرَاهِيْمَ اَخْبَرَنَا مُعَاذُ بْنُ هِشَامٍ حَدَّثَنِىْ اَبِىْ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ اَبِى الْمُتَوَكِّلِ النَّاجِىِّ عَنْ اَبِىْ سَعِيْدِ الْخُدْرِىِّ عَنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِذَا خَلَصَ الْمُؤْمِنُوْنَ مِنَ النَّارِ حُبِسُوْا بِقَنْطَرَةٍ بَيْنَ الْجَنَّةِ وَالنَّارِ وَ يَتَقَاصُّوْنَ مَظَالِمَ كَانَتْ بَيْنَهُمْ فِى الدُّنْيَا حَتّٰى اِذَا نُقُّوْا وَهُذِّبُوْا اُذِنَ لَهُمْ بِدُخُوْلِ الْجَنَّةِ فَوَالَّذِىْ نَفْسُ مُحَمَّدٍ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِيَدِهٖ لَاَحَدُهُمْ بِمَسْكَنِهٖ فِى الْجَنَّةِ اَدَلُّ بِمَنْزِلِهٖ كَانَ فِى الدُّنْيَا وَ قَالَ يُوْنُسُ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا شَيْبَانُ عَنْ قَتَادَةَ حَدَّثَنَا اَبُو الْمُتَوَكِّلِ.

۱۷۹۱ : اسحٰق بن ابراهیم. معاذ بن هشام. هشام (دستوالی) قتاده. ابو متوکل ناجي. حضرت ابوسعید خدريؓ نه هغه د رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم نه روایت کوي. حضورؐ اوفرمائیل' کوم وخت چه مومنان د' دوزخ نه خلاصي بیاموي' نو د جنت او دوزخ مینځ کښ به په یو پُل ایسار کړے شي¹. او د هغے ظلمونو بدله به ترے اخستے شي' چه دے خلقو دنیا کښ په یو بل کړي وو. تردے' چه کوم وخت پاک او صاف شي' نو هغوي ته به جنت کښ د داخلیدو اجازت ورکړے شي' قسم دے په هغه ذات چه' چه د هغه قبضه کښ د محمد ساه ده' هر سړے به جنت کښ خپل مکان د' دنیا د مکان نه زیات ښه پیژني او یونس بن محمد په واسطه د شیبان. قتاده. ابوالمتوکل بیان اوکه.

۱. قرطبي لیکلي دي چه دا به بل پُل صراط وي. رومبے پُل صراط به هغه وي کوم باندے چه به ټول اهل محشر له تیریدل وي سوا د هغه مقدّسو هستو نه کوم چه به د حساب نه بغیر جنت ته داخلیږي. بوه بله طبقه هم داسے ده کومه چه به په دے پُل باندے تیر نشي او دا هغه خلق دي کوم چه به د انتهائي سنګینو ظلمونو په بدله کښ به جهنم پخپله هغوی لره راکاږي. دا رومبے پُل صراط اکبر دے کوم خلق چه په دے مرحله باندے نجات بیاموي او دا به صرف مسلمانان وي نو هغوی به جنت ته د تللو په وخت کښ په یو خاص پُل باندے ایسار کړے شي دلته به مسلمانانو له د صغیره ګناهونو سزا ورکړے شي. دلته ایساریدونکو کښ به هیڅوک داسے نه وي کوم چه به دوباره دوزخ طرفته لیکلے شي بلکه د یو بل د حقونو نه صفا کیدلو نه پس به هغوی جنت ته داخل کړے شي

باب ۶۴۲ : قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰی اَلَا لَعْنَةُ اللّٰهِ عَلَی الظّٰلِمِیْنَ.

۹۷۲ : حَدَّثَنَا مُوْسَی بْنُ اِسْمٰعِیْلَ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ قَالَ اَخْبَرَنِیْ قَتَادَةُ عَنْ صَفْوَانَ بْنِ مُحْرِزِ الْمَازِنِیِّ قَالَ بَیْنَمَا اَنَا اَمْشِیْ مَعَ ابْنِ عُمَرَ اٰخِذٌ بِیَدِهٖ اِذَا عَرَضَ رَجُلٌ فَقَالَ کَیْفَ سَمِعْتَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ فِی النَّجْوٰی فَقَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ یَقُوْلُ اِنَّ اللّٰهَ یُدْنِی الْمُؤْمِنَ فَیَضَعُ عَلَیْهِ کَنَفَهٗ وَیَسْتُرُهٗ فَیَقُوْلُ اَتَعْرِفُ ذَنْبَ کَذَا فَیَقُوْلُ نَعَمْ اَیْ رَبِّ حَتّٰی اِذَا قَرَّرَهٗ بِذُنُوْبِهٖ رَاٰی فِیْ نَفْسِهٖ اَنَّهٗ هَلَكَ قَالَ سَتَرْتُهَا عَلَیْكَ فِی الدُّنْیَا وَ اَنَا اَغْفِرُهَا لَكَ الْیَوْمَ فَیُعْطٰی کِتَابَ حَسَنَاتِهٖ وَ اَمَّا الْکَافِرُوْنَ وَالْمُنَافِقُوْنَ فَیَقُوْلُ الْاَشْهَادُ هٰؤُلَاءِ الَّذِیْنَ کَذَبُوْا عَلٰی رَبِّهِمْ اَلَا لَعْنَةُ اللّٰهِ عَلَی الظّٰلِمِیْنَ.

باب ۶۴۳ : لَا یَظْلِمُ الْمُسْلِمُ الْمُسْلِمَ وَلَا یُسْلِمُهٗ.

۹۷۳ : حَدَّثَنَا یَحْیَی بْنُ بُکَیْرٍ حَدَّثَنَا اللَّیْثُ عَنْ عُقَیْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ اَنَّ سَالِمًا اَخْبَرَهٗ اَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عُمَرَ اَخْبَرَهٗ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّی

باب ۶۴۲ : د الله قول "واورئ" په ظالمانو د الله لعنت دے.

۹۷۲ : موسی بن اسمعیل. همام. قتاده. صفوان بن محرز مازني نه روایت کوي: زه ابن عمر سره یو ځل لاس نیولے روان ووم یو سړے په مخه راغے او وئیلے چه تا "غوږ کښې د خبرے کولو" متعلق د رسول الله صلي الله علیه وسلّم نه څنګه اوریدلي دي: هغه اووے ما رسول الله صلي الله علیه وسلّم نه داسے اوریدلي دي: چه الله به مومن نزدے راوبلي. په هغه به خپله پرده واچوي. پټ به ئے کړي. بیا به ورته اوفرمائي چه تا ته فلانے فلانے ګناه یاده ده. هغه به اووائي او: اے خما پروردګاره تر دے. چه هغه د ګناهونو اقرار اوکړي نو هغه مومن به زړه کښې پوه شي چه هغه خو اوس تباه شولو. الله تعالي به ورته اوفرمائي چه ما دنیا کښې ستا په ګناه پرده واچوله. او نن ستا ګناه بښم. (دلته پرده او هلته بښنه. الحمدلله والشکر لله) بیا به د نیکو (نیکیان) کتاب هغه ته ورکړے شي. لیکن کافر او منافق چه دي نو د هغوي متعلق به ګواهان وائي: چه دا هغه خلق دي چه په خپل پروردګار ئے دروغ تړلي وو. واورئ په ظالمانو د الله لعنت دے.

باب ۶۴۳ : یو مسلمان دے په بل مسلمان ظلم نه کوي او نه دے څوک ظلم ته پریږدي.

۹۷۳ : یحیی بن بکیر. لیث. عقیل ابن شهاب. سالم. عبدالله بن عمرؓ نه روایت کوي. رسول الله صلي الله علیه وسلّم اوفرمائیل: مسلمان د مسلمان ورور دے نه دے پرے ظلم کوي او نه دے ظالم ته حواله

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الْمُسْلِمُ اَخُوالْمُسْلِمِ لَا يَظْلِمُهُ وَلَا يُسْلِمُهُ وَمَنْ كَانَ فِيْ حَاجَةِ اَخِيْهِ كَانَ اللّٰهُ فِيْ حَاجَتِهٖ وَمَنْ فَرَّجَ عَنْ مُسْلِمٍ كُرْبَةً فَرَّجَ اللّٰهُ عَنْهُ كُرْبَةً مِنْ كُرُبَاتِ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ وَمَنْ سَتَرَ مُسْلِمًا سَتَرَهُ اللّٰهُ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ.

کوي (چه هغه پرے ظلم او کړي) او کوم سړے چه د خپل ورور د حاجت روائي فکر کښې وي نو الله تعالي د هغه حاجت روائي کوي. او کوم سړے چه د يو مسلمان نه مصيبت لرے کړي نو الله به د قيامت مصيبتونه د هغه نه لرے کړي. او چا چه د يو مسلمان عيب پټ کړه نو اللّه تعالي به د قيامت په ورځ د هغه عيب پټ کړي.

## باب ۲۴۴ : اَعِنْ اَخَاكَ ظَالِمًا اَوْ مَظْلُوْمًا.

## باب ۲۴۴ : د خپل ظالم يا مظلوم ورور مدد کوه.

۹۷۴ : حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ اَبِيْ شَيْبَةَ حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ اَخْبَرَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ اَبِيْ بَكْرِ بْنِ اَنَسٍ وَّ حُمَيْدُ الطَّوِيْلُ سَمِعَ اَنَسَ بْنَ مَالِكٍ يَّقُوْلُ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اُنْصُرْ اَخَاكَ ظَالِمًا اَوْ مَظْلُوْمًا.

۹۷۴ : عثمان بن ابي شيبه. هشيم. عبيداللّه بن ابي بکر بن انس و حميد طويل. انس بن مالک نه روايت کوي. ذ هغه بيان دے رسول اللّه صلي اللّه عليه وسلّم فرمائيلي دي د خپل ظالم يا مظلوم ورور مدد کوه.

۹۷۵ : حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا مُعْتَمِرٌ عَنْ حُمَيْدٍ عَنْ اَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اُنْصُرْ اَخَاكَ ظَالِمًا اَوْ مَظْلُوْمًا قَالُوْا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ هٰذَا نَنْصُرُهُ مَظْلُوْمًا فَكَيْفَ نَنْصُرُهُ ظَالِمًا قَالَ تَأْخُذُ فَوْقَ يَدَيْهِ.

۹۷۵ : مسدد. معتمر. حميد انس نه روايت کوي رسول الله صلي الله عليه وسلّم فرمائيلي دي د خپل ظالم يا مظلوم ورور مدد کوے. خلقو عرض او کړه يا رسول اللّه د مظلوم مدد کول خو پوهه کښې راخي ليکن د ظالم څنګه مدد او کړو. حضور ورته او فرمائيل د هغه لاس اونيسي[۱] (يعني هغه د ظلم نه منع کړئي).

[۱] دا حديث د پورتني حديث شرحه کنړل پکار دي. ګويا د ظالم د مدد دا طريقه نه ده چه هغه د ظلم کولو نه پريښودے شي دا خو به پخپله په هغه باندے ظلم وي بلکه د هغه د مدد طريقه دا ده چه هغه لره د ظلم نه د بندولو کوشش او کړے شي. په حديث کښې کنايه، ددے نه دا ده چه دا لره عملا بندول پکار دي که چرے دومره طاقت نه وي او که چرے هغه به پوهولو سره نه منع کيدلو ولے چه ظالم سره ددے نه لويه بله خير خواهي بيشته

باب ٦٤٥ : نَصْرِ الْمَظْلُوْمِ .

٩٧٦ : حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ الرَّبِيْعِ قَالَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنِ الْاَشْعَثِ بْنِ سُلَيْمٍ قَالَ سَمِعْتُ مُعٰوِيَةَ بْنَ سُوَيْدٍ سَمِعْتُ الْبَرَآءَ ابْنَ عَازِبٍ اَمَرَنَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِسَبْعٍ وَّ نَهَانَا عَنْ سَبْعٍ فَذَكَرَ وَ عِيَادَةَ الْمَرِيْضِ وَ اتِّبَاعَ الْجَنَآئِزِ وَ تَشْمِيْتَ الْعَاطِسِ وَ رَدَّ السَّلَامِ وَ نَصْرَ الْمَظْلُوْمِ وَ اِجَابَةَ الدَّاعِيْ وَ اِبْرَارِ الْمُقْسِمِ .

٩٧٧ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ حَدَّثَنَا اَبُوْ اُسَامَةَ عَنْ بُرَيْدٍ عَنْ اَبِيْ بُرْدَةَ عَنْ اَبِيْ مُوْسٰى عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الْمُؤْمِنُ لِلْمُؤْمِنِ كَالْبُنْيَانِ يَشُدُّ بَعْضُهُ بَعْضًا وَّ شَبَّكَ بَيْنَ اَصَابِعِهٖ .

باب ٦٤٦ : الْاِنْتِصَارِ مِنَ الظَّالِمِ لِقَوْلِهٖ جَلَّ ذِكْرُهُ لَا يُحِبُّ اللّٰهُ الْجَهْرَ بِالسُّوْٓءِ مِنَ الْقَوْلِ اِلَّا مَنْ ظُلِمَ وَكَانَ اللّٰهُ سَمِيْعًا عَلِيْمًا وَالَّذِيْنَ اِذَآ اَصَابَهُمُ الْبَغْيُ هُمْ يَنْتَصِرُوْنَ قَالَ اِبْرَاهِيْمُ كَانُوْا يَكْرَهُوْنَ اَنْ يُّسْتَذَلُّوْا فَاِذَا قَدَرُوْا عَفَوْا .

باب ٦٤٧ : عَفْوِ الْمَظْلُوْمِ لِقَوْلِهٖ تَعَالٰى اِنْ تُبْدُوْا خَيْرًا اَوْ تُخْفُوْهُ اَوْ تَعْفُوْا عَنْ سُوْٓءٍ فَاِنَّ اللّٰهَ كَانَ

باب ٦٤٥ : د مظلوم د مدد كولو بيان.

٩٧٦ : سعيد بن ربيع. شعبه. اشعث بن سليم. معاويه بن سويد. براء بن عازبؓ نه روايت كوي، د هغه بيان دے، نبي صلي الله عليه وسلم مونږ ته حكم اوكه، د اوو خبرو. او د اوو خبرو نه ئے منع كړو. بيائے د مريض د پښتنے جنازے پسے د تلو. انتهوشي كونكي ته د جواب وركولو، د سلام جواب كولو، د مظلوم د مدد كولو. د دعوت د قبلولو او د قسم پوره كولو ذكر ئے اوكه.

٩٧٧ : محمد بن علاء. ابو اسامه. بريد. ابوبرده. ابو موسي. نبي صلي الله عليه وسلم نه روايت كوي. حضورؐ اوفرمائيل. يو مؤمن بل مؤمن د پاره د عمارت په شان دے، چه يو بل له تقويت وركوي، او خپلے گوتے ئے يو ځائے كړے او اوښودلے.

باب ٦٤٦ : د ظالم نه د بدلے اخستو بيان. ځكه چه الله تعالي فرمائيلے دي: الله تعالي څر كنده خرابه خبره نه خوښوي، خو هغه چه په چا ظلم شوے وي او الله تعالي اوريدونكے او پوهيدونكے دے. او هر كله چه په دے خلقو ظلم كيږي، نو بدله اخلي. د ابراهيم بيان دے چه صحابهؓ ذليل كول بد گڼړل، او كله چه به هغوي قدرت بيامند، نو معافي به ئے كوله.

باب ٦٤٧ : د مظلوم معافي كول ځكه چه الله تعالي فرمائيلي دي: كه تاسو څر كنده نيكي كوئي يا پټه يا بدي معاف كړئي، نو بيشكه الله تعالي

مِثْلُهَا فَمَنْ عَفَا وَ اَصْلَحَ فَاَجْرُهٗ عَلَى اللّٰهِ اِنَّهٗ لَا يُحِبُّ الظّٰلِمِيْنَ وَلَمَنِ انْتَصَرَ بَعْدَ ظُلْمِهٖ فَاُولٰٓئِكَ مَا عَلَيْهِمْ مِّنْ سَبِيْلٍ اِنَّمَا السَّبِيْلُ عَلَى الَّذِيْنَ يَظْلِمُوْنَ النَّاسَ وَ يَبْغُوْنَ فِي الْاَرْضِ بِغَيْرِ الْحَقِّ اُولٰٓئِكَ لَهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ وَلَمَنْ صَبَرَ وَ غَفَرَ اِنَّ ذٰلِكَ لَمِنْ عَزْمِ الْاُمُوْرِ وَ تَرَى الظّٰلِمِيْنَ لَمَّا رَاَوُا الْعَذَابَ يَقُوْلُوْنَ هَلْ اِلٰى مَرَدٍّ مِّنْ سَبِيْلٍ.

قَدِيْرًا وَّ جَزٰٓؤُا سَيِّئَةٍ سَيِّئَةٌ — معاف كوونكے او قدرت كونكے دے. او د بدئي بدله د هغے برابر بدي ده، او كوم سړي چه معافي او كړه او ښيگړه ئے او كړه، نو د هغه اجر د الله په ذمه دے. الله ظالمان نه خوښوي. او كوم سړي چه د ظلم كيدو نه پس بدله واخسته، نو په داسے خلقو هيڅ گناه نشته. گناه خو په هغے خلقو ده چه به خلقو ظلم كوي. او زمكه كښې ناحق فساد كوي. داسے خلقو د پاره درد ناك عذاب دے. او كوم سړے چه صبر او كړي او ښښنه او كړي، نو ډير لوئے كار دے، او ته به ظالمان اووينے، كوم وخت چه هغوي عذاب اووينې نو وائي به، آيا د واپسئ څه صورت شته.

## باب ٢٣٨ : اَلظُّلْمُ ظُلُمَاتٌ يَوْمَ الْقِيَامَةِ.

باب ٢٣٨ : ظلم به د قيامت په ورځ د تيرو په شكل وي.

٩٧٨ : حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ يُوْنُسَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ الْمَاجِشُوْنَ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ دِيْنَارٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الظُّلْمُ ظُلُمَاتٌ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ.

٩٧٨ : احمد بن يونس. عبدالعزيز ماجشون. عبدالله بن دينار. عبدالله بن عمرؓ نه روايت كوي، د هغه بيان دے، نبي صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل، ظلم به د قيامت په ورځ د تيرو په شكل وي.

## باب ٢٣٩ : اَلْاِتِّقَاءِ وَالْحَذَرِ مِنْ دَعْوَةِ الْمَظْلُوْمِ.

باب ٢٣٩ : د مظلوم د بد دعا نه د بچ كيدو او هغے نه د، ويريدو بيان.

٩٧٩ : حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ مُوْسٰى حَدَّثَنَا وَكِيْعٌ حَدَّثَنَا زَكَرِيَّآءُ بْنُ اِسْحٰقَ الْمَكِّيُّ عَنْ يَحْيَى بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ صَيْفِيٍّ عَنْ اَبِيْ مَعْبَدٍ مَّوْلٰى ابْنِ عَبَّاسٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ اَنَّ النَّبِيَّ

٩٧٩ : يحيي بن موسي. وكيع. زكريا بن اسحق مكي. يحيي بن عبدالله صيفي. ابوسعيد (د ابن عباس غلام) ابن عباسؓ نه روايت كوي. د هغه بيان دے، چه نبي صلي الله عليه وسلم حضرت معاذ يمن طرف ته اوليږلو. نو ورته ئے

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعَثَ مُعَاذًا اِلَى الْيَمَنِ فَقَالَ اتَّقِ دَعْوَةَ الْمَظْلُوْمِ فَاِنَّهَا لَيْسَ بَيْنَهَا وَ بَيْنَ اللّٰهِ حِجَابٌ.

اوفرمائیل، ذ مظلوم ذ بددعا نه ویره کوه. ځکه چه د هغه ذ، بددعا او د. اللّٰه تعالٰي په مینځ کښ څه بندیز نشته.

## بَابُ ۶۵۰: مَنْ كَانَتْ لَهُ مَظْلَمَةٌ عِنْدَ الرَّجُلِ فَحَلَّلَهَا لَهُ هَلْ يُبَيِّنُ مَظْلَمَتَهُ.

## باب ۶۵۰: که یو سړي په چا ظلم[۱] اوکه، او مظلوم هغه معاف که، نو آیا ذ هغه ظلم بیانول ضروري دي.

۱. مظلمه هر هغه ظلم ته وائي کوم چه څوک برداشت کړي. کوم څیزونه چه د چا نه په ظلم سره واخستے شي په هغے باندے هم د مظلمے اطلاق کیږي. د دے مفهوم ډیر عام دے. په محسوس او غیر محسوس ټولو باندے ددے اطلاق کیدے شي که چرے چا ذ چا په عزت باندے حمله اوکړه نو دے ته به هم مظلمه وائیو. که هغه ته ئے څه ناجائز تکلیف اورسولو یا دهغه څه څیز ئے په زور واخستو نو دے ته به هم مظلمه وائیو. په دے وجه مونږه ددے لفظ ترجمه اونه کړه، باقي بعینه د عربي لفظ مو باقي پریخودو.

۹۸۰: حَدَّثَنَا اٰدَمُ بْنُ اَبِيْ اَيَاسٍ حَدَّثَنَا ابْنُ اَبِيْ ذِئْبٍ حَدَّثَنَا سَعِيْدُ نِ الْمَقْبُرِيُّ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ كَانَ لَهُ مَظْلَمَةٌ لِاَحَدٍ مِنْ عِرْضِهٖ اَوْ شَيْءٍ فَلْيَتَحَلَّلْهُ مِنْهُ الْيَوْمَ قَبْلَ اَنْ لَا يَكُوْنَ دِيْنَارٌ وَّلَا دِرْهَمٌ اِنْ كَانَ لَهُ عَمَلٌ صَالِحٌ اُخِذَ مِنْهُ بِقَدْرِ مَظْلَمَتِهٖ وَ اِنْ لَمْ تَكُنْ لَهُ حَسَنَاتٌ اُخِذَ مِنْ سَيِّئَاتِ صَاحِبِهٖ فَحُمِلَ عَلَيْهِ قَالَ اَبُوْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ اِسْمٰعِيْلُ بْنُ اَبِيْ اُوَيْسٍ اِنَّمَا سُمِّيَ الْمَقْبُرِيَّ لِاَنَّهُ كَانَ نَزَلَ نَاحِيَةَ الْمَقَابِرِ قَالَ اَبُوْ عَبْدِ اللّٰهِ وَ سَعِيْدُ نِ الْمَقْبُرِيُّ هُوَ مَوْلٰى بَنِيْ لَيْثٍ وَّهُوَ سَعِيْدُ بْنُ اَبِيْ سَعِيْدٍ وَ اِسْمُ اَبِيْ سَعِيْدٍ

۹۸۰: آدم بن ابي ایاس. ابن ابي ذئب. سعید مقبري. حضرت ابوهریره نه روایت کوي. رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلم اوفرمائیل. کوم سړي چه ذ چا په عزت یا په څه بل څیز ظلم اوکه، نو هغه نه دے نن معافي اوغواړي، قبل د دے نه چه هغه ورځ راشي. چه نه به دینار په کار راځي او نه درهم. که هغه سره صالح عمل وي، نو په قدر د هغه د ظلم به ذ هغه نه واخستے شي. او که هغه سره نیکی (نیکیاں) نه وي، نو ذ مظلوم بدئ به ذ هغه په سر واچولے شي. ابو عبداللّٰه (امام بخاري) اووے اسمعیل بن ابي اویس بیان اوکه، چه سعید ته مقبري ځکه وئیلے شي. چه هغه به قبرونو سره اوسیدلو. او امام بخاري اووے. چه سعید مقبري د بني لیث غلام وو، او هغه د ابوسعید خوئے وو. او د ابو سعید نوم

كَيْسَانُ.

كيسان وو.

## بـاب ١٦٥١ : إِذَا أَحَلَّلَهُ مِنْ ظُلْمِهِ فَلَا رُجُوْعَ فِيْهِ.

## باب ١٦٥١ : كه يو سړے د چا ظلم معاف كړي نو رجوع نشي كولے

١٩٨١ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ أَخْبَرَنَا هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ عَنْ أَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ وَ إِنْ امْرَأَةٌ خَافَتْ مِنْ بَعْلِهَا نُشُوْزًا أَوْ إِعْرَاضًا قَالَتْ الرَّجُلُ تَكُوْنُ عِنْدَهُ الْمَرْأَةُ لَيْسَ بِمُسْتَكْثِرٍ مِنْهَا يُرِيْدُ أَنْ يُفَارِقَهَا فَتَقُوْلُ أَجْعَلُكَ مِنْ شَأْنِيْ فِيْ حَلٍّ فَنَزَلَتْ هٰذِهِ الْاٰيَةُ فِيْ ذَالِكَ.

١٩٨١ : محمد. عبدالله. هشام بن عروه. عروه بي بي عائشے نه روايت كوي. هغے د' آيت: و ان امراة خافت من بعلها نشوزا او اعراضا تفسير بيان كه' كه د چا سړي به ښځه وه او هغے سره به ئے زيات آمدورفت كول نه غوښتل' او هغه به ئے جدا كول غوښتل (يعني طلاق وركول به ئے غوښتل) نو ښځے به ئے ونيلے' چه ماتاته خپل حق معاف كه. د دے متعلق دا آيت نازل شولو.

## بـــــــاب ١٦٥٢ : إِذَا أَذِنَ لَهُ أَوْ أَحَلَّهُ وَلَمْ يُبَيِّنْ كَمْ هُوَ.

## باب ١٦٥٢ : كه يو سړے چاله اجازت وركړي يا هغه معاف كړي خو دا' بيان نه كړيٍ چه څومره ئے معاف كه يا' د څومره اجازت ئے وركه.

١٩٨٢ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ يُوْسُفَ أَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ أَبِيْ حَازِمٍ بْنِ دِيْنَارٍ عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدِ السَّاعِدِيِّ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أُتِيَ بِشَرَابٍ فَشَرِبَ مِنْهُ وَ عَنْ يَمِيْنِهِ غُلَامٌ وَ عَنْ يَسَارِهِ الْأَشْيَاخُ فَقَالَ لِلْغُلَامِ أَتَأْذَنُ لِيْ أَنْ أُعْطِيَ هٰؤُلَاءِ فَقَالَ الْغُلَامُ لَا وَاللّٰهِ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ لَا أُوْثِرُ بِنَصِيْبِيْ مِنْكَ أَحَدًا قَالَ فَتَلَّهُ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ يَدِهِ.

١٩٨٢ : عبدالله بن يوسف. مالک. ابو حازم بن دينار. سهل بن سعد. ساعدي نه روايت كوي' چه رسول اللّٰهٌ ته د څکلو يو څيز (پئے يا اوبه) راوړے شو. نو حضورٌ د هغے نه اوڅكل. او د حضورٌ ښي طرف ته يو هلک وو. او كس طرف ته ئے د' زيات عمر خلق وو. نو حضورٌ هغے هلک ته' اووے' آيا ته اجازت كوے' چه زه دے خلقوته وركړم. هلک اووے' نه يا رسول اللّٰهٌ' په خدائے چه (ستاسو د' جوتے نه) خپله حصه كښې هيچا ته ترجيح ورنه كړم. د' راوي بيان دے' چه حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم هغه پيالئ هغه هلک له وركړه.

ف: دے حديث نه معلومه شوه' چه ښي اړخ ته فضيلت حاصل دے' نو ويش يا تقسيم د ښي طرف د خلقو

نه شروع پکار دي.

## بـاب ۶۵۳ : اِثْـمِ مَـنْ ظَـلَـمَ شَيْئًا مِنَ الْاَرْضِ.

۹۸۳ : حَـدَّثَـنَـا اَبُـوْ الْيَـمَـانِ اَخْبَـرَنَـا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَـالَ حَدَّثَنِيْ طَلْحَةُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ اَنَّ عَبْدَ الرَّحْمٰنِ بْنَ عَمْرِو بْنِ سَهْلٍ اَخْبَرَهٗ اَنَّ سَعِيْدَ بْـنَ زَيْـدٍ قَـالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰـهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ مَـنْ ظَلَمَ مِنَ الْاَرْضِ شَيْئًا طُوِّقَ مِنْ سَبْعِ اَرَضِيْنَ.

۹۸۴ : حَـدَّثَنَا اَبُوْ مَعْمَرٍ حَدَّثَنَا عَبْـدُ الْـوَارِثِ حَـدَّثَـنَـا حُسَيْـنٌ عَنْ يَـحْـيَى بْـنَ اَبِـيْ كَثِيْـرٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ مُـحَـمَّـدُ ابْـنُ اِبْـرَاهِيْمَ اَنَّ اَبَا سَلَمَةَ حَـدَّثَـهٗ اَنَّـهٗ كَـانَـتْ بَيْنَهٗ وَ بَيْنَ اُنَاسٍ خُـصُـوْمَةٌ فَـذُكِـرَ لِعَآئِشَةَ فَقَالَتْ يَا اَبَا سَلَـمَةَ اِجْتَـنِـبِ الْاَرْضَ فَـاِنَّ النَّبِيَّ صَلَّـى الـلّٰـهُ عَـلَيْـهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ ظَـلَمَ قِيْدَ شِبْرٍ مِّنَ الْاَرْضِ طُوِّقَهٗ مِنْ سَبْعِ اَرَضِيْنَ.

۹۸۵ : حَـدَّثَنَا اَبُوْ مَعْمَرٍ حَدَّثَنَا عَبْـدُ الْـوَارِثِ حَـدَّثَـنَـا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ الْـمُبَارَكِ حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ عُقْبَةَ عَنْ سَالِمٍ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى الـلّٰـهُ عَـلَيْـهِ وَسَـلَّـمَ مَـنْ اَخَذَ مِنَ

## باب ۶۵۳ : د هغې سړي بيان، چه د چا زمکه په ظلم واخلي.

۹۸۳ : ابـو اليـمـان. شـعـيـب. زهـري. طـلـحـه بـن عبدالـلّٰـه. عبدالـرحـمـن بـن عـمـرو بـن سهيـل. سـعيـد بـن زيـد نـه روايـت كـوي. دٔ هـغـه بيـان دے، چـه مـا دٔ رسول الـلّٰـه صلـي الـلّٰـه عليـه وسـلّم نـه اوريدلي دي، كـوم سـړي چـه د چـا زمـكـه پـه ظلم واخستـه، نـو هغـه تـه بـه دٔ اوو زمـكـو طوق اچولے شي.

۹۸۴ : ابـو مـعـمـر. عبدالـوارث. حسيـن. يـحيٰـي بـن ابي كثيـر. مـحـمـد بـن ابـراهيـم. ابوسلمهؓ نـه روايـت كـوي، د هـغـه او، دٔ څو سـړو مينځ كښې يـو جـګـړه وه. هـغـه بـي بـي عـائشې تـه دٔ هغې بيان اوكـه، نـو بـي بـي عـائشېؓ ورتـه اوفـرمـائيل: ابـوسـلـمـهؓ. دٔ زمكې نـه ځـان بـچ سـاتـه، ځكه چه نبي صلـي الـلّٰـه عـليـه وسـلّم فرمـائيلي دي، چا چه يـوه ليشـت قـدرے زمـكـه دٔ چـانـه پـه ظلم واخستـه، نوهغـه تـه بـه د اوو زمـكـو طـوق اچـولے شي.

۹۸۵ : مسـلـم بـن ابـراهيـم. عبدالـلّٰـه بـن مبـارك. مـوسـي بـن عقبـه. سـالـم دٔ خپل پـلار (عبدالـلّٰـه بـن عـمـر) نـه روايـت كوي. دٔ هغه بيـان دے. نبـي صلـي الـلّٰـه عليـه وسلّم اوفـرمـائيل، چـا چـه دٔ چا پـه زمـكـه پـه ناحقـه قبضـه او كړه، نو

الْأَرْضِ شَيْئًا بِغَيْرِ حَقِّهِ خُسِفَ بِهِ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ إِلٰى سَبْعِ أَرْضِيْنَ قَالَ أَبُوْ عَبْدِ اللّٰهِ هٰذَا الْحَدِيْثُ لَيْسَ بِخُرَاسَانَ فِيْ كِتَابِ ابْنِ الْمُبَارَكِ أَمْلَاهُ عَلَيْهِمْ بِالْبَصْرَةِ.

هغه به د قیامت په ورځ د اوو زمکو پورې په ځکته کولے شي. امام بخاري اوویے. دا حدیث د عبدالله بن مبارک کتاب کښې نشتا. چه خراسان کښې لیکلے شوے دے. لیکن بصره کښې ئے دا حدیث خلقوته واورولو.

## بـاب ۶۵۴: إِذَا أَذِنَ إِنْسَانٌ لِآخَرَ شَيْئًا جَازَ.

## باب ۶۵۴: که یو سړے چاته د یو څیز اجازت ورکړي، نو جائز دي.

**۹۸۶:** حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ جَبَلَةَ قَالَ كُنَّا بِالْمَدِيْنَةِ فِيْ بَعْضِ أَهْلِ الْعِرَاقِ فَأَصَابَنَا سَنَةٌ فَكَانَ ابْنُ الزُّبَيْرِ يَرْزُقُنَا التَّمْرَ فَكَانَ ابْنَ عُمَرَ يَمُرُّبِنَا فَيَقُوْلُ إِنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهٰى عَنِ الْإِقْرَانِ إِلَّا أَنْ يَّسْتَأْذِنَ الرَّجُلُ مِنْكُمْ أَخَاهُ.

**۹۸۶:** حفص بن عمر. شعبه. جبله نه روایت کوي، چه مونږ مدینه کښې بعضے عراقیانو سره وو، په مونږ قحط راغے، نو ابن زبیر په مونږ قجورے خوړولے. ابن عمرؓ چه به په مونږ تیریدلو، نو وئیل به ئے، چه رسول الله صلي الله علیه وسلّم دوه قجورے په یوځائے د خوړلو نه منع فرمائیلے ده. خو، دا چه تاسو کښې څوک سړے خپل وړور ته د دے اجازت ورکړي.

**۹۸۷:** حَدَّثَنَا أَبُو النُّعْمَانِ حَدَّثَنَا أَبُوْ عَوَانَةَ عَنِ الْأَعْمَشِ عَنْ أَبِيْ وَآئِلٍ عَنْ أَبِيْ مَسْعُوْدٍ أَنَّ رَجُلًا مِّنَ الْأَنْصَارِ يُقَالُ لَهُ أَبُوْ شُعَيْبٍ كَانَ لَهُ غُلَامٌ لَحَّامٌ فَقَالَ لَهُ أَبُوْ شُعَيْبٍ اِصْنَعْ لِيْ طَعَامَ خَمْسَةٍ لَعَلِّيْ أَدْعُوْ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَامِسَ خَمْسَةٍ وَّ أَبْصَرَ فِيْ وَجْهِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْجُوْعَ فَدَعَاهُ فَتَبِعَهُمْ رَجُلٌ لَمْ يُدْعَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

**۹۸۷:** ابو النعمان. ابو عوانه. اعمش. ابو وائل. ابو مسعود نه روایت کوي، یو انصاري سره چه د هغه نوم ابو شعیب وو، یو غوښه خرڅونکے غلام وو. ابو شعیب هغے غلام ته اوویے، ما د پاره د پنځو کسانو طعام تیار که، چه د نبي صلي الله علیه وسلّم دعوت اوکړم. او سره د حضورؐ به پنځه کسان وي، هغه د نبي صلي الله علیه وسلّم په مخ مبارک د لوږے اثر لیدلے وو. نو نبي صلي الله علیه وسلّم ته ئے بلنه ورکړه، لیکن هغوي سره یو سړے بل هم ملګرے شو، چه هغه ته دعوت نه وو ورکړے شوے. نو نبي صلي الله علیه وسلّم اوفرمائیل، دا سړے ماپسے راغلے دے، آیا ته ده له اجازت ورکوے

اِنَّ هٰذَا قَدِ اتَّبَعَنَا اَتَأْذَنُ لَهٗ قَالَ نَعَمْ.

هغه اووې. او.

**باب ۶۵۵ : قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى وَهُوَ اَلَدُّ الْخِصَامِ.**

**باب ۶۵۵ :** د الله تعالي قول: هغه انسان ډېر سخت جګړه مار دے.

**۹۸۸ :** حَدَّثَنَا اَبُوْ عَاصِمٍ عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ عَنِ ابْنِ اَبِيْ مُلَيْكَةَ عَنْ عَائِشَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِنَّ اَبْغَضَ الرِّجَالِ اِلَى اللّٰهِ الْاَلَدُّ الْخَصِمُ.

**۹۸۸ :** ابو عاصم. ابن جريج. ابن ابي مليکه. عائشه. نبي صلي الله عليه وسلم نه روايت کوي. حضور صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل: الله ته د ټولونه زيات ناخوښه سړے هغه دے، چه ډېر جګړه مار وي.

**باب ۶۵۶ : اِثْمُ مَنْ خَاصَمَ فِيْ بَاطِلٍ وَّهُوَ يَعْلَمُهٗ.**

**باب ۶۵۶ :** د هغې سړي بيان: چه سره د پوهې په ناحقه جګړه کوي.

**۹۸۹ :** حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنِيْ اِبْرَاهِيْمُ بْنُ سَعْدٍ عَنْ صَالِحٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عُرْوَةُ بْنُ الزُّبَيْرِ اَنَّ زَيْنَبَ بِنْتَ اُمِّ سَلَمَةَ اَخْبَرَتْهُ اَنَّ اُمَّهَا اُمَّ سَلَمَةَ زَوْجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَخْبَرَتْهَا عَنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهٗ سَمِعَ خُصُوْمَةً بِبَابِ حُجْرَتِهٖ فَخَرَجَ اِلَيْهِمْ فَقَالَ اِنَّمَا اَنَا بَشَرٌ وَّ اِنَّهٗ يَاْتِيْنِيْ الْخَصْمُ فَلَعَلَّ بَعْضَكُمْ اَنْ يَّكُوْنَ اَبْلَغَ مِنْ بَعْضٍ فَاَحْسِبُ اَنَّهٗ صَدَقَ فَاَقْضِيَ لَهٗ بِذٰلِكَ فَمَنْ قَضَيْتُ لَهٗ بِحَقِّ مُسْلِمٍ فَاِنَّمَا هِيَ قِطْعَةٌ مِّنَ النَّارِ فَلْيَاْخُذْهَا اَوْ فَلْيَتْرُكْهَا.

**۹۸۹ :** عبدالعزيز بن عبدالله. ابراهيم بن سعد. صالح. ابن شهاب. عروه بن زبير. زينب بنت ام سلمه ذ نبي صلي الله عليه وسلم ټبر: ام سلمه د رسول الله صلي الله عليه وسلم نه روايت کوي: چه حضورؐ د خپلے حجرے په دروازه د څه جګړے اواز واوريدلو. حضورؐ بهر تشريف راوړلو. او وې فرمائيل، زه هم اخر انسان يم. ماله جګړه مار راځي، او تاسو کښې بعضې د بعضو نه زيات بليغ (خوله ور) وي، او زه ګمان او کړم چه هغه ريښتنے دے، نو زه ذ هغه په حق کښې فيصله اوکړم که زه د يو مسلمان په حق کښې فيصله اوکړم، نو هغه د اوريوه ټکړه ده، که غواړي، نو، وادے خلي، او که غواړي، پرے دے ږدي.

**ف:** حجرے: کمره، کوټګے. د، ګزارے کوټه. وړه کوټه.

## بـــاب ٦٥٧ : اِذَا خَـــاصَــمَ فَجَرَ.

## باب ٦٥٧ : د جګړے پـه وخـت د بد ژبانۍ کولو بيان.

**۹۹۰** : حَـدَّثَـنَـا بِشْرُ بْنُ خَالِدٍ اَخْبَرَنَا مُحَمَّدٌ عَنْ شُعْبَةَ عَنْ سُلَيْمَانَ عَنْ عَبْـدِ الـلّٰـهِ بْنِ مُرَّةَ عَنْ مَسْرُوْقٍ عَنْ عَبْـدِ الـلّٰهِ بْنِ عُمَرٍ وَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّـى الـلّٰـهُ عَـلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اَرْبَعٌ مَنْ كُنَّ فِيْهِ كَانَ مُنَافِقًا اَوْ كَانَتْ فِيْهِ خَصْـلَةٌ مِّـنْ اَرْبَعَةٍ كَانَتْ فِيْهِ خَصْلَةٌ مِّـنَ الـنِّـفَـاقِ حَتّـٰـى يَدَعَهَا اِذَا حَدَّثَ كَذَبَ وَ اِذَا وَعَـدَ اَخْلَفَ وَ اِذَا عَاهَدَ غَدَرَ وَ اِذَا خَاصَمَ فَجَرَ.

**۹۹۰** : بشـر بـن خـالـد. محمد. شعبه. سليمان. عبدالله بن مره. مسروق. عبدالله بن عمر: نبي صلی الله عليه وسلّم نه روايت کوي. حضورؐ اوفرمائيل: کوم سړی کښې چـه څلور خبرے وي: هغه منافق وي. يا کوم سړی کښې چه دے څلورو کښې يو خصلت وي، نو هغه کښې به د مـنـافـقـت خـصـلـت وي. ترد ے چه هغه هغه خصلت پـريـږدی ۔ ...م وخـت چـه هغـه خبرے کوي، نو دروغ وائـي، کـلـه چـه وعده اوکړي، نو د هغے خلاف کوي او کـلـه چـه مـعـاهـده کـوي، نو بيوفائي اوکړي، او کله چه جګړه کوي، نو بد ژباني کوي.

## باب ٦٥٨ : قِـصَاصِ الْمَظْلُوْمِ اِذَا وَجَـدَ مَـالَ ظَـالِـمِـهٖ وَ قَـالَ ابْـنُ سِيْـرِيْـنَ يُـقَـاصُّـهٗ وَ قَـرَأَ وَ اِنْ عَاقَبْتُمْ فَعَاقِبُوْا بِمِثْلِ مَا عُوْقِبْتُمْ بِهٖ.

## باب ٦٥٨ : مـظـلـوم تـه کـه د ظالم مال حاصل شي[۱]، نو هغه خپله بدله اخستے شي. ابن سيرين اووے: خپل حق برابر اخستے شي. او دا آيت ئے اولوست: که تـاسـو بـدلـه اخـلـئ، نو دومره قدرے څومره چه تاسو ته تکليف رسيدلے وي.

۱. احـنـافو په دے باب کښې ونيلے دی چه که چرے يو سړي د بل سړي مال په ظلم سره واخسو نو د مال اصل مالک ته دا حق شته چه که چرے هغه بعينه خپل مال يا د هغه جنس نه بل څه مال د ظالم نه واپس اخستے شي نو واپس دِ ترے واخلي، هغه ته دا حق نيشته چه د ظالم کوم مال هم بياموبي د هغے د حاصلولو کوشش اوکړي. همدغه شان په خپل مال اخستلو کښې هم د ظلم طريقه اختيارول نه دي پکار. ليکن امام شافعي رحمة الله عليه په دے کښې تعميم کړے دے چه د ظالم کوم يو مال هم چه ملاؤ شي که چرے مظلوم به هغے باندے قبضه کولے شي نو د خپل مال د ماليت په مقدار کښې خپله قبضه کښې اخستے شي متاخرينو احنافو د امام شافعي رحمة الله عليه د مسلک مطابق فيصله کړے ده.

**۹۹۱** : حَـدَّثَـنَـا اَبُـوْ الْيَـمَانِ اَخْبَـرَنَـا شُـعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ حَدَّثَنِيْ عُـرْوَةُ اَنَّ عَائِشَةَ قَالَتْ جَآءَ تْ هِنْدُ

**۹۹۱** : ابـو الـيـمـان. شعيب. زهري. عروه. بـي بـي عـائـشـهؓ روايـت کـوي. چـه هند بنت عتبه بــن ربيـعــه راغـلـه. او عـرض ئـے اوکـه: يـا رسـول

بِنْتُ عُتْبَةَ ابْنِ رَبِيْعَةَ فَقَالَتْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّ اَبَا سُفْيٰنَ رَجُلٌ مِسِّيْكٌ فَهَلْ عَلَيَّ حَرَجٌ اَنْ اُطْعِمَ مِنَ الَّذِيْ لَهُ عِيَالَنَا فَقَالَ لَا حَرَجَ عَلَيْكِ اَنْ تُطعِمِيْهِمْ بِالْمَعْرُوْفِ.

اللّٰه، ابوسفیان ډیر بخیل سړے دے، څه حرج شته. که زه د هغه مال په بچو اوخوروم. حضورؐ ورته اوفرمائیل، که ته په هغوي د دستور مطابق خوړے، نو دے کښې څه حرج نشته.

**۹۹۲**: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ قَالَ حَدَّثَنِيْ يَزِيْدُ عَنْ اَبِي الْخَيْرِ عَنْ عُقْبَةَ ابْنِ عَامِرٍ قَالَ قُلْنَا لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّكَ تَبْعَثُنَا فَنَنْزِلُ بِقَوْمٍ لَا يَقْرُوْنَنَا فَمَا تَرٰى فِيْهِ فَقَالَ لَنَا اِنْ نَزَلْتُمْ بِقَوْمٍ فَاَمَرَ لَكُمْ بِمَا يَنْبَغِيْ لِلضَّيْفِ فَاقْبَلُوْا فَاِنْ لَّمْ يَفْعَلُوْا فَخُذُوْا مِنْهُمْ حَقَّ الضَّيْفِ.

**۹۹۲**: عبدالله بن یوسف. لیث. یزید. ابوالخیر. عقبه بن عامر. نه روایت کوي، دَ هغه بیان دے. مونږ نبي صلي الله علیه وسلّم ته عرض اوکه، چه تاسو مونږ بل ځائے ته لیږئ، نو مونږ داسے قوم کښې کوز شو، چه زمونږ میلمستیا نه کوي. دَ دے متعلق تاسو څه فرمائے. حضورؐ مونږ ته اوفرمائیل، که تاسو یو قوم له ورشئ، او هغوي ستاسو د پاره مناسب طور سره دَ میلکمستیا حکم اوکړي، نو قبول ئے کړئ ګني تاسو، دَ هغوي نه دَ میلمستیا حق وصول کړئي[1].

۱. د میلمه حق د کور به د مرضی خلاف وصولولو پاره چه په دے حدیث کښې کوم هدایت دے ددے متعلق محدثینو مختلف توجیهات بیان کړي دي. بعضو حضراتو لیکلي دي چه دا حکم د مخمصے د حالت دے دَ کلو او بانډو لرو لرو علاقوته که چرے څوک مسافر، خصوصًا د عربو په ماحول کښې اورسیدو نو د هغه د پاره به د خوراک څکاک ذریعه د بانډے د خلقو د میلمستیا نه سوا بل څه نه وو. نو مطلب دا شو چه که چرے داسے موقعه وي او د قبیلے والا د میلمستیا نه انکار اوکړي، دیخوا مجاهدو مسافرو سره هیڅ سامان نه وي نو هغوئ د خپل خان بچ کولو د پاره د هغوئ نه خوراک څکاک د هغوئ د مرضۍ نه خلاف هم وصولولے شي. دا قسمه رخصتونه په اسلام کښې د مخمصے په اوقاتو کښې دي. بله توجیه دا کړے شوے ده چه میلمستیا به د عربو خلقو کښې د یو عام عُرف او عادت حیثیت لرلو دے د پاره ددے عرف په رنړا کښې مجاهدینو ته حضورؐ دغه هدایت ورکړے وو. یوه توجیه دا هم کړے شوے ده چه نبي کریم صلي الله علیه وسلّم د عربو ډیرو قبائلو سره لوظنامه کړے وه چه که چرے د مسلمانانو لښکر د هغه قبیلو نه تیریږي او یو دوؤ ورځو د پاره د هغوئ ځائے کښې قیام کوي نو هغوئ به د لښکر میلمستیا کوي دا لوظنامه د حضور اکرم صلي الله علیه وسلّم په هغه مکتوباتو کښې موجود ده کوم چه هغوئ د عربو قبائلو د سردارانو په نوم لیکلي وو او د کومو تخریج چه زیلعي هم کړے دے.

بهرحال مختلف توجیهات ددے کړي شوي دي. او علامه انور شاه صاحب کشمیري رحمة الله علیه د عُرف او عادت والا جواب خوښ کړے دے. یعني په عربو کښې دا خبره پخپله هر چاته معلومه وه چه د

تيريدونكو مسافرو ميلمستيا د قبيلې خلقو له ضرور كول پكار دي. ولې چه كه چرې داسې نه وي نو د عربو په هوارو او بې اوبو او بې گياه ميدانونو كښې به سفر د عربو غوندې غريب قوم د پاره ناممكن شوې وو او د همدې مطابق د حضور اكرم حكم هم وو. گويا دا يو انتظامي ضرورت هم وو او هر كله چه بو دوؤ مسافرو به ددې نه بغير د لرو خايونو سفر نشو كولې نو لبنكر به څرنګ ددې نه بغير سفر كولې شو

## بَابٌ ۶۵۹ : مَا جَآءَ فِيُ السَّقَائِفِ وَ جَلَسَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيُهِ وَسَلَّمَ وَ اَصُحَابُهُ فِيُ سَقِيُفَةِ بَنِيُ سَاعِدَةَ.

## باب ۶۵۹ : سائبان (تنبو) كښې د ناستې بيان او نبي صلى الله عليه وسلم او د هغوي صحابه سقيفه بني ساعده كښې كيناستل.

**۹۹۳ :** حَدَّثَنَا يَحْيٰى بُنُ سُلَيُمَانَ قَالَ حَدَّثَنِيُ ابُنُ وَهُبٍ قَالَ حَدَّثَنِيُ مَالِكٌ وَّ اَخُبَرَنِيُ يُونُسُ عَنِ ابُنِ شِهَابٍ اَخُبَرَنِيُ عُبَيُدُ اللّٰهِ بُنُ عَبُدِ اللّٰهِ بُنِ عُتُبَةَ اَنَّ ابُنَ عَبَّاسٍ اَخُبَرَهُ عَنُ عُمَرَ قَالَ حِيُنَ تَوَفَّى اللّٰهُ نَبِيَّهُ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيُهِ وَسَلَّمَ اِنَّ الْاَنُصَارَ اجُتَمَعُوُا فِيُ سَقِيُفَةِ بَنِيُ سَاعِدَةَ فَقُلُتُ لِاَبِيُ بَكُرٍ انُطَلِقُ بِنَا فَجِئُنَاهُمُ فِيُ سَقِيُفَةِ سَاعِدَةَ.

**۹۹۳ :** يحيي بن سليمان. ابن وهب. مالک. يونس. ابن شهاب. عبدالله بن عبدالله بن عتبه. ابن عباسؓ. حضرت عمرؓ نه روايت كوي. د هغه بيان دې كوم وخت چه الله تعالى خپل نبي صلى الله عليه وسلم واخست نو انصار سقيفه بن ساعده كښې جمع شو نو ما حضرت ابوبكر ته اووې چه مونږ سره لاړ شه نو مونږ انصارو سره سقيفه بن ساعده (د بني ساعده تنبو) ته اورسيدلو.

## بَابٌ ۶۶۰ : لَا يَمُنَعُ جَارٌ جَارَهُ اَنُ يَغُرِزَ خَشَبَهُ فِيُ جِدَارِهِ.

## باب ۶۶۰ : هيخوک دې خپل گوانډي خپل ديوال كښې د مورې (ميخ وغيره) لږولو نه منع كوي.

**۹۹۴ :** حَدَّثَنَا عَبُدُ اللّٰهِ بُنُ مُسُلَمَةَ عَنُ مَّالِكٍ عَنِ ابُنِ شِهَابٍ عَنِ الْاَعُرَجِ عَنُ اَبِيُ هُرَيُرَةَ اَنَّ رَسُوُلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيُهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا يَمُنَعُ جَارٌ جَارَهُ اَنُ يَغُرِزَ خَشَبَةً فِيُ جِدَارِهِ ثُمَّ يَقُوُلُ اَبُوُ هُرَيُرَةَ مَالِيُ اَرَاكُمُ عَنُهَا مُعُرِضِيُنَ وَاللّٰهِ لَاَرُمِيَنَّ

**۹۹۴ :** عبدالله بن سلمه. مالک. ابن شهاب. اعرج. ابوهريرةؓ نه روايت كوي رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل هيخوک دې خپل گوانډي خپل ديوال كښې د مورو (ميخونو. ديوالگير وغيره) لږولو نه منع كوي. بيا ابوهريرةؓ وئيلې خه خبره ده چه زه تاسو د دې حديث نه روګرداني كونكې بيا مومم. په خدائې چه زه ستاسو مخكښې دا حديث برابر

بِهَا بَيْنَ اَكْتَافِكُمْ.

باب ۱۲۶۱: صَبِّ الْخَمْرِ فِيْ الطَّرِيْقِ.

۹۹۵: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحِيْمِ اَبُوْ يَحْيٰى اَخْبَرَنَا عَفَّانُ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ حَدَّثَنَا ثَابِتٌ عَنْ اَنَسٍ كُنْتُ سَاقِيَ الْقَوْمِ فِيْ مَنْزِلِ اَبِيْ طَلْحَةَ وَ كَانَ خَمْرُهُمْ يَوْمَئِذٍ الْفَضِيْخَ فَاَمَرَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُنَادِيًا يُنَادِيْ اَلَآ اِنَّ الْخَمْرَ قَدْ حُرِّمَتْ قَالَ فَقَالَ لِيْ اَبُوْ طَلْحَةَ اخْرُجْ فَاَهْرِقْهَا فَخَرَجْتُ فَهَرَقْتُهَا فَجَرَتْ فِيْ سِكَكِ الْمَدِيْنَةِ فَقَالَ بَعْضُ الْقَوْمِ قَدْ قُتِلَ قَوْمٌ وَّ هِيَ فِيْ بُطُوْنِهِمْ فَاَنْزَلَ اللّٰهُ لَيْسَ عَلَى الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَ عَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ جُنَاحٌ فِيْمَا طَعِمُوْا الْاٰيَةَ.

باب ۱۲۶۲: اَفْنِيَةِ الدُّوْرِ وَالْجُلُوْسِ فِيْهَا وَالْجُلُوْسِ عَلَى الصُّعُدَاتِ وَ قَالَتْ عَائِشَةُ فَابْتَنٰى اَبُوْبَكْرٍ مَسْجِدًا بِفِنَاءِ دَارِهٖ يُصَلِّيْ فِيْهِ وَ يَقْرَاُ الْقُرْاٰنَ فَيَتَقَصَّفُ عَلَيْهِ نِسَآءُ الْمُشْرِكِيْنَ وَ اَبْنَآؤُهُمْ يُعْجَبُوْنَ مِنْهُ وَالنَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَئِذٍ بِمَكَّةَ.

۹۹۶: حَدَّثَنَا مُعَاذُ بْنُ فَضَالَةَ

بيانوم.

باب ۱۲۶۱: لار كښې د شرابو بهيولو بيان.

۹۹۵: محمد بن عبدالرحيم. ابو يحيٰي. عفان. حماد بن زيد. ثابت. انسؓ نه روايت كوي. د هغه بيان دے، ما د ابو طلحه مكان كښې خلقو باندے شراب څكول. هغه زمانه كښې به خلقو فضيخ شراب استعمالول. رسول الله صلي الله عليه وسلّم يو سړي ته حكم اوكه، چه هغه اعلان اوكړي. واورئ، شراب حرام كړے شو. د حضرت انسؓ بيان دے، ماته ابو طلحه اووے. بهر اوخه، او دا شراب توئے كړه. نو زه بهر اووتلم، او هغه م توئے كړل. په هغه ورځ د، مدينے كوڅو كښې شراب بهيدل. بعضے خلقو اووے، چه يو قوم قتل كړے شو. او شراب د هغوي په خيټه كښې وو، نو الله تعالٰي دا، ايت نازل كه: هغے خلقو باندے چه ايمان ئے راوړلو او نيك كارونه ئے اوكړل، هيڅ گناه نشته په هغه څيز كښې چه هغوي اوخوړل.

باب ۱۲۶۲: د كورونو صحن، هلته د ناستے او لار كښې د ناستے بيان. د بي بي عائشےؓ بيان دے، ابوبكرؓ د خپل كور صحن (آنگړ) كښې جمات جوړ كه، چه هلته به ئے مونځ او قرآن لوستلو. د مشركينو ښځے، د هغوي بچي به هغه سره جمع كيدل، او اوريدو سره به خوشحاليدل، او نبي صلي الله عليه وسلّم هغے ورځو كښې مكه كښې وو.

۹۹۶: معاذ بن فضاله. ابو عمر. حفص

حَدَّثَنَا اَبُو عُمَرَ حَفْصُ ابْنُ مَيْسَرَةَ عَنْ زَيْدِ ابْنِ اَسْلَمَ عَنْ عَطَآءِ ابْنِ يَسَارٍ عَنْ اَبِيْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِيَّاكُمْ وَالْجُلُوْسَ عَلَى الطُّرُقَاتِ فَقَالُوْا مَالَنَا بُدٌّ اِنَّمَا هِيَ مَجَالِسُنَا نَتَحَدَّثُ فِيْهَا قَالَ فَاِذَا اَبَيْتُمْ اِلَّا الْمَجَالِسَ فَاَعْطُوا الطَّرِيْقَ حَقَّهَا قَالُوْا وَمَا حَقُّ الطَّرِيْقِ قَالَ غَضُّ الْبَصَرِ وَ كَفُّ الْاَذٰى وَ رَدُّ السَّلَامِ وَ اَمْرٌ بِالْمَعْرُوْفِ وَ نَهْيٌ عَنِ الْمُنْكَرِ.

بن ميسره. زيد بن اسلم. عطاء بن يسار. ابو سعيد خدريؒ. نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت كوى حضورؐ اوفرمائيل: تاسو لارو كښې د ناستے نه پرهيز اوكړئ، خلقو عرض اوكه، مونږ د پاره د دے نه سيوا بل څه چاره كار نشته. مونږ دلته كينو او خبرے كوو حضورؐ ورته اوفرمائيل هر كله چه تاسو هلته په ناسته مجبور يئ، نو لارے ته د هغے حق وركوئ. خلقو عرض اوكه: د لارے حق څه دے. حضورؐ ورته اوفرمائيل: نظر ښكته ساتل. د نقصان رسانۍ نه منع كيدل. د سلام جواب وركول. د ښو خبرو حكم وركول او د بدو خبرو نه منع كيدل.

## باب ۱۶۲۳: اَلْاٰبَارِ عَلَى الطُّرُقِ اِذَا لَمْ يُتَاَذَّبِهَا.

## باب ۱۶۲۳: لار كښې د كوئي كنستلو بيا هر كله چه د هغے نه چاته تكليف نه وي.

۹۹۷: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْلَمَةَ عَنْ مَالِكٍ عَنْ سُمَيٍّ مُوْلٰى اَبِيْ بَكْرٍ عَنْ اَبِيْ صَالِحِ السَّمَّانِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ بَيْنَا رَجُلٌ بِطَرِيْقٍ اِشْتَدَّ عَلَيْهِ الْعَطَشُ فَوَجَدَ بِئْرًا فَنَزَلَ فِيْهَا فَشَرِبَ ثُمَّ خَرَجَ فَاِذَا كَلْبٌ يَلْهَثُ يَاْكُلُ الثَّرٰى مِنَ الْعَطَشِ فَقَالَ الرَّجُلُ لَقَدْ بَلَغَ هٰذَا الْكَلْبَ مِنَ الْعَطَشِ مِثْلُ الَّذِيْ كَانَ بَلَغَ مِنِّيْ فَنَزَلَ الْبِئْرَ فَمَلَاَ خُفَّهٗ مَآءً فَسَقَى الْكَلْبَ فَشَكَرَ اللّٰهُ لَهٗ فَغَفَرَلَهٗ قَالُوْا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ وَ اِنَّ لَنَا فِي الْبَهَائِمِ لَاَجْرًا فَقَالَ فِيْ

۹۹۷: عبداللّٰه بن مسلمه. مالک. سمي (د ابوبكرؓ غلام) ابو صالح سمان. ابوهريرهؓ نه روايت كوي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل: يو خل يو سړے په لاره روان وو، هغه ډير سخت تږے شو. يو كوئے ئے اوليد، هغے ته كوز شو. اوبه ئے اوڅكلے راوختلو. نو څه ګوري چه يو سپے دے چه ساه ئے بے كوره شوے ده، او د سختے تندے په سبب خټې خوري. هغے سړي خپل زړه كښې اووے: چه دے سپي ته هم د تندے په وجه هغه تكليف رسيدلے دے كوم چه ماته رسيدلے وو. نو كوئي ته كوز شو. خپله موزه ئے د اوبو نه ډكه كړه. بيائے په سپي اوڅكوله، نو اللّٰه تعالي د هغه قدر اوكه. هغه ئے اوبښنه. خلقو عرض اوكه. يا رسول اللّٰه، آيا چارپايه ؤ كښې به هم مونږ ته اجر رسي، حضور

كُلِّ ذَاتِ كَبِدٍ رَطْبَةٍ اَجْرٌ.

ورته اوفرمائیل. هر تر جګر لرونکي کښې ثواب دے[۱].

۱. د دے نه معلومیږي چه که چرے د چا ضرورت مند غیر مسلم هم مدد اوکړے شي نو په دے باندے اجر ملاویږي، ولے چه د ساه لرونکي په ضمن کښې خو هغوی هم بهرحال راځي.

بَـــاب ۲۶۴ : اِمَـــاطَةِ الْاَذٰی

وَ قَـــالَ هَـــمَّـــامٌ عَنْ اَبِیْ هُـرَیْـرَةَ عَـنِ النَّبِـیِّ صَلَّـی اللّٰـهُ عَـلَیْـهِ وَسَلَّـمَ یُـمِیْـطُ الْاَذٰی عَـنِ الطَّـرِیْقِ صَدَقَةٌ.

باب ۲۶۴ : لارے نه د تکلیف ورکونکي څیز د لرے کولو بیان او، همام د ابوهریره نه، او هغه د نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم نه نقل کړے دے، چه د، لارے نه تکلیف ورکونکي څیز لرے کړني، ځکه چه دا هم صدقه ده.

بَـاب ۲۶۵ : اَلْـغُـرْفَةِ وَالْعُلِّیَّةِ الْمُشْرِفَةِ فِیْ السُّطُوْحِ وَغَیْرِهَا.

باب ۲۶۵ : بالاخانو کښې د، اوچتو او پست دریچو او روشندانونو جوړولو بیان.

۹۹۸ : حَـدَّثَـنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا ابْنُ عُیَیْنَةَ عَنِ الزُّهْرِیِّ عَـــنْ عُـرْوَةَ عَنْ اُسَامَةَ بْنِ زَیْدٍ قَالَ اَشْـرَفَ النَّبِـیُّ صَلَّـی اللّٰـهُ عَلَیْـهِ وَسَلَّمَ عَلٰی اُطُمٍ مِّنْ اٰطَامِ الْمَدِیْنَةِ ثُـمَّ قَـالَ هَـلْ تَـرَوْنَ مَـا اَرٰی مَوَاقِعَ الْفِتَنِ خِلَالَ بُیُوْتِکُمْ کَمَوَاقِعِ الْقَطْرِ.

۹۹۸ : عبدالله بن محمد. ابن عیینه. زهري. عروه. اسامه بن زید نه روایت کوي، د هغه بیان دے، یو ځل نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم د مدینے په یو غنډۍ اوختلو. بیائے اوفرمائیل، تاسو وینئ، چه زه ستاسو کورونو کښې د فتنو د اوبو په شان وریدل وینم.

۹۹۹ : حَدَّثَنَا یَحْیَی ابْنُ بُکَیْرٍ حَـدَّثَـنَا اللَّیْثُ عَـنْ عُـقَیْلٍ عَـنِ ابْـنِ شِهَابٍ قَـالَ اَخْبَرَنِیْ عُبَیْدُ اللّٰهِ ابْـنُ عَبْدِ اللّٰـهِ بْـنِ اَبِـیْ ثَـوْرٍ عَنِ عَبْـدِ اللّٰـهِ بْـنِ عَبَّـاسٍ قَـالَ لَمْ اَزَلْ حَـرِیْـصًـا عَـلٰی اَنْ اَسَـالَ عُمَرَ عَـنِ الْمَـرْاَتَیْـنِ مِـنْ اَزْوَاجِ النَّبِـیِّ صَلَّـی اللّٰـهُ عَـلَیْـهِ وَسَلَّمَ اللَّتَیْنِ قَـالَ اللّٰـهُ لَهُـمَـا اِنْ تَتُـوْبَـا اِلَـی

۹۹۹ : یحیی. بن بکیر. لیث. عقیل. ابن شهاب عبیدالله بن عبدالله بن ابو ثور. عبدالله بن عباسؓ نه روایت کوي، د هغه بیان دے. ځما به دا خواهش وو، چه زه د عمرؓ نه د نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم د هغے دوو بیبیانو متعلق تپوس اوکړم، چه د هغوي بارہ کښې الله تعالی اوفرمائیل: ان تتوبا الی الله الخ (که تاسو دواړه توبه کړئ، نو خیر، ستاسو زړونو کښې کږلیچ راغلے دے) نو زه هغه سره حج ته لاړم، هغه د، لارے نه اخوا شو. زه هم، هغه سره یو، بتکي (چهاګل) م واخست

اللّٰهِ فَقَدْ صَغَتْ قُلُوْبُكُمَا فَحَجَجْتُ
مَعَهُ فَعَدَلَ وَ عَدَلْتُ مَعَهُ بِالْاَدَاوَةِ
فَتَبَرَّزَ حَتّٰى جَآءَ فَسَكَبْتُ عَلٰى
يَدَيْهِ مِنَ الْاَدَاوَةِ فَتَوَضَّأَ فَقُلْتُ يَا
اَمِيْرَ الْمُؤْمِنِيْنَ مَنِ الْمَرْاَتَانِ
مِنْ اَزْوَاجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ
عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اللَّتَانِ قَالَ اللّٰهُ لَهُمَا
اِنْ تَتُوْبَا اِلَى اللّٰهِ فَقَالَ وَ اعَجَبًا لَكَ
يَا ابْنَ عَبَّاسٍ عَآئِشَةُ وَ حَفْصَةُ
ثُمَّ اسْتَقْبَلَ عُمَرُ الْحَدِيْثَ يَسُوْقُهُ
فَقَالَ اِنِّيْ كُنْتُ وَ جَارَتِيْ مِنَ
الْاَنْصَارِ فِيْ بَنِيْ اُمَيَّةَ بْنِ زَيْدٍ وَّ
هِيَ مِنْ عَوَالِي الْمَدِيْنَةِ وَ كُنَّا
نَتَنَاوَبُ النُّزُوْلَ عَلَى النَّبِيِّ
صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَيَنْزِلُ
يَوْمًا وَّ اَنْزِلُ يَوْمًا فَاِذَا اَنْزَلْتُ
جِئْتُهُ مِنْ خَيْرِ ذَالِكَ الْيَوْمِ مِنَ
الْاَمْرِ وَغَيْرِهٖ وَ اِذَا نَزَلَ فَعَلَ مِثْلَهُ
وَ كُنَّا مَعْشَرَ قُرَيْشٍ نَغْلِبُ النِّسَآءَ
فَلَمَّا قَدِمْنَا عَلَى الْاَنْصَارِ اِذَاهُمْ
قَوْمٌ تَغْلِبُهُمْ نِسَآؤُهُمْ فَطَفِقَ نِسَآؤُنَا
يَاْخُذْنَ مِنْ اَدَبِ نِسَآءِ الْاَنْصَارِ
فَصِخْتُ عَلٰى امْرَاَتِيْ فَرَاجَعَتْنِيْ
فَاَنْكَرْتُ اَنْ تُرَاجِعَنِيْ فَقَالَتْ
وَلِمَ تُنْكِرُ اَنْ اُرَاجِعَكَ فَوَاللّٰهِ
اِنَّ اَزْوَاجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ

واوړیدم. هغه رفع حاجت او که' تردے چه واپس راغے
نو ما د هغه په دواړو لاسونو د بتکي نه اوبه واچولے
اودس او کړلو. نو ما ترے تپوس او که' اے امیر المومنین
د نبي صلي الله علیه وسلم هغه کومے دوه بیبیانے وے
چه د هغوي متعلق الله ـ ان تتوبا الی الله الخ نازل
کړلو. هغه اووے' اے ابن عباسؓ' تعجب دے په تا' د دے
نه مراد' عائشهؓ او حفصهؓ دي. بیا حضرت عمرؓ متوجه
شو' او پوره قصه ئے بیان کړه' او وئے فرمائیل' چه زه او
خما یو انصاري ګواندي د' بني امیه بن زید محله کښ
اوسیدلو' چه د مدینے په عوالي کښ وه' او مونږ دواړه
به وار په وار د نبي صلي الله علیه وسلم خدمت کښ
حاضریدولو. یو ورځ به هغه تلو' او بله ورځ به زه تلم.
چه زه به لاړم' نو د هغے ورځے خبر او حالت به م
انصاري ته بیان کړلو' او' چه هغه به لاړلو' نو هغه به هم
دغسے کول' او مونږ قریش خلق په ښځو غالب وو.
کوم وخت چه مونږ انصارو له راغلو' نو اومو لیدل' چه د
هغوي ښځے په هغوي غالبے دي' نو خمونږ ښځو هم
انصارو ښځونه چال زده که. یو ځل ما په خپلے ښځے
آواز راوخکږ' نو هغے ماله جواب راکه' د هغے جواب
په ما بد اولږید' نو هغے اووے' خما جواب په تا' ولے بد
لږي' په خدائے چه د نبي صلي الله علیه وسلم بیبیانے هم
جواب کوي' او د حضورؐ بعضے ښځه د حضورؐ نه پوره
شوا روز مروره اوسي. دے اوریدو سره په ما ویره راغله
نو ما اووے' چا چه داسے او کړل' نو هغه سخت نقصان
کښ ده. بیا ما خپلے کپړے واغستے' او حفصےؓ له
راغلم' ورته م اووے' آیا تاسو کښ څوک رسول الله

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيُرَاجِعْنَهُ وَ اِنَّ
اِحْدَاهُنَّ لَتَهْجُرُهُ الْيَوْمَ حَتَّى
اللَّيْلِ فَاَفْزَعَنِيْ فَقُلْتُ خَابَتْ
مَنْ فَعَلَ مِنْهُنَّ بِعَظِيْمٍ ثُمَّ
جَمَعْتُ عَلَىَّ ثِيَابِيْ فَدَخَلْتُ
عَلٰى حَفْصَةَ فَقُلْتُ اَيْ حَفْصَةُ
اَتُغَاضِبُ اِحْدَاكُنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ
صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْيَوْمَ
حَتَّى اللَّيْلِ فَقَالَتْ نَعَمْ فَقُلْتُ
خَابَتْ وَ خَسِرَتْ اَفَتَاْمَنُ اَنْ
يَّغْضَبَ اللّٰهُ لِغَضَبِ رَسُوْلِهٖ صَلَّى
اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَتَهْلِكِيْنَ
لَا تَسْتَكْثِرِيْ عَلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ
صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَا
تُرَاجِعِيْهِ فِيْ شَيْءٍ وَّلَا تَهْجُرِيْهِ
وَ اسْاَلِيْنِيْ مَا بَدَا لَكِ وَلَا يَغُرَّنَّكِ
اِنْ كَانَتْ جَارَتُكِ هِيَ اَوْضَاَ مِنْكِ
وَ اَحَبَّ اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى
اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُرِيْدُ عَائِشَةَ وَ
كُنَّا تَحَدَّثْنَا اَنَّ غَسَّانَ تُنْعِلُ
النِّعَالَ لِغَزْوِنَا فَنَزَلَ صَاحِبِيْ
يَوْمَ نَوْبَتِهٖ فَرَجَعَ عِشَاءً فَضَرَبَ
بَابِيْ ضَرْبًا شَدِيْدًا وَّ قَالَ اَنَائِمٌ
هُوَ فَفَزِعْتُ فَخَرَجْتُ اِلَيْهِ وَ
قَالَ حَدَثَ اَمْرٌ عَظِيْمٌ قُلْتُ مَا
هُوَ اَجَاءَتْ غَسَّانُ قَالَ لَا بَلْ

صلي الله عليه وسلم د شپې پورې ناراض ساتي. حفصې اووې، او ما اووې، تاواني شوه او تباه شوه. آيا تا ته ياد نه دي چه د رسول الله صلي الله عليه وسلم ناراضه کيدو سره الله ناراضه کيږي. او ته به هلاکه شې. رسول الله صلي الله عليه وسلم سره زيات ماوې تاوې مه کوه او نه حضور ته د څه خبرې جواب ګرځوه او مه د حضور نه جدا کيږه. او د کوم څيز چه دې خواهش وي نو خما نه غواړه، او ته دهوکه کيږه مه. ستا ګوانډې (يعني ستا بن) ستا نه زيات ښکلې ده. او د رسول الله صلي الله عليه وسلم زياته خوښه ده. دې نه بي بي عائشه مراد وه. او هغه زمانه کښې مونږ خلقو کښې د دې خبرې شهرت وو، چه د غسان خلق مونږ سره جنګ کولو د پاره اسونو د پاره نعلونه وهي (يعني تياري کوي) خما ملګرې (انصاري) د خپل وار په ورځ رسول الله صلي الله عليه وسلم له ورغې. او ماسختن وخت واپس شو نو خما دروازه ئې زور سره اووهله. او وئيلې ولې عمر اوده دې څه زه په ويره هغه له راووتم، نو هغه اووې، چه يوه لويه حادثه شوې ده. ما نپوس اوکه، ولې د غسان خلق (د حملې په خيال) راغلل څه، نه، هغه اووې بلکه د دې نه هم سخته او لويه حادثه شوې ده، رسول الله صلي الله عليه وسلم خپلو بيبيانو له طلاق ورکړلو. ما اووې حفصه خو تاوان او نقصان کښې پاتې شوه. خما د مخکښې نه دا ګمان وو، چه داسې به کيږي. ما کپړې واغستې، او نبي صلي الله عليه وسلم سره م د سحر مونځ ادا که. حضور بالاخانې ته تشريف يوړلو. او هلته تنهائي کښې وو. زه حفصې له ورغلم، نو څه ګورم چه

أَعْظَمُ مِنْهُ وَأَطْوَلُ طَلَّقَ رَسُولُ
اللهِ صَلَّى اللّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نِسَاءَهُ
قَالَ قَدْ خَابَتْ حَفْصَةُ وَخَسِرَتْ
كُنْتُ أَظُنُّ أَنَّ هٰذَا يُوشِكُ أَنْ
يَكُوْنَ فَجَمَعْتُ عَلَيَّ ثِيَابِيْ فَصَلَّيْتُ
صَلٰوةَ الْفَجْرِ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّهُ
عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَدَخَلَ مَشْرُبَةً
لَهُ فَاعْتَزَلَ فِيْهَا فَدَخَلْتُ عَلٰى
حَفْصَةَ فَاِذَا هِيَ تَبْكِيْ قُلْتُ
مَا يُبْكِيْكِ اَوَلَمْ اَكُنْ حَذَّرْتُكِ
اَطَلَّقَكُنَّ رَسُوْلُ اللّهِ صَلَّى اللّهُ
عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَتْ لَا اَدْرِيْ هُوَ ذَا فِي
الْمَشْرُبَةِ فَخَرَجْتُ فَجِئْتُ الْمِنْبَرَ فَاِذَا
حَوْلَهُ رَهْطٌ يَبْكِيْ بَعْضُهُمْ فَجَلَسْتُ
مَعَهُمْ قَلِيْلًا ثُمَّ غَلَبَنِيْ مَا اَجِدُ
فَجِئْتُ الْمَشْرُبَةَ الَّتِيْ هُوَ فِيْهَا فَقُلْتُ
لِغُلَامٍ لَهُ اَسْوَدَ اسْتَأْذِنْ لِعُمَرَ فَدَخَلَ
فَكَلَّمَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
ثُمَّ خَرَجَ فَقَالَ ذَكَرْتُكَ لَهُ فَصَمَتَ
فَانْصَرَفْتُ حَتّٰى جَلَسْتُ مَعَ الرَّهْطِ
الَّذِيْنَ عِنْدَ الْمِنْبَرِ ثُمَّ غَلَبَنِيْ مَا اَجِدُ
فَجِئْتُ فَذَكَرَ مِثْلَهُ فَجَلَسْتُ مَعَ
الرَّهْطِ الَّذِيْنَ عِنْدَ الْمِنْبَرِ ثُمَّ غَلَبَنِيْ
مَا اَجِدُ فَجِئْتُ الْغُلَامَ فَقُلْتُ اسْتَأْذِنْ
لِعُمَرَ فَذَكَرَ مِثْلَهُ فَلَمَّا وَلَّيْتُ مُنْصَرِفًا
فَاِذَا الْغُلَامُ يَدْعُوْنِيْ قَالَ اَذِنَ لَكَ

هغه ژاړي. ما ترې تپوس او که' ولې ژاړې' آيا ماته د
مخکښ نه ويرولې نه وې' آيا رسول الله صلي الله عليه
وسلّم تاسو له طلاق در که. حفصےؓ اووې' معلومه نه ده.
حضور صلي الله عليه وسلّم دا' وخت بالا خانه کښ
دے. زه بهر اووتم' او منبر له راغلم' نو اوم ليدل' چه
خلق د منبر نه ګير چاپيره ناست دي. او بعضے پکښ په
ژړا دي' زه لږ ساعت هغوي سره کيناستم. بيا په ما خما
خيال غلبه او کړه. نو زه هغې بالاخانې له راغلم' کوم
خانې چه حضورؐ تشريف فرما وو. ما د حضورؐ يو تور
رنګي غلام ته اووې' چه عمرؓ د پاره (د حضورؐ نه)
اجازت اوغواړه' هغه غلام دننه ورغے' نبي صلي الله عليه
وسلّم سره ئې خبرے او کړے. بيا بهرته راغے' چه ما
ستاسو ذکر حضورؐ سره او که' خو هغوي خاموش پاتے
شو' نو زه واپس شوم' او هغې ډلے سره کيناستم' چه
منبر سره وه. بيا په ما خفګان غلبه او کړه' نو هغې غلام
له راغلم' ما ورته اووې' عمرؓ د پاره اجازت اوغواړه. بيا
هغې غلام بيان او که. زه هغې ډلے سره کيناستم' چه منبر
سره ناسته وه. بيا مانه او نه شوه' او هغه خيال راباندې
غالب شو' نو زه هغې غلام له راغلم' ورته م اووې' عمرؓ
د پاره اجازت اوغواړه' بيا هغه هغسے بيان او که. چه زه
کور ته د واپس کيدو د پاره راو ګرځيدم' نو ناڅاپه هغې
غلام ماته اواز او که. اوونيلے' چه رسول الله صلي الله
عليه وسلّم تاسو ته اجازت در کړلو. زه حضورؐ له ورغلم'
نو څه ګورم چه حضورؐ په يو خالي پوزکي ملاست دے.
او د حضورؐ د جسم او پوزکي مينځ کښ څه بستره نه
وه. او د پوزکي خاپونه د حضورؐ په اړخ لږيدلي وو. او د

رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
فَدَخَلْتُ عَلَيْهِ فَاِذَا هُوَ مُضْطَجِعٌ عَلٰى
رِمَالِ حَصِيْرٍ لَيْسَ بَيْنَهُ وَ بَيْنَهُ فِرَاشٌ
قَدْ اَثَّرَ الرِّمَالُ بِجَنْبِهٖ مُتَّكِئٌ عَلٰى
وِسَادَةٍ مِّنْ آدَمٍ حَشْوُهَا لِيْفٌ فَسَلَّمْتُ
عَلَيْهِ ثُمَّ قُلْتُ وَ اَنَا قَائِمٌ طَلَّقْتَ
نِسَآءَكَ فَرَفَعَ بَصَرَهٗ اِلَيَّ فَقَالَ لَا ثُمَّ
قُلْتُ وَ اَنَا قَائِمٌ اسْتَاْنِسُ يَا رَسُوْلَ
اللّٰهِ لَوْ رَاَيْتَنِيْ وَ كُنَّا مَعْشَرَ قُرَيْشٍ
نَغْلِبُ النِّسَآءَ فَلَمَّا قَدِمْنَا عَلٰى قَوْمٍ
تَغْلِبُهُمْ نِسَآؤُهُمْ فَذَكَرَهٗ فَتَبَسَّمَ
النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ
قُلْتُ لَوْ رَاَيْتَنِيْ وَ دَخَلْتُ عَلٰى
حَفْصَةَ فَقُلْتُ لَا يَغُرَّنَّكِ اِنْ كَانَتْ
جَارَتُكِ هِيَ اَوْضَأُ مِنْكِ وَ اَحَبُّ اِلَى
النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُرِيْدُ
عَائِشَةَ فَتَبَسَّمَ اُخْرٰى فَجَلَسْتُ حِيْنَ
رَاَيْتُهٗ تَبَسَّمَ ثُمَّ رَفَعْتُ بَصَرِيْ فِيْ
بَيْتِهٖ فَوَاللّٰهِ مَا رَاَيْتُ فِيْهِ شَيْئًا يَرُدُّ
الْبَصَرَ غَيْرَ اَهَبَةٍ ثَلٰثَةٍ فَقُلْتُ ادْعُ اللّٰهَ
فَلْيُوَسِّعْ عَلٰى اُمَّتِكَ فَاِنَّ فَارِسَ
وَالرُّوْمَ وُسِّعَ عَلَيْهِمْ وَ اُعْطُوا الدُّنْيَا
وَهُمْ لَا يَعْبُدُوْنَ اللّٰهَ وَ كَانَ مُتَّكِئًا
فَقَالَ اَوَفِيْ شَكٍّ اَنْتَ يَا ابْنَ الْخَطَّابِ
اُولٰٓئِكَ قَوْمٌ عُجِّلَتْ لَهُمْ طَيِّبَاتُهُمْ
فِي الْحَيٰوةِ فَقُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ

خرمنے یو بالښت سره ئے ډډه وهلے وه. چه د قجورو د
پوستکو نه ډک شوے وو. ما حضورؐ ته سلام او کړ بیا
ما په ولاړه، ولاړه تپوس او کړه، چه تاسو خپلو بیبیانو له
طلاق ورکړے، حضورؐ ستر ګے راپورته کړے، او وے
فرمائیل: نه، بیا ما په ولاړه، ولاړه د زړه غلولو د پاره
اووے، یا رسول الله، ګورے کنه، مونږ قریش خلق په
ښځو غالب وو. بیا چه مونږ داسے قوم له راغلو، چه په
هغوي ښځے غالبے وے. بیائے ټوله قیصه بیان کړه. نو
نبي صلي الله علیه وسلم مسکے شولو. بیا ما عرض
او کړه، کاش چه تاسو لیدلے وے، چه زه حفصےؓ له
ورغلم، نو ما ورته اووے، ته د دے خبرے نه بے خبره مه
اوسه، چه ستا ګوانډئي بي بي عائشهؓ ستا نه زیاته حسینه
ده، او د نبي صلي الله علیه وسلم زیاته خوښه ده، نو
حضورؐ مسکے شولو. ما چه حضورؐ په مسکا اولید، نو زه
کیناستم، بیا ما د حضورؐ کور کښې نظر او کړ، نو اوم
لیدل چه، سیوا د درے کچه څرمنو نه بل څه په نظر نه
راتله. ما عرض او کړ ستاسو د الله نه دعا اوغواړئ، چه
ستاسو په امت فراخي راولي، ځکه چه فارس او روم والو
باندے فراخي راغلے ده، او هغوي ته دنیا (د نعمتونو
فراخي) ورکړے شوے ده، حالانکه هغوي د الله عبادت
نه کوي. دغه وخت حضورؐ ډډه وهلے وه. حضورؐ
اوفرمائیل: اے ابن خطاب، آیا تاته په دے خبره کښې
شک دے، چه دغه خلق داسے قوم دے، چه هغوي ته د
هغوي د نیکو (نیکیو) جزا دنیا کښې ورکړے شوے ده.
ما عرض او کړه یا رسول الله ما د پاره د بخښنے دعا
او کړئے. نبي صلي الله علیه وسلم د هغے راز په وجه د

أَسْتَغْفِرُلِي فَاعْتَزَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ اَجْلِ ذَالِكَ الْحَدِيْثِ حِيْنَ اَفْشَتْهُ حَفْصَةُ اِلٰى عَآئِشَةَ وَ كَانَ قَدْ قَالَ مَا اَنَا بِدَاخِلٍ عَلَيْهِنَّ شَهْرًا مِنْ شِدَّةِ مَوْجِدَتِهٖ عَلَيْهِنَّ حِيْنَ عَاتَبَهُ اللّٰهُ فَلَمَّا مَضَتْ تِسْعٌ وَّ عِشْرُوْنَ دَخَلَ عَلٰى عَآئِشَةَ فَبَدَاَ بِهَا فَقَالَتْ لَهٗ عَآئِشَةُ اِنَّكَ اَقْسَمْتَ اَنْ لَّا تَدْخُلَ عَلَيْنَا شَهْرًا وَّ اِنَّا اَصْبَحْنَا لِتِسْعٍ وَّ عِشْرِيْنَ لَيْلَةً اَعُدُّهَا عَدًّا فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الشَّهْرُ تِسْعٌ وَّ عِشْرُوْنَ وَ كَانَ ذَالِكَ الشَّهْرُ تِسْعٌ وَّ عِشْرُوْنَ قَالَتْ عَآئِشَةُ فَاُنْزِلَتْ اٰيَةُ التَّخْيِيْرِ فَبَدَاَ بِيْ اَوَّلَ امْرَاَةٍ فَقَالَ اِنِّيْ ذَاكِرٌ لَّكِ اَمْرًا وَّلَا عَلَيْكِ اَنْ لَّا تَعْجَلِيْ حَتّٰى تَسْتَامِرِيْ اَبَوَيْكِ قَالَتْ قَدْ عَلِمَ اَنَّ اَبَوَيَّ لَمْ يَكُوْنَا يَاْمُرَانِيْ بِفِرَاقِهٖ ثُمَّ قَالَ اِنَّ اللّٰهَ قَالَ يٰاَيُّهَا النَّبِيُّ قُلْ لِّاَزْوَاجِكَ اِلٰى قَوْلِهٖ عَظِيْمًا قُلْتُ اَفِيْ هٰذَا اسْتَامِرُ اَبَوَيَّ فَاِنِّيْ اُرِيْدُ اللّٰهَ وَ رَسُوْلَهٗ وَالدَّارَ الْاٰخِرَةَ ثُمَّ خَيَّرَ نِسَآءَهٗ فَقُلْنَ مِثْلَ مَا قَالَتْ عَآئِشَةُ.

خپلو بيبيانو نه جدا شوے وو. چه حفصے عائشے ته ظاهر كړے وو. او حضور فرمائيلي وو چه دے بنځو له يوه مياشت پورے نه ورځم. ځكه چه حضور هغوي ته ډير زيات غصه شوے وو. چه الله پرے عتاب كړے وو چه يو كم ديرش ورځے تيرے شوے. نو د ټولو نه مخكښ حضور بي بي عائشے له ورغے. حضور ته بي بي عائشے عرض اوكه، تاسو خو قسم خوړلے وو، چه مونږ له به يو مياشت پورے نه راځے. او اوس په يو كم ديرش شپے تيرے شوي دي، چه هغه زه شمارم، نبي صلي الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل، مياشت د يو كم ديرشو ورځو هم وي. او هغه مياشت د يو كم ديرشو، وه. د بي بي عائشے بيان دے، چه د تخيير آيت نازل شولو نو د ټولو نه مخكښ مانه حضور تپوس اوكه. حضور اوفرمائيل، زه تاته يوه خبره كوم، دا ضروري نه ده، چه ته دے سمدستي جواب راكړے، خو پوره چه خپل مور پلار سره مشوره اونه كړے. د بي بي عائشے بيان دے، حضور ته معلومه وه، چه خما مور پلار به ماته د جدائي مشوره رانكړي. بيا حضور دا، آيت تلاوت كه: يا ايها النبيُّ قل لازواجک . عظيما پورے. ما عرض اوكه، دے باب كښ د مور پلار نه څه صلاح واخلم، زه خو الله او د هغه رسول او د، آخرت كور خوښوم. بيا حضور خپلو ټولو بيبيانو له اختيار وركه. نو هغے ټولو هغه جواب اوكه، كوم چه بي بي عائشے كړے وو۔

۱. د ټولو بيبيانو نمبر مقرر وو او د هغے مطابق به حضور اكرم صلي الله عليه وسلّم هغوي كره ورتللو. نمبر وو د عائشے رضي الله تعالي عنها او د هم هغے په كور كښ په دغه ورځ د حضور قيام وو ليكن اتفاقا په څه وجه حضور بي بي ماريه قبطيے رضي الله عنها كره تشريف يوړو. بي بي حفصے رضي الله عنها حضور لره هلته اوليدو او راغله عائشے رضي الله عنها ته ئے اووے چه نمبر ستا دے او حضور

اكرم صلي الله عليه وسلّم ماريه رضي الله عنها كره تلې ده. عائشې رضي الله عنها له په دې باندې ډيره غصه ورغله. همدې واقعې طرفته اشاره ده چه حضور اكرم صلي الله عليه وسلّم لوظ كړے وو چه يو مياشتې پورې به د ازواجو مطهراتو نه جُدا اوسيږم او په دې موده كښې به د هغوئ خوا له نه ورځم. دې سره صحابه ډير پريشانه شو او ازواجو مطهراتو او د هغوئ عزيزانو خپلوانو پورې خبره پاتې نشوه بلكه تول صحابه په دې فيصلې باندې ډير پريشانه شول. د حضور اكرم صلي الله عليه وسلّم ددې لوظ تعبير په احاديثو كښې د "ايلاء" په لفظ سره راځي او دا ډيره مشهوره واقعه ده. د دې نه مخكښې په بخاري كښې هم ددې ذكر راغلے دے. د ايلا اسباب په احاديثو كښې مختلف راغلي دي. يو خو هغه يكوم چه په دې حديث كښې ذكر دے. په بعضو روايتونو كښې ددې سبب د ازواجو مطهراتو هغه مطالبه بيان شوې ده چه اخراجات هغوئ ته د ضرورت نه كم ملاويدل، تنګي به وه، دې د پاره ټولو بيبيانو حضور اكرم ته وئيلي وو چه موږ ته اخراجات زيات ملاويدل پكار دي. په بعضو روايتونو كښې د شاتو واقعه بيان شوې ده. علماؤ ليكلي دي چه په اصل كښې دا ټولې واقعې پرله پسې پېښې شوې وې او ددې ټولو نه متاثر كيدلو سره حضور اكرم ايلا كړې وه د پاره ددې چه بيبيانو ته تنبيه اوشي.

ازواج مطهرات د هر څه كيدلو باوجود بياهم انسانانې وې، دې د پاره كله د بنې په رقابت كښې كله د څه بلې انساني جذبې نه متاثر كيدلو سره داسې قسمه إقدامات به ترينه كيدل كومو سره به چه حضور اكرم ته تكليف رسيدلو. په دې باب كښې ئې دا حديث ځكه ذكر كړے دے چه په دې كښې د بالا خانې ذكر دے كومه كښې چه حضور اكرم ځان له والې اختيار كړے وو.

۱۰۰۰۰: حَدَّثَنَا ابْنُ سَلَامٍ حَدَّثَنَا الْفَزَارِيُّ عَنْ حُمَيْدٍ الطَّوِيلِ عَنْ أَنَسٍ قَالَ آلَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ نِسَائِهِ شَهْرًا وَكَانَتْ انْفَكَّتْ قَدَمُهُ فَجَلَسَ فِي عُلِّيَّةٍ لَهُ فَجَاءَ عُمَرُ فَقَالَ أَطَلَّقْتَ نِسَاءَكَ قَالَ لَا وَلَكِنِّي آلَيْتُ مِنْهُنَّ شَهْرًا فَمَكَثَ تِسْعًا وَعِشْرِينَ ثُمَّ نَزَلَ فَدَخَلَ عَلَى نِسَائِهِ.

۱۰۰۰۰: ابن سلام. فزاري. حميد طويل. انسؓ نه روايت كوي، چه رسول الله صلي الله عليه وسلّم خپلو بيبيانو ته يو مياشت پورې دَ، نه ورتلو قسم اوخوړو، او دَ حضورؐ پښه كښې څه رګ اوړيدلے (بريخ راغلے) وو. په دې وجه حضورؐ خپلے يوې بالاخانه كښې كيناستلو. حضرت عمرؓ حاضر شو. تپوس ئې او كه، آيا تاسو خپلو بيبيانو له طلاق وركړے دے. حضورؐ ورته اوفرمائيل، نه، ليكن ما هغوي سره دَ، يو مياشت پورې ايلا كړے ده (قسم م خوړلے دے، چه نه به ورځم) نويو كم ديرش ورځې نه ورتلو. بيا راكوز شولو او خپلو بيبيانو له ورغے [1].

[1] ددې نه مخكښې په يو نوټ كښې موږ وضاحت كړے وو چه اس نه پريوتلو سره د خپې مبارك اوړيدل او د ايلاء په واقعې كښې دَ زمانې فرق دے. د ايلاء واقعه په ۹ هـ كښې پېښه شوې وه او د اس نه پريوتلو واقعه ۵ هـ كښې پېښه شوه. ليكن چونكه دواړه خله حضورؐ بالا خانه كښې خانله والې اختيار كړې

رو دې د پاره زاويان بعضې وخت دواړه داسې يوځائې ذکر کوي لکه چه دواړه واقعې په يوځائې پيښې شوې وي.

په دې روايت کښې هم دغسې شوې دي. او د هغه دې قسمه روايتونو ظاهره کړه چه دواړه واقعې د يو سن او د يو وخت دي.

تاسو ددې نه مخکښې والا روايت نمبر ۲۲۹۳ دغه حضه دوباره اووايي کوم کښې چه ددې تصريح ده چه حضور اکرم د ايلاء په موقعه د سحر مونځ اوکړو کوم کښې چه حضرت عمر رضي الله عنه هم شريک وو، او بيا حضورﷺ بالا خانې ته تشريف يوړو، بل طرف ته کله چه حضورﷺ د سورلۍ نه پرېوتې وو نو هغوئ به بالاخانه کښې فرض مونځ هم په ناسته ادا کړلو، جومات ته د راتللو څو سوال نه وو. د روايت ددې تصريح نه هم د دواړو واقعاتو په مختلفو اوقاتو کښې کيدل ثابتيږي. همدې هم په دواړو واقعاتو کښې تقريبا د څلورو کالو فاصله ده.

## بــاب ٦٦٦ : مَــنُ عَــقَــلَ بَــعِيُــرَهُ عَــلَــى الْبَلَاطِ اَوُ بَــابِ الْمَسُجِدِ.

باب ٦٦٦ : د هغې سړي بيان چه خپل اوښ د جمات په دروازه په خوا کې کانړو يا د جماعت په دروازه اوتړي.

۱. د مسجد نبوي نه بازاره پورې کانړي غوړولې شوي وُو چه هغې ته به ئې بلاط وئيلې. د جومات دروازه په داسې ځائې کښې ده کوم چه د چا ملکيت نه وي. دې د پاره هغه څه خاور تړل د يو داسې زمکې نه نفع اخستل شو کومه چه د چا په ملکيت کښې هم نه ده.

۱۰۰۱ : حَدَّثَنَا مُسُلِمٌ حَدَّثَنَا اَبُو عُقَيُلٍ حَدَّثَنَا اَبُو الْمُتَوَكِّلِ النَّاجِيُّ قَالَ اَتَيُتُ جَابِرَ بُنَ عَبُدِ اللّٰهِ قَالَ دَخَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيُهِ وَسَلَّمَ الْمَسُجِدَ فَدَخَلُتُ فِيُهِ وَ عَقَلُتُ الْجَمَلَ فِيُ نَاحِيَةِ الْبَلَاطِ فَقُلُتُ هٰذَا جَمَلُكَ فَخَرَجَ فَجَعَلَ يُطِيُفُ بِالْجَمَلِ قَالَ الثَّمَنُ وَالْجَمَلُ لَكَ.

۱۰۰۱ : مسلم. ابوعقيل. ابوالمتوکل ناجي. جابر بن عبدالله نه روايت کوي. د هغه بيان دې چه نبي صلي الله عليه وسلم جماعت کښې داخل شو نو زه حضورﷺ له راغلم، او اوښ م د جمات د دروازې په کُټ کښې اوتړلو. ما عرض اوکه، چه دا ستاسو اوښ دې. حضورﷺ بهر تشريف راوړو، او د اوښ نه تاو راتاو شولو. او وې فرمائيل. قيمت او اوښ دواړه ستا دي (يعني دواړه خان سره يوسه).

## بــاب ٦٦٧ : اَلْـوَقُـوُفِ وَالْبَوُلِ عِنْدَ سُبَاطَةِ قَوُمٍ.

باب ٦٦٧ : د يو قوم ديران سره د اېسارېدو او د ورو بولو کولو بيان.

۱۰۰۲ : حَدَّثَنَا سُلَيُمٰنُ بُنُ

۱۰۰۲ : سليمان بن حرب. شعبه.

حَرْبٍ عَنْ شُعْبَةَ عَنْ مَنْصُوْرٍ عَنْ اَبِيْ وَآئِلٍ عَنْ حُذَيْفَةَ قَالَ لَقَدْ رَأَيْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَوْ قَالَ لَقَدْ اَتَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سُبَاطَةَ قَوْمٍ فَبَالَ قَآئِمًا.

منصور. ابو وائل. حذيفه نه روايت كوي: دَ هغه بيان دے، چه ما دَ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم نه يا، دا بيان ئے اوكه: چه نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم د يو قوم ډيران پله راغے، او، اودريدلو، واړه بول ئے اوكړل.

بَاب ٦٦٨ : مَنْ اَخَذَ الْغُصْنَ وَمَا يُؤْذِي النَّاسَ فِي الطَّرِيْقِ فَرَمٰى بِهٖ.

باب ٦٦٨ : د هغے سړي بيان، چه څانګے او خلقو ته تكليف وركونكي څيزونه د لارے نه لرے اوغورزوي.

١٠٠٣ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ سُمَيٍّ عَنْ اَبِيْ صَالِحٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ بَيْنَمَا رَجُلٌ يَمْشِيْ بِطَرِيْقٍ وَجَدَ غُصْنَ شَوْكٍ فَاَخَذَهٗ فَشَكَرَ اللّٰهُ لَهٗ فَغَفَرَ لَهٗ.

١٠٠٣ : عبداللّٰه. مالك. سمي. ابو صالح. ابو هريرهؓ نه روايت كوي. رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل: يو ځل يو سړے په لاره روان وو، هغه يو، ازغن بناخ بيامُند: نو هغه ئے اوچت كه اللّٰه تعالي دَ هغه قدر اوكه او وے بښلو.

بَاب ٦٦٩ : اِذَا اخْتَلَفُوْا فِي الطَّرِيْقِ الْمِيْتَآءِ وَهِيَ الرَّحْبَةُ تَكُوْنُ بَيْنَ الطَّرِيْقِ ثُمَّ يُرِيْدُ اَهْلُهَا الْبُنْيَانَ فَتُرِكَ مِنْهَا لِلطَّرِيْقِ سَبْعَةُ اَذْرُعٍ.

باب ٦٦٩ : عامه لاره كښې چه وسيع ميدان وي: چه خلق اختلاف اوكړي، او د هغے مالك هلته مكان جوړول غواړي نو د لارے د پاره دے اووه ګزه پريږدي.

١٠٠٤ : حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ اِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا جَرِيْرُ بْنُ حَازِمٍ عَنِ الزُّبَيْرِ بْنِ خِرِّيْتٍ عَنْ عِكْرِمَةَ قَالَ سَمِعْتُ اَبَا هُرَيْرَةَ قَالَ قَضَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا تَشَاجَرُوْا فِي الطَّرِيْقِ بِسَبْعَةِ اَذْرُعٍ.

١٠٠٤ : موسي بن اسمٰعيل. جرير بن حازم. زبير بن خريت. عكرمه. ابوهريرهؓ نه روايت دے، د هغه بيان دے: كوم وخت چه خلقو د لارے متعلق جګړه اوكړه: نو نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم د اووه ګزه (شرعي) پريښودلو حكم اوكه.

بَاب ٦٧٠ : النُّهْبٰى بِغَيْرِ اِذْنٍ

باب ٦٧٠ : د مالك د اجازت بغير لوټ كولو

صَاحِبِهٖ وَ قَالَ عُبَادَةُ بَايَعْنَا النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلَّا نَنْتَهِبَ.

بيان. عباده اووے' مونږ په دے خبره نبي صلي الله عليه وسلم نه بيعت او که' چه لُوټ به نه کوو.

۱۰۰۵: حَدَّثَنَا اٰدَمُ ابْنُ اَبِيْ اِيَاسٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا عَدِيُّ بْنُ ثَابِتٍ قَالَ سَمِعْتُ عَبْدَ اللّٰهِ ابْنَ يَزِيْدَ الْاَنْصَارِيَّ وَهُوَ جَدُّهٗ اَبُوْ اُمِّهٖ قَالَ نَهَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ النُّهْبٰى وَالْمُثْلَةِ.

۱۰۰۵: شعبه. عدي بن ثابت. عبدالله بن يزيد انصاري چه دَ زيد بن ثابت نيکه (نانا) وو' روايت کوي' د هغه بيان دے' چه نبي صلي الله عليه وسلم د لوټ کولو نه او مثله کولو نه منع فرمائيلے ده.

ف: مثله دَ چا پوزه او غوږ پريکول او شکل ئے ورانول.

۱۰۰۶: حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ عُفَيْرٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ اللَّيْثُ حَدَّثَنَا عُقَيْلٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ اَبِيْ بَكْرِ ابْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَزْنِي الزَّانِيْ حِيْنَ يَزْنِيْ وَهُوَ مُؤْمِنٌ وَلَا يَشْرَبُ الْخَمْرَ حِيْنَ يَشْرَبُ وَهُوَ مُؤْمِنٌ وَلَا يَسْرِقُ حِيْنَ يَسْرِقُ وَهُوَ مُؤْمِنٌ وَلَا يَنْتَهِبُ نُهْبَةً يَرْفَعُ النَّاسُ اِلَيْهِ فِيْهَا اَبْصَارَهُمْ حِيْنَ يَنْتَهِبُهَا وَهُوَ مُؤْمِنٌ وَعَنْ سَعِيْدٍ وَ اَبِيْ سَلَمَةَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِثْلَهٗ اِلَّا النُّهْبَةَ.

۱۰۰۶: سعيد بن عفير. ليث. عقيل. ابن شهاب. ابوبکر بن عبدالرحمن. ابوهريرهؓ نه روايت کوي. د هغه بيان دے نبي صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل' چه زاني دَ' مومن کيدو په صورت کښ زنا' نه کوي. او نه دَ مومن کيدو په حالت کښ شراب څکي. او شراب څکونکے دَ مومن کيدو په حالت کښ شراب نه څکي' نه غلا (چوری) کوي. او نه دَ مومن کيدو په حالت کښ غلا (چوری) کوي. او نه دَ مومن کيدو په حالت کښ ښوک داسے لوټې' چه خلق هغه ته نظر اوچت کړي او ګوري ورته. او سعيد او ابوسلمه. ابوهريرهؓ د نبي صلي الله عليه وسلم نه دَ دے په مثل روايت کوي' خو هغے کښ د لوټلو ذکر نشته.

## باب ۱۷۱: كَسْرِ الصَّلِيْبِ وَ قَتْلِ الْخِنْزِيْرِ.

## باب ۱۷۱: دَ صليب ماتولو او خنزير وژلو بيان.

۱۰۰۷: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا الزُّهْرِيُّ

۱۰۰۷: علي بن عبدالله. سفيان. زهري. سعيد بن مسيب. حضرت ابوهريرهؓ. رسول الله

قَالَ اَخْبَرَنِيْ سَعِيْدُ بْنُ الْمُسَيَّبِ سَمِعَ اَبَا هُرَيْرَةَ عَنْ رَّسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا تَقُوْمُ السَّاعَةُ حَتّٰى يَنْزِلَ فِيْكُمُ ابْنُ مَرْيَمَ حَكَمًا مُقْسِطًا فَيَكْسِرُ الصَّلِيْبَ وَ يَقْتُلُ الْخِنْزِيْرَ وَ يَضَعُ الْجِزْيَةَ وَ يَفِيْضُ الْمَالُ حَتّٰى لَا يَقْبَلَهُ اَحَدٌ.

صلي الله عليه وسلّم نه روايت کوي، حضور اوفرمائيل: قيامت به هغه وخت پورې نه راځي، څو پورې چه تاسو کښې ابن مريم (عيسٰي عليه السلام) د منصف حاکم حيث راکوز نشي. هغه به صليب مات کړي. او خنزير به اووژني. او جزيه به معاف کړي. او مال به دومره کثرت سره وي، چه هيڅوک به د هغې اخستونکې نه وي.

بَاب ۲۷۲: هَلْ تُكْسَرُ الدِّنَانُ الَّتِيْ فِيْهَا الْخَمْرُ اَوْ تُخَرَّقُ الزِّقَاقُ فَاِنْ كَسَرَ صَنَمًا اَوْ صَلِيْبًا اَوْ طَنْبُوْرًا او مَا لَا يُنْتَفَعُ بِخَشَبِهِ وَ اُتِيَ شُرَيْحٌ فِيْ طُنْبُوْرٍ كُسِرَ فَلَمْ يَقْضِ فِيْهِ بِشَيْءٍ.

باب ۲۷۲: آيا مټکې (چاټي) هم ماتې کړې شي، چه هغې کښې شراب ايښودې شي، او مشکې دې اوشلولې شي. او څوک سړې چه بت يا صليب يا طنبور يا بې فائدې څيز خپل لرګي سره مات کړي (نو څه حکم دې) او شريح ته د يو طنبور، د ماتولو مقدمه پيش شوه، نو هغې کښې ئې د تاوان حکم ونه کړلو.[1]

۱. په دې باب کښې لوئې تفصيلات دي. په اسلامي سلطنت کښې غير مسلم هم اوسيږي چاته چه د خپلو مذهبي عقائدو په باب کښې اسلام پوره آزادي ورکړې ده. دې د پاره د هغوي په معاملاتو کښې د دې قسمه مداخلت په عامو حالاتو کښې هيڅ سوال نه پيدا کيږي. په حنفي فقه کښې دي چه کهچرې محتسب کوم چه د اسلامي مبادي ؤ او احکامو عالم وي او د چا په ذمه چه د عامو خلقو د حالاتو او رُجحاناتو خصمانه کول وي که دده په حکم سره ئې داسې او کړل نو په ماتونکي باندې هيڅ جرمانه نيشته کنې د هغه څيز د اصل ماليت تاوان به ورکول وي. البته د هغې په جوړولو باندې چه کوم لاګت راغلې وي په هغې باندې به څه وصولولې نشي.

۱۰۰۸: حَدَّثَنَا اَبُوْ عَاصِمٍ الضَّحَّاكُ بْنُ مَخْلَدٍ عَنْ يَّزِيْدَ بْنِ اَبِيْ عُبَيْدٍ عَنْ سَلَمَةَ بْنِ الاَكْوَعِ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَاَى نِيْرَانًا تُوْقَدُ يَوْمَ خَيْبَرَ قَالَ عَلٰى مَا تُوْقَدُ هٰذِهِ النِّيْرَانُ قَالُوْا عَلَى الْحُمُرِ الْاِنْسِيَّةِ قَالَ اكْسِرُوْهَا وَ اَهْرِقُوْا قَالُوْا

۱۰۰۸: ابو عاصم. ضحاک. بن مخلد. يزيد بن ابي عبيد. سلمه بن اکوع نه روايت کوي، چه نبي صلي الله عليه وسلّم د خيبر په ورځ اور اوليده. نو حضور تپوس اوکه: دا اور څه څيز پسې بلولې شي. خلقو اووې. پالتو خرونو پسې (يعني د خرونو غوښه پخولې شي) حضور اوفرمائيل، کټوني ماتې کړئ. او غوښه اوغورځوئ. خلقو عرض اوکه: مونږ غوښه اوغورځوو، او کټوني اووينځو.

اَلاَنْهرِ يُقْهَا وَنَغْسِلُهَا قَالَ اغْسِلُوا.

پلتو: هغه چه كور كښ ساتلے شي.

۱۰۰۹: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا ابْنُ اَبِيْ نَجِيْحٍ عَنْ مُجَاهِدٍ عَنْ اَبِيْ مَعْمَرٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ دَخَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَكَّةَ وَحَوْلَ الْكَعْبَةِ ثَلٰثُمِائَةٍ وَّ سِتُّوْنَ نُصُبًا فَجَعَلَ يَطْعَنُهَا بِعُوْدٍ فِيْ يَدِهٖ وَ جَعَلَ يَقُوْلُ جَآءَ الْحَقُّ وَ زَهَقَ الْبَاطِلُ الْاٰيَةَ.

۱۰۱۰: حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ ابْنُ الْمُنْذِرِ حَدَّثَنَا اَنَسُ بْنُ عِيَاضٍ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ ابْنِ الْقٰسِمِ عَنْ اَبِيْهِ الْقَاسِمِ عَنْ عَائِشَةَ اَنَّهَا كَانَتْ اتَّخَذَتْ عَلٰى سَهْوَةٍ لَّهَا سِتْرًا فِيْهِ تَمَاثِيْلُ فَهَتَكَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاتَّخَذَتْ مِنْهُ نُمْرُقَتَيْنِ فَكَانَتَا فِي الْبَيْتِ يَجْلِسُ عَلَيْهِمَا.

باب ۷۶۳: مَنْ قَاتَلَ دُوْنَ مَالِهٖ.

۱۰۱۱: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يَزِيْدَ حَدَّثَنَا سَعِيْدٌ هُوَ ابْنُ اَبِيْ اَيُّوْبَ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبُو الْاَسْوَدِ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ ابْنِ عَمْرٍو قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ

حضورؐ ورته اوفرمائيل' دا اووينځئ.

۱۰۰۹: علي بن عبدالله. سفيان. ابن ابي نجيح. مجاهد. ابو معمر. عبدالله بن مسعودؓ نه روايت كوي' چه نبي صلي الله عليه وسلم مكه كښ داخل شو' هغه وخت د كعبے څلور طرف ته درے سوه شپيته بُتان وو. د حضورؐ لاس كښ يو لرګے وو' هغے سره حضورؐ هغه بُتان راغرځول. او دا ايت ئے تلاوت كولو: جاء الحق و زهق الباطل الخ.

۱۰۱۰: ابراهيم بن منذر. انس بن عياض. عبيدالله. عبدالرحمٰن بن قاسم. قاسم. بي بي عائشےؓ نه روايت كوي هغے د خپلے حجرے په تنبو (تمبو) يوه پرده اُويزانه كړے وه' چه په هغے تصويرونه وو' هغه نبي صلي الله عليه وسلم اوشلوله. نو بي بي عائشےؓ د هغے نه دوه ګدئ جوړے كړے' او هغه دواړه ګدئ هم كور كښ وے' چه په هغے به حضورؐ كيناستلو.

باب ۷۶۳: د هغے سړي بيان' چه د خپل مال د حفاظت د پاره جنګ اوكړي.

۱۰۱۱: عبدالله بن يزيد. سعيد بن ابي ايوب. ابو اسود. عكرمه. عبدالله بن عمرؓ نه روايت كوي' د هغه بيان دے' ما نبي صلي الله عليه وسلم نه واوريدل' كوم سړے چه د خپل مال په حفاظت كښ مړ شي' هغه شهيد

مَنْ قُتِلَ دُوْنَ مَالِهِ فَهُوَ شَهِيْدٌ.

دے.

باب ٦٧٤ : اِذَا كَسَرَ قَصْعَةً اَوْ شَيْئًا لِغَيْرِهِ.

باب ٦٧٤ : كه يو سړے د چا پيالۍ يا بل څيز مات كړي.

۱۰۱۲ : حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيٰى ابْنُ سَعِيْدٍ عَنْ حُمَيْدٍ عَنْ اَنَسٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ عِنْدَ بَعْضِ نِسَآئِهٖ فَاَرْسَلَتْ اِحْدٰى اُمَّهَاتِ الْمُؤْمِنِيْنَ مَعَ خَادِمٍ بِقَصْعَةٍ فَضَمَّهَا وَ جَعَلَ فِيْهَا الطَّعَامَ وَ قَالَ كُلُوْا وَ حَبَسَ الرَّسُوْلَ وَالْقَصْعَةَ حَتّٰى فَرَغُوْا فَدَفَعَ الْقَصْعَةَ الصَّحِيْحَةَ وَ حَبَسَ الْمَكْسُوْرَةَ وَ قَالَ ابْنُ اَبِيْ مَرْيَمَ اَخْبَرَنَا يَحْيَى بْنُ اَيُّوْبَ حَدَّثَنَا حُمَيْدٌ حَدَّثَنَا اَنَسٌ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۱۰۱۲ : مسدد. يحيي بن سعيد. حميد. انسؓ نه روايت كوي، نبي صلي الله عليه وسلّم خپلې يوې بي بي سره وو، نو امهات المؤمنين كښې يوې تنې خادمے يوے پيالۍ سره اولېږيده، چه هغے كښې طعام وو. بي بي عائشےؓ يو لاس (په هغے پيالۍ) اووهلو، نو هغه ماته شوه. نبي صلي الله عليه وسلّم د هغے پيالۍ جوړ ورروستلو، او هغے كښې ئے طعام كيښودلو. بيائے صحابهؓ ؤ ته اوفرمائيل، چه خورئي. او طعام راوړونكے او هغه پيالۍ ئے ايساره كړله. كوم وخت چه هغه خلق طعام نه فارغ شو، نو بله روغه پيالۍ ئے واپس كړه. او ماته پيالۍ ئے اوساتله. او د ابن مريم بيان دے، چه مونږ ته يحيي بن ايوب، هغه د حميد نه، حميد د، انس نه او، انس د نبي صلي الله عليه وسلّم نه دا حديث روايت كه.

باب ٦٧٥ : اِذَا هَدَمَ حَآئِطًا فَلْيَبْنِ مِثْلَهٗ.

باب ٦٧٥ : كه څوک د چا ديوال اوغرځوي نو هغسے د جوړ كړي.

۱۰۱۳ : حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ اِبْرَاهِيْمَ حَدَّثَنَا جَرِيْرُ بْنُ حَازِمٍ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ سِيْرِيْنَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ رَجُلٌ فِيْ بَنِيْ اِسْرَآئِيْلَ يُقَالُ لَهٗ جُرَيْجٌ يُصَلِّيْ فَجَآءَتْهُ اُمُّهٗ فَدَعَتْهُ فَاَبٰى اَنْ يُّجِيْبَهَا

۱۰۱۳ : مسلم بن ابراهيم. جرير بن حازم. محمد بن سيرين. ابوهريرهؓ نه روايت كوي، نبي صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل، بني اسرائيلو كښې يو سړے وو. د هغه نوم جريج وو. هغه مونځ كولو. چه د هغه مور راغله، هغه ئے اوبله، خو هغه جواب ورنه كه، او خپل زړه كښې ئے اووے چه زه مونځ او كړم، او كه د هغے د خبرے جواب وركړم. بيا د هغه مور هغه له راغله. اووے وئيل. ياالله، ده له مرګ رامه ولے، څو پورے چه د فاحشے

فَقَالَ اُجِيْبُهَا اَوْ اُصَلِّيْ ثُمَّ اَتَتْهُ فَقَالَتْ اَللّٰهُمَّ لَا تُمِتْهُ حَتّٰى تُرِيَهُ وُجُوْهَ الْمُوْمِسَاتِ وَ كَانَ جُرَيْجٌ يُصَلِّيْ فِيْ صَوْمِعَتِهٖ فَجَآءَ تْهُ فَقَالَتْ اِمْرَاةٌ لَاَفْتِنَنَّ جُرَيْجًا فَتَعَرَّضَتْ لَهٗ فَكَلَّمَتْهُ فَاَبٰى فَاَتَتْ رَاعِيًا فَاَمْكَنَتْهُ مِنْ نَفْسِهَا فَوَلَدَتْ غُلَامًا فَقَالَتْ هُوَ مِنْ جُرَيْجٍ فَاَتَوْهُ وَ كَسَرُوا صَوْمَعَتَهٗ فَاَنْزَلُوْهُ وَسَبُّوْهُ فَتَوَضَّاَ وَصَلّٰى ثُمَّ اَتَى الْغُلَامَ فَقَالَ مَنْ اَبُوْكَ يَا غُلَامُ قَالَ الرَّاعِيْ قَالُوْا نَبْنِيْ صَوْمَعَتَكَ مِنْ ذَهَبٍ قَالَ لَا اِلَّا مِنْ طِيْنٍ.

بنځے مخ او نه ويني. نو يوه ورځ چيلے عبادت خانه کښې وو. يو ښځے اووے چه زه به جريج (ډاډه کښې) اونښلوم. هغه ورته مخے ته راغله هغه سره يے خبرے اوکړے. ليکن هغه انکار اوکه نو يو کډبه نه ورعده اوخپل ځان يے هغه ته حواله که نو د هغه نه يے يو بچے پيدا شو بيانے دا مشهوره کړه چه دا د جريج خونے دے. خلق جريج له راغلل. د هغه عبادت خانه يے دړے وړے کړه. هغه يے د عبادت خانے نه ښکته راکوز کړو او هغه ته په کنځلو شو. جريج اودس اوکه او مونځ يے اوکه بيا هغے بچي له راغے. اووے ونيل اے بچيه ستا پلار څوک دے، هغے بچي جواب ورکه، ګډبه خلقو جريج ته اووے. مونږ ستا عبادت خانه د سرو رزو جوړ وو، جريج ورته اووے، نه. د خاورو ئے جوړه کړئ (څنګه چه مخکښې وه).

## بَابُ ٦٧٦ : الشَّرِكَةِ فِي الطَّعَامِ وَالنَّهْدِ وَالْعُرُوْضِ وَ كَيْفَ قِسْمَةُ مَا يُكَالُ وَ يُوْزَنُ مُجَازَفَةً اَوْ قَبْضَةً قَبْضَةً لَمَّا لَمْ يَرَ الْمُسْلِمُوْنَ فِي النَّهْدِ بَأْسًا اَنْ يَأْكُلَ هٰذَا بَعْضًا وَّ هٰذَا بَعْضًا وَّ كَذَالِكَ مُجَازَفَةُ الذَّهَبِ وَ الْفِضَّةِ وَ الْقِرَانُ فِي التَّمْرِ.

## باب ٦٧٦ : خوراک، د لارے توښه او اسباب کښې د شرکت بيان او هغه اپ تول شوے څيز څنګه څيز اندازے سره يا موټے موټے کړے څنګه دے تقسيم کړے شي. هر کله چه مسلمانان د لارے توښه کښې څه حرج اونه ګنړي. چه څه څيز دے او خوري او څه څيز هغه اوخوري. دغه شان سره سپين اندازے سره تقسيم کړي او قجورے سره قجورے يو ځائے کړے د خوړلو بيان.

١٠١٤ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ وَّهَبِ بْنِ كَيْسَانَ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ اَنَّهٗ قَالَ بَعَثَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

١٠١٤ : عبدالله بن يوسف، مالک، وهب بن کيسان. جابر بن عبدالله نه روايت کوي، د هغه بيان دے. رسول الله صلي الله عليه وسلم ساحل طرف ته يو لښکر اوليږلو. چه د هغے سردار يے ابو عبيده بن جراح

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعْثًا قِبَلَ السَّاحِلِ فَأَمَّرَ عَلَيْهِمْ أَبَا عُبَيْدَةَ بْنَ الْجَرَّاحِ وَهُمْ ثَلَاثُمِائَةٍ وَأَنَا فِيهِمْ فَخَرَجْنَا حَتَّى إِذَا كُنَّا بِبَعْضِ الطَّرِيقِ فَنِيَ الزَّادُ فَأَمَرَ أَبُو عُبَيْدَةَ بِأَزْوَادِ ذَالِكَ الْجَيْشِ فَجُمِعَ ذَالِكَ كُلُّهُ فَكَانَ مِزْوَدَيْ تَمْرٍ فَكَانَ يُقَوِّتُنَا كُلَّ يَوْمٍ قَلِيلًا قَلِيلًا حَتَّى فَنِيَ فَلَمْ يَكُنْ يُصِيبُنَا إِلَّا تَمْرَةٌ فَقُلْتُ وَمَا تُغْنِي تَمْرَةٌ فَقَالَ لَقَدْ وَجَدْنَا فَقْدَهَا حِينَ فَنِيَتْ قَالَ ثُمَّ انْتَهَيْنَا إِلَى الْبَحْرِ فَإِذَا حُوتٌ مِثْلُ الظَّرِبِ فَأَكَلَ مِنْهُ ذَالِكَ الْجَيْشُ ثَمَانِيَ عَشْرَةَ لَيْلَةً ثُمَّ أَمَرَ أَبُو عُبَيْدَةَ بِضِلَعَيْنِ مِنْ أَضْلَاعِهِ فَنُصِبَا ثُمَّ أَمَرَ بِرَاحِلَةٍ فَرُحِلَتْ ثُمَّ مَرَّتْ تَحْتَهُمَا فَلَمْ تُصِبْهُمَا.

مقرر که، او هغه خلق درې سوه سړي وو، زه هم هغې کښې ووم. مونږ خلق بهر اووتلو، تردې چه هم لاره کښې توښه ختمه شوه. ابو عبیده حکم اوکه، چه دَ دې لښکر ټول خلق دې خپله توښه یوځائې جمع کړي، نو هغه ټولې توښې یوځائې جمع کړې شوې، نو ټولې دَ قجورو دوه تهیلۍ شوې، چه دَ هغې نه به ئې روزانه مونږ خلقو له لږې لږې راکولې هر سړي ته به یوه یوه قجوره ورکیدې شوه. وهب اووې، یوې قجورې سره څه کیدې شي. جابر ورته اووې، او دَ هغې قدر هغه وخت معلوم شو. کوم وخت چه بالکل ختمې شوې (یعني یوه قجوره هم پاتې نه شوه) دَ، راوي بیان دې. بیا مونږ خلق سمندر ته اورسیدو نو دَ، وړې غنډۍ په شان یو کب (ماهی) په نظر راغې. لښکر اتلس ورځې پورې هغه کب اوخوړلو. بیا ابو عبیده حکم اوکه. نو د هغې کب دوه پښتۍ (پسلیاں) ئې اودرولې. بیا دَ اوښ دَ تیریدلو حکم ئې اوکه. نو اوښ ذ هغې نه اووتلو. او پښتۍ ورسره اونه لګیدلې.

۱۵۱۵ : حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ مَرْحُومٍ حَدَّثَنَا حَاتِمُ ابْنُ إِسْمٰعِيلَ عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي عُبَيْدٍ عَنْ سَلَمَةَ قَالَ خَفَّتْ أَزْوَادُ الْقَوْمِ وَأَمْلَقُوا فَأَتَوُا النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي نَحْرِ إِبِلِهِمْ فَأَذِنَ لَهُمْ فَلَقِيَهُمْ عُمَرُ فَأَخْبَرُوهُ فَقَالَ مَا بَقَاؤُكُمْ بَعْدَ إِبِلِكُمْ فَدَخَلَ عَلَى النَّبِيِّ

۱۵۱۵ : بشر بن مرحوم. حاتم بن اسمعیل. یزید بن ابي عبید. سلمهؓ نه روایت کوي، چه دَ خلقو توښې ختمې شوې او خلق متازه شو، نو دَ نبي صلي الله علیه وسلم خدمت کښې حاضر شو، او دَ خپل اوښ دَ پریکولو اجازت ئې اوغوښتلو. حضورؐ هغې خلقوته اجازت ورکړلو. حضرت عمرؓ خلقو سره یوځائې شو. خلقو ورته ټوله قیصه بیان کړه، حضرت عمرؓ ورته اوفرمائیل، دَ خپلو اوښانو دَ ذبح کولو نه پس ستاسو د بقا څه سامان دې. بیا دَ، نبي صلي الله علیه وسلم

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ مَا بَقَاؤُهُمْ بَعْدَ اِبِلِهِمْ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَادِ فِي النَّاسِ فَيَأْتُوْنَ بِفَضْلِ اَزْوَادِهِمْ فَبُسِطَ لِذَالِكَ نِطْعٌ وَّ جَعَلُوْهُ عَلَى النِّطْعِ فَقَامَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَدَعَا وَ بَرَّكَ عَلَيْهِ ثُمَّ دَعَاهُمْ بِاَوْعِيَتِهِمْ فَاَحْتَثَى النَّاسُ حَتَّى فَرَغُوْا ثُمَّ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَشْهَدُ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَ اَنِّي رَسُوْلُ اللّٰهِ.

خدمت کښې حاضر شو، او عرض ئې اوکه، یا رسول الله، د خپلو اوښانو د ذبح کولو نه پس به خلق څنګه ژوندي پاتې شي، رسول الله صلي الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل، خلقو کښې اعلان اوکه چه خپل بچ شوې سامان راوړي او هغې د پاره يو دسترخوان خور کړې شو، بيا په هغې ټولې توښې کېښودې شوې، رسول الله صلي الله عليه وسلّم اودريدلو، او هغې کښې ئې د برکت دعا اوکړله. بيا خلق ئې د هغوي لوښو سره راوغوښتل، نو خلقو ډکې لپې اخيستل شروع کړل. چه خلقو واخستل، نو رسول الله صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، زه ګواهي ورکوم چه د، الله نه سيوا بل معبود نشته، او دا، چه زه د الله رسول يم.

**۱۰۱۶ :** حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوْسُفَ حَدَّثَنَا الْاَوْزَاعِيُّ حَدَّثَنَا اَبُو النَّجَاشِيِّ قَالَ سَمِعْتُ رَافِعَ بْنَ خَدِيْجٍ قَالَ كُنَّا نُصَلِّيْ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْعَصْرَ فَنَنْحَرُ جَزُوْرًا فَتُقْسَمُ عَشْرَ قِسَمٍ فَنَأْكُلُ لَحْمًا نَضِجًا قَبْلَ اَنْ تَغْرُبَ الشَّمْسُ.

**۱۰۱۶ :** محمد بن يوسف. اوزاعي. ابو النجاشي. رافع بن خديج بيان اوکه، چه مونږ به رسول الله صلي الله عليه وسلّم سره د مازيګر مونځ کولو، او اوښان به مو ذبح کول. بيا د هغې غوښه به لسو حصو کښې تقسيمولې شوه، او مونږ خلقو به د نمر پريوتو نه مخکښې د هغې غوښه خوړله.

**۱۰۱۷ :** حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ اُسَامَةَ عَنْ بُرَيْدٍ عَنْ اَبِيْ بُرْدَةَ عَنْ اَبِيْ مُوْسٰى قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّ الْاَشْعَرِيِّيْنَ اِذَا اَرْمَلُوْا فِي الْغَزْوِ اَوْ قَلَّ طَعَامُ عِيَالِهِمْ بِالْمَدِيْنَةِ جَمَعُوْا مَا كَانَ عِنْدَهُمْ فِيْ ثَوْبٍ

**۱۰۱۷ :** محمد بن علاء. حماد بن اسامه يزيد. ابوبرده. ابو موسیٰ نه روايت کوي. د هغه بيان دې، نبي صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، د اشعر قبيلې خلق چه جهاد کښې محتاج شي، يا مدينه کښې د هغوي د بچو خوراک ختم شي، نو څه چه هغوي سره وي، هغه دې په يوه کپړه کښې جمع کړي. بيا خپلو کښې دې د، يو لوښي

وَّاحِدٍ ثُمَّ اقْتَسَمُوْهُ بَيْنَهُمْ فِيْ اِنَآءٍ وَّاحِدٍ بِالسَّوِيَّةِ فَهُمْ مِنِّي وَ اَنَا مِنْهُمْ.

نه برابر تقسیموي. هغوي ځما نه دي او زه د هغوي نه یم.

بَابُ ۷۷٦ : مَا كَانَ مِنْ خَلِيْطَيْنِ فَاِنَّهُمَا يَتَرَاجَعَانِ بَيْنَهُمَا بِالسَّوِيَّةِ فِي الصَّدَقَةِ.

باب ۷۷٦ : کوم مال چه دوو شریکانو کښې مشترک وي، نو زکوة کښې دے دواړه خپلو کښې مجرا کړي.

۱۰۱۸ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ الْمُثَنّٰى قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبِيْ قَالَ حَدَّثَنِيْ ثُمَامَةُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَنَسٍ اَنَّ اَنَسًا حَدَّثَهٗ اَنَّ اَبَا بَكْرٍ كَتَبَ لَهٗ فَرِيْضَةَ الصَّدَقَةِ الَّتِيْ فَرَضَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ وَمَا كَانَ مِنْ خَلِيْطَيْنِ فَاِنَّهُمَا يَتَرَاجَعَانِ بَيْنَهُمَا بِالسَّوِيَّةِ.

۱۰۱۸ : محمد بن عبدالله بن مثنی عبدالله بن مثنی. ثمامه بن عبدالله بن انس بیان کوي. حضرت انس هغه ته بیان اوکه، چه حضرت ابوبکرؓ هغه ته د فرض زکوة متعلق اولیکل. کوم چه رسول الله صلي الله علیه وسلم مقرر کړے وو، حضور صلي الله علیه وسلم اوفرمائیل: کوم مال چه دوو کسانو کښې مشترک وي، نو هغه دے (صدقه کښې) برابر یو بل ته مجرا کړي.

بَابُ ۷۷۸ : قِسْمَةِ الْغَنَمِ.

باب ۷۷۸ : د چیلو د تقسیم کولو بیان.

۱۰۱۹ : حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ الْحَكَمِ الْاَنْصَارِيُّ حَدَّثَنَا اَبُوْ عَوَانَةَ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ مَسْرُوْقٍ عَنْ عَبَايَةَ ابْنِ رِفَاعَةَ بْنِ رَافِعِ بْنِ خَدِيْجٍ عَنْ جَدِّهٖ قَالَ كُنَّا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِذِي الْحُلَيْفَةِ فَاَصَابَ النَّاسَ جُوْعٌ فَاَصَابُوْا اِبِلًا وَّ غَنَمًا قَالَ وَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ اُخْرَيَاتِ الْقَوْمِ فَعَجِلُوْا وَ ذَبَحُوْا وَ نَصَبُوا الْقُدُوْرَ فَاَمَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْقُدُوْرِ فَاُكْفِئَتْ ثُمَّ

۱۰۱۹ : علي بن حکم انصاري. ابو عوانه. سعید بن مسروق. عبایه بن رفاعه بن رافع بن خدیج د خپل نیکه (دادا) نه روایت کوي. د هغه بیان دے: مونږ نبي صلي الله علیه وسلم سره ذي الحلیفه کښې وو. خلقو لوږه محسوس کړه: هغوي اوښان او چیلي بیامندے. د رافع بیان دے: چه نبي صلي الله علیه وسلم ورستنو خلقو کښې وو. نو خلقو تادي اوکړه. او د غنیمت د تقسیم نه مخکښې ئے څناور ذبح کړل. او کټوني ئے په نغري اوخیژولے. نبي صلي الله علیه وسلم حکم اوکه: نو کټوني (هانډیاں) واړولے شوے. بیا حضور د غنیمت مال تقسیم کړلو: نو لس چیلي د یو اوښ په عوض مقرر شوے. هغے کښې یو اوښ اوتښتیدلو. د هغے نیول ئے

قَسَمَ فَعَدَلَ عَشَرَةً مِنَ الْغَنَمِ بِبَعِيْرٍ فَنَدَّ مِنْهَا بَعِيْرٌ فَطَلَبُوْهُ فَاَعْيَاهُمْ وَ كَانَ فِي الْقَوْمِ خَيْلٌ يَّسِيْرَةٌ فَاَهْوٰى رَجُلٌ مِنْهُمْ بِسَهْمٍ فَحَبَسَهُ اللّٰهُ ثُمَّ قَالَ اِنَّ لِهٰذِهِ الْبَهَآئِمِ اَوَابِدَ كَاَوَابِدِ الْوُحُشِ فَمَا غَلَبَكُمْ مِنْهَا فَاصْنَعُوْا بِهٖ هٰكَذَا فَقَالَ جَدِّيْ اِنَّا نَرْجُوْا اَوْ نَخَافُ الْعَدُوَّ غَدًا وَّ لَيْسَتْ مُدًى اَفَنَذْبَحُ بِالْقَصَبِ قَالَ مَا اَنْهَرَ الدَّمَ وَ ذُكِرَ اسْمُ اللّٰهِ عَلَيْهِ فَكُلُوْهُ لَيْسَ السِّنَّ وَالظُّفُرَ وَ سَاُحَدِّثُكُمْ عَنْ ذَالِكَ اَمَّا السِّنُّ فَعَظْمٌ وَّ اَمَّا الظُّفُرُ فَمُدَى الْحَبَشَةِ.

غوبنتل خو ستړي نې کړل. هغه وخت حلقو سره اسونه کم وو. هغوي کښې يو سړي هغه (اوښ) په تير اوويشتلو نو اللّٰه هغه (اوښ) ايسار کړلو. بيا حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل. دے چارپايه ؤ کښې هم د ځنګلي ځناورو په شان وحشي کيږی. کله چه هغه اونيولے شي نو هغے سره دغسے کوے. خما نيکه اووے مونږ ته خطره ده چه صباله به دشمن سره مقابله وي او موږ سره چاړه نشته، آيا مونږ به دا بانړس (بانس) سره ذبح کړو. حضور ورته اوفرمائيل او کوم څيز چه وينه توئيولے شي او په هغے د اللّٰه نوم واخستے شي نو هغه خوری. خو غاښ او نوک سره ذبح مه کوئ. او عنقريب زه به تاسو ته ذ دے وجه اوښايم چه غاښ هډوکے دے. او نوک خو د حبشيانو چاړه ده.

## بَابُ ٦٧٩ : الْقِرَانِ فِي التَّمْرِ بَيْنَ الشُّرَكَآءِ حَتّٰى يَسْتَاْذِنَ اَصْحَابَهٗ.

## باب ٦٧٩ : دوه قجورے يو ځائے خوړل منع دي، څو پورے چه د هغه ملګرے اجازت ورنکړي.

۱۰۲۰ : حَدَّثَنَا خَلَّادُ بْنُ يَحْيٰى حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا جَبَلَةُ بْنُ سُحَيْمٍ قَالَ سَمِعْتُ ابْنَ عُمَرَ يَقُوْلُ نَهَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنْ يَّقْرُنَ الرَّجُلُ بَيْنَ التَّمْرَتَيْنِ جَمِيْعًا حَتّٰى يَسْتَاْذِنَ

۱۰۲۰ : خلاد بن يحيي. سفيان. جبله بن سحيم. ابن عمرؓ نه روايت کوي، هغه وئيلے، چه نبي صلي الله عليه وسلّم دوه قجورے په يو ځائے خوړل منع کړی دي. څو پورے چه خپل ملګرے اجازت ورنکړي.

۱۰۲۱ : حَدَّثَنَا اَبُو الْوَلِيْدِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ جَبَلَةَ قَالَ كُنَّا بِالْمَدِيْنَةِ فَاَصَابَتْنَا سَنَةٌ فَكَانَ ابْنُ الزُّبَيْرِ يَرْزُقُنَا التَّمْرَ وَ كَانَ ابْنُ عُمَرَ

۱۰۲۱ : ابوالوليد. شعبه. جبله نه روايت کوي. د هغه بيان دے مونږ مدينه کښې وو. مونږ خلقو باندے قحط راغے. ابن زبير به په موږ قجورے خوړولے. او ابن عمرؓ چه به په مونږ تيريدلو. نو وئيل به ئے، دوه

| | |
|---|---|
| يَـمُـرُّبِـنَـا فَيَقُوْلُ لَا تَقْرُنُوْا فَاِنَّ النَّبِيَّ صَـلَّـى اللّـٰهُ عَـلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهٰى عَنِ الْاِقْـرَانِ اِلَّا اَنْ يَّسْتَاذِنَ الرَّجُلُ مِنْكُمْ اَخَاهُ. | قـجـورے یوخائے مه خورئي، ځکه چه نبي صلي الله علیه وسـلـم دوه قـجـورے یوخائے خوړلو نه منع فرمائیلے ده خـو پـورے چه تاسو کښې څوک د خپل ورور نه اجازت وانخلي[1]. |

[1]. پـه اصـل کـښې دا حـکـم د تنګسیا د حالاتو دے که چرے داسے حالات وي چه د کجورو کمے نه وي چـه شـریـکـوال داسـے وي چـه د هغهٔ د طرفنه په دے عمل باندے د څه اعتراض خطره نه وي نو ګنړے کـجـورے پـه یـو ځـائـے خـوړلـے کـیـدے شي. د خوراک د نورو څیزونو هم دغه حکم دے او که چرے په صـراحت سره اجازت وي نو بیا خو هیڅ حرج کیدے نشي.

الحمدُللّٰه والشکر لِلّٰه دَ صحیح بخاري نهمه پاره ختمه شوه




تاج
تاج البخاری
پښتو شرح صحیح البخاری
پاره
۱۰
شارح: مولانا ظهور الباری اعظمی فاضل دار العلوم دیوبند
پښتو ترجمه: مولانا محمد امین درانی
نظر ثانی: حافظ قاری فضل کریم
اهتمام: دکتور محمد دین البشاوری
تاج کتب خانه رجسټرډ
قصه خوانی پشاور
فون: 214454
C-21

# تاج البخاري پاره ۱۰ دمضامینو فهرست

# لسمه پاره

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

**باب ۶۸۰ : تَقْوِيْمِ الْاَشْيَاءِ بَيْنَ الشُّرَكَآءِ بِقِيْمَةِ عَدْلٍ.**

۱۰۲۲ : حَدَّثَنَا عِمْرَانُ بْنُ مَيْسَرَةَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ حَدَّثَنَا اَيُّوْبُ عَنْ نَّافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ اَعْتَقَ شِقْصًا لَّهُ مِنْ عَبْدٍ اَوْ شِرْكًا اَوْ قَالَ نَصِيْبًا وَ كَانَ لَهُ مَا يَبْلُغُ ثَمَنَهُ بِقِيْمَةِ الْعَدْلِ فَهُوَ عَتِيْقٌ وَ اِلَّا فَقَدْ عَتَقَ مِنْهُ مَا عَتَقَ قَالَ لَآ اَدْرِيْ قَوْلَهُ عَتَقَ مِنْهُ مَا عَتَقَ قَوْلٌ مِّنْ نَّافِعٍ اَوْفِي الْحَدِيْثِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۱۰۲۳ : حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ مُحَمَّدٍ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا سَعِيْدُ ابْنُ عَرُوْبَةَ عَنْ قَتَادَةَ عَنِ النَّضْرِ بْنِ اَنَسٍ عَنْ بَشِيْرِ بْنِ نَهِيْكٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ اَعْتَقَ شَقِيْصًا مِّنْ مَّمْلُوْكِهٖ فَعَلَيْهِ خَلَاصُهٗ فِيْ مَالِهٖ فَاِنْ لَّمْ يَكُنْ لَّهٗ مَالٌ قُوِّمَ الْمَمْلُوْكُ قِيْمَةَ عَدْلٍ ثُمَّ اسْتُسْعِيَ غَيْرَ مَشْقُوْقٍ عَلَيْهِ.

**باب ۶۸۱ : هَلْ يُقْرَعُ فِي**

**باب ۶۸۰ :** د شریکانو مینځ کښې د څیزونو د ټیک ټیک قیمت لږولو بیان.

۱۰۲۲ : عمران بن میسره. عبدالوارث. ایوب. نافع. ابن عمرؓ نه روایت کوي رسول اللّٰه صلی اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل کوم سړي چه د مشترک غلام نه خپله حصه آزاده کړه او هغه سره د عادل د تجویز مطابق د هغه پوره قیمت موجود وي نو هغه آزاد دے. کنې څومره چه آزاد کړے شوے دے. هغومره به آزاد وي. ایوب وائي چه د عتق منه ما عتق متعلق زه نه پوهیږم چه دا د نافع قول دے یا د نبي صلی اللّٰه علیه وسلّم حدیث دے.

۱۰۲۳ : بشر بن محمد. عبداللّٰه سعید بن ابي عروبه. قتاده. نضر بن انس. بشیر بن نهیک. ابوهریرهؓ نبي صلی اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل کوم سړي چه مشترک غلام کښې خپله حصه آزاده کړه. نو د هغه په ذمه لازم دي چه د خپل مال نه هغه له پوره آزادي ورکړي. که هغه سره مال نه وي نو د هغې غلام پوره قیمت به لږولے شي بیا دے به هغې غلام مزدوري اوکړے شي لیکن هغه دے مشقت کښې نشي اچولے.

**باب ۶۸۱ :** آیا تقسیم کښې او حصه آخستو

الْقِسْمَةِ وَالْاِسْتِهَامِ فِيْهِ.

**۱۰۲۴ : حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا زَكَرِيَّآءُ قَالَ سَمِعْتُ عَامِرًا يَقُوْلُ سَمِعْتُ النُّعْمَانَ بْنَ بَشِيْرٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَثَلُ الْقَآئِمِ عَلٰى حُدُوْدِ اللّٰهِ وَالْوَاقِعِ فِيْهَا كَمَثَلِ قَوْمٍ اسْتَهَمُوْا عَلٰى سَفِيْنَةٍ فَاَصَابَ بَعْضُهُمْ اَعْلَاهَا وَبَعْضُهُمْ اَسْفَلَهَا فَكَانَ الَّذِيْنَ فِيْ اَسْفَلِهَا اِذَا اسْتَقَوْا مِنَ الْمَآءِ مَرُّوْا عَلٰى مَنْ فَوْقَهُمْ فَقَالُوْا لَوْ اَنَّا خَرَقْنَا فِيْ نَصِيْبِنَا خَرْقًا وَّلَمْ نُؤْذِ مَنْ فَوْقَنَا فَاِنْ يَّتْرُكُوْهُمْ وَمَآ اَرَادُوْا هَلَكُوْا جَمِيْعًا وَاِنْ اَخَذُوْا عَلٰى اَيْدِيْهِمْ نَجَوْا وَنَجَوْا جَمِيْعًا.**

کښې دے قرعه اندازي او کړے شي.

**۱۰۲۴ :** ابو نعیم. زکریا. عامر. نعمان بن بشیر. نبي صلے الله علیه وسلم نه روایت کوي. د الله مقرر کړے حدونو باندے د قائم او سیدونکي او هغے کښې د آخته کیدونکي مثال د هغے قوم دے. چه هغه یو جهاز کښې قرعه آندازي (د پچے. خسنړي یا د هسک اچولو کار) سره خپلے حصے تقسیم کړے. د بعضو حصه کښې پورتنے حصه راغله، او د نورو حصه کښې لاندینے حصه راغله. د لاندینے حصے خلق د پورتنے حصے خلقوله اوبو آخستو د پاره ورغلل. او ورته ئے اووے. که مونږ خپله حصه کښې یعنے لاندینے حصه کښې درز (شګاف) اوکۀ (چه اوبو اخستو کښې راته آساني وي) او پورتنو خلقو ته خمونږ د بار بار آمدورفت په وجه تکلیف نۀ وي (ستاسو په دے کښې څۀ وایئے) نو کۀ هغه خلق دوي پریږدي. او د دوی د ارادے مطابق صلاح ورکړي. نو ټول به هلاک شي. او کۀ د دوی لاس اونیسي. نو خپله به هم خلاصي بیاموي، او (نور) ټول خلق به هم خلاصي بیاموميـ[۱].

۱. په دے حدیث کښې د دنیا مثال یوے کشتۍ سره ورکړے شوے دے چه په کومه کښې سوارۀ خلق د یو بل د غلطۍ نه خامخا متاثر کیږي. د ټولے دنیا انسانان د یو قوم په حیثیت کښې دي او دا زمکه د یوے کشتۍ پشان ده. په دے کشتۍ کښې مسلمانان هم شته او کافران هم شته. ګناهګاران هم شته او فرمان برداران هم شته. که چرے د ظلم او ګناه غلبه شي نو د هغے نه به صرف هغه کسان نه متاثره کیږي څوک چه پکښې مبتلا دي بلکه پوره قوم او پوره دنیا به ترے متاثره کیږي مونږه په خپل امروزه ژوند کښې د یو فرد د نیکیانو او ګناهونو اثر په سترګو وینو. په دے وجه الله تعالی دا فرماني چه صالحان او حکم منونکي بندګان د د ظلم او ګناه خلاف خپل قوتونه جمع کړي. که چرے دوی خپل ځان هم د ظلمونو د اثراتو نه بچ کول غواړي نو ظلم او ګناه د د دنیا نه ختم کړي. په کشتۍ کښې ناستے دواړه ډلے به د هر یو د عمل نه متاثره کیږي که چرے لاندے والو په خپله حصه کښې سورے اوکړو نو په دے کښې شک نیشته چه هغوی په خپله حصه کښې او په خپل ملکیت کښې تصرف اوکړو لیکن که چرے کشتۍ ډوبه شوه نو پاس والا به

هم ورسره ډوبیږي. او که چرے پاس والو لاندے خلق د سوري کولو نه منع کړل نو هغوی د دغه ظلم د هغوی لاس نیولو سره خپل حفاظت هم او کړو.

د نیکو کارونو حکم او د بدو کارونو نه بندول په دے وجه اسلام کښې مشروع دي دا یو د فریضه دد کومه چه الله تعالي په خپلو نیکانو او فرمان بردارو بندګانو باندے مقرر کړے ده ولے چه زمونږه دنیا "دار تمیز" نه دے بلکه "دار تخلیط او تلبیس" دے (ګډوډه خلق پکښې اوسیږي). او په هر نوع حق او باطل به په دے کښې همدغه شان مخلوط او مشتبه اوسي. د آخرت کور دار تمیز او دار جزاء دے او هلته به حق د باطل نه جُدا وي اختلاط او اشتباه به لرے شي دا مصلحت خداوندي دے. پس که چرے د عامے نافرماني او سرکشي په نتیجه کښې صرف ګناهګاران هلاک شي یا صرف په هغوی باندے عذاب راشي نو دا به د خدائي مصالحو او حکمتونو نه خلاف وي. هر حق د باطل نه او هر ثواب د ګناه نه به د آخرت په کور کښې بیل وي. او کم نه کم په دنیاوي ژوند کښې مونږه د خدائے پاک ددے مصلحت مشاهده بار بار کوو.

## بـاب ۶۸۲ : شَرِكَةِ الْيَتِيْمِ وَ اَهْلِ الْمِيْرَاثِ.

## باب ۶۸۲ : د يتيم او اهل ميراث (ميراثيانو) د شركت بيان.

۱۰۲۵ : حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ الْعَامِرِيُّ الْاُوَيْسِيُّ حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ سَعْدٍ عَنْ صَالِحٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عُرْوَةُ اَنَّهُ سَاَلَ عَآئِشَةَ وَ قَالَ اللَّيْثُ حَدَّثَنِيْ يُوْنُسُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عُرْوَةُ ابْنُ الزُّبَيْرِ اَنَّهُ سَاَلَ عَآئِشَةَ عَنْ قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى وَ اِنْ خِفْتُمْ اِلٰى وَ رُبٰعَ فَقَالَتْ يَا ابْنَ اُخْتِيْ هِيَ الْيَتِيْمَةُ تَكُوْنُ فِيْ حَجْرِ وَلِيِّهَا تُشَارِكُهُ فِيْ مَالِهِ فَيُعْجِبُهُ مَالُهَا وَ جَمَالُهَا فَيُرِيْدُ وَلِيُّهَا اَنْ يَّتَزَوَّجَهَا بِغَيْرِ اَنْ يُّقْسِطَ فِيْ صَدَاقِهَا فَيُعْطِيَهَا مِثْلَ مَا يُعْطِيْهَا غَيْرُهُ فَنُهُوْا اَنْ يَّنْكِحُوْهُنَّ اِلَّا اَنْ يُّقْسِطُوْا لَهُنَّ وَ يُبْلِغُوْا بِهِنَّ

۱۰۲۵ : عبدالعزيز بن عبدالله عامري اويسي. ابراهيم بن سعد. صالح. ابن شهاب. عروه. عائشےؓ او ليث دغسے سند بيان که. يونس ابن شهاب. عروه بن زبير د بي بي عائشےؓ نه' الله د قول: وَ اِنْ خِفْتُمْ نه رُبَاع پورے دريافت او کړ' نو هغے اووے اے خسا خوريه: (بهانجے) دا' آيت د هغے يتيمے جينئے متعلق دے' چه د خپل سرپرست په نګراني کښې وي. او د هغه په مال کښې شريکه وي' د هغے ولي د هغے په مال او خوبصورتي مئين شي' او اوغواړي' چه واده ورسره او کړي. ليکن مهر کښې انصاف اونه کړي په دے طور' چه هغے ته دومره مهر ورنه کړي' څومره چه به ئے بل چا ته ورکولو' نو هغوي د دے نه منع کړے شو' چه دے يتيمو جينکو سره نکاح او کړي' خو' دا چه هغوي سره انصاف او کړي (نو بيا هغوي سره نکاح کولے شي) او د هغوي د شان مطابق

اَعْلٰى سُنَّتِهِنَّ مِنَ الصَّدَاقِ وَ اُمِرُوْا اَنْ يَنْكِحُوْا مَا طَابَ لَهُمْ مِنَ النِّسَاءِ سِوَاهُنَّ قَالَ عُرْوَةُ قَالَتْ عَائِشَةُ ثُمَّ اِنَّ النَّاسَ اسْتَفْتَوْا رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعْدَ هٰذِهِ الْاٰيَةِ فَاَنْزَلَ اللّٰهُ وَ يَسْتَفْتُوْنَكَ فِي النِّسَآءِ اِلٰى قَوْلِهٖ وَ تَرْغَبُوْنَ اَنْ تَنْكِحُوْهُنَّ وَالَّذِيْ ذَكَرَ اللّٰهُ اَنَّهٗ يُتْلٰى عَلَيْكُمْ فِي الْكِتَابِ الْاٰيَةُ الْاُوْلٰى الَّتِيْ قَالَ فِيْهَا وَ اِنْ خِفْتُمْ اَلَّا تُقْسِطُوْا فِي الْيَتٰمٰى فَانْكِحُوْا مَا طَابَ لَكُمْ مِنَ النِّسَآءِ قَالَتْ عَائِشَةُ وَ قَوْلُ اللّٰهِ فِي الْاٰيَةِ الْاُخْرٰى وَ تَرْغَبُوْنَ اَنْ تَنْكِحُوْهُنَّ يَعْنِيْ هِيَ رَغْبَةُ اَحَدِكُمْ لِيَتِيْمَتِهِ الَّتِيْ تَكُوْنُ فِيْ حَجْرِهٖ حِيْنَ تَكُوْنُ قَلِيْلَةَ الْمَالِ وَالْجَمَالِ فَنُهُوْا اَنْ يَنْكِحُوْهَا مَا رَغِبُوْا فِي مَالِهَا وَ جَمَالِهَا مِنْ يَتٰمٰى النِّسَآءِ اِلَّا بِالْقِسْطِ مِنْ اَجْلِ رَغْبَتِهِمْ عَنْهُنَّ.

هغوي له مهر ور کړي، او هغوي ته حکم ورکړے شو، چه د دے ښځو نه سوا، چاسره چه غواړي، نکاح اوکړي. د عروه بيان دے. بي بي عائشے اووے خلقو د رسول الله صلي اللّٰه عليه وسلّم نه د دے آيت د نازليدونه پس د مسئلے تپوس اوکړ، نو الله تعالي دا آيت نازل کړ: و يستفتونک في النساء. و ترغبون ان تنکحوهن پورے. او دا چه الله تعالي فرمائيلي انهٗ يتلٰى عليکم في الکتاب نه مراد وړمبنے آيت دے، چه هغے کښې وئيلے دي: که تاسو، ويريږئے چه د يتيمانو باره کښې به د انصاف نه کار وانه غستے شے، نو هغے ښځو سره نکاح اوکړئے چه ستاسو خوښے وي، بي بي عائشے اوفرمائيل، چه دوئم آيت کښې د الله د قول: وَ ترغبون ان تنکحوهن نه مراد هغې يتيمے جينے طرف ته تاسو کښې د چا رغبت کول دي، چه ستاسو پرورش کښې وي او مال او اسباب کم لري (هغے طرف ته ستاسو رغبت نۀ وي) په دے وجه د کومے يتيمے جينۍ مال و اسباب ته چه ستاسو رغبت وي، هغوي سره په وجه دَ بے رغبتي دَ نکاح ممانعت شوے دے، خو په شرط د دے چه مهر پوره انصاف سره ور کړي.

## بَابٌ ٦٨٣ : الشَّرِكَةِ فِي الْاَرَضِيْنَ وَغَيْرِهَا.

## باب ٦٨٣ : زمکه وغيره کښې د شرکت بيان.

١٠٢٦ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا هِشَامٌ اَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ اِنَّمَا جَعَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الشُّفْعَةَ فِيْ كُلِّ

١٠٢٦ : عبداللّٰه بن محمد. هشام. معمر. زهري. ابوسلمه. جابر بن عبداللّٰه نه روايت کوي. د هغۀ بيان دے. چه نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم هر هغه څيز کښې شفعه مقرر کړے ده، چه لا تقسيم شوے نۀ وي. کوم وخت چه

مَالَمْ يُقْسَمُ فَاِذَا وَقَعَتِ الْحُدُوْدُ وَ صُرِفَتِ الطُّرُقُ فَلَا شُفْعَةَ.

حد بندي اوشي او لارے اوکرخولے شي نو شفعه نشته.

بــــاب ۶۸۴ : اِذَا اقْتَسَمَ الشُّرَكَاءُ الدُّوْرَ اَوْ غَيْرَهَا فَلَيْسَ لَهُمْ رُجُوْعٌ وَّلَا شُفْعَةٌ.

باب ۶۸۴ : چه شریکان کور وغیره تقسیم کړي نو بیا هغوي ته د رجوع حق نشته او نه شفعه شته¹.

۱. د فقهے په کتابونو کښ دي چه که چرے تقسیم غلط اوشو او د تقسیم نه پس ځه "غبن فاحش" مخے ته راغے نو په تقسیم باندے به نظر ثاني کولے شي.

۱۰۲۷ : حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ حَدَّثَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ قَضَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالشُّفْعَةِ فِيْ كُلِّ مَالَمْ يُقْسَمُ فَاِذَا وَقَعَتِ الْحُدُوْدُ وَ صُرِفَتِ الطُّرُقُ فَلَا شُفْعَةَ.

۱۰۲۷ : مسدد. عبدالواحد. معمر. زهري. ابوسلمه. جابر بن عبدالله نه روايت كوي. د هغه بيان دے، چه نبي صلے الله عليه وسلم د شفعے حكم اوفرمائيلو، هر هغے ځيز كښ، چه لا تقسيم شوے نۀ وي. بيا چه حد بندي اوشي، او لارے اوکرخولے شي نو شفعه نشته.

بــاب ۶۸۵ : اَلْاِشْتِرَاكِ فِي الذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ وَمَا يَكُوْنُ فِيْهِ الصَّرْفُ.

بـــاب ۶۸۵ : ســـرۀ، سپين او كوم ځيز كښ چه صرف كيږي، هغے كښ د شركت بيان.

۱۰۲۸ : حَدَّثَنَا عُمْرُو بْنُ عَلِيٍّ حَدَّثَنَا اَبُوْ عَاصِمٍ عَنْ عُثْمَانَ يَعْنِيْ ابْنَ الْاَسْوَدِ قَالَ اَخْبَرَنِيْ سُلَيْمَانُ بْنُ اَبِيْ مُسْلِمٍ قَالَ سَأَلْتُ اَبَا الْمِنْهَالِ عَنِ الصَّرْفِ يَدًا بِيَدٍ فَقَالَ اشْتَرَيْتُ اَنَا وَ شَرِيْكٌ لِيْ شَيْئًا يَدًا بِيَدٍ وَّ نَسِيْئَةً فَجَآءَنَا الْبَرَآءُ بْنُ عَازِبٍ فَسَأَلْنَاهُ فَقَالَ فَعَلْتُ اَنَا وَ شَرِيْكِيْ زَيْدُ بْنُ اَرْقَمَ وَ سَاَلْنَا النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

۱۰۲۸ : عمرو بن علي. ابو عاصم. عثمان بن اسود. سليمان بن ابي مسلم بيان كوي: ما د ابوالمنهال نه لاس په لاس د بيع صرف متعلق تپوس اوكۀ، نو هغۀ اووے، چه ما او خما شريك يو ځيز نقد او قرض واخست. براء بن عازب مونږ له راغے، مونږ د هغۀ نه د دے متعلق تپوس اوكۀ نو هغۀ اووے، چه ما او خما شريك زيد بن ارقم دغسے كړے وو. او مونږ د نبي صلے الله عليه وسلم نه د دے متعلق تپوس اوكۀ، نو حضور صلے الله

عَنْ ذَالِكَ فَقَالَ مَا كَانَ يَدًا بِيَدٍ فَخُذُوْهُ وَمَا كَانَ نَسِيْئَةً فَذَرُوْهُ.

عليه وسلَم او فرمائيل كه لاس په لاس وي نو واخلئ كه قرض وي نو هغه پريږدئ.

باب ۶۸۶ : مُشَارَكَةِ الذِّمِّيِّ وَالْمُشْرِكِيْنَ فِي الْمُزَارَعَةِ.

باب ۶۸۶ : مزارعت كښې د ذمي او مشركينو د شركت بيان.

ف : ذمي: اهل كتاب چه هغوي د مسلمانانو ملک كښې پناه راخستې وي او هغوي ټيكس ادا كړي.

۱۰۲۹ : حَدَّثَنَا مُوْسَى ابْنُ اِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا جُوَيْرِيَّةُ ابْنُ اَسْمَآءَ عَنْ نَافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ اَعْطَى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَيْبَرَ الْيَهُوْدَ اَنْ يَّعْمَلُوْهَا وَ يَزْرَعُوْهَا وَلَهُمْ شَطْرُ مَا يَخْرُجُ مِنْهَا.

۱۰۲۹ : موسي بن اسمعيل. جويريه بن اسماء. نافع. عبدالله نه روايت كوي چه رسول الله صلى الله عليه وسلَم د خيبر زمكه يهودو ته په دې شرط وركړه چه دې كښې محنت او كاشتكاري كوي او هغوي ته به د پيداوار نيمه وركيږي.

باب ۶۸۷ : قِسْمَةِ الْغَنَمِ وَالْعَدْلِ فِيْهَا.

باب ۶۸۷ : د چيلو تقسيمول او هغې كښې انصاف كول.

۱۰۳۰ : حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ يَّزِيْدَ بْنِ اَبِيْ حَبِيْبٍ عَنْ اَبِي الْخَيْرِ عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَعْطَاهُ غَنَمًا يُقَسِّمُهَا عَلٰى صَحَابَتِهٖ ضَحَايَا فَبَقِيَ عَتُوْدٌ فَذَكَرَهٗ لِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ ضَحِّ بِهٖ اَنْتَ.

۱۰۳۰ : قتيبه بن سعيد. ليث. يزيد بن ابي حبيب. ابوالخير. عقبه بن عامر نه روايت كوي چه رسول الله صلى الله عليه وسلَم هغه ته چيلئې وركړې چه قرباني د پاره هغه په صحابه ؤ كښې تقسيم كړي. هغې كښې د يو كال بچې باقي پاتې شو، رسول الله صلى الله عليه وسلَم ته د هغې بيان اوشو، نو حضور صلى الله عليه وسلَم او فرمائيل چه ته دا قرباني كړه.

باب ۶۸۸ : اَلشِّرْكَةِ فِي الطَّعَامِ وَغَيْرِهٖ وَيُذْكَرُ اَنَّ رَجُلًا سَاوَمَ شَيْئًا فَغَمَزَهٗ اٰخَرُ فَرَاٰى عُمَرُ اَنَّ لَهٗ شِرْكَةً.

باب ۶۸۸ : خوراک وغيره كښې د شركت بيان. او بيانيږي چه يو سړي يو څيز قيمت كړ نو دونم سړي هغه ته سترګې سره اشاره او كړه. حضرت عمرؓ خيال او كړ چه هغه د دې شريک دې.

۱۰۳۱ : حَدَّثَنَا اَصْبَغُ ابْنُ

۱۰۳۱ : اصبغ بن فرج. عبدالله بن وهب.

الْفَرَجِ قَالَ اَخْبَرَنِي عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ وَهْبٍ قَالَ اَخْبَرَنِي سَعِيْدٌ عَنْ زُهْرَةَ بْنِ مَعْبَدٍ عَنْ جَدِّهٖ عَبْدِ اللّٰهِ ابْنِ هِشَامٍ وَ كَانَ قَدْ اَدْرَكَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ ذَهَبَتْ بِهٖ اُمُّهٗ زَيْنَبُ بِنْتُ حُمَيْدٍ اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَتْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ بَايِعْهُ فَقَالَ هُوَ صَغِيْرٌ فَمَسَحَ رَاْسَهٗ وَ دَعَالَهٗ وَعَنْ زُهْرَةَ بْنِ مَعْبَدٍ اَنَّهٗ كَانَ يَخْرُجُ بِهٖ جَدُّهٗ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ هِشَامٍ اِلَى السُّوْقِ فَيَشْتَرِىْ الطَّعَامَ فَيَلْقَاهُ ابْنُ عُمَرَ وَ ابْنُ الزُّبَيْرِ فَيَقُوْلَانِ لَهٗ اَشْرِكْنَا فَاِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ دَعَا لَكَ بِالْبَرَكَةِ فَيُشْرِكُهُمْ فَرُبَّمَا اَصَابَ الرَّاحِلَةَ كَمَاهِيَ فَيَبْعَثُ بِهَا اِلَى الْمَنْزِلِ.

سعید. زهره بن معبد د خپل نیکه (دادا) عبدالله بن هشام نه چه هغه نبي صلے الله علیه وسلم لیدلے وو' روایت کوي' چه هغه د هغه مور زینب بنت حمید د' رسول الله صلي الله علیه وسلم خدمت کښې حاضر کړه' او عرض ئے اوکه یا رسول الله' د ده نه بیعت واخلئے. حضور صلے الله علیه وسلم ورته اوفرمائیل' دے وړوکے دے بیا حضور صلے الله علیه وسلم ورله په سر لاس راښکلو' او دعائے ورته اوکه. زهره بن معبد نه روایت دے' چه هغه به د هغه نیکه (دادا) عبدالله بن هشام بازار ته بوتلو. او غله به ئے اخستله. ابن عمر او ابن زبیر به هغه سره یوځائے کیدل' او ورته به ئے وئیل' چه مونږ شریک کړه. ځکه چه نبي صلے الله علیه وسلم ستا د پاره د' برکت دُعا کړے ده' هغه به دغه خلق شریک کړل' نو ډیر کرته به اوبن غله به ئے نفع بیامُنده او هغه به ئے کورته لیږله.

## بـاب ۲۸۹ : الشَّــرِكَةِ فِــى الرَّقِيْقِ.

## بـاب ۲۸۹ : وینـزے' غلام کښې د شرکت بیان.

**۱۰۳۲** : حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا جُوَيْرِيَةُ ابْنُ اَسْمَآءَ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَؓ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ اَعْتَقَ شِرْكًا لَهٗ فِيْ مَمْلُوْكٍ وَّجَبَ عَلَيْهِ اَنْ يُّعْتِقَ كُلَّهٗ اِنْ كَانَ لَهٗ مَالٌ قَدْرَ ثَمَنِهٖ يُقَامُ قِيْمَةَ عَدْلٍ وَ يُعْطٰى شُرَكَآؤُهٗ حِصَّتَهُمْ وَ يُخَلّٰى سَبِيْلُ الْمُعْتَقِ.

**۱۰۳۲** : مسدد. جویریه بن اسماء. نافع. ابن عمرؓ نبي صلے الله علیه وسلم نه روایت کوي. حضور صلے الله علیه وسلم اوفرمائیل' کوم سړی چه یو غلام کښې خپله حصه آزاده کړه بیا په هغه واجب دي' چه پوره غلام آزاد کړی که هغه سره د یو عادل د تجویز مطابق د هغه قیمت موجود وي نو د هغه شریکانو ته دے د هغوي د حصو مطابق قیمت ورکړے شي. او آزاد کړده غلام دے آزاد کړے شي.

**۱۰۳۳ : حَدَّثَنَا اَبُو النُّعْمَانِ حَدَّثَنَا جَرِيْرُ ابْنُ حَازِمٍ عَنْ قَتَادَةَ عَنِ النَّضْرِ بْنِ اَنَسٍ عَنْ بَشِيْرِ ابْنِ نَهِيْكٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ اَعْتَقَ شِقْصًا لَهُ فِيْ عَبْدٍ اُعْتِقَ كُلُّهُ اِنْ كَانَ لَهُ مَالٌ وَ اِلَّا يُسْتَسْعٰى غَيْرَ مَشْقُوْقٍ عَلَيْهِ.**

۱۰۳۳ : ابوالنعمان. جرير بن حازم. قتاده. نصر بن انس. بشير بن نهيک. ابوهريرهٔ نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم نه روايت كوي. حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم اوفرمانيل' كوم سړي چه خپله حصه د يو غلام آزاده كړه' نو پوره غلام دے آزاد كړے شي. كه هغه سره مال وي' كني په هغے غلام دے مزدوري او كړے شي' په دے طور' چه هغه دے مشقت كښ وانه چولے شي.

**بَابٌ ۶۹۰ : اَلْاِشْتِرَاكُ فِي الْهَدْيِ وَالْبُدْنِ وَ اِذَآ اَشْرَكَ الرَّجُلُ الرَّجُلَ فِيْ هَدْيِهٖ بَعْدَ مَآ اَهْدٰى.**

**باب ۶۹۰ :** د قرباني خناور او اوښانو كښ د شريكيدو بيان. او كله چه سړے ثوک د قرباني خناور (هدي) كښ شريک كړي' هر كله چه هغه د قربانئ خناور روان كړي.

**۱۰۳۴ : حَدَّثَنَا اَبُو النُّعْمَانَ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ اَخْبَرَنَا عَبْدُ الْمَلِكِ ابْنُ جُرَيْجٍ عَنْ عَطَآءٍ عَنْ جَابِرٍ وَّ عَنْ طَاؤُسٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَدِمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صُبْحَ رَابِعَةٍ مِّنْ ذِي الْحَجَّةِ مُهِلِّيْنَ بِالْحَجِّ لَا يَخْلِطُهُمْ شَيْءٌ فَلَمَّا قَدِمْنَا اَمَرَنَا فَجَعَلْنَاهَا عُمْرَةً وَّ اَنْ نَحِلَّ اِلٰى نِسَآئِنَا فَفَشَتْ فِيْ ذٰلِكَ الْقَالَةُ قَالَ عَطَآءٌ فَقَالَ جَابِرٌ فَيَرُوْحُ اَحَدُنَا اِلٰى مِنًى وَ ذَكَرُهٗ يَقْطُرُ مَنِيًّا فَقَالَ جَابِرٌ بِكَفِّهٖ فَبَلَغَ ذٰلِكَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ**

۱۰۳۴ : ابوالنعمان. حماد بن زيد. عبدالملک بن جريج. عطاء. جابر و طاؤس. ابن عباسؓ نه روايت كوي. نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم د ذي الحجه په څلورم تاريخ د صبا د حج احرام اوتړلو' مكے ته اورسيدلو. حج سره نے د بل څه څيز يعني د عمرے وغيره احرام نه وو تړلے كوم وخت چه مونږ خلق مكے ته اورسيدلو' مونږ خلقو ته حكم اوشولو (چه دا عمره جوړه كړو) نو مونږ خلقو عمره كړه. او مونږ ته حكم اوشو' چه د احرام نه بهر شو. خپلو بيبيانو سره صحبت اوكړو. دے باره كښ صحابه ؓ كښ چرچه شوه. د عطاء بيان دے' جابر اووے' چه مونږ كښ بعضے سړي به منى ته دے حال كښ تلو' چه مني به د هغه د مخصوص عضو نه څڅيدله او جابرؓ خپل لاس سره اشاره اوكړه. د دے خبر نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم ته اورسيد' نو حضور صلے اللّٰه

وَسَلَّمَ فَقَامَ خَطِيْبًا فَقَالَ بَلَغَنِي أَنَّ أَقْوَامًا يَقُوْلُوْنَ كَذَا وَ كَذَا وَاللّٰهِ لَأَنَا أَبَرُّوا أَتْقَى لِلّٰهِ مِنْهُمْ وَلَوْ إِنِّيْ اسْتَقْبَلْتُ مِنْ أَمْرِيْ مَا اسْتَدْبَرْتُ مَا أَهْدَيْتُ وَلَوْلَا أَنَّ مَعِيَ الْهَدْيَ لَأَحْلَلْتُ فَقَامَ سُرَاقَةُ بْنُ مَالِكِ بْنِ جُعْشُمَ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ هِيَ لَنَا أَوْ لِلْأَبَدِ فَقَالَ لَا لِلْأَبَدِ قَالَ وَجَاءَ عَلِيُّ بْنُ أَبِيْ طَالِبٍ فَقَالَ أَحَدُهُمَا يَقُوْلُ لَبَّيْكَ بِمَا أَهَلَّ بِهٖ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ قَالَ الْآخَرُ لَبَّيْكَ بِحَجَّةِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَمَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يُّقِيْمَ عَلٰى إِحْرَامِهٖ وَ أَشْرَكَهُ فِي الْهَدْيِ.

علیه وسلّم خطبے ورکولو د پاره اودریدلو . اووے فرمائیل . بعضے خلق داسے داسے خبرے کوي . به خدائے چه زهٔ د ټولو نه زیات نیکوکار او د الله نه ویره کونکے یم . کهٔ ماته د مخکښ نه دا خبره معلومه وے کومه چه راته اوس معلومه شوه . نو ما به د قرباني خناور نه لیږلو . او کهٔ ماسره د قربانے خناور نهٔ وے . نو زهٔ به د احرام نه بهر شوے وے . سراقه بن جعشم اودریدلو . او عرض ئے اوکهٔ . یارسول الله ، دا حکم زمونږ د پاره دے یا همیشه د پاره . حضور صلے الله علیه وسلّم ورته اوفرمائیل ، نه ، بلکه همیشه د پاره دے جابر اووے . علي بن ابي طالب راغے ، (عطاء او طاؤس کښ) یو کس اووے ، چه حضرت علي اووے ، لبیک بما اهل به رسول الله صلے الله علیه وسلّم . او دوئم اووے ، چه حضرت علي اووے : لبیک بحجته رسول الله صلے الله علیه وسلّم . نو نبي صلے الله علیه وسلّم حکم اوکهٔ چه هغه دے په خپل احرام قائم وي ، او هغه ئے د قرباني خناور کښ شریک کهٔ .

## بَابٌ ١٩١ : مَنْ عَدَلَ عَشْرًا مِنَ الْغَنَمِ بِجَزُوْرٍ فِي الْقَسْمِ.

## باب ۱۹۱ : تقسیم کښ یو اوښ د لس چیلو برابر ګنړلو بیان .

١٠٣٥ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ أَخْبَرَنَا وَكِيْعٌ عَنْ سُفْيَانَ عَنْ أَبِيْهِ عَنْ عَبَايَةَ بْنِ رِفَاعَةَ عَنْ جَدِّهٖ رَافِعِ ابْنِ خَدِيْجٍ قَالَ كُنَّا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِذِي الْحُلَيْفَةِ مِنْ تِهَامَةَ فَأَصَبْنَا غَنَمًا وَّإِبِلًا فَعَجِلَ الْقَوْمُ فَأَغْلَوْا

۱۰۳۵ : محمد . وکیع . سُفیان . سعید بن مسروق (پدر سُفیان) عبایه بن رفاعه د خپل نیکهٔ (دادا) رافع بن خدیج نه روایت کوي . د هغهٔ بیان دے ، چه مونږ نبي صلے الله علیه وسلّم سره د تهامه علاقه ذی الحلیفه کښ وو . مونږ ته غنیمت اوښان او چیلئے حاصلے شوے . خلقو تادي اوکړه ، او د هغے خناورو غوښه ئے په کټوو کښ اوخیژوله . رسول الله صلے الله علیه وسلّم

بِهَا الْقُدُوْرَ فَجَآءَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَمَرَ بِهَا فَاُكْفِئَتْ ثُمَّ عَدَلَ عَشَرًا مِّنَ الْغَنَمِ بِجَزُوْرٍ ثُمَّ اِنَّ بَعِيْرًا نَدَّوَلَيْسَ فِي الْقَوْمِ اِلَّا خَيْلٌ يَسِيْرَةٌ فَرَمَاهُ رَجُلٌ فَحَبَسَهُ بِسَهْمٍ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّ لِهٰذِهِ الْبَهَآئِمِ اَوَابِدَ كَاَوَابِدِ الْوَحْشِ فَمَا غَلَبَكُمْ مِّنْهَا فَاصْنَعُوْا بِهٖ هٰكَذَا قَالَ قَالَ جَدِّيْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّا نَرْجُوْا وَ نَخَافُ اَنْ نَّلْقَى الْعَدُوَّ غَدًا وَّ لَيْسَ مَعَنَا مُدًى فَنَذْبَحُ بِالْقَصَبِ فَقَالَ اعْجَلْ اَوْ اَرِنِيْ مَا اَنْهَرَ الدَّمَ وَ ذُكِرَ اسْمُ اللّٰهِ عَلَيْهِ فَكُلُوْا لَيْسَ السِّنَّ وَالظُّفُرَ وَ سَاُحَدِّثُكُمْ عَنْ ذَالِكَ اَمَّا السِّنُّ فَعَظْمٌ وَّ اَمَّا الظُّفُرُ فَمُدَى الْحَبْشَةِ.

چه تشریف راوړلو' حکم ئے اوکړو' نو تبولے کټوے واړولے شوے. بیا تقسیم کښې د' یو اوښ برابر لس چیلئے کښېودلے شوے. یو اوښ اوتښتیدلو هغه وخت قوم کښې سوارۀ کم وو. یو سړي هغه په تیر اوویشتلو' ایسار' ئے کړلو' نو رسول الله صلي الله علیه وسلم اوفرمائیل' دے چوپایه ؤ کښې هم د ځنګلي ځناورو په شان وحشي کیږي' کوم ځناور چه په تاسو غالب راشي' نو هغۀ سره دغسے کوئے. د' عبایه' بیان دے. ځما نیکه ((رافع) عرض اوکړۀ' یا رسول الله زۀ اُمید کوم (یا' دا' ئے اووے) ما سره ویره ده' صبا له به مونږ دُشمن سره مقابله کیږو' او مونږ سره چاړه نشته' نو آیا مونږ دا بانړس (بانس) سره ذبح کړو. حضور صلے الله علیه وسلم ورته اوفرمائیل' تادي پرے کوئے' کوم څیز چه وینه تویے کړي (کافي دے) او په هغے د' الله نوم اخستے شوي وي نو خوړے ئے' په شرط د دے چه غاښ او نوک (سره ذبح) نه وي' او زۀ تاسوته د هغے وجه بیانوم' چه غاښ هډوکے دے. او نوک د حبشیانو چړے دي.

# كِتَابُ الرَّهْنِ

# (دَ' رهن: ګانړے بیان)

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

بسم الله الرحمن الرحيم

بَابٌ ۲۹۲ : فِى الرَّهْنِ فِى الْحَضَرِ وَ قَوْلِهٖ تَعَالٰى وَ اِنْ كُنْتُمْ عَلٰى سَفَرٍ وَّلَمْ تَجِدُوْا كَاتِبًا فَرِهٰنٌ مَّقْبُوْضَةٌ.

باب ۲۹۲ : حضر کښې د' رهن کیښودو بیان[1]

او د' الله تعالٰي قول' کۀ تاسو سفر کښې ئے' او څوک کاتب (لیکونکے) پیدا نشي' نو څۀ څیز ګانړه کښې قبضه کښې ورکړئے.

[1]. د مصنف اشاره دے طرفته ده چه د رهن په سلسله کښې په قرآن مجید کښې چه خاص طور سره د سفر ذکر راغلے دے هغه محض اتفاق دے ګنے ځنکه چه په سفر کښې ګانړه ایښول جائز دي په حضر کښې

هم جائز دي. چونکه په سفر کښې د ګاڼړې ایښودو زیات اهمیت وو' او د آیت نزول هم په سفر کښې شوے وو په دے وجه نے د سفر ذکر خاص طور سره اوفرمائيلو.

۱۰۳۶ : حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ حَدَّثَنَا هِشَامٌ حَدَّثَنَا قَتَادَةُ عَنْ أَنَسٍ قَالَ وَلَقَدْ رَهَنَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دِرْعَهُ بِشَعِيرٍ وَمَشَيْتُ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِخُبْزِ شَعِيرٍ وَ إِهَالَةٍ سَنِخَةٍ وَلَقَدْ سَمِعْتُهُ يَقُولُ مَا أَصْبَحَ لِآلِ مُحَمَّدٍ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَّا صَاعٌ وَلَا أَمْسَى وَ إِنَّهُمْ لَتِسْعَةُ أَبْيَاتٍ.

۱۰۳۶ : مسلم بن ابراهیم. هشام. قتاده. حضرت انسؓ نه روایت کوي. د هغه بیان دے. نبي صلی الله علیه وسلم خپله زغره د وربشو په بدله کښې ګاڼړه کیښودله. او ما نبي صلی الله علیه وسلم له د وربشو روټي او بدبوداره چربي یوړله. او ما د حضور صلی الله علیه وسلم نه واوریدل' چه ال محمد صلی الله علیه وسلم سره د یو صاع غلے نه هیڅ پاتے نه شو' حالانکه نهه کورونه نے وو.

## باب ۱۹۳ : رَهْنِ السِّلَاحِ.

## باب ۱۹۳ : د زغرے ګاڼړه ایښودو بیان.

۱۰۳۷ : حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمٰنِ حَدَّثَنَا الْأَعْمَشُ قَالَ تَذَاكَرْنَا عِنْدَ إِبْرَاهِيمَ الرَّهْنَ وَالْقَبِيلَ فِي السَّلَفِ فَقَالَ إِبْرَاهِيمُ حَدَّثَنَا الْأَسْوَدُ عَنْ عَائِشَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اشْتَرَى مِنْ يَهُودِيٍّ طَعَامًا إِلَى أَجَلٍ وَ رَهَنَهُ دِرْعَهُ.

۱۰۳۷ : مسدد. عبدالواحد. اعمش. ابراهیم نخعي. اسود. بي بي عائشے نه روایت کوي د هغے بیان دے چه نبي صلی الله علیه وسلم د یو یهودي نه د یو مودے پورے غله واخسته او خپله زغره نے هغه سره ګاڼړه کړله.

## باب ۱۹۴ : رَهْنِ السِّلَاحِ.

## باب ۱۹۴ : د وسلے د ګاڼړه ایښودو بیان.

۱۰۳۸ : حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ عَمْرٌو سَمِعْتُ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ يَقُولُ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ لِكَعْبِ بْنِ الْأَشْرَفِ فَإِنَّهُ آذَى اللَّهَ وَرَسُولَهُ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

۱۰۳۸ : علي بن عبدالله. سفیان. عمرو. جابر بن عبدالله بیان کوي' رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل' څوک شته' چه د کعب بن اشرف کار تمام کړي (یعني مړ نے کړي) هغه الله او د هغه رسول ته تکلیف ورکړے دے. محمد بن مسلمه عرض اوکړ' زه (تیاریم) نو محمد بن مسلمه هغه له راغے' او د یو وسق

فَقَالَ مُحَمَّدُ ابْنُ مَسْلَمَةَ اَنَا فَاَتَاهُ فَقَالَ اَرَدْنَا اَنْ تُسْلِفَنَا وَسْقًا اَوْ وَسْقَيْنِ فَقَالَ ارْهَنُوْنِیْ نِسَآءَ كُمْ قَالُوْا كَيْفَ نَرْهَنُكَ نِسَآءَ نَا وَ اَنْتَ اَجْمَلُ الْعَرَبِ قَالَ فَارْهَنُوْنِیْٓ اَبْنَآءَ كُمْ قَالُوْا كَيْفَ نَرْهَنُ اَبْنَآءَ نَا فَيُسَبُّ اَحَدُهُمْ فَيُقَالُ رُهِنَ بِوَسَقٍ اَوْ وَسْقَيْنِ هٰذَا عَارٌ عَلَيْنَا وَلٰكِنَّا نَرْهَنُكَ اللَّامَةَ قَالَ سُفْيَانُ يَعْنِی السِّلَاحَ فَوَعَدَهٗ اَنْ يَّاْتِيَهٗ فَقَتَلُوْهُ ثُمَّ اَتُوا النَّبِیَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَخْبَرُوْهُ.

یا دوه وسق غله قرض اخستو خیال ئې ظاهر کړ. نو هغه ورته اووې، خپلې ښځې ماسره ګانړه کړې. هغې خلقو ورته اووې، مونږ څنګه خپلې ښځې ګانړه کولې شو، چه ته عربو کښې د ټولونه زیات حسین (ښکلې) ئې. هغه ورته اووې، خپل ځامن راسره ګانړه کړئې. هغې خلقو ورته اووې، مونږ څنګه خپل ځامن ګانړه کولې شو، خلق به بیا هغوئ ته پیغور کوي، او وائي به، چه د یو وسق یا دوه وسق غلې په عوض ګانړه کړې شو دا مونږ د پاره د شرم خبره ده. لیکن وسله تاسره ګانړه کولې شو، نو هغه سره ئې دوباره د راتلو وعده اوکړه. بیا هغه له راغلل، او هغه ئې قتل کړ. بیا هغوي نبي صلی الله علیه وسلّم له راغلل، او حضور صلی الله علیه وسلّم ته ئې قصه بیان کړه.

بَابٌ ۶۹۵: اَلرَّهْنُ مَرْكُوْبٌ وَّ مَحْلُوْبٌ وَ قَالَ مُغِيْرَةُ عَنْ اِبْرَاهِيْمَ تُرْكَبُ الضَّآلَّةُ بِقَدْرِ عَلْفِهَا وَ تُحْلَبُ بِقَدْرِ عَلْفِهَا وَالرَّهْنُ مِثْلُهٗ.

باب ۶۹۵: په ګانړه ځیز دې سورلي کولې شي او د هغې پئې دې لشلې شي او مغیره د، ابراهیم نه نقل کړې دې، چه ورک شوي ځناور باندې دې د هغې د خوراک برابر سورلي کولې شي. او د هغې د خوراک (چاره) مطابق دې ترې پئې لشلې شي او د رهن هم دغه حکم دې.

۱۰۳۹: حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا زَكَرِيَّآءُ عَنْ عَامِرٍ عَنْ اَبِیْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِیِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهٗ كَانَ يَقُوْلُ الرَّهْنُ يُرْكَبُ بِنَفَقَتِهٖ وَ يُشْرَبُ لَبَنُ الدَّرِّ اِذَا كَانَ مَرْهُوْنًا.

۱۰۳۹: ابونعیم. زکریا. عامر. حضرت ابوهریرهؓ نبي صلی الله علیه وسلّم نه روایت کوي. حضور صلی الله علیه وسلّم فرمائیلې دي، ګانړه ځناور دې په هغه د خرڅ په عوض سورلي کولې شي او پئې ورکونکې ځناور دې لشلې شي، که هغه ګانړه وي.

۱۰۴۰: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مَقَاتِلٍ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا

۱۰۴۰: محمد بن مقاتل. عبدالله. زکریا. شعبي. ابوهریرهؓ نه روایت کوي. د هغه بیان

زَكَرِيَّاءُ عَنِ الشَّعْبِيِّ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلرَّهْنُ يُرْكَبُ بِنَفَقَتِهٖ اِذَا كَانَ مَرْهُوْنًا وَلَبَنُ الدَّرِّ يُشْرَبُ بِنَفَقَتِهٖ اِذَا كَانَ مَرْهُوْنًا وَّ عَلَى الَّذِيْ يَرْكَبُ وَ يَشْرَبُ النَّفَقَةُ.

دے. رسول اللّٰه صلے اللّٰه علیه وسلم او فرمائیل پـه گـانـره خـنـاور دے پـه هـغـه د خرڅ پـه عوض سـورلـي کـولـے شي. او د پيو خـنـاور دے لـشـلـے شي، کـه هـغـه گـانـره وي. د سورلي کـونـکـي او پـنـے څـکـونـکـي پـه ذمـے د خـناور خرڅ خوراک دے.

## بَابُ ٦٩٦ : الرَّهْنِ عِنْدَ الْيَهُوْدِ وَغَيْرِهِمْ.

## بـاب ٦٩٦ : يهـودي وغيـره سـره گـانـره ايښودل.

۱۰۴۱ : حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا جَرِيْرٌ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ اِبْرَاهِيْمَ عَنِ الْاَسْوَدِ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتِ اشْتَرٰى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ يَهُوْدِيٍّ طَعَامًا وَ رَهَنَهٗ دِرْعَهٗ.

۱۰۴۱ : قتيبه. جرير. اعمش. ابراهيم. اسود. بـي بـي عـائـشـےؓ نـه روايـت كوي. د هغے بيـان دے چـه رسول اللّٰه صلے اللّٰه علیه وسلم يو يهودي نـه غـلـه واخستـه، او هغـهٔ سره ئے خپله زغره گانړه كيښوده.

## بَابُ ٦٩٧ : اِذَا اخْتَلَفَ الرَّاهِنُ وَالْمُرْتَهِنُ وَ نَحْوَهٗ فَالْبَيِّنَةُ لِلْمُدَّعِيْ وَالْيَمِيْنُ عَلَى الْمُدَّعٰى عَلَيْهِ.

## بـاب ٦٩٧ : كـهٔ راهـن او مـرتهـن كـښې اخـتـلاف وي، نـو د مـدعـي پـه ذمـه گـواه پيـش كـول او پـه مـدعـا عـلـيـه قسم خوړل واجـب دي.

۱۰۴۲ : حَدَّثَنَا خَلَّادُ بْنُ يَحْيٰى حَدَّثَنَا نَافِعُ بْنُ عُمَرَ عَنِ ابْنِ اَبِيْ مُلَيْكَةَ قَالَ كَتَبْتُ اِلَى ابْنِ عَبَّاسٍ فَكَتَبَ اِلَيَّ اِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَضٰى اَنَّ الْيَمِيْنَ عَلَى الْمُدَّعٰى عَلَيْهِ.

۱۰۴۲ : خـلاد بـن يـحـيـي. نـافـع بـن عـمـر. ابـن ابـي مـلـيـكـه نـه روايـت كـوي. د هـغـه بيـان دے چـه مـا ابـن عباسؓ تـه اولـيـكـل، نـو هـغـه جـواب راكـهٔ نبي صلے اللّٰه علیه وسلم حكم فـرمـائـيـلے دے، چـه قسم د مدعا عليـه پـه ذمـه دے.

۱۰۴۳ : حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا جَرِيْرٌ عَنْ مَنْصُوْرٍ عَنْ اَبِيْ وَائِلٍ قَالَ قَالَ عَبْدُاللّٰهِ مَنْ

۱۰۴۳ : قتيبه بن سعيد. جرير. منصور. ابو وائل نه روايت كـوي. د هـغـهٔ بيـان دے، عبدالله بن مسعود اوويے، چا چه د دروغه قسم اوخوړ، چه د هغے په ذريعه

حَلَفَ عَلٰى يَمِيْنٍ يَسْتَحِقُّ بِهَا مَالًا وَهُوَ فِيْهَا فَاجِرٌ لَقِيَ اللّٰهَ وَهُوَ عَلَيْهِ غَضْبَانُ فَاَنْزَلَ اللّٰهُ تَصْدِيْقَ ذَالِكَ اِنَّ الَّذِيْنَ يَشْتَرُوْنَ بِعَهْدِ اللّٰهِ وَ اَيْمَانِهِمْ ثَمَنًا قَلِيْلًا فَقَرَاَ اِلٰى عَذَابٌ اَلِيْمٌ ثُمَّ اِنَّ الْاَشْعَثَ بْنَ قَيْسٍ خَرَجَ اِلَيْنَا فَقَالَ مَا يُحَدِّثُكُمْ اَبُوْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ قَالَ فَحَدَّثْنَاهُ، قَالَ فَقَالَ صَدَقَ لَفِيَّ وَاللّٰهِ اُنْزِلَتْ كَانَتْ بَيْنِيْ وَ بَيْنَ رَجُلٍ خُصُوْمَةٌ فِيْ بِئْرٍ فَاخْتَصَمْنَا اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَاهِدُكَ اَوْ يَمِيْنُهُ قُلْتُ اَنَّهُ اِذًا يَحْلِفُ وَلَا يُبَالِيْ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ حَلَفَ عَلٰى يَمِيْنٍ يَسْتَحِقُّ بِهَا مَالًا هُوَ فِيْهَا فَاجِرٌ لَقِيَ اللّٰهَ وَهُوَ عَلَيْهِ غَضْبَانُ فَاَنْزَلَ اللّٰهُ تَصْدِيْقَ ذَالِكَ ثُمَّ اقْتَرَأَ هٰذِهِ الْاٰيَةَ اِنَّ الَّذِيْنَ يَشْتَرُوْنَ بِعَهْدِ اللّٰهِ وَ اَيْمَانِهِمْ ثَمَنًا قَلِيْلًا اِلٰى وَلَهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ.

د چا د مال مستحق شي نو هغه به الله سره داسې حال کښې يوځائې کيږي چه الله به د هغه نه ناراض وي. بيا الله تعالي د دې په تصديق کښې دا آيت نازل کړلو چه انَّ الَّذِيْن يشترون بعهد الله و ايمانهم ثمنا قليلا او عذاب اليم پورې نې آيت اولوست بيا اشعث بن قيس موږ پله راغې. او تپوس نې اوکه ابو عبدالرحمن (عبدالله بن مسعود) تاسو ته کوم حديث بيانوي موږ هغه ته او وې نو هغه او وې هغه ريښتيا وائي. په خدائې چه دا آيت خمونږ په باب کښې نازل شوې دې. خمونږ او د يو سړي په مينځ کښې د کوهي متعلق جګړه شوه نو موږ خپله مقدمه رسول الله صلى الله عليه وسلم له يوړله. رسول الله صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل ستا څه ګواه شته، کني هغه به قسم اوخوري. ما عرض اوکه هغه خو به قسم خوري او هيڅ پروا به نه کوي رسول الله صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل چاچه په دروغه قسم اوخوړلو د پاره د دې چه د هغې په ذريعه د چا د مال مستحق شي نو الله تعالي به هغه سره داسې حال کښې يوځائې شي چه هغه ته به په غصه وي. او الله تعالي د دې په تصديق کښې دا آيت نازل که. بيائې دا آيت ان الذين يشترون بعهد الله و ايمانهم ثمنا قليلا. عذاب اليم پورې اولوست.

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

بسم الله الرحمن الرحيم

## بَابُ ۶۹۸ : فِي الْعِتْقِ و فَضْلِهٖ

وَ قَوْلِهٖ تَعَالٰى فَكُّ رَقَبَةٍ اَوْ اِطْعَامٌ فِيْ يَوْمٍ ذِيْ مَسْغَبَةٍ يَتِيْمًا ذَا مَقْرَبَةٍ.

## باب ۶۹۸ : غلام آزادول او د دې د فضيلت

بيان او د الله تعالي قول غلام آزادول يا د لوږې په ورځ په يو رشته دار يتيم طعام خوړل.

۲۳۴۴ : حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ

۲۳۴۴ : احمد بن يونس عاصم بن محمد

يُونُس حَدَّثَنَا عَاصِمُ بْنُ مُحَمَّدٍ قَالَ حَدَّثَنِي وَاقِدُ بْنُ مُحَمَّدٍ قَالَ حَدَّثَنِي سَعِيدُ بْنُ مَرْجَانَةَ صَاحِبُ عَلِيِّ بْنِ حُسَيْنٍ قَالَ قَالَ لِي أَبُو هُرَيْرَةَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَيُّمَا رَجُلٍ أَعْتَقَ امْرَءًا مُسْلِمًا اسْتَنْقَذَ اللّٰهُ بِكُلِّ عُضْوٍ مِنْهُ عُضْوًا مِنْهُ مِنَ النَّارِ قَالَ سَعِيدُ بْنُ مَرْجَانَةَ فَانْطَلَقْتُ إِلَى عَلِيِّ بْنِ حُسَيْنٍ فَعَمِدَ عَلِيُّ بْنُ حُسَيْنٍ إِلَى عَبْدٍ لَهُ قَدْ أَعْطَاهُ بِهِ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ جَعْفَرٍ عَشَرَةَ آلَافِ دِرْهَمٍ أَوْ أَلْفَ دِينَارٍ فَأَعْتَقَهُ.

واقد بن محمد. سعيد بن مرجانه (د علي بن حسين مصاحب) ابوهريره نه روايت کوی د هغه بيان دے نبي صلے اللّٰه عليه وسلم فرمائيلي دي چا چه يو مسلمان سړے آزاد کړ نو الله تعالي به د هغه د هر آندام په عوض د آزاد کونکي آندام د (جهنم د) اور نه خلاص ور کړي. د سعيد بن مرجانه بيان دے چه زۀ علي بن حسين له ورغلم او د هغه مخکښ م دا حديث بيان کړ نو هغه د خپل يو غلام (د آزادولو) قصد او کړ چه د هغۀ قيمت عبداللّٰه بن جعفر لس زره درهمه يا يو زر دينار ورکولو ته تيار وو. او هغه نے آزاد کړلو.

## بَابٌ ٦٩٩ : أَيُّ الرِّقَابِ أَفْضَلُ.

## باب ٦٩٩ : د کوم قسم غلام آزادول افضل دي.

١٠٣٥ : حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ مُوسَى عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ أَبِيهِ عَنْ أَبِي مُرَاوِحٍ عَنْ أَبِي ذَرٍّ قَالَ سَأَلْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَيُّ الْعَمَلِ أَفْضَلُ قَالَ إِيمَانٌ بِاللّٰهِ وَجِهَادٌ فِي سَبِيلِهِ قُلْتُ فَأَيُّ الرِّقَابِ أَفْضَلُ قَالَ أَغْلَاهَا ثَمَنًا وَأَنْفَسُهَا عِنْدَ أَهْلِهَا قُلْتُ فَإِنْ لَمْ أَفْعَلْ قَالَ تُعِينُ صَانِعًا أَوْ تَصْنَعُ لِأَخْرَقَ قَالَ فَإِنْ لَمْ أَفْعَلْ قَالَ تَدَعُ النَّاسَ مِنَ الشَّرِّ

١٠٣٥ : عبيداللّٰه بن موسي. هشام بن عروه. عروه. ابو مراوح. ابوذر نه روايت کوي ما د نبي صلے اللّٰه عليه وسلم نه تپوس او کۀ کوم عمل افضل دے نو حضور صلے اللّٰه عليه وسلم اوفرمائيل په الله ايمان راوړل او د هغۀ په لار کښ جهاد کول. ما تپوس او کۀ کوم قسم غلام آزادول افضل دي حضور صلے اللّٰه عليه وسلم اوفرمائيل کوم چه ډير بيش قيمته وي او د هغه د مالکانو ډير خوښ وي. ما تپوس او کۀ کۀ زۀ دا اونۀ کړے شم نو حضور صلے اللّٰه عليه وسلم د چا کاريګر مدد او کړه يا د چا بے هنره د پاره کار او کړه. هغۀ تپوس او کۀ کۀ دا هم زۀ اونۀ کړے شم نو حضور صلے اللّٰه عليه وسلم اوفرمائيل خلق د خپل شر نه محفوظ

فَاِنَّهَا صَدَقَةٌ تَصَدَّقَ بِهَا عَلٰى نَفْسِكَ.

کړه (يعني هغوي سره د بدي کولو نه منع شه) خکه چه دا هم يوه صدقه ده چه ته ئې په خان کوې.

**بَاب ٧٠٠: مَا يُسْتَحَبُّ مِنَ الْعَتَاقَةِ فِي الْكُسُوفِ وَالْاٰيَاتِ.**

**باب ٧٠٠:** د نمر تندر نيولو او د نورو نښو (علامو) په وخت غلام آزادول مستحب دي.

١٠٤٦: حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ مَسْعُودٍ حَدَّثَنَا زَائِدَةُ بْنُ قُدَامَةَ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ فَاطِمَةَ بِنْتِ الْمُنْذِرِ عَنْ اَسْمَاءَ بِنْتِ اَبِيْ بَكْرٍ قَالَتْ اَمَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْعَتَاقَةِ فِيْ كُسُوفِ الشَّمْسِ تَابَعَهُ عَلِيٌّ عَنِ الدَّرَاوَرْدِيِّ عَنْ هِشَامٍ.

١٠٤٦: موسى بن مسعود. زائده بن قدامه. هشام. فاطمه بنت منذر. اسماء بنت ابي بكر نه روايت كوي. د هغې بيان دے چه نبي صلے الله عليه وسلم د نمر تندر نيولو وخت كښې د غلام آزادولو حكم اوكه. علي په واسطه د دراوردي هشام د دے متابعت كښې حديث روايت كړے دے.

١٠٤٧: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ اَبِيْ بَكْرٍ حَدَّثَنَا عَثَّامٌ حَدَّثَنَا هِشَامٌ عَنْ فَاطِمَةَ بِنْتِ الْمُنْذِرِ عَنْ اَسْمَاءَ بِنْتِ اَبِيْ بَكْرٍ قَالَتْ كُنَّا نُؤْمَرُ عِنْدَ الْخُسُوفِ بِالْعَتَاقَةِ.

١٠٤٧: محمد بن ابي بكر. عثام. هشام. فاطمه بنت منذر. اسماء بنت ابي بكر نه روايت كوي د هغې بيان دے چه موږ خلقوته به د (نمر يا سپوږمۍ) تندر نيولو وخت كښې د غلام آزادولو حكم راكولے شو.

**بَاب ٧٠١: اِذَا اَعْتَقَ عَبْدًا بَيْنَ اثْنَيْنِ اَوْ اَمَةً بَيْنَ الشُّرَكَاءِ.**

**باب ٧٠١:** د دوو سړو مينځ كښې مشترك غلام يا د څو شريكانو مينځ كښې مشتركه وينزه كه څوك آزاده كړي.

١٠٤٨: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَمْرٍو عَنْ سَالِمٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ اَعْتَقَ بَيْنَ اثْنَيْنِ فَاِنْ كَانَ مُوْسِرًا قُوِّمَ عَلَيْهِ ثُمَّ

١٠٤٨: علي بن عبدالله. سفيان. عمرو. سالم د خپل پلار نه هغه د نبي صلے الله عليه وسلم نه روايت كوي. حضور صلے الله عليه وسلم اوفرمائيل چا چه داسے غلام آزاد كړ چه د دوو سړو مينځ كښې مشترك وي. كه هغه مالدار وي نو د هغې غلام قيمت به لږولے شي. بيا به هغه غلام آزادولے شي (د باقي حصو قيمت

يُعْتَقُ.

به آزادونکے ورکوي).

۱۰۴۹ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰه ابْنُ يُوسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ نَافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ اَعْتَقَ شِرْكًا لَهُ فِيْ عَبْدٍ فَكَانَ لَهُ مَالٌ يَبْلُغُ ثَمَنَ الْعَبْدِ قُوِّمَ الْعَبْدُ قِيْمَةَ عَدْلٍ فَاَعْطَى شُرَكَاءَهُ حِصَصَهُمْ وَ عَتَقَ عَلَيْهِ وَ اِلَّا فَقَدْ عَتَقَ مِنْهُ مَا عَتَقَ.

۱۰۴۹ : عبدالله بن يوسف. مالک. نافع. عبدالله بن عمرؓ نه روایت دے. نبي صلے الله علیه وسلم اوفرمائیل. کوم سړي چه خپله حصه د یو غلام آزاده کړه، او هغه سره دومره مال وي چه د پوره غلام د قیمت برابر وي، نو د هغے غلام ټیک ټیک قیمت به لږولے شي، او د هغه شریکانوله دے د هغوي د حصے قیمت ورکړي. بیا به هغه آزاد شي. کني (د تنګ دستي په صورت کښې به) د هغے غلام به دومره حصه آزاده وي. څومره چه هغه آزاده کړے ده.

۱۰۵۰ : حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ اِسْمٰعِيْلَ عَنْ اَبِيْ اُسَامَةَ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ اَعْتَقَ شِرْكًا لَهُ فِيْ مَمْلُوْكٍ فَعَلَيْهِ عِتْقُهُ كُلِّهِ اِنْ كَانَ لَهُ مَالٌ يَبْلُغُ مِنْهُ فَاِنْ لَمْ يَكُنْ لَهُ مَالٌ يُقَوَّمُ عَلَيْهِ قِيْمَةَ عَدْلٍ فَاُعْتِقَ مِنْهُ مَا اُعْتِقَ.

۱۰۵۰ : عبید بن اسمعیل. ابو اسامه. عبیدالله. نافع. ابن عمرؓ نه روایت دے. رسول الله صلے الله علیه وسلم اوفرمائیل. کوم سړي چه یو غلام کښې خپله حصه آزاده کړه، نو په هغه د پوره غلام آزادول واجب دي. که هغه سره دومره مال وي چه د هغه د قیمت برابر وي. او که هغه سره دومره مال نه وي، چه د یو عادل د تجویز مطابق د هغه پوره قیمت وي، نو د هغه دومره حصه به آزاده وي، څومره چه هغه آزاده کړے ده.

۱۰۵۱ : حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا بِشْرٌ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ اخْتَصَرَهُ.

۱۰۵۱ : مسدد. بشر. عبیدالله دا (حدیث) مختصر بیان که.

۱۰۵۲ : حَدَّثَنَا اَبُو النُّعْمَانِ حَدَّثَنَا حَمَّادٌ عَنْ اَيُّوْبَ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ اَعْتَقَ نَصِيْبًا لَهُ فِيْ مَمْلُوْكٍ اَوْ شِرْكًا لَهُ فِيْ عَبْدٍ وَ كَانَ لَهُ مِنَ الْمَالِ مَا يَبْلُغُ قِيْمَتَهُ بِقِيْمَةِ

۱۰۵۲ : ابوالنعمان. حماد. ایوب. نافع. ابن عمرؓ نبي صلے الله علیه سلم نه روایت کوي. چا چه خپله حصه د یو غلام آزاده کړه، او هغه سره دومره مال وي، چه د هغه د قیمت برابر وي، نو هغه به آزاد کړے شي نافع اووے، کني (د تنګدستي په صورت

الْعَدْلِ فَهُوَ عَتِيقٌ قَالَ نَافِعٌ وَ إِلَّا فَقَدْ عَتَقَ مِنْهُ مَا عَتَقَ قَالَ أَيُّوبُ لَا أَدْرِيُ أَشَيْءٌ قَالَهُ نَافِعٌ أَوْ شَيْءٌ فِي الْحَدِيثِ.

کښې) چه څومره آزاد کړې شوې دې هغومره به آزاد وي. د ایوب بیان دې. زه نه پوهیږم، چه دا د نافع قول دې یا حدیث کښې شامل دې.

۱۰۵۴: حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مِقْدَامٍ حَدَّثَنَا الْفُضَيْلُ بْنُ سُلَيْمَانَ حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ عُقْبَةَ أَخْبَرَنِي نَافِعٌ عَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّهُ كَانَ يُفْتِي فِي الْعَبْدِ أَوِ الْأَمَةِ يَكُونُ بَيْنَ شُرَكَاءَ فَيُعْتِقُ أَحَدُهُمْ نَصِيبَهُ مِنْهُ يَقُولُ قَدْ وَجَبَ عَلَيْهِ عِتْقُهُ كُلِّهِ إِذَا كَانَ لِلَّذِي أَعْتَقَ مِنَ الْمَالِ مَا يَبْلُغُ يُقَوَّمُ مِنْ مَالِهِ قِيمَةَ الْعَدْلِ وَ يُدْفَعُ إِلَى الشُّرَكَاءِ أَنْصِبَاؤُهُمْ وَ يُخَلَّى سَبِيلُ الْمُعْتَقِ يُخْبِرُ ذَالِكَ ابْنُ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ رَوَاهُ اللَّيْثُ وَابْنُ أَبِي ذِئْبٍ وَابْنُ إِسْحٰقَ وَ جُوَيْرِيَةُ وَ يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ وَ إِسْمٰعِيلُ ابْنُ أُمَيَّةَ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُخْتَصَرًا.

۱۰۵۴: احمد بن مقدام. فضیل بن سلیمان. موسی بن عقبه. نافع. ابن عمرؓ نه روایت کوي چه هغه به فتوي ورکوله که یو غلام یا وینزه د څو شریکانو مینځ کښې مشترک وي که هغوی کښې څوک خپله حصه آزاده کړه، نو په هغه پوره غلام آزادول واجب دي هر کله چه آزادونکي سره دومره مال وي چه د عادل د تجویز مطابق د هغه د قیمت برابر وي. او شریکانو ته به د هغوي د حصې قیمت ورکیدې شي. ابن عمرؓ به دا د نبي صلی الله علیه وسلم نه بیان کولو، او دا لیث او ابن ابي ذئب. ابن اسحاق او جویریه او یحیی بن سعید او اسمعیل بن امیه. نافع نه هغه د ابن عمرؓ نه او هغه د نبي صلی الله علیه وسلم نه مختصر طور سره روایت کوي[۱].

[۱] یو غلام په کمرو کسانو په شریکه اخستو او هغه غلام به د ټولو مشترک گڼلې کیدو. بنیادي اصول دا دې چه په یو سړي کښې په یو وخت کښې غلامي او آزادي نشي جمع کیدلې چونکه آزادي افضل او اشرف حالت دې په دې وجه که چرې د یو داسې مشترک غلام یو شریکوال خپله حصه ازاده کړه نو د هغهٔ یوه حصه گویا آزاده شوه، اوس د باقي حصې ازادي هم ضروري ده او د هغې د پاره مناسب صورت پیدا کول دي د پاره د دې چه په ځا باندې ظلم هم او نشي او یو انسان ته آزادي هم ملاو شي گوم چه د هغهٔ پیدائشي حق دې. د اسلام همدغه منشا ده. په ذکر شوي باب کښې روایات مختلف او متعدد دي او د امام ابو حنیفه رحمة الله علیه مسلک په دې سلسلې کښې دا دې چه که چرې د مشترک غلام

خپله حصه ازادونکے تنگ دست وي نو د هغه بل شریک ته به اوویلے شي چه ته د خپلے حصے قیمت د غلام نه طلب کړه' غلام به محنت مزدوري اوکړي یا به هغه قیمت ادا کړي او په پوره تو که به ازاد شي یا د بیا دے پخپله هغه ازاد کړي.

بهر حال غلام د خپلے یوے حصے ازاد والي نه پس په مستقبل کښ غلام نشي پاتے کیدے' هغه نه ازادي ملاویدل ضروري دي او که چرے ازادونکے حصه دار په ښه حال کښ وي او په دے حیثیت کښ وي چه د پوره غلام قیمت ادا کولے شي نو په دے کښ هم مختلف صورتونه دي. ازادونکے سرے د د بل شریکوال د حصے قیمت پخپله ادا کړي' ولے چه هر کله یو غلام قانوناً د یوے حصے ازادئ نه پس غلام نشي پاتے کیدے او دے سړي د خپلے حصے ازادؤلو سره د خپل بل ملګري په حصه کښ هم مداخلت اوکړو او د حیثیت خاوند دے نو د بل شریکوال د حصے ذمه واري به هم په همدهٔ باندے اچولے کیږي. که چرے تنګدست وے نو خیر ددے نیکۍ په وجے سره به دے معاف کړے شوے وو لیکن کله چه دے د شریکوال د حصے قیمت ادا کولے شي نو اوس د خپلے ذمه وارئ نه بچ کیدے نشي. په دے کښ یو صورت دا هم دے چه ازادونکے د غلام ته اووائي چه ته پخپله پیسے اوګټه او د بل شریکوال د حصے قیمت ادا کړه او ازاد شه. که چرے غلام په دے باندے تیار شي نو فَبِهَا کنے همده له به د خپل طرفنه ازادؤل وي. بهر حال په دویم صورت کښے به ذمه واري د ازادئ حاصلونکي وي.

بَابٌ ۲۰۲: إِذَا أَعْتَقَ نَصِيبًا فِيْ عَبْدٍ وَّ لَيْسَ لَهٗ مَالٌ اُسْتُسْعِيَ الْعَبْدُ غَيْرَ مَشْقُوْقٍ عَلَيْهِ عَلٰى نَحْوِ الْكِتَابَةِ.

باب ۲۰۲: کهٔ یو سړي په غُلام کښ خپله حصه آزاده کړه' او هغه سره مال نهٔ وي' نو په غُلام دے محنت اوکړے شي' په دے طور' چه هغه مشقت کښ وانهٔ چولے شي' څنګه چه مکاتبت کښ کوي[۱].

۱. د مکاتبت ذکر ددے نه مخکښ تیر شو او آئنده به مستقل باب ددے د پاره راځي څنګه چه مخکښ لیکلے شوي دي. د مکاتبت مفهوم دا دے چه یو غلام آقا سره دا معامله اوکړي چه په دومره موده کښ به زهٔ تاته دومره روپئ درکوم او کله چه زهٔ دغه روپئ درکړم نو ته به ما ازاد کړے. که چرے آقا په دے باندے راضي شو او غلام شرط پوره کړو نو هغه به ازاد شي. مطلب دا دے چه په ذکر شوي صورت کښ به د غلام کوشش د مکاتبت پشان وي.

۱۰۵۴: حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ أَبِيْ رَجَاءٍ حَدَّثَنَا يَحْيَى ابْنُ اٰدَمَ حَدَّثَنَا جَرِيْرُ بْنُ حَازِمٍ سَمِعْتُ قَتَادَةَ قَالَ حَدَّثَنِيْ النَّضْرُ بْنُ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ عَنْ بَشِيْرِ بْنِ نَهِيْكٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

۱۰۵۴: احمد بن رجاء. یحیٰي بن آدم. جریر بن حازم. قتاده. نضر بن انس بن مالک. بشیر بن نهیک. ابوهریرهٔ نه روایت کوي. نبي صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل. چا چه خپله حصه یو غلام کښ آزاده کړه. ح (دوئم سند) مسدد. یزید بن

مَنِ اعْتَقَ مُقْبِضًا مِنْ عَبْدٍ ح حَدَّثَنَا يَزِيْدُ بْنُ زُرَيْعٍ حَدَّثَنَا سَعِيْدُ عَنْ قَتَادَةُ عَنِ النَّضْرِ بْنِ اَنَسٍ عَنْ بَشِيْرِ بْنِ نَهِيْكٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ' قَالَ مَنِ اَعْتَقَ نَصِيْبًا اَوْ شَقِيْصًا فِيْ مَمْلُوْكٍ فَخَلَاصُهُ عَلَيْهِ فِيْ مَالِهِ اَنْ كَانَ لَهُ مَالٌ وَّ اِلَّا قُوِّمَ عَلَيْهِ فَاسْتُسْعِيَ بِهٖ غَيْرَ مَشْقُوْقٍ عَلَيْهِ تَابَعَهُ حَجَّاجُ بْنُ حَجَّاجٍ وَّ اَبَانُ وَ مُوْسٰى ابْنُ خَلَفٍ عَنْ قَتَادَةَ اخْتَصَرَهُ شُعْبَةُ.

زريع. سعيد. قتاده. نضر ابن انس نه بن نهيک. ابوهريره نه روايت کوي ېې نبي صلى الله عليه وسلّم اوفرمائيل. چا چه حبه حصه يو غلام کښې آزاده کړه' نو په هغه د هغه آزادول خپل مال کښې واجب دي که هغه سره مال وي. کنې د هغه قيمت به لږولے شي او په هغې غلام به مزدوري کولے شي. ليکن هغه دې مشقت کښې نه شي اچولے. حجاج بن حجاج ابان او موسى بن خلف د قتاده نه روايت کړے دے. او دا شعبه مختصر طور سره بيان کړ.

## بَاب ۷۰۳: اَلْخَطَاءِ وَالنِّسْيَانِ فِي الْعَتَاقَةِ وَالطَّلَاقِ وَ نَحْوِهٖ وَلَا عَتَاقَةَ اِلَّا لِوَجْهِ اللّٰهِ وَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِكُلِّ امْرِئٍ مَا نَوٰى وَلَا نِيَّةَ لِلنَّاسِيْ وَالْمُخْطِيْءِ.

باب ۷۰۳: آزادي او طلاق وغيره کښې د هيرولو او غلطي کولو بيان[۱] او ازادي صرف د خدائے د خوشنودي د پاره ده' او نبي صلى الله عليه وسلم فرمائيلے دي' هر سړي ته به هغه رسي' چه د څه نيت اوکړي' او د هيرونکي او غلطي کونکي هيڅ نيت نه وي.

۱. چه مونږ ورنه ترجمه په هيرے او غلطي سره کړے ده. مصنف رحمة الله عليه ددے د پاره دوه لفظونه "خطا او نسيان" استعمال کړي دي. د خطا مفهوم فقهاؤ دا ليکلے دے چه وئيل نے څه بل څه غوښتل او په ژبه نے بل څه راغلل. مثلا يو سړي سُبحان الله وئيل غوښتل او په ژبه نے راغلل "انت حرّ" (ته آزاد نے) او غلام ورته مخامخ وو. د نسيان معنى ده هيريدل. فقهاؤ ددے هم صورتونه ليکلي دي. د ناواقفيت خطا او نسيان اعتبار په اسلامي قانون کښې شوے دے' او امام بخاري په دے سلسله کښې د تږلونه اوړاندے دے. البته د احنافو په فقه کښې ددے ډير کم اعتبار دے. شاذ و نادر په خاص خاص مسائلو کښې چه امام بخاري په دے باب کښې د توشع نه کار اخستے دے د هغې يو مثال په ذکر شوے مسئله کښې هم دے که چرے دا اوويلے شي چه د نيت نه بغير هيڅ يو کار نه کيږي نو بيا به د هر عمل او هر تصرف د پاره د نيت مطالبه کول شروع شي' د کومے چه هيڅوک قائل نه دے. دا عمل چه "په عمل باندے اجر د نيت مطابق ملاويږي" ددے مفهوم صرف دومره دے چه که چرے نيت نے ښه وي نو د اجر او ثواب مستحق به شي او که نيت نے خراب وو نو اجر به ورته نه ملاويږي. پاتے شو دا بحث چه د عمل صحت

...پوری دې په نیت پاندې، نو په حدیث کښې ددې باره کښې د سره څه بحث نه دې کړې شوې.

۱۰۵۵ : حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِيُّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا مِسْعَرٌ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ زُرَارَةَ بْنِ اَوْفَى عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّ اللّٰهَ تَجَاوَزَ لِيْ عَنْ اُمَّتِيْ مَا وَسْوَسَتْ بِهٖ صُدُوْرُهَا وَلَمْ تَعْمَلْ اَوْ تَكَلَّمْ.

۱۰۵۵ : حمیدي. سفیان. مسعر. قتاده. زراره بن اوفي. حضرت ابوهریره نه روایت کوي. د هغه بیان دې نبي صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل چه الله تعالی خما امت ته د زړه وسوسې معاف کړي دي، څو پورې چه هغه عمل یا خبرې اونکړي.

۱۰۵۶ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيْرٍ عَنْ سُفْيَانَ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيْدٍ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ اِبْرَاهِيْمَ التَّيْمِيِّ عَنْ عَلْقَمَةَ بْنِ وَقَّاصٍ اللَّيْثِيِّ قَالَ سَمِعْتُ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الْاَعْمَالُ بِالنِّيَّةِ وَلِامْرِئٍ مَا نَوٰى فَمَنْ كَانَتْ هِجْرَتُهٗ اِلَى اللّٰهِ وَ رَسُوْلِهٖ فَهِجْرَتُهٗ اِلَى اللّٰهِ وَ رَسُوْلِهٖ وَمَنْ كَانَتْ هِجْرَتُهٗ لِدُنْيَا يُصِيْبُهَا اَوْ امْرَاَةٍ يَتَزَوَّجُهَا فَهِجْرَتُهٗ اِلٰى مَا هَاجَرَ اِلَيْهِ.

۱۰۵۶ : محمد بن کثیر. سفیان. یحیی بن سعید. محمد بن ابراهیم تیمي. علقمه بن وقاص لیثي. عمر بن خطاب نه هغه د نبي صلی الله علیه وسلم نه روایت کوي، حضور صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل، اعمال په نیتونو موقوف دي، او سړي ته هغه رسي، د څه چه نیت اوکړي. د چا هجرت چه الله او د هغه رسول طرفته وي، نو د هغه هجرت به الله او د هغه رسول طرف ته شمیرلې شي، او د چا هجرت چه دنیا حاصلولو یا یوې ښځې سره وادهٔ کولو د پاره وي، نو د هغه هجرت به هغې څیز طرف ته شمیرلې شي، د څه چه ئې نیت کړې وي.

## بَابٌ ۴۰۷ : اِذَا قَالَ رَجُلٌ لِعَبْدِهٖ هُوَ لِلّٰهِ وَ نَوَى الْعِتْقَ وَالْاِشْهَادُ فِي الْعِتْقِ.

## باب ۴۰۷ : کهٔ یو سړې خپل غلام ته اووائي چه هغه د الله د پاره دې، او د آزادي نیت اوکړي، او آزادئ کښې د ګواه مقررولو بیان.

۱۰۵۷ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ نُمَيْرٍ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ بِشْرٍ عَنْ اِسْمَاعِيْلَ عَنْ قَيْسٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّهٗ لَمَّا اَقْبَلَ يُرِيْدُ الْاِسْلَامَ وَ

۱۰۵۷ : محمد بن عبدالله بن نمیر. محمد بن بشر. اسمعیل. قیس. ابوهریره نه روایت کوي، چه کله د اسلام قبلولو په نیت ابوهریره اوزتلو، او هغه سره د هغه غلام هم وو

مَعَهُ غُلَامُهُ ضَلَّ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا مِنْ صَاحِبِهِ فَاَقْبَلَ بَعْدَ ذَالِكَ وَ اَبُوْ هُرَيْرَةَ جَالِسٌ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَا اَبَا هُرَيْرَةَ هٰذَا غُلَامُكَ قَدْ اَتَاكَ فَقَالَ اَمَآ اِنِّيْ اُشْهِدُكَ اِنَّهُ حُرٌّ قَالَ فَهُوَ حِيْنَ يَقُوْلُ ۔

يَا لَيْلَةً مِّنْ طُوْلِهَا وَ عَنَآئِهَا
عَلَى اَنَّهَا مِنْ دَارَةِ الْكُفْرِ نَجَّتْ

**۱۰۵۸ :** حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا اَبُوْ اُسَامَةَ حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ عَنْ قَيْسٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ لَمَّا قَدِمْتُ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قُلْتُ فِي الطَّرِيْقِ ۔

يَا لَيْلَةً مِّنْ طُوْلِهَا وَ عَنَائِهَا
عَلَى اَنَّهَا مِنْ دَارَةِ الْكُفْرِ نَجَّتِ

قَالَ وَ اَبَقَ مِنِّيْ غُلَامٌ لِّيْ فِي الطَّرِيْقِ قَالَ فَلَمَّا قَدِمْتُ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَايَعْتُهُ فَبَيْنَا اَنَا عِنْدَهُ اِذْ طَلَعَ الْغُلَامُ فَقَالَ لِيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَا اَبَا هُرَيْرَةَ هٰذَا غُلَامُكَ فَقُلْتُ هُوَ حُرٌّ لِوَجْهِ اللّٰهِ فَاَعْتَقْتُهُ لَمْ يَقُلْ اَبُوْ كُرَيْبٍ عَنْ اَبِيْ اُسَامَةَ حُرٌّ.

**۱۰۵۹ :** حَدَّثَنَا شِهَابُ بْنُ عَبَّادٍ حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ حُمَيْدٍ

هغوئ کښې هر يو د بل نه جدا شولو. څۀ وروستو پس هغه غلام راغے، داسے حال کښې چه ابوهريرهؓ د نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم سره ناست وو. نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، اے ابوهريرهؓ دا ستا غلام دے چه تاله راغلے دے. ابوهريرهؓ اووے زۀ تاسو گواه کوم او وايم، چه دے آزاد دے. ابوهريرهؓ چه مدينے ته اورسيد، نو دا شعر، ئے وئيلے (ترجمه)

د شپے د، اوږدوالي او د هغے د سختونه شکايت دے خو، دا چه دارالکفر نه ئے خلاصي راکۀ

**۱۰۵۸ :** عبداللّٰه بن سعيد. ابو اُسامه. اسمٰعيل. قيس. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت کوي. د هغۀ بيان دے، چه کوم وخت زۀ د نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم خدمت کښې حاضر شوم، نو ما لار کښې دا شعر اووے (ترجمه)

د شپے د اوږدوالي او د هغے د سختونه شکايت دے خو، دا چه دارالکفر نه ئے خلاصي راکه

بيا هغه اووے، چه څما غلام د، لارے نه اوتښتيدلو. کوم وخت چه ما د نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم نه بيعت اوکۀ، دغه وخت څما غلام راغے، نو رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، ابوهريرهؓ دا ستا غلام دے، نو ما اووے. دے د، اللّٰه د رضا د پاره آزاد دے. او ما دے آزاد کړلو. ابو کريب چه ابو اسامه نه کوم روايت اوکۀ، هغے کښې دا نشته چه دے آزاد دے.

**۱۰۵۹ :** شهاب بن عباد. ابراهيم بن حميد. اسمٰعيل. قيس نه روايت دے. کوم وخت چه ابوهريرهؓ د

عَنْ اِسْمٰعِيْلَ عَنْ قَيْسٍ قَالَ لَمَّا اَقْبَلَ اَبُوْ هُرَيْرَةَ وَ مَعَهُ غُلَامُهُ وَهُوَ يَطْلُبُ الْاِسْلَامَ فَضَلَّ اَحَدُهُمَا صَاحِبَهُ بِهٰذَا وَ قَالَ اَمَا اِنِّيْ اُشْهِدُكَ اَنَّهُ لِلّٰهِ.

نبي صلى الله عليه وسلم خدمت كښ اسلام راوړلو ته پاره راتلو، نو هغه سره د هغه غلام هم وو. لاره ئې غلطه كړه، نو د يو بل نه جُدا شولو. بيائې داسې بيان او كړه، كوم وخت چه غلام راغې، نو وئيلې، زه تاسو ګواه كوم چه دے (غلام) الله د پاره دے.

باب ۷۰۵: اُمِّ الْوَلَدِ قَالَ اَبُوْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ اَشْرَاطِ السَّاعَةِ اَنْ تَلِدَ الْاَمَةُ رَبَّهَا.

باب ۷۰۵: د اُمِّ وَلَد بيان! او ابو هريرة د نبي صلي الله عليه وسلم نه روايت كړے دے، د قيامت نښه داده چه وينزے نه به خپل مالك پيدا شي.

ف: (ام ولد): هغه وينزه چه د هغې د خپل مالك د نطفے نه څه اولاد پيدا شوے وي. داسې وينزه مالك خرخولے نشي. بلكه هغه د مالك د مرګ نه پس به خانے د دے چه وارثانو ته ميراث كښ حاصله شي، آزاده ګڼړلے شي.

۱. وينزے سره خپل آقا هم بستري اوكړه، په نتيجه كښ ماشوم پيدا شو نو داسې وينزے ته به "اُمِّ وَلَد" وئيلے كيږي. د آقا د وفات نه پس دغه وينزه په خپله آزاديږي: د اُمِّ وَلَد كيدلو په وجے سره د هغې خرخول اخستل وغيره هم نشي كيدے. پس په دے باندے يو قانوني پابندي ده او د آقا په وفات سره دغه هم ختمه شي. د ابو هريره رضي الله عنه حديث مخكښے په تفصيل سره تير شوے دے په كتاب الايمان كښے. او په دے باندے نوټ هم تير شوے دے.

۱۰۶۰: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ حَدَّثَنِيْ عُرْوَةُ بْنُ الزُّبَيْرِ اَنَّ عَائِشَةَ قَالَتْ اِنَّ عُتْبَةَ بْنَ اَبِيْ وَقَّاصٍ عَهِدَ اِلٰى اَخِيْهِ سَعْدِ بْنِ اَبِيْ وَقَّاصٍ اَنْ يَقْبِضَ اِلَيْهِ ابْنَ وَلِيْدَةِ زَمْعَةَ قَالَ عُتْبَةُ اِنَّهُ ابْنِيْ فَلَمَّا قَدِمَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زَمَنَ الْفَتْحِ اَخَذَ سَعْدٌ ابْنَ وَلِيْدَةِ زَمْعَةَ فَاَقْبَلَ بِهِ اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

۱۰۶۰: ابو اليمان، شعيب، زهري، عروه بن زبير، د بي بي عائشے بيان دے چه عتبه بن ابي وقاص خپل وروړ سعد بن ابي وقاص ته وصيت كړے وو، چه د زمعه د وينزے بچے خوئ قبضه اوكړه، هغه خما خوئے دے. كوم وخت چه رسول الله صلي الله عليه وسلم د مكے د فتح په زمانه كښ مكے ته تشريف راوړلو، نو سعد د زمعه د وينزے خوئے واخست او د رسول الله صلي الله عليه وسلم خدمت كښ ئې حاضر كه. او عبد بن زمعه ئې هم خان سره راوخست. سعد

وَسَلَّمَ وَ اَقْبَلَ مَعَهُ بِعَبْدِ بْنِ زَمْعَةَ فَقَالَ سَعْدٌ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ هٰذَا ابْنُ اَخِيْ عَهِدَ اِلَيَّ اَنَّهُ ابْنُهُ فَقَالَ عَبْدُ بْنُ زَمْعَةَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ هٰذَا اَخِيْ ابْنُ وَلِيْدَةِ زَمْعَةَ وُلِدَ عَلٰى فِرَاشِهٖ فَنَظَرَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِلَى ابْنِ وَلِيْدَةِ زَمْعَةَ فَاِذَا هُوَ اَشْبَهُ النَّاسِ بِهٖ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هُوَ لَكَ يَا عَبْدُ بْنَ زَمْعَةَ مِنْ اَجْلِ اَنَّهُ وُلِدَ عَلٰى فِرَاشِ اَبِيْهِ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ احْتَجِبِيْ مِنْهُ يَا سَوْدَةُ بِنْتُ زَمْعَةَ مِمَّا رَاٰى مِنْ شَبَهِهٖ بِعُتْبَةَ وَ كَانَتْ سَوْدَةُ زَوْجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

عرض اوکړه يا رسول اللّه. دا خما د ورور ځوئے دے. خما ورور په ده د قبضے کولو ماته وصيت کړے وو او وئيلے وو چه دے د هغه ځوئے دے عبد بن زمعه عرض اوکړه يا رسول اللّه دا خما ورور دے د هغه په بستره د زمعه د وينزے نه پيدا شوے دے. رسول اللّه صلي اللّه عليه وسلّم د زمعه د وينزے ځوئے غور سره اوکتلو نو هغه د عتبه سره زيات مشابه وو. حضور صلي اللّه عليه وسلّم اوفرمائيل اے عبد بن زمعه دا ستا دے ځکه چه ستا د پلار په بستره پيدا شوے دے. او رسول اللّه صلي اللّه عليه وسلّم اوفرمائيل اے سودهٔ تهٔ ددهٔ نه پرده کوه په دے سبب چه هغه کښې ئے د عتبه ډير زيات مشابهت بيامند. او بي بي سودهٔ د نبي صلي اللّه عليه وسلّم ټبر وه.

## بَاب ۷۰۶: بَيْعِ الْمُدَبَّرِ.

## باب ۷۰۶: د مدبر د بيع بيان[۱].

۱. مدبّر هغه غلام دے د چا متعلق باره کښې چه د هغهٔ آقا وئيلي وي چه دے خما د مرګ نه پس آزاد دے. داسے غلام به د آقا د وفات نه پس آزاد شي. او د امام ابو حنيفه رحمة اللّه عليه په نزد د امّ ولد پشان دده هم خرڅول اخستل او هغه ټول تصرّفات جائز نه دي کوم چه په يو مملوک کښې چليدے شي.

۱۰۶۱: حَدَّثَنَا اٰدَمُ بْنُ اَبِيْ اِيَاسٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ دِيْنَارٍ سَمِعْتُ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ اَعْتَقَ رَجُلٌ مِنَّا عَبْدًا لَهٗ عَنْ دُبُرٍ فَدَعَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِهٖ فَبَاعَهٗ قَالَ جَابِرٌ مَاتَ الْغُلَامُ عَامَ اَوَّلَ.

۱۰۶۱: آدم بن ابي اياس. شعبه. عمرو بن دينار. جابر بن عبداللّه نه روايت کوي. د هغهٔ بيان دے چه مونږ کښې يو سړي خپل غلام د مرګ نه پس آزاد کړهٔ. نبي صلے اللّه عليه وسلّم هغه غلام راوغبنتلو. او هغه ئے خرڅ کړهٔ. د جابر بيان دے چه هغه غلام په ړومبني کال مړ شولو.

باب ۷۰۷: بَيْعِ الْوَلَاءِ وَهِبَتِهِ. — باب ۷۰۷: د ولاء بيع[۱] او د هغې د هبه بيان.

۱. ولاء هغه حق او تعلق ته واني كوم چه د غلام آزادولو نه پس د آقا او د هغه به بخوابي غلام كښې د ازادئ نه پس هم قائم وي. دا د حقوق لازمه ؤ نه دے كوم كښې چه د انتقال هېڅ څه معنٰی ان نه پيدا كيږي. نه دے بيع جائز ده، نه هبه او نه څه بل داسے عمل د كوم په ذريعه چه ددے حق بل جا طرفته د منتقل كولو كوشش او كړے شي

۱۰۶۲: حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ أَخْبَرَنِي عَبْدُ اللَّهِ ابْنُ دِينَارٍ سَمِعْتُ ابْنَ عُمَرَ الْأَوَّلَ نَهَى رَسُوْلُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ بَيْعِ الْوَلَاءِ وَ عَنْ هِبَتِهِ.

۱۰۶۲: ابو الوليد. شعبه. عبدالله بن دينار. ابن عمر نه روايت كوي. د هغه بيان دے چه رسول الله صلے الله عليه وسلّم د ولاء بيع او د هغے د هبه نه منع فرمانيلے ده.

۱۰۶۳: حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ حَدَّثَنَا جَرِيْرٌ عَنْ مَنْصُوْرٍ عَنْ إِبْرَاهِيْمَ عَنِ الْأَسْوَدِ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتِ اشْتَرَيْتُ بَرِيْرَةَ فَاشْتَرَطَ أَهْلُهَا وَلَاءَ هَا فَذَكَرْتُ ذَالِكَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ أَعْتِقِيهَا فَإِنَّ الْوَلَاءَ لِمَنْ أَعْطَى الْوَرِقَ فَأَعْتَقْتُهَا فَدَعَاهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَخَيَّرَهَا مِنْ زَوْجِهَا فَقَالَتْ لَوْ أَعْطَانِي كَذَا وَ كَذَا مَا ثَبَتُّ عِنْدَهُ فَاخْتَارَتْ نَفْسَهَا.

۱۰۶۳: عثمان بن ابي شيبه. جرير. منصور. ابراهيم. اسود. عائشهؓ نه روايت كوي د هغې بيان دے چه ما بريره واخستله نو د هغې مالك دا شرط كيښود چه ولاء به مونږ اخلو. ما دا خبره نبي صلے الله عليه وسلّم ته او كړله نو حضور صلے الله عليه وسلّم اوفرمائيل، دا آزاده كړه، ولاء د هغې جا د پاره ده چه روپے پيسے وركړي نو ما بريره آزاده كړه، نبي صلے الله عليه وسلّم هغه راوغوښتله او هغې ته ئے د هغې د خاوند متعلق اختيار وركړ نو هغې اووے كه هغه ماته دومره دومره مال راكړي، نو هم زۀ هغه سره نۀ اوسيږم، نو هغه د خپل خاوند نه جُدا شوه.

ف: ولاء: د آزاد غلام يا وينزے ميراث.

باب ۷۰۸: إِذَا أُسِرَ أَخُو الرَّجُلِ أَوْ عَمُّهُ هَلْ يُفَادَى إِذَا كَانَ مُشْرِكًا وَ قَالَ أَنَسٌ قَالَ الْعَبَّاسُ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَادَيْتُ نَفْسِي وَ فَادَيْتُ عَقِيلًا وَ كَانَ

باب ۷۰۸: كه د يو سړي ورور يا تره قيد وي، نو آيا د مشرك كيدو په صورت كښې هغه په فديه وركولو خلاصولے شي. او د انس بيان دے چه حضرت عباس، نبي صلے الله عليه وسلّم ته اووے ما د خپل ځان او عقيل فديا وركړه. او هغې مال

عَلِيٌّ لَهُ نَصِيبٌ فِي تِلْكَ الْغَنِيمَةِ الَّتِي أَصَابَ مِنْ أَخِيهِ عَقِيلٍ وَعَمِّهِ عَبَّاسٍ.

غنيمت كښې د حضرت عليّ حصه هم وه. چه د هغه د ورور عقيل او تره عباسّ نه حاصله شوې وه.[1]

[1] غالباً مصنف رحمة الله عليه دا ښودل غواړي چه ذي رحم محرم صرف په ملكيت كښې راتللو سره فوراً نه ازاديږي ولې چه عليّ مسلمان وو او د بدر په جنګ كښې شريک وو. د مشركانو د طرفه عباسّ او عقيل راغلي وُو كوم چه تر دغه وخته پورې نه وو مسلمان شوي. بيا دوئ قيد شول كه چرې د ذي رحم محرم ملكيت سره ازادي متحقق كيدلې نو عليّ او پخپله نبي كريم صلي الله عليه وسلّم د عباسّ او عقيل ذي رحم محرم وو. او د هغوئ نه ئې فديه اخستې وه او ازاد كړي ئې وو، ليكن سوال دا دې چه كوم وخت د هغوئ نه فديه وصول كړې شوه هغه وخت خو دوئ د اسلامي حكومت قيديان وو. د كوم فرد قيديان نه وو، بيا دا قاعده په دوئ باندې څرنګ لاګو كيدلې شوه. د احنافو په دې باب كښې مسلک دا دې چه كه چرې ذي رحم محرم د چا په ملكيت كښې راغې خواه كه هغه په هر څنګه ذريعه سره راغلې وي، نو هغه سمدستي ازاديږي هيڅوک د خپل چا ذي رحم محرم په ملكيت كښې نشي پاتې كيدې.

١٠٦٤ : حَدَّثَنَا إِسْمَعِيلُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا إِسْمَعِيلُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ بْنِ عُقْبَةَ عَنْ مُوسَى عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ حَدَّثَنِي أَنَسٌ أَنَّ رِجَالًا مِنَ الْأَنْصَارِ اسْتَأْذَنُوا رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالُوا ائْذَنْ فَلْنَتْرُكْ لِابْنِ أُخْتِنَا عَبَّاسٍ فِدَاءَهُ قَالَ لَا تَدَعُونَ مِنْهُ دِرْهَمًا.

١٠٦٤ : اسمعيل بن عبدالله. اسمعيل بن ابراهيم بن عقبه. موسىٰ. ابن شهاب. حضرت انسّ نه روايت كوي چه د انصارو څنو خلقو رسول الله صلي الله عليه وسلّم نه اجازت اوغوښتلو. او وئيلې، كه تاسو اجازت اوكړئ، نو مونږ به د خپل خورئ (بهانجے) عباسّ فديه معاف كړو. حضور صلي الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل، تاسو يو درهم مه پريږدئ.[1]

[1] عباس رضي الله عنه د حضور اكرم صلي الله عليه وسلّم تره وو. د مدينې انصارو هغه ته خپل خورئې په دې رشتې سره وئيلې وو چه د هغه والده او د حضور اكرم صلي الله عليه وسلّم د نيكه جناب عبدالمطلب مور ګئي د مدينې قبيلې بنو نجارو كښې وه.

## باب ٧٠٩ : عِتْقِ الْمُشْرِكِ.

## باب ٧٠٩ : د مشرک د آزادولو بيان.

١٠٦٥ : حَدَّثَنَا عُبَيْدُ بْنُ إِسْمَعِيلَ حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ عَنْ هِشَامٍ أَخْبَرَنِي أَبِي أَنَّ حَكِيمَ بْنَ حِزَامٍ أَعْتَقَ فِي الْجَاهِلِيَّةِ مِائَةَ رَقَبَةٍ وَ

١٠٦٥ : عبيد بن اسمعيل. ابو اسامه. هشام. عروه روايت كوي چه حكيم بن حزام جاهليت كښې سل غلامان آزاد كړې وو، او سل اوښان ئې سورلي د پاره وركړې وو. كوم وخت

حَمَلَ عَلٰی مِائَةِ بَعِيْرٍ فَلَمَّا اَسْلَمَ حَمَلَ عَلٰی مِائَةِ بَعِيْرٍ وَّ اَعْتَقَ مِائَةَ رَقَبَةٍ قَالَ فَسَاَلْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَرَءَيْتَ اَشْيَآءَ كُنْتُ اَصْنَعُهَا فِي الْجَاهِلِيَّةِ كُنْتُ اَتَحَنَّثُ بِهَا يَعْنِيْ اَتَبَرَّرُ بِهَا قَالَ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَسْلَمْتَ عَلٰى مَا سَلَفَ لَكَ مِنْ خَيْرٍ ۔

چه مسلمان شو نو سل اوښان يے سورلی د پاره ورکړل. او سل غلامان يے آزاد کړل. د حکيم بن حزام بيان دے، ما د رسول الله صلي الله عليه وسلم نه تپوس اوکه يا رسول الله، تاسو د دے خيزونو متعلق اوښائے، چه مونږ جاهليت کښ د ثواب په نيت کړے دي نو رسول الله صلے الله عليه وسلم اوفرمائيل، تا اسلام راوړلو، نو خومره نيک کارونه چه دے کړے وي، قائم به وي.

بَابٌ ۱۰۷۱: مَنْ مَّلَكَ مِنَ الْعَرَبِ رَقِيْقًا فَوَهَبَ وَبَاعَ وَ جَامَعَ وَ فَدَى وَ سَبَى الذُّرِّيَّةَ وَ قَوْلِهٖ تَعَالٰى ضَرَبَ اللّٰهُ مَثَلًا عَبْدًا مَّمْلُوْكًا لَّا يَقْدِرُ عَلٰى شَيْءٍ وَّمَنْ رَّزَقْنَاهُ مِنَّا رِزْقًا حَسَنًا فَهُوَ يُنْفِقُ مِنْهُ سِرًّا وَّ جَهْرًا هَلْ يَسْتَوُوْنَ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ بَلْ اَكْثَرُهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ.

باب ۱۰۷۱: کۀ د عربي غلام مالک شي او هغه هبه کړي، خرڅ ئے کړي، جماع اوکړي فديه ورکړي او بچي قيد کړي (نو آيا دا درست دي) او د الله تعالي قول، چه الله يو مثال بيانوي، د يو غلام سړي، چه په هيڅ خيز قدرت نۀ لري او د هغے سړي چه هغه ته مونږ د خپل طرفه ښۀ رزق ورکړے دے، او هغه په هغے کښ په پټه او ښکاره خرچ کوي، آيا هغوئ ټول به برابر وي ټول تعريفونه الله سره دي، بلکه هغوئ کښ اکثر نۀ پوهيږي.

۱۰۶٦: حَدَّثَنَا ابْنُ اَبِيْ مَرْيَمَ قَالَ اَخْبَرَنِي اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ ذَكَرَ عُرْوَةُ اَنَّ مَرْوَانَ وَالْمِسْوَرَ بْنَ مَخْرَمَةَ اَخْبَرَاهُ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَامَ حِيْنَ جَآءَهُ وَفْدُ هَوَازِنَ فَسَاَلُوْهُ اَنْ يَّرُدَّ اِلَيْهِمْ اَمْوَالَهُمْ وَسَبْيَهُمْ فَقَالَ اِنَّ مَعِيَ مَنْ تَرَوْنَ وَ اَحَبُّ

۱۰٦٦: ابن ابي مريم. ليث. عقيل. ابن شهاب. عروه. مروان او مسور بن مخرمه نه روايت کوي، د دے دواړو بيان دے، نبي صلے الله عليه وسلم ته چه د هوازن وفد راغے، نو هغے خلقو نبي صلے الله عليه وسلم ته خواست اوکۀ، چه د هغوئ مال او قيديان دے واپس کړے شي. حضور صلے الله عليه وسلم ورته اوفرمائيل، ما سره نور خلق هم دي، چه هغه تاسو وينئے. او خما رينښتيا خبره د هر څه نه زياته خوښه ده، نو دوو خبرو

الْحَدِيْثِ اِلَيَّ اَصْدَقُهُ فَاخْتَارُوْا
اِحْدَى الطَّائِفَتَيْنِ اِمَّا الْمَالَ وَ
اِمَّا السَّبِيَ وَقَدْ كُنْتُ اسْتَانَيْتُ بِهِمْ
وَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ
وَسَلَّمَ انْتَظَرَهُمْ بِضْعَ عَشْرَةَ لَيْلَةً
حِيْنَ قَفَلَ مِنَ الطَّائِفِ فَلَمَّا
تَبَيَّنَ لَهُمْ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ
عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غَيْرُ رَآدٍّ اِلَيْهِمْ اِلَّا
اِحْدَى الطَّائِفَتَيْنِ قَالُوْا فَاِنَّا نَخْتَارُ
سَبْيَنَا فَقَامَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ
عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِى النَّاسِ فَاَثْنٰى
عَلَى اللّٰهِ بِمَا هُوَ اَهْلُهُ ثُمَّ قَالَ
اَمَّا بَعْدُ فَاِنَّ اِخْوَانَكُمْ جَآؤُنَا
تَآئِبِيْنَ وَ اِنِّىْ رَاَيْتُ اَنْ اَرُدَّ اِلَيْهِمْ
سَبْيَهُمْ فَمَنْ اَحَبَّ مِنْكُمْ اَنْ يُّطَيِّبَ
ذَالِكَ فَلْيَفْعَلْ وَمَنْ اَحَبَّ اَنْ يَّكُوْنَ
عَلٰى حَظِّهٖ حَتّٰى نُعْطِيَهٗ اِيَّاهُ مِنْ اَوَّلِ
مَا يَفِيْءُ اللّٰهُ عَلَيْنَا فَلْيَفْعَلْ فَقَالَ
النَّاسُ طَيَّبْنَا ذَالِكَ قَالَ اِنَّا لَا نَدْرِىْ
مَنْ اَذِنَ مِنْكُمْ مِمَّنْ لَمْ يَاْذَنْ
فَارْجِعُوْا حَتّٰى يَرْفَعَ اِلَيْنَا عُرَفَآؤُكُمْ
اَمْرَكُمْ فَرَجَعَ النَّاسُ فَكَلَّمَهُمْ
عُرَفَآؤُهُمْ ثُمَّ رَجَعُوْا اِلَى النَّبِيِّ
صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَخْبَرُوْهُ
اَنَّهُمْ طَيَّبُوْا وَ اَذِنُوْا فَهٰذَا الَّذِىْ بَلَغَنَا
عَنْ سَبْيِ هَوَازِنَ وَ قَالَ اَنَسٌ قَالَ

کښې یوه اختیار کړئ یا مال یا قیدیان. او ما په دې وجه
د هغوئ په تقسیمولو کښې تاخیر کړے وو. او نبي صلی
اللّه علیه وسلّم د هغې خلقو د لس شپو نه زیات انتظار
کړے وو. بیا د طائف نه واپس شوے وو. کوم وخت چه
خلقو ته معلومه شوه چه نبي صلی اللّه علیه وسلّم به دوو
څیزونو کښې صرف یو څیز واپس کوي نو خلقو عرض
او کړه چه مونږ قیدیان اخستل غواړو. نبي صلی اللّه علیه
وسلّم د خلقو مینځ کښې اودریدلو. د اللّه تعریف ئې بیان
کړه چه د هغې هغه مستحق دے. بیائې اوفرمائیل اما بعد
ستاسو وروڼه مونږ ته د توبې کولو نه پس راغلي دي او
خما خیال دے چه زه هغوئ ته د هغوئ قیدیان واپس
کړم. او څوک چه تاسو کښې په خوشحالئ داسې کول
غواړي نو اودې کړي او څوک چه خپله حصه واپس
کول غواړي نو انتظار دې اوکړي تردې چه مونږ هغه
ته د مال غنیمت نه ورکړو چه د ټولو نه مخکښې ئې
مونږ ته اللّه راکړي نو داسې دې اوکړي. خلقو اووې
مونږ په خوشحالئ داسې کولو ته تیار یو. حضور صلی
اللّه علیه وسلّم اوفرمائیل مونږ ته معلومه نه ده چه چا
اجازت کړے دے او چا اجازت نه دے کړے نو تاسو
واپس لاړ شئ تردې چه ستاسو سرداران مونږ ته
ستاسو معامله پیش کړي. خلق واپس لاړل. هغوئ سره
د هغوئ سردارانو خبرې اوکړې. بیا د نبي صلی اللّه
علیه وسلّم خدمت کښې حاضر شو. او عرض ئې اوکه
چه خلق په دې راضي دي. او د دې اجازت ئې کړے
دے. د زهري بیان دے چه د هوازن د قیدیانو متعلق ماته
دا حال معلوم شوے دے او انس اووے چه حضرت

عَبَّاسٌ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَادَيْتُ نَفْسِيْ وَ فَادَيْتُ عَقِيْلًا.

عباسؓ نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم ته عرض اوكه. ما د ځان او عقيل فديه وركړله.

۱۰۶۷: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ الْحَسَنِ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا ابْنُ عَوْنٍ قَالَ كَتَبْتُ اِلٰى نَافِعٍ فَكَتَبَ اِلَيَّ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَغَارَ عَلٰى بَنِي الْمُصْطَلَقِ وَهُمْ غَارُّوْنَ وَ اَنْعَامُهُمْ تُسْقٰى عَلَى الْمَاءِ فَقَتَلَ مُقَاتِلَتَهُمْ وَ سَبٰى ذَرَارِيَّهُمْ وَ اَصَابَ يَوْمَئِذٍ جُوَيْرِيَةَ حَدَّثَنِيْ بِهِ عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ عُمَرَ وَ كَانَ فِيْ ذَالِكَ الْجَيْشِ.

۱۰۶۷: علي بن حسن. عبداللّٰه ابن عون بيان كوي. ما نافع ته اوليكل نو هغه ليكلے جواب راكه، چه نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم په بني مصطلق حمله اوكړله، داسے حال كښ چه هغوئ غافل وو او د هغوئ څاروو ته اوبه وركيدے شوے. نو هغوي كښ چه كوم جنګيان وو هغوئ قتل كړے شو. او د هغوئ ښځے او بچي قيد كړے شو بي بي جويريه هم په هغه ورځ په لاس راغلے وه. د نافع بيان دے، چه ماته عبدالله بن عمر دا بيان اوكه او هغه په هغے لښكر كښ وو.

۱۰۶۸: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ رَبِيْعَةَ ابْنِ اَبِيْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ يَحْيَى بْنِ حَبَّانَ عَنِ ابْنِ مُحَيْرِيْزٍ قَالَ رَأَيْتُ اَبَا سَعِيْدٍ فَسَأَلْتُهُ فَقَالَ خَرَجْنَا مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ غَزْوَةِ بَنِي الْمُصْطَلِقِ فَاَصَبْنَا سَبْيًا مِّنْ سَبْيِ الْعَرَبِ فَاشْتَهَيْنَا النِّسَآءَ فَاشْتَدَّتْ عَلَيْنَا الْعُزْبَةُ وَ اَحْبَبْنَا الْعَزْلَ فَسَأَلْنَا رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ مَا عَلَيْكُمْ اَنْ لَّا تَفْعَلُوْا مَا مِنْ نَسَمَةٍ كَائِنَةٍ اِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ اِلَّا وَهِيَ كَائِنَةٌ.

۱۰۶۸: عبداللّٰه بن يوسف. مالک. ربيعه بن ابي عبدالرحمن. محمد بن يحيي بن حبان ابن محيريز نه روايت كوي. د هغه بيان دے، چه ما ابو سعيد خدري اوليد، نو هغه نه ما (د عزل متعلق) تپوس اوكه، هغه جواب راكه، چه مونږ نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم سره غزوه بني مصطلق كښ اووتلو، نو مونږ خلقو ته د عربو څو قيديان په لاس راغلل. څه مونږ خلقو ښځو ته خواهش وو. او د تجرد (لونډئي) ژوند ګران وو. په دے وجه مونږ خلقو عزل كول اوغوښتل، مونږ، د رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلّم نه تپوس اوكه، نو حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل. داسے نه كولو كښ څه حرج نشته خكه چه كوم ځان (ساه) قيامته پورے د پيدا كيدو د پاره مقدر شوے وي، هغه به (ضرور) پيدا كيږي.

ف: عزل: ښځې سره جماع کولو کښې بغير انزال (يعني بغير مني وتلو) نه جُدا کيدل.

۱۰٦۹: حَدَّثَنَا زُهَيْرُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا جَرِيْرٌ عَنْ عُمَارَةَ بْنِ الْقَعْقَاعِ عَنْ اَبِيْ زُرْعَةَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ لَا اَزَالُ اُحِبُّ بَنِيْ تَمِيْمٍ ح وَ حَدَّثَنِيْ ابْنُ سَلَامٍ اَخْبَرَنَا جَرِيْرُ بْنُ عَبْدِ الْحَمِيْدِ عَنِ الْمُغِيْرَةِ عَنِ الْحَارِثِ عَنْ اَبِيْ زُرْعَةَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ ح وَ عَنْ عُمَارَةَ عَنْ اَبِيْ زُرْعَةَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ مَازِلْتُ اُحِبُّ بَنِيْ تَمِيْمٍ مُنْذُ ثَلٰثٍ سَمِعْتُ مِنْ رَّسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ فِيْهِمْ سَمِعْتُهُ يَقُوْلُ هُمْ اَشَدُّ اُمَّتِيْ عَلَى الدَّجَّالِ قَالَ وَجَآءَتْ صَدَقَاتُهُمْ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هٰذِهٖ صَدَقَاتُ قَوْمِنَا وَ كَانَتْ سَبِيَّةٌ مِّنْهُمْ عِنْدَ عَآئِشَةَ فَقَالَ اَعْتِقِيْهَا فَاِنَّهَا مِنْ وُّلْدِ اِسْمٰعِيْلَ.

۱۰٦۹: زهير بن حرب. جرير. عماره بن قعقاع. ابوزرعه. حضرت ابوهريرةؓ نه روايت کوي، ذ هغهٔ بيان دے، چه زهٔ به بني تميم سره برابر محبت ساتم. ح (دوئم سند) ابن سلام جرير بن عبدالحميد. مغيره. حارث. ابوزرعه. حضرت ابوهريرهؓ. ح (درئم سند) عماره. ابوزرعه. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت کوي. ذ هغهٔ بيان دے، چه زهٔ به بني تميم سره برابر محبت ساتم، ذ کوم وخت نه چه ما ذ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم نه ذ هغوئ متعلق درے خبرے آوريدلي دي، ما ذ حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم نه ذ هغوئ متعلق آوريدلے دي چه هغوئ به خما اُمت کښې دجّال ته پاره ډير زيات سخت وي. يو ځلے ذ بني تميم صدقات راغلل، نو وے فرمائيل، دا خمونږ ذ قوم صدقات دي، او ذ بني تميم يوے ښځه بي بي عائشےؓ له قيدي راغله، نو وے فرمائيل چه دا، آزاده کړے، ځکه چه دا ذ حضرت اسمٰعيل عليه السلام ذ اولاد نه ده.

## بَابُ ۱۱۷: فَضْلِ مَنْ اَدَّبَ جَارِيَتَهٗ وَ عَلَّمَهَا.

## باب ۱۱۷: ذ هغے سړي ذ فضيلت بيان چه چه خپلے وينزے ته ادب اوښائي او تعليم ورکړي.

۱۰۷۰: حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ بْنُ اِبْرَاهِيْمَ سَمِعَ مُحَمَّدَ بْنَ فُضَيْلٍ عَنْ مُطَرِّفٍ عَنِ الشَّعْبِيِّ عَنْ اَبِيْ بُرْدَةَ عَنْ اَبِيْ مُوْسٰى قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ كَانَتْ لَهٗ جَارِيَةٌ فَعَالَهَا فَاَحْسَنَ اِلَيْهَا ثُمَّ اَعْتَقَهَا

۱۰۷۰: اسحٰق بن ابراهيم. محمد بن فضيل. مطرف. شعبي. ابوبرده. حضرت ابو موسي اشعري نه روايت کوي، ذ هغهٔ بيان دے. رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، چا سره چه وينزه وي، او هغه ذ هغے ښهٔ پرورش اوکړي بيا هغه آزاده کړي، او هغے سره نکاح اوکړي، نو هغهٔ له دونړه

وَ تَزَوَّجَهَا كَانَ لَهُ أَجْرَانِ.

(دوچند) ثواب دے.

باب ۷۱۲: قَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْعَبِيْدُ إِخْوَانُكُمْ فَأَطْعِمُوْهُمْ مِمَّا تَأْكُلُوْنَ وَ قَوْلِهِ تَعَالَى وَاعْبُدُوا اللّٰهَ وَلَا تُشْرِكُوْا بِهِ شَيْئًا وَّ بِالْوَالِدَيْنِ إِحْسَانًا وَّ بِذِي الْقُرْبٰى وَالْيَتٰمٰى وَالْمَسٰكِيْنِ وَالْجَارِ ذِي الْقُرْبٰى وَالْجَارِ الْجُنُبِ وَالصَّاحِبِ بِالْجَنْبِ وَابْنِ السَّبِيْلِ وَمَا مَلَكَتْ أَيْمَانُكُمْ إِنَّ اللّٰهَ لَا يُحِبُّ مَنْ كَانَ مُخْتَالًا فَخُوْرًا ذِي الْقُرْبٰى الْقَرِيْبُ وَالْجُنُبُ الْغَرِيْبُ الْجَارُ الْجُنُبُ يَعْنِي الصَّاحِبَ فِي السَّفَرِ.

باب ۷۱۲: د نبي صلی اللّٰه علیه وسلم فرمائیل چه غلامان ستاسو وروڼه دي. څه چه تاسو خپله خورئ، په هغوي ئے خوروئ. او د اللّٰه تعالٰي قول چه، د اللّٰه عبادت کوئ او هغه سره څوک شریک مه جوړوئ، او مور پلار سره، رشته دارانو، یتیمانو، مسکینانو، رشته دار ګوانډیانو، غیر ګوانډیانو یوځائے ناسته کونکو، مسافرو، وینزو او غلامانو سره احسان کوئ، او اللّٰه تعالٰي هغه څوک نه خوښوي چه متکبر او فخر کونکے وي. ذي القربٰي نه مراد رشته دار او جنب نه مراد اجنبي دے او جار جنب نه مراد، د سفر ملګرے دے.

۱۰۷۱: حَدَّثَنَا آدَمُ بْنُ أَبِي إِيَاسٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا وَاصِلُ الْأَحْدَبُ قَالَ سَمِعْتُ الْمَعْرُوْرَ بْنَ سُوَيْدٍ قَالَ رَأَيْتُ أَبَا ذَرٍّ الْغِفَارِيَّ وَ عَلَيْهِ حُلَّةٌ وَ عَلٰى غُلَامِهِ حُلَّةٌ فَسَأَلْنَاهُ عَنْ ذَالِكَ فَقَالَ إِنِّي سَابَبْتُ رَجُلًا فَشَكَانِي إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ لِي النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَعَيَّرْتَهُ بِأُمِّهِ ثُمَّ قَالَ إِنَّ إِخْوَانَكُمْ خَوَلُكُمْ جَعَلَهُمُ اللّٰهُ تَحْتَ أَيْدِيْكُمْ فَمَنْ كَانَ أَخُوْهُ تَحْتَ يَدِهِ فَلْيُطْعِمْهُ مِمَّا يَأْكُلُ وَلْيُلْبِسْهُ مِمَّا يَلْبَسُ وَلَا تُكَلِّفُوْهُمْ مَا

۱۰۷۱: آدم بن ابي ایاس. شعبه. واصل احدب. معرور بن سوید بیان کوي، چه ما ابو ذرغفاري اولید، داسے حال کښ، چه هغه یوه جوړه اغستے وه، او د هغهٔ غلام هم هغسے جوړه اغستے وه. مونږ د هغهٔ نه په دے حقله تپوس اوکهٔ، نو هغهٔ اووے، چه ما یو سړي ته کنځل اوکړي، نو هغه نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم ته په ما شکایت اوکهٔ. ما ته نبي صلے اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل، آیا، تا، ده ته د مور کنځل کړے دي. بیائے اوفرمائیل، ستاسو خدمت ګزار ستاسو وروڼه دي، چه هغوي اللّٰه تعالٰي ستاسو لاسونو (قبضه) کښ ورکړے دي، د چا ورور چه د هغهٔ په قبضه کښ وي، نو په هغه دے هغه خوروي، کوم چه خپله خوري، او هغهٔ ته دے هغه اغندوي، څهٔ چه خپله اغندي. هغوئ ته د، داسے کار

يَغْلِبُهُمْ فَاِنْ كَلَّفْتُمُوْهُمْ مَّا يَغْلِبُهُمْ فَاَعِيْنُوْهُمْ.

تکلیف مه کوو کوئ چه هغوي نه نشي کیدئ، او که هغوي له تکلیف ورکوئ نو د هغوي مدد کوئ.

**بـاب ۱۳۷۱: اَلْعَبْدُ اِذَا اَحْسَنَ عِبَادَةَ رَبِّهٖ وَ نَصَحَ سَيِّدَهٗ.**

**باب ۱۳۷۱: د هغه غلام بیان چه د خپل پروردگار عبادت په ښه شان سره کوي او د خپل مالک خیر خواهي کوي.**

۱۰۷۲: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْلَمَةَ عَنْ مَّالِكٍ عَنْ نَّافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الْعَبْدُ اِذَا نَصَحَ سَيِّدَهٗ وَ اَحْسَنَ عِبَادَةَ رَبِّهٖ كَانَ لَهٗ اَجْرُهٗ مَرَّتَيْنِ.

۱۰۷۲: عبدالله بن مسلمه. مالک. نافع. ابن عمر نه روایت کوي. رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل، چه غلام د خپل مالک خیر خواهي کوي او د خپل پروردگار په ښه شان عبادت کوي نو هغه به دونړه (دوچند) ثواب بیاموي.

۱۰۷۳: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيْرٍ اَخْبَرَنَا سُفْيَانُ عَنْ صَالِحٍ عَنِ الشَّعْبِيِّ عَنْ اَبِيْ بُرْدَةَ عَنْ اَبِيْ مُوْسَى الْاَشْعَرِيِّ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَيُّمَا رَجُلٍ كَانَتْ لَهٗ جَارِيَةٌ فَاَدَّبَهَا فَاَحْسَنَ تَادِيْبَهَا وَ اَعْتَقَهَا وَ تَزَوَّجَهَا فَلَهٗ اَجْرَانِ وَ اَيُّمَا عَبْدٍ اَدّٰى حَقَّ اللّٰهِ وَ حَقَّ مَوَالِيْهَا فَلَهٗ اَجْرَانِ.

۱۰۷۳: محمد بن کثیر. سفیان. صالح. شعبي. ابوبرده. ابو موسی اشعري نه روایت کوي د هغه بیان دے، نبي صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل، کوم سړي سره چه وینزه وي، او هغې ته په ښه شان سره ادب اوښائي، او آزاده ئې کړي نکاح ورسره اوکړي، نو هغه ته به دوچند ثواب ورکیږي. او کوم غلام چه د الله حق او د خپلو مالکانو حق ادا کړ، نو هغه به دونړه (دوچند) ثواب بیاموي.

۱۰۷۴: حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ مُحَمَّدٍ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا يُوْنُسُ عَنِ الزُّهْرِيِّ سَمِعْتُ سَعِيْدَ بْنَ الْمُسَيَّبِ يَقُوْلُ قَالَ اَبُوْ هُرَيْرَةَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِلْعَبْدِ الْمَمْلُوْكِ الصَّالِحِ اَجْرَانِ

۱۰۷۴: بشر بن محمد. عبدالله. یونس. زهري. سعید بن مسیب. ابوهریره نه روایت کوي، رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل، نیک بخت غلام د پاره چه د چا ملکیت کښې وي. دونړه (دوچند) ثواب دے. قسم دے په هغه ذات، د چا په قبضه کښې چه زما ساه ده، که د الله په لار کښې

وَالَّذِيْ نَفْسِيْ بِيَدِهٖ لَوْلَا الْجِهَادُ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَالْحَجُّ وَ بِرُّ أُمِّيْ لَاَحْبَبْتُ اَنْ اَمُوْتَ وَ اَنَا مَمْلُوْكٌ.

جهاد کول او حج او مور سره احسان کول نه وې نو ما به دا خوښه کړې وې چه د چا غلام مړ شوې وې.

۱۰۷۵: حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ بْنُ نَصْرٍ حَدَّثَنَا اَبُوْ اُسَامَةَ عَنِ الْاَعْمَشِ حَدَّثَنَا اَبُوْ صَالِحٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نِعْمَ مَا لِاَحَدِهِمْ يُحْسِنُ عِبَادَةَ رَبِّهٖ وَ يَنْصَحُ لِسَيِّدِهٖ.

۱۰۷۵: اسحق بن نصر. ابو اسامه. اعمش. ابو صالح. ابوهريرهؓ نه روايت کوي. د هغه بيان دے: نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل څه بهتر حالت دے د هغه سړي، چه د خپل پروردګار عبادت په ښه شان کوي او د خپل مالک خير خواهي کوي.

بـــاب ۷۱۴: كَــرَاهِيَةِ التَّطَاوُلِ عَلَى الرَّقِيْقِ وَ قَوْلِهٖ عَبْدِيْ اَوْ اَمَتِيْ وَ قَالَ اللّٰهُ تَعَالٰى وَالصّٰلِحِيْنَ مِنْ عِبَادِكُمْ وَ اِمَآءِكُمْ وَ قَالَ عَبْدًا مَمْلُوْكًا وَّ اَلْفَيَا سَيِّدَهَا لَدَى الْبَابِ وَ قَالَ مِنْ فَتَيٰتِكُمُ الْمُؤْمِنٰتِ وَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قُوْمُوْا اِلٰى سَيِّدِكُمْ وَاذْكُرْنِيْ عِنْدَ رَبِّكَ سَيِّدِكَ وَمَنْ سَيِّدُكُمْ.

باب ۷۱۴: په غلام د دست درازي کولو د کراهت بيان. او خما غلام يا خما وينزه وئيلو سره د آواز کولو بيان، او اللّٰه تعالي فرمائي: والصّالحين من عبادكم و امائكم (يعني ستاسو نيکو کار غلام او وينزے) او فرمائي: عبدًا مملوكًا (هغه غلام چه ملکيت وي) او د اللّٰه تعالي قول: الفاسيدها لدى الباب (دواړو خپل سردار دروازے سره نزدے بيامُند) دا، نے هم اوفرمائيل چه: واذكرني عند ربك (يعني خپل مالک ته خما ذکر، اوکړه) رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل خپل سردار ته ورپاسئ. او ستاسو سردار څوک دے.

۱۰۷۶: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنِيْ نَافِعٌ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِذَا نَصَحَ سَيِّدَهٗ وَ اَحْسَنَ عِبَادَةَ رَبِّهٖ كَانَ لَهٗ اَجْرُهٗ مَرَّتَيْنِ.

۱۰۷۶: مُسدد. يحيي. عبيداللّٰه. نافع. عبداللّٰه (بن عمرؓ) نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم نه روايت کوي. حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، چه غلام د خپل آقا (مالک) خير خواهي کوي او د خپل پروردګار په ښه شان عبادت کوي، نو هغهٔ ته به دوچند ثواب رسي.

۱۰۷۷: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ

۱۰۷۷: محمد بن علاء. ابو اسامه. بريد.

الْعَلَاءِ حَدَّثَنَا اَبُوْ اُسَامَةَ عَنْ بُرَيْدٍ عَنْ اَبِيْ بُرْدَةَ عَنْ اَبِيْ مُوْسٰى رضی عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الْمَمْلُوْكُ الَّذِيْ يُحْسِنُ عِبَادَةَ رَبِّهٖ وَ يُؤَدِّيْ اِلٰى سَيِّدِهِ الَّذِيْ لَهٗ عَلَيْهِ مِنَ الْحَقِّ وَالنَّصِيْحَةِ وَالطَّاعَةِ لَهٗ اَجْرَانِ.

ابوبرده. ابو موسیٰ. نبي صلے الله علیه وسلم نه روایت کوي. حضور صلے الله علیه وسلم اوفرمائیل هغه غلام چه د خپل پروردګار عبادت په ښۀ شان کوي. او د خپل مالک خیر خواهي او تابعداري کوي او کوم حق چه په هغۀ واجب دے، هغه په ځائے راوړي، نو هغه د پاره دوه دوچنده اجر دے.

١٠٧٨ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ اَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنْ هَمَّامِ بْنِ مُنَبِّهٍ اَنَّهٗ سَمِعَ اَبَا هُرَيْرَةَ يُحَدِّثُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهٗ قَالَ لَا يَقُلْ اَحَدُكُمْ اَطْعِمْ رَبَّكَ وَضِّئْ رَبَّكَ اَسْقِ رَبَّكَ وَلْيَقُلْ سَيِّدِيْ مَوْلَايَ وَلَا يَقُلْ اَحَدُكُمْ عَبْدِيْ اَمَتِيْ وَلْيَقُلْ فَتَايَ وَ فَتَاتِيْ وَ غُلَامِيْ.

١٠٧٨ : محمد. عبدالرزاق. معمر. همام بن منبه. حضرت ابوهریرهؓ. نبي صلے الله علیه وسلم نه روایت کوي. حضور صلے الله علیه وسلم اوفرمائیل، تاسو کښې دے څوک دا نۀ وائي چه خپل مالک باندے طعام اوخوروه یا خپل مالک ته اودس کښې اوبۀ واچوه. خپل مالک باندے اوبۀ اوڅکوه، بلکه داسے دے وائي. اے څما سردارۀ اے څما آقا. او تاسو کښې دے څوک عبدي (څما غلام) یا امتي (څما وینزه) نۀ وائي بلکه فتاي، فتاتي او غلامي دے وائي.

ف : فتی (ځلمے) فتاة (پیغله) غلام (هلک) ته وائي.

١٠٧٩ : حَدَّثَنَا اَبُو النُّعْمَانِ حَدَّثَنَا جَرِيْرُ ابْنُ حَازِمٍ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ اَعْتَقَ نَصِيْبًا لَهٗ مِنَ الْعَبْدِ فَكَانَ لَهٗ مِنَ الْمَالِ مَا يَبْلُغُ قِيْمَتَهٗ يُقَوَّمُ عَلَيْهِ قِيْمَةَ عَدْلٍ وَ اُعْتِقَ مِنْ مَالِهٖ وَ اِلَّا فَقَدْ عَتَقَ مِنْهُ.

١٠٧٩ : ابوالنعمان. جریر بن حازم. نافع. ابن عمرؓ نه روایت کوي. د هغۀ بیان دے نبي صلے الله علیه وسلم اوفرمائیل، کوم سړي چه یو غلام کښې خپله حصه آزاده کړه، او هغۀ سره دومره مال وي، چه د، یو عادل د تجویز مطابق د هغۀ د قیمت برابر وي نو هغه بۀ د هغۀ د مال نه آزادولے شي، کنې څومره چه هغۀ آزاد کړے وي (هغومره بۀ آزاد وي).

١٠٨٠ : حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنِيْ نَافِعٌ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ

١٠٨٠ : مسدد. یحیٰی. عبیدالله. نافع. عبدالله (بن عمرؓ) نه روایت کوي. رسول الله صلے الله علیه وسلم اوفرمائیل، تاسو کښې هر سړے نګران دے. او هغۀ

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ كُلُّكُمْ رَاعٍ فَمَسْئُوْلٌ عَنْ رَّعِيَّتِهٖ فَالْاَمِيْرُ الَّذِىْ عَلَى النَّاسِ رَاعٍ وَّهُوَ مَسْئُوْلٌ عَنْهُمْ وَالرَّجُلُ رَاعٍ عَلٰى اَهْلِ بَيْتِهٖ وَهُوَ مَسْئُوْلٌ عَنْهُمْ وَالْمَرْاَةُ رَاعِيَةٌ عَلٰى بَيْتِ بَعْلِهَا وَ وَلَدِهٖ وَهُوَ مَسْئُوْلَةٌ عَنْهُمْ وَالْعَبْدُ رَاعٍ عَلٰى مَالِ سَيِّدِهٖ وَهُوَ مَسْئُوْلٌ عَنْهُ اَلَا فَكُلُّكُمْ رَاعٍ وَّ كُلُّكُمْ مَسْئُوْلٌ عَنْ رَّعِيَّتِهٖ.

نه به د هغهٔ د رعیت متعلق تپوس کیږي او هغه سړے چه د خلقو امیر دے هغه نه به د خلقو متعلق تپوس کیږي. او سړے د خپل کوروالو نګران دے. هغهٔ نه به د هغوي متعلق پښتنه کیږي. او ښځه د خپل خاوند د کور او د هغهٔ د بچو نګرانه ده هغے نه به د هغوی متعلق پښتنه کیږي او غلام د خپل آقا د مال نګران دے هغهٔ نه به د هغے بابت کښې تپوس کیږي. واورئے چه تاسو کښې هر سړے حاکم دے او د هغه د رعیت متعلق به د هغه نه تپوس کیږي.

۱۰۸۱ : حَدَّثَنَا مَالِكُ بْنُ اِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا سُفْيٰنُ عَنِ الزُّهْرِيِّ حَدَّثَنِىْ عُبَيْدُ اللّٰهِ سَمِعْتُ اَبَا هُرَيْرَةَ وَ زَيْدَ بْنَ خَالِدٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِذَا زَنَتِ الْاَمَةُ فَاجْلِدُوْهَا ثُمَّ اِذَا زَنَتْ فَاجْلِدُوْهَا ثُمَّ اِذَا زَنَتْ فَاجْلِدُوْهَا فِى الثَّالِثَةِ اَوِ الرَّابِعَةِ بِيْعُوْهَا وَلَوْ بِضَفِيْرٍ.

۱۰۸۱ : مالک بن اسمعیل. سفیان. زهري. عبیدالله. ابوهریرهٔ او زید بن خالدؓ. نبي صلے الله علیه وسلم نه روایت کوي. حضور صلے الله علیه وسلم اوفرمائیل چه وینزه زنا اوکړي نو په کوړوئے اووهئے او د دریم یا څلورم ځل متعلق ئے اوفرمائیل چه خرڅه ئے کړئے اګر که د وښتو د یو رسي په عوض ولے نه وي[1].

[1]. د مصنف رحمة الله علیه مقصد دا دے چه مالکان د په خپلو غلامانو او وینزو باندے خپله لوئي نه زباتي. د انسان والي په حیثیت سره ټول انسانان برابر دي او شرف او امتیاز یو انسان له صرف د تقوی د وجے سره دے. اسلام د سطحي قسم مساواتو ډنډوره نه ده غکولے په انسانانو کښې د طبقو او نوعیتونو فرق ئے تسلیم کړے دے خو د دے باوجود د ټولو حاکم او د ټولو مالک الله تعالي دے او د هغهٔ د حاکمیت او مالکیت یقین او تصور په ټولو باندے مقدم دے. که چرے آقا غلام ته "خما غلام" یا "خما وینزه" غوندے الفاظو سره خطاب کوي نو دے سره د هغهٔ د زړهٔ د کبر او غجب نښاندهي کیږي. په دے وجه احادیثو کښې ددے نه منع او کړے شوه چه داسے مه وایئ. مصنف رحمة الله علیه د قرآن آیتونه هم پیش کړي دي کومو کښې چه په دے الفاظو سره خطاب شوے دے. نو مقصد ددے دا دے چه په احادیثو کښې ممانعت د تهذیب و تادیب د پاره دے. د انسانانو د خاص فطرت تر مخه که چرے خدائے تعالي په خپل کلام کښې داسے فرمائي نو بیله خبره ده.

## بَـاب۱۵۷۵ : اِذَا اَتَـاهُ خَادِمُهٗ

## باب ۱۵۷۵ : که خادم طعام راوړي (نو څه کول

بِطَعَامِهِ.

**١٠٨٢ : حَدَّثَنَا حَجَّاجُ بْنُ مِنْهَالٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ اَخْبَرَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ زِيَادٍ سَمِعْتُ اَبَا هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا اَتٰى اَحَدَكُمْ خَادِمُهُ بِطَعَامِهِ فَاِنْ لَمْ يُجْلِسْهُ مَعَهُ فَلْيُنَاوِلْهُ لُقْمَةً اَوْ لُقْمَتَيْنِ اَوْ اُكْلَةً اَوْ اُكْلَتَيْنِ فَاِنَّهُ وَلِيَ عِلَاجَهُ.**

پکار دي)

**١٠٨٢** : حجاج بن منهال. شعبه. محمد بن زياد. ابوهريرةؓ نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم. نه روايت کوي. حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم. اوفرمائيل' کله چه تاسو کښې چاله خپل خادم طعام راوړي' کۀ هغه خان سره په طعام نۀ کينوي' نو هغۀ له دے يوه يا دوه نوړئے ورکړي' ځکه چه هغۀ محنت کړے دے.

**باب ١٦٧ : الْعَبْدُ رَاعٍ فِيْ مَالِ سَيِّدِهٖ وَاَنْسَبَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمَالَ اِلَى السَّيِّدِ.**

**باب ١٦٧** : غلام د خپل آقا د مال نگران دے. او نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم مال آقا طرف ته منسوب کړے دے.

**١٠٨٣ : حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ اَخْبَرَنِيْ سَالِمُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ اَنَّهُ سَمِعَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ كُلُّكُمْ رَاعٍ وَ مَسْئُوْلٌ عَنْ رَعِيَّتِهٖ فَالْاِمَامُ رَاعٍ وَ مَسْئُوْلٌ عَنْ رَعِيَّتِهٖ وَالرَّجُلُ فِيْ اَهْلِهٖ رَاعٍ وَهُوَ مَسْئُوْلٌ عَنْ رَعِيَّتِهٖ وَالْمَرْاَةُ فِيْ بَيْتِ زَوْجِهَا رَاعِيَةٌ وَهِيَ مَسْئُوْلَةٌ عَنْ رَعِيَّتِهَا وَالْخَادِمُ فِيْ مَالِ سَيِّدِهٖ رَاعٍ وَهُوَ مَسْئُوْلٌ عَنْ رَعِيَّتِهٖ قَالَ فَسَمِعْتُ هٰؤُلَاءِ مِنَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَحْسِبُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ**

**١٠٨٣** : ابواليمان. شعيب. زهري. سالم بن عبداللّٰه. عبداللّٰه بن عمرؓ نه روايت کوي. هغه دَ نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم نه واوريدل چه تاسو کښې هر سړے حاکم دے' او هغۀ نه به دَ هغۀ دَ رعيت متعلق تپوس کيږي ښځه دَ خپل خاوند د کور نګرانه ده' هغے نه به د هغے دَ رعيت تپوس کيږي. او خادم د خپل مالک د مال محافظ دے هغۀ نه به د هغۀ دَ رعيت متعلق تپوس کيږي. د عبداللّٰه بن عمرؓ بيان دے چه دا' ما' د نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم نه آوريدلے دي. او خما خيال دے' چه نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم دا هم اوفرمايل' چه سړے د خپل پلار د مال نګهبان دے' او هغۀ نه

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ وَالرَّجُلُ فِيْ مَالِ أَبِيْهِ رَاعٍ وَّ مَسْئُوْلٌ عَنْ رَّعِيَّتِهِ فَكُلُّكُمْ رَاعٍ وَّ كُلُّكُمْ مَّسْئُوْلٌ عَنْ رَّعِيَّتِهٖ.

به ده هغه د رعیت متعلق تپوس کیږي. تاسو کښې هر سړے حاکم دے. او هغه نه به د هغه د رعیت په حقله پښتنه کیږي.

بـاب۷۱۷: إِذَا ضَرَبَ الْعَبْدَ فَلْيَجْتَنِبِ الْوَجْهَ.

باب۷۱۷: که څوک سړے خپل غلام وهي نو په مخ دے نه وهي.

۱۰۸۴: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عُبَيْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَالِكُ بْنُ اَنَسٍ قَالَ وَ اَخْبَرَنِيْ ابْنُ فُلَانٍ عَنْ سَعِيْدٍ الْمَقْبُرِيِّ عَنْ أَبِيْهِ عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنْ هَمَّامٍ عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِذَا قَاتَلَ أَحَدُكُمْ فَلْيَجْتَنِبِ الْوَجْهَ.

۱۰۸۴: محمد بن عبیدالله. ابن وهب. مالک بن انس. ابن فلان (سمعان) سعید مقبري. حضرت ابوهریره نبي صلے الله علیه وسلّم نه روایت کوي. حضور صلے الله علیه وسلّم اوفرمائیل که تاسو کښې څوک جګړه کوي، نو په مخ د وهلو نه دے ځان بچ کړي[۱]، (یعني په مخ وهل دے نه کوي، ځکه چه مخ د خدائے د نوره دے)

۱. په وهلو کښې په مخ باندے وهلو نه پرهیز صرف غلام سره خاص نه دے. دلته چونکه د غلامانو بیان دے، په دے وجه ئے عنوان کښې د هغوئ خصوصیت سره ذکر اوکړو. بلکه په مخ باندے وهلو نه د پرهیز حکم تمامو انسانانو بلکه ځناورو د پاره هم دے.

## كِتَابُ الْمُكَاتَبِ

## دَ مکاتب کولو بیان[۱]

۱. د مکاتب باره کښې مونږه مخکښې څو خلے لیکلے دي چه د غلامۍ په باب کښې مکاتبت یو داسے معامله ده د کومے په ذریعه چه غلامان په ګنړو قسطونو کښې یو خاص رقم خپل آقا ته ورکولونه پس خپل خان ازادولے شي. د همدے تفصیلات به په دے باب کښې بیانیږي.

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

بـــاب۷۱۸: إِثْمِ مَنْ قَذَفَ مَمْلُوْكَهُ الْمُكَاتَبِ وَ نُجُوْمِهٖ

باب۷۱۸: د هغے سړي بیان چه په خپل غلام تهمت اولږوي[۱]. مکاتب او د هغهٔ د قسطونو بیان. او

فِیْ کُلِّ سَنَةٍ نَجْمٌ وَ قَوْلِهٖ وَالَّذِیْنَ یَبْتَغُوْنَ الْکِتٰبَ مِمَّا مَلَکَتْ اَیْمَانُکُمْ فَکَاتِبُوْهُمْ اِنْ عَلِمْتُمْ فِیْهِمْ خَیْرًا وَّ اٰتُوْهُمْ مِّنْ مَّالِ اللّٰهِ الَّذِیْ اٰتٰکُمْ وَ قَالَ رَوْحٌ عَنِ ابْنِ جُرَیْجٍ قُلْتُ لِعَطَاءٍ اَوَاجِبٌ عَلَیَّ اِذَا عَلِمْتُ لَهٗ مَالًا اَنْ اُکَاتِبَهٗ قَالَ مَا اُرَاهُ اِلَّا وَاجِبًا وَ قَالَ عَمْرُوْا بْنِ دِیْنَارٍ قُلْتُ لِعَطَاءٍ تَأْثُرُهٗ عَنْ اَحَدٍ قَالَ لَا ثُمَّ اَخْبَرَنِیْ اَنَّ مُوْسٰی بْنَ اَنَسٍ اَخْبَرَهٗ اَنَّ سِیْرِیْنَ سَاَلَ اَنَسًا الْمُکَاتَبَةَ وَ کَانَ کَثِیْرَ الْمَالِ فَاَبٰی فَانْطَلَقَ اِلٰی عُمَرَ فَقَالَ کَاتِبْهُ فَاَبٰی فَضَرَبَهٗ بِالدُّرَّةِ وَ یَتْلُوْ عُمَرُ فَکَاتِبُوْهُمْ اِنْ عَلِمْتُمْ فِیْهِمْ خَیْرًا فَکَاتَبَهٗ وَ قَالَ اللَّیْثُ حَدَّثَنِیْ یُوْنُسُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ عُرْوَةُ قَالَتْ عَآئِشَةُ اِنَّ بَرِیْرَةَ دَخَلَتْ عَلَیْهَا تَسْتَعِیْنُهَا فِیْ کِتَابَتِهَا وَ عَلَیْهَا خَمْسَةُ اَوَاقٍ نُجِّمَتْ عَلَیْهَا فِیْ خَمْسِ سِنِیْنَ فَقَالَتْ لَهَا عَآئِشَةُ وَ نَفِسَتْ فِیْهَا اَرَاَیْتِ اِنْ عَدَدْتُّ لَهُمْ عَدَّةً وَّاحِدَةً اَیَبِیْعُكِ اَهْلُكِ فَاُعْتِقَكِ فَیَکُوْنَ وَلَآءُكِ لِیْ فَذَهَبَتْ بَرِیْرَةُ

هر کال کښې یو قسط دے٬ او د اللّٰه تعالي فرمانیل چه کوم خلق ستاسو غلامانو او وینزو کښې کتابت کول غواړي٬ نو هغوئ سره کتابت اوکړئے٬ که تاسو هغې کښې خیر گنړئے٬ او هغوي له د اللّٰه د مال نه ورکړئے چه هغه تاسوله درکړے دے[۲]. روح د٬ ابن جریج نه نقل کړے دے. چه ما د٬ عطاء نه تپوس اوکه٬ آیا په ما واجب دي٬ چه زه غلام سره کتابت اوکړم٬ هر کله چه ماته معلومه شي٬ چه هغه سره مال دے٬ او هغه مکاتب جوړیدل غواړي. نو هغه اووے٬ چه زه خو ئے واجب گنړم. د عمرو بن دینار بیان دے ما عطاء ته اووے٬ آیا تاسو د چا نه روایت کوئے. هغه اووے٬ نه٬ بیائے اووے٬ ماته موسي بن انس بیان اوکه٬ چه سیرین د مکاتبت متعلق انس ته خواست اوکه٬ او هغه مالدار وو. نو هغه انکار اوکه٬ سیرین حضرت عمرؓ له ورغے٬ نو حضرت عمرؓ ورته اوفرمائیل ده سره کتابت اوکړه٬ لیکن هغه اونه منله نو هغه ئے په دُره اووهلو. او حضرت عمرؓ دا٬ آیت تلاوت کولو: فکاتبوهم ان علمتم فیهم خیرًا: نو٬ انسؓ سیرین سره کتابت اوکړلو. د لیث بیان دے٬ ماته یونس په واسطه د٬ ابن شهاب. عروه. عائشےؓ بیان اوکه٬ چه بریره٬ بي بي عائشےؓ له راغله. خپل کتابت کښې ئے ترے مدد اوغوښته٬ پنځه اوقیه سپین زر په هغې واجب کړے شوے وو٬ چه پنځه کاله کښې ئے ادا کول وو. بریره ته بي بي عائشےؓ اوفرمائیل (چه د هغې د٬ بریره د٬ اخستلو او آزادولو خواهش وو) وایه کنه٬ که زه ستا د کتابت رقم په یوځل (یک مشت) ورکړم نو آیا ستا مالک به تا خرڅه کړي٬ چه زه تا آزاده کړم٬ او ستا ولاء

إِلَـى أَهْـلِهَـا فَـعَـرَضَـتْ ذَالِكَ عَـلَيْهِـمْ فَقَـالُوا لَا إِلَّا أَنْ يَكُوْنَ لَنَا الْوَلَاءُ قَالَتْ عَائِشَةُ فَدَخَلْتُ عَلَى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَكَرْتُ ذَالِكَ لَهُ فَقَالَ لَهَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اشْتَرِيْهَا فَاَعْتِقِيْهَا فَإِنَّمَا الْوَلَاءُ لِمَنْ أَعْتَقَ ثُمَّ قَامَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ مَا بَالُ رِجَالٍ يَشْتَرِطُوْنَ شُرُوْطًا لَيْسَتْ فِيْ كِتَابِ اللّٰهِ مَنِ اشْتَرَطَ شَرْطًا لَيْسَ فِيْ كِتَابِ اللّٰهِ فَهُوَ بَاطِلٌ شَرْطُ اللّٰهِ أَحَقُّ وَ أَوْثَقُ.

به خما وي. نو بريره خپلو مالكانو له لاړله او هغوی ته ئے دا حال بيان كړ نو هغے خلقو اووے نه. خو په دے شرط چه د هغے ولاء (د ميراث مال) به خمونږ وي. بي بي عائشے اوفرمائيل: زه نبي صلے الله عليه وسلم له ورغلم او ما حضور صلي الله عليه وسلم ته دا بيان اوكړ، نو رسول الله صلے الله عليه وسلم ورته اوفرمائيل چه دا واخله او آزاده ئے كړه، خكه چه ولاء خو د هغے د پاره ده چه آزاده ئے كړي. بيا رسول الله صلے الله عليه وسلم خطبے ورکولو د پاره اودريدلو اووے فرمائيل: د خلقو څه حال دے، چه داسے شرطونه لږوي چه كتاب الله كښ نشته دے. چا چه داسے شرط اولږولو، چه كتاب الله كښ نشته نو هغه شرط باطل دے، د الله مقرر كړے شرط زيات د عمل لائق او مضبوط دے.

ف: (۱) كتابت: د مقرر شوے مال په ادائيكي د غلام يا وينزے آزادول. (۲) مكاتب: هغه غلام يا وينزه چه هغه يا هغے له خپل مالك دا ليكلے وركړي، كه نه مزدوري وغيره او كړے او دومره روپے ماته ادا كړے، نو ته به آزاد يا آزاده كړے شے.

۱. مصنف ددے عنوان لاندے هيڅ حديث نه دے ليكلے ممكنه ده چه عنوان قائمولو نه پس ترے حديث ليكل هير شوي وي او هغه په بيله صفحه كښ روستو موندے شوے وي. په كتاب الحدود كښ ددے عنوان مناسب يو حديث مصنف پخپله راوړے دے چه كه چرے څوک په خپل غلام باندے غلط او د دروغو تهمت اولګوي نو په قيامت كښ به هغه په كورو وهلے كيږي (د دے دروغو په سزا كښ).

۲. احناف وائي چه مكاتب له زكوة وركيدے شي په دے آيت كښ دے طرفته اشاره موجود ده. مطلب دا دے چه كله ئے خپل غلام سره كتابت معامله فيصله كړه نو د خپل طرفنه هم د هغه مدد كول پكار دي، د پاره د دے چه هغه ته كاميابي حاصله شي.

## بَابُ ۱۹ ۷: مَا يَجُوْزُ مِنْ شُرُوْطِ الْمُكَاتَبِ وَمَنِ اشْتَرَطَ شَرْطًا لَيْسَ فِيْ كِتَابِ اللّٰهِ فِيْهِ ابْنُ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

## باب ۱۹ ۷: مكاتب سره كوم شرط كول جائز

دي، او د دے امر بيان، كه چا سري داسے شرط اولږولو، چه هغه كتاب الله كښ نشته. دے باب كښ ابن عمر د نبي صلے الله عليه وسلم نه روايت كړيدے.

۱۰۸۵: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُرْوَةَ اَنَّ عَآئِشَةَ اَخْبَرَتْهُ اَنَّ بَرِيْرَةَ جَآءَتْ تَسْتَعِيْنُهَا فِيْ كِتَابَتِهَا وَلَمْ تَكُنْ قَضَتْ مِنْ كِتَابَتِهَا شَيْئًا قَالَتْ لَهَا عَآئِشَةُ ارْجِعِيْ اِلَى اَهْلِكِ فَاِنْ اَحَبُّوْا اَنْ اَقْضِيَ عَنْكِ كِتَابَتَكِ وَ يَكُوْنَ وَلَآؤُكِ لِيْ فَعَلْتُ فَذَكَرَتْ ذٰلِكَ بَرِيْرَةُ لِاَهْلِهَا فَاَبَوْا وَ قَالُوْا اِنْ شَآءَتْ اَنْ تَحْتَسِبَ عَلَيْكِ فَلْتَفْعَلْ وَ يَكُوْنُ وَلَآؤُكِ لَنَا فَذَكَرَتْ ذٰلِكَ لِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ لَهَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ابْتَاعِيْ فَاَعْتِقِيْ فَاِنَّمَا الْوَلَآءُ لِمَنْ اَعْتَقَ قَالَ ثُمَّ قَامَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ مَا بَالُ اُنَاسٍ يَّشْتَرِطُوْنَ شُرُوْطًا لَّيْسَتْ فِيْ كِتَابِ اللّٰهِ مَنِ اشْتَرَطَ شَرْطًا لَيْسَ فِيْ كِتَابِ اللّٰهِ فَلَيْسَ لَهٗ وَ اِنْ شَرَطَ مِائَةَ مَرَّةٍ شَرْطُ اللّٰهِ اَحَقُّ وَ اَوْثَقُ.

۱۰۸۵: قتیبه. لیث. ابن شهاب. عروه بي بي عائشےؓ نه روایت کوي، چه بریره هغے له د خپل کتابت (دَ، رقم دَ، ادائیګي) د پاره مدد غوښتلوله راغله، او د خپل کتابت دَ، رقم نه ئے هیڅ نهٔ وو ادا کړے بي بي عائشےؓ ورته اوفرمائیل، خپلو مالکانو له لاړه شه، کهٔ هغوي دا خبره خوښه کړي، چه زهٔ به ستا د طرف نه د کتابت رقم ادا کړم، او ستا ولاء (د میراث مال) به خما وي، نو زهٔ به داسے او کړم، بریرے دا خبره خپلو مالکانو سره اوکړه، خو هغے خلقو اونهٔ منله، اوونیلے، کهٔ هغه د ثواب په نیت داسے کول غواړي، نو، اودے کړي، خو ستا دَ، ولاء مالکان به مونږ یُو. بي بي عائشےؓ دا قصه رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم ته بیان کړه. نو حضور صلے اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل، چه وانے خلهٔ، او آزاده ئے کړه ځکه چه دَ، ولاء حق خو هغے چاته حاصلیږي، چه څوک ئے آزاده کړي. بیا رسول اللّٰه صلے اللّٰه علیه وسلّم خطبے ورکولو د پاره اودریدلو. اووے فرمائیل. د خلقو څهٔ حال دے چه داسے شرطونه لږوي چه کتاب اللّٰه کښ نشته. څوک چه داسے شرط اوتړي، چه کتاب اللّٰه کښ نهٔ وي، نو د هغهٔ هیڅ حق نشته، اګر کهٔ په سلونو شرطونه وتړي، او دَ، اللّٰه شرط زیات مستحق او مضبوط دے.

۱۰۸۶: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ نَّافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ ابْنِ عُمَرَؓ قَالَ اَرَادَتْ عَآئِشَةُ اُمُّ الْمُؤْمِنِيْنَ اَنْ تَشْتَرِيَ جَارِيَةً لِّتُعْتِقَهَا فَقَالَ اَهْلُهَا عَلَى اَنَّ وَلَآءَ هَا

۱۰۸۶: عبداللّٰه بن یُوسف. مالک. نافع. عبداللّٰه بن عمرؓ نه روایت کوي، اُمّ المؤمنین بي بي عائشےؓ اوغُښتل، چه یوه وینځه واخلي، او هغه آزاده کړي، نو د هغے مالک اووے (چه مونږ ئے خرڅوو) خو په دے شرط چه د دے ولاء (د میراث مال) به خمونږ

لَنَا قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَمْنَعُكِ ذٰلِكَ فَاِنَّمَا الْوَلَآءُ لِمَنْ اَعْتَقَ.

وي. رسول الله صلے الله عليه وسلّم اوفرمانيل تادے دا شرط (د دے د خريداري نه) منع نه كړي. خكه چه د ولاء مستحق خو هغه دے چه آزاده ئے كړي.

باب ۴۲۰ ـ: اِسْتِعَانَةِ الْمُكَاتَبِ وَ سُؤَالِهِ النَّاسَ.

باب ۴۲۰ ـ: د مكاتب د مدد غوښتلو او خلقونه د سوال كولو بيان.

۱۰۸۷ : حَدَّثَنَا عُبَيْدُ بْنُ اِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا اَبُوْ اُسَامَةَ عَنْ هِشَامٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَآئِشَةَ قَالَتْ جَآءَتْ بَرِيْرَةُ فَقَالَتْ اِنِّيْ كَاتَبْتُ اَهْلِيْ عَلٰى تِسْعِ اَوَاقٍ فِيْ كُلِّ عَامٍ اُوْقِيَّةٌ فَاَعِيْنِيْنِيْ فَقَالَتْ عَآئِشَةُ اِنْ اَحَبَّ اَهْلُكِ اَنْ اَعُدَّهَا لَهُمْ عِدَّةً وَّاحِدَةً وَّ اُعْتِقَكِ فَعَلْتُ وَ يَكُوْنُ وَلَآءُكِ لِيْ فَذَهَبَتْ اِلٰى اَهْلِهَا فَاَبَوْا ذٰلِكَ عَلَيْهَا فَقَالَتْ اِنِّيْ قَدْ عَرَضْتُ ذٰلِكَ عَلَيْهِمْ فَاَبَوْا اِلَّا اَنْ يَّكُوْنَ الْوَلَآءُ لَهُمْ فَسَمِعَ بِذٰلِكَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَاَلَنِيْ فَاَخْبَرْتُهُ فَقَالَ خُذِيْهَا فَاَعْتِقِيْهَا وَاشْتَرِطِيْ لَهُمُ الْوَلَآءَ فَاِنَّمَا الْوَلَآءُ لِمَنْ اَعْتَقَ قَالَتْ عَآئِشَةُ فَقَامَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي النَّاسِ فَحَمِدَ اللّٰهَ وَ اَثْنٰى عَلَيْهِ ثُمَّ قَالَ اَمَّا بَعْدُ فَمَا بَالُ رِجَالٍ مِّنْكُمْ يَشْتَرِطُوْنَ شُرُوْطًا لَيْسَتْ فِيْ كِتَابِ

۱۰۸۷ : عبيد بن اسمعيل. ابو اسامه. هشام د خپل پلار (عروه) نه هغه د بي بي عائشے نه روايت كوي، هغے اووے بريره ماله راغله او وئيلے چه ما خپلو مالكانو سره د نهه اوقيه چاندي په عوض په دے طور كتابت كړے دے چه هر كال به يو اوقيه چاندي وركوم نو ته خما مدد اوكړه. بي بي عائشے ورته اوفرمائيل كه ستا د مالكانو خوښه وي، نو زه به دا رقم يک مشت هغوي له وركړم او تابه آزاده كړم او ستا ولاء به زه اخلم، هغه خپلو مالكانوله ورغله خو هغوي د داسے كولو نه انكار اوكه. بريره بي بي عائشے له راغله او ورته ئے اووے چه هغے خلقو انكار اوكه، خو په دے شرط چه د ولاء مستحق به هغه خلق وي. نبي صلے الله عليه وسلّم دا واوريدل، حضور صلے الله عليه وسلّم مانه تپوس اوكه نو ما ورته ټول بيان اوكه نو حضور صلے الله عليه وسلّم اوفرمائيل ته دا واخله او آزاده ئے كړه. او هغوي د پاره د ولاء شرط منظور كړه، خكه چه ولاء خو آزادونكي ته وركيږي. بي بي عائشے اوفرمائيل چه رسول الله صلے الله عليه وسلّم د خلقو مينځ كښې اودريدلو. د الله حمد و ثناء ئے بيان كړل. بيائے اوفرمائيل امابعد تاسو كښې بعضے خلقوله څه شوے دي چه داسے شرطونه لږوي، چه كتاب الله كښې نشته.

اللّٰهِ فَاَيُّمَا شَرْطٍ لَيْسَ فِيْ كِتَابِ اللّٰهِ فَهُوَ بَاطِلٌ وَّ اِنْ كَانَ مِائَةَ شَرْطٍ فَقَضَاءُ اللّٰهِ اَحَقُّ وَ شَرْطُ اللّٰهِ اَوْثَقُ مَا بَالُ رِجَالٍ مِّنْكُمْ يَقُوْلُ اَحَدُهُمْ اَعْتِقْ يَا فُلَانُ وَلِيَ الْوَلَآءُ اِنَّمَا الْوَلَآءُ لِمَنْ اَعْتَقَ.

كوم سړے چه داسے شرط اوتړي، چه كتاب الله كښې نشته، نو هغه باطل دے. اگر كه سل شرطونه اوتړي. د الله حكم د عمل زيات مستحق دے. د الله شرط زيات مستحكم (مضبوط) دے. تاسو كښې بعضوله څۀ شوے دي، چه وائي. اے فلان، آزاده كړه او د هغے ولاء به خما وي. ولاء خو صرف هغه آخلي، چه آزاده ئے كړي.

۱. ددے نه مخكښے په يو روايت كښې پنځو اوقيو باندے ددے معاملے كيدل تيز شوي دي. دا قسمه اختلافات په راويانو كښې كثرت سره وي او محدثين په عام طور سره په هغے كښې د تطبيق هم هيڅ كوشش نه كوي ولے چه دا واقعات دي البته كله چه حديث د يوے مسئلے مدار وي نو په هغه باندے په پوره توگه بحث كوي.

بَابُ ۱۲۷: بَيْعِ الْمُكَاتَبِ اِذَا رَضِيَ وَ قَالَتْ عَائِشَةُ هُوَ عَبْدٌ مَّا بَقِيَ عَلَيْهِ شَيْءٌ وَ قَالَ زَيْدُ بْنُ ثَابِتٍ مَّا بَقِيَ عَلَيْهِ دِرْهَمٌ وَّ قَالَ ابْنُ عُمَرَ هُوَ عَبْدٌ اِنْ عَاشَ وَ اِنْ مَّاتَ وَ اِنْ جَنٰى مَا بَقِيَ عَلَيْهِ شَيْءٌ.

باب ۱۲۷: د مكاتب د بيع بيان، هر كله چه هغه راضي شي. ابن عمرؓ او فرمائيل، هغه غلام دے، څو پورے چه په هغه څۀ هم باقي وي. او زيد بن ثابت اووے څو پورے چه يو درهم هم د هغۀ په ذمه باقي وي. ابن عمرؓ اووے، څو پورے چه د هغۀ په ذمه څۀ باقي وي، ژوند مرگ او قصور كښې به غلام تصوّر كيږي (يعني گڼړلے شي).

۱۰۸۸: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ يَّحْيَى بْنِ سَعِيْدٍ عَنْ عَمْرَةَ بِنْتِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ اَنَّ بَرِيْرَةَ جَاءَتْ تَسْتَعِيْنُ عَائِشَةَ اُمَّ الْمُؤْمِنِيْنَ فَقَالَتْ لَهَا اِنْ اَحَبَّ اَهْلُكِ اَنْ اَصُبَّ لَهُمْ ثَمَنَكِ صَبَّةً وَّاحِدَةً فَاُعْتِقَكِ فَعَلْتُ فَذَكَرَتْ بَرِيْرَةُ ذٰلِكَ لِاَهْلِهَا فَقَالُوْا لَا اِلَّا اَنْ يَّكُوْنَ وَلَاءُ كِ لَنَا قَالَ مَالِكٌ قَالَ يَحْيٰى فَزَعَمَتْ عَمْرَةُ اَنَّ عَائِشَةَ ذَكَرَتْ ذٰلِكَ لِرَسُوْلِ اللّٰهِ

۱۰۸۸: عبدالله بن يوسف. مالك. يحيي بن سعيد. عمره بنت عبدالرحمن نه روايت كوي. د هغۀ بيان دے، چه ام المؤمنين بي بي عائشےؓ له بريره د كتابت وقم د ادائيگي كښې مدد غوښتلو له راغله، نو هغے ورته اووے، كه ستا د مالك خوښه وي، نو زۀ به ورله ستا قيمت يك مشت وركړم، او تا به آزاده كړم. بريره خپلو مالكانو ته اووے، نو هغوي اووے چه مونږ تا نه خرڅوو، خو په دے شرط، چه ستا ولاء به خمونږ وي. مالك د يحيي قول بيان كه، عمره اووے چه بي بي عائشےؓ دا قصه رسول الله صلے الله عليه وسلم ته

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ اشْتَرِيهَا وَ اَعْتِقِيهَا فَاِنَّمَا الْوَلَآءُ لِمَنْ اَعْتَقَ.

او کړه، نو حضور صلے الله علیه وسلم ورته اوفرمایل چه دا، واخله او آزاده ئے کړه، ځکه چه ولاء به هغے چاته رسي، چه آزاده ئے کړي.

## باب ۷۲۲: اِذَا قَالَ الْمُكَاتَبُ اشْتَرِنِيْ وَ اَعْتِقْنِيْ فَاشْتَرَاهُ لِذٰلِكَ.

## باب ۷۲۲: کله مکاتب اووائي چه ما واخله او آزاد م کړه او هغه ئے په دے غرض واخلی.

**۱۰۸۹**: حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ بْنُ اَيْمَنَ قَالَ حَدَّثَنِيَ اَبِيْ اَيْمَنُ قَالَ دَخَلْتُ عَلٰى عَائِشَةَ فَقُلْتُ لِعُتْبَةَ بْنِ اَبِيْ لَهَبٍ وَّ مَاتَ وَ وَرِثَنِيْ بَنُوْهُ وَ اِنَّهُمْ بَاعُوْنِيْ مِنِ ابْنِ اَبِيْ عَمْرٍو فَاَعْتَقَنِيْ ابْنُ اَبِيْ عَمْرٍ وَّاشْتَرَطَ بَنُوْ عُتْبَةَ الْوَلَآءَ فَقَالَتْ دَخَلَتْ بُرِيْرَةُ وَهِيَ مُكَاتَبَةٌ فَقَالَتِ اشْتَرِيْنِيْ وَ اَعْتِقِيْنِيْ قَالَتْ نَعَمْ قَالَتْ لَا يَبِيْعُوْنِيْ حَتّٰى يَشْتَرِطُوْا وَلَائِيْ فَقَالَتْ لَا حَاجَةَ لِيْ بِذٰلِكَ فَسَمِعَ بِذٰلِكَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَوْ بَلَغَهُ فَذَكَرَ لِعَائِشَةَ فَذَكَرَتْ عَائِشَةُ مَا قَالَتْ لَهَا فَقَالَ اشْتَرِيهَا وَ اَعْتِقِيهَا وَ دَعِيْهِمْ يَشْتَرِطُوْنَ مَا شَآءُوْا فَاشْتَرَتْهَا عَائِشَةُ فَاَعْتَقَتْهَا وَ اشْتَرَطَ اَهْلُهَا الْوَلَآءَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْوَلَآءُ لِمَنْ اَعْتَقَ وَ اِنِ اشْتَرَطُوْا مِائَةَ شَرْطٍ.

**۱۰۸۹**: ابو نعیم، عبدالواحد بن ایمن ایمن بیان کوي چه زه بي بي عائشے له ورغلم، ما اووے چه زه عتبه بن ابي لهب سره ووم. عتبه مړشو او د هغه خامن خما وارثان شو، او هغے خلقو زه د ابن ابي عمرو په لاس خرڅ کړم. او ابن ابي عمرو زه آزاد کړم. او بنو عتبه د، ولاء شرط خان د پاره اوکه. بي بي عائشے اووے بریره ما له راغله او هغه مکاتبه وه. هغے اووے، ما واخله، او آزاده م کړه. بي بي عائشے ورته اووے، ښه ده، نو بریرے اووے، چه هغوي مانه خرڅوي خو په دے شرط چه ولاء به هغوي اخلي. بي بي عائشے اووے، چه بیا ماته د دے حاجت نشته نبي صلے الله علیه وسلم چه د دے نه خبر شو، حضور صلے الله علیه وسلم بي بي عائشے نه تپوس اوکه، نو هغے، هغه بیان اوکه، چه بریرے هغے سره کړے وو. حضور صلے الله علیه وسلم ورته اوفرمایل دا، واخله، او آزاده ئے کړه، او کوم شرط چه هغوي غواړي، اودے کړي، نو بي بي عائشے هغه په بیعه واخسته، او د هغے مالکانو د، ولاء شرط خان د پاره کیښودلو، نبي صلے الله علیه وسلم اوفرمائیل، ولاء د هغے چا ده، چه آزاده ئے کړي، اگر که په سوونو شرطونه اوتړي.

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ؕ

# كِتَابُ الْهِبَةِ

بَابُ ۷۲۳: وَفَضْلِهَا وَالتَّحْرِيْضِ عَلَيْهَا.

۱۰۹۰: حَدَّثَنَا عَاصِمُ بْنُ عَلِيٍّ حَدَّثَنَا ابْنُ اَبِيْ ذِئْبٍ عَنِ الْمَقْبُرِيِّ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يَا نِسَآءَ الْمُسْلِمَاتِ لَا تَحْقِرَنَّ جَارَةٌ لِجَارَتِهَا وَلَوْ فِرْسِنَ شَاةٍ.

بسم الله الرحمن الرحيم

# دَ هبه کولو بیان

باب ۷۲۳: هبه او دَ هغې دَ فضیلت او د هغې د رغبت ورکولو بیان.

۱۰۹۰: عاصم بن علي. ابن ابي ذئب. مقبري. ابوهريرة نه او هغه دَ نبي صلی الله علیه وسلم نه روایت کوي. حضور صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل. اې مسلمانو زنانه ؤ' هیڅ ګاونډۍ ښځې ته دِ په سپک نظر نه ګوري' اګر کهٔ د چیلئ سُم ورته ولې اونهٔ لیږي[1].

۱. مطلب دا دې چه خپلو ګاونډیانو له هدیې وغیره لیګل پکار دي. که چرې چا سره زیات څه نه وي نو هر څه چه وي د معمولي نه معمولي څیز هدیه لیګلو کښې هم دریغ نه دي کول پکار. د چیلئ د سُم ذکر صرف د هدیې کم قیمتي ظاهرولو د پاره راغلې دې.

۱۰۹۱: حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ الْاُوَيْسِيُّ حَدَّثَنَا ابْنُ اَبِيْ حَازِمٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ يَزِيْدَ بْنِ رُوْمَانَ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ اَنَّهَا قَالَتْ لِعُرْوَةَ ابْنَ اُخْتِيْ اِنْ كُنَّا لَنَنْظُرُ اِلَى الْهِلَالِ ثُمَّ الْهِلَالِ ثَلٰثَةَ اَهِلَّةٍ فِيْ شَهْرَيْنِ وَمَآ اُوْقِدَتْ فِيْ اَبْيَاتِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَارٌ فَقُلْتُ يَا خَالَةُ مَا كَانَ يُعِيْشُكُمْ قَالَتِ الْاَسْوَدَانِ التَّمْرُ وَالْمَآءُ اِلَّا اَنَّهُ قَدْ كَانَ لِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جِيْرَانٌ مِّنَ الْاَنْصَارِ كَانَتْ لَهُمْ مَنَائِحُ وَكَانُوْا

۱۰۹۱: عبدالعزیز بن عبدالله اویسي. ابن ابي حازم. ابو حازم. یزید بن رومان. عروه بي بي عائشې نه روایت کوي' هغې عروه ته اووې. اې خما خوریه (بهانجې) یو داسې وخت هم وو' چه مونږ به یوه میاشت اولیده' بیا به مو' دونمه میاشت اولیده. بیا به مو دریمه میاشت اولید. دوه دوه میاشتې به دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم په کورونو کښې (نغري کښې) اُور نه بلیدلو. ما تپوس اوکهٔ. اې ترورې (خاله) بیا په کوم څیز تاسو ژوند تیرولو' بي بي عائشې اوفرمائیل' په دَوو تورو څیزونو یعني په چهوهارو او په اوبو' خو' دا چه د نبي صلی الله علیه وسلم په ګاونډ کښې یو څو انصار وو' هغوي سره د پیو چیلې وې' او هغې خلقو به رسول الله

يَمْنَحُوْنَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ اَلْبَانِهِمْ فَيَسْقِيْنَا.

صلے اللّٰه عليه وسلّم ته د هغے پني را ليږل نو هغه به ئے مونږ بانديے څکول.

باب ۷۲۴: اَلْقَلِيْلِ مِنَ الْهِبَةِ.

باب ۷۲۴: د لږ څيز د هبه کولو بيان.

۱۰۹۲: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا ابْنُ اَبِيْ عَدِيٍ عَنْ شُعْبَةَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَوْ دُعِيْتُ اِلٰى ذِرَاعٍ اَوْ كُرَاعٍ لَّا جَبْتُ وَلَوْ اُهْدِىَ اِلَيَّ ذِرَاعٌ اَوْ كُرَاعٌ لَقَبِلْتُ.

۱۰۹۲: محمّد بن بشار. ابن ابي عدي. شعبه. سليمان. ابو حازم. ابو هريرةؓ. نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم نه روايت کوي، حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، که زهٔ يو، دست يا سُم (کهر) له اوبللے شم، نو زهٔ به ضرور خم، او که ماله يو، دست يا نُوکه هديه را وليږلے شي، نو زه به ئے ضرور قبول کړم.

باب ۷۲۵: مَنِ اسْتَوْهَبَ مِنْ اَصْحَابِهِ شَيْئًا اَبُوْ سَعِيْدٍ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِضْرِبُوْا لِيْ مَعَكُمْ سَهْمًا.

باب ۷۲۵: د هغے سړي بيان چه د خپلو دوستانو نه څه څيز اوغواړي. او د ابوسعيد بيان دے، چه نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، خما د پاره هم يوه حصّه اوکړئے.

۱۰۹۳: حَدَّثَنَا ابْنُ اَبِيْ مَرْيَمَ حَدَّثَنَا اَبُوْ غَسَّانَ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبُوْ حَازِمٍ عَنْ سَهْلٍؓ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَرْسَلَ اِلَى امْرَاَةٍ مِّنَ الْمُهٰجِرِيْنَ وَ كَانَ لَهَا غُلَامٌ نَّجَّارٌ قَالَ لَهَا مُرِىْ عَبْدَكِ فَلْيَعْمَلْ لَنَا اَعْوَادَ الْمِنْبَرِ فَاَمَرَتْ عَبْدَهَا فَذَهَبَ فَقَطَعَ مِنَ الطَّرْفَآءِ فَصَنَعَ لَهٗ مِنْبَرًا فَلَمَّا قَضَاهُ اَرْسَلَتْ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهٗ قَدْ قَضَاهُ قَالَ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَرْسِلِيْ بِهٖ اِلَيَّ فَجَآءُوْا بِهٖ فَاحْتَمَلَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَوَضَعَهٗ حَيْثُ

۱۰۹۳: ابن ابي مريم. ابوغسان. ابو حازم. سهل نه روايت کوي چه نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم يوے مهاجرے زنانه ته، چه هغے سره يو ترکانړ غلام وو، خبر اوليږلو، چه خپل غلام ته حکم ورکړي، چه مونږ د پاره د منبر لرګي تيار کړي نو هغے خپل غلام ته حکم ورکه هغه ځنګل ته لاړ. او د جهاؤ (د غز په شان يوه اُونه) لرګے ئے پريکړلو، او د حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم د پاره ئے منبر جوړ کړلو. کوم وخت چه منبر تيار شولو نو هغے ښځے د نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم په خدمت کښ اطلاع اوکړه، چه منبر تيار شولو نو نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم ورته خبر ورکړلو، چه منبر ماته راوليږه، نو هغے خلقو هغه منبر راوړلو، حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم هغه اوچت کهٔ، او هلته ئے کيښودلو، کوم ځائے چه تاسو

تَرَوْنَ.

**١٠٩٤ :** حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ عَنْ أَبِي حَازِمٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ أَبِي قَتَادَةَ السَّلَمِيِّ عَنْ أَبِيهِ قَالَ كُنْتُ يَوْمًا جَالِسًا مَعَ رِجَالٍ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَازِلٌ أَمَامَنَا وَالْقَوْمُ مُحْرِمُونَ وَأَنَا غَيْرُ مُحْرِمٍ فَأَبْصَرُوا حِمَارًا وَحْشِيًّا وَأَنَا مَشْغُولٌ أَخْصِفُ نَعْلِي فَلَمْ يُؤْذِنُونِي بِهِ وَأَحَبُّوا أَنِّي أَبْصَرْتُهُ وَالْتَفَتُّ فَأَبْصَرْتُهُ فَقُمْتُ إِلَى الْفَرَسِ فَأَسْرَجْتُهُ ثُمَّ رَكِبْتُ وَنَسِيتُ السَّوْطَ وَالرُّمْحَ فَقُلْتُ لَهُمْ نَاوِلُونِي السَّوْطَ وَالرُّمْحَ فَقَالُوا لَا وَاللّٰهِ لَا نُعِينُكَ عَلَيْهِ بِشَيْءٍ فَغَضِبْتُ فَنَزَلْتُ فَأَخَذْتُهُمَا ثُمَّ رَكِبْتُ فَشَدَدْتُ عَلَى الْحِمَارِ فَعَقَرْتُهُ ثُمَّ جِئْتُ بِهِ وَقَدْ مَاتَ فَوَقَعُوا فِيهِ يَأْكُلُونَهُ ثُمَّ إِنَّهُمْ شَكُّوا فِي أَكْلِهِمْ إِيَّاهُ وَهُمْ حُرُمٌ فَرُحْنَا وَخَبَأْتُ الْعَضُدَ مَعِي فَأَدْرَكْنَا رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَأَلْنَاهُ عَنْ ذٰلِكَ فَقَالَ

وينئ.

**١٠٩٤ :** عبدالعزيز بن عبدالله. محمد بن جعفر. ابو حازم. عبدالله بن ابي قتاده سلمي د خپل پلار ابو قتاده نه روايت کوي، هغۀ اووے چه زۀ د مکے بعضو لارو کښې د نبي صلے الله عليه وسلم څو اصحابو سره يوه ورځ ناست ووم. او رسول الله صلي الله عليه وسلم خمونږ نه مخکښې ايسار شوے وو. او خلقو احرام تړلے وو، ليکن زۀ دَ احرام حالت کښې نۀ ووم، خلقو يو ځنګلي خر (ګورخر) اوليد، او زۀ دَ خپلو پڼړو جوړولو کښې مشغول ووم. هغے خلقو ماته د دے اطلاع رانۀ کړه. ليکن هغے خلقو غوښتل، چه کاش ما هغه (ځنګلي خر) ليدلے وے، ما چه نظر واړولو، نو څما نظر په هغے (ګورخر) پريوتلو. زۀ اس طرف ته ورغلم. او په هغے م زين واچولو. بيا پرے زۀ سور شوم. ليکن کوړا او نيزه م اخستل هير شولو. ما هغے خلقوته اووے، چه ماله کوړا او نيزه راکړے، خو هغوي اووے په خدائے چه، چه مونږ ستا هيڅ مدد نۀ کوو، زۀ ناراض شوم، دَ اس نه کوز شوم، او دغه دواړه څيزونه (کوړا او نيزه) م راواخستل، بيا زۀ سور شوم. او په ګورخر، م حمله او کړله، هغه م ذبح که رام وړلو، نو هغه مړ شوے وو. خلقو د هغے خوړل شروع کړل. بيا دَ احرام حالت کښې د هغے خوراک کښې د خلقو شک شو. مونږ خلق د هغے ځائے نه روان شو. او دَ هغے يو، دست (د څاروي په مخکښو پښو کښې يوه پښه) ما خان سره پټه ساتلے وه. کوم وخت چه رسول الله صلي الله عليه وسلم ته اورسيدو، د هغه نه مو د دے پوښتنه او کړه، هغۀ اوفرمائيل، د هغه نه څه شته، ما

مَعَكُمْ مِنْهُ شَيْءٌ فَقُلْتُ نَعَمْ فَنَاوَلْتُهُ الْعَضُدَ فَأَكَلَهَا حَتَّى نَفِدَهَا وَهُوَ مُحْرِمٌ فَحَدَّثَنِيْ بِهِ زَيْدُ ابْنُ اَسْلَمَ عَنْ عَطَاءِ ابْنِ يَسَارٍ عَنْ اَبِيْ قَتَادَةَ.

حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم ته هغه دست ورکړلو نو حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم اوخوړلو تر دے چه حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم هغه ختم کړلو حالانکه حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم احرام کښ وو د محمّد بن جعفر بيان دے چه ماته دا حديث زيد بن اسلم په واسطه د عطاء بن يسار ابو قتاده بيان کهٔ.

باب ۱۲۶۷: مَنِ اسْتَسْقٰى وَ قَالَ سَهْلٌ قَالَ لِيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اسْقِنِيْ.

باب ۱۲۶۷: د هغے سړي بيان چه اوبهٔ طلب کړي او سهل بيان اوکهٔ ماته نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل په ما اوبهٔ اوڅکوه.

۱۰۹۵: حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ مَخْلَدٍ حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ ابْنُ بِلَالٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبُوْ طَوَالَةَ اسْمُهُ عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ قَالَ سَمِعْتُ اَنَسًا يَقُوْلُ اَتَانَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ دَارِنَا هٰذِهِ فَاسْتَسْقٰى فَحَلَبْنَا لَهُ شَاةً لَنَا ثُمَّ شُبْتُهُ مِنْ مَاءِ بِئْرِنَا هٰذِهِ فَاَعْطَيْتُهُ وَ اَبُوْبَكْرٍ عَنْ يَسَارِهٖ وَ عُمَرُ تُجَاهَهُ وَ اَعْرَابِيٌّ عَنْ يَمِيْنِهٖ فَلَمَّا فَرَغَ قَالَ عُمَرُ هٰذَا اَبُوْبَكْرٍ فَاَعْطَى الْاَعْرَابِيَّ ثُمَّ قَالَ الْاَيْمَنُوْنَ الْاَيْمَنُوْنَ اَلَا فَيَمِّنُوْا قَالَ اَنَسٌ فَهِيَ سُنَّةٌ

۱۰۹۵: خالد بن مخلد. سليمان بن بلال. ابوطواله. عبداللّٰه بن عبدالرحمن. حضرت انسؓ نه روايت کوي. هغه وئيلے چه رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلّم دے کورته تشريف راوړلو. او اوبهٔ ئے اوغوښتلے نو مونږ د حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم د پاره يوه چيلئے اولشله، بيا مو هغه د دے کوئي اوبو سره ګډ کړل او ما حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم له ورکړل. ابوبکرؓ د حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم ګس طرف ته او عمرؓ د حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم مخے ته وو. يو اعرابي (بانډيسے) د حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم ښي طرف ته ناست وو. حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم چه اوبهٔ اوڅکلے فارغ شو نو حضرت عمرؓ عرض اوکهٔ. دا ابوبکرؓ دے (دهٔ له ئے ورکړے) نو حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم هغه (پئے) اعرابي له ورکړل. بيا حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل ښي طرف واله ښي طرف واله دي ښهٔ واؤره چه ښي طرف واله له ورکوه. انسؓ اووے خکه چه دا سنت دي. درے خله حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم

فَهِيَ سُنَّةٌ ثَلٰثُ مَرَّاتٍ.

او فرمائیل (نبي طرف ته چه څوک ناست دي) اول دے هغهٔ ته څیز ورکولے شي).

**بَاب ۲۲۷: قَبُوْلِ هَدِيَّةِ الصَّيْدِ وَ قَبِلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ اَبِيْ قَتَادَةَ عَضُدَ الصَّيْدِ.**

**باب ۲۲۷:** د ښکار د هدیے قبولولو بیان او نبي صلے اللّٰه علیه وسلّم د ابو قتاده نه د ښکار یوه پنجه قبوله کړه.

**۱۰۹۶:** حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ هِشَامِ بْنِ زَيْدِ بْنِ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ عَنْ اَنَسٍ قَالَ انْفَجْنَا اَرْنَبًا بِمَرِّ الظَّهْرَانِ فَسَعَى الْقَوْمُ فَلَغِبُوْا فَاَدْرَكْتُهَا فَاَخَذْتُهَا فَاَتَيْتُ بِهَا اَبَا طَلْحَةَ فَذَبَحَهَا وَ بَعَثَ بِهَآ اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِوَرِكِهَا اَوْ فَخِذَيْهَا قَالَ فَخِذَيْهَا لَا شَكَّ فِيْهِ فَقَبِلَهُ قُلْتُ وَ اَكَلَ مِنْهُ ثُمَّ قَالَ بَعْدُ قَبِلَهُ.

**۱۰۹۶:** سُلیمان بن حرب. شعبه. هشام بن زید بن انس بن مالک. انسؓ نه روایت دے' چه مونږ مر الظهران کښې یوه سوه (خرگوش) پوره کړله. خلق هغے پسے ورو زغلیدل' خو ستړے شو. لیکن ما هغه اونیوله' ابو طلحه له م راوړله' نو هغه ذبحه کړه' او د هغے تورتې یا پتون ئے د نبي صلے اللّٰه علیه وسلّم خدمت کښې اولیږلو. بیا شعبه بیان او کړ' چه نه' پتون ئے لیږلے وو دے کښې هیڅ شک نشته. او حضور صلے اللّٰه علیه وسلّم هغه قبول کړلو. ما تپوس او کړ' آیا حضور صلے اللّٰه علیه وسلّم د هغے نه اوخوړلو' نو هغهٔ اووے' او' حضور صلے اللّٰه علیه وسلّم د هغے نه اوخوړلو' بیا د هغے نه پس ئے بیان او کړ' چه هغه ئے قبول کړ.

**۱۰۹۷:** حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُتْبَةَ بْنِ مَسْعُوْدٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبَّاسٍ عَنِ الصَّعْبِ بْنِ جَثَّامَةَ اَنَّهٗ اَهْدٰى لِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِمَارًا وَّحْشِيًّا وَّهُوَ بِالْاَبْوَآءِ اَوْ بِوَدَّانَ فَرَدَّ عَلَيْهِ فَلَمَّا رَاٰى مَا فِيْ وَجْهِهٖ قَالَ اَمَا اِنَّا لَمْ نَرُدَّهٗ عَلَيْكَ اِلَّآ اَنَّا حُرُمٌ.

**۱۰۹۷:** اسمعیل. مالک. ابن شهاب. عبیداللّٰه بن عبداللّٰه بن عتبه بن مسعود. عبداللّٰه بن عباس. صعب بن جثامه نه روایت کوي' هغه رسول اللّٰه صلے اللّٰه علیه وسلّم ته کوم وخت چه حضور صلے اللّٰه علیه وسلّم ابواء یا' ودان کښې وو' یو ځنګلي خر واستولو' نو حضور صلے اللّٰه علیه وسلّم هغه واپس کړلو. کوم وخت چه حضور صلے اللّٰه علیه وسلّم د هغهٔ د مخ رنګ اولیدلو' نو حضور صلے اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل ما فقط په دے سبب واپس کړلو' چه زهٔ د احرام حالت کښې ووم.

باب ۷۲۸: قَبُوْلِ الْهَدِيَّةِ.

۱۰۹۸: حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ مُوْسٰى حَدَّثَنَا عَبْدَةُ حَدَّثَنَا هِشَامٌ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ اَنَّ النَّاسَ كَانُوْا يَتَحَرَّوْنَ بِهَدَايَاهُمْ يَوْمَ عَائِشَةَ يَبْتَغُوْنَ بِهَا اَوْ يَبْتَغُوْنَ بِذٰلِكَ مَرْضَاةَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۱۰۹۹: حَدَّثَنَا اٰدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا جَعْفَرُ بْنُ اِيَاسٍ قَالَ سَمِعْتُ سَعِيْدَ بْنَ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍؓ قَالَ اَهْدَتْ اُمُّ حُفَيْدٍ خَالَةُ ابْنِ عَبَّاسٍؓ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَقِطًا وَّ سَمْنًا وَّ اَضُبًّا فَاَكَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنَ الْاَقِطِ وَالسَّمْنِ وَ تَرَكَ الضَّبَّ تَقَذُّرًا قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍؓ فَاُكِلَ عَلٰى مَائِدَةِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَوْ كَانَ حَرَامًا مَّاۤ اُكِلَ عَلٰى مَائِدَةِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

باب ۷۲۸: دَ هدیے قبلولو بیان.

۱۰۹۸: ابراهیم بن موسی. عبدة. هشام. عروه. بـي بـي عـائشےؓ نه روایت کوي، چه خلقو خپله هدیه لیږلو کښې دَ هغې ورځے انتظار کولو، چه د بـي بـي عـائشےؓ دَ نمبر ورځ به وه. دیے نه د هغوي غرض دَ رسول اللّٰه صلے اللّٰه علیه وسلّم رضا جوئي وه.

۱۰۹۹: آدم. شعبه. جعفر بن ایاس. سعید بن جبیر. حضرت ابن عباسؓ نه روایت کوي د هغه بیان دے. اُم حفید چه دَ حضرت ابن عباسؓ ترور (خاله) وه، دَ نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم په خدمت کښې پنیر، غوړي او، سمسره (دَ کربوړيِ په شکل یولوئے خناور چه په زمکه کښې غار وُکني، او په هغے کښې وُسي. غارندوني هم ورته وائي) دَ هدیے په طور اولیږل. نبي صلے اللّٰه علیه وسلّم د پنیر او غوړو نه څه اوخوړل، لیکن سمسره ئے نفرت سره پریښوده. دَ ابن عباسؓ بیان دے، چه دَ نبي صلے اللّٰه علیه وسلّم په دستر خوان (سمسره) اوخوړلے شوه، که هغه حرام وے، نو د نبي صلے اللّٰه علیه وسلّم په دسترخوان به نه خوړلے کیده[1].

[1]. د سمسارے په مکروهوالي باندے خو د ټولو اتفاق دے لیکن د محدثینو په نزد ددے غوښه مکروه تنزیهي ده او فقهاءِ احناف ورته مکروه تحریمي وائي. ددے حدیث نه علاوه نورو احادیث هم د سمسارے د غوښے په سلسله کښې راغلے دي د کومو نه چه ددے په غوښه باندے سخته ناګواري مفهومیږي. ددے نه علاوه سمساره ډیر بدترین خناور دے او ددے غوښه زهر جنه هم وي.

۱۱۰۰: حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ الْمُنْذِرِ حَدَّثَنَا مَعْنٌ قَالَ حَدَّثَنِيْ اِبْرَاهِيْمُ بْنُ طَهْمَانَ عَنْ مُحَمَّدِ ابْنِ زِيَادٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَؓ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ

۱۱۰۰: ابراهیم بن منذر. معن. ابراهیم بن طهمان. محمد بن زیاد. حضرت ابوهریرهؓ نه روایت کوي، دَ هغهٔ بیان دے رسول اللّٰه صلے اللّٰه علیه وسلّم ته چه به څهٔ طعام راوړلے شو، نو حضور صلے اللّٰه علیه

اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَآ اُتِيَ بِطَعَامٍ سَاَلَ عَنْهُ اَهَدِيَّةٌ اَمْ صَدَقَةٌ فَاِنْ قِيْلَ صَدَقَةٌ قَالَ لِاَصْحَابِهٖ كُلُوْا وَلَمْ يَاْكُلْ وَ اِنْ قِيْلَ هَدِيَّةٌ ضَرَبَ بِيَدِهٖ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَكَلَ مَعَهُمْ.

وسلّم به تپوس کړلو چه آیا دا هدیه ده یا صدقه ده؟ که به اوونیلے شو چه صدقه ده نو خپلو صحابه ؤ ته به ئے فرمائیل خورئے (کهاؤ) او خپله به ئے نه خوړله او که ورته به اوونیلے شو چه هدیه ده نو حضور صلے الله علیه وسلّم به لاس وروړلو او خلقو سره به شامل شو او خوړله به ئے.

**١١٠١**: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدُرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ اَنَسِ ابْنِ مَالِكٍ قَالَ اُتِيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِلَحْمٍ فَقِيْلَ تُصُدِّقَ عَلٰى بَرِيْرَةَ قَالَ هُوَ لَهَا صَدَقَةٌ وَّ لَنَا هَدِيَّةٌ.

**١١٠١**: محمد بن بشار. غندر. شعبه. قتاده. انس بن مالکؓ نه روایت کوي. د هغه بیان دے چه نبي صلے اللّٰه علیه وسلّم له غوښه راوړلے شوه نو ورته اوونیلے شو چه بریره له صدقه کښې ورکړے شوے ده نو حضور صلے اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل هغے د پاره صدقه ده او مونږ د پاره هدیه ده.

**١١٠٢**: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدُرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ الْقٰسِمِ قَالَ سَمِعْتُهُ مِنْهُ عَنِ الْقَاسِمِ عَنْ عَآئِشَةَ اَنَّهَا اَرَادَتْ اَنْ تَشْتَرِيَ بَرِيْرَةَ وَ اَنَّهُمُ اشْتَرَطُوْا وَلَآءَ هَا فَذُكِرَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اشْتَرِيْهَا فَاَعْتِقِيْهَا فَاِنَّمَا الْوَلَآءُ لِمَنْ اَعْتَقَ وَ اُهْدِيَ لَهَا لَحْمٌ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هٰذَا تُصُدِّقَ عَلٰى بَرِيْرَةَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هُوَ لَهَا صَدَقَةٌ وَّلَنَا هَدِيَّةٌ وَّ خُيِّرَتْ قَالَ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ زَوْجُهَا حُرٌّ اَوْ عَبْدٌ قَالَ شُعْبَةُ

**١١٠٢**: محمد بن بشار. غندر. شعبه. عبدالرحمن بن قاسم. قاسم. بي بي عائشےؓ نه روایت کوي هغے اراده اوکړه چه بریرهؓ واخلي او د هغے مالکانو شرط کینبود چه ولاء (د میراث مال) به مونږ آخلو. نبي صلے اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل ته دا واخله او آزاده ئے کړه او ولاء د هغے چا ده چه آزاده ئے کړي. او بریرهؓ ته غوښه هدیه اولیږلے شوه نو نبي صلے اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل دا بریرهؓ ته صدقه کښې ورکړے شوے ده هغے د پاره صدقه ده لیکن ما د پاره هدیه ده. او بریرهؓ ته د هغې د خاوند متعلق اختیار ورکړے شو. عبدالرحمن تپوس اوکړ د هغے خاوند غلام وو که آزاد. د شعبه بیان دے ما د عبدالرحمن نه د بریرهؓ د خاوند متعلق

سَأَلْتُ عَبْدَ الرَّحْمٰنِ عَنْ زَوْجِهَا قَالَ لَا أَدْرِيْ أَحُرٌّ أَمْ عَبْدٌ.

تپوس او کړ نو ویلے ماته نه ده معلومه چه هغه آزاد وو یا غلام.

**١١٠٣** : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ ابْنُ مُقَاتِلٍ أَبُو الْحَسَنِ أَخْبَرَنَا خَالِدُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ عَنْ خَالِدٍ الْحَذَّاءِ عَنْ حَفْصَةَ بِنْتِ سِيْرِيْنَ عَنْ أُمِّ عَطِيَّةَ قَالَتْ دَخَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلٰى عَآئِشَةَ فَقَالَ عِنْدَكُمْ شَيْءٌ قَالَتْ لَا إِلَّا شَيْءٌ بَعَثَتْ بِهٖ أُمُّ عَطِيَّةَ مِنَ الشَّاةِ الَّتِيْ بَعَثْتَ إِلَيْهَا مِنَ الصَّدَقَةِ قَالَ إِنَّهَا قَدْ بَلَغَتْ مَحِلَّهَا.

**١١٠٣** : محمد بن مقاتل. ابو الحسن. خالد بن عبدالله. خالد حذاء. حفصه. بنت سيرين ام عطيه نه روايت کوي. د هغے بيان دے نبی صلے الله عليه وسلَم بي بي عائشے ته تشريف راوړلو. ار تپوس ئے اوکړ آيا تاسره (د خوراک) څه شته. بي بي عائشے ورته اووے نه ليکن د ام عطيه راليږلکے شوے د چيلئے هغه غوښه شته چه تاسو هغے ته ليږلے وه. حضور صلے الله عليه وسلم اوفرمائيل صدقه خو خپل ځائے ته اورسيدله[1].

[1] . يعني د هغے خوړل جائز دي. ددے نه مخکښ په دے مسئله باندے نوټ ليکلے شوے دے چه صدقه زکوة وغيره کله چه مستحق سړي ته ملاؤ شي نو هغه چه څرنګ اوغواړي په جائزو حدونو کښ هغه استعمالولے شي که هغه اوغواړي نو په يو داسے کس باندے ئے هم خوړولے شي چا د پاره چه صدقه اخستل جائز نه وي ولے چه صدقه يا زکوة وغيره چه کله چا له ورکړے شو نو د هغے مفهوم د شريعت په نظر کښے دا دے چه غريب په پوره توګه مالک جوړ کړے شو. اوس دغه سړے چه څرنګ خپل ذاتي مال خرچ کولے شي دغه شان دا هم خرچ کولے شي.

بَابٌ ٩٢٧ : مَنْ أَهْدٰى إِلٰى صَاحِبِهٖ وَ تَحَرّٰى بَعْضَ نِسَآئِهٖ دُوْنَ بَعْضٍ.

باب ٩٢٧ : د هغے سړي بيان چه خپل دوست ته تحفه ليږلو کښ خاص د هغے ورځے انتظار کوي چه د هغه وار يوے خاصے بي بي سره وي.

**١١٠٤** : حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ هِشَامٍ عَنْ أَبِيْهِ عَنْ عَآئِشَةَ قَالَتْ كَانَ النَّاسُ يَتَحَرَّوْنَ بِهَدَايَاهُمْ يَوْمِيْ وَقَالَتْ أُمُّ سَلَمَةَ إِنَّ صَوَاحِبِيْ اجْتَمَعْنَ فَذَكَرَتْ لَهٗ فَأَعْرَضَ.

**١١٠٤** : سليمان بن حرب. حماد بن زيد. هشام د خپل پلار (عروه) نه هغه د بي بي عائشے نه روايت کوي. د بي بي عائشے بيان دے چه خلقو به هديه ليږلو کښ خما د نمبر انتظار کولو. او د ام سلمه بيان دے چه خما بنے (سوکن) جمع شوے. او حضور صلے الله عليه وسلم ته ئے ددے ذکر اوکړ نو حضور صلے الله عليه وسلم هيڅ جواب ورنه کړلو.

**۱۱۰۵ : حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَخِيْ عَنْ سُلَيْمَانَ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ اَنَّ نِسَاءَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كُنَّ حِزْبَيْنِ فَحِزْبٌ فِيْهِ عَائِشَةُ وَ حَفْصَةُ وَ صَفِيَّةُ وَ سَوْدَةُ وَالْحِزْبُ الْاٰخَرُ اُمُّ سَلَمَةَ وَ سَائِرُ نِسَاءِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ كَانَ الْمُسْلِمُوْنَ قَدْ عَلِمُوْا حُبَّ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَائِشَةَ فَاِذَا كَانَتْ عِنْدَ اَحَدِهِمْ هَدِيَّةٌ يُرِيْدُ اَنْ يُّهْدِيَهَآ اِلٰى رَسُوْلِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَخَّرَهَا حَتّٰى اِذَا كَانَ رَسُوْلُ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ بَيْتِ عَائِشَةَ بَعَثَ صَاحِبُ الْهَدِيَّةِ اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ بَيْتِ عَائِشَةَ فَكَلَّمَ حِزْبُ اُمِّ سَلَمَةَ فَقُلْنَ لَهَا كَلِّمِيْ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُكَلِّمُ النَّاسَ فَيَقُوْلُ مَنْ اَرَادَ اَنْ يُّهْدِيَ اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَدِيَّةً فَلْيُهْدِهٖ اِلَيْهِ حَيْثُ كَانَ مِنْ بُيُوْتِ نِسَائِهٖ فَكَلَّمَتْهُ اُمُّ سَلَمَةَ بِمَا قُلْنَ فَلَمْ يَقُلْ لَهَا شَيْئًا فَسَاَلْنَهَا فَقَالَتْ مَا قَالَ لِيْ شَيْئًا فَقُلْنَ لَهَا فَكَلِّمِيْهِ قَالَ**

**۱۱۰۵ :** اسمٰعيل. برادر اسمٰعيل (عبدالحميد بن ابي اويس) سليمان. هشام بن عروه. عروه. بي بي عائشےؓ نه روايت كوي، چه دَ رسول الله صلے الله عليه وسلّم دَ بيبيانو دوه ډلے وے. (۱) يوه ډله كښې بي بي عائشهؓ، حفصهؓ، صفيهؓ او بي بي سودهؓ وه، او (۲) دونمه ډله كښې بي بي اُم سلمهؓ او نورے ټولے بيبيانے وے. او مسلمانانو ته معلومه وه، چه دَ حضور صلے الله عليه وسلّم، بي بي عائشهؓ ډيره خوښه وه. هغوي كښې چه به چا سره هديه وه، او هغه به ئے رسول الله صلے الله عليه وسلّم ته ليږل غوښتل، نو انتظار به ئے كولو، تردے چه رسول الله صلے الله عليه وسلّم به دَ بي بي عائشےؓ كور ته راغے، نو هديے واله به هديه حضور صلے الله عليه وسلّم ته دَ بي بي عائشےؓ كورته ليږله. دَ بي بي اُم سلمهؓ ډلے خپلو كښې خبرے اترے اوكړے، او اُم سلمهؓ ته ئے اووے، چه رسول الله صلے الله عليه وسلّم ته په دے باره كښې عرض اوكړه، چه حضور صلے الله عليه وسلّم خلقوته اووائي چه كوم سړے حضور صلے الله عليه وسلّم ته هديه ليږل غواړي، نو ليږي دے، خواه كهٔ حضور صلے الله عليه وسلّم خپلو بيبيانو كښې هرے يوے سره وي، اُم سلمهؓ دَ هغوي دَ وينا مطابق حضور صلے الله عليه وسلّم ته عرض اوكهٔ، نو حضور صلے الله عليه وسلّم هيڅ جواب ورنهٔ كړلو. هغے بيبيانو دَ اُم سلمهؓ نه تپوس اوكهٔ، نو هغے ورته اووے، چه حضور صلے الله عليه وسلّم هيڅ جواب رانه كړلو هغوي ورته اووے، بيا حضور صلے الله عليه وسلّم ته عرض اوكړه، دَ هغے نمبر چه راغے، نو عرض ئے ورته اوكهٔ، حضور

فَكَلَّمَتْهُ حِيْنَ دَارَ اِلَيْهَا اَيْضًا فَلَمْ يَقُلْ لَهَا شَيْئًا فَسَأَلَتْهَا فَقَالَتْ مَا قَالَ لِيْ شَيْئًا فَقُلْنَ لَهَا كَلِّمِيْهِ حَتّٰى يُكَلِّمَكِ فَدَارَ اِلَيْهَا فَكَلَّمَتْهُ فَقَالَ لَهَا لَا تُؤْذِيْنِيْ فِيْ عَآئِشَةَ فَاِنَّ الْوَحْيَ لَمْ يَأْتِنِيْ وَ اَنَا فِيْ ثَوْبِ امْرَأَةٍ اِلَّا عَآئِشَةَ قَالَتْ فَقَالَتْ اَتُوْبُ اِلَى اللّٰهِ مِنْ اِيْذَآءِكَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَرْسَلْنَ اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَقُوْلُ اِنَّ نِسَآءَكَ يَنْشُدْنَكَ اللّٰهَ الْعَدْلَ فِيْ بِنْتِ اَبِيْ بَكْرٍ فَكَلَّمَتْهُ فَقَالَ يَا بُنَيَّةُ اَلَا تُحِبِّيْنَ مَآ اُحِبُّ قَالَتْ بَلٰى فَرَجَعَتْ اِلَيْهِنَّ فَاَخْبَرَتْهُنَّ فَقُلْنَ ارْجِعِيْ اِلَيْهِ فَاَبَتْ اَنْ تَرْجِعَ فَاَرْسَلْنَ زَيْنَبَ بِنْتَ جَحْشٍ فَاَتَتْهُ فَاَغْلَظَتْ وَ قَالَتْ اِنَّ نِسَاءَكَ يَنْشُدْنَكَ اللّٰهَ الْعَدْلَ فِيْ بِنْتِ ابْنِ اَبِيْ قُحَافَةَ فَرَفَعَتْ صَوْتَهَا حَتّٰى تَنَاوَلَتْ عَآئِشَةَ وَهِيَ قَاعِدَةٌ فَسَبَّتْهَا حَتّٰى اِنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيَنْظُرُ اِلٰى عَآئِشَةَ هَلْ تَكَلَّمُ قَالَ فَتَكَلَّمَتْ عَائِشَةُ تَرُدُّ عَلٰى زَيْنَبَ حَتّٰى اَسْكَتَتْهَا قَالَتْ فَنَظَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِلٰى عَآئِشَةَ وَ قَالَ اِنَّهَا بِنْتُ اَبِيْ بَكْرٍ قَالَ الْبُخَارِيُّ الْكَلَامُ الْاَخِيْرُ قِصَّةُ فَاطِمَةَ

صلے اللّٰه علیه وسلّم ورته اوفرمائیل ماته دَ عائشےؓ باره کښې تکلیف مهٔ راکوه، ځکه چه ماته وحي هغه وخت راځي، چه زهٔ دَ عائشےؓ په کپړو کښې یم. اُم سلمہؓ عرض اوکهٔ، زهٔ تاسوٌ ته تکلیف درکولو نه توبه کوم، یا رسول اللّٰه، بیا هغوئ بي بي فاطمهؓ بنت رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم راوغوښتله، او رسول اللّٰه صلے اللّٰه علیه وسلّم ته ئے دے عرض کولو دَ پاره اولیږله، چه ستاسوٌ بیبیانے دَ، ابوبکرؓ دَ، لور متعلق دَ، انصاف کولو دَ پاره دَ خدائے واسطه درکوي. بي بي فاطمےؓ ورته بیان اوکهٔ، نو حضور صلے اللّٰه علیه وسلّم ورته اوفرمائیل، اے خما لورے (بچۍ) آیا تهٔ هغے چا سره محبت نهٔ کوے، چا سره چه زهٔ محبت کوم. بي بي فاطمےؓ ورته اووے، ولے نه، بیا هغه واپس شوه. هغوي له راغله، او حالات ئے ورته بیان کړل. هغوي دوباره دَ حضور صلے اللّٰه علیه وسلّم په خدمت کښې هغے ته تلو دَ پاره اووے، خو هغے دَ، دوباره تلو نه انکار اوکهٔ. بیا هغوي (بیبیانو) زینب بنت جحش اولیږله، هغه راغله، او سختئ سره ئے (حضور صلے اللّٰه علیه وسلّم ته) اووے، چه ستاسوٌ بیبیانےؓ دَ، ابو قحافه دَ، لور (بي بي عائشےؓ) متعلق دَ، انصاف دَ پاره تاسوٌ ته دَ، اللّٰه واسطه درکوي. او هغے خپل آواز اوچت کهٔ، تردے چه بي بي عائشےؓ ته ئے بد، رد ونیل شروع کړل، چه هلته ناسته وه، رسول اللّٰه صلے اللّٰه علیه وسلّم، بي بي عائشےؓ طرف ته اوکتل، چه څهٔ وائي، کهٔ نه، بي بي عائشےؓ شروع شوه، او دَ بي بي زینبؓ دَ خبرو جواب ئے اوکهٔ، تردے چه هغه ئے خاموش کړه، نو نبي صلے اللّٰه علیه وسلّم، بي بي عائشےؓ ته اوکتل او وے فرمائیل، چه

يُذْكَرُ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ رَجُلٍ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ وَ قَالَ عَنْ هِشَامٍ عَنْ عُرْوَةَ كَانَ النَّاسُ يَتَحَرَّوْنَ بِهَدَايَاهُمْ يَوْمَ عَائِشَةَ وَ عَنْ هِشَامٍ عَنْ رَجُلٍ مِّنْ قُرَيْشٍ وَّ رَجُلٍ مِّنَ الْمَوَالِيْ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ الْحٰرِثِ بْنِ هِشَامٍ قَالَتْ عَائِشَةُ كُنْتُ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاسْتَأْذَنَتْ فَاطِمَةُ.

آخر د ابوبكرؓ لور ده كنه. امام بخاري اووې چه آخري قصه يعني د بي بي فاطمې قصه د هشام بن عروه نه منقول ده هغه د يو سړي نه په واسطه د زهري محمد بن عبدالرحمن بيان كوي. او ابومروان په واسطه د هشام. عروه بيان اوكړ چه خلقو به هديه ليږلو كښې د بي بي عائشې د وار انتظار كولو. او هشام د يو قريش سړي نه او د يو غلام په واسطه د زهري. محمد بن عبدالرحمن بن حارث بن هشام روايت كوي. بي بي عائشې اوفرمائيل زۀ نبي صلى الله عليه وسلم سره ووم چه بي بي فاطمې اجازت اوغوښتلو[۱].

۱. كه چرې د يو سړي په نكاح كښې د يو نه زياتې ښځې وي نو د هغوی په ټولو معاملاتو كښې عدل او انصاف او برابري قائم لرل خاوند د پاره ضروري دي ليكن كه چرې بل څوک هديه راوليږي او په دې سلسله كښې د ادا شناسي نه كار واخلي او په داسې موقعه ئې اوليږي كله چه خاوند د خپلې ټولو نه محبوبې بي بي كره استوګن وي د خپل نمبر مطابق نو ددې ذمه واري په خاوند باندې نه راځي او څه چه هغۀ له هديه راغلې ده نو هغۀ د پاره دا هم ضروري نه ده چه په ټولو بيبيانو كښې هغه برابر برابر تقسيم كړي. په خاوند باندې د مساواتو او عدل په سلسله كښې صرف هغه امور ضروري دي د كومو چه هغۀ پخپله ذمه وار دې مثلا د اوده كيدلو نمبر مقررول په خوراک جامې او نورو ضروورياتو كښې د انصاف او مساوات نه كار اخستل وغيره.

د امهات المؤمنين تر مينځه حضورؐ خپل خان سره متعلق ټولو امورو كښې عدل او مساوات ملحوظ لرلې وو او ددې مثالونه په حديث كښې كثرت سره راغلي دي. ددې حديث نه د ازواجو مطهراتو په خپلو كښې د مناقشې هم يو مختصر غوندې تصوير مخې ته راځي. طبيعتونه مختلف وي او هر انسان د خپل مزاج مطابق خلقو سره تعلق ساتي او هغوی سره ناسته پاسته كوي.

د ازواجو مطهراتو په خپلو كښې تعلق او د پړې جنبې هم صرف هم دومره حقيقت دې. د هغوی د مناقشو په باره كښې ددې بنيادي خبرې لحاظ ساتل ضروري دي چه د خپلو فضيلتونو باوجود بيا هم هغوی انسانانې وې د حضور اكرم انصاف نه ډک ذات نه به هم هغوی (كله) شكايت اوكړلو او د حضورؐ په وړاندې به ئې خپلې مطالبې هم ايښودلې بالكل همدغه رنګ څنګه چه ښځې خپلو خاوندانو سره معامله كوي. البته ازواج مطهرات د خپلو بعضو خصوصياتو په وجې سره امتياز لري او هغه ده تقوي د خواهشات نفساني مخالفت په دنيا باندې آخرت له ترجيح او د حضور اكرم صلي الله عليه وسلم صحبت ورته نصيب وو څوک چه خير الوري وو. او تاسو ددې امتياز جهلک د هغوی په هرې معاملې كښې كتلې

شئ په پورتني اوكد حديث كښې هم. په دے موقعه باندے دا هم هيرول نه دي پكار چه انبياء كرامو عليهم السلام لره الله تعالي د هغوى په كورنو معاملاتو كښې هم مبتلا كوي. د پاره ددے چه د ژوند په دے خاص مور باندے هم په دے معاملاتو كښې د هغوى عزم، د هغوى تقوى او د هغوى عدل او انصاف امتيانو د پاره أسوة حسنه جوړ شي او د پاره ددے چه دنيا ته معلومه شي چه د هغوى په جلوت كښې هم خير او بركت دے او د هغوى په خلوت كښې د جلوت نه زيات خير دے.

بَابٌ ۷۳۰: مَا لَا يُرَدُّ مِنَ الْهَدِيَّةِ.

باب ۷۳۰: كومه هديه واپس كول نه دي پكار.

۱۱۰۶: حَدَّثَنَا أَبُو مَعْمَرٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ حَدَّثَنَا عَزْرَةُ بْنُ ثَابِتٍ الْأَنْصَارِيُّ قَالَ حَدَّثَنِي ثُمَامَةُ ابْنُ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ دَخَلْتُ عَلَيْهِ فَنَاوَلَنِي طِيبًا قَالَ كَانَ أَنَسٌ لَا يَرُدُّ الطِّيبَ قَالَ وَ زَعَمَ أَنَسٌ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ لَا يَرُدُّ الطِّيبَ.

۱۱۰۶: ابو معمر. عبدالوارث. عزره بن ثابت انصاري بيان كوي چه زه ثمامه بن عبدالله له ورغلم. نو هغه ماله خوشبو راكړه. او حضرت انسؓ به خوشبو نه واپس كوله. او حضرت انسؓ اووے چه نبي صلے الله عليه وسلم به هيڅ كله خوشبو نه واپس كوله.

بَابٌ ۷۳۱: مَنْ رَأَى الْهِبَةَ الْغَائِبَةَ جَائِزَةً.

باب ۷۳۱: بعضے خلقو د غائب څيز هبه كول جائز ګنړلے دي.

۱۱۰۷: حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ أَبِي مَرْيَمَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ قَالَ حَدَّثَنِي عُقَيْلٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ ذَكَرَ عُرْوَةُ أَنَّ الْمِسْوَرَ بْنَ مَخْرَمَةَ وَ مَرْوَانَ أَخْبَرَاهُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِينَ جَاءَهُ وَفْدُ هَوَازِنَ قَامَ فِي النَّاسِ فَأَثْنَى عَلَى اللّٰهِ بِمَا هُوَ أَهْلُهُ ثُمَّ قَالَ أَمَّا بَعْدُ فَإِنَّ إِخْوَانَكُمْ جَاءُونَا تَائِبِينَ وَ إِنِّي رَأَيْتُ أَنْ أَرُدَّ إِلَيْهِمْ سَبْيَهُمْ فَمَنْ أَحَبَّ مِنْكُمْ أَنْ يُطَيِّبَ ذٰلِكَ فَلْيَفْعَلْ وَمَنْ أَحَبَّ أَنْ

۱۱۰۷: سعيد بن ابي مريم. ليث. عقيل. ابن شهاب. عروه. مسور بن مخرمه او مروان بيان اوكړ چه نبي صلے الله عليه وسلم ته د هوازن وفد راغے. نو حضور صلے الله عليه وسلم د خلقو مينځ كښې اودريدلو. او د الله تعريف ئے بيان كړ. څنګه چه د هغه شان سره ښائي بيانے اوفرمائيل. اما بعد: ستاسو وروڼړه مونږ له توويے اوښكلونه پس راغلل او زه مناسب ګڼړم چه هغوي ته د هغوى قيديان واپس كړم. څوک چه تاسو كښې په خپله خوښه دغسے كول غواړي نو دغسے دے اوكړي. او كوم سړے چه خپله حصه قائمه ساتل غواړي تردے چه د ټولونه مخكښې الله تعالي مونږ

يَكُوْنَ عَلٰى حَظِّهٖ حَتّٰى نُعْطِيَهٗ اِيَّاهُ مِنْ اَوَّلِ مَا يَفِيْءُ اللّٰهُ عَلَيْنَا فَقَالَ النَّاسُ طَيَّبْنَا لَكَ.

خلقوته كوم مال غنيمت راكړي او مونږ هغې له ذَ هغې نه ورکړو. خلقو عرض اوكړ' مونږ په خوشحالي داسې كولو ته تيار يُو.

باب ۷۳۲: اَلْمُكَافَأَةُ فِي الْهِبَةِ.

باب ۷۳۲: ذَ هبه ذَ بدلې وركولو بيان.

۱۱۰۸: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا عِيْسَى ابْنُ يُوْنُسَ عَنْ هِشَامٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْبَلُ الْهَدِيَّةَ وَ يُثِيْبُ عَلَيْهَا لَمْ يَذْكُرْ وَكِيْعٌ وَّ مُحَاضِرٌ عَنْ هِشَامٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ.

۱۱۰۸: مُسدّد. عيسٰي بن يُونس. هشام. عروه. بي بي عائشې نه روايت كوي. ذَ هغې بيان دې' چه رسول اللّٰه صلې اللّٰه عليه وسلّم به هديه قبلوله' او ذَ هغې بدله به ئې وركوله. وكيع او محاضر په سند ذَ' هشام. عروه. بي بي عائشې روايت نۀ دې كړې.

باب ۷۳۳: اَلْهِبَةِ لِلْوَلَدِ وَ اِذَآ اَعْطٰى بَعْضَ وَلَدِهٖ شَيْئًا لَمْ يَجُزْ حَتّٰى يَعْدِلَ بَيْنَهُمْ وَ يُعْطِيَ الْاٰخَرِيْنَ مِثْلَهٗ وَلَا يُشْهَدُ عَلَيْهِ وَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اعْدِلُوْا بَيْنَ اَوْلَادِكُمْ فِي الْعَطِيَّةِ وَهَلْ لِّلْوَالِدِ اَنْ يَّرْجِعَ فِيْ عَطِيَّتِهٖ وَمَا يَأْكُلُ مِنْ مَّالِ وَلَدِهٖ بِالْمَعْرُوْفِ وَلَا يَتَعَدّٰى وَاشْتَرَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ عُمَرَ بَعِيْرًا ثُمَّ اَعْطَاهُ ابْنَ عُمَرَ وَ قَالَ اصْنَعْ بِهٖ مَا شِئْتَ.

باب ۷۳۳: خپل اولاد ته ذَ څۀ څيز هبه كولو بيان. او كۀ خپل هلك ته څۀ څيز وركړي' نو دا جائز نۀ دي' څو پورې چه ذ هغوي مينځ كښې مساوات (برابر تقسيم) اونكړي' او نورولـه هم هغومره (حصه ورنه كړي' او په داسې قسم هبه دې هيڅوک گواه نه جوړيږي. او نبي صلې اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل' ذَ خپل اولاد مينځ كښې انصاف كوئې' او آيا مور پلار ذَ' هبه كولو نه پس رجوع كولې شي' او ذَ خپل اولاد مال ذَ' دستور مطابق خوړلې شي ليكن ذَ حد نه دې نه تيريږي. او نبي صلې اللّٰه عليه وسلّم ذَ حضرت عمرؓ نه يو اوښ واخست. بيائې هغه حضرت ابن عمرؓ ته وركړلو' او ورته ئې اوفرمائيل' چه (دې سره) تۀ څۀ غواړې اوكړه. (يعني دا ستا ملكيت دې).

۱۱۰۹: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ

۱۱۰۹: عبداللّٰه بن يُوسف. مالک. ابن شهاب. حميد بن عبدالرحمٰن او محمد بن نعمان بن

عَنْ حُمَيْدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ وَ مُحَمَّدِ بْنِ النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيْرٍ اَنَّهُمَا حَدَّثَاهُ عَنِ النُّعْمَانِ ابْنِ بَشِيْرٍ اَنَّ اَبَاهُ اَتٰى بِهٖ اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ اِنِّىْ نَحَلْتُ ابْنِىْ هٰذَا غُلَامًا فَقَالَ اَكُلَّ وَلَدِكَ نَحَلْتَ مِثْلَهٗ قَالَ لَا قَالَ فَارْجِعْهُ.

بشیر. نعمان بن بشیر نه روایت کوي چه د هغهٔ پلار هغه. د، رسول الله صلے الله علیه وسلّم په خدمت کښ حاضر کړلو، او عرض ئے اوکهٔ، چه ما خپل دے خوئ له یو غلام ور کړے دے. حضور صلے الله علیه وسلّم ورته اوفرمائیل، آیا تا خپل ټول اولاد ته دغسے ور کړے دے. هغهٔ اووے، نه، حضور صلے الله علیه وسلّم ورته اوفرمائیل، هغه ترے واپس واخله.

## باب ۷۳۴: اَلْاِشْهَادِ فِي الْهِبَةِ.

## باب ۷۳۴: هبه کښ د ګواه مقررولو بیان.

**۱۱۱۰**: حَدَّثَنَا حَامِدُ بْنُ عُمَرَ حَدَّثَنَا اَبُوْ عَوَانَةَ عَنْ حُصَيْنٍ عَنْ عَامِرٍ قَالَ سَمِعْتُ النُّعْمَانَ بْنَ بَشِيْرٍ وَهُوَ عَلَى الْمِنْبَرِ يَقُوْلُ اَعْطَانِىْ اَبِىْ عَطِيَّةً فَقَالَتْ عَمْرَةُ بِنْتُ رَوَاحَةَ لَا اَرْضٰى حَتّٰى تُشْهِدَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ اِنِّىْ اَعْطَيْتُ ابْنِىْ مِنْ عَمْرَةَ بِنْتِ رَوَاحَةَ عَطِيَّةً فَاَمَرَتْنِىْ اَنْ اُشْهِدَكَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ اَعْطَيْتَ سَائِرَ وَلَدِكَ مِثْلَ هٰذَا قَالَ لَا قَالَ فَاتَّقُوا اللّٰهَ وَاعْدِلُوْا بَيْنَ اَوْلَادِكُمْ فَرَجَعَ فَرَدَّ عَطِيَّتَهٗ.

**۱۱۱۰**: حامد بن عمر. ابوعوانه. حصین. عامر. نعمان بن بشیر روایت کوي، چه ماته خما پلار څهٔ عطیه راکړه. عمره بنت رواحه اووے. زهٔ به دے نهٔ راضي کیږم، څو پورے چه (په دے) رسول الله صلے الله علیه وسلّم ګواه جوړ نهٔ کړے نو هغهٔ اووے، چه ما خپل خوئ له چه د، عمره بنت رواحه نه پیدا دے، یوه عطیه ورکړله، نو عمره ماته حکم راکهٔ، یا رسول الله، چه زهٔ تاسو (په دے) ګواه جوړ کړم. حضور صلے الله علیه وسلّم ورته اوفرمائیل، آیا تا داسے ټولو بچوله ور کړے دے. ما اووے، نه. حضور صلے الله علیه وسلّم اوفرمائیل: د، الله نه اویریږه او د خپل اولاد مینځکښ عدل کوه، نو هغه واپس شو او خپله هدیه ئے واپس واخسته.

## باب ۷۳۵: هِبَةِ الرَّجُلِ لِامْرَاَتِهٖ وَالْمَرْاَةِ لِزَوْجِهَا قَالَ اِبْرَاهِيْمُ جَائِزَةٌ وَ قَالَ عُمَرُ بْنُ عَبْدِ الْعَزِيْزِ لَا يَرْجِعَانِ وَاسْتَاْذَنَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نِسَآءَهٗ اَنْ يُّمَرَّضَ فِىْ بَيْتِ عَائِشَةَ وَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ

## باب ۷۳۵: د خاوند خپلے ښځے ته او د ښځے خپل خاوند ته هبه کول. ابراهیم ورته جائز اووے. او عمر بن عبدالعزیز اووے، دا، دواړه به رجوع نهٔ کوي. او نبي صلے الله علیه وسلّم اووے، چه هبه کول او بیا هغه واپس اخستل د هغے سپي په شان دي، چه قے اوکړي

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْعَائِدُ فِيْ هِبَتِهٖ كَالْكَلْبِ يَعُوْدُ فِيْ قَيْئِهٖ وَ قَالَ الزُّهْرِيُّ فِيْمَنْ قَالَ لِامْرَأَتِهٖ هَبِيْ لِيْ بَعْضَ صَدَاقِكِ اَوْ كُلَّهُ ثُمَّ لَمْ يَمْكُثْ اِلَّا يَسِيْرًا حَتّٰى طَلَّقَهَا فَرَجَعَتْ فِيْهِ قَالَ يَرُدُّ اِلَيْهَآ اِنْ كَانَ خَلَبَهَا وَ اِنْ كَانَتْ اَعْطَتْهُ عَنْ طِيْبِ نَفْسٍ لَيْسَ فِيْ شَيْءٍ مِّنْ اَمْرِهٖ خَدِيْعَةٌ جَازَ قَالَ اللّٰهُ تَعَالٰى فَاِنْ طِبْنَ لَكُمْ عَنْ شَيْءٍ مِّنْهُ نَفْسًا.

اا اا : حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ مُوْسٰى اَخْبَرَنَا هِشَامٌ عَنْ مَّعْمَرٍ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَتْ عَآئِشَةُ لَمَّا ثَقُلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاشْتَدَّ وَجَعُهُ اسْتَأْذَنَ اَزْوَاجَهُ اَنْ يُّمَرَّضَ فِيْ بَيْتِيْ فَاَذِنَّ لَهُ فَخَرَجَ بَيْنَ رَجُلَيْنِ تَخُطُّ رِجْلَاهُ الْاَرْضَ وَ كَانَ بَيْنَ الْعَبَّاسِؓ وَ بَيْنَ رَجُلٍ اٰخَرَ فَقَالَ عُبَيْدُ اللّٰهِ فَذَكَرْتُ لِابْنِ عَبَّاسٍؓ مَا قَالَتْ عَآئِشَةُ فَقَالَ لِيْ وَ هَلْ تَدْرِيْ مَنِ الرَّجُلُ الَّذِيْ لَمْ تُسَمِّ عَآئِشَةُ قُلْتُ لَا قَالَ هُوَ عَلِيُّ بْنُ اَبِيْ طَالِبٍ.

او بیا هغه اوخوري او' زهري د هغې سړي متعلق اووې' چه خپلې ښځې ته اووائي چه ماته د خپل مهر څه حصه یا ټول مهر معاف که بیائې لږه موده پس هغې له طلاق ورکه بیا ښځې د هبه نه رجوع اوکړله' نو هغه به هغې له پوره مهر ورکوي' که د هغه نیت د فریب وو. او که ښځې په خپلې خوښې معاف کړې وو' او د خاوند زړۀ کښې څۀ فریب نۀ وو' نو جائز دي. او الله تعالي فرمائیلې دي' کۀ هغه تاسوله په خوشحالئ څۀ درکړي' نو هغه شوق سره خورئې.

اا اا : ابراهیم بن موسي. هشام. معمر. زهري. عبیدالله بن عبدالله. بي بي عائشةؓ روایت کوي' کوم وخت چه د نبي صلی الله علیه وسلم جسم مبارک وزني شو. او د حضور بیماري زیاته شوه نو د خپلو بیبیانونه ئې اجازت واخست چه د مرض حالت به څما (بي بي عائشېؓ) په کور کښې وي. نو هغوي حضور صلی الله علیه وسلم ته دا' اجازت ورکړلو[۱]. حضور صلی الله علیه وسلم د دوو سړو مینځ کښې اووتلو. د حضور صلی الله علیه وسلم دواړه پښې په زمکه راکښلې شوې. د عباسؓ او یو بل سړي په مینځ کښې وو. عبیدالله اووې' ما ابن عباسؓ ته بیان اوکۀ' څۀ چه بي بي عائشېؓ اووې. او هغۀ مانه تپوس اوکۀ' هغه سړې څوک وو' چه د هغۀ نوم بي بي عائشېؓ وانخست. ما ورته اووې' نه' نو هغۀ اووې' چه هغه حضرت عليؓ وو.

۱. کله چه ټولو بیبیانو خپل خپل نمبر رسول الله صلي الله علیه وسلم ته یا عائشې رضي الله عنها ته هبه کړو نو څومره نمبرونه چه هغوئ هبه کړي وو هغه ئې واپس اونه غوښتل. دا د حضور اکرم صلي الله

عليه وسلم مرض الوفات وو، او په كومه ورځ چه هغوئ د ازواجو مطهراتو نه اجازت غوښتے وو په هغه ورځ حضور د ميمونے رضي الله عنها په كور كښ وو.

١١١٢: حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ حَدَّثَنَا ابْنُ طَاوُسٍ عَنْ أَبِيهِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْعَائِدُ فِي هِبَتِهِ كَالْكَلْبِ يَقِيءُ ثُمَّ يَعُودُ فِي قَيْئِهِ.

١١١٢: مسلم بن ابراهيم. وهيب. ابن طاوس. ابن عباس نه روايت كوي د هغه بيان دے. نبي صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل هبه كول او بيا هغه واپس اخستل د هغے سپي په شان دي چه قے اوكړي او بيا هغه اوخوري.

باب ٤٣٦: هِبَةِ الْمَرْأَةِ لِغَيْرِ زَوْجِهَا وَ عِتْقِهَا إِذَا كَانَ لَهَا زَوْجٌ فَهُوَ جَائِزٌ إِذَا لَمْ تَكُنْ سَفِيهَةً فَإِذَا كَانَتْ سَفِيهَةً لَمْ يَجُزْ قَالَ اللَّهُ تَعَالَى وَلَا تُؤْتُوا السُّفَهَاءَ أَمْوَالَكُمْ.

باب ٤٣٦: د ښځے د خپل خاوند نه علاوه چاته هبه كول او د هغه آزادول هر كله چه د هغے خاوند وي نو جائز دي[1]. په شرط د دے چه هغه ښځه بيوقوفه نه وي، او كه بيوقوفه وي نو ناجائز دي. الله تعالى فرمائيلي دي بيوقوفانو له خپل مال مه وركوئے.

[1] يعني كه چرے ښځه خپل مال چاته هبه كوي يا خپل غلام ازادوي نو هغے د پاره د خاوند اجازت ضروري نه دے. د خاوند اجازت نه بغير هغے ته ددے تصرفاتو اختيار او حق شته. البته كه چرے يوه ښځه بے عقله او بے شعوره وي چه هغے ته د څه معاملے تميز نه وي نو په داسے صورت كښ عام خلق هم د تصرفاتو نه منع كولے شي او دے د پاره داسے ښځه به هم منع كولے شي.

١١١٣: حَدَّثَنَا أَبُو عَاصِمٍ عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ عَنِ ابْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ عَنْ عَبَّادِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ عَنْ أَسْمَاءَ قَالَتْ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَالِي مَالٌ إِلَّا مَا أَدْخَلَ عَلَيَّ الزُّبَيْرُ فَأَتَصَدَّقُ قَالَ تَصَدَّقِي وَلَا تُوعِي فَيُوعَى عَلَيْكِ.

١١١٣: ابو عاصم. ابن جريج. ابن ابي مليكه. عباد بن عبدالله. اسماء بيان كوي، ما عرض اوكړ، يا رسول الله، ما سره هغه مال دے چه ماله زبير راكړے دے، نو آيا زه هغه صدقه كښ وركړم. حضور صلے الله عليه وسلم ورته اوفرمائيل صدقه كوه. او بنده وه مه، كني الله تعالى به ستا نه هم بند كړي.

١١١٤: حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ نُمَيْرٍ حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ عَنْ فَاطِمَةَ

١١١٤: عبيدالله بن سعيد. عبدالله بن نمير. هشام بن عروه. فاطمه. اسماء نه روايت كوي، چه رسول الله صلے الله

عَنْ اَسْمَآءَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اَنْفِقِيْ وَلَا تُحْصِيْ فَيُحْصِي اللّٰهُ عَلَيْكِ وَلَا تُوْعِيْ فَيُوْعِي اللّٰهُ عَلَيْكِ.

عليه وسلّم اوفرمائيل خرچ كوه، او په شمار، شمار، مه ږده، كني اللّٰه به هم په شمار، شمار، دركوي، او بندوه مه، كني اللّٰه به هم تانه بند كړي.

**۱۱۱۵** : حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ عَنِ اللَّيْثِ عَنْ يَّزِيْدَ، عَنْ بُكَيْرٍ عَنْ كُرَيْبٍ مَّوْلَى بْنِ عَبَّاسٍ اَنَّ مَيْمُوْنَةَ بِنْتَ الْحَارِثِ اَخْبَرَتْهُ اَنَّهَا اَعْتَقَتْ وَلِيْدَةً وَّلَمْ تَسْتَاْذِنِ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمَّا كَانَ يَوْمُهَا الَّذِيْ يَدُوْرُ عَلَيْهَا فِيْهِ قَالَتْ اَشَعَرْتَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَنِّيْ اَعْتَقْتُ وَلِيْدَتِيْ قَالَ اَوَ فَعَلْتِ قَالَتْ نَعَمْ قَالَ اَمَآ اِنَّكِ لَوْ اَعْطَيْتِهَا اَخْوَالَكِ كَانَ اَعْظَمَ لِاَجْرِكِ وَ قَالَ بَكْرُ بْنُ مُضَرَ عَنْ عَمْرٍو عَنْ بُكَيْرٍ عَنْ كُرَيْبٍ اَنَّ مَيْمُوْنَةَ اَعْتَقَتْ.

**۱۱۱۵** : يحيي بن بكير. يزيد. بكير. كريب (دَ ابن عباسؓ غلام) ميمونه بنت حارث نه روايت كوي، چه هغې يوه وينزه آزاده كړه، او نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم نه ئې اجازت نه وو اخستلې چه دَ هغې دَ وار ورځ راغله، نو هغې عرض اوكړ، يا رسول اللّٰه، تاسوته معلومه ده، چه ما خپله وينزه آزاده كړه. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل، آيا تا آزاده كړې ده، هغې اووې، او حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل، كه دا، تا خپل ماما له وركړې وې، نو ستا به زيات ثواب شوې وو. بكر بن مضر په واسطه دَ عمرو، بكير، كريب روايت اوكه، چه ميمونهؓ آزاده كړه.

**۱۱۱۶** : حَدَّثَنَا حَبَّانُ ابْنُ مُوْسَى اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا يُوْنُسُ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا اَرَادَ سَفَرًا اَقْرَعَ بَيْنَ نِسَائِهِ فَاَيَّتُهُنَّ خَرَجَ سَهْمُهَا خَرَجَ بِهَا مَعَهُ وَ كَانَ يَقْسِمُ لِكُلِّ امْرَاَةٍ مِنْهُنَّ يَوْمَهَا وَلَيْلَتَهَا غَيْرَ اَنَّ سَوْدَةَ بِنْتَ زَمْعَةَ وَهَبَتْ يَوْمَهَا وَ لَيْلَتَهَا لِعَائِشَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

**۱۱۱۶** : حبان بن موسي. عبداللّٰه. يونس. زهري. عروه. بي بي عائشېؓ نه روايت كوي. دَ هغې بيان دې، چه كله به رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم دَ سفر اراده كوله، نو دَ خپلو بيبيانو په مينځ كښې به ئې قرعه اندازي كوله، دَ چا نوم چه به قرعه كښې راووتلو، هغه به ئې ځان سره بوتله. او هرې بي بي سره به يوه ورځ شپه پاتې كيدلو. خو سووده بنت زمعه دَ خپل وار ورځ شپه بي بي عائشېؓ دَ نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم تېر له وركړې وو. دې نه

وَسَلَّمَ تَبْتَغِي بِذٰلِكَ رِضَا رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

غرض د، رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلّم رضا جوئي وه.

باب ۷۳۷: بِمَنْ يُّبْدَأُ بِالْهَدِيَّةِ وَقَالَ بَكْرٌ عَنْ عَمْرٍو عَنْ كُرَيْبٍ مَّوْلَى ابْنِ عَبَّاسٍ اَنَّ مَيْمُوْنَةَ زَوْجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَعْتَقَتْ وَلِيْدَةً لَّهَا فَقَالَ لَهَا وَلَوْ وَصَلْتِ بَعْضَ اَخْوَالِكِ كَانَ اَعْظَمَ لِاَجْرِكِ.

باب ۷۳۷: دَ، هديے ابتدا، دَ كومو خلقونه پكار ده؟ او بكر په واسطه دَ عمرو. بكير. كريب (دَ ابن عباسؓ غلام) بيان اوكه، چه بي بي ميمونہؓ دَ نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم تبر، خپله وينزه آزاده كړه، نو حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم هغے ته اوفرمائيل، كۀ تا هغه خپل ماما ته رسولے وے، نو ډير زيات ثواب به دے شوے وو.

۲۱۱۷: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ ابْنُ جَعْفَرٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ اَبِيْ عِمْرَانَ الْجُوْنِيِّ عَنْ اَبِيْ طَلْحَةَ ابْنِ عَبْدِ اللّٰهِ رَجُلٌ مِّنْ بَنِيْ تَيْمِ بْنِ مُرَّةَ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّ لِيْ جَارَيْنِ فَاِلٰى اَيِّهِمَا اُهْدِيْ قَالَ اِلٰى اَقْرَبِهِمَا مِنْكِ بَابًا.

۲۱۱۷: محمد بن بشار. محمد بن جعفر. شعبه. ابو عمران جوني. طلحه بن عبداللّٰه چه دَ بني تميم بن مره يو سړے وو. دَ، بي بي عائشےؓ نه روايت كوي. دَ هغے بيان دے، ما عرض اوكۀ، يا رسول اللّٰه څما دوه كوانډيانے دي، هغوي كښې چاته هديه اوليږم. حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل هغے دواړو كښې چه دَ كومے دروازه تاته زياته نزدے وي.

باب ۷۳۸: مَنْ لَّمْ يَقْبَلِ الْهَدِيَّةَ لِعِلَّةٍ وَّ قَالَ عُمَرُ بْنُ عَبْدِ الْعَزِيْزِ كَانَ الْهَدِيَّةُ فِيْ زَمَنِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَدِيَّةً وَّالْيَوْمَ رِشْوَةٌ.

باب ۷۳۸: دَ څۀ مجبورئ په بنا دَ، هديے نه قبولولو بيان[۱]. او عمر بن عبدالعزيز اووے، چه دَ رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلّم په زمانه كښې هديه، هديه وه، ليكن نن خو هغه رشوت دے.

۱. شريعت دَ هديے قبلولو ترغيب وركړے دے، ولے چه دا عمده ترين مال دے كوم چه يو مسلمان خپل بل مسلمان رور له صرف دَ محبت، رورولئ او انسانيت په حوالے سره وركوي. ليكن حالات مختلف وي. دَ كومو مقاصدو دَ حصول دَ پاره چه شريعت دَ هديے اخستلو او وركولو ترغيب وركړے دے بعضے وخت دَ هديے نه مقاصد هغه نه وي بلكه دَ هغے بالكل برعكس وي. دے دَ پاره نه صرف دَ داسے هديو نه شريعت بنديز كړے دے بلكه جرم ئے هم ګرځولے دے، په دے وجه منصب او حكومت باندے راتللو نه پس كه چرے دَ هغۀ خلقونه څه هديه ملاؤ شي كومو سره چه دَ هغوئ مفاد وابسته وو نو شريعت ددے نه

منع کړے ده. حضرت عمر بن عبدالعزیز دا قسمه هدیه رشوت ګرځولے ده او پخپله حضور صلی الله علیه وسلّم هم په بعضو موقعو کښې ددے قسمه هدیو خلاف سخته زورنه فرمائیلے وه. بهرحال د حالاتو د اختلاف په وجے سره ددے نوعیت هم مختلف کیږي.

۱۱۱۸: حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ أَخْبَرَنِي عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُتْبَةَ أَنَّ عَبْدَ اللَّهِ ابْنَ عَبَّاسٍ أَخْبَرَهُ أَنَّهُ سَمِعَ الصَّعْبَ ابْنَ جَثَّامَةَ اللَّيْثِيَّ وَكَانَ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِمَارَ وَحْشٍ وَهُوَ بِالْأَبْوَاءِ أَوْ بِوَدَّانَ وَهُوَ مُحْرِمٌ فَرَدَّهُ قَالَ صَعْبٌ فَلَمَّا عَرَفَ فِي وَجْهِي رَدَّهُ هَدِيَّتِي قَالَ لَيْسَ بِنَا رَدٌّ عَلَيْكَ وَلَكِنَّا حُرُمٌ.

۱۱۱۸: ابوالیمان. شعیب. زهري. عبیدالله بن عبدالله بن عتبه. عبدالله بن عباسؓ بیان او که هغه د صعب بن جثامه نه چه د نبي صلے الله علیه وسلّم صحابي وو. روایت کوي. چه هغه رسول الله صلے الله علیه وسلّم ته یو ځنګلي خر (ګورخر) اولیږلو. هغه وخت حضور صلے الله علیه وسلّم ابواء یا ودان کښې د احرام حالت کښې وو. حضور صلے الله علیه وسلّم هغه واپس کړلو. صعب اووے. کوم وخت چه ځما په مخ حضور صلے الله علیه وسلّم د هدیے واپس کولو په سبب د ناراضګي اثر اولید نو حضور صلے الله علیه وسلّم اوفرمائیل. ستا تحفه واپس کول مناسب نه وو. خو په دے سبب (مو واپس کړه) چه مونږ احرام کښې یو.

۱۱۱۹: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ عَنْ أَبِي حُمَيْدٍ السَّاعِدِيِّ قَالَ اسْتَعْمَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجُلًا مِنَ الْأَزْدِ يُقَالُ لَهُ ابْنُ الْأُتْبِيَّةِ عَلَى الصَّدَقَةِ فَلَمَّا قَدِمَ قَالَ هَذَا لَكُمْ وَهَذَا أُهْدِيَ لِي قَالَ فَهَلَّا جَلَسَ فِي بَيْتِ أَبِيهِ أَوْ بَيْتِ أُمِّهِ فَيَنْظُرَ يُهْدَى لَهُ أَمْ لَا وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ لَا

۱۱۱۹: عبدالله بن محمد. سفیان. زهري. عروه بن زبیر. ابو حمید ساعدي نه روایت کوي. د هغه بیان دے. چه نبي صلے الله علیه وسلّم د ازد یو سړے چه په ابن اتبیه نوم بللے شو. په صدقه وصولولو مقرر کړلو د وصولي نه پس چه هغه واپس راغے. نو ونیلے چه دا ستاسو مال دے. او دا ځما دے. چه ماته تحفه راکړے شوے وو. حضور صلے الله علیه وسلّم ورته اوفرمائیل. ته د خپل پلار یا مور په کور کښې ولے نه کیناستے. چه دے لیدلے وے. چه تحفه درته درکولے شي که نه. قسم دے په هغه ذات چه د هغه قبضه کښې ځما ساه ده، کوم سړے چه (د صدقې) د دے مال نه څه

يَأْخُذُ اَحَدٌ مِنْهُ شَيْئًا اِلَّا جَآءَ بِهٖ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ يَحْتَمِلُهٗ عَلٰى رَقَبَتِهٖ اِنْ كَانَ بَعِيْرًا لَّهٗ رُغَآءٌ اَوْ بَقَرَةً لَّهَا خُوَارٌ اَوْ شَاةً تَيْعَرُ ثُمَّ رَفَعَ بِيَدِهٖ حَتّٰى رَاَيْنَا عُفْرَةَ اِبْطَيْهِ اَللّٰهُمَّ هَلْ بَلَّغْتُ اَللّٰهُمَّ هَلْ بَلَّغْتُ ثَلٰثًا.

واخلي نو د قيامت په ورځ به هغه په خپل گردن راوړي. كه اوښ وي نو هغه به بربر كوي، كه غوا وي نو هغه به بان بان كوي، كه چيلۍ وي نو هغه به بيں بيں كوي بيا حضور صلى الله عليه وسلم خپل لاس اوچت كړلو تردې چه مونږ د حضور صلى الله عليه وسلم د ترخ سپيدي اوليده (اووې فرمائيل) اے خدا الله آيا ما (د حق پيغام) اورسولو. اے خدا الله آيا ما اورسولو. درې خله (دغسې) حضور صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل.

## بـاب ٧٣٩ : اِذَا وَهَبَ هِبَةً اَوْ وَعَدَ ثُمَّ مَاتَ قَبْلَ اَنْ تَصِلَ اِلَيْهِ

وَ قَالَ عَبِيْدَةُ اِنْ مَّاتَ وَ كَانَتْ فُصِلَتِ الْهَدِيَّةُ وَالْمُهْدٰى لَهٗ حَيٌّ فَهِيَ لِوَرَثَتِهٖ وَ اِنْ لَّمْ يَكُنْ فُصِلَتْ فَهِيَ لِوَرَثَةِ الَّذِىْ اَهْدٰى وَ قَالَ الْحَسَنُ اَيُّهُمَا مَاتَ قَبْلُ فَهِيَ لِوَرَثَةِ الْمُهْدٰى لَهٗ اِذَا قَبَضَهَا الرَّسُوْلُ.

**باب ٧٣٩:** كه يو سړے هبه اوكړى يا وعده اوكړي بيا مخكښې د هغې نه چه هغه څيز هغه نه اورسي هغه (هبه كونكے يا وعده كونكے) مړ شي. عبيده اووے كه هبه كونكے مړ شي نو كه ژوند كښې جدا كړے شوے وي نو هغه به د هغه د وارثانو وي. او كه جدا كړے شوے نه وي نو د هبه كونكي د وارثانو به وي. حسن بصرى اووے دے دواړو كښې چه كوم يو هم مخكښې مړ شي د موهوب له د وارثانو به وي هر كله چه قاصد په هغې قبضه اوكړي.

**١١٢٠:** حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا ابْنُ الْمُنْكَدِرِ سَمِعْتُ جَابِرًا قَالَ قَالَ لِيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَوْ جَآءَ مَالُ الْبَحْرَيْنِ اَعْطَيْتُكَ هٰكَذَا ثَلٰثًا فَلَمْ يَقْدَمْ حَتّٰى تُوُفِّيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَمَرَ اَبُوْبَكْرٍ مُنَادِيًا فَنَادٰى مَنْ كَانَ لَهٗ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عِدَةٌ اَوْ دَيْنٌ

**١١٢٠:** علي بن عبدالله. سفيان. ابن منكدر. جابر نه روايت كوى. د هغه بيان دے ماته رسول الله صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل كه د بحرين مال راغے نو زه به تاته دا شان (دكه لپه) درې خله دركړم. هغه مال رانغے تردې چه رسول الله صلى الله عليه وسلم وفات شولو. حضرت ابوبكر يو اعلان كونكي ته حكم اوكه چه هغه اعلان اوكړي، چه چا سره نبي صلى الله عليه وسلم څه وعده كړے وي، هغه دے ماله راشي، زه به هغه له وركړم. نو زه

فَلْيَأْتِنَا فَأَتَيْتُهُ فَقُلْتُ إِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَعَدَنِيْ فَحَثٰى لِيْ ثَلٰثًا.

ابوبكرؓ له راغلم. ماورته اووے' چه نبي صلى الله عليه وسلم ماسره وعده كړے وه. نو هغهٔ ماله درے ډكے لپے راكړے.

بَـاب ٧٤٠: كَيْفَ يُقْبَضُ الْعَبْدُ وَالْمَتَاعُ وَ قَالَ ابْنُ عُمَرَ كُنْتُ عَلٰى بَكْرٍ صَعْبٍ فَاشْتَرَاهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ قَالَ هُوَ لَكَ يَا عَبْدَ اللّٰهِ.

باب ٧٤٠: غلام او سامان باندے څنګه قبضه كول پكار دي. او ابن عمرؓ اووے' چه زهٔ د' يو سركش اوښ په شا سور' ووم' نو هغه نبي صلى الله عليه وسلم (په بيع) واخستلو. اووے فرمائيل' اے عبدالله دا ستا دے.

١١٢١: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنِ ابْنِ اَبِيْ مُلَيْكَةَ عَنِ الْمِسْوَرِ بْنِ مَخْرَمَةَ قَالَ قَسَمَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَقْبِيَةً وَلَمْ يُعْطِ مَخْرَمَةَ مِنْهَا شَيْئًا فَقَالَ مَخْرَمَةُ يَا بُنَيَّ انْطَلِقْ بِنَا اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَانْطَلَقْتُ مَعَهُ فَقَالَ ادْخُلْ فَادْعُهُ لِيْ قَالَ فَدَعَوْتُهُ لَهُ فَخَرَجَ اِلَيْهِ وَ عَلَيْهِ قَبَاءٌ مِنْهَا فَقَالَ خَبَأْنَا هٰذَا لَكَ قَالَ فَنَظَرَ اِلَيْهِ فَقَالَ رَضِيَ مَخْرَمَةُ.

١١٢١: قتيبه بن سعيد. ليث. ابن ابي مليكه. مسور بن مخرمه نه روايت كوي' چه رسول الله صلى الله عليه وسلم قباګانے تقسيم كړے. ليكن مخرمه ته ئے هيڅ ورنهٔ كړل. مخرمه اووے' اے ځما ځويه' ماسره نبي صلى الله عليه وسلم له لاړشه زهٔ هغهٔ سره لاړم' نو هغهٔ اووے' دننه ورشه. او حضور صلى الله عليه وسلم ما د' پاره راوبله. ما حضور صلى الله عليه وسلم اوبللو' نو حضور صلى الله عليه وسلم بهر تشريف راوړلو' داسے حال كښ چه هغے قباګانو كښ ئے يوه قباء اغستے وه. حضور صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل' مونږ ستا د' پاره دا پټه ايښے وه. مخرمه چه هغه اوليده' نو د' هغے ليدو سره خوشحاله شو.

بَـاب ٧٤١: اِذَا وَهَبَ هِبَةً فَقَبَضَهَا الْاٰخَرُ وَلَمْ يَقُلْ قَبِلْتُ.

باب ٧٤١: كهٔ يو سړے چاله څهٔ څيز وركړي او بل سړے په هغے قبضه اوكړي ليكن دا' اونهٔ وائي' چه ما قبول كه.

١١٢٢: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مَحْبُوْبٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ حَدَّثَنَا مَعْمَرٌ عَنِ

١١٢٢: محمد بن محبوب. عبدالواحد. معمر. زهري. حميد بن عبدالرحمن. ابوهريرهؓ نه روايت كوي. د' هغهٔ بيان دے' چه يو سړے د' رسول الله صلى الله عليه

الزُّهْرِيِّ عَنْ حُمَيْدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ رضي قَالَ جَآءَ رَجُلٌ اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ هَلَكْتُ فَقَالَ وَمَا ذَاكَ قَالَ وَقَعْتُ بِاَهْلِيْ فِيْ رَمَضَانَ قَالَ تَجِدُ رَقَبَةً قَالَ لَا قَالَ فَهَلْ تَسْتَطِيْعُ اَنْ تَصُوْمَ شَهْرَيْنِ مُتَتَابِعَيْنِ قَالَ لَا قَالَ فَتَسْتَطِيْعُ اَنْ تُطْعِمَ سِتِّيْنَ مِسْكِيْنًا قَالَ لَا قَالَ فَجَآءَ رَجُلٌ مِّنَ الْاَنْصَارِ بِعَرَقٍ وَالْعَرَقُ الْمِكْتَلُ فِيْهِ تَمْرٌ فَقَالَ اذْهَبْ بِهٰذَا فَتَصَدَّقْ بِهٖ قَالَ عَلٰى اَحْوَجَ مِنَّا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ وَالَّذِيْ بَعَثَكَ بِالْحَقِّ مَا بَيْنَ لَابَتَيْهَا اَهْلُ بَيْتٍ اَحْوَجُ مِنَّا قَالَ اذْهَبْ فَاَطْعِمْهُ اَهْلَكَ.

وسلّم په خدمت کښ حاضر شو. او عرض ئے او کړۀ' چه زۀ خو تباه شوم. حضور صلے الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل' څۀ چل شوے دے. هغۀ اووے' ما خپلے بي بي سره رمضان کښ صحبت کړے دے. حضور صلے الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل' آيا تا سره څۀ غلام شته. هغۀ اووے' نه' حضور صلے الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل' آيا دوه مياشتے متواتر روژے نيولے شے. هغۀ اووے' نه' حضور صلے الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل' آيا شپيتو مسکينانو ته ډوډۍ ورکولے شے' هغۀ اووے' نه' يو انصاري يو عرق راوړلو. عرق يو پيمانه ده' چه هغے کښ قجورے وے. حضور صلے الله عليه وسلّم اوفرمائيل' دا واخله' او خيرات ئے کړه. هغے سړي تپوس اوکړۀ' يا رسول الله' داسے سړي ته ئے ورکړم' چه خما نه زيات محتاج وي. قسم دے په هغه ذات چه هغه تاسو حق سره راليږلے ئے. دَ مدينے دَ دواړو کانړيجنو غاړو په مينځ کښ هيڅ کور داسے نشته' چه خما نه زيات محتاج وي. نو حضور صلے الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل' خه. په خپل کورو الو ته ئے اوخوروه.

## باب ۷۴۲: اِذَا وَهَبَ دَيْنًا عَلٰى رَجُلٍ

قَالَ شُعْبَةُ عَنِ الْحَكَمِ هُوَ جَآئِزٌ وَّ وَهَبَ الْحَسَنُ ابْنُ عَلِيٍّ (عَلَيْهِمَا السَّلَامُ) لِرَجُلٍ دَيْنَهٗ وَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ كَانَ لَهٗ عَلَيْهِ حَقٌّ فَلْيُعْطِهٖ اَوْ لِيَتَحَلَّلْهُ مِنْهُ فَقَالَ جَابِرٌ قُتِلَ اَبِيْ وَ عَلَيْهِ دَيْنٌ فَسَاَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ

## باب ۷۴۲: کۀ يو سړے خپل قرض چاته هبه کړي.

شعبه په واسطه دَ حکم نقل کړے دے' چه جائز دي. او حسن بن علي عليهما السّلام يو سړي ته خپل قرض اوبښه او نبي صلے الله عليه وسلّم اوفرمائيل' په کوم سړي چه دَ چا حق وي' نو هغه دے هغۀ ته ادا کړي يا معاف دے کړي. جابرؓ اووے' خما پلار قتل کړے شو' او په هغۀ قرض وو' نبي صلے الله عليه وسلّم دَ هغۀ قرض خواهانو ته اووے'

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غُرَمَآءَهُ اَنْ يَّقْبَلُوْا ثَمَرَ حَآئِطِيْ وَ يُحَلِّلُوْآ اَبِيْ.

**١١٢٣ :** حَدَّثَنَا عَبْدَانُ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا يُوْنُسُ وَ قَالَ اللَّيْثُ حَدَّثَنِيْ يُوْنُسُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ ابْنُ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ اَنَّ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ اَخْبَرَهُ اَنَّ اَبَاهُ قُتِلَ يَوْمَ اُحُدٍ شَهِيْدًا فَاشْتَدَّ الْغُرَمَآءُ فِيْ حُقُوْقِهِمْ فَاَتَيْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَكَلَّمْتُهُ فَسَاَلَهُمْ اَنْ يَّقْبَلُوْا تَمَرَ حَآئِطِيْ وَ يُحَلِّلُوْا اَبِيْ فَاَبَوْا فَلَمْ يُعْطِهِمْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَآئِطِيْ وَلَمْ يَكْسِرْهُ لَهُمْ وَلٰكِنْ قَالَ سَاَغْدُوْ عَلَيْكَ فَغَدَا عَلَيْنَا حَتّٰى اَصْبَحَ فَطَافَ فِي النَّخْلِ وَ دَعَا فِيْ تَمَرِهٖ بِالْبَرَكَةِ فَجَدَدْتُّهَا فَقَضَيْتُهُمْ حُقُوْقَهُمْ وَ بَقِيَ لَنَا مِنْ ثَمَرِهَا بَقِيَّةٌ ثُمَّ جِئْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ جَالِسٌ فَاَخْبَرْتُهُ بِذٰلِكَ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِعُمَرَ اسْمَعْ وَهُوَ جَالِسٌ يَا عُمَرُ فَقَالَ عُمَرُ اَلَا يَكُوْنُ قَدْ عَلِمْنَا اَنَّكَ رَسُوْلُ اللّٰهِ وَاللّٰهِ اِنَّكَ لَرَسُوْلُ اللّٰهِ.

**بَاب ٧٤٣ :** هِبَةِ الْوَاحِدِ

چه خما دَ باغ ميوه قبوله کړے او خما دَ پلار قرض معاف کړے.

**١١٢٣ :** عبدان. عبداللّٰه. يُونس (ليث دا شان سند بيان کۀ) يونس. ابن شهاب. ابن کعب بن مالک. جابر بن عبداللّٰه بيان او کۀ، چه خما پلار جنګ اُحد کښ شهيد شولو، نو دَ هغۀ قرض خواهانو دَ خپلو حقوقو مطالبه کښ سختي شروع کړله، زۀ دَ رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلّم خدمت کښ حاضر شوم. او حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم ته مې حالات بيان کړل، نو حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم هغے خلقوته سفارش او کۀ، چه خما دَ باغ ميوه واخلي، او خما دَ پلار قرض پريږدي خو هغے خلقو انکار او کۀ، نو رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلّم هغوي له خما باغ ورنه کړلو، او نه ئے هغوي دَ پاره ميوه اوشوکوله. بلکه ورے فرمائيل، چه زۀ به تاله صباله راځم. چه سحر شو، نو حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم تشريف راوړلو، او دَ قجرو اُونو سره ئے چکر اووهلو. بيا ما دَ هغے ميوه راوشوکوله او دَ هغوي (قرض خواهانو) حقوق مې ادا کړل. او ماسره دَ هغے ميوه بچ هم شوله. بيا زۀ د رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلّم خدمت کښ حاضر شوم، حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم ناست وو، ما حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم ته دا حال بيان کۀ. رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلّم عمرؓ ته چه هلته ناست وو، اوفرمائيل. اے عمرؓ واوره. حضرت عمرؓ عرض او کۀ، مونږ ته خو معلومه ده، چه تاسو دَ اللّٰه رسول ئے په خدائے مې دے قسم وي چه تاسو دَ اللّٰه رسول ئے.

**باب ٧٤٣ :** يو څيز څو کسانو ته دَ هبه کولو

لِلْجَمَاعَةِ وَ قَالَتْ اَسْمَآءُ لِلْقَاسِمِ بْنِ مُحَمَّدٍ وَّابْنِ اَبِيْ عَتِيْقٍ وَّرِثْتُ عَنْ اُخْتِيْ عَآئِشَةَ بِالْغَابَةِ وَقَدْ اَعْطَانِيْ بِهٖ مُعَاوِيَةُ مِائَةَ اَلْفٍ فَهُوَ لَكُمَا.

بيان. او اسماء قاسم بن محمّد او ابن ابي عتيق ته اووے چه مانه ذ خپلے خور، بي بي عائشےؓ نه غابه كښې چه كومه تركه حاصله شوه او ذ هغے په بدله كښې حضرت معاويهؓ يو لاكه وركولے، هغه تاسو دواړوله دركوم.

ف: تركه: ذ مړي پريښے مال جائيداد، ورثه، ميراث، ميراثه.

۱۱۲۴: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ قَزَعَةَ حَدَّثَنَا مَالِكٌ عَنْ اَبِيْ حَازِمٍ عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍؓ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اُتِيَ بِشَرَابٍ فَشَرِبَ وَ عَنْ يَمِيْنِهٖ غُلَامٌ وَّ عَنْ يَّسَارِهٖ الْاَشْيَاخُ فَقَالَ لِلْغُلَامِ اِنْ اَذِنْتَ لِيْ اَعْطَيْتُ هٰؤُلَآءِ فَقَالَ مَا كُنْتُ لِاُوْثِرَ بِنَصِيْبِيْ مِنْكَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَحَدًا فَتَلَّهٗ فِيْ يَدِهٖ.

۱۱۲۴: يحيي بن قزعه. مالك. ابو حازم. سهل بن سعد نه روايت كوي نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم د څكلو څيز راوړے شو، نو حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم د هغے نه اوڅكل. ذ حضور ښي طرفته يو كم عمره هلك ناست وو. او گس طرف ته بوډاگان سړي وو. حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم هغے هلك ته اوفرمائيل، كهٔ ته اجازت كوے، نو زهٔ به دا، دوي ته وركړم؟. هغے هلك اووے، يا رسول اللّٰه زهٔ ستاسو جوټه كښې خپله حصه كښې په خپل ځان هيڅا له ترجيح نهٔ وركوم، نو حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم هغه پياله ذ هغے هلك په لاس كښې زور سره كيښنوده.

ا. مصنف رحمة اللّٰه عليه ددے نه استنباط كړے دے چه يو څيز ګڼړو كسانو نه مشتركه طريقه باندے هبه كيدلے شي، ولے چه ذ حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم په خدمت كښې گس طرفته ګڼړ اصحاب ناست وو او حضورؐ د دغه ټولو د پاره اجازت غوښتلے وو. ليكن حنفي فقهاء وائي چه دا هبه نه وه بلكه صرف د اباحت يو صورت وو. په هبه او اباحت كښې فرق دے. يو څيز مشترك طور باندے ګڼړو كسانو ته د هبه كولو په صورت كښې چه كوم تفصيل دے هغه د فقهے په كتابونو كښې كتلے كيدے شي.

## بَاب ۷۴۴: اَلْهِبَةِ الْمَقْبُوْضَةِ وَ غَيْرِ الْمَقْبُوْضَةِ وَالْمَقْسُوْمَةِ وَ غَيْرِ الْمَقْسُوْمَةِ وَقَدْ وَهَبَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَصْحَابُهٗ لِهَوَازِنَ مَا غَنِمُوْا مِنْهُمْ وَهُوَ غَيْرُ مَقْسُوْمٍ وَّ قَالَ ثَابِتٌ حَدَّثَنَا مِسْعَرٌ عَنْ مُحَارِبٍ

باب ۷۴۴: ذ قبضه شوي يا نه قبضه شوي او تقسيم شوي يا نه تقسيم شوے څيز ذ هبه كولو بيان. او نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم او ذ حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم اصحابوؓ هوازن ته مال غنيمت هبه كهٔ، حالانكه هغه تقسيم شوے نهٔ وو. او ثابت بيان اوكهٔ، چه ماته مسعر په واسطه ذ محارب. جابر نقل كړے دے، چه زهٔ

عَنْ جَابِرٍ اَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْمَسْجِدِ فَقَضَانِيْ وَزَادَنِيْ.

نبي صلي الله عليه وسلّم ته جمات کښې حاضر شوم، نو حضور صلي الله عليه وسلّم ماله خما قرض راکړلو او زيات ئے راکړلو [1].

۱. په دے باب کښې مصنفؒ د خپل مسلک د پاره دوه حديثونه د بنياد په طور بيان کړي دي. يو د هوازن قبيلے د قيديانو معامله ده چه د اسلامي لښکر په قبضه کښې راتللو نه پس پاک حضرت صلي الله عليه وسلّم هغوئ بيا هوازن والؤ ته واپس کړي وو. ليکن حقيقت دا دے چه دلته د هبے يا هديے هډو صورت نه وو بلکه کوم خلق چه قيديان شوي وو هغوئ به د اسلامي قانون تر مخه غلامان جوړيدل ليکن پاک حضرت صلي الله عليه وسلّم هغوئ آزاد کړل. نو دا هبه نه وه بلکه ازادي ورکول وو. بيا که چرے هبه هم تسليم کړے شي نو اخستونکي ګنړ وُو، ګويا اعلان دا وو چه د چا قيديان دي هغوئ دِ بوځي، اوس ټول قبيلے والا راغلل او خپل خپل قيديان ئے خان سره بوتلل. ظاهره ده چه په دے صورت کښې بيله بيله قبضه متحقق کيږي. دويم بنياد دَ حضرت جابر رضي الله عنه واقعه ده د کومے تفصيل چه د دے نه مخکے تير شوے دے. د جابر رضي الله عنه نه حضور صلي الله عليه وسلّم اوښ په بيعه واخستو، بيا چه مدينے ته واپس راغلل نو د هغے قيمت ئے ادا کړلو او ورسره ئے د زياتي بخشش په طور باندے هم څه ورکړل. مصنف رحمة الله عليه دا وائي چه يو خو وو اصل قيمت او زياتي هديه وه. حضور اکرم صلي الله عليه وسلّم چه هغه له کومه هديه ورکړه هغه ئے د دغه قيمت نه بيله نه وه ورکړے، د کوم چه جابر رضي الله عنه مالک وو بلکه د هغے سره ئے ورکړے وه. لهٰذا دا دَ "هديه مُشاع" صورت شو. که چرے دا صورت جائز نه وے نو حضور اکرم څنګه ورکولے شوه. ليکن دا توجيه هم صحيح نه ده، جابر رضي الله عنه ته چه کومه هديه ملاؤ شوے وه هغه قطعًا جُدا او د اصل قيمت نه بيله وه، په دے وجه به هغوئ هميشه دغه هديه خپل خان سره ساتله او فرمائيل به ئے چه کومه هديه ماله رسول الله صلي الله عليه وسلّم راکړے ده زه به ئے چرے د خپل ځان نه جُدا نه کړم. لهٰذا مصنف رحمة الله عليه چه د خپل مسلک ثابتولو د پاره کوم بنياد قائم کړے وو هغهٔ واضحه طور باندے ثابت نشو.

د احنافو په دے باب کښې بنيادي نقطه نظر دا دے چه د هبے او هديے ټول دارومدار د هديه ورکونکي په مرضئ او خوشالئ باندے دے.

د خرڅولو اخستلو پشان دا څه عقد نه دے. په دے وجه دے کښې هغه ابهام هم نه دي پاتے کيدل پکار د کوم چه په خرڅولو اخستلو کښې اجازت ورکړے شوے دے. دے د پاره هبے يا هديے د پاره قبضه ضروري ده او دے له مشاع کيدل هم نه دي پکار.

۱۱۲۵: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ مُحَارِبٍ سَمِعْتُ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ يَقُوْلُ بِعْتُ مِنَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ

۱۱۲۵: محمد بن بشار. غندر. شعبه. محارب. جابر بن عبدالله روايت کوي، چه ما په نبي صلے الله عليه وسلّم سفر کښې يو اوښ خرڅ کړلو، کوم وخت چه مدينے ته راغلو، نو حضور صلے الله عليه

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعِيْرًا فِيْ سَفَرٍ فَلَمَّا اَتَيْنَا الْمَدِيْنَةَ قَالَ ائْتِ الْمَسْجِدَ فَصَلِّ رَكْعَتَيْنِ فَوَزَنَ لِيْ فَاَرْجَحَ فَمَا زَالَ مِنْهَا شَيْءٌ حَتّٰى اَصَابَهَا اَهْلُ الشَّامِ يَوْمَ الْحَرَّةِ.

وسلّم اوفرمائيل. جُمات ته لاړشه، دوه ركعاته مونځ اوكه. حضور صلے الله عليه وسلّم ذ هغه قيمت تول كه. شعبه وائي. زهٔ پوهيږم، چه حضور صلے الله عليه وسلّم درونـد تـول اوكـه، او هغـے كښ به څه برابر ماسره وو، تردے چه يوم حره كښ اهل شام هغه قبضه كړل.

۱۱۲۶: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ عَنْ مَالِكٍ عَنْ اَبِيْ حَازِمٍ عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اُتِيَ بِشَرَابٍ وَّ عَنْ يَّمِيْنِهٖ غُلَامٌ وَّ عَنْ يَّسَارِهٖ اَشْيَاخٌ فَقَالَ لِلْغُلَامِ اَتَأْذَنُ لِيْ اَنْ اُعْطِيَ هٰؤُلَاۤءِ فَقَالَ الْغُلَامُ لَا وَاللّٰهِ لَا اُوْثِرُ بِنَصِيْبِيْ مِنْكَ اَحَدًا فَتَلَّهٗ فِيْ يَدِهٖ.

۱۱۲۶: قتيبه. مالک. ابوحازم. سهل بن سعد نه روايت كوي، رسول الله صلے الله عليه وسلّم ته د څكلو څهٔ څيز راوړے شو، ذ حضور صلے الله عليه وسلّم ښي طرف ته يو كم عمره هلک وو، او كس طرف ته بوډاګان سړي وو. حضور صلے الله عليه وسلّم هغے هلک ته اوفرمائيل، آيا ته اجازت كوے، چه زهٔ دا، دے خلقوته وركړم هغے هلک اووے، په خدائے م دے قسم وي، زهٔ ستاسو جوټه كښ خپله حصه كښ په خپل خان هيچا له ترجيح نه وركوم، نو حضور صلے الله عليه وسلّم هغه پيالے ذ هلک لاس كښ زور سره كيښنوده.

۱۱۲۷: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عُثْمَانَ بْنِ جَبَلَةَ قَالَ اَخْبَرَنِيْ اَبِيْ عَنْ شُعْبَةَ عَنْ سَلَمَةَ قَالَ سَمِعْتُ اَبَا سَلَمَةَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَؓ قَالَ كَانَ لِرَجُلٍ عَلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَيْنٌ فَهَمَّ بِهٖ اَصْحَابُهٗ فَقَالَ دَعُوْهُ فَاِنَّ لِصَاحِبِ الْحَقِّ مَقَالًا وَّ قَالَ اشْتَرُوْا لَهٗ سِنًّا فَاَعْطُوْهَا اِيَّاهُ. فَقَالُوْا اِنَّا لَا نَجِدُ سِنًّا اِلَّا سِنًّا هِيَ اَفْضَلُ مِنْ سِنِّهٖ قَالَ فَاشْتَرُوْهَا

۱۱۲۷: عبدالله بن عثمان بن جبله.شعبه. سلمه. ابوسلمه. ابوهريرهؓ نه روايت كوي، ذ هغهٔ بيان دے، ذ رسول الله صلے الله عليه وسلّم په ذمه ذ، يو سړي قرض وو. هغه سختئ سره تقاضا اوكړه، نو ذ حضور صلے الله عليه وسلّم اصحابوؓ ذ هغهٔ ذ وهلو اراده اوكړله، حضور صلے الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل دے پريږدے، خكه چه حق واله هم دغسے خبرے كوي. اوورے فرمائيل. دهٔ له ذ دغے عمر اوښ واخلئے، او، ورئے كړے. خلقو عرض اوكهٔ، ذدے عمر اوښ خو، نشي بيامُندے، البته ذ دے نه ذ زيات عمر اوښ شته، نو حضور صلے الله عليه وسلّم اوفرمائيل، هم دغه واخلئے او، ور

فَاَعْطُوْهَا اِيَّاهُ فَاِنَّ مِنْ خَيْرِكُمْ اَحْسَنَكُمْ قَضَآءً.

## باب ٧٤٥: اِذَا وَهَبَ جَمَاعَةٌ لِقَوْمٍ.

١١٢٨: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُرْوَةَ اَنَّ مَرْوَانَ بْنَ الْحَكَمِ وَالْمِسْوَرَ بْنَ مَخْرَمَةَ اَخْبَرَاهُ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ حِيْنَ جَآءَهُ وَفْدُ هَوَازِنَ مُسْلِمِيْنَ فَسَاَلُوْهُ اَنْ يَّرُدَّ اِلَيْهِمْ اَمْوَالَهُمْ وَسَبْيَهُمْ فَقَالَ لَهُمْ مَعِيَ مَنْ تَرَوْنَ وَاَحَبُّ الْحَدِيْثِ اِلَيَّ اَصْدَقُهُ فَاخْتَارُوْآ اِحْدَى الطَّآئِفَتَيْنِ اِمَّا السَّبْيَ وَاِمَّا الْمَالَ وَقَدْ كُنْتُ اسْتَاْنَيْتُ وَكَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ انْتَظَرَهُمْ بِضْعَ عَشْرَةَ لَيْلَةً حِيْنَ قَفَلَ مِنَ الطَّآئِفِ فَلَمَّا تَبَيَّنَ لَهُمْ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غَيْرُ رَادٍّ اِلَيْهِمْ اِلَّا اِحْدَى الطَّآئِفَتَيْنِ قَالُوْا فَاِنَّا نَخْتَارُ سَبْيَنَا فَقَامَ فِي الْمُسْلِمِيْنَ فَاَثْنٰى عَلَى اللّٰهِ بِمَا هُوَ اَهْلُهُ ثُمَّ قَالَ اَمَّا بَعْدُ فَاِنَّ اِخْوَانَكُمْ هٰٓؤُلَآءِ جَآءُوْنَا تَآئِبِيْنَ وَاِنِّيْ

ئے کړئے، ځکه چه تاسو کښې بهتر هغه دے چه په ښه طريقه ادائيګي او کړي.

## باب ٧٤٥: کهٔ يو څو سړي يو جماعت ته هبه کړي.

١١٢٨: يحيى بن بكير. ليث. عقيل. ابن شهاب. عروه. مروان بن حكم او مسور بن مخرمه نه روايت کوي، دَ دے دواړو بيان دے، چه نبي صلے الله عليه وسلّم ته دَ هوازن وفد دَ مسلمانيدونه پس راغے، او هغے خلقو حضور صلے الله عليه وسلّم ته خواست او که، چه هغوي ته دَ هغوي مال او قيديان واپس کړي حضور صلے الله عليه وسلّم هغے خلقوته اوفرمائيل ماسره چه کوم خلق دي، هغه تاسو وينئے. او ځما په نزد ريښتنے خبره دَ ټولو نه زياته ښهٔ ده، په دے وجه تاسو دوو خبرو کښې يوه اختيار کړئے يا قيديان واخلئے يا مال، او ځکه ما ستاسو انتظار کړے وو. نبي صلي الله عليه وسلّم دَ لسو شپونه زيات دَ هغے خلقو انتظار او کهٔ، نو طائف نه واپس شولو. کوم وخت چه هغے خلقوته معلومه شوه، چه نبي صلے الله عليه وسلّم دوو څيزونو کښې صرف يو څيز واپس کوي، نو هغے خلقو عرض او کهٔ، چه مونږ خپل قيديان واپس آخستل غواړو. نبي صلے الله عليه وسلّم دَ مسلمانانو مينځ کښې اودريدلو. او دَ خدائے تعريف ئے بيان کهٔ، کوم چه دَ هغهٔ شان سره ښائي. بيا ئے اوفرمائيل، اما بعد، ستاسو دا، ورونړه تاسوله توبه کولو نه پس راغلے دي، اوزهٔ خيال کوم، چه دَ دوئ قيديان دوي ته واپس کړم. تاسو کښې چه څوک په رضا او رغبت داسے کول غواړي، نو اودے کړي، او کوم سړے چه په

رَاَيْتُ اَنْ اَرُدَّ اِلَيْهِمْ سَبْيَهُمْ فَمَنْ اَحَبَّ مِنْكُمْ اَنْ يُّصَيِّبَ ذٰلِكَ فَلْيَفْعَلْ وَمَنْ اَحَبَّ اَنْ يَّكُوْنَ عَلٰى حَظِّهٖ حَتّٰى نُعْطِيَهٗ اِيَّاهُ مِنْ اَوَّلِ مَا يُفِيْءُ اللّٰهُ عَلَيْنَا فَلْيَفْعَلْ فَقَالَ لَهُمْ اِنَّا لَا نَدْرِيْ مَنْ اَذِنَ مِنْكُمْ فِيْهِ مِمَّنْ لَمْ يَاْذَنْ فَارْجِعُوْا حَتّٰى يَرْفَعَ اِلَيْنَا عُرَفَآؤُكُمْ اَمْرَكُمْ فَرَجَعَ النَّاسُ فَكَلَّمَهُمْ عُرَفَآؤُهُمْ ثُمَّ رَجَعُوْآ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَخْبَرُوْهُ اَنَّهُمْ طَيَّبُوْا وَ اَذِنُوْا وَ هٰذَا الَّذِيْ بَلَغَنَا مِنْ سَبْيِ هَوَازِنَ هٰذَآ اٰخِرُ قَوْلِ الزُّهْرِيِّ يَعْنِيْ فَهٰذَا الَّذِيْ بَلَغَنَا.

خپله حصه قائم اوسیدل غواړي، تردے چه الله تعالیٰ د تـولونه مخکښ کوم مال غنیمت مونږ ته راکړي، د هغے نه مونږ دوي لـه ورکړو، نو دغسے دے اوکړي. خلقو عـرض اوکـه، یـا رسول الله، مونږ په رضا او رغبت(یعني په خپله خوښه) دغسے کوو (یعني د هغوی قیدیان واپس کوو) حضور صلے الله علیه وسلّم خلقوته اوفرمائیل، مونږ تـه نهٔ ده معلومه، چه تاسو کښې چا اجازت اوکهٔ او چا اجازت اونهٔ کـهٔ، نو تاسو واپس لاړ شئے، تردے چه ستاسو سرداران مونږ ته ستاسو معامله پیش کړي. خلق واپس لاړل، هغوي سره خپلو سردارانو خبرے اترے اوکړے. بیا هغوي دَ نبي صلے الله علیه وسلّم په خدمت کښې حاضر شو. او حضور صلے الله علیه وسلّم ته ئے بیان اوکـهٔ، چه خلق خوشحالي سره داسے (یعني قیدیان واپس) کـولـو ته تیار دي. دَ، هوازن دَ قیدیانو حال مونږ تـه دغسے رارسیدلے دے، دا آخري قول یعني فَهٰذَا الَّذِیْ بَلَغَنَا، دَ، زهري قول دے.

## بَابٌ ۱۲۴۶: مَنْ اُهْدِيَ لَهٗ هَدِيَّةٌ وَّ عِنْدَهٗ جُلَسَآؤُهٗ فَهُوَ اَحَقُّ وَ يُذْكَرُ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ اَنَّ جُلَسَآؤُهٗ شُرَكَآءُهٗ وَلَمْ يَصِحَّ.

باب ۱۲۴۶: کهٔ یو سړي تـه څه هدیه ورکړے شي او هغـهٔ سره څـهٔ خـلق نـاست وي، نو هغه دَ دے مستحق دے. او ابن عباسؓ نه منقول دي، چه هغهٔ سره نـاسـت خـلـق به هم هغه سره شریک وي. لیکن دا نقل صحیح نهٔ دے.

۱۱۲۹: حَدَّثَنَا ابْنُ مُقَاتِلٍ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا شُعْبَةُ عَنْ سَلَمَةَ بْنِ كُهَيْلٍ عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

۱۱۲۹: ابـن مـقـاتـل. عبدالله. شعبه. سلمه بن کهیـل. ابـوسلمه. ابوهریرهؓ، نبي صلے الله علیه وسلّم نه روایـت کـوي، حضـور صـلـے الله علیه وسلّم یو اوښ دَ څانـه اخستے وو. قرض خواه تقاضا کولو دَ پاره راغے. هغهٔ سختي شروع کړي صحابه ؤ دَ هغهٔ دَ وهلو اراده

اَنَّهُ اَخَذَ سِنًّا فَجَآءَ صَاحِبُهُ يَتَقَاضَاهُ فَقَالَ اِنَّ لِصَاحِبِ الْحَقِّ مَقَالًا ثُمَّ قَضَاهُ اَفْضَلَ مِنْ سِنِّهِ وَ قَالَ اَفْضَلُكُمْ اَحْسَنُكُمْ قَضَآءً.

او کړه، نو حضور صلے الله علیه وسلّم اوفرمائیل. حق واله هم دغسے خبرے کوي، بیا هغهٔ ته ئے دَ هغے نه دَ زیات عمر (یعني دَ زیات قیمت) اوبښ ورکړلو. او وے فرمائیل، تاسو کښې بهتر هغه دے، چه ښهٔ طور سره ادائیگي اوکړي.

۱۱۳۰: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا ابْنُ عُيَيْنَةَ عَنْ عَمْرٍو عَنِ ابْنِ عُمَرَ اَنَّهُ كَانَ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ سَفَرٍ فَكَانَ عَلٰى بَكْرٍ لِعُمَرَ صَعْبٍ فَكَانَ يَتَقَدَّمُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَيَقُوْلُ اَبُوْهُ يَا عَبْدَ اللّٰهِ لَا يَتَقَدَّمُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَحَدٌ فَقَالَ لَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِعْنِيْهِ فَقَالَ عُمَرُ هُوَ لَكَ فَاشْتَرَاهُ ثُمَّ قَالَ هُوَ لَكَ يَا عَبْدَ اللّٰهِ فَاصْنَعْ بِهِ مَا شِئْتَ.

۱۱۳۰: عبدالله بن محمد. ابن عینیه. عمرو. ابن عمرؓ نه روایت کوي، چه هغه نبي صلے الله علیه وسلّم سره یو سفر کښې وو، او هغه دَ حضرت عمرؓ په یو سرکش اوښ سور، وو. او هغه به دَ نبي صلے الله علیه وسلّم دَ سورلئ نه مخکښې کیدلو. او حضرت عمرؓ به فرمائیل، چه اے عبدالله، هیڅوک دے دَ نبي صلے الله علیه وسلّم نه، نه مخکښې کیږي. نبي صلے الله علیه وسلّم حضرت عمرؓ ته اوفرمائیل، چه دا په ما خرڅ کړه، حضرت عمرؓ ورته عرض اوکهٔ، ستاسو دے، نو حضور صلے الله علیه وسلّم هغه واخستلو. حضور صلے الله علیه وسلّم اوفرمائیل، اے عبدالله، دا ستا دے، څهٔ چه غواړے، کوه ورسره (یعني ستا ملکیت دے).

بَابٌ ۷۴۷: اِذَا وَهَبَ بَعِيْرًا لِرَجُلٍ وَهُوَ رَاكِبُهُ فَهُوَ جَآئِزٌ وَّ قَالَ الْحُمَيْدِيُّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا عَمْرٌو عَنِ ابْنِ عُمَرَؓ قَالَ كُنَّا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ سَفَرٍ وَّ كُنْتُ عَلٰى بَكْرٍ صَعْبٍ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِعُمَرَ بِعْنِيْهِ فَبَاعَهُ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هُوَ لَكَ يَا عَبْدَ اللّٰهِ.

باب ۷۴۷: کهٔ یو سړے چاته اوښ هبه کړي او هغه په هغے سور، وي، نو جائز دي. او حمیدي اووے، چه ماته سفیان په واسطه دَ، عمرو، دَ، ابن عمرؓ قول نقل که، چه مونږ نبي صلے الله علیه وسلّم سره یو سفر کښې وو، او زهٔ په یو سرکش اوښ سور ووم، نو نبي صلے الله علیه وسلّم حضرت عمرؓ ته اوفرمائیل چه دا، په ما خرڅ که. بیا حضورؐ هغه (په بیع) واخست، نو حضور صلے الله علیه وسلّم اوفرمائیل اے عبدالله، دا، اوښ ستا دے. (یعني ستا شو).

بـاب۷۴۸: هَـدِيَّةِ مَـا يُكْـرَهُ لُبْسُهَا.

۱۱۳۱: حَـدَّثَـنَـا عَبْـدُ اللّٰهِ بْـنُ مَسْـلَـمَةَ عَـنْ مَـالِكٍ عَـنْ نَـافِـعٍ عَـنْ عَبْـدِ اللّٰـهِ بْـنِ عُمَـرَؓ قَـالَ رَاٰى عُـمَـرُ بْـنُ الْخَطَّـابِ حُلَّةً سِيَـرَآءَ عِـنْـدَ بَـابِ الْمَسْجِدِ فَـقَـالَ يَـا رَسُـوْلَ الـلّٰـهِ لَـوِ اشْتَـرَيْتَهَـا فَـلَبِسْتَهَـا يَـوْمَ الْجُـمُعَةِ وَالْوَفْـدِ قَـالَ اِنَّـمَا يَلْبَسُهَـا مَـنْ لَّا خَـلَاقَ لَـهُ فِـي الْاٰخِـرَةِ ثُـمَّ جَـآءَتْ حُـلَـلٌ فَـاَعْـطَى رَسُـوْلُ اللّٰـهِ صَـلَّـى الـلّٰـهُ عَلَيْـهِ وَسَلَّمَ عُـمَـرَ مِـنْـهَا حُـلَّـةً وَقَـالَ اَكَسَوْتَنِيْهَا وَقُـلْـتَ فِـيْ حُـلَّةِ عُـطَارِدٍ مَـا قُلْتَ فَقَـالَ اِنِّـيْ لَـمْ اَكْسُكَهَا لِتَلْبَسَهَا فَـكَسَـا عُـمَـرُ اَخًـا لَّـهُ بِـمَـكَّةَ مُشْرِكًا.

باب۷۴۸: دَ كوم څيز اغوستل چه مكروه دي' هغه هديه ليږل.

۱۱۳۱: عبدالـلّـه بـن مسـلـمـه. مالک. نافع. عبـدالـلّٰـه بـن عـمـرؓ نه روايت كوي. دَ هغهٔ بيان دے' چه حضـرت عـمـرؓ بن خطاب يوه ريښمينه حُلّه دَ جمات په دروازے خـرڅيـدونكے اوليده' نو رسول الله صلے الله عليـه وسلّم ته ئے عرض اوكهٔ' چه كاش دا تاسو اخستے وے' چـه دَ جـمعے په ورځ او دَ' وفد دَ' راتلو په ورځ مو اغوستلے حضور صلے الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل' دا هـغـه سړے اغـنـدي' چه دَ هغهٔ آخرت كښ څهٔ حصه نه وي' بيا يـو څـو ريښـمـيـنـے حُلّے حضور صلے الله عليه وسلّم له راغلے. نو حضور صلے الله عليه وسلّم دَ هغے نه يـوه حـضـرت عمرؓ له وركړله حضرت عمرؓ عرض اوكهٔ' تاسو ماته دا' اغندوئے. حالانكه تاسو دَ حُلّه عطارد بابت كښ داسے فـرمـائيلے وو. حضور صلے الله عليه وسلّم اوفـرمائيل. نه. ما دا تاله اغوستلو دَ پاره نهٔ وه دركړے نو حـضـرت عـمـرؓ هغه خپل يو مشرک وروړله اغوستلو دَ پاره وركړله' چه هغه مكه كښ وو.

ف: حُلّه: جامه. جُبّه. دَ يمن خاص لباس. څادر. خلقه. خلكه.

۱۱۳۲: حَـدَّثَـنَـا مُحَـمَّـدُ بْـنُ جَـعْـفَـرٍ اَبُـوْ جَعْفَرٍ حَـدَّثَـنَـا ابْـنُ فُـضَيْـلٍ عَـنْ اَبِيْـهِ عَـنْ نَـافِـعٍ عَـنِ ابْـنِ عُـمَـرَؓ قَـالَ اَتَـى النَّـبِـيُّ صَـلَّـى الـلّٰـهُ عَـلَيْـهِ وَسَلَّمَ بَيْـتَ فَـاطِـمَةَ فَـلَـمْ يَـدْخُلْ عَلَيْهَا وَجَـآءَ عَـلِـيٌّ فَـذَكَـرَتْ لَـهُ ذٰلِكَ فَـذَكَـرَهُ

۱۱۳۲: مُـحـمّد بن جعفر. ابوجعفر. ابن فضيل. فـضيـل. نـافع. ابن عمرؓ روايت كوي دَ هغهٔ بيان دے' چه نبي صلے الله عليه وسلّم دَ بي بي فاطمےؓ كورته تشريف راوړلـو. خـو دننـه ورنهٔ رغے. حضرت عليؓ چه راغے' نو بي بي فـاطـمےؓ هغـهٔ ته بيان اوكهٔ. حضرت عليؓ د نبي صلے الله عليه وسلّم نه تپوس اوكهٔ' نو حضور صلے الله عليـه وسـلّـم ورتـه اوفـرمائيل چه ما دَ فاطمےؓ په دروازه

لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِنِّيْ رَاَيْتُ عَلٰى بَابِهَا سِتْرًا مَّوْشِيًّا فَقَالَ مَالِيْ وَ لِلدُّنْيَا فَاَتَاهَا عَلِيٌّ فَذَكَرَ ذٰلِكَ لَهَا فَقَالَتْ لِيَأْمُرْنِيْ فِيْهِ بِمَا شَآءَ قَالَ تُرْسِلُ بِهٖۤ اِلٰى فُلَانٍ اَهْلِ بَيْتٍ بِهِمْ حَاجَةٌ.

لکيرداره (نقش داره) پرده اوليده. خما ذُ دُنيا ډول سنګار سره څهٔ کار دے. حضرت عليؓ بي بي فاطمےؓ له راغے، او هغے ته ئے دغه حال بيان کهٔ، نو هغے اووے د نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم چه څنګه خوښه وي، ذ هغے باره کښې دے ماته حکم راکړي، حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، فلاني کوروالوته ئے واستوه، چه هغوي ضرورت مند دي.[۱]

۱. په دروازے باندے پرده زوړندول ناجائز نه وُو، ليکن فاطمه بي بيؓ د حضورؐ لور بي بي ده او د حضورؐ هغے ته بے کچه مينه ده، دے د پاره خرګنګ چه حضور عليه السلام په دنيا کښې د هر قسمه آرائش او زيبائش نه جُدا اوسيدل خوښول، هم هغه ئے د لور بي بي د پاره هم خوښول، او په همدے وجه ئے د ناګوارئ اظهار اوفرمائيلو.

۱۱۳۳: حَدَّثَنَا حَجَّاجُ بْنُ مِنْهَالٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عَبْدُ الْمَلِكِ بْنُ مَيْسَرَةَ قَالَ سَمِعْتُ زَيْدَ بْنَ وَهْبٍ عَنْ عَلِيٍّ قَالَ اَهْدٰى اِلَيَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حُلَّةَ سِيَرَآءَ فَلَبِسْتُهَا فَرَاَيْتُ الْغَضَبَ فِيْ وَجْهِهٖ فَشَقَّقْتُهَا بَيْنَ نِسَآئِيْ.

۱۱۳۳: حجاج بن منهال. شعبه. عبدالملک بن ميسره. زيد بن وهب. حضرت عليؓ نه روايت کوي. ذ هغهٔ بيان دے، چه ماته نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم يوه ريښمينه جُبّه راوليږله. ما هغه واغوسته، بيا ما ذ حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم په مخ ذ غصے آثار اوليدل، نو بيا ما هغه اوشلوله او ذ خپلے رشتے په زنانه ؤ م تقسيم کړله.

## باب ۷۴۹: قَبُوْلُ الْهَدِيَّةِ مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ

قَالَ اَبُوْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَاجَرَ اِبْرَاهِيْمُ عَلَيْهِ السَّلَامُ بِسَارَّةَ فَدَخَلَ قَرْيَةً فِيْهَا مَلِكٌ اَوْ جَبَّارٌ فَقَالَ اَعْطُوْهَا اٰجَرَ وَ اُهْدِيَتْ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَاةٌ فِيْهَا سَمٌّ وَّ قَالَ اَبُوْ حُمَيْدٍ اَهْدٰى مَلِكُ اَيْلَةَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَغْلَةً

باب ۷۴۹: ذ مشرکانو هديه قبولول. او ابوهريرهؓ ذ نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم نه نقل کړے دے، چه ابراهيم عليه السلام بي بي ساره سره هجرت او کهٔ. يوے آبادي ته داخل شو، چه هلته يو ظالم بادشاه وو. هغهٔ خپلو خادمانوته اووے چه بي بي هاجره ابراهيم عليه السلام له ورکړئے. او نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم ته يوه زهر کړے چيلئے هديه کښې اوليږلے شوه[۱]. او ابو حميد اووے، چه ملک ايله (ذ ايله بادشاه) نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم ته يوه سپينه قچره تحفه اوليږله. حضور صلے اللّٰه

بَيْضَاءَ وَ كَسَاهُ بُرْدًا وَ كَتَبَ لَهُ بِبَحْرِهِمْ.

علیه وسلّم هغهٔ له یو څادر ورکهٔ' او دَ هغهٔ خائے دریاب کښې څهٔ حصه لیکلے ورکړه.

۱. حضور اکرم صلي الله علیه وسلّم سره په روتړې کښې یو صحابي بشر بن براء رضي الله عنه هم شریک وو. مخکښې حضور اکرمؐ د بدل اخستلو نه منع او کړه ولے چه هغوئ د خپل ذات د پاره بدل اخستل نه خوښول لیکن روستو چه کله د دغے زهرو دَ اثر په وجه د بشرؓ انتقال اوشو نو حضورؐ په قصاص کښې د دغه ښځے د قتل حکم اوکړو' ولے چه دا د اسلام قانون دے.

۱۱۳۴ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا يُونُسُ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا شَيْبَانُ عَنْ قَتَادَةَ حَدَّثَنَا أَنَسٌ قَالَ أُهْدِيَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جُبَّةُ سُنْدُسٍ وَ كَانَ يَنْهٰى عَنِ الْحَرِيْرِ فَعَجِبَ النَّاسُ مِنْهَا فَقَالَ وَالَّذِيْ نَفْسُ مُحَمَّدٍ بِيَدِهٖ لَمَنَادِيْلُ سَعْدِ بْنِ مُعَاذٍ فِي الْجَنَّةِ أَحْسَنُ مِنْ هٰذَا أَوْ قَالَ سَعِيْدٌ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ أَنَسٍؓ إِنَّ أُكَيْدِرَ دُوْمَةَ أَهْدٰى إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۱۱۳۴ : عبداللّٰه بن محمد. یونس بن محمد. شیبان. قتاده. انسؓ نه روایت کوي. دَ هغهٔ بیان دے' چه نبي صلے اللّٰه علیه وسلّم ته یوه ریښمینه جُبه تحفه اولیږلے شوه. او حضور صلے الله علیه وسلّم دَ ریښمو دَ استعمال نه منع فرمائیله. خلق په دے جُبّه ډیر خوشحاله شو' نو حضور صلے الله علیه وسلّم اوفرمائیل' قسم دے په هغه ذات' چه دَ هغه قبضه کښې دَ محمد ساه ده. دَ سعد بن معاذؓ رومالونه به جنت کښې دَ دے نه بهتر وي. او سعید په واسطه دَ قتاده. انسؓ روایت اوکهٔ' چه اکیدر دومه دَ نبي صلے اللّٰه علیه وسلّم خدمت کښې تحفه اولیږله.

۱۱۳۵ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عَبْدِ الْوَهَّابِ حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ الْحَارِثِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ هِشَامِ بْنِ زَيْدٍ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ أَنَّ يَهُوْدِيَّةً أَتَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِشَاةٍ مَسْمُوْمَةٍ فَأَكَلَ مِنْهَا فَجِيْءَ بِهَا فَقِيْلَ أَلَا نَقْتُلُهَا قَالَ لَا فَمَا زِلْتُ أَعْرِفُهَا فِي لَهَوَاتِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

۱۱۳۵ : عبداللّٰه بن عبدالوهاب. خالد بن حارث. شعبه. هشام بن زید. انس بن مالکؓ نه روایت کوي' دَ هغهٔ بیان دے' چه دَ نبي صلے الله علیه وسلّم خدمت کښې یوے یهودنړے ښځے یوه زهر لړلے (وریته یا پخه) چیلئ راوړله. حضور صلے الله علیه وسلّم دَ هغے نه اوخوړله. هغه ښځه دَ نبي صلے الله علیه وسلّم خدمت کښې راوستے شوه (یعني پیش کړے شوه) او حضور صلے الله علیه وسلّم ته اوونیلے شو' چه مونږ دے دا قتل نهٔ کړو؟ حضور صلے اللّٰه علیه وسلّم ورته اوفرمائیل' نه' ما دَ هغے اثر دَ نبي صلے الله علیه وسلّم په

وَسَلَّمَ.

**۱۱۳۶ :** حَدَّثَنَا اَبُو النُّعْمَانِ حَدَّثَنَا مُعْتَمِرُ بْنُ سُلَيْمَانَ عَنْ اَبِيْ عُثْمَانَ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ اَبِيْ بَكْرٍ قَالَ كُنَّا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثَلٰثِيْنَ وَ مِائَةً فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَلْ مَعَ اَحَدٍ مِّنْكُمْ طَعَامٌ فَاِذَا مَعَ رَجُلٍ صَاعٌ مِّنْ طَعَامٍ اَوْ نَحْوُهٗ فَعُجِنَ ثُمَّ جَاءَ رَجُلٌ مُّشْرِكٌ مُّشْعَانٌّ طَوِيْلٌ بِغَنَمٍ يَّسُوْقُهَا فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْعًا اَوْ عَطِيَّةً اَوْ قَالَ اَمْ هِبَةً قَالَ لَا بَلْ بَيْعٌ فَاشْتَرٰى مِنْهُ شَاةً فَصُنِعَتْ وَ اَمَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِسَوَادِ الْبَطْنِ اَنْ يُّشْوٰى وَ اَيْمُ اللّٰهِ مَا فِي الثَّلٰثِيْنَ وَالْمِائَةِ اِلَّا قَدْ حَزَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَهٗ حُزَّةً مِّنْ سَوَادِ بَطْنِهَا اِنْ كَانَ شَاهِدًا اَعْطَاهَا اِيَّاهُ وَ اِنْ كَانَ غَائِبًا خَبَالَهٗ فَجَعَلَ مِنْهَا قَصْعَتَيْنِ فَاَكَلُوْا اَجْمَعُوْنَ وَ شَبِعْنَا فَفَضَلَتِ الْقَصْعَتَانِ فَحَمَلْنَاهُ عَلَى الْبَعِيْرِ اَوْ كَمَا قَالَ.

تالو کښې برابر ليدلو.

**۱۱۳۶ :** ابوالنعمان. معتمر بن سليمان. سليمان. ابـو عثـمان. عبدالرحمٰن بن ابي بكرؓ نه رايت کوي، د هغهٔ بيـان دے، چـه مـونـږ يوسل او ديرش کسان نبي صلے اللّٰه عـلـيـه وسـلّم سره يو سفر کښې ملګري وو. نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، آيا تاسو کښې چاسره خوراک شته، هـغه وخت يو سړي سره يو صاع يا، ذ يو صاع قريب اُوړه وو. هـغـه اُوړهٔ واغـږلے شـو. بيـا يـو مُشـرک دراز قد (دنګ) چه ويښتـه ئـے پـريشـانـه وو ذ چيـلو يوه رمه ئے شړلـه، راغـے. نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم ترے تپوس اوکهٔ، آيـا عـطيـه ده يـا هبـه ده. هغهٔ اووے، نه، بلکه خرخوم ئے. حـضـور صلے اللّٰه عليه وسلّم ذ هغهٔ نه يوه چيلئے واخسته هـغه ذبحه کړے شوه. او نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم دَ، اِينے دَ، وريتولو (کلیجی بھننے کا) حـکـم اوکهٔ. په خدائے م دے قسم وي، پـه يوسل ديرشو کښې يو سړے هم داسے پاتے نهٔ شو، چـه هـغـهٔ تـه حـضـور صلے اللّٰه عليه وسلّم دَ، اِينے يوه يوه ټـکـړه نهٔ وي ورکـړے، چـه مـوجـود وو، هغهٔ ته ئے هلته ورکـړه، او کـوم چه موجود نهٔ وو. دَ هغوي حصّه ئے پټه کيښـوده. بيـا نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم دَ هغے غوښے دوه کـاسـے جوړے کړے. چه هغے کښې ټولو خلقو خوراک اوکـهٔ، او، ښـهٔ پـه مـړه خيـټـه ئـے اوخـوړلـه. بلکه دواړو کـاسـونـه څـهٔ غـوښـه بـچ هم شوله، چه هغه مونږ په اوښ کيښودله، يا دغه شان څهٔ الفاظ راوي بيان کړے دي.

**باب ۷۵۰ :** اَلْهَدِيَّةُ لِلْمُشْرِكِيْنَ وَ قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى لَا يَنْهٰكُمُ اللّٰهُ عَنِ الَّذِيْنَ لَمْ يُقَاتِلُوْكُمْ فِي الدِّيْنِ وَلَمْ

**باب ۷۵۰ :** مشر کانو ته دَ، هديے ورکولو بيان۔ او دَ، اللّٰه تعالي قول، چه چا تاسره دين کښې جګړه اونهٔ کړلـه، اونـه ئـے تاسو دَ، کورونونه اوښکلے، هغوئ سره

يُخْرِجُوْكُمْ مِّنْ دِيَارِكُمْ اَنْ تَبَرُّوْهُمْ وَتُقْسِطُوْا اِلَيْهِمْ.

احسان كولو او انصاف كولو نه الله تعالي تاسو نه منع كوي.

۱. خرنګ چه د مشركانو يعني غير مسلمو هديه قبلول جائز دي دغه شان هغوئ له په هديه وركولو كښې هم څه حرج نيشته. البته كه چرې څوك غير مسلم په دارالحرب كښې اوسيږي او د كوم ملك چه مغه اوسيدونكے دے، د مسلمانان ملك تعلق هغه سره غير دوستانه وي يا د جنګ غوندې حالات چليږي نو د هيڅ مسلمان د پاره درست نه دي چه هغوئ څه داسې هديه د دارالحرب غير مسلمو اوسيدونكو له وركړي كومه چه په جنګ وغيره كښې پكاريدلے شي.

۱۱۳۷ : حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ مَخْلَدٍ حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ بِلَالٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ دِيْنَارٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ رَاٰى عُمَرُ حُلَّةً عَلٰى رَجُلٍ تُبَاعَ فَقَالَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ابْتَعْ هٰذِهِ الْحُلَّةَ تَلْبَسْهَا يَوْمَ الْجُمُعَةِ وَ اِذَا جَآءَكَ الْوَفْدُ فَقَالَ اِنَّمَا يَلْبَسُ هٰذَا مَنْ لَّا خَلَقَ لَهُ فِي الْاٰخِرَةِ فَاُتِيَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْهَا بِحُلَلٍ فَاَرْسَلَ اِلٰى عُمَرَ مِنْهَا بِحُلَّةٍ فَقَالَ عُمَرُ كَيْفَ اَلْبَسُهَا وَقَدْ قُلْتَ فِيْهَا مَا قُلْتَ قَالَ اِنِّيْ لَمْ اَكْسُكَهَا لِتَلْبَسَهَا تَبِيْعُهَا اَوْ تَكْسُوْهَا فَاَرْسَلَ بِهَا عُمَرُ اِلٰى اَخٍ لَّهُ مِنْ اَهْلِ مَكَّةَ قَبْلَ اَنْ يُّسْلِمَ.

۱۱۳۷ : خالد بن محمد. سليمان بن بلال. عبدالله بن دينار. ابن عمرؓ نه روايت كوي، د هغه بيان دے، چه حضرت عمرؓ يو سړے اوليد، چه ريښمينه جُبَه ئے خرخوله، نو نبي صلے الله عليه وسلّم ته ئے عرض اوكړو، چه دغه جُبَه (حُلَه) واخلي، چه د جمعې په ورځ او په كومه ورځ چه وفد راځي، اغندي ئے. حضور صلے الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل، دا خو هغه څوك اغندي، چه د هغه آخرت كښې څه حصه نه وي. بيا رسول الله صلے الله عليه وسلّم ته څو جُبې (حُلې) راوړے شوے. هغې كښې يوه حُله حضور صلے الله عليه وسلّم، حضرت عمرؓ ته اوليږله. حضرت عمرؓ اووے، زه دا څنګه واغندم، هر كله چه تاسو دَ دے متعلق داسې فرمائيلے دي، نو حضور صلے الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل، ماتاته اغوستو د پاره نه ده دركړے. بلكه دا خرڅه كړه، يا چاته ئے واغندوه، نو هغه حُله (جُبَه) حضرت عمرؓ خپل يو ورور ته چه مكه معظمه كښې وو، او لا، مسلمان شوے نه وو، اوليږله.

۱۱۳۸ : حَدَّثَنَا عُبَيْدُ بْنُ اِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا اَبُوْ اُسَامَةَ عَنْ هِشَامٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ اَسْمَآءَ بِنْتِ اَبِيْ بَكْرٍ

۱۱۳۸ : عبيد بن اسمٰعيل. ابواسامه. هشام. عروه. اسماء بنت ابي بكرؓ نه روايت كوي. د اسماء بيان دے، چه ماته خما مور، د رسول الله صلے الله عليه

قَالَتْ قَدِمَتْ عَلَيَّ أُمِّيْ وَهِيَ مُشْرِكَةٌ فِيْ عَهْدِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاسْتَفْتَيْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قُلْتُ وَهِيَ رَاغِبَةٌ أَفَاصِلُ أُمِّيْ قَالَ نَعَمْ صِلِيْ أُمَّكِ.

وسلّم په زمانه کښې راغله. او هغه مشرکه وه١، ما د رسول الله صلے الله عليه وسلّم نه تپوس اوکۀ، او عرض م اوکۀ، هغه محبت سره ماله راغلے ده، نو آيا زۀ خپلے مور سره (ښۀ) سلوک اوکړم، حضور صلے الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل، او، خپلے مور سره (ښۀ) سلوک اوکه).

١. حضرت اسماء رضي الله عنها ځوک چه د ابوبکر رضي الله عنه لور بي بي ده د هغے دَ والد نوم فتيله بنت عبدالعزّي وو. حضرت ابوبکر رضي الله عنه هغې له د جاهليت په زمانه کښې طلاق ورکړے وو او هغه مشرکه وه. حضرت اسماء له ئے زبيب (وسکے) غوړي وغيره راوړي وو. روايتونو کښې دي چه اسماء رضي الله عنها د هغے هديه اخستلو نه انکار کړے وو او هغے ته ئے خپل کورته د راتللو اجازت هم نه وو ورکړے. بيا چه کله هغے د حضور اکرم صلي الله عليه وسلّم نه تپوس اوکړو نو حضورﷺ ورته خپلے مور سره د صله رحمئ او ښۀ معاملے کولو حکم ورکړے وو. د هغے اسلام راوړل ثابت نه دي.

## باب ۱۵۷: لَا يَحِلُّ لِأَحَدٍ أَنْ يَرْجِعَ فِيْ هِبَتِهٖ وَ صَدَقَتِهٖ.

باب ۱۵۷: چاله جائز نۀ دي چه خپلے هبه او صدقه کښې رجوع اوکړي (يعني واپس ئے واخلي).

۱۱۳۹: حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيْمَ حَدَّثَنَا هِشَامٌ وَّ شُعْبَةُ قَالَ حَدَّثَنَا قَتَادَةُ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍؓ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْعَائِدُ فِيْ هِبَتِهٖ كَالْعَائِدِ فِيْ قَيْئِهٖ.

۱۱۳۹: مسلم بن ابراهيم. هشام و شعبه. قتاده. سعيد بن مسيب. حضرت ابن عباسؓ نه روايت کوي. دَ هغۀ بيان دے. نبي صلے الله عليه وسلّم اوفرمائيل، هبه کونکے او هغه واپس اخستونکے داسے دے، لکه چه قے اوکړي او واپس ئے اوخوري.

۱۱۴۰: حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ الْمُبَارَكِ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ حَدَّثَنَا أَيُّوْبُ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍؓ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيْسَ لَنَا مَثَلُ السَّوْءِ الَّذِيْ يَعُوْدُ فِيْ هِبَتِهٖ كَالْكَلْبِ يَرْجِعُ فِيْ قَيْئِهٖ.

۱۱۴۰: عبدالرحمٰن بن مُبارک. عبدالوارث. ايوب. عکرمه. ابن عباسؓ نه روايت کوي، نبي صلے الله عليه وسلّم اوفرمائيل چه خراب مثال مونږ دَ پاره مُناسب نۀ دے، ځوک چه هبه اوکړي او واپس ئے واخلي نو هغه دَ سپي په شان دے چه قے اوکړي او بيائے اوخوري.

۱۱۴۱ : حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ قَزَعَةَ حَدَّثَنَا مَالِكٌ عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ عَنْ أَبِيهِ سَمِعْتُ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ يَقُولُ حَمَلْتُ عَلٰى فَرَسٍ لِي فِي سَبِيلِ اللّٰهِ فَأَضَاعَهُ الَّذِي كَانَ عِنْدَهُ فَأَرَدْتُ أَنْ أَشْتَرِيَهُ مِنْهُ وَ ظَنَنْتُ أَنَّهُ بَائِعُهُ بِرُخْصٍ فَسَأَلْتُ عَنْ ذٰلِكَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ لَا تَشْتَرِهِ وَ إِنْ أَعْطَاكَهُ بِدِرْهَمٍ وَاحِدٍ فَإِنَّ الْعَائِدَ فِي صَدَقَتِهِ كَالْكَلْبِ يَعُودُ فِي قَيْئِهِ.

۱۱۴۱ : يحيي بن قزعه. مالک. زيد بن اسلم. اسلم. حضرت عمرؓ بن خطاب نه روايت کوي. ذ هغهٔ بيان دے' چه ما يو آس يو سړي ته ذ خدائے په لار کښ سورلي ذ پاره ورکړلو' چا سره چه هغه آس وو' هغه ئے خراب کړلو. نو ما اوغوښتل' چه هغه ذ هغهٔ نه (په بيع) واخلم. او ما گمان اوکهٔ' چه هغه به ئے ارزان خرڅ کړي. ما په دے حقله ذ' رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم نه تپوس اوکهٔ' نو حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل' چه دا' مه آخله' اګر کهٔ تاله ئے په يو درهم (روپے) درکړي' ځکه چه صدقه ورکونکے او بيا ذ هغے واپس آخستونکے ذ هغے سپي په شان دے' چه قے اوکړي' او بيا' ئے اوخوري.

## باب ۷۵۲ :

(دا باب عنوان نهٔ لري).

۱۱۴۲ : حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسٰى أَخْبَرَنَا هِشَامُ بْنُ يُوسُفَ أَنَّ ابْنَ جُرَيْجٍ أَخْبَرَهُمْ قَالَ أَخْبَرَنِي عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ أَنَّ بَنِي صُهَيْبٍ مَوْلٰى ابْنِ جُدْعَانَ ادَّعَوْا بَيْتَيْنِ وَ حُجْرَةً أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَعْطٰى ذٰلِكَ صُهَيْبًا فَقَالَ مَرْوَانُ مَنْ يَشْهَدُ لَكُمَا عَلٰى ذٰلِكَ قَالُوا ابْنُ عُمَرَ فَدَعَاهُ فَشَهِدَ لَأَعْطٰى رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صُهَيْبًا بَيْتَيْنِ وَ حُجْرَةً فَقَضٰى مَرْوَانُ بِشَهَادَتِهِ لَهُمْ.

۱۱۴۲ : ابراهيم بن موسٰي. هشام بن يوسف. ابن جريج. عبداللّٰه بن عبيداللّٰه بن ابي مليکه نه روايت کوي' چه بني صهيب چه ذ ابن جدعان غلام وو' ذ' دوو مکانونو او يوے حجرے متعلق دعويٰ اوکړه' چه رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلّم صهيب له ورکړے وو. مروان تپوس اوکهٔ' ذ دے متعلق به ستا په حق کښ څوک ګواهي اوکړي. هغے خلقو عرض اوکه. ابن عمرؓ ګواه دے. مروان هغه راوغوښتلو' نو هغهٔ ګواهي اوکړله چه رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلّم صهيب له دوه مکانه او يوه حجره ورکړے وه. نو مروان ذ هغهٔ ذ ګواهي په بنا ذ هغے خلقو په حق کښ فيصله ورکړه.

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ط

**بـاب ۷۵۳: مَـا قِيْـلَ فِـى الْعُـمْرٰى وَالرُّقْبٰى اَعْمَرْتُهُ الدَّارَ فَهِيَ عُـمْرٰى جَعَلْتُهَا لَهٗ وَاسْتَعْمَرَكُمْ فِيْهَا جَعَلَكُمْ عُمَّارًا.**

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ط

**باب ۷۵۳: دَ عـمـريٰ او رقبٰي بيان[۱]**. اعـمـر ته الـدار: مـعـنـي دي، مـا تـاتـه عـمر دَ پاره مكان دركړلو. استعـمـركـم فيهـا: معني دي، هغه تهٔ په زمكه كښې آباد كړے.

۱. عـمـريٰ او رقبٰي دا دواړه مـعـامـلـے په جاهليت كښې رائج وے. يو سړي به بل ته اووے چه تر څو پورے تـه ژوندے يے نو دا كور ستا دے. [illegible] قسمه هبه گنړلے كيږي او دَ وينا مطابق به ئے تهول عمر دويم سړے استعمالولے شي. د رقبٰي صورت دا وو چه يو سړي به اووے: دا خما كـور دے كـه چـرے زه مخكښې مړ شوم نو ته ئے واخله ليكن كه چرے ته خما نه مخكښې مړ شوے نو بيا به مـا سره پاتے وي. د فـقـهاؤ په نزد په دے باب كښې تفصيلات دي. د حضور اكرم صلي الله عليه وسلّم په زمـانـه كـښې چه د كوم مفهوم د پاره ددے الفاظو استعمال كيدلو، ضروري نه ده چه روستو هم بعينهٖ هم هغه مفهوم ددے پاتے وي. غالبًا د امامانو د اختلاف يوه وجه دا هم ده.

**۱۱۴۳**: حَـدَّثَـنَـا اَبُـوْ نُـعَيْمٍ حَـدَّثَـنَـا شَيْبَـانُ عَنْ يَحْيٰي عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ عَنْ جَـابِرٍ قَالَ قَضَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْعُمْرٰى اَنَّهَا لِمَنْ وُّهِبَتْ لَهٗ.

**۱۱۴۳**: ابـونـعـيـم. شيـبـان. يـحـيٰـي. ابوسلـمـه. جـابـرؓ نـــه روايـــت كـــوي، چـــه نبـــي صـلـــے اللّـــه عـلـيـــه وسـلّـم دَ عـمـريٰ بـاره كـښې فـيـصـلـه اوكـړه، چـه دا، دَ هـغـے چا ده، چـه چاتـه وركـړے شوے ده.

**۱۱۴۴**: حَـدَّثَـنَـا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ حَدَّثَنَا قَتَادَةُ قَالَ حَـدَّثَـنِـي النَّضْرُ بْنُ اَنَسٍ عَنْ بَشِيْرِ بْنِ نَهِيْكٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الْعُمْرٰى جَائِزَةٌ وَقَالَ عَطَاءٌ حَدَّثَنِيْ جَابِرٌ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَهٗ.

**۱۱۴۴**: حـفـص بـن عـمـر. هـمـام. قتـاده. نـضـر بـن انـس. بشيـر بـن نهيـك. حـضـرت ابـوهـريـرهؓ نـــه روايـــت دے، دَ هـغـهٔ بيـان دے، نبـي صـلـے اللّـه عـلـيـه وسـلّـم اوفـرمـائيـل، چـه عمـريٰ جـائـز ده. او عـطـاء اووے، چـه مـاتـه حضـرت جـابـرؓ د نبي صـلـے اللّـه عـلـيـه وسلّم نـه دغسے نقل كړے دے.

**بَابٌ ۷۵۴: مَنِ اسْتَعَارَ مِنَ النَّاسِ الْفَرَسَ.**

**باب ۷۵۴**: دَ هغے سړي بيان چه دَ چا نه اَس مستعار واخلي.

**۱۱۴۵**: حَـدَّثَـنَـا اٰدَمُ

**۱۱۴۵**: آدمؒ. شعبـه. قتـاده. انسؓ نـه روايـت

حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ قَتَادَةَ قَالَ سَمِعْتُ اَنَسًا يَقُوْلُ كَانَ فَزَعٌ بِالْمَدِيْنَةِ فَاسْتَعَارَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَرَسًا مِنْ اَبِيْ طَلْحَةَ يُقَالُ لَهُ مَنْدُوْبٌ فَرَكِبَ فَلَمَّا رَجَعَ قَالَ مَا رَاَيْنَا مِنْ شَيْءٍ وَّ اِنْ وَّجَدْنَاهُ لَبَحْرًا.

كوي. هغه وئیلے چه یو خل مدینه کښ د ذشمن د حملے خوف شو نو نبي صلے الله علیه وسلّم د ابوطلحه نه یو اس مستعار واخست چه د هغه یوه مندوب وو. حضور صلے الله علیه وسلّم به هغے سور شولو. کوم وخت چه واپس راغے نو وے فرمائیل موبږ ته هیڅ د خطرے خبره په نظر رانغله او موبږ دا اس داسے بیامُند چه دریاب دے (یعني ډیر تیز رفتاره دے).

ف: مستعار: قرض غوښتل. غوښے شوے. د یو څو ورځو د پاره په قرض پور اخستے یا غوښے شوے.

بــاب ۷۵۵: اَلْاِسْتِعَارَةِ لِلْعَرُوْسِ عِنْدَ الْبِنَاءِ.

باب ۷۵۵: ناوے (دُلهن) د پاره د زفاف په وخت د څه ځیز د مستعار اخستو بیان.

ف: په ورمبنے شپه ناوے سره کوروالے کول.

۱۱۴۶: حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ ابْنُ اَيْمَنَ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبِيْ قَالَ دَخَلْتُ عَلٰى عَآئِشَةَ وَ عَلَيْهَا دِرْعُ قِطْرٍ ثَمَنُ خَمْسَةِ دَرَاهِمَ فَقَالَتْ اِرْفَعْ بَصَرَكَ اِلٰى جَارِيَتِيْ اُنْظُرْ اِلَيْهَا فَاِنَّهَا تُزْهٰى اَنْ تَلْبَسَهُ فِي الْبَيْتِ وَقَدْ كَانَ لِيْ مِنْهُنَّ دِرْعٌ عَلٰى عَهْدِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَمَا كَانَتِ امْرَاَةٌ تُقَيَّنُ بِالْمَدِيْنَةِ اِلَّا اَرْسَلَتْ اِلَيَّ تَسْتَعِيْرُهُ.

۱۱۴۶: ابونعیم. عبدالواحد بن ایمن. ایمن نه روایت کوي. د هغه بیان دے، چه زهٔ د بي بي عائشے په خدمت کښ حاضر شوم، نو هغے د قطر یو قمیص اخستے وو، چه د هغے قیمت پنځه درهمه وو. هغے ماته اووے، چه خما دے وینزے ته خو او ګوره، چه کور کښ د دے کپړے د اغوستلو نه انکار کوي، حالانکه د رسول الله صلے الله علیه وسلّم په زمانه کښ ماسره هم داسے قمیص وو. مدینه کښ به چه کله (د واده په وخت) د یوے ښځے د خائسته کولو ضرورت شو، نو ماته به ئے ځوک راولیږل او دا به ئے غوښتلو[۱].

۱. نن صبا هم دا رواج شته چه غریب او محتاج خلق د خپل واده ښادئ په موقعو کښ ډیر ځیزونه سوالي اخلي، ولے چه هغوئ سره دومره پیسے نه وي چه په بیعه ئے واخلي. په عربو کښ هم ددے رواج وو. عائشهٔ دا ښودل غواړي چه اوس په خپل کور کښ د کوم قسم جامو نه انکار کیږي د رسول الله صلي الله علیه وسلّم په زمانه کښ به همدغه کپړه د ودونو په موقع سوالي اخستے کیده.

بــاب ۷۵۶: فَضْلِ الْمَنِيْحَةِ.

باب ۷۵۶: د منیحه د فضیلت بیان[۲]. (منیحه: سحر ماښام پئے ورکونکے اوښه یا چیلئے).

۱. منيحه: پۀ وركونكي اوښې يا بل داسې څناور ته ويلې كيږي كوم چه بل چا ته څوك د هديې په طور باندې د هغې پۀ څكلو د پاره ور كړي.

۱۱۴۷: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا مَالِكٌ عَنْ اَبِي الزِّنَادِ عَنِ الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِي هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ نِعْمَ الْمَنِيْحَةُ اللِّقْحَةُ الصَّفِيُّ مِنْحَةً وَّالشَّاةُ الصَّفِيُّ تَغْدُوْ بِاِنَاءٍ وَّ تَرُوْحُ بِاِنَاءٍ.

۱۱۴۷: يحيى بن بكير. مالك. ابوالزناد. اعرج. حضرت ابوهريرةؓ نه روايت كوي. رسول الله صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل، پنې وركونكې صافه اوښه او، صافه چيلې چه سحر ماښام دَ پيو لوښې ډكوي، ښۀ ښۀ عطيه ده.

۱۱۴۸: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ وَ اِسْمٰعِيْلُ عَنْ مَّالِكٍ قَالَ نِعْمَ الصَّدَقَةُ.

۱۱۴۸: عبدالله بن يُوسف او اسمٰعيل په واسطه دَ مالك (نعيم المنيحه پۀ ځائې) نعم الصدقه (ښۀ ښۀ صدقه ده[۱]) الفاظ روايت كوي.

۱. دا دِ ملحوظ وي چه منيحه څمونږ دَ عام او مشهور مفهوم په اعتبار سره صدقه نه ده بلكه دا د حسن معاملت او صله رحمئ باب سره تعلق لري. په حديث كښ د صدقې مفهوم ډير عام دې. تاسو ددې نه مخكښ لوستي دي چه خوږې خبرې ته هم صدقه ويلې شوي دي او هر مناسب او ښۀ طرز عمل ته صدقه ويلې شوي دي.

۱۱۴۹: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا ابْنُ وَهْبٍ حَدَّثَنَا يُوْنُسُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ لَمَّا قَدِمَ الْمُهَاجِرُوْنَ الْمَدِيْنَةَ مِنْ مَّكَّةَ وَ لَيْسَ بِاَيْدِيْهِمْ يَغْنِيْ شَيْئًا وَّ كَانَتِ الْاَنْصَارُ اَهْلَ الْاَرْضِ وَالْعَقَارِ فَقَاسَمَهُمُ الْاَنْصَارُ عَلٰى اَنْ يُّعْطُوْهُمْ ثِمَارَ اَمْوَالِهِمْ كُلَّ عَامٍ وَّيَكْفُوْهُمُ الْعَمَلَ وَالْمُوْنَةَ وَ كَانَتْ اُمُّهٗ اُمُّ اَنَسٍ اُمُّ سُلَيْمٍ كَانَتْ اُمَّ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِيْ طَلْحَةَ فَكَانَتْ

۱۱۴۹: عبدالله بن يوسف. ابن وهب. يونس. ابن شهاب. انس بن مالك نه روايت كوي. دَ هغۀ بيان دې، كوم وخت چه مهاجرين دَ مكې نه مدينې ته راغلل، نو هغوي سره هيڅ نۀ وو. او انصار، دَ زمكې او جائيداد مالكان وو. انصارو زمكه او جائيداد مهاجرينُ كښ په دې شرط تقسيم كړل، چه هر كال به هغوي له ميوه او پيداوار وركوي، او محنت او مزدوري به مهاجرين كوي. او دَ، انسؓ مور يعني اُم سليمؓ چه دَ عبدالله بن ابي طلحةؓ هم مور، وه، هغې رسول الله صلى الله عليه وسلم له دَ قجورو يو څو اُونې وركړې، رسول الله صلى الله عليه

أَعْطَتْ أُمُّ أَنَسٍ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عِذَاقًا فَأَعْطَاهُنَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أُمَّ أَيْمَنَ مَوْلَاتَهُ أُمَّ أُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ قَالَ ابْنُ شِهَابٍ فَأَخْبَرَنِيْ أَنَسُ بْنُ مَالِكٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمَّا فَرَغَ مِنْ قَتْلِ أَهْلِ خَيْبَرَ فَانْصَرَفَ إِلَى الْمَدِيْنَةِ رَدَّ الْمُهَاجِرُوْنَ إِلَى الْأَنْصَارِ مَنَائِحَهُمُ الَّتِيْ كَانُوْا مَنَحُوْهُمْ مِّنْ ثِمَارِهِمْ فَرَدَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أُمَّ أَيْمَنَ مَكَانَهُنَّ مِنْ حَائِطِهِ وَقَالَ أَحْمَدُ بْنُ شَبِيْبٍ أَخْبَرَنَا أَبِيْ عَنْ يُوْنُسَ بِهٰذَا وَقَالَ مَكَانَهُنَّ مِنْ خَالِصِهِ.

وسلّم هغه اُونې خپلې آزاد كړه وينځې اُم ايمن ته چه د اسامه بن زيد مور وه ورکړلې. د ابن شهاب بيان دے ماته انس بن مالک بيان او كړ كوم وخت چه حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم د خيبر والو د قتل نه فارغ شو. او مدينې ته واپس شو. نو مهاجرينو د انصارو ورکړے جائيدادونه هغوي ته واپس كړل. رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلّم د هغه مورته د هغې د قجورو اُونې واپس كړے او رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلّم اُم ايمن ته د هغې په بدله كښې د خپل باغ څه اُونې ورکړلې. او د احمد بن شبيب بيان دے چه ماته خما پلار په واسطه د انسؓ دا حديث روايت كړه. دے كښې (مكانهن من حائطه په ځائے) مكانهن من خالصه الفاظ بيان كړے دي.

**١١٥٠** : حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا عِيْسَى بْنُ يُوْنُسَ حَدَّثَنَا الْأَوْزَاعِيُّ عَنْ حَسَّانَ بْنِ عَطِيَّةَ عَنْ أَبِيْ كَبْشَةَ السَّلُوْلِيِّ سَمِعْتُ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عَمْرٍوؓ يَقُوْلُ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَرْبَعُوْنَ خَصْلَةً أَعْلَاهُنَّ مَنِيْحَةُ الْعَنْزِ مَا مِنْ عَامِلٍ يَعْمَلُ بِخَصْلَةٍ مِنْهَا رَجَاءَ ثَوَابِهَا وَتَصْدِيْقَ مَوْعُوْدِهَا إِلَّا أَدْخَلَهُ اللّٰهُ بِهَا الْجَنَّةَ قَالَ حَسَّانُ فَعَدَدْنَا مَا دُوْنَ مَنِيْحَةِ الْعَنْزِ مِنْ رَدِّ السَّلَامِ وَتَشْمِيْتِ الْعَاطِسِ وَإِمَاطَةِ

**١١٥٠** : مُسدّد. عيسى بن يُونس. اوزاعي. حسّان بن عطيه. ابو كبشه سلولي. عبداللّٰه بن عمرؓ نه روايت كوي. د هغه بيان دے رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلّم فرمائيلي دي خلويښت خصلتونه دي هغې كښې بهتر د چيلو چاته عطا كول دي. كوم سړے چه دے كښې په يو خصلت هم د ثواب په غرض او د اللّٰه وعده د رينبتيا ګنړلو په غرض عمل او كړي نو اللّٰه به هغه جنت كښې داخل كړي. د حسّان بيان دے چه مونږ د چيلے د عطيې نه علاوه كوم خصلتونه شمار كړے شو هغه دا دي. (١) د سلام جواب وركول (٢) د آنږموشي جواب وركول (٣) لارے نه د تكليف وركونكو څيزونو لرے كول وغيره وغيره. مونږ د پنځلسو خصلتونو نه زيات

الْاَذٰى عَنِ الطَّرِيْقِ وَ نَحْوِهٖ فَمَا اسْتَطَعْنَا اَنْ نَبْلُغَ خَمْسَ عَشْرَةَ خَصْلَةً.

شمار نهٔ کړې شو. (الله پاک دې په دې ټولو خصلتونو خمونږ د ټولو عمل نصیب کړي. اللّٰهم آمین.

**١١٥١ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوْسُفَ حَدَّثَنَا الْاَوْزَاعِيُّ قَالَ حَدَّثَنِيْ عَطَآءٌ عَنْ جَابِرٍؓ قَالَ كَانَتْ لِرِجَالٍ مِّنَّا فُضُوْلُ اَرَضِيْنَ فَقَالُوْا نُؤَاجِرُهَا بِالثُّلُثِ وَالرُّبُعِ وَالنِّصْفِ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ كَانَتْ لَهٗ اَرْضٌ فَلْيَزْرَعْهَا اَوْ لِيَمْنَحْهَا اَخَاهُ فَاِنْ اَبٰى فَلْيُمْسِكْ اَرْضَهٗ وَ قَالَ مُحَمَّدُ بْنُ يُوْسُفَ حَدَّثَنَا الْاَوْزَاعِيُّ حَدَّثَنِي الزُّهْرِيُّ حَدَّثَنِيْ عَطَآءُ بْنُ يَزِيْدَ حَدَّثَنِيْ اَبُوْ سَعِيْدٍ قَالَ جَآءَ اَعْرَابِيٌّ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَاَلَهٗ عَنِ الْهِجْرَةِ فَقَالَ وَيْحَكَ اِنَّ الْهِجْرَةَ شَاْنُهَا شَدِيْدٌ فَهَلْ لَكَ مِنْ اِبِلٍ قَالَ نَعَمْ قَالَ فَتُعْطِيْ صَدَقَتَهَا قَالَ نَعَمْ قَالَ فَهَلْ تَمْنَحُ مِنْهَا شَيْئًا قَالَ نَعَمْ قَالَ فَتَحْلُبُهَا يَوْمَ وِرْدِهَا قَالَ نَعَمْ قَالَ فَاعْمَلْ مِنْ وَّرَآءِ الْبِحَارِ فَاِنَّ اللّٰهَ لَنْ يَّتِرَكَ مِنْ عَمَلِكَ شَيْئًا.**

١١٥١ : محمد بن یوسف. اوزاعي. عطاء. جابر نه روایت کوي. د هغهٔ بیان دې، چه مونږ کښې بعضو خلقو سره د ضرورت نه زیاتي زمکې وې، نو هغې خلقو اووې، چه مونږ به دا زمکې په دریمه، څلورمه او په نیمه حصه پیداوار ورکوو، نبي صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل، چاسره چه زمکه وي، نو هغه دې په خپله کاشت کوي، یا خپل ورور له دې ورکړي، او کهٔ داسې نهٔ کوي، نو زمکه دې دغسې پریږدي، او محمد بن یوسف په واسطه د، اوزاعي، زهري. عطاء بن یزید. ابوسعید بیان اوکهٔ، چه یو بانډیسې (اعرابي) د نبي صلی الله علیه وسلم په خدمت کښې حاضر شو، او د هجرت متعلق ئې تپوس اوکهٔ، نو حضور صلی الله علیه وسلم ورته اوفرمائیل په تا افسوس دې، د هجرت معامله خو ډیره ګرانه ده. آیا تاسره څهٔ اوښ (یا اوښه) شته. هغهٔ اووې، او، حضور صلی الله علیه وسلم ترې تپوس اوکهٔ، آیا ته د هغې صدقه ورکوې. هغهٔ اووې، او، حضور صلی الله علیه وسلم ورته اوفرمائیل ته د هغې نه څهٔ عطیه ورکوې، هغهٔ اووې، او، بیا ترې حضور صلی الله علیه وسلم تپوس اوکهٔ، آیا ته هغه د، اوبو څکولو په وخت لشې، هغهٔ اووې، او. حضور صلی الله علیه وسلم ورته اوفرمائیل، ته د، دریاب هغې پله عمل کوه، الله به ستا د عمل نه هیڅ هم ضائع نهٔ کړي.

**١١٥٢ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ**

١١٥٢ : محمد بن بشار. عبدالوهاب.

بَشَّارٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ حَدَّثَنَا أَيُّوْبُ عَنْ عَمْرٍو عَنْ طَاوُسٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ أَعْلَمُهُمْ بِذَاكَ يَعْنِي ابْنَ عَبَّاسٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَرَجَ إِلَى أَرْضٍ تَهْتَزُّ زَرْعًا فَقَالَ لِمَنْ هٰذِهٖ فَقَالُوْا اكْتَرَاهَا فُلَانٌ فَقَالَ أَمَا إِنَّهُ لَوْ مَنَحَهَا إِيَّاهُ كَانَ خَيْرًا لَهُ مِنْ أَنْ يَأْخُذَ عَلَيْهَا أَجْرًا مَعْلُوْمًا.

ايوب. عمرو. طاؤس. ابن عباسؓ نه روايت كوي. نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم په يوه زمكه تير شولو چه هلته فصل ښه سمسور وو. حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم تپوس اوكړ. دا د چا دے. خلقو عرض اوكړ. فلاني دا په كيرايه اخستے دے. حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل. كاش چه هغه دا د عطيے په طور وركړے وے، نو د مقرره اُجرت اخستو نه به ورله زياته بهتره وے.

## باب ٧٥٧: إِذَا قَالَ أَخْدَمْتُكَ هٰذِهِ الْجَارِيَةَ عَلٰى مَا يَتَعَارَفُ النَّاسُ فَهُوَ جَائِزٌ وَ قَالَ بَعْضُ النَّاسِ هٰذِهٖ عَارِيَةٌ وَ إِنْ قَالَ كَسَوْتُكَ هٰذَا الثَّوْبَ فَهُوَ هِبَةٌ.

## باب ٧٥٧: كهٔ يو سړے دا اووائي چه ما تاله دا وينزه خدمت ذ پاره دركړه څنګه چه رواج وي، نو جائز دي. او بعضو خلقو وئيلے دي چه دا عاريت دے. او كهٔ څوک سړے اووائي، ما تاله دا كپړه اغوستو ذ پاره دركړه، نو دا هبه ده[1].

[1] يعني د دے قسمه معاملاتو فيصله د عام عُرف مطابق كيږي. وينځه چاله خدمت د پاره ذ وركولو مفهوم به په هغه زمانه كښ عاريت اخستے كيدو. او جامه اغوستلو د پاره وركولونه مراد به هبه وه. دے د پاره د همدے مطابق به فيصله كيږي.

١١٥٣: حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ حَدَّثَنَا أَبُو الزِّنَادِ عَنِ الْأَعْرَجِ عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَؓ أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ هَاجَرَ إِبْرَاهِيْمُ بِسَارَةَ فَأَعْطَوْهَا آجَرَ فَرَجَعَتْ فَقَالَتْ أَشْعَرْتَ أَنَّ اللّٰهَ كَبَتَ الْكَافِرَ وَ أَخْدَمَ وَلِيْدَةً وَ قَالَ ابْنُ سِيْرِيْنَ عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَخْدَمَهَا هَاجَرَ.

١١٥٣: ابواليمان. شعيب. ابوالزناد. اعراج. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت كوي، رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، حضرت ابراهيم عليه السّلام بي بي سارهؓ هجرت اوكړه، نو خلقو ساره له هاجره وينزه وركړله، هغه واپس شوله. اووئيلے آيا تاته معلومه ده، چه اللّٰه (هغه) كافر ذليل كړلو. او هغه يوه وينزه خدمت ذ پاره راكړه. او ابن سيرين، ابوهريرهؓ نه او هغه ذ نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم نه روايت كوي، اودے كښ اخدمها هاجر، الفاظ بيان كړے دي.

**باب ۷۵۸: إِذَا حَمَلَ رَجُلٌ عَلٰى فَرَسٍ فَهُوَ كَالْعُمْرٰى وَالصَّدَقَةِ وَقَالَ بَعْضُ النَّاسِ لَهُ أَنْ يَرْجِعَ فِيهَا.**

**۱۱۵۴: حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِيُّ أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ قَالَ سَمِعْتُ مَالِكًا يَسْأَلُ زَيْدَ بْنَ أَسْلَمَ قَالَ سَمِعْتُ أَبِيْ يَقُولُ قَالَ عُمَرُ حَمَلْتُ عَلٰى فَرَسٍ فِيْ سَبِيلِ اللّٰهِ فَرَأَيْتُهُ يُبَاعُ فَسَأَلْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ لَا تَشْتَرِ وَلَا تَعُدْ فِيْ صَدَقَتِكَ.**

باب ۷۵۸: كهٔ يو سړے چاله اس سورلي د پاره وركړي، نو هغه دَ عمريٰ او صدقه په شان ده. او بعضو خلقو ونيلے دي، چه هغهٔ ته ديكښے دَ رجوع اختيار دے.

۱۱۵۴: حميدي. سفيان. مالک. زيد بن اسلم. اسلم. دَ حضرت عمرؓ قول نقل كوي، هغهٔ اووے، ما يو اس دَ اللّٰه په لار كښ وركړلو، بيا ما اوليدل، چه هغه خرخيږي، ما دَ رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلّم نه دَ هغے متعلق تپوس اوكه، نو حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، مه دا په بيع اخله، او مه خپله صدقه واپس كوه.

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

# كِتَابُ الشَّهَادَاتِ

# (دَ گواهو بيان)

**باب ۷۵۹: مَا جَاءَ فِي الْبَيِّنَةِ عَلَى الْمُدَّعِيْ يَا أَيُّهَا الَّذِيْنَ آمَنُوْا إِذَا تَدَايَنْتُمْ بِدَيْنٍ إِلٰى أَجَلٍ مُّسَمًّى فَاكْتُبُوْهُ وَلْيَكْتُبْ بَيْنَكُمْ كَاتِبٌ بِالْعَدْلِ وَلَا يَأْبَ كَاتِبٌ أَنْ يَّكْتُبَ كَمَا عَلَّمَهُ اللّٰهُ فَلْيَكْتُبْ وَلْيُمْلِلِ الَّذِيْ عَلَيْهِ الْحَقُّ وَلْيَتَّقِ اللّٰهَ رَبَّهُ وَلَا يَبْخَسْ مِنْهُ شَيْئًا فَإِنْ كَانَ الَّذِيْ عَلَيْهِ الْحَقُّ سَفِيْهًا أَوْ ضَعِيْفًا أَوْ لَا يَسْتَطِيْعُ أَنْ يُّمِلَّ هُوَ فَلْيُمْلِلْ وَلِيُّهُ بِالْعَدْلِ وَاسْتَشْهِدُوْا شَهِيْدَيْنِ مِنْ رِّجَالِكُمْ فَإِنْ لَّمْ يَكُوْنَا رَجُلَيْنِ**

باب ۷۵۹: دَ مدعي په ذمه گواه راوستل لازم دي (دَ اللّٰه تعالیٰ قول) اے دَ ايمان خاوندانو، هر كله چه تاسو دَ يو مقرر مودے پورے دَ قرض معامله اوكړئے، نو هغه اوليكئے. او ستاسو مينځ كښ دے ليكونكے ټيک ټيک اوليكي، او ليكوال دے دَ ليكلو نه انكار نه كوي، څنگه چه اللّٰه تعالیٰ هغهٔ ته ښودلے دي، بلكه اودے ليكي او په چا چه حق دے، هغه دے اووائي او دَ اللّٰه نه دے اويريږي، چه دَ هغهٔ رب دے. او هغے كښ دے هيڅ هم نه كموي، كه هغه سړے چه په هغه حق دے، بيوقوف يا كمزورے وي، يا هغه ليكلے نشي، نو دَ هغه ولي دے صحيح صحيح اوليكي. او نارينه ؤ كښ دوه گواهان مقرر رونے، او كه دوه سړي نهٔ وي، نو بيا، دَ يو

فَرَجُلٌ وَّامْرَاَتَانِ مِمَّنْ تَرْضَوْنَ مِنَ الشُّهَدَآءِ اَنْ تَضِلَّ اِحْدَاهُمَا فَتُذَكِّرَ اِحْدَاهُمَا الْاُخْرٰى وَلَا يَاْبَ الشُّهَدَآءُ اِذَا مَا دُعُوْا وَلَا تَسْئَمُوْا اَنْ تَكْتُبُوْهُ صَغِيْرًا اَوْ كَبِيْرًا اِلٰى اَجَلِهٖ ذٰلِكُمْ اَقْسَطُ عِنْدَ اللّٰهِ وَ اَقْوَمُ لِلشَّهَادَةِ وَ اَدْنٰى اَلَّا تَرْتَابُوْٓا اِلَّآ اَنْ تَكُوْنَ تِجَارَةً حَاضِرَةً تُدِيْرُوْنَهَا بَيْنَكُمْ فَلَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ اَلَّا تَكْتُبُوْهَا وَ اَشْهِدُوْا اِذَا تَبَايَعْتُمْ وَلَا يُضَآرَّ كَاتِبٌ وَّلَا شَهِيْدٌ وَّ اِنْ تَفْعَلُوْا فَاِنَّهٗ فُسُوْقٌۢ بِكُمْ وَاتَّقُوا اللّٰهَ وَ يُعَلِّمُكُمُ اللّٰهُ وَاللّٰهُ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمٌ وَ قَوْلُهٗ تَعَالٰى يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا كُوْنُوْا قَوّٰمِيْنَ بِالْقِسْطِ شُهَدَآءَ لِلّٰهِ وَلَوْ عَلٰٓى اَنْفُسِكُمْ اَوِ الْوَالِدَيْنِ وَالْاَقْرَبِيْنَ اِنْ يَّكُنْ غَنِيًّا اَوْ فَقِيْرًا فَاللّٰهُ اَوْلٰى بِهِمَا فَلَا تَتَّبِعُوا الْهَوٰٓى اَنْ تَعْدِلُوْا وَ اِنْ تَلْوٗٓا اَوْ تُعْرِضُوْا فَاِنَّ اللّٰهَ كَانَ بِمَا تَعْمَلُوْنَ خَبِيْرًا.

سړي او دوه زنانه ؤ ګواهي پکار ده، کوم چه تاسو خوښ کړئ، دَ پاره دَ دې کۀ هغوي کښې دَ يوې نه هېر شي، نو بله به ئې ورته يادوي. او ګواه چه اوغوښتلې شي، نو د تلو نه دې انکار نه کوي. او دَ يوې مقرړې مودې پورې دَ قرض معاملې ليکلو کښې کوتاهي مه کوئ، خواه وړه معامله وي يا لويه. دا، دَ الله په نزد، ډيره دَ انصاف خبره او شهادت دَ پاره دَ مضبوطۍ باعث ده، او دَ دې نزدې ده، چه شک کښې به نۀ پريوځئ، خو، کۀ دا چه نقد تجارت وي، چه تاسو ئې خپلو کښې کوئ، نو ګواه مقرروئ. او نه دې کاتب ته او نه دې ګواه ته نقصان رسولې شي، او کۀ داسې کوئ، نو بيا دا ستاسو شرارت دې. او دَ الله نه اويرېږئ، او الله تعالٰى په هر څۀ پوهيدونکې دې، او دَ الله تعالٰى قول، اې ايماندارو، په انصاف مضبوطۍ سره قائم اوسئ، او الله دَ پاره ګواهي کوئ، اګر کۀ ستاسو دَ مور پلار او خپلوانو خلاف ګواهي وي، کۀ امير، وي يا فقير وي، نو الله تعالٰى دَ هغې دواړو نګهبان (ساتندونکې) دې، نو تاسو انصاف کولو کښې دَ خواهشاتو پيروي مۀ کوئ، او کۀ تاسو خبره جوړه کړئ ګواهي اوکړئ يا اعراض اوکړئ (مخ واړوئ) نو الله تعالٰى ستاسو دَ اعمالونه خبردار دې.

## بـاب ۷۲۰: اِذَا عَدَّلَ رَجُلٌ اَحَدًا فَقَالَ لَا نَعْلَمُ اِلَّا خَيْرًا وَّ قَالَ مَا عَلِمْتُ اِلَّا خَيْرًا.

## باب ۷۲۰: کۀ څوک دَ چا نيک چلني بيان

کړي او داسې اووائي چه مونږ هغه بنۀ ګنړو، يا ما هغه بنۀ ګنړلې دې[1].

[1] . مقدمو د پاره د ګواهانو ضرورت وي او د ګواه ټولونه ړومبې شرط دا دې چه هغه دِ عادل او دَ بنو عاداتو او اطوارو وي د پاره ددې چه د هغه په ګواهئ باندې اعتبار اوکړې شي. اسلام په مقدمو کښې بنيادي طور باندې د ګواهانو عادل او نيک چلن کيدلو باندې ډير زور ور کړې دې ولې چه په فيصلې کښې بنياد همدوئ وي.

د ګواهانو د حالاتو معلومولو دوه طريقې دي. يو خو دا چه د حاكم په عدالت كښې څوک قابل اعتماد او د ګواه پيژندونكې سړے د هغهٔ د عادل والي او نيک چلنې ګواهي وركړي. بله طريقه داده چه د حكومت پټ سړي د ګواه متعلق په پوره توګه معلومات حاصل كړي. مصنف د ړومبئ طريقې متعلق بنائي چه كه چرے ديو ګواه نيک چلني بيانولو وخت كښې يو سړے صرف دومره اووائي چه ماته دده متعلق صرف ښه خبره معلومه ده نو دومره خبره به هم په هغه باندے اعتبار د پاره كافي وي.

**۱۱۵۵ :** حَدَّثَنَا حَجَّاجٌ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عُمَرَ النُّمَيْرِيُّ حَدَّثَنَا ثَوْبَانُ وَ قَالَ اللَّيْثُ حَدَّثَنِيْ يُوْنُسُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عُرْوَةُ وَابْنُ الْمُسَيَّبِ وَ عَلْقَمَةُ ابْنُ وَقَّاصٍ وَّ عُبَيْدُ اللّٰهِ عَنْ حَدِيْثِ عَآئِشَةَ وَ بَعْضُ حَدِيْثِهِمْ يُصَدِّقُ بَعْضًا حِيْنَ قَالَ لَهَا اَهْلُ الْاِفْكِ فَدَعَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلِيًّا وَّ اُسَامَةَ حِيْنَ اسْتَلْبَثَ الْوَحْيُ يَسْتَأْمِرُهُمَا فِيْ فِرَاقِ اَهْلِهٖ فَاَمَّا اُسَامَةُ فَقَالَ اَهْلُكَ وَلَا نَعْلَمُ اِلَّا خَيْرًا وَّ قَالَتْ بَرِيْرَةُ اِنْ رَّاَيْتُ عَلَيْهَا اَمْرًا اُغْمِصُهٗ اَكْثَرَ مِنْ اَنَّهَا جَارِيَةٌ حَدِيْثَةُ السِّنِّ تَنَامُ عَنْ عَجِيْنِ اَهْلِهَا فَتَأْتِي الدَّاجِنُ فَتَأْكُلُهٗ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ يَّعْذِرُنَا مِنْ رَّجُلٍ بَلَغَنِيْ اَذَاهُ فِيْ اَهْلِ بَيْتِيْ فَوَاللّٰهِ مَا عَلِمْتُ مِنْ اَهْلِيْ اِلَّا خَيْرًا وَّلَقَدْ ذَكَرُوْا رَجُلًا مَا عَلِمْتُ عَلَيْهِ اِلَّا خَيْرًا.

**۱۱۵۵ :** حجاج. عبدالله بن عمر. نميري. ثوبان. ليث. يونس. ابن شهاب. عروه. او ابن مسيب. او علقمه بن وقاص. او عبيدالله په بي بي عائشې رضي الله عنها باندے د تهمت واقعه بيانوي. او هغوي كښې د بعضې حديث د بل تصديق كوي. تهمت (تور) لګرونكو په بي بي عائشې تور اولګولو، نو رسول الله صلى الله عليه وسلم حضرت عليؓ او اسامهؓ راوغوښتل، هر كله چه وحي راتلو كښې تاخير اوشولو، هغوي دواړونه ئے د خپلې بي بي د جدا كولو متعلق مشوره واخسته. نو اسامهؓ جواب وركړ چه مونږ ستاسو بي بي كښې نيكي وينو. او بريره اووے، ما هغې كښې هيڅ د عيب خبره نهٔ ده ليدلې، سوا، د دے نه چه هغه يو كم عمره ښځه ده، اوړه (آټا) واغږي، اوده شي، او چيلئې راشي هغه اوخوري. رسول الله صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل. كوم سړے د هغهٔ جانبه عذر خواهي كولې شي، چه هغه ماته څما د اهل بيت متعلق تكليف اورسولو (يعني تهمت ئے پرے اولګولو) په خدائے م دے قسم وي، زهٔ خو خپلې بي بي كښې نيكي وينم، او خلق په، داسې سړي تهمت لګوي، چه هغه زهٔ نيک ګڼړم.

**باب ۱۶۷ :** شَهَادَةِ الْمُخْتَبِيْ وَ

**باب ۱۶۷ :** د پټ سړي د ګواهئ بيان او دا،

اَجَازَهٗ عَمْرُو بْنُ حُرَيْثٍ قَالَ وَ كَذٰلِكَ يُفْعَلُ بِالْكَاذِبِ الْفَاجِرِ وَ قَالَ الشَّعْبِيُّ وَابْنُ سِيْرِيْنَ وَ عَطَاءٌ وَّ قَتَادَةُ السَّمْعُ شَهَادَةٌ وَ قَالَ الْحَسَنُ يَقُوْلُ لَمْ يُشْهِدُوْنِيْ عَلٰى شَيْءٍ وَّ اِنِّيْ سَمِعْتُ كَذَا وَ كَذَا.

عمرو بن حریث جائز ګڼلے دي. او وئیلے دي چه دروغجن او دهوکه باز سره دغسے کول پکار دي. ابن سیرین عطاء او قتاده اووے، چه آوریدل ګواهي ده. او حسن بصري اووے، هغه دے داسے اووائي، چه هغے خلقو زهٔ ګواه نهٔ یم جوړ کړے. خو ما، داسے داسے آوریدلے دي.

**۱۱۵۶ :** حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ سَالِمٌ سَمِعْتُ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عُمَرَ يَقُوْلُ انْطَلَقَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اُبَيُّ ابْنُ كَعْبٍ الْاَنْصَارِيُّ يَؤُمَّانِ النَّخْلِ الَّتِيْ فِيْهَا ابْنُ صَيَّادٍ حَتّٰى اِذَا دَخَلَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ طَفِقَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَّقِيْ بِجُذُوْعِ النَّخْلِ وَهُوَ يَخْتِلُ اَنْ يَّسْتَمِعَ مِنِ ابْنِ صَيَّادٍ شَيْئًا قَبْلَ اَنْ يَّرَاهُ وَابْنُ صَيَّادٍ مُّضْطَجِعٌ عَلٰى فِرَاشِهٖ فِيْ قَطِيْفَةٍ لَّهٗ فِيْهَا رَمْرَمَةٌ اَوْ زَمْزَمَةٌ فَرَاَتْ اُمُّ ابْنِ صَيَّادِ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ يَتَّقِيْ بِجُذُوْعِ النَّخْلِ فَقَالَتْ لِابْنِ صَيَّادٍ اَيْ صَافِ هٰذَا مُحَمَّدٌ فَتَنَاهَى ابْنُ صَيَّادٍ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَوْ تَرَكَتْهُ بَيَّنَ.

**۱۱۵۶ :** ابوالیمان. شعیب. زهري. سالم. عبدالله بن عمرؓ نه روایت کوي. د هغهٔ بیان دے، چه رسول الله صلے الله علیه وسلّم او ابي بن کعب انصاري ذ هغه د باغ په اراده روان شولو، کوم خائے چه ابن صیاد، وو. تردے چه کوم وخت رسول الله صلے الله علیه وسلّم هلته اورسید، نو حضور صلے الله علیه وسلّم ذ، اُونو پناه کښې پټ پټ روان شولو. چه ابن صیاد، ئې اونهٔ لیدلے شي. او حضور صلے الله علیه وسلّم ذ هغهٔ خبرے واوري، او ابن صیاد په خپل فرش یو څادر کښې خپل مخ پټ کړے ملاست وو. او څهٔ ګنړ ګنړ، ئې کول، خو، ذ، ابن صیاد مور نبي صلے الله علیه وسلّم اولیدلو داسے حال کښې، چه حضور صلے الله علیه وسلّم ذ، اُونو پناه کښې روان وو، نو ذ هغهٔ مور هغهٔ ته آواز او کهٔ، چه، اے صاف، دا مُحمد (صلے الله علیه وسلّم) راغے. دے آوریدو سره ابن صیاد خاموش شو. رسول الله صلے الله علیه وسلّم اوفرمائیل، کهٔ هغے هغه پرینښے وے، نو حال به ئې معلوم شوے وو[۱].

[۱]. ابن صیاد یو یهودي هلک وو، چه نیم لیونے غوندے، عجیبه قسمه خبرے به ئې کولے، او حضور اکرم صلي الله علیه وسلّم اوغوښتل چه په تنهایئ کښې دے په خپله خبرو کولو باندے اووینی چه څه خبره ده. دده واقعات په احادیثو کښې کثرت سره راغلي دي او آئنده به د ده نور تفصیلات راځي.

۱۱۵۷: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عَائِشَةَ جَاءَتِ امْرَأَةُ رِفَاعَةَ الْقُرَظِيِّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ كُنْتُ عِنْدَ رِفَاعَةَ فَطَلَّقَنِيْ فَاَبَتَّ طَلَاقِيْ فَتَزَوَّجْتُ عَبْدَ الرَّحْمٰنِ بْنَ الزُّبَيْرِ اِنَّمَا مَعَهٗ مِثْلُ هُدْبَةِ الثَّوْبِ فَقَالَ اَتُرِيْدِيْنَ اَنْ تَرْجِعِيْ اِلٰى رِفَاعَةَ لَا حَتّٰى تَذُوْقِيْ عُسَيْلَتَهٗ وَ يَذُوْقَ عُسَيْلَتَكِ وَ اَبُوْبَكْرٍ جَالِسٌ عِنْدَهٗ وَ خَالِدُ بْنُ سَعِيْدِ بْنِ الْعَاصِ بِالْبَابِ يَنْتَظِرُ اَنْ يُّؤْذَنَ لَهٗ فَقَالَ يَآ اَبَا بَكْرٍ اَلَا تَسْمَعُ اِلٰى هٰذِهٖ مَا تَجْهَرُ بِهٖ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۱۱۵۷: عبدالله بن محمد. سفیان. زهري. بي بي عائشې نه روایت کوي. ذَ هغې بیان دې' د رفاعه قرظي ښځه ذَ نبي صلی الله علیه وسلم خدمت کښې حاضره شوه. او عرض ئې اوکړ' زهٔ رفاعه سره ووم. هغه ماله درې طلاقه راکړل. بیا ما عبدالرحمٰن بن زبیر سره نکاح اوکړله. خو هغهٔ سره ذَ کپړې ذَ پیشکي په شان دې (یعني نامرد دې. یا' د چیړو دې) حضور صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل آیا ته رفاعه له بیاتلل غواړې' داسې نشي کیدې' خو پورې چه تهٔ ذَ عبدالرحمٰن نه او هغه تانه مزه وانخلي او حضرت ابوبکرؓ حضور صلی الله علیه وسلم سره ناست وو. او خالد بن سعید بن عاص په دروازه حاضرئ ذَ پاره انتظار کښې وو. خالد اووې. اې ابوبکرؓ آیا تهٔ ذَ دې ښځې خبره نهٔ آورې' چه نبي صلی الله علیه وسلم سره په اوچت آواز خبرې کوي[۱].

۱. په دې باب کښې د دوؤ داسې واقعاتو ذکر دې په کومو کښې چه اوریدلو باندې اعتماد کړې شوې دې. د ابن صیاد خبره حضور اکرم صلي الله علیه وسلّم په دا شان اوریدل غوښتل چه هغهٔ حضورؐ لره او نه ویني او په خپل خاص رنګ کښې ګونړیدلو او وئیلو سره حضورؐ د هغهٔ وینا واؤري او د هغې نه د هغهٔ متعلق په څه نتیجه باندې اورسي. دویمه واقعه د رفاعهؓ ذَ بي بي ده چه د هغې خبرې اوریدلو سره حضرت خالد رضي الله عنه ابوبکر رضي الله عنه لره متوجه کړو. په دغه وخت کښې نه خالدؓ هغه لیدلې وه او نهٔ هغې خالدؓ لیدلې وو' ددې باوجود هغهٔ پوئې شوې وو چه خبرې کونکې ښځه څوک ده.

باب ۷۶۲: اِذَا شَهِدَ شَاهِدٌ اَوْ شُهُوْدٌ بِشَيْءٍ فَقَالَ اٰخَرُوْنَ مَا عَلِمْنَا ذٰلِكَ يُحْكَمُ بِقَوْلِ مَنْ شَهِدَ قَالَ الْحُمَيْدِيُّ هٰذَا كَمَا اَخْبَرَ بِلَالٌ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلّٰى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلّٰى فِي الْكَعْبَةِ وَ

باب ۷۶۲: هر کله چه یو یا یو څو ګواهان دَ' یو خیز ګواهي ورکړي. او نور خلق اووائي' چه مونږ ته دَ دهٔ متعلق پته نشته' نو دَ هغې چاپه قول به حکم کولې شي' چه ګواهي ورکړي. حمیدي اووې. دَ دې مثال داسې دې' چه بلالؓ خبر اوکهٔ' چه نبي صلی الله علیه وسلم کعبه کښې مونځ اوکهٔ. او فضل بیان اوکهٔ' چه

قَالَ الْفَضْلُ لَمْ يُصَلِّ فَاَخَذَ النَّاسُ بِشَهَادَةِ بِلَالٍ كَذٰلِكَ اِنْ شَهِدَ شُهِدَانِ اَنَّ لِفُلَانٍ عَلٰى فُلَانٍ اَلْفَ دِرْهَمٍ وَّ شَهِدَ اٰخَرَانِ بِاَلْفٍ وَّ خَمْسِ مِائَةٍ يُقْضٰى بِالزِّيَادَةِ.

حضور صلی اللّٰه عليه وسلّم مونځ نهٔ دے کړے. خلقو د بلالؓ په شهادت عمل او کړو، دغه شان کهٔ دوه ګواهان ګواهي او کړي، چه په فلاني دَ فلاني سرې زر، درهمه دي، او نورو دوو ګواهانو دَ، یو زر، او پنځه سوو ګواهي ور کړه، نو فیصله به دَ، زیات کولے شي.

۱. ولے چه فضلؓ یو داسے خبره کوله د کومے چه بنیاد په دے باندے وو چه هغهٔ حضور اکرم صلي اللّٰه عليه وسلّم لره په کعبه کښ مونځ کولو باندے نه دے لیدلے، ګویا په دے سلسله کښ هغویٔ ته چونکه علم نه وو په دے وجه ئے انکار او کړو. ددے برخلاف بلال رضي اللّٰه عنه حضورؐ لره په مونځ کولو لیدلے وو په دے وجه ټولو د هغویٔ خبره اومنله.

۱۱۵۸ : حَدَّثَنَا حَبَّانُ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا عُمَرُ بْنُ سَعِيْدِ بْنِ اَبِيْ حُسَيْنٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ اَبِيْ مُلَيْكَةَ عَنْ عُقْبَةَ بْنِ الْحَارِثِ اَنَّهٗ تَزَوَّجَ ابْنَةً لِاَبِيْ اِهَابِ بْنِ عَزِيْزٍ فَاَتَتْهُ امْرَاَةٌ فَقَالَتْ قَدْ اَرْضَعْتُ عُقْبَةَ وَالَّتِيْ تَزَوَّجَ فَقَالَ لَهَا عُقْبَةُ مَا اَعْلَمُ اَنَّكِ اَرْضَعْتِنِيْ وَلَا اَخْبَرْتِنِيْ فَاَرْسَلَ اِلٰى اٰلِ اَبِيْ اِهَابٍ يَسْاَلُهُمْ فَقَالُوْا مَا عَلِمْنَا اَرْضَعَتْ صَاحِبَتَنَا فَرَكِبَ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْمَدِيْنَةِ فَسَاَلَهٗ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَيْفَ وَقَدْ قِيْلَ فَفَارَقَهَا وَ نَكَحَتْ زَوْجًا غَيْرَهٗ.

۱۱۵۸ : حبان. عبداللّٰه. عمر بن سعيد بن ابي حسين. عبداللّٰه بن ابي مليكه. عقبه بن حارث نه روايت کوي، چه هغه دَ ابو اهاب بن عزيز لور سره نکاح او کړه. هغهٔ له یوه ښځه راغله، او ورته ئے اووے، چه ما عقبه ته او دے ښځے ته چه هغے سره هغهٔ نکاح کړے ده، پئے ور کړے دي (دودھ پلایا ہے) عقبه ورته اووے، ماته نه ده معلومه، چه تا پئے راکړے دي، او نه تا ماته وئیلے دي، دَ آل ابو اهاب کورته یو سړے تپوس دَ پاره اولیږلے شو، نو هغوئ اووے، مونږ ته هم نهٔ ده معلومه، چه دے ښځے هغهٔ له پئے ور کړے دي. عقبه سور شو، او نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم له مدينے ته راغے، او دَ حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم نه ئے تپوس او کهٔ، نو حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل. داسے خبره څنګه کیدے شي (یعني ته هغے سره څنګه نکاح کولے شے) هر کله چه دَ هغے متعلق داسے خبره (یعنے دَ پیو ور کولو متعلق شوے ده، نو عقبه هغه ښځه پریښوده. او هغے بل سړي سره نکاح او کړله.

**باب ۷۶۳ : الشُّهَدَآءِ الْعُدُوْلِ وَ**

**باب ۷۶۳ :** دَ، عادل ګواهانو بیان. او دَ، اللّٰه

قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى وَاَشْهِدُوْا ذَوَىْ عَدْلٍ مِّنْكُمْ وَ مِمَّنْ تَرْضَوْنَ مِنَ الشُّهَدَآءِ.

تعالىٰ قول' چه تاسو دوه عادل ګواهان ګواه جوړ کړئ كوم چه ستاسو خوښ وي.

۱۱۵۹ : حَدَّثَنَا الْحَكَمُ بْنُ نَافِعٍ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ حَدَّثَنِيْ حُمَيْدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ عَوْفٍ اَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عُتْبَةَ قَالَ سَمِعْتُ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ يَقُوْلُ اِنَّ اُنَاسًا كَانُوْا يُؤْخَذُوْنَ بِالْوَحْيِ فِيْ عَهْدِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اِنَّ الْوَحْيَ قَدِ انْقَطَعَ وَ اِنَّمَا نَاْخُذُكُمُ الْاٰنَ بِمَا ظَهَرَ لَنَا مِنْ اَعْمَالِكُمْ فَمَنْ اَظْهَرَ لَنَا خَيْرًا اَمِنَّاهُ وَ قَرَّبْنَاهُ وَ لَيْسَ اِلَيْنَا مِنْ سَرِيْرَتِهٖ وَمَنْ اَظْهَرَ لَنَا سُوْٓءً لَمْ نَاْمَنْهُ وَلَمْ نُصَدِّقْهُ وَ اِنْ قَالَ اِنَّ سَرِيْرَتَهٗ حَسَنَةٌ.

۱۱۵۹ : حكم بن نافع. شعيب. زهري. حميد بن عبدالرحمٰن بن عوف. عبدالله بن عتبه حضرت عمر بن خطابؓ نه روايت كوي' هغهٔ اوفرمائيل' د رسول الله صلے الله عليه وسلّم زمانه كښ د خلقو مواخذه به د' وحي په ذريعه كيدله او اوس وحي موقوف شوے ده. په دے وجه مونږ به صرف ستاسو په ظاهري اعمالو مواخذه كوو. كوم سړے چه ښهٔ عمل ظاهر كړي' نو مونږ به هغهٔ ته امن وركوو. او مقرّب به ئے جوړوو. د هغهٔ باطن سره څمونږ هيڅ غرض نشته. د هغه د باطن محاسبه به الله تعالىٰ كوي. او چا چه خراب اعمال ظاهر كړل' مونږ به هغهٔ له آمن نهٔ وركوو. او نه به د هغهٔ تصديق كوو. اګر كهٔ هغه وائي' چه د هغهٔ باطن ښه دے.

باب ۷۶۴: تَعْدِيْلِ كَمْ يَجُوْزُ.

باب ۷۶۴: د څو سړو د نيک چلنې شهادت كافي دے[1].

۱. يعني ګواهانو لره عادل ثابتولو د پاره چه كومه ګواهي په عدالت كښ اخستے كيږي نو د هغے د پاره د څومره سړو ضرورت دے. امام شافعي' امام محمد او امام ابو يوسف رحمهم الله خو وائي چه كم نه كم دوه سړي ضروري دي ليكن امام ابو حنيفه رحمة الله عليه فرماني چه كچرے مزكي عادل او ذمه وار وي نويو شهادت هم كافي كيدے شي.

۱۱۶۰ : حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ ثَابِتٍ عَنْ اَنَسٍ قَالَ مُرَّ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِجَنَازَةٍ فَاَثْنَوْا عَلَيْهَا خَيْرًا فَقَالَ وَجَبَتْ ثُمَّ مُرَّ بِاُخْرٰى فَاَثْنَوْا عَلَيْهَا

۱۱۶۰ : سليمان بن حرب. زيد بن زيد. ثابت. انسؓ نه روايت كوي. د هغهٔ بيان دے' د نبي صلے الله عليه وسلّم خوا كښ يوه جنازه تيره شوه' نو خلقو د هغے ذكر خير اوكهٔ حضور صلے الله عليه وسلّم اوفرمائيل. واجب شوه بيا يوه بله جنازه تيره شوه' نو خلقو د هغے د بدي ذكر اوكهٔ يا' د دے نه علاوه څهٔ بل څهٔ لفظ ئے بيان

شَرًّا وَ قَالَ غَيْرَ ذٰلِكَ فَقَالَ وَجَبَتْ فَقِيْلَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قُلْتَ لِهٰذَا وَجَبَتْ وَلِهٰذَا وَجَبَتْ قَالَ شَهَادَةُ الْقَوْمِ الْمُؤْمِنُوْنَ شُهَدَآءُ اللّٰهِ فِي الْأَرْضِ.

كړه' نو حضور صلے الله عليه وسلّم اوفرمائيل واجب شوه. خلقو عرض اوکړه' يا رسول الله تاسو د هغے متعلق هم اوفرمائيل' چه واجب شوه. او د دے دونمے متعلق مو هم اوفرمائيل' چه واجب شوه. حضور صلے الله عليه وسلّم اوفرمائيل مسلمانان په زمکه د' الله ګواهان دي.

۱۱۶۱: حَدَّثَنَا مُوْسَى ابْنُ اِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا دَاوٗدُ بْنُ اَبِي الْفُرَاتِ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ بُرَيْدَةَ عَنْ اَبِي الْاَسْوَدِ قَالَ اَتَيْتُ الْمَدِيْنَةَ وَقَدْ وَقَعَ بِهَا مَرَضٌ وَّهُمْ يَمُوْتُوْنَ مَوْتًا ذَرِيْعًا فَجَلَسْتُ اِلٰى عُمَرَ فَمَرَّتْ جَنَازَةٌ فَأُثْنِيَ خَيْرًا فَقَالَ عُمَرُ وَجَبَتْ ثُمَّ مُرَّ بِاُخْرٰى فَاُثْنِيَ خَيْرًا فَقَالَ وَجَبَتْ ثُمَّ مُرَّ بِالثَّالِثَةِ فَاُثْنِيَ شَرًّا فَقَالَ وَجَبَتْ فَقُلْتُ مَا وَجَبَتْ يَا اَمِيْرَ الْمُؤْمِنِيْنَ قَالَ قُلْتُ كَمَا قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَيُّمَا مُسْلِمٍ شَهِدَ لَهٗ اَرْبَعَةٌ بِخَيْرٍ اَدْخَلَهُ اللّٰهُ الْجَنَّةَ قُلْنَا وَ ثَلٰثَةٌ قَالَ وَ ثَلٰثَةٌ قُلْتُ وَاثْنَانِ قَالَ وَاثْنَانِ ثُمَّ لَمْ نَسْأَلْهُ عَنِ الْوَاحِدِ.

۱۱۶۱: موسى بن اسمعيل. داؤد بن ابي الفرات. عبدالله بن بريده. ابوالاسود نه روايت کوي. د هغهٔ بيان دے' چه زهٔ مدينے ته راغلم' او هلته يوه بيماري خوره شوے وه' چه د هغے نه بـه خلق مړهٔ کيدل. زهٔ حضرت عمرؓ سره ناست ووم' چه يوه جنازه تيره شوه' نو خلقو د هغے تعريف اوکړو. حضرت عمرؓ اوفرمائيل واجب شوه بيا يوه بله جنازه تيره شوه' خلقو د هغے هم تعريف اوکړه' نو هغهٔ اوفرمائيل' واجب شوه. بيا دريمه جنازه تيره شوه' خلقو د هغے بدي بيان کړه. نو هغهٔ اوفرمائيل' واجب شوه ما ترے تپوس اوکړه' اے د مؤمنانو اميره' څهٔ واجب شوه. هغهٔ جواب راکړه' ما هغسے اووے' څنګه چه نبي صلے الله عليه وسلّم فرمائيلي وو' د کوم مسلمان په نيکي چه څلور سړي ګواهي ورکړي' نو الله تعالىٰ به هغه په جنت کښ داخل کړي ما تپوس اوکړه' او په دريو هم هغه اووے' په دريو هم. ما تپوس اوکړه' په دوو هم. هغهٔ اووے' او په دوو هم. بيا مونږ د هغهٔ نه د' يو متعلق تپوس اونهٔ کړه.

بَاب ۷۶۵: اَلشَّهَادَةُ عَلَى الْاَنْسَابِ وَالرَّضَاعِ الْمُسْتَفِيْضِ وَالْمَوْتِ الْقَدِيْمِ وَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَرْضَعَتْنِيْ وَ اَبَا

باب ۷۶۵: نسب او مشهور رضاعت او د پخواني مرګ د ګواهي ورکولو او په هغے د قائم پاتے کيدو بيان. او نبي صلے الله عليه وسلّم اوفرمائيل' چه ماته او ابو سلمه ته ثويبه پئے راکړے دي (دوده پلايا

سَلَمَةَ ثُوَيْبَةُ وَالتَّثَبُّتِ فِيهِ.

ــےِ).

١١٦٢: حَدَّثَنَا اٰدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ اَخْبَرَنَا الْحَكَمُ عَنْ عِرَاكِ بْنِ مَالِكٍ عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتِ اسْتَأْذَنَ عَلَيَّ اَفْلَحُ فَلَمْ اٰذَنْ لَهُ فَقَالَ اَتَحْتَجِبِينَ مِنِّيْ وَ اَنَا عَمُّكِ فَقُلْتُ وَ كَيْفَ ذٰلِكَ قَالَ اَرْضَعَتْكِ امْرَاَةُ اَخِيْ بِلَبَنِ اَخِيْ فَقَالَتْ سَاَلْتُ عَنْ ذٰلِكَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ صَدَقَ اَفْلَحُ ائْذَنِيْ لَهُ.

١١٦٢: آدم. شعبه. حکم. عراک بن مالک. عروه بن زبیر. بي بي عائشےؓ نه روايت کوي. ذ هغے بيان دے، چه مانه افلح دننه ذ، راتلو اجازت اوغوښتلو. ما اجازت ورنۀ کړلو. هغه اووے آيا تۀ خما نه پرده کوے، حالانکه زۀ ستا ترۀ (چچا) يم. ما اووے، دا څنګه کيدے شي، هغۀ اووے، تاله خما ذ، ورور ښځے خما ذ، ورور ذ پيو نه درکړے دي. بي بي عائشےؓ بيان اوکۀ، چه ما ذ دے متعلق ذ رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلّم نه تپوس اوکۀ، نو حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، افلح ريښتنے دے، هغۀ ته ذ، راتلو اجازت ورکړۀ.

١١٦٣: حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ اِبْرَاهِيْمَ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ حَدَّثَنَا قَتَادَةُ عَنْ جَابِرِ بْنِ زَيْدٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍؓ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ بِنْتِ حَمْزَةَ لَا تَحِلُّ لِيْ يَحْرُمُ مِنَ الرَّضَاعِ مَا يَحْرُمُ مِنَ النَّسَبِ هِيَ بِنْتُ اَخِيْ مِنَ الرَّضَاعَةِ.

١١٦٣: مسلم بن ابراهيم. همام. قتاده. جابر بن زيد. حضرت ابن عباسؓ نه روايت کوي. ذ هغۀ بيان دے، نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم ذ حضرت حمزهؓ ذ لور متعلق اوفرمائيل چه ما ذ پاره حلاله نۀ ده. نسب سره چه کومے رشتے حرامے دي، هغه رضاعت سره هم حرامے دي، هغه خما رضاعي وريره ده[1].

١. حمزه بن عبدالمطلب رضي اللّٰه عنه د حضورؐ ترۀ وو ليکن چونکه په عمر کښ څه خاص فرق نه وو په دے وجه کوم وخت چه حضور اکرم صلي اللّٰه عليه وسلّم پئ شکل نو د حمزه رضي اللّٰه عنه د پيو شکلو هم هغه زمانه وه او دواړو حضراتو د ابولهب د وينزے ثوبيے پئ شکلي وو. د حضرت حمزهؓ لور د چا نوم چه امامه يا عمامه ښودلے کيږي د هغے متعلق نے دا حديث په همدے بنياد باندے فرمائيلے وو.

١١٦٤: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِيْ بَكْرٍ عَنْ عَمْرَةَ بِنْتِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ اَنَّ عَائِشَةَ زَوْجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَخْبَرَتْهَا اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ

١١٦٤: عبداللّٰه بن يوسف. مالک. عبداللّٰه بن ابي بکر. عمره بنت عبدالرحمٰن. ذ نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم ذ تهر، بي بي عائشےؓ نه روايت کوي ذ بي بي عائشےؓ بيان دے. رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلّم هغے سره وو، هغے

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ عِنْدَهَا وَ أَنَّهَا سَمِعَتْ صَوْتَ رَجُلٍ يَسْتَأْذِنُ فِيْ حَفْصَةَ قَالَتْ عَائِشَةُ فَقُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ أُرَاهُ فُلَانًا لِعَمِّ حَفْصَةَ مِنَ الرَّضَاعَةِ فَقَالَتْ عَائِشَةُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ هٰذَا رَجُلٌ يَسْتَأْذِنُ فِيْ بَيْتِكَ قَالَتْ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أُرَاهُ فُلَانًا لِعَمِّ حَفْصَةَ مِنَ الرَّضَاعَةِ فَقَالَتْ عَائِشَةُ لَوْ كَانَ فُلَانٌ حَيًّا لِعَمِّهَا مِنَ الرَّضَاعَةِ دَخَلَ عَلَيَّ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَعَمْ إِنَّ الرَّضَاعَةَ يُحَرِّمُ مَا يَحْرُمُ مِنَ الْوِلَادَةِ.

دَ يو سړي آواز واوريدلو، چه د بي بي حفصېٰ كورته دَ داخليدو اجازت نې غوښتلو. بي بي عائشې عرض اوكړ، يا رسول اللّٰه، دا څوك سړے دے، چه ستاسو كورته دَ راتلو اجازت غواړي، رسول اللّٰه صلى اللّٰه عليه وسلم ورته اوفرمائيل، زهٔ پوهيږم، چه فلانے سړے دے، چه دَ حفصې رضاعي تره (چچا) دے. بي بي عائشې عرض اوكړ. كهٔ فلانے سړے چه څما رضاعي تره دے، كهٔ هغه ژوندے وے، نو ماته به راتلے شو، رسول اللّٰه صلى اللّٰه عليه وسلم ورته اوفرمائيل او. رضاعت سره هغه ټولے رشتے حرامے شي، كومے چه نسب سره حرامے دي.

۱۱٦۵ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيْرٍ أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ عَنْ أَشْعَثَ بْنِ أَبِي الشَّعْثَاءِ عَنْ أَبِيْهِ عَنْ مَسْرُوْقٍ أَنَّ عَائِشَةَ قَالَتْ دَخَلَ عَلَيَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ عِنْدِيْ رَجُلٌ قَالَ يَا عَائِشَةُ مَنْ هٰذَا قُلْتُ أَخِيْ مِنَ الرَّضَاعَةِ قَالَ يَا عَائِشَةُ أُنْظُرْنَ مَنْ إِخْوَانُكُنَّ فَإِنَّمَا الرَّضَاعَةُ مِنَ الْمَجَاعَةِ تَابَعَهُ ابْنُ مَهْدِيٍّ عَنْ سُفْيَانَ.

۱۱٦۵ : محمد بن كثير. سُفيان. اشعث بن ابي الشعثاء. مسروق. بي بي عائشې نه روايت دے. رسول اللّٰه صلى اللّٰه عليه وسلم ماله تشريف راوړلو، هغه وخت ماسره يو سړے ناست وو، حضور صلى اللّٰه عليه وسلم اوفرمائيل، اے عائشې، دا سړے څوك دے ما عرض اوكړ، دا څما رضاعي ورور دے. حضور صلى اللّٰه عليه وسلم اوفرمائيل، اے عائشې كوره، چه ستا ورونړه څوك دي، رضاعت خو هغه معتبر دے، چه دَ لوږے په حالت كښې (پينے) اوڅكلے شي[۱]، يعني كم عمرئ كښې. ابن مهدي دَ سفيان نه دَ دے متابع حديث روايت كړے دے.

۱ . يعني د ماشوم د پيو څكلو اعتبار په هغه زمانه كښې دے كله چه دَ ماشوم ژوند د پاره هغه ضروري وي. پـي د هغه د بدن جُز جوړيږي او د هغه لوږه د مور په پيو سره خي. يعني د رضاعت په موده كښې كومه

چه ذوه کاله يا ديرش مياشتے ده، که چرے په دے کښې دننه دوه ماشومان د يوے مور پئ اوڅکي نو د هغے اعتبار به وي او په دواړو کښې به حُرمت ثابتيږي ګني نه به وي.

**بَابُ ٦٦٧: شَهَادَةِ الْقَاذِفِ وَالسَّارِقِ وَالزَّانِيْ** وَقَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى وَلَا تَقْبَلُوْا لَهُمْ شَهَادَةً اَبَدًا وَّ اُولٰٓئِكَ هُمُ الْفَاسِقُوْنَ اِلَّا الَّذِيْنَ تَابُوْا وَ جَلَدَ عُمَرُ اَبَا بَكْرَةَ وَ شِبْلَ بْنَ مَعْبَدٍ وَّ نَافِعًا بِقَذْفِ الْمُغِيْرَةِ ثُمَّ اسْتَتَابَهُمْ وَ قَالَ مَنْ تَابَ قَبِلْتُ شَهَادَتَهٗ وَ اَجَازَهٗ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عُتْبَةَ وَ عُمَرُ بْنُ عَبْدِ الْعَزِيْزِ وَ سَعِيْدُ بْنُ جُبَيْرٍ وَّ طَاوُسٌ وَّ مُجَاهِدٌ وَّالشَّعْبِيُّ وَ عِكْرَمَةُ وَالزُّهْرِيُّ وَ مُحَارِبُ بْنُ دِثَارٍ وَّ شُرَيْحٌ وَّ مُعَاوِيَةُ ابْنُ قُرَّةَ وَ قَالَ اَبُو الزِّنَادِ الْاَمْرُ عِنْدَنَا بِالْمَدِيْنَةِ اِذَا رَجَعَ الْقَاذِفُ عَنْ قَوْلِهٖ فَاسْتَغْفَرَ رَبَّهٗ قُبِلَتْ شَهَادَتُهٗ وَ قَالَ الشَّعْبِيُّ وَ قَتَادَةُ اِذَا اَكْذَبَ نَفْسَهٗ جُلِدَ وَ قُبِلَتْ شَهَادَتُهٗ وَ قَالَ الثَّوْرِيُّ اِذَا جُلِدَ الْعَبْدُ ثُمَّ اُعْتِقَ جَازَتْ شَهَادَتُهٗ وَ اِنِ اسْتُقْضِيَ الْمَحْدُوْدُ فَقَضَايَاهُ جَائِزَةٌ وَّ قَالَ بَعْضُ النَّاسِ لَا تَجُوْزُ شَهَادَةُ الْقَاذِفِ وَ اِنْ تَابَ ثُمَّ قَالَ لَا يَجُوْزُ نِكَاحٌ بِغَيْرِ شَاهِدَيْنِ فَاِنْ تَزَوَّجَ بِشَهَادَةِ مَحْدُوْدَيْنِ جَازَ وَ اِنْ تَزَوَّجَ

**باب ٦٦٧: دَ زنا دَ تهمت لږونکي. غل، او دَ زناکار، دَ شهادت بيان[1].** او دَ الله تعالى قول، چه دَ دوي شهادت هيڅ کله مه قبلوئ. هم دا کسان فاسقان دي، خو هغه خلق چه توبه اوکاږي. او حضرت عمرؓ په ابوبکره. شبل بن معبد او نافع باندے په مغيره د تهمت لږولو په سبب حد اولږولو. اووے فرمائيل، چه کوم سړے توبه اوباسي، دَ هغهٔ ګواهي به زهٔ قبلوم او عبدالله بن عتبه. عمر بن عبدالعزيز. سعيد بن جبير. طاؤس. مجاهد. شعبي. عکرمه. زهري. محارب بن دثار. شريح او معاويه بن قره دا جائز ګڼړلے دي. او ابوالزناد اووے چه خمونږ په نزد مدينه کښې حکم دا دے، کهٔ تهمت لږونکے دَ خپل قول نه اوګرځي او دَ خپل رب نه مغفرت طلب کړي، نو دَ هغهٔ شهادت به قبلولے شي. او شعبي او قتاده اووے، چه کوم سړے خپل ځان دروغجن کړي، نو هغه به په کوړو وهلے شي، او دَ هغهٔ ګواهي به قبلولے شي. او سفيان ثوري اووے، کوم وخت چه غلام په کوړو اووهلے شي، بيا هغه آزاد کړے شي، نو دَ هغه شهادت جائز دي کهٔ محدود (سزايافته) سړے قاضي جوړ کړے شي، نو د هغهٔ فيصلے به نافذ وي او بعضے خلقو وئيلے دي[2]، چه دَ تهمت لږونکي ګواهي جائز نهٔ ده، اګر کهٔ توبه کړي. بيائے اووے، چه دَ دوو ګواهانو نه بغير نکاح جائز نه ده. کهٔ دَ دوو محدود (سزا يافته) سړو ګواهي سره ئے نکاح اوکړه، نو جائز ده. او کهٔ دَ دوو غلامانو ګواهي سره ئے نکاح اوکړه، نو جائز نهٔ ده. د محدود

بِشَهَادَةِ عَبْدَيْنِ لَمْ يَجُزْ وَ اَجَازَ شَهَادَةَ الْمَحْدُوْدِ وَالْعَبْدِ وَالْاَمَةِ لِرُؤْيَةِ هِلَالِ رَمَضَانَ وَ كَيْفَ تُعْرَفُ تَوْبَتُهُ وَقَدْ نَفَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الزَّانِيْ سَنَةً وَّ نَهَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ كَلَامِ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ وَّ صَاحِبَيْهِ حَتّٰى مَضٰى خَمْسُوْنَ لَيْلَةً.

(سزايافته) او د غلام او وينزے شهادت به مياشت ليدو كښ مقبول وي او دے باب كښ د دے امر هم بيان دے چه د هغه توبه كول به څنګه معلومه ولے شي. او نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم يو زاني يو كال د پاره جلاوطن كړے وو (يعني د وطن نه ئے اوبنكلے وو) او نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم كعب بن مالك او د هغه دوو ملګرو سره د خبرو كولو نه منع فرمائيلے وه تر دے چه پنځوس شپے تيرے شوے.

١. د احنافو په نزد د دوئ ګواهي هيڅ وخت هم قبلولے نشي خواه كه په هغوئ باندے شرعي حد جاري كړے شوے وي او كه نه وي. كه چرے په څه زمانه كښ د داسے كس حالات ښه هم شي بيا به هم قبلولے نشي ولے چه شريعت د دوئ كومه سزا مقرر كړے ده په هغے كښ يو دا هم ده چه د دوئ ګواهي چرے هم قبوله نه كړے شي. ليكن امام شافعيؒ وائي چه كه چرے روستو د دوئ حالات ښه شي او توبه هم اوكړي نو د دوئ كه ګواهي قبلولو كښ هيڅ حرج نيشته. د دوارو فريقو مستدل همدا قرآني آيت دے.

١. مراد ترے امام ابو حنيفهؒ دے. امام بخاريؒ چونكه په دے مسئله كښ د امام شافعيؒ مسلك اختيار كړے دے، په دے وجه ئے د هغوئ په حق كښ ټول دلائل جمع كړي دي. مصنفؒ د امام ابو حنيفهؒ په مسلك باندے اعتراض كوي چه په دے باب كښ د هغوئ په قول كښ پخپله تضاد او تعارض دے، چرته خو هغوئ وائي چه د تهمت لګونكي شهادت جائز دے او چرته ددے نه انكار كوي. مثلاً هغوئ اووے چه د تهمت لګونكي ګواهي د په هيڅ صورت كښ هم قبوله نه كړے شي ليكن چه د نكاح باب ته راغے نو د دوئ ګواهي ئے جائزه او ګرځوله. همدغه شان هغوئ اووے چه كه چرے نكاح د پاره ئے دوه غلامان ګواهان كړل نو جائز به نه وي، ليكن د رؤيت هلال په سلسله كښ چه راغے نو د غلام وينزے او تهمت لګونكي د ټولو ګواهي ئے جائز او ګرځوله. ليكن اصل خبره دا ده چه د مصنفؒ په وړاندے د احنافو مسلك واضحه نه دے. د تهمت لګونكي ګواهي چه امام صاحب ناقابل قبول ګرځولے ده اصل خو همدا ده ليكن بيا چه هغوئ د نكاح په سلسله كښ د نكاح منعقد كيدلو د پاره كافي ګرځولے ده نو ددے وجه داده چه د ګواهئ كوم اصل مقصد دے چه په دے سره يو دعوي ثابته كړے شي، نو د نكاح په انعقاد كښ دا صورت نيشته. امام صاحب صرف دومره وئيلي دي چه نكاح به منعقد شي، دے د پاره د دعوے په ثبوت او د يوے معاملے په محض انعقاد كښ چه كوم واضحه فرق دے، د هغے په بنياد باندے د ګواهئ د جواز او عدم جواز فيصله شوے ده.

د تهمت لګونكي شهادت چه ناقابل قبول ګرځولے شوے دے د هغے وجه صرف داده چه دده په ژوند كښ يو داسے واقعه پيښه شوے ده كومے چه دے ددے قابل پرے نښودو چه دده د قول او شهادت په بنياد باندے څه فيصله اوكړے شي. دا وجه نه ده چه په ده كښ د شهادت هډو څه اهليت باقي پاتے نه دے. ولے

چه د شهادت اهليت اصلًا خو بهرحال په ده کښې شته دے. البته که چرے د نکاح همدا گواهان د څه جګړے په موقعه باندے د قاضي عدالت ته لاړ شي او ګواهي اوکړي نو د دوئ ګواهي به رد کړے شي ولے چه د دوئ ګواهئ سره هيڅ دعوي ثابتيدلے نشي. هغه خو يو عقد وو چه په دے کښې د شاهد جوړيدلو د پاره بنياد فقط مختار کيدل دي کوم چه تهمت لګونکو ته هم حاصل دے. د رمضان رؤيت هلال په سلسله کښې چه مصنفؒ کوم څه وئيلي دي هغه هم د غور قابل دي ولے چه هغے لره حنفيان د شهادت په باب کښې هډو مني نه، بلکه دا صرف اخبار دے. په دے وجه د رمضان مياشت ليدونکو د پاره دا هم ضروري نه دي چه د شهادت يا ددے هم معنٰي الفاظو سره ځپل بيان ورکړي.

۱۱۶۶: حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ قَالَ حَدَّثَنِيُ ابْنُ وَهْبٍ عَنْ يُّوْنُسَ وَ قَالَ اللَّيْثُ حَدَّثَنِيُ يُوْنُسُ عَنِ ابْنِ شَهَابٍ اَخْبَرَنِيُ عُرْوَةُ بْنُ الزُّبَيْرِ اَنَّ امْرَاَةً سَرَقَتْ فِيُ غَزْوَةِ الْفَتْحِ فَاُتِيَ بِهَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ اَمَرَ فَقُطِعَتْ يَدُهَا قَالَتْ عَآئِشَةُ فَحَسُنَتْ تَوْبَتُهَا وَ تَزَوَّجَتْ وَ كَانَتْ تَأْتِيُ بَعْدَ ذٰلِكَ فَاَرْفَعُ حَاجَتَهَا اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۱۱۶۶: اسمٰعيل. ابن وهب. يونس. ليث. يونس. ابن شهاب. عروه بن زبير نه روايت کوي، چه يوے ښځے غزوه فتح مکه کښې غلا اوکړه، نو د هغے لاس پريکړلے شو. بي بي عائشے رضي اللّٰه عنها اووے، چه د هغے توبه ښه شوه. او هغے واده اوکه. هغے نه پس به هغه ماله راتله، نو ما به د هغے ضرورت رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم ته پيش کولو.

۱۱۶۷: حَدَّثَنَا يَحيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ عَنْ زَيْدِ بْنِ خَالِدٍؓ عَنْ رَّسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهُ اَمَرَ فِيْمَنْ زَنٰى وَلَمْ يُحْصِنْ بِجَلْدِ مِائَةٍ وَّ تَغْرِيْبِ عَامٍ.

۱۱۶۷: يحيي بن بکير. ليث. عقيل. ابن شهاب. عبيد اللّٰه بن عبداللّٰه. زيد بن خالد د نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم نه روايت کوي، چه هغوئ د هغه سړي په باره کښې چه زنا اوکړي او محصن (واده ئے نه وي کړے) نه وي، د سل ډرو او يو کال جلا وطنئ حکم اوکه.

باب ۶۷۷: لَا يَشْهَدُ عَلٰى شَهَادَةِ جَوْرٍ اِذَا اُشْهِدَ.

باب ۶۷۷ د ظلم په خبره دے ګواهي نه ورکوي، که هغه ګواه جوړ کړے شي.

۱۱۶۸: حَدَّثَنَا عَبْدَانُ

۱۱۶۸: عبدان. عبداللّٰه. ابو حيان. تيمي.

أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ أَخْبَرَنَا أَبُو حَيَّانَ التَّيْمِيُّ عَنِ الشَّعْبِيِّ عَنِ النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيْرٍ قَالَ سَأَلَتْ أُمِّيْ أَبِيْ بَعْضَ الْمَوْهِبَةِ لِيْ مِنْ مَالِهِ ثُمَّ بَدَالَهُ فَوَهَبَهَا لِيْ فَقَالَتْ لَا أَرْضٰى حَتّٰى تُشْهِدَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَخَذَ بِيَدِيْ وَ أَنَا غُلَامٌ فَأَتٰى بِيَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ إِنَّ أُمَّهُ بِنْتَ رَوَاحَةَ سَأَلَتْنِيْ بَعْضَ الْمَوْهِبَةِ بِهٰذَا قَالَ أَلَكَ وَلَدٌ سِوَاهُ قَالَ نَعَمْ قَالَ فَأُرَاهُ قَالَ لَا تُشْهِدْنِيْ عَلٰى جَوْرٍ وَّ قَالَ أَبُو حَرِيْزٍ عَنِ الشَّعْبِيِّ لَا أَشْهَدُ عَلٰى جَوْرٍ.

نعمان بن بشیر نه روایت کوي، خما مور خما پلار ته اووے، چه د خپل مال نه څۀ ماته هبه کړي (اوّل خو، نے انکار اوکړه) بیا د هغهٔ په زړهٔ کښ راغلل، نو ماله نے یو څیز راکهٔ، خما مور اووے، زهٔ راضي نهٔ یم. څو پورے چه تهٔ نبي صلے الله علیه وسلّم ګواه جوړ نهٔ کړے، نو خما پلار خما لاس اونیولو، او زهٔ نے رسول الله صلے الله علیه وسلّم له بوتلم. هغه وخت زهٔ ماشوم ووم. نو حضور صلے الله علیه وسلّم ته نے عرض اوکهٔ. د دهٔ مور بنت رواحه اووے، چه زهٔ دهٔ ته څهٔ څیز هبه کړم، نو حضور صلے الله علیه وسلّم اوفرمائیل، د دهٔ نه سوا ستا نور هم څهٔ اولاد شته. هغهٔ اووے، او، د، نعمان بیان دے، حضور صلے الله علیه وسلّم اوفرمائیل، چه ما په ظُلم ګواه مهٔ جوړوه. ابو حریز د شعبي قول نقل کهٔ، چه زهٔ په ظلم ګواه نهٔ جوړیږم.

**۱۱۶۹** : حَدَّثَنَا اٰدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا أَبُوْ حَمْزَةَ قَالَ سَمِعْتُ زَهْدَمَ بْنَ مُضَرِّبٍ قَالَ سَمِعْتُ عِمْرَانَ بْنَ حُصَيْنٍ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَيْرُكُمْ قَرْنِيْ ثُمَّ الَّذِيْنَ يَلُوْنَهُمْ قَالَ عِمْرَانُ لَا أَدْرِيْ أَذَكَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعْدُ قَرْنَيْنِ أَوْ ثَلٰثَةً قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ بَعْدَكُمْ قَوْمًا يَخُوْنُوْنَ وَلَا يُؤْتَمَنُوْنَ وَ يَشْهَدُوْنَ وَلَا يُسْتَشْهَدُوْنَ وَ يَنْذُرُوْنَ وَلَا يَفُوْنَ وَ يَظْهَرُ فِيْهِمُ السِّمَنُ.

**۱۱۶۹** : آدم. شعبه. ابوحمزه. زهدم. بن مضرب. عمران بن حصین نه روایت کوي. د هغهٔ بیان دے، نبي صلے الله علیه وسلّم اوفرمائیل تاسو کښ بهتر هغه خلق دي، چه خما زمانه کښ دي، بیا هغه خلق چه د هغوي نه ورستو به راځي، بیا هغه خلق چه د هغوي نه ورستو به راځي. عمران بیان اوکهٔ، ماته نهٔ دہ معلومه، چه حضور صلے الله علیه وسلّم دوه قرن یا درے قرن نه پس اوفرمائیل، چه ستاسو نه پس به داسے قوم پیدا شي، چه خیانت به کوي، او هغوئ کښ به آمانت نهٔ وي، او ګواهي به ورکوي، حالانکه هغوي به ګواه نشي جوړولے. او نذر به مني، لیکن پوره کوي به نے نه، او هغوي کښ به چاق والے ظاهر شي.

۱۱۷۰: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ اَخْبَرَنَا سُفْيَانُ عَنْ مَنْصُورٍ عَنْ اِبْرَاهِيمَ عَنْ عُبَيْدَةَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ خَيْرُ النَّاسِ قَرْنِيْ ثُمَّ الَّذِيْنَ يَلُوْنَهُمْ ثُمَّ الَّذِيْنَ يَلُوْنَهُمْ ثُمَّ يَجِيْءُ اَقْوَامٌ تَسْبِقُ شَهَادَةُ اَحَدِهِمْ يَمِيْنَهٗ وَ يَمِيْنُهٗ شَهَادَتَهٗ قَالَ اِبْرَاهِيْمُ وَ كَانُوْا يَضْرِبُوْنَنَا عَلَى الشَّهَادَةِ وَالْعَهْدِ.

۱۱۷۰: محمد بن کثیر. سفیان. منصور. ابراهیم. عبیده. عبدالله بن مسعود. نبي صلے الله علیه وسلَم نه روایت کوي٬ حضور صلے الله علیه وسلَم اوفرمائیل٬ د ټولو نه بهتر هغه خلق دي٬ چه خما زمانه کښې دي٬ بیا هغه خلق چه د هغوي نه پس به راخي. بیا هغه خلق چه د هغوئ نه پس به راخي. بیا به داسې قوم پیدا شي٬ چه د قسم نه مخکښې به ګواهي ورکوي او ډ ګواهي نه مخکښې به قسم خوري[۱] او د٬ ابراهیم بیان دے٬ چه مونږ خلق به په ګواهئ او قسم وهلے شو.

۱. مطلب دادے چه د ګواهئ ورکولو په معامله کښې به بالکل بے قابو وي. په زړونو کښې به د دین هیڅ اهمیت باقي پاتے نشي او دروغ رښتیا هر قسمه ګواهئ د پاره به هغوئ تیارولے شي. په دے معامله کښې به د هغوئ د خفیف الحرکتئ دا حال وي چه وئیل به غواړي لفظ د شهادت او د ژبے نه به ئے اوخي قسم٬ همدغه شان قسم خوړل به غواړي او د ژبے نه به ئے اوخي شهادت لفظ.

بَابُ ۷۶۸: مَا قِيْلَ فِي شَهَادَةِ الزُّوْرِ لِقَوْلِ اللّٰهِ عَزَّ وَ جَلَّ وَالَّذِيْنَ لَا يَشْهَدُوْنَ الزُّوْرَ وَ كِتْمَانِ الشَّهَادَةِ وَلَا تَكْتُمُوا الشَّهَادَةَ وَمَنْ يَّكْتُمْهَا فَاِنَّهٗ اٰثِمٌ قَلْبُهٗ وَاللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ عَلِيْمٌ تَلْوُوْا اَلْسِنَتَكُمْ بِالشَّهَادَةِ.

باب ۷۶۸: ډ٬ دروغو ګواهي په حقله چه روایتونه بیان شوے دي٬ او اللّٰه تعالیٰ فرمائیلے دي٬ او کوم خلق چه په دروغه ګواهي نۀ کوي. او ډ ګواهي ډ پټولو بیان. ډ٬ اللّٰه تعالیٰ قول٬ او٬ مه شهادت پټوئے٬ چا چه دا پټ کۀ٬ نو ډ هغۀ قلب (زړۀ) ګنهګار دے. او اللّٰه تعالیٰ ستاسو اعمال ښۀ پیژني. اوفرمائیلے دي٬ چه خپلے ژبے کۀ شهادت کښې راتاؤ کړئے.

۱۱۷۱: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُنِيْرٍ سَمِعَ وَهْبَ ابْنَ جَرِيْرٍ وَّ عَبْدَ الْمَلِكِ بْنَ اِبْرَاهِيْمَ قَالَا حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِيْ بَكْرِ بْنِ اَنَسٍ عَنْ اَنَسٍؓ قَالَ سُئِلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْكَبَائِرِ قَالَ

۱۱۷۱: عبداللّٰه بن منیر. وهب بن جریر او عبدالملک بن ابراهیم. شعبه. عبیداللّٰه بن ابي بکر بن انس. حضرت انسؓ نه روایت کوي٬ چه نبي صلے اللّٰه علیه وسلَم نه ډ کبائرو (لوئے ګناهونو) متعلق تپوس اوشولو٬ نو حضور صلے اللّٰه علیه وسلَم اوفرمائیل چه اللّٰه سره شوک

اَلْاِشْرَاكُ بِاللّٰهِ وَ عُقُوْقُ الْوَالِدَيْنِ وَ قَتْلُ النَّفْسِ وَ شَهَادَةُ الزُّوْرِ تَابَعَهُ غُنْدَرٌ وَ اَبُوْ عَامِرٍ وَ بَهْزٌ وَ عَبْدُ الصَّمَدِ عَنْ شُعْبَةَ.

شریکول. ذ مور پلار نافرماني د چا سري قتلول. په دروغه ګواهي کول. غندر. ابو عامر. بهز او عبدالصمد هم د شعبه نه د دې متابعت کښې روایت کړې دې.

۲۱۷۲ : حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ الْمُفَضَّلِ حَدَّثَنَا الْجُرَيْرِيُّ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ اَبِيْ بَكْرَةَ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلَا اُنَبِّئُكُمْ بِاَكْبَرِ الْكَبَائِرِ ثَلٰثًا قَالُوْا بَلٰى يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ الْاِشْرَاكُ بِاللّٰهِ وَ عُقُوْقُ الْوَالِدَيْنِ وَ جَلَسَ وَ كَانَ مُتَّكِئًا فَقَالَ اَلَا وَ قَوْلُ الزُّوْرِ قَالَ فَمَا زَالَ يُكَرِّرُهَا حَتّٰى قُلْنَا لَيْتَهُ سَكَتَ وَ قَالَ اِسْمٰعِيْلُ بْنُ اِبْرٰهِيْمَ حَدَّثَنَا الْجُرَيْرِيُّ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمٰنِ.

۲۱۷۲ : مسدد. بشر بن مفضل. جریري. عبدالرحمٰن بن ابي بکره، ذ خپل پلار نه روایت کوي، د هغهٔ بیان دې، نبي صلے اللّٰه علیه وسلّم درې ځله اوفرمائیل، آیا زهٔ تاسوته ذ ټولونه لویه ګناه اونهٔ ښایم. خلقو عرض اوکهٔ، ولې نه، یا رسول اللّٰه، حضور صلے اللّٰه علیه وسلّم ورته اوفرمائیل، اللّٰه سره څوک شریک جوړول. ذ مور پلار نافرماني، او حضور صلے اللّٰه علیه وسلّم تکیه وهلې وه، ناست وو. وې فرمائیل واورې، او په دروغه ګواهي کول، او بار، بار، ئې دغه فرمائیل تردې چه مونږ اووې، کاش، چه حضور صلے اللّٰه علیه وسلّم خاموش شولې[۱]، او اسمٰعیل بن ابراهیم په واسطه ذ، جریري. عبدالرحمٰن روایت اوکهٔ.

۱ دا ذ صحابه وُ حضور اکرم صلي اللّٰه علیه وسلّم سره د محبت معامله وه چه کله حضورؐ یو خبره بار بار فرمائیل شروع کړل نو د هغوئ دا خیال راغې چه دې سره به حضورؐ ته تکلیف وي، کاش چه اوس خاموش شي او خپل ځان به زیات تکلیف کښې وانهٔ چوي.

باب ۷٦۹ : شَهَادَةِ الْاَعْمٰى وَ اَمْرِهٖ وَ نِكَاحِهٖ وَ اِنْكَاحِهٖ وَ مُبَايَعَتِهٖ وَ قُبُوْلِهٖ فِى التَّأْذِيْنِ وَغَيْرِهٖ وَمَا يُعْرَفُ بِالْاَصْوَاتِ وَ اَجَازَ شَهَادَتَهُ قَاسِمٌ وَالْحَسَنُ وَابْنُ سِيْرِيْنَ وَالزُّهْرِيُّ وَ عَطَآءٌ وَ قَالَ الشَّعْبِيُّ تَجُوْزُ شَهَادَتُهُ اِذَا كَانَ عَاقِلًا وَ قَالَ الْحَكَمُ رُبَّ

باب ۷٦۹ : ذ، ړوند ذ شهادت بیان[۱] او ذ هغهٔ حُکم ورکول او ذ هغهٔ خپله نکاح یا، ذ بل چا نکاح کول، او خرید و فروخت او ذ، آذان وغیره، او ذ هغې څیزونو، چه آواز سره معلومیدې شي، قبلولول، او قاسم، او حسن او ابن سیرین او زهري او عطاء دا شهادت جائز کړې دې. او شعبي اووې، چه ذ هغهٔ شهادت جائز دې هر کله چه عاقل وي. حَکم اووې. بعضو بعضو خبرو

شَيْءٍ تَجُوْزُ فِيْهِ وَ قَالَ الزُّهْرِيُّ اَرَاَيْتَ ابْنَ عَبَّاسٍؓ لَوْ شَهِدَ عَلٰى شَهَادَةٍ اَكُنْتَ تَرُدُّهُ وَ كَانَ ابْنُ عَبَّاسٍؓ يَبْعَثُ رَجُلًا اِذَا غَابَتِ الشَّمْسُ اَفْطَرَ وَ يُسْأَلَ عَنِ الْفَجْرِ فَاِذَا قِيْلَ لَهُ طَلَعَ صَلّٰى رَكْعَتَيْنِ وَ قَالَ سُلَيْمَانُ بْنُ يَسَارٍ اسْتَاْذَنْتُ عَلٰى عَائِشَةَ فَعَرَفَتْ صَوْتِيْ قَالَتْ سُلَيْمَانُ ادْخُلْ فَاِنَّكَ مَمْلُوْكٌ مَّا بَقِيَ عَلَيْكَ شَيْءٌ وَّ اَجَازَ عُمَرُ بْنُ جُنْدُبٍ شَهَادَةَ امْرَاَةٍ مُنْتَقِبَةٍ.

كښې به دَ ړوند ګواهي جائز وي. زهري اووې اوبنائے كۀ ابن عباسؓ يو معامله كښې ګواهي ورکړي نو آيا تاسو به هغه نۀ قبلوے[۲] او ابن عباسؓ به څوک سړے اوليږلو. هر كله چه هغۀ به اووے چه نمر پريوتلو نو روژه به ئے ماتوله. او دَ سحر متعلق به ئے تپوس كولو كله چه به ورته اوونيلے شو چه سحر شو نو دوه ركعاته مونځ به ئے اوکړلو. سُليمان بن يسار اووے ما دَ بي بي عائشےؓ نه اجازت اوغوښتلو نو هغے ځما آواز اوپيژندلو. اووے وئيل سُليمانه دننه راځه تۀ ځما غلام ئے هر كله چه تابانده څۀ هم باقي شته. سمره بن جندب دَ نقاب لرونكے ښځے ګواهي ته جائز وئيلے دي.

۱. د حنفي فقے نه معلوميږي چه د نابينا ګواهي به په اكثرو جزئياتو كښې نشي قبلولے ولے چه د ګواهئ په باب كښې عموماً د بينا والي ضرورت وي. د كومو جزئياتو چه مصنف رحمة الله عليه ذكر كړے دے په هغے كښې د احنافو په نزد هم د نابينا ګواهئ قبليدلے شي.

۲. په آخري عمر كښې حضرت ابن عباسؓ نابينا شوے وو. زهريؒ ښودل دا غواړي چه د نابينا ګواهي قبليدلے شي او دے د پاره هغوئ فرمائي چه آيا چا سړي د ابن عباسؓ ګوائي رد كولے شوه حالانكه په آخري عمر كښې هغه هم نابينا شوے وو. د احنافو د طرفه ددے جواب دادے چه د شريعت اصول او قوانين د يو انسان په وجے سره نشي ماتيدے خواه كه د هغۀ عظمت هر څومره زيات ولے نه وي. د حضرت عليؓ مشهور قاضي شُريح رحمة الله عليه دَ حسن بن علي رضي الله عنهما ګواهي په يو موقعه باندے قبوله نه كړه پخپله علي رضي الله عنه امير المؤمنين وو ليكن هغوئ په دے باندے ناګواري ښكاره نه كړه. د اسلام تاريخ كښې دا قسما واقعات ډير دي. سوال صرف دا دے چه هر كله نابينا سړے ليدل نشي كولے نو په دے اُمورو كښې د هغۀ ګواهي څرنګ قبليدلے شي كوم چه ه كتلو سره پوهه كښې راتلے شي. د آواز دَ پيژندلو او په بعضو اُمورو كښې ددے د معتبر كيدلو چه څومره پورے تعلق دے احنافو هغه تسليم كړے دے ليكن بهرحال ډير اُمور داسے دي كومو كښې چه آواز سره كار نه چليږي.

**۱۱۷۳ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عُبَيْدِ بْنِ مَيْمُوْنٍ اَخْبَرَنَا عِيْسَى بْنُ يُوْنُسَ عَنْ هِشَامٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ سَمِعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ**

۱۱۷۳ : محمد بن عبيد بن ميمون. عيسٰي بن يُونس. هشام. عروه. بي بي عائشےؓ نه روايت كوي. دَ هغے بيان دے نبي صلے الله عليه وسلم دَ يو سړي نه جمات كښې قرآن لوستل واوريدل نو حضور صلے الله

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجُلًا يَقْرَأُ فِي الْمَسْجِدِ فَقَالَ رَحِمَهُ اللّٰهُ لَقَدْ اَذْكَرَنِيْ كَذَا اٰيَةً اَسْقَطْتُهُنَّ مِنْ سُوْرَةِ كَذَا وَ كَذَا وَ زَادَ عَبَادُ ابْنُ عَبْدِ اللّٰهِ عَنْ عَآئِشَةَ تَهَجَّدَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ بَيْتِيْ فَسَمِعَ صَوْتَ عَبَّادٍ يُّصَلِّيْ فِي الْمَسْجِدِ فَقَالَ يَا عَآئِشَةُ اَصَوْتُ عَبَّادٍ هٰذَا قُلْتُ نَعَمْ قَالَ اَللّٰهُمَّ ارْحَمْ عَبَّادًا.

علیه وسلّم اوفرمائیل ' الله دے په دهٔ رحم او کړه ' دهٔ ماته فلانے آیت رایاد کړلو ' چه هغه ما فلانی سورت کښ هیر کړے وو . او عباد بن عبدالله د بي بي عائشے نه روایت کوي ' چه نبي صلے الله علیه وسلّم خما کور کښ تهجد کولو . حضور صلے الله علیه وسلّم د عباد آواز واوریدلو ' چه جمات کښ ئے مونځ کولو ' نو وے فرمائیل ' آیا د عباد آواز دے . ما عرض اوکهٔ ' جي او . حضور صلے الله علیه وسلّم اوفرمائیل . اے الله په عباد رحم او کړے .

۱۱۷۴ : حَدَّثَنَا مَالِكُ ابْنُ اسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ اَبِيْ سَلَمَةَ اَخْبَرَنَا ابْنُ شِهَابٍ عَنْ سَالِمِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ ابْنِ عُمَرَؓ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّ بِلَالًا يُّؤَذِّنُ بِلَيْلٍ فَكُلُوْا وَاشْرَبُوْا حَتّٰى يُؤَذِّنَ اَوْ قَالَ حَتّٰى تَسْمَعُوْآ اَذَانَ ابْنَ اُمِّ مَكْتُوْمٍ وَ كَانَ ابْنُ اُمِّ مَكْتُوْمٍ رَّجُلًا اَعْمٰى لَا يُؤَذِّنُ حَتّٰى يَقُوْلُ لَهُ النَّاسُ اَصْبَحْتَ.

۱۱۷۴ : مالک بن اسمٰعیل . عبدالعزیز بن ابي سلمه . ابن شهاب . سالم بن عبدالله . عبدالله بن عمرؓ نه روایت کوي ' نبي صلے الله علیه وسلّم اوفرمائیل ' چه بلالؓ لا شپه وي ' چه آذان اوکړي ' نو خورئے ' څکئے ' تردے چه ابن مکتومؓ آذان اوکړي ' یا وے فرمائیل ' چه د ' ابن مکتوم د ' آذان آواز واورئے . او ابن مکتومؓ ړوند وو ' هغه به آذان نهٔ کولو ' خو پورے چه خلقو به ورته اونهٔ وے ' چه صبا شولو .

۱۱۷۵ : حَدَّثَنَا زِيَادُ بْنُ يَحْيٰى حَدَّثَنَا حَاتِمُ بْنُ وَرْدَانَ حَدَّثَنَا اَيُّوْبُ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِيْ مُلَيْكَةَ عَنِ الْمِسْوَرِ بْنِ مَخْرَمَةَ قَالَ قَدِمَتْ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَقْبِيَةٌ فَقَالَ لِيْ اَبِيْ مَخْرَمَةُ انْطَلِقْ بِنَا اِلَيْهِ عَسٰى اَنْ يُّعْطِيَنَا مِنْهَا

۱۱۷۵ : زیاد بن یحیٰي . حاتم بن وردان . ایوب . عبدالله بن ابي ملیکه . مسور بن مخرمه نه روایت کوي ' د هغهٔ بیان دے ' چه نبي صلے الله علیه وسلّم له یو څو قباګانے (چُغے) راوړے شوے ' نو ماته خما پلار اووے ' چه ماسره نبي صلے الله علیه وسلّم له لاړ شه ' شاید چه هغه دے کښ ماله هم راکړي . خما پلار په دروازه

شَيْئًا فقَامَ اَبِىْ عَلَى الْبَابِ فَتَكَلَّمَ فَعَرَفَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَوْتَهٗ فَخَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ مَعَهٗ قَبَاءٌ وَّهُوَ يُرِيْهِ مَحَاسِنَهٗ وَهُوَ يَقُوْلُ خَبَأْتُ هٰذَا لَكَ.

اودریدلو او خبرے ئے کولے، نبي صلے اللّه علیه وسلّم د هغهٔ آواز اوپیژندلو. حضور صلے اللّه علیه وسلّم یوے قباء سره بهر تشریف راوړلو، او ذ هغے خوبئ ئے ښودلے، چه ما ستا ذ پاره (یوه) پټه ساتلے وه.

**باب ۷۷۰: شَهَادَةِ النِّسَاءِ وَ قَوْلِهٖ تَعَالٰى فَاِنْ لَّمْ يَكُوْنَا رَجُلَيْنِ فَرَجُلٌ وَّامْرَاَتَانِ.**

**باب ۷۷۰:** ذ ښځو ذ شهادت بیان، او د اللّه تعالٰي قول، کهٔ دوه سړي نهٔ وي، نو یو سړے او دوه ښځے دے ګواه دي.

**۱۱۷۶:** حَدَّثَنَا ابْنُ اَبِىْ مَرْيَمَ اَخْبَرَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ قَالَ اَخْبَرَنِىْ زَيْدٌ عَنْ عِيَاضِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ عَنْ اَبِىْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّؓ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اَلَيْسَ شَهَادَةُ الْمَرْاَةِ مِثْلَ نِصْفِ شَهَادَةِ الرَّجُلِ قُلْنَا بَلٰى قَالَ فَذٰلِكَ مِنْ نُقْصَانِ عَقْلِهَا.

**۱۱۷۶:** ابن ابي مریم. مُحمّد بن جعفر. زید. عیاض بن عبداللّٰه. حضرت ابو سعید خدريؓ. نبي صلے اللّٰه علیه وسلّم نه روایت کوي. حضور صلے اللّه علیه وسلّم اوفرمائیل، آیا ذ ښځے ګواهي ذ، یو سړي ذ نیمے ګواهئ برابر نهٔ ده. مونږ خلقو عرض او کهٔ. او. حضور صلے اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل، دغه ذ هغوئ ذ عقل نقصان دے.

**باب ۷۷۱: شَهَادَةِ الْاِمَآءِ وَالْعَبِيْدِ وَ قَالَ اَنَسٌ شَهَادَةُ الْعَبْدِ جَآئِزَةٌ اِذَا كَانَ عَدْلًا وَّ اَجَازَهٗ شُرَيْحٌ وَّ زُرَارَةُ بْنُ اَوْفٰى وَ قَالَ ابْنُ سِيْرِيْنَ شَهَادَتُهٗ جَآئِزَةٌ اِلَّا الْعَبْدَ لِسَيِّدِهٖ وَ اَجَازَهُ الْحَسَنُ وَ اِبْرٰهِيْمُ فِي الشَّيْءِ التَّافِهِ وَ قَالَ شُرَيْحٌ كُلُّكُمْ بَنُوْ عَبِيْدٍ وَّ اِمَآءٍ.**

**باب ۷۷۱:** ذ غلامانو، وینزو، ذ شهادت بیان. او انسؓ اووے. ذ غلام شهادت جائز دے. په شرط ذ دے چه عادل وي، او شریح. زراه بن اوفٰي دا جائز کړے دي. او ابن سیرین اووے. ذ هغهٔ شهادت جائز دے، ښو، ذ غلام ذ خپل مالک په حق کښ (مقبول نهٔ دے) او حسن او ابراهیم نخعي دے ته معمولي څیزونو کښ جائز وئیلے دي. او شریح اووے، چه تاسو هر یو، ذ، یوے وینزے غلام اولاد دے.

**۱۱۷۷:** حَدَّثَنَا اَبُوْ عَاصِمٍ عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ عَنِ ابْنِ اَبِىْ مُلَيْكَةَ عَنْ عُقْبَةَ بْنِ الْحَارِثِ حَدَّثَنَا عَلِيٌّ

**۱۱۷۷:** ابو عاصم. ابن جریج. ابن ابي ملیکه. عقبه بن حارث (دوئم سند) علي بن عبداللّٰه. یحيٰي بن سعید. ابن جریج. ابن ابي ملیکه. عقبه بن حارث نه

بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيْدٍ عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ قَالَ سَمِعْتُ بْنَ اَبِيْ مُلَيْكَةَ قَالَ حَدَّثَنِيْ عُقْبَةُ بْنُ الْحَارِثِ اَوْ سَمِعْتُهُ عَنْهُ اَنَّهُ تَزَوَّجَ اُمَّ يَحْيٰى بِنْتَ اَبِيْ اِهَابٍ قَالَ فَجَآءَتْ اَمَةٌ سَوْدَآءُ فَقَالَتْ قَدْ اَرْضَعْتُكُمَا فَذَكَرْتُ ذَالِكَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَعْرَضَ عَنِّيْ قَالَ فَتَنَحَّيْتُ فَذَكَرْتُ ذٰلِكَ لَهُ قَالَ وَ كَيْفَ وَقَدْ زَعَمَتْ اَنْ قَدْ اَرْضَعَتْكُمَا فَنَهَاهُ عَنْهَا.

روايت كوي. هغه أم يحيي بنت ابي اهاب سره نكاح اوكړله. يوه توره (سياه) ښځه راغله. او، ونيلے چه ما تاسو دواړوله پئے دركړے دي. دا واقعه ما نبي صلے الله عليه وسلّم ته بيان كړله، نو حضور صلے الله عليه وسلّم مخ واړولو. بيا ورته زهٔ د بل طرف نه راغلم، او ما حضور صلے الله عليه وسلّم ته بيان اوكهٔ، نو حضور صلے الله عليه وسلّم اوفرمائيل. دا څنګه كيدے شي، (ته هغې سره څنګه نكاح كولے شے) هر كله چه هغې دعويٰ كړے ده، چه هغې تاسو دواړوله تي دركړے دے، نو حضور صلے الله عليه وسلّم هغه ذ هغې ذ ساتلونه منع كړلو.

## بَابُ ۲۷۷: شَهَادَةِ الْمُرْضِعَةِ.

## باب ۲۷۷: ذ پئے وركونكے ښځے ذ شهادت بيان.

۱۱۷۸: حَدَّثَنَا اَبُوْ عَاصِمٍ عَنْ عُمَرَ بْنِ سَعِيْدٍ عَنِ ابْنِ اَبِيْ مُلَيْكَةَ عَنْ عُقْبَةَ ابْنِ الْحَارِثِ قَالَ تَزَوَّجْتُ امْرَاَةً فَجَآءَتِ امْرَاَةٌ فَقَالَتْ اِنِّيْ قَدْ اَرْضَعْتُكُمَا فَاَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ وَ كَيْفَ وَقَدْ قِيْلَ دَعْهَا عَنْكَ اَوْ نَحْوَهُ.

۱۱۷۸: ابو عاصم. عمر بن سعيد. ابن ابي مليكه. عقبه بن حارث نه روايت كوي ما يوے ښځے سره نكاح اوكړله، نو يوه ښځه راغله، او بيان ئے اوكهٔ، چه ما تاسو دواړو له تي دركړے دے. زهٔ ذ نبي صلے الله عليه وسلّم خدمت كښ حاضر شوم، او عرض م اوكهٔ، نو حضور صلے الله عليه وسلّم اوفرمائيل. څنګه (د هغې نكاح كښ ساتل ممكن كيدے شي) هر كله چه پئے وركونكے ښځے دعويٰ كړے ده، نو هغه د ځيل ځان نه جدا كړه، يا دغه شان الفاظ ئے اوفرمائيل.

## بَابُ ۲۷۳: تَعْدِيْلِ النِّسَآءِ بَعْضِهِنَّ بَعْضًا.

## باب ۲۷۳: ذ ښځو ذ، يوے بلے عدالت بيانول.

۱۱۷۹: حَدَّثَنَا اَبُو الرَّبِيْعِ سُلَيْمَانُ بْنُ دَاوُدَ وَ اَفْهَمَنِيْ بَعْضَهُ اَحْمَدُ حَدَّثَنَا فُلَيْحُ بْنُ سُلَيْمَانَ عَنِ

۱۱۷۹: ابوالربيع بن سليمان بن داؤد احمد. فليح بن سليمان. ابن شهاب. زهري. عروه بن زبير. او سعيد بن مسيب او علقمه بن وقاص ليثي او عبيدالله بن

ابْنِ شِهَابِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عُرْوَةَ ابْنِ
الزُّبَيْرِ وَ سَعِيْدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ وَ عَلْقَمَةَ
بْنِ وَقَّاصِ اللَّيْثِيِّ وَ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ
عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُتْبَةَ عَنْ عَآئِشَةَ زَوْجِ
النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِيْنَ
قَالَ لَهَا اَهْلُ الْاِفْكِ مَا قَالُوْا فَبَرَّاَهَا اللّٰهُ
مِنْهُ قَالَ الزُّهْرِيُّ وَ كُلُّهُمْ حَدَّثَنِيْ
طَآئِفَةً مِنْ حَدِيْثِهَا وَ بَعْضُهُمْ اَوْعٰى
مِنْ بَعْضٍ وَّ اَثْبَتُ لَهٗ اقْتِصَاصًا وَّقَدْ
وَعَيْتُ عَنْ كُلِّ وَاحِدٍ مِّنْهُمُ الْحَدِيْثَ
الَّذِيْ حَدَّثَنِيْ عَنْ عَآئِشَةَ وَ بَعْضُ
حَدِيْثِهِمْ يُصَدِّقُ بَعْضًا زَعَمُوْا اَنَّ
عَآئِشَةَ قَالَتْ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى
اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَآ اَرَادَ اَنْ يَّخْرُجَ
سَفَرًا اَقْرَعَ بَيْنَ اَزْوَاجِهٖ فَاَيَّتُهُنَّ خَرَجَ
سَهْمُهَا خَرَجَ بِهَا مَعَهٗ فَاَقْرَعَ بَيْنَنَا فِيْ
غَزَاةٍ غَزَاهَا فَخَرَجَ سَهْمِيْ فَخَرَجْتُ
مَعَهٗ بَعْدَ مَآ اُنْزِلَ الْحِجَابُ فَاَنَا اُحْمَلُ
فِيْ هَوْدَجٍ وَّ اُنْزَلُ فِيْهِ فَسِرْنَا حَتّٰى اِذَا
فَرَغَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ
وَسَلَّمَ مِنْ غَزْوَتِهٖ تِلْكَ وَ قَفَلَ وَ
دَنَوْنَا مِنَ الْمَدِيْنَةِ اٰذَنَ لَيْلَةً بِالرَّحِيْلِ
فَقُمْتُ حِيْنَ اٰذَنُوْا بِالرَّحِيْلِ فَمَشَيْتُ
حَتّٰى جَاوَزْتُ الْجَيْشَ فَلَمَّا قَضَيْتُ
شَاْنِيْ فَمَشَيْتُ اِلَى الرَّحْلِ فَلَمَسْتُ
صَدْرِيْ فَاِذَا عِقْدٌ لِيْ مِنْ جَزْعِ اَظْفَارٍ

عتبه. بي بي عائشې رضي تېر دَ نبي صلی الله علیه وسلم نه
روايت کوي. دَ هغې دَ تهمت لګونکو واقعه بيان کړه،
چه خلقو په هغې لګولې وو، او الله پاک دَ هغې دَ
پاکيزګۍ اعلان اوکړلو، زهري اووې، چه هغوي کښې
هر يو دَ دې حديث يوه يوه ټکړه بيان کړه. هغوئ کښې
بعضې دَ، يو بل نه زيات ياد لرونکي او بيان کولو کښې
معتبر وو. او هغوي کښې دَ، هر يو حديث چه هغوئ دَ، بي
بي عائشې نه نقل کړې دې، ما ياد ساتلې دې. او هغوئ
کښې دَ، يو روايت دَ بل تصديق کوي. هغې خلقو دَ بي بي
عائشې قول نقل کۀ چه رسول الله صلی الله علیه وسلم
به دَ سفر اراده کوله، نو دَ خپلو بيبيانو مينځ کښې به ئې
قرعه اندازي کوله، هغوئ کښې چه به دَ چا نوم راوختلو،
هغه به ئې ځان سره بوتله. يو جنګ (غزوه بني مصطلق)
ته تلو دَ پاره ئې قرعه اندازي اوکړه، نو ځما نوم راوختلو
زۀ حضور صلی الله علیه وسلم سره لاړم. دا واقعه دَ،
پردې دَ، آيت نازليدونه ورستو ده. زۀ هودج (کجاوه.
ډولۍ) کښې سوره ووم. او ډولۍ سره به راکوزولې شوم.
مونږ خلق دغسې روان وو، تردې چه کوم وخت رسول
الله صلی الله علیه وسلم دَ خپلې غزا، نه فارغ شو او
واپس شو (واپسۍ کښې) مونږ خلق مدينې ته نزدې
اورسيدو، نو دَ شپې حضور صلي الله علیه وسلم دَ،
روانګۍ اعلان اوکۀ. دَ، روانګۍ اعلان سره زۀ پاسيدم او
روانه شوم، تردې چه دَ لښکر نه مخکښې شوم، کوم
وخت چه زۀ دَ خپل حاجت نه فارغه شوم، او خپلې ډولۍ
(يا کجاوې) له راغلم، ما په خپله سينه لاس رائښکلو، نو
راته معلومه شوه چه ځما دَ، جزع اظفار هار شليدلې او

قَدْ انْقَطَعَ فَرَجَعْتُ فَالْتَمَسْتُ عِقْدِيْ
فَحَبَسَنِيْ ابْتِغَاؤُهُ فَاَقْبَلَ الَّذِيْنَ
يَرْحَلُوْنَ لِيْ فَاحْتَمَلُوْا هَوْدَجِيْ
فَرَحَلُوْهُ عَلٰى بَعِيْرِي الَّذِيْ كُنْتُ
اَرْكَبُ وَهُمْ يَحْسَبُوْنَ بِيْ فِيْهِ وَ كَانَ
النِّسَآءُ اِذْ ذٰلِكَ خِفَافًا لَمْ يَثْقُلْنَ وَلَمْ
يَغْشَهُنَّ اللَّحْمُ وَ اِنَّمَا يَاْكُلْنَ الْعُلْقَةَ
مِنَ الطَّعَامِ فَلَمْ يَسْتَنْكِرِ الْقَوْمُ حِيْنَ
رَفَعُوْهُ ثِقْلَ الْهَوْدَجِ فَاحْتَمَلُوْهُ وَ كُنْتُ
جَارِيَةً حَدِيْثَةَ السِّنِّ فَبَعَثُوا الْجَمَلَ وَ
سَارُوْا فَوَجَدْتُ عِقْدِيْ بَعْدَ مَا اسْتَمَرَّ
الْجَيْشُ فَجِئْتُ مَنْزِلَهُمْ وَ لَيْسَ فِيْهِ
اَحَدٌ فَاَمَمْتُ مَنْزِلِي الَّذِيْ كُنْتُ بِهٖ
فَظَنَنْتُ اَنَّهُمْ سَيَفْقِدُوْنِيْ فَيَرْجِعُوْنَ
اِلَيَّ فَبَيْنَا اَنَا جَالِسَةٌ غَلَبَتْنِيْ عَيْنَايَ
فَنِمْتُ وَ كَانَ صَفْوَانُ بْنُ الْمُعَطَّلِ
السُّلَمِيُّ ثُمَّ الذَّكْوَانِيُّ مِنْ وَّرَاءِ
الْجَيْشِ فَاَصْبَحَ عِنْدَ مَنْزِلِيْ فَرَاٰى
سَوَادَ اِنْسَانٍ نَائِمٍ فَاَتَانِيْ وَ كَانَ
يَرَانِيْ قَبْلَ الْحِجَابِ فَاسْتَيْقَظْتُ
بِاسْتِرْجَاعِهٖ حِيْنَ اَنَاخَ رَاحِلَتَهٗ
فَوَطِئَ يَدَهَا فَرَكِبْتُهَا فَانْطَلَقَ يَقُوْدُ
بِيَ الرَّاحِلَةَ حَتّٰى اَتَيْنَا الْجَيْشَ بَعْدَ
مَا نَزَلُوْا مُعَرِّسِيْنَ فِيْ نَحْوِ الظَّهِيْرَةِ
فَهَلَكَ مَنْ هَلَكَ وَ كَانَ الَّذِيْ تَوَلَّى
الْاِفْكَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ اُبَيِّ بْنِ سَلُوْلَ

غُر خيدلے دے. زۀ واپس شوم. او خپل هار م لټولو. د
هغے تلاش کښې په ما ناوخته شو، کومو خلقو چه خما
کجاوه (هودَج) اوچتوله، هغوي راغلل، هغه کجاوه ئے
اوچته کړه، اوپه هغے اوښ ئے کېښوده، چه په کوم به زۀ
سوريدم د هغے خلقو دا خيال وو، چه زۀ په هغے کجاوه
کښې يم. هغې زمانه کښې به ښځے عام طور سره په بدن
سپکے وے. درنے به نۀ وے. د هغوئ خوراک لږ وو،
څۀ وخت چه هغے خلقو کجاوه اوچته کړه، نو د هغے
وزن هغوي ته خلاف معمول ښکاره نۀ شو. او اوچته ئے
کړه. د دے نه علاوه زۀ يو کم عمره جينۍ ووم، نو هغوي
اوښ روان کړلو. د لښکر د، روانيدونه پس ما خپل هار
بيامونده، زۀ د هغے خلقو ځائے ته راغلم، خو هلته
هيڅوک نۀ وو. نو ما د هغے مقام قصد اوکۀ، کوم ځائے
چه زۀ ووم، او دا خيال م اوکۀ چه هغوي ما بيا نۀ مومي،
نو په تلاش تلاش به ماته راورسي. زۀ دے انتظار کښې
ناسته ووم، چه ماله خوب راغے، نو زۀ اُودۀ شوم، صفوان
بن معطل چه مخکښې سلمي وو، بيا ذکواني شو. د
لښکر نه ورستو وو. سحر وخت خما ځائے ته راغے، او
د لرے نه هغۀ يو اُودۀ بني آدم اوليد، نو ماله راغے (او زۀ
ئے پيژندم) ځکه چه د، پردے د، آيت نه مخکښې به ئے زۀ
ليدلم. د، صفوان: انا لله و انا اليه راجعون ونيلو سره زۀ
راويښه شوم. هغه خپل اوښ کينولو، نو زۀ سوره شوم، او
هغه خما د، اوښ جيلب اونيولو، او پياده روان شولو،
تردے چه مونږ خلق لښکر ته اورسيدو، چه خلق ټيک
د غرمے وخت آرام کولو د پاره کوز شوي وو، نو
هلاک شو، هغه سړے، څوک چه هلاکيدونکے وو. او

فَقَدِمْنَا الْمَدِيْنَةَ فَاشْتَكَيْتُ بِهَا شَهْرًا
يُفِيْضُوْنَ مِنْ قَوْلِ اَصْحَابِ الْاِفْكِ وَ
يُرِيْبُنِيْ فِيْ وَجْعِيْ اَنِّيْ لَا اَرٰى مِنَ
النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
اللُّطْفَ الَّذِيْ كُنْتُ اَرٰى مِنْهُ حِيْنَ
اَمْرَضُ اِنَّمَا يَدْخُلُ فَيُسَلِّمُ ثُمَّ يَقُوْلُ
كَيْفَ تِيْكُمْ لَا اَشْعُرُ بِشَيْءٍ مِّنْ ذٰلِكَ
حَتّٰى نَقَهْتُ فَخَرَجْتُ اَنَا وَ اُمُّ مِسْطَحٍ
قِبَلَ الْمَنَاصِعِ مُتَبَرَّزُنَا لَا نَخْرُجُ اِلَّا لَيْلًا
اِلٰى لَيْلٍ وَ ذٰلِكَ قَبْلَ اَنْ نَّتَّخِذَ الْكُنُفَ
قَرِيْبًا مِّنْ بُيُوْتِنَا وَ اَمْرُنَا اَمْرُ الْعَرَبِ
الْاُوَلِ فِي الْبَرِيَّةِ اَوْفِي التَّنَزُّهِ فَاَقْبَلْتُ
اَنَا وَ اُمُّ مِسْطَحٍ بِنْتُ اَبِيْ رُهْمٍ تَمْشِيْ
فَعَثَرَتْ فِيْ مِرْطِهَا فَقَالَتْ تَعِسَ
مِسْطَحٌ فَقُلْتُ لَهَا بِئْسَ مَا قُلْتِ
اَتَسُبِّيْنَ رَجُلًا شَهِدَ بَدْرًا فَقَالَتْ يَا
هَنْتَاهُ اَلَمْ تَسْمَعِيْ مَا قَالُوْا فَاَخْبَرَتْنِيْ
بِقَوْلِ اَهْلِ الْاِفْكِ فَازْدَدْتُ مَرَضًا اِلٰى
مَرَضِيْ فَلَمَّا رَجَعْتُ اِلٰى بَيْتِيْ دَخَلَ
عَلَيَّ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ
وَسَلَّمَ فَسَلَّمَ فَقَالَ كَيْفَ تِيْكُمْ
فَقُلْتُ ائْذَنْ لِّيْ اِلٰى اَبَوَيَّ قَالَتْ وَ اَنَا
حِيْنَئِذٍ اُرِيْدُ اَنْ اَسْتَيْقِنَ الْخَبَرَ مِنْ
قِبَلِهِمَا فَاَذِنَ لِيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى
اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَتَيْتُ اَبَوَيَّ فَقُلْتُ
لِاُمِّيْ مَا يَتَحَدَّثُ بِهِ النَّاسُ فَقَالَتْ يَا

دَ تهمت لړونکو سردار عبدالله بن ابي بن سلول وو (چه
هغه پړے صفوان سره تهمت لړولے وو) خير مونږ خلق
مدينے ته اورسيدو . او زهٔ يوه مياشت پورے ناروغه ووم.
دَ تهمت لړونکو خبرے خلقو کښې خوريدے . او دَ خپلے
بيماري حالت کښې ما سره شک پيدا شو، چه نبي صلے
الله عليه وسلّم به هغے مهربانئے سره نه راتلو، څنګه چه
(دَ دے نه مخکښې) دَ بيمارئ حالت کښې به مهرباني
سره پيش راتلو . اوس خو به ئې صرف تشريف راوړلو،
سلام به ئې کولو . بيا به ئې تپوس اوکړو، تهٔ څنګه ئې،
(بيا به تلو) ماته دَ دے بالکل خبر نهٔ وو، تردے چه زهٔ
ډيره کمزورے شوم (يوه شپه) زهٔ او دَ مسطح مور
مَناصِع طرف ته (رفع حاجت دَ پاره) اووتلو . مونږ خلق
به دَ شپے تلو . او دا، دَ هغے وخت خبره ده، چه څمونږ
خلقو دَ، لويو بَولو ځايونه به څمونږ کورونو سره نزدے
نهٔ وو . او دَ عربو دَ پخواني معمول مطابق به مونږ خلق
ځنګل (يعني صحرا) ته بهر رفع حاجت دَ پاره تلو . زهٔ او
اُم مسطح بنت ابي رهم دواړه روان وو، چه هغه خپل
څادر کښې اونښته، اوغرځيده او، وے وئيل، چه مسطح دِ
هلاک شي . ما هغے ته اووے، تاخو ډيره بده خبره
اوکړه . داسے سړي ته بدوائے، چه بدر کښې شريک
شوے دے . هغے اووے، اے بي بي، آيا تا نهٔ دي آوريدلے،
څه چه دا خلق وائي، او هغے ماته دَ تهمت لړونکو خبره
بيان کړه . دے آوريدو سره څما مرض نور هم زيات
شولو . کوم وخت چه زهٔ خپل کورته واپس راغلم، نو
رسول الله صلے الله عليه وسلّم ماله راغے، او وے
فرمائيل، تهٔ څنګه ئې . ما ورته عرض اوکهٔ، ماته اجازت

بُنَيَّةُ هَوِّنِيْ عَلٰى نَفْسِكِ الشَّأْنَ فَوَاللّٰهِ
لَقَلَّمَا كَانَتِ امْرَاَةٌ قَطُّ وَضِيْئَةٌ عِنْدَ
رَجُلٍ يُحِبُّهَا وَلَهَا ضَرَآئِرُ اِلَّا اَكْثَرْنَ
عَلَيْهَا فَقُلْتُ سُبْحَانَ اللّٰهِ وَلَقَدْ
يَتَحَدَّثُ النَّاسُ بِهٰذَا قَالَتْ فَبِتُّ تِلْكَ
اللَّيْلَةَ حَتّٰى اَصْبَحْتُ لَا يَرْقَأُنِيْ دَمْعٌ
وَّلَا اَكْتَحِلُ بِنَوْمٍ ثُمَّ اَصْبَحْتُ فَدَعَا
رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
عَلِيَّ ابْنَ اَبِيْ طَالِبٍ وَّ اُسَامَةَ بْنَ زَيْدٍ
حِيْنَ اسْتَلْبَثَ الْوَحْيُ يَسْتَشِيْرُهُمَا
فِيْ فِرَاقِ اَهْلِهٖ فَاَمَّآ اُسَامَةُ فَاَشَارَ
عَلَيْهِ بِالَّذِيْ يَعْلَمُ فِيْ نَفْسِهٖ مِنَ الْوُدِّ
لَهُمْ فَقَالَ اُسَامَةُ اَهْلُكَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ
وَلَا نَعْلَمُ وَاللّٰهِ اِلَّا خَيْرًا وَّ اَمَّا عَلِيُّ
بْنُ اَبِيْ طَالِبٍ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ لَمْ
يُضَيِّقِ اللّٰهُ عَلَيْكَ وَالنِّسَآءُ سِوَاهَا
كَثِيْرٌ وَّسَلِ الْجَارِيَةَ تَصْدُقْكَ فَدَعَا
رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
بَرِيْرَةَ فَقَالَ يَا بَرِيْرَةُ هَلْ رَاَيْتِ
فِيْهَا شَيْئًا يُرِيْبُكِ فَقَالَتْ بَرِيْرَةُ لَا
وَالَّذِيْ بَعَثَكَ بِالْحَقِّ اِنْ رَاَيْتُ مِنْهَا
اَمْرًا اَغْمِصُهُ عَلَيْهَا اَكْثَرَ مِنْ اَنَّهَا
جَارِيَةٌ حَدِيْثَةُ السِّنِّ تَنَامُ عَنِ
الْعَجِيْنِ فَتَاْتِي الدَّاجِنُ فَتَاْكُلُهُ فَقَامَ
رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
مِنْ يَّوْمِهٖ فَاسْتَعْذَرَ مِنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ

راکړنے، چه زهٔ خپل مور پلار کره لاړه شم. او دے نه
خما مقصد دا وو، چه د دے خبر په حقله هغوي له ورشم
او تحقيق اوکړم، رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلّم ماله
اجازت راکړلو، زهٔ مور پلار کره راغلم، نو ما د خپلے
مور نه تپوس اوکهٔ، چه دا خلق څهٔ وائي. هغے راته
اووے، لورے (بچۍ) پروا مهٔ کوه، کومه ښځه چه ښکلے
(حسينه) وي، او ذ هغے ذ خاوند ورسره محبت وي، او ذ
هغے بنے (سوکنيں) وي، نو ذ دے قسم ډيرے خبرے
کيږي، ما ورته اووے، سبحان اللّٰه، (د دے قسم خبره
خوبنونهٔ ده کړے) داسے خبره خو خلقو کښ مشهوره
شوے ده. ما هغه شپه په داسے حال کښ تيره کړه، چه
خما اوښکے نهٔ اُودريدلے، اونه ماله خوب راغے. بيا چه
صبا شو، او، وحي راتلو کښ تاخير اوشو، نو رسول اللّٰه
صلي اللّٰه عليه وسلّم، عليؓ بن ابي طالب او، اسامه بن زيدؓ
راوغوښتل او ذ خپلے ښځے ذ جُدا کولو متعلق ئے ذ
هغوی نه مشوره واخسته، اسامه پوهيدلو، چه ذ حضور
صلے اللّٰه عليه وسلّم خپلو بيبيانو سره محبت دے نو هغهٔ
داسے مشوره ورکړه، او وے ونيل، يا رسول اللّٰه، زهٔ
ستاسو بيبيانو کښ خير وينم ليکن عليؓ بن ابي طالب
عرض اوکهٔ، يا رسول اللّٰه، اللّٰه تعالٰي په تاسو تنګسيا نهٔ
ده راوستے، ذ هغے نه علاوه ښځے ډيرے دي، او وينزے
(بريره) نه تپوس اوکړئے. هغه به تاسو ته رينښتيا رينښتيا
اووائي. رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلّم بريره
راوغوښتله، اووے فرمائيل، اے بريره، آيا تا عائشهؓ کښ
داسے څهٔ خبره ليدلے ده، چه تا شک کښ واچوي،
بريرے عرض اوکهٔ، قسم دے په هغه ذات، چه هغه تاسو

أُبَيِّ بْنِ سَلُوْلَ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ
صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ يَّعْذِرُنِيْ
مِنْ رَّجُلٍ بَلَغَنِيْ اَذَاهُ فِيْ اَهْلِيْ
فَوَاللّٰهِ مَا عَلِمْتُ عَلٰى اَهْلِيْ اِلَّا خَيْرًا
وَّ قَدْ ذَكَرُوْا رَجُلًا مَّا عَلِمْتُ عَلَيْهِ اِلَّا
خَيْرًا وَّمَا كَانَ يَدْخُلُ عَلٰى اَهْلِيْ اِلَّا
مَعِيْ فَقَامَ سَعْدُ بْنُ مُعَاذٍ فَقَالَ يَا
رَسُوْلَ اللّٰهِ اَنَا وَ اللّٰهِ اَعْذِرُكَ مِنْهُ
اِنْ كَانَ مِنَ الْاَوْسِ ضَرَبْنَا عُنُقَهٗ وَ
اِنْ كَانَ مِنْ اِخْوَانِنَا مِنَ الْخَزْرَجِ
اَمَرْتَنَا فَفَعَلْنَا فِيْهِ اَمْرَكَ فَقَامَ سَعْدُ
بْنُ عُبَادَةَ وَهُوَ سَيِّدُ الْخَزْرَجِ وَ كَانَ
قَبْلَ ذٰلِكَ رَجُلًا صَالِحًا وَّلٰكِنِ
احْتَمَلَتْهُ الْحَمِيَّةُ فَقَالَ كَذَبْتَ لَعَمْرُ
اللّٰهِ لَا تَقْتُلُهٗ وَلَا تَقْدِرُ عَلٰى ذٰلِكَ
فَقَامَ اُسَيْدُ بْنُ الْحُضَيْرِ فَقَالَ كَذَبْتَ
لَعَمْرُ اللّٰهِ وَاللّٰهِ لَنَقْتُلَنَّهٗ فَاِنَّكَ مُنَافِقٌ
تُجَادِلُ عَنِ الْمُنَافِقِيْنَ فَثَارَ الْحَيَّانِ
الْاَوْسُ وَالْخَزْرَجُ حَتّٰى هَمُّوْا وَ رَسُوْلُ
اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى
الْمِنْبَرِ فَنَزَلَ فَخَفَّضَهُمْ حَتّٰى سَكَتُوْا
وَسَكَتَ وَ بَكَيْتُ يَوْمِيْ لَا يَرْقَاُ لِيْ دَمْعٌ
وَلَا اَكْتَحِلُ بِنَوْمٍ فَاَصْبَحَ عِنْدِيَ
اَبَوَايَ قَدْ بَكَيْتُ لَيْلَتَيْنِ وَ يَوْمًا حَتّٰى
اَظُنَّ اَنَّ الْبُكَآءَ فَالِقٌ كَبِدِيْ قَالَتْ
فَبَيْنَاهُمَا جَالِسَانِ عِنْدِيْ وَ اَنَا اَبْكِيْ

حق سره رالیږلې ئې، ما هغې کښې هیڅ داسې خبره نه ده
لیدلې، چه د عیب وي، سوا د دې نه چه هغه کم عمره
ده، او، آخلې اوړهٔ پریږدي، اوده شي، او چیلئې راشي،
هغه اوخوري. رسول الله صلی الله علیه وسلّم په هغه
ورځ خطبې ورکولو د پاره اودریدلو. او د عبدالله بن
ابي بن سلول مقابله کښې ئې مدد طلب که. او حضور
صلی الله علیه وسلّم اوفرمائیل، څوک شته، چه ځما
مدد اوکړي، د هغې سړي مقابله کښې چه هغه ماته ځما
د، کور والوپه حقله تکلیف راکړلو، حالانکه، په خدائې
چه، زهٔ خپل کوروالو کښې نیکي وینم، او کوم سړي سره
چه ئې تهمت لږولې دې، هغه کښې هم زهٔ نیکي وینم.
هغه به ځما کورته ماسره تلو دې آوریدو سره سعد بن
معاذ اودرید او عرض ئې اوکهٔ یا رسول الله، زهٔ ستاسو
مدد ته تیار یم. که هغه د قبیله اوس دې، نو زهٔ به د هغهٔ
ګردن والوځوم. او که هغهٔ ځمونږ د، رونړو خزرج د
قبیلې نه دې. نو څنګه چه حکم کوئې، هغسې به عمل
کوم. دې آوریدو سره سعد بن عُباده چه دَ قبیله خزرج
سردار وو، اودریدلو. دې نه مخکښې هغه صالح سړې
وو لیکن حمیت هغهٔ راؤپارولو. اوونیلې، قسم په
خدائې، نه تهٔ هغه وژلې شې، او نه تهٔ د هغهٔ په قتل قادر
ئې. بیا اُسید بن حضیر اودرید، اوونیلې، تهٔ دروغ
وائې، په خدائې م دې قسم وي، مونږ به هغه قتل کړو، تهٔ
منافق ئې. د منافقانو د طرف نه جګړه کوې. اُوس او
خزرج دواړه قبیلې راؤپاریدلې تردې چه خپلو کښې د
جنګ اراده ئې اوکړله. او رسول الله صلی الله علیه
وسلّم په منبر وو. نو حضور صلی الله علیه وسلّم د منبر

إذَا اسْتَأْذَنَتِ امْرَأَةٌ مِّنَ الْاَنْصَارِ فَاَذِنْتُ
لَهَا فَجَلَسَتْ تَبْكِيْ مَعِيْ فَبَيْنَا
نَحْنُ كَذٰلِكَ اِذْ دَخَلَ رَسُوْلُ
اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
فَجَلَسَ وَلَمْ يَجْلِسْ عِنْدِيْ
مِنْ يَوْمِ قِيْلَ فِيَّ مَا قِيْلَ قَبْلَهَا
وَقَدْ مَكَثَ شَهْرًا لَّا يُوْحٰى اِلَيْهِ
فِيْ شَأْنِيْ شَيْءٌ قَالَتْ فَتَشَهَّدَ ثُمَّ
قَالَ يَا عَآئِشَةُ فَاِنَّهٗ بَلَغَنِيْ عَنْكِ كَذَا وَ
كَذَا فَاِنْ كُنْتِ بَرِيْئَةً فَسَيُبَرِّئُكِ اللّٰهُ
وَ اِنْ كُنْتِ اَلْمَمْتِ فَاسْتَغْفِرِيْ اللّٰهَ
وَ تُوْبِيْٓ اِلَيْهِ فَاِنَّ الْعَبْدَ اِذَا
اعْتَرَفَ بِذَنْبِهٖ ثُمَّ تَابَ تَابَ
اللّٰهُ عَلَيْهِ فَلَمَّا قَضٰى رَسُوْلُ
اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
مَقَالَتَهٗ قَلَصَ دَمْعِيْ حَتّٰى مَا
اُحِسُّ مِنْهُ قَطْرَةً وَّ قُلْتُ لِاَبِيْ
اَجِبْ عَنِّيْ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى
اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اللّٰهِ مَا
اَدْرِيْ مَآ اَقُوْلُ لِرَسُوْلِ اللّٰهِ
صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْتُ
لِاُمِّيْ اَجِيْبِيْ عَنِّيْ رَسُوْلَ اللّٰهِ
صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْمَآ
قَالَ قَالَتْ وَاللّٰهِ مَا اَدْرِيْ مَا
اَقُوْلُ لِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ
عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَتْ وَ اَنَا

نه راکوز شولو، او د هغې ټولو جوش ئې کم کۀ، تردې
چه هغه خلق خاموش شول. او حضور صلے الله علیه
وسلّم هم خاموش شولو. او زۀ ټوله ورځ ژړیدم، نه م
اوښکې اودریدلې، اونه خوب راتلو. صباته ماله مور پلار
راغلل، ما دوه شپې او یوه ورځ ژړلې وو، تردې چه ما
خیال اوکۀ، چه ژړا سره به خما اینه اوچوي، هغوي
دواړه ناست وو، او، ما ژړل، چه دې کښې یوې انصاري
ښځې دننه د، راتلو اجازت اوغوښتلو. ما هغې له اجازت
ورکه. هغه کیناسته، او ما سره په ژړا شوه. مونږ په دغې
حال کښې وو، چه رسول الله صلے الله علیه وسلّم
تشریف راوړلو او کیناستلو، حالانکه دې نه مخکښې د
کوم وخت نه چه خما متعلق تهمت لږیدلې وو، نه به
کیناستلو. یوه میاشت پورې ئې انتظار کولو لیکن خما
شان کښې څۀ وحي نازله نه شوه، حضور صلے الله علیه
وسلّم تشهد اولوستلو. بیائې اوفرمائیل. اے عائشهؓ، ستا
متعلق ماته داسې داسې خبرې رارسیدلې دي، کۀ تۀ بري
ئې نو الله به ستا پاکیز کي ظاهره کړي او کۀ تۀ دې کښې
راغلې ئې، نو د الله نه مغفرت طلب کۀ، او توبه اُکړه،
ځکه چه بنده د خپلو ګناهونو اقرار کوي. بیا توبه کړي،
نو الله تعالي ئې توبه قبلوي. رسول الله صلے الله علیه
وسلّم چه خپلې خبرې ختمې کړې، نو خما اوښکې
دفعته اودریدې. تردې چه یوه قطره هم ما محسوس نۀ
کړله. او ما خپل پلارته اووې، چه خما د طرفه رسول
الله صلے الله علیه وسلّم ته جواب ورکړه. هغۀ اووې:
په خدائې چه، زۀ نۀ پوهیږم چه رسول الله صلے الله علیه
وسلّم ته څۀ جواب ورکړم. بیا ما خپلې مورته اووې،

جَارِيَةٌ حَدِيثَةُ السِّنِّ لَا أَقْرَأُ كَثِيرًا مِنَ الْقُرْآنِ فَقُلْتُ إِنِّي وَاللَّهِ لَقَدْ عَلِمْتُ أَنَّكُمْ سَمِعْتُمْ مَا يَتَحَدَّثُ بِهِ النَّاسُ وَ وَقَرَ فِيٓ أَنْفُسِكُمْ وَ صَدَّقْتُمْ بِهِ وَلَئِنْ قُلْتُ لَكُمْ إِنِّي بَرِيئَةٌ وَاللَّهُ يَعْلَمُ إِنِّي لَبَرِيئَةٌ لَا تُصَدِّقُونِي بِذٰلِكَ وَلَئِنِ اعْتَرَفْتُ لَكُمْ بِأَمْرٍ وَّاللَّهُ يَعْلَمُ أَنِّي بَرِيئَةٌ لَتُصَدِّقُنِي وَاللَّهِ مَآ أَجِدُ لِي وَلَكُمْ مَثَلًا إِلَّا أَبَا يُوسُفَ إِذْ قَالَ فَصَبْرٌ جَمِيلٌ وَاللَّهُ الْمُسْتَعَانُ عَلٰى مَا تَصِفُونَ ثُمَّ تَحَوَّلْتُ عَلٰى فِرَاشِي وَ أَنَا أَرْجُوا أَنْ يُبَرِّئَنِي اللَّهُ وَلٰكِنْ وَاللَّهِ مَا ظَنَنْتُ أَنْ يُنْزِلَ فِي شَأْنِي وَحْيًا وَّلَأَنَا أَحْقَرُ فِي نَفْسِي مِنْ أَنْ يُتَكَلَّمَ بِالْقُرْآنِ فِي أَمْرِي وَلٰكِنِّي كُنْتُ أَرْجُو أَنْ يَرٰى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي النَّوْمِ رُؤْيَا يُبَرِّئُنِي اللَّهُ فَوَاللَّهِ مَا رَامَ مَجْلِسَهُ وَلَا خَرَجَ أَحَدٌ مِّنْ أَهْلِ الْبَيْتِ حَتّٰى أُنْزِلَ عَلَيْهِ فَأَخَذَهُ مَا كَانَ يَأْخُذُهُ مِنَ الْبُرَحَاءِ حَتّٰى إِنَّهُ لَيَتَحَدَّرُ مِنْهُ مِثْلُ الْجُمَانِ مِنَ الْعَرَقِ فِي يَوْمٍ شَاتٍ فَلَمَّا

چه خما دَ طرفه رسول الله صلے الله علیه وسلّم ته جواب ورکړه. هغے هم اووے، خدائے کو، زۀ نۀ پوهیږم، چه رسول الله صلے الله علیه وسلّم ته څۀ اووائم. بي بي عائشهؓ وائي، زۀ کم عمره ووم، او قرآن مِ زیات نۀ وو لوستے، ما عرض اوکۀ په خدائے چه، زۀ پوهیږم، چه تاسو کومه خبره آوریدلے ده، چه خلقو کښې مشهوره ده، او ستاسو زړۀ کښې هغه خبره ناسته ده. او تاسو ریښتیا ګنړلے ده، کۀ زۀ دا، اووائم، چه زۀ بے ګناه یم، او الله ته معلومه ده، چه زۀ بے ګناه یم نو تاسو به خما خبره ریښتنے اونۀ ګنړئے. اوکۀ زۀ دَ څۀ خبرے اقرار اوکړم، او خدائے ته معلومه ده، چه زۀ بے ګناه یم، نو تاسو به ما ریښتنے اوګنړئے. په خدائے مِ دے قسم وي، زۀ خپل او ستاسو مثال دَ یُوسف علیه السلام دَ پلار نه سِوا، نه بیاموم، چه هغه فرمائیلے وو، صبر بهتر دے، او الله خما مددګار دے، په هغه خبرو، چه تاسو، ئے بیانوئے. بیا ما په بستره اړخ بدل کړو. خما دا اُمید وو، چه الله تعالٰي به خما پاکدامني ظاهره کړي. لیکن په خدائے مِ دے قسم وي، خما دا ګمان نۀ وو، چه خما متعلق به وحي نازلیږي، او خپل زړۀ کښې مِ خان دَ دے قابل نۀ ګنړلو، چه خما دَ دے معاملے ذکر به قرآن کښې راشي. بلکه خما دا خیال وو، چه رسول الله صلے الله علیه وسلّم به څۀ خوب اووینې، چه هغے کښې به الله تعالٰي خما پاکدامني ظاهره کړي. بیا په خدائے مِ دے قسم وي، حضور صلے الله علیه وسلّم دَ خپل ځائے نه لا خوزیدلے هم نۀ وو، اونه دَ کوروالو نه څوک بهر ته تلے وو، چه په حضور صلے الله علیه وسلّم وحي نازله شوه، او په حضور صلے الله

سُرِّیَ عَنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّی
اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ یَضْحَكُ
فَكَانَ اَوَّلَ كَلِمَةٍ تَكَلَّمَ بِهَا اَنْ
قَالَ لِیْ لِعَآئِشَةُ اَحْمَدِی اللّٰهَ
فَقَدْ بَرَّاَكِ اللّٰهُ فَقَالَتْ لِیْ اُمِّیْ
قُوْمِیْ اِلٰی رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّی
اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْتُ لَا وَاللّٰهِ
لَا اَقُوْمُ اِلَیْهِ وَلَآ اَحْمَدُ اِلَّا اللّٰهَ
فَاَنْزَلَ اللّٰهُ تَعَالٰی اِنَّ الَّذِیْنَ
جَآءُوْا بِالْاِفْكِ عُصْبَةٌ مِّنْكُمْ
الْاٰیَةَ فَلَمَّا اَنْزَلَ اللّٰهُ هٰذَا فِیْ بَرَآءَتِیْ
قَالَ اَبُوْبَكْرِ الصِّدِّیْقُ وَكَانَ
یُنْفِقُ عَلٰی مِسْطَحِ ابْنِ اُثَاثَةَ
لِقَرَابَتِهٖ مِنْهُ وَاللّٰهِ لَآ اُنْفِقُ
عَلٰی مِسْطَحٍ شَیْئًا اَبَدًا بَعْدَ مَا
قَالَ لِعَآئِشَةَ فَاَنْزَلَ اللّٰهُ تَعَالٰی وَلَا یَاْتَلِ
اُولُوا الْفَضْلِ مِنْكُمْ وَالسَّعَةِ اِلٰی قَوْلِهٖ
غَفُوْرٌ رَّحِیْمٌ فَقَالَ اَبُوْبَكْرٍ بَلٰی وَاللّٰهِ
اِنِّیْ لَاُحِبُّ اَنْ یَّغْفِرَ اللّٰهُ لِیْ فَرَجَعَ اِلٰی
مِسْطَحِ الَّذِیْ كَانَ یُجْرِیْ عَلَیْهِ وَ
كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ تَعَالٰی صَلَّی اللّٰهُ
عَلَیْهِ وَسَلَّمَ یَسْاَلُ زَیْنَبَ بِنْتَ
جَحْشٍ عَنْ اَمْرِیْ فَقَالَ یَا زَیْنَبُ مَا
عَلِمْتِ مَا رَاَیْتِ فَقَالَتْ یَا رَسُوْلَ اللّٰهِ
اَحْمِیْ سَمْعِیْ وَبَصَرِیْ وَاللّٰهِ مَا
عَلِمْتُ عَلَیْهَا اِلَّا خَیْرًا قَالَتْ وَهِیَ

علیه وسلم هغه د تکلیف حالت خوږ شولو. چه د وحی
نازلیدلو په وخت به پرے حوریدلو. د یحی به ورځ به
هم د حضور صلی الله علیه وسلم د مخ مبارک نه خوله
(پسینه) د موتیانو (ملغلرو) په شان بهیدله. کوم وخت
چه د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه دا کیفیت لرے
شو، نو په خندا شولو، او ومبنے خبره چه د حضور صلی
الله علیه وسلم د خولے نه اوخته، هغه دا ده، چه حضور
صلی الله علیه وسلم ماته اوفرمائیل، اے عائشے! د الله
شکر ادا کړه، چه هغه ستا پاکدامني بیان کړه. ماته خما
مور اووے د رسول الله صلی الله علیه وسلم مخکښ
اودریږه. ما ورته اووے نه. په خدائے م دے قسم وي، زهٔ
به اونهٔ دریږم، او صرف د الله شکر به ادا کوم. بیا الله
پاک دا آیت نازل کړلو: اِنَّ الَّذِیْنَ جاءُوْا بالافک آخر
آیت پورے. هر کله چه الله پاک خما په بے ګناهي دا
آیت نازل کړ، نو ابوبکر صدیق چه د مسطح بن اثاثه په
ذات به ئے د هغهٔ د قرابت په سبب خرچ کولو، هغهٔ
اووے، قسم په خدائے چه په مسطح به (نور) خرچ نه
کوم، هغهٔ په عائشے تهمت اولږولو. نو الله تعالي آیت:
وَلا یاْتَلِ اُولُوا الْفَضْلِ نه غفور رحیم پورے نازل کړلو.
حضرت ابوبکرؓ اووے، زهٔ خو، په خدائے قسم دا
خوښوم، چه الله تعالي ما اوبښي بیا مسطح له ئے هغه څهٔ
ورکول، چه مخکښ به ئے ورکول. او رسول الله صلی
الله علیه وسلم به د زینب بنت جحش نه خما متعلق
تپوس کولو، اوفرمائیل به ئے، اے زینبؓ، تا ته څهٔ
معلومات شته، او تا څهٔ لیدلي دي، نو هغے ورته اووے، یا
رسول الله، زهٔ خپل غوږ او سترګه بچ ساتم، په خدائے م

الَّتِيْ كَانَتْ تُسَامِيْنِيْ فَعَصَمَهَا اللّٰهُ بِالْوَرَعِ قَالَ وَ حَدَّثَنَا فُلَيْحٌ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَآئِشَةَ وَ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ الزُّبَيْرِ مِثْلَهُ قَالَ وَ حَدَّثَنَا فُلَيْحٌ عَنْ رَّبِيْعَةَ بْنِ اَبِيْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ وَ يَحْيَى بْنِ سَعِيْدٍ عَنِ الْقَاسِمِ ابْنِ مُحَمَّدِ بْنِ اَبِيْ بَكْرٍ مِثْلَهُ.

دے قسم وي، زهٔ خو هغه بنهٔ گنړم. ذ بي بي عائشےؓ بيان دے، چه هغه خما همسر، وه، ليكن اللّٰه تعالٰي د پرهيز گارئ په سبب بچ كړله. ابو الربيع سليمان بن داؤد اووے، چه ماته فليح په واسطه دَ هشام بن عروه. عروه، عائشے او عبداللّٰه بن زبيرؓ دغسے بيان او كهٔ ابو الربيع اووے، چه ماته فليح په واسطه د ربيعه بن ابي عبدالرحمٰن او يحيٰي بن سعيد قاسم بن محمد بن ابي بكر دغسے روايت او كهٔ[۲].

۱. سعد بن عبادهؓ د مدينے مشهورے قبيلے خزرج سردار او جليل القدر صحابي دے. ټول ژوند ئے د اسلام‌ـه حمايت او نصرت كښ تير شوے وو ليكن د سعد بن معاذؓ په مقابله كښ چه هغوئ كومه خبره او كړه هغے[illegible] ته په بل نقطه نظر سره كتل پكار دي.

په حضرت عائشےؓ باندے چه كوم تهمت لګولے شوے وو هغه هم ډير سنګين وو او رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم ته دے واقعے سره سخته صدمه رسيدلے وه. د حضور اكرم په ژوند كښ به داسے واقعات په مشكله ملاؤ شي چه هغوئ په خپلے څه ذاتي معاملے كښ د صحابهٔ نه پدا شان مدد غوښتے وي. اګرچه غور كولو سره دا واقعه هم د حضورؐ ذاتي نه پاتے كيږي بلكه د خدائے رسول او پيغمبر كيدلو په وجے سره دا هم دين او دَ ټول اُمت مسئله وه. بهر حال حضور اكرمؐ چه كله دا معامله د صحابهٔ مخے ته كيښوده نو سعد بن معاذؓ پاسيدو او د خپل مدد او قربانئ وړانديز ئے او كړو. د دغه وخت خبرو اترو نه، او په دے وجه هم چه خبره خوره شوے وه او خلقوته معلومه وه چه به تهمت لګولو كښ پيش پيش څوک دي، نو حضرت سعد بن عبادهؓ او كنړله چه د خبرے مخ اوس قبيلے طرفته دے ولے چه عبداللّٰه بن اُبي اوس قبيلے سره تعلق لرلو.

د يو څو كالو مخكښ خبره وه چه اوس او خزرج د يو بل ځاني دشمنان وو او دَ كلونو كلونو خپلو خونړي جنګونو د يو بل خلاف په زړونو كښ د بُغض او كينے جرړے مضبوطے كړے وے. چه اسلام راغے نو دا ټول داسے يو شوي وو لكه چه په ماضي كښ هډو څه واقعه نه وه راپيښه شوے. ليكن بهرحال د پيړو پيړو دشمني وه، د عربو دشمني! د شكونو شُبهو په پوره توګه ختميدل ممكن هم نهٔ وو. كله چه سعد بن معاذ اودريدو او حضور اكرم صلي اللّٰه عليه وسلّم ته ئے د خپل مدد يقين وركړو نو سعد بن عبادهؓ او ګنړل چه دے خمونږ نه بدله اخستل غواړي، په دے وجه دا (سخت) كلمات د هغوئ په ژبه راغلل. د طبراني روايت دے چه سعد بن عبادهؓ هغه وخت دا خبره هم ظاهره كړے وه چه اے معاذه! دے وخت ته د رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم مدد نه كوے بلكه د هغه دشمنئ بدل اخستل غواړے كومه چه زمونږ تر مينځه د جاهليت په زمانه كښ وه. ستاسو زړونه اوس هم صفا شوي نه دي. په دے باندے سعد بن معاذ اوفرمائيل چه خما د زړه خبره اللّٰه تعالٰي ته ښه معلومه ده. ددے پس منظر نه پس د ابن عبادهؓ د لب و لهجے د

تریخوالي بنیاد ملاؤ شو. د حضرت عائشهؓ هم دا مقصد دے چه ابن عباده ډیر نیک سړے وو لیکن غلط فهمۍ د هغوئ حمیت رابیدار کړو، کنے ظاهره ده چه د اسلام په معامله کښ صحابه ؤ د خپل خاندان او مور پلار پرواه هم نه ده کړے. دا خو صرف د قبیلے معامله وه لیکن کله چه د مقابل د طرفه شکوک او شبهات وي او د هغے د پاره په څه نه څه درجه کښ بنیاد هم وي نو سړے داسے خبرے هم خولے نه اوباسي. او په دے ټول بحث کښ د جاهلو عربو حمیت، د هغوئ نه ختمیدونکے کینه، او په معمولي غونډے خبره باندے خپل خان جنګونکے جذبه د کومے په نتیجه کښ چه لړه شان خبره تر صدو پورے باقي پاتے کیدونکو جنګونو سبب جوړ شوے وي، ملحوظ ساتل پکار دي.

۲. دا اوګد حدیث ئے د ذکر شوي عنوان لاندے خکه راوړے دے چه په دے کښ د بریرے رضي الله عنها د ګواهئ ذکر دے چه حضور اکرم صلي الله علیه وسلم هغے نه د حضرت عائشهؓ متعلق تپوس فرمائیلے وو او هغے د بي بيؓ په خصائلو او اخلاقو باندے د اطمینان اظهار کړے وو. همدغه شان په دے حدیث کښ د زینب رضي الله عنها د ګواهئ ذکر هم دے دا حدیث به آئنده هم راځي.

بـــاب ۱۲۷۴: اِذَا زَکّـــىٰ رَجُـــلٌ رَّجُلًا کَـــفَـــاهُ وَ قَـــالَ اَبُـــوْ جَـــمِيْـــلَةَ وَجَـــدْتُ مَـــنْبُـــوْذًا فَـــلَـــمَّـــا رَاٰنِـــیْ عُـــمَـــرُ قَـــالَ عَسَـــى الْـــغُـــوَيْـــرُ اَبْـــؤُسًـــا کَـــاَنَّـــهٗ یَتَّهِـــمُـــنِـــیْ قَـــالَ عَـــرِیْـــفِـــیْ اِنَّـــهٗ رَجُـــلٌ صَـــالِـــحٌ قَـــالَ کَـــذَالِکَ اِذْهَـــبْ وَ عَـــلَـــيْـــنَـــا نَفَقَتُهٗ.

باب ۱۲۷۴: کۀ یو سړے دَ یو سړي پاکي بیان کړيا، نو کافي دہ. او ابو جمیله اووے، چه ما یو هلک پروت بیامُند، کوم وخت چه زۀ حضرت عمرؓ اولیدم، نو وے وئیل چرته دا غار تکلیف ده نه ويا (یومتل دے، په داسے موقعه وئیلے شي چه کوم کار کښ په ظاهر آمن وي. لیکن انجام کار خطره وي) ګویا زۀ ئے متهم کولم. خما یو نقیب (ثنا صفت کونکي) ګواهي ورکړه چه دے صالح سړے دے، نو حضرت عمرؓ اوفرمائیل، چه داسے خبره ده، نو دے بوځه. او دَ دۀ خرچ په مونږ دے.

۱. ۂ تعدیل مفهوم دے ۂ چا په عدالت باندے ګواهي ورکول. د عدالت د وصف مطلب دا وي چه سړے شریف وي او د ښو اخلاقو او عاداتو والا وي او په هغه کښ سنجیدګي او مروت وي. هسے خو په عربۍ کښ د عدالت مفهوم ډیر وسیع دے لیکن که د قضا او قانون په باب کښ د زیات شدَت نه کار واخستے شو نو بیا به په صحیح معنو کښ ګواه ملاویدل هم ممکن پاتے نشي. دے د پاره د مفهوم په تعیین کښ صرف ددے لحاظ ساتلے شوے دے چه واقعي او رښتینے ګواهیانے په اسانئ سره ملاؤ شي او په هغے کښ د زیات لتهون موقعه باقي پاتے نشي. د تعدیل لفظ ددے نه مخکښ هم څو خلے تیر شوے دے لیکن په هره موقعه باندے مونږ ددے ترجمه کول کافي اوګنړل. البته دلته مو دا لفظ باقي ساتلے دے او ددے تشریح مو اوکړله.

۲. دا یو مَتل دے او په داسے موقعه کښ ویلے کیږي چه په ظاهري خو اَمن او سلامتي وي لیکن د انجام او حقیقت په اعتبار سره معامله خطرناکه وي. حضرت عمر رضي الله عنه ګنړلي وو چه ممکنه ده دا

د همدهٔ خونبے وي او بیت المال نه دده وظیفه وصولو د پاره ذ ماشوم باره کښ د واقعے نه خلاف خبره کوي.

۱۱۸۰ : حَدَّثَنَا ابْنُ سَلَامٍ اَخْبَرَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ حَدَّثَنَا خَالِدُ الْحَذَّاءُ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ اَبِیْ بَكْرَةَ عَنْ اَبِیْهِ قَالَ اَثْنٰى رَجُلٌ عَلٰى رَجُلٍ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ وَيْلَكَ قَطَعْتَ عُنُقَ صَاحِبِكَ قَطَعْتَ عُنُقَ صَاحِبِكَ مِرَارًا ثُمَّ قَالَ مَنْ كَانَ مِنْكُمْ مَّادِحًا اَخَاهُ لَا مُحَالَةَ فَلْيَقُلْ اَحسِبُ فُلَانًا وَّاللّٰهُ حَسِيْبُهُ وَلَآ اُزَكِّیْ عَلَى اللّٰهِ اَحَدًا اَحْسِبُهُ كَذَا وَ كَذَا اِنْ كَانَ يَعْلَمُ ذَالِكَ مِنْهُ.

۱۱۸۰ : ابن سلام. عبدالوهاب. خالد حذاء. عبدالرحمٰن بن ابي بكره ذ خپل پلار نه روايت كوي' يو سړي نبي صلے الله عليه وسلّم ته د' يو تعريف او كه. حضور صلے الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل. ستا دے هلاكت وي' تا ذ خپل ملګري ګردن اووهلو' تا ذ خپل ملګري ګردن اووهلو' ځو ځله حضور صلے الله عليه وسلّم اوفرمائيل. بيائے اووے' تاسو كښ چه كوم سړي ذ پاره ذ خپل ورور تعريف لازمي شي' نو وائي دے' چه زهٔ فلانے فلانے داسے ګنړم. مخكښ الله زيات پوهيږي. زهٔ ذ' الله مخكښ هيڅوك ته بے عيبه نشم وئيلے. ځما خيال دے چه هغه داسے داسے دے' كهٔ هغه ذ هغهٔ متعلق څه معلومات لري.

بَاب۷۷۵: مَا يُكْرَهُ مِنَ الْاِطْنَابِ فِي الْمَدْحِ وَلْيَقُلْ مَا يَعْلَمُ.

باب۷۷۵: ذ چا تعريف كښ ذ مبالغے نه كار اخستل مكروه دي' بلكه څومره چه ورته معلومه وي' هغومره دے وائي.

۱۱۸۱ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ صَبَّاحٍ حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ بْنُ زَكَرِيَّآءَ حَدَّثَنَا بُرَيْدُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ عَنْ اَبِیْ مُوْسٰیؓ قَالَ سَمِعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجُلًا يُّثْنِیْ عَلٰى رَجُلٍ فَيُطْرِيْهِ فِیْ مَدْحِهٖ فَقَالَ اَهْلَكْتُمْ اَوْ قَطَعْتُمْ ظَهَرَ الرَّجُلِ.

۱۱۸۱ : محمد بن صباح. اسمعيل بن زكريا. يزيد بن عبدالله. ابو موسٰي نه روايت كوي ذ هغهٔ بيان دے' چه نبي صلے الله عليه وسلّم د' يو سړي نه ذ' يو سړي تعريف واوريدلو. او هغه ذ هغهٔ په تعريف كښ ذ مبالغے نه كار آخستلو. حضور صلے الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل چه تا هلاک كړلو' يا تا ذ هغے سړي ملاماته كړه (تم نے اُس آدمی کی پیٹھ توڑ ڈالی).

بَاب۷۷۶: بُلُوْغِ الصِّبْيَانِ وَ شَهَادَتِهِمْ وَ قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى وَ اِذَا بَلَغَ

باب۷۷۶: ذ بچو ذ بالغ كيدو او ذ هغوي ذ شهادت بيان. او' ذ الله تعالٰي قول' هر كله چه تاسو كښ

الْاَطْفَالُ مِنْكُمُ الْحُلُمَ فَلْيَسْتَاْذِنُوْا وَ قَالَ مُغِيْرَةُ اِحْتَلَمْتُ وَ اَنَا ابْنُ ثِنْتَيْ عَشْرَةَ سَنَةً وَ بُلُوْغِ النِّسَآءِ فِي الْحَيْضِ لِقَوْلِهٖ عَزَّ وَ جَلَّ وَاللَّائِيْ يَئِسْنَ مِنَ الْمَحِيْضِ اِلٰى قَوْلِهٖ اَنْ يَّضَعْنَ حَمْلَهُنَّ وَ قَالَ الْحَسَنُ بْنُ صَالِحٍ اَدْرَكْتُ جَارَةً لَّنَا جَدَّةً بِنْتَ اِحْدٰى وَ عِشْرِيْنَ سَنَةً.

بچے احتلام (بلوغ) ته اورسي، نو هغه دے اجازت اخلي. او مغيره اووے. چه زهٔ محتلم شوم (اودس رابانـدے واوريـدلو) هر كله چه خما عمر دولس كاله وو. او دَ ښځو بالغ كيدل دَ حيض نه حسابيږي، ځكه چه اللّٰه تعالي فرمائيلے دي، او كومے ښځے چه دَ حيض نه نااُميده شوے دي: اَنْ يَّضَعْنَ حَمْلَهُنَّ پورے. او حسن بن صالح اووے، چه ما خپله ګوانډنے اوليده، چه هغه دَ يويشتو كالو په عمر كښِ نيا (دادي يانانۍ) شوے وه [١].

١. دا دَ عربو او نورو ګرمو علاقو واقعات دي چرته چه هلكان او جينكۍ په ډير كم عمر كښِ بالغ شي.

١١٨٢: حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا اَبُوْ اُسَامَةَ قَالَ حَدَّثَنِيْ عُبَيْدُ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنِيْ نَافِعٌ قَالَ حَدَّثَنِيْ ابْنُ عُمَرَؓ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَرَضَهٗ يَوْمَ اُحُدٍ وَّهُوَ ابْنُ اَرْبَعَ عَشْرَةَ سَنَةً فَلَمْ يُجِزْنِيْ ثُمَّ عَرَضَنِيْ يَوْمَ الْخَنْدَقِ وَ اَنَا ابْنُ خَمْسَ عَشْرَةَ فَاَجَازَنِيْ قَالَ نَافِعٌ فَقَدِمْتُ عَلٰى عُمَرَ بْنِ عَبْدِ الْعَزِيْزِ وَهُوَ خَلِيْفَةٌ فَحَدَّثْتُهٗ هٰذَا الْحَدِيْثَ فَقَالَ اِنَّ هٰذَا الْحَدُّ بَيْنَ الصَّغِيْرِ وَالْكَبِيْرِ وَ كَتَبَ اِلٰى عُمَّالِهٖ اَنْ يَّفْرِضُوْا لِمَنْ بَلَغَ خَمْسَ عَشْرَةَ.

١١٨٢: عبيداللّٰه بن سعيد. ابواسامه. عبيداللّٰه. نافع. ابن عمرؓ نه روايت دے. دَ هغهٔ بيان دے، چه هغه دَ رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلّم مخكښِ دَ اُحد په ورځ پيش شولو. دغه وخت دَ هغهٔ عمر څوارلس كاله وو، نو حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم اجازت ورنهٔ كړلو، بيا زهٔ دَ خندق په ورځ پيش شوم، نو حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم اجازت راكړلو، دغه وخت خما عمر پنځلس كاله وو نافع اووے، چه زهٔ حضرت عمر بن عبدالعزيز له راغلم، كوم وخت چه هغه خليفه وو، او ما هغهٔ ته دا حديث بيان كړ، نو وئيلے چه دا، دَ نابالغ او بالغ مينځ كښِ حد دے. او خپلو عاملانو ته ئے اوليكل، دَ چا عمر چه پنځلس كاله وي، دَ هغهٔ حصه لښكر كښِ مقرر كړے.

١١٨٣: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا صَفْوَانُ بْنُ سُلَيْمٍ عَنْ عَطَآءِ بْنِ يَسَارٍ عَنْ

١١٨٣: علي بن عبداللّٰه. سفيان. صفوان بن سليم. عطاء بن يسار. حضرت ابوسعيد خدريؓ نه روايت كوي. دَ هغهٔ

اَبِیْ سَعِیْدِ الْخُدْرِیِّ یَبْلُغُ بِهِ النَّبِیَّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ قَالَ غُسْلُ یَوْمِ الْجُمُعَةِ وَاجِبٌ عَلٰی كُلِّ مُحْتَلِمٍ.

بیان دے' نبي صلے اللّٰه علیه وسلّم فرمائیلے دي چه ذَ جمعے په ورځ غسل کول هر بالغ بانديے واجب دي.

بَابٌ ۷۷۷: سُؤَالُ الْحَاكِمِ الْمُدَّعِیَ هَلْ لَكَ بَیِّنَةٌ قَبْلَ الْیَمِیْنِ.

باب ۷۷۷: ذ حاکم ذ مدعي نه تپوس کول چه آیا تاسره څوک گواه شته.

۱۱۸۴: حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ اَخْبَرَنَا اَبُوْ مُعَاوِیَةَ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ شَقِیْقٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ مَنْ حَلَفَ عَلٰی یَمِیْنٍ وَّهُوَ فِیْهَا فَاجِرٌ لِّیَقْطَعَ بِهَا مَالَ امْرِیءٍ مُّسْلِمٍ لَّقِیَ اللّٰهَ وَهُوَ عَلَیْهِ غَضْبَانُ قَالَ فَقَالَ الْاَشْعَثُ بْنُ قَیْسٍ فِیَّ وَاللّٰهِ كَانَ ذٰلِكَ كَانَ بَیْنِیْ وَ بَیْنَ رَجُلٍ مِّنَ الْیَهُوْدِ اَرْضٌ فَجَحَدَنِیْ فَقَدَّمْتُهُ اِلَی النَّبِیِّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ اَلَكَ بَیِّنَةٌ قَالَ قُلْتُ لَا قَالَ فَقَالَ لِلْیَهُوْدِیِّ اِحْلِفْ قَالَ قُلْتُ یَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِذًا یَّحْلِفُ وَ یَذْهَبُ بِمَالِیْ قَالَ فَاَنْزَلَ اللّٰهُ تَعَالٰی اِنَّ الَّذِیْنَ یَشْتَرُوْنَ بِعَهْدِ اللّٰهِ وَ اَیْمَانِهِمْ ثَمَنًا قَلِیْلًا اِلٰی اٰخِرِ الْاٰیَةِ.

۱۱۸۴: محمد. ابو معاویه. اعمش. شقیق. عبداللّٰه بن مسعودؓ نه روایت کوي. ذ هغهٔ بیان دے. رسول اللّٰه صلے اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل' چا چه په دروغه قسم اوخوړلو' چه ذ هغے په ذریعه ذ' یو مسلمان مال هضم کړي' نو هغه به اللّٰه سره داسے حال کښ یوځائے کیږي' چه اللّٰه به ترے ناراضه وي. اشعث بن قیس چه دا واوریدل' نو وے وئیل' په خدائے چه' دا حدیث خو څما متعلق دے. څما او ذ یو یهودي مینځ کښ ذ' یوے زمکے متعلق جګړه وه. هغهٔ څما ذ حق نه انکار اوکهٔ' نو ما هغه ذ نبي صلے اللّٰه علیه وسلّم خدمت کښ حاضر کهٔ. حضور صلے اللّٰه علیه وسلّم ماته اوفرمائیل آیا ستا څوک گواه شته. ما عرض اوکهٔ' نه' بیا حضور صلے اللّٰه علیه وسلّم یهودي ته اوفرمائیل تهٔ قسم اوخوره. ما عرض اوکهٔ' یا رسول اللّٰه' دے خو' به قسم اوخوري' او څما مال به هضم کړي' نو اللّٰه تعالٰي دا' آیت: اِنَّ الَّذِیْنَ یشترون بعهد اللّٰه و ایمانهم ثمنًا قلیلاً آخر پورے نازل کړلو.

بَابٌ ۷۷۸: اَلْیَمِیْنُ عَلَی الْمُدَّعٰی عَلَیْهِ فِی الْاَمْوَالِ وَالْحُدُوْدِ وَ قَالَ النَّبِیُّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ

باب ۷۷۸: اموال او حدود کښ ذ مدعا علیه نه ذ قسم آخستو بیان. او نبي صلے اللّٰه علیه وسلّم فرمائیلے دي' ستاسو او' ذ قتیبه بیان دے'

شَاهِدَاكَ اَوْ يَمِيْنُهُ وَ قَالَ قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا سُفْيٰنُ عَنِ ابْنِ شُبْرُمَةَ كَلَّمَنِيْ اَبُو الزِّنَادِ فِيْ شَهَادَةِ الشَّاهِدِ وَ يَمِيْنِ الْمُدَّعِيْ فَقُلْتُ قَالَ اللّٰهُ تَعَالٰى وَاسْتَشْهِدُوْا شَهِيْدَيْنِ مِنْ رِّجَالِكُمْ فَاِنْ لَّمْ يَكُوْنَا رَجُلَيْنِ فَرَجُلٌ وَّامْرَأَتَانِ مِمَّنْ تَرْضَوْنَ مِنَ الشُّهَدَآءِ اَنْ تَضِلَّ اِحْدٰىهُمَا فَتُذَكِّرَ اِحْدٰىهُمَا الْاُخْرٰى قُلْتُ اِذَا كَانَ يُكْتَفٰى بِشَهَادَةِ شَاهِدٍ وَّ يَمِيْنِ الْمُدَّعِيْ فَمَا تَحْتَاجُ اَنْ تُذَكِّرَ اِحْدٰىهُمَا الْاُخْرٰى مَا كَانَ يَصْنَعُ بِذِكْرِ هٰذِهِ الْاُخْرٰى.

چه ماته سفيان او هغه دَ ابن شبرمه نه نقل او كه چه ما سره ابوالزناد، د گواه د گواهي او د مدعي د قسم متعلق خبرے اترے او كړے نو ما اووے چه اللّٰه تعالي فرمائيلے دي. تاسو د خپلو سړونه دوه گواهان جوړ كړئے، كه دوه سړي نه وي نو يو سړے او دوه ښځے دَ هغے خلقونه كوم چه تاسو خوښوئے گواه جوړ كړئے، دَ پاره دَ دے كه هغوئ كښې دَ يو نه هير شي، نو بله به ورته وريادكړي. ما اووے هر كله چه دَ يو گواه گواهي او دَ مدعي قسم كافي دے، نو دَ دے وئيلو څه ضرورت وو، كه دَ يوے نه هير شي نو بله به ورته ياد كړي. دَ دونمے ښځے دَ يادونو فائده به څه وي[1].

۱. د اسلامي قانون په اعتبار سره گواهي صرف د يو طرف نه پيش كيدے شي، يعني د مدّعي د طرفنه. اوس دا فيصله باقي پاتے كيږي چه مدّعي چاته اوويلے شي. نو دا دَ حالاتو په اعتبار سره مختلف كيږي او دا فيصله به قاضي په عدالت كښې ناستے نه پس كوي چه مدّعي څوك او كرخولے شي. نو اسلامي قانون مدّعي د پاره دا ضروري كرخوي چه هغه دِ گواهان پيش كړي كه چرے هغه گواهان نشي پيش كولے نو مدعي عليه ته به اوويلے شي چه هغه دِ قسم اوخوري او د هغهٔ په قسم باندے به فيصله اوكړے شي. صرف همدا دوه صورتونه د يوے معاملے دَ فيصلے كولو دي. ليكن بعضو امامانو ويلے دي چه كه چرے مدّعي سره دوه گواهان نه وي بلكه صرف يو گواه ورسره وي نو د هغهٔ نه دِ قسم هم واخستے شي او په دے طريقه هم د مقدمے فيصله كيدے شي. امام بخاري رحمة الله عليه هم ددے مسلك نه خلاف دے، په دے وجه د اَحنافو د نقطه نظر په حق كښې دلائل پيش كوي.

۱۱۸۵ : حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا نَافِعُ بْنُ عُمَرَ عَنِ ابْنِ اَبِيْ مُلَيْكَةَ قَالَ كَتَبَ ابْنُ عَبَّاسٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَضٰى بِالْيَمِيْنِ عَلَى الْمُدَّعٰى عَلَيْهِ.

۱۱۸۵ : ابو نعيم. نافع بن عمر. ابن ابي مليكه نه روايت كوي. دَ هغهٔ بيان دے، ابن عباسؓ ماته اوليكل، چه نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم دَ مدعا عليه دَ قسم خوړلو حكم كړے دے.

## باب ۷۷۹:

## باب ۷۷۹: (دا باب بے عنوانه دے)

۱۱۸۶ : حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ

۱۱۸۶ : عثمان بن ابي شيبه. جرير. منصور. ابو

اَبِـيُ شَيُبَةَ حَـدَّثَـنَـا جَـرِيُـرٌ عَـنُ مَـنُـصُـوُرٍ عَـنُ اَبِـيُ وَآئِلٍ قَـالَ قَـالَ عَبُـدُ الـلّٰـهِ مَـنُ حَـلَفَ عَـلٰـى يَـمِيُـنٍ يَّسُتَحِـقُّ بِهَـا مَـالًا لَقِيَ اللّٰـهَ وَهُـوَ عَـلَيُـهِ غَـضُبَانُ ثُمَّ اَنُزَلَ اللّٰـهُ تَـصُـدِيُـقَ ذٰلِكَ اِنَّ الَّـذِيُـنَ يَشُتَـرُوُنَ بِعَهُدِ اللّٰهِ وَ اَيُمَانِهِمُ اِلٰى عَذَابٌ اَلِيُمٌ ثُـمَّ اِنَّ الْاَشُـعَثَ بُنَ قَيُسٍ خَرَجَ اِلَيُنَا فَـقَـالَ مَـا يُحَدِّثُكُمُ اَبُو عَبُدِ الرَّحُمٰنِ فَحَـدَّثَـنَـا بِـمَـا قَالَ فَقَالَ صَدَقَ لَفِيَّ اُنُـزِلَـتُ كَـانَ بَيُـنِـيُ وَ بَيُـنَ رَجُـلٍ خُـصُـوُمَةٌ فِـيُ شَـيُءٍ فَاَخُتَصَمُنَا اِلٰى رَسُـوُلِ الـلّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيُهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ شَاهِدَاكَ اَوُ يَمِيُنُهُ فَقُلُتُ اِنَّهُ اِذًا يَّحُـلِفُ وَلَا يُبَالِيُ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى الـلّٰـهُ عَـلَيُـهِ وَسَلَّمَ مَنُ حَلَفَ عَلٰى يَمِيُنٍ يَّسُتَحِقُّ بِهَا مَالًا وَّهُوَ فِيُهَا فَاجِرٌ لَـقِـيَ الـلّٰهَ وَهُوَ عَلَيُهِ غَضُبَانُ فَاَنُزَلَ الـلّٰـهُ تَـصُـدِيُـقَ ذٰلِكَ ثُمَّ اقُتَـرَأَ هٰذِهِ الْاٰيَةَ.

وائل نه روایت کوي، ذ عبدالله بن مسعودؓ بیان دے. کوم سړے چه په دروغه قسم اوخوري چه ذ هغې په ذریعه ذ چا ذ مال مستحق شي، نو هغه به خدائے سره داسے حال کښې یوخائے کیږي، چه خدائے به پرے غصه وي. بیا الله تعالیٰ دَ دے په تصدیق کښې دا، آیت نازل کړلو: اِنَّ الذین یشترون دَ، آخر پورے. بیا اشعث بن قیس مونږ له راغے. اوونیلے، چه عبدالرحمٰن تاسوته څه بیان کوي، مونږ هغهٔ ته اووے څهٔ چه هغهٔ وئیلے وو. نو اشعث اووے، چه هغه ریښتیا وائي. دا آیت څمونږ متعلق نازل شوے دے. څمونږ او دَ، یو سړي مینځ کښې جګړه وه، نو مونږ خپله مقدمه رسول الله صلے الله علیه وسلّم له یوړله. حضور صلے الله علیه وسلّم اوفرمائیل. یا خو، دے ستاسو دوه ګواهان وي، یا دے هغه قسم اوخوري. ما عرض اوکهٔ، هغه خو، به پروا، اونه کړي، او قسم به اوخوري. نبي صلے الله علیه وسلّم اوفرمائیل کوم سړے چه په دروغه قسم اوخوري، چه دَ هغې په ذریعه دَ چا دَ مال مستحق شي نو هغه به الله سره داسے حال کښې یوخائے شي، چه الله به ترے ناراضه وي. نو الله تعالیٰ دَ دے په تصدیق کښې دا، آیت نازل کهٔ. بیائے دا، آیت اووے.

**بَـــاب ۷۸۰: اِذَا ادَّعٰـــى اَوُ قَـذَفَ فَـلَـهُ اَنُ يَّـلُتَمِـسَ الُبَيِّــنَةَ وَ يَـنُـطَـلِـقُ لِـطَـلَـبِ الُبَيِّنَةِ.**

**باب ۷۸۰:** کهٔ یو سړے دعوې او کړي یا تهمت اولګوي، نو هغه ته اختیار دے چه ګواه دِ تلاش کړي، او دَ ګواه تلاش کولو دَ پاره مهلت اوغواړي[1] (یعني منلوے ترے اووهي).

[1] ددے مطلب شارحینو دا لیکلے دے چه دعوې کولو یا په چا باندے تهمت لګولو نه پس که چرے هغهٔ سره سمدستي ګواهان موجود نه وي نو هغه له به مهلت ورکولے

شي چه ګواهان دِ تلاش کړي او په عدالت کښې دِ حاضر کړي. فقهاؤ دے د پاره ډېرے زرخے مهيت ورکړے دے.

۱۱۸۷ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِيْ عَدِيٍّ عَنْ هِشَامٍ حَدَّثَنَا عِكْرِمَةُ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ هِلَالَ بْنَ أُمَيَّةَ قَذَفَ امْرَأَتَهُ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِشَرِيْكِ بْنِ سَحْمَاءَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْبَيِّنَةَ أَوْ حَدٌّ فِيْ ظَهْرِكَ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ إِذَا رَأَى أَحَدُنَا عَلَى امْرَأَتِهِ رَجُلًا يَنْطَلِقُ يَلْتَمِسُ الْبَيِّنَةَ فَجَعَلَ يَقُوْلُ الْبَيِّنَةَ وَ إِلَّا حَدٌّ فِيْ ظَهْرِكَ فَذَكَرَ حَدِيْثَ اللِّعَانِ.

۱۱۸۷ : محمد بن بشار. ابن ابي عدي. هشام. عكرمه. حضرت ابن عباسؓ نه روايت کوي. د هغه بيان دے، چه هلال بن اُميه په خپلے ښځے د نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم مخکښې شريک بن سحماء سره دِ زنا کولو تهمت اولږولو نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل آيا ستا څوک ګواه شته؟ يا سته په شا کوړے لږول پکار دي. هغه عرض اوکړو يا رسول اللّٰه، هر کله چه يو سړے دِ خپلے ښځے دِ پاسه څوک سړے اووينى، نو آيا هغه به دِ ګواه تلاش کولو دِ پاره ګرځي. حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم به فرمائيل؛ چه ګواه راوله، کنې په شا به کوړے خورے. بيا دِ لعان حديث ئے بيان کړو[۱].

۱. ګويا حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم د هغه غذر قبول نه کړو. او بار بار ئے ورته فرمائيل چه ګواهان راوله کنے تا باندے به حد جاري کړے شي. ولے چه د هغوئ کوم غذر وو هغه د معاملے صرف يو اړخ وو که چرے صرف د چا د دعوے په بنياد باندے د رجم حکم لګول شروع شي نو په دنيا کښې به فساد خور سي. دے د پاره د معاملے هر اړخ باندے نظر ساتل پکار دي او د ټولو رعايت کيدل پکار دي. د لعان حديث به آئنده راځي.

باب ۱۸۷: الْيَمِيْنِ بَعْدَ الْعَصْرِ.

باب ۱۸۷: د مازيګر نه پس د قسم خوړلو بيان.

۱۱۸۸ : حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا جَرِيْرُ بْنُ عَبْدِ الْحَمِيْدِ عَنِ الْأَعْمَشِ عَنْ أَبِيْ صَالِحٍ عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَؓ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثَلٰثَةٌ لَا يُكَلِّمُهُمُ اللّٰهُ وَلَا يَنْظُرُ إِلَيْهِمْ وَلَا يُزَكِّيْهِمْ

۱۱۸۸ : علي بن عبداللّٰه. جرير بن عبدالحميد. اعمش. ابو صالح. ابوهريرهؓ نه روايت کوي، رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، درے سړو سره به اللّٰه تعالي د قيامت په ورځ خبرے نۀ کوي، او نه به هغوي طرف ته نظر اوچت کړي، او نه به هغوي پاک کړي، او هغوي د پاره دردناک عذاب دے. يو هغه سړے چه هغه

وَلَهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ رَجُلٌ عَلٰى فَضْلِ مَـآءٍ بِطَرِيْقٍ يَمْنَعُ مِنْهُ ابْنَ السَّبِيْلِ وَ رَجُلٌ بَايَعَ رَجُلًا لَا يُبَايِعُهُ اِلَّا لِلدُّنْيَا فَاِنْ اَعْطَاهُ مَا يُرِيْدُ وَفٰى لَهُ وَ اِلَّا لَمْ يَفِ لَهُ وَ رَجُلٌ سَاوَمَ رَجُلًا بِسِلْعَةٍ بَعْدَ الْعَصْرِ فَحَلَفَ بِاللّٰهِ لَقَدْ اَعْطٰى بِهٖ كَذَا وَ كَذَا فَاَخَذَهَا.

سره د ضرورت نه زياتې اوبه وي، او مسافرولره ئې ورنه کړي. دوئم هغه سړے چه د چا نه بيعت صرف د دُنيا د پاره اوکړي، که هغه د هغهٔ د مرضي مطابق ورکوي نو قائم وي، کني بيعت مات کړي. دريم هغه سړے د چا نه د مازيګر نه پس څهٔ سامان قيمت کړي، او د الله په دروغه قسم اوخوري، چه هغهٔ ته دا څيز په دومره دومره روپو حاصل شوے دے، او خريدار هغه واخلي.

باب ۷۸۲: يَحْلِفُ الْمُدَّعٰى عَلَيْهِ حَيْثُمَا فَحَيْثُ عَلَيْهِ الْيَمِيْنُ وَلَا يُصْرَفُ مِنْ مَّوْضِعٍ اِلٰى غَيْرِهٖ وَ قَضٰى مَرْوَانُ بِالْيَمِيْنِ عَلٰى زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ عَلَى الْمِنْبَرِ فَقَالَ اَحْلِفُ لَهُ مَكَانِيْ فَجَعَلَ زَيْدٌ يَّحْلِفُ وَ اَبٰى اَنْ يَحْلِفَ عَلَى الْمِنْبَرِ فَجَعَلَ مَرْوَانُ يَتَعَجَّبُ مِنْهُ وَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَاهِدَاكَ اَوْ يَمِيْنُهُ فَلَمْ يَخُصَّ مَكَانًا دُوْنَ مَكَانٍ.

باب ۷۸۲: مدعا عليه دے قسم هغه ځائے خوري، کوم ځائے چه قسم ترے و اخستے شي. او دوئم ځائے ته منتقل نه کړے شي[۱]. او مروان، زيد بن ثابت ته په منبر د قسم ورکولو حکم اوکړلو، نو هغه اووے، چه زهٔ په خپل ځائے به قسم خورم. په هغے ځائے به قسم خورم. په هغے ځائے ئے قسم اوخوړلو او منبر ته د تلو نه انکار ئے اوکه. مروان په هغه تعجب اوکه. او نبي صلے الله عليه وسلم اوفرمائيل، ستا دوه ګواهان پکار دي، يا هغه دے قسم اوخوري. او دے کښې ئے د ځائے تخصيص اونه فرمائيلو.

۱. په قسم کښې تاکيد او تغليظ د څه خاص مکان لکه جومات وغيره يا د څه خاص وخت لکه مازيګر نه پس يا د جُمعے په ورځ وغيره سره نهٔ پيدا کيږي، دا د احنافو مسلک دے او امام بخاريؒ هم دا ښودل غواړي چه کوم ځائے عدالت دے او د قانون شريعت په اعتبار سره مدعٰي عليه باندے قسم واجب شوے دے د هغهٔ به قسم هم هغه وخت او هم هغه ځائے کښې اخستے کيږي. قسم اخستلو د پاره دِ نهٔ د څه خاص وخت انتظار اوکړے شي او نهٔ دِ يو مقدس ځائے ته هغهٔ بوتلے شي. ځکه چه مکان، زمان سره په اصل قسم کښې څه خاص فرق نه پريوځي.

۱۱۸۹: حَدَّثَنَا مُوْسَى ابْنُ اِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ اَبِيْ وَآئِلٍ عَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

۱۱۸۹: موسي بن اسمٰعيل. عبدالواحد. اعمش. ابووائل. ابن مسعودؓ. نبي صلے الله عليه وسلم نه روايت کوي، حضور صلے الله عليه وسلم اوفرمائيل. کوم سړے چه په دروغه قسم اوخوري د

وَسَلَّمَ مَنْ حَلَفَ عَلٰی یَمِیْنٍ لِّیَقْتَطِعَ بِهَا مَالًا لَّقِیَ اللّٰهَ وَهُوَ عَلَیْهِ غَضْبَانُ.

پاره د دے چه د چا مال هضم کړي، نو اللّٰه سره به داسے حال کښې یوځائے کیږي، چه اللّٰه به پرے غضبناک وي.

## باب ۷۸۳: قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰی. اِنَّ الَّذِیْنَ یَشْتَرُوْنَ بِعَهْدِ اللّٰهِ وَ اَیْمَانِهِمْ ثَمَنًا قَلِیْلًا.

باب ۷۸۳: د اللّٰه تعالٰي د قول "اِنَّ الَّذِیْن یشترون بعهد اللّٰه و ایمانهم ثمنا قلیلا" تفسیر.

**۱۱۹۰**: حَدَّثَنِیْ اِسْحٰقُ اَخْبَرَنَا یَزِیْدُ ابْنُ هٰرُوْنَ اَخْبَرَنَا الْعَوَّامُ قَالَ حَدَّثَنِیْ اِبْرَاهِیْمُ اَبُوْ اِسْمٰعِیْلَ السَّکْسَکِیُّ سَمِعَ عَبْدَ اللّٰهِ ابْنَ اَبِیْ اَوْفٰیؓ یَقُوْلُ اَقَامَ رَجُلٌ سِلْعَتَهٗ فَحَلَفَ بِاللّٰهِ لَقَدْ اَعْطٰی بِهَا مَالَمْ یُعْطِهَا فَنَزَلَتْ اِنَّ الَّذِیْنَ یَشْتَرُوْنَ بِعَهْدِ اللّٰهِ وَ اَیْمَانِهِمْ ثَمَنًا قَلِیْلًا وَّ قَالَ ابْنُ اَبِیْ اَوْفَی النَّاجِشُ اٰکِلُ رِبًا خَائِنٌ.

۱۱۹۰: اسحٰق. یزید بن هارون. عوام ابراهیم ابو اسمٰعیل سکسکي په واسطه د عبداللّٰه بن اوفي روایت کوي، یو سړي خپل سامان په بازار کښې اولږولو، او د اللّٰه قسم ئے اوخوړلو، چه هغه دا څیز په دومره رقم اخستے دے، حالانکه په هغے رقم هغهٔ نهٔ وو آخستے، نو دا آیت نازل شو چه "بیشکه کوم خلق چه د اللّٰه عهد او خپلو قسمونو سره لږ قیمت وصولوي الخ. او ابن ابي اوفي اووے. دلالي کونکے سود خور او خائن دے.

**۱۱۹۱**: حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ خَالِدٍ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ عَنْ شُعْبَةَ عَنْ سُلَیْمَانَ عَنْ اَبِیْ وَآئِلٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِؓ عَنِ النَّبِیِّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ حَلَفَ عَلٰی یَمِیْنٍ کَاذِبًا لِّیَقْتَطِعَ مَالَ رَجُلٍ اَوْ قَالَ اَخِیْهِ لَقِیَ اللّٰهَ وَهُوَ عَلَیْهِ غَضْبَانُ وَ اَنْزَلَ اللّٰهُ تَصْدِیْقَ ذٰلِكَ فِی الْقُرْاٰنِ اِنَّ الَّذِیْنَ یَشْتَرُوْنَ بِعَهْدِ اللّٰهِ وَ اَیْمَانِهِمْ ثَمَنًا قَلِیْلًا اَلْاٰیَةَ فَلَقِیَنِی الْاَشْعَثُ

۱۱۹۱: محمّد بن جعفر. شعبه. سلیمان. ابو وائل. عبداللّٰه بن مسعودؓ. نبي صلے اللّٰه علیه وسلّم نه روایت کوي. حضور صلے اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل، کوم سړے چه په دروغه قسم اوخوري، د پاره د دے چه د چا سړي یا، د خپل ورور مال هضم کړي، نو اللّٰه تعالٰي سره به داسے حال کښې یوځائے شي، چه اللّٰه تعالٰي به ترے ناراضه وي. او اللّٰه تعالٰي د هغے په تصدیق کښې قرآن کښې آیت: انّ الذین یشترون آخر آیت پورے نازل کړلو، ما سره اشعث بن قیس یوځائے شو. اووے وئیل چه عبداللّٰه تاته څهٔ بیان اوکهٔ ما هغهٔ ته اووے، چه داسے

فَقَالَ مَا حَدَّثَكُمْ عَبْدُ اللّٰهِ الْيَوْمَ قُلْتُ كَذَا وَ كَذَا قَالَ فِيَّ اُنْزِلَتْ.

داسے بيان نے اوکۀ' نو هغۀ اوويے' چه دا' آيت هم خما متعلّق نازل شوے دے.

## بَاب ٧٨٤: كَيْفَ يُسْتَحْلَفُ

قَالَ تَعَالٰى يَحْلِفُوْنَ بِاللّٰهِ لَكُمْ وَ قَوْلُهُ عَزَّ وَجَلَّ ثُمَّ جَآءُوْكَ يَحْلِفُوْنَ بِاللّٰهِ اِنْ اَرَدْنَا اِلَّا اِحْسَانًا وَّ تَوْفِيْقًا يُّقَالُ بِاللّٰهِ وَ تَاللّٰهِ وَ وَاللّٰهِ وَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ رَجُلٌ حَلَفَ بِاللّٰهِ كَاذِبًا بَعْدَ الْعَصْرِ وَلَا يُحْلِفُ بِغَيْرِ اللّٰهِ.

**باب ٧٨٤:** قسم څنګه اخستل پکار دي[1]' اللّٰه تعالٰي اوفرمائيل هغوي ستا دَ راضي کولو دَ پاره قسمونه خوري' او دَ' اللّٰه تعالٰي قول' بيا تاله په' اللّٰه قسم خوړونکي راغلل' چه مونږ خو صرف دَ ښيګړے او دَ' موافقت کولو اراده کړے ده. او قسم کښ دے باللّٰه' تاللّٰه يا' واللّٰه وئيلے شي. او نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل' چه يو هغه سړے چه دَ' مازيګر نه پس په خدائے دَ' دروغے قسم اوخوري' او دَ' اللّٰه تعالٰي نه سِوا' دے په هيڅا قسم نه خوري.

١. يعني د کومو څيزونو چه قسم اخستے کيدے شي. ښودل دا غواړي چه قسم د اللّٰه تعالٰي او د هغۀ دَ صفاتو خوړل پکار دي څنګه چه د قرآن د آيتونو او احاديثو نه معلوميږي.

١١٩٢: حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنْ عَمِّهٖ اَبِيْ سُهَيْلٍ عَنْ اَبِيْهِ اَنَّهٗ سَمِعَ طَلْحَةَ ابْنَ عُبَيْدِ اللّٰهِ يَقُوْلُ جَآءَ رَجُلٌ اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاِذَا هُوَ يَسْاَلُهٗ عَنِ الْاِسْلَامِ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَمْسُ صَلَوَاتٍ فِي الْيَوْمِ وَاللَّيْلَةِ فَقَالَ هَلْ عَلَيَّ غَيْرُهَا قَالَ لَا اِلَّآ اَنْ تَطَوَّعَ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ صِيَامُ رَمَضَانَ

١١٩٢: اسمٰعيل. عبداللّٰه. مالک. ابو اسمٰعيل دَ خپل پلار نه' هغه دَ طلحه بن عبيداللّٰه نه روايت کوي' چه يو سړے دَ' رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلّم خدمت کښ حاضر شو. او دَ حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم نه ئے دَ' اسلام متعلق تپوسونه اوکړل' نو رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل' ورځ او شپه کښ پنځه مونځونه کول دي. هغۀ پښتنه اوکړه' آيا دَ دے مونځونونه علاوه په ما نور څۀ مونځ هم فرض دے. حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل نه' خو' دا' چه تۀ نفل کوے. رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل' او' دَ' رمضان روژے نيول هغۀ عرض اوکۀ' آيا دَ دے نه علاوه په ما څۀ فرض دي. حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل نه' خو' دا چه تۀ په خپله

قَالَ هَلْ عَلَيَّ غَيْرُهُ قَالَ لَا إِلَّآ أَنْ تَطَوَّعَ قَالَ وَ ذَكَرَ لَهُ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الزَّكٰوةَ قَالَ هَلْ عَلَيَّ غَيْرُهُ قَالَ لَا إِلَّا أَنْ تَطَوَّعَ فَأَدْبَرَ الرَّجُلُ وَهُوَ يَقُوْلُ وَاللّٰهِ لَآ أَزِيْدُ عَلٰى هٰذَا وَلَا أَنْقُصُ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَفْلَحَ إِنْ صَدَقَ.

خو بنه خۀ نفل روژه اونيسے. رسول الله صلے الله عليه وسلَم هغهٔ ته د زكٰوة متعلق بيان اوكه، نو هغهٔ عرض اوكهٔ، آيا په ما د دے نه علاوه نور خۀ هم شته، حضور صلے الله عليه وسلَم ورته اوفرمائيل نه، خو، دا چه تهٔ نفلي صدقه وركړے هغه سړے دے وينا سره لاړ روان شو، په خدائے چه، زهٔ به د دے نه، نه زيات كوم، او نه به د دے نه كم كوم، نو رسول الله صلے الله عليه وسلَم او فرمائيل، دا سړے كامياب دے كه ريښتنے وي.

١١٩٣: حَدَّثَنَا مُوْسَى ابْنُ إِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا جُوَيْرِيَةُ قَالَ ذَكَرَ نَافِعٌ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ كَانَ حَالِفًا فَلْيَحْلِفْ بِاللّٰهِ أَوْ لِيَصْمُتْ.

١١٩٣: موسي بن اسمعيل. جويريه. نافع. عبدالله بن عمرؓ نه روايت كوي. نبي صلے الله عليه وسلَم اوفرمائيل، كوم سړے چه قسم خوري نو په الله دے قسم خوري، يا خاموش دے اوسي.

باب ٧٨٥: مَنْ أَقَامَ الْبَيِّنَةَ بَعْدَ الْيَمِيْنِ وَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَعَلَّ بَعْضَكُمْ أَحْسَنُ بِحُجَّتِهِ مِنْ بَعْضٍ وَ قَالَ طَاوٗسٌ وَ إِبْرَاهِيْمُ وَ شُرَيْحٌ اَلْبَيِّنَةُ الْعَادِلَةُ أَحَقُّ مِنَ الْيَمِيْنِ الْفَاجِرَةِ.

باب ٧٨٥: د هغے سړي بيان چه د قسم نه پس گواه پيش كړي. او نبي صلے الله عليه وسلَم فرمائيلے دي. شايد تاسو كښې يو، بل، دليل پيش كولو كښې زيات چست وي. طاؤس او ابراهيم او شريح اووے، چه ريښتنے گواه په دروغه قسم نه زيات د قبلو لو مستحق دے.

١١٩٤: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْلَمَةَ عَنْ مَالِكٍ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ أَبِيْهِ عَنْ زَيْنَبَ عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّكُمْ تَخْتَصِمُوْنَ إِلَيَّ لَعَلَّ بَعْضَكُمْ أَلْحَنُ بِحُجَّتِهِ مِنْ بَعْضٍ فَمَنْ قَضَيْتُ لَهُ بِحَقِّ أَخِيْهِ شَيْئًا بِقَوْلِهِ فَإِنَّمَا أَقْطَعُ

١١٩٤: عبدالله بن مسلمه. مالك. هشام بن عروه. عروه. زينب. اُم سلمهؓ نه روايت كوي، رسول الله صلے الله عليه وسلَم اوفرمائيل، چه تاسو مونږ له مقدمه راوړئے، او شايد تاسو كښې يو سړے دليل پيش كولو كښې د، بل نه زيات چست وي، او زهٔ هغهٔ ته د هغهٔ د، ورور د حق نه، د هغهٔ د، وينا په سبب خۀ وركړم، نو هغهٔ د، اُور يوه ټكره ده، چه زهٔ ئے هغهٔ له وركوم، نو هغه دے

لَهُ قِطْعَةً مِّنَ النَّارِ فَلَا يَأْخُذْهَا.

نه آخلي.

باب ۷۸۶: مَنْ اَمَرَ بِاِنْجَازِ الْوَعْدِ وَ فَعَلَهُ الْحَسَنُ وَ ذَكَرَ اِسْمٰعِيلُ اِنَّهُ كَانَ صَادِقَ الْوَعْدِ وَ قَضَى ابْنُ الْاَشْوَعِ بِالْوَعْدِ وَ ذَكَرَ ذٰلِكَ عَنْ سَمُرَةَ وَ قَالَ الْمِسْوَرُ بْنُ مَخْرَمَةَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ ذَكَرَ صِهْرًا لَّهُ قَالَ وَعَدَنِيْ فَوَفٰى لِيْ قَالَ اَبُوْ عَبْدِ اللّٰهِ وَرَاَيْتُ اِسْحٰقَ ابْنَ اِبْرَاهِيْمَ يَحْتَجُّ بِحَدِيْثِ بْنِ اَشْوَعَ.

باب ۷۸۶: د هغې سړي بيان، چه دَ وعدې پوره کولو حکم اوکړي[۱]. او حسن بصري دا کړې دي. او دَ حضرت اسمٰعيلً دا، وصف بيان شوې دې، چه هغه دَ وعدې رېښتنې وو. او ابن اشوع دَ وعدې پوره کولو حکم ورکړو. او دَ سمره (بن جندب) نه ئې دغسې نقل کړې دې. دَ مسور بن مخرمه بيان دې چه ما دَ نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم نه دَ خپل يو خُوم (داماد) په حقله واوريدل چه هغهٔ کومه وعده ما سره کړې وه، هغه ئې پوره کړله. ابو عبداللّٰه (بخاري) اووې، ما اسحٰق بن ابراهيم اوليد، چه دَ ابن اشوع دَ حديث نه ئې استدلال کولو.

۱. د جمهور اُمت مسلک دادې چه وعدې پورې کولو د پاره چاته وئيل يا ددې حکم ورکول، دا دَ خلقو خپله ذاتي معامله ده دَ قضا يا قانون لاندې نه راځي ليکن امام مالک رحمة اللّٰه عليه وائي چه د وعدې کولو حکم هم د قضا لاندې راتلې شي، او امام بخاري رحمة اللّٰه عليه هم غالبًا په دې باب کښې د امام مالک رحمة اللّٰه عليه مسلک اختيار کړې دې.

۱۱۹۵: حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ حَمْزَةَ حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ سَعْدٍ عَنْ صَالِحٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ اَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عَبَّاسٍؓ اَخْبَرَهٗ قَالَ اَخْبَرَنِيْ اَبُوْ سُفْيَانَ اَنَّ هِرَقْلَ قَالَ لَهٗ سَاَلْتُكَ مَاذَا يَاْمُرُكُمْ فَزَعَمْتَ اَنَّهٗ اَمَرَكُمْ بِالصَّلٰوةِ وَالصِّدْقِ وَالْعَفَافِ وَالْوَفَآءِ بِالْعَهْدِ وَ اَدَآءِ الْاَمَانَةِ قَالَ وَ هٰذِهٖ صِفَةُ نَبِيٍّ.

۱۱۹۵: ابراهيم بن حمزه. ابراهيم بن سعد. صالح. ابن شهاب. عبيداللّٰه بن عبداللّٰه عبداللّٰه بن عباسؓ نه روايت کوي. هغهٔ د ابو سفيان قول نقل کهٔ، چه هرقل هغه ته (کوم وخت چه دَ کفر حالت کښې وو) اووې، ما تا نه تپوس اوکه، چه هغه (پيغمبر) تاسو ته دَ څهٔ حکم درکوي، نو تا بيان اوکه، چه هغه د مونځ، رېښتياؤ. پاکدامنې. ايفائې عهد (دَ وعدې پوره کولو) او دَ امانتونو دَ ادائيګي حکم ورکوي. هرقل اووې، دا خو، دَ نبي صفت دې.

۱۱۹۶: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ بْنُ جَعْفَرٍ عَنْ

۱۱۹۶: قتيبه بن سعيد. اسمٰعيل بن جعفر. ابوسهيل. نافع بن مالک بن ابي عامر. د خپل پلار نه،

أَبِيْ سُهَيْلٍ نَافِعِ بْنِ مَالِكِ بْنِ أَبِيْ عَامِرٍ عَنْ أَبِيْهِ عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اٰيَةُ الْمُنَافِقِ ثَلٰثٌ إِذَا حَدَّثَ كَذَبَ وَ إِذَا اؤْتُمِنَ خَانَ وَ إِذَا وَعَدَ أَخْلَفَ.

هغه د حضرت ابوهریرهؓ نه روایت کوي: رسول الله صلے الله علیه وسلم اوفرمائیل: د منافق درے نښے دي: چه خبرے کوي، نو دروغ وائي، چه امانت ورسره کیښودے شي، نو هغے کښې خیانت اوکړی، او چه وعده اوکړي، نو د هغې خلاف کوي.

١١٩٧: حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيْمُ بْنُ مُوْسٰى أَخْبَرَنَا هِشَامٌ عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ قَالَ أَخْبَرَنِيْ عَمْرُو بْنُ دِيْنَارٍ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَلِيٍّ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ لَمَّا مَاتَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَآءَ أَبَا بَكْرٍ مَّالٌ مِّنْ قِبَلِ الْعَلَآءِ بْنِ الْحَضْرَمِيِّ فَقَالَ أَبُوْبَكْرٍ مَنْ كَانَ لَهُ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَيْنٌ أَوْ كَانَتْ لَهُ قِبَلَهُ عِدَةٌ فَلْيَأْتِنَا قَالَ جَابِرٌ فَقُلْتُ وَعَدَنِيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يُّعْطِيَنِيْ هٰكَذَا وَ هٰكَذَا فَبَسَطَ يَدَيْهِ ثَلٰثَ مَرَّاتٍ قَالَ جَابِرٌ فَعَدَّ فِيْ يَدِيْ خَمْسَ مِائَةٍ ثُمَّ خَمْسَ مِائَةٍ ثُمَّ خَمْسَ مِائَةٍ.

١١٩٧: ابراهیم بن موسی. هشام. ابن جریج. عمرو بن دینار. محمد بن علي. جابر بن عبدالله نه روایت کوي، کوم وخت چه د نبي صلے الله علیه وسلم وفات اوشو، نو د علاء بن حضرمي د طرف نه حضرت ابوبکرؓ ته مال راغے نو حضرت ابوبکرؓ اووے، د کوم سړي چه په نبي صلي الله علیه وسلم څهٔ قرض وي، یا حضور صلے الله علیه وسلم چاسره څهٔ وعده کړے وي، نو هغه دے ماله راشي. د جابر بیان دے. ما اووے، ماسره رسول الله صلے الله علیه وسلم وعده کړے وه، چه ماله به دومره دومره (مال) راکوي، او خپل لاسونه ئے درے ځله خواره کړل. د حضرت جابرؓ بیان دے چه حضرت ابوبکرؓ خما دواړو لاسونو کښې پنځه سوه، بیا پنځه سوه، او بیا پنځه سوه اشرفئے په شمیر کښېودے.

١١٩٨: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحِيْمِ أَخْبَرَنَا سَعِيْدُ بْنُ سُلَيْمَانَ حَدَّثَنَا مَرْوَانُ بْنُ شُجَاعٍ عَنْ سَالِمِ الْأَفْطَسِ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ جُبَيْرٍ قَالَ سَأَلَنِيْ يَهُوْدِيٌّ مِنْ أَهْلِ الْحِيْرَةِ أَيَّ الْأَجَلَيْنِ قَضٰى مُوْسٰى

١١٩٨: محمد بن عبدالرحیم. سعید بن سلیمان. مروان بن شجاع. سالم. افطس. سعید بن جبیر نه روایت کوي د هغهٔ بیان دے، مانه د حیرے یو یهودي تپوس اوکړ، چه حضرت موسیٰ دوو مودو کښې کومه موده پوره کړه، ما ورته اووے، زهٔ نه پوهیږم څو پورے چه زهٔ د عربو د یو عالم نه

قُلْتُ لَآ اَدْرِيْ حَتّٰى اَقْدَمَ عَلٰى حِبْرِ الْعَرَبِ فَاَسْاَلَهُ فَقَدِمْتُ فَسَاَلْتُ ابْنَ عَبَّاسٍ فَقَالَ قَضٰى اَكْثَرَهُمَا وَ اَطْيَبَهُمَا اِنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا قَالَ فَعَلَ.

تپوس اونه کړم (نو) زۀ درتـه نشـم ښـودلے) زۀ ابن عبـاسؓ لـه راغـلـم، او هـغـه نـه م تپوس اوکـهٔ نو هغهٔ اووے دے دواړو کښې چه کومه زیاتـه او ښهٔ موده وه، هغـه ئے پوره کړلـه، پـه دې چـه د اللّٰـه رسول کومه خبره کوي، هغه پوره کوي.

بَابٌ ٧٨٧: لَا يُسْئَلُ اَهْلُ الشِّرْكِ عَنِ الشَّهَادَةِ وَ غَيْرِهَا وَ قَالَ الشَّعْبِيُّ لَا تَجُوْزُ شَهَادَةُ اَهْلِ الْمِلَلِ بَعْضِهِمْ عَلٰى بَعْضٍ لِقَوْلِهٖ تَعَالٰى فَاَغْرَيْنَا بَيْنَهُمُ الْعَدَاوَةَ وَالْبَغْضَآءَ وَ قَالَ اَبُوْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تُصَدِّقُوْآ اَهْلَ الْكِتٰبِ وَلَا تُكَذِّبُوْهُمْ وَ قُوْلُوْآ اٰمَنَّا بِاللّٰهِ وَمَآ اُنْزِلَ الْاٰيَةَ.

**باب ٧٨٧:** مشر کانونـه دے د گواهي وغيره متعلق تپوس نه کيږي[1]. او شعبي اووے، چه د يو مذهب والو گواهي ذ بل مذهب والو په معامله کښې مقبول نهٔ ده، ځکه چه اللّٰه تعالٰي فرمائيلے دي، مونږ د هغوي مينځ کښې عداوت او دُشمني گرمه کړه. او ابوهريرهؓ ذ نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم نه نقل کوي، چه ذ اهل کتابو مه تصديق کوئے، او مه ئے تکذيب کوئے. او، وائے، چه مونږ په اللّٰه ايمان راوړے دے، او په هغه څيز چه اللّٰه نازل کړے دے، آخر آيت پورے.

[1] د مصنف رحمة اللّٰه عليه مسلک دا معلوميږي چه اسلامي عدالت دے ذ غير مسلمو گواهي نهٔ قبلوي. ليکن د احنافو په نزد د هغوئ گواهي به هم قبلولے شي او د هغوئ په گواهئ باندے فيصلے به هم کؤلے شي. اگرچه ددے باب په دواړو مذهبونو کښې تفصيل دے ليکن بنيادي طور باندے احناف دا وائي چه که چرے يو غير مسلم د بل غير مسلم خلاف گواهئ کښې پيش کړے شي او ذ گواه شرائط په هغه کښې موندے کيږي نو د هغه گواهي به قبلولے شي. مسلمان هم څوک غير مسلم په خپله مقدمه کښې د گواه په طور باندے پيش کولے شي او که چرے د گواه جوړيدلو شرطونه په هغه کښې موجود وي نو عدالت به د هغهٔ گواهي قبلوي.

پـه يـو حـديـث کـښې دي چـه رسـول اللّٰـه صلي اللّٰه عليه وسلّم له يو يهودي سړے او يو يهودي ښځه راوستے شُو چا چه زنا کړے وه نو حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل چه د دے خبرے څلور گواهان راولئ.

علامه ماردينيؒ دا روايت نقل کولو نه پس فرمائيلي دي چه ددے سند عمده دے. همدغه شان په يو روايت کښې دي چه حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم د اهل کتابو ذ گواهئ اجازت ور کړے وو. علامه مارديني دے حديث ته مسلم ذ شرائطو مطابق ونيلي دي. مصنف رحمة اللّٰه عليه چه کوم دلائل ددے خلاف نقل کړي دي که چرے په هغے باندے غور اوکړے شي نو واضحه به شي چه هغهٔ ذ قضا او عدالت ذ اُمورو متعلق د سره دي نه. او په دے باب کښې هغے سره استدلال نشي کيدلے.

۱۱۹۹: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ يُونُسَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ ابْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُتْبَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ يَا مَعْشَرَ الْمُسْلِمِيْنَ كَيْفَ تَسْأَلُوْنَ اَهْلَ الْكِتٰبِ وَ كِتَابُكُمُ الَّذِيْ اُنْزِلَ عَلٰى نَبِيِّهٖ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَحْدَثُ الْاَخْبَارِ بِاللّٰهِ تَقْرَؤُنَهُ لَمْ يُشَبْ وَقَدْ حَدَّثَكُمُ اللّٰهُ اَنَّ اَهْلَ الْكِتَابِ بَدَّلُوْا مَا كَتَبَ اللّٰهُ وَ غَيَّرُوْا بِاَيْدِيْهِمُ الْكِتَابَ فَقَالُوْا هُوَ مِنْ عِنْدِ اللّٰهِ لِيَشْتَرُوْا بِهٖ ثَمَنًا قَلِيْلًا فَلَا يَنْهَاكُمْ مَا جَآءَ كُمْ مِّنَ الْعِلْمِ عَنْ مُسَائَلَتِهِمْ وَلَا وَاللّٰهِ مَا رَاَيْنَا مِنْهُمْ رَجُلًا قَطُّ يَسْأَلُكُمْ عَنِ الَّذِيْ اُنْزِلَ عَلَيْكُمْ.

۱۱۹۹: یحیی بن بکیر. لیث. یونس. ابن شهاب. عبیدالله بن عبدالله بن عتبه. ابن عباس نه روایت کوي. هغهٔ اووې. اې د مسلمانانو جماعته! تاسو د اهل کتابونه څنګه تپوس کوئې، حالانکه ستاسو کتاب خو هغه دې، چه په نبي صلی الله علیه وسلم نازل شوې دې. دې کښ د الله بنودلې شوې د ټولو نه نوې خبر دې، چه هغه تاسو لولئې. دې کښ هیڅ آمیزش (ګډون) نشته. او تاسو ته الله تعالي بیان او کهٔ، چه الله تعالي څهٔ لیکلي وو، هغې کښ اهل کتابو تبدیلي کړې ده، او خپلو لاسونو سره ئې کتاب بدل کړې دې. او دې خلقو اووې، چه دا د الله د جانب نه دې د پاره د دې چه د دې په ذریعه لږ قیمت وصول کړي. آیا کوم علم چه تاسو ته الله تعالي درکړې دې، هغې کښ د هغوئ نه د تپوس کولو متعلق تاسوئې منع کړې نه ئې، قسم په خدائې، مونږ د اهل کتابو نه هیڅوک نه دې لیدلې، چه هغه چرته تاسو نه د هغې باره کښ تپوس کړې وي، چه تاسو باندې نازل شوې دې.

بَابٌ ۷۸۸: الْقُرْعَةِ فِي الْمُشْكِلَاتِ وَ قَوْلِهٖ اِذْ يُلْقُوْنَ اَقْلَامَهُمْ اَيُّهُمْ يَكْفُلُ مَرْيَمَ وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ اِقْتَرَعُوْا فَجَرَتِ الْاَقْلَامُ مَعَ الْجِرْيَةِ وَ عَالَ قَلَمُ زَكَرِيَّآءَ الْجِرْيَةَ فَكَفَلَهَا زَكَرِيَّآءُ وَ قَوْلِهٖ فَسَاهَمَ اَقْرَعَ فَكَانَ مِنَ الْمُدْحَضِيْنَ مِنَ الْمَسْهُوْمِيْنَ

باب ۷۸۸: د مشکلاتو په وخت د قرعه آندازي بیان. او د الله تعالي قول، چه کوم وخت هغوي قلمونه غرخول، چه څوک به د بي بي مریمې پرورش کوي. ابن عباس د دې تفسیر بیان که کوم وخت چه خلقو خپل خپل قلم اوغرخولو، نو د ټولو قلمونه اوبو سره اوبهیدل. لیکن د زکریا علیه السلام قلم، او دریدلو، نو هغه د بي بي مریمې پرورش او کهٔ، او د الله تعالي قول، فساهم معنی دي: قرعه آندازي ئې او کړله، او فکان من الْمُدْحَضِيْنَ: معنی دي، چه قرعه د هغهٔ په نوم د

وَ قَالَ اَبُو هُرَيْرَةَ عَرَضَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلٰى قَوْمٍ الْيَمِيْنَ فَاَسْرَعُوْا فَاَمَرَ اَنْ يُّسْهَمَ بَيْنَهُمْ اَيُّهُمْ يَحْلِفُ.

راوختــه او د ابوهريرهؓ بيان دے چه نبي صلے الله عليه وسلم څو کسانوته د قسم خوړلو د پاره اووے نو هغوی کښې هر يو تادي کوله. حضور صلے الله عليه وسلم حکم ورکړلو چه د هغوي مينځ کښې دے قرعه آندازي اوکړے شي چه څوک دے قسم اوخوري.

١٢٠٠ : حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصِ ابْنِ غِيَاثٍ حَدَّثَنَا اَبِيْ حَدَّثَنَا الْاَعْمَشُ قَالَ حَدَّثَنَا الشَّعْبِيُّ اَنَّهُ سَمِعَ النُّعْمَانَ بْنَ بَشِيْرٍ يَقُوْلُ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَثَلُ الْمُدْهِنِ فِيْ حُدُوْدِ اللّٰهِ وَالْوَاقِعِ فِيْهَا مَثَلُ قَوْمٍ اِسْتَهَمُوْا سَفِيْنَةً فَصَارَ بَعْضُهُمْ فِيْ اَسْفَلِهَا فَصَارَ بَعْضُهُمْ فِيْ اَعْلَاهَا فَكَانَ الَّذِيْ فِيْ اَسْفَلِهَا يَمُرُّوْنَ بِالْمَآءِ عَلَى الَّذِيْنَ فِيْ اَعْلَاهَا فَتَاَذَّوْا بِهٖ فَاَخَذَ فَاْسًا فَجَعَلَ يَنْقُرُ اَسْفَلَ السَّفِيْنَةِ فَاَتَوْهُ فَقَالُوْا مَالَكَ قَالَ تَاَذَّيْتُمْ بِيْ وَلَا بُدَّلِيْ مِنَ الْمَآءِ فَاِنْ اَخَذُوْا عَلٰى يَدَيْهِ اَنْجَوْهُ وَ نَجَّوْا اَنْفُسَهُمْ وَ اِنْ تَرَكُوْهُ اَهْلَكُوْهُ وَ اَهْلَكُوْا اَنْفُسَهُمْ.

١٢٠٠ : عمر بن حفص بن غياث. حفص بن غياث. اعمش. شعبي. په واسطه د نعمان بن بشير. د نبي صلے الله عليه وسلم قول نقل کوي. حضور صلے الله عليه وسلم اوفرمائيل د الله حدودو کښې د نرمي کونکي او هغے کښې د اخته کيدونکو مثال د هغے قوم دے چه هغوي يو کشتئ کښې قرعه آندازي اوکړه د بعضو حصه کښې بالائي حصه او د بعضو حصه کښې لاندے حصه راغله. او کوم خلق چه لاندے وو هغوي اوبو اخستو د پاره پورتنو خلقو سره آمدورفت شروع کړه چه هغے سره هغے خلقوته تکليف پيدا شو. يو سړي يوه تيشه واخسته او لاندے حصه کښې ئے سورے (سوراخ) کول شروع کړل (چه د هغے نه اوبه واخلي او پورتنو خلقوته تکليف نه وي) نو پورته خلق هغه له راغلل او هغه ته ئے اووے تا له څه شوے دي. هغه اووے تاسو خلقوته زما په وجه تکليف وو او زما د پاره اوبه ضروري څيز دے که دغه خلق د هغه لاس اونيسي نو دے به هم بچ کړي او خپل ځان به هم بچ کړي او که هغه پريږدي نو خپله به هم تباه شي او هغه به هم تباه کړي.

١٢٠١ : حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ

١٢٠١ : ابواليمان. شعيب. زهري. خارجه بن زيد انصاري بيان کوي چه ام علا چه د هغه خپلوانه

حَدَّثَنِي خَارِجَةُ بْنُ زَيْدِ الْاَنْصَارِيُّ اَنَّ اُمَّ الْعَلَاءِ امْرَاَةٌ مِّنْ نِسَآئِهِمْ قَدْ بَايَعَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَخْبَرَتْهُ اَنَّ عُثْمَانَ بْنَ مَظْعُوْنٍ طَارَ لَنَا سَهْمُهُ فِي السُّكْنٰى حِيْنَ اَقْرَعَتِ الْاَنْصَارُ سُكْنَى الْمُهَاجِرِيْنَ قَالَتْ اُمُّ الْعَلَآءِ فَسَكَنَ عِنْدَنَا عُثْمٰنُ بْنُ مَظْعُوْنٍ فَاشْتَكٰى فَمَرَّضْنَاهُ حَتّٰى اِذَا تُوُفِّيَ وَجَعَلْنَاهُ فِيْ ثِيَابِهٖ دَخَلَ عَلَيْنَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْتُ رَحْمَةُ اللّٰهِ عَلَيْكَ اَبَا السَّائِبِ فَشَهَادَتِيْ عَلَيْكَ لَقَدْ اَكْرَمَكَ اللّٰهُ فَقَالَ لِيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَا يُدْرِيْكِ اَنَّ اللّٰهَ اَكْرَمَهٗ فَقُلْتُ لَآ اَدْرِيْ بِاَبِيْ اَنْتَ وَ اُمِّيْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَمَّا عُثْمَانُ فَقَدْ جَآءَهُ وَاللّٰهِ الْيَقِيْنُ وَ اِنِّيْ لَاَرْجُوْ لَهُ الْخَيْرَ وَاللّٰهِ مَآ اَدْرِيْ وَ اَنَا رَسُوْلُ اللّٰهِ مَا يُفْعَلُ بِهٖ قَالَتْ فَوَاللّٰهِ لَا اُزَكِّيْ اَحَدًا بَعْدَهٗ اَبَدًا وَّ اَحْزَنَنِيْ ذَالِكَ قَالَتْ فَنِمْتُ فَاُرِيْتُ لِعُثْمٰنَ عَيْنًا تَجْرِيْ فَجِئْتُ اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَخْبَرْتُهٗ فَقَالَ ذَالِكَ عَمَلُهٗ.

وه' د نبي صلے اللّه علیه وسلّم سره ئے بیعت 'وکړه کوم وخت چه انصار د مهاجرینو د' اوسیدو د باره قرعه آندازي او کړه' نو عثمان بن مظعون خمونږ په حصے ته کښې راغے' هغه مونږ سره اوسیدلو' بیا خلے ناروغه شو' نو مونږ د هغه ښه خدمت او کړه تر دے چه هغه وفات شو' او مونږ هغه ته کفن واغستولو' نو رسول اللّه صلے اللّه علیه وسلّم مونږ پله تشریف راوړلو. ما اووے. اے ابو السائب' په تا دے د' اللّه رحمت وي' زه ستا متعلق ګواهي ورکوم' چه اللّه ته معزز کړلے. نبي صلے اللّه علیه وسلّم ماته اوفرمائیل' تاته څنګه معلومه شوه چه اللّه هغه معزز کړلو. ما عرض او کړه' یا رسول اللّه' خما مور پلار دے په تاسو قربان وي' ماته پته نشته (زه نه پوهیږم) رسول اللّه صلے اللّه علیه وسلّم اوفرمائیل' عثمان ته خو' په خدائے م دے قسم وي' مرګ راغے' زه هغه د پاره د خیر اُمیدوار یم' حالانکه زه د خدائے رسول یم' ولے په خدائے چه زه نه پوهیږم' چه هغه سره به څه معامله کیږي. اُم علاء اووے' په خدائے چه' دے نه پس به زه د هیچا تزکیه اونه کړم' او زه په دے سبب غمجنه شوم' نو ما خوب کښې اولیدل' چه عثمان د پاره یوه چینه بهیږي' زه د' رسول اللّه صلے اللّه علیه وسلّم خدمت کښې حاضره شوم' او حضور صلے اللّه علیه وسلّم ته م دا قصه بیان کړه' نو حضور صلے اللّه علیه وسلّم اوفرمائیل' دا' د هغه عمل دے.

۱۲۰۲ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ

۱۲۰۲ : محمد بن مقاتل. عبداللّه. یونس.

مُقَاتِلٍ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا يُوْنُسُ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عُرْوَةُ عَنْ عَآئِشَةَ قَالَتْ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا اَرَادَ سَفَرًا اَقْرَعَ بَيْنَ نِسَآئِهٖ فَاَيَّتُهُنَّ خَرَجَ سَهْمُهَا خَرَجَ بِهَا مَعَهُ وَ كَانَ يُقْسِمُ لِكُلِّ امْرَاَةٍ مِنْهُنَّ يَوْمَهَا وَلَيْلَتَهَا غَيْرَ اَنَّ سَوْدَةَ بِنْتَ زَمْعَةَ وَهَبَتْ يَوْمَهَا وَلَيْلَتَهَا لِعَآئِشَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَبْتَغِيْ بِذٰلِكَ رِضَا رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

زهري. عروه. بى بي عائشې نه روايت كوي. د هغې بيان دې، چه رسول الله صلى الله عليه وسلم د سفر اراده كوله، نو د خپلو بيبيانو مينځ كښې به ئې قرعه آندازي كوله، هغوي كښې چه به د چا نوم راوختلو، هغه به ئې خان سره بوتله، او خپلې هرې يوې بي بي سره به حضور صلى الله عليه وسلم يوه ورځ او شپه اوسيدلو، سوا د بي بي سوده بنت زمعۀ نه، چه هغې خپل وار، د حضور صلى الله عليه وسلم تېر، بي بي عائشې له وركړې وو. د هغې نه د هغې غرض صرف دا وو، چه رسول الله صلى الله عليه وسلم راضي شي.

۱۲۰۳: حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنْ سُمَيٍّ مَوْلٰى اَبِيْ بَكْرٍ عَنْ اَبِيْ صَالِحٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَوْ يَعْلَمُ النَّاسُ مَا فِي النِّدَآءِ وَالصَّفِّ الْاَوَّلِ ثُمَّ لَمْ يَجِدُوْا اِلَّا اَنْ يَّسْتَهِمُوْا عَلَيْهِ لَا اسْتَهَمُوْا وَلَوْ يَعْلَمُوْنَ مَا فِي التَّهْجِيْرِ لَاسْتَبَقُوْا اِلَيْهِ وَلَوْ يَعْلَمُوْنَ مَا فِي الْعَتَمَةِ وَالصُّبْحِ لَاَتَوْهُمَا وَلَوْ حَبْوًا.

۱۲۰۳: اسمعيل. مالک. سُمي (د ابوبكر بن عبدالرحمن غلام) ابو صالح. حضرت ابوهريرهٔ نه روايت كوي، د هغهٔ بيان دې، رسول الله صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل، كهٔ خلقوته معلومه وې، چه آذان او ورمبني صف كښې څومره ثواب دې، نو هغې د پاره به ئې قرعه آندازي كوله. او كهٔ ورته دا معلومه وې چه مونځ له د وخته تلو كښې څومره ثواب دې، نو د يو بل نه به مخكښې كيدل او كهٔ هغوي ته معلومه وې، چه د ماسختن او سحر جماعت كښې څومره ثواب دې نو ضرور به هغې كښې شريكيدل، اګر كهٔ په ګنډو (ګنډو كے بل) ورته تلل وې.

# كِتَابُ الصُّلْحِ

# دَ صُلح بيان

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

بسم الله الرحمن الرحيم

بَـاب ۷۸۹: مَـا جَـآءَ فِي

باب ۷۸۹: د خلقو مينځ كښې د صلح.

الْإِصْلَاحِ بَيْنَ النَّاسِ وَقَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى لَا خَيْرَ فِيْ كَثِيْرٍ مِّنْ نَّجْوٰىهُمْ إِلَّا مَنْ أَمَرَ بِصَدَقَةٍ أَوْ مَعْرُوْفٍ أَوْ إِصْلَاحٍ بَيْنَ النَّاسِ وَمَنْ يَّفْعَلْ ذٰلِكَ ابْتِغَآءَ مَرْضَاتِ اللّٰهِ فَسَوْفَ نُؤْتِيْهِ أَجْرًا عَظِيْمًا وَخُرُوْجِ الْإِمَامِ إِلَى الْمَوَاضِعِ لِيُصْلِحَ بَيْنَ النَّاسِ بِأَصْحَابِهِ.

۱۲۰۴ : حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ أَبِيْ مَرْيَمَ حَدَّثَنَا أَبُوْ غَسَّانَ قَالَ حَدَّثَنِيْ أَبُوْ حَازِمٍ عَنْ سَهْلِ ابْنِ سَعْدٍ أَنَّ أُنَاسًا مِّنْ بَنِيْ عَمْرِو بْنِ عَوْفٍ كَانَ بَيْنَهُمْ شَيْءٌ فَخَرَجَ إِلَيْهِمُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ أُنَاسٍ مِّنْ أَصْحَابِهِ يُصْلِحُ بَيْنَهُمْ فَحَضَرَتِ الصَّلٰوةُ وَلَمْ يَأْتِ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَجَآءَ بِلَالٌ فَأَذَّنَ بِلَالٌ بِالصَّلٰوةِ وَلَمْ يَأْتِ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَجَآءَ إِلَى أَبِيْ بَكْرٍ فَقَالَ إِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حُبِسَ وَقَدْ حَضَرَتِ الصَّلٰوةُ فَهَلْ لَّكَ أَنْ تَؤُمَّ النَّاسَ فَقَالَ نَعَمْ إِنْ شِئْتَ فَأَقَامَ الصَّلٰوةَ فَتَقَدَّمَ أَبُوْ بَكْرٍ ثُمَّ جَآءَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَمْشِيْ فِي الصُّفُوْفِ حَتّٰى قَامَ فِي الصَّفِّ الْأَوَّلِ فَأَخَذَ النَّاسُ

کولو متعلق چه منقول دي' او د الله تعالی قول چه د هغوي اکثر غوږ کښې خبرو کولو کښې خیر نشته خو هغه سړے چه د صدقه یا د ښو خبرو یا د خلقو مینځ کښې د اصلاح حکم ورکوي' او چا چه دا د خدائے د رضا د پاره اوکړل' نو ډیر زر به مونږ هغه له لوئے اجر ورکړو. او د امام خپلو ملګرو سره د خلقو مینځ کښې د صلح کولو د پاره د جنګ مقاماتو ته د تلو بیان.

۱۲۰۴ : سعید بن ابي مریم. ابو غسان. ابو حازم. سهل بن سعدؓ نه روایت کوي' چه بني عمرو بن عوف څو سړو مینځ کښې څه جګړه وه. حضور صلے اللّه علیه وسلّم خپلو صحابه ؤ سره د هغوي مینځ کښې صلح کولو د پاره تشریف یوړلو. د مونځ وخت شو. او نبي صلے اللّه علیه وسلّم واپس تشریف راؤنه ړلو' بلالؓ راغے او آذان ئے اوکړ. بیا هم نبي صلے اللّه علیه وسلّم تشریف راؤنه ړلو' نو بلالؓ حضرت ابوبکرؓ له ورغے' اوورته ئے اووے' چه نبي صلے اللّه علیه وسلّم ایسار شوے دے' او د مونځ وخت دے' نو آیا تاسو به امامتي اوکړئ. هغه ورته اووے' او' که ستا خواهش وي' نو تکبیر اوشو' او ابوبکرؓ مخکښې شو. بیا نبي صلے اللّه علیه وسلّم صفونو کښې راغے' حتي چه وړمبني صف ته رااورسیدلو' خلقو لاس پړقول شروع کړل' تردے چه دے خلقو زیاتے اوکړلو. او حضرت ابوبکرؓ به مانځه کښې هیڅ طرف ته نه متوجّه کیدلو. بیائے نظر واړولو' نو رسول اللّه صلے الله علیه وسلّم ئے

بِالتَّصْفِيْحِ حَتّٰى اَكْثَرُوْا وَ كَانَ
اَبُوْبَكْرٍ لَّا يَكَادُ يَلْتَفِتُ فِي الصَّلٰوةِ
فَالْتَفَتَ فَاِذَا هُوَ بِالنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ
عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَرَآءَهٗ فَاَشَارَ اِلَيْهِ بِيَدِهٖ
فَاَمَرَهٗ يُصَلِّيْ كَمَا هُوَ فَرَفَعَ اَبُوْ بَكْرٍ
يَدَهٗ فَحَمِدَ اللّٰهَ ثُمَّ رَجَعَ الْقَهْقَرٰى
وَرَآءَهٗ حَتّٰى دَخَلَ فِي الصَّفِّ وَ
تَقَدَّمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
فَصَلّٰى بِالنَّاسِ فَلَمَّا فَرَغَ اَقْبَلَ عَلَى
النَّاسِ فَقَالَ يٰۤاَيُّهَا النَّاسُ اِذَا نَابَكُمْ
شَيْءٌ فِيْ صَلٰوتِكُمْ اَخَذْتُمْ
بِالتَّصْفِيْحِ اِنَّمَا التَّصْفِيْحُ لِلنِّسَاءِ مَنْ
نَابَهٗ شَيْءٌ فِيْ صَلٰوتِهٖ فَلْيَقُلْ
سُبْحَانَ اللّٰهِ فَاِنَّهٗ لَا يَسْمَعُهٗ اَحَدٌ اِلَّا
الْتَفَتَ يَا اَبَا بَكْرٍ مَّا مَنَعَكَ حِيْنَ
اَشَرْتُ اِلَيْكَ لَمْ تُصَلِّ بِالنَّاسِ فَقَالَ مَا
كَانَ يَنْبَغِيْ لِابْنِ اَبِيْ قُحَافَةَ اَنْ
يُصَلِّيْ بَيْنَ يَدَيِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ
عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

**۱۲۰۵** : حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ
حَدَّثَنَا مُعْتَمِرٌ قَالَ سَمِعْتُ اَبِيْ
اَنَّ اَنَسًا قَالَ قِيْلَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى
اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَوْ اَتَيْتَ عَبْدَ
اللّٰهِ بْنَ اُبَيٍّ فَانْطَلَقَ اِلَيْهِ النَّبِيُّ
صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَرَكِبَ
حِمَارًا فَانْطَلَقَ الْمُسْلِمُوْنَ

خپل شاته اوليدلو، حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم
ورته خپل لاس سره اشاره اوکړه. او حکم ئے
ورکړلو، چه مونځ ورکړي، حضرت ابوبکرؓ خپل
لاس اوچت کړ. د اللّٰه حمد ئے بيان کړ، بيا په
راورستو شو، تردے چه صف کښ داخل شولو، او
نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم مخکښ شو، او خلقوته ئے
مونځ ورکړلو. کوم وخت چه فارغ شو، نو وے
فرمائيل، اے خلقو، هر کله چه مانځه کښ تاسو ته
څه خبره پيښه شي، نو د لاس پړقول شروع
کړئے. حالانکه لاس پړقول د زنانه ؤ د پاره دي.
مانځه کښ که څه خبره پيښه شي، نو سُبحان اللّٰه
وئيل پکار دي، ځکه چه کوم سړے دا آوري، نو
هغه به متوجه کيږي. او، اے ابوبکرؓ ته کوم څيز
د، دے نه منع کړے، چه خلقوته مونځ ورکړے،
هر کله چه ما درته اشاره درکړے وه. حضرت
ابوبکرؓ عرض اوکړ، ابن ابي قحافه ته دا حق
حاصل نه دے، چه هغه دے د نبي صلے اللّٰه
عليه وسلّم په موجودگي کښ مونځ
ورکړي.

**۱۲۰۵** : مُسدد. معتمر. د خپل پلار نه روايت
کوي. د حضرت انسؓ بيان دے، نبي صلے اللّٰه عليه
وسلّم ته خلقو اووے، کاش چه تاسوؐ عبدالله بن ابي ته
تشريف اُوړے وے، نو نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم هغه له په
خر سور تشريف يوړلو. او مُسلمانان حضور صلے اللّٰه
عليه وسلّم سره پياده روان وو، هغه زمکه بنوره وه، په
کومه چه حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم تلو، کوم وخت

يَمْشُوْنَ مَعَهُ وَ هِيَ اَرْضٌ سَبِخَةٌ فَلَمَّا اَتَاهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ اِلَيْكَ عَنِّيْ وَاللّٰهِ لَقَدْ اٰذَانِيْ نَتْنُ حِمَارِكَ فَقَالَ رَجُلٌ مِّنَ الْاَنْصَارِ مِنْهُمْ وَاللّٰهِ لَحِمَارُ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَطْيَبُ رِيْحًا مِّنْكَ فَغَضِبَ لِعَبْدِ اللّٰهِ رَجُلٌ مِّنْ قَوْمِهٖ فَشَتَمَا فَغَضِبَ لِكُلِّ وَاحِدٍ مِّنْهُمَا اَصْحَابُهٗ فَكَانَ بَيْنَهُمَا ضَرْبٌ بِالْجَرِيْدِ وَالْاَيْدِيْ وَالنِّعَالِ فَبَلَغَنَا اَنَّهَا اُنْزِلَتْ وَ اِنْ طَآئِفَتَانِ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ اقْتَتَلُوْا فَاَصْلِحُوْا بَيْنَهُمَا.

چه حضور صلے الله عليه وسلم هغه ته اورسيدلو نو هغه اوونے تاسو خما نه لرے شئ قسم په خدائے ستاسو د خر بوني ماته تکليف راورسولو! يو انصاري جواب ورکړ: قسم په خدائے د رسول الله صلے الله عليه وسلم د خر بوي ستا نه زيات پاکيزه دے. د عبدالله د قوم يو سړے ډير غضب ناک شو او هغه ته ئے کنځل اوکړل بيا د دے دواړو ملګري د خپل خپل دوست په حمايت کښې ګرم شو. د ډنډو، لاسونو او پڼړو ګزارونه اوشولو. ماته دا خبر رارسيدلے دے، چه آيت: و ان طآئِفتانِ الخ (کله د مؤمنانو دوه جماعتونه جګړه اوکړي نو د هغوي مينځ کښې صلح کوئ) په دے موقعه نازل شوے دے.

١. په بل روايت کښې دي چه حضورؐ په يعفور نومے خر باندے سور وو او خر چه هلته اورسيدو نو متيازے ئے کړے وے. په دے باندے عبدالله بن أبي دا جمله يا دا چه "خلق ددے خر د بوئين نه خلاص کړه" وئيلے وه.

## بَابُ ٧٩٠: لَيْسَ الْكَاذِبُ الَّذِيْ يُصْلِحُ بَيْنَ النَّاسِ.

## باب ٧٩٠: هغے سړي ته به دروغجن نشي وئيلے، چه د خلقو مينځ کښې د صلح کولو د پاره دروغ اووائي.

١٢٠٦: حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ ابْنُ سَعْدٍ عَنْ صَالِحٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ اَنَّ حُمَيْدَ بْنَ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ اَخْبَرَهٗ اَنَّ اُمَّهٗ اُمَّ كُلْثُوْمٍ بِنْتَ عُقْبَةَ اَخْبَرَتْهُ اَنَّهَا سَمِعَتْ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ لَيْسَ الْكَذَّابُ الَّذِيْ يُصْلِحُ بَيْنَ النَّاسِ فَيَنْمِيْ خَيْرًا اَوْ

١٢٠٦: عبدالعزيز بن عبدالله. ابراهيم بن سعد. صالح. ابن شهاب. حميد بن عبدالرحمن. أم کلثوم بنت عقبه نه روايت کړي. د هغے بيان دے، ما د رسول الله صلے الله عليه وسلم نه آوريدلے دي، چه هغه سړے دروغجن نه دے، چه خلاف واقعه بښه خبره اوکړي. د خلقو مينځ کښې د روغے کولو د

يَقُوْلُ خَيْرًا. پاره‌ا.

ا. د احنافو په نزد دلته صراحة دروغ وئيل په هيڅ صورت کښې هم جائز نه دي. البته د مصالحو تر مخه تعريض او کنايه دروغو سره کيدلے شي. د همدغه مصالحو نه يو مصلحت د دوؤ کسانو په خپلو کښې روغه کول هم دي چه په دے کښې د فريقينو په مخکښے د هغوی د خلاف خبرے په دا شان کيښودے شي چه د دواړو زړونه صفا شي او صلحه اوشي.

باب ۱۹۱۷: قَوْلِ الْاِمَامِ لِاَصْحٰبِهٖ اِذْهَبُوْا بِنَا نُصْلِحُ.

باب ۱۹۱۷: د امام خپلو ملګرو ته دا وئيل مونږ سره ځئ، چه صلح او کړو.

۱۲۰۷: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ الْاُوَيْسِيُّ وَ اِسْحٰقُ بْنُ مُحَمَّدِ الْفَرْوِيُّ قَالَا حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ عَنْ اَبِيْ حَازِمٍ عَنْ سَهْلِ ابْنِ سَعْدٍؓ اَنَّ اَهْلَ قُبَاءَ اقْتَتَلُوْا حَتّٰى تَرَامَوْا بِالْحِجَارَةِ فَاُخْبِرَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِذٰلِكَ فَقَالَ اذْهَبُوْا بِنَا نُصْلِحُ بَيْنَهُمْ.

۱۲۰۷: محمد بن عبدالله. عبدالعزيز بن عبدالله اويسي او اسحق بن محمد فروي. محمد بن جعفر. ابو حازم. سهل بن سعد نه روايت کوي، د قبا خلق په جنګ شو، تر دے چه يو بل ئے په کانړو اُويشتل، رسول الله صلے الله عليه وسلم چه خبر شو، نو وے فرمائيل مونږ سره لاړ شئ، چه صلح او کړو.

باب ۱۹۲۷: قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى اَنْ يُّصْلِحَا بَيْنَهُمَا صُلْحًا وَّالصُّلْحُ خَيْرٌ.

باب ۱۹۲۷: د الله تعالي قول، کۀ هغوي دواړه خپلو کښې صلح اوکړي او صلح بهتره ده.

۱۲۰۸: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ وَ اِنِ امْرَاَةٌ خَافَتْ مِنْ بَعْلِهَا نُشُوْزًا اَوْ اِعْرَاضًا قَالَتْ هُوَ الرَّجُلُ يَرٰى مِنِ امْرَاَتِهٖ مَا لَا يُعْجِبُهُ كِبَرًا اَوْ غَيْرَهُ فَيُرِيْدُ فِرَاقَهَا فَتَقُوْلُ اَمْسِكْنِيْ وَاقْسِمْ لِيْ مَا شِئْتَ قَالَتْ فَلَا بَاْسَ اِذَا

۱۲۰۸: قتيبه بن سعيد. سفيان. هشام بن عروه. عروه. عائشےؓ نه روايت کوي، چه هغے دَ، آيت: و ان امراة خافت من بعلها نشوزًا او اعراضًا: تفسير داسے بيان کۀ، کۀ يو سړے خپلے ښځے کښې داسے خبرے مثلاً غرور وغيره اووينې. او هغه جُدا کول غواړي. بيا هغه ښځه اووائي، چه ما ځان سره اوساته، او څۀ چه ستا زړۀ غواړي. ما ذ پاره تقسيم کړه. داسے صورت کښې بي بي عائشےؓ اوفرمائيل، کۀ دواړه راضي شي، نو هيڅ

تَرَاضِيَا.

باب ۷۹۳: اِذَا اصْطَلَحُوْا عَلٰى صُلْحِ جَوْرٍ فَالصُّلْحُ مَرْدُوْدٌ.

۱۲۰۹: حَدَّثَنَا اٰدَمُ حَدَّثَنَا ابْنُ اَبِيْ ذِئْبٍ حَدَّثَنَا الزُّهْرِيُّ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ وَ زَيْدِ بْنِ خَالِدِ الْجُهَنِيِّ قَالَا جَآءَ اَعْرَابِيٌّ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اقْضِ بَيْنَنَا بِكِتَابِ اللّٰهِ فَقَامَ خَصْمُهُ فَقَالَ صَدَقَ اقْضِ بَيْنَنَا بِكِتَابِ اللّٰهِ فَقَالَ الْاَعْرَابِيُّ اِنَّ ابْنِيْ كَانَ عَسِيْفًا عَلٰى هٰذَا فَزَنٰى بِامْرَاَتِهٖ فَقَالُوْا لِيْ عَلٰى ابْنِكَ الرَّجْمُ فَفَدَيْتُ ابْنِيْ مِنْهُ بِمِائَةٍ مِنَ الْغَنَمِ وَ وَلِيْدَةٍ ثُمَّ سَاَلْتُ اَهْلَ الْعِلْمِ فَقَالُوْآ اِنَّمَا عَلٰى ابْنِكَ جَلْدُ مِائَةٍ وَّ تَغْرِيْبُ عَامٍ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَاَقْضِيَنَّ بَيْنَكُمَا بِكِتَابِ اللّٰهِ اَمَّا الْوَلِيْدَةُ وَالْغَنَمُ فَرَدٌّ عَلَيْكَ وَ عَلٰى ابْنِكَ جَلْدُ مِائَةٍ وَّ تَغْرِيْبُ عَامٍ وَّ اَمَّا اَنْتَ يَآ اُنَيْسُ لِرَجُلٍ فَاغْدُ عَلَى امْرَاَةِ هٰذَا فَارْجُمْهَا فَغَدَا عَلَيْهَا اُنَيْسٌ فَرَجَمَهَا.

۱۲۱۰: حَدَّثَنَا يَعْقُوْبُ حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ ابْنُ سَعْدٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ

حرج نشته.

باب ۷۹۳: كه خلق د ظلم په خبره صلح اوكړي، نو هغه صلح مقبول نه ده.

۱۲۰۹: آدم. ابن ابي ذئب. زهري. عبيدالله بن عبدالله په واسطه د ابوهريره او خالد بن زيد جهني روايت كوي. د دواړو بيان دے چه يو اعرابي (بانډيسے) راغے. او عرض ئے اوكه، يا رسول الله، خمونږ مينځ كښ د كتاب الله مطابق فيصله اوكړئ. د هغه مخالف فريق اودريد. او عرض ئے اوكه، ټيك ده، خمونږ مينځ كښ د كتاب الله فيصله اوكړے. اعرابي اووے، خما خوئے ده سره مزدور وو، هغه د ده ښځے سره زنا اوكړله. خلقو ماته اووے چه ستا خوئے سنګساروول پكار دي، ما د خپل خوئ د طرفنه سل چيلئے او يوه وينزه وركړه، خلاص م كړلو. بيا ما د عالمانو نه تپوس اوكه، نو هغوي اووے، ستا خوئے سل دُرے وهل پكار دي او يو كال د پاره جلاوطن كول ئے پكار دي. نبي صلے الله عليه وسلم ورته اوفرمائيل، ستاسو مينځ كښ به د كتاب الله مطابق فيصله اوكړم، وينزه او چيلئے خو تاته واپس كولے شي، او ستا خوئے به سل دُرے وهلے شي او يو كال د پاره به جلا وطن كولے شي. او يو سړي ته حضور صلے الله عليه وسلم اوفرمائيل. اے انيس، صبا له ته د هغے سړي ښځے له لاړ شه، كه هغه د زنا اقرار كوي، نو هغه سنګساره كړه. نو انيس سحر وخت هغه سنګسار كړه.

۱۲۱۰: يعقوب. ابراهيم بن سعد. سعد. قاسم بن محمد. بي بي عائشے نه روايت كوي

الْقَاسِمِ بْنِ مُحَمَّدٍ عَنْ عَآئِشَةَ قَالَتْ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ اَحْدَثَ فِيْ اَمْرِنَا هٰذَا مَا لَيْسَ فِيْهِ فَهُوَ رَدٌّ رَوَاهُ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ جَعْفَرِ الْمَخْرَمِيُّ وَ عَبْدُ الْوَاحِدِ بْنُ اَبِيْ عَوْنٍ عَنْ سَعْدِ بْنِ اِبْرَاهِيْمَ.

د هغې بيان دې' رسول اللّٰه صلى اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل' چا چه خمونږ دين کښې څه داسې نوې خبره راوښکله' چه دين کښې نشته' نو هغه مردود دې. عبداللّٰه بن جعفر مخرمي او عبدالواحد بن ابي عون د سعد بن ابراهيم نه دا روايت کړې دې.

## بَابٌ ۷۹۴: كَيْفَ يُكْتَبُ هٰذَا مَا صَالَحَ فُلَانُ بْنُ فُلَانٍ فُلَانَ لَمْ يُنْسُبْهُ اِلٰى قَبِيْلَتِهٖ اَوْ نَسَبِهٖ.

باب ۷۹۴: صلح نامه به څنګه ليکلې شي' هذا ما صالح فلان بن فلان وفلان بن فلان (دا هغه صلاح نامه ده' چه په هغې فلاني بن فلاني او فلاني بن فلاني صلح اوکړه) او اګر که هغه قبيلې يا نسب طرف ته منسوب نه کړي.

۱۲۱۱: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدُرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ اَبِيْ اِسْحٰقَ قَالَ سَمِعْتُ الْبَرَآءَ بْنَ عَازِبٍ قَالَ لَمَّا صَالَحَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَهْلَ الْحُدَيْبِيَةِ كَتَبَ عَلِيٌّ بَيْنَهُمْ كِتَابًا فَكَتَبَ مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ الْمُشْرِكُوْنَ لَا تَكْتُبْ مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللّٰهِ لَوْ كُنْتَ رَسُوْلًا لَمْ نُقَاتِلْكَ فَقَالَ لِعَلِيٍّ امْحُهُ فَقَالَ عَلِيٌّ مَآ اَنَا بِالَّذِيْ اَمْحَاهُ فَمَحَاهُ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِيَدِهٖ وَ صَالَحَهُمْ عَلٰى اَنْ يَّدْخُلَ هُوَ وَ اَصْحَابُهٗ ثَلٰثَةَ اَيَّامٍ وَّلَا يَدْخُلُوْهَا اِلَّا بِجُلُبَّانِ السِّلَاحِ فَسَاَلُوْهُ مَا

۱۲۱۱: محمد بن بشار. غندر. شعبه. ابو اسحاق. براء بن عازب نه روايت کوي' کوم وخت چه رسول اللّٰه صلى اللّٰه عليه وسلّم حديبيه والو سره صلح اوکړه' نو حضرت علي صلح نامه اوليکله. او وې ليکل: محمد رسول اللّٰه صلى اللّٰه عليه وسلّم: نو مشرکانو اعتراض اوکه اووئيلې' محمد رسول اللّٰه' مه ليکه' که ته د اللّٰه رسول وې' نو مونږ به تاسره جنګ نه کولو. نو حضور صلى اللّٰه عليه وسلّم حضرت علي ته اوفرمائيل' دا وران کړه. حضرت علي عرض اوکه' زه خو' دا نه ورانووم. نو نبي صلى اللّٰه عليه وسلّم خپلو لاسونو سره هغه وران کړلو. او هغې خلقو سره ئې په دې خبره صلح اوکړه' چه مخې کال به تاسو خپلو صحابه ؤ سره درې ورځې پورې مکه کښې ئې' او هلته به داسې حال کښې داخليږئې' چه وسله به جلبان کښې وي. خلقو د حضور صلى اللّٰه عليه وسلّم نه تپوس اوکه.

جُلُبَّانُ السِّلَاحِ فَقَالَ الْقِرَابُ بِمَا فِيْهِ.

جلبان څه څيز دے. حضور صلے الله عليه وسلم ورته اوفرمائيل تيکے (نيام) او هغه څيز چه دے کښې وي.

**١٢١٢**: حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ مُوْسٰى عَنْ اِسْرَآئِيْلَ عَنْ اَبِيْ اِسْحٰقَ عَنِ الْبَرَآءِ قَالَ اعْتَمَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ ذِي الْقَعْدَةِ فَاَبٰى اَهْلُ مَكَّةَ اَنْ يَّدَعُوْهُ يَدْخُلُ مَكَّةَ حَتّٰى قَاضَاهُمْ عَلٰى اَنْ يُّقِيْمَ بِهَا ثَلٰثَةَ اَيَّامٍ فَلَمَّا كَتَبُوا الْكِتَابَ كَتَبُوْا هٰذَا مَا قَاضٰى عَلَيْهِ مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالُوْا لَا نُقِرُّبِهَا فَلَوْ نَعْلَمُ اَنَّكَ رَسُوْلُ اللّٰهِ مَا مَنَعْنَاكَ لٰكِنْ اَنْتَ مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ ثُمَّ قَالَ لِعَلِيِّ امْحُ رَسُوْلَ اللّٰهِ وَ اَنَا رَسُوْلُ اللّٰهِ وَ اَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ ثُمَّ قَالَ لِعَلِيٍّ امْحُ رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ لَا وَاللّٰهِ لَا اَمْحُوْكَ اَبَدًا فَاَخَذَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْكِتَابَ فَكَتَبَ هٰذَا مَا قَاضٰى عَلَيْهِ مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ لَا يَدْخُلُ مَكَّةَ سَلَاحًا اِلَّا فِي الْقِرَابِ وَ اَنْ لَّا يَخْرُجَ مِنْ اَهْلِهَا بِاَحَدٍ اِنْ اَرَادَ اَنْ يَّتْبَعَهُ وَ اَنْ لَّا يَمْنَعَ اَحَدًا مِّنْ اَصْحَابِهٖ اَرَادَ

**١٢١٢**: عبيدالله بن موسى. اسرائيل ابواسحق. براء نه روايت کوي. د هغه بيان دے چه نبي صلے الله عليه وسلم د ذي قعده مياشت کښې د عمرے اراده اوکړله، نو مکے والو حضور صلے الله عليه وسلم ته د داخليدو اجازت ورکولو نه انکار اوکړلو. تر دے چه هغوي سره په دے خبره فيصله اوشوه، چه مخے کال له به درے ورځے قيام کوي، کوم وخت چه صلحنامه ليکلوله ورغلل، نو د هغے په شروع کښې نے اوليکل، دا هغه صلح نامه ده، کومه چه محمد د الله رسول کړے ده مکه والو اووے، چه مونږ خو د دے اقرار نه کوو. بلکه ته محمد بن عبدالله ئے، حضور اوفرمائيل چه زه رسول الله هم يم او محمد بن عبدالله هم يم. بيائے علي ته اووے چه د رسول الله لفظ وران (لرے) کړه هغه اووے نه قسم په خدائے، زه به هيڅ کله دا وران نه کړم. نو حضور صلے الله عليه وسلم هغه کاغذ خپل لاس کښې واخست، او و وے ليکل: هذا ما قاضى عليه محمد بن عبدالله، هغوي به مکه کښې داسے حال کښې داخليږي. چه د هغوي وسله بي تيکو کښې وي. او که د مکے خوک سړے هغوي سره تلل غواړي، نو هغه به خان سره نه بوځي او خپلو ملګرو کښې که څوک سړے مکے ته د تلو نه پس هلته اوسيدل (پاتے کيدل) غواړي، نو هغه به نه منع کوي. په دويم کال چه حضور صلے الله عليه وسلم مکه کښې داخل شو. او موده تيره شوه، نو خلق حضرت علي له ورغلل او ورته ئے اووے، خپل ملګري

اَنْ يُّقِيْمَ بِهَا فَلَمَّا دَخَلَهَا وَ مَضَى الْاَجَلُ اَتَوْا عَلِيًّا فَقَالُوْا قُلْ لِصَاحِبِكَ اخْرُجْ عَنَّا فَقَدْ مَضَى الْاَجَلُ فَخَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَتَبِعَتْهُمُ ابْنَةُ حَمْزَةَ يَا عَمِّ يَا عَمِّ فَتَنَاوَلَهَا عَلِيٌّ فَاَخَذَ بِيَدِهَا وَ قَالَ لِفَاطِمَةَ عَلَيْهَا السَّلَامُ دُوْنَكِ ابْنَةَ عَمِّكِ حَمَلَتْهَا فَاخْتَصَمَ فِيْهَا عَلِيٌّ وَ زَيْدٌ وَ جَعْفَرٌ فَقَالَ عَلِيٌّ اَنَا اَحَقُّ بِهَا وَهِيَ ابْنَةُ عَمِّيْ وَ قَالَ جَعْفَرُ ابْنَةُ عَمِّيْ وَ خَالَتُهَا تَحْتِيْ وَ قَالَ زَيْدٌ ابْنَةُ اَخِيْ فَقَضَى بِهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِخَالَتِهَا وَ قَالَ الْخَالَةُ بِمَنْزِلَةِ الْاُمِّ وَ قَالَ لِعَلِيٍّ اَنْتَ مِنِّيْ وَ اَنَا مِنْكَ وَ قَالَ لِجَعْفَرٍ اَشْبَهْتَ خَلْقِيْ وَ خُلُقِيْ وَ قَالَ لِزَيْدٍ اَنْتَ اَخُوْنَا وَ مَوْلَانَا.

ته دے اووایه: چه څمونږ نه لاړ شي، څکه چه موده تیره شوے ده. نبي صلے الله علیه وسلّم چه روان شولو، نو د حضرت حمزهٔ لور، چاچا، چاچه ونیلو سره وریسے شوله. حضرت عليؓ هغه واخسته، د هغے لاس ئے اونیولو، او بي بي فاطمےؓ ته ئے اووے، چه د خپل تره (چچا) لور واخله. هغے، هغه سوره کړله، نو د هغے متعلق حضرت عليؓ، زیدؓ او جعفرؓ په جګړه شول. حضرت عليؓ اووے، زهٔ د دے جینۍ مستحق یم، چه څما د ترهٔ لور ده، او حضرت جعفرؓ دعوي اوکړله، چه څما د ترهٔ لور ده، او د هغے ترور څما په نکاح کښ ده، په دے وجه زهٔ زیات مستحق یم. زیدؓ د خپل استحقاق دعوي اوکړله، هغه اووے، چه څما د ورور لور ده، نو نبي صلے الله علیه وسلّم د هغے د ترور په حق کښ فیصله اوکړله، اووے فرمائیل، ترور په منزله د مور ده. او عليؓ ته ئے اوفرمائیل، چه زهٔ تانه یم، او تهٔ څما نه. او جعفرؓ ته ئے اوفرمائیل: چه تهٔ صورت او سیرت کښ څما زیات مشابه ئے، او زیدؓ ته ئے اووے چه تهٔ څمونږ ورور او مولاٰ ئے.

## بَابٌ ۷۹۵: اَلصُّلْحِ مَعَ الْمُشْرِكِيْنَ فِيْهِ عَنْ اَبِيْ سُفْيَانَ

## باب ۷۹۵: مشرکانو سره د صلح کولو بیان.

وَ قَالَ عَوْفُ بْنُ مَالِكٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ تَكُوْنُ هُدْنَةٌ بَيْنَكُمْ وَ بَيْنَ بَنِي الْاَصْفَرِ وَ فِيْهِ سَهْلُ بْنُ حُنَيْفٍ وَّ اَسْمَآءُ وَالْمِسْوَرُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ قَالَ مُوْسَى بْنُ مَسْعُوْدٍ حَدَّثَنَا سُفْيٰنُ بْنُ سَعِيْدٍ عَنْ اَبِيْ اِسْحٰقَ عَنِ الْبَرَآءِ

دے مضمون کښ ابوسفیان نه روایت دے. او عوف بن مالکؓ د نبي صلے الله علیه وسلّم نه نقل اوکهٔ، حضور صلے الله علیه وسلّم اوفرمائیل، چه بیا به ستاسو او رومیانو مینځ کښ صلح اوشي. او دے باب کښ د سهل بن حنیفؓ، اسماءؓ او مسورؓ روایت د نبي صلے الله علیه وسلّم نه دے. او موسي بن مسعودؓ اووے، چه ماته سفیان بن سعید په واسطه د ابواسحاق د براء بن عازب قول نقل کهٔ. چه نبي صلے الله علیه وسلّم مشرکینو سره د

بْنِ عَازِبٍؓ قَالَ صَالَحَ النَّبِیُّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ الْمُشْرِکِیْنَ یَوْمَ الْحُدَیْبِیَةِ عَلٰی ثَلٰثَةِ اَشْیَآءَ عَلٰی اَنَّ مَنْ اَتَاهُ مِنَ الْمُشْرِکِیْنَ رَدَّهٗ اِلَیْهِمْ وَمَنْ اَتَاهُمْ مِّنَ الْمُسْلِمِیْنَ لَمْ یَرُدُّوْهُ وَعَلٰی اَنْ یَّدْخُلَهَا مِنْ قَابِلٍ وَّ یُقِیْمَ بِهَا ثَلٰثَةَ اَیَّامٍ وَّلَا یَدْخُلَهَا اِلَّا بِجُلُبَّانِ السِّلَاحِ السَّیْفِ وَالْقَوْسِ وَ نَحْوِهٖ فَجَآءَ اَبُوْ جَنْدَلٍ یَّحْجُلُ فِیْ قُیُوْدِهٖ فَرَدَّهٗ اِلَیْهِمْ قَالَ لَمْ یَذْکُرْ مُؤَمَّلٌ عَنْ سُفْیٰنَ اَبَا جَنْدَلٍ وَّ قَالَ اِلَّا بِجُلُبِّ السِّلَاحِ.

حدیبیه په ورځ په دې خبرو صلح اوکړه. که مشرکینو کښې یو سړے هغوي له راشي نو هغه به واپس کوي او که مسلمانانو نه څوک سړے مشرکینو له لاړ شي نو هغه به نه واپس کوي او دا چه مخے کال له به مکه کښې داخلیږي او هلته به درے ورځے قیام کوي او هلته به وسله لکه توره او لینده غلاف کښې ساتي نو مکه کښې به داخلیږي. ابو جندل په پښو بیړئ حضور صلی اللّه علیه وسلّم ته اورسیدلو، نو حضور صلی اللّه علیه وسلّم هغه مشرکانو ته حواله کړلو. امام بخاري اووے چه مؤمل په واسطه د سفیان. د ابوجندل ذکر اونه کړلو، او الا بجلب السلاح الفاظ ئے نقل کړل.

۱۲۱۳ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ ابْنُ رَافِعٍ حَدَّثَنَا شُرَیْحُ ابْنُ النُّعْمَانِ حَدَّثَنَا فُلَیْحٌ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَؓ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ خَرَجَ مُعْتَمِرًا فَحَالَ کُفَّارُ قُرَیْشٍ بَیْنَهٗ وَ بَیْنَ الْبَیْتِ فَنَحَرَ هَدْیَهٗ وَ حَلَقَ رَاْسَهٗ بِالْحُدَیْبِیَةِ وَقَاضَاهُمْ عَلٰی اَنْ یَّعْتَمِرَ الْعَامَ الْمُقْبِلَ وَلَا یَحْمِلَ سِلَاحًا عَلَیْهِمْ اِلَّا سُیُوْفًا وَّلَا یُقِیْمَ بِهَا اِلَّا مَا اَحَبُّوْا فَاعْتَمَرَ مِنَ الْعَامِ الْمُقْبِلِ فَدَخَلَهَا کَمَا

۱۲۱۳ : محمد بن رافع. شریح بن نعمان. نافع. ابن عمرؓ نه روایت کوي: رسول اللّه صلی اللّه علیه وسلّم د عمرے کولو په اراده اووتلو. کفار د حضور صلی اللّه علیه وسلّم او خانه کعبے په مینځ کښې حائل شو. او حضور صلی اللّه علیه وسلّم ئے مکه کښې داخلیدو ته پرے نه ښودلو. حضور صلی اللّه علیه وسلّم د خپلے هدي (د قربانئ د څناور) قرباني اوکړله. او خپل سر مبارک ئے حدیبیه کښې اوخریلو. او هغوي سره په دے خبره فیصله اوشوه چه مخے کال له به عمره کوي. او بغیر د تورو نه به هغوي سره بل څۀ وسله نه وي او دومره ورځے به ایسار وي څومره ورځے چه کفار غواړي. نو مخے کال له حضور صلی اللّه علیه وسلّم عمره اوکړله. حضور صلی اللّه علیه وسلّم هلته داسے داخل شو څنګه چه ئے صلح کړے وه. هلته چه درے

كَانَ صَالَحَهُمْ فَلَمَّآ اَقَامَ بِهَا ثَلٰثًا اَمَرُوْهُ اَنْ يَّخْرُجَ فَخَرَجَ.

ورځے ایسار شولو' نو خلقو حضور صلی الله علیه وسلم ته اووے' چه تاسو لاړ شئے' نو حضور صلی الله علیه وسلم لاړلو.

۱۲۱۴: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا بِشْرٌ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ بُشَيْرِ بْنِ يَسَارٍ عَنْ سَهْلِ بْنِ اَبِىْ حَثْمَةَ قَالَ انْطَلَقَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ سَهْلٍ وَّ مُحَيِّصَةُ بْنُ مَسْعُوْدِ بْنِ زَيْدٍ اِلٰى خَيْبَرَ وَهِىَ يَوْمَئِذٍ صُلْحٌ.

۱۲۱۴: مسدد. بشر. یحیي. بشیر بن یسار. سهل بن ابي حثمة نه روایت کوي. د هغه بیان دے' چه عبدالله بن سهل محیصه بن مسعود بن زید خیبر طرف ته روان شو' او هغے ورځو کښې صلح وه.

## باب ۷۹۶: الصُّلْحِ فِى الدِّيَةِ.

## باب ۷۹۶: دیت کښې د صلح کولو بیان.

(دیت. خون بها)

۱۲۱۵: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ الْاَنْصَارِىُّ قَالَ حَدَّثَنِىْ حُمَيْدٌ اَنَّ اَنَسًا حَدَّثَهُمْ اَنَّ الرُّبَيِّعَ وَهِىَ ابْنَةُ النَّضْرِ كَسَرَتْ ثَنِيَّةَ جَارِيَةٍ فَطَلَبُوا الْاَرْشَ وَطَلَبُوا الْعَفْوَ فَاَبَوْا فَاَتَوُا النَّبِىَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَمَرَهُمْ بِالْقِصَاصِ فَقَالَ اَنَسُ بْنُ النَّضْرِ اَتُكْسَرُ ثَنِيَّةُ الرُّبَيِّعِ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ لَا وَالَّذِىْ بَعَثَكَ بِالْحَقِّ لَا تُكْسَرُ ثَنِيَّتُهَا فَقَالَ يَآ اَنَسُ كِتَابُ اللّٰهِ الْقِصَاصُ فَرَضِىَ الْقَوْمُ وَعَفَوْا اِنَّ مِنْ عِبَادِ اللّٰهِ مَنْ لَّوْ اَقْسَمَ عَلَى اللّٰهِ لَاَبَرَّهٗ زَادَ

۱۲۱۵: محمد بن عبدالله انصاري. حمید. انسؓ بیان کوي' چه ربیع بنت نضر د' یوے جینۍ (یا وینزے) غاښ مات کړل' نو د هغے سړو د هغے نه دیت اوغوښتلو. او د' ربیع خلقو معافي اوغوښتله' لیکن هغوي اونه منله او د نبي صلی الله علیه وسلم خدمت کښې حاضر شو. حضور صلی الله علیه وسلم هغوي ته د قصاص حکم ورکړلو. انس بن نضر اووے' آیا د ربیع به غاښ ماتولے شي' یا رسول الله! قسم دے په هغه ذات چه هغه تاسو حق سره رالیږلے ئے' چه د هغے غاښ به نۀ شي ماتولے. حضور صلی الله علیه وسلم ورته اوفرمائیل اے انس' کتاب الله خو' د قصاص حکم ورکوي بیا هغه خلق راضي شو' او معافي ئے اوکړله' نو نبي صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل' د الله بعضے بندیان داسے دي: که د' الله په تکیه قسم اوخوري. نو الله هغه پوره کوي. فزاري په واسطه د حمید. انس نقل اوکۀ چه هغه خلق

الْفَزَارِيُّ عَنْ حُمَيْدٍ.

راضي شو. او خون بهانې منظور كړله.

باب ۷۹۷: قَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِلْحَسَنِ بْنِ عَلِيٍّ ابْنِيْ هٰذَا سَيِّدٌ وَ لَعَلَّ اللّٰهَ اَنْ يُّصْلِحَ بِهٖ بَيْنَ فِئَتَيْنِ عَظِيْمَتَيْنِ وَ قَوْلِهٖ جَلَّ ذِكْرُهٗ فَاَصْلِحُوْا بَيْنَهُمَا.

باب ۷۹۷: د نبي صلى الله عليه وسلم حضرت حسن بن علي متعلق دا فرمانيل چه دا خما خوئې دې. دې سردار دې او شايد الله د دهٔ به ذريعه دوو لويو جماعتونو كښې صلح اوكړي او د الله قول چه د دې دواړو مينځ كښې صلح اوكړئ.

۱۲۱۶ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا سُفْيٰنُ عَنْ اَبِيْ مُوْسٰى قَالَ سَمِعْتُ الْحَسَنَ يَقُوْلُ اسْتَقْبَلَ وَاللّٰهِ الْحَسَنُ ابْنُ عَلِيٍّ مُعَاوِيَةَ بِكَتَائِبَ اَمْثَالِ الْجِبَالِ فَقَالَ عَمْرُو بْنُ الْعَاصِيْ اِنِّيْ لَاَرٰى كَتَآئِبَ لَا تُوَلِّيْ حَتّٰى تَقْتُلَ اَقْرَانَهَا فَقَالَ لَهٗ مُعٰوِيَةُ وَ كَانَ وَاللّٰهِ خَيْرَ الرَّجُلَيْنِ اَيْ عَمْرُو اِنْ قَتَلَ هٰؤُلَآءِ هٰؤُلَآءِ وَ هٰؤُلَآءِ هٰؤُلَآءِ مَنْ لِّيْ بِاُمُوْرِ النَّاسِ مَنْ لِّيْ بِنِسَآئِهِمْ مَنْ لِّيْ بِضَيْعَتِهِمْ فَبَعَثَ اِلَيْهِ رَجُلَيْنِ مِنْ قُرَيْشٍ مِّنْ بَنِيْ عَبْدِ شَمْسٍ عَبْدَ الرَّحْمٰنِ بْنَ سَمُرَةَ وَ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عَامِرِ بْنِ كُرَيْزٍ فَقَالَ اذْهَبَآ اِلٰى هٰذَا الرَّجُلِ فَاعْرِضَا عَلَيْهِ وَ قُوْلَا لَهٗ وَاطْلُبَا اِلَيْهِ فَاَتَيَاهُ فَدَخَلَا عَلَيْهِ فَتَكَلَّمَا وَ قَالَا لَهٗ فَطَلَبَآ اِلَيْهِ فَقَالَ لَهُمَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ اِنَّا بَنُوْ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ قَدْ اَصَبْنَا مِنْ هٰذَا الْمَالِ وَ اِنَّ هٰذِهِ الْاُمَّةَ قَدْ عَاثَتْ فِيْ دِمَآئِهَا قَالَا فَاِنَّهٗ يَعْرِضُ

۱۲۱۶ : عبدالله بن محمد. سفيان. ابو موسي په واسطه د حسن بصري روايت كوي په خدائې چه حسن بن علي معاويه ته د غرونو په شان لښكرو سره مخې ته راغې. عمرو بن عاص اووې زهٔ داسې لښكر وينم چه هغه به شا نهٔ كړي خو پورې چه خپل مقابل قتل نهٔ كړي حضرت معاويه چه دواړو (يعني عمرو بن عاص او حضرت معاويه) كښې بهتر وو. عمرو بن عاص ته ئې اووې. اې عمرو كهٔ دې خلقو هغه خلق او د هغې طرف خلقو د دې طرف خلق قتل كړل نو د خلقو د معاملاتو نګراني به څوك كوي څوك به د هغوي د بيبيانو ساتنه كوي او څوك به د هغوي د جائيداد انتظام كوي نو حضرت حسن ته د قريشو دوه سړي ئې چه د بني عبد شمس نه وو يعني عبدالرحمٰن سمره او عبدالله بن عامر بن كريز اوليږل ورته ئې اووې هغه له ورشئ او صلح ورته پيش كړئ خبرې اترې ورسره اوكړئ او صلح ته ئې رامات كړئ. دواړه هغه له راغلل او صلح ئې اوغوښتله. حضرت حسن بن علي هغې دواړو ته اووې چه مونږ د عبدالمطلب اولاد يو. او مونږ څهٔ ډير مال خرڅ كړې دې. او دا خلق خپلو وينو كښې اخته شوې دي. هغې دواړو ورته

عَلَيْكَ كَذَا وَ كَذَا وَ يَطْلُبُ اِلَيْكَ وَ يَسْأَلُكَ قَالَ فَمَنْ لِّيْ هٰذَا قَالَا نَحْنُ لَكَ بِهٖ فَمَا سَأَلَهُمَا شَيْئًا اِلَّا قَالَا نَحْنُ لَكَ بِهٖ فَصَالَحَهُ فَقَالَ الْحَسَنُ وَلَقَدْ سَمِعْتُ اَبَا بَكْرَةَ يَقُوْلُ رَاَيْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى الْمِنْبَرِ وَالْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ اِلٰى جَنْبِهٖ وَهُوَ يُقْبِلُ عَلَى النَّاسِ مَرَّةً وَ عَلَيْهِ اُخْرٰى وَ يَقُوْلُ اِنَّ ابْنِيْ هٰذَا سَيِّدٌ وَّ لَعَلَّ اللّٰهَ اَنْ يُّصْلِحَ بِهٖ بَيْنَ فِئَتَيْنِ عَظِيْمَتَيْنِ مِنَ الْمُسْلِمِيْنَ قَالَ لِيْ عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ اِنَّمَا ثَبَتَ لَنَا سَمَاعُ الْحَسَنِ مِنْ اَبِيْ بَكْرَةَ بِهٰذَا الْحَدِيْثِ.

اووې چه هغوي تاسو ته په صلح پیش کوي او د دې طلب کار دي. حضرت حسن ورته اوفرمانیل بیا د دې ذمه واري څوک آخلي. هغې دواړو اووې چه مونږ د دې ذمه وار یو. نو حضرت حسن هغوی سره صلح اوکړله. د حسن بصري بیان دې ما د ابوبکره نه واوریدل چه ما رسول الله صلی الله علیه وسلم په منبر اولیدلو او حضرت حسن بن علي د حضور صلی الله علیه وسلم په اړخ کښې وو. کله به حضور صلی الله علیه وسلم خلقو ته متوجه وو او کله به نې هغه ته مخ کړلو او فرمانیل به نې چه څما دا خونې سردار دې. او شاید الله تعالی به د دۀ په ذریعه د مسلمانانو د دوو لویو جماعتونو مینځ کښې صلح اوکړي. ماته علي بن عبدالله بیان اوکۀ چه د حسن د ابوبکره نه آورېدل څما په نزد د دې حدیث نه ثابت دي.

۱. یعني د دواړو طرفو نه مسلمان دي که هغوی او وژلې شي او که څمونږ د طرف خلق نقصان به بهر حال د مسلمانانو کیږي او ماته به د الله په حضور کښې ددې جواب ورکول وي اوس تاسو اووایې چه آیا کله څما نه د الله په بارګاه کښې سوال اوشي نو هلته به څوک څما مل ګرتیا اوکړې شي.

## بَابٌ ۷۹۸: هَلْ يُشِيْرُ الْاِمَامُ بِالصُّلْحِ.

## باب ۷۹۸: آیا امام د صلح اشاره کولې شي.

۱۲۱۷: حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ بْنُ اَبِيْ اُوَيْسٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَخِيْ عَنْ سُلَيْمٰنَ عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيْدٍ عَنْ اَبِي الرِّجَالِ مُحَمَّدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ قَالَتْ سَمِعْتُ عَائِشَةَ تَقُوْلُ سَمِعَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

۱۲۱۷: اسمعیل بن ابي اویس برادر اسمعیل (عبدالحمید) یحیي بن سعید ابوالرجال. محمد بن عبدالرحمن. عمره بنت عبدالرحمن. د بي بي عائشې قول نقل کوي چه رسول الله صلی الله علیه وسلم د دوو جګړ مارو آوازونه په دروازه واوریدل چه او چتیدل

صَوْتَ خُصُوْمٍ بِالْبَابِ عَالِيَةٍ اَصْوَاتُهُمَا وَ اِذَا اَحَدُهُمَا يَسْتَوْضِعُ الْاٰخَرَ يَسْتَرْفِقُهُ فِيْ شَيْءٍ وَّ يَقُوْلُ وَاللّٰهِ لَا اَفْعَلُ فَخَرَجَ عَلَيْهِمَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ اَيْنَ الْمُتَاَلِّيْ عَلَى اللّٰهِ لَا يَفْعَلُ الْمَعْرُوْفَ فَقَالَ اَنَا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ وَلَهٗ اَيُّ ذَالِكَ اَحَبَّ.

هغوي کښې يو بل ته وئيلې' چه مهرباني اوکړه' څه قرض معاف کړه' او بل وئيلې' په اللّٰه نه کوم. رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلّم هغې دواړو له تشريف راوړلو. اووې فرمائيل' چرته دې' هغه سړې' چه په اللّٰه قسم نې خوړلو' او وئيلې چه زۀ به نيکي نۀ کوم. هغۀ عرض اوکۀ' زۀ يم' يا رسول اللّٰه' او خما ملګرې چه څۀ غواړي' زۀ هغه معاف کوم.

۱۲۱۸: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ جَعْفَرِ بْنِ رَبِيْعَةَ عَنِ الْاَعْرَجِ قَالَ حَدَّثَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ عَنْ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ اَنَّهٗ كَانَ لَهٗ عَلٰى عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِيْ حَدْرَدٍ الْاَسْلَمِيِّ مَالٌ فَلَقِيَهٗ فَلَزِمَهٗ حَتّٰى ارْتَفَعَتْ اَصْوَاتُهُمَا فَمَرَّ بِهِمَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَا كَعْبُ فَاَشَارَ بِيَدِهٖ كَاَنَّهٗ يَقُوْلُ النِّصْفَ فَاَخَذَ نِصْفَ مَا عَلَيْهِ وَ تَرَكَ نِصْفًا.

۱۲۱۸: يحيي بن بکير. ليث. جعفر بن ربيعه. اعراج. عبداللّٰه بن کعب بن مالک. کعب بن مالکؓ نه روايت کوي' چه عبداللّٰه بن ابي حدرد اسلمي باندې ډ هغه څۀ قرضه وه. کعب هغۀ له ورغې' او هغۀ پسې شولو' تردې چه خبرو' خبرو کښې ډ هغوي آوازونه اوچت شو' نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم پرې ورغې او ورته ئې اوفرمائيل. اې کعب. او خپل لاس سره ئې اشاره اوکړله. ګويا نصف (نيم) معاف کولو ډ پاره ئې حکم ورکولو. نو نيم قرض ئې معاف کۀ' او نيم ئې واخستلو.

## بَابٌ ۷۹۹: فَضْلِ الْاِصْلَاحِ بَيْنَ النَّاسِ وَالْعَدْلِ بَيْنَهُمْ.

## باب ۷۹۹: ډ خلقو مينځ کښې ډ صلح کولو' او ډ هغوي مينځ کښې ډ' انصاف کولو ډ فضيلت بيان.

۱۲۱۹: حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ اَخْبَرَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ اَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنْ هَمَّامٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كُلُّ سُلَامٰى مِنَ النَّاسِ عَلَيْهِ صَدَقَةٌ كُلَّ يَوْمٍ

۱۲۱۹: اسحٰق. عبدالرزاق. معمر. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت کوي. رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل' هره ورځ چه هغې کښې نمر راخيژي' ډ انسان په هر جوړ صدقه واجب ده. ډ

تَطۡلُعُ فِيۡهِ الشَّمۡسُ يَعۡدِلُ بَيۡنَ النَّاسِ صَدَقَةٌ.

خلقو مینځ کښې دے انصاف کوي دا هم صدقه ده۱.

۱. یعني کومه صدقه چه واجب وه هغه خلقو سره انصاف کولو سره هم ادا کیږي. ګویا د الله تعالیٰ د نعمتونو صدقه واجبه ده کومه ورځ کښې چه نمر راخیږي، او چه خلقو سره انصاف او عدل اوکړے شي. په خلقو کښې صلحه کول هم یو قسمه انصاف دے.

بَابٌ ۸۰۰: اِذَآ اَشَارَ الۡاِمَامُ بِالصُّلۡحِ فَاَبٰى حَكَمَ عَلَيۡهِ بِالۡحُكۡمِ الۡبَيِّنِ.

باب ۸۰۰: هر کله چه امام چاته دَ صلح اشاره اوکړي او هغه انکار اوکړي، نو دَ قاعدے مطابق دے فیصله اوکړي.

۱۲۲۰: حَدَّثَنَا اَبُو الۡيَمَانِ اَخۡبَرَنَا شُعَيۡبٌ عَنِ الزُّهۡرِيِّ قَالَ اَخۡبَرَنِيۡ عُرۡوَةُ بۡنُ الزُّبَيۡرِ اَنَّ الزُّبَيۡرَ كَانَ يُحَدِّثُ اَنَّهٗ خَاصَمَ رَجُلًا مِّنَ الۡاَنۡصَارِ قَدۡ شَهِدَ بَدۡرًا اِلٰى رَسُوۡلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ فِيۡ شِرَاجٍ مِّنَ الۡحَرَّةِ كَانَا يَسۡقِيَانِ بِهٖ كِلَاهُمَا فَقَالَ رَسُوۡلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ لِلزُّبَيۡرِ اسۡقِ يَا زُبَيۡرُ ثُمَّ اَرۡسِلۡ اِلٰى جَارِكَ فَغَضِبَ الۡاَنۡصَارِيُّ قَالَ يَا رَسُوۡلَ اللّٰهِ اِنۡ كَانَ ابۡنَ عَمَّتِكَ فَتَلَوَّنَ وَجۡهُ رَسُوۡلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ قَالَ اسۡقِ ثُمَّ احۡبِسۡ حَتّٰى يَبۡلُغَ الۡجَدۡرَ فَاسۡتَوۡعٰى رَسُوۡلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ حِيۡنَئِذٍ حَقَّهٗ لِلزُّبَيۡرِ وَ كَانَ رَسُوۡلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ قَبۡلَ ذٰلِكَ اَشَارَ عَلَى الزُّبَيۡرِ

۱۲۲۰: ابوالیمان. شعیب. زهري. عروه بن زبیر. زبیرؓ نه روایت کوي، چه هغه یو انصاري سره دَ، یوے کانړیجنے زمکے دَ، نالے متعلق جګړه اوکړه، چه بدر کښې شریک شوے وو. او دواړو دَ هغے نه اوبهٔ اخستے. رسول الله صلی الله علیه وسلم زبیرؓ ته اوفرمائیل. اے زبیره. تهٔ اوبهٔ اولره. بیائے خپل ګوانډي دَ پاره پریږده. انصاري له غُصه راغله. اووے وئیل، یا رسول الله، دے ستا دَ ترور (دَ پلار، دَ خور) ځوئے دے (نو ځکه ئے طرفداري کوے). دَ، رسول الله صلی الله علیه وسلم دَ مخ مبارک رنګ متغیر شولو. بیائے او فرمائیل. اے زبیرهؓ تهٔ خپلے اُونے اوبهٔ کړه، تردے چه دیوالونه اوخیژي. دغه وخت حضور صلی الله علیه وسلم حضرت زبیرؓ ته پوره حق ورکړلو، اودے نه مخکښې رسول الله صلی الله علیه وسلم حضرت زبیرؓ ته دَ هغے خبرے مشوره ورکړے وه، چه هغے کښې دَ هغهٔ او انصاري دواړو رعایت وو. هر کله چه

بِرأيٍ سَعَةٌ لَهُ وَلِلْاَنْصَارِيِّ فَلَمَّا اَحْفَظَ الْاَنْصَارِيُّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اسْتَوْعٰى لِلزُّبَيْرِؓ حَقَّهُ فِيْ صَرِيْحِ الْحُكْمِ قَالَ عُرْوَةُ قَالَ الزُّبَيْرُ وَاللّٰهِ مَآ اَحْسِبُ هٰذِهِ الْاٰيَةَ نَزَلَتْ اِلَّا فِيْ ذَالِكَ فَلَا وَ رَبِّكَ لَا يُؤْمِنُوْنَ حَتّٰى يُحَكِّمُوْكَ فِيْمَا شَجَرَ بَيْنَهُمُ الْاٰيَةَ.

هغه رسول اللّٰه صلی اللّٰه علیه وسلّم په غصه کړلو، نو حضور صلی اللّٰه علیه وسلّم زبیرؓ ته خبر کند حکم ورکولو سره پوره حق ورکړلو. دَ عروه بیان دې، حضرت زبیرؓ اووې په خدائی چه، خما خیال دې، چه آیت: فلا و ربّک لا یؤمنون حتی یحکموک: دې مقدمه کښې نازل شوې دې.

باب ۱۰۸۱: الصُّلْحِ بَيْنَ الْغُرَمَآءِ وَ اَصْحٰبِ الْمِيْرَاثِ وَالْمُجَازَفَةِ فِيْ ذَالِكَ وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ لَّا بَأْسَ اَنْ يَّتَخَارَجَ الشَّرِيْكَانِ فَيَاْخُذَ هٰذَا دَيْنًا وَّ هٰذَا عَيْنًا فَاِنْ تَوِىَ لِاَحَدِهِمَا لَمْ يَرْجِعْ عَلٰى صَاحِبِهٖ.

باب ۱۰۸۱: قرض خواهانو او میراثیانو کښې صلح کول او دَ قرض اندازې سره دَ، ادا کولو بیان. او ابن عباسؓ اووې، کۀ دوه شریک دا فیصله اوکړي، چه یو به قرض او بل به نقد آخلي. نو څۀ حرج نشته. او کۀ هغوئ کښې دَ چا مال تباه شي، نو هغۀ ته دا حق نشته، چه دَ شریکوال نه ئې واخلي.

۱۲۲۱: حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ حَدَّثَنَآ عُبَيْدُ اللّٰهِ عَنْ وَهْبِ بْنِ كَيْسَانَ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِؓ قَالَ تُوُفِّيَ اَبِيْ وَ عَلَيْهِ دَيْنٌ فَعَرَضْتُ عَلٰى غُرَمَآئِهٖ اَنْ يَّاْخُذُوا التَّمْرَ بِمَا عَلَيْهِ فَاَبَوْا وَلَمْ يَرَوْا اَنَّ فِيْهِ وَفَآءً فَاَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَكَرْتُ ذَالِكَ لَهٗ فَقَالَ اِذَا جَدَدْتَّهٗ فَوَضَعْتَهٗ فِي الْمِرْبَدِ اٰذَنْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

۱۲۲۱: محمد بن بشار. عبدالوهاب. عبیداللّٰه. وهب بن کیسان. جابر بن عبداللّٰه نه روایت کوي. دَ هغۀ بیان دې. چه خما پلار وفات شو، او په هغه څۀ قرض وو، ما دَ هغۀ قرض خواهانو ته اووې، چه دَ قرض عوض کښې میوه واخلي. هغې خلقو انکار اوکۀ. او خیال ئې اوکۀ چه میوه به دَ هغوي دَ قرض دَ پاره کافي نۀ وي زۀ دَ نبي صلی اللّٰه علیه وسلّم خدمت کښې حاضر شوم. او حضور صلی اللّٰه علیه وسلّم ته مِ دا بیان اوکۀ، نو حضور صلی اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل، هر کله چه ته دا (میوه) [illegible] دانو ټوپ یا، ډهیرې. دَ غوبلولو ځائې ته ئې واوړې، نو ما پرې خبر کړه. ما رسول اللّٰه صلی اللّٰه علیه وسلّم

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَجَآءَ وَ مَعَهُ اَبُوْبَكْرٍ وَّ عُمَرُ فَجَلَسَ عَلَيْهِ فَدَعَا بِالْبَرَكَةِ ثُمَّ قَالَ ادْعُ غُرَمَآءَكَ فَاَوْفِهِمْ فَمَا تَرَكْتُ اَحَدًا لَّهُ عَلَى اَبِيْ دَيْنٌ اِلَّا قَضَيْتُهُ وَ فَضَلَ ثَلٰثَةَ عَشَرَ وَسْقًا سَبْعَةٌ عَجْوَةٌ وَّ سِتَّةٌ لَّوْنٌ اَوْ سِتَّةٌ عَجْوَةٌ وَّ سَبْعَةٌ لَّوْنٌ فَوَافَيْتُ مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمَغْرِبَ فَذَكَرْتُ ذٰلِكَ لَهُ فَضَحِكَ فَقَالَ ائْتِ اَبَا بَكْرٍ وَّ عُمَرَ فَاَخْبِرْهُمَا فَقَالَ لَقَدْ عَلِمْنَا اِذْ صَنَعَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا صَنَعَ اَنْ سَيَكُوْنَ ذَالِكَ وَ قَالَ هِشَامٌ عَنْ وَّهْبٍ عَنْ جَابِرٍؓ صَلٰوةَ الْعَصْرِ وَلَمْ يَذْكُرْ اَبَا بَكْرٍ وَّلَا ضَحِكَ وَ قَالَ وَ تَرَكَ اَبِيْ عَلَيْهِ ثَلٰثِيْنَ وَسْقًا دَيْنًا وَّ قَالَ ابْنُ اِسْحٰقَ عَنْ وَّهْبٍ عَنْ جَابِرٍ صَلٰوةَ الظُّهْرِ.

خبر کړلو، نو حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم تشريف راوړلو. او حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم سره ابوبکرؓ وو، عمرؓ هم وو. حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم په هغې ډهيري کيناستلو. بيائے اوفرمائيل. خپل قرض خواهان راوبله. او خپل قرض ادا کړه. نو ما هيڅوک هم پرے نۀ ښودل. دَ چا چه څما په پلار قرض وو، دَ ټولو قرض مِ ادا کړلو. او ديارلس وسقه قجورے بچ شوے، چه هغے کښې اوه وسق عجوه او شپږ وسقه لون يا شپږ وسق عجوه او اوه وسق لون وے (عجوه او، لون دَ قجورو دوه قمسونه دي) بيا زۀ دَ نمر پريواتۀ وخت کښې رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلّم سره يوځائے شوم، ما حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم ته حال اووے، نو حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم اوخاندل، اووے فرمائيل. ابوبکرؓ او عمرؓ ته ئے هم دا بيان اوکۀ. هغوي دواړو اووے، مونږ دَ مخکښې نه پوهيدلو، چه دے کښې به برکت وي. کوم وخت چه حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم داسے اوکړل. او هشام دَ، وهب نه هغۀ دَ جابر نه صلٰوة العصر اووے او دَ، ابوبکرؓ ذکر، ئے اونۀ که، اونه ئے خاندل بيان کړل، او داسے بيان ئے اوکۀ چه څما په پلار ديرش وسق قرض وو. او ابن اسحاق په واسطه دَ، وهب. جابر. دَ صلٰوة الظهر لفظ بيان کۀ.

## بَاب ۸۰۲: اَلصُّلْحِ بِالدَّيْنِ وَالْعَيْنِ.

## باب ۸۰۲: دَ قرض او نقد مال په عوض دَ صلح کولو بيان.

۱۲۲۲: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا عُثْمَانُ ابْنُ عُمَرَ اَخْبَرَنَا يُوْنُسُ وَ قَالَ اللَّيْثُ حَدَّثَنِيْ يُوْنُسُ

۱۲۲۲: عبداللّٰه بن محمد. عثمان بن عمر. يُونس. ليث. يونس. ابن شهاب. عبداللّٰه بن کعب. کعب بن مالکؓ نه روايت کوي، چه هغه

عَنِ ابْنِ شِهَابٍ أَخْبَرَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ كَعْبٍ أَنَّ كَعْبَ ابْنَ مَالِكٍ أَخْبَرَهُ أَنَّهُ تَقَاضَى ابْنَ أَبِيْ حَدْرَدٍ دَيْنًا كَانَ لَهُ عَلَيْهِ فِيْ عَهْدِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْمَسْجِدِ فَارْتَفَعَتْ أَصْوَاتُهُمَا حَتّٰى سَمِعَهَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ فِيْ بَيْتٍ فَخَرَجَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَيْهِمَا حَتّٰى كَشَفَ سِجْفَ حُجْرَتِهِ فَنَادٰى كَعْبَ بْنَ مَالِكٍ فَقَالَ يَا كَعْبُ قَالَ لَبَّيْكَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ فَأَشَارَ بِيَدِهِ أَنْ ضَعِ الشَّطْرَ فَقَالَ كَعْبٌ قَدْ فَعَلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قُمْ فَاقْضِهِ.

دَ ابن ابي حدرد نه دَ خپل قرض د رسول الله صلے الله عليه وسلّم په زمانه کښې جمات کښې تقاضا اوکړله. دَ دواړو آوازونه اوچت شو تردے چه رسول الله صلے الله عليه وسلّم هغه واورېدل. دغه وخت حضور صلے الله عليه وسلّم خپلے حجرے (کوټے) کښې وو. حضور صلے الله عليه وسلّم هغوي دواړو ته بهر تشريف راوړلو، تردے چه دَ خپلے حجرے پرده ئے اوچته کړه. او کعب بن مالکؓ ته ئے آواز اوکړ، اوويے فرمائيل چه اے کعب کعب اوويے. زهٔ حاضر يم، يا رسول الله، حضور صلے الله عليه وسلّم ورته دَ لاس اشارے سره اوفرمائيل، چه نيم قرض معاف کړه. کعب اوويے ما معاف کړه، يا رسول الله. بيا رسول الله صلے الله عليه وسلّم ابن ابي حدرد ته اوفرمائيل، لاړ شه، او دَ دهٔ قرض ادا کړه.

# كِتَابُ الشُّرُوْطِ

# دَ شرطونو بيان

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

باب ۸۰۳: مَا يَجُوْزُ مِنَ الشُّرُوْطِ فِي الْإِسْلَامِ وَالْأَحْكَامِ وَالْمُبَايَعَةِ.

باب ۸۰۳: دَ مسلمانيدو په وخت او احکامو او خريد و فروخت کښې کوم قسم شرطونه جائز دي.

۱۲۲۳: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ أَخْبَرَنِيْ عُرْوَةُ بْنُ الزُّبَيْرِ أَنَّهُ سَمِعَ مَرْوَانَ وَالْمِسْوَرَ بْنَ مَخْرَمَةَؓ يُخْبِرَانِ عَنْ أَصْحٰبِ رَسُوْلِ

۱۲۲۳: يحيي بن بکير. ليث. عقيل. ابن شهاب. عروه بن زبير. مروان او مسور بن مخرمه، دا دواړه دَ رسول الله صلے الله عليه وسلّم دَ صحابه نه روايت کوي. کوم وخت چه سهيل بن عمرو صلح نامه اوليکله، نو سهيل بن عمرو چه رسول

اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَمَّا
كَاتَبَ سُهَيْلُ بْنُ عَمْرٍو يَّوْمَئِذٍ كَانَ
فِيْمَا اشْتَرَطَ سُهَيْلُ بْنُ عَمْرٍو عَلَى
النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهُ لَا
يَأْتِيْكَ مِنَّآ اَحَدٌ وَّ اِنْ كَانَ عَلٰى دِيْنِكَ
اِلَّا رَدَدْتَّهٗٓ اِلَيْنَا وَ خَلَّيْتَ بَيْنَنَا وَ بَيْنَهٗ
فَكَرِهَ الْمُؤْمِنُوْنَ ذَالِكَ وَامْتَعَضُوْا مِنْهُ
وَ اَبٰى سُهَيْلٌ اِلَّا ذَالِكَ فَكَاتَبَهُ النَّبِيُّ
صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلٰى ذَالِكَ
فَرَدَّ يَوْمَئِذٍ اَبَا جَنْدَلٍ اِلٰٓى اَبِيْهِ سُهَيْلِ
بْنِ عَمْرٍو وَّلَمْ يَأْتِهٖ اَحَدٌ مِّنَ الرِّجَالِ
اِلَّا رَدَّهٗ فِيْ تِلْكَ الْمُدَّةِ وَ اِنْ كَانَ
مُسْلِمًا وَّ جَآءَ الْمُؤْمِنَاتُ مُهَاجِرَاتٍ وَّ
كَانَتْ اُمُّ كُلْثُوْمٍ بِنْتُ عُقْبَةَ بْنِ اَبِيْ
مُعَيْطٍ مِمَّنْ خَرَجَ اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ
صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَئِذٍ وَّهِيَ
عَاتِقٌ فَجَآءَ اَهْلُهَا يَسْئَلُوْنَ النَّبِيَّ
صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنْ يَّرْجِعَهَآ
اِلَيْهِمْ فَلَمْ يَرْجِعْهَآ اِلَيْهِمْ لِمَآ اَنْزَلَ
اللّٰهُ فِيْهِنَّ اِذَا جَآءَكُمُ الْمُؤْمِنَاتُ
مُهَاجِرَاتٍ فَامْتَحِنُوْهُنَّ اللّٰهُ اَعْلَمُ
بِاِيْمَانِهِنَّ اِلٰى قَوْلِهٖ وَلَاهُمْ يَحِلُّوْنَ
لَهُنَّ قَالَ عُرْوَةُ فَاَخْبَرَتْنِيْ عَآئِشَةُ اَنَّ
رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
كَانَ يَمْتَحِنُهُنَّ بِهٰذِهِ الْاٰيَةِ يٰٓاَيُّهَا
الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِذَا جَآءَكُمُ الْمُؤْمِنَاتُ

اللّٰه صلی اللّٰه علیه وسلّم سره کوم شرطونه کړي
وو، هغې کښې يو دا هم وو، چه مونږ کښې څوک
تاسو له راشي، اګر که هغه ستاسو په دين وي، خو تاسو
به هغه واپس کوئې، او خمونږ او ذ هغه مينځ کښې
به دخل نه کوئې مسلمانانو دا شرط نه خوښول،
او هغوي له غُصه ورغله. ليکن سهيل د دې نه علاوه
په هيڅ شرط نه راضي کيدلو، نو نبي صلی اللّٰه
عليه وسلّم دا شرط قبول کړلو. په دغه ورځ
حضور صلی اللّٰه عليه وسلّم، ابو جندل ذ هغهٔ پلار
سهيل بن عمرو ته واپس اوليږلو، او دې موده کښې
چه به کوم سړې هم حضور صلی اللّٰه عليه وسلّم
له راغې، نو حضور صلی اللّٰه عليه وسلّم به هغه
واپس کړلو، اګر کهٔ مسلمان راغلې وو، او
مؤمنانې ښځې هم په هجرت راتلې. او اُم کلثوم
بنت عقبه بن ابي معيط، رسول اللّٰه صلی اللّٰه عليه
وسلّم ته راتلونکو ښځو کښې وه، هغه پيغله وه. ذ
هغې رشته داران نبي صلی اللّٰه عليه وسلّم له راغلل. او
ذ هغې ذ واپسۍ مطالبه ئې کوله، نو حضور صلی اللّٰه
عليه وسلّم هغه واپس نهٔ کړله، ځکه چه اللّٰه تعالٰي
ذ ښځو متعلق دا، آيت نازل کړې وو، چه کله تاسو
له مؤمنې ښځې په هجرت راشي، نو تاسو په
هغوي ازميښت اوکړئې، اللّٰه ذ هغوي ذ، ايمان نه
ښهٔ خبرې دې بيا کهٔ تاسو هغوي مُسلمانې ګنړئې، نو
کفاروته ئې مهٔ واپس کوئې رسول اللّٰه صلی اللّٰه عليه
وسلّم به ذ. آيت: يا ايها الذين اٰمنوا اذا جآءَكُم
المؤمنات الخ په بنا په هغې ښځو آزميښت کولو. عروه

مُهٰجِرَاتٍ فَامْتَحِنُوْهُنَّ اِلٰى غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ قَالَ عُرْوَةُ قَالَتْ عَائِشَةُ فَمَنْ اَقَرَّ بِهٰذَا الشَّرْطِ مِنْهُنَّ قَالَ لَهَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ بَايَعْتُكِ كَلَامًا يُكَلِّمُهَا بِهٖ وَاللّٰهِ مَا مَسَّتْ يَدُهٗ يَدَ امْرَأَةٍ قَطُّ فِي الْمُبَايَعَةِ وَمَا بَايَعَهُنَّ اِلَّا بِقَوْلِهٖ.

اوورے' بي بي عائشةٌ وائي' هغې ښځو کښې به چه کومو د دے شرائطو اقرار کولو' نو حضور صلے الله عليه وسلّم به هغې ته چه کومه خبره فرمائيله' هغه به صرف دا وه' چه ما تـه بيعت کړے' (دے نـه سيوا بـه ئې نور څۀ نۀ فرمائيل) او قسم پـه خدائے چه بيعت کولو کښې د حضور صلے الله عليه وسلّم لاس ډ هيڅ ښځې لاس نۀ دے مَس کړے. او صرف ژبے سره ئې بيعت کولو.

۱۲۲۴ : حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا سُفْيٰنُ عَنْ زِيَادِ بْنِ عَلَاقَةَ قَالَ سَمِعْتُ جَرِيْرًا يَّقُوْلُ بَايَعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاشْتَرَطَ عَلَيَّ وَالنُّصْحِ لِكُلِّ مُسْلِمٍ.

۱۲۲۴ : ابونعيم. سُفيان. زياد بن علاقه. دَ' جرير قول بيانوي' چه زۀ دَ رسول الله صلے الله عليه وسلّم نه بيعت شوم' نو حضور صلے الله عليه وسلّم ماسره څو شرطونه اوکړل' چه هغې کښې يو دَ' هر مسلمان خير خواهي کول وو.

۱۲۲۵ : حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ اِسْمٰعِيْلَ قَالَ حَدَّثَنِيْ قَيْسُ بْنُ اَبِيْ حَازِمٍ عَنْ جَرِيْرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ بَايَعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلٰى اِقَامِ الصَّلٰوةِ وَ اِيْتَاءِ الزَّكٰوةِ وَالنُّصْحِ لِكُلِّ مُسْلِمٍ.

۱۲۲۵ : مسدد. يحيى. اسمٰعيل. قيس بن ابي حازم. جرير بن عبدالله نه روايت کوي. دَ هغه بيان دے' چه ما رسول الله صلے الله عليه وسلّم سره دَ مونځ کولو' زکوٰة ورکولو او دَ' هر مسلمان په خير خواهئ بيعت کړے وو.

بَابٌ ۸۰۴ : اِذَا بَاعَ نَخْلًا قَدْ اُبِّرَتْ.

باب ۸۰۴ : کۀ يو سړے دَ پيوند لږولونه پس دَ قجورو اُونے خرڅوي.

۱۲۲۶ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ نَافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ بَاعَ نَخْلًا قَدْ اُبِّرَتْ فَثَمَرَتُهَا لِلْبَائِعِ اِلَّا اَنْ

۱۲۲۶ : عبدالله بن يوسف. مالک. نافع. عبدالله بن عمرٌ نه روايت کوي. رسول الله صلے الله عليه وسلّم اوفرمائيل' چا چه دَ قجورے اُونه دَ پيوند لږولو نه پس خرڅه کړه' نو دَ هغې ميوه به د بائع وي' خو' دا چه خريدار شرط

يَّشْتَرِطَ الْمُبْتَاعُ.

او كړي.

باب۸۰۵: الشُّرُوْطِ فِي الْبَيْعِ.

باب۸۰۵: بيع كښې دَ شرطونو بيان.

۱۲۲۷: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْلَمَةَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُرْوَةَ اَنَّ عَآئِشَةَ اَخْبَرَتْهُ اَنَّ بَرِيْرَةَ جَآءَتْ عَآئِشَةَ تَسْتَعِيْنُهَا فِيْ كِتَابَتِهَا وَلَمْ تَكُنْ قَضَتْ مِنْ كِتَابَتِهَا شَيْئًا قَالَتْ لَهَا عَآئِشَةُ ارْجِعِيْ اِلٰى اَهْلِكِ فَاِنْ اَحَبُّوْٓا اَنْ اَقْضِيَ عَنْكِ كِتَابَتَكِ وَ يَكُوْنَ وَلَآءُكِ لِيْ فَعَلْتُ فَذَكَرَتْ ذٰلِكَ بَرِيْرَةُ اِلٰى اَهْلِهَا فَاَبَوْا وَ قَالُوْا اِنْ شَآءَتْ اَنْ تَحْتَسِبَ عَلَيْكِ فَلْتَفْعَلْ وَ يَكُوْنُ لَنَا وَلَآؤُكِ فَذَكَرَتْ ذٰلِكَ لِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ لَهَا ابْتَاعِيْ فَاَعْتِقِيْ فَاِنَّمَا الْوَلَآءُ لِمَنْ اَعْتَقَ.

۱۲۲۷: عبدالله بن مسلمه. ليث. ابن شهاب. عروه. بي بي عائشې نه روايت كوي، چه بريره هغې له دَ كتابت دَ، رقم ادائيګي كښې مدد غوښتلوله راغله. او هغې دَ خپل كتابت رقم كښې هيڅ هم نهٔ وو ادا كړے، هغې ته بي بي عائشې اووے. خپلو مالكانوله لاړه شه. كهٔ دَ هغوي خوښه وي، نو ستا دَ كتابت رقم به زهٔ ادا كړم، او ستا ولاء به زهٔ اخلم (نو داسې كولو ته زهٔ تياره يم) بريرې خپلو مالكانوته دا بيان اوكهٔ، خو هغې خلقو انكار اوكهٔ. اووئيلې، كه هغه دَ ثواب په خاطر داسې كوي، نو اودې كړي. ليكن دَ، ولاء حق به څمونږ خلقو وي. بي بي عائشې دا حال رسول الله صلې الله عليه وسلّم ته بيان كه، نو حضور صلې الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل، دا، واخله، او، آزاده ئې كړه، ځكه چه دَ، ولاء حق خو، دَ هغې چا دے، چه آزاده ئې كړي.

باب۸۰۶: اِذَا اشْتَرَطَ الْبَآئِعُ ظَهْرَ الدَّآبَّةِ اِلٰى مَكَانٍ مُّسَمًّى جَازَ.

باب۸۰۶: څناور خرڅونكې كهٔ دا شرط اولږوي، چه هغه به دَ يو خاص مقام پورې په هغې سور، وي، نو جائز دي[۱].

۱. په دے مسئله باندې نوټ ددے نه مخكښې هم تير شوې دے. احناف دا وائي چه دَ بيع په معامله او عقد كښې كه چرې شرط اولګولې شو نو بيع باطليږي، ليكن كچرې د خرڅولو اخستلو نه قطع نظر د تبرّع په طور باندې څه رعايت يا معامله اوكړې شوه نو په دې كښې هيڅ حرج نيشته. لاندې چه كوم څه په حديث كښې دي هغې نه قطعي طور سره ددې تعيين اونشو چه د معاملې ؤاقعي نوعيت څه وو. ددې نه علاوه په مختلفو رواياتو كښې د الفاظو اختلاف هم شته او بل طرفته پخپله په حديث كښې يوه قطعي او كُلي قاعده بيان كړې شوې ده چه نبي كريم صلي الله عليه وسلّم شرط سره بيع نه منع فرمائيلې ده. دې د پاره احناف وائي چه هيڅ يو داسې شرط دِ اونه لګولې شي كوم كښې چه په فريقينو كښې د يو كس فائده كيږي او د بيع په سلسله كښې د اسلامي قواعدو مطابق نه وي. ددې باب پوره حديث لوستلو سره يو قابل لحاظ

خبره دا هم معلوميږي چه ټوله معامله دَ بيع و شرا نه زياته دحسن معاملت او تبرع ده بيا څه وجه ده چه ددې شرط هم په تبرّع باندې محمول نه کړې شي.

۱۲۲۸ : حَدَّثَنَا أَبُوْ نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا زَكَرِيَّاءُ قَالَ سَمِعْتُ عَامِرًا يَقُوْلُ حَدَّثَنِيْ جَابِرًا أَنَّهُ كَانَ يَسِيْرُ عَلٰى جَمَلٍ لَهُ قَدْ أَعْيَا فَمَرَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَضَرَبَهُ فَدَعَا لَهُ فَسَارَ بِسَيْرٍ لَيْسَ يَسِيْرُ مِثْلَهُ ثُمَّ قَالَ بِعْنِيْهِ بِوَقِيَّةٍ قُلْتُ لَا ثُمَّ قَالَ بِعْنِيْهِ بِوَقِيَّةٍ فَبِعْتُهُ فَاسْتَثْنَيْتُ حُمْلَانَهُ إِلٰى أَهْلِيْ فَلَمَّا قَدِمْنَا أَتَيْتُهُ بِالْجَمَلِ وَ نَقَدَنِيْ ثَمَنَهُ ثُمَّ انْصَرَفْتُ فَأَرْسَلَ عَلٰى إِثْرِيْ قَالَ مَا كُنْتُ لِاٰخُذَ جَمَلَكَ فَخُذْ جَمَلَكَ ذٰلِكَ فَهُوَ مَالُكَ قَالَ شُعْبَةُ عَنْ مُغِيْرَةَ عَنْ عَامِرٍ عَنْ جَابِرٍ أَفْقَرَنِيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ظَهْرَهُ إِلَى الْمَدِيْنَةِ وَ قَالَ إِسْحٰقُ عَنْ جَرِيْرٍ عَنْ مُغِيْرَةَ فَبِعْتُهُ عَلٰى أَنَّ لِيْ فَقَارَ ظَهْرِهِ حَتّٰى أَبْلُغَ الْمَدِيْنَةَ وَ قَالَ عَطَاءٌ وَّ غَيْرُهُ لَكَ ظَهْرُهُ إِلَى الْمَدِيْنَةِ وَ قَالَ مُحَمَّدُ بْنُ الْمُنْكَدِرِ عَنْ جَابِرٍ شَرَطَ ظَهْرَهُ إِلَى الْمَدِيْنَةِ وَ قَالَ زَيْدُ بْنُ أَسْلَمَ عَنْ جَابِرٍ وَّ لَكَ ظَهْرُهُ حَتّٰى

۱۲۲۸ : ابونعيم. زکريا. عامر. جابرؓ نه روايت کوي چه هغه په خپل اوښ سور چرته روان وو. د هغه (اوښ) ستړے شو. نبي صلي الله عليه وسلّم پرے تير شولو. نو حضور صلے الله عليه وسلّم هغه اوښ اووهلو. او هغهٔ دَ پاره ئے دُعا اوکړله، نو هغه دومره تيز رفتاره شو، چه دومره هيڅ کله نهٔ وو. بيا ورته حضور صلے الله عليه وسلّم اوفرمائيل، دا په ما دَ يو اوقيه په عوض خرڅ کړه. ما اووے، نه. بيا حضور صلے الله عليه وسلّم اوفرمائيل، دا په ما په يو اوقيه خرڅ کړه. نو ما هغه خرڅ کړلو. ليکن دَ خپل کور پورے دَ، راتلو م استثنے اوکړله. کوم وخت چه مونږ کورته راورسيدلو، نو اوښ م حضور صلے الله عليه وسلّم ته حاضر کړلو. حضور صلے الله عليه وسلّم ما له دَ هغې قيمت راکړلو. بيا زهٔ واپس شوم، نو حضور صلے الله عليه وسلّم ماپسے يو سړے راوليږلو، وے غوښتلم. اووے فرمائيل، زهٔ ستا دا اوښ نهٔ اخلم، تهٔ دا خپل اوښ بوځه، دا ستا مال دے. شعبه په واسطه دَ مغيره. عامر. جابر نقل اوکهٔ، چه ما هغه خرڅ کړلو، په دے شرط، چه زهٔ به په دے سور، يم، تردے چه مدينے ته او عطاء وغيره نقل اوکهٔ، چه ستا دَ پاره دَ، اوښ سورلي مدينے پورے ده. او محمّد بن منکدر، دَ، جابر نه نقل اوکهٔ، چه هغه مدينے پورے په هغے (اوښ) د سوريدو شرط اوکړلو. او زيد بن اسلم د جابر نه نقل اوکهٔ، چه تاته په دے دَ سوريدو حق دے، تردے چه خپل ځائے ته واپس شے. او ابوهريرهؓ دَ جابر

تَرْجِعَ وَ قَالَ اَبُو الزُّبَيْرِ عَنْ جَابِرٍ اَفْقَرْنَاكَ ظَهْرَهُ اِلَى الْمَدِيْنَةِ وَ قَالَ الْاَعْمَشُ عَنْ سَالِمٍ عَنْ جَابِرٍ تَبَلَّغْ عَلَيْهِ اِلَى اَهْلِكَ وَ قَالَ عُبَيْدُ اللّٰهِ وَابْنُ اِسْحٰقَ عَنْ وَّهْبٍ عَنْ جَابِرٍ اشْتَرَاهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِوَقِيَّةٍ وَّ تَابَعَهُ زَيْدُ بْنُ اَسْلَمَ عَنْ جَابِرٍ وَّ قَالَ ابْنُ جُرَيْجٍ عَنْ عَطَآءٍ وَّغَيْرِهٖ عَنْ جَابِرٍ اَخَذْتُهُ بِاَرْبَعَةِ دَنَانِيْرَ وَ هٰذَا يَكُوْنُ وَقِيَّةً عَلٰى حِسَابِ الدِّيْنَارِ بِعَشَرَةِ دَرَاهِمَ وَلَمْ يُبَيِّنِ الثَّمَنَ مُغِيْرَةُ عَنِ الشَّعْبِيِّ عَنْ جَابِرٍ وَّقِيَّةُ ذَهَبٍ وَّ قَالَ اَبُوْ اِسْحٰقَ عَنْ سَالِمٍ عَنْ جَابِرٍ بِمِائَتَيْ دِرْهَمٍ وَّ قَالَ دَاوٗدُ بْنُ قَيْسٍ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ مِقْسَمٍ عَنْ جَابِرٍ اشْتَرَاهُ بِطَرِيْقِ تَبُوْكَ اَحْسِبُهٗ قَالَ بِاَرْبَعِ اَوَاقٍ وَّ قَالَ اَبُوْ نَضْرَةَ عَنْ جَابِرٍ اشْتَرَاهُ بِعِشْرِيْنَ دِيْنَارًا وَّ قَوْلُ الشَّعْبِيِّ بِوَقِيَّةٍ اَكْثَرُ الْاِشْتِرَاطُ اَكْثَرُ وَ اَصَحُّ عِنْدِيْ قَالَهٗ اَبُوْ عَبْدِ اللّٰهِ.

نه داسے نقل کړے دے، چه مونږ تاته په دے د مدینے پورے د سوریدو اجازت در کړے دے. او اعمش په واسطه د، سالم د، جابر نه نقل او کړ، چه په دے سور شه او خپل کور والوته خان اورسوه. او عُبید الله او ابن اسحق په واسطه د، وهب. جابر نه نقل او که چه د هغه اوښ، نبي صلے الله علیه وسلم په یو اوقیه واخستلو. او، زید بن اسلم د، جابر دَ دے متابعت کښې روایت او کړ. او ابن جریج په واسطه دَ عطاء وغیره جابر نه نقل او کړ چه ما هغه په څلور دیناره واخست. او څلور دیناره د، یو اوقیه برابر وي، په دے طور چه یو دینار، دَ، لس درهمو شولو او مغیره دَ شعبي نه، هغه دَ جابر نه او ابن منکدر او ابوالزبیر دَ جابر نه چه کوم روایت کړے دے. هغے کښې دَ هغے (اوښ) قیمت نه دے بیان کړے. او اعمش په واسطه دَ سالم. جابر، نه یوه اوقیه سره زر (سونا) نقل کړے دے. او ابو اسحاق دَ، سالم نه، هغه دَ جابر نه نقل کړے دے، چه د تبوک لار کښې ده پوهیږم (یا ماته معلومه ده) په څلور اوقیه ئې اخستے وو. او ابو نضر دَ جابر نه نقل او که، چه هغه (اوښ) ئې په لس دیناره آخستے وو. د شعبي قول، چه په یو اوقیه ئې آخستے وو، اکثرو روایاتونو کښې راغلے دے. امام بخاريؒ اووے، خما په نزد دا زیاته صحیح خبره ده.

## بَابٌ ۸۰۷: اَلشُّرُوْطُ فِي الْمُعَامَلَةِ.

## باب ۸۰۷: معاملاتو کښې دَ شرطونو لږولو بیان.

**۱۲۲۹**: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ حَدَّثَنَا اَبُو الزِّنَادِ عَنِ الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَتِ

**۱۲۲۹**: ابوالیمان. شعیب. ابوالزناد. اعرج. ابوهریرهؓ نه روایت کوي، انصارو نبي صلے الله علیه وسلم ته عرض او که، چه خمونږ او خمونږ د ورونړو

الْاَنْصَارُ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَقْسِمْ بَيْنَنَا وَ بَيْنَ اِخْوَانِنَا النَّخِيْلَ قَالَ لَا فَقَالَ تَكْفُوْنَا الْمَئُوْنَةَ وَ نُشْرِكْكُمْ فِي الثَّمَرَةِ قَالُوْا سَمِعْنَا وَ اَطَعْنَا.

مینځ کښې د قجورو اونې تقسیم کړې حضور صلے اللّٰه علیه وسلّم ورته اوفرمائیل نه. نو انصارو مهاجرېنو ته اووې چه تاسو خمونږ د محنت دمه واری واخلې او مونږ تاسو میوه کښې شریکوو هغے حقفو اوئے مونږ ته منظوره دد

۱۲۳۰ : حَدَّثَنَا مُوْسٰى حَدَّثَنَا جُوَيْرِيَةُ ابْنُ اَسْمَآءَ عَنْ نَّافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ اَعْطٰى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَيْبَرَ الْيَهُوْدَ اَنْ يَّعْمَلُوْهَا وَ يَزْرَعُوْهَا وَلَهُمْ شَطْرُ مَا يَخْرُجُ مِنْهَا.

۱۲۳۰ : موسي. جويريه بن اسماء. نافع عبداللّٰه بن عمرؓ نه روايت كوي چه رسول اللّٰه صلے اللّٰه علیه وسلّم د خیبر زمکه یهودیانو ته په دے شرط ورکړله چه په دے کښې محنت او کاشتکاري کويِ او هغوي ته به نیم پیداوار ورکولے شي.

## بـاب۸۰۸: الشُّرُوْطِ فِي الْمَهْرِ عِنْدَ عُقْدَةِ النِّكَاحِ وَ قَالَ عُمَرُ اِنَّ مَقَاطِعَ الْحُقُوْقِ عِنْدَ الشُّرُوْطِ وَلَكَ مَا شَرَطْتَ وَ قَالَ الْمِسْوَرُ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَكَرَ صِهْرًا لَّهُ فَاَثْنٰى عَلَيْهِ فِيْ مُصَاهَرَتِهٖ فَاَحْسَنَ قَالَ حَدَّثَنِيْ وَ صَدَقَنِيْ وَ وَعَدَنِيْ فَوَفٰى لِيْ.

## باب۸۰۸: ذ نکاح تړلو په وخت مهر کښې د شرط لړولو بیان.

او حضرت عمرؓ اووے چه د حق قطعیت دَ شرطونو پوره کولو په وخت ويِ او تاسو ته به هغه رسي چه تاسو دَ هغے شرط کړے ويِ. او مسور اووے ما ذ نبي صلے اللّٰه علیه وسلّم نه واوریدل حضور دَ خپل یو خوم (داماد) ذکر اوکهٔ او ذ هغهٔ دَ خومتوب تعریف ئے اوکهٔ چه دَ هغے حق ئے ښه طور سره ادا کړلو. ماسره ئے خبره اوکړله او رښتیا ئے اوښودله او ماسره ئے وعده اوکړله نو پوره ئے کړله.

۱۲۳۱ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ قَالَ حَدَّثَنِيْ يَزِيْدُ بْنُ اَبِيْ حَبِيْبٍ عَنْ اَبِي الْخَيْرِ عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍؓ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَحَقُّ الشُّرُوْطِ اَنْ تُوْفُوْا بِهٖ مَا اسْتَحْلَلْتُمْ

۱۲۳۱ : عبداللّٰه بن یوسف. لیث. یزید بن ابي حبیب. ابوالخیر. عقبه بن عامرؓ نه روایت کوي دَ هغهٔ بیان دے رسول اللّٰه صلے اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل هغه شرطونه د ټولونه زیات دَ پوره کولو مستحق دي چه ذ هغے په ذریعه دَ ښځو شرم ګاهونه حلال اوګنړلے

بِهِ الْفُرُوْجَ.

شو.

بَــابٌ ۸۰۹: الشُّــرُوْطُ فِــي الْمُزَارَعَةِ.

باب ۸۰۹: مزارعت كښې دَ شرط لږولو بيان.

(مزارعت: زميداري' كر كيله).

۱۲۳۲: حَـدَّثَـنَـا مَـالِكُ بْـنُ اِسْمٰعِيْـلَ حَـدَّثَنَا ابْنُ عُيَيْنَةَ حَدَّثَنَا يَـحْيَى بْنُ سَعِيْدٍ قَالَ سَمِعْتُ حَنْظَلَةَ الزُّرَقِيَّ قَـالَ سَمِعْتُ رَافِعَ بْنَ خَدِيْجٍ يَّقُـوْلُ كُـنَّـا اَكْثَرَ الْاَنْصَارِ حَقْلًا فَكُنَّا نُـكْرِى الْاَرْضَ فَـرُبَّـمَـا اَخْرَجَتْ هٰذِهٖ وَلَـمْ تُـخْـرِجْ ذِهٖ فَـنُهِيْنَا عَنْ ذٰلِكَ وَلَمْ نُنْهَ عَنِ الْوَرِقِ.

۱۲۳۲: مالک بن اسمٰعيل. ابن عيينه. يحيٰي بـن سـعـيـد. حـنـظـلـه زرقي؛ په واسطه دَ' رافع بن خديج روايـت كوي' دَ هغهٔ بيان دے' چه مونږ انصارو كښې ډير زيات دَ' پـټـو مـالـكـان وو' نو مـونـږ به زمكه په كرايه وركـولـه. كـلـه بـه داسـے كيـده' چـه دے زمكه كښې به پيـداوار اوشو' او هغے زمكه كښې به اونه شولو' نو مونږ بـه دَ دے نـه منع كړے شو' ليكن دَ' روپے په بدله منع نهٔ وه شوے[1].

[1]. دلتـه كښې مراد دَ هغه صورت نه كوم كښې چه زميدار او كرونده گر به دا فيصله او كړه چه د پټي د فـلاني ټكړے پيداوار به يو فريق ته ملاويږي او دَ بلے ټكړے بل ته' ولے چه په دے كښې به عموماً يو فريق ته د نقصان او خسارے احتمال وو.

بَـابٌ ۸۱۰: مَـا لَا يَـجُوْزُ مِنَ الشُّرُوْطِ فِي النِّكَاحِ.

باب ۸۱۰: دَ هـغے شرطونو بيان چه نكاح كښې جائز نه دي.

۱۲۳۳: حَـدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَـزِيْـدُ بْـنُ زُرَيْـعٍ حَـدَّثَـنَـا مَعْمَرٌ عَنِ الـزُّهْـرِيِّ عَـنْ سَـعِيْـدٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَؓ عَـنِ الـنَّبِـيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَـالَ لَا يَبِيْـعُ حَـاضِرٌ لِّبَادٍ وَّلَا تَنَاجَشُوْا وَلَا يَـزِيْـدَنَّ عَـلٰـى بَيْـعِ اَخِيْـهِ وَلَا يَخْطُبَنَّ عَلٰى خِطْبَتِهٖ وَلَا تَسْأَلِ الْمَرْاَةُ طَلَاقَ اُخْتِهَا لِتَسْتَكْفِيَ اِنَاءَ هَا.

۱۲۳۳: مُسدّد. يـزيد بن زريع. معمر. زهري. سعيـد. ابـوهـريـرهؓ. نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم نه روايت كـوي' حـضـور صـلے اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل چه هيڅ شهـري دے ديهـاتـي دَ پـاره نـه خرڅوي او مـه نجش (دلالـي) كوئے. او دَ خپل ورور په بيع (بيع) مه زياتوئے. او' مـه دَ هـغـهٔ پـه كويدن دَ كويدن پيغام ليږئے. اونه دے ښـوک ښـځـه خپـله خور (په خاوند) طلاقه كړي' چه دَ هغے لوښے خپل كار كښې راولي.

بَـابٌ ۸۱۱: الشُّرُوْطِ الَّتِـيْ لَا تَحِلُّ فِي الْحُدُوْدِ.

باب ۸۱۱: دَ هغے شرطونو بيان چه حدود كښې جائز نهٔ دي[1].

۱. حـدود ذ اللـه تعالي حق دے. بنده د خپل غالب او قادر پروردګار نافرماني کوي او د هغے په سزا کښې په دۀ باندے حد جاري کولے شي. دے د پاره دا د بندګانو په خپل مينځ کښې صلحے سره دفع کيدلے نشي. چـه کله هم جرم ثابت شي نو حد جاري کول به هم ضروري وي. څرنګ چه پاک حضرت صلي الله عليه وسلّم ددے باب لاندے حديث کښې فيصله اوفرمائيله. البته کومے سزاګانے چه د انسانانو د حقونو په وجے سره ورکړے کيږي په هغے کښې د صلحے وغيره صورتونه پيدا کيدے شي.

۱۲۳۴ : حَـدَّثَـنَـا قُتَيْبَةُ بْـنُ سَـعِيْـدٍ حَـدَّثَـنَـا الـلَّـيْثُ عَـنِ ابْـنِ شِهَـابٍ عَـنْ عُبَيْـدِ الـلّٰـهِ بْـنِ عَبْدِ الـلّٰـهِ بْـنِ عُتَيْبَةَ بْـنِ مَسْـعُـوْدٍ عَـنْ اَبِـيْ هُـرَيْـرَةَ وَ زَيْدِ بْنِ خَالِدِ الْجُهْنِيِّ اَنَّهُـمَـا قَـالَا اِنَّ رَجُلًا مِّـنَ الْاَعْـرَابِ اَتٰـى رَسُـوْلَ الـلّٰـهِ صَـلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَـلَّـمَ فَـقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَنْشُدُكَ الـلّٰهَ اِلَّا قَضَيْتَ لِيْ بِكِتَابِ اللّٰهِ فَقَالَ الْخَـصْـمُ الْاٰخَـرُ وَهُـوَ اَفْـقَهُ مِنْهُ نَعَمْ فَـاقْـضِ بَيْنَنَا بِكِتَابِ اللّٰهِ وَائْذَنْ لِّيْ فَـقَـالَ رَسُـوْلُ الـلّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَـلَّـمَ قُلْ قَالَ اِنَّ ابْنِيْ كَانَ عَسِيْفًا عَـلٰـى هٰـذَا فَـزَنٰـى بِـامْـرَاَتِـهٖ وَ اِنِّيْ اُخْبِـرْتُ اَنَّ عَـلَـى ابْـنِـي الـرَّجْـمَ فَـافْـتَـدَيْـتُ مِـنْـهُ بِـمِائَةِ شَاةٍ وَّ وَلِيْدَةٍ فَسَـاَلْـتُ اَهْـلَ الْـعِـلْـمِ فَاَخْبَرُوْنِيْٓ اَنَّمَا عَـلَى ابْنِيْ جَلْدُ مِائَةٍ وَّ تَغْرِيْبُ عَامٍ وَّ اَنَّ عَـلَـى امْـرَاَةِ هٰذَا الرَّجْمَ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالَّـذِيْ نَـفْسِيْ بِيَدِهٖ لَاَقْضِيَنَّ بَيْنَكُمَا بِـكِـتَـابِ اللّٰهِ الْـوَلِـيْـدَةُ وَالْـغَـنَـمُ

۱۲۳۴ : قتيبـه بـن سـعيـد. ليـث. ابن شهـاب. عبيـدالـلّـه بـن عبـدالـلّه بن عتبه. ابوهريره. زيد بن خالد جهـنـي نـه روايـت دے، چـه يـو اعرابي (بانډيسے) ذ نبي صـلے الـلـه عـليـه وسـلّـم خدمت کښې حاضر شولو. او عـرض ئـے او کـۀ يـا رسول اللّٰه، زۀ تاسوته ذ، اللّٰه واسطه درکوم (لکه چه مونږ وايو ذ، اللّٰه روئ اومنه) چه تاسو، ذ کتاب اللّٰه مطابق څما فيصله اوکړے. دويم فريق هم، چه ذ هغۀ نه زيات پو هـ وۀ. اووے. او. څمونږ په مينځ کښې ذ کـتـاب الـلّـه مـطـابـق فـيـصـلـه اوکړئے. او ماته اجازت راکړه، چـه عـرض اوکـړم. رسـول الـلّـه صلے اللّٰه عليه وسـلّـم ورتـه اوفـرمـائـيـل، بيان کړه، هغه اووے، چه څما خـوئ دۀ سـره مـزدوري کـوله. ذ، دۀ ښځے سره هغۀ زنا اوکـړه. مـاتـه معلومه شوه چه څما په خوئ رجم واجب دے، نـو مـا سـل چيـلـے او يـوه وينزه فديه ورکړه، هغه مِ خـلاص کۀ. بيا ما ذ عالمانونه تپوس اوکۀ، نو هغے خلقو اووے، چه څما خوئ به سل کوړے وهلے شي او يو کال ذ پـاره بـه وطـن نـه شـړلے (جلا وطن) شي. او هغه ښځه سـنـګـسـارول پکار دي. رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلّم اوفـرمـائـيـل. قـسـم دے پـه هـغـه ذات، چه ذ هغۀ په قبضه کښې څـمـا ساه ده زۀ ستاسـو مـيـنـځ کښې ذ کتاب اللّٰه مطابق فيصله کوم. وينزه او چيلے دے ورته واپس کړي، او ستـا خـوئ بـه سل کوړے وهلے شي، او يو کال ذ پاره

رُدٌّ وَّ عَلَى ابْنِكَ جَلْدُ مِائَةٍ وَّ تَغْرِيْبُ عَامٍ اغْدُ يَا أُنَيْسُ إِلَى امْرَأَةِ هٰذَا فَإِنِ اعْتَرَفَتْ فَارْجُمْهَا قَالَ فَغَدَا عَلَيْهَا فَاعْتَرَفَتْ فَأَمَرَ بِهَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَرُجِمَتْ.

به بے وطنه كيږي. او اے انيس، صباله ذَ ده ښځے له ورشه. كه هغه اقرار اوكړي، نو هغه سنګسار كړے. په بله ورځ هغه، هغے زنانه له ورغے، هغے اقرار اوكړ، رسول الله صلے الله عليه وسلم د هغے د سنګسارولو حكم اوكړ، نو هغه ښځه په كاڼړو ويشتو مړه كړے شوه.

## بَابٌ ۱۲ ۸: مَا يَجُوْزُ مِنْ شُرُوْطِ الْمُكَاتَبِ إِذَا رَضِيَ بِالْبَيْعِ عَلَى أَنْ يُّعْتَقَ.

## باب ۱۲ ۸: مكاتب كۀ ذَ آزادولو په شرط په خرڅولو راضي شي، نو كوم شرطونه جائز دي.

۱۲۳۵: حَدَّثَنَا خَلَّادُ بْنُ يَحْيٰى حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ ابْنُ الْأَيْمَنَ الْمَكِّيُّ عَنْ أَبِيْهِ قَالَ دَخَلْتُ عَلَى عَائِشَةَ قَالَتْ دَخَلَتْ عَلَيَّ بَرِيْرَةُ وَهِيَ مُكَاتَبَةٌ فَقَالَتْ يَا أُمَّ الْمُؤْمِنِيْنَ اشْتَرِيْنِيْ فَإِنَّ أَهْلِيْ يَبِيْعُوْنِيْ فَأَعْتِقِيْنِيْ قَالَتْ نَعَمْ قَالَتْ إِنَّ أَهْلِيْ لَا يَبِيْعُوْنِيْ حَتّٰى يَشْتَرِطُوْا وَلَائِيْ قَالَتْ لَا حَاجَةَ لِيْ فِيْكِ فَسَمِعَ ذٰلِكَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَوْ بَلَغَهُ فَقَالَ مَا شَأْنُ بَرِيْرَةَ فَقَالَ اشْتَرِيْهَا فَأَعْتِقِيْهَا وَلْيَشْتَرِطُوْا مَا شَاءُوْا قَالَتْ فَاشْتَرَيْتُهَا فَأَعْتَقْتُهَا وَاشْتَرَطَ أَهْلُهَا وَلَاءَهَا فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْوَلَاءُ لِمَنْ أَعْتَقَ وَإِنِ اشْتَرَطُوْا مِائَةَ شَرْطٍ.

۱۲۳۵: خلاد بن يحيي. عبدالواحد بن ايمن مكي. ذَ خپل پلار نه روايت كوي. چه زۀ بي بي عائشے رضي الله عنها له ورغلم، نو هغے اوفرمائيل، ماله بريره راغله، چه مكاتبه وه، هغے اووے، اے ام المؤمنين. ما (په بيع) اوخله، ځكه چه ځما مالكان ما خرڅوي. بيا ما آزاده كړه. بي بي عائشے رضي الله عنها ورته اووے. ښه. بريرے اووے، خو ځما مالكان به ما خرڅه نه كړي، ترڅو چه ځما ولاء خپله خپله ځان د پاره شرط اونۀ لږوي. بي بي عائشے رضي الله عنها ورته اووے. بيا ماته ستا ضرورت نشته. نبي صلے الله عليه وسلم دا خبره واورېده يا، دا خبر ورته اورسيدلو، نو وے فرمائيل، ذَ بريرے څۀ خبره ده. دا، واخله، او آزاده ئے كړه، او هغے خلقو سره شرط اوكړه، څۀ چه هغوي غواړي. بي بي عائشے رضي الله عنها بيان اوكړ، چه ما هغه واخسته، او آزاده مې كړه، د هغے مالكانو ذَ ولاء شرط ځان ذَ پاره كړلو. نبي صلے الله عليه وسلم اوفرمائيل، ولاء ذَ هغے چا ده، چه آزاده ئے كړي، اګر كۀ هغوي په سوونو شرطونه اولږوي.

## بَابٌ ۱۳ ۸: الشُّرُوْطِ فِي الطَّلَاقِ وَ قَالَ ابْنُ الْمُسَيَّبِ وَالْحَسَنُ

## باب ۱۳ ۸: طلاق كښې ذَ شرطونو لږولو بيان او

ابن مسيب او حسن او عطاء اووے، ذَ طلاق لفظ دے (د

وَ عَطَآءٌ اِنْ بَدَأَ بِالطَّلَاقِ اَوْ اٰخَرَ فَهُوَ اَحَقُّ بِشَرْطِهٖ.

شرطونونه) مخکښ اووائي. يا ورستو دے اووائي. د دے نفاذ به د شرط مطابق وي.

۱۲۳۶ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَرْعَرَةَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَدِيِّ بْنِ ثَابِتٍ عَنْ اَبِيْ حَازِمٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ نَهٰى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ التَّلَقِّيْ وَ اَنْ يَّبْتَاعَ الْمُهَاجِرُ لِلْاَعْرَابِيِّ وَ اَنْ تَشْتَرِطَ الْمَرْأَةُ طَلَاقَ اُخْتِهَا وَ اَنْ يَّسْتَامَ الرَّجُلُ عَلٰى سَوْمِ اَخِيْهِ وَ نَهٰى عَنِ النَّجْشِ وَ عَنِ التَّصْرِيَةِ تَابَعَهُ مُعَاذٌ وَّ عَبْدُ الصَّمَدِ عَنْ شُعْبَةَ وَ قَالَ غُنْدُرٌ وَّ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ نُهِيَ وَ قَالَ اٰدَمُ نُهِيْنَا وَ قَالَ النَّضْرُ وَ حَجَّاجُ بْنُ مِنْهَالٍ نَهٰى.

۱۲۳۶ : محمد بن عرعره. شعبه. عدي بن ثابت. ابو حازم. ابوهريرهؓ نه روايت کويٍ رسول الله صلے الله عليه وسلّم د دے خبرے نه منع فرمائيلے ده، چه څوک قافلے والو سره بهر په بهر يوځائے شي، او دا چه شهري، دَ ديهاتي دَ پاره بيع اوکړي، او دا چه څوک ښځه دَ خپلے خور، دَ طلاق شرط اوکړي. او دَ، دے نه ئے هم منع فرمائيلے ده، چه يو سړے دَ خپل ورور په قيمت، قيمت اوخيژوي. او دلالي او تصريه (غلانزه کښ پئے پريښودل، چه دَ خرڅولو په وخت معلومه شي، چه دا څناور ډير پئے ورکوي) نه ئے هم منع فرمائيلے ده. معاذ او عبدالصمد دَ شعبه نه دَ دے متابع حديث روايت که، او دَ، غندرؒ او عبدالرحمٰن روايت کښ دَ نُهِيَ لفظ دے (يعني منع کړے شو) او آدم دَ، نُهِيْنَا لفظ بيان کړلو (يعني مونږ منع کړے شو). او نضر او حجاج بن منهال دَ، نهٰى لفظ استعمال کړے دے، يعني حضور صلے الله عليه وسلّم منع فرمائيلے ده.

## اِلحمدللّٰه والشکر لِلّٰه دَ صحيح بخاري لسمه پاره ختمه شوه.